

# تفسیر معارف القران پښتو

## لومړي ټوک

ليکوال : مفتي محمد شفيع رحمة الله عليه

باور کتابتون
bawar.net

دکتاب ځانګړني

| | |
|---|---|
| دکتاب نوم | تفسیر معارف القران پښتو لومړی ټوک |
| مؤلف | مُفتي محمد شفیع رحمة الله علیه |
| ټوک | لومړي ټوک (لومړي، دوهمه ،دریمه ، پاره) |
| کال | نومبر ۱۹۸۴ میلادي ( صفر ۱۴۰۵ ه) |
| خپرندویه | تاج کتب خانه محله جنګي قصه خوانی پشاور |
| پر لیکه کوونکي | عزت الله سلطانزي |

یادونه : د نورو ټوکو نو لپاره زمونږ سره په اړیکه کې وسئ ان شاء الله ډیر ژر به نشر شی


زمونږ سره اړیکه : واټس اپ

**0093706912702**

اویا هم لاندي بریښنالیك او فیسبوك پاني سره اړیکه ونیسئ

azatullahsultanzai@gmail.com

www.facebook.com/Ezatullah.sultanzai

# تفسیر معارف القرآن پښتو

**پاره**

**1**

**تالیف : مولانا مفتي محمد شفیع** رحمة الله علیه

**مجلس ترجمه ونظر ثانی**

**(1) ډاکټر قاضي محمد مبارک**

**(2) ابو حسین مولانا ګل برخان سواتی**

**(3) مولانا سیف الحنان حقانی**

**باهتمام : ډاکټر محمددین**

برېښنايي کوونکی : عزت الله سلطانزي

آړیکه واټس اپ : 009370691272

مفسر : مُفتي محمّد شفیع رحمۃ اللہ علیه

مترجم : ډاکټر قاضي محمّد مُبارک

داولے پارے تاریخ اشاعت : نومبر ۱۹۸۴ء / صفر ۱۴۰۵ھ

کتابت : قاري محمّد عظیمؒ

ناشر : تاج کتب خانه پیښور

## د تفسیر معارف القران پيژندنه

معارف القران د مولانا مفتي محمد شفيع عثماني رحمة الله عليه تر ټولو لوی او عظيم تفسير دی چي د ليکلو او تکميلولو داستان يي خورا د ارمان، زحمت او مشقت دی.

معارف القران هغه بډايه تفسير دی چي په خپله پراخه سينه کي يي هرڅه را غونډ کړي، دا تفسير پخپله يو لويه موثقه او معتمده اسلامي ذخيره ده په کوم کي چي مفتی محمد شفيع عثماني رحمة الله عليه خپل له ټول علم، کمال، فصاحت، بلاغت، جمله بندی او لغات استعمالوني کار اخيستی. او تفسير يي په داسي يو ښکلي شکل ترتيب کړی چي په يو ځل لوستني سره يي لوستونکی و څو ځله لوستلو ته هڅول کيږي او هر ځل به د قران د اعجاز مطابق په کي يو نوي څه مومي.

دا تفسير د مفتی محمد شفيع عثماني رحمة الله عليه د کلنو کلنو د زيار او زحمت نتيجه ده چی مولانا رحمة الله عليه د لنډي ترجمي او تفسير تر څنګ شان نزول، د سورتونو تر منځ ارتباط، د سورتونو فضائل او د ايت څخه د استنباط سوی مسائلو شرحه را اخيستي، پر دي علاوه مولانا رحمة الله عليه د ايت په هکله د مفسيرينو اقوال، د موضوعاتو عنوانونه، نبوي احاديث، د ګمراه فرقو غندنه، د معتريضينو د اعتراضاتو رد او تصوف هم له پامه نه دي غورځولي.

دا تفسير مفتی محمد شفيع عثماني رحمة الله عليه په ډير زحمت او مشقت ليکلی دی ځکه د داسي لوی تفسير د ليکلو لپاره پراخ وخت، کلک عظم او جوړ صحت ته ضرورت سته چي مولانا د تدريس او نورو تصنيفاتو له امله کافی وخت نه درلود او د عمر د ډير والي له امله ورسره بدن ملګرتيا نه کول. ددي تفسير د ليکلو پر مهال څو ځله مولانا رحمة الله عليه دا ويره احساس کړي چي نور به دا تفسير بشپړ نه سي او ټولي پاڼي به يی ضايع سي خو هر ځل او هر پړاو به يي په ډيره ستونزه بشپړاوه. تر دې چي د قران کريم پنځم او شپږم منزل يي ځکه پريښودل چي کوم بل څوک به يي د هغه عربي ليکني څخه بشپړه کی کوم چي مولانا رحمة الله عليه په احکام القران کي کړي ده. خو الله جل شانه ورسره مرسته وکړه او ټول تفسير يي خپله بشپړ کړ. هغه مهال چي د معارف القران تفسير نور و پوره کيدو ته ورسيد پر مولانا رحمة الله عليه مريضی دومره زور وکړ چي تر روغتونه يي ورساوه خو بيا هم مولانا رحمة الله عليه د خپل ټول ژوند په جريان کي د اسلام ميني و دي ته مجبور کړی ؤ چي خپل د پوهي او علم د رڼاګانو په مټ تاريکی رڼا کړي. نو ځکه مفتی محمد شفيع عثماني رحمة الله عليه د دې تفسير څه برخه د مريضی په حالت کي ليکلي.

ددي تفسير د ليکلو په هکله خپله مولانا وايي: "له ما څخه هيڅکله دا دلاوري نه سوای کيدای چي د قران کريم د دومره لوی تفسير د ليکلو اراده وکړم."

## د معارف القران د تفسير شروع:

و مفتی محمد شفيع عثماني رحمة الله عليه ته د راديو پاکستان له خوا دا دړواخست وکړل سو تر څو روزانه د قران متعلق درس وکړي، خو مولانا رحمة الله عليه دا رد کړ. بيا يي يو بل درخواست د مولانا رحمة الله عليه و مخته کيښود چي په هفته کي يو درس د معارف القران تر عنوان لاندي ولري او دا به د ټول قران تفسير نه وي بلکي دا به د هغه خاصو موضوعاتو تفسير وي کوم چي خلک ورته په عامه ډول ضرورت لري. نو مولانا د دا شرط په ايښودلو سره چي هر هغه پابندي نه قبلوم کوم چي زما په نظر د قران کريم سره مناسبه نه وي او دا درس يي ومنی. او دا درس د معارف القران په نامه ۳ شوال ۱۳۷۳ هجري (۲ جولای ۱۹۵۴ ميلادي) کي شروع سو، تقريباً يوولس کاله مسلسل د درسونو دا لړی وچليدل او په ۱۹۶۵ ميلادی کال کی د راديو پاکستان د پاليسۍ د نوی کيدو له امله دا درس نور ختم سو. د راډيو د لاري د معارف القران د درسونو دا لړی د ديارلسمي پاري د ابراهيم پر سورة باندي ختمه سوه، پاته دي نه وي چي په دې ديارلسو پارو کي ټول اياتونه نه وه تفسير سوي بلکي خاص خاص اياتونه را اخيستل سوی وه.

## د معارف القران د تفسير ليکنه:

د معارف القران د تفسير د چاپي شکل ليکلو په هکله خپله مفتی محمد شفيع عثماني رحمة الله عليه وايي:" څه وخت چي مي دا کار شروع کوی ددې ليري ليري خيال هم نه وو چي دا به يو وخت د کتابي تفسير په صورت کی د يوه مستقيل تفسير په شکل چاپيږي، کله چي دا درس نشر کيدل شروع سول نو د پاکستان د ټولو سيمو څخه او تردي زيات په نورو سيمو افريقا، اروپا او نورو کي د اوسيدونکو مسلمانانو د طرفه څخه بي شميره خطونه راډيو پاکستان ته او په خپله و ماته وصول سول؛ د کومو نه چي معلومه سوه چي ډير ديندار او نوی تعليم يافته مسلمانان ددې درس سره ډير محبت لري.

په افريقا کي چي کله دا درس د شپي په اخرى برخه يا د سپيدو پر وخت رسيږي ځکه نو هلته خلکو د ټيپ ريکاډ په واسطه محفوظ کړى او وروسته يي خلکو ته د وار وار اورولو اهتمام کړى دى، او د يو ځاى مسلمانانو دې تشويق زما همت نور زيات کى او د مرضونو او ضعف سره سره تر يوولسو کالو پوري مي دا سلسله په ډيره پابندى سره جاري وساتل، په کال ۱۳۸۳ هجرى (۱۹۶۴ ميلادي) کي چي کله د درس دا سلسله بنده سوه نو د ډيرو حضراتو د طرف څخه دا تقاضا وسوه چي ځومره سوى دى دا دې په کتابي صورت کي چاپ سي او په مينځ کي چي کوم آيتونه پريښودل سوي دي، د هغوى دي هم تکميل وسي. د الله جل شانه په نامه سره مي دا اراده وکړه چي پرموجوده نظرى ثاني او په مينځ کي د پاته آياتونو د تکميل کار دي شروع کړه سي، ځکه نو په ۱۶ د صفر کال ۱۳۸۳ هجرى کي د سورۃفاتحي تفسير نظر ثاني مکمل سو او پر سورۃبقرۃ کار شروع سو. په دې کي د احکامو مشکل آياتونه ډير دي کوم چي د راډيو په نشرى تقرير کي نه وه راغلي. دا کار د ډير محنت، مشقت، او فرصت غوښتونکى وو، ډيرو شغلونو او مرضونو ددې فرصت رانه کى او دا کار تقريباً په ذهول کي پريوتى."

په کال ۱۳۸۸ هجرى کي ځکه مفتى محمد شفيع عثماني رحمة الله عليه اته روژي وخوړلي او لمونځ يي په ناستي شروع کړ ځکه چي د شعبان په مياشت کي يي په بدن کي يوه دانه راپورته سوه چي له امله يي و مولانا رحمة الله عليه ته زيات ضعف ورسيدى، ورځ تر بلي يي د ژوند اميد پري کيدى خو زيات افسوس ورته په دې کيدى چي دا تفسير تکميل نه سو، نامکمله پاته سو او پدي فکر کي سو چي دا پاڼي به ضايع سي. د مولانا رحمة الله عليه زياتي اسلامي روحيي او احساس دى مجبور کړ چي په همداغه معذورۍ او ناجوړۍ کي د تفسير ليکل شروع کړي چي مولانا رحمة الله عليه يي په هکله وايي:

" الله جل شانه په زړه کي همت راکى او د ۱۳۸۸ کال د شوال په مياشت کي الله جل شانه دا کار راباندي شروع کړى او په کال ۱۳۸۸ د ذي القعدي پر ۲۵ مه د سورۃبقري تکميل وسو او د کتابت او طباعت لپاره ورکړل سوه، ددي څخه وروسته عيني د ناجوړۍ او معذورۍ په حالت کى دا کار په تدريجي رفتار سره چليدى. الله جل شانه ددي په برکت سره لس مياشتي وروسته معذوري هم رفع کړه، نو د ۱۳۸۹ کال د رجب په مياشت کي کار يو څه تيز سو."

په سياسي ميدان کي

په ۱۳۸۹ کال په پاکستان کي حالات خراب سول، د انتخاباتو بحث او خبري هر ځاى شروع سوي او د انتخاباتو څخه اصلي موخه او هدف دا ؤ چي د خالص اسلامي حکومت

ځای دي کمونیزم او سوشلیزم ونیسي نو مفتی محمد شفیع عثماني رحمة الله علیه و دي ته اړ سو تر څو خپل قوم له دي خبر کړي چي د اسلام او سوشلیزم تر منځ فرق څه دی؟ نو یې د سیاست و میدان ته را ودانګل که څه هم مولانا رحمة الله علیه له ډیر وخت څخه ځان له سیاست څخه ګوښه کړی ؤ. هر ځای ددي مبارزي لپاره جد او جهد شروع سو او جلسي عامي سوې د مولانا رحمة الله علیه په وینا ګټه یې ځکه و نه کړل چي د سوشلیزم له طرفدارانو سره زیات زور (طاقت) او زور (دولت) ؤ حال دا چي موږ یوازي مسائل او حقایق بیانول.

تر دې انتخاباتو وروسته بیرته مولانا رحمة الله علیه د معارف القران د تفسیر و لیکلو ته ملا وتړل او په کال ۱۳۹۰ کي د رجب په میاشت کي د دیارلسو پارو نظری ثاني او مینځ کي پاته ځایونه تکمیل سول او د سورةابراهیم څخه تر سورةنحل پوري د دوو پارو نور تفسیر نور هم ولیکل سو، تر دي وروسته تر سورةفرقان پاره نولس پوري مکمل سو.

د پاته تفسیر په هکله مفتی محمد شفیع عثماني رحمة الله علیه وایی:

" مخ ته د قران دري منزلونه یعني تقریباً دریمه حصه قران پاته وو. د عُمر د مختلف قسم مرضونو پر بناء دا خیال راغی چي ددې تول تکمیل شاید زما څخه و نسي مګر د درمیاني پنځم او شپږم منزلونو تفسیر ما په احکام القران کی په عربي کی لیکلی دی کوم چي چاپ سوی دی. که ما و نه لیکلای سوای نو تر ما وروسته به یو څوک د احکام القران تفسیر په اردو کي نقل او ترجمه کړي. او دا حصه به پوره کړي او ددي وصیت مي هم څو حضراتو ته وکړ او دا دوه منزلونه مي په مینځ کي پریښوول او اخری اووم منزل می د سورة ق څخه شروع کی، د الله جل شانه کومک لاس راکی او د ۱۳۹۱ کال د ربیع الاول څخه شروع وسوه او د همدي کال د شوال تر میاشتي پوري اخری منزل مکمل سو. او سورة ص، صافات او زخرف زما په زوی مولوی محمد تقي عثماني باندي و لیکل سوه او په خپله مي نظری ثاني پر وکی. د معارف القران د تفسیر یوازي یوه نیمه پاره پاته وه چي د ربیع الثاني پر ۲۴مه په کال ۱۳۹۲ یعني اتمه د جون ۱۳۷۳ ناڅاپه د زړه یو سخت مرض راته پیښ سو چي تر روغتونه یي ورسولم، دري ورځي وروسته راته ډاکټر د روغیدو اطمینان راکړ نو مي و خپل زوی محمد تقي عثماني ته وویل تر څو پاته دی تکمیل کړي خو تر لږو ورځو وروسته مي د صحتمند کیدو احساس وکی، تردي چي د لوستلو او لیکلو سوم، خو په لږ کار کولو سره به ستړی کیدم خو دالله جل شانه په فضل سره په کال ۱۳۹۲ کي د شعبان پر یویشتمه تفسیر مکمل سو او په اتفاقي ډول سره دا ورځ په ۱۳۱۴ کي زما د زوکړي ورځ هم وه نو د تفسیر د تکمیلیدو په ورځ زما د عمر ۷۷ کاله پوره او ۷۸ شروع سو."

د تفسير د تکميليدو په دي اوږده او ستونزمن سفر کي مولانا رحمة الله عليه هر وخت دا فکر کاوه چي بشپړ به نه سي خو د لوی الله عزوجل فضل او کرم ؤ چي و مولانا رحمة الله عليه ته به يي همت ورکاوه تر څو معارف القران تفسير مکمل سي. د تفسير ليکلو پر مهال به مفتی محمد شفيع عثماني رحمة الله عليه ويل:

" د قران تفسير ختمول مقصود نه دي بلکي په قران کي عمر ختمول مقصود دي."

دا تفسير په حقيقت کي په زيات مشقت او زحمت سره ليکل سوی دی، الله تعالی دي و مفتی محمد شفيع عثماني رحمة الله عليه ته اجرونه نصيب کړي. اللهم امين

ددي تفسير اردو ژباړه د شاه رفيع الدين صاحب او د شاه عبدالقادر رحمة الله عليه د اردو ژباړو او د تفسير عثماني څخه چي د شيخ الهند مولانا محمود الحسن ديوبندي رحمة الله عليه او شيخ الاسلام مولانا شبير احمد عثماني رحمة الله عليه ګډ تاليف دی اخيستل سوي ده ځکه د مولانا رحمة الله عليه په وينا چي په کومه بل ژبه کي د تفسير ليکلو تر ټولو لوی کار د قران کريم لفظي ترجمه ده. او دي کي لږ زياتی يا کمی پيدا کول هم جايز نه دي.

په اصل کي معارف القران د لاندی درج سوو شيانو جامع جوړ دی:

۱. د قران کريم دوي مستندي ترجمي، يوه د شيخ الهند کومه چي په اصل کي د شاه عبدالقادر صاحب ترجمه ده او دوهم د حکيم الامت تهانوی رحمة الله عليه د بيان القران ترجمه.

۲. لنډ تفسير چي په حقيقت کي د بيان القران خلاصه ده سره د تسهيله کوم چي جلا هم د قران مجيد پر حاشيه طبعه کيږي.

۳. دريم شی معلومات او مسائل دي چي خپله د مفتي محمد شفيع عثماني رحمة الله عليه و طرف ته منسوب دي او خپل د کار محور يي دی.

د مولانا رحمة الله عليه په دا تفسير کي د لاندي مشهورو تفسيرونو څخه استفاده سوي ده:

الف. تفسير القرطبی (ابوعبدالله محمد بن احمد انصاری قرطبي)

ب. تفسير ابن کثير (اسماعيل بن عمر بن کثير)

ج. تفسير المظهری (قاضي محمد ثناءالله مظهری)

او د معارف القران د ليکلو طرز د ابوعبدالله محمد بن احمد انصاری قرطبي و تفسير قرطبي، د روح المعاني او د قاضي محمد ثناءالله مظهری و تفسير مظهري ته ورته دی. معارف القران لومړی ځل په اردو کي ليکل سوی او بيا پښتو ته د ډاکټر قاضي مولانا ګلبهان صواتي او مولانا سيف الحنان لخوا په ګډه ژباړل سوی دی. په انګليسي ژبه هم ژباړل سوی او اوس په ايران کي د اهل سنت علماؤ لخوا عربي ته ژباړل کيږي. او فارسي ترجمه يې هم ليکل سوې ده.

ددي تفسير څخه خپله علماء او مؤلفين په تقاريرو، تصنيفاتو او د ستونزو په حل کي کار اخلي. او ددي تفسير په مأخذ نيولو سره څو نور درست کتابونه ليکل سوي دي. د بېلګي په توګه د مولانا خالد محمود په زيار د معارف القران د عبرتناکو قصو راټولونه د (قصص معارف القران) په نوم او د جناب محمد اقبال قريشی صاحب کتاب چي د معارف القران ټول مسائل يي د "مسائل معارف القران " په نوم کتاب کي راټول کړي.

په پښتو کي دا تفسير لس ټوکه دی خو په اردو کي د مفتی محمد شفيع عثماني رحمة الله عليه په وينا چي ده مبارک په خپل قلم اوه زره ۷۰۰۰ صفحي ليکلي دي.

د هر مسلمان لپاره لازمه ده تر څو دا تفسير خپل په کور کي ولري تر څو له فيض څخه يي برخمن سي او خپل د ژوندانه د تاريکيو مشال يي و بولي.

د مفتی محمد شفيع عثماني رحمة الله عليه په هکله په اردو ژبه کتابونه ليکل سوي دي چي د مولانا رحمة الله عليه د ژوند د طريقي، سلوک، علم، حلم، ديانت، تقوا، خشوع او تصنيفاتو په هکله په کښي درست معلومات سته چي يو کتاب مفتی محمد تقی عثماني د ميری والد ميری شيخ په نوم او بل کتاب مولانا مفتی محمد رفيع عثمانی د حياتِمفتی اعظم په نوم ليکلی. او د مولانا د ښه پيژندني لپاره په youtube کي د مولانا رحمة الله عليه مرکي موندلای سو.

علی الله متوکل الرحمن

سرچينه: تعليم الاسلام ويب پاڼه

یادونه

په پښتو ژبه کې په انټرنټ کې مخکې یوائې تفسیر عثماني چې په تفسیر کابلي مشهور دي خپور شوي و

او وروسته بیا عزیز التفاسیر او ورپسي تفسیر دیوبندي هم خپور شو.

د دغي تفاسیرو ،سره ملګرو بیا، بیا ځلي زمونږ څخه تفسیر معارف القران پښتو ژبه کې غوښتنه کوله .

رښتیا هم په پښتو ژبه کې داسې مفصل تفسیر شتون نه درلود چې په کي مستنبط فقهي احکام په ساده ژبه بیان شوي وي

دا یوائې تفسیر معارف القران دي چې مستنبط فقهي احکام په کې په ساده ژبه او داهلسنت والجماعت دعقیدې موافق بیان شوئ.

ماهم داسلامي دین د خدمت په خاطر تفسیر معارف القران لومړئ ټوک چې دري سپاري دي بریښنا یي او په باور کتابتون کې مي خپري کړی

ان شاء الله د دي تفسیر شریف نور ټوکونه به هم ډیر ژر چمتو او خپاره شي

مونږ په خپلو دعاګانو کې یاد ساتئ

تاسي كولي شئ نوموړئ تفسير شريف د باور كتابتون څخه خپل ځيرك مبايلونو او كمپيوټرونو ته ښكته(ډانلوډ) كړئ.

يادونى وړده چي لاندى مي هم برېښنايې كړي چي ځينى يې خپاره شوى او ځيني پاتي دى چي به هم وخت ناوخت نشريږي

01_احقاق الحق څلور ټوكه 2000 پاڼې

02_دواده درسم او رواجو اصلاح 72 پاڼې

03_دموراو پلار حقوق مولانا شاه حكيم محمد اختر 64 پاڼې

04_ جوامع الكلم څلويښت احاديث مفتي محمد شفيع 17 پاڼې

05_داسلام ستر اتل امام اعظم ابوحنيفه (رح) 123 پاڼې

06_نبوي او سپيڅلې ويناوې 88 پاڼې

07_دخالد بن وليد رضي الله عنه جهادي كارنامې 73 پاڼې

08_حقوق الرجال يعنى دخاوند حقوق.49 پاڼې

09_ د همجنس بازي بربادى او دهغه علاج 61 پاڼې

10_ تفسير معارف القران لس ټوكه لومړي همدا او پاتي دسكن كولو په حال كي پاڼې867

11_داسلامي معلوماتو ذخيره پښتو 316 پاڼي

12_دامام اعظم ابوحنيفه رحمة الله عليه حيرت انګيز واقعات 329 پاڼي

13- لس مشهورې ناروغۍ پېژندنه ، لاملونه ، نښې ، او درملنه ۱۰۴ پاڼې په باور کتابتون کی خپور شوی ،

عزت الله سلطانزی

بسم الله الرحمن الرحیم

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِیْنَ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ مَالِكِ یَوْمِ الدِّیْنِ وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلٰی اَشْرَفِ الْاَنْبِیَاءِ وَالْمُرْسَلِیْنَ وَعَلٰی اٰلِهٖ وَاَصْحَابِهٖ اَجْمَعِیْنَ - وَبَعْدُ:

په پښتو ژبه کښې د قرآن پاک د تعلیماتو د ښوردولو په غرض علماء کرامو وقتاً فوقتاً دَ قرآن کریم تراجم او تفاسیر لیکلی دی. لکه: تفسیر حبیبی د مولینا عبدالحق دارمنګوی صاحب ترجمۀ قرآن وحاشیه، دَ حافظ محمد ادریس صاحب تفسیر قرآن او تفسیر کابلی ( چه په افغانستان کښې د علماء کرامو یو جماعت د شیخ الهند ترجمۀ قرآن او د مولانا شبیر احمد عثمانی حواشی په پښتو ژبه کښې اړولی دی)

دا ټول ترجمې او تفسیرونه په پښتو ژبه کښې ډیر شهرت لری. او دَ قرآن پاک د علومو دَ خدمت په میدان کښې ستر مقام لری.

د غې ترجمو او تفاسیرو سره سره ماته دَ دې خبرې ضرورت محسوسیدلو چه پښتو ژبه کښې یو داسې مفصل تفسیر قرآن هم پکار دې چه په هغې کښې دَ تفسیری علومو نه علاوه دَ قرآن مجید نه مستنبط فقهی احکام هم په آسانه ژبه کښې بیان شوی وی.

زۀ په دې تکل کښې ووم چه دَ تاج کتب خانې پېښور مهتم جناب محمد دین صاحب (لیکچرار شعبه اسلامیات پېښور یونیورسټی) ماته دا مشوره راکړه چه د مفتی اعظم پاکستان مولانا مفتی محمد شفیع دیوبندی (مرحوم) تفسیر "معارف القرآن" کۀ په پښتو ژبه کښې ترجمه شی نو دا به دَ قرآن مجید او پښتو ژبې ډیر لوئې خدمت وی. دا خبره زما هم خوښه شوه ځکه چه دَ یو مفصل تفسیر لیکلو دَ پاره دَ ژورې مطالعې، کافی وخت، وسیع علم او دیوې سترې کتب خانې لرل ډیر ضروری وو. دَ دې وجې نه ما ته د حضرت مفتی صاحب دَ مشهور او مستند تفسیر "معارف القرآن" پښتو ژبې ته اړول زیات غوره او آسان کار ښکاره شو. او په دغه نیت سره مې دې کارته اراده اوکړله چه د هغې په نتیجه کښې دَ تفسیر

معارف القرآن د ټولې مجموعې د پاره د پښتو په جامه کښې ستاسو په خدمت کښې حاضره ده. زه په دې کوشش کښې ترکومه حده کامیاب یم د دې فیصله خو به قارئین کوي شي. البته د دې تفسیر قارئینو ته زما درخواست دې چه په کوم ځائې کښې څه سهو یا غلطي ورته ښکاره شي نو ماته دې د اطلاع ورکولو کوشش اوکړي چه په آئینده خورونه کښې د هغې اصلاح اوشي. او بله دا چه د دې کتاب دلوستلو په وخت کښې اصل مُصنّف، مُترجم، ناشر، کاتب او جمله برخه اخستونکي په خپلو دُعاګانو کښې ضرور یاد ساتي. وَمَا تَوْفِيقِيٓ إِلَّا بِاللّٰهِ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَإِلَيْهِ أُنِيبُ

مُترجم

ډاکټر قاضي محمّد مُبارک

ایسوسی ایټ پروفیسر شعبه عربي
پیښور یونیورسټي

۲۳ شوال ۱۴۰۴ھ
الهلال ـ دانش آباد پیښور

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# سُورة الفاتحه

دا سُورت مکي دے او اووه آياتونو باندے مُشتمل دے۔

**د سورتِ فاتحے فضيلتونه او خصُوصيات**

په قُرآن کريم کښے سورةِ فاتحے ته ډير خصُوصيات حاصل دي، يو دا چه قُرآن کريم د سُورةِ فاتحے نه شروع کيږي۔ مونځ هم په فاتحے سره شروع کيږي۔

او د نازليدو په اعتبار سره مکمل سورت چه اول نازل شوے دے هغه د غه فاتحه ده۔ اوُله دَغه وجهِ نه دے ته د فاتحة الکتاب نوم ورکړے شوے دے۔

دويمُ خصوصيت ئے دا دے چه فاتحه په يو ډول، دَ ټول قُرآن متن دے او باقي قُرآن دَ دغه متن دَ شرح ډول لري۔ ځکه چه د قرآن کريم ټول مضامين د ايمان او دَ عملِ صالح دَ بيان نه بهر نهٔ دي۔ او دَ دے دواړو مضامينو بنيادي اصول په فاتحه کښے بيان کړے شوي دي[1]۔ له دغه وجهِ نه دے ته په صحيح احاديثو کښے دَ اُمّ القرآن۔ اُمّ الکتاب او قرآن عظيم نوم ورکړے شوے دے (قرطبي[2])

ياد دے ته دَ متن او باقي قُرآن ته دَ دے د شرحِ رنګ په دے وجه حاصل دے چه په دے سورت کښے، هغه سړي ته چه دَ قرآن تلاوت، يا مطالعه شروع کوي، يو خاص هدايت کړے شوے دے، چه دا سړے دِ دَ خپل ذهن نه مخکښے ټول خيالونه او فکرونه اوباسي او خالص د حق دَ طلب د پاره دِ، قُرآن اُولولي۔ او د خدائے تعالیٰ نه دِ دَ سيغ لارے دَ هدايت موندلو خواست اُوکړي۔ نو دَ دغه خواست د جواب دَ پاره (يعني قبلولو د پاره) ټول قُرآن دے، چه دَ "الٓمّٓ ذٰلِكَ الْكِتٰبُ" نه شروع کيږي۔ يعنې اِنسان چه دَ الله تعالیٰ نه د سيغ لارے خواست کړے وو، نو د هغې په جواب کښے په ذٰلك الکتاب سره دا اشاره اُوکړے شوه،

---

[1] تفصيل دَ پاره روح المعاني دَ آلوسي ج: ۱، ص ۳۵، ۳۶ چاپ بيروت، دار الاحياء اُوګوره۔
[2] دا بوعبد الله محمد بن احمد القرطبي ج: ۱، ص: ۱۰۸، طبع ثانيه، القاهره، دار الکتب المصرية ۱۳۵۰ هـ

چه ته څۀ غواړې، هغه به دې کتاب کښې شته۔

رسول کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلی دي چه زما دې په هغه ذات قسم دی چه دَ هغه په قُدرت کښې زما رُوح دے، دَ فاتحې په شانې، نۀ یو سورت په تورات کښې نازل شوے دے؛ او نۀ په انجیل او زبور کښې۔ او نۀ په قرآن کریم کښې څۀ بل سُورت د دې مثل کیدے شي۔ (دَ دے حدیث روایت ترمذي دَ ابی هریرةؓ نه کوي، او وائي چه دا حدیث حَسَن صحیح دے۔

او حاکم دَ دے حدیث په باره کښې وائي چه دا حدیث صحیح، او دَ مسلم په شرط پُوره دے (مظهري)[1]

او په بیهقي شعب الایمان کښې دي: چه نبي صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي، چه سورة فاتحه د هرې بیمارۍ دپاره شفا ده (مظهري)[2]

په حدیث کښې دَ سورت فاتحې یو نوم شفا هُم راغلے دے (قرطبي)،[3] او په صحیح بخاري کښې، دَ انسؓ په روایت کښې دي، چه نبي صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي چه دَ قرآن کریم په ټولو سورتونو کښې ډیر عظیم الشان سورة، الحمد لله رب العلمین دے (قرطبي)[4]

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

**بِسۡمِ اللّٰهِ دَ قرآن یو آیت دے**

په دے د ټولو مسلمانانو اتفاق دے چه بِسۡمِ الله دَ سورتِ نمل یو جُزء دے، لکه چه په دے هُم اتفاق دے، چه ماسِوا دَ سورتِ توبه نه دَ هر یو سورت په سر کښې بسم الله لیکلے شي۔ البته په دے کښې د مجتهدینو اِمامانو اِختلاف دے، چه بسم الله دَ فاتحې، یا دَ نورو سُورتونو جُزء دے، او کۀ نه۔ دَ امام ابوحنیفهؒ دا مسلک دے، چه بسم الله، ماسوا دَ سورتِ نمل نه د بل یو سورت جزء نۀ دے، بلکه دا یو مستقل جُدا آیت دے او دَ دوو سُورتونو په مینځ کښې دَ جُدائي د ظاهرَولو دپاره نازل شوے دے۔

---

[1] د محمد ثناء الله ج ۱، ص: ۱۱، طبع، اشاعة العلوم، حیدرآباد دکن۔

[2] د دغه پرومبني مرجع او صفحه

[3] ج: ۱، ص: ۱۱۳

[4] ج: ۱، ص: ۱۰۸ لیکن په قرطبي کښې خو دادي چه بخاري دا حدیث دَ ابي سعد بن المعلی نه روایت کړے دے۔ او دا حدیث چه په بخاري کښې په کوم ځائے کښې راغلے دے هغه ټول ځایونه ما اوکتل خو په یو کښې هم راته انسؓ ښکاره نشو۔ البته په ترمذي کښې دي چه دغه حدیث روایت دَ انسؓ نه هم شته۔

**د قرآن تلاوت او د هر اهم کار شروع په بسم الله پکار ده**

دَ جاهلیت د زمانے دَ خلقو دا عادت وو چه هغوئ به دَ خپل کارونو شروع د بتانو په نوم کوله. د دغه جاهلی عادت د ختمولو دپاره دَ قرآن کریم اولنے آیت نازل شو چه هغه "اِقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ" دے چه دے کښے دَ الله په نوم سره دَ قرآن دَ شروع کولو حکم ورکړے شوے دے.

علامه سیوطیؒ لیکلی دی، چه د قرآن نه علاوه نورو ټولو آسمانی کتابونو هم په بسم الله شروع شوی دی او بعض علماء دا وائی چه بسم الله الرحمٰن الرحیم دَ قرآن او دَ اُمتِ محمدیه دَ خصوصیاتو نه ده. دَ دے دواړو اقوالو تطبیق دا سے کیدے شی چه دَ الله په نوم سره د ټولو آسمانی کتابونو شروع یو مشترکه خبره ده. البته فرق صرف دا دے چه دَ بسم الله الرحمٰن الرحیم الفاظو سره شروع د قرآن خصوصیت دے. لکه چه په بعض روایتونو کښے دی چه نبی صلی الله علیه وسلم اول دَ هر کار شروع "باسمك اللّٰهم" سره کوله، چه هرکله د بسم الله الرحمٰن الرحیم آیت نازل شو نو بیائے د دغه الفاظ د هر کار شروع کولو دپاره غوره کړل. او د دغه شان دا همیشه دپاره سنت جاریه او گرځیدو (قرطبیؒ و روح المعانی)

په قرآن کریم کښے ځائے په ځائے دا هدایت کړے شوے دے، چه هر یو کار دِ دَ الله په نوم شروع کړے شی. او نبی صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی، چه کوم کار د الله په نوم اخستو سره شروع نه شی، هغه بے برکته وی.

یو حدیث کښے دی: چه د کور دروازے بندَ دلو په وخت 'بسم الله' وایئ. که ډیوه مړه کول وی، نو بسم الله وایئ. که لوښے پټول دی نو هم بسم الله وایئ. د خوراک په وخت کښے د اَوبو څکلو په وخت کښے، د سوریدنو په وخت کښے او د سورلئ نه، د کوزیدلو په وخت کښے، د بسم الله د ویلو حکم په قرآن او حدیث کښے راغلے دے (قرطبیؒ)

**بسم الله سره د هر کار شروع کولو کښے حکمت**

په اسلام کښے، د هر کار شروع کولو په وخت کښے بسم الله ویل، له دے وجے نه مقرر کړے شوی دی، چه په دا سے کولو سره به مسلمان په هره کړئ کښے، د خپل دے حلف وفاداری تجدید اَوکړی، چه

---

۱ ج: ۱، ص: ۳۹ ۲ زمانه نزد مفتی صاحب مرحوم ..... دا خبره محل نظر ده.
۳ ج: ۱، ص: ۹۷، ۹۸

دَ هغهٔ وجود، او د هغهٔ هر کار د الله تعالیٰ دَ ارادے نه بغیر کیدلے نه شی۔

دا کار خومره ور کوتے دی، نه پکښې دومره وخت لګی او نهٔ پکښې څهٔ مشقت ته ضرورت وی، لیکن فائده ئے خومره کیمیائی ده۔ او لویه دا، چه دُنیاوی کار ئے د دین کار کړځی یو کافر هم روټئ خوری او مسلمان هم۔ لیکن یو مسلمان د خپلے نوړیٔ نه وړاندے چه بسم الله اُووائی، نو دا اقرار اُوکړی، چه په دے نوړیٔ باندے د زمکے نه دَ پیداکیدلو وخت نه د پخیدلو پورے د زمکے او د آسمان، دستورو، او هوا د مخلوقاتو، او بیا په لکونو بنیادمو خومره ډیر محنت شوے دے، دَ دا سے نوړیٔ حاصلول زما په قدرت کښے نه وو، دا خو دَ الله تعالیٰ ذات دے، چه دا نوړیٔ دَ دا سے مراحلو نه تیره کړه او بیا ئے ما ته راکړه۔

مؤمن او کافر دواړه اوده کیږی او د خوب نه بیدار یږی، کرځی راکرځی لیکن مؤمن دَ اُوده کیدو نه وړاندے او د بیداریدو په وخت کښے چه بسم الله اُووائی نو خدائے تعالیٰ سره د خپل تعلق تجدید اُوکړی، او په دغه شان کولو سره، دا ټول دُنیاوی او معاشی ضرورتونه، دَ خدائے ذکر او عبادت اُوګرځی۔

مؤمن چه په سورلیٔ سوریږی، او بسم الله اُووائی، نو دے دا ګواهی کوی چه دَ دے سورلیٔ پیدا کول، او بیا دا زما په اختیار کښے راکول، دا انسان دَ وس نه بهر خیز دے۔ دا خو دَ الله تعالیٰ دَ مضبوط نظام کار دے، چه چرته نه ئے لرګی، چرته نه ئے اوسپنه، او چرته نه ئے قسما قسم دهاتونه، او چرته نه ئے کاریګر، او چرته نه ئے چلوونکی زما په خدمت کښے لګیا کړی دی، کرایه څهٔ، په لږو پیسو ټکو دَ الله تعالیٰ دا دومره ډیر مخلوق، په خپل خدمت کښے راولم۔ نو دا پیسے خو ما د خپل ځان سره، څهٔ د بل ځائے نه نه دی راوړی بلکه دا هم د هغه ذرائعو نه حاصلے کړے شوے دی، چه هغه الله تعالیٰ پیدا کړی دی۔

فکر اُوکړئ چه د اسلام دے لږ لنډ تعلیم سره انسان د کوم ځائے نه کوم ځائے ته رَسی نو له دے وجے نه دا وئیل بالکل درست دی، چه بسم الله یوه نسخهٔ اکسیر ده، چه دے سره تانبه خو لا څهٔ کوے چه خاوره سره زرکیږی۔ فلله الحمد علیٰ دین الاسلام و تعلیماته۔

**مسئله** دَ قرآنِ کریم د تلاوت شروع کولو په وخت کښې، اول "اَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّیْطٰنِ الرَّجِیْمِ" او بیا "بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ" وئیل سُنت دی. او دَ تلاوت په مینځ کښې، هم د سورةِ براءت نه ماسِوا دَ هر سُورت په شروع کښې، بِسم الله وئیل سُنت دی.

د بَرَنی وړاندې شوی تمهید نه پس دَ بسم الله الخ تفسیر ملاحظه کړئ:-

**د بِسْمِ اللّٰهِ الخ تفسیر** بِسْمِ اللّٰه: دا کلمه له درې الفاظو نه جوړه ده، یو حرفِ باء، دوېم: اسم، درېم: اَللّٰه. عربئ ژبه کښې دَ حرفِ باء ډیرې معنے دی، چه په هغوئ کښې درې معنے دلته کښې مناسبې دی او اِستعمالیدے شي.

اولنئ معنی: مصاحبت: یعنی د یو شي د بل شي سره متصل کیدل، دوېمه معنی: اِستعانت: یعنی د څه شي نه مدد اخستل، درېمه معنی: تبرک: یعنی د څه شي نه برکت حاصلول. د الله لفظ، د خدائے تعالیٰ په نومونو کښې، دَ ټولو نه لوئے او جامع نُوم دے، بعض علماء دے ته "اسمِ اعظم" وائي. او دا نوم دَ خُدائے نه سوا بل چا ته نشي ایښے. دغه وجه ده چه ددے لفظ تثنیه او جمع نه راتلے شي. ځکه چه خُدائے یو دے او ددهٔ څوک شریك نشته. مطلب دادے چه الله نوم د هغه ذات دے چه هغه د ټولو صفاتو کمالیوو سرچینه ده او د هغه ذات بے مثل او بے نظیره دے.

نو د بِسْمِ اللّٰهِ معنی، د حرفِ باء دَ دغه درېو معنو په وجه، دا شوه:

د خدائے تعالیٰ په نوم سره، د خدائے تعالیٰ په مدد، د خدائے تعالیٰ د نوم په برکت.

لیکن په دے درے واړو صورتونو کښې دا خبره څرګنده ده، چه تر څو پورے دَ هغه کار ذکر اُونکړے شي چه د الله په نوم سره یا دَ هغه په برکت سره د دغه کار کول مقصود دے، تر هغه پورے دا کلام مکمل نهٔ دے، نو په دے وجه د نحوې قاعدے موافق، دلته یو داسے فعل، چه د مقام سره مناسب دے، محذوف دے. مثلاً: شروع کوم، یا لولم دَ الله په نوم سره.

او سنهٔ خو داده چه دا فعل روستو محذوف اُوګنړلے شي او دا دے غرض دَ پاره

چه بالکل شروع دخدائے د نوم نه اُوشی، او هغه فعل محذوف دَ الله دَ نوم نه وړاندے راشی. هاں، د حرف بآء د الله لفظ نه وړاندے راتلل د عربئ د ژبے یو نهٔ خلاصیدونکے ضرورت دے.

او په مصحفِ عثمانی کښے د صحابوُ په اجماع، حرفِ باء دَ اِسم سره یوځائے کول او همزه دَ اسم لفظ نه ویستل په دے غرض شوی دی، چه شروع دَ اسم الله نه اوشی. که دا مقصد نه وے، نو بیا د رسم الخط د قاعدے مطابق حرفِ باء د اسم لفظ د الف سره یو ځلے کول پکار دو، چه د هغے شکل داسے کیږی باسم الله.

د غه وجه ده چه نورو ځایونو کښے د غه الف نهٔ دے حذف شوے او د رسم الخط مطابق صرف باء سره یوځائے کړے شوے دے، لکه "اِقْرَاْ بِاسْمِ رَبِّكَ" کښے.

الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ: دا دواړه دَ الله صفات دی. د رحمٰن معنیٰ عام الرحمت ده، او د رحیم معنیٰ تام الرحمت ده. د عام الرحمت مطلب دا دے چه الله هغه ذات دے چه دَ هغهٔ رحمت په ټولو کائناتو، چه هغه اوس پیدا دی یا به پیدا کیږی خور دے. او د تام الرحمت مطلب دا دے چه د هغه رحمت کامل مکمل دے.

د غه وجه ده چه "رحمٰن" لفظ، الله پورے خاص دے، یو مخلوق ته رحمٰن وئیل روا نهٔ دی. ځکه چه د الله تعالیٰ نه سوا داسے څوك کیدے نشی چه دَ هغه رحمت نه د جهان یو شے خالی نهٔ وی. او په د غه وجه د اللهٰ لفظ پشانے د رحمٰن د لفظ تثنیه او جمع راتلے نشی. ځکه چه دا لفظ د یو ذات سره خاص دے، دَ دویم او دریم په دیکښے گنجائش نشته (قرطبی)، بخلاف د رحیم لفظ نه، ځکه چه د هغه په معنیٰ کښے داسے څه شے نشته، چه هغه په مخلوق راتله ممکن نهٔ وی. ځکه چه کیدے شی، چه یو سړے د بل سړی سره پوره پوره د رحمت معامله اُوکړی.

د غه وجه ده چه رحیم لفظ د انسان د پاره کیدے شی، په قرآن کریم کښے نبی صلی الله علیه وسلم د پاره وئیلے شوے دے، لکه: بِالْمُؤْمِنِيْنَ رَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ.

**مسئله** | دے نه دا معلومه شوه، چه ننن صبا چه خلق د عبد الرحمٰن نوم او فضل الرحمٰن کښے لنډ ول کوی او دچا چه دا نامے وی هغه ته په رحمٰن آواز کوی. بنه خبره نهٔ ده، بلکه گناه ده.

**حکمت** | په بسم الله کښے د الله تعالیٰ د اسماء حسنیٰ او صفاتو کمالیونه، صرف دوه

صفت ذکر شوید ی۔ او دا دواړه د رحمت د لفظ نه وتلی دی۔ او دا دواړه د الله تعالیٰ په وسیع او کامل رحمت باندے دلالت کوی۔ په دے تخصیص کښے دے خبرے ته اشاره ده، چه دَ عالَمَ، زمکے او آسمان، او دَ ټولو کائناتو پیدا کول او دَ دوئ پالل صرف دَ الله تعالیٰ دَ رحمت منشاده۔ الله تعالیٰ ته دَ دوئ د پیدا کولو نه څۀ ضرورت وو، او نۀ څۀ الله تعالیٰ دَ دوئ په پیدا کولو مجبوره کړے وو، دا صرف دَ الله تعالیٰ دَ رحمت تقاضا ده چه دا ټول کائنات ئے پیدا کړی دی او دَ دوئ د پاللو انتظام ئے کړے دے۔

**احکام ومسائل** مسئلۀ تعوّذ: دَ تعوّذ معنیٰ أَعُوذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ ویُل دی۔ په قرآن کریم کښے حُکم دے: فَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْاٰنَ فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ [1] یعنی چه کوم وخت، ته تلاوت کوے نو دَ رټلی شیطان نه په خدائے امان غواړه

دَ قرآن شریف دَ تلاوت نه وړاندې، خواه دا تلاوت په مانځه کښے وی یا دَ مانځه نه بهر، دَ اَعُوذ بالله ویُل په اجماع سره سنت دی۔ اَعُوذ بالله ویُل دَ قرآن کریم دَ تلاوت سره خاص دی، دَ تلاوت نه علاوه دَ نورو کارونو په سر کښے صرف بِسْمِ الله ویُل دی۔ او اعوذ بالله ویُل سنت نۀ دی۔

(عالمګیری[2]، باب رابع، من الکراهیة)

چه دَ قرآن شریف تلاوت کول وی، نو اول په اعوذ بالله، بیا په بسم الله ویُل وی۔ دَ تلاوت په مینځ کښے، چه یو سورت ختم شی، او بل سورت شروع شی نو دَ سورتِ براءَت نه سوا دهر سورت په سر کښے بسم الله ویُل دی او اعوذ بالله ویُل نۀ دی۔ که چرے سورتِ براءت دَ تلاوت په مینځ کښے راشی، نو ددۀ سر کښے به بِسْمِ الله نه وائی۔ او که چرے دَ تلاوت شروع دَ سورت براءت نه کوی، نو ددے په سر کښے به اعوذ بالله او بِسْمِ الله دواړه وائی۔ (عالمګیری[3] عن المحیط)

---

[1] النحل: ۹۸　　[2] ج: ۵، ص: ۱۲۰، مطبع مصطفائی دهلی ۱۲۷۸ھ

[3] وړاندے مرجع او صفحه۔

## دَ بِسْمِ اللّٰہ احکام

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ د سورة نمل یو جُز، د ے، او په ټولو ځایونو کښې د دوؤ سورتونو په مینځ کښې یو مستقل آیت د ے۔ له دے کبله، ددے احترام د قرآن کریم د نورو آیاتونو پشان د ے۔ بغیر د اودس نه دے ته لاس لګول روا نه دی۔ د جنابت، حیض او نفاس په حالت کښې ددے وینا، د تلاوت په اراده جائز نه دی۔ البته د څه کار په شروع، لکه خوړل څکل وغیره کښې د دُعا په طور ئے وئیل ګناه نهٔ ده۔ (شرح مینه[1])

مسئله: په اول کښې د اعوذ باللّٰه نه پس بِسم اللّٰه وئیل سنت دی، اختلاف صرف په دے خبره کښې د ے، چه په زوره وئیل سنت دی او که رو۔ امام ابو حنیفهؒ او دیر نور امامانؒ رو وئیل غوره ګڼړی۔

د اول رکعت نه رُوستو په نورو رکعتونو کښې د بِسْمِ اللّٰه وئیلو په سنت کیدو د ټولو اتفاق د ے۔ او په بعضے روایاتو کښې دَ بسم اللّٰه وئیل په هر رکعت کښې واجب ښودلے شوی دی۔

مسئله: په مانځه کښې د فاتحه نه وروستو او د سُورت لوستلو نه مخکښې دَ د بِسْمِ اللّٰه وئیل نه په جهری مونځ کښې او نهٔ په سِرّی کښې د نبی صلی اللّٰه علیه وسلم ثابت دی، او نهٔ د خلفاؤ راشدینو نه ثابت دی۔ د مُنیه په شرح کښې دا د امام ابو حنیفهؒ او ابو یوسفؒ قول لیکلے د ے لیکن دا امام محمدؒ یو قول داسے د ے، چه سِرّی مونځ کښې ددے وینا غوره ده۔ او په بعضو روایاتو کښې دا قول امام صاحب ته منسوب شوے هم د ے۔ او په شامی[2] کښې د بعض فقهاؤ نه نقل دی چه دَ بسم اللّٰه وئیل په سِرّی مانځه کښې غوره کار د ے۔

---

[1] الصغیری د ابراهیم بن محمد الحلبی۔ ص: ۳۱۔ لاهور، مطبع هوپ ۱۲۷۹ ھ

[2] ابن عابدین (په حواله د محیط) ج: ۱، ص ۳۲۹ دار الطباعة المصریة ۱۲۷۲ ھ

# سُورَةُ الْفَاتِحَةِ

| آيَاتُهَا سَبْعٌ | سُورَةُ الْفَاتِحَةِ مَكِّيَّةٌ | وَرُكُوعُهَا وَاحِدٌ |
|---|---|---|
| پدے کے اوۀ آیتونه دی | سورة فاتحة په مکه کښے نازل شو | او یوه رکوع |

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ○

شروع کوم په نامه د خدای چه بیحده مهربان او ډیر رحم والا دے

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۝١ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ۝٢

ټولے ثنا کانے الله لره دی چه پالونکے د ټولو جهانونو دے بے حده مهربان او کامل رحم والا دے

مٰلِكِ يَوْمِ الدِّيْنِ ۝٣ اِيَّاكَ نَعْبُدُ وَاِيَّاكَ

مالک د ورځے د جزا دے ۔ بس ستا مونږ بندګي کوو او بس له تانه

نَسْتَعِيْنُ ۝٤ اِهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ ۝٥

مدد غواړو ۔ مونږ له نیغه لاره او ښایه

صِرَاطَ الَّذِيْنَ اَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ

د هغه کسانو لاره چه هغوی باندے تا فضل کرم کړے دے او چه په هغوی باندے نه

عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّآلِّيْنَ ۝٦

غضب شوے نه دے او چه هغوی ګمراه شوی نه دی

لنډ تفسیر

اَلۡحَمۡدُ لِلّٰهِ رَبِّ الۡعٰلَمِيۡنَ : ټول ثنا کانے الله لره بنائي - چه پالونکے د هر جهان دے - د مخلوقاتو جُدا جُدا، اجناس، او قسمونو ته جُدا جُدا عالَم ویلے شي - مثلاً د ملائیکو عالَم، د بنیادَمو عالَم، د پیریانو عالَم - مٰلِكِ يَوۡمِ الدِّيۡنِ : د ورځې د جزا نه مُراد دَ قیامت ورځ ده، ځکه چه په دے ورځ کښے به هر سړی ته د عمل بدله ورکیدے شي - دَ پنځ لارے نه مراد دَ دین لاره ده - د انعام او فضل نه مراد دَ دین انعام دے - غَيۡرِ الۡمَغۡضُوۡبِ عَلَيۡهِمۡ وَلَا الضَّآلِّيۡنَ : نهٔ لاره د هغه کسانو چه هغوی باندِ ستا غضب شوے دے او نهٔ د هغو لاره، چه هغوی لاره ورکه کړې ده - دَهدایت دَ لارے پریخودل له دوؤ وجو کیګ شي - یو له دے وجے نه چه دے لارے دپاره پوره کوشش اُونهٔ کړے شي - اود ضَآلّین نه دا قسم خلق مُراد دی او بل له دے وجے نه چه دکوشش سره په دے عمل اُو نکړے شي - او دَ غَيۡرِ الۡمَغۡضُوۡبِ عَلَيۡهِمۡ نه دغه خلق مراد دی، ځکه چه سره د پوهے نه، بیاد هغې خلاف کول او په هغې عمل نهٔ کول د خدائے تعالیٰ د ناراضګئ سبب کرځي -

علوم او مسئلے

سورة فاتحه کښے اووه آیاتونه دی، پرو مبني درے آیاتونو کښے د الله تعالیٰ حمد وثنا ده - او روستنو دریو کښے، د انسان دَ طرف نه د دُعا، او د خواست مضمون دے - او د دے دواړو په مینځنی آیات کښے داد واړه څیزونه ګډ او شریك دی - څهٔ پکښے د حمد او ثنا اړخ دے - او څهٔ پکښے دُعا او خواست دے -

په صحیح مُسلِم کښے د حضرت ابوهریرهؓ نه روایت دے - چه نبي صلّی الله علیه وسلّم فرمائیلی دی: چه الله تعالیٰ وائي: چه مونځ (یعنی فاتحه) زما او زما په بنده کښے په دوؤ برخو کښے ویشلے شوے دهٔ - نیمه زما دپاره ده - او نیمه زما دبنده دپاره ده - او څهٔ چه زما بنده غواړی هغه به هغهٔ ته ورکړے شي - بیا نبي صلّی الله علیه وسلّم و فرمائیل: چه کوم وخت بنده اُو وائي: اَلۡحَمۡدُ لِلّٰهِ رَبِّ الۡعٰلَمِيۡنَ، نو خدائے تعالیٰ وائي چه زما بنده زما حمد بیان کړهٔ - او چه کوم وخت بنده اَلرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ اُووائي نو خدائے تعالیٰ وائي: چه زما بندهٔ

زما صفت او ثنا بیان کړه. او چه کوم وخت بنده مَالِكِ يَوْمِ الدِّيْنِ اووائي نو خدائے تعالیٰ وائي: چه زما بنده زما لوئي بیان کړه. او چه کوم وخت بنده اِيَّاكَ نَعْبُدُ وَاِيَّاكَ نَسْتَعِيْنُ اووائي نو خدائے تعالیٰ وائي: چه دا آیت زما او زما د بنده په مینځ کښې شریك دے. ځکه چه دے کښې یو اړخ د خدائے تعالیٰ د حمد او ثنا دے، او دویم اړخ د بنده د دُعا او خواست دے. او ورسره خدائے تعالیٰ دا هم وائي: چه زما بنده ته به هغه څیز ملاویږی چه هغه ئے غواړی. بیا چه کوم وخت بنده اِهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ آخره پورے اووائي نو خدائے تعالیٰ وائي: چه دا ټول زما د بنده د پاره دی، چه کوم څیز هغه غواړی دا به هغه ته ورکړے شی. (مظهری)

د اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ معنیٰ دا ده، چه ټول تعریفونه او ثنا کانے الله د پاره دی، یعنی په دُنیا کښې چرته د څه څیز صفت کیږی هغه په اصل کښې د الله تعالیٰ صفت کول دی ځکه چه په دے رنګینه او نوی والا دُنیا کښې، چه کوم په زرګونو بنائسته نظارے او په کروړونو د فائدے څیزونه کوم انسان د لیمے نه راښیی او خپل ځان ته ئے راکاږی، او په خپل صفت کولو ئے مجبوره کوی، که ژور فکر اوکړے شی، نو دا به معلومه شی چه دا دے ټولو څیزونو په پرده کښې یو د ذات د قدرت لاس کارکوونکے دے. او په دُنیا کښې که چرته د یو څیز صفت کیږی دا دے حقیقت بس دا دے، لکه چه د یو نقش یا تصویر یا د کاریګری صفت اوکړے شی چه هغه په اصل کښې د نقش جوړوونکی او د مُصَوِّر او د کاریګر صفت او تعریف دے.

دے جمله کښې د کثرت او ډیر والی په موجو کښې راګیر انسان ته د یو حقیقت دروازه بیرته کړے شوه او ورته دا او ښودلے شو چه دا ټول کثرتونه او ډیر والی یو وحدت سره تړلی دی، او دا ټول تعریفونه او صفتونه په حقیقت کښې د د غه یو قادرِ مطلق دی او دا ظاهره خبره ده چه هرکله په ټولو کائناتو کښې د حمد وړ په حقیقت کښې یو ذات دے نو بیا د عبادت وړ بس هُم دغه ذات کیدے شی. له دے نه دا معلومه شوه چه اَلْحَمْدُ لِلّٰه اګرچه د حمد ثنا د پاره راوړے شوے ده، لیکن په ضمن کښې ورسره په معجزانه انداز کښې د مخلوق پرستئ بنیاد ختم کړے شوے دے او په مؤثرے طریقے سره د توحید تعلیم چه د ایمان

1/2

د ټولو نه او لئ رکن دے، دا سے بیان شوے دے، چه دعوی ېخپله دلیل هم دے په ترخ کښې نیولے دے
رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ: د ربٌ لفظ په عربئ ژبه کښې پالونکی ته وائی۔ او پالنه دے ته وائی چه یو شے روږ رو دا سے لوئے کړے شی چه هغه د خپل کمال حد ته اُورسی او دده په تدریجي لوړو کښې دده د ټولو بنیګړو خیال اُوکړے شی۔
دا لفظ صرف د الله تعالیٰ د ذات دپاره خاص دے۔ بل چا ته دَ اِضافت نه بغیر رب وئیل روا نهٔ دی۔ ځکه هر یو مخلوق ځپله د پالنے محتاج دے نو هغهٔ به دَ بل څهٔ پالنه اُوکړی۔
اَلْعٰلَمِیْن د عالَم جمع ده۔ او په عالَمین کښې دَ دُنیا ټول اجناس او اقسام، مثلاً آسمان، سپوږمئ، نمر او نور ټول ستوری، هوا، فضا، بریښنا، باران، فرښتے پیریان، زمکه او په زمکه کښې ټول پیدا او بنت، حیوانات، نباتات، جمادات او بنیادم داخل دی۔ نو په دے وجه دَرَبُّ الْعٰلَمِیْنَ معنیٰ دا شوه: چه الله د کائناتو د ټولو اجناسو او اقساموپالونکے او تربیت کوُنکے دے۔
او دا هُم کیدے شی، نکه چه څرنګے دا دنیا چه پکښې مونږه اُوسو، او چه دَ دے نظام شمسي، برق او باران او دے د زمکے په نکونو مخلوقات مونږه کورو وِینو، دا دِ یو عالم وی۔ او دغه شانے په زرګونو نکونو نور عالمونه دِ وی چه هغه د دے عالَم نه بهر په خلا کښے موجود وی۔ امام رازی په خپل تفسیر کبیر کښې لیکی چه دَ دے عالَم نه بهر یو نه ختمیدونکے خلا په عقلی دلیلونو سره ثابته ده او دا هم ثابته خبره ده چه الله تعالیٰ په هر یو څیز باندے قُدرت لری، نو په دے وجه دا څه ګران نهٔ ده چه په دغه نه ختمیدونکی خلا کښې زمونږ د نظر نه لاندے د عالَم په شان نور په زرګونو او نکونو عالمُونه دی۔
د حضرت ابوسعید خُدری رضی نه نقل دی: "چه عالَم څلویښت زره دی، دا دُنیا د مشرق نه ترمغرب پورے یو عالم دے، باقی نور د دے نه علاوه دی"۔ هم دغه رنګه د امام التفسیر حضرت مقاتل نه منقول دی چه عالمُونه اتیا زره دی۔ (قرطبی[۲])

---

۱ ج: ۱ ص ۱۴۴، لبنان مطبع افسټ ۱۳۹۸ ه ۲ ج: ۱ ص: ۱۳۸

او کومه شبه په دې باندې کیدې شوه چه په خلا کښې د انسان د مزاج موافق هوا نشته او هلته کښې انسان یا بل حیوان ژوندې پاتې کیدې نشي. نو امام رازيؒ د دې دا جواب کړې دې چه دا خو ضروري نه ده چه د دې عالم نه بهر په خلا کښې د اوسیدونکو مزاج د زمونږ د عالم د اوسیدونکو پشان وي، چه بغیر د هوانه ژوندی نشي پاتې کیدې. دا وئیلې نشي کیدې چه د هغوئ مزاج او غذا وغیره زمونږ نه د اوسیدونکو نه بالکل جُدا وي.

دا مضمون اوږد سوه اویا کاله وړاندې اسلامي فلسفي امام رازي هغه وخت لیکلې دې چه کوم وخت کښې د خلا او فضا سامان ایجاد شوې نه وو. نن صبا د راکټو وغیره په مدد د خلا سفر کوونکو چه څه بنودلي دي ل دې نه څه زیات نه دي. چه د دې عالم نه بهر د خلا څه حد او انتها نشته او هیڅ وئیلې نشي چه په دې نه خلا صیدونکې خلا کښې څه موجود دي - د دې دنیا ته د ټولو نه نزدې سیارو یعني د سپوږمۍ او د مریخ د آبادۍ متعلق چه کوم تخمینې د نن صبا ماهرین سائنس کوي، هغه هم بس دغه دي. چه که چرې په سیارو کښې څه خلق آباد دي، نو دا ضروري نه ده چه د هغوئ مزاج او طبیعت دِ دا سې وي لکه چه په دې عالم کښې بنیادم، حیوانات او بوټي لري. بلکه ډیره عقل ته نزدې دا ده چه د هغوئ مزاج او د هغوئ خوراک او نور ضروریات دِ د دې عالم د مخلوق نه بالکل جُدا وي نو په دې وجه د دې عالم په مخلوقاتو باندې د هغوئ د قیاس کولو د پاره څه وجه نشته.

په دې لړکښې د نوي معلوماتو د پاره او د امام رازي د تائید د پاره هغه مقاله کافي ده چه هغه حالا یو امریکي خلائي مسافر "جان ګلین" د خلا د سفر کولو نه پس شائع کړې ده. په دې مقاله کښې دیو شعاعي کال په نوم دیو اوږد دې مودې او مسافت پیمانه جوړه کړې ده او د هغې په ذریعه د خپل فکر د وسعت د حد پورې د خلا څه اندازه لګولې ده او بیا ئې دا اقرار کړې دې چه دا هیڅ د وئیلې نشي چه د خلا وسعت څومره دې او څه ځا یه پورې دې.

د قرآن د دې لنډې شانې جُملې سره اوس په قول عالم او د هغې په کائناتو نظر

---

ل دا خبره ما په تفسیر کښې نه ده موندلې.

واچوئ او دَ ذرې په سترګو ورته اوګورئ چه الله تعالیٰ دَ عالَم د پاللو او دَ تربیت څه عجیبه مضبُوط نظام جوړ کړے دے۔ دَ آسمانونو نه واخله تر عناصرو پورے د سیارو ستورو نه واخله تر ذرّو پورے هر یو څیز د دغه نظام په زنځیر کښے تړلے شوے دے۔ او د حکیم مطلق د خاص حکمت د لاندے هر یو څیز خپل خپل کار کښے لګیدلے دے۔

بوے نورئ چه بنیادم ئے څښے خوړے ته راپورته کوی. که ځیرے دَ دے په پوره حقیقت غور او کړے شی نو دا به معلومه شی چه د دے په تیارئ کښے د زمکے او آسمان ټول قوتونه او دَ زرګونو لکونو بنیادمو او حیواناتو کوششونه شامل دی۔ او دا ټول د دے د پاره دی چه بنیادم په دے غور او فِکر اُوکړی او پوهه شی، چه الله تعالیٰ د زمکے نه واخله تر آسمانه پورے ټول مخلوقات د بنیادمو په خدمت کښے مقرر کړی دی نو چه کومه هستی د مخلوقاتو مخدومه کرځولے شوے ده هغه بے کاره، بے مقصد نه کیدلے نشی۔ دَ هغې په هم څه کار وی، د هغې په ذمه به هم څه خدمت وی۔

د غه کار او دغه خدمت چه دَ دے هستئ په ذمه دے، دَ قرآن کریم په دے آیت کښے واضح کړے شوے دے۔

وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْاِنْسَ اِلَّا لِيَعْبُدُوْنَ ہ

" مونږه پیریان او بنیادم د څهٔ بل کار د پاره پیدا کړی نه دی[1] صرف د دے دَ پاره مو پیدا کړی دی چه زما عبادت اُوکړی"

د دے وړاندینی بیان نه دا معلومه شوه چه رَبُّ الْعٰلَمِیْنَ په یو ډول د وړاندینئ جملے اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ دلیل دے۔ هغه دا سے چه هر کله د ټولو مخلوقاتو د پاللو ذمه واریو ذاتِ اَللّٰهُ تعالیٰ وی نو دَ ثنا او صفت حقیقی حقدار بس دغه ذات کیدے شی۔ نو په دے وجه د ومبنی آیت اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ کښے ثنا و صفت سره سره دَ ایمان دَ ټولونه دَ ومبنی رُکن؛ توحید باری تعالیٰ بیان په مؤثرے طریقے سره اُوکړے شو۔

په دویم آیت کښے دَ رحمت د صفت ذِکر' د رحمٰن او د رحیم' په الفاظو کړے شوے دے او دا دواړه الفاظ د مبالغ صیغے دی او د خدا ئے تعالیٰ دَ رحمت فراختیا او کمال بیانوی د دے صفت په ذکر کولو کښے د لته شاید د دے خبرے ته اشاره ده چه دَ دے ټولو مخلوقاتو پالنه او تربیت چه الله تعالیٰ په خپله ذمه اخستے دے، دا هغهٔ د خپل څهٔ

[1] الذاریات: ۵۶

ضرورت او مجبورئ د وجې نه اخستې نۀ دے بلکه دا ټول د هغۀ د فراخ رحمت تقاضا ده.
ځکه چې دا ټول مخلوقات نۀ وې نو هغه ته پکښې څۀ نقصان نشته او چې دی، نو په
هغه باندې څۀ بوج هم نشته.

مَالِكِ يَوْمِ الدِّيْنِ: دَ مالك لفظ د مِلْك نه وَتلے دے او د مِلك معنی دا ده چه په يو څيز
باندې داسې قبضه وی چه هغه په دې باندې د تصرف کولو جائز قدرت لری (قاموس[1])
دَ لفظ دِين معنی ده، جزا ورکول. نو د مَالِكِ يَوْمِ الدِّيْنِ لفظی ترجمه مالك د ورځې دَ
جزا شوه، يعنی دَ جزا په ورځ کښې دَ ملکيت خاوند. اُوس دا خبره چه ملکيت به په څۀ څيز
وی د هغې ذِکر شوے نۀ دے، او په نۀ ذکر کولو کښې عمُوم ته اشاره ده يعنی دَ جزا په ورځ
د ټولو کائناتو او ټولو څيزونو ملکيت صرف دَ خدائے تعالٰی به وی (کشاف[2])

**د جزا د ورځې حقيقت او د هغې عقلی ضرورت**

د جزا ورځ د کومې ورځې نوم دے؟ او د دې حقيقت څۀ دے؟
په ټولو کائناتو باندې دالله تعالٰی ملکيت چه څۀ رنګه قيامت په ورځ به وی، دغه
رنګ دا ملکيت نن هم دے نو بيا په ټولو کائناتو باندې دَ ملکيت د پاره د قيامت د ورځې دَ
خاص کولو وجه څۀ ده؟

دا دوه داسې خبرې دی، چه دَ دې وضاحت پکار دے.

د ړومبئ خبرې وضاحت دا دے چه دَ جزا ورځ د هغې ورځې نوم دے، چه په هغې کښې به
الله تعالٰی د ښۀ او بد عملونو بدله ورکوی. نو دَ مَالِكِ يَوْمِ الدِّيْنِ (د ورځې د جزا) يو فائده
دا شوه، چه دُنيا د جزا ځائے نۀ دے بلکه دا دَ عمل او دَ فرضونو ادا کولو ځائے دے او د جزا
د پاره بل وخت او بل ځائے دے. په دُنيا کښې د يو سړی په عيش او عشرت کښې کيدل دا دَ
دې دليل نۀ دے، چه دا سړے خدائے تعالٰی ته ډير محبوب دے او يا په غم او تکليف کښې
کيريدل، دَ دې خبرې علامه نۀ ده چه دا سړے دَ خدائے تعالٰی خوښ نۀ دے.
البته کله کله په دنيا کښې د څۀ عمل د جزا، يا سزا يوه سپکه شان نمونه ښکاره کيږی

---

[1] د فيروز آبادی ج ۳، ص: ۳۲۰، مصر دارالمامون ۱۳۵۷ هـ

[2] د الزمخشری ج: ۱، ص: ۱۳، القاهرة - مطبع الاستقامة ۱۳۶۵ هـ

خو هغه دَ دغې عمل پوره بدله نهٔ وي. صرف دا کټا هغې او بیداري د پاره یوه نمونه وي.
لکه دَ دے متعلق د قرآن کریم ویناده.

وَلَنُذِيقَنَّهُم مِّنَ الْعَذَابِ الْأَدْنَىٰ دُونَ الْعَذَابِ الْأَكْبَرِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ ۝[1]

مونږ به خلقوته د آخرت د عذاب نه وړاندے (کله، دُنیاکښے) د یو نزدے عذاب خوند ورسکوؤ دے د پاره چه دوئ واپس راؤګرځي.

هر کله چه دا معلومه شوه چه د ښهٔ او بد عمل پوره پوره سزا او جزا په دے دنیاکښے نهٔ حاصلیږي. او دَ عقل، عدل او انصاف دا تقاضا ده، چه ښهٔ او بد برابر نهٔ دي بلکه دَ هر عمل جزاء او سزا حاصلیدل پکار دي، نو له دے وجے نه دا ضروري شوه، چهٔ د دے عالَم نه روستو دِ یو داسے عالَم وي، چه په هغے کښے دَ هر وړکو تي، او لوے د ښهٔ او دَ بد عمل حساب کتاب وي او په انصاف سره دَ هغے جزا او سزا وي. دے ته د قرآن په ژبه کښے یَوْمُ الدِّيْن (د جزا ورځ) قیامت او آخرت ویلے شي. دا مضمون پخپله قرآن په سورت مؤمن کښے په دا ګنه بیان کړے دے. ارشاد دے.

وَمَا يَسْتَوِي الْأَعْمَىٰ وَالْبَصِيرُ وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَلَا الْمُسِيءُ ۚ قَلِيلًا مَّا تَتَذَكَّرُونَ ۝ إِنَّ السَّاعَةَ لَآتِيَةٌ لَّا رَيْبَ فِيهَا وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يُؤْمِنُونَ ۝[2]

ړانده او بینا نکی او هغه خلق چه ایمان ئے راوړے دے او ښهٔ عملونه ئے کړي دي، او هغه خلق چه بد عمله دي یو بل برابر نهٔ دي، تا سو خلق ډیر کم پوهیږئ، قیامت به خامخا راځي (دے د پاره چه د هر عمل بدله پوره پوره ورکړے شي) د قیامت په راتلو کښے څهٔ قسم شك نشته لیکن اکثر خلق نه پوهیږي.

دَ دویمے خبرے وضاحت دا دے چه دَ تمامو کائناتو دَ ذرے ذرے حقیقي مالك، هغه پاك ذات دے چا چه دا کائنات پیدا کړي دي، لوئے کړي ئے دي او پاللي ئے دي، او چه دَ هغهٔ ملکیت په دے کائناتو باندے مکمل دے. په ظاهره هم په باطنه هم په ژوندي هم، په مړي هم او چه د هغه د ملکیت ابتدا، او انتها نشته دے. بخلاف دَ انسان د ملکیت نه چه هغه دار تګ نهٔ دے چه دَ هغے ابتدا او انتها شته، او چه هغه په ظاهر دے او په باطن نهٔ دے، په ژوندي دے او په مړي نهٔ دے. نو له دے نه دَ بصیرت د خاوندانو په نزد نهٔ صرف د ورځے د جزا نه دُنیاکښے د ټولو کائناتو حقیقي مالك یواځے خدائے تعالیٰ دے

[1] السجدة: ۲۱ [2] غافر: ۵۸، ۵۹

نو بیا دَ الله د مالکیت د یارهٔ دجزا د ورځې په خاص کو لو کښے څۀ حکمت د ے؟ هغه حکمت دا د ے چه په مَالِكِ يَوْمِ الدِّيْنِ (یعنی په د ے تخصیص سره) الله تعالیٰ مغرور انسان آګاه کوی. چه په دنیا کښے که څۀ تا ته زما دَ کرم د مخه څۀ ناقص ملکیت په مال او دولت، زمکے، جائیداد وغیره ورکړے شوے د ے، په د ے غرور مۀ کوه، دا دَ خو ورځو ملکیت د ے. یو دا سے ورځ راتلونکے ده چه په هغے کښے به په څۀ څیز دا ناقص ملکیت هم پاتے نۀ شی.

او دَ ټولو کائناتو، مِلك او مُلك به یوازے دَ الله تعالیٰ وی او قرآن کریم پخپله مَالِكِ يَوْمِ الدِّيْنِ دغه برنے تفسیر د سورة مؤمن په د ے آیاتونو کښے کړے د ے۔

يَوْمَ هُمْ بٰرِزُوْنَ لَا يَخْفٰى عَلَى اللّٰهِ مِنْهُمْ شَيْءٌ لِمَنِ الْمُلْكُ الْيَوْمَ ۚ لِلّٰهِ الْوَاحِدِ الْقَهَّارِ ۝ اَلْيَوْمَ تُجْزٰى كُلُّ نَفْسٍۭ بِمَا كَسَبَتْ لَا ظُلْمَ الْيَوْمَ ۚ اِنَّ اللّٰهَ سَرِيْعُ الْحِسَابِ ۝ له

(په کومه ورځ چه ټول خلق (دخدائے تعالیٰ) وړاندے حاضر شی چه د هغوئ څۀ خبره (صورةً) هم دَ خدائے تعالیٰ نه پټه پاتے نۀ شی۔ د دغے ورځ حکومت به دَ چا وی؟ بس یوازے د خدائے تعالیٰ به وی چه هغه یواز غالب دے۔ په دغه ورځ به هر سړی ته بدله ورکړے شی، په دغه ورځ به په چا ظلم نۀ کیږی او الله تعالیٰ ډیر زر حساب اخستونکے دے۔)

اِیَّاكَ نَعْبُدُ وَاِیَّاكَ نَسْتَعِیْنُ تکه چه څرګنده مونږه ستاسو څخه وړاندے دو چه یو اړخ د حمد او ثنا د ے او بل اړخ دَ دُعا او خواست د ے۔ نَعْبُدُ د عبادت دَ لفظ نه وتلے د ے او د عبادت معنیٰ دا ده: چه په نهایت تعظیم او محبت سره د چا د وړاندے د نهایت عاجزئ او فرمانبردارئ اظهار کړیشی. نَسْتَعِیْنُ د استعانت د لفظ نه وتلے د ے او د استعانت معنیٰ ده: د چا نه مدد غوښتل۔

| دَ اِیَّاكَ نَعْبُدُ وَاِیَّاكَ نَسْتَعِیْنُ ربط مخکښینو آیاتونو سره |
|---|

په بنیادم درے حالتونه تیریږی، ماضی، حال او مستقبل دَ درومبنو درے آیاتونو څخه په آیت اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ او آیت اَلرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ کښے بنیادم ته دا آګاهي اوکړے شوه چه بنیادم پخپل ماضی او حال کښے صرف دَ الله تعالیٰ محتاج د ے۔ الله تعالیٰ د ے په ماضی کښے دَ نیشت نه شته کړے او په ټولو کائناتو کښے ده ورته ښۀ شکل او صورت او عقل او پوهه ورکړه۔ او په حال کښے د الله تعالیٰ له طرفه ده ته پالنه روانه ده (جاری) او په مالك یوم الدین کښے ورته دا او ښودل چه په مستقبل کښے هم د ے دَ الله تعالیٰ محتاج د ے، د جزا په ورځ کښے ده ته



له ۱۶ : ۱۷

دَ الله تعالیٰ نه سوا څوك مدد دركولے نهٔ شی۔ هر كله چه په دے دريو آيا تونو كښے دا خبر كنده شوه چه انسان په خپلو دغو درے وارو حالتونو كښے د الله تعالیٰ نه بے نیازه نهٔ دے نو دے خبرے عقلی او طبعی تقاضا دا شوه چه عبادت دِ هم صرف دَ دغے ذات اُوكړے شی او په خپلو كارونو كښے مدد دِ صرف د دغه ذات نه اُوغوښتلے شی چه دَ اِيَّاكَ نَعْبُدُ او اِيَّاكَ نَسْتَعِيْنُ معنی او مطلب دے۔

غرض دا چه د دے څلورم آيت كښے يو[۱] خو دَ الله تعالیٰ ثنا صفت دا سے بيان شوے دے چه دَ عبادت كولو او مدد غوښتلو جوګه ذات صرف الله دے۔ بل[۲] پكښے دَ انسان دَ دُعا او خواست دا سے ذِكر دے چه الله تعالیٰ دِ زمونږ مدد اوكړی او دريم[۳] اړخ پكښے دا دے چه بنده ته دا ښودنه كړے شوے ده چه الله تعالیٰ نه بغير دِ دَ بل هيچا عبادت نهٔ كوی او نهٔ دِ د هغهٔ نه بسوا بل څوك حقيقی حاجت روا ګڼړی چه دَ سوال دپاره د هغه په وړاندِ خپل لاسونه خواره كړی البته الله نه دسوال او دُعا كولو په وخت كښے يو نبی يا ولی لره صرف وسيله جوړول بد بيت نهٔ لري.

په دے آيت كښے صرف الله تعالیٰ نه مدد غوښتلے شوے دے او هغه كار نهٔ دے ښكاره شوے كوم دپاره چه مدد غوښتلے شی، جمهور مفسرين[رح] دے دَ وجه دا بيانوی چه په هر يو كار كښے دَ الله نه مدد غوښتل ضروری دی كهٔ دغه څهٔ دينی، دُنياوی مرادونه وی او كهٔ طاعت او عبادت وی۔

عبادت يواځے مونځ روژے ته نشی ويلے بلكه امام غزالی[رح] په خپل كتاب اربعين كښے دَ عبادت لس[۱۰] قسمونه ذِكر كړی دی: مونځ[۱]، زكوٰة[۲]، روژه[۳]، حج[۴]، دَ قرآن[۵] كريم تلاوت كول، په هر حال[۶] كښے دَ الله تعالیٰ ذِكر كول، حلال[۷] رزق دپاره كوشش كول، دَ ګوانډيانو[۸] او ملګری حقوق ادا كول، خلقو ته[۹] دَ نيكو كارونو حكم كول او دَ بدو نه منع كول او دَ رسول[۱۰] الله صلی الله عليه وسلم

په سُنتو (سُنّت طریقو) عمل کول۔

په دے بنا، الله تعالیٰ سره دَ شرک نهٔ کولو مطلب دا شو چه په محبّت کښے الله سره څوک برابر نهٔ کړی، دَ هغهٔ پشان ویره ئے هم دَ بل چا نه نهٔ وی، دَ بل چا نه ئے طمع، اُمید دَ هغه پشان نهٔ وی، دَهغهٔ پشان تکیه په بل چا نهٔ لری، دَ بل چا خند متگُزاری او فرمانبرداری هم دومره ضروری نهٔ گنړی څومره چه دَ هغهٔ عبادت گنړی، دَ الله نه بغیر دَ بل چا د نوم مَنښته نهٔ کوی او نهٔ په دَ بل چا په وړاندې دومره ځان ذلیل کوی څومره چه دَ الله تعالیٰ په وړاندې ذلیل کوی او داسے کارونه به هم نهٔ کوی چه دَ بیحدٔ ذلیل کیدو نښے دی۔ یعنی رکوع او سجده به هم دَ بل چا په وړاندې (سوا دَ الله تعالیٰ نه) نهٔ کوی۔

هغه درے آخری آیتونه چه په هغې کښے بنیادمِ ته د یو خاص قسم دُعا تلقین او تعلیم شوے دَے، هغه دادی:

اِهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ ۝ صِرَاطَ الَّذِيْنَ اَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّآلِّيْنَ ۝ دَ دے آیاتونو ترجُمه مخکښے تیره شوے ده۔ د لته کښے دَ یو څو اَهمو خبرو ذِکر کول غواړُو۔

**اول د هدایت دَ درجو تفصیل**

دا خبره دَ غور کولو وړ ده چه د صراطِ مُستقیم دَ هدایت دعو ښتو دپاره چه په دے آیت کښے کوم تعلیم ورکړے شو یدے، دا تعلیم د بنیادموَ یو خاص طبقے پورے خاص نهٔ دے بلکه په دے تعلیم چه څنګه عام خلق مخاطب دی، د غه رنګے انبیاء، اولیاء هم مخاطب دی۔ داځکه چه د تخصیص دپاره دلته کښے څهٔ علامه او دلیل نشته۔ او دا هم معلومه خبره ده چه انبیاء علیهم السّلام خو هدایت یافته دی او بل دپاره د هدایت په حقله سرچینه دی، نو بیا دانبیاؤ دد غه حاصل شوی هدایت دپاره دُعا کولو مطلب او مقصد څهٔ څیز دے؟ د دے خبرے او شبهے جواب په درے خبره بانده موقوف دے چه د هدایت حقیقت په

تفصیل سره بیان کړے شی او په دغه تفصیل سره د هدایت متعلق نور ے هغه شبهې به هم ختمے شی چه کوے د هدایت متعلق قرآن کریم کښے عموماً وړاندې راځئ او هغه تضاد او اختلاف به هم ختم شی چه د هدایت متعلق آیا تو نو کښے په دغه تفصیل باندے ناخبرو خلقو ته لوړاندے کیږی۔

دَ هدایت د لفظ ښکلے تشریح امام راغب اصفهانی په مفردات القرآن کښے کړے ده، چه دَ هغې خلاصه دا ده؛[1]

د هدایت اصلی معنیٰ ده "یو سړی ته په مهربانئ سره د منزلِ مقصود دَ طرف تهٔ رهنمائی او ښود نه کول. او هدایت کول په حقیقت کښے صرف د خدائے تعالیٰ کار دے، چه مختلف درجے لری.

یوه درجه د هدایت عامه ده چه د کائنا تو ټولو قسمو نو ته یعنی جمادات، نباتات، حیوانات وغیره ته شامله ده. ددے هدایتِ عامه ذکر د قرآن کریم په دے آیت کښے شوے دے: اَعۡطٰى كُلَّ شَيۡءٍ خَلۡقَهٗ ثُمَّ هَدٰى[2]

"یعنی الله تعالیٰ هر څیز ته د هغهٔ پیدا کیدل ورکړی دی او بیائے د هغهٔ مناسب هدایت کړے دے"

او دغه مضمون په سورة اعلیٰ کښے په دے الفاظو بیان شوے دے.
سَبِّحِ اسۡمَ رَبِّكَ الۡاَعۡلَى الَّذِيۡ خَلَقَ فَسَوّٰى ۝ وَالَّذِيۡ قَدَّرَ فَهَدٰى ۝[3]

یعنی چه هغه د ټولو مخلوقا تو د پاره خاص خاص مزاجونه او خاص خاص کارونه مقرر کړهٔ او بیائے هر یو ته د هغهٔ مناسب هدایت ورکړو.

دا دَ هغه د هدایت نتیجه ده چه د کائناتِ عالم ټول اقسام، خپل خپل سپارلے شوے کار په دا سے ښهٔ طریقے سره کوی چه عقل ورته حیرانیږی.

د لته کښے یو سوال دا راپورته کیږی چه هرکله دا هدایت عامه د کائنات عالم ټولو اقسامو ته شامل شو نو د کائناتِ عالم په اقسامو کښے بعض قسمونه خو داسے دی، چه هغه نهٔ رُوح لری او نهٔ شعور نو دداسے بے رُوحه او بے شعوره قِسمَ مخلوق دَ هدایت سره کار څهٔ دے؟

ددے سوال جواب دادے چه د قرآنی تعلیما تو په رڼا کښے د کائنا تو ټول قسمونه او دَ هغې ذره ذره د خپلے درجے مطابق ژوند، احساس، عقل او شعور لری، دا بله خبره

ده چه دا په بعضو خبرو کښې کم او په بعضو کښې زیات دے۔ او دغه وجه ده چه په کوموکښې چې ډیرکم دے هغوئ بے روحه بے شعوره ګڼړلے شي او په احکامو الهيّه کښې د دوئ د شعور د کمزورئ د وجه اثر او نه کړے شو، چه دوئ په احکامو الهیه مکلف نه کړے شو، او په کوموکښې چه د ژوند آثار خو ښکاره وی لیکن عقل او شعور پکښې ښکاره نهٔ دی۔ هغوئ ته ځناور وئیلے شي۔ او په کوموکښې چه د ژوند د ښکاره آثارو سره سره د عقل او شعور آثار هُم ښکاره وی، هغوئ ته د عقل خاوندان وئیلے شي۔ د دغه عقل او شعور د کمی او زیاتی په وجه په ټولو کائناتو کښې د احکامو شرعیو مکلف یواځې بنیادم او پیریان دی۔ ځکه چه په دوئ کښې عقل او شعور مکمل دے۔ لیکن د دے دا مطلب نهٔ دے چه د بنیادم او پیریانو نه سیوا د کائناتو په اقسامو کښې ژوند احساس او شعور بالکل نشته۔ ځکه چه د الله تعالیٰ ارشاد دے۔

وَإِنْ مِّنْ شَيْءٍ إِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمْدِهِ وَلَٰكِنْ لَّا تَفْقَهُونَ تَسْبِيحَهُمْ ۚ (سورة بنی اسرائیل : ۴۴)

" داسے یو څیز نشته دے، چه هغه د خدائے تعالیٰ د ثناسره د هغهٔ پاکی (په قال یا په حال) نهٔ بیانوی، لیکن تاسو د دوئ پاکی بیانولو باندے نهٔ پوهیږئ "

او په سُورتِ نور کښې ارشاد دے :-

أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ يُسَبِّحُ لَهُ مَنْ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَالطَّيْرُ صَافَّاتٍ ۖ كُلٌّ قَدْ عَلِمَ صَلَاتَهُ وَتَسْبِيحَهُ ۗ وَاللَّهُ عَلِيمٌ بِمَا يَفْعَلُونَ ۝ (۱)

آیا تاته معلومه نهٔ ده چه په زمکه او آسمانونو کښې چه څهٔ مخلوقات دی د الله تعالیٰ پاکی بیانوی او (خاصکر) مرغئ چه په وزرو لوزرو سره الوځی را الوځی۔ ټولو ته خپله خپله دعا او تسبیح معلومه ده۔ او الله تعالیٰ ته د دوئ ټول کاروُنه معلوم دی۔

او دا معلومه خبره ده چه د الله تعالیٰ ثنا او صفت او پاکی بیانول د الله تعالیٰ په پیژندګلو باندے اړه لری۔ او دا هُم معلومه خبره ده چه د الله معرفت او پیژندګلو د ټولو نه ډیر لوے علم دے۔ او دا علم د عقل او شعور نه بغیر حاصلیدلے نهٔ شي۔ لوَ د دے آیاتونو نه دا ثابته شوه چه ټولو کائناتو کښې روح هُم شته، ادراک او احساس هم شته، عقل او شعور هُم شته، لیکن په بعضے کائناتو کښې دا جوهر دومره ډیر کم او پټ دے چه عام کتونکی ته د دے احساس کیدے نهٔ شي۔ لوله د دے وجے نه په عرف کښې دوئ ته بے ساه

یا بې عقله و یلي شي - او په دې درجه دوئ په احکامو شرعیو مکلف کړې شوي نه دي.
دا د قرآن د هغه وخت خبره ده چه په دنیا کښې نه چرته یو فلسفي وو او نه څه فلسفه مدوّن شوې وه - بیا روستو را تلونکو فلسفیانو پخپل وخت کښې دَ دې تصدیق کړې دې - په زړه فلسفه کښې دد ې نظریې بعضې خلق تیر شوي دي او د نوې فلسفې او د سائنس ماهرینو خو دا په ډیر وضاحت سره ثابته کړې ده.
دَ هدایت دویمه درجه د پورتنۍ درجې په مقابله کښې خاصه ده چه صرف هغه خیزونو پورې خاصه ده چه هغې ته په عرف کښې د عقل خاوندان وائي - یعنی بنیادم او پیریان - او دا هدایت د پیغمبرانو په ذریعه هر یو انسان ته ورکړې کیږي - که چا دا هدایت قبول کړو، نو هغه مؤمن او مسلمان گنړلې شي او که چا قبول نکړو هغه کافر گنړلې شي.
دریمه درجه دَ هدایت، دَ دې مخکښینۍ درجې نه هُم خاصه ده، چه هغه صرف مؤمنانو او متقیانو پورې خاص ده - دا قسم هدایت د الله تعالیٰ د طرفه بغیر د څه واسطې نه په بنیادم کیږي - او دَ دې هدایت دویم نوم "توفیق" دې - یعنی دا سې اسباب او حالات پیدا کول چه د هغوئ په وجه د قرآن په هدایت باندې عمل کول آسان شي او د هغې خلاف کول گران شي - دَ دې دریمې درجې د وسعت څه حد نشته او د دې درجې څُه نه ختمیدونکی دي، او دغه قسم هدایت د بنیادم د ترقئ میدان دې - او د نیك عملونو په کولو سره په دې کښې زیات والې کیږي - د قرآن په ډیرو آیاتونو کښې د دغه زیات والي ذکر شوې دې، مثلاً :

| | |
|---|---|
| وَالَّذِيْنَ اهْتَدَوْا زَادَهُمْ هُدًى (۱) | چا چه هدایت قبول کړو، الله تعالیٰ د هغوئ هدایت کښې زیاتوالې کوي. |
| وَمَنْ يُّؤْمِنْ بِاللّٰهِ يَهْدِ قَلْبَهٗ ۙ (۲) | څوك چه په الله باندې ایمان راوړي، الله تعالیٰ د هغهٔ زړهٔ ته هدایت کوي. |
| وَالَّذِيْنَ جَاهَدُوْا فِيْنَا لَنَهْدِيَنَّهُمْ سُبُلَنَا (۳) | څوك چه زمونږ له په لاره کښې کوشش کوي مونږه هغهٔ ته د خپلو لارو نور زیات هدایت کوو. |

(۱) محمد : ۱۷ (۲) التغابن : ۱۱ (۳) العنکبوت : ۶۹

دا هغه میدان دے چه پکښې لوئے نه لوئے نبي او رسول او ولي الله د خپل عمر تر آخره پورې د هدایت د زیاتوالي او دَ توفیق طلب کوونکے بنکاري.

د هدایت د درجو تفصیل نه پس دا معلومه شوه چه هدایت یو داسې څیز دے چه ټولو ته حاصل دے او دے نورو لوړو درجو حاصلول نه لوئ لوئ بندګان بے پرواه نه دی د غه وجه ده چه د سورت فاتحې اهم ترین دُعا د هدایت غو ښتل ګرځولے شوی دی.

چه دَ یوادنیٰ مؤمن د پاره هم مناسبه ده، او د لوئ نبي او ولي د پاره هم د غه رنګ ضروری ده. د غه وجه ده، چه د نبي صلی الله علیه وسلم په آخری عُمر کښې په سورت فتح کښې دَ فتح مکے دَ فائده په بیان کولو کښې دا ارشاد اُوشو: وَيَهْدِيَكَ صِرَاطًا مُّسْتَقِيمًا[1]. یعنی مکه ستا په لاس ځکه فتح کړے شوه چه تا ته د صراط مستقیم هدایت اُوکړے شی. دا ظاهره خبره ده چه نبي صلی الله علیه وسلم دپاره نه هدایت یافته وو او دَ نورو خلقو د پاره، بلکه یو مجسّم هدایت وو، نو بیا په دے موقعه ده ته د هدایت کیدو لو دے نه سوا څهٔ بل مطلب نشته چه د هدایت څه د پیرلو پر مقام د وئ ته په دے وخت کښې حاصل شو.

د هدایت په دے تشریح سره تاسو ته به د قرآن په فهم کښې ډیرے فائدے حاصلے شوے وی.

اول دا چه په قرآن کریم کښې چرته خو هدایت د هر مؤمن او کافر بلکه د ټولو مخلوقاتو د پاره بیان کړے شوے دے او چرته صرف مُتقیانو سره خاص کړے شوے دے، چه د دے نه ناواقف ته په قرآن کښې د تعارض شبه پیدا کیږی. خو د هدایت د عام او خاص درجود معلومیدو نه وروستو، دا شُبه بالکل ختمیږی، چه یو درجه د هدایت عامه ده، او ټولو ته شامله ده او بله درجه خاصه ده او صرف مُتقینو ته شامله ده. دویم دا چه په قرآن کښې خو یو اړخ ته دا ارشاد دے، چه الله تعالیٰ ظالمانو ته یا فاسقانو ته هدایت نه کوی، او بل طرف ته په بار بار دا ارشاد دے چه الله تعالیٰ ټولو ته هدایت کوی. دَ دے جواب دَ درجو د تفصیل نه واضح شو چه هدایت عامه ټولو ته کیدے شی. او دَ هدایت دریمه خاص درجه د ظالمانو فاسقانو په برخه کښې نشته. دریم دا، چه د هدایت په دریو درجو کښې اوله او دریمه درجه بغیرد څهٔ واسطے نه دَ الله تعالیٰ کار دے. په دوئ کښې دَ یو نبي یا رسول څهٔ دخل نشته دے. دَ پیغمبرانو کار صرف د هدایت دَ دویمې درجې

سره دے۔

په قرآن کښې که چرته پیغمبرانو ته هادیان وئیلے شوی دی، هغه د اُدے دویمے درجے په اعتبار سره وئیلے شوی دی۔ او چرته کښې چه دا ارشاد دے:

اِنَّكَ لَا تَهْدِیْ مَنْ اَحْبَبْتَ (۱) یعنی ته هغه کس ته هدایت کولے نه شے چه کوم ته خوښ شوے۔

نو دلته کښې د هدایت دریمه درجه مُراد ده، یعنی ته هغهٔ ته د هدایت قبلولو توفیق ورکولے نه شے۔

مطلب دا چه اِهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِیْمَ، یوه جامعه او ډیره اهمه دُعا ده چه بنیادم ته ښودلے شوے ده۔ له دے نه دُنیا یو فرد بے پرواه نه دے۔ دین او دنیا دواړو کښې د صراط مُستقیم نه بغیر کامیابي ممکنه نه ده۔

دا صراط مستقیم کومه لاره ده؟ دَدے ښودنه، له اِهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِیْمَ نه ورستو په دوؤ آیاتونو کښې صِرَاطَ الَّذِیْنَ اَنْعَمْتَ عَلَیْهِمْ غَیْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَیْهِمْ وَلَا الضَّآلِّیْنَ ۝ کړے شوے ده۔ یعنی د هغو خلقو لاره چه هغوئ باندے تا انعام کړے دے او هغه خلق چه په مشهورو تیرے الله تعالیٰ انعام کړے دے، د هغوئ تفصیل په بل آیت کښې دا سے شوے دے:

اَلَّذِیْنَ اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَیْهِمْ مِّنَ النَّبِیّٖنَ وَالصِّدِّیْقِیْنَ وَالشُّهَدَآءِ وَالصّٰلِحِیْنَ (۲) ط

یعنی هغه خلق چه په هغوئ باندے دالله تعالیٰ انعام شوے دے او دَ الله تعالیٰ په دربار کښې مقبول دی، دَ څلور درجو خلق دی، پیغمبران او صدیقین، شهداء او صالحین۔

صدیقین هغه خلق دی چه دَ پیغمبرانو نه ورستو په اُمت کښې د ټولو نه د زیاتے مرتبے خاوندان دی۔ چه په هغوئ کښې باطنی کمالات هُم وی۔ په عُرف کښې دوئ ته اولیاء وئیلے شی۔ شُهداء هغه خلق دی چه هغوئ د دین په مینه کښې خپل ځانونه ورکړی دی۔ او صُلحاء هغه خلق دی چه د شریعت پوره پوره تابعداری کوونکی وی۔ په واجبو کښې هُم او مُستحبو کښې هُم چه په عرف کښې دوئ ته دیندار وئیلے شی۔

په دے آیت کښې اول په ایجابی او مثبت طریقے سره د صراطِ مُستقیم تعیّن شوے دے، چه دَ دغه څلورو طبقو خاوندانو په لاره تلل، صراطِ مستقیم دے۔ او له دے نه

(۱) القصص: ۵۶ (۲) النسآء: ۶۹

ورستوؤ آیت په آخره حصه کښې، سلبي او منفي طریقې سره د صراط مُستقیم تعیّن کړې شوې دې. ارشاد دې.

غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّآلِّيْنَ ﴿۷﴾

یعني نه د هغو خلقو لاره چه په هغوئ باندې ستا غضب کړې شوې او نه د هغوئ لاره چه لاره ئې ورکه کړې ده.

د مَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ نه مراد هغه خلق دي چه هغوي د دين د احکامو د پيژندګلو باوجود د شرارت، خود غرضئ او خواهشو، نفساني په وجه خلاف ورزي کوي. په نورو الفاظو کښې دا سې شوه چه د الله تعالیٰ د احکامو په تعميل کښې کوتاهي کوي، لکه چه په عام طور سره به يهودو کوله او د دُنيا د ذليل مفاد د پاره به ئې د دين پر يخودو او د نبيانو تو هين به ئې کولو. او ضالين نه مراد هغه خلق دي چه د جهالت او د ناواقفيتيا په وجه د دين په معامله کښې په غلطه لاره روان شوي وي او د دين د مقرر حد نه ودو نه وتلي وي، او په افراط او غلو کښې مبتلا شوي وي. لکه چه عام طور سره د نصاراؤ دا حال وو، چه د نبي په تعظيم کښې دومره د حد نه اُووتل چه هغهٔ ئې خدا ئې اُووې.

د آيت مطلب دا شو، چه مونږ ته هغه لاره نهٔ غواړو، چه هغه د هغو بدعملو لاره ده چه دين کښې د خپل نفساني مرضونو په وجه دا کوتاهئ کوي. او نه هغه لاره غواړو چه د جاهلانو او په دين کښې د غلو کوونکو لاره ده. بلکه هغه لاره غواړو چه درميانه لاره ده چه په هغې کښې نهٔ افراط شته او نهٔ تفريط او چه د خواهشاتو نفسانيو د تابعدارئ او د فاسدو عقيدو نه بالکل پاکه ده.

د سورتِ فاتحې د اووم آيت تفسير ختم شو. د دې سورت خلاصه او مطلب دا دعا ده، چه اې خدايه! مونږ ته صراط مستقيم او بناسې او په دُنيا کښې د صراط مستقيم پيژندګلو ډير لوئې علم او لويه کاميابي ده. او د دې په پيژندګلو کښې د غلطيدو په وجه د دنيا ډير قومونه تباه شوي دي. که دا سې نهٔ وي، خو د خُدا طلبئ د پاره کوششونه کول ډيرو کا فرو هم کړي دي. په د غه وجه قرآن کريم صراطِ مستقيم، ايجابي او سلبي د واړو اړخونو سره وا ضحه کړل.

صراط مستقیم د کتاب الله او رجال الله دواړو په جمع کیدو سره حاصلیږي

دلته کښې یوه خبره د غور وړ ده او هغه دا ده چې په غور کولو سره د علم یوه لویه دروازه بیرته کیږي. هغه دا چې د صراط مستقیم د تعین د پاره خو کنده صفا خبره دا وه چې صراط الرسول یا صراط القرآن ویلې وې. چې دا مختصر هم وو او واضح هم، ځکه چې پوره قرآن په حقیقت کښې د صراط مستقیم تشریح ده او د رسول الله صلی الله علیه وسلم ټول تعلیمات د دې تفصیل دی، لیکن د قرآن په دې ځای عنوانې سورت کښې د لنډ والي او د وضاحت دا طرز پریښودې شو، او د صراط مستقیم د تعین د پاره الله تعالیٰ په مستقلو دوو آیاتو کښې په مثبت او منفي دواړو رخونو سره د صراط مستقیم تعین دا سې اوکړو چې په کښې نیغه لاره غواړي نو هغه خلق تلاش کړي او د هغوی لاره واخلي. قرآن کریم په دې ځای کښې دا اونه وئیل چې د قرآن لاره غوره کړئ ځکه چې صرف کتاب د انسان د تربیت د پاره کافي نه دې او نه ئې دا سې اووئیل چې د رسول لاره غوره کړئ ځکه چې د رسول کریم صلی الله علیه وسلم بقا په دې دنیا کښې همیشه نه ده. او له دوی نه وروستو بل رسول او نبی نشته. نو په دې وجه صراط مستقیم چې د کومو خلقو په ذریعه حاصلیدې شي په هغوی کښې د بنیاد مونه سوا دا سې خلق شامل کړې شوي دي چې ترقیامته پورې به همیشه موندې کیدې شي. مثلاً صدیقین، شهداء او صالحین.

مطلب دا چې الله تعالیٰ د نیغ لارې د معلومولو د پاره د څه خلقو او بنیاد موپیته ورکړه، د څه کتاب حواله ئې ورنکړه. په یو حدیث کښې دي چې کوم وخت نبي صلی الله علیه وسلم صحابو ته دا خبر ورکړو چې د پخوانو امتونو په شان زما امت به هم اویا فرقې کیږي او صرف یو جماعت به په حق وي. نو صحابو پوښتنه اوکړه. دا کوم جماعت دې؟ نو نبي صلی الله علیه وسلم په جواب کښې اوفرمائیل: مَا اَنَا عَلَيْهِ وَاَصْحَابِيْ - یعنی دا هغه جماعت دې چې زما او زما د صحابو په طریقه وي.

په دې خاص طرز کښې شائید دې طرف ته اشاره وي چې د انسان تعلیم او تربیت صرف په کتابونو او روایتونو سره کیدې نه شي بلکه د ماهرو خلقو د صحبت او لیدو نه په ازدکړه حاصلیږي. یعنی په اصل کښې د انسان مربي او معلم بس انسان کیدې شي،

صرف کتاب مُعلِّم او مُرَبّي کیدے نۂ شي -

دا حقیقت دَ دنیا په ټولو کارونو کښې څرګند دے، نهٔ چرته جامے ګنډل صرف دکتاب د مطالعے نه زده کیږی، نهٔ روټئ پخول - نهٔ چرته کښې یو ډاکټر یواځې دَ ډاکټرئ دَ کتاب په کتلو ډاکټر شوے دے - هم دغه رنګه د قرآن او حدیث یواځې مطالعه کول د انسان د تعلیم او دَ اخلاقو د تربیت دَ پاره کافی کیدے نهٔ شي - ترڅو چه دا دَ یو ماهِرنه باقاعده حاصل نه شي - کچرے صرف کتاب کافی کیدے شوے نو بیا دَ پیغمبرانو لیږلو ته څهٔ ضرورت نهٔ وو - کتاب (قرآن) سره رسُول دمُعَلِّم په طور لیږل او دَ صِراطِ مستقیم د معین کولو دَ پاره د خپلو مقبولو بندګانو فهرست ورکول ددے خبرے دلیل دے چه صرف دکتاب مطالعه د تعلیم او تربیت دپاره کافی نهٔ ده بلکه دَ یو ماهرنه ددے ایزده کړه ضروری ده -

له دے خبرو نه دا معلومه شوه چه دَ انسان دَ اصلاح او فلاح دپاره دوه څیزونه ضروری دی - یو کتابُ الله چه په دے کښې دَ انسان دژوند د هر اړخ احکام موجود دی او دوئم رِجال الله یعنی الله والا خلق - مطلب دا چه د کتاب الله په مقصد باندے ځان پوهه کول او بیا په هغې باندے عمل کولو کښې د رِجال الله نه کار اخستل ضروری دی -

| دسُورتِ فاتحه په باره کښې مسئلے او احکام |

په سورتِ فاتحه کښې اول دَ الله تعالیٰ حمد او ثناده، بیا صرف دَ الله تعالیٰ دَ عبادت کولو اقرار دے او ددے خبرے اظهار دے چه مونږه دا الله تعالیٰ نه سِوا بل څوک خپل حاجت پوره کوُونکی نهٔ ګنړو - دا یو قسم دَ وفادارئ سوګند دے - چه بنیادمے دخپل پروردګار سره کوی - له دے نه ورستو یوه اهمه دُعاده چه دَ انسان ټولو مقاصدُو او ضروریاتو باندے حاوی ده -

په سورتِ فاتحه کښې دَ دغه بَرَنو خبرو نه علاوه ډیرے ضمنی فائدے او مسئلے هم راغلی دی - دلته کښې د څو اهمو مسئلو ذکر کول پکار دی:

| ۱- دَ دُعا کولو طریقه |

دَ کلام په دے خاص طریقے سره چه سورتِ فاتحه کښې ده، انسان ته الله تعالیٰ د دُعا کولو دا تعلیم ورکړے دے، چه هر کله

بنیادم د الله تعالیٰ نه څه غواړي نو هغه له پکار دي چه اول د الله تعالیٰ حمد او ثنا اوکړي او بیا د دے خبرے د وفادارئ سوګند اوکړي چه د الله تعالیٰ نه سوا څوك لائق ------ د عبادت نه دے او نه څوك په حقیقت کښے د چا مشکل کشا او حاجت روا دے او بیا د خپل مطلب دعا اوکړي په دا سے طریقے سره چه کومه دعا اوکړے شي نو هغه خامخا قبلیږي.

(احکام القرآن)[1]

او په دعا کښے دا سے جامع دعا اوکړي چه سره د لنړ والي نه په هغے کښے د انسان ټول مقصد ونه داخل شي. لکه د صراط مستقیم هدایت غوښتل. ځکه چه دا یو دا سے شیئ دے کچرے دانسان په دنیوي او دیني هرکار کښے راشي نو هغه به هیڅ کله نقصان اونه مومي.

۲- د انسان د فطرت تقاضا دا ده چه انسان د الله تعالیٰ حمد او ثنا اوکړي

د دے سورت په ړومبئ جمله کښے د الله تعالیٰ د حمد بیانول تعلیم او ترغیب دے، لیکن حمد د څه نعمت یا د یو صفت په وجه کولے شي او د لته کښے د څه نعمت او صفت ذکر نشته دے نو په دے کښے د دے خبرے ته اشاره ده چه د الله تعالیٰ نعمتونه بے حسابه دي. یو بنیادم په د غه نعمتونو باندے احاطه کولے نه شي لکه د قرآن کریم ارشاد دے.

وَإِنْ تَعُدُّوا نِعْمَتَ اللَّهِ لَا تُحْصُوهَا (۲)

یعني کچرے تاسو د الله تعالیٰ د نعمتونو شمار کول اوغواړئ نو اوبه نه کړے شئ.

بنیادم کچرے دا ټول عالم پریږدي او صرف پخپل ځان نظر واچوي نو ده ته به دا معلومه شي چه دے پخپله یو وړکوټے عالم دے او د لوئ عالم ټولے نمونے پکښے شته دے. د هغه بدن د زمکے په شانے دے او ویښته ئے د بوټو په شانے دي، او هډوکي ئے د غرونو په شانے دي، او د هغه د رګونه چه پکښے وینه ځئ راځي په زمکه کښے د نهرونو د چینو او نهرونو په شانے دي.

بنیادم له دوؤ څیزونو نه جوړ دے. یو بدن او بل روح. او دا هم ظاهره خبره ده چه د قدر او قیمت په اعتبار روح اصل، اعلیٰ او بهتر دے. بدن صرف د روح تابع دے او ادنیٰ درجه لري. د دے ادنیٰ جزو په باره کښے طبیبان او د تشریح الابدان خلق دا سے وائي چه په دے کښے تقریباً، الله تعالیٰ، پنځه زره مصلحتونه او فائدے ایښي دي. په دے کښے

(۱) د ابوبکر جصاص رازي ج: ۱، ص: ۲۴، مصر، المطبعة البهية ۱۳۴۷ هـ (۲) النحل: ۱۸

درے سوؤنه زیات پیوندونه دی او هر یو پیوند الله تعالیٰ پخپل کامل قدرت سره داسے مضبُوط جوړ کړے دے چه په هر وخت کښے د حرکت کولو سره هم نه څوليږی او نه چرته ورته د مرمت کولو ضرورت پېښیږی۔ عادةً د بنیادم عُمر شپیته اویا کاله وی۔ تمام عُمر دده د غه نرم او نازك اندامونه او دَدوئ پیوندونه په اکثرو وختونو کښے په داسے حرکت کښے وی، که چرے د دے په ځائے فولاد وے نو هغه به څوليدلے وو لیکن الله تعالیٰ فرمائی :-

نَحْنُ خَلَقْنٰهُمْ وَشَدَدْنَآ اَسْرَهُمْ (۱) مونږه بنیادم پیدا کړی دی او دَدوئ پیوندونه مو مضبُوط کړی دی۔

دادَ دغه قُدرتی مضبوطیا اثر دے چه دعام عادت مطابق دا پیوندونه تر اویا دُنه زیات کلونو پورے کار کوی۔ دَ اِنسان په اندامونو کښے صِرف پوے سترگے ته اُوگوری چه په دے کښے الله تعالیٰ کوم حکمتونه ایښی دی، بنیادم که چرے ټول عُمر اُوګوی نو دا حکمتونه به سرته او نه رسوی۔ بیا دَدے سترگے دیو ځل عمل ته اُوگوری او دا حساب اوګوئ چه دَدے دیو منټ په عمل او کار کښے د الله تعالیٰ څومره نعمتونه کار کوی، نو حیران به پاتے شئ ځکه چه د سترگے په غړیدو کښے اود څه څیز په لیدو کښے چه څومره داد ننی قوتونه په کار لګیا دی د ومره بهرنی مخلوقات هم په کار اخته دی۔ که چرے دَ نمر رنړا نه وی نو د سترگے د ننه رنړا کار کولے نه شی۔ بیا د نمر د پاره د فضا ضرورت دے۔ له دے نه دا معلومه شوه چه د سترگے په یو ځل لیدل کولو کښے د ټول عالَم قوتونه کار کوی۔ دا خو دیو ځل عمل دے، بیا سترگه په ورځ کښے څو ځله کتل کوی او کال کښے څو ځله او عُمر کښے څو ځله۔ دا یوه داسے سلسله ده چه د دے شماره د انسان د طاقت نه بهر ده۔

د غه شان د غوږ، د ژبے، د لاس او د خپو چه څومره کارونه دی، بیا هغوئ کښے دَ ټول عالَم قوتونه شامل دی۔ دا خو هغه نعمت دے چه په دے کښے د شاه، گدا څه فرق نشته۔ د الله تعالیٰ ټول لوئے لوئے نعمتونه داسے دی چه د هغے نه هر یو انسان فائده اخلی۔ د زمکے او آسمان نه او په دوئ کښے د ټولو

(۱) الانسان : ۲۸

کائناتو نه لکه سپوږمۍ، نور، ستوري، هوا او فضا شوه، هر ژوندی فائده ترې اخلي.

له دې نه ورسته د الله تعالیٰ خاص نعمتونه دي، چه هغه الله تعالیٰ د انسان افرادو ته د خپل حکمت په وجه په داسې طریقه ورکړي دي چه بعضو ته ئې ډېر ورکړي دي او بعضو ته لږ. او دغه نعمتونه مال دې، دولت دې، عزت دې، مرتبه ده، آرام دې او راحت دې. دا خبره بالکل واضحه ده چه د الله تعالیٰ عام نعمتونه، چه هغې کښې ټول بنیادم برابر شریك دي. د خاص نعمتونو په مقابله کښې ډېر زیات اهم، او اشرف دي. لیکن نا پوهه انسان د دغه عام نعمتونو په باره کښې څه توجه نه کوي او صرف د دهٔ نظر په دغه خاصو معمولي نعمتونو لګي.

بهرحال دا د هغه نعمتونو سرسري نمونه ده چه په هر وخت کښې په هر انسان باندې د الله تعالیٰ د طرف نه کیږي. نو د دې دا لازمي نتیجه شوه چه انسان دې د خپل طاقت برابر د دغو احسانانو او انعاماتو کوونکي حمد او ثنا اوکړي او کوي دې. او د دغه فطري تقاضې د تلقین د پاره د قرآن د ټولو نه رومبني سورت په رومبني آیت کښې رومبنئ کلمه "الحمد" راوړې شوه او د خدائے تعالیٰ حمد او ثنا ته په عبادت کښې لويه درجه ورکړې شوه. نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي، چه هرکله بنده ته د خدائے تعالیٰ د طرفه څه نعمت ورکړې شي او دا بنده په هغې باندې اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ اُووائي، نو دا داسې شوه چه ګویا دهٔ چه څهٔ اخستي دي د هغې نه ئې ډېر غوره څیز ورکړو (قرطبي)[1]

په یو بل حدیث کښې دي چه که د ټولې دنیا نعمتونه یو سړي ته حاصل شي او هغه په دې باندې اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ اُووائي، نو دا اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ د ده نه ټولو دُنیوي نعمتونو نه غوره او بهتره ده. قرطبي[2] د بعض عالمانو نه نقل کړي دي چه د دې مطلب دا دې چه اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ په ژبه وئیل هُم د الله تعالیٰ یو نعمت دې او دا نعمت د ټولو دُنیوي نعمتونو نه افضل دې. په یو صحیح حدیث کښې دي، چه په الحمد لله سره د عمل د تلې نیم چا بره ډکیږي. او د حمد حقیقت حضرت شقیق بن ابراهیم دا بیان کړې دې چه هرکله الله تعالیٰ تا ته څهٔ څیز درکړي، نو اول ورکوونکے او پیژنه بیائے چه څه ئې درکړي دي په هغې باندې راضي شه او بیا ستا په جُوثه کښې تر څو مره پورې هغه قوت او طاقت موجود دې، چه هغه هم دهٔ درکړې دې د دهٔ نافرماني مهٔ کوه (قرطبي)[3]

د ویمه کلمه "لِلّٰه" ده. په دې کلمه کښې الله سره حرفِ لام لګولې شوې دې او د دې لام ته

(۱) ج:۱،ص:۱۳۱ (۲) دغه مرجع او هم دغه صفحه (۳) دغه مرجع، ص: ۱۳٤-

د عربئ په قواعدو کښې د اختصاص لام د يَوْ شي چه دَ څه حکم يا وصف په خاص کولو باندې دلالت کوي - دلته کښې ددې معنیٰ دا شوه چه ټولې دا نه ده چه د الله تعالیٰ حمد او ثنا دَ بنیادم فریضه ده بلکه د ے سره دَ دے کلے نه دا هم معلومه شوه چه په حقیقت کښې دَ الله تعالیٰ نه سوا په دُنیا کښې بل څوک د حمد او ثنا مُستحق نهٔ شي کیدے - البته دا هم دَ الله تعالیٰ انعام دے چه بنیادم ته د هغې نه یې ، اخلاق تود بنودلے دَ پاره دا حکم کړے دے ، چه زما نعمت او احسان تا ته د کومو واسطونه حاصل شي نو دد غه د اسطوهم شکر کوه - ځکه چه کوم بنیادم دَ خپل انساني مُحسن شکر کوونکی نهٔ وی نو هغه دَ الله تعالیٰ شُکر هم ادا کولے نشي -

۳- یو بنیادم له خپله ځان مدحه او ځپله کول روانهٔ دی

دَ قرآنِ کریم ارشاد دے :
فَلَا تُزَكُّوٓا اَنْفُسَكُمْ هُوَ اَعْلَمُ بِمَنِ اتَّقٰى (۱)

" تا سو د خپلو ځانونو د پاکئ او صفائئ دعویٰ مهٔ کوئ الله تعالیٰ هغهٔ سِنهٔ پیژني چه د چا شعار تقویٰ ده "

مطلب دا دے چه د بنیادم د صفت او ثنا مدار په تقویٰ دے او دَ دے حال الله تعالیٰ ته معلوم دے چه د چا تقویٰ د څومره درجه ده - او الله تعالیٰ کهٔ خپل ثنا صفت بیان کړے دے ، دَ دے وجه دا ده چه عاجز بنیادم طاقت نهٔ لرلو چه د الله تعالیٰ ثنا او صفت څرنګ اُوکړي او دَ هیچا طاقت نشته چه هغه د الله تعالیٰ د شان لائق ثنا او صفت اُوکړي - نبی کریم صلی الله علیه وسلّم فرمائیلی دی : لَآ اُحْصِيْ ثَنَآءً عَلَيْكَ : " څه ستا دَ شان موافق ثنا کولے نهٔ شم " -

نو په دغه وجه الله ځپله بنیادم ته دَ ثنا او دَ صفت طریقه اُوښوده له -

۴- دَ رب لفظ الله پورے خاص دے ، بل چا ته رب ویئل روانه دی

رب هغه چا ته ویئلے شي چه هغه د څهٔ څیز مالک وی او د دغه څیز تربیت ، اصلاح هم پوره پوره کوی او دا ظاهره ده چه د ټولو کائناتو او مخلوقاتو د غه شانے رَب دَ الله تعالیٰ نه سوا بل کیدلے نهٔ شي - لهٔ دے وجے نه دَ دے لفظ اطلاق الله تعالے پورے خاص دے او غیر الله ته رب ویئل روانهٔ دی - د صحیح مُسلم په حدیث کښې دی : چه یو نوکر یا غلام دِ خپل مالک او آقا ته رب نهٔ وائي - هغه یو خاص څیز ته دَ

(۱) النجم : ۳۲

اضافت په وخت کښې د رب لفظ ويل بنيادم وغيره د پاره روا دی - مثلاً : ربّ المال، ربّ الدار (قرطبی[1]) -

**(۵) دَ استعانت دَ معنی وضاحت او دَ وسيلې دَ مسئلې تحقيق**

دَ قُرآن مفسر حضرت عبدالله بن عبّاس رضی الله عنه دَ إِيَّاكَ نَعْبُدُ او إِيَّاكَ نَسْتَعِينُ معنیٰ داسې کړې ده، چه مونږ ستا عبادت کوُو - له تا نه سوا دَ بل چانه مدد نهٔ غواړو (ابن جرير[2]، ابن ابی حاتم)

بعضې اسلافو صالحينو فرمائيلی دی چه سورت فاتحه دَ ټول قرآن دَ راز خلاصه ده او إِيَّاكَ نَعْبُدُ وَ إِيَّاكَ نَسْتَعِينُ د ټولې سورتِ فاتحې دَ راز نچوړ دے - ځکه چه دَ دے په اولنۍ جمله کښې دَ شرك نه دَ بيزاره کيدو اعلان دے او په دويمه جمله کښې دَ خپل قوت او قدرت نه دَ بيزاره کيدو اظهار دے - چه لاچاره بنده دَ الله تعالیٰ دَ مدد نه بغير هيڅ کولے نشی - او دا دے مطلب ، خپل ټول کارونه الله تعالیٰ ته سپارل دی - او دَ دے هدايت په قرآن کريم کښې ځائې په ځائې راغلے دے - فَاعْبُدْهُ وَ تَوَكَّلْ عَلَيْهِ -[3] قُلْ هُوَ الرَّحْمٰنُ اٰمَنَّا بِهٖ وَ عَلَيْهِ تَوَكَّلْنَا -[4] رَبُّ الْمَشْرِقِ وَ الْمَغْرِبِ لَآ إِلٰهَ إِلَّا هُوَ فَاتَّخِذْهُ وَكِيلًا -[5]

دَ دے ټولو آيا تونو نه دا معلومه شوه چه مؤمن دِ خپل هر قسم كار او عمل كښې بروسه او تکيه صرف الله تعالیٰ باندے کوی - د خپل قابليت يا دَ بل چا په مدد دِ بَروسه او تکيه نهٔ کوی -

له دے آياتونو نه دوه[2] بنيادی مسئلې دَ عقائدو ثابتې شوے - اول دا :-

چه دَ عبادت دَ هغې معنے له مخه چه مخکښې تيره شوه ، دا واضح شوه چه شرك صرف دے ته نهٔ وائې چه دَ بُت پرستو پشان دَ خدائے دَ اختيارا تو مالك او گڼړلے شی -

**دَ الله نه سوا دَ بل چا عبادت روا نه دے د هغهٔ په عبادت كښې بل څوك شريكول حرام او نا قابلِ معافی گناه ده**

دَ عبادت معنے پوره ذِکر شوه چه دَ يو ذات دَ انتهائی عظمت او مينې په وجه د هغهٔ په مخکښې د خپلې عاجزۍ او تذلل اظهار ته عبادت ويلے شی نو دَ الله تعالیٰ نه علاوه بل چا سره داسې معامله اختيارولو ته شرك ويلے شی - شرك فقط هم دے ته نهٔ وائې چه

(۱) ج: ۱ص: ۱۳۷ (۲) تفسیر ابن جریر ج: ۱ص: ۵۲ - مصر مطبع میمنه (۳) هود: ۱۲۳ (۴) الملك: ۲۹ (۵) المزمل: ۹-

د بُت پرستو عونده دکا نړی یو بُت د د خدایئ دَ اختیارا تو مالك اُوګنړلے شی۔ بلکه چاته دَ محبّت، اطاعت او عظمت هغه درجه ورکول چه فقط الله سره لائقه وی، په شرك جلّی کښے داخل دی۔ په قرآن مجید کښے د یهودو او نصاراؤ دَ شرك دَ بیان په سلسله کښے ارشاد فرمائی :۔

اِتَّخَذُوْٓا اَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ اَرْبَابًا مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ (۱) | یعنی هغوئ د خپلو دینی عالمانو نه خدایان جوړ کړی وو۔

حضرت عدیؓ بن حاتم چه اسلام راوړو نه مخکښے نصرانی وو، هغه دَ دے آیت په باره کښے رسُول کریم صلی الله علیه وسلّم ته عرض اُوکړو چه مونږه خو دَ خپلو عالمانو عبادت نه دے کړے بیا قرآن مجید څنګه په مونږه دا الزام لګوی ؟ حضور علیه السّلام اُوفرمائیل چه آیا دا نه دی چه ستاسو عالمان د یرو داسے څیزونو ته حلال وائی چه هغه الله حرام کړی دی او تاسو د خپلو علماؤ په وینا هغه حرام ګنړئ۔ او د یر څیزونه داسے دی چه هغه الله حرام کړی دی او ستاسو علما دُهغه حلال کړی دی۔ او تاسو دَ هغوئ په وینا حلال ګنړئ۔ عدی بن حاتمؓ اُووے چه بیشکه داسے خو ده ؛ حضور صلی الله علیه وسلّم اُوفرمائیل چه بس هم دغه دَدوئ عبادت دے۔

ددے نه معلومه شوه چه دَ یو شی حرامول او حلالول صرف دَ الله په اختیار کښے دی۔ کوم سړے چه الله سره په دے معامله کښے بل څوك شریکوی۔ د حلال او حرام په باره کښے دَ الله تعالیٰ داحکامو نه دخبردارئ باوجود دَ بل چا قوْل دَ اتباع او تابعدارئ لائق ګنړی نو داسے شوه لکه چه دے دَ هغهٔ عبادت کوی او په شرك کښے مُبتلا دے۔

عام مسلمانان چه دَ قرآن کریم نه پخپله د شرعیو احکامو راؤ یستل نهٔ شی کولے او دَ یو امام ، مجتهد ، عالم او مُفتی په وینا عمل کوی ، هغوئ ددغه حکم لاندے نهٔ راځی۔ ځکه چه دا په حقیقت کښے په قرآن او سنت عمل دے ، او دَ الله پاك د احکامو تابعداری ده۔ قرآن کریم پخپله ددے خبرے ارشاد کړے دے۔

فَسْـَٔلُوْٓا اَهْلَ الذِّكْرِ اِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ۝ (۲) | کهٔ چرے تاسو پخپله احکام الٰهیه نهٔ پیژنئ نو دَ عالمانو نه پوښتنه کوئ۔

څرنګه چه د حلالو او حرامو په احکامو کښے الله پاك سره څوك شریکول شرك دے۔

(۲) النحل : ۴۳۔

هُم دغه رنگے دَچا په نوم منسته کول، او دَ الله پاك نه سِوا بل څوك حاجت رَوا او مُشکل کُشا گنړل او د هغهٔ نه په دُعا کښے غوښتل شرك دے، ځکه چه په حديث کښے دی چه دُعا دَ عبادت مغز دے۔

هم دغه رنگے هغه اعمال او افعال کول چه هغه دَ شرك نښانے گنړلے شی په شرك کښے حسابیږی لکه چه حضرت عدی بن حاتم وئیلی دی چه څه د مسلمان کید لو نه وړُستو د نبی صلی الله علیه وسلم په خِدمت کښے حاضر شوم او زما په غاړه کښے صلیب ځوړند وو، نو نبی صلی الله علیه وسلم اُوفرمائیل: چه دا بُت د خپلے غاړے نه اُوباسه۔ اگرچه په دغه وخت دَ حضرت عدی بن حاتم عقیده د صلیب په حقله هغه نهٔ وه، چه کومه نصرانیات د صلیب متعلق لری۔ لیکن د شرك د علامو نه ځان ساتل هم ضروری دی، نو له دے وجے نه د غه هدایت ورته اوکړے شو چه دا بُت دَ غاړے نه اُوباسه۔

هم دغه شانے، چا ته رُکوع کول یعنی ټیټیدل او سجده کول یا دَ بیت الله نه سوا، دَ بل څیز نه گیر چاپیره گرځیدل، ټول دَ شرك نښے دی۔ او اِیَّاكَ نَعْبُدُ کښے ددے خبرے تلقین دے چه ددے ټولو نه ځنګ کول لازمی دی۔

دویمه مسئله داده چه مدد غوښتل صرف د الله پاك نه لازمی دی، د بل چا نه مدد غوښتل ناروا دی۔ ددے مسئلے بر تفصیل کول ضروری دی۔ داځکه چه یو قسم مدد (المبالو لاندے) هر یو انسان دَ بل انسان نه اَخلی۔ دَ دا سے قسم مدد نه بغیر د دُنیا نظام چلیدے نهٔ شی۔ گورئ یو صنعت کار د خپل صنعت په ذریعه دَ ټول مخلوق خدمت او مدد کوی۔ مزدُور، مِعمار، ترکاڼ او لوهار د ټول مخلوق په مدد کښے اخته دی او هر یو سړے له دوئ نه په مدد اخستلو مجبور دے۔ او دا هم ظاهره خبره ده چه دا په یو دین او شریعت کښے ناروا نهٔ دی نو دغه مدد، په هغه مدد کښے داخل نهٔ دے چه کوم الله پاك پورے خاص دے۔ هم دغه شانے دَ غیر مادی اسبابو په ذریعه د نبی نه یا ولی نه په دا سے توګه مدد غوښتل چه دا نبی یا ولی د مدد غوښتو نکی دَ پاره د الله پاك نه اُوغواړی، یا مدد غوښتونکے مدد دَ نبی یا دَ ولی په واسطه اُوغواړی ناروا نهٔ دی او په هغه مدد غوښتلو کښے نهٔ داخلیږی چه کوم الله تعالیٰ پورے خاص دے۔ ـ ـ ـ ـ ـ ـ نو د کوم مدد غوښتنه دَ الله نه بغیر دَ بل چا نه شرك دے؟

هغه داده چه څه فرښتنه، نبي يا ولي يا يو بنيادم، دَ الله پاك په شانے قادر مطلق، او مختار مطلق گنړل، او د هغهٔ نه خپل حاجت غوښتل، دا ے شرك او كفر دے، چه عام مشركانو او بُت پرستو به هُم كُفر گنړلو او خپل بُتان به ئے دَ الله پاك په شانے قادر مطلق او مختار مطلق نه گنړل۔

يل هغه قسم مدد غوښتنه ده چه كا فران ئے غواړى او قرآن او اسلام هغے ته باطل او شرك واى۔ او هغه دا چه بُت پرست دا عقيده لرى چه قادر مطلق اگر چه الله پاك دے او مكمل اختيارات اگر چه دَ الله پاك دى، خو بيا سره له دے نه دَ خپل قدرتا او اختيار څه برخه ئے يو فلانى ديوتا ته وركړے ده۔ چه هغے كښے دغه ديوتا مكمل خود مختار دے۔ نو په دے وجه دَ دغه ديوتا نه مدد غوښتل پكار دى۔

نو په "اِيَّاكَ نَسْتَعِيْنُ" كښے دَ دغه شانے عقيدے د لاندے دَ مدد غوښتلو نفى او كړے شوه۔ دا خبره چه الله پاك دَ دُنيا د نظام ډير كارونه د خپلو فرښتو په لاس كوى يا نبيان او وليان ډير دا سے كارونه كوى چه هغه د عام خلقو د قدرت نه بهر وى او چه هغے ته معجزات او كرامات وئيلے شى، دَ دے خبرے دليل كيدے نهٔ شى چه الله پاك د دغه كارونو قدرت، او اختيار د غه فرښتو، نبيانو او وليانو ته وركړے دے او دوئ پكښے بالكل خود مختاره دى۔ بلكه په حقيقت كښے دا ټول كارونه دَ الله پاك كارونه دى، صرف دَ دوئ ظاهر يدل، دَ نبى او دَ ولى په لاس له دے وجے نه كيږى چه په دے سره دَ نبى يا دَ ولى عظمت ثابت كړے شى، او دا نه چه د دے كارونو كيدل دَ نبى يا دَ ولى په اختيار كښے دى۔ په قرآن كښے دَ دے بے شميره شوا هد موجُود دى۔ مثلاً:

وَمَا رَمَيْتَ اِذْ رَمَيْتَ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ رَمٰى (۱) كښے دَ نبى كريم صلى الله عليه وسلّم دَ دے معجزے ذكر دے چه نبى كريم صَلّى الله عَلَيه وَسلّمَ يو موټے كيڼى دَ دښمن د لښكر په طرف او غورزولے، او دَ الله پاك په قدرت دا دَ ټول لښكر په سترگو كښے پريوتے۔ نو د دے متعلق ارشاد دے: چه دا تا غورځولے نهٔ وے بلكه الله پاك غورځولے وے۔ دَ دے نه دا معلومه شوه چه كومه معجزه دَ نبى نه صادره شى، هغه په حقيقت كښے دَ الله پاك فعل او كار وى۔

هُم دغه شانے چه كوم وخت نوح عليه السّلام ته د هغهٔ قوم اُو وئيل: كه چرے ته رښتونے ئے نو هغه عذاب راؤ بله چه دَ كوم نه ته مونږ ويروے، نو نوح عليه السّلام اُو فرمائيل:

(۱) الانفال: ۱۷

إِنَّمَا يَأْتِيكُم بِهِ اللَّهُ إِن شَاءَ (۱) ( د معجزے په طور آسماني عذاب راوستل زما په اختيار کښے نه دی. که الله پاک اوغواړي نو دا عذاب به راشي.) او بيا به تاسو له دے نه اوړ نه تښتيدے شئ.

په سورة ابراهيم کښے د پيغمبرانو د يو ډلے دا وينا ذکر شوے ده :

مَا كَانَ لَنَا أَن نَّأْتِيَكُم بِسُلْطَانٍ إِلَّا بِإِذْنِ اللَّهِ (۲) | "د څه معجزے صادريدل زمونږ په لاس کښے نه دی، د الله پاک د اِرادے او اِذن نه بغير څه کيدے نه شي."

نبی کريم صلی الله عليه وسلم او نورو پيغمبرانو نه مشرکانو ډيرے معينے معجزے طلب کړے وے، ليکن چه د کومو الله پاک ظاهرول غوښتل، ظاهرے شوے او چه د کومو ظاهرول ئے نه غوښتل ظاهرے نه شوے، په قرآن کښے د دے ډير شهادتونه موجود دی ـــــ د معجزو او کراماتو په باره کښے چه دا په حقيقت کښے د الله پاک فعل او کار دے محسوس مثال دا دے : چه ته په يو کمره کښے ناست ئے چه په هغے کښے د بجلی رڼړا، د بلب په واسطے، او هوا د پکي په ذريعه تا ته رسی، ليکن دا بلب او پکے په دغه رڼړا او هوا رسولو کښے بالکل خپل واك نه لری، بلکه هر وخت هغه کنکشن ته محتاجه دی چه د تار په ذريعه د وئ ته حاصل دے. که چرے يو سيکنډ له دا کنکشن ختم شی نو بيا بلب نه تا ته رڼړا رسولے شي او نه پکے تا ته هوا رسولے شي، ځکه چه په حقيقت کښے دا کار د بلب او د پکي نه دے، بلکه دا د بجلئ او د هغو چپو کار دے چه د پاور هاؤس نه د لته کړے ته رسيږی. پيغمبران، وليان، فرښتے په هر کار کښے په هر وخت کښے الله پاك ته محتاجه دی. د الله پاك په قدرت او اراد ے سره ټول کارونه کيږی. اګرچه د دوئ ظاهريدل د بلب او پکی په شانے د نبيانو او وليانو په لاس کيږی.

د دے مثال نه دا هم په ډاګه شوه چه د دے څيزونو په صادريدلو، او کيدلو کښے اګرچه د نبيانو او وليانو اختيار نشته، ليکن بيا هُم د دوئ وجود له په دغه څيزونو کښے دخل شته، لکه چه څرنګے د بلب او د پکي نه بغير تا ته رڼړا او هوا نه رسيږی، هم دغه شانے، دا معجزے او کراماتو نه بغير د نبيانو او وليانو نه نه شی کيدلے. البته د معجزو او د ذکر شوی مثال صرف يو فرق شته، هغه دا چه يوره صحيح فټنګ او کنکشن سره سره د بلب او پکی نه بغير تا ته رڼړا او هوا حاصليدل علاوة ممکن نه دی. او په معجزو او کراماتو

کښې دا سے نۀ دہ ، بلکه الله پاک په دے قادر دے چه بغیر د نبي او ولی نه د دے مُعجزو او کرامتو نو ظاهرول اُوکړي، لیکن د الله پاک عادت د غه دے چه دَ دوئ ظاهرول بغیر دَ نبیانو او ولیانو نه، نهٔ کوي -

دَ دے ټولو خبرونه دا معلومه شوه چه دا عقیده لرل ضروری او لازمی ده چه هرڅهٔ د الله پاک په اراده او حُکم کیږي - او ورسره دَ انبیاوُ او اولیاوُ دَ عظمت او ضرورت اِقرار کول ضروري دي ، ځکه چه له دے نه بغیر د الله پاک رضا او دَ الله پاک دَ احکامو دَ اِطاعت نه محرومه کیدل دي - ټیك د غه شانے نکه چه یو سړے د بلب او د پکی قدر اونکړي او دا ضایع کړي ، نو دا سړے دَ رنړا او هوا نه محرومه کیږي -

دَ وسیلے ، استعانت او استمداد په مسئله کښې ډیرو خلقو ته اشکال دپاندے کیږي - اُمید دے چه دے تشریح سره به حقیقت واضحه شوے وي او دا هم واضحه شوه چه نبیان او ولیان نهٔ مطلقاً وسیله جوړول رواد ي او نه مطلقا نارواد ي بلکه که دوئ مختار مطلق او ګنړلے شي او وسیله کړے شي نو شرك دے ، او روانهٔ دي - او که صرف واسطه او ذریعه اوګنړلے شي نو روا ده -

۶- دَ صراط مُستقیم هدایت دَ دین او دُنیا دواړو کامیابو د پاره کُنجی ده

په اصل تفسیر کښې دا خبره په وضاحت سره بیان شوے ده ، چه قرآن کریم په هر حالت کښې ، هر کار د پاره ، هر چانه چه د کومے دُعا تلقین کړے د ے هغه دَ صراط مستقیم دَ هدایت دُعا ده - او دا ځکه چه څرنګے دَ آخرت کامیابي په صراطِ مستقیم باندِ موقوفه ده ، هم د غه رنګے دَ دُنیا دَ ټولو کارونو په کامیابئ باندِ کچرے غور اوکړے شي نو په صراطِ مستقیم کښې ده - په کوم کار کښې کچرے هغه اسباب او ذرائع واخستے شي چه په هغوئ باندِ د مقصد حاصلیدل عادةً لازمی دي - نو کامیابي عادةً لازمی ده او چرته کښې کهٔ یو بنیادم په خپل مقصد کښې کامیاب نشي نو کهٔ غور اوکړے شي نو دا به معلومه شي چه دا بنیادم دَ مقصد په لړ کښې دَ ټیغ لارے نه کوږ شوے دے - او دا ټیغه لار چه دهٔ دَ مقصد په حاصلولو کښې دَ اسباب او ذرائع پر ېنبي دي ـــــ مطلب دا چه دَ صراطِ مُستقیم هدایت دَ دین او دَ آخرت د کارونو سره خاص نهٔ دے - دَ دُنیا دَ ټولو کارونو کامیابي هم په دے باندِ موقوفه ده ، نو په دے وجه دا دُعا دا سے دُعا ده چه مؤمن د پاره په هر وخت کښې دَ حرزِ جان جوړولو قابله ده - خو شرط صرف دا دے چه په حضور او نیت سره اوکړے شي -

# سورتِ بقرة

**نوم او دَ آیاتو نو شمیر**

دَ دے سورت نوم سورت بقرة دے، او ددے نوم ذکر په حدیث او د صحابو په آثارو کښے شوے دے. په کوم روایت کښے چه د دے سورت ته سورتِ بقرة ویل منع کړے شوی دی، دا روایت صحیح نه دے.(۱)

او دَ دے سورت آیاتونه دوه سوه شپږ اتیا دی. او کلمے ئے شپږ زره دوه سوه یوویشت دی او حروف ئے پنځه ویشت زره پنځه سوه دی.

**دنازلید و وَخت**

دا سورت مدنی دے، یعنے مدینے ته د هجرت کولو نه وروستو نازل شوے دے. اګرچه دَ دے بعضے آیاتونه په مکه مکرمه کښے د حج په وخت کښے نازل شوی دی. لیکن هغه هم دَ مفسرینو په اصطلاح کښے مدنی دی.

سورتِ بقرة په قرآن کریم کښے د ټولو نه لوے سورت دے او په مدینه منوره کښے د ټولو مدنی سورتونو نه اول د دے سورت نازلیدل شروع شو، او په مختلفو اوقاتو کښے د دے مختلف آیاتونه نازلیدل تر دے پورے چه د سود متعلق آیاتونه دَ نبی صلی الله علیه وسلم د عمر په آخری حصه کښے د فتح مکے نه وروستو نازل شوی دی او د دے سورت یو آیت: وَاتَّقُوا يَوْمًا تُرْجَعُونَ فِيهِ إِلَى اللَّهِ(۲) خو بالکل آخری آیت دے، چه په ۱۰ هجری کښے د منیٰ په مقام کښے نازل شوے دے، او دا هغه زمانه وه، چه په هغے کښے د نبی صلی الله علیه وسلم د حجة الوداع د فرائضو په ادا کولو مشغول وو (قرطبی)(۳) او له دے نه اتیا یا اتیا ورځے وروستو نبی صلی الله علیه وسلم د الله پاک سره واصل شو.

**دَ سورت بقرة فضائل**

سورت بقرة په ډیرو احکامو مشتمله ده. نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه: سورة بقرة لولئ ځکه چه دَ دے لوستلو کښے برکت دے او د دے په پریخودو کښے افسوس او بد نصیبی ده. او دَ

(۱) تفصیل دپاره اوګورئ الدر المنثور د سیوطیؒ ج: ۱ ص ۱۷ بیروت. دار المعرفة (۲) البقرة: ۲۸۱
(۳) ج: ۱ ص: ۱۵۲. دَ دے حدیث روایت امام مسلم د ابی امامه نه کړے دے.

باطل خاوندان په دے باندے قابو موندلے شي.

قرطبي د حضرت معاویه نه نقل کوي چه د دے ځائے کښے د اهل باطل نه مُراد جادوګر دي، مطلب دا چه ډېر دے سُورت لوستونکي باندے به د چا جادو نه چلیږي.(۱) او دا هم یو حدیث دے چه په کوم کور کښے سورتِ بقرة لوستے شي، شیطان د هغه ځائے نه تښتي (ابن کثیر)(۲)

د حضرت ابوهریرة یو حدیث دے چه په د دے سورت کښے دا سے آیت دے چه د قرآن د ټولو آیاتونو نه غوره دے او هغه آیت، آیت الکرسي دے.(۳) (ابن کثیر)

د حضرت عبدالله بن مسعودؓ نه روایت دے چه په سورتِ بقره کښے لس داسے آیاتونه دي که څوک يو سړے ئے د شپے اُولولي، نو په دغه شپه کښے به پیریان او شیطان د هغه کورته داخل نه شي او د هغه اهل وعیال ته به څه آفت، مرض، غم وغیره رانه شي. او که څوک دا لس آیاتونه په یولیوني څوک کړے شي نو هغه ته به آرام حاصل شي. د غه لس آیاتونه دا دي: څلور آیاتونه د بقره په شروع کښے، بیا درے آیاتونه د بقرة په مینځ کښے یعني آیة الکرسي او دله دے نه وروستو دوه آیاتونه، او بیا په آخر د بقره کښے درے آیاتونه.(۴)

## احکام او مَسائل

د مضامینو او مسائلو په اعتبار سورتِ بقرة ته یو خاص ځاے حاصل دے. ابن عربي وائي: چه ما د خپلو بُزرګانو نه اَوریدلي دي چه په سورتِ بقرة کښے زر اَمرونه، زر نهي، زر حُکمونه، زر خبرونه او قصے دي. (قرطبي ابن کثیر)

د غه وجه ده چه حضرت عمرؓ د سُورتِ بقره په پوهے سره لوستلو کښے دولس کاله لګولي وو.

او حضرت عبدالله بن عمرؓ دا سورت په اتو کالو کښے په تفسیر سره لوستے وو.

## رَبط د سُورةِ فاتحے سره

سُورتِ فاتحه په اصل کښے د ټول قرآن خلاصه ده او ددے بنیادي مضمونونه درے دي. (۱) د الله پاک ربوبیت یعني د ټولو جهانونو د پالونکي بیان (۲) دا چه الله پاک یواځے د عبادت حقدار دے، بل څوک له ده نه سوا د عبادت حقدار نه دے. (۳) د هدایت طلب کول. نو د سُورتِ فاتحے آخري مضمون د صِراطِ مُستقیم د هدایت غوښتنه ده. او په اصل کښے ټول قرآن د دغے غوښتنے جواب دے. مطلب دا چه څوک صراطِ مُستقیم غواړي نو دا په ده ته په قرآن کښے حاصل شي. نو په دغه وجه د سُورتِ فاتحے نه وروستو بل ځني سُورت، سورتِ بقره کیښودے شو او په ذٰلك الكتٰب سره شروع کړے شوه. او دا دے د پاره چه کوم صراطِ مُستقیم تاسو لټوئ، هغه دا کتاب دے.

(۱) ج: ۱، ص: ۱۵۲ (۲) ج: ۱، ص: ۵۸ (۳) پروړمبني مرجع او پروړمبني صفحه (۴) دغه پروړمبني مرجع صفحه ۵۹.

او بیا له دے نه وروستو په دے سورت کښے اول د ایمان بنیادی اصول: توحید، رسالت، آخرت په اجمالی طور سره، او دَ سورت په آخر کښے په تفصیل سره بیان شوی دی او په مینځ کښے د زندګئ د هرے څانګے متعلق: یعنی عبادات، معاملات، معاشرت، اخلاق، اِصلاح ظاهر و باطن، دَ بنیادی اصولو هدایات بیان کړے شوی دی. او ورسره ورسره ډیر ضمنی جُزئیات بیان شوی دی.

---

# سُورَةُ الْبَقَرَةِ مَدَنِيَّةٌ

آیاتها ۲۸۶ — رکوعاتها ۴۰

سورت بقره مدنی دے، په دے کښے ۲۸۶ آیاتونه او ۴۰ رکوعات دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

شروع کوم په نامه د خدائے چه بخښونکے مهربانه دے

الٓمّٓ ۝۱ ذٰلِكَ الْكِتٰبُ لَا رَيْبَ فِيْهِ هُدًى لِّلْمُتَّقِيْنَ ۝۲

په دے کتاب کښے څه شک نشته دے لار ښائی ویریدونکو ته

الَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِالْغَيْبِ وَيُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ

چه یقین کوی په نا لیدلو شوو څیزونو او قائموی مونځ

وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ ۝۳ وَالَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ

او چه کومه مونږ ه دوی ته روزی ورکړے ده د هغے نه دوی خرچ کوی او هغه خلق چه ایمان راوړی

بِمَآ اُنْزِلَ اِلَيْكَ وَمَآ اُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ وَبِالْاٰخِرَةِ

په هغه څه چه په تا باندے نازل کړے شوی دی او په هغه څه چه تا نه وړاندے نازل کړے شوی دی او په آخرت

هُمْ يُوْقِنُوْنَ ۝۴ اُولٰٓئِكَ عَلٰى هُدًى مِّنْ رَّبِّهِمْ

باندے یقین لری. دغه خلق بس د خپل پروردګار د طرف نه په هدایت باندے دی.

وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ۝۵

او دغه خلق بس مقصد ته رسیدونکی دی

## لنډ تفسير

داکتاب داسې کتاب دے چه په دے کښې هيڅ شك نشته (يعنې دا خبره چه دا قرآن د الله پاك له طرفه نازل شوے دے. په دے کښې د څه شك کولو ځائے نشته دے. دا جُدا خبره ده که يو ناپوهه د خپلې ناپوهئ په وجه په دهٔ کښې څهٔ شك لري. دا دَ هغهٔ قصور او ناپوهي ده. دا نه چه قرآن کښې دَ شك کولو ځائے شته) دَ الله پاك نه ويره لرُو نکوته لاره ښائي چه يقين لري په پټو څيزونو باندے. (يعنې هغه څيزونه چه دَ دوئ د حواسو او عقل نه پټ دي. صرف د الله او د رسول دَ ونيا په وَجه مَني) او قائمُوي مونځ (د قائمُولو مطلب دا دے چه مونځ په پابندئ سره په خپل خپل وخت کښې ټولو شرطونو او ارکانو سره کوي) او څهٔ چه مادوئ ته ورکړي دي، د هغې نه خرچ کوي (يعني په ښهٔ کارونو کښې) او دا خلق داسې دي چه يقين لري په هغه کتاب باندے چه په تا باندے نازل شوے دے، او په هغه کتابونو باندے هم چه له تا نه د مخه نازل شوي دي. (مطلب دا چه د هغوئ ايمان په قرآن باندے هم وي او په مخکښنو کتابونو باندے هم. او ايمان رښتيا ګڼړلو ته وائي. عمل کولو ته نه وائي. عمل کول بله خبره ده. څومره کتابونه چه الله پاك په مخکښنو پيغمبرانو نازل کړي دي، هغه رښتيا ګڼړل فرض او دَ ايمان شرط دي، يعنې دا ګڼړل چه څهٔ رنګے دا الله پاك نازل کړي وو، هغه صحيح دي او کومے تبديلئ چه په دوئ کښې خود غرضو خلقو کړي دي، هغه غلطئ دي. باقې شو په دوي عمل کول [illegible] رف په قرآن باندے دي، په مخکښنې کتابونه ټول منسوخ دي او په دوئ عمل کول روانهٔ دي) او په آخرت باندے هم دا خلق يقين لري، نو بس د غه خلق په سمه لاره دي چه دوئ ته د خپل پروردګار دَ خوا نه حاصله شوے ده. او د غه خلق مکمل کامياب دي. (يعنې داسے خلقوته په دنيا کښې خودا نعمت حاصل شو چه د حق لاره ئې بيامونده او په آخرت کښې به هرقسم کاميابي هُم دَ دوئ وي.

## دَ لُغاتو حل

ذٰلِكَ: دَ يو لرے څيز په لور اشارے دَ پاره استعماليږي. رَيْبَ: شك او شُبه. هُدًى: دَ هدايت نه جوړ شوے دے. او دَ هدايت معنې لاره ښودل دي. مُتَّقِيْنَ: چا کښې چه د تقوىٰ صفت وي. د تقوىٰ لفظي معنىٰ بچ کيدل دي. د لته کښې مُراد، د الله پاك د نافرمانئ نه بچ کيدل دي. غَيْب: لفظي معنىٰ ده هر هغه

خیز چه د انسان د حواسو نه بهر وی. یُقِیمُونَ : دَ اِقامت نه جوړ دے چه معنیٰ ئے نیغول دی او دَ مونځ د نیغولو مُراد دادے چه په آدابو او خشوع خضوع سره اداکړے شی. دَزَقْنٰهُمْ : د رزق نه جوړ دے چه معنیٰ ئے روزی او د ګذاره خیز ورکول دی. یُنْفِقُوْنَ : دَ اِنفاق نه جوړ دے او دَ خرچ کولو په معنیٰ کښے استعمالیږی. آخِرَة : په لُغت کښے روستو راتلونکی خیز ته وائی. د لته کښے د عالَم دنیا په مُقابله کښے عَالَمِ آخرت ته وائی. یُوْقِنُوْنَ : دَ اِیقان نه دے. او ایقان د یقین نه جوړ دے. او یقین دے ته وائی چه په هغے کښے د څه شك او شُبهے ځائے نهٔ وی. مُفْلِحُوْنَ : د فلاح نه جوړ دے، او د فلاح معنیٰ ده مکمله کامیابی.

# علوم او مسائل

> د سُورت په سر کښے چه کوم حروفِ مقطعات راځی دَ هغوی په حقله تحقیق

دَ ډیرو سُورتونو په سر کښے د څو حرفونو نه مرکب یوه کلمه چه راوړے شوے ده لکه الٓمٓ، حٰمٓ، الٓمٓصٓ وغیره. دوی ته په اصطلاح کښے حروف مقطعات وائی او دا ځکه چه هر یو حرف، جُدا جُدا ساکن ویلے شی. الف، لام، میم.

دَ دے حروفِ مقطعاتو په حقله بعضے مفسرین وائی: چه دا دَ هغه سُورتونو نُومونه دی چه دکومو په سر کښے دا راغلی دی او بعضے عُلماء وائی چه دا دَ اسماء د الٰهیهٔ رموز دی لیکن دَ جمهورو صحابو، تابعینو او عُلماؤ په نزد غوره خبره داده چه دا حَروفِ رُموز او اَسرار دی او دد ے عِلم دَ الله پاك نه سوا بل چاته ورکړے شوے نهٔ دے او دا هم ممکنه ده چه رسول کریم صلی الله علیه وسلّم ته دد ے راز علم ورکړے شوے وی خو دَ دے تبلیغ د منع کړے شوے وی نو په دے وجه د نبی صلی الله علیه وسلّم نه دد ے حروفو په تفسیر او تشریح کښے څهٔ منقول نهٔ دی.

او قرطبی په خپل تفسیر کښے د غه رائے غوره کړے ده. لاندے مونږه د هغهٔ دَ تفسیر خلاصه وړاندے کوؤ.

"عامر شعبی، سفیان ثوری او د محد ثینو یوه ډله وائی: چه په هر آسمانی کتاب کښے د الله پاك څهٔ خاص رمزونه او اسرار دی نو دَغه شانے دا حُروفِ مقطّعات په

قرآن کښې د الله پاک رمزونه او اسرار دي. په دې وجه دا دَ هغه متشابهاتو څخه دي چه د هغې علم صرف الله پاك ته حاصل دے. په دوی کښې بحث او خبرې کول روا نه دي، لیکن سره له دے نه دا رمونږ دَه فائدے نه خالي نه دي - اول دا، چه په دوی باندے ایمان راوړل، بیا د دوی لوستل زمونږ د پاره لوے ثواب دے. دویم دا چه د دوی په لوستلو کښې معنوي برکتونه او فائدے دي. اګرکه هغه مونږه ته معلومه نه دي، لیکن په غیبو مونږه ته رارسي"

بیا قرطبي وائي:

چه د حروفِ مقطعاتو په حقله د حضرت ابوبکرؓ، حضرت عمرؓ، حضرت عثمانؓ، حضرت عليؓ او حضرت عبدالله بن مسعودؓ وغیره جمهورو صحابوَ دا عقیده وه چه دا دَ الله پاك اسرار دي. مونږه له په دوی باندے دا ایمان راوړل ضروري دي، چه دا دَ الله پاك له طرفه دي او چه څرنګه راغلي دي، هغه شانے ئې تلاوت کول پکار دي. لیکن دَ معنی معلومولو پسے تګ دل بنه نه دي. (۱)

ابن کثیر[۲] هم د قرطبي د غه رائے ته ترجیح ورکړے ده او د کومو نورو عالمانو نه چه د دوی معنی منقولے دي، هغه صرف تمثیل او تنبیه ده - دا نه چه دا بس له دوی نه دَ الله پاك مراد دے. نو په دے وجه د غه معنی ته غلط ویلو دَ علماوُ د تحقیق نه خلاف ده.

ذٰلِكَ الْكِتٰبُ لَا رَيْبَ فِيْهِ، کښې ذٰلِكَ دَ لرے څیز په لوري اشاره کولو د پاره راغلے او کتاب نه مراد قرآن دے. او دَ رَيْبَ معنی شك او شبه ده. معنی دا شوه: چه دا کتاب داسے دے چه په ده کښې د شك او شبهے لولو ځائے نشته، نو دا ځائے او موقعه د لرے دَ اشارے د پاره نه ده ځکه چه اشاره د غه قرآن ته ده چه د خلقو وړاندے دے. نو په دے لرے اشارے کولو سره دے خبرے ته اشاره ده، چه په سورتِ فاتحه کښې چه دَ کوم صراط مستقیم د پاره غوښتنه شوي وه، دا ټول قرآن دَ دے غوښتنې دَ قبولیت په شکل کښې جواب دے او د صراط مستقیم تشریح او تفصیل دے - چه د دے مطلب دا دے چه مونږ ه دا دُعا واورېده او قرآن مو راولیږه چه دَ هدایت نمر دے. کوم سړے چه هدایت غواړي هغه دِ دا قرآن اولولي

(۱) ج ۱: ص: ۱۵۴ (۲) دا بن کثیر د مطالع کولو نه دو د ترجیح خبره صراحتًا نه معلومیږي، البته دومره خبره ضرور ده چه ابن کثیر ټکسواڅ د نورو روایتونه وړاندې کړې دي. اوګوره ج: ۱: ص: ۲ ۶۴

ځانونه پرے پوهه کړی او د هغه په مقتضاء عمل اوکړی۔

هُدًى لِّلْمُتَّقِيْنَ: هدایت دے د الله پاک نه ویریدونکو دپاره، یعنی خاص هدایت، چه د آخرت د خلاصی دپاره ذریعه کرځی، د متقیانو برخه ده، اګرچه د قرآن هدایت نه یواځے د بنیادم دپاره دے بلکه د ټولو کائناتو عالَم دپاره دے۔ د سورت فاتحه په تفسیر کښے بیان شوی دی چه د هدایت درے درجے دی یوه درجه هدایت د ټولو بنیادمو دپاره بلکه د ټولو حیواناتو وغیره دپاره ده او بله درجه مؤمنانو پورے خاصه ده۔ او دریمه درجه مقربینو پورے خاصه ده۔ او بیا د دے درجے څه حد او انتهاهم نشته۔ د قرآن کریم په مختلفو ځایونو کښے چرته د عام هدایت ذکر راغلے دے او چرته د خاص هدایت ذکر، او دلته کښے د خاص هدایت ذکر دے۔ نو په دے وجه د متقینو تخصیص اوکړے شو نو دلته کښے شبهه کول پکار نه دی۔ چه د هدایت زیات محتاج هغه خلق دی چه متقیان نه دی۔ ځکه د دے بره تحقیق نه معلومه شوه چه په دے ځائے کښے د متقینو د تخصیص نه دا نه لازمیږی چه قرآن د غیر متقینو دپاره هدایت نه دے۔

**د متقینو خاص صفتونه**

له دے نه وروستو، د متقینو خاص صفتونه او علامے بیان شوی دی۔ او دا ښودلے شوی دی چه دغه خلقو ته هدایت موندلے دے، او د دوی لاره صراط مستقیم دے۔ چه څوک نیغه لاره غواړی نو په دے ډله کښے د شامل شی او د دے خلقو عقیدے، اعمال او اخلاق د خپل کړی۔

د متقینو صفتونه چه په دے دوو آیاتو کښے بیان شوی دی په هغوی کښے د ایمان اجمالی تعریف او د هغے بنیادی اصول راغلی دی او د ښه عمل اصول هم۔ نو په دے وجه د دغو صفتونو ښه شانے وضاحت ضروری دے۔

په اومبنی آیت: اَلَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِالْغَيْبِ وَيُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ ۝ کښے د متقینو درے صفتونه بیان شوی دی: په غیب ایمان لرل۔ مونځ قائمول، د الله پاك په لاره کښے خرچ کول۔ ګویا که دا آیت په درے اهمو

مسئلو مشتمل دے۔

**دَ ایمان تعریف**

دَ ایمان تعریف قرآن کریم د یُؤْمِنُوْنَ بِالْغَیْبِ په دوؤ لفظونو سره کړے دے چه هغه ایمان او غیب دی۔ او د ایمان او غیب په معنی باندے د پوهیدلو نه د ایمان پوره حقیقت او تعریف په ډاګه کیږی۔ نو په دے وجه د دے دواړو تکو وضاحت ضروری شو۔

په لغت کښے ایمان دے ته وائی چه د چا خبره په هغه باندے د اعتماد په وجه په یقین سره اُومنلے شی۔ د غه وجه ده چه په محسوساتو او مشاهداتو کښے دَ چا خبره په یقین سره منلو ته ایمان وائی۔ د مثال په ډول یو سړے سپین ټوکی ته سپین او تور ټوکی ته تور وائی۔ او بل سړے د ده دا خبره په یقین منی نو دے ته به تصدیق اُوویلے شی، خو ایمان نه، ځکه په دے یقین منلو کښے د دَیُو نکی د اعتماد څۀ دخل نشته بلکه دا په یقین سره منل د مشاهدے په وجه دی او د شرع په اصلاح کښے د پیغمبر خبره بغیر د مشاهدے نه صرف په پیغمبر باندے د اعتماد کولو په وجه په یقین سره منلو ته ایمان وائی۔ د غیب لفظ په لغت کښے د اسے څیز ته ویلے شی چه هغه بنیادم ته نۀ د عقل په بداهت او نۀ پنځو حواسو، لیدلو، آورېدلو، بویولو، څکلو او لاس لګولو سره معلوم وی۔

په قرآن کښے د غیب نه مراد هغه ټول څیزونه دی چه دَ هغوئ خبر رسول الله صلی الله علیه وسلم ورکړے دے او چه هغه د عقل په بداهت او یا په پنځو حواسو سره معلوم نۀ دی۔ نو په دے کښے د الله پاک ذات او صفات، تقدیری څیزونه، جنت او دوزخ، قیامت او دَ قیامت واقعات، فرښتے، ټول آسمانی کتابونه او ټول وړاندینی پیغمبران اجمالی طور سره راغلۍ چه د دا په تفصیل سره د سورتِ بقره په آخر کښے اٰمَنَ الرَّسُوْلُ[1] الخ آیت کښے بیان شوی دی، ګویا دلته کښے دَ ایمان مُجمل بیان دے او په آخری آیت کښے دَ ایمان مُفصّل بیان۔

نو اوس دَ ایمان بالغیب معنیٰ دا شوه: چه رسول الله صلی الله علیه وسلم چه کوم هدایات او تعلیمات راوړی دی هغه ټول په یقین سره منل، خو په دے شرط دا دے چه د دے تعلیماتو دَ رسول کریم صلی الله علیه وسلم نه نقل کیدل

په یقینی طور سره ثابت وي۔ د جمهور و اهلِ اسلام په نزد د ایمان دغه تعریف دے۔
(عقیده طحاوی[1]۔ عقائد نسفی[2])

په دے تعریف کښے منلو ته ایمان ویلے شوي دي۔ نو له دے نه دا معلومه شوه چه صرف پوهیدلو ته ایمان وائي۔ ځکه چه ډیر کافران په دے پوهیدل چه نبي صلی الله علیه وسلم په خپلو تعلیماتو کښے رښتونے دے لیکن دے ئې نه منلو، نو له دے وجے نه دوئ مؤمنان نه دي۔

**د دویمه مسئله دَ مونځ قائمول**

د اقامة صلوٰة معنیٰ محض مونځ کول نه دي بلکه مونځ په هر لحاظ او اړخ سره په درستِ طریقے سره کول اقامة صلوٰة دے۔ چه په دے کښے دَ مانځه ټول فرائض، واجبات، مستحبات او بیا په دوئ باندے همیشگی کول داخل شو۔ او صحیح خبره دا ده چه دلته کښے دَ مانځه نه مُراد خاص مونځ نه دے بلکه فرض، واجب او نفلی ټول مونځونه په پابندئ سره د شریعت د قواعدو مطابق کوي او د مونځونو آداب پوره پوره اداکوي۔

**دریمه مسئله دَ الله پاک په لار کښے خرچ کول**

په دے کښے هم صحیح خبره چه هغه عامو مفسرینو غوره کړے ده دا ده چه په دے خرچ کښے زکوٰة، واجبی صدقات، نفلی صدقات او خیراتونه داخل دي۔ ځکه چه په قرآن کریم کښے چرته چه دَ اِنفاق لفظ استعمال شوے دے، هغه په عام طور سره په نفلی صدقو کښے یا په عامه معنیٰ کښے استعمال شوے دے۔ فرضی زکوٰة دپاره عام طور باندے دَ زکوٰة لفظ استعمال شوے دے۔

په دے آیت کښے د متقینو د صفتونو په بیان کښے اول د ایمان بالغیب ذکر اوکړے شو۔ بیا دَ اقامتِ صلوٰة اود الله پاک په لاره کښے د خرچ کولو ذکر اوکړے شو۔ دَ ایمان اهمیّت خو ټولو ته معلوم دے چه دا دَ ټولو ښهٔ عملونو د قبلیدو دپاره شرط دے۔ دَ ښهٔ عملونو شمیر خو ډیر او ډیر دے نو په دے کښے صِرف دَ دوؤ[2] عملونو یعنی د مونځ او د مال خرچ کولو په ذکر باندے دلته کښے بس والی کولو کښے راز څهٔ دے ؟

په دے کښے غالبًا دے ته اشاره ده چه څومره عملونه په بنیادم باندے فرض یا واجب دي، د هغوئ تعلق یا خو دَ بنیادم دَ ذات او بدن سره دے او یا خو دَ هغه دَ مال سره

دے۔ په بدنی او ذاتی عباداتو کښے د ټولو نه اهم مونځ دے لوله دے وجے نه دده ذکر کولو باندے اکتفاء اوکړے شوه او مالی عباداتو نه ټول د انفاق په لفظ کښے داخل دی۔ نو په دے بنا په حقیقت دا د دوؤ عملونو ذکر نه دے بلکه ټول عملونه او عباداتو نه په دوئ کښے راغلی دی۔ او د ټول آیت معنیٰ داشوه : چه متقین هغه خلق دی، چه د هغوئ ایمان هم کامل وی او عمل هم۔ او د ایمان او د عمل مجموعے ته اسلام وئیلے شی۔ گویا په دے آیت کښے د ایمان مکمل تعریف کولو سره د اسلام مفهوم ته هم اشاره اوشوه۔ نو په دے وجه د امناسبه ده چه د لته کښے د دے خبرے وضاحت اوکړے شی چه په ایمان او اسلام کښے څه فرق دے۔

**ایمان او اسلام کښے فرق**

په لغت کښے ایمان د یو څیز په زړه سره منلو ته وائی۔ او اسلام اطاعت او تابعدارئ ته وائی۔ د ایمان ځائے زړه دے او د اسلام ځائے زړه او ټول اندامونه هُم دی لیکن په شرع کښے ایمان له اسلام نه بغیر او اسلام له ایمان نه بغیر څه اعتبار او قیمت نشته، یعنی د الله پاك او د رسول صلی الله علیه وسلم دزړه نه منل شرعًا تر هغه وخت پورے معتبر نه دی چه ترڅو پورے په ژبه د دے دمنلو اظهار، او د اطاعت او فرمانبردارئ اقرار او نه کړے شی۔ او هم دغه شان په ژبه باندے د منلو اظهار او د فرمانبردارئ اقرار تر هغه وخت پورے معتبر نه دے۔ چه ترڅو پورے په زړه کښے د الله پاك او د هغه د رسول منل نه وی۔

لنډه دا، چه د لغت د مخه ایمان او اسلام جُدا جُدا معنیٰ او مفهوم لری او قرآن او حدیث کښے د دغه لغوی مفهوم په وجه د ایمان او د اسلام د فرق ذکر هم دے۔ لیکن شرعًا ایمان د اسلام نه بغیر او اسلام د ایمان نه بغیر معتبر نه دے۔ هر کله اسلام (یعنی ظاهری اقرار او فرمانبردارئ) سره په زړه کښے ایمان نه وی نو دے ته د قرآن په اصطلاح کښے نفاق وئیلے شی۔ او دا د څرګند کُفر نه هم زیات جُرم اوګناه ده۔ چه په دې کښے ئے الله پاك فرمائی :

| | |
|---|---|
| إِنَّ الْمُنَافِقِينَ فِي الدَّرْكِ الْأَسْفَلِ مِنَ النَّارِ (۱) | بے شکه منافقان به د جهنم د ټولو طبقونه په لاندینۍ طبقه کښے وی۔ |

هم دغه شان ایمان یعنی تصدیق قلبی سره که چرے اقرار او طاعت نه وی نو دے ته

هُم د قُرآن په اصطلاح کښې کُفر وائی - الله پاك فرمائی:

| | |
|---|---|
| يَعۡرِفُوۡنَهٗ كَمَا يَعۡرِفُوۡنَ اَبۡنَآءَهُمۡ (۱) | يعنی دا کافر رسُول صلی الله علیه وسلّم اَو دهٔ په حقه پیغمبر کیدل داسے په یقین سره پیژنی، لکه چه څرنګه دوی خپل ځامن پیژنی - |

په یو بل ځائے کښې ارشاد دے :-

| | |
|---|---|
| وَجَحَدُوۡا بِهَا وَاسۡتَيۡقَنَتۡهَآ اَنۡفُسُهُمۡ ظُلۡمًا وَّعُلُوًّا (۲) | دا خلق زما دَ آیاتو نو نه انکار کوی، او حال دا دے چه دَ دوی په زړونو کښې په دے باندې کامل یقین دے، او دا انکار صرف دَ ظلم او تکبّر دَ وجے نه کوی. |

زما محترم اُستاد حضرت علامه سید محمد انور شاه کشمیریؒ دا مضمون په داسے بیانولو چه دَ ایمان او داسلام مسافت یو دے، جُدائی او فرق صرف په ابتداء او انتها کښې دے یعنی ایمان د زړهٔ نه شروع کیږی او په ظاهری عمل باندې مکمل کیږی - او اسلام د ظاهری عمل نه شروع کیږی اوچه زړهٔ ته اورسی نو مکمل ګنړلے شی، کچرے تصدیق قلبی ظاهری اقرار او طاعت ته اُونهٔ رسیږی، د غه تصدیق قلبی دَ ایمان دَ پاره مُعتبر نهٔ دے. هم دغه شان کچرے ظاهری اطاعت او اقرار تصدیق قلبی ته اُونهٔ رسی، نو دغه اسلام معتبر نهٔ دے -

دَ امام غزالیؒ او دامام سبکی هُم دغه تحقیق دے - او ابن همام په مسامرة کښې په دے تحقیق باندے د ټولو اهلِ حق اِتفاق ذکر کړے دے - (۳)

| | |
|---|---|
| وَالَّذِيۡنَ يُؤۡمِنُوۡنَ بِمَآ اُنۡزِلَ اِلَيۡكَ وَمَآ اُنۡزِلَ مِنۡ قَبۡلِكَ ۚ وَبِالۡاٰخِرَةِ هُمۡ يُوۡقِنُوۡنَ ؕ | یعنی مُتقیان هغه دی چه ایمان لری په هغه کتاب چه په تا باندے نازل شوے دے او په هغه کتابونو هم چه لتا نه وړاندے نازل شوی دی او په آخرت باندے هم یقین لری |

په دے آیت کښې دَ متقیانو دَ باقی صفتونو بیان دے او ورسره دَ ایمان بالغیب څهٔ تفصیل هم دے، چه هغه دورځ دَ آخرت ذکر دے - دَ دے آیت په تفسیر کښې حضرت عبدالله بن مسعود او حضرت عبدالله بن عباسؓ وائی چه: دَ نبی علیه الصّلوٰة والسلام په زمانه کښې متقیان دوه قسمه وو - یو هغه چه وړاندے مُشرکان وُو او بیا

(۱) البقرة: ۱۴۶ (۲) الانعام: ۲۰ (۳) النحل: ۱۴

په اسلام باندے مُشرف شول- دویم هغه چه مخکښے اهلِ کتاب: یهودي یا نصرانی وو، بیا مسلمانان شول- دَدے آیت نه په مخکښینی آیت کښے دَ پرومبنیُ طبقے بیان وو او په دے آیت کښے ددے دویمے طبقے ذِکر دے- نو په دے وجه په دے آیت کښے په قرآن باندے د ایمان راوُړلو سره په مخکښینو کتابونو باندے د ایمان راوُړلو په ځآکه وینا اُوکړے شوه، چه دا کسان د حدیث د وینا مطابق دَ ډبل ثواب حقدار دی- یو د مخکښینو کتابونو په زمانه کښے په هغوی باندے د عمل کولو ثواب- او دویم دَ قرآن په زمانه کښے په قرآن باندے د عمل کولو ثواب.

په پرومبنو کتابونو باندے ایمان لرل نن هم مُسلمان دپاره لازمی دی، فرق بس دومره دے چه نن په دے کتابونو باندے ایمان لرل دا دے دی، چه څه الله پاك په دے کتابونو کښے نازل کړی وو، هغه ټول حق دی، او د هغے زمانے دپاره واجب العمل وو، لیکن دَ قرآن د نازلیدلو نه وروستو چه هر کله پرومبنی کتابونه او شریعتونه ټول منسوخ شول نو اُوس عمل یواځے په قرآن به وی.

| | |
|---|---|
| دختم نبوّت د مسئلے یو واضح دلیل | دآیت د بیان دَ طرز نه یو اهم بنیادی مسئله هم را اُوخته- هغه دا چه نبی صلی الله علیه وسلم آخری |

پیغمبر دے او دهٔ ته چه کومه وحی شوے وه هغه آخری وحی ده- او دا ځکه کهٔ چرے د قرآن نه وروستو یو بل کتاب او وحی نازلیدونکے وے نو لکه چه څرنګې په دے آیت کښے په پرومبنو کتابونو او وحی باندے ایمان راوړل لازمی کړځولے شوی دی نو هم د غه رنګے په راتلونکی نازلیدونکی کتاب باندے د ایمان راوُړلو ذِکر به شوے وو بلکه د دے ضرورت زیات وو ځکه چه په تورات او انجیل او نورو ټولو مخکښینو کتابونو باندے ایمان راوُړل خو د وړاندے نه جاری او معلوم وو، کهٔ چرے د نبی صلی الله علیه وسلم نه وروستو هم دَ وحی سلسله او نبوت جاری وے نو بیا ضروری وه، چه د دے کتاب او نبی ذکر په ډیر زیات اهتمام سره کړے شوے وے، چه دَ دے متعلق چا ته شك او شُبه پاتے شوے نهٔ وے-

لیکن قُرآن کښے چه چرته د ایمان ذِکر شوے دے، نو د نبی علیه السّلام نه وړاندے

نازل شوي کتابونو او د پیغمبرانو ذکر شوی دی او له دغه نه وروستو نه د څه وحی، کتاب او نه د څه نبي د راتلو قطعاً ذکر شوی دی. دا مضمون په قرآن کښې ځلو ځلو بیا راغلی دی، چه هغه ټولو ځایونو کښې د نبي علیه السلام نه وړاندې د نورو پیغمبرانو او کتابونو ذکر دی او په یو آیت کښې هم چرته د دومره غوندې اشاره هم نشته چه د نبي علیه السلام نه وروستو څه وحی یا نبي راتلونکې دې او په هغې باندې ایمان راوړل ضروري دي. مثلاً:

(۱) وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ [۱] (۲) وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا رُسُلًا مِّنْ قَبْلِكَ [۲]

(۳) وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ [۳] وغیره.

د ختم نبوت او د وحی د سلسلې د ختمیدو په باره کښې که چرې نور صریح آیاتونه نه وې نو د قرآن شریف دا قسم بیان، د ختم نبوت د دلیل د پاره کافی دو. د ختم نبوت د مسئلې د پاره زما د هغې رسالې لوستل کافی دی چه هغې کښې د دې مسئلې په باره کښې د قرآن تصریحات او د احادیثو متواترو شهادتونه او د اجماع امت ذکر ډیر بنه په تفصیل سره شوی دی.

**په آخرت باندې ایمان راوړل یو انقلابي عقیده ده**

د ایمان بالغیب په لفظ کښې په آخرت باندې ایمان راوړل راغلی وو لیکن دلته ئې بیا صراحتاً له دې وجې نه بیان کړل چه دا د ایمان په اجزاؤ کښې یو اهم جزء دے او دا ځکه چه ایمان بالاخرة د دې نه د عمل کولو جذبه په بنیادم کښې پیدا کیږي.

او په اسلامي عقیدو کښې دا هغه انقلابي عقیده ده، چه د دُنیا رُخ ئې بدل کړے دے او په آسماني تعلیم باندې عمل کوونکو ته ئې اول په اخلاقو او عملونو کښې او بیا ئې د دنیا په سیاست کښې په ټولو قومونو باندې یو جُدا مقام ورکړے دے او دا هغه عقیده ده چه د توحید او رسالت په شان د ټولو پیغمبرانو په شریعتونو کښې راروانه ده.

وجه ئې څرګنده ده، چه کوم خلقو مقصد صرف د دُنیا ژوند او د دُنیا عیش و عشرت وی، او د آخرت د ژوند او د عملونو د حساب و کتاب عقیده ئې نه وی، نو هغوی ته بیا د دروغو، رښتیاؤ، حلالو، حرامو په مینځ کښې جُدائي کول چه د عیش و عشرت کښې خلل کنړی نو هیڅ څیز دا سے خلق د ګناهونو او جرائمو کولو نه منع

کولے نهٔ شي. دا يواځې د آخرت عقيده ده او د خدائے پاك نه ويره ده چې بنيادم په ظاهره او باطنه دواړو حالتونو کښې د جرائمو او ګناهونو نه منع کوي.

او په دغه عقيده باندې د پوره عمل کولو په وجه د اسلام په پړو مېښو ورځو کښې يو داسې مثالي او پاکه معاشره پيدا شوې وه چې د دغې معاشرې د خلقو په ليدلو ښره نور خلق به دومره متاثر کيدل، چې يخپله به ئې ايمان راوړلو.

د لته کښې دا خبره هُم د غور کولو قابله ده چې په دې آيت کښې د آخرة سره يؤمنون لفظ و يُلے شوے نهٔ دے بلکه يُوقِنون ويُلے شوے دے. د دې وجه دا ده، چې د ايمان مقابل تکذيب دے. او د ايقان مقابل شك او تردُّد دے، نو د يُوقِنُون په لفظ کښې دے خبرے ته اشاره اُوشوه چې يواځې د آخرت په ژوند باندے تصديق کولو سره مطلب نه پوره کيږي، بلکه په دے باندے داسے يقين کول ضروري دي لکه چې يو څيز د سترګو وړاندے وي.

نو د متقينو صفت دا دے، چې په هر وخت کښې د دوئ د وړاندے په ورځ د آخرت کښې الله پاك ته د حاضريدلو او د حساب وکتاب او د جزا او سزا نقشه وي.

هغه سړے چې د نورو حق غصب کوي او د دے دپاره د دروغژنے مقدمے او شهادتونه جوړوي. او د الله پاك د حکم خلاف د حرامو په ګټلو او خوړلو کښې اخته وي يا د دُنيا بے کاره مقصدونو حاصلو دپاره خلاف شرع ذرائعو نه کار اخلي. هغه که ذر کرته دا اقرار او کړي چه زما د آخرت په ورځ ايمان دے، دغه سړی ته به ظاهر شريعت کښې مؤمن او ويُلے شي يکن قرآن چه ده دهُ نه د آخرت په باره کښې د کوم ايقان طلب کوي هغه په ده کښې نشته. هغه ايقان، چه د بنيادم په ژوندګئ کښې انقلاب راولي. او هغه چه په نتيجه کښې ئے د کاميابئ انعام ورکړے شوے دے.

****************.

اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا سَوَاۤءٌ عَلَيْهِمْ ءَاَنْذَرْتَهُمْ اَمْ لَمْ تُنْذِرْهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ ⑥

بے شکه چه کوم خلق کافر شوی دی (دَ دوئ په حق کښے) دا برابره ده که ته دوئ لره ویره ورکړے یا نهٔ ئے ورکړے دوئ به ایمان رانهٔ وړی

خَتَمَ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ وَعَلٰى سَمْعِهِمْ ۗ وَعَلٰٓى اَبْصَارِهِمْ غِشَاوَةٌ ۡ

الله پاك مُهر لګولے دے دَ دوئ په زړونو باندے او غوږونو باندے او دَ دوئ په سترګو باندے پرده ده۔

وَّلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ۧ

او دوئ دپاره لوے عذاب دے۔

## لنډ تفسير

بے شکه چه کوم خلق کافر شوی دی، د دوئ په باره کښے دا برابره ده که ته دوئ لره ویره ورکړے یا نهٔ ویرے دوئ به ایمان رانه وړی د دا خبره د هغو کافرو په باره کښے ده چه د هغوی په حقله الله پاك ته دا علم دے چه دَ دوئ خاتمه به په کفر وی۔ لهٔ دے نه عام کافر مراد نهٔ دی، ځکه چه په دوئ کښے ډیر خلق روستو مسلمانان شوی وو) مُهر لګولے دے الله پاك دَ دوی په زړونو باندے او دَ دوئ په غوږونو باندے او د دوئ په سترګو باندے پرده ده۔ او دوئ دپاره لویه سزا ده۔

## علوم او مسئلے

**دَ مضمون خلاصه او ربط** د سورت بقرے په ړومبنو پنځو آیاتو نو کښے دا ذکر وو، چه قرآن کريم د هدایت کتاب دے او په دے کښے څهٔ شك نشته او له دے هدایت نه پوره پوره فائده متقیان اخلی او د دے متقیانو علامے او نښے دا دی چه په غیب ئے ایمان وی او مونځ قائموی او چه الله پاك ورله څهٔ ورکړی دی د هغے نه د الله پاك په لاره کښے خرچ کوی۔ او په دے کتاب او په ړومبنو نازل شوو کتابونو ایمان لری۔ او په ورځے د آخرت کلك یقین لری۔

او له دے نه وروستو په پنځلسو آیاتو نو کښے د هغو خلقو بیان دے چه کوم دَ عناد په وجه دا هدایت قبول نه کړو او دا خلق دوه ډلے وے یوه هغه، چه بالکل په ډاګه ئے دَ انکار او مخالفت لاره اخستے وه. دے ډلے ته د قرآن په اصطلاح کښے کافر ویلے شوی دی۔

او دویم هغهٔ خلق وو، چه هغوئ د دنیا د بے کارو اغراضو او اخلاقی کمزورئ په وجه دومره جرأت نهٔ لرلو چه د خپل ضمیرهٔ آواز او د عقیدے برملا اظهار اوکړی، چه مسلمانانو سره به څه شو نو هغوئ ته به ئے دا وئیل چه مونږ ه مسلمانان یُو، او د قرآن هدایات او تعلیمات منُو او په زړهٔ کښے به کافر وُو او چه د کافرو مجلسونو ته به ورغلل نو هغوئ ته به ئے دا وئیل چه زمونږه عقیده ستاسو عقیده ده۔ او مونږه تاسو سره یُو۔ او مونږه مسلمانانو سره صرف د دے دپاره کینو پاسُو چه د هغوئ راز معلوم کړو او دوکه ورله ورکړو۔

د دے درے قِسمه قوُم د قرآن په ژبه کښے منافق دے۔ د غه پنځهٔ آیاتونه چه د ننهٔ منُونکو په حقله کښے نازل شوی دی، د دے په دوهٔ آیاتونو کښے د هغه کافرو ذِکر دے چه د هغوئ کُفر بالکل په ډاګه وی او له دوئ نه وروستو دا تلونکو دیارلس آیاتونو کښے د منافقانو او د هغوئ علامو او د انجام ذِکر دے۔

په دے ټولو آیاتونو باندے په یو ځل نظر اچولو نه دا معلومیږی، چه قُرآن د هدایت او ارشاد دپاره سرچشمه ده او د دُنیا ټول خلق د قرآن د هدایت په قبلولو او نهٔ قبلولو په وجه په دوهٔ حصو کښے تقسیم شوی دی، یو هدایت یافته، چه هغه متقین او مؤمنان دی او بل هغه چه د دے هدایت نه څَڼړ وی او انکار کوی، نو دا کافران یا منافقان دی۔

د قرآن کریم د دے تعلیم نه یوه بنیادی مسئله راُوته، هغه دا چه د دنیا قومونو که چرے تقسیم او حصے جوړیږی نو هغه صرف د اُصولو او نظریو په بنیاد جوړیدے شی، نسب، وطن، ژبه، رنګ او جُغرافیائی حالتونه دا سے نهٔ دی چه د دے په بنیاد د دُنیا قومونه تقسیم او حصے شی۔

په د غه مخکښینو ذِکر شوُ دوهٔ آیاتو نو کښے الله پاك د هغه کافرانو ذِکر کړے دے چه هغوئ په خپل کفر او انکار کښے ضد او عناد ته رسیدلی وی او د غه ضد په وجه د څهٔ حق خبرے آوریدو او د واضح دلیل لیدلو ته هم تیار نهٔ وی، نو د دا سے خلقو په باره کښے د الله پاك سُنّة دا دے چه دوئ ته یوهٔ لغدهٔ سزا په دے جهان کښے ورکوی هغه دا چه د دوئ په زړونو مُهر لګولے شی۔ غوږونه او سترګے ئے د حق د قبلولو

نه بندوَلے شي. دَ دوئ حالت دَ حق په حقله کښې دا سے کړحئ چه ګو یا دوئ سره د حق د معلومولو د پاره عقل نشته، او دَ حق دَ لیدلو د پاره سترګے نشته او دَ حق د آؤریدو غوږونه نشته.

دَ آیت په آخر کښې دا ښودلی شوی دی، چه دا سے خلقو د پاره لوئے عذاب دے.

## دَ کُفر تعریف

دَ کفر لفظي معنیٰ پټول دی، نا شکرګئ ته هم، کفر له دے وجے نه ویلے شي، چه په دے کښې دا احسان کوؤنکي' احسان پټول دی. دَ شریعت په اصطلاح کښې کفر دے ته وائي چه دیو دا سے څیز نه انکار اوکړے شي، چه په هغې باندے ایمان لرل ضروري او فرض وي. مثلاً دَ ایمان خلاصه دا ده، چه نبي کریم صلی الله علیه وسلم چه څه د الله پاك له طرف نه راوړي دي او د هغې ثبوت قطعي او یقیني وي، په دهغې زړه سره منل او څوئے کنړل ایمان دے. او په دوئ کښې دیو نه انکار کول او حق نه کنړل کُفر دے.

## دَ اِنذار معنیٰ

اِنذار دا سے خبر ورکولو ته وائي چه د هغې نه ویره پیدا کیږي، لکه چه اِبشار دا سے خبر ورکولو ته وائي چه د هغې نه خوشحالي پیدا کیږي. لیکن دَ اِنذار معنی مطلق ویرول نه دی، بلکه دا سے ویرول دي چه هغه دَ شفقت او رحمت په وجه وي، لکه چه یو پلار اولاد لره دَ اور، مار او لړم نه ویره وي. دَ ډاکو، غَل، او دَ ظالم ویرَولو ته اِنذار نه ویلے شي ځکه چه په دے ویرولو کښې شفقت او رحم نشته. پیغمبرانو ته د نذیر لقب له دے وجے نه ورکړے شوے دے، چه دوئ د شفقت په وجے خلق د راتلونکو مصیبتونو نه ویروي. او پیغمبرانو ته د دے لقب ورکولو په وجه د دے خبرے ته اشاره ده چه مصلح او مبلّغ د پاره ضروري ده، چه هغه دَ مخاطب د خیرخواهئ او همدردئ د پاره دِ تبلیغ کوي.

په دے آیت کښې نبي صلی الله علیه وسلم ته د تسلئ ورکولو د پاره دا ښودلے شوي دي، چه دا ضدي او عنادي کافران، چه د حقیقت د پیژندلو سره په کفر او انکار کښې پوست دي، یا د خپل تکبر په وجه د څهٔ حق خبرے آوریدو ته او روښانه دیلونو ته تیار نهٔ دي، دَ دوئ دا اصلاح او ایمان راوړلو د پاره چه کوم کوشش ته کوے دا په دوئ باندے هیڅ اثر نهٔ کوي، بلکه د دوئ په حقله کوشش کول او کوشش نهٔ کول د واړه برابر دي.

اوددے وجه ئ له دے نه په وروستو آیاتو کښے بنودلے ده ، چه الله پاك د دوی په زړونو او غوږونو باندے مُهر لګولے دے او د دوی په سترګو باندے پَرده پرته ده . د فکر او پوهے ټولے لارے په دوی بندے دی . تولمه دے وجے نه دَ دوی دَ اصلاح طمع کول دسر دړد دے .

په یو څیز باندے د مُهر لګولو غرض دادے ، چه دَ بهر نه څهٔ څیز دے ته داخل نهٔ شی نو د دوی په زړونو او غوږونو باندے د مُهر لګولو مطلب دادے . چه د دوی دَ حق دَ قبلو لو څهٔ ګنجائش او ځائے نه لری .

دَ دوی د غه حالت دَ بیانولو دپاره په زړونو او غوږونو باندے مهر لګولو سره تعبیر اوکړے شو ، په دے فرق کښے حکمت څهٔ دے ؟ حکمت دادے چه په زړونو کښے یو راتلونکے مضمون یا خیال او فکر د یو طرف نه نهٔ راځی بلکه د هر طرف نه راتلے شی . هم د غه رنګ غوږونو ته رسیدونکے آواز د هر طرف نه راتلے شی . نو د دوی بندیدل هله کیدے شی چه په دوی باندے مُهر اولګولے شی . بخلاف د سترګو نه چه ځغه لیدل صرف دیو طرف نه یعنی د مخکښے نه کولے شی ، او چه د سترګو مخکښے پَرده راچولے شی ، نو د سترګو لیدل ختم کړے شی (مظهری)[1]

۱ . توفیق لرے کول دَ ګناهونو دُنیوی سزا ده

دَ دے دوؤ آیاتونو نه دا معلومه شوه ، چه د کفر او د هرے ګناه سزا خو به په آخرت کښے ورکیدے شی لیکن د بعض ګناهونو څهٔ سزا په دنیا کښے هم ورکولے کیږی . بیا دا دُنیوی سزا کله دا سے شکل جوړ کړی چه دَ ګناه کونکی نه د اصلاح حال توفیق د سَر نه واخستے شی او د یو ګناه نه اوځی او په بله ګناه کښے ننوځی . تردے پورے چه زړهٔ ئے تورشی ، او د ښهٔ او د بد تمیز ترینه بالکل ختم شی .

په حدیث کښے دی ، چه هر کله یو بنیادم ګناه کوی نو د ده په زړهٔ باندے یو تور داغ اولګی . لکه چه څرنګے په سپینه کپړه باندے تور داغ بنیادم ته ښهٔ نه ښکاری ، هم د غه شانے د ګناه په مبنی داغ سره د بنیادم زړهٔ پریشانه کیږی . کهچرے دهٔ د غے ګناه نه توبه اونهٔ ځکله او بله ګناه ئے اوکړه نو یو بل تور داغ پرے اولګی . او هم د غه شانے تور داغونه لګی را لګی . تردے چه ټول زړهٔ ئے تک تورشی او دے حالت ته اُورسی چه د ښهٔ او بد

(۱) د ثناءالله ، ج : ۱ ، ص : ۳۴ - حیدرآباد دکن - اشاعة العلوم -

فرق نه دی زړهٔ نه اوری. بیا نبی صلی الله علیه وسلم د دغې تورداني په باره کښې فرمائیلي دي،
چه د دغه تورداني نوم په قرآن کښې "رَانَ یا رَیْن" راغلي دے۔ لکه چه الله پاک فرمائی:۔
كَلَّا بَلْ رَانَ عَلَىٰ قُلُوبِهِم مَّا كَانُوا يَكْسِبُونَ (۳)

په ترمذی کښې د حضرت ابوهریرهؓ په روایت صحیح حدیث دے، چه نبی صلی الله علیه وسلم
فرمائیلي دي: چه کوم وخت بنیادم گناه اوکړی نو د هغهٔ زړهٔ تورشي. بیا که چرې دهٔ
توبه اوکړه نو زړهٔ ئے سپین شي۔ (۴)

| | |
|---|---|
| ۲۔ آوریدونکے که نصیحت قبول کړی یا قبول نهٔ کړی خودانصیحت دَ نصیحت کوونکي د پاره فائدهٔ ورکوی | په دے آیت کښې د نبی صلی الله علیه وسلم، ازلی کافرانو ته نصیحت کول او نهٔ کول دواړه برابر کړے شوی دی۔ |

لیکن ورسره د "عَلَيْهِمْ" په قید لګولو سره دا ښودلې شوی دی چه دا برابری دَ
کافرو په حقله ده، دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم په حقله نهٔ ده بلکه هغوئ ته
دَ تبلیغ او دَ تعلیم ثواب به په هر حالت کښې ورکیدل شي۔ هم د دغه وجه ده چه په ټول
قرآن کریم کښې دا سے یو آیت نشته چه په هغې کښې نبی صلی الله علیه وسلم ته دا سے خلقو
تبلیغ او تعلیم نه منع کړے شوے وی، چه هغه خلق ازلی کافران دی او دَ دوئ نصیحت
تبلیغونکي نهٔ وی۔ نو له دے نه دا معلومه شوه چه کوم سړے دَ دعوت دین او د اصلاح
کار کوی، دهٔ ته به په هر حالت کښې ثواب ورکیدل شي، خواه ددهٔ د غه تبلیغ مؤثر وی او
که مؤثر نهٔ وی۔

**دیو شبهې جواب** | ددے آیت مضمون او مطلب هم هغه دے، چه کوم د سورتِ
مُطَفِّفِين د آیت دے: كَلَّا بَلْ رَانَ عَلَىٰ قُلُوبِهِم مَّا كَانُوا يَكْسِبُونَ "یعنی دا سے نهٔ ده
بلکه د دوئ په زړونو باندے دَ دوئ د عملونو زنګ ناست دے۔" په دے آیت کښې حقیقت

(۱) دَ تفصیل دَ پاره اُوګورئ ابن کثیر ج: ۱: ص ۸۱
(۲) اُوګورئ ابن کثیر ج ۱: ص: ۸۱
(۳) المطففین ۱۴
(۴) اوګورئ ابن کثیر ج ۱: ص ۸۲۔

په ډاګه کړے شوے دے، چه بس دَ دوئ بد عملونه او سرکشیانے دَ دوئ دَ زړونو زنګ ګرځیدلی دی۔ او دَ دغه زنګ تعبیر په مذکوره آیت د بقره کښے په مهر او پردے سره کړے شوے دے۔ نو په دے وجه دا شُبه نه شی کیدلے، چه هرکله الله پاک دَ دوئ په زړونو باندے مهر اُولګولو او دَ دوئ حواس ئے خراب کړل نو بیا دوئ ځپل کفر کولو کښے معذور شو، نو بیا عذاب دوئ ته څرنګے ورکیدے شی۔ وجه دا ده، چه دے خلقو ځپل شرارت او عناد په وجه، ځپل استعداد برباد کړے کړے دے۔ نو په دے وجے دَ دغه استعداد دَ تباهئ مُسَبِّب دوئ پخپله دی۔ البته، الله پاک، په دے حیثیت، چه دے د بندګانو دَ ټولو کارونو خالق دے۔ دلته کښے دَ مُهر لګولو نسبت ئے ځان ته اُوکړلو۔ صلاحیت او استعداد ئے په ځپل اختیار سره تباه کول او غوښتل، نو دَ سنت الهیّه مُطابق، مونږ دَ دغه بد استعداد کیفیت، دَ دوئ په زړونو او حواسو کښے پیدا کړو۔

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّقُوْلُ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَبِالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَمَا هُمْ بِمُؤْمِنِيْنَ ⑧ وقف لازم

او په خلقو کښے څهٔ داسے دی، چه وائی مونږه ایمان راوړے دے په الله پاک او دَ قیامت په ورځ او دوئ هرګز مؤمنان نه دی

يُخٰدِعُوْنَ اللّٰهَ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ۚ وَمَا يَخْدَعُوْنَ اِلَّآ اَنْفُسَهُمْ وَمَا

ټګی کوی الله پاک سره او مؤمنانو سره او په اصل کښے دوئ ټګی نه کوی هیچا سره مګر د ځپلو ځانونو سره لیکن دوئ

يَشْعُرُوْنَ ۝ فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ ۙ فَزَادَهُمُ اللّٰهُ مَرَضًا ۚ وَلَهُمْ ⑨

فکر نهٔ کوی۔ دَ دوئ په زړونو کښے مرض دے۔ نو الله پاک د دوئ دا مرض زیات کړلو او دوئ د پاره

عَذَابٌ اَلِيْمٌ ۢ بِمَا كَانُوْا يَكْذِبُوْنَ ⑩ وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ لَا تُفْسِدُوْا

دردناک عذاب دے په دے وجه چه دوئ دروغ ویل۔ چه کوم وخت اُو ویلے شی دوئ ته چه په زمکه کښے فساد مهٔ کوئ

فِي الْاَرْضِ ۙ قَالُوْٓا اِنَّمَا نَحْنُ مُصْلِحُوْنَ ⑪ اَلَآ اِنَّهُمْ هُمُ الْمُفْسِدُوْنَ

نو دوئ وائی چه مونږه خو اصلاح کوونکی یو۔ خبر شه، دوئ، بس خرابی او فساد کوونکی دی،

وَلٰكِنْ لَّا يَشْعُرُوْنَ ⑫ وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ اٰمِنُوْا كَمَآ اٰمَنَ النَّاسُ

لیکن پوهیږی نه، او چه کوم وخت دوئ ته او ویلے شی چه ایمان راوړئ څرنګه ایمان راوړے دے خلقو،

قَالُوْٓا اَنُؤْمِنُ كَمَآ اٰمَنَ السُّفَهَآءُ ۭ اَلَآ اِنَّھُمْ ھُمُ السُّفَهَآءُ وَلٰكِنْ

نو دوی وائی آیا مونږ ایمان راوړو لکه څنګه چې ایمان راوړی دے بیوقوفانو. خبر شه، دوی بس بیوقوفان دی لیکن

لَّا يَعْلَمُوْنَ ﴿۱۳﴾ وَاِذَا لَقُوا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا قَالُوْٓا اٰمَنَّا ښ وَاِذَا خَلَوْا اِلٰى

نه پوهیږی. او چه کله دوی مخ شی د هغه کسانو سره چه هغوی ایمان راوړی دے نو دوی وائی چه مونږ هم ایمان راوړے دے او

شَيٰطِيْنِهِمْ ۙ قَالُوْٓا اِنَّا مَعَكُمْ ۙ اِنَّمَا نَحْنُ مُسْتَهْزِءُوْنَ ﴿۱۴﴾

چه کوم وخت دوی یواځے شی خپلو شیطانانو سره، نو دوی وائی: چه بیشکه مونږ تاسو سره یو مونږ خو (مسلمانانو) سره خندا

اَللّٰهُ يَسْتَهْزِئُ بِهِمْ وَيَمُدُّھُمْ فِيْ طُغْيَانِهِمْ يَعْمَھُوْنَ ﴿۱۵﴾ اُولٰۗئِكَ

کوو. الله پاک خندا کوی دوی سره او ورکوی دوی ته د دوی په سرکشئ کښے ډیل ورکوی او حالت دا دے چه دوی (د عقل) ړانده دی

الَّذِيْنَ اشْتَرَوُا الضَّلٰلَةَ بِالْهُدٰى ۠ فَمَا رَبِحَتْ تِّجَارَتُھُمْ وَمَا

دا هغه کسان دی چه دوی ګمراهی اخستے ده د هدایت په بدله کښے نو سود مند نه شوه د دوی سوداګری او نه دوی

كَانُوْا مُهْتَدِيْنَ ﴿۱۶﴾ مَثَلُھُمْ كَمَثَلِ الَّذِي اسْتَوْقَدَ نَارًا ۚ فَلَمَّآ

لار موندونکی دی. د دوی مثال د هغه سړی پشانے دے چه هغه اور بل کړو. چه کوم وخت اور

اَضَاۗءَتْ مَا حَوْلَهٗ ذَھَبَ اللّٰهُ بِنُوْرِهِمْ وَتَرَكَھُمْ فِيْ ظُلُمٰتٍ لَّا

د ده ګیر چاپیره لره روښانه کړو نو الله پاک د ده روښنائی ختمه کړه او دوی ئے په تیاره کښے پریخودل چه دوی

يُبْصِرُوْنَ ﴿۱۷﴾ صُمٌّۢ بُكْمٌ عُمْيٌ فَھُمْ لَا يَرْجِعُوْنَ ﴿۱۸﴾ اَوْ كَصَيِّبٍ مِّنَ

هیڅ نه لیدل - کا ڼه دی، ګونګیان دی او ړانده دی. نو دوی نه واپس کیږی یا د دوی مثال دا سے دے چه په زور

السَّمَاۗءِ فِيْهِ ظُلُمٰتٌ وَّرَعْدٌ وَّبَرْقٌ ۚ يَجْعَلُوْنَ اَصَابِعَھُمْ فِيْٓ

سره د آسمان نه باران وریږی او په هغے کښے تیاره دی غرزا ده او بریښنا دی، نو دوی خپلے ګوتے خپلو غوږو نو کښے

اٰذَانِهِمْ مِّنَ الصَّوَاعِقِ حَذَرَ الْمَوْتِ ۭ وَاللّٰهُ مُحِيْطٌۢ بِالْكٰفِرِيْنَ ﴿۱۹﴾

د تندرونو نه، د مرګ د ویرے نه ننه باسی. او الله پاک په کافرانو باندے احاطه کونکے دے.

يَكَادُ الْبَرْقُ يَخْطَفُ اَبْصَارَھُمْ ۭ كُلَّمَآ اَضَاۗءَ لَھُمْ مَّشَوْا فِيْهِ ڎ

نژدے ده چه بریښنا د دوی سترګے (نظر) او تختوی. چه کوم وخت دوی ته بریښنا وشی نو دوی په د ر ڼا کښے په تلو شی

وَاِذَآ اَظْلَمَ عَلَيْهِمْ قَامُوْا ۭ وَلَوْ شَاۗءَ اللّٰهُ لَذَھَبَ بِسَمْعِهِمْ وَاَبْصَارِهِمْ ۭ

او چه کوم وخت تیاره شي، نو دوی اودرېږي - او که الله پاک او غواړي نو بوبه ځي د دوی غوږونه او سترګې

اِنَّ اللّٰهَ عَلٰي كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ۝ ع ۲۰

بے شکه الله پاك په هر څيز باندے قادر دے

لنډ تفسير :- په خلقو کښے بعضے داسے دي چه وائي چه مونږ ایمان راوړے دے په الله پاك باندے او په آخري ورځ باندے، حال دا دے چه دوی بالکل ایمان راوړونکی نه دي (بلکه دوکه کوي الله پاك سره او هغه خلقو سره چه هغوا یمان راوړے دے (او دا قسم کښے) دَ چا سره دوکه نه کوی مګر د خپل ځان سره او دوی دد ے شعور نه لري. (یعني دَ دغ دوکے بد انجام، بس دوی به پوره ته کوي) د دوی په زړونو کښے لوئے مرض دے. نو الله پاك نور لوئے کړو دَ دوی مرض (په دے مرض کښے دَ دوی بد اعتقادي دَ اسلام او دَ مسلمانانو د ترقئ په ليد لو باندے په حسد کښے سوزيدل او په هر وخت کښے د خپل کفر په ظاهر کيد لو کښے فکرمند کيدل شامل دي. د مسلمانانو ترقئ نه د دوی دَ حسد مرض نور زياتيدل په دا ګه خبره ده) - او د دوی دَ پاره دردناکه سزا ده، له دے وجے نه چه دوی دروغ ويئل. (يعني دَ ايمان دروغژنه دعوی ئے کوله) او چه کوم وخت د دوی ته او ویئلے شي چه فساد مه کوئ په زمکه کښے نو دوی وائي مونږ خو اصلاح کونکي يو (يعني چه کوم وخت دَ دوی دوه پرمخئ نه کومے فتنے او فساد ونه پيدا شي او يو خيرخواه ئے پوهه کړي چه داسے کارونه د فساد سبب دي، دا پريګدئ، نو په جواب کښے دوی وائي چه مونږه فساد کونکي نه يو، اصلاح کونکي يو. يعني خپل فساد اصلاح ګڼړي) يا د لره بے شکه دا خلق فساديان دي ليکن دوی دد ے شعور نه لري. دا دَ دوی دَ جهالت او غباوت بيان دے چه خپل عيب بس هنر ګڼړي ورپسے دَ بل جهالت بيان دے، چه دَ نورو خلقو هنر (يعني سو چه ايمان عيب او حقير ګڼړي) او چه کوم وخت د دوی ته او ويئلے شي چه تاسو هم داسے ايمان راوړئ چه څرنګے نورو خلقو ايمان راوړے دے، نو وائي چه آيا مونږ ايمان راوړو، لکه چه څرنګے ايمان راوړے دے بيوقوفانو. يادلره چه بے شکه دوی بيوقوفان دي، ليکن دوی ته دد ے علم نشته (دے منافقانو به داسے په ډاګه خبره د غريبو مسلمانانو په مخکښے کوله، چه له هغوی نه دوی ته څه خطره نه وه

کښې په عام طور سره ـ دوئ به خپل کفر پټولو) او چه کوم وخت منافقان، ایمان راوړونکو سره مخ شي ؛ نو وائي چه مونږ ه ایمان راوړے دے او کوم وخت چه خپلو شرپرو سردارانو سره یواځې شي، نو وائي چه مونږ بے شکه تاسو سره یو مونږ خو (مسلمانانو سره) صرف خندا کوو (یعنی مونږه مسلمانانو ته د مسخرے په طور وایو چه مونږه ایمان راوړے دے کنې مونږ خو هم ستاسو هم خیاله یو. دے پسے د دوئ د دغے استهزاء جواب دے چه) الله پاك استهزاء کوی دوئ سره او مهلت ورکوی دوئ ته چه دوئ بخپله سرکشئ کښې حیران او سرګردانه وی (د الله پاك استهزاء داده چه دوئ ته مهلت ورکړے کیږی، کوم وخت چه دوئ په کفر کښې کامل شي او جرم ئے مضبوط شي نو دغه وخت به ناګهانه اونیولے شي، هرکله چه د الله پاك دا کار د دوئ د استهزاء په مقابله کښې وو نو له دے وجے نه دے ته استهزاء او ویلے شو.) دا هغه خلق دے چه دوئ د هدایت په ځائے ګمراهي اخستے ده نو د دوئ دا تجارت سود مند نه شو. او نه دوئ په صحیح لاره باندے لاړل. (یعنی دوئ کښې د تجارت سلیقه نه وه چه د هدایت غوندے قیمتی څیز ئے په ګمراهئ بدل کړو) د دوئ حالت د هغه سړی په شانے دے چه هغه اور بل کړے وی. او هرکله چه دا اور د دے سړی ګیرچاپیره لره روښنا نه کړی، نو په دا سے حالت کښې الله پاك د دوئ روښنائی ختمه کړی او دوئ په داسے تیرو کښې پریږدی چه بالکل څه نه وینی (نو څرنګه چه دا سړے او د ده ملګری د رڼا نه پس په تیاره کښې پاتے شول. د غه شانے منافقان د حق د وا ضحه کید لو نه پس په تیرو کښې او مختلف او څرنګه چه دا ورلوؤ نکو سترګے. غوږونه او ژبے په تیاره کښې بے کاره شوے هم د غه شانے د ګمراهئ په تیاره کښې د ګیریدو نه پس هم د ے منافقانو دا حالت شو چه ګویا دوئ) کانړه دی، ګونګیان دی، ړانده دی. نو دوئ نه واپس کیږی. (چه د دوئ حواس د حق دلیدلو، آوریدلو، او پوهیدلو د پاره قابل پاتے شوی نه دی. دا مثال د هغه منافقانو د پاره دے چه هغوئ په کفر کلك وو او چرته کښې ئے د ایمان خیال په زړه کښې نه راتلو. د دے پسے د هغه منافقانو د مثال بیان دے چه هغوئ په حقیقت کښې په تردد کښې وو. کله به ئے چه د اسلام حقانیت اولید و نو اسلام ته به مائله شو، بیا چه به پر د نفسانی اغراضو غلبه شوه نو د امیلان به ئے بدل شو) یا د دے منافقانو دا سے مثال د ے لکه چه د آسمان د طرف نه باران دی

او په هغې کښې تیاره هُم وی، او گړکار او بریښنا هم، کوم خلق چه په دے باران کښې روان وی نو هغه وړننه باسی چیغې گوتے پخپلو غوږو لو کښې د مرگ د ویرے نه، د تندر په وجه، او الله پاك په کافرانو باندے احاطه کړے ده. د بریښنا دا حالت دے چه نزدے ده هغه د دوئ نظر ختم کړی، کوم وخت چه لږ شانے دوئ ته د بریښنا په وجه اوښکاری نو دوئ تلل شروع کړی، او چه کوم وخت تیاره شی نو دوئ ولاړ پاتے شی او که چرے الله پاك غوښتلے نو د دوئ غوږونه او سترگے به ئے لرے کړے وے (یعنی چه څرنگے دا خلق په طوفان او باد و باران کښې کله د تلو نه پاتے کیږی او کله چه موقع اُومومی نو روانیږی. هم د غه شانے حال دد غه متردّدو منافقانو دے).

## علوم او مسئلے

### د آیاتو لو ترون یو بل سره:

تکه چه وړاندے دا خبره بیان شوے ده چه د سورة بقره په شروع کښې د دے خبرے بیان دے چه قرآن د شك شبهے نه بالا تر دے اوله دے نه وروستو په شلو آیاتو کښې دَ قرآن د منونکو او نه منونکو بیان دے، دد غه شلو آیاتو نه په وړومبو پنځو آیاتو کښې دَ قرآن د منونکو بیان د متقیانو په عنوان سره کړے شوے دے. بیا له دے نه وروستو په دوو آیاتو کښې د قرآن د داسے نه منونکو ذکر دے، چه په ډاگه ئے دَ قرآن نه انکار کولو. او له دے نه وروستو په دیارلس آیاتو کښې د داسے منکرانو او کافرانو ذکر دے، چه په ظاهره به ئے ځان ته مؤمن مسلمان وایه لیکن په حقیقت کښې مؤمنان او مسلمانان نه وو. او دوئ ته قرآن کریم دَمنافقانو نوم ورکړے دے. دَ دے دیارلسو آیاتو، په وړومبو دوو آیاتو کښې د منافقانو متعلق الله پاك فرمائی چه: په خلقو کښې لعضے داسے هم دی چه وائی: "مونږ ایمان راوړے دے په الله پاك باندے، حال دا دے، چه هغوئ بالکل ایمان والا نه دی، بلکه دوئ الله پاك سره او مؤمنانو سره چل او دهوکه کوی. او په حقیقت کښې دا دَچا سره چل او دوکه کول نه دی بلکه د خپل ځان سره دوکه کول دی. لیکن دا خلق دد ے شعور نه لری".

په دے کښې دَ دوئ دَ ایمان د دعوی درو غژنه کړے ده او دا ئے ښودلے ده چه دَ دوئ دا دعوی صرف فریب او دوکه ده او دا ظاهره خبره ده چه الله پاك ته څوك دوکه

ورکوے نه شی - او غالباً دے خلقو هم دا سے نۀ گنړله چه مونږه الله پاك ته دوکه ورکولے شو- لیکن رسُول صلے الله علیه وسلّم او مُسلمانانو سره چل او دوکه کول یو قِسم الله پاك سره دوکه او چل کول دی۔

نو په دے وجه د دے نتیجه دا شوه، چه دا کم عقل د خپل ځان نه سوا د بل چاسره دوکه نۀ کوی- ځکه چه الله پاك د هرے دوکے او فریب نه بالاتر دے، او د هغۀ رسُول او مؤمنان هم د وحی په وجه د دوکے او فریب نه بچ دی- خوك دوئ ته نقصان نۀ شی رسولے - البته د دوئ د دوکے او فریب وبال په دنیا او په آخرت کښے هم په دوئ دے۔

په دریم آیت کښے فرمائیلی چه : د دوئ په زړونو کښے ډیر لوئے مرض دے۔ او الله پاك د دوئ دا مرض نور هم لوئے کړو" مرض د هغه حالت نوم دے، چه په هغے سره بنیادم د خپل مناسب اعتدال نه اوړی او په افعالو (یعنی کارونو کښے ئے) خلل راشی، او چه د هغے آخری نتیجه هلاکت او مرګ دی۔

د قرآن او حدیث په اصطلاح کښے د نفس هغه کیفیاتو ته مرض وئیلے شی چه کوم د نفس انسانی په کمال کښے خلل اچوی او چه د هغوئ په وجه بنیادم د خپل انسانی عملونو نه محرومه کیږی او آخری نتیجه ئے رُوحانی مرګ او هلاکت وی۔

حضرت جنید بغدادی فرمائیلی دی، چه د زړونو مرضونه د خواهشاتو نفسانیو د تابعداری نه پیدا کیږی لکه چه د بنیادم بدن کښے مرض د اخلاطو د بے اعتدالئ نه پیدا کیږی- په دے آیت کښے دا وئیلے شوی دی، چه د دوئ په زړونو کښے چه کوم کفر پټ دے، هغه یو داسے مرض دے چه روحانی هُم دے او جسمانی هم، روحانی ځکه چه د خپل پیدا کونکی او پالونکی ناشکری او د هغۀ د حکمونو نه سرکشی کول د بنیادم د روح د پاره د ټولو نه لوئے مرض، او انسانی شرافت د پاره دا ډیر خراب داغ دے او بله دا چه د دُنیا د کم قیمته غرضونو د پاره د غه کفر پټول او د خپل زړۀ د عقیدے د ظاهرولو د پاره جرأت نۀ لرل، دا هُم یوه کمزوری ده چه روح د پاره ډیر لوئے مرض دے - او جسمانی ځکه چه د منافق په زړۀ کښے همیشه دا تپك وی چه چرته د ده اصلی حالت ظاهر نۀ شی - شپه او ورځ په دے فکر کښے او سیدل یو جسمانی مرض دے۔

او دا خبره چه الله پاك د دوئ دا مرض نور زیات کړو، د دے مطلب دا دے، چه دا

خلق دا سلام او مسلمانانو د ترقئ نه سوزی او الله تعالیٰ د دوئ نه دا ترقی ورکوی او منافقان هروخت دا ترقی وینی، نو په دې وجه د دوئ دا مرض لوئیږی او زیاتیږی۔

په ځلورم او پنځم آیت کښې د منافقانو دے مغالطې ذکر دے، چه دوئ فساد اصلاح ګڼړی او ځپل ځان ته مصلح وائی، نو قرآن کریم واضحه کړه چه فساد او اصلاح په ژبانی دعوو باندې نه موجود یږی، ځکه چه غل او ډاکه مار خو ځان ته په ژبه مفسد نه وائی۔ مصلح وائی۔ که ژبانی وینا د فساد یا د اصلاح د موجودګید لو د پاره کافی دے، نو غل او ډاکه مار به په خپله ژبانی وینا د مصلح سره مصلح شوے وو، بلکه د فساد او اصلاح د موجودګید لو مدار په هغه کار باندې دے، چه کوم کارکولے شی۔ که چرے هغه فساد وی، نو کونکے ئے مفسد دے۔ اګرچه دده په نیت کښې فساد نه وی۔

په شپږم آیت کښې منافقانو ته، د صحیح ایمان معیار کیخودے شو چه "اٰمِنُوْا كَمَآ اٰمَنَ النَّاسُ" یعنی ایمان راوړئ، لکه چه نورو خلقو ایمان راوړے دے۔ په دے آیت کښې د مفسرینو په اتفاق سره، دَ النَّاس نه مراد صحابه کرام دی، ځکه چه دا هغه خلق دی چه دَ قرآن د نازلیدو په وخت کښې ئے ایمان راوړے وو او د الله پاک په نزد صرف هغه ایمان معتبر دے چه د صحابه کرامو د ایمان په شان وی، په کوم موضوع نو چه څرنګے دَ دوئ ایمان دے هغه شانے ایمان که د نورو خلقو وی نو هغه ته به ایمان ویلے شی۔ او که دا سے نه وی نو ایمان ورته نشی ویلے۔ معلومه شوه چه د صحابه کرامو ایمان یوه کسوټئ ده، چه هغې سره د ټول باقی اُمت د ایمان جاج اخستلے شی چه کوم په د غه کسوټئ ټیك نه وو، نو هغه ته په شرعه کښې ایمان نه شی ویلے۔ دد ے کسوټئ خلاف هر عمل او عقیده، چه هغه په ظاهره کښې ښه ئے ولے هم نه وی او په ښه نیت او اراده ولے اُونه کړے شی د الله پاك په نزد ایمان نه دے۔

د ے خلقو صحابه کرامو ته، بے وقوفه ویل۔ او دا خو د هرے زمانے د ګمراه ځانو طریقه ده چه څوك دوئ ته صحیح لاره ښائی، نو دوئ هغه ته بے وقوف وائی، لیکن قرآن کریم او ښودل، چه په حقیقت کښې هغوئ پخپله بے وقوفان دی چه په دا سے واضحو او ظاهرو ښنو باندے ایمان نه راوړی۔

په اووم آیت کښې د منافقانو د نفاق او د دوه پر ښځی ذکر دا سے شوے دے، چه دا

خلق به کوم وخت د مسلمانانو سره یوځای شول نو ویل به ئې چه مونږه مسلمانان یو. او کوم وخت چه به د کافرانو سره یوځای شول نو ویل به ئې چه مونږ خو تاسو سره یو او ستاسو د قوم غړي یو. او مسلمانانو سره که مونږه یوځائې شوي وو، هغه صرف د هغوئ سره د مذاق کولو او هغوئ پورې د خندا کولو دپاره یوځائې شوي وو.

په اتم آیت کښې د دې احمقانو د دې وینا: چه مونږه مسلمانانو سره خندا کوو او په داسې کولو سره د مسلمانانو بې وقوفي ظاهروو، جواب دې، چه په اصل کښې په داسې کولو سره دوئ خپل ځانونه بې وقوفان ثابتوي.

په نهم آیت کښې د دې حال ذکر دې چه دوئ (یعني منافقانو) اسلام د نزدې نه اولیدو او دده خوندئې واخستو، او په کفر کښې خود مخکښې نه مبتلا وو، نو د کفر او اسلام د دواړو د لید لو او پوهیدلو نه وروستو، دوئ د دنیا د ذلیل غرضونو په وجه د اسلام په بدله کښې کفر غوره کړلو. د دوئ د دې کار ته قرآن کریم د تجارت نوم ورکړو چه د دې خبرې ته اشاره اوشوه، چه په دې خلقو کښې د تجارت کولو سلیقه نه وه چه اوکوري خرڅکې قیمتي خیز یعني ایمان ئې ورکړو او خراب ضرر ورکونکې خیز ئې واخستو.

په آخري ځلورو آیاتو نو کښې د منافقانو د حالت دپاره دوه مثالونه ورکړې شوي دي، او د دې مثالونو نه غرض دا دې چه د منافقانو د حالت نه نفرت اوکړې شي. او دوه مثاله ئې په دې غرض ورکړي دي چه منافقان دوه قسمه وو. یو هغه وو، چه په خپل کفر کښې پاخه وو، د ایمان خرګند ول به ئې صرف هغه ځائې کښې کول چه هلته کښې به د دنیا ګټه وه. ایمان او اسلام سره د دوئ څه غرض نه وو. دویم هغه وو چه د اسلام د حقانیت نه به متأثر شو. نو کله کله به ئې د صحیح مسلمان کیدلو اراده هم اوکړه لیکن بیا د نیوي لالچ به ورته وړاندې شو او له دغه ارادې نه به ئې منع کړه. نو دغه شان د تذبذب او تردد حالت کښې به پاتې شو.

د دغه مضمون په ضمن کښې د دې ظالمانو ته دا خبردارې هم ورکړې شوې وو چه دوئ تول د الله پاک د قدرت د ګیرې نه بهر نه دي، هغه په هر وخت او په هر حالت کښې دوئ هلاکولې شي او د لیدلو او د آوریدو طاقت له دوئ نه اخستې شي.

دا دیارلس آیاتونه چه پکښې د منافقانو د حالت او د مثال بیان دې په دې پسې اهم مسئلو، حکمونو،

او هغه آیاتو باندے مشتمل دی۔

۱۔ آیا نفاق د نبیؐ د زمانے پورے خاص وو؟ که اوس هم شته؟

په دے باره کښے صحیح خبره داده، چه د منافق نفاق پېژندل او ده ته منافق وئیل د دوؤ طریقو نه کیږی۔ یوه دا چه الله پاک خپل رسول ته د وحی په ذریعے ښودلی وی چه فلانے سړے منافق دے او د زړه نه مسلمان نه دے۔ دویم دا چه د هغه څه خبره یا عمل دا ثابته کړی چه د هغه نه د اسلامی عقیدے یا د اسلام د مخالفت څرګندتیا نه کیږی۔

د نبی صلی الله علیه وسلم د وصال نه پس د وحی په ذریعه د منافقانو پېژندګلو لاره خو بنده شوه، مګر دا دویمه لاره خو اوس هم آزاده او بیرته ده۔ د کوم سړی وینا او عمل که داسے وی چه په هغه کښے د اسلام د یقینی قطعیو عقیدو مخالفت وی، یا په دے وینا او عمل سره د ده عو عقیدو سپکاوے وی او دا سړے د ایمان او اسلام هم دعوی کوی نو دا سے سړے منافق دے او د غه قسمه منافق ته د قرآن په اصطلاح کښے مُلحِد وائی: اِنَّ الَّذِیۡنَ یُلۡحِدُوۡنَ فِیۡۤ اٰیٰتِنَا (۱) او په حدیث کښے ده ته زندیق وائی۔ لیکن هر کله چه د ده کفر په دلیل سره ثابت او واضح شو، نو په دے وجه د ده حکم د ټولو کافرو د حکم په شانے شو۔ د ده د پاره څه جُدا حکم نشته دے۔ د غه وجه ده چه د اُمت علماء وائی: چه د نبی صلی الله علیه وسلم نه وروستو د منافقانو مسئله د سرنه ختمه ده۔ اوس چه څوک مؤمن نه وی نو هغه ته به کافر وئیلے شی۔

۲۔ د ایمان او کُفر حقیقت

په دے ذکر شوو آیاتو باندے فکر کولو سره د ایمان او د اسلام او د ایمان د مقابل یعنی د کُفر حقیقت ښه واضحه کیږی۔ او دا ځکه چه په دے آیاتو کښے په "اٰمَنَّا بِاللّٰهِ" والا آیت کښے د منافقانو د ایمان د دعوے ذکر دے او په "مَا هُمۡ بِمُؤۡمِنِیۡنَ" سره قرآن کریم د دوی دا دعوی د ایمان غلطه ثابته کړی۔ غرض دا چه دا دواړه داسے څیز دی چه په دے باندے غور او فکر کولو سره د ایمان او د کفر حقیقت په ډاګه کیږی۔ په دے ځملو باندے فکر کولو د پاره په لاندینو څیزونو باندے سوچ کول ضروری دی هغه څیزونه دا دی:-

۱۔ قرآن کریم کښے چه د کومو منافقانو بیان شوے دے، هغه په اصل کښے یهودیان وو۔ او

(۱) فصلت: ۴۰۔

په الله پاك او په ورځ د قيامت باندې ايمان لرل، د يهودو په مذهب كښې ثابت او مسلّم دي او كوم څيز چه دَ دغو منافقانو په عقيده كښې نه وو، يعني د نبي كريم صلّى الله عليه وسلم نبوت منل نو د وی د هغې ذكر پخپل بيان كښې اونه كړلو بلكه صرف دوه څيزونه ئې ذكر كړل. ايمان بالله، او ايمان باليوم الآخر. دا دوه څيزونه داسې دی چه په دې كښې دوئ ته دروغژن ويلې نه شي نو بيا په قرآن كريم كښې دوئ ته دروغژن ويل او دَ دوئ د ايمان نه انكار كول په څهٔ وجه دی؟

خبره دا ده چه هر رنګې د خدائې پاك اقرار يا د ورځې د آخرت اقرار ايمان نهٔ دې، ځكه داسې خو مشركان هم څهٔ نه څهٔ طريقې سره الله پاك منی او دَ ټولو نه ئې لوئ قادر مطلق ګڼړی. ليكن د قرآن په نظر كښې دا ايمان نهٔ دې، دَ قرآن په نظر كښې معتبر ايمان هغه دې، چه كوم د قرآن كريم او د نبي صلّى الله عليه وسلم د ښودلو شوؤ صفتونو او بيانونو موافق وی.

او دا ظاهره خبره ده چه يهودو په دغه ښودلو شوؤ صفتونو سره نهٔ په الله تعالى باندې ايمان لرلو او نهٔ په ورځ د آخرت باندې، ځكه چه دوئ يو طرف ته حضرت عُزير عليه السّلام ته د الله پاك ځوئې ويلو او د آخرت په حقله ئې هم غلطه عقيده لرله، چه د انبياؤ اولاد چه څهٔ كوی، هغه په هر حالت كښې د الله خوښ دی. او له دوئ نه به په آخرت كښې د څه پوښتنه هُم نهٔ دی. او كهٔ چرې څهٔ عذاب وی، نو هغه به څو ورځې عوندې وی. نو په دغه وجه دَ قرآن په ژبه كښې د دوئ دا وينا چه مونږ په الله پاك او په ورځ د آخرت ايمان راوړې دې غلط او دروغ شو.

۳- دكفر او ايمان ضابطه دَ قرآن په اصطلاح او ژبه كښې ايمان هغه څيز دې چه د هغې ذِكر بره د سورت بقرې په دياړلسم آيت كښې راغلې دې: وَإِذَا قِيْلَ لَهُمْ اٰمِنُوْا كَمَآ اٰمَنَ النَّاسُ، دَ دې آيت نه دا معلوميږی چه دَ ايمان د دعوی د صحت يا د غلطئ د معلومولو د پاره معيار د صحابو كرامو ايمان دې. كوم ايمان چه د صحابو د ايمان برابر نهٔ وی هغه د الله پاك او د رسول الله صلّى الله عليه وسلم په نزد ايمان نهٔ دې. كهٔ چرې يو سړې يو قرآنی عقيده په داسې ډول منی چه د هغې مطلب او مفهوم د خپل خواهش مطابق او دَ قرآن ده اكې وينا، او دَ

رسُول الله صلی الله علیه وسلّم د تشریح نه خلاف بیانوی نو ددهٔ د غه منل دَ دغې عقیدے په باره کښې شرعًا معتبر نهٔ دی، بلکه دا داسے ده، چه دهٔ دا عقیده منلے نهٔ ده۔ ددے مثال داسے دے لکه چه نن صبا قادیانیان وائی چه مونږه د ختمِ نبوت عقیده مَنُو لیکن دوی د ختمِ نبوت د عقیدے چه کوم مفهوم دے، هغه په داسے ډول بیانوی چه په هغې کښې دَ مرزا غلام احمد نبوت ته ځائے حاصل شی او دا بیان هم داسے بیان دے چه د نبی صلی الله علیه وسلّم د ټولے دنیا کانو تحریف دے او د صحابو کرامو د ایمان نه بالکل مختلف دے۔ نو د اقادیانیان د قرآن کریم دَ دے صراحت په وجه چه: وَمَا هُمْ بِمُؤْمِنِيْنَ، مسلمانان نهٔ دی۔ لنډ مطلب دا دے کله چرے یو سړے دیوے عقیدے یو نوے داسے مطلب جوړ کړی چه هغه د صحابو کرامو د ایمان نه خلاف وی۔ او په دے باندے ټینګ پاتے شی، نو دا سړے مؤمن مسلمان نهٔ دے۔ اګرچه دا سړے مُسلمانانو سره په مونځونو روژو کښې شریک کیږی۔

**دَ یوے شُبهے لرے کول**

دَ حدیث او فقهے دا مشهوره مقوله چه: "اهلِ قبله ته کافر نهٔ شی ویلے کیدے"، دَ دے مطلب دَ دغه مخکښې ذِکر شوی آیت له مخه دا دے، چه هغه اهل قبلو ته کافر ویل یکار نهٔ دی، چه هغوی دَ ضروریات دین د یو څیز منکر نهٔ ته هم وی۔ که چرے داسے نهٔ شی نو بیا منافقانو د نورو مُسلمانانو په شانے قبلے ته مونځونه کول لیکن یو ازے څخ په قبله مونځ کول د دوی د ایمان د پاره په دے وجه کافی نهٔ شو، چه د دوی ایمان د صحابه کرامو په شانے د دین په ټولو ضروریاتو باندے نهٔ وو۔

**۴۔ دروغ ډیره سخته ګناه ده**

دَ منافقانو په دے دینا "اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَ بِالْيَوْمِ الْاٰخِرِ" د ذکر کولو نه پس دا معلومه شوه، چه دا منافقان سره دَ دے خبرے نه چه دوی غټ کافران وو، پخپل دانسته سره دَ دروغو ویلو نه ځنلك کوی۔ دا داسے، چه دَ ایمان دَ دعوے د پاره یواځے په الله پاك او په ورځ د قیامت دا ایمان ذِکر کوی او د ایمان بالرسول ذِکر ځکه نهٔ کوی، چه دروغ نهٔ شی۔ دَ دے نه دا معلومه شوه چه دروغ داسے خرابه ګناه ده، چه یو شریف سړے، خواه که هغهٔ کافر وی یا فاسق، دروغ ویل نهٔ غوره کوی۔

دا بله خبره ده چه دَ دے مُنافقانو دا یمان بالله دعویٰ او دَ ایمان بالآخرة دعویٰ دَ قرآن دَ اصطلاح په خلاف ده ځکه دروغژن نه شو کهٔ دا نهٔ وی، نو دوی په خیال کښے دوی په دے کښے رِیښتونی دی۔

۵- انبیاؤ او اولیاؤ سره بد ده معامله کول الله سره بدی کول دی. ‌‌ ځکښے ذِکر شوی آیاتو نو کښے دَ مُنافقانو یو حَال دا بیان شوے دے، چه دا خلق الله پاك ته دوکه ورکوی. حال دا دے چه دَ منافقانو په فرقه کښے داسے یو کس هم نهٔ وو چه هغهٔ الله پاك ته دَ دوکے ورکولو اراده کړے وه یا ئے دا گنړله چه دے الله پاك ته دوکه ورکولے شی۔ بلکه حقیقت دا دے چه دے خلقو به رسول صلی الله علیه وسلّم او مُؤمنانو ته دوکه ورکوله او په دے لړ کښے به ئے قبیح حرکتونه کول۔ الله پاك په دے آیت کښے دا اوښودله چه څوك یو رسول یا ولی سره چه کومه بدی کوی، هغه په حقیقت کښے د هغه شانے معامله دَ خدائے پاك سره کوی۔ بل طرف ته په دے آیت کښے د نبی صلی الله علیه وسلم د شان اوچتوالی ته اشاره او شوه. هغه داسے چه د نبی صلی الله علیه وسلم په شان کښے څهٔ گستاخی کول داسے جُرم دے لکه چه څرنگے د الله پاك په شان کښے گستاخی کول جُرم دے۔

۶- دَ دروغو وَیال ‌‌ ځکښے ذِکر شوو آیاتونو کښے د منافقانو د عذاب الیم وجه "بِمَا كَانُوْا يَكْذِبُوْنَ" یعنی دَ دوی دروغ وئیل مقرر شو۔ حال دا دے چه په دوی کښے نورهُم غټ گناهونه وو، لکه کفر، نفاق، مُسلمانانو سره حسد ساتل، او دَ مسلمانانو خلاف سازشونه کول، لیکن د دوی د عذاب الیم وجه دَ دوی دروغ وئیل مقرر کړے شو او په دے کښے دے خبرے ته اشاره او شوه چه د دروغو وئیلو عادت دَ دوی اصلی جُرم وو۔ او د ئے بد عادت (یعنی دروغو) دوی کفر او نفاق ته اورسول۔ نو په دغه وجه کهٔ چرے کفر او نفاق د جُرم په حیثیت لوے جُرم دے، لیکن د دے ټولو بَد و زیله او بنیاد دروغ دی۔ د غه وجه ده چه قرآن کریم دروغ وئیل د بُت پرستیٔ سره یو ځائے کړل او دواړو نه ئے منع اوکړه۔ فرمائی:

| | |
|---|---|
| فَاجْتَنِبُوا الرِّجْسَ مِنَ الْاَوْثَانِ وَاجْتَنِبُوْا قَوْلَ الزُّوْرِ (۱) | ځان بچ کوئ د بُت پرستیٔ د پلیتیٔ نه او د دروغو وئیلو نه۔ |

(۱) الحج ۳۰

**۷- د صَلاح او فساد تعریف او دَ مصلح او مفسد پیژندګلو**

مخکښې ذکر شوو آیاتو کښې تېر شوي دي چه کوم وخت دے منافقانو ته او ویلے شي چه د خپل نفاق په وجه په زمکه کښې فساد مهٔ خوروئ، نو دوئ به په ډیر زور او تاکید سره ویل: اِنَّمَا نَحْنُ مُصْلِحُوْنَ۔ د لته اِنَّمَا (چه حصر د پاره وي) د هغې په وجه د جملې معنیٰ دا سے شوه. چه مونږه خو بس مُصلحان یو، یعنی زمونږ د څهٔ عمل، فساد سره څهٔ تعلق نشته دے. لیکن قرآن کریم دوی ته په جواب کښې او ویل: "اَلَآ اِنَّهُمْ هُمُ الْمُفْسِدُوْنَ وَلٰكِنْ لَّا يَشْعُرُوْنَ ٥" یعنی یاد لره چه دغه خلق بس فسادیان دي، لیکن دوئ ته دَ دے احساس نشته دے۔

لدے نه دوه خبرے معلومه شوے. یوه دا چه د منافقانو سرګرمیانې په واقع کښې په زمکه کښې د فتنې او فساد د خورولو اسباب وو. دویمه خبره دا چه منافقانو دا سرګرمیانې د فتنې او فساد دَ خورولو په نیت نهٔ کولے، بلکه دوئ ته دا معلومه هم نه وه چه دَ دے نتیجه فتنه او فساد دے، لکه چه د قرآن کریم تصریح ده: وَلٰكِنْ لَّا يَشْعُرُوْنَ ٥ وجه دا ده چه په زمکه کښې فتنه او فساد دَ کوم څیزونو نه خوریږي په هغې کښې څهٔ دا سے دي چه هغه هر سړے فتنه او فساد ګڼړي لکه قتل، لوټ، غلا، دوکه، چل. مهیڅه کول، زنا کول وغیره - چه هر پوهید ونکے ئې شر او فساد ګڼړي او هر شریف له دے نه ځان بچ کوي. او څهٔ دا سے هُم دي چه په ظاهره کښې څهٔ فتنه او فساد نهٔ وي لیکن د هغې په وجه د بنیادم اخلاق خرابیږي. او د بنیادمو د اخلاقو غورزیدو سره د فتنو او فسادونو ټولے دروازے پرانستے کیږي. دَ دے منافقانو هُم د غه حال وو چه غلا، لوټ، زنا نه به ئے ځان ساتلو. نو په دے وجه د خپل ځان نه د مفسد نفي او لرے کول او د مصلح ثابتول ئے په ډیر زوردارو الفاظو سره کول. لیکن نفاق، حسد او د دے په وجه د دښمن خلاف سازشونه، دا سے څیزونه دي چه د بنیادم اخلاق دا سے تباه کوي چه بیا بنیادم دَ ډیرو ځناورو د ډګر نه هم لاندے غورزیږي. او بنیادم چه کوم وخت خپل انساني اخلاق ضائع کړي نو بیا د انسان د زندګئ په هره شعبه کښې بس فساد او فساد وي. او فساد بیا دومره لوئ چه دَ دا سے فساد اُمید نهٔ دَ درندګانو نه کیدے شي او نهٔ د لوټ مارانو نه او نهٔ دَ غلو نه. ځکه چه د دوئ فساد خو په قانون او د حکومت په طاقت منع کیدے شي۔

لیکن قانون خو بنیادم جاری کوی. هر کله چه بنیادم' بنیادم پاتے نهٔ شی نو د قانون چه کوم حشرکیږی د هغې تماشه نن جنیا په عزیند لوستر کو هرسړے په هره محکمه او اداره کښے کوی. نن دنیا تمدن مخ په ترقیٔ د ئ. د ایزدکړے اوخوونے د ادارو جالونه کښی په کلی خوارهٔ وارهٔ دی. د تهذیب الفاظ د هر سړی په ژبه جاری دی. د قانون سازئ مجلسونه گرم دی. د قانون جاری کولو بے شماره ادارے د ادبو روپو په خرڅ باندے قائم دی. لیکن جرائم، فسادونه او فتنے ورځ په ورځ زیاتیږی. د دے وجه سوا له دے بله نهٔ ده چه یو قانون چرته کښے پخپله چلید و نکے مشین نهٔ دی، بلکه قانون د بنیادم چلوی. او هر کله چه بنیادم خپل بنیاد متوب برباد کړی نو بیا دد ے فساد علاج نهٔ قانون سره کیدے شی او نه حکومت او محکمو سره. د غه وجه وه چه د انسانیت چیر لوے احسان کوونکی نبی صلی الله علیه وسلم خپله ټوله توجه په دے راغونډه کړے ده چه بنیادم په صحیح معنی کښے بنیادم جوړ کړے شی، نو بیا به فساد، جرائم پخپله ختم شی او ترکومه چه د دنیا په یوه برخه کښے د نبی صلی الله علیه وسلم په تعلیما تو عمل کیدے شی نو د دنیا هغه امن وامان نے اولید وچه د هغې مثال نهٔ مخکښے چرته کښے لیدلے شوے دے او نهٔ د دهٔ د تعلیما تو پریښودو نه به ورو ستو اولیدے شی.

د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په تعلیما تو باندے د عمل کولو روح، د الله پاک نه ویره ده او د قیامت د ورځ د حساب او کتاب فکر، د دے نه بغیر څهٔ قانون او دستور، او څهٔ محکمه، او څهٔ مدرسه او یا پولیس هغوی بنیادم د جرائمو نه منع کولے نهٔ شی.

د نن صبا دنیا کښے چه د کومو خلقو په لاس کښے د واک اختیار واکے دی، هغوی د جرائمو د منع کولو د پاره نوے نوے طریقے په فکر کښے راولی. لیکن چونکه په دوئ کښے هغه روح، یعنی خوفِ خدا نشته نو د غه طریقے د جرائمو په ختمولو کښے کامیابے نهٔ شوے، بلکه فسادونه او فتنے نورے هم زیاتے شوے.

بلکه د اصلاح حال، کومے ضابطے چه حکیم خبیر په شریعت کښے مقرر کړی دی، بس هغه طریقے کارکوونکی دی.

يَا أَيُّهَا النَّاسُ اعْبُدُوا رَبَّكُمُ الَّذِي خَلَقَكُمْ وَالَّذِينَ مِنْ قَبْلِكُمْ

اے خلقو! بندگي کوئ د خپل پروردګار چه هغه تاسو لره پيدا کړل او هغو خلقو لره ئے پيدا کړل چه له تاسو نه وړاندے وو

لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ ﴿٢١﴾ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ الْأَرْضَ فِرَاشًا وَالسَّمَاءَ

دے دپاره چه تاسو پرهيزګار شئ۔ دهغه ذات بندګي چه هغهٔ تاسو دپاره زمکه فرش او آسمان

بِنَاءً ص وَأَنْزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَأَخْرَجَ بِهِ مِنَ الثَّمَرَاتِ رِزْقًا

چت جوړ کړو، او د آسمان نه ئے اوبه راکوزے کړے او بيا ئے ستاسو خوراك دپاره ميوے راوُ خکلا

لَّكُمْ ج فَلَا تَجْعَلُوا لِلَّهِ أَنْدَادًا وَأَنْتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿٢٢﴾

نو الله پاك دپاره څوك مقابل مهٔ کړ ځوئ او تاسو خو پوهيږئ

## لنډ تفسير

اے خلقو! عبادت کوئ د خپل پروردګار چه هغهٔ تاسو لره پيدا کړل او هغه خلقو لره هم چه له تاسو نه مخکښے وو۔ عجيبه نهٔ ده چه تاسو دوزخ نه بچ شئ (په شاهي ويناکښے دا "عجيبه نهٔ ده" لفظ' دوعدے دپاره ويلے کيدے شي) هغه ذات پاك دا سے دے، چه هغهٔ تاسو دپاره زمکه فرش او آسمان چت جوړ کړو او د آسمان نه ئے اوبهٔ اوورولے بيا ئے (د عدم دپردے نه) دَ دغه اوبو په ذريعه' د ميوو نه خوراك تاسو دپاره راوُ خکلو۔ نو تاسو شوکر ځوئ دالله پاك مقابل او تاسو خو پوهيږئ (يعنی دا درته معلومه ده چه دا ټول تصرفات او کارونه دَالله پاك نه سوا بل څوك نهٔ کوی، نو بيا دالله پاك په مقابله کښے نور څيزونه معبودان کرځول څرنګ درست کار کيدے شي؟)

## علوم او مسئلے

**دَ آيا تونو ديو بل سره تړون**

وړاندينو شلو آياتونو کښے چه دَ کومو' درلو فرقو' يعنی مؤمن متقي' په ډاکه کافر او منافق ذکر اوکړے شو، اوس په دے دوو آياتونو يعنی يويشتم دوه ويشتم آيات کښے د دغه درے واړو فرقو ته خطاب دے او هغه دعوت او بلنه ورکړے شوے ده چه دکومے دپاره قرآن نازل شوے دے۔ په دے آياتونو کښے دَ مخلوق پرستئ نه منع او د يو خدائے پاك عبادت کول په داسے طريقے سره بيان کړے شوی دی

چه دعوې سره سره د هغې روښانه دلائل هم شته، دا سې روښانه دليلونه، چه معمولي پوهه لرونکي کچرې پرې غور اوکړي، نو د توحيد په اقرار به مجبور شي.

پورته مبنۍ آيت کښې يَا أَيُّهَا النَّاسُ سره شروع شوه. او د اَلنَّاسُ لفظ په عربۍ ژبه کښې مطلق انسان ته وائي، نو په دې وجه په دې کښې دا درې واړه ذکر شوې ډلې داخل شوې. او دوئ ته په اُعْبُدُوْا رَبَّكُمُ سره ارشاد او حکم اوکړې شو. د عبادت معنیٰ ده. خپل ټول طاقت په مکمل فرمانبردارۍ کښې خرچ کول، او د معبود د لوئ والي دا سې احساس لرل اوله ده نه دا سې ويره کول چه بنده بيا پخپل وس د هغه د نافرمانۍ نه ځان ساتي.(روح البيان)[1]

د رب معنیٰ ده پروردګار. او د دې پوره تشريح وړاندې تيره شوې ده. نو ترجمه دا سې شوه چه: عبادت کوئ د خپل پروردګار". د لته کښې د رب لفظ په ځائې، الله يا بل د اسماؤ حسنیٰ نه يو نوم نکيدې شو. ليکن په دوئ کښې صرف د رب لفظ نتخاب دې ځائې د پاره له دې وجې نه شوې دې، چه د رب په لفظ کښې د مُدّعا د پاره. يعنی د الله پاك عبادت کولو د پاره دليل دې. نو ګويا د رب لفظ په نکولو کښې دلته، غرض او مقصد دا دې چه مُدعا سره دليل راشي او په لنډه جمله کښې دواړه خيزونه په يو ځل حاصل شي. دليل له دې وجې دې، چه د رب معنیٰ ده پالونکې. او چه کوم ذات د انسان د پالولو ذمه آخستې ده او چه څه د يو ماشوم نه، غټ پټ، آګريدونکې، ليدونکې، عاقل، ماهر انسان جوړ کړې دې او بيا ئې د بقا او ترقۍ د پاره هغه ته ذريعې ورکړې دي، نو د غه ذات بس د عبادت حقدار کيدې شي، نه بل څوك.

او په دې هر يو سړې پوهيږي، چه د غه د ربوبيت شان، د الله تعالیٰ د ذات نه سوا، بل چا ته حاصل نه دې، او په بنيادم باندې دا انعامات مربيانه. نه د کاڼو نه تراشلې شوي بُت کړې دي او نه يو بل مخلوق. او دوئ به خرنګه اوکړي چه دوئ په خپله د خپل وجود او بقا د کښې د غه يو ذات ته محتاجه دي، نو يو محتاج د بل محتاج څه حاجت پوره کړي. او که چرې په ظاهره څه اوکړي هم، نو هغه په حقيقت او اصل کښې د هغه ذات کار دې، چه هغوئ ته دا دواړه محتاج دي.

خُلاصه دا شوه چه دلته د رب لفظ په راوړو سره دا واضحه شوه چه د الله پاك د ذات نه سوا، بل ذات معبود ځکه نه شي کيدلې، چه هغه پالونکې نه دې او معبود هغه وي چه پالونکې وي.

په دې جمله کښې درې واړه ډلوته خطاب او ويناده او دهر يوې ډلې په اعتبار د جملې معنیٰ ومطلب جُدا جُدا دې. يعنې د کافرو په حقله دخپل پروردګار د عبادت کولو مطلب دادې. چه مخلوق پرستی پريږدئ د توحيد اختيار کړئ. او د منافقانو په حقله دَ دې جملې معنیٰ داده، چه نفاق پريږدئ او اخلاص په ځان کښې پيدا کړئ. او د ګنهګارو مسلمانانو په حقله دَ دې جملې معنیٰ داده. چه ګناه نه منع شئ او مکمل اطاعت دَ الله پاك او کړئ. او د متقيانو مسلمانانو په حقله دَ دې جملې معنیٰ داده چه په ډلې فرمانبرداری او عبادت باندې ټينګ او سئ او په دې کښې د ترقئ او د زيات والی کوشش کوئ. (روح البيان)

له دې نه وروستو بيا د رب د لفظ څهٔ خاص صفتونه ذکر شوی دی. او دا دې دَ پاره چه دَ دې مضمون (يعنې د الله پاك د عبادت کولو) زيات وضاحت او کړې شی. نو فرمائی: اَلَّذِیْ خَلَقَكُمْ وَالَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ. يعنې ستاسو پالونکې هغه دې چه تاسو لره پيدا کړه او هغه قومونه ئې پيدا کړه چه له تاسو نه وړاندې وو. په دې کښې درب هغه صفت او ښودې شو، چه د چا په وهم او خيال کښې نه راځی چه دا دَ الله پاك نه علاوه په بل څهٔ مخلوق کښې هم راتلې شی. هغه دا چه نيشت نه ښته کول او بيا د مور دَ خيټې په تيرو او ګندګو کښې دا سې ښائسته او پاك صاف بنيادم جوړول چه فرښتې د هغه په پاکئ باندې رشك کوی. دالله پاك د ذات نه سوا بل څوك نشی کولې. دا سې ذات چه چاته محتاج نهٔ دې او ټول دهٔ ته محتاجه دی.

په دې آيت کښې د خَلَقَكُمْ سره دَ اَلَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ زياتوالې شوې دې. په دې کښې دا ښودنه او شوه چه ستاسو او ستاسو پلار انو خالق او پروردګار يو دې. بله دا چه صرف دَ مِنْ قَبْلِكُمْ ذکرئې اوکړو او د مِنْ بَعْدِكُمْ، يعنې دَ وروستو پيدا کيدونکو خلقو ذکرئې او نهٔ کړو. نو په دې کښې دې خبرې ته اشاره ده چه دَ امت محمديه نه وروستو څهٔ بل دويم امت او ملت به نهٔ وی، ځکه چه دَ خاتم النبيين صلی الله عليه وسلم نه وروستو نهٔ بل څهٔ نبی راځی، او نه به څهٔ نوې امت وی.

له دې نه وروستو دَ دې آيت آخری جمله ده: لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ. يعنې په دنيا کښې د ګمراهئ نه او په آخرت کښې د عذاب نه د بچ کيدو اميد، تاسو له يواځې په دې شکل کښې کيدې شی، چه تاسو توحيد اختيار کړئ او د شرك نه منع شئ.

بيا په بل آيت کښې درب د نورو صفتونو ذکرئې دا سې اوکړو: اَلَّذِیْ جَعَلَ لَكُمُ الْاَرْضَ

ج: ۱، ص: ۷۷-

فِرَاشًا وَّالسَّمَآءَ بِنَآءً وَّاَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَاَخْرَجَ بِهٖ مِنَ الثَّمَرٰتِ رِزْقًا لَّكُمْ. یعني رب هغه ذات دے چه هغه تاسو دپاره ځمکه فرش پیدا کړے ده او آسمان چت، او د آسمان نه ئے باران وروولے دے، او بیائے په دغه او بو سره د نیشت د پردے نه ستاسو د خوراک دپاره ئے میوے را او بښکلي دي.

له دے نه وړاندے آیت کښے د هغه نعمتونو بیان وو چه د بنیادم د ذات سره ئے تعلق دے او په دے آیت کښے د هغو نعمتونو ذکر دے چه د بنیادم نه ګیرچاپیره څیزونو سره ئے تعلق دے، مطلب دا چه پرومبني آیت کښے دَ انفسي نعمتونو، او په دویم آیت کښے د آفاقي نعمتونو په ذکر کولو سره، د ټولو نعمتونو په قسمونو باندے ګیره را وستے شوے ده.

په دغه آفاقي نعمتونو کښے د ځمکے د پیدا کیدلو ذکر دے، چه دا ئے د بنیادم دپاره فرش جوړ کړے دے. دا او بو په شان نرمه نه ده چه سرے پرے نه تینګیږی او نه دا او سپینے او کاڼړی په شان سخته ده چه مونږ ه دا د خپلو حاجتونو پوره کولو دپاره په آسانه استعمالولے نه شو، بلکه د نرمئ او سختوالي په میانځو منځ کښے جوړه کړے شوے ده. چه هر یو بنیادم ته د ژوند په ضرور یاتو کښے په کار راځی.

د فراش د لفظ نه دا نه لازمیږی، چه ځمکه غونډه نه ده، ځکه چه د ځمکے دا عظیم الشانه "ګوره" د غونډوالي سره هم، یو هواره سطحه ښکاری. او د قرآن عامه طریقه د بیان دا ده چه د دے دَ هر څیز هغه کیفیت بیانوی، چه په هغے هر سړے پوهیدے شي، خواه که دا سړے عالم وی او که جاهل دی، ښارے وی او که بانډې ټچي.

دویم نعمت دا دے چه آسمان ئے یو ښائسته او نظر راښکونکے چت جوړ کړے دے،

دریم نعمت دا چه د آسمان نه ئے او بهٔ وَرَولي دی. د آسمان نه د او بو وروولو مطلب دا نهٔ دے چه د وریځ نه باران نهٔ وریږی، ځکه چه د آسمان نه مراد هر هغه څیز دے چه د سر د پاسه وی او وریځ هم د سر د پاسه ده. بلکه د قرآن په ډیرو ځایونو کښے د وریځو نه د باران د وریدلو ذکر شوے دے. مثلاً :-

ءَاَنْتُمْ اَنْزَلْتُمُوْهُ مِنَ الْمُزْنِ اَمْ نَحْنُ الْمُنْزِلُوْنَ ۝[1] "آیا د باران دا او بهٔ د سپینو وریځو نه تاسو را غورزولي دی او که مونږ ه"؟

او بل ځائے کښے ارشاد دے: وَاَنْزَلْنَا مِنَ الْمُعْصِرٰتِ مَآءً ثَجَّاجًا[2] . او مونږه د ډکو وریځو نه

(۱) الواقعه (۲) النبا

په شیبو شیبو باران وروړی دے)

خلورم نعمت دَ دے او بو په ذریعه، میوه پیدا کول' او دَ میوو نه د بنیادمو خوراك پیدا کول دی۔ د پروردګار عالم په څلورو ذکرشوو صفتونو کښے پرومبنئ درے خبرے خو داسے دی چه په دوی کښے د بنیادم عمل او کوشش خولا پریږده۔ د بنیادم وجود له پکښے هم دخل نشته۔ د کمزوری بنیادم نوم نښانه نۀ وه، چه کوم وخت زمکه او آسمان پیدا وو او ورېځو او بارانو نو خپل خپل کارونه کول۔ دَ دوی متعلق یو بے وقوف جاهل هم شك شبه کولے نۀ شی۔ چه دا کارونه د الله پاك نه سوا' یو بنیادم یا بُوت یا څۀ بل مخلوق به کړی وی۔

البته دَ زمکے نه میوه پیدا کول او د میوے نه د بنیادم د خوراك پیدا کول' یو داسے خبره دے، چه په دے کښے یو سرسری نظر لرونکی ته شك پیدا کیدے شی، چه دا د بنیادم دَ سعی او کوشش او هوښیارانه تد بیرونو نتیجه ده، چه دا قسم میوے پیدا کیږی او د بنیادم دَ خوراك مسئله پرے حل کیږی۔

لیکن قُرآن کریم په نورو آیا تو نو کښے دا خبره هم صفا کړے ده، چه دیو اونے په زرعونو لو کښے یا په میوو دا او بنکلو کښے د بنیادم د ټولو تد بیرونو او محنتونو حاصل په دغه لړ کښے له دے نه سوا بل نۀ دے چه دهٔ د پیدا کیدو نکے واله او نے دلارے نه خنډان لرے کړے فکر او کړی چه زمکه کنستل، په زمکه کښے یو بے کول او د زمکے نه جاړے او بنکل، په هغے کښے سَره اچول او زمکه نرمول، چه دَ زمیندارانو پرو یښے او اولنے کار دے۔ دَ دے مطلب له دے نه سوا څه دے چه د تخم او بعتیٔ نه، نرمے تیغے د الله پاك په قدرت او خیُ۔ د زمکے سختوالے یا څۀ جاړه وغیره د دغه نرمو تیغو په لاره کښے خنډ نۀ شی؟ د تخم نه نرمے تیغ دا او بنکل او په هغے کښے گل او پانړے پیدا کول د زمیندار د محنت اثر نۀ دے، په دے کښے د زمیندار د محنت هیڅ دخل نشته۔

د غه شانے د زمیندار دویم کار په زمکه کښے تخم اچول، بیا دَ دے حفاظت کول، بیا چه کومے تیغے را او خیژی، د هغے د ګرمئ او یخنئ نه او د څارو ونه حفاظت کول دی۔ دَ دے حاصل له دے نه سوا څۀ دے؟ چه د الله پاك په قدرت سره پیدا کیدونکی تیغونه دَ ضائع کیدو نه بچ کړے شی۔ د دے ټولو کارونو له، د یو اونے په را ټوکیدو کښے یا د هغے په لوئیدو کښے هیڅ دخل نشته۔ البته د ومره چه په دے کارونو سره دا ونے په ټوکیدو

کښې یا په لویښو کښې چه څهٔ خنډونه ورته ور کړے شو. پاتې شو او نه پیدا کیدل.
او د هغې بوټیدل او په هغې کښې یا نړے، څانګې. بیا ګل او میوه پیدا کیدل. دا ټول دَ
الله پاک په قدرت کیږی. په دے کښې هیچا لره دخل نشته دے.

دا مضمون قرآن کریم دا سے بیان کړے دے:-

اَفَرَءَيۡتُمۡ مَّا تَحۡرُثُوۡنَ ءَاَنۡتُمۡ تَزۡرَعُوۡنَهٗۤ اَمۡ نَحۡنُ الزّٰرِعُوۡنَ[1] | اوښایه چه کوم څیزته کرے، هغه ته زرغون لوے، یا ئے مونږ زرغونوو.

ددے تفصیل نه دا معلومه شوه، چه څرنګه د زمکے او آسمان په پیدائش کښې او دَباران
وریځے او دَ بریښنا په منظم سلسلهٔ کار کښې د بنیادم سعی او کوشش له څهٔ د خل نشته.
هم دغه رنګه په زمیندارئ کښې او د بوټو په پیدا کیدو کښې او له هغوئ نه د ګل او میوے
په راوتلو کښې دانسان څهٔ دخل نشته، او که څهٔ دے هغهٔ برائے نام دے پوره اصل کښې دا ټول
کارونه د الله پاک په قدرت کامله او حکمت بالغه سره کیږی.

لنډه دا چه، په دے آیت کښې دالله پاک دَ دا سے څلورو صفتو بیان دے، چه بغیر له دهٔ نه
په بل چا کښې موندے نشی. او هر کله چه له دے دوو آیاتو نه دا معلومه شوه چه بنیادم
له دنیشت نه شته ته راوستل- او بیا ددهٔ د بقا او د ترقئ اسباب د زمکے، آسمان، باران،
ګل او د میوے په ذریعه پوره پوره ورسول' دالله پاک دَ ذات نه ماسوا د بل چا کار نهٔ دے'
نو بیا لرغوند ے پوهه لرونکے بنیادم به په دے یقین کولو مجبور شی، چه د عبادت او اطاعت
حق دار صرف د غه ذات دے او له دے نه به لوئے ظلم کوم بوو ی؟ چه الله پاک بنیادم شته
کړو او د هغه دَ بقا او ارتقاء د پاره ئے انتظام اوکړو، غافل بنیادم د نورو په ډرشلو باندے سجده
کوی او د نورو څیزونو په بندګئ مشغول کیږی.

اَللهُ پاک خو بنیادم د خپلو ټولو مخلوقاتو سردار د دے دَپاره جوړ کړے دے، چه ټول کائنات
ددهٔ خدمت اوکړی او د دے پوائے د کائناتو د پرورد ګار عبادت اوکړی. لیکن غافل بنیادم پخپلے
کم عقلئ سره چه کوم وخت الله پاک لره هیر کړو، نو دغه غافل بنیادم د یو خدائے د غلامئ
په ځائے، دَاو یا کروړو خدایانو په غلامئ کښې او نخښتهٔ. د دغه نورو د غلامئ نه، دَ
دَخلاصئ د پاره د دے آیت په آخر کښې الله پاک فرمائی: فَلَا تَجۡعَلُوۡا لِلّٰهِ اَنۡدَادًا وَّاَنۡتُمۡ تَعۡلَمُوۡنَ۝
" نو اوس تاسو مه جوړوئ د اَلله پاک مقابل' او تاسو خو پوهیږئ" یعنی هر کله چه تاسو

(۱) الواقعه: ۶۳

په دے پوهه شوئ، چه ستاسو د نیهشت نه تشته کوونکے، او ستاسو تربیت کوونکے او پالونکے او ستاسو د استوګنے د پاره د زمکے او نورو ضروریاتو د پاره آسمان پیدا کوونکے، او د آسمان نه باران ورونکے د اولونه میوه او د میوے نه خوراك پیدا کوونکے د الله پاك د ذات نه سوا بل نشته. نو د عبادت او بندګئ مستحق او حقدار بل څوك کیدل شي چه هغه د الله پاك مقابل، یا حصه دار او شریك او ګڼړلے شي ؟ که چرے لږ غوند ے فکر او کړے شي نو په دے دنیا کښے له دے نه لوئے ظلم، بے وقوفي او بے عقلي کیدل نشي چه الله پاك پریښودے شي او په مخلوق باندے بروسه اوکړے شي.

لنډه دا چه په دے دوو آیاتو کښے د هغه خبرے دعوت ورکړے شوے دے چه د ټولو آسماني کتابونو او د ټولو پیغمبرانو د رالیږلو اصل مقصد دے. یعني صرف د یو خدائے عبادت او بندګي او د دے نوم توحید دے.

او دا هغه انقلابي نظریه ده چه د بنیادم په ټولو عملونو، حالاتو، اخلاقو او ژوند د تیرولو په طریقو باندے ژور اثر کوي. ځکه چه کوم سړے دا یقین اوکړي چه د ټول عالم خالق او مالك او په ټول نظام عالم کښے متصرف، او په ټولو څیزونو باندے قادر، صرف یو ذات دے. بغیر د ده د ارادے نه، نه یوه ذره حرکت کولے شي، نه څوك چاته نفع او نقصان رسولے شي، نو د هغه ټوله توجه به په هر مصیبت او راحت کښے او هرے تنګئ او فراخئ کښے صرف په یو ذات باندے به وي. او ده ته به هغه بینائي حاصله شي چه د هغه په وجه به دے د ظاهري اسبابو حقیقت او پیژني، چه دا د اسبابو سلسله په حقیقت کښے یوه پرده ده چه له دے نه وروستو د قدرت لاس کارکوونکے دے.

| د ښاعمل هغه د خلاصي او جنت کښے د داخلید و یقیني سبب نه دے |
|---|

لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ جمله کښے د لَعَلَّ لفظ استعمال شوے دے د لَعَلَّ معنیٰ امید دے او په داسے ځایونو کښے ویلے شي چه هلته کښے د یو کار کیدل یقیني نه وي. ز ایمان او د توحید په نتیجه کښے خلاصے او د جنت حاصلیدل د الله پاك د وعدے موافق یقیني دي. لیکن د دغه یقیني څیز د امید په عنوان سره په بیانولو کښے دا حکمت دے، چه د انسان هیڅ یو عمل په خپله د خلاصي او د جنت قیمت جوړیدل نشي، بلکه د دے اصل سبب د الله پاك فضل دے. د ایمان او د عمل کولو توفیق ورکول د دے فضل خداوندي علامه ده، سبب او علت نه دے.

د توحید عقیدہ په دنیا کښې د امن آمان سکون او اطمینان ضامنه ده

د توحید عقیده، چه د اسلام د ټولونه اول بنیادی عقیده ده - دا یو نظریه نه ده، بلکه د انسان دپاره په صحیح معنیٰ کښې د انسان جوړولو ذریعه ده او دا د انسان د ټولو مشکلاتو دپاره حل، او په هر حالت کښې د هغه دپاره د امن ځائے او په هر غم کښې د هغه مددګار او معاون دے - ځکه چه د توحید د عقیدے حاصل دادے، چه د عناصرو، د کون او فساد او د دوی تغیرات بس د یو سے هستیٰ په اراده کیږی -

او ظاهره ده، چه د چا په زړه او دماغ بانده دا عقیده خوره شی او د هغه دا حال جوړ شی، نو دا دُنیا به د هغه د پاره جنت شی - ټول جګړے او فسادونه به ختم شی -

د دے عقیدے خاوند د ټولے دنیا نه بے نیازه وی - په زړه کښے ئے د الله پاك نه سوا د بل چا نه ویره نه وی -

د لا اله الا الله کلمه، چه دے ته کلمه توحید وائی - هم د غه مطلب او معنیٰ ده، لیکن دا ظاهره ده چه د توحید دپاره ژبانی اقرار کافی نه دے بلکه د دے دپاره زړه سره یقین هم ضروری دے -

د لا اله الا الله دیر ئکی خوښ په دنیا کښے په کروړ نو دی او دو مره دی چه چرته مخکښے نه وو، لیکن په عام طور دا صرف ژبانی جمع خرچ دے - د توحید رنګ په دوی کښے نشته - که چرے دا سے نه وے نو دوی به هغه حال وو، چه کوم د مخکښینو بزرګانو وو - چه نه ځه لوئے طاقت دوی مرعوب کولے شو او نه د یو قوم د شمار زیات والے په دوی اثرانداز کیدے شو - د پیغمبرانو نه ورو ستو صحابه او تابعین چه په لږه غونډ ے موده کښے په دنیا بانده خواره شوی وو - د دوی د طاقت او قوت حقیقی راز په توحید کښے وو - الله تعالیٰ د مونږه ټولو مسلمانانو ته دا دولت نصیب کړی - آمین -

وَإِن كُنتُمْ فِي رَيْبٍ مِّمَّا نَزَّلْنَا عَلَىٰ عَبْدِنَا فَأْتُوا بِسُورَةٍ مِّن مِّثْلِهِ

که چرے تاسو په شك کښے یئ د دغه کلام په باره کښے چه مونږ په بنده خپل بانده نازل کړے دے نو تاسو یو سورت د غه شانے راوړئ

وَادْعُوْا شُهَدَاۤءَكُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿۲۳﴾

او د خپلو بلې خپل مددګاران، د الله پاک نه سوا که چرې تاسو رښتني يئ

فَاِنْ لَّمْ تَفْعَلُوْا وَلَنْ تَفْعَلُوْا فَاتَّقُوا النَّارَ الَّتِيْ وَقُوْدُهَا النَّاسُ

که چرې تاسو دا سې او نه کړل او هرګز به او نه کړې شئ نو بيا ځان بچ کړئ د هغه اور نه چه د هغې خشاک بنيادم

وَالْحِجَارَةُ ۚ اُعِدَّتْ لِلْكٰفِرِيْنَ ﴿۲۴﴾

او کاڼړي دي او تيار کړې شوې دے کافرانو د پاره

## لنډ تفسير

که چرې تاسو خلقو ته څه تردد دی د دے کتاب په حقله کښې چه مونږه په خپل خاص بنده باندے نازل کړے دے نو بيا تاسو هم ده شانے برخه چه دد دے کتاب په شانے دی، جوړه کړئ او راوړئ ئې، ځکه چه تاسو له هم عربي ژبه دو ده او د عربي ژبے په نظم او نثر دواړو باندے ښه پوهيږئ او د دے دواړو قسمونو تاسو مشقونه کړی دی - پيغمبر صلی الله عليه وسلم د دوئ څه مشق کړے نه دے، خو د دے باوجود، تاسو د قرآن د لږ ے غونډ ے برخې مثال جوړولے نشئ - نو د انصاف تقاضا دا ده، چه دا معجزه د الله پاک لطرف نه ده او نبی صلی الله عليه وسلم د الله پيغمبر دے) او دا او غواړئ خپل مددګاران چه تاسو د الله پاک نه سوا مقرر کړی دی که چرے تاسو په رښتيا يئ. که چرے تاسو دا کار او نه کړے شو، او تر قيامته به او نه کړے شئ نو بيا ځان بچ کړئ د هغه دوزخ نه چه د هغې خشاک بنيادم او کاڼړی دی او تيار کړے شوے دے کافرانو د پاره.

## علوم او مسئلے

د آيا تونو ترون دوړاندے آياتونو سره او د دوئ مضمون

دد ے دوؤ آياتونو نه وړاندے په دوؤ آياتونو کښے د توحيد ثبوت وو. او په دے دوؤ آياتونو کښے د محمد صلی الله عليه وسلم د پيغمبرئ ثبوت دے. د قرآن کريم د هدايت دوه لوئے لوئے ستنے دی، يو توحيد او بل رسالت په وړاندے دوؤ آياتونو کښے د الله پاک د خو خاص کارونو په ذکر کولو سره توحيد ثابت کړے شو. او په دے دوؤ آياتونو کښے د الله پاک په کلام وړاندے کولو سره د نبي صلی الله عليه وسلم رسالت ثابت کړے شو.

اودَ دواړو د ثابتولو طریقه یوه ده - ځکه چه وړاندینو دوؤ آیاتو کښې دخودا سے ځیزونو ذکر شوے دے، چه هغه دالله پاک نه بغیر بل څوك کولے نشي - مثلاً د زمکے او آسمان پیدا کول، دآسمان نه اوبۀ راورول، اودَ اوبو نه میوه او ګل پیدا کول د استدلال خلاصه دا وه، چه هرکله دا کارونه دالله پاك نه سوا، بل څوك کولے نشي نو عبادت حقدار هم هغه نه سوا بل هم کیدلے نشي - او په دے دوؤ آیاتو کښې دیو داسے کلام ذِکر شوے دے، چه دالله پاك نه سوا د بل چا کیدلے نشي او نۀ یو بنیادم یا ډیر بنیادمان دد ے مثال راوړلے شي او جوړولے شي - څرنګے چه د زمکے او آسمان د جوړولونه، اود آسمان نه د باران د وورولونه او د باران نه د میوؤ پیدا کولونه انسان عاجز دے، او دا دد ے خبرے دلیل دے چه دا کارونه صرف دَالله پاك دی، نو هم دغه رنګے د کلام اِلٰهی د مثل او نظیر جوړولو او وړاندے کولونه دَ ټول مخلوق عاجز کیدل دد ے خبرے دیل دے چه دا کلام دالله پاك کلام دے - دَ چا مخلوق کلام نۀ دے - په دے آیت کښے قرآن کریم د ټولے دنیا بنیاد موته خطاب کړے او ویلی ئے دی که چرے تاسو دے کلام لره دالله کلام نۀ ګڼړئ بلکه دیو انسان کلام ګڼړئ - نو بیا تاسو هم بنیادم یئ - یکار دی چه تاسو هم په داسے کلام جوړولو باند ے قادر وئے - ټول کلام خو پریږده دد ے کلام دیوے وړے ټکړے مثال جوړ کړئ او ښایئ - او تا سوته دا آسانی هم درکیدے شي، که چرے یوسړے یواځے نشي جوړولے نو تاسوته اجازت دے چه د ټولے دنیا نه خپل مدد ګاران جمع کړئ او بین المللی غونډه اوکړئ او دد ے قرآن دیو در کوټي غوند ے سورت مثال جوړ کړئ او وړاند ے کړئ -

په دویم آیت کښے دوئ ته ئے غیرت ورکړو چه تاسو طاقت نشته دے چه داسے یو سورت جوړ کړئ - دے نه دروستو د عذاب نه ئے اوویرول - چه هرکله تاسو دَ دے کلام په شان کلام جوړولونه خپل ځان عاجزه اووینئ، چه دا صاف دلیل د دے خبرے دے، چه دا دانسان کلام نۀ دے، بلکه دیو داسے ذات کلام دے چه د ټول مخلوق نه بلند وبالا تر دے او چه د هغۀ قدرت په هر شي باندے خوور دے نو بیا په دے باندے ایمان نه راوړل د خپل لاس نه خپل ځان په دوزخ کښے اچول دی، له دے نه بچ شئ -

حاصل دا دے چه په دے دوؤ آیاتو کښے دا او ښودلے شو، چه قرآن کریم د نبی صلی الله علیه وسلم یوه لویه معجزه ده او قرآن شریف د نبی کریم صلی الله علیه وسلم دَ رسالت

او دده دُ درښتیاوالی ثبوت دے . د نبی کریم صلی الله علیه وسلم معجزے خو په ذرګونو
دی او دا ټے معجزے د ی چه سړے ورته حیرانه پاتے کیږی - لیکن په دے ټولو کښے په
دے ځائے کښے یعنی د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د رسالت د ثبوت په موقع کښے په قرآن
باندے ، چه علمی معجزه ده بس وائے له دے وجے نه اوشو ، چه دا او ښودلے شی چه دا د نبی
صلی الله علیه وسلم د ټولو نه لویه معجزه ده . او دے معجزےته د نورو انبیاؤ د عامو
معجزو په مقابله کښے دا خاصیت حاصل دے چه دا معجزه د نورو پیغمبرانو د معجزو په
شان وقتی معجزه نهٔ ده ، چه یو وخت وه او بیا به نهٔ وی. بلکه تر قیامته پورے به وی.

وَ اِنۡ كُنۡتُمۡ فِیۡ رَیۡبٍ ...... د ریب لفظ په معنیٰ کښے امام راغب[1] لیکی چه ریب هغه
شك تردد او وهم ته وائی چه د هغے څهٔ بنیاد نهٔ وی، او په معمولی سوچ او فکر سره ختمیږی
کیږی - هم دغه وجه ده چه په قرآن کریم کښے په بل ځائے کښے وائی چه اهل علم اګر چه د وئ
مسلمانان هم نهٔ دی په قرآن کښے شك نهٔ کوی .

الله پاك فرمائی : وَلَا یَرۡتَابَ الَّذِیۡنَ اُوۡتُوا الۡكِتٰبَ وَالۡمُؤۡمِنُوۡنَ[2] . او هم دغه وجه
ده چه د سورة بقرے په اول کښے د قرآن متعلق اوفرمائیلے شو : لَا رَیۡبَ فِیۡهِ ، چه په قرآن
کښے د شك او تردد کولو ځائے نیشته - او په دے آیت کښے اُوفرمائیلے شو : وَ اِنۡ كُنۡتُمۡ فِیۡ
رَیۡبٍ - یعنی اګر چه قرآن کریم د خپلو واضحو او معجزو دلیلونو په وجه دځهٔ شك او
تردد ځائے نهٔ دے ، بیا هم ، کچرے تاسو ته د خپل ناوا قفیت په وجه څهٔ تردد کوئ نو بیا
راؤړئ یو سورت دَ قرآن په شان - د سورة د لفظ معنیٰ ده ، محدوده ټکړه - او د قرآن سورت
دَ قرآن هغه خاصه حصے ته وائی چه دَ وحی په ذریعه جُدا او علیحده کړے شوے ده - په ټول
قرآن کښے دغه رنګے واړهٔ او لوئے یوسل څوارلس[۱۱۴] سورتونه دی - او دے آیت کښے د سورة
لفظ بغیر د الف لام په راوړلو کښے د دے خبرے ته اشاره ده ، چه د دے حکم کښے وړکوټی نه
وړکوټے سورة هم شامل دے - معنیٰ دا شوه کچرے تاسو ته د قرآن په کلام الٰهی کیدلو کښے
څهٔ شك وی او که ستاسو دا خیال وی چه دا نبی صلی الله علیه وسلم پخپله جوړ کړے دے - نو
دَ دے فیصله خو ډیره آسانه ده ، هغه دا ده چه تاسو هم د دے قرآن د وړکوټی غوندے سورت
مثال جوړ کړئ او لوړ ائے دے کړئ - که چرے تاسو د دے په مثال جوړولو کښے کامیاب
شوئ نو بے شکه تاسو به په حق یئ چه دا د انسان کلام دے او که چرے عاجزه شوئ نو بوهه

(۱) مفردات القرآن - ص : ۲۰۴ (۲) المدثر : ۳۱

شئ، چه دا دَ انسان د طاقت نه بهر خبره ده او دا خالص او سُوچه د الله پاک کلام دے۔
دلته کښے چا دا هم وئيلے شو، چه زمونږ عاجزکيدل د دے خبرے دليل کيدے نۀ شي چه ټول بنيادم عاجزان دی۔ کيدے شي چه يو بل سړے يا يوه بله ډله دا کار اوکړی۔
نو په دے وجه ارشاد او شو: وَادْعُوْا شُهَدَآءَكُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ۔ شهداء، د شاهد جمع ده، دَ شاهد معنیٰ ده حاضر۔ ګواه ته شاهد هم له دے وجے نه وئيلے شي چه په عدالت کښے د هغۀ حاضريدل ضروري دی۔ د دے ځائے کښے د شهداء نه مراد، يا خو عام حاضرين دی، نو معنیٰ ئ دا دے شوه: چه په ټول جهان کښے چه د کوم کوم کس تا سو مدد دا خستل غواړئ، اخستے شئ۔ او يا د دے نه مراد، د دوئ بتان دی، چه دَ دے بتانو په حقله دَ دوئ دا خيال وو، چه دَ قيامت په ورځ به دوئ زمونږه د پاره ګواهي کوی۔
په دويم آيت کښے دوئ ته دا ډيره وړکړے شوه که چرے تا سو دا کار اونۀ کړو نو بيا دَ جهنم د هغه سخت اور نه د بچ کيدلو د پاره انتظام اوکړئ، او دَ جهنم اور دا سے دے، چه دَ هغے خشاک بنيادم او کاڼی وی۔ او دا جهنم ستا سو غوندے انکارکوونکو د پاره تيار کړے شوے دے۔ او دَ دے جملے په مينځ کښے چه کومه واقعه کيدونکے ده د هغے خبرے هم ورکړو۔
وَلَنْ تَفْعَلُوْا۔ يعنی که تاسو هر څو سره انفرادی او اجتماعي طور سره زور اوکړئ، نو ستاسو دا طاقت نيشته، چه دَ قرآن مثال پيش کړئ۔
دلته کښے غور کول پکار دی، چه کوم قوم دا سلام او قرآن په مخالفت کښے او د هغے په خلقو کښے د خپل سر، اولاد، مال، عزت آبرو نه تيريدو، دوئ ته دا آسانه موقعه ورکيږی چه تاسو دَ قرآن يو ورکوټے مثال جوړ کړئ او راوړئ نو تاسو به په خپل مطلب کښے کامياب شئ۔ د دا وينا: چه دا کار به تاسو هر ګز اونۀ کړے شئ، دَ دوئ غيرت په جوش کښے د ولي ليکن په ټول قوم کښے څوک هم د دے کار د پاره وړاندے نۀ شو۔ دَ دے نه لوئے دَ دوئ د عاجز کيدلو کوم يو ثبوت کيدے شي؟ نۀ شي کيدے

**قرآن تر قيامته پاتے کيدونکے معجزه ده** د ټولو پيغمبرانو معجزے د هغوئ دَ ژوندانه د پورے وے ليکن دا يواځے دَ قرآن معجزه ده چه دَ نبي صلی الله عليه وسلم د وصال نه پس هم هغه شان د معجزے په حيثيت باقي ده، چه څرنګے د نبي صلی الله عليه وسلم په زمانه کښے وو۔ نن هم يو معمولي مسلمان د ټولے دُنيا

عالمانو او پوهانو ته په دعوے سره وئیلے شی، چه د دغه مثال نهٔ چا مخکښې راوړے دے او نهٔ نن راوړے شی۔ او چا کښې که طاقت وی نو پیش د کړی۔

جلال الدّین سیوطی، په خپل کتاب خصائص کبریٰ کښې د حدیث په حواله د نبی صلّی اللّٰه علیه وسلّم د دوؤ معجزو متعلق دا لیکلی دی، چه دا به تر قیامته وی۔ هغې دوؤ کښې یو د قرآن معجزه ده۔ او بله دا ده چه حضرت ابو سعید خدریؓ د نبی کریم صلی اللّٰه علیه وسلم نه پوښتنه اوکړه۔ چه اے د خدائے پیغمبره! د حج په ورځو کښې په درے جمرو باندے، په لکونو خلق درے ورځے پر له پسے کیڼی غورځوی۔ بیا خو د لته کښې خوك لیدلے شوے نهٔ دے چه هغهٔ د دغو کیڼو ډیر کئ دلته نه اوچتے کړی وی او بل ځائے کښې ئے اچولے وی۔ او یو ځله غورځولے شوے کیڼی بیا استعمالول هم منع دی۔ له دے وجې نه هر حاجی خپل ځان د پاره کیڼی د مُزدلفې نه راوړی۔ داخو، دا غواړی چه د جمرو خواؤ شاؤ په یو کال کښې یوه غنډی جوړه شی او جمره د پکښې پټه شی او په یو څو کالو کښې د غر جوړ شی۔ نو نبی کریم صلی اللّٰه علیه وسلّم او فرمائیل چه هو، لیکن اللّٰه تعالیٰ خپلے فرښتے مقرر کړی دی، چه هغوئ د هغه کسی کیڼی او چتوی چه د چا حج قبول کړے شوے وی۔ نو او س په دے ځائے کښې صرف د هغه کم بختو کیڼی پاتے کیږی چه د چا حج قبول شوے نهٔ وی۔ د غه وجه ده چه په دے ځائے کښې د کیڼو ډیری کم ښکاری۔ که چرے دا سے نهٔ وے نو دلته کښې به یو غر ولاړ وو۔ دا روایت په سنن بیهقی کښې شته دے۔

دا یو داسے حدیث دے، چه د دے په ذریعه د نبی صلّی اللّٰه علیه وسلّم د رښتیا والی تصدیق په هر کال او هره زمانه کښې کیږی۔ ځکه چه دا حقیقت دے، چه په حج کښې په لکونو خلق هر کال جمع کیږی او هر سړے هره جمره هره ورځ په اوؤ کیڼو باندے اولی او بعضے جاهلان خو پرے لوئے کانړی اولی۔ او دا هم په یقین سره معلومه ده چه د غه کیڼو له د غه ځائے نه د روزانه پورته کولو انتظام نهٔ حکومت کوی او نهٔ یو جماعت۔ او څرنګه چه د پخوا راسے دا دستور را روان دے چه له د ے ځائے نه د کیڼی اوچتے نشی، دا د دے خبرے تقاضا کوی، چه دا کیڼی به په راتلونکی کال کښې د وکو نړه شی۔ په دریم کال کښې به درے کو نړه شی او یو څو کاله پس، د زمکے دا حصه سره د جمرونه به په د غه کیڼو کښې پټه شی، او د جمرو په ځائے به یو لوے غر او دریږی۔ خو مشاهده د دے برعکس ده، او دا مشاهده په هره زمانه

کښې، په نبي صلی الله علیه وسلم باندې د تصدیق کولو او ایمان راوړلو د پاره کافي ده. اَوَریدلي مو دي چه اوس له دلته نه دَ کیسو دَ لړې کولو څهٔ انتظام شوې دې، لیکن دَ دې د پاره سوو کالونو دا عمل هم دَ دې مضمون د پاره کافي دې.

د غه شانِ قرآن کریم یو همیشه باقي پاتې کیدونکې معجزه ده، څهٔ رنګې چه دَ نبي صلی الله علیه وسلم په زمانه کښې د دې مثال پیش نه کړې شو نن هم پیش کیدې نهٔ شي.

**دَ قرآن د معجزوالي تشریح**

دَ دې اجمالي بیان نه پس، دا پېژندل پکار دي، چه په څهٔ وجه قرآن کریم د نبي صلی الله علیه وسلم د پاره معجزه مقرر کړې شوې ده. او د دې اعجاز وجې څهٔ دي؟ او ټوله دنیا دَ دې مثال جوړولو نه ولې عاجزه شوې ده؟

دویمه دا چه مسلمانان دا دعوی کوي، چه قرآن کریم پوره څوارلس سوه کاله، خلق خپلې مقابلې کولو ته رابللي دي، لیکن سره له دې نه، د دهٔ د یو ټکړې مثل ئې هم وړاندې نکړې شو. دا خبره تاریخي حیثیت سره څومره وزن لري؟ دا دواړه خبرې اوږدې دي او دَ تفصیل کولو قابلې دي.

**دَ قرآن د معجزوالي وجې**

پرو مبنۍ خبره، چه قرآن ولې معجزه ده؟ او دا څهٔ وجه ده؟ چه د هغې د مخې ټوله دنیا د قرآن د مثال جوړولو نه عاجزه ده. په دې خبره باندې زړو او نوؤ عالمانو مستقل کتابونه لیکلي دي. او هر یو مفسر په خپل خپل طرز سره د غه مضمون بیان کړې دې. خو به په دې حقله د یو څو خیزونو بیان په ډیره لنډې طریقې سره اوکړم.

دلته کښې د ټولو نه زیاته د غور قابله دا خبره ده چه دا عجیب او غریب د ټولو علمونو جامع کتاب کوم ځائې کښې او په چا باندې نازل شوې وو؟ آیا هلته کښې څهٔ علمي خیزونه وو! چه د هغوئ په وجه دا سې جامع او بې نظیره کتاب تیار کړې شي، چه هغه د ړو مبنو او آخرنو علمونو مجموعه وي او چه د بنیادم د ژوند د هرې خانګې په باره کښې خواه که هغه انفرادي ژوند وي یا اجتماعي، یو چیر بنهٔ هدایت وړاندې کړي. دا سې هدایت چه په هغې کښې د بنیادم د دواړو قسمو روحاني او جسماني، د تربیت مکمل قواعد او ضوابط دي او د تدبیر منزل نه واخله تر مُلک چلولو پورې پکښې ښهٔ اصول وي.

په کومه زمکه کښې او په کوم ذات باندے چه دا پاک کتاب نازل شوے دے د هغې جغرافیائی او تاریخی کیفیت او حالت په بیان کښې به داسے اُووایُو چه دَ قُرآن نزول په داسے ملك کښې شوے وو، چه هغه ملك نهٔ دکروندے ملك وو، نهٔ د صنعت او حرفت ملك وو۔ او نهٔ دَ دے ملك آب و هوا ښهٔ وه، چه دَ هغې په وجه خلق د بهر نه دلته کښې د راتلو رغبت او مینه اوکړی۔ او نهٔ ئے لارے هوارے وے۔ دا ملك د اکثرے دنیا نه یو جُدا شوے جزیره نما وه چه پکښې دَ او چوا وکرمو شګو نه بغیر، څهٔ بل څهٔ نه ښکاریدل۔

په دے ټول ملك کښې څهٔ لوئے ښارونه هم نه وو، واړهٔ واړهٔ کلی وو، او اوسیدونکو به ئے دَ اوښانو، ګډو وبېزو، په پاللو باندے ګذاره کوله۔ دا وړے بانډے خوځهٔ کوے، دد ے ملك برائے نام ښارونه چه کوم وو په هغې کښې څهٔ د علم او تعلیم چرچه نهٔ وه۔ د دغه ملك اوسیدونکو ته الله پاك پیدائشی طور سره د فصاحت او بلاغت داسے فن ورکړے وو، چه په دے کښې ئے د ټولے دنیا نه نمبر اوړے وو۔ لیکن دا ټول ددوئ فطری او پیدائشی فن وو۔ دا په څهٔ مدرسه یا مکتب کښې ایزده کیدے نه شو۔ په دے خلقو کښې څهٔ خلق د ښاری ژوندنه لږ شانے خبر وو، هغه دا چه تجارت پیشه وو او د مختلفو اجناسو د رلو او راوړلو کاروبار ئے کولو۔

دَ دغه ملك، زوړ ښار، مکه کښې په شریفه کورنئ کښې هغه پاك ذات پیدا شو، چه دَ وحی دَ نازلیدو ځائے شو۔

دَ دغه پاك ذات پلار، ددهٔ د پیدا کیدو نه مخکښې مړ شو۔ د غه ذات لاډ اووکالو نهٔ وو چه مورئے هم مړه شوه۔ د مور د غیږے ځائګوئے هم نصیب نهٔ شوه۔ د پلار او دَ نیکهٔ بے مثله سخاوت په وجه په کورکښې دومره څهٔ نهٔ وو چه په هغې د دے یتیم د پالنے دَ پاره څهٔ بند وبست اوکړے شی۔ انتهائی د تنګئ ژوند وو۔ د مور او پلار سورے ئے په سر نهٔ وو۔ په دغه حالاتو کښې د دوئ لوئے شو او د عمر ړومبئ حصه چه دَ تعلیم او تعلم اصلی وخت دے، داسے تیره کړه۔ مکه کښې په دغه وخت کښې د تعلیم تعلم څهٔ ځایونه لکه مدرسے، سکولونه، کالجونه، دارالعلومونه نهٔ وو۔ او که وے هم، نو د دوئ حالت څهٔ داسے وو چه ددوئ ته ئے د ایزده کړے اجازت نهٔ ورکولو۔ دغه وجه وه چه دے ټول عرب قوم ته امیان ویلے کیدل۔

په قرآن کریم کښې هم ددوئ متعلق دا لفظ استعمال شوے دے نو د دے لازمی نتیجه دا شوه چه

د دوئ د هر قسم تعلیم او تعلم نه بے خبر پاتے شو۔ هلته کښے داسے یو لوئے عالم هم نۀ وو چه د هغۀ نه د اعلوم حاصل شوے وے چه کوم په قرآن کریم کښے دی۔ بیا الله پاك خو یو فوق العادة معجزة منونکی غوښتل نو له دے وجے نه هغه لره او معمولی عوندے لوستل او لیکل چه هغه د لته کښے خال خال په نظر راتلۀ، دوئ ته نصیب نه شو او بالکل اُمّی محض چه خپل نوم قدرے ئے هم نۀ شو لیکلے۔ پاتے شو د عربو خاص فن یعنی شعر و شاعری چه د هغے په باره کښے به میلے لګیدے او شاعری به کیدے، الله پاك د دوئ له هغے نه لرے او ساتلو او داسے مزاج ئے ورله ورکړو چه د دے څیزونو سرة ئے مینه نۀ وة۔

البته د و مرة د ة چه دخالص اُمّی کیدلو سرة د و پرو کوالی نه په د دوئ کښے د ښو اخلاقو د پوهے، د امانت او دیانت ښښے ښیانے هر وخت لیدلے کیدے شوے چه د هغے په نتیجه کښے د عربو لویو لویو سردارانو به د دوئ عزت او احترام کولو او په ټوله مکه کښے د امین په لقب سره بللے شو۔

دا شوچه اُمّی، ترخلو ښیتو کالو پورے په مکه کښے په خپل قوم کښے او سیدو، چرته د بل ملك سفر ئے هم نۀ وو کړے، چه د هغے نه د اخیال پیدا شی چه دۀ په سفر کښے داعلومونه حاصل کړی دی۔ صرف د شام د ملك دوة² تجارتی سفرونه ئے کړی دی او هغه هم یو څو ورځے چه په هغے کښے د دے هیڅ امکان کیدے نۀ شی چه په دے سفر کښے ئے دا علمونه ایزدة کړی دی۔

د دے شوچه اُمّی، خپله څلویښت کاله ژوند په مکه کښے په خپل قوم کښے داسے تیر کړو چه نۀ پکښے دۀ چرته قلم په لاس کښے، وا خستو او نۀ کتاب، او نۀ ئے په یو مجلس کښے څۀ قصیدة یا نظم او لوستو۔ پورة د څلویښتو کالو نه پس، د دوئ په مبارکه ژبه هغه کلام شروع شو، چه د هغے نوم قرآن دے، او چه د لفظی فصاحت او بلاغت په لحاظ سرة او معنوی علوم وفنونو په اعتبار سرة عقلونه حیرانوی۔ که څرے صرف دومرة وے نو هم یو انصاف پسند نه د قرآن په معجزة کیدلو کښے شك او شُبه پاتے کیدے نۀ شوه لیکن د دے باوجود قرآن کریم ټولے دنیا ته په هسکه غږئ اوویل که څوك په دے کښے شك لری چه قرآن د الله پاك کتاب نۀ دے نو هغۀ د خپل ځان نه د قرآن په شان یو وړوکے عوندے سورت جوړ کړی او ووړاندے د کړی۔

او بل طرف ته د قرآن مقابلې ته را بلنه او بل طرف ته د ټولې دنيا مخالف طاقتونه چه هغوئ د اسلام او پيغمبر اسلام په ختمولو کښې په خپل سر، مال او اولاد آخر نهٔ وو، ليکن دَ دومره کارکولو دپاره هم طاقت نهٔ وو چه د قرآن يو وړوکې شان سورت غوندې بل سورت جوړ کړې۔ فرض کړئ که چرې دا کتاب بے مثله او بے نظيره هم نهٔ وے بيا هم ديو سړي چه اُمّي دَ ژبې نه ظاهر يدل د قرآن کريم د معجزه کيدو دپاره کم نهٔ دی او په دے خبرے باندے عالِم او جاهل دواړه بنهٔ پوهيږی۔

**د قرآن د معجزوالی دويمه وجه**

د قرآن د معجزوالی دويمه وجه دا ده، چه قرآن او دده حکمونه دَ ټولے دنيا دپاره راغلی دی، ليکن دَ دے قرآن رومبني او نيغ په نيغه مخاطب عرب وو۔ هغه عرب چه هغوئ ته څهٔ بل علم او فن ورتلو اوکهٔ نه ليکن فصاحت او بلاغت د هغوئ فطری هنر او پيدائشي صفت وو چه په دے کښې دوئ دڅ نياد ټولو قومونو څخه اگنړلے شو۔ قرآن دوئ ته مخاطبه کوی او دوئ رابلی۔ که چرے تاسو زما دَ الله پاک په کلام کيد لو کښې څهٔ شك کوئ نو تاسو زما د يو سورت مثال جوړ کړئ او اُوښايئ که چرے دَ قرآن رابلنه مقابلے ته په دے اعتبار وے چه په دے کښې حکيمانه اصُول او علمی اَسرار او معارف دی نو بيا به دے سړچه اُمّي قوم لره عذر وو چه مونږه اُمّي قوم يو د علومو معارفو نه خالي يو، نو مونږه څرنګے دَ دا سے قرآن مقابله اوکړو۔ ليکن قرآن صرف دَ معنوی حسن په باره کښې چيلنج نهٔ دے کړے بلکه د لفظی فصاحت او بلاغت په اعتبار سره ئے هم ټولے دنيا ته چيلنج ورکړے دے او دد ے چيلنج د قبلولو دپاره په اقوام عالم کښے د ټولو نه زيات حقدار عرب وو۔ که چرے په حقيقت کښے دا کلام د قدرت دَ بشر نه بهر نهٔ وے نو بيا عربو بليغانو ته څهٔ مشکله وه چه ديو سړچه اُمّي دَ کلام مثال بلکه له دے نه ښهٔ کلام فوراً پيش کړئ او که چرے يو يا دوه سړی دا کار کولے نهٔ شی نو قرآن دوئ ته دا آساني هم ورکړے ده چه ټول قوم را يو ځائے شئ او دا سے جوړ کړئ۔ ليکن د قرآن د دے او چتے دعوے سره، او بيا قسم قسم غيرت ورکولو سره هم د عربو غيرت مند قوم ټول چپ چاپ دے او دَ مقابلے دَپاره يو څو ليکے هم نشی پيش کولے۔

د عربو سردارانو د اسلام او پيغمبر اسلام د ختمولو دَپاره خپل کوم طاقتونه صرف کړی دی، هغه د چا نه پټ نهٔ دی۔ په اول کښے نبی صلی الله عليه وسلم او د هغهٔ يو څو ملګرو ته قسم قسم

تکلیفونه ورکړل، چه دوی اسلام پرېږدی، لیکن چه ورته معلومه شوه چه داسلام دا نشه داسې نشه ده چه په تریخوالی باندې نه کوزېږی، نو بیائې د خوشامد لاره غوره کړه. د عربو سردار عتبه بن ربیعه د قوم نمائنده شو او نبی صلی الله علیه وسلم له لاړو او ورته ئې دا اووئیل چه داسلام تبلیغ پرېږده، مونږ به تا ته دعربو دولت او حکومت او بنائسته جینکئ درکړو. نبی صلی الله علیه وسلم ورته په جواب کښې دقرآن یو څو آیاتونه تلاوت کړل. هرکله چه دې تدبیر کار او نکړو، نو د جنګ او مقابلې دپاره تیارشول. د هجرت نه وړاندې او د هجرت نه وروستو تریښو د نبی صلی الله علیه وسلم او د مسلمانانو د مقابلې دپاره نه پخپل سر او نه په مال، او نه په اولاد، او نه په آبرو هڅه اوکړه. لیکن هیڅچا دا او نکړے شوه چه دَ قرآن چیلنج ئې قبول کړے وے او یو څو کرښې ئې د مقابلې دپاره وړاندې کړې وې. آیا په داسې حالاتو کښې د ټولو عربو، د قرآن په مقابله کښې چپ والې او عاجزی دَ دې خبرې واضح او ښکاره شهادت نه دې، چه دا دَ انسان کلام نه دې، بلکه دَ الله پاک کلام دې چه د هغه د کار یا دَ کلام نظیر انسان څه کړی چه د ټول مخلوق د طاقت نه بهر دے؟

بیا صرف دومره هم نه، چه عرب دده د مقابلې نه چپ پاتې شو، بلکه دوی ټولو په خپلو خاصو خاصو مجلسونو کښې دَ دې د بې مثل او بې نظیره کیدو اقرار هم اوکړو، او چه کوم په دوی کښې منصف مزاج وو، هغوی د دې اقرار برملا هم اوکړو. بیا په دوی کښې بعضې مسلمانان شول او بعضې د خپلو آبائی رسمونو پابند ئ، یا بنی عبد مناف سره دَ ضد په وجه دَ اسلام قبلولو نه محرومه پاتې شول. د قریشو تاریخ دَ دې واقعاتو شاهد دې. څه دلته کښې د هغوی نه څو واقعات بیانومه، چه د هغې نه دا پته اولګی چه ټول عرب دَ دې کلام د بې مثله او بې نظیره کیدو اقرار کوی. او د دې مثال وړاندې کول ئې په دې خیال پرېخودو چه په دې کښې د دوی خپله رسوائی لیدله. هرکله چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم او د قرآن شهرت د مکې نه بهر د حجاز نورو ځایونو کښې اوشو او د حج موسم راغی نو د مکې قریش په غم کښې شو چه اوس به دَ عربو دَ اطرافو نه حاجیان راځی او دَ رسول صلی الله علیه وسلم نه به دا کلام آورې نو لیونیان به شی. او غالب ګمان دے چه مسلمانان به شی. دَ دې دا انسداد دَ تدبیر د لټولو دپاره، قریشو یو اجلاس اوکړو. په دې اجلاس کښې دَ

قريشو لوئے لوئے سرداران موجود وو - په هغوی کښے ولید بن مغیره په عمر او په عقل کښے د ټولو نه لوئے ګڼړلے شو - ټولو وليد بن مغيره ته دا مشکل وړاندے کړو چه اوس په ټول ملك دا طرافو نه خلق راځي او له مونږ نه به د محمد (صلى الله عليه وسلم) په حقله پوښتنه کوی نو مونږه به څه وايو؟ مونږ ته يو دا سے خبره اوښايه چه مونږه ټول هغه خبره کوؤ - داسے نه چه زمونږه په بيا نو نو کښے اختلاف راشي - وليد بن مغيره اووئيل چه تاسو اوښا يئ چه څه وئيل پكار دى؟

خلقو او وے، چه زمونږ په خيال کښے مونږه به ټول دا اُووايو چه محمد (صلى الله عليه وسلم) معاذ الله ليونے دے - د دهٔ کلام د ليو نو ګڼ وړ خبرى وليد بن مغيره اووئيل چه دا سے هر ګز مهٔ وايئ، ځکه چه کوم وخت خلق دهٔ څنګ راشي او د دهٔ سره ملاقات او خبرے اوشي او د دی دے يو فصيح عاقل بنى آدم بيا مومى نو د دے خلقو به يقين راشي، چه تاسو دروغ وئيلى وو - بيا خو خلقو اووئيل چه بنه مونږه به هغوى ته دا اووايو چه دے شاعر دے، وليد له دے نه هم منع کړل او ورته ئے اووئيل چه خلق هر کله د دهٔ کلام واؤرى، نو يقين به اوکړى چه دا شعر نهٔ دے، او نهٔ دے شاعر دے - نتيجه به ئے دا شي چه دا ټول خلق به تاسو دروغژن اوګڼړى - بيا څهٔ دا او وے، چه بيا مونږه به خلقو ته دا وايو چه دے كاهن دے، چه شيطانانو او پيريانو ته غوږ ايږدی او د غيبو خبرے کوی - وليد اووئيل چه دا هم غلطه ده، ځکه چه خلق هر کله د دهٔ کلام واؤری نو ورته به معلومه شي، چه دا کلام د چا كاهن نهٔ دے - نو دا خلق به بيا تاسو دروغژن اوګڼړی - له دے نه وروستو د قرآن په باره کښے چه د وليد کوم تاثرات وو هغه ئے په دے الفاظو سره بيان کړل:

"په خدائے م د قسم وی - په تاسو کښے يو سړے، د شعر و شاعرئ په باره کښے له ما نه زيات پوهه نيشته - په خدائے م د قسم وی، چه په دے کلام کښے خاص خوږوالے دے، او په دے کښے يو خاص رونق او ښائست دے چه ما د چا بليغ شاعر په شعر يا د فصيح او د بليغ په کلام کښے موندلے نهٔ دے."

بيا قوم ورته اووئيل، چه اوس ته اوښايه، چه مونږه څهٔ اوکړو -؟ او د دهٔ په باره کښے به خلقو ته څهٔ وايو؟ وليد اووئيل چه څه به د فکر کولو نه پس څهٔ جواب در کړم، بيائے د ډير فکر نه وروستو او وئيل: که چرے څهٔ وئيل وی، نو تاسو دهٔ ته ساحر وايئ چه

دے د خپل جادو په اثر، دَ پلار او ځوئ، او دَ خاوند او ښځې په مینځ کښې جُدا والے راولی۔ قوم په دے بانډے متفق او مطمئن شو، او ټولو دا وینا شروع کړه لیکن دَ اَللّٰهُ پاک دَ لوئ کله په ډیرُو کو سره کید ونکے وه۔ دَ عرب وُ اطرافو نه خلق راغلهٔ، قرآن ئې واؤریدهٔ او ډیر پکښے مسلمانان شول، او دَ عرب په اطرافو کښے اسلام په خوریدو شو (خصائص[1] کبریٰ)

هم د غه رنګے، یو قریشي سردار، نضر بن حارث، یو ځل خپل قوم ته او وئیل:

" اے قُریشیو! نن تاسو په یو مصیبت کښے اخښتی یئ چه له دے نه وړاندے چرته تاسو په داسے مصیبت کښے ګیر شوی نهٔ وئ چه محمّد (صلی الله علیه وسلّم) ستاسو د قوم یو ځلمے وو۔ تاسو ټول د هغهٔ د عادتونو او اخلاقو غوره ګڼړنکی وئ۔ او په خپل قوم کښے هغهٔ تاسو ډیر رښتونے او امانتدار ګڼړلو۔ او س چه هر کله د هغه په سر کښے سپین ویښته او لګیدل او هغهٔ یو بے مثاله کلام دَ الله پاک د طرف نه وړاندے کړو نو تاسو هغهٔ ته جادوګر وئیل شروع کړل۔ په الله پاک مے د قسم وی، چه دے جادوګر نهٔ دے۔ مونږه خو جادوګران لیدلی دی۔ د هغوئ خبرے مو آورید لی دی او د هغوئ طریقے مو لیدلی دی، دے خو د هغوئ په شان بالکل نهٔ دے۔ او کله تاسو دهٔ ته کاهن وایئ۔ په الله پاک مے د قسم وی، دے کاهن نهٔ دے۔ مونږه خو ډیر کاهنان لیدلی دی او د هغوئ کلام مو آوریدلے دے خو دوئ د کلام، د محمّد (صلی الله علیه وسلم) د کلام سره هیڅ مناسبت نیشته دے۔

او کله تاسو دهٔ ته شاعر وایئ۔ په الله پاک مے د قسم وی، دے شاعر نهٔ دے۔ مونږه خو پخپله د شعر او شاعرئ ټول اقسام پیژنو، او د لویو لویو شاعرانو کلام مونږه ته یاد دے۔ د شاعرانو د کلام، او دهٔ د کلام هیڅ مناسبت نیشته۔ بیا تاسو، کله دهٔ ته لیونے وایئ۔ په خدائے قسم چه دے لیونے نهٔ دے۔ مونږه خو ډیر لیونی لیدلی دی، او دَ هغوئ بکواس مو آوریدلے دے۔ دلته کښے خو داسے قسم خبره بالکل نیشته۔ اے زما قومه! تاسو په انصاف سره د دهٔ په معامله کښے فکر اوکړئ۔[1]

حضرت ابوذر صحابیؓ وائی، چه زما درور انیس یو ځل مکے معظمے ته لاړو، چه واپس راغلو نو ما ته ئے اوویل چه په مکه کښے یو سړے دے، او هغهٔ وائی چه ز دَ خدائے پاک

[1] الخصائص الکبریٰ۔ السیوطی۔ ج ۱: ۱۱۴

استاځي يمه ـ ما د خپل ورور نه پو ښتنه اوکړه چه د هغې ځائې خلق د ده په باره کښې څه رائې لري؟ نو ورور راته او وے چه څوك ورته شاعر وائي، څوك ورته کاهن وائي، څوك ورته جادوګر وائي ـ زما ورور انيس چه پخپله هم شاعر او د کهانت وغيره نه آشنا هم وو. ماته ئې او وے چه تر څو مره زما فکر دے، دد ے خلقو دا ټولے خبرے غلطے دي ځکه چه د ده کلام نه شعر دے ـ نه کهانت دے او نه د ليو نو خبرے دي ـ بلکه ماته خو دا کلام صادق ښکاري ـ

ابوذر وائي، چه د ورور نه م دا خبره واؤريده، نو مکے ته راروان شوم او په مسجد حرام کښے م ډيره وا چوله، د يرش ورځے ما دا شانے تيرے کړے چه د زمزم د اوبو نه سوا، زما خيټے ته څه بل څيز ښکته نه شو ـ په دومره موده کښے نه ماد لوږے تکليف محسوس کړو او نه م د څه کمزورئ احساس اوکړو[1] ـ

ابوذر چه واپس شو نو خلقو ته ئے او وے چه ما د روم او فارس د فصيحانو او بليغانو کلامونه ډير آوريدلي دي او د کاهنانو خبرے او د حمير مقالے م هم ډيرے آوريدلي دي خو د محمد (صلى الله عليه وسلم) د کلام مثال ما ترنه پورے چرته کښے آوريد لے نه دے ـ تاسو ټول زما خبره اومنئ، چه دده تابعداري اوکړئ ـ هم د غه وجه ده چه د فتح مکے په کال د ده د ټول قوم، تقريباً يو زر سړي مکے ته راغلل او مسلمانان شو[2] ـ

د اسلام او د نبي صلى الله عليه وسلم د ټولو نه لوئے د ښمن ابوجهل او اخنس بن شريق وو ـ د خلقو نه ئے په پټه قرآن آؤريده او د قرآن د عجيب او غريب بے مثل او بے نظير اثرا تو نه به متأثر کيدل ليکن چه هر کله د قوم څه خلقو ورته او وے چه ته دومره د دے قرآن نه متأثر ئے، نو بيا ولے نه مسلمانيږے، نو د ابوجهل جواب بس دا وو، چه تاسو ته معلومه ده چه د بني عبد مناف او زما د قوم په مينځ کښے د ډير مخکښے نه رقابت، دښمني راروانه ده هغوئ چه په کوم کار کښے وړاندے کيدل غواړي مونږ هم د هغے جواب ورکوو ـ اوس چه هر کله مونږه او هغوئ د يو برابر درجے خاوندان يو، نو اوس به هغوئ دا اووائي چه مونږ کښے يو نبي پيدا شوے دے چه په هغه باندے د آسمان نه وحي راځي نو مونږه به د ډيکښے دوئ څرنګه مقابله اوکړو ـ زه خو به هيڅ کله د دے اقرار او نکړم[3] ـ

خلاصه د خبرے دا ده، چه د قرآن په دے چيلنج او دعوے باندے صرف دا او نه شوه چه

(1) الخصائص ـ ج ۱ ـ ص ۱۱۶ (2) د غه پورتنئ مرجع (3) الخصائص ـ

ټولو عربو شکست او منلو، او چپ شو، بلکه د دهٔ د بې مثاله او بې نظیره کیدلو او د خپل عاجز کیدلو برملا اقرار ئې هم کړے دے. که چرے دا د يو بنيادم کلام وے نو بيا د دے څۀ وجه نۀ وه چه ټول عرب بلکه ټوله دنيا د دهٔ د مثال راوړلو نه عاجزه شوے وے.

دَ قرآن او د پيغمبر اسلام سره په مقابله کښې، دوئ د خپل مال، ځان، اولاد، آبرو د هر څۀ قربانولو ته تيار وو. ليکن - د دے د پاره څوك وړاندے نۀ شو چه د قرآن چيلنج قبول کړي او يو دوه کرښے د دے په مقابله کښے اوليکي.

د دے وجه دا وه چه دا خلق، سره د جاهلانه اعمالو نه، منصف مزاجه وو، دَ دروغو ته به نۀ نزدے کيدل. هر کله چه دوئ قرآن واورید او پوهه شو چه په حقیقت کښے د دهٔ مثل دوئ راوړے نۀ شو، نو بيا صرف په دروغو باندے څۀ کلام پيش کول دوئ د خپل ځان د پاره عار گڼړلو. ځکه چه دوئ پوهيدل که مونږه څۀ پيش هم کړو نو د ټولو عربو فصيحان بليغان به مونږه په دے مقابله کښے فيل کړي او رسوا به شو. نو په دے وجه ټولو چپ کيدل غوره کړل. او چه کوم يو څو زيات منصف مزاج وو نو هغوئ په ډاګه اووے چه دا کلام دَ بشر کلام نۀ دے.

دَ دے سلسلے يوه واقعه دا ده چه د عربو سردار اسعد بن زراره د نبي صلی الله عليه وسلم د تره په مخکښې دا اقرار اوکړو چه:

"مونږه خواه مخواه د محمد (صلی الله علیه وسلم) په مخالفت کولو خپلے خپلوئ او تعلقات خراب کړي دي، زهٔ په يقين سره وايم، چه دے بيشکه د الله پاك استازے دے، هرګز دروغژن نۀ دے، او چه کوم کلام دهٔ راوړے دے هغه د بشر کلام کيدے نشي"[1].

دا اقرار او منل صرف د هغو خلقو نه منقول نۀ دي چه هغوئ د نبي صلی الله عليه وسلم په معامله کښې غير جانبدار وو، بلکه د هغو خلقو متعلق روايتونه دي چه هغوئ هميشه د پاره د نبي صلی الله عليه وسلم مخالف وو او هغوئ هم د غه رنګے اقرارونه کړي دي. دَ ابوجهل او د اخنس بن شريق دا واقعات د خصائص په حواله تاسو مخکښې اولوستل، د هغے نه ښۀ معلوميږي، چه ابوجهل هم په دے اقرار کولو مجبور وو، چه قرآن د بشر کلام نۀ دے.

**دريمه وجه** دريمه وجه د قرآن د معجز والي دا ده چه په قرآن کښې د غيب او په راتلونکو ورځو کښې د پيښيدونکو واقعاتو خبرونه دي او دا واقعات هغه شانے شوي دي.

(۱) الخصائص ج ۱، ص ۱۱۶

خرنګه چې قرآن دا د ے خبر ورکړے وو. مثلاً قرآن خبر ورکوي. چه د روم او فارس په مقابله کښې اول به اهل فارس غالب کیږي او رومیان به مغلوب کیږي. لیکن ورسره ئې دا خبر ورکړ چه لس کاله به لا تیر نه وي، چه بیا به رومیان په فارس باندے غالب شي. د مکې سردارانو د قرآن په دے خبر باندے حضرت ابو بکر صدیق رضي الله عنه سره ډکښې او بیلات شرط او ټکولو. او بیا بالکل د قرآن د خبر مطابق رومیان غالب شو، نو هغوی لوخپل شکست د ابو بکر رضي الله عنه د وړاندے او منلو او په شکست خوړو ټکو باندے چه کوم مال ورکول وو، هغه نبي صلی الله علیه وسلم قبول نه کړو، ځکه چه دا یو قسم جواري وه. هم د غه رنګې نور ډیر واقعات او خبرونه دي چه د غیبي خبرونو په باره کښې په قرآن کریم کښې دي او چه د هغوی د ښیښنوالے د رښتیا ورځ په شان ښکاره شوے دی.

خلورمه وجه | څلورمه وجه د قرآن د معجزوالي د پاره دا ده چه په قرآن کښې د پخوانو امتونو، او د هغوی د شریعتونو او د تاریخي حالاتو دا سے صفا تذکره شوے ده چه د دغه زمانے لوئې لوئې علماء یهود او نصارا ؤ ته چه د پخوانو کتابونو ماهران ګڼلے شو دومره معلومات نه وو. او نبي صلی الله علیه وسلم خو نه په یو مدرسه کښې څه ایښے وه او نه د یو عالم سره څه وخت . تیر کړے وو، او نه ئې څه یو کتاب په لاس کښے اخستے وو. بیا دا د دنیا د اول نه واخله د خپلے زمانے پورے د ټولو اقوام عالم تاریخي حالات او د هغوی د شریعتونو تفصیلات بیانول، بغیر له دے نه نه کیږي، چه دا، د الله پاک کلام دے، او الله پاک دے ته خبر ورکړے دے

پنځمه وجه | دا ده، چه د قرآن په ډیرو آیاتونو کښې د خلقو د زړونو د خبرو خبردارے ورکړے شوے دے. او بیا د غو خلقو د اقرار نه ثابته شوے ده چه د غه خبره صحیح او رښتیا وه. دا کار خو هم، عالم الغیب والشهادة کولے شي. یو بنیادم ته عادةً ممکنه نه ده. د دغه قسم آیاتونو نه، یو آیت مثلاً دا دے:

إِذْ هَمَّتْ طَّآئِفَتَانِ مِنكُمْ أَن تَفْشَلَا (۱) (هرکله چه ستا سو دوه ډلو په زړه کښې د واپس کیدو اراده او کړه)

او مثلاً :-

وَيَقُولُونَ فِيٓ أَنفُسِهِمْ لَوْلَا يُعَذِّبُنَا ٱللَّهُ بِمَا نَقُولُ (۲) | دا خلق په خپلو زړونو کښې وائي، چه زمونږ د انکار کولو نه الله تعالیٰ مونږ ته عذاب ولے نه راکوي.

دا ټولے خبرے داسے دي چه، نبي صلی الله علیه وسلم ته چا ظاهرے کړے نه وے، بلکه قرآن کریم ورته د خلقو د زړونو د خبرو انکشاف کړے وو.

(۱) آل عمران: ۱۲۲ (۲) المجادلة: ۸

**شپږمه وجه** شپږمه وجه داده - هغه آيا تونه چه په هغې کښې قرآن ديو قوم يا ديو سړي په باره کښې پيشنګوئ کړې ده، چه دے به فلانے کار اونکړے شي - او بيا دغه خلق دَ ظاهري قوت سره هم، دغه کار اونکړے شو - لکه چه د يهودو متعلق قرآن اوښو دله - که چرے دوئ په حقيقت کښې خپل ځان د خدائے دوستان ګنړي، نو بيا دوئ ته پکاردي چه الله پاک ته څخه د تلو د پاره دِ په زړهٔ کښې مينه لري او دے د پاره دِ د مرګ آرزو لري، ليکن داسے نهٔ ده - ارشاد دے :

وَلَنْ يَّتَمَنَّوْهُ اَبَدًا[1] (دوئ به هرګز د مرګ آرزو او نهٔ کړي)

دَ مرګ آرزو د چا د پاره مشکله نهٔ وه - او خاص کر هغه خلقو د پاره، چه هغوئ به قرآن دروغ ګنړلو - دَ قرآن دارشاد په وجه دوئ د پاره څهٔ وجه نهٔ وه چه دوئ دَ مرګ د تمنا کولو نه اُويريږي - يهودو د پاره خو دا موقع د مُسلمانانو د شکست د پاره ډير لوے غنيمت وو چه فورًا ئے په هر مجلس کښې د مرګ د آرزو اعلان کړے وے - ليکن يهودو يا مشرکانو خو په ژبه هُم خو مره چه قرآن شريف دروغژن کولو، خودننه په زړهٔ کښې پوهه وو چه قرآن رښتيا دے - د دهٔ څهٔ خبره دروغ نهٔ ده، که چرے د مرګ تمنا مونږه په دے وخت اوکړه نو فورًا به مړهٔ شو - نو له دے وجے نه د قرآن شريف په دے پاکيزه چيلنج سره هم دَ يهودي دا همت اونهٔ شو، چه يو ځل خو، صرف په ژبه د مرګ د آرزو کولو خبر کندول اوکړئ -

**اوومه وجه** هغه خاص کيفيت او حالت دے، چه دَ قرآن په آوُريدو سره په هر خاص وعام مومن او کافر باندے خوريږي، لکه چه حضرت جبير بن معطم ته د اسلام راوړلو نه مخکښے پيښ شوي وو - هغه دا چه دهٔ د نبي صلي الله عليه وسلم نه د ماښام په مانځهٔ کښې سورة طور واوُريدو - هر کله چه نبي صلي الله عليه وسلم آخري آيا تونه اورسيدُ نو جبير وائي، چه زما زړهٔ په الوتو شو، او دا د تولو نه ړومبئ ورځ وه چه زما په زړهٔ کښې اسلام ځائے اُونيولو هغه آيا تونه دادي :-

| | |
|---|---|
| اَمْ خُلِقُوْا مِنْ غَيْرِ شَيْءٍ اَمْ هُمُ الْخَالِقُوْنَ ۝ اَمْ خَلَقُوا السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بَلْ لَّا يُوْقِنُوْنَ ۝ اَمْ عِنْدَهُمْ خَزَآئِنُ رَبِّكَ اَمْ هُمُ الْمُصَيْطِرُوْنَ ۝[2] | آيا دوئ بغير د څهٔ څيزنه جوړ شوي دي، يا دوئ بس جوړونکي دي، يا دوئ زمکه آسمان جوړ کړي دي، هيڅ نيشته بلکه دوئ يقين نهٔ لري، آيا دوئ ته څخه ستا د رب خزانے دي يا دوئ د دے دارو غه ګان دي |

(۱)　(۲) الطور : ۳۵، ۳۶، ۳۷ -

**اتمه وجه** داده چه د قرآن شریف په بار بار وبیا سره زړونه نهٔ تنګیږی، بلکه چه څومره زیات لوستلے شی دومره د لوستلو شوق زیاتیږی. د دُنیا د ټولو نه ډیر مرغوب کتاب واخله، څو ځله دوه درې ځلو په لوستلو تیر نه زړهٔ موړشی. دا صرف د قرآن خاصه ده، چه څومره ئے لوے دومره به د شوق زیاتیږی. او دا دَ دے خبرے دلیل دے چه قرآن د خدائے تعالیٰ کلام دے.

**نهمه وجه** داده چه قرآن اعلان کړے دے چه ددهٔ د حفاظت ذمه خدائے پاك اخستے دهٔ او دے به تر قیامته پورے بغیر د تغیر او ترمیم و تبدل نه پاتے وی. الله پاك خپله دا وعده داسے پوره کړهٔ چه د کوم وخت نه قرآن نازل شوے دے نن څوارلس سوه کاله نزدے کیدونکی دی او په هرے پیړئ کښے په لکونو بنیادم داسے دی او وی به چه د هغوئ په سینو کښے قرآن محفوظ دے او محفوظ به وی. او محفوظ بیا داسے، چه دَ یو زورِ زیرِ د غلطئ امکان نیشته. په هره زمانه کښے ددے په محافظانو کښے سړی، ښځے، واړهٔ او بوډا اکان موندے شی. د دنیا د مذهبونو یو مذهبی کتاب هم د قرآن شریف په شان مثال پیش کولے نشی بلکه دَ دهٔ د لسمے حصے مثال هم نشی پیش کولے. د ډیرو مذهبی کتابونو خو نن صبا دا پته نګول ګران دی چه دا په اصل کښے په کومه ژبه کښے راغلے وو او د دوئ څومره جلدونه وو.

په کتابی شکل کښے په هرے پیړئ او زمانه کښے چه څومره اشاعت د قرآن شریف شوے دے، دومره اشاعت د بل یو کتاب شوے نهٔ دے، حالانکه تاریخ شاهد دے چه په هره زمانه کښے د مسلمانانو شمېر په دنیا کښے د کافرو په نسبت ډیر کم راغلے دے او د نشر او اشاعت ذریعے هم چه څومره د کافرو وی، هومره د مسلمانانو سره نهٔ وے. مګر ددے ټولو خبرو باوجود د یو قوم د یو مذهبی کتاب په دنیا کښے دومره اشاعت نهٔ دے شوے چه څومره د قرآن شریف شوے دے. بیا د قرآن حفاظت، الله پاك صرف په کتابونو او صحیفو باندے انحصار کړے نهٔ دے. چه د هغوی د سوزیدو او محو کیدو امکان دے، بلکه د خپلو بندګانو په سینو کښے ئے هُم محفوظ کړو. که څرے (خدائے پاك د اونهٔ غواړی) د دنیا ټول قرآنونه ختم کړے شی، نو د الله پاك دا کتاب به د غه رنګے محفوظ وی، څو حافظان به کښینی او په څو ګنټو کښے به بیا ټول اولیکلے شی. دا بے مثله حفاظت هم صرف د قرآن خاصه ده او ددے خبرے نمایان ثبوت دے چه قرآن د الله پاك کلام دے. څرنګے چه د الله پاك ذات همیشه د پاره پاتے کیدونکے دے، او په هغهٔ باندے د چا تصرف نه چلیږی. د غه شانے ددهٔ کلام به هم همیشه د ټولو مخلوقاتو د تصرف نه

بهروی، او همیشه دپاره به باقي وي. د قرآن شریف دا پیشنګوئ د خوارلس سوو کالو راسے په مشاهده کښے راغلې ده، او تر قیامته به په مشاهده کښے راځي. دَدے وا ضح معجزے نه وروستو دَ قرآن د کلام الٰهي په کیدو، څه د شك او شُبهے ځاے کیدے شي؟ نهٔ شي کیدے.

لسمه وجه | هغه علمونه او معارف دي، چه په هغې باندے تر ننه پورے یو کتاب احاطه نهٔ دهٔ کړے، او نهٔ په راتلونکي وخت کښے امکان شته، چه دومره د ر کوټي غټو الې کښے او په محدودو الفاظو کښے دومره علوم او فنون جمع کړے شي، چه د ټولو کائناتو ضروریاتو باندے حاوي، د بنیادم د ژوند د هرے خانګے او حال متعلق پوره مرتبٔ او بنهٔ نظام پیش کړے شي. د شخصي او خانداني ژوند نه واخله، تر قبائلي او ښاري ژوند پورے، او بیا د عمرانیاتو، اجتماعیاتو، او سیاستِ ممالك په هر اړخ باندے حاوي نظام پیش کړي.

بیا صرف نظري او علمي طور سره نظام پیش کول نه بلکے عملي طور سره دَدے رواج مونډل، او د دُنیا په ټولو نظامونو باندے غالب کیدل د دُنیاد قومونو په مزاج، اخلاقو، اعمالو، معاشرت، او تمدن کښے دا سے لوئے انقلاب راوستل، چه د هغې مثال نهٔ مخکښینو زمانو کښے شته دے، او نه په راتلونکو زمانو کښے. دا حیرانه کوونکے انقلاب، آیا دیو بنیادم د قدرت او دده د حکمت عملي نتیجه کیدے شي خاص کرچه هغه انسان اُمّي هم وي او قوم ئے هم اُمّي وي.

دا هغه حیرانه کوونکي تاثیر نه دي چه دده په وجه هر یو سړے مجبوره دے، چه قرآن ته کلامِ الٰهي او وائي. په دے شرط چه د هغهٔ عقل او بصیرت له تعصب او عناد برباد کړے نهٔ وي. تر دے پورے چه دَ دے ماده پرستئ د دور کښے، چه کوم مسیحي مصنفینو په قرآن کښے د فکر او سوچ کولو نه کار اخستے دے، نو هغوئ هم بے اختیاره په وینا شوي دي، چه د قرآن مثل او نظیر نیشته دے.

د فرانس مشهور مستشرق ډاکټر ماډریس، چه هغهٔ د حکومت فرانس له خوا نه، د قرآن کریم د دروشپیتو سورتو نو په ترجمه کولو باندے مقرر کړے شوے وو، دا اقرار کړے دے.

"بے شکه د قرآن طرز بیان، د خالق طرز بیان دے. او بے شکه چه په کوم حقائقو او علمونو باندے دا کلام مشتمل دے. بس هغه یو کلام الٰهي کیدے شي. او واقعه دا سے ده چه کله په دهٔ شك او شُبه کوونکے، دده دا غټ تاثیر او وینې، نو هغهٔ هم اقرار کولو او منلو باندے مجبوره کیږي. پنځوس کروړه مسلمانان چه د زمکے په مخ په هره حصه کښے خواره دي. په دوئ کښے د قرآن

خاص اثر په نيلو سره، مسيحي مشن بالاتفاق دا اقرار کوي، او مني، چه يوه واقعه هم داسے پيښه شوے نه ده، چه کوم مسلمان په قرآن او اسلام باندے پوهه شوے وي هغه بيا چرته مُرتد شوے دے يا د قرآن نه منکر شوے دے.

په مُسلمانانو باندے د قرآن کريم دا اثر کولو اقرار د دے مسيحي مستشرق نه په داسے زمانه کښے کيږي چه کوم وخت مسلمان بخپله د اسلام او قرآن نه ناآشنا او د هغه تعليماتو نه لرے، او د هغه د تلاوت نه غافل شوے دے. افسوس چه د دے مصنف د اسلام او د قرآن هغه دور ليدلے وے، چه د مسلمانانو د ژوند په هره خانګه کښے په قرآن عمل وو او په ژبو د قرآن آياتو نه وو. هم د غه شان نورو عيسائي مصنفينو هم، چه د انصاف خاوندان دي، داسے قسم اقرار کړے دے. مسټر وليم ميور، په خپل کتاب "حيات محمد" کښے په دا آله د دے منته کړے ده او د اکټر شبلي شميل په دے باره جُدا مقاله ليکلے ده.

قرآن کلام الٰهي اود نبي صلى الله عليه وسلم د پاره د معجزه په حقله تاسو دا لس وجے واورئ دے.

په آخر کښے لږ اجمالي نظر په دے واچوئ چه محمد صلى الله عليه وسلم د پيدائيد و په وخت کښے يتيم وو. تمام عُمر ئے چرته په مدرسه او مکتب کښے سبق ايښے نه وه، قلم او کتاب ته ئے لاس اوړے نه وو. خپل نوم خو به ئے هم ليکلے نه شو. په د غه حالت کښے ځوانيږي، په طبيعت کښے ئے جُدا پسندي ده، خهٔ لوبے تماشے، جلسے ته د تللو عادت ئے نهٔ لرلو. د شعر و شاعري سره ئے څه دلچسپي نه وه، څهٔ قومي غونډو کښے د څهٔ خطبے او تقرير کولو، تمام عُمر اتفاق نهٔ وو شوے. د څلويښتو کالو نه پس، چه عادتاً په دغه وخت کښے د ايزد کړے وخت ختميږي، د دوئ په ژبه يو داسے حيرانه کونکے جامع الحقائق، د فصاحت او بلاغت په اوچته درجے مشتمل يو کلام د الله شروع کيږي. لوئے نه لوئے ماهر، عالم بليغ ته هم ممکنه نهٔ وه او د دے کلام په ذريعه د دے د عرب لوئے لوئے فصيحانو او بليغانو ته خطاب کوي او د هغوئ جلسو ته ځي، خطبے ورکوي او ټولے دنيا ته عموماً او عربو ته خصوصاً دا چيلنج ورکوي، چه څوک په دے کښے شك کوي چه دا کلام الٰهي نهٔ دے او هغه د دے ورکوټي غوندے سورت په شان د خپل ځان نه د دے مثال پيش کړي. ټول قوم د دے مثال پيش کولو نه عاجزه کيږي.

ټول قوم، چه څنګه به ئے ده ته امين و ئيل او د ده عزت به ئے کولو، د ده مخالف کيږي او د دے کلام

د تبلیغ د منع کولو د پاره دهٔ ته دولت، حکومت او هر انسانی خواهش د څیزونو پیش کش کوی. دے له دے څیزونو نه هیڅ څیز نه قبلوی، نو بیا ټول قوم د دهٔ او د دهٔ د ملګرو دښمن کیږی دهٔ ته تکلیفونه رسوی. دے دا ټول برداشت کوی لیکن د دے کلام تبلیغ پریږدی نه. قوم د دهٔ د قتل سازشونه کوی. تر دے چه دے خپل وطن پریږدی او مدینے ته ځی، لیکن دا قوم ئے هلته هم په آرام نهٔ پریږدی.

ټول عرب او اهل کتاب د دهٔ په مخالفت کو اتفاق کوی. هره ورځ په مدینے باندے حملے کیږی. د دهٔ مخالفین دا ټول کار ونه کوی خو د قرآن چیلنج نهٔ قبلوی، چه د قرآن په شان یو لنډ غوندے سورت د ځان نه جوړ کړی. قرآن د دوئ ته غیرت ورکوی. په دے هم د دوی غیرت وینه په جوش کښے نهٔ راځی.

صرف دا نه، چه ټول عرب د قرآن د مثال د پیش کولو نه عاجزه شو. بلکه پخپله هغه پاک ذات، چه په هغهٔ باندے قرآن نازل شوے وو، د خپل طرف نه د قرآن مثال پیش کولے نهٔ شو. د هغهٔ ټول کلام، یعنی حدیث شریف، چه څرنګه دے، د قرآن کلام یقیناً هغې نه جدا دے. د قرآن کریم ارشاد دے :-

وَ قَالَ الَّذِيْنَ لَا يَرْجُوْنَ لِقَآءَنَا ائْتِ بِقُرْاٰنٍ غَيْرِ هٰذَآ اَوْ بَدِّلْهُ قُلْ مَا يَكُوْنُ لِيْٓ اَنْ اُبَدِّلَهٗ مِنْ تِلْقَآءِ نَفْسِيْ [1]

کوم خلق چه په آخرت کښے زمونږ د راتلو نه منکر دی، دا وائی: چه د غه رنګے یو بل قرآن جوړ کړه یا دهٔ لره بدل کړه. تاسو ورته او وایئ: چه دا ما د پاره ممکنه نهٔ دهٔ چه زهٔ د خپل طرف نه دهٔ لره بدل کړم.

یو طرف ته خو، د قرآن دا واضحه معجزے دی، چه هغه د دهٔ د کلام الٰهی په کیدو باندے ګواهی کوی او بل اړخ ته، کهٔ د دهٔ په مضمونونو، حقائقو او علومو باندے فکر او کړے شی، نو هغهٔ لا زیات سړے حیرانه کوی.

د قرآن د نازلیدلو د ابتدائی دور څو کاله په دے حالت کښے تیر شو، چه د قرآن تعلیمات په ډاګه وړاندے کول ممکن او آسان نهٔ وو. نبی صلی الله علیه وسلم به پټه باندے د قرآن د اصولو دعوت خلقو ته ورکولو. بیا سره د ډیرو زړکادو ټولو او مخالفتونو څخه په ډاګه دعوت ورکول هم شروع کړل. لیکن د قرآن کریم د مقرر کړے شوی قانون د لاګو کولو څخه امکان نهٔ وو د مدینے د هجرت نه پس تر کاله دا سے لاس ورو، چه هغه د مسلمانانو د پاره د آزادئ

(۱) یونس : ۱۵

زمانه کښي شي، او په هغې د قرآني نظام مکمل تعلیم او لاګو کولو کوشش او نور تعمیري کار کیدے شو۔

لیکن په دغه لسو کالو کښې هم که څرګے تاسو په تاریخ اسلام باندے نظر واچوئ نو تاسو ته به معلومه شي، چه پوره مبنی شپږ کاله داسے وو، چه د دښمنانو د حملو او د مدینے د یهودو، او د منافقانو د سازشونو نه چاته فرصت نه وو، چه څه تعمیري کار دې کړے شي، او یا داسے نظام چه د دنیا د ټولو نظامونو نه جدا دے عملي طور سره لاګو کړے وے۔ د مسلمانانو خلاف لوئے لوئے معرکے په دغه شپږو کالو کښے شوی دی۔ د هجرت په شپږم کال د لسو کالو د پاره د "صلح حدیبیۀ" صلح اوکړے شوه۔ صرف یو کال پوره، قریش په دے معاهده باندے قائم پاتے شو، د هغے نه وروستو هغوئ دا معاهده ماته کړه، او بیا د جنګ او جهاد سلسله شروع شوه۔

په ظاهري اسبابو کښے، صرف دا یو دوه کاله دي، چه نبي صلی الله علیه وسلم ته د کار د پاره لاس ته راغلي دي، چه د قرآن دعوت عام کړے شي او دده د نظام د لاګو کولو کوشش اوکړے شي۔ په دغه موده کښے نبي علیه الصلوٰة والسلام د دنیا لویو لویو بادشاهانو ته خطونه اولیکل د قرآن دعوت ئے هغوئ ته اورسولو۔ د قرآن د نظام قائمولو او خورولو کوشش ئے اوکړو۔ د نبي کریم صلی الله علیه وسلم آخر عمر مبارك پورے دده آزادئ صرف څلور کاله کیږي چه په دے کښے د فتح مکے جهاد هم شوے وو او مکه مکرمه هم فتح شوے وه۔

اوس دد غو څلورو کالو لنډے مودے ته اوګورئ۔ او د قرآن دے اثر او تاثیر ته نظر اوکړئ چه د نبي صلی الله علیه وسلم د وفات پورے ټولے جزیرة العرب باندے د قرآن حکومت وو۔ یو طرف سرحدے د روم سره، بل اړخ ته ئے سرحد عراق سره، او د دریم خوا ته ئے سرحدونه سره لګیدلے وو۔

که څرګے له دے ټولو نظر قطع کړے شي، چه نبي صلی الله علیه وسلم اُمّي وو او دا هم د نظر نه لرے کړے شي چه دده قوم یو داسے قوم وو، چه څرته ئے د یو بادشاه اطاعت قبول کړے نه وو۔ او دا هم د زړهٔ نه او ویستے شي چه ټوله دنیا د نبي صلی الله علیه وسلم خلاف وه او مشرکین عرب، یهود او نصاری ټول دده او د قرآن په ختمولو پسے لګیدلی وو۔ یعنی مطلب دا چه بالفرض دا او منلے شي، چه فضا بالکل سازګاره او موافقه وه، نو بیا د یو لوی نظام د پاره یعنی د هغه د

تدوین او ترتیب دپاره، بیا د هغهٔ د تعلیم دپاره او بیا د هغهٔ عملی قانون لاګو کولو دپاره، او بیا دهٔ په ذریعه دیو پاک معاشره جوړولو دپاره او په وطن کښې د امن او سکون پیدا کولو دپاره د څومره مودے، د څومره سرمائے او د څومره سړو ضرورت دے - آیا د انبی صلی الله علیه وسلم او د هغهٔ صحابو رض ته حاصل وو؟ د نن صبا نظامونه مخکښې کیږدئ نو حساب او لګوئ نو یو ډیر کم فهمه به هم پوهه شی، چه د قرآن دا اثر او تاثیر د قدرت الهیه نه بغیر څرګنګ ظاهر کیدلے شی؟ نه شی ظاهر یدے -

دا عجاز قرآنی د ټولو وجو بیان او تفصیل یو غایت اوږد بحث دے - د اُمت علماؤ په دے باندے مستقل کتابونه لیکلی دی - په هره زمانه کښے په مختلفو ژبو په دے کښے تصنیفات شوی دی[1] -

دلته چه څومره بیان مونږ ه اوکړو، هغه هم یو منصف مزاج بنیادم د مجبوره کولو دپاره کافی دے، چه قرآن د الله پاک کلام او د نبی صلی الله علیه وسلم یوه لویه معجزه ده -

| یو څو شبهے او د هغې جوابونه | د بعضې خلقو له طرف دا ویلے شی، چه ډیره ممکنه ده، چه د قرآن په مقابله کښے کتابونه او مقالے لیکلے شوی وی لیکن هغه د محفوظ |
|---|---|

پاتے شوی نهٔ وی - کهٔ چرے د لږ انصاف نه کار وا خیستے شی نو د دے احتمال به هیڅ ګنجائش پاتے نهٔ شی - ځکه چه د نیاته معلومه ده، چه کوم وخت نه قرآن نازل کړے شو د هغه وخت نه تراوسه پورے، په ټوله دنیا کښے د قرآن منونکی کم، او منکران ئے زیات دی - او دا هم معلومه خبره ده چه د نشر و اشاعت څومره ذریعے چه د قرآن منکرانو ته حاصلے دی، د قرآن منونکو ته حاصلے نهٔ دی - قرآن د ومره په اوچت آواز سره د خپلو مخالفینو په مخکښې دعوی کوی، هغوی ته چیلنج ورکوی، غیرت ورته اوردوی - او مخالفین د ده په مقابله کښے د ځان، مال، اولاد هر څه نه تیریږی - کهٔ چرے دوئ د قرآن چیلنج قبول کړے وی او څه خپ زے د مقابلے دپاره وړاندے کړے وی نو بیا څرنګے ممکنه وه چه هغه د په ټوله دنیا کښے شائع نهٔ شی او په هره زمانه کښے د منکران د مسلمانانو په مقابله کښے پیش نکړی - او د مسلمانانو د طرف نه د ډیرے د جرح او تنقید په سلګونو کتابونه او نهٔ لیکلے شی -

د اسلام په اولنئ پیړئ کښې صرف د مسیلمه کذاب یمنی یوه واقعه مخے ته راغلے ده، چه هغهٔ د بے حیائ څهٔ کړے او ټیغ کلمے اد لیکلے او دائے او ویل چه دا وحی آسمانی د قرآن پشانے

[1] د تفصیل دپاره اوګورئ - کتاب اعجاز القرآن د عبدالکریم خطیب -

ده. لیکن دنیا ته معلومه ده چه دد غو کلمو څه حشر اوشو. پخپله دده قوم د غه کلمے دده په مخ او ویشتلے. هغه کلمے داسے دَ بے حیایئ او ... ججرے کلمے وے، چه په یوه مهذبه معاشره کښے د هغے بیا نول، مشکل وو. بهرحال ... څه رنګه چه هغه ترننه پورے په کتابونو کښے نقل کیږی. که چرے یو بل سړی څه بنه کلام د قرآن په مقابله کښے جوړ کړے وے، نو څه وجه نه وه، چه دد نیا تاریخ دِ دا بالکل هیر کړی او منکرینِ قرآن دِ دَدے محفوظساتلو د پاره د هر قیمت کوشش او نه کړی.

هغه خلق چه د قرآن مقابلے ته ... هر وخت ... دال په لاس ولاړ وو. دَ قرآن دَدے چیلنج په جواب کښے هغوئ قسم قسم خبرے کړی دی، چه هغه ئے نقل کړی دی او د هغے جواب ئے ورکړے دے، لیکن داسے یوه واقعه نیشته، چه څه کلام دِ مقابلے ته پیش شوے وی او دغه کلام دَ قرآن مثل ګنړلے شوے وی.

یو رُدمی غلام، چه په مدینه کښے د لوهاریٔ کارکولو او څه انجیل او توراتے ئے لوستلے وو، کله کله به نبی صلی الله علیه وسلم راتلو د عربو څو جاهلانو د تعصب او عناد په وجه دا مشهوره کړه چه نبی صلے الله علیه وسلم ته د قرآن دا مضمونونه دهٔ بنودلی دی. قرآن ددوئ دا اعتراض نقل کړو او بیا ئے جواب ورکړو، چه دکوم سړی په باره کښے دوئ وائی چه دقرآن مضمونونه نبی علیه الصلوٰة والسّلام ته دهٔ بنودلی دی، هغهٔ په خپله عجمی دے. قرآن (چه په عربیٔ کښے بے انتها بلیغ کتاب دے) خو پریږده، دے خو دَ عربیٔ ژبے بلاغت دَ سرهٔ نهٔ پیژنی.

دسورۃ نحل آیت نمبر ۱۰۳ اوګورئ :-

| | |
|---|---|
| لِسَانُ الَّذِیْ یُلْحِدُوْنَ اِلَیْهِ اَعْجَمِیٌّ وَّهٰذَا لِسَانٌ عَرَبِیٌّ مُّبِیْنٌ ۝ | مونږه پوهیږو چه ... دَ اسلام مخالفین دا وائی چه تا ته دا قرآن یو سړے ښائی، حال دا دے چه دوئ دکوم سړی ... نسبت کوی هغه عجمی دے او قرآن خو یو بلیغ عربی ژبه کښے دے. |

څهٔ خلقو د قرآن د چیلنج په جواب کښے دا او یٔل چه :-

لَوْنَشَآءُ لَقُلْنَا مِثْلَ هٰذَآ [1] (که چرے مونږ او غواړو، نو مونږه هم د قرآن پشان کلام ویلے شو) لیکن که چرے څوک له دوئ نه دا پوښتنه اوکړی، چه بیا تاسو ولے داسے او نهٔ غوښتله؟ د قرآن د مقابلے د پاره خو بهٔ ټول زور او لګولو، د ځان او مال قربانی ورکړے شوه. که چرے تاسو ته دَدے

په شانې د کلام د ویلو یا د لیکلو قدرت وے نو د قرآن دومره ډیرې غښتلې چیلنج نه پس تا سو ولے د قرآن په شان کلام جوړ نه کړو۔ او د فتح سهره مو ولے په سر کینښوده؟

دغه دا ده، چه د قرآن د دغه دعوے نه پس مخالفو سلفو څه شریفانه چپ والے او نکړو۔ بلکه چه څه دوی ته په خوله راتله د ده په مقابله کښے به ئے ویل۔ لیکن بیا هم چا دیلی نه دی۔ چه زمونږ فلانی سړی د قرآن په شانے کلام لیکلے دے نو په دے وجه د قرآن د یکتائیے دعوی (معاذالله) غلطه ده۔

بعضے عناد کوونکو ته که چرے په زړه کښے دا راشی، چه نبی صلی الله علیه وسلم د نبوت نه وړاندے څو ورځو د پاره شام ته تلے وو او په لاره کښے د بحیرا راهب سره ئے ملاقات شوے وو. بحیرا د تورات ماهر وو۔ د هغه نه نبی علیه الصلوٰة والسلام علوم ایزده کړی وی، لیکن دا سے سړی نه دا پو ښتنه کول پکار دی، چه آیا د یو ورځے په ملاقات سره دا دے علومو، معارفو، بلا قسم فصاحت و بلاغت، د اخلاقو د تربیت، د نظام خانګی او د نظام مملکت ایزد کړه کیدے شی؟ هرګز نه۔

تن صبا بعضے اعتراض کوونکی دا وائی، چه د یو کلام مثل نه جوړیدل د دے خبرے دلیل نه شی کیدے، چه دا کلام د خدائے کلام دے او یا معجزه ده. ځکه چه ممکنه ده، چه د یو اعلی درجے ماهر بلاغت څه نثر یا نظم دا سے اولیکی چه بل سړے ئے نظیر نه شی راوړلے۔ د سعدی شیرازی ګلستان، د فیضی تفسیر بغیر د ټکو عام طور سره بے مثله او بے نظیره کتابونه ګڼړلے شی، نو آیا دا کتابونه هم معجزے دی؟

لیکن که لږ شانے فکر او کړے شی نو دا سے ویونکی ته به معلومه شی چه د سعدی او فیضی څخه د تعلیم اسباب څومره قدرے وو، څومره موده پورے دوی تعلیم حاصل کړے وو په کلونو مدرسو کښے پراته وو۔ څومره ئے زیار ونړے کړے وے۔ د لویو لویو علماؤ شاګردی ئے کړے وه۔ د کلونو د محنتونو په نتیجه کښے که چرے بالفرض فیضی یا بل څوک په عربئ ژبه کښے او سعدی ته په فارسئ ژبه کښے او ملټن ته په انګریزئ ژبه کښے یا هومر ته په یونانئ کښے یا کالی داس ته په سنسکرت کښے دومره مهارت حاصل شی، چه د نورو د کلام نه ډیر لوړ شی، نو دا څه د تعجب خبره نه ده۔

ځکه چه د معجزے تعریف دا دے، چه هغه د متعارفو اسبابو د واسطے نه بغیر شوی دی۔

آیا دے خلقو با قاعده د استاذانو سره اوږده مکرتیا د علمونو د حاصلولو د پاره او ډیره مطالعه، اسباب نهٔ دی؟ بیا څوک چرے د دوئ کلام، د نورو نه ممتاز وی نو په دے کښے د تعجب څهٔ خبره ده۔ د تعجب خبره خو دا ده چه چا کله هم کتاب او قلم په لاس کښے اغستے نهٔ وی، او هغه داسے کتاب' د نیانه وړاندے کړی چه په زرګونو سعدیان او په لکونو فیضیان په دے باندے قربانیدل خپل فخر ګنړی، او چه دوئ ته کوم علم او حکمت حاصل شوے دے، هغه هم د دغه ذات د فیضِ تعلیم اثر ګنړی۔ دا سے کتاب د تعجب کونو وړ دے، او داسے کتاب بس بل څهٔ نهٔ شی کیدے بلکه معجزه کیدے شی۔

بیا د قرآن یواځے بلاغت او فصاحت او نظم ترکیب بے مثاله نهٔ دے، د خلقو په زړونو او مزاجونو باندے د دهٔ اثر هم بے مثاله دے، او چه د دهٔ په وجه د خلقو مزاج بدل شو، د عربو سخت خویه، بانډیسیان' د علم او اخلاقو او د علم او حکمت استاذان او منلے شو د دغه عجیبه انقلابی اثرونو، اقرار صرف مسلمانان نهٔ کوی۔ د موجوده زمانے په سلګونو کافرانو هم کړے دے۔ د یورپ د مستشرقینو مقالے که چرے دے باره کښے جمع کړے شی، نو یو مستقل کتاب به ترِ نه جوړ شی۔ (و حکیم الامت' حضرت مولانا اشرف علی تهانوی رحمة الله علیه په دے موضوع باندے یو مستقل کتاب لیکلے دے۔ د دے کتاب نوم "شهادة الاقوام علی صدق الاسلام دے"۔

دلته کښے مونږه صرف د یو څو مستشرقینو حوالے نقل کوو۔

ډاکټر ګستاؤلی بان په خپل کتاب تمدن عرب کښے په بنهٔ وضاحت سره د دغے حیرانګیز اقرار کړے دے۔ د هغه الفاظو ترجمه داسے ده :-

"د دے پیغمبرِ اسلام ده دے اُمّی نبی هم، یو حیرت انګیز سرګزشت دا دے چه د هغه آواز یو داسے هرک قوم تابعدار کړلو چه د غه وخت پورے د یو ملک ګیر حکومت لاندے راغلے نهٔ وو۔ او داسے درجے ته ئے اُورسَوَلو، چه د دنیا لوئے لوئے بادشاهتونه ئے لاندے باندے کړل۔ او اوس هم دغه اُمّی نبی د خپل قبر د تل نه په لکونو بندګان د خدائے، دَ اسلام په کلمه باندے ساتلی دی"۔[1]

مسټر وډول' چه هغه د قرآن ترجمه پخپله ژبه کښے کړے ده، لیکی :-

"څومره چه مونږه دا کتاب (یعنی قرآن) اړووُ، را اړووُ، ګورو۔ د ومره قدر رے په هرومبئ

مطالعه کښې دده نا څوراڼې ، د نوو ، نوو ارخونو نه ډېر رنګ کلکوي . لیکن فوراً مونږه مسخر کوي او حیرا نوي . او په آخر کښې مونږه په دې مجبوروي چه دده تعظیم او کړو . دده د بیان طریقه ، د مضامینو ، اعراضو په اعتبار ، پاکه ، عالي شانه او زړنه ورلوونکې ده او ځائے په ځائے د ده مضمونونه ، کلام لړ د اوچت والي انتهائه رسوي . غرض دا چه دا کتاب به هره زمانه کښې ډېر اثر ښائي [1]۔

یو فرانسے مستشرق مسټر کونټ د قرآن متعلق ډېر تأثرات دا سے بیانوي :-

" عقل حیرانه دے ، چه دا سے کلام ، له دا سے سړي د خولے نه وتلے او ځي . چه هغه بالکل اُمّي دے . ټول مشرق اقرار کړے دے چه بنیادم دده د نظیر پیش کولو نه لفظاً او معنیً عاجز دے . دا هغه کلام دے چه دده او چتے انشا پردازۍ حضرت عمرؓ مطمئن کړو . دا هغه کلام دے چه کوم وخت د یحیٰ علیه السلام د ولادت متعلق جملے ، جعفر بن ابي طالب د حبشے بادشاه په دربار کښې اولوستلے ، نو د هغه د سترګو نه بے اختیاره اوښکے روانے شوے او بشپ چغه کړه چه دا کلام د هغه چینے نه راوتے دے چه د کومے چینے نه د عیسیٰ علیه السلام کلام راوتے وو [2]۔

د انسائیکلو پیډیا برټانیکا ج ۱۶ ، په ص ۵۹۹ کښې دي :-

" د قرآن د مختلفو حصو مطالب د یو بل نه بالکل جُدا دي . ډیر آیاتونه دیني او اخلاقي خیالاتو بانلے مشتمل دي . مظاهر قدرت ، تاریخ ، دانبیاؤ د الهاماتو په ذریعه په قرآن کښې دخدائے عظمت ، مهرباني او صداقت یاد کړے شوے دے . خاص کر حضرت محمّد (صلی الله علیه وسلم) په واسطه ، خدائے ، واحد او قادر مطلق ظاهر کړے شوے دے . بُت پرستي او مخلوق پرستي ، بغیر د څه فرق نه ناروا ګرځولے شوے ده . د قرآن متعلق دا بالکل په ځائے وینا ده ، چه د ټولے دنیا په موجوده کتابونو کښې دے (یعنی قرآن) زیات لوستے شي "

ډاکټر ګبن د ډېر مشهور تصنیف (د روم د سلطنت بنکته کیدل او زوال) په ۵ جلد ۵۰ باب کښې لیکي :-

" د قرآن په حقله د اټلانټک نه واخله تر ګنګا سیند پورے منلے شوے خبره ده . چه دا د پارلیمنټ روح دے ، بنیادي قانون دے ، او یوائے د مذهب د اصولو د پاره نه دے بلکه د تعزیراتو د احکامو د پاره دے او د هغه قوانینو د پاره هم دے چه په هغوئ باندے د نظام مدار دے او چه هغوئ سره د بنیادم ژوند تړلے دے او چه هغوئ له د بنیادم د ژوند

په ترتیب کښې ژور تعلق دے۔ حقیقت دا دے چه د حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) شریعت په ټولو حاوی او مشتمل دے۔ دا شریعت په داسے دانشمندانه اصولو او په داسے قانونی انداز کښې مرتب شوے دے، چه په ټول جهان کښې د دے نظیر مونده کیدے نهٔ شي"۔

د لته کښې د یورپ د مستشرقینو دا قوالو اود اقرارونو احاطه کیدے نشي۔ ځکه چه ځائے د دے خبرے گنجائش نهٔ لري۔ د نمونے په توگه څو اقواله نقل کړے شو، چه د هغې نه دا واضحه شوه، چه د فصاحت او بلاغت په اعتبار سره۔ د اغراضو او مقاصدو په اعتبار سره، د علومو او معارفو په اعتبار سره، د قرآن د بے مثله او بے نظیره کیدو اقرار یواځے مسلمانانو نهٔ دے کړے، بلکه په هره زمانه کښې منصف مزاجو غیر مسلمانانو هم کړے دے۔

قرآن ټولے دنیا ته د خپل مثال د داوړلو چیلنج ورکړے وو خو چا مثال رانهٔ وړے شو۔ نن هم هر مسلمان د دنیا ماهرینِ علم او سیاست ته په چیلنج ورکولو کښې ویاړلے شي چه د ټولے دنیا په تاریخ کښې یوه واقعه داسے اوښایئ چه یو لوئے نه لوئے ماهر حکیم، فلسفي چرته کښې داپیدا شوے وي او د ټولے دنیا د عقائدو، نظریاتو او رسمونو، عادتونو خلاف ئے یو نوے نظام وړاندے کړے وي او د هغه قوم هم جاهل وي۔ بیا هغهٔ په دومره لږه زمانه کښې د دے تعلیم عام کړي او په عملي توگه دل نافذ کولو کښې ئے دے حد ته اورسوي چه د هغې نظیر د نن په مضبوطو نظامونو کښې موندل ممکن نهٔ وي۔

د دنیا په رومبني تاریخ کښې کهٔ چرے د دے څهٔ نظیر نیشته، نو نن چه د ډیرے رڼا او تیز رفتارئ زمانه ده څوک چرے د دے نظیر راوړي او اودِ ا بنائي۔ کهٔ چرے یواځے نشي کولے نو خپل قوم بلکه د ټولے دنیا قومونه دِ جمع کړي او د دے مثال دِ جوړ کړي۔

وَبَشِّرِ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ اَنَّ لَهُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِي

او زیرے ورکړه هغه خلقو ته چه ایمان ئے راوړے دے او ښهٔ کارونه ئے کړي دي چه د دوئ د پاره باغونه دي چه بهیږي به

مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ ؕ كُلَّمَا رُزِقُوا مِنْهَا مِنْ ثَمَرَةٍ رِّزْقًا ۙ قَالُوا

د هغې د اونو لاندے ویالے کوم چه دوئ ته د هغې ځائے څهٔ میوه د خوراک د پاره ورکړے شي نو دوئ به اووائي

هٰذَا الَّذِي رُزِقْنَا مِنْ قَبْلُ ۙ وَاُتُوا بِهٖ مُتَشَابِهًا ؕ وَلَهُمْ فِيهَا

چه دا خو هغه شے دے چه مونږ ته له دے نه وړاندے راکړے شوے وو او دوئ ته به میوه په یو صورت کښې ورکیدے شي او دوی د پاره به

أَزْوَاجٌ مُّطَهَّرَةٌ ۙ وَّهُمْ فِيهَا خٰلِدُونَ ﴿۲۵﴾

| | | | |
|---|---|---|---|
| هلته | پاکې ښځې وي | او دوئ به هلته | همیشه اوسي۔ |

## لنډ تفسیر

زیرے واوروئ تا سو هغه خلقو ته چه کوموایمان راوړے دے او به عملونه ئے کړي دي، ددے خبرے چه بیشکه دوئ دپاره جنتونه دي چه جیړې به د هغوئ دلاندے ولے او چه کوم وخت ورکړے شي خلقو ته ددے جنتونو د میوو نه خوراک نو دوي به هروار دا وائي چه دا خو هغه دي چه مونږ ته دا کړے شوے وو مخکښې۔ او ورکړے به شي دوئ ته هروارے یوشانے میوه او دوئ دپاره به دے جنتونو کښې بیبیانے وي، چه صفا پاکے به وي، او دا خلق به په دے جنتونو کښې همیشه اوسیدونکي وي۔

په هرځل کښې یوشانے میوه حاصلیدل، د خوند دپاره به وي، ځکه چه د واړو ځلو کښې د میوو شکل او صُورت یو وي، نو دوئ به دا خیال اوکړي چه دا خو هغه مخکښې قسم میوه ده۔ لیکن په خوړلو کښې به ئے خوند بل وي او لدا سے کیدو دوجے نه به خوند او خوشحالی زیاته شي۔

| | |
|---|---|
| د آیاتو نو دیوبل سره تړون | لدے نه په وړاندے آیت کښې دا بیان وو چه څوک قرآن نه مني هغه دپاره عذاب دے او په دے آیت کښې د قرآن منونکو ته زیرے |

دے چه په هغې کښې د جنت عجیب او غریب میوو او د حورو ذکر دے۔

## علوم او مسئلے

جنتیانو ته مختلف قسم میوے په یو شکل او صُورت کښې د ورکولو نه مقصد او غرض دا دے، چه لذت خوند او خوشحالي ئے زیاته شي۔ او بعضو مفسرینو د میوو د مشابه کیدلو نه دا مراد اغستے دے، چه د جنت میوے به په شکل کښې د دنیا د میوو پشانے وي۔ چه کله جنتیانو ته ورکړے شي، نو دوئ به اووائي، چه دا خو هغه میوے دي چه مونږ ته به په دنیا کښې حاصلیدلے۔ لیکن په خوند کښې به دا داسے وي چه د دنیا میوه به ئے گرد ته هم نه رسي۔ صرف د نوم او د شکل په اعتبار به دا دواړه یوشان وي۔

په جنت کښې د پاکو بیبیانو نه مطلب دا دے چه دا بیبیانے به د دُنیا د ټولو ظاهري او اخلاقي پلیتو نه پاکے وي۔ مچاژے، غُل، حیض نفاس او د هر هغه څیز نه به پاکے وي، چه د کوم څیز نه

د بنيادم نفرت کيږي اوداشان د بد خويئ، بے وفايئ او د نورو باطني عيبونو نه به هم پاکے وي۔

په آخر کښے الله پاك او فرمائيل چه د جنت نعمتونه د دنيا د نعمتونو په شان وختي فاني مه گنړه چه د هغے د فنا کيدو ياد واپس اغستو هر وخت خطره وي، بلکه داخلق به په دے نعمتونو کښے هميشه هميشه د پاره وي۔

د لته کښے چه مومنانو ته د جنت زيرے ورکوي، ايمان سره ئے د عمل صالح قيد هم لگولے دے، دا ځکه چه ايمان نغړوي او ورسره عمل صالح نه وي نو سړے د دے زيري حقدار نه شي کيدے۔ اگرچه صرف ايمان هم د جهنم د هميشه ئي تکا ئنو نه د بچ کيدو سبب دے۔ مؤمن که هر څومره گنهګار وي، يو وخت به هغه د جهنم نه راوبيکے شي او جنت ته به اورسيږي۔ ليکن د جهنم د عذاب نه بچ د خلا صي موندلو بغير د عمل صالح نه هيڅ څوك حقدار کيدے نه شي (قرطبي[1]، روح البيان[2])

إِنَّ اللَّهَ لَا يَسْتَحْيِي أَنْ يَضْرِبَ مَثَلًا مَا بَعُوضَةً فَمَا فَوْقَهَا ۚ

بے شکه الله پاك شرم نه کوي چه بيان کړي څه مثال د ماشي يا د دا سے څيز چه هغه له ماشي نه زيات وي۔

فَأَمَّا الَّذِينَ آمَنُوا فَيَعْلَمُونَ أَنَّهُ الْحَقُّ مِنْ رَبِّهِمْ ۖ

نو چه کوم خلق مؤمنان دي هغوي په يقين سره پيژني چه دا مثال رشتے دے او چه نازل شوے د دوي د پروردګار

وَأَمَّا الَّذِينَ كَفَرُوا فَيَقُولُونَ مَاذَا أَرَادَ اللَّهُ بِهَٰذَا مَثَلًا ۘ

لا پاتي خو اوچه کوم کافران دي نو هغوي وائي: چه څه مطلب وو د الله پاك له دے مثال نه

يُضِلُّ بِهِ كَثِيرًا وَيَهْدِي بِهِ كَثِيرًا ۚ وَمَا يُضِلُّ بِهِ إِلَّا الْفَاسِقِينَ ﴿٢٦﴾

گمراه کوي الله پاك په دے مثال سره ډيرو له، او هدايت کوي په دے سره ډيرو ته او گمراه کيږي نه په دے مثال سره مګر بد عمله

الَّذِينَ يَنْقُضُونَ عَهْدَ اللَّهِ مِنْ بَعْدِ مِيثَاقِهِ وَيَقْطَعُونَ مَا

هغه چه ماتوي د الله پاك معاهدے لره د هغے د مضبوطولو نه وروستو او پريکوي هغه څيز له

وقف لازم

أَمَرَ اللّٰهُ بِهٖٓ أَنْ يُّوْصَلَ وَيُفْسِدُوْنَ فِي الْأَرْضِ أُولٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ﴿۲۷﴾

چه د هغې متعلق الله پاك د پیوست كولو حكم كړے دے او فساد كوي په ملك كښې . دغه خلق دي د لوئے زیان والا .

## لنډ تفسیر

(بعض مخالفت كونكو د قرآن په كلام الهي كيدو باندے دا اعتراض كولو چه په دے كښې د ډيرو سپكو، حقيرو څيزونو ذكر په مثالونو كښې شوے دے لكه ماشے، مچ وغيره شو . كه چرے دا د الله پاك كلام وے نو ددے سپكو څيزونو ذكر به پكښې نه وو، نو ددے اعتراض جواب وركړے شوچه) هو واقعي الله پاك خونه شرميږي چه بيان كړي څه مثال هم، خواه هغه ماشے وي يا له دے نه هم زيات دي (يعني په سپكوالي كښې د ماشي نه هم زيات وي) چه كوم خلق وايمان راوړے دے (خواه څه چه وي) نو هغوي به دا يقين كوي چه بشيكه دا مثال بالكل په ځائے دے د دوي د پرورد ګار له اړخ نه . او پاتے شو هغه خلق چه كوم كافران دي (هر څه چه اوشي) هغوي بس دا وائي چه دا به كوم مقصد وي چه د هغې اراده الله پاك به كړې وي له دے سپك مثال نه . ګمراه كوي الله تعالى د دے مثال په وجه ډير دله او هدايت وركوي د دے مثال په وجه ډيرو ته او ګمراه كوي نه الله پاك په دے مثال سره چا له، مګر صرف نافرماني كونكوله، چه هغوي ماتوي هغه معاهده، چه الله سره ئے كړے وه، د هغې د مضبوطولو نه پس (يعني دازل وعده، چه په هغې كښې د ټولو روحونو د الله پاك د رب كيدلو اقرار كړے دے) او قطع كوي هغه تعلقاتو له، چه حكم وركړے دے الله پاك د هغوي په پيوست كولو په دے كښې ټول شرعي تعلقات داخل دي، خواه دا هغه تعلقات وي، چه د بنده او د خدائے په مينځ كښې دي، يا هغه چه د ده او د ده د خپلوانو په مينځ كښې وي، يا د عامو مسلمانانو په مينځ كښې دي او هغه چه د عامو بنيادمو په مينځ كښې دي) او فساد كوي په زمكه كښې (كفر او شرك هم پخپله فساد دے او په نورو باندے ظلم كوي، او حق نه پيژندل چه دا د كفر سره لازم څيز دے، دا ټول په دے فساد كښې داخل دي) بس دغه خلق دي په مكمله خساره كښې پريوتونكي (چه د دنيا راحت او د آخرت نعمت دواړه ئے د لاسه اووتل . ځكه چه د حاسد دپيرى ژوند هم هميشه تريخ دي)

# علوم او مسائل

**د آیاتو نو د یو بل سره تړون**

خو آیاتو نه مخکښې د قرآن کریم دا دعویٰ ذکر شوه، چه په قرآن کریم کښې د څه شك شبهې ځائې نشته او که چرې څوك د دې په کلام الٰهي کیدو باندې شك کوی نو هغوئ دې د دې د رکوتې غوندې سورت مثال جوړ کړی او وړاندې دې کړی او په دې آیاتو کښې د قرآن د منکرینو د یو بلې شبهې جواب ورکړې شوې دې. شبه دا وه چه په قرآن کښې د مچ ماشې مچان سپك ذلیل څیز ذکر شوې دې. او د الله پاك او د هغهٔ د کلام د لوئې والی سره سمون نه خوری. که چرې دا د الله پاك کلام وې نو په دې کښې به د دا سې سپکو ذلیلو څیزونو ذکر نهٔ وو. ځکه چه لوئې خلق د دا سې څیزونو ذکر کولو کښې شرم کوی.

نو جواب داورکړې شو، چه کوم وخت د یو سپك ذلیل څیز مثال ورکول وی نو څهٔ دا سې سپك او ذلیل څیز سره د هغې مثال ورکول، د عقل او بلاغت د دا یرو تقا ضا ده. نو په دې وجه د یو سپك څیز ذکر کول د شرم او حیا سره قطعًا بې سمونه نهٔ دی. نو له دې وجې نه الله پاك د دا سې څیزونو په ذکر کولو کښې شرم نهٔ کوی. او دا هم بیانٔ چه دا سې بې وقوفانه شبهې صرف هغو خلقو ته وړاندې کیږی چه د هغوئ زړونه او ماغزهٔ د کفر په وجه د پوهې صلاحیت نهٔ لری. ایما ندارو ته کله، دا قسم شبهې نهٔ وړاندې کیږی.

او له دې نه وروستو، په دې کښې یو بل حکمت ئې او ښودلو. هغه دا چه دا سې مثالونو سره د خلقو امتحان اخستل هم وی. سوچ او فکر کونکو د پاره دا مثالونه د هدایت ذریعه کرځی. او د بې پرواؤ او غافلو خلقو د پاره د نورې ګمراهئ سبب ګرځی. او له دې نه ئې وروستو، دا هم او ښودله، چه د قرآن کریم د دې قسمه مثالونو سره صرف دا سې سرکشه خلق ګمراه کیږی چه هغوئ د الله پاك سره کړې شوې وعدهٔ ماتوی. او چه د هغې نتیجه په زمکه کښې فساد خورول دی.

بَعُوْضَةً فَمَا فَوْقَهَا - د دې لفظی معنی ده: چه ماشې یا له دهٔ نه هم زیات. د لته کښې د زیات نه مراد دا دې چه په حقارت او ذلیل تیا کښې زیات وی (مظهری)[1]

یُضِلُّ بِهٖ کَثِیْرًا وَّیَهْدِیْ بِهٖ کَثِیْرًا - د قرآن او د قرآن د مثالونو نه، ډیر و خلقو ته د هدایت

حاصلیدل، یوه څرګنده خبره ده لیکن دا دے په ذریعه د ډیرو خلقو ګمراه کیدلو مطلب څه دے؟ مطلب دا دے چه څه رنګ قرآن د دغه د منونکو او په دغه عمل کونکو د پاره د هدایت ذریعه ده. هم د غه شان دغه انکار کوونکو او مخالفت کوونکو د پاره د ګمراهئ ذریعه ده.

وَمَا يُضِلُّ بِهٖٓ اِلَّا الْفٰسِقِيْنَ . فاسقین د فسق نه جوړ دے، او د فسق لفظی معنیٰ ده وتل. او د شرعے په اصطلاح کښے د الله پاک د طاعت نه وتلو ته فسق وائي. - او د طاعت الٰهیه نه وتل، دَ کفر او انکار په ذریعه هم کیږی او عملی نافرمانئ سره هم. له دے وجے نه د فاسق لفظ دَ کافر د پاره هم ویلے کیدے شي. په قرآن کښے د فاسقین لفظ ډیر د کافرانو د پاره استعمال شوے دے او مؤمن ګنهګار ته هم فاسق ویلے شي. د فقهاؤ په اصطلاح کښے په عام طور باندے د فاسق لفظ د مؤمن ګنهګار د پاره استعمال شوے دے. د فقهاؤ په اصطلاح کښے فاسق د کافر مقابل او د هغهٔ قسیم دے. څوک چه ګناه کبیره (لویه ګناه) اوکړی او له هغے نه توبه اونکړی یا په صغیره (وړه) ګناه باندے همیشه کیږی او کړی او دا خپل عادت جوړ کړی نو دے د فقهاؤ په اصطلاح کښے فاسق دے (مظهری)[1] او څوک چه د فسق دا کار او ګناه په جار باره په جرأت سره کوی هغه ته فاجر ویلے شي.

د آیت معنیٰ دا شوه چه د قرآن مثالونو نه ډیرو خلقو ته هدایت حاصلیږی او ډیرو خلقو ته ګمراهی، لیکن د دے مثالونو نه صرف هغه خلق ګمراه کیږی چه فاسق یعنی د اطاعت خداوندی نه وتونکی وی، او په چا کښے چه څهٔ قدر دے د الله نه ویره وی نو د هغوئ د پاره دا هدایت ورکوی.

اَلَّذِيْنَ يَنْقُضُوْنَ عَهْدَ اللّٰهِ مِنْۢ بَعْدِ مِيْثَاقِهٖ . د معاملے او د معاهدے هغه صورت ته عهد وائي چه د دوؤ[2] کسو په مینځ کښے پرے فیصله اوشی او میثاق دا سے معاهدے ته وائي چه په قسم او سوګند سره مضبوط کړے شی.

په دے آیت کښے د پرو مبنی آیت د مضمون زیات وضاحت او د قرآن د منکرینو د بدعت ذکر دے، چه د قرآن په دے مثالونو سره چه په هغے باندے مشرکان اعتراض کوی، صرف هغه خلق ګمراه کیږی، چه هغوئ د الله پاک د اطاعت نه سرکشی کوی، او د دے سرکشئ دوه[2] وجے دی.

اول دا چه دا سے کونکی هغه ازلی معاهده ماتوی چه هغه ټولو بنیادمو د خپل رب سره مضبوطه کړے وه. او د اَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ په جواب کښے ئے "بَلٰى" ویلی وو. چه د دے لازی

(۱) ج ۱ : ۴۳ -

تقاضا داده، چه بنیادم د ټولو د هغه د اطاعت څخه بهر تجاوز نه کوي. دا ازلي عهد د الله پاك او د بنیادم په مینځ کښې اوکړے شو. او س په دنیا کښې د پیدا کیدو نه پس، ټول پیغمبران او آسماني کتابونه دد غه عهد د نوي کولو او د دے عهد د یاد کیدو دپاره راغي چاچه دا معاهده ماته کړې وي، د هغه نه په څه اُمید اوکړے شي چه هغه به د یو پیغمبر، یا آسماني کتاب نه فائده واخلي؟

دویمه وجه دا چه دے خلقو هغه ټول تعلقات مات کړي دي چه د هغوي د پیوند کولو حکم الله پاك ورکړے دے. په دے تعلقاتو کښې هغه تعلق هم داخل دے چه د بنده او الله پاك په مینځ کښې دے، او هغه تعلق هم چه د بنیادم د خپل مور پلار او نورو رشته دارانو سره دے او هغه تعلق هم چه د بنیادم خپل ګاونډي او د کاروبار شریکانو سره دے، او هغه تعلق هم، چه عامو مسلمانانو یا عامو بنیادمو سره دے. دد ے تعلقاتو پوره او مکمل حقونه اداکول ته اسلام یا شریعتِ اسلام وائي. او په دوي کښې د کوتاهي د کبله په ټوله زمکه کښې فساد پیدا کیږي. له دے وجې دد ے جملې نه وروستو ئې اوفرمائیل: وَ يُفْسِدُوْنَ فِي الْاَرْضِ. یعنی دا خلق په زمکه کښې فساد خوروي. دآیت په آخر کښې ددوئ د بد عاقبت ذکر ئې داسے اوکړو چه دا خلق په لویه خساره اوزیان کښې دي.

**په مثال کښې د یو حقیر ذلیل یا شرمناك څیز ذکر کول څه عیب نهٔ دے**

اِنَّ اللّٰهَ لَا يَسْتَحْيٖٓ نه ثابته شوه، چه د فائدهٔ مند مضمون د وضاحت دپاره یو حقیر سپك او ذلیل څیز ذکر کول نهٔ څهٔ عیب او نهٔ څهٔ ګناه ده. او نهٔ د ویونکي د عظمت او د لویئ سره منافي ده، قرآن او سنت او د علماؤ سلفو په اقوالو کښې چیر داسے مثالونه دي، چه هغه عرفاً شرمناك ګڼړلے شي. لیکن قرآن او سنت د دغه عرفي شرم او حیا ئې څهٔ پرواه اونکړه او د اصل مقصد د وضاحت دپاره د دے مثالونو نه، خنك ئې اوُنکړو.

يَنْقُضُوْنَ عَهْدَ اللّٰهِ نه ثابته شوه، چه د عهد و پیمان خلاف کول، سخته ګناه ده، چه د هغې نتیجه دا هم کیدے شي چه د دغه مخالفت کونکے، د ټولو نیکو نه محرومه شي.

**د تعلقاتو شرعي حقوق اداکول واجب دي او د دے خلاف کول لویه ګناه ده**

وَ يَقْطَعُوْنَ مَآ اَمَرَ اللّٰهُ بِهٖٓ اَنْ يُّوْصَلَ. نه معلومه شوه، چه د کومو تعلقاتو او علاقو د رابطو د قائم کولو حکم، شریعت اسلامي ورکړے دے، د هغوئ قائمول

ضروري او شغول به حرام دي. که چرې فکر او کړې شي نو دين او مذهب نوم دے دغه حدود او قيد و نو چه هغه د حقوق الله او حقوق العباد د اداکولو د پاره مقرر کړے شوي دي. او د دے دنيا صلاح او فساد د دغو تعلقاتو په درست ټولو او نه ټولو کښې دے. نو په دے وجه د دے تعلقاتو قطع کولو ته دَ يُفْسِدُوْنَ فِي الْاَرْضِ په الفاظو کښې د عالم دَ فساد وجه گرځولے دے.

اُولٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ. کښې د خسارے والا صرف هغه کَس سبود لے شوے دے، چه د مذکورو احکامو خلاف ورزي کوي او په دے کښې دے خبرے ته اشاره ده چه اصل خساره او نقصان د آخرت دے. د دُنيا خساره او تاوان څهٔ قابل توجه څيز نهٔ دے.

كَيْفَ تَكْفُرُوْنَ بِاللّٰهِ وَكُنْتُمْ اَمْوَاتًا فَاَحْيَاكُمْ ثُمَّ يُمِيْتُكُمْ

څرنګے کافر کیږئ په الله پاک حال دا دے چه تاسو بے روحه وئ بیا الله پاک تاسو ژوندی کړئ بیا به تاسو او وژنی

ثُمَّ يُحْيِيْكُمْ ثُمَّ اِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ﴿۲۸﴾ هُوَ الَّذِيْ خَلَقَ لَكُمْ

بیا به موژوندی کړي بیا د هغهٔ په لوري به او گرځئ دا هغه دے چه کوم تاسو د پاره پیدا کړهٔ

مَّا فِي الْاَرْضِ جَمِيْعًا ق ثُمَّ اسْتَوٰٓى اِلَى السَّمَآءِ فَسَوّٰىهُنَّ

هر هغه ټول څیزونه څهٔ چه په زمکه کښې دي بیا ئے قصد او کړو د آسمان په طرف نو داسے او وه آسمانونه برابر کړهٔ

سَبْعَ سَمٰوٰتٍ ؕ وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ﴿۲۹﴾ ع

او الله پاک د هر څيز نه خبر دے

**لنډ تفسير:-** بره د دے ناشکری کوئ د الله پاک (چه د هغهٔ احسانونه هیروئ او د نورو کلمے وایئ) حال دا دے (چه په دے باندے واضح دلائل دی چه یو اځے الله پاک د عبادت حقدار دے مثلاً دا چه) تاسو بے ساه وئ (یعنی په نطفه کښې د روح اچولو نه ورانده) نو تاسو ئے ژوندی کړئ بیا به تاسو مړهٔ کړي او بیا به موژوندی کړي (یعنی د قیامت په ورځ) بیا به هغهٔ څنګه بو تللے شئ (یعنی د قیامت په میدان کښې دحسنا وکتاب د پاره به ضرور حاضر کړے شئ) دا ذات پاک داسے دے، چه هغه پیدا کړي دي

ستاسو فائدے د پاره څه چه په زمکه کښے موجود دی ټول ( د افائده عامه ده که چرے دَ خوراک سکاک دی او که دَ اغوستلو استعمالولو وی او که چرے دَ نکاح او دروح د تازه کولو د پاره وی۔ د ے نه دا معلومه شوه چه په دنیا کښے داسے څه څيز نشته چه د هغے نه بنیادم ته څه فائده نه وی۔ اوله د ے نه دا نه لازمیږی چه د هر څيز استعمال و حلال وی، لکه زهر چه هغه د بنیادم د فائدے نه خالی نه دی لیکن د هغوی خوراک د عاقلانو په نیزد منعه دی) بیائے توجه اوکړه د آسمان په طرف (یعنی د هغهٔ د تخلیق او تکمیل په طرف) نو دلتے اووه آسمانونه درست جوړ کړه او هغهٔ خو د ټولو څیزونو پوهه دے۔

# علوم او مسائل

**د آیاتونو دَ بیل سره تړون** په پرومبنو آیاتو کښے د الله پاک دَ وُجود، توحید او د رسالت دَ واضحه دلیلو نو ذکر وو او د منکرینو او مخالفینو باطلو خیالاتو ردود و. په دے دوؤ آیاتو کښے د الله پاک د احسانونو او انعامونو ذکر د ے او دا د ے تعجب ظاهرول دی چه د دومره احسانونو سره څه رنګے د انسان په کفر او انکار کښے مبتلا دی۔ په دے تعجب کولو کښے د ے خبرے ته هم اشاره د ه که چرے د اخلق په دیلونو کښے د فکر کولو تکلیف نشی کولے نو کم ازکم د احسان کوونکی دَ احسان منل او د هغه تعظیم او اطاعت کول خو د هر شریف بنیادم طبعی او فطری تقاضه ده نو له دغے لارے نه تاسو د الله پاک اطاعت ته را شئ۔

په پرومبنی آیت کښے د هغو خاصو نعمتونو ذکر دے چه د هر بنیادم په ذات او نفس کښے موجود دی، چه اول هغه د بے روحه ذرو په شکل کښے وو، بیا په دهٔ کښے الله پاک ژوند واچولو۔

په دویم آیت کښے د هغو عامو نعمتونو ذکر دے چه د هغے نه بنیادم او نور ټول مخلوقات فائده اخلی او چه هغه د بنیادم د ژوند او د بقاد پاره ضروری دی او د غه عام نعمتونه زمکه او د زمکے پیداوار دے چه د دے سره د بنیادم ډیر نزدے تعلق د ے او بیا آسمانونه دی چه د وئ سره د زمکے ژوند او پیداوار تړلے شوے د ے۔

كَيْفَ تَكْفُرُوْنَ بِاللهِ (څرنګے انکار کوئ) د ے خلقو که چرے په ظاهره د الله پاک نه انکار نهٔ وو کړے لیکن د هغهٔ د پیغمبر نه انکار کول د هغهٔ نه انکار کول او ګڼلے شو

نو ځکه دا سې خطاب اُوکړے شو۔

وَكُنْتُمْ أَمْوَاتًا فَأَحْيَاكُمْ ۔ اموات د میت جمع ده، مراد بے روحه څيز ته میت ویلے شي۔ مراد دادے چې بنیادم په خپل اصل حقیقت باندے سوچ اوکړی نو ده ته به معلومه شي، چه دده وجود ابتداء کښې هغه بے روحه ذرے وے چه څهٔ د کلک څیزونو په شکل کښې او څهٔ د بهیدونکو څیزونو په شکل کښې او څهٔ د خوراکونو په صورت کښې په ټوله دنیا کښې خورے وے۔ الله پاک دغه بے روحه ذرے د کوم کوم ځائے نه راغونډے کړے، او بیائے پکښې ساه واچوله۔ او دا ذرے ئے ژوندے بنیادم کړو۔ دا د انسان د پیدائښت د ابتداء ذکر دے۔

ثُمَّ يُمِيتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيكُمْ یعنی چه هغه اول ځل ستاسو بے روحه او بے ساه ذرے راجمع کړے او پکښې ئے ساه واچوله۔ هغه به تاسو ته په دے دنیا کښې د مقرر وخت تیرولو نه پس، بیا مرګ درکړی او بیا څهٔ زمانه پس په قیامت کښې د غه شانې ستاسو بے ساه بدن او خورے ورے ذرے به راجمع کړی، تاسو به ژوندی کړی۔ دغه شانې یو مرګ، یعنی بے ساه کیدل ستاسو، په ابتداء کښې وو، بیا الله پاک تاسو ژوندی کړئ۔ دویم مرګ په دنیا کښې د عمر پوره کولو نه پس به وی او دویمه ژوندګی د قیامت په ورځ به وی۔

د پرومبنی مرګ او ژوندون په مینځ کښې څهٔ فاصله نهٔ وه، نوله دے وجې نه په دې کښې د "فاءِ" حرف استعمال شو۔ فَأَحْيَاكُمْ ۔ او چونکه د دنیا د ژوندون او مرګ په مینځ کښې او هم دغه شانې د دغه مرګ او د قیامت د ژندګئ په مینځ کښې څهٔ ډیره فاصله وه، نو په دے وجه دلته کښې د ثُمَّ لفظونه غښتے شو: ثُمَّ يُمِيتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيكُمْ ۔ ځکه چه د ثُمَّ لفظ د ځنډ د لرې والی د پاره استعمالیږی۔ ثُمَّ إِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ۔ له دے نه مراد، حشر نشر او د قیامت وخت دے۔

په دے آیت کښې الله پاک په بنیادم چه کوم احسانونه کړی دی، د هغې ذکر دے او په دغه احسانونو کښې ژوند یو داسے انعام او احسان دے، چه د نورو انعامونو نه فائده اخستل موقوف له دغه انعام (یعنی ژوند) په وجه دی۔ یو خبره دلته کښې د غورولو ده، چه په دے آیت کښې ، دا د نعمتونو د پاره الله پاک چلولے دے ، د مرګ ذکر څرنګه اوکړے شو؟

یعنی مرلو نعمت څرنګه کیدے شي- هغه په دے وجه د نعمتونو په قطار کښے راځي، چه د امرګ د دائمي ژوند د پاره یو قسم دروازه ده نو په دے وجه دا مرګ هم یو نعمت شو۔

مسئله :-

د د غه آیت نه دا هم معلومه شوه چه څوک د نبي صلی الله علیه وسلم د رسالت نه منکر وي، یا د قرآن د کلام الٰهي کیدو نه منکر وي، هغه اګر چه په ظاهره دخدائے د وجود او عظمت نه انکار او نه کړي خو بیا هم دخدائے په نزد، دخدائے د منکرینو په قطار کښے راځي-

برزخي ژوند

په دے آیت کښے د دُنیا د ژوند او مرګ نه پس صرف دیو ژوند ذکر دے، چه د قیامت په ورځ به وي. د قبر د ژوند، چه هغه د قبر د سوال جواب او په قبر کښے د ثواب او عذاب ذریعه ده، ذکر نشته-

وجه دا ده چه دا برزخي ژوند د هغه ژوند په شانے دے چه هغه بنیادم ته په دُنیا کښے حاصل دو یا په آخرت کښے ورته حاصلیږي، بلکه دا درمیاني شکل، لکه د خوب د ژوند په شانے دے. دے ته د دنیا د ژوند تکمله هم ویلے شي او د آخرت د ژوند پیش خیمه هم، نو په دے وجه دا څه مستقل ژوند نه دے چه جُدا ئے ذکر شوے وے-

هُوَ الَّذِیْ خَلَقَ لَكُمْ مَّا فِی الْاَرْضِ جَمِیْعًا - په دے کښے د هغه عام نعمت ذکر دے چه په هغے کښے ټول بنیادم بلکه حیوانات وغیره شریك دي. او یو لفظ سره د هغو ټولو نعمتو نو اجمالي ذکر اوکړے شو، چه په دنیا کښے یو بنیادم ته حاصل شوي وي یا حاصلیدے شي. ځکه چه د بنیادم غذا، لباس، مکان او دارو، او د آرام نور ټول سامان هم د زمکے پیداوار دے-

ثُمَّ اسْتَوٰٓی اِلَی السَّمَآءِ فَسَوّٰهُنَّ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ ؕ وَهُوَ بِكُلِّ شَیْءٍ عَلِیْمٌ ۝ د استواء لفظي معنیٰ سیده کیدل او نیغیدل دي، دلته ترې مُراد دا دے، چه د زمکے د پیدا کولو نه پس الله پاك د آسمانونو د پیدا کولو پوخ قصد اوکړو، چه هغے کښے څوك حائل او مانع کیدے نه شو، تو هغے چه دا اووه آسمانونه پیدا کول ئے مکمل کړل. او هغه په هر څه باندے علم لرونکے دے- نو په دے وجه د کائناتو پیدا کول هغه ته څه مسئله نه وه-

د دُنيا هر يو څيز نفع مند دے په دې کښې څۀ څيز بے فائدے نۀ دے

په دے آيت کښې دا بيان شوے دے چه د زمکے ټول څيزونه د بنيادم د پاره پيدا کړے شوى دى. نو له دے نه يو خبره دا معلومه شوه، چه د دنيا يو څيز داسے نشته چه د هغے نه په څۀ طريقه بنيادم ته څۀ فائدهٔ نۀ وى. خواه دا فائده په دنيا کښې د استعمالولو په وجه وى، يا دَ آخرت د پاره دعبرت او دَ نصيحت حاصلولو د پاره وى. ډير و څيزونو فائده خو بنيادم محسوسوى، چه هغه براهِ راست د هغه په غذا، دارو يا نور استعمال کښې راځى. او ډير دا سے څيزونه هم شته چه بنيادم ته له هغې نه فائده وى خو بنيادم ترې خبر نۀ وى. تر دے پورے چه کوم څيزونه بنيادم د پاره ضرورى ګڼړلے شى لکه زهرجن څيزونه، زهرجن ځناورو غيره، کچرے فکر او کړے شى، نو دا هم په څۀ طريقه بنيادم ته فائده ورکوى. کوم څيزونه چه بنيادم د پاره په يو شان حرام دى، نو هغه څۀ په بله طريقه هغهٔ د پاره فائده مند کيدے شى.

عارف بالله ابن عطاؒ د دے آيت په ترس کښې دا ويلى دى چه الله پاک ټول کائنات ستا د پاره له دے وجے پيدا کړى دى چه ټول کائنات ستا شى او ته دَ الله پاک د پاره شے. نو په دے وجه د هوښيار کار دا دے چه کوم څيز د هغهٔ د پاره پيدا کړے شوے دے هغه خو به ورته حاصليږى. په دے فکر بوختيدل د هغه ذات نه غافل کيدل دى چه د کوم د پاره د غه فکر کوونکے پيدا شوے دے. (بحر محيط)[1]

د دُنيا په څيزونو کښې اصل اباحت دے که حرمت دے؟

له دے آيت نه بعضے عالمانو دا دليل نيولے دے، چه د دنيا ټولو څيزونو کښې اصل د بنيادم د پاره د دهٔ حلالولے او مباح والے دے. ځکه چه دا هُم دهٔ د پاره پيدا کړے شوى دى په استثناءَ د هغه څيزونو چه په شريعت کښې حرام کړے شوى دى. نو په دے وجه چه تر څو د يو څيز حرمت د قرآن او سنت نه ثابت نۀ وى، هغه حلال ګڼړلے شى.

دَ دے په مقابله کښې بعضے عالمانو دا ويلى دى چه د بنيادم د فائدے د پاره د پيدا کيدلو نه د يو څيز حلاليدل نۀ ثابتيږى. ځکه چه اصل په څيزونو کښې حرمت دے، تر څو چه د قرآن او سنت نه ئے جواز ثابت نۀ وى. نو هغه څيز حرام ګڼړلے شى.

څۀ علماء غلى پاتے شوى دى (يعنى نۀ ئے دا ويلى دى چه اصل اباحت دے او نۀ ئے

داویلی دی چه اصل په څیزونو کښی حُرمت دے۔

ابن حیان د بحر محیط خاوند وائی[۱] چه صحیح دا ده، چه په دے آیت کښی دمذکوره اقوالو دپاره دیو قول هم دلیل نشته، ځکه چه "خَلَقَ لَكُمْ" کښی "لام" دمسببیت دپاره راغلی دے، یعنی ستاسو په سبب داڅیزونه پیدا کړے شوی دی۔ دَدے آیت نه د څیزونو د حلالیدو یا حرامیدو دَپاره په بنیادم بانددے دلیل قائمیدے نشی۔ بلکه دحلالو او دَحرامو احکام ځان له په قرآن او سنت کښی بیان شوی دی، په هغی عمل کول ضروری دی۔

په دے آیت کښی د "ثُمَّ" په لفظ دا بیان شوے دے چه زمکه وړاندے او آسمانونه وروستو پیدا شوی دی۔ او دا صحیح ده۔ او په سورة "النازعات" کښی چه ارشاد دے: وَالْاَرْضَ بَعْدَ ذٰلِكَ دَحٰهَا ۔ یعنی زمکه ئے دآسمانونو د پیدا کولو نه پس خوره کړه۔ دے نه دا نه ثابتیږی چه دزمکے پیدائش دآسمانونو نه وروستو شوے دے، بلکه دَدے مطلب دادے چه د زمکے رغونه او له دے نه د پیدا وار او خکلو وغیره تفصیلی کار ونه دآسمان د پیدا وښت نه وروستو او شو۔ اګرچه دزمکے دذات پیدا وښت دآسمانونو نه وړاندے شوے وو (بحر محیط[۲] وغیره)

په دے آیت کښی دآسمانونو شمیر اووه دے۔ دَدے نه معلومه شوه چه علم هیئت والو کوم شمیر (۹) دآسمانونو سودلے دے هغه غلط دے، څه دلیل ئے نشته، صرف په خیالاتو بانددے اړانړه دے۔

وَاِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلٰٓئِكَةِ اِنِّیْ جَاعِلٌ فِی الْاَرْضِ خَلِیْفَةً ؕ

او کوم وخت چه ستاسو پروردګار ملائکوته او وئے چه زهٔ جوړونکے یمه په زمکه کښی یو نائب

قَالُوْٓا اَتَجْعَلُ فِیْهَا مَنْ یُّفْسِدُ فِیْهَا وَیَسْفِكُ الدِّمَآءَ ۚ وَنَحْنُ

ملائکو او وئے آیا جوړوے ته په زمکه کښی هغه څوک چه فساد به کوی په دے کښی او وینه به تو یوی، او مونږ

نُسَبِّحُ بِحَمْدِكَ وَنُقَدِّسُ لَكَ ؕ قَالَ اِنِّیْٓ اَعْلَمُ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ (۳۰)

لوړو ستا صفتونه او یادوو ستا پاک ذات، نو خدائے پاك اُوفرمائیل بیشکه ما ته معلوم دی هغه چه تاسو ته معلوم نه دی

وَعَلَّمَ اٰدَمَ الْاَسْمَآءَ كُلَّهَا ثُمَّ عَرَضَهُمْ عَلَى الْمَلٰٓئِكَةِ

او ښودل الله تعالیٰ آدم ته نومونه د ټولو څیزونو، بیا یې وړاندې کړل دا ټول څیزونه ملائکو ته

فَقَالَ اَنْۢبِـُٔوْنِىْ بِاَسْمَآءِ هٰٓؤُلَآءِ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿۳۱﴾

بیا یې اووییل اُښایئ ماته نومونه ددوی ... که چرې تاسو رښتینې یئ

قَالُوْا سُبْحٰنَكَ لَا عِلْمَ لَنَآ اِلَّا مَا عَلَّمْتَنَا ۭ اِنَّكَ اَنْتَ الْعَلِيْمُ

هغوی اووییل پاکي ده تا لره مونږ ته خو معلوم نه دي مګر هغه چه تا مونږ ته ښودلي دي بیشکه ته یې بنه پوهیدونکے

الْحَكِيْمُ ﴿۳۲﴾ قَالَ يٰٓاٰدَمُ اَنْۢبِئْهُمْ بِاَسْمَآئِهِمْ ۚ فَلَمَّآ اَنْۢبَاَهُمْ

او حکمت خاوند یې. الله پاک اُووییل اے آدمؑ اُښایه ملائکو ته د دغو څیزونو نومونه چه کوم وخت او ښودل هغه

بِاَسْمَآئِهِمْ ۙ قَالَ اَلَمْ اَقُلْ لَّكُمْ اِنِّىْٓ اَعْلَمُ غَيْبَ السَّمٰوٰتِ

ددوی نومونه نو الله پاک اُفرمائیل، آیا ما ویلی نه وو تاسو ته چه زهٔ ښهٔ پیژنم پټ څیزونه د آسمانونو

وَالْاَرْضِ ۙ وَاَعْلَمُ مَا تُبْدُوْنَ وَمَا كُنْتُمْ تَكْتُمُوْنَ ﴿۳۳﴾

او د زمکے او پیژنم هغه چه تاسو یې ښکاره کوئ او یا یې پټوئ

## لنډ تفسیر

او کوم وخت چه ارشاد اُوکړو ستا پروردګار ملائکو ته (دے د پاره چه هغوی د خپل رائے اظهار اوکړي، چه په دغه ظاهرولو کښے حکمت او مصلحت وو. الله پاک خو د مشورے د اخستو ضرورت نهٔ لري. مطلب دا چه الله پاک ملائکو ته اوفرمائیل چه) ضرور زهٔ به په زمکه جوړومه یو نائب (یعنی هغه به زما نائب وي. او د شرعی احکامو د جاري کولو کار به دے کوي) ملائک په ویناشو، آیا ته پیدا کوے په زمکه کښے داسے خلق چه هغوی به فساد کوي او وینے به تویوي. او مونږ ه خو، یو څیز ستا تسبیح والو، او صفت او پاکي بیانوو (د فرشتو دا عرض، نهٔ د اعتراض په توګه وو او نهٔ دے د پاره وو،

چه په دا سې دنیا چېله حقدارې ځوګند ه کړي، د خلیفه توب د پاره - بلکه ملائکو ته په څه طریقې معلومه شوې وه چه کوم نوې مخلوق د ځمکې خلیفه جوړیږي په هغوی کښې به ښه او بد هر قسمه خلق وي - بعض خلق به د نیابت د غه کار نور هم خراب کړي. نو په دې د چه په عاجزۍ سره عرض اوکړو چه مونږه ټول د دې خدمت د پاره حاضر یو او د ملائکو په ډله کښې څوک ګناه کوونکي هم نشته، نو په دې وجه د نوو کار کوونکو زیاتول او د نوي مخلوق پیدا کولو ضرورت نشته، خصوصاً چه په دې نوي مخلوق کښې د احتمال هم شته چه هغه به ستا د مرضۍ خلاف کار کوي، چه په هغې به ته خوښ نه یې. مونږ د هر خدمت او کار د پاره تیار یو. او زمونږ خدمت او کار به ستا د رضا مطابق وي) الله پاک او فرمایل چه زه پېژنم هغه څیزونه کوم چه تاسو یې نه پیژنئ (یعنی چه کوم څیز ستاسو په نظر کښې د بنیادم د پیدا کولو نه مانع دې، چه په دوئ کښې به بعض فساد خوروي. د غه څیز په اصل کښې د دوئ د تخلیق او پیدا کولو اصلي سبب دې، ځکه چه د حکمونو جاري کول خو هغه وخت کیدې شي چه چرته روغ نه وړانې ته تلونکي هم وي - دا مقصد پواځې د فرمانبردارو د جمع کیدلو نه نه حاصلیږي - او د اعتدال نه تجاوز کوونکي مخلوق جنات (پیریان) د وړاندې نه وو، د هغوئ نه یې دا کار له دې وجې وانخستو، چه د دې کار د پاره مناسب خلق هغه کیدې شي چه په هغه کښې د شر او فساد قوت خو وي، لیکن غالب نه وي

په پیو یانو کښې دا قوت غالب دې، نو په دې وجه د آدم د پیدا کولو تجویز اوکړې شو - وړاندې د دې حکمت الٰهي زیات وضاحت دا رنګ اوکړې شو، چه د الله پاک د نیابت د پاره د یو خاص علم ضرورت دې، چه هغه د ملائکو استعداد نه بهر دې - نو په دې وجه یې اوفرمایل چه) علم ورکړو الله پاک آدم علیه السلام ته (هغه یې پیدا کړو) د ټولو څیزونو د نومونو (یعنی د ټولو څیزونو د نومونو او د هغوئ د خاصیتونو او د اثرونو علم یې آدم ته ورکړو) بیا د غه څیزونه یې ملائکو ته وړاندې کړه او ورته یې اووې چه اُښایئ ما ته نومونه د دې څیزونو (یعنی سره د دوئ د خاصیتونو او اثرونو) که چرې تاسو په رښتیا یئ (یعنی په خپله دې وینا کښې په رښتیا یئ چه مونږه به د خلافت کار په ښه طریقه سره او رسوو) ملائکو عرض اوکړو، چه ته خو پاک یې (ستا د دې الزام نه چه آدم علیه السلام ته دې د دې څیزونو علم ورکړو او مونږ ته دې را نکړو) ځکه چه د یو آیت یا روایت نه دا سې معلومه نه ده، چه آدم علیه السلام ته د نومونو

د علم ښودنه د ملائکو نه جُدا ورکړے شوے وه. له دے نه ظاهره داده چه تعلیم او ښودنه د ټولو مخکښې پوشان شوے وه. لیکن د آدم علیه السلام په فطرت کښې دَ دے علم د حاصلولو صلاحیت وو، نو هغهٔ ځکه حاصل کړو، او د ملائکو په طبیعت کښې دَ دے صلاحیت نهٔ وو. نو په دے وجه دوئ ته دا علم حاصل نهٔ شو) لیکن مونږ ته علم نشته بغیر د هغې نه چه تا مونږ لره د هغې علم راکړے دے. بے شکه تهٔ د لوے علم خاوندے او حکمت والا ئے (د دمره علم او فهم چاته ورکوے چه څومره علم او فهم کښې د هغهٔ مصلحت وی. له دے نه د ملائکو دا اقرار ثابت شو، چه دوئ د هغه کارکولو نه عاجزه دی چه کوم کار نائب ته سپارلے کید ونکے دے. وړاندے الله پاك ته دا منظوره شوه چه ملائکو ته دا اُښائی چه آدم علیه السلام کښې د دے خاص علم مناسبت شته، نو په دے وجه) الله پاك اُفرمائیل چه اے آدمه اُښایه دوئ ته دَ دے څیزونو نومونه (یعنی د حالاتو او خاصیتونو سره. هرکله چه آدم علیه السلام دا تهول د ملائکو په وړاندے او ښودل، نو ملائکے دومره پوهه شوے، چه آدم علیه السلام د دے علم ماهر شوے دے) نو هرکله چه ئے اُښودهٔ دوئ ته آدم علیه السلام د دے څیزونو نومونه نو الله پاك او فرمائیل (اُگورئ) ما تاسو ته و یُلی نهٔ وو چه بے شکه زهٔ پیژنم ټول پټ څیزونه د آسمانونو او د زمکے او پیژنم ستاسو هغه کار چه تاسو ئے ظاهروَئ او هغه چه تاسو ئے په زړهٔ کښې لرئ.

## علوم او مسئلے

| | |
|---|---|
| د آیاتونو دیو بل سره تړون | له دے نه وړاندے آیاتونو کښې الله پاك د خپلو خاصو او عامو نعمتونو (چه په انسان ئے کړی دی) ذکر اُوکړو او بنیادم ته ئے دَ |

ناشکرئ او نافرمانئ نه د بچ کیدلو هدایت اُکړو. او س له دے آیت نه د رکوع تر آخره پورے په لسو آیاتونو کښې د آدم علیه السلام قصه هم په دغه لړ کښې ذکر شوے ده. ځکه چه نعمت په دوه قسمه دے. یو صُوری، یعنی محسوس، لکه خوراك څکاك، مال مکان، جایئداد. دویم معنوی، لکه عزت آبرو، خوشحالی، علم. په مخکښو آیاتونو کښې دَ صوری او ظاهری نعمتونو بیان وو او په دے پوړ لسو آیاتونو کښې د معنوی نعمتونو ذکر دے

چه مونږه ستاسو پلار آدم علیه السلام ته د علم دولت ورکړو او دا عزت مو ورکړو چه ملائکو ورته سجده اوکړه. او تاسو ته دد ے فخر کولو موقع م درکړه چه تاسو د هغه په اولاد کښې پیدا شوئ۔

د آیت د مضمون لنډیزه دا ده چه الله پاك، هرکله د آدم علیه السلام د پیدا کولو، او په دُنیا کښې د هغهٔ د خلیفه جوړولو اراده اُکړه نو په ظاهره د ملائکو نه د امتحان اخستو دپاره ئے د دے ارادے ذکر اُکړو چه په هغې کښې د دے خبرے ته اشاره ده چه دا ملائک په دے معامله کښې خپله رائے څرګند دے کړی۔ ملائکو دا رائے پیش کړه چه په بنیاد مو کښې خو داسے خلق به هم وی چه فساد به کوی او وینه به تویوی نو دوئ ته د ځمکے خلافت سپارل په فهم کښې نه راځی۔ دے کار دپاره خو فرښتے زیاتے مُناسبے معلومیږی ځکه چه نیکی د هغوئ مزاج دے، بدئ خو د هغوئ نه هم وَ یبدے نشی۔ هغوئ پوره فرمانبرداره دی۔ د دنیا انتظامات به هم سم کړی۔ الله پاك د دوئ رائے اول په حاکمانه طریقے سره غلط او بښودله۔ هغه دا سے چه د خلافت ارضی حقیقت او د هغې د ضرورتونه تاسو خبر نهٔ یئ۔ له دے نه څه بنهٔ خبریم۔

دویم ځل ئے په حکیمانه طریقے غلطه ښکاره کړه۔ په هغې کښې په ملائکو باندے د آدم علیه السلام برتری او ښودلے شوه او دا هم او ښودلی شو چه د ځمکے د خلافت دپاره د ځمکے د ټولو مخلوقاتو د نومونو او د هغوئ اثرونو او خاصیتونو پیژندل ضروری دی او د فرښتو استعداد دومره نهٔ وو، چه هغوئ دِ دُنیا د ټولو مخلوقاتو نومونه سره د اثر او خاصیتونو زده کړی۔

ملائکو سره د آدم علیه السلام د پیدا کولو خبر سره په کوم مصلحت باندې بنا وه؟

دلته دا خبره د غور او فکر وړ ده، چه الله پاك د دے خبرے اظهار د ملائکو په مجلس کښې په کوم حیثیت کړے وو؟ آیا د هغوئ نه مشوره اخستل ئے مقصود وو یا صرف دوئ ته خبر ورکول وو یا د ملائکو په ژبه د ملائکو د رائے څرګندول مراد وو؟ دا خبره ظاهره ده چه د مشورے ضرورت خو هغه ځائے کښې پیښیږی چرته چه د مشورے ټول اړخونه چا ته واضح نهٔ وی او په خپل علم او بصیرت باندے مکمل اطمینان نهٔ لری، نو د نورو عاقلانو او پوهانو سره مشوره کیده ے شی یا دا سے صورت کښې چه هلته د نورو حقوق هم برابر دی، نو د هغوئ د رائے اخستو دپاره مشوره کیږی، لکه چه د دے دنیا په عامو کو ښلو نوکښې دارا بجه دګه، او دا خو په څ ا که د ه چه دلته کښې د دارا...

صُورتو نه لګښته دے - الله پاك د کائناتو خالق دے - دَ ذرے ذرے علم لري - د هر ظاهر او باطن د ده علم او د نظر د وړاندے دی - نو داسے ذات ته د مشورے اغستو څه ضرورت دے!

هم دغه رنګ ، داسے هم نهٔ ده چه دا څهٔ پارلیمانی حکومت دے په کوم کښے چه د ټولو غړو برابر حقوق وی او د ټولو نه مشوره اغستل ضروری دی - ځکه چه الله پاك د ټولو خالق او مالك دے ، فرښتے دی که پیریان او بنیادم ، ټول د دهٔ مخلوق او ملکیت دے ، دَ چا دا حق نشته چه هغه د الله پاك نه دا پوښتنه اوکړی چه دا کار تا ولے کړے دے او فلانے کار دِ ولے کړے نهٔ دے - لَا يُسْئَلُ عَمَّا يَفْعَلُ وَهُمْ يُسْئَلُوْنَ ۝[1]

د الله تعالیٰ نه د هغهٔ د څهٔ فعل متعلق تپوس نشی کیدے او د ټولو نه دَ ددوئ د عملونو په باره کښے به تپوس کیږی.

خبره دا ده چه په اصل کښے د دلته مشوره اغستل مقصود نه وو او نهٔ د دے ضرورت وو، لیکن صورت ئے د مشورے جوړ کړو ، دا د دے د پاره چه مخلوق ته د مشورے د سُنّت او طریقے تعلیم ورکړے شی ، لکه چه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته په قرآن کښے هدایت شوے دے چه د دے د خپلو اصحابو نه مشوره اخلی - حال دا دے چه دوئ ته به وحی الٰهی راتله - ټولے معاملے او د هغوئ هر اړخ دوئ ته د وحی په ذریعه ښودلے شو ، لیکن دوئ ته د مشورے کولو تاکید اوکړے شو - دا د دے د پاره چه د دوئ په ذریعے د مشورے طریقه جاری شی او اُمت ئے زده کړی.

مطلب دا چه د فرښتو په مجلس کښے د دے واقعے د اظهار سره یوه فائده خو د مشورے تعلیم ورکول وو ، چه هغه حاصل شو (روح البیان)[2] - دوېمه فائده په جمله د قرآن د الفاظو نه دا معلومیږی چه د انسان د پیدا کیدو نه وړاندے فرښتو دا خیال کوو ، چه د دوئ نه زیات غوره او پوهه دغه مخلوق الله تعالیٰ به پیدا نکړی.

او د ابن جریرؒ[1] په تفسیر کښے د حضرت عبدالله بن عباس نه په یو روایت کښے د دغه خبرے صراحت هم شته چه د آدم علیه السلام د پیدا کیدو نه مخکښے فرښتو به په خپل مینځ کښے داسے خبرے کولے چه : لَنْ يَّخْلُقَ اللّٰهُ خَلْقًا اَكْرَمَ عَلَيْهِ مِنَّا وَلَا اَعْلَمَ (یعنی الله پاك به زمونږ نه زیات غوره او زیات علم والا مخلوق پیدا نکړی) د الله پاك په علم کښے وه چه یو داسے مخلوق هم پیدا کول دی چه د ټولو مخلوقاتو نه زیات غوره ، زیات علم والا دی او چه هغهٔ ته د خپل خلافت او نیابت خلعت ورکړی.

(۱) الانبیاء ، ۲۳ (۲) روح : ۹۳ -

نو په دے وجه د فرښتو په مجلس کښے دَ آدم علیه السّلام د پیدا کولو او په زمکه د نائبُ جوړولو ذکر اُوکړے شو چه دا فرښتے د خپل خیال اظهار اُوکړی.

نو فرښتو د خپل علم او بصیرت مطابق په عاجزیُ سره د رائےُ اظهار اوکړو، چه کوم مخلوق تاسو خلیفه په زمکه کښے جوړویُ، په هغه کښے د شر او فساد ماده هم ده، نو هغه به د نورو اصلاح او په زمکه کښے د امن و آمان انتظام څهٔ رنګ اُوکړی چه هغه به پخپله وینے تویَوی. د دے په ځائے ستا په فرښتو کښے د شر او فساد هیڅ ماده نشته، د خطاګانو نه پاکے دی، او هر وخت ستا په تسبیح، تقدیس او عبادت کښے اخته دی. هغه به څرنګه دا کار په ښهٔ طریقے سره کولے شی.

مطلب دا چه دا وینا د الله پاک په کار باندے اعتراض کول نه وو، ځکه چه فرښتے له دا سے خیالاتو او حالاتو نه پاکے دی. بلکه غرض، صرف دا معلومول وو چه یو پاک جماعت سره دویُم ناپاک مخلوق پیدا کول او دا کار ورته سپارل او دغه مخلوق ته ترجیح ورکول په کوم یو حکمت باندے ولاړ دی.

نو د دے په جواب کښے اول الله پاک اجمالاً اُوفرمائیل: اِنِّیْٓ اَعْلَمُ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ۰
یعنی تاسو د خلافتِ الٰهیه حقیقت او د هغے لوازماتو نه خبر نهٔ یئ نو په دے وجه دا خیال کویُ، چه یو معصوم پاک مخلوق دا کار سرته رسولے شی. د دے حقیقت هم مونږ پیژنو.

دے نه پس فرښتو ته د دے څهٔ تفصیلی علم ورکولو دَ پاره د یو خاص واقعے اظهار اُوکړے شو، هغه دا چه د ټولو کائناتِ عالَم نُومُونه، دَ دوئ خاصیتونه او اثرونه آدم علیه السلام ته اُوښودلے شو، ځکه په آدم علیه السّلام کښے د دے څیزونو د علم صلاحیت ایښودے شوے وو. د ملائکو طبیعت او فطرت کښے د دے څیزونو د علم صلاحیت ایښودلے شوے نه وو، ځکه چه دا د دوئ د فطرت او جبلت سره مناسب نهٔ وو، مثلاً دَ دُنیا نفع ورکوونکی او ضرر ورکوُونکی څیزونه او د دوئ اثرونه او خاصیتونه د هر ځناور او د هر قوم مزاج او دَ هغوئ اثرونه ــــ د دے څیزونو معلومَولو د پاره مَلَکی طبیعت موزون نهٔ وو. ملائکه څهٔ پوهیږی چه لوږه څهٔ څیز وی، د تندے تکلیف څهٔ وی، د نفسیاتو د جذبے څهٔ اثر وی. له کوم څیز نشه پیدا کیږی او څهٔ رنګ پیدا کیږی. د مار او د لړم زهر په

بدن پاندې اثر څنګه کوي؟

مطلب دا چې د زمکې د مخلوقاتو د نومونو او اثرونو معلومول د ملائکو د مزاج او خاص طبیعت نه بالکل جُدا څیز وو۔ دا عِلم صرف آدم علیه السلام ته ورښودلے شو او دهٔ ته اوښودلے شو۔ بیا د قرآن څهٔ صراحت نه، څهٔ اشارے نه دا ثابته نهٔ ده چې آدم علیه السلام ته دا تعلیم په تنهائی کښې د ملائکو نه ښودلے شوے وو۔ ځکه چې کیدے شي چې تعلیم دِ ټولو د پاره عام وی، لیکن دَ دے تعلیم نه فائده اُغستل صرف د آدم علیه السلام په طبیعت کښې وُو۔ نو هغهٔ زده کړو۔ د فرښتو په طبیعت کښې نهٔ وو نو هغوئ زده نکړو۔ نو په دغه وجه د لته د تعلیم نسبت ے آدم علیه السلام ته اوکړو۔ اګرچې تعلیم فی ذاته عام وو۔ آدمؑ او ملائکې دواړه پکښې شامل وے۔ او دا هم کیدے شي چې د ظاهری تعلیم شکل او صورت د لته کښې پیښ شوے نهٔ وو۔ بلکه د آدم علیه السلام په فطرت کښې دَ دے څیزونو عِلم د پیدا کیدو د وخت نه ایښودے شوے وو۔ لکه چې بچے د نائیکدو سره د مور پئ ځکل پیژنی، د بطے بچی ته لامبو ورځی۔ په دے کارونو کښې دا بچی د څهٔ ظاهری تعلیم ضرورت نهٔ لری۔

یو سوال دا پاتے کیږی، چې د الله پاک قُدرت په هر څهٔ باندِ شته، هغهٔ خو دَ فرښتو مزاج بدلولے شو او دوئ ته یے دا څیزونه ښودلی شو، نو دوئ ته یے ولے په دے طریقه ښودنه اونکړه۔ دَ دے سوال جواب دادے، چې په داسے طریقه فرښتو ته ښودنه فرښتې خپل فرښته والی کښې نهٔ پریښودی بلکه بنیادم تِرِ جوړیدو۔

مطلب دا چې د زمکے د مخلوقاتو د نومونو، او د هغوئ د خاصیتونو او اثرونو علم آدم علیه السلام ته ورکړے شو۔ او دا علم د فرښتو په وَس کښې نهٔ وو۔ او بیا دا مخلوق فرښتو ته وړاندے کړے شو، او د فرښتو نه پوښتنه اُوکړے شوه چې که تاسو په خپل خیال کښې رښتونی یئ، چې دَ تاسو نه زیات بل مخلوق به په علم او په نور فضیلت کښې پیدا نشی۔ او په دے وجه تاسو، د زمکے د خلافت د پاره د انسان په مقابله کښې زیات موزون یئ؛ نو د دے څیزونو نومونه او خاصیتونه اوښایئ۔ او دا هغه څیزونه دی چې په دوئ باندے به د زمکے خلیفه حکومت کوی۔

د لته کښې لویه فائده حاصله شوه، چې حاکم لره ضروری دی، چې هغه دِ د خپل محکوم

رعیت د مزاج او طبیعت او د هغه د اثر او خاصیت نه پوره پوره خبر وی. بغیر له دې په دوی باندې د عدل او انصاف حکومت نه شی کولے. کوم سړی ته چه دا معلومه نه وی چه لوږه څرنګه څیز دے او څومره تکلیف پکښې وی. کچرې د داسې سړی په عدالت کښې لوږه دعوی د چا او د بې لږ لو په باره کښې وړاندې شی. یعنی یو سړے په بل سړی باندې دا دعوی اوکړی چه ده څه خوراک اوږدې ساتلے یم. نو د غه حاکم کوم ته چه لوږه د سره معلومه نه ده، دے دوا ړو په مینځ کښې فیصله څنګه اوکړی.

مطلب دا، چه په داسې کولو الله پاک فرښتو ته دا اوښوده چه د زمکې د خلافت د پاره دې ته کتل نه دی پکار چه دا خلیفه معصوم او پاک دے، بلکه دې ته کتل پکار دی چه دے د زمکې د څیزونو نه ښه خبر دے او د دے څیزونو د استعمال طریقې او د څیزونو فائدې ښه پیژنی. که چرې ستاسو دا خیال صحیح وی چه فرښتې د دې خدمت د پاره زیاتې موزونې دی، نو بیا د دې څیزونو نومونه او خاصیتونه او ښایئ.

د فرښتو دا رائے څرګندول: هر کله چه د څه اعتراض، فخر و غرور، یا د خپل حق د ثابتولو د پاره نه وه، بلکه صرف د خپل خیال اظهار ئے دیو تابعدار خادم په شان د خپلو خدمتونو وړاندې کولو د پاره وو، نو په دې وجه ئے اود وے:-

سُبْحٰنَكَ لَا عِلْمَ لَنَآ اِلَّا مَا عَلَّمْتَنَا اِنَّكَ اَنْتَ الْعَلِيْمُ الْحَكِيْمُ ﴿ (پاکی ده تا لره، زمونږ ه علم نشته، مګر هغه چه تا را کړے دے. بے شکه چه ته د لوئے علم او حکمت مالك ئے)

د دې مطلب دا دے، چه دوی د خپل خیال نه رجوع اوکړه او دا اقرار ئے اوکړو، چه د زیات علم او د فضیلت خاوند مخلوق هم شته او هم د غه مخلوق د زمکې د نیابت د پاره موزون دے.

دویم سوال: دلته دا دے، چه فرښتو ته دا پته څنګه اولګیده چه بنیادم به خونریزی کوی. آیا دوی ته علم غیب حاصل وو، یا صرف په اټکل او ګمان ئے دا خبره کړې وه؟ د دې جواب د جمهورو محققینو په نزد دا دے، چه الله پاک دوی ته ښودلی وو، چه د بنیادم حالات او معاملات به داسې وی لکه په بعضې آثارو کښې دی، چه هر کله الله پاك فرښتو ته دا ذکر اوکړو چه دے آدم علیه السلام په زمکه کښې خلیفه جوړوی نو فرښتو ترې نه د د غه خلیفه د حال پتپوس اوکړو. الله پاك دوی ته د ده حال اوښودو (روح المعانی)

فرښتو ته تعجب اوشو چه هر کله د بنیادم حال دا دے، چه هغوی به فساد او خون ریزی کوی، نو بیا ده د زمکې د نیابت د پاره په منتخب کولو کښې حکمت څه دے؟

دده یو جواب خود الله پاك د طرف نه دا سو اوشو، چه د آدم علیه السلام علمي اُوچتوالی یې ظاهر کړو۔ او د فساد او خون ریزۍ نه چه کومه شُبه دده خبرې پیدا کیده چه ځې د نیابت حقدار نه دی۔ د هغې جواب اجمالاً په اِنِّیۤ اَعۡلَمُ مَا لَا تَعۡلَمُوۡنَ ۝ سره یې ورکړو۔ ځکه چه د دې کښې اشاره ده چه کوم څیز تاسو د نیابت او خلافت د پاره منافي ګڼړئ هغه په اصل کښې دده غه خلافت او نیابت د اهلیت د پاره یو لوئ سبب دی، ځکه چه په زمکه کښې د نیابت ضرورت، د فساد د لرې کولو د پاره دی۔ چه کوم ځائې کښې فساد نه وی نو هلته د خلیفه او د نائب لیږلو ضرورت بالکل نه وی۔ غرض دا چه دا اوښودلې شو چه منشأ الٰهي دا ده چه څرنګې الله پاك یو پاك مخلوق، چه د هغې نه د ګناه او خطا کیدو امکان نشته چه هغه فرښتې دي۔ او چه څرنګې یې شیطانان پیدا کړي د کوم چه د هغوئ نه د نیکئ اُمید کیدے نشي نو د غه رنګ یو داسې مخلوق پیدا کول منشأ اِلٰهي ده چه هغه د خیر او شر او نیکئ او بدئ یو ګډه مجموعه وي او په هغه کښې د خیر او شر دواړه جذبه وي۔ هغه کښې د شر جذبه مغلوبه وي او د خیر په میدان کښې وړاندې کیږي او د خدائے پاك رضا حاصلوي۔

**د ژبې جوړوونکی الله پاك دے**

د آدم علیه السلام په قصه کښې د اسماؤ د تعلیم د واقعې نه دا هم ثابته شوه، چه د ژبې او لغت واضع او جوړوونکې الله پاك دے۔ بیا په دے ژبه کښې د مخلوق د مختلف استعمالاتو په وجه مختلف صورتونه او ژبې پیدا شوې۔ امام اشعري[1] له دے آیته استدلال کړے دے، چه واضع د لغت او ژبې په اصل کښې الله پاك دے۔

**د آدم علیه السلام برتري په فرښتو باندې**

په دے واقعه کښې د قرآن کریم دا بلیغ الفاظ هم د فکر د په دي چه کوم وخت فرښتو ته وائي چه دده څیزونو نومونه اوښایئ نو د "اَنۡۢبِـُٔوۡنِیۡ" لفظ وائي چه ماته یې اوښایئ۔ او چه کوم وخت آدم علیه السلام ته وائي چه دده څیزونو نومونه اوښایه نو د "اَنۡۢبِئۡهُمۡ" لفظ وائي چه فرښتو ته دا نومونه اوښایه۔ په دے طرز بیان نه دا په ډاګه شوه، چه آدم علیه السلام ته د معلم درجه ورکړې شوه او فرښتو ته د طالب علمانو۔ او په دا رنګ کولو سره د آدم علیه السلام د فضیلت او برتري په یو اهم شکل کښې څرګنده شوه۔

د دے واقعې نه دا هم معلومه شوه چه د فرښتو په علوموا او معلوماتو کښې هم کمے او زیاتے راتلے شي۔ ځکه چه د کومو څیزونو علم د دوئ ته نه وو، د آدم علیه السلام په ذریعه په اجمالي

طور سره دده څيزونو علم درئ ته ور کړې شو.

**دَ زمکے دخلافت مسئله**

د زمکے د انتظام، او په زمکه کښے د الله پاك د قانون د چلولو د پاره د الله پاك له طرفه د يو نائب مقرريدل ټول دده آيتونو نه معلوم شو. لهٰذا نه د مملکت د دستور يو اهم باب اوتو. هغه دا چه په ټولو کائناتو او په ټوله زمکه اقتدار اعلیٰ صرف د الله پاك دے. لکه چه د قرآن مجيد نور ډير آيا تونه په دے شهادت کوی: اِنِ الْحُكْمُ اِلَّا لِلّٰهِ⁽¹⁾ ، لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ⁽²⁾ او اَلَا لَهُ الْخَلْقُ وَالْاَمْرُ⁽³⁾ وغيره د زمکے د انتظام د پاره د الله پاك له طرفه نائبان راځئ. هغوئ د الله پاك په حکم او اجازت په زمکه باندے حکومت کوی او د الله پاك د بندګانو د تعليم او تربيت کار کوی او احکام إلٰهيه نافذ وی. دده خليفه او نائب تقرر او مقررول بغير له واسطے الله پاك کوی. په دے کښے دَ چا د کسب او عمل هيڅ دخل نشته. د دغه وجه ده چه د ټول اُمت اجماعی عقيده ده چه نبوت کسبی څيز نهٔ دے (يعنی دا سے څيز نهٔ دے چه د بنيادم په کسب او عمل سره بنيادم ته حاصليږی) بلکه الله پاك پخپله د خپل علم او حکمت په تقاضا خاص خاص کسان ددے کار د پاره انتخاب وی او خپل نبي او استاذ ے مقرروی. قرآن کريم ددے خبرے ځائے په ځائے اظهار کړے دے. ارشاد دے:

اَللّٰهُ يَصْطَفِيْ مِنَ الْمَلٰٓئِكَةِ رُسُلًا وَّمِنَ النَّاسِ ۔ اِنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌۢ بَصِيْرٌ⁽⁴⁾ | الله پاك په فرښتو کښے د خپل رسول انتخاب کوی او په بنيادمو کښے هم، بيشکه الله پاك آوريدونکے بينا نکے دے.

يو بل ځائے کښے ارشاد دے:

اَللّٰهُ اَعْلَمُ حَيْثُ يَجْعَلُ رِسَالَتَهٗ⁽⁵⁾ | الله پاك ته ښهٔ معلومه ده چه خپله پيغمبری چاته ورکوی.

دَ الله پاك دا خليفه، بغير له واسطے د الله پاك احکام معلوموی او بيا دا په دُنيا کښے جاری کوی. دا سلسله د خلافت او نيابت دَ آدم عليه السلام نه واخله تر خاتم الانبياء صلی الله عليه وسلم پورے په يو طريقه چليده. تر دے پورے چه حضرت خاتم الانبياء صلی الله عليه وسلم په دے زمکه کښے د الله پاك آخری خليفه شو او ډير اهم خصوصيات ئے د ځان سره راوړل

يو خصوصيت خو دا وو چه له ده نه وړاندے پيغمبران خاص خاص قومونو يا ملکونو ته ليږلے شو. د هغوئ د حکومت دائره هم د هغوئ قومونو او ملکونو کښے محدوده وه. ابراهيم عليه السلام يو قوم او لوط عليه السلام بل قوم ته ليږلے شوے وو. حضرت موسیٰ او حضرت عيسیٰ عليهما السلام

او دَ دوئ په میسخ کښې راغلي پیغمبران، بنی اسرائیلو ته لیږلی شوی وو۔

**نبي صلی الله علیه وسلم په زمکه دَ الله پاک آخري خلیفه دے او دَ دوئ خصوصیات**

نبي کریم صلی الله علیه وسلم ټول عالَم او دَ عالَمونو دواړو قومونو پیړیانو او بنیاد موټه راواستولے شو۔ دَ دوئ اختیار او اقتدار د ټولے دُنیا دټو قومونو باندے احاطه کړے وه۔ قرآن کریم دَ دوئ د بعثت او نبوت د عام کیدو اعلان په دے آیت کښې کړے دے۔ الله پاک فرمائی:-

قُلْ يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنِّي رَسُولُ اللَّهِ إِلَيْكُمْ جَمِيعًا الَّذِي لَهُ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ (1)

تاسو اُوایئ چه اے خلقو: څه د الله پاک استازے یم تاسو ټولو د پاره۔ الله هغه ذات دے چه د هغه په قبضه کښې آسمانونه او زمکه ده۔

او صحیح مُسلم[2] په حدیث کښې دی۔ نبي صلی الله علیه وسلم فرمائی چه ما ته په ټولو پیغمبرانو د شپږو خیزونو په وجه غوره والے راکړے شوے دے۔ یو دا چه څه د ټول عالَم د پاره پیغمبر رالیږلے شوے یم۔ دویم دا چه د دې نه وړاندې نو پیغمبرانو خلافت او نیابت چه څرنګے خاص خاص ملکونو او قومونو کښې محدود وو او خاصے زمانے د پاره به وو چه د پسے به بل نبي راغے، نو د وړاندې نبي نیابت او خلافت به ختم شو۔ زمونږ پیغمبر خاتم الانبیاء صلی الله علیه وسلم دا رنګ نه دے۔ د دهٔ خلافت او نیابت د یو خاص قوم ملک او زمانے د پاره نه دے۔ دا دَ هر قوم او هر ملک او هرے زمانے د پاره دے۔ دریم دا چه د وړاندې نو پیغمبرانو تعلیمات او شریعتونه تر یو زمانے پورے به محفوظ وو او چلیدل به او رو رو به پکښې تحریفات کیدل او معنی و مبدل به۔ حتی چه بل پیغمبر او شریعت به راغے۔

زمونږ دَ پیغمبر دا خصوصیت دے، چه د دهٔ دین او شریعت به تر قیامته محفوظ وی۔ قرآن مجید چه په نبي صلی الله علیه وسلم نازل شوے دے د هغه د الفاظو او معنو ټولو حفاظت الله پاک پخپله ذمه اخستے دے۔ الله پاک فرمائی:-

إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ وَإِنَّا لَهُ لَحَافِظُونَ (1)

مونږ دا قرآن نازل کړے دے او مونږ د دے محافظان یو۔

هم دغه شان د نبي صلی الله علیه وسلم تعلیمات او ارشادات چه هغے ته احادیث وئیلے شی۔ دَ هغوئ دَ حفاظت هم الله پاک یو خاص انتظام کړے دے چه تر قیامته پورے به یو دا سے ډله موجود

وي چه هغه ته به دخپل ځان نه د نبي صلی الله علیه وسلم تعلیمات او ارشادات پریږدي
وي او چه هغه به د نبي صلی الله علیه وسلم د شریعت احکام خلقو ته صحیح صحیح رسوي او
یو جماعت به هم ختمولے نه شي ۔ د الله پاک غیبي امداد به دوی سره وي ۔

خلاصه دا چه د پرومبنو پیغمبرانو کتابونه او صحیفې به محرّف کیدې (بدلیدې) او په آخر کښې به د دُنیانه ورکیدے یا بدګډے وډے پاتے کیدے ۔ نبي صلی الله علیه وسلم ته ورکړے شوے کتاب قرآن او د ده سنو دلی شوی هدایات، یعني احادیث، دا ټول پخپل اصلي شکل او صورت کښې ترقیامته محفوظ او موجود وي ۔ نو په دغه وجه له دوی نه پس د بل نوي نبي او رسول ضرورت نشته او نه څه د بل خلیفة الله د پاره دلته کښې څه ځائے شته ۔

څلورم خصوصیت د نبي صلی الله علیه وسلم دا دے، چه د پرومبو پیغمبرانو خلافت او نیابت، چه د یو خاصے زمانے د پاره وو، د هر نبي او رسول نه پس د الله پاک له طرفه یو بل رسول به مقرریدو او د نیابت کار به ئے په لاس کښې اخستلو ۔

**د نبي صلی الله علیه وسلم نه پس د خلافت نظام**

د خاتم الانبیاء د خلافت زمانه ترقیامته ده ۔ نو په دے وجه دوی ترقیامته پورے په زمکه کښې د الله پاک خلیفه دي ۔ د دوی د وفات نه پس د نظام عالم د پاره چه کوم نائب به وي، هغه به خلیفة الرسول وي ۔ د صحیح بخاري او مسلم حدیث دے چه نبي صلی الله علیه وسلم فرمائیلي :

كَانَتْ بَنُوْ اِسْرَائِيْلَ تَسُوْسُهُمُ الْاَنْبِيَاءُ كُلَّمَا هَلَكَ نَبِيٌّ خَلَفَهٗ نَبِيٌّ، وَاِنَّهٗ لَا نَبِيَّ بَعْدِيْ وَسَيَكُوْنُ خُلَفَاءُ فَيَكْثُرُوْنَ ۔

د بني اسرائیلو حکومت او سیاست د هغوی پیغمبرانو کولو ۔ یو پیغمبر به چه وفات شو نو بل پیغمبر به راتلو ۔ او خبر شئ چه زما نه رُستو بل پیغمبر نشته البته زما خلیفه ګان به وي او ډیر به وي ۔

پنځم خصوصیت د نبي صلی الله علیه وسلم دا دے چه دوی نه رُستو دوی د اُمت مجموعے ته الله پاک هغه مرتبه ورکړه کومه چه ئے پیغمبرانو ته ورکړے ده ۔ یعني د اُمت مجموعه ئے معصومه (د ګناه نه پاکه) کړے ده چه د دوی ټول امت به په ګمراهئ باندے نه را غونډیږي ۔ دا پوره اُمت چه په کومے مسئلے باندے اجماع او اتفاق اُوکړي، هغه د الله پاک د حکم مظهر ګنړلے شي ۔ نو په دغه وجه د کتاب الله او سُنّتِ رسول نه پس په اسلام کښې دریم حُجت د اُمت اجماع ګرځولے شوے ده ۔ د نبي صلی الله علیه وسلم ارشاد دے :

لَنْ تَجْتَمِعَ اُمَّتِيْ عَلَى الضَّلَالَةِ (زما اُمت به کله په ګمراهئ راجمع نه شي)

د دې زیات تفصیل په حدیث شریف کښې دا دے فرمایلي دي چه زما په امت کښې همیشه یو جماعت به په حق قائم وي. دنیا که څومره بدله شي او حق که څومره صرا وے شي لیکن دا یو جماعت به د حق حمایت همیشه کوي او فتح او غلبه د دغه جماعت به وي.

له دینه معلومه شوه چه ټول امت به کله هم په ګمراهئ او غلطئ جمع نشي. او هر کله چه د اُمت مجموعه معصومه شوه، نو د رسول د خلیفه انتخاب هم دوئ ته اُسپارلے شو. او د خاتم الانبیاء صلی الله علیه وسلم نه پس د زمکے نیابت او د حکومت د انتظام د پاره د انتخاب طریقه روا او را مخه شوه. دا اُمت چه چا لره خلیفه منتخب کړي هغه به د خلیفه رسول په حیثیت د نظامِ عالم یوازے ذمه وار وي. او خلیفه د ټولو کیدے شي.

د خلفاؤ راشدینو آخري زمانے پورے د خلافت دا سلسله په صحیح اصولو چلیده. دغه وجه ده چه د هغو فیصلے صرف د دیني او وختي حیثیت نه لري، بلکه د یو مضبوط د ستاویز او اُمت د پاره د یو حجت او دلیل حیثیت لري. ځکه چه پخپله نبي صلی الله علیه وسلم د دوئ په حقله فرمایلي دي:

عَلَيْكُمْ بِسُنَّتِيْ وَسُنَّةِ الْخُلَفَاءِ الرَّاشِدِيْنَ (زما سنت او زما د خلفاؤ راشدینو سنت ټینګ ونیسئ)

**د خلافتِ راشده نه پس**

د خلافتِ راشده نه پس، د څه طوائف الملوکئ ابتداء اُشوه. په مختلفو علاقو کښې مختلف امیران جوړ کړے شو چه هغوئ کښې یو هم د خلافتِ دنیا د پاره حق دار نه دو. او هر کله چه د ټولے دنیا د مسلمانانو اتفاق په یو سړي باندې کران شو او د هر ملک او د هر قوم جُدا جُدا امیر جوړولو طریقه روانه شوه. نو مسلمانانو د ه تقرر هغه اسلامي نظریے لاندې جاري اُوړلو چه د مسلمانانو اکثریت څوک امیر منتخب کړي، هغه به د دغه ملک امیر وي او "اولوا الامر" به بللے شي.

د قرآن مجید د "وَاَمْرُهُمْ شُوْرٰى بَيْنَهُمْ" د عموم نه په دے خبره دلیل جوړیدے شي.

**په مغربي جمهوریت او اسلامي شورائیت کښې فرق او بیلتون**

اسمبلیانے د دغه طرزِ عمل یوه نمونه ده. فرق صرف دومره دے چه د عامو جمهوري ملکونو اسمبلیانے او د هغے غړي بالکل آزاد او خود مختار وي. صرف پخپله رائے بنه پابند قانون جوړولے شي. اسلامي اسمبلي او د هغے غړي او منتخب شوے امیر ټول د دے اُصولو او قانون پابند وي چه

کوم د الله پاک له طرفه دوی ته د پیغمبر په ذریعه ورکړے شوے دے - د دغه اسمبلئ
یا د مجلس شورئ د رکنیت د پاره هم څۀ شرطونه دی او کوم سړے چه دا منتخب کړی،
هغه د پاره هم څۀ حدود او قیدونه وی - بیا د هغوئ قانون سازی د قرآن او د سنت د
اصولو په دائره کښې کیږی او د قرآن او د سنت خلاف د څۀ قانون جوړولو اختیار چا ته
حاصل نۀ دے -

لنډ دا چه الله پاک چې فرښتو مخاطب کړے او دا ارشاد ئې ورته اوکړو چه زۀ په
زمکه کښې خپل نائب جوړوونکے یم - دد ے نه د مملکت د دستور څو اهم دفعے معلومه شوے -
اول دا، چه په زمکه آسمان کښې اقتدار اعلی د الله پاک د ے، دویم دا چه په زمکه کښې
د الله پاک د حکمونو چلولو د پاره، د الله پاک نائب، د هغه رسول وی - او ضمنی طور دا
هم واضح شوه چه د خلافتِ اِلٰهیه سلسله هر کله چه په نبی صلی الله علیه وسلم ختمه شوه
نو اوس د خلافتِ رسول سلسله دد ے ځائے اُنیوو، او د دغه خلیفه تاکل د ملت د انتخاب
په ذریعے مقرر کړے شو -

وَاِذْ قُلْنَا لِلْمَلٰٓئِكَةِ اسْجُدُوْا لِاٰدَمَ فَسَجَدُوْٓا اِلَّآ اِبْلِيْسَ ط

او کوم وخت چه مونږه حکم اوکړو فرښتو ته چه سجده اُکړئ آدم ته، نو ټولو په سجده پریوتے مګر شیطان نه.

اَبٰى وَاسْتَكْبَرَ وَكَانَ مِنَ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۳۴﴾

هغۀ انکار اُکړو او تکبر ئے اُکړو او وو د کافرانو څخه.

## لنډ تفسیر

او کوم وخت چه حکم اُکړو مونږ ټولو فرښتو ته (او پیریانو ته هم،
لکه چه په بعض روایاتو کښې د حضرت ابن عباسؓ نه نقل دی، مطلب دا چه دے ټولو
ته دا حکم اُکړے شو) په سجده پریوځئ د آدمؑ په مخکښې نو ټول په سجده پریوتل
بغیر د ابلیسه، چه هغه دا وینا او نۀ منله او تکبر ئے اُکړو - او د کافرانو نه شو -

## علوم او مسئلے

| د آیاتو نزول او بل سره تړون | په دے مبنی دا قصه کښې، چه هر کله د آدم علیه السلام |
|---|---|

غوره والے په فرښتو ظاهر شو۔ او په دلیلونو دا خبره ثابته شوه چه د خلافت او نیابت د صلاحیت او اهلیت د پاره چه د کومو علمونو حاجت دے، هغه ټول په آدم علیه السّلام کښے را جمع شوی دی او فرښتو ته له دے علمونو نه بعض حاصل دی۔ او پیریانو ته خو ډیر کم حاصل دی۔ او دے خاص حیثیت له مخه چه د ملائکو او پیریانو د دواړو ډلو د علمونو، آدم علیه السّلام جمع کوونکے وو نو د ده غوره والے په دواړو ډلو ظاهر شو۔ اُس الله پاک ته منظوره دا وه چه دا خبره په معاملے او عمل سره هم ظاهره کړی۔ نو ملائکو او پیریانو ته ئے د آدم علیه السّلام د خاص قسم تعظیم کولو حکم اُکړو، چه له دے نه دا ظاهره شی چه دے د دواړو نه کامل او جامع دے۔ یعنی آدم علیه السلام په د غه خاص علمونو کښے د ملائکو او د پیریانو نه کامل دے۔ او د دے دواړو علمونه او قوتونه په ده کښے جمع دی۔ د غه تعظیم د پاره چه کوم عمل تجویز کړے شو د هغے ذکر دا سے فرمائی چه موږ فرښتو ته حکم اُکړو چه آدمؑ ته سجده اُکړئ۔ ټولو ملائکو سجده اُکړه مګر ابلیس د سجدے کولو نه انکار اُکړو او تکبر ئے اُکړو۔

**آیا د سجدے حکم پیریانو ته هم شوے وو؟**

په دے آیت کښے چه کومه خبره په ډاګه ذکر ده هغه دا ده چه آدم علیه السّلام ته د سجدے کولو حکم ملائکو ته شوے وو، لیکن دے نه پس، ذکر شوے استثنا نه چه" ټولو ملائکو سجده اُکړه مګر ابلیس اُ نکړه" دا ثابته شوه، چه آدم علیه السلام ته د سجدے کولو حکم په هغه وخت کښے ټولو خاوندانو عقل ته وو، چه په هغے کښے ملائکے او پیریان ټول داخل دی۔ لیکن ملائکو ته په حکم کولو اکتفا ئے د وجے ده چه ملائکے د ټولو نه غوره او اشرفے وے، نو دے اشرفو ته حکم ورکول پیریانو ته په سر کښے ځکه وو چه پیریان د ملائکو نه زیات (اشرف) نه دی۔

**د تعظیم سجده په رومبو اُمتونو کښے رواوه، په اسلام کښے منع ده**

په دے آیت کښے فرښتو ته حکم ورکړے شوے دے، چه آدم علیه السّلام ته سجده اُکړئ او په سورت یوسف کښے ذی چه" هرکله د یوسف مور او پلار او رونړه مصر ته اُورسیدل نو دوئ یوسف علیه السلام ته سجده اُکړه "۔ دا خو ظاهره خبره ده چه دا سجده د عبادت د پاره کیدے نشی۔ ځکه چه د الله پاک نه سوا د بل چا عبادت کول شرک او کفر دے، او په هیڅ وخت او شریعت کښے دا روا نه ده۔ د پخوانو پیغمبرانو په زمانه کښے د تعظیمی سجدے هغه درجه ده کومه چه زمونږ په زمانه کښے سلام

مصافحه، معانقه یا لاس ښکلول لري۔

امام جصاص په احکام القرآن کښې دغه لیکلي دي، چه د وړاندې نیو پیغمبرانو په شریعتونو کښې د مشرانو دَ تعظیم د پاره سجده کول روا وو۔ دا صرف د شریعتِ محمدي خاصه ده، چه دغه سجده منسوخه شوه او د لویو د تعظیم د پاره صرف د سلام او د مصافحې اجازت ورکړې شو۔ د رکوع، سجدې، یا د مانځه په شان لاس په نامه اُودرېدل ناروا دي۔

دَ دې خبرې وضاحت داد ے، چه کُفر، شِرک او د غیر الله عبادت کول د ایمان دَ اصولو نه خلاف دي۔ دا چرې هم د چا په شریعت کښې روا کیدې نشي۔ لیکن څهٔ عملونه داسې دي چه پخپله خو شرک او کُفر نهٔ دي لیکن د خلقو د ناپوهئ او غفلت په وجه دغه افعال او اعمال د شرک او کفر ذریعه جوړیږي۔ داسې کارونه د وړاندې نیو پیغمبرانو په شریعتونو کښې مطلقاً منع شوي نهٔ وو، بلکه د دې خبرې نه منع شوي وو چه دغه افعال او اعمال د کُفر او شِرک ذریعه جوړه نشي، لکه د ځناورو تصویر جوړول او د اسې د الولو پځپل ځائ کښې کُفر او شرک چه نهٔ دې نو له دې وجې په پرومبو شریعتونو کښې جائز وو لکه د حضرت سلیمان علیه السّلام په قصه کښې دي:۔

| | |
|---|---|
| يَعْمَلُوْنَ لَهٗ مَا يَشَآءُ مِنْ مَّحَارِيْبَ وَتَمَاثِيْلَ (۱) | پیریانو به دهٔ د پاره لوئې محرابونه او تصویرونه جوړول۔ |

هم دغه شان تعظیمي سجده په پرومبو شریعتونو کښې روا وه لیکن آخرکار د خلقو د جهالت له وجې دا څیزونه دَ شرک او بُت پرستئ ذریعې جوړې شوې او له دغه لارې او خوا د پیغمبرانو په دین او شریعت کښې تحریف او شو۔ بیا نورو پیغمبرانو او نورو شریعتونو دا ورکه کړې ـــــ هرکله چه شریعتِ محمدي ابدي دې۔ په نبي صلی الله علیه وسلم نبوت او رسالت ختم دے او دغهٔ شریعت آخري شریعت دے، نو له دے وجې دَ دغه شریعت د بچ کولو د پاره د مسخ او تحریف هر هغه لار بنده کړې شوه کومې نه چه دَ شرک او بُت پرستئ د راتلو ویره کیدې شوه۔ نو په دغه لړ کښې هغه ټول څیزونه په دې شریعت کښې حرام کړې شو، کوم چه څهٔ وخت کښې د شرک او بُت پرستئ ذریعې کرځیدلې وه۔ تصویر جوړول او د هغې استعمال، د تعظیم سجده له دې وجې حرامه شوه چه دا چرته څهٔ وخت کښې د شِرک ذریعه جوړه نشي۔ هم دغه رنګ په هغه د ختونو کښې مونځ کول حرام

(۱) السبا: ۱۳

کړے شو چه کوم وختونو کښې مشرکان او کافران د خپلو معبودانو عبادت کوی، دا ځکه چه دا ظاهری مطابقت څه وخت د شرک ذریعه او لاره جوړه نشی۔

د صحیح مُسلم په حدیث کښې دی چه نبی صلی الله علیه وسلّم مالکانو ته اوفرمائیل چه خپل غلام "عبد" ، یعنی خپل بنده مهٔ وایئ۔ او غلامانو ته ئے دا حکم اُکړو، چه خپلو مالکانو ته خپل رب مهٔ وایئ۔ حال دا دے چه دَ لفظی معنے له مخه خو دعبد معنی ده غلام او د رب معنیٰ ده پالونکے او تربیت کوونکے۔ ددا سے الفاظو منع کول پکار نهٔ وو لیکن صرف په دے وجه چه د دے الفاظو کښې دَ شرک وهم شته۔ له دے وجه دَ دے الفاظو استعمال منع کړے شو چه د تاپوهئ له کبله د مالکانو د عبادت یو وَتکے هم اُ نهٔ مُوندے شی۔

خُلاصه دا چه سجدهٔ تعظیمی کومه چه د پخوانو پیغمبرانو په شریعتونو کښې روا وه۔ شریعتِ محمدی کښې له دے وجے منع شوه، چه شریعتِ محمدی د کفر او شرک د بُو یُئ نه هُم پاک اوبخ پاتے شیٔ۔ نو په دے وجه په شریعت محمدی کښے د الله پاک نه سِوا بل چا ته د تعظیم په اراده سجده یا رکوع کول جائز نشو۔

بعض عالمان وائی۔ مُونځ اصل عبادت دے، چه د څلورو کارونو نه جوړ دے۔ ولاړه، ناسته، رکوع او سجده۔ په دوی کښې پُرومبی دوه، یعنی ولاړه او ناسته خو داسے کارونه دی، چه عادةً بنیادم د خپل حاجت د پاره هم کوی او عبادةً په مانځهٔ کښې هم۔ لیکن رکوع او سجده داسے کارونه دی چه دا انسان عادةً نهٔ کوی بلکه دا دواړه د عبادت سره خاص دی۔ نو په دے وجه دا دواړه په شریعتِ محمدی کښې د عبادت حکم او اتو ظاهری او دبل چا د پاره منع کړے شوی دی۔

یو سوال دا پاتے شو، چه هرکله د سجدهٔ تعظیمی جواز د قرآن د دغو ذکر شوو آیاتونو نه په نورو شریعتُونو کښې ثابت شونو په شریعتِ محمدی کښے دَ دے دَ منسوخ کیدو دلیل څهٔ دے او ناسخ ئے کوم دے؟

دَ دے جواب دا دے، چه د نبی صلی الله علیه وسلّم د متواترو احادیثو نه د تعظیم د سجدے حرمت ثابت دے۔ رسُول الله صلی الله علیه وسلّم فرمائیلی دی، کچرے ما دَ الله پاک نه سوا بل چا ته دَ تعظیم سجده روا کړے نو ما به ښځے ته حکم ورکړے وے چه هغهٔ خپل خاوند

ته سجده کوی" لیکن په دے شریعت کښے د تعظیم سجده مطلقاً حرامه ده نو په دے وجه
هیچاله هیچا ته روا نهٔ ده)

دا حدیث شلو صحابه کرامو رضی روایت کړے دے. د اصول حدیث مشهور کتاب
تدریب الراوی کښے ذکر دی چه د کوم حدیث روایت لسو صحابوٴ ته اُرسی نو هغه حدیث
متواتر کیږی چه د قرآن په شان قطعی وی. د لته خو دغه برنے حدیث شل صحابهٴ
روایت کوی. د دغه شلو صحابو روایتونه حضرت حکیم الامت تهانویؒ د بیان القرآن په
حاشیه کښے جمع کړی دی.

مسئله :- د ابلیس کفر، او کافر کیدل، صرف د عملی نافرمانئ نتیجه نهٔ وه، ځکه د
شریعت په اصولو کښے فرض عملاً پریخودل فِسق او گناه ده، خو کفر نهٔ دے، د ابلیس
د کافر کیدلو اصلی سبب د حکم ربانی معارضه او مقابله کول وو. معارضه په دے شکل
چه تا، چا ته د سجدے کولو حکم ما ته کړے دے هغه د دے قابل نهٔ دے چه زهٔ هغهٔ ته
سجده اُکړم. او دا معارضه بے شکه کفر دے.

مسئله :- دا خبره د فکر او غور وړ ده، چه ابلیس په علم او معرفت کښے هغه درجه
ترله د کوم له وجے چه دهٔ ته "طاؤس الملائکة" ویلے شو. نو سره د دے علم او
معرفت له دهٔ نه دا سے کار څهٔ رنګ اُشو؟ بعضے عالمان وائی چه د دهٔ د تکبر په وجه الله پاک
له دهٔ نه خپل ورکړے معرفت او علم واغستهٔ. ځکه دے د داسے جهالت کار اُکړو. بعضے
وائی چه حُبّ جاه او خود پسندئ په دے بلا کښے مبتلا کړو.

په روح المعانی(۱) کښے دی چه، د دے آیت نه دا ثابته شوه، چه ایمان هغه معتبر دے
چه د آخر عمر او د آخرت په ړومبی پړاؤ کښے سره وی. په موجوده ایمان،
عمل او علم باندے مغروره کیدل پکار نهٔ دی.

وَقُلْنَا يَا آدَمُ اسْكُنْ أَنْتَ وَزَوْجُكَ الْجَنَّةَ وَكُلَا مِنْهَا
او موږ اُوے اے آدمه! او سه ته او ستا ښځه په جنت کښے او خورئ په دے کښے

رَغَدًا حَيْثُ شِئْتُمَا وَلَا تَقْرَبَا هَٰذِهِ الشَّجَرَةَ فَتَكُونَا مِنَ
چه څهٔ ستاسو خوښه شی او چرته کښے خوښه شی او نزدے کیږئ مه دے اُونے ته بیا به تاسو شئ

(۱) ص: ۲۳۱

الظّٰلِمِيْنَ ﴿۳۵﴾ فَاَزَلَّهُمَا الشَّيْطٰنُ عَنْهَا فَاَخْرَجَهُمَا مِمَّا كَانَا فِيْهِ

ظالمان نو اُخوئیول دوئ لره شیطان د هغه ځائے نه او ویستل دوئ د هغه عزت او راحت نه چه

وَقُلْنَا اهْبِطُوْا بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ وَلَكُمْ فِي الْاَرْضِ

په هغې کښے دوئ وو او مونږ اُووے تاسو ټول کوز شئ تاسو به د یو بل دښمنان یئ او تاسو د پاره په زمکه کښے

مُسْتَقَرٌّ وَّمَتَاعٌ اِلٰى حِيْنٍ ﴿۳۶﴾

اُستوګنه او فائده اَخستل دی د یو وخت پورے

**لنډ تفسیر:-** او مونږ حکم اُکړو چه اے آدمؑ اُسد ته او ستا بی بی (چه هغه الله پاک په خپل کامل قدرت سره د آدم علیه السّلام د پښتئ د څخه ما دے نه پیدا کړے وه) په جنت کښے خورئ دواړه چه څهٔ مو خوښ شی او کوم ځائے کښے موږ خوښ شی او نزدے مهٔ ځئ دغے اونے ته کنے تاسو به هُم په هغه خلقو کښے شمیر شئ کومو چه خپل نقصان کړے دے (الله پاک ته پته ده، چه دا اُونه د څهٔ وه. لیکن د هغے نه د خوړلو منع ئے کړے وه. او بیا مالک ته خو اختیار وی، چه د خپل کور د څیز د نه، غلام ته د کوم څیز د استعمال اجازت ورکوی او د کوم اجازت نهٔ ورکوی) نو او خوئیول آدمؑ او حواؑ لره شیطان د هغے اُونے په وجه. نو لرے ئے کړل د هغه زندګئ نه چه په هغے کښے دوئ وو - او مونږه اُوے چه لاندے کوز شئ، په تاسو کښے بعضې د بعض به دښمنان وی او تاسو له په زمکه پانډے د څهٔ وخته پورے پاتے کیدل دی - او کارکول او چلول دی د یو معلوم نیټے پورے (یعنی هلته په زمکه اُستوګنے هم همیشګئ نشته - د څهٔ وخت د تیرولو نه پس د غه کور پریښودل به هم وی)

## علوم او مسئلے

دا، د آدم علیه السلام د قصے تکمله ده، چه هغے کښے دا بیان شوے دے چه کوم وخت ملائکو ته د آدم علیه السلام غوروالے او د ذمے د پاره د خلافت صلاحیت ظاهر شو، نو هغوئ دا خبره او منله او ابلیس د خپل تکبر او عناد په وجه او نهٔ منله، او په دے وجه کافر شو او د هغه ځائے نه اُوشړلے شو، نو آدم علیه السلام او د هغه بی بی حوا

ته دا حکم ورکړے شو، چه تاسو دواړه په جنت کښے اُسئ او د جنت د نعمتونو نه فائده اخلئ. لیکن یو خاص اُونے ته مه ځئ او د هغے نه مه خورئ. شیطان چه د آدم علیه السّلام په وجه مردُود شوے وو. په زړهٔ کښے ئے د آدم علیه السّلام تاچولے وه. په چل ئے موقعه پیدا کړه. غلطے او دروغ فائدے ئے آدم او حوا ته اُښودلے او دا دواړه ئے د هغه اُونے نه خوراک کولو ته راواړول. په د غه غلطئ کولو سره دوئ ته حکم اُکړے شو، چه اُس تاسو زمکے ته لاړشئ او هلته اُوسئ. او دا هم ورته او ښودلے شو چه دز مکے استوګنه د جنت په شان نهٔ ده، بلکه دَ زمکے استوګنه کښے به دَ یو بل ترمینځه اختلاف او دُښمنیانے وی، چه هغه سره به د ژوند لطف او مزه نهٔ وی.

وَقُلْنَا يٰٓاٰدَمُ اسْكُنْ اَنْتَ وَزَوْجُكَ الْجَنَّةَ. "او مونږ ه اُوے چه اے آدمٔ ته او ستا ښځه په جنت کښے اُوسئ" دا واقعه د حضرت آدم علیه السّلام د پیدا کیدلو نه، او دهٔ ته د ملائکو د سجدے کولو نه پس ده. بعض علماؤ له دے نه دا نتیجه اُ ښکلے ده چه دَ تخلیق او دَ سجدے واقعه د جنت نه بهر چرته شوے ده. او دے نهٔ ستو دوئ جنت ته داخل شوی دی لیکن په دے الفاظو کښے دا مطلب او مفهوم یقینی نهٔ دے بلکه دا هم کیدے شی چه تخلیق هم په جنت کښے شوے وی او د سجدے واقعه هم په جنت کښے پیښه شوی وی لیکن تر د غه وخت پورے دوئ ته څهٔ فیصله آؤرولے شوے نهٔ وه چه دَ دوئ د پاتے کیدو او دَ استوګنے ځائے به چرته وی. دے واقعے نه پس دا فیصله واؤرولے شوه

وَكُلَا مِنْهَا رَغَدًا حَيْثُ شِئْتُمَا. دَ "رَغَدًا" معنیٰ په عربی لغت کښے هغه نعمت او رزق دے، چه دَ هغے په حاصلولو کښے څهٔ محنت او تکلیف نهٔ وی. او دو مره ډیر هم وی چه دَ ختمیدو ویره ئے بالکل نهٔ وی. نو معنیٰ دا رنګ شوه چه آدم او حوا علیهما السّلام ته اُوفرمائیلے شو چه د جنت میوه په فراخئ خورئ. تاسو ته به نهٔ د دے په حاصلولو کښے څهٔ تکلیف وی. او نهٔ دا فکر چه دا چرته ختمه نهٔ شی.

"وَلَا تَقْرَبَا هٰذِهِ الشَّجَرَةَ" "یو خاص اونے ته دا شارے کولو نه پس اُوئیلے شو چه دے ته نزدے هم مهٔ ځئ. اصل مقصد خو دا وو، چه دَ دے میوه مهٔ خورئ لیکن دَ تاکید او څرګوالی د پاره ئے دا تعبیر غوره کړو چه د دے نزدے مهٔ ځئ. او مطلب ترے دا دے، چه د خوراک د پاره د دے اُونے ته نزدے مهٔ ځئ. دا اُونه کومه اُونه وه ؟

قرآن دا متعینه کړې نهٔ ده۔ او نهٔ څهٔ په مُستند او معتبر حدیث کښې دَ دے تعین کړے شوے دے۔ دَ تفسیر په اِماماتو کښې بعض دا او نهٔ د غنمو اُو نه یعنی بُوټے کړی. او څوک دَ انګور او څوک دَ اِنځر۔ لیکن چه کوم څیز، قرآن او حدیث مبهم، غیرمعلوم پریښودے وی د هغې په تعیین کښې څهٔ فائده نهٔ وی۔ (قرطبی)[1]

فَتَكُونَا مِنَ الظّٰلِمِيْنَ ۔ یعنی کچرے تاسو دَ دغه منع کړے شوے اُونے نه خوراک اُکړو نو ۔۔۔ په ظالمانو کښې به داخل شئ۔

فَاَزَلَّهُمَا الشَّيْطٰنُ عَنْهَا ۔ د "زِلَّة" معنیٰ په عربي لغت کښې لغزش او خویدل دی. او د اِزلال معنیٰ ده څوک خویول ۔ معنیٰ دا شوه چه شیطان آدمؑ او حواؑ اوخویول دَ قرآن دا الفاظ په صافه دا که دا ظاهروی چه د حضرت آدم او حوا علیهما السّلام دا خلاف کول دا سے نهٔ وو لکه چه څرنګے عام ګنهګاران ئے کوی؛ بلکه د شیطان د اشتباه اچولو نه، په دوکه کښې د غور حیٔید لوسره دا سے عمل کولو پیښه اُوشوه، چه د کومے اُونے نه منع شوی وُو د هغې میوه ئے اُخوړه۔ په عَنْهَا کښې د عن لفظ د سبب دپاره دے۔ یعنی د هغې اُونے په سبب او ذریعے شیطان آدمؑ او حوا علیهما السّلام په لغزش کښې مبتلا کړهٔ۔

دلته یو سوال داکیږی چه هرکله شیطان، د سجدے کولو نه دا نکار په وجے د جنت نه اُ ښکلے شو، نو دے دآدم او حواء علیهما السلام د غولَولو دپاره جنت ته څنګه اُرسیدهٔ. دَ دے صفا سُوتره جواب دا دے چه د شیطان د غولَولو دپاره او هلته د رسیدلو دپاره ډیر صورتونه کیدے شی۔ دا هم ممکنه ده، چه د ملاقات نه بغیر، شیطان د هغوئ په زړهٔ کښے وسوسه اچولی وی۔ او دا هم کیدے شی چه شیطان د پیریانو له نسله دے او الله پاک پیریانو ته په ډیرو تصرفاتو او کارونو باندِ قُدرت ورکړے دے، چه عام طور ئے بنیادم کولے نشی۔ دوئ ته ئے په مختلف شکل کیدلو قُدرت ورکړے دے۔ نو کیدے شی چه دهٔ د خپل قوّتِ جِنّیه په ذریعے دَ مسمریزم په صُورت دَ آدمؑ او حواءؑ په ذِهن اثر کړے وی۔ او دا هم کیدے شی، چه په څهٔ دویَم شکل، یعنی د مار و غیره په شکل جنّت کښې داخل شوے وی۔ او شاید د غه وجه وه چه آدم علیه السّلام ته د دهٔ دُښمنی خیال رانغلو۔ دَ قرآن آیت: وَقَاسَمَهُمَاۤ اِنِّیْ لَكُمَا لَمِنَ النّٰصِحِیْنَ نه معلومیږی چه شیطان صرف د وسوسے او په ذهن د اثر کولو په ذریعه کار کړے نهٔ وو بلکه آدم او حوا علیهما السّلام

[1] ص: ۳۰۵

سره مخامخ خبرے شوے کړے وے او قسمونه ئے ورته خوړلی وو۔

فَاَخْرَجَهُمَا مِمَّا كَانَا فِيْهِ ۔ یعنی شیطان په دغه دوکه او لغزش آدم او حواء علیهما السّلام له هغو نعمتونو را اُبستل په کوم کښے چه هغوئ په آرام ژوند تیروو ۔ دا اُبستل اګرچه د خدائے په حکم شوی وو، لیکن سبب ئے شیطان وو، نو په دے وجه د اُبستلو نسبت شیطان ته اُوکړے شو۔

وَقُلْنَا اهْبِطُوْا بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ ۚ یعنی مونږ حکم اُوکړو، چه لاندے کوزشئ داسے چه تاسو کښے به بعض د بعضو دښمنان وی"۔ د دے حکم مخاطبین حضرت آدم او حواء علیهما السّلام دی۔ او که چرے شیطان تر دے وخت پورے د آسمانونو نه اُبستلے شوے نهٔ وے، نو هغهٔ هم په دے خطاب کښے شامل دے۔ او په دے صورت کښے د یو بل سره د دښمنئ مطلب به دا وی، چه شیطان سره ستاسو د دښمنئ سلسله به په دُنیا کښے هم جاری وی۔ او که چرے د بعض علماؤ په وینا، چه د دے واقعے نه مخکښے شیطان اُبستلے شوے وو، نو بیا د دے کلام رُخ، یعنی خطاب "آدمؑ" او "حواءؑ" او د دوئ اولاد ته دے۔ چه د زورنے په ډول ئے دا اُورو ے، چه یوه سزا خو دا ده چه د جنّت نه په زمکه کوز شوئ، دویمه سزا دا ده چه ستا د اولاد په مینځ کښے به دښمنیانے وی۔ او دا معلومه خبره ده چه د اولاد د یو بل سره په دُښمنئ سا تلو کښے د مور او پلار د ژوند ټول خوند ختمیږی؛ دا هم یو معنوی او رُوحانی سزا شوه۔ (بیان القرآن)[1]

وَلَكُمْ فِي الْاَرْضِ مُسْتَقَرٌّ وَّمَتَاعٌ اِلٰى حِيْنٍ یعنی آدم او حواء علیهما السلام ته دا اِرشاد هُم اُوکړے شو، چه تاسو به تر څهٔ وخت پورے په زمکه باندے استوږنه کوئ او تر خاص معین وخت پورے به د زمکے کارچلوئ۔ مطلب دا چه په زمکه د تلو مطلب دا نهٔ دے چه تاسو به هلته همیشه یئ۔ بلکه د څهٔ مُودے تیرولو نه پس به دا کور هُم پریږدئ۔

---

د آیاتونو مذکورو نه متعلقه مسائل او احکام را اُبستل

اُسْكُنْ اَنْتَ وَزَوْجُكَ الْجَنَّةَ کښے آدم او حواء علیهما السّلام دواړو ته دا ارشاد دے، چه جنّت ځان د پاره د استوږنے ځائے جوړ کړئ۔ یعنی تاسو دواړه په جنّت کښے اُسئ نو د دے مقصد د پاره مختصر تعبیر د عربئ "اُسکنا" شو، خو دلته د "اُسکنا" په ځائے د اُسْكُنْ اَنْتَ

وَزَوجُكَ" تعبیر غوره کړلو کښې مخاطب صرف آدم علیه السّلام شو او دوهٔ ته
یې اُو فرمائیل ـــ چه ستا ښځه دِ هم په جنت کښې وی۔ نو په دا سې وینا کښې
دوؤ مسئلو ته اشاره ده :۔

مسئله :۔ اول دا چه د ښځې دَ اُستوګنې انتظام د خاوند په ذمه دے۔ دویم دا
چه ښځه په استوګنه کښې د خاوند تابع ده، چه په کوم مکان کښې خاوند اوسی
په هغې کښې دِ دا اوسی۔

مسئله :۔ "دَ اُسْكُنْ" په لفظ کښې هم اشاره ده چه په د غه وخت کښې دَ دواړو
دپاره په جنت کښې استوګنه عارضی وه، دائمی استوګنه چه هغه د ملکیت
شان دے، هغه نهٔ وه، ځکه چه دَ "اُسْكُنْ" دَ لفظ معنیٰ دا ده چه په دے مکان
کښې اوسه۔ د "اُسْكُنْ" دا معنیٰ نهٔ ده چه دا مکان تا ته درکړے شو، دا
ستا مکان دے۔ وجه دا ده چه دالله پاک په علم کښې وه چه آئنده دا سې حالات
را تلونکی دی چه آدم او حواء علیهما السّلام ته د جنت مکان پرېښودل راځی۔
او ورسره دا هم ده، چه د جنت د ملکیت حقداری د ایمان او عمل صالح په عوض
حاصلیږی، چه هغه به د قیامت نه روستو وی۔ له دے نه فقهاؤ دا مسئله راویستے
ده چه کهٔ چرے یو سړے بل سړی ته دا اُوائی چه زما کور کښې اوسه۔ یا دا چه زما
کور ستا د استوګنے ځائے دے۔ په دے وینا دے سړی ته د دے مکان د ملکیت
حقداری نهٔ حاصلیږی (قرطبی)(۱)

**په غذا او خوراک کښې ښځه د خاوند تابع نهٔ ده**

وَكُلَا مِنْهَا رَغَدًا، یعنی تا سو دواړه د جنت
نه په آزادئ خورئ۔ د لته د وړاندینی طرز
په څول یواځې خطاب آدم علیه السّلام ته اُنهٔ شو، بلکه دواړو ته ئے په یو لفظ
کښې په شریکه اُ فرمائیل۔ یعنی دَ "كُلَا" په لفظ سره۔ په دا سې کولو کښې د دے خبرے
ته اشاره ده چه په غذا او خوراک کښې ښځه د خاوند تابع نهٔ ده۔ هغه د خپل ضرورت
او دَ خواهش په وخت کښې د خپلے مرضئ مطابق خوراک کولے شی۔

**په هر ځائے کښې ګرځیدل راګرځیدل د بنیادم فطری حق دے**

رَغَدًا حَيْثُ شِئْتُمَا ۔ دَ رَغَدًا لفظ په
خوراکولو کښې کثرت او وسعت ته اشاره ده۔

چه څوک څومره غواړي خوري دِ ماسوا د یوے اُونې نه او په څهٔ څیز کښې بندیز نشته. او د "شِئۡتُمَا" لفظ کښې د مقامونو فراخئ ته اشاره ده. یعنی په ټول جنت کښې، چه کوم ځائے کښې غواړئ او څهٔ رنګ غواړئ خورئ. یوه علاقه هم داسے نشته چه هلته په تګ باندِ بندیز وی. په دے کښې اشاره دے خبرے ته ده، چه په تلو راتلو او کر ځیدو راګرځیدو کښې او د مختلفو ځایونو نه خپل ضرورتونه پوره کول د بنیادم پیدائشی حق دے. یو معلوم او محدود ځائے کښې که چرے د ضرورت ټول څیزونه مهیا کړے شی، لیکن د هلته نه بهر تلل بند کړے شی، نو دا هم یو قسم قید دے. نو په دے وجه حضرت آدم علیه السّلام ته د خوراک څښاک څیزونه په فراخئ سره ورکولو باندِ بس والے اُونکړے شو بلکه د "حَیۡثُ شِئۡتُمَا" په وینا سره دوئ ته د ګرځیدو راګرځیدو او هر ځائے ته د تللو آزادی هم ورکړے شوه.

**د ذرایعو د بندیز مسئله** وَلَا تَقۡرَبَا هٰذِهِ الشَّجَرَةَ. یعنی "د دے اُونې ته نزدے مهٔ ځئ". ظاهره ده چه د دے اصل مقصد خو دا وو چه دا اونه یا د دے میوه مهٔ خورئ. لیکن احتیاطی حکم دا اُکړے شو چه دے ته نزدے مهٔ ځئ، نو له دے نه د اصولِ فقه د "سَدِّ ذرائع" مسئله ثابته شوه. یعنی بعض امور پخپله ناروا او منع کړے شوی نهٔ دی، لیکن چه کوم وخت دا خطره وی چه له دغه امورو به څهٔ ناجائز حرام کار کښې اخته کیدل وی، نو دغه جائز هم منع کوے شی. لیکن چه اُونې ته نزدے کیدل اونې نه د هغې د میوے خوړلو ذریعه ګرځیده نو دغه ذریعه ئے منع کړه. دَ دے نوم په اصولِ فقه کښې "سدّ ذرائع" دے.

**دَ پیغمبرانو د عصمت مسئله** له دے واقعے نه دا معلومه شوه چه حضرت آدم علیه السّلام د یوے خاصے اُونې نه منع کړے شوے وو او دَ دے خبرے د ره ته خبردارے ورکړے شوے وو، چه شیطان ستاسو دښمن دے، چرته داسے اُنهٔ شی چه دے تا په ګناه کښې اخته کړی. د دے باوجود آدم علیه السّلام له دے اُونې خوراک اوکړو چه په ظاهره ګناه ده. او حال دا دے چه پیغمبران د ګناه کولو نه پاک دی. تحقیق دا دے چه د ټولو پیغمبرانو پاکی د ټولو ګناهونو نه په عقلی او نقلی دواړو دلیلونو سره ثابته ده. د څلورو امامانو او د جمهورِ اُمّت په دے اتفاق دے چه پیغمبران له ټولو وړو او لویو

ګناهونو نه پاک او محفوظ دي او بعضو خلقو چه دا د ويلي دي، چه واړه ګناهونه له دوی نه کيدے شي، دا خبره د جمهور اُمت په نزد صحيح نهٔ ده (قرطبي)[1]

وجه دا ده چه پيغمبران د خلقو د پاره مقتدا ګڼلے کيږي. کهٔ چرے له دوی نه هم څهٔ، د الله پاک د رضا نه خلاف، خواه کهٔ وړه ګناه وي يا لويه صادر کيدے شي نو له وينا ګانو او افعالو د دوی نه امن پورته کيدے شي او قابل اعتماد به پاتے نهٔ شي. او هر کله چه په پيغمبرانو باندے اعتماد پاتے نهٔ شي، نو دين به د کوم ځائے نه راځي؟ او د دين ځائے به چرته وي؟

هنه، دوهمه خبره ده، چه د قرآن کريم په ډيرو آيا تونو کښے د ډيرو پيغمبرانو متعلق داسے واقعات ذکر دي، چه د هغے نه دا معلوميږي چه له دوی ګناه شوے ده او د الله پاک له طرفه دوی ته عتاب او زورنه هُم ورکړے شوے ده. د حضرت آدم عليه السّلام دا قصه هم په دے کښے داخله ده.

د دا سے واقعاتو حاصل د اُمت په اتفاق سره دا دے، چه په څهٔ غلط فهمۍ يا په خطا او په هيره له دوی نه د غه غلطۍ شوي وي. يو پيغمبر سره د يو څه عمداً د الله پاک د څهٔ حکم خلاف عمل نهٔ کوي. غلطي، اجتهادي کيدے شي، يا د خطا يئ او د هيرے په وجه د معافۍ قابل وي؛ او د غه شان غلطيانو ته د شرع په اصطلاح کښے ګناه ويلے نهٔ شي. او دا د سهو او د هيرے غلطيانے د هغوئ نه په هغه کارونو کښے شوي دي، چه د کوم تعلق د تبليغ او تعليم سره نهٔ وو. بلکه دا سهو او هيرے، له دوئ نه په خپلو کارونو کښے کيدے. (البحر المحيط)

ليکن د الله پاک په نزد د پيغمبرانو مقام ډير لوړ دے او د دوی وړه غوندې غلطي هُم لويه شميرلے شي. هم دا وجه ده چه قرآن کريم کښے داسے واقعاتو ته ګناه ويلے شوے ده او په دے باندے زورنه هم ورکړے شوے ده. اګر چه په حقيقت کښے دا ګناه نهٔ ده.

د حضرت آدم عليه السّلام د واقعے متعلق مفسرينو ډيرے توجيه ګانے ليکلي دي. چه په هغے کښے يو څو دا دي.

يو دا چه کله آدم عليه السّلام ه منع کړے شوے وو، نو يوے خاصے اُونے ا رخ ته اشاره کړے شوے وه او منع کړے شوے وو چه دے ته به نزدے نهٔ ورځئ. او مراد تر دا خاصه معينه اونه نهٔ وه، بلکه د دے جنس ټولے اُونے تر ينه مراد وے، لکه چه په حديث شريف کښے راغلي دي چه رسول د خُدائے يو ځل د ريښمو کپړا او د سرو زرو يوه ټوټه په لاس کښے وا غسته او وے ويل،

چه دا دواړه څيزونه زما د اُمت په نارينوو حرام دي. ظاهره خبره ده چه حرمت صرف د هغې مخصوصې کپړې او سرو سره متعلق نه وو، کومې چه د رسول د خدای په لاس مُبارک کښې وې بلکه د ټولو ريښمينو کپړو او سرو زرو دا حکم دے. ولې دلته دا وهم کيدے شي چه دا منع صرف د هغه کپړے او سرو سره تړلے ده کومے چه هغه وخت د رسولِ خُدا په لاس مُبارک کښې وے. د غه شان دَ حضرت آدم عليه السّلام دا خيال را غلو چه د کومے اُونے اړخ ته دَ منع اشاره شوے ده، هغه منعَ هم د ے سره خاصه ده. شيطان دا وسوسه د هغهٔ په زړهٔ کښې ښکلے او مضبوطه کړه او قسمونه ئے اُخوړل او هغوئ ته ئے دا يقين ورکړو چه زهٔ ستا خيرخواه يم. تا ته دَ څهٔ دا سے کار مشوره نهٔ درکوم چه ستا د پاره منع يا ضرر رسان وي. دکومے چه ممانعت شوے دے هغه بله ده، دد ے اُونے ممانعت نشته — او دا هم کيدے شي چه شيطان دا وسوسه ورله په زړهٔ کښې اچولے وي چه د د ے اُونے نه منع کول صرف ستا د پيدائښت دابتدا د دوخت سره مخصوص وو، لکه چه ماشومان په اول عُمر کښې د قوی خوراک نه منع کولے شي او سپک خوراک ورکيږي او دَ قوت پيدا کيدو نه رُستو د هرخوراک اجازت وي، نو اوس ته قوي شوے ئے نو هغه منع باقي پاتے نهٔ شوه.

او دا هُم کيدے شي چه کله شيطان حضرت آدم عليه السّلام ته دَ د ے اُونے د خوراک فائدے او ښودلے چه دَ د ے په خوراک به دَ هميشه د پاره د جنت په نعمتونو کښې دا وسيدو اطمينان اُشي. د غه وخت هغه ته هغه منع ياده پاتے نهٔ شوه کومه چه دَ پيدائښ دَ ابتدا نه دَ د ے اُونے متعلق شوے وه. د قرآن مجيد آيت "فَنَسِيَ وَلَمْ نَجِدْ لَهٗ عَزْمًا" (۱) يعنی آدم عليه السّلام نه هير شو او موږ په دهٔ کښې پختګی بيا نهٔ مُوندهٔ. دَ د ے احتمال تائيد کوي.

بهرحال دد ے قسمه بے شميره احتمالات کيدے شي چه دَ هغې حاصل دا دے چه حضرت آدم عليه السّلام نافرماني نهٔ وه کړے بلکه هير شوے وو او، يا اجتهادي خطا تر شوے وه، کومه چه په حقيقت کښې ګناه نهٔ ده. ولے دَ آدم عليه السّلام دَ شانِ نبوّت او د الله پاک سره د نزدے کيدو دَ لوئ مقام سره دا لغزش هُم لو ئے اُګڼړلے شو او قرآن کريم کښې له د ے نه په ګناه تعبير اُکړے شو او دَ آدم عليه السّلام دَ توبے او بخښنے غوښتو نه پس ددهٔ دَ معافولو ذِکر اُکړے شو.

او دا بحث بے فائدے دے چه هرکله شيطان د جنت نه اُ ښکلے شو نو بيا هغهٔ څهٔ رنګ دَ آدم عليه السّلام غُلَوَلو دَ پاره، هلته کښې اُرسيدو؟ ځکه چه دَ غُلَوَلو او وسوسے اچولو دَ پاره

ضروري نهٔ ده ، چه جنت ته د ننه شي او د وسوسه پرې واچوي ، پيريانو او شيطانانو ته الله پاک دا قدرت ورکړے دے ، چه دوئ د لرے نه هم وسوسه اچولے شي. او کهٔ چرے دا اُومنلے شي ، چه شيطان ننوتے وو او مخاطب ئے خبرے کړے وے ، نو دغے هم مختلف احتمالات کيدے شي ، چه دَ هغے په تحقيق کښے لګيدل بے فائدے او بے مطلبه بحث دے.

د غه شان دا سوال ، چه آدم او حواء عليهما السّلام وړاندے الله پاک خبر کړی وو. "إِنَّ الشَّيْطَانَ لَكُمَا عَدُوٌّ" چه شيطان ستاسو دُښمن دے ، هسے نه چه دے څهٔ کار له تاسو واخلی ، چه د هغے په وجه تاسو دَ جنت نه اُوځئ. بيا حضرت آدم عليه السّلام دَ دهٔ په دوکه کښے څهٔ رنګه راغے. دَ دے جواب هم دغه دے چه الله تعالیٰ پيريانو او شيطانانو ته په قسما قسم شکلونو کښے د ظاهريدو قدرت ورکړے دے. ممکنه ده چه هغه په يو داسے شکل کښے آدم عليه السّلام ته مخکښے راغلے وی چه په هغے شکل کښے آدم عليه السّلام پيژندو نه ، چه دا شيطان دے.

فَتَلَقّٰى اٰدَمُ مِنْ رَّبِّهٖ كَلِمٰتٍ فَتَابَ عَلَيْهِ ؕ اِنَّهٗ هُوَ التَّوَّابُ

نو زده کړے آدمٔ د خپل پروردګار نه څو خبرے بيا متوجه شو الله پاک په دهٔ باندے بيشکه دے توبه قبلونکے

الرَّحِيْمُ ﴿۳۷﴾ قُلْنَا اهْبِطُوْا مِنْهَا جَمِيْعًا ۚ فَاِمَّا يَاْتِيَنَّكُمْ مِّنِّىْ

او مهربان دے ، موږ حکم اُوکړو. لاندے څئ له دلته نه تاسو ټول ، بيا کهٔ چرے تاسو ته زما له طرفه څهٔ

هُدًى فَمَنْ تَبِعَ هُدَاىَ فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ﴿۳۸﴾

هدايت اُورسي ، نو چه څوک زما په هدايت تلل اُوکړی نهٔ به ويره وی په هغوئ باندے او نهٔ به هغوئ خفه وی

وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَكَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَآ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ هُمْ

او کوم خلق چه منکر دی او زما نښے ئے دروغ اُګڼړلے. دغه خلق دی چه دوزخ ته به ځئ او په دے

فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿۳۹﴾ ع

کښے به هميشه وی.

**لنډ تفسير** :- پس له دے نه حاصل کړهٔ آدم عليه السّلام د خپل پروردګار نه څو الفاظ (يعنی دُعګا

دَ غوښتلو کلمے ، چه هغه هُم د الله پاک نه حاصِلے شوے وے۔ دَ حضرت آدم علیه السّلام په پښیما نه کیدو دَ الله پاک رحمت متوجه شو او دهٔ ته ئے د عذر دَ غوښتلو الفاظ هم ښخیله اُښودل) نو الله پاک رحمت سرهٔ متوجه شو په دوئ باندِ (یعنی توبه ئے قبوله کړه) بے شکه د... یے لوئے توبه قبلوُونکے اولوئے مهربانه (او دَ حضرت حواءَ دَ توبے بیان په سُورت اعراف کښے دے۔ قَالَا رَبَّنَا ظَلَمْنَا اَنْفُسَنَا (۱) له دے نه معلومه شوه چه حضرت حوا هم په توبه کولو او دَ توبے په قبلیدو کښے آدم علیه السّلام سرهٔ شریکه وه، یکن دَ معاف کولو نه پس هُم، زمکے ته د تلو حکم منسُوخ نهٔ شو، ځکه چه په دے کښے په زرګو نو حکمتونه او مصلحتونه پټ وو، البته دَ دے طرز او طریقه ئے بدله کړه ؛ چه اول مینځ حکم زمکے ته د راکوزیدو د یارهٔ (حاکما نه) د سزا په طور وو۔ اُوس دا حکم په حکیمانه انداز کښے دا سے اُشو۔ قُلْنَا اهْبِطُوْا مِنْهَا جَمِيْعًا الاٰية یعنی مونږ حکم اُکړو چه لاندے حُئ لد دے جنته ټول بیا که چرے راشی تاسو ته زما له طرفه څهٔ قِسم هدایت (یعنی دَ وحی په ذریعه احکام شرعیه) نو کوم کَس چه پیروی اُکړی زما دَ دے هدایت، نو نهٔ ډَرُ غم به وی په دوئ باندے او نهٔ دا سے خلق به غمژن شی۔ (یعنی نهٔ به دوئ باندِ څهٔ خوفناکه واقعه راځی- او د قیامت د هولناکو واقعاتو نه دَ دوئ ویرول دَ دے مُنافی نهٔ دی، نکه چه په صحیح احادیثو کښے دی چه په ټولو به ویره وی۔ حُزن هغه کیفیت دے چه د څهٔ ضرر او مصیبت نه پس په زړهٔ کښے پیدا کیږی۔ او خوف همیشه وړاندے پیدا کیږی۔ دلته الله پاک دَ ویرے او دَ غم دواړو نفی اُوکړه ، ځکه چه په دوئ باندے څهٔ دا سے آفت او تکلیف راتلونکے نهٔ وی چه هغه سبَب دَ ویرے او دَ غم کرځئ۔ بیا دے پسے د هغو خلقو دَ حال بیان دے چه په دے هدایت عمل اُ نه کړی، نو فرمائی چه) او کوم خلق چه کُفر اُکړی او دروغژن کړی زما حکمونه، دا خلق به وی دوزخ والا او دوئ به په دے کښے همیشه اُسی۔

## علوم او مسئلے

**دآیا تونو دیوبل سره تړون** په مخکښے آیاتونو کښے د شیطان دَ وسوسے، او د حضرت آدم علیه السّلام د لغزش او د هغے په نتیجه کښے دَ جنت نه دَ تلل او زمکے ته دَ راتلو دَ حکم ، ذکر وو۔ حضرت آدم علیه السّلام دَ زور نے دا سے خطاب چرته آوُرِیدلے نهٔ وو۔ او نهٔ دومرهٔ دَ ملک زړهٔ خاوند وو، چه په دے ئے پروا نه راتله ، نو ضرور بے آرامه شو او فوراً ئے

د معافئ التجاء کول شروع کړل، لیکن پیغمبرانه معرفت او د دے له وجے دانتهائ هیبت له زوره د ژبے نه څه خبره وتله، یا له دے وجے نه وتله چه دیره ئے وه چه چرته د معافئ التجا خلاف شان نه وی چه د هغے په وجه د زیاتِ زور نه سزاوار نه شم. ژبهٔ بالکل چپ چاپ وه- الله پاک خو د زړونو د خبرو واقف دے او رحیم او کریم هم دے. چه دا حالت ئے اولیدو، پخپله ئے د معافئ د پاره څو کلمے هغهٔ ته اوښودلے. د دے بیان په دے آیاتونو کښے دے چه: آدم علیه السلام حاصل کړل د خپل پروردګار نه څو الفاظ، نو الله پاک په دوئ باندے په رحمت سره توجه اُوکړه (یعنی د دوئ توبه ئے قبوله کړه) بے شکه هغه دے لوئے توبه قبلوونکے او مهربانه (لیکن زمکے ته په راتلو کښے نور هم په زرګونو حکمتونه او مصلحتونه پټ وو، مثلاً د دوئ د نسل نه د فرښتو او پیریانو په مینځ کښے یو نوے قسم مخلوق بنیادم پیدا کول او دوئ ته یو قسم اختیار ورکول او په شرعي احکامو مکلّف کول، بیا په دوئ کښے خلافتِ الٰهیه قائمول، د حدودو او د شرعي احکامو جاری کول، د دے د پاره چه دا نوے مخلوق ترقی اوکړی او هغه ځائے ته اُورسی کوم ته چه فرښتے هم نه دی رسیدلی- او د دغه مقصد د نو ذکر د آدم علیه السلام د پیدا کولو نه مخکښے کړے شوے وو چه: "اِنِّیْ جَاعِلٌ فِی الْاَرْضِ خَلِیْفَةً"

نو له دے وجے د خطا مُعاف کولو نه پس هم زمکے ته د را بښکته کیدو حکم منسوخ نهٔ شو- البته د دے حکم طرز بدل شو چه مخکښے حاکمانه وو او د سزا په طور وو- او اُوس حکیمانه او د خلافتِ الٰهیه د اِعزاز سره شو- په دے وجه وروسته آیاتونو کښے د هغو ذمه داریانو ذکر دے چه په یو خلیفة الله باندے لازمیږی- نو په دغه وجه زمکے ته د کوزیدو حکم ئے مُکرّر بیان کړو او وے ویل چه: مونږه حکم اُوکړو چه لاندے ځئ له دے جنته ټول بیا که د چرے تا سو ته زما له طرفه څه قسم هدایت (یعنی احکامِ شرعیه د وحی په ذریعه) راشی نو چه چا پیروی اُوکړه زما د دے هدایت، نو هغهٔ ویره به نهٔ وی په هغوئ باندے او نهٔ به دوئ غمژن کیږی (یعنی نه د څهٔ تیرشوی خیز په فوت کیدلو به دوئ ته غم وی او نهٔ آئنده د څهٔ تکلیف خطره)

تَلَقّٰی: د تلقی معنیٰ ده په شوق او په مینه د چا استقبال کول او هغه قبلول (روح. کشاف)[1]
مُراد دا دے چه د الله پاک له طرفه کله دوئ ته د توبے د کلمو ښودنه اُوکړے شوه؛

(۱) ص: ۲۳۸-

نو آدم علیه السلام دا په ډیر اهتمام قبول کړه۔

کَلِمٰتٍ، هغه کلمې چه آدم علیه السلام ته د توبې دپاره ښودلې شوې وې هغه څه کلمې وې؟ په دې کښې د مفسرینو صحابوٌ نه ډیر روایتونه نقل دي، مشهور قول د حضرت ابن عباسؓ دې چه دا کلمې هغه دي، چه قرآن مجید کښې په بل ځائې کښې نقل دي یعنې: رَبَّنَا ظَلَمْنَآ اَنْفُسَنَا وَاِنْ لَّمْ تَغْفِرْ لَنَا وَتَرْحَمْنَا لَنَكُوْنَنَّ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ ۔

تاب۔ د توبة اصل معنې رجوع کول دي۔ او کله چه د توبې نسبت بنده ته اوشي، نو د هغې معنې د دریو څیزونو مجموعه وي۔ اول خپله کړې ګناه، ګناه ګنړل او په دې پښیمانه کیدل۔ دویم دا چه ګناه پریښودل، دریم دا چه آئنده دپاره د نه کولو پوخ قصد کول۔ که چرې په دې دریو کښې دیو هم کمې وي، نو دا توبه، توبه نه ده: معلومه شوه چه صرف په ژبه وئیل: "الله توبه" د خلاصې دپاره کافي نه وي۔ ترڅو چه دا درې واړه څیزونه جمع شوي نه وي۔ تَابَ عَلَيْهِ۔ د الله د توبې نسبت الله پاک ته شوې دې۔ د دې معنې دا ده۔ "توبه قبلول شوه" د بعض سلفونه پوښتنه اوکړې شوه، چه د چا نه چه څه ګناه اوشي، هغه له څه کول پکار دي؟ نو هغوی اُوئیل چه هغه کول پکار دي کوم چه د دواړو مور پلار آدم او حواء علیهما السلام کړي وو، چه پخپل کړو پښیمانه شو او آئنده د نه کولو مضبوطه اراده ئې اُوکړه۔ الله پاک ته د معافۍ عرض ئې اُوکړو: رَبَّنَا ظَلَمْنَآ اَنْفُسَنَا یعنې "لئې زمونږه پروردګاره مونږه په خپلو ځانونو باندې ظلم کړې دې که چرې ته مونږه معاف نکړې او مونږه باندې رحم اُ نکړې، نو مونږ به په سخت زیان کوونکو کښې داخل شو"۔
د هغه شان حضرت موسیٰ علیه السلام عرض اُوکړو: رَبِّ اِنِّيْ ظَلَمْتُ نَفْسِيْ فَاغْفِرْ لِيْ[1] "اے زما پروردګاره ما پخپل ځان ظلم کړې دې، ته ما اُوبخښې"۔ او حضرت یونس علیه السلام نه چه کله لغزش اوشو نو عرض ئې اُوکړو: لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنْتَ سُبْحٰنَكَ اِنِّيْ كُنْتُ مِنَ الظّٰلِمِيْنَ[2] "یعنې د الله پاک نه سوا څوک د عبادت لائق نه دې۔ ته د هر څه خرابئ نه پاک ئې۔ ځه په ظلم کوونکو کښې داخل شوې یم (مطلب دا چه په ما رحم اُوکړه) (قرطبي)[3]

فائده:۔ د حضرت آدم او حواء علیهما السلام نه چه کوم اجتهادي لغزش اوشوې وو، اول خو قرآن کریم د دواړو ته د دې لغزش نسبت کړې دې، فَاَزَلَّهُمَا الشَّيْطٰنُ عَنْهَا فَاَخْرَجَهُمَا۔ او ورپسې ته د را کوزیدو حکم هم دواړو ته شوې دې۔ حُکه حواء د

اِهْبِطُوا په لفظ آدم علیه السلام سره په دې حکم کښې شریک ده لیکن دُ ستو د توبې قبلیدو په موقع صرف مُفرد لفظ سره د آدم علیه السلام ذِکر را غلو، د حضرت حواء ذِکر نشته. د دې مقام نه علاوه هُم دَ دې لغزش ذِکر صرف د آدم علیه السلام په باره کښې شوے دے، لکه: وَعَصٰٓى اٰدَمُ رَبَّهٗ فَغَوٰى.

کیدے شي چه دَ دې وجه دا رعایت وو چه ښځه الله پاک پټه پیدا کړې ده، له دې وجې د پرده پوشئ په طور دَ ګُناه او زورنے په ذِکر کښې دَ دې ذکر صراحةً اُ نکړو. او یو ځائے رَبَّنَا ظَلَمْنَآ اَنْفُسَنَا کښې د دواړو د توبې ذِکر کړے شوے دے. دا د دې دَ پاره چه چاته دا شُبه پاتے نشي چه دَ حضرت حواء قصور مُعاف شوے نهٔ وو. دے نه علاوه هر کله چه ښځه په اکثرو حالاتو کښې د سړي تابع ده، نو په دې وجه دَ دې مستقل ذِکر ضرورت اُ نه ګڼلے شو (قرطبی)[1]

**تواب او تائب کښې فرق**

امام قرطبی[2] وائي چه د تَوّاب لفظ بنده دپاره هم ویلے شي، لکه: اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ التَّوَّابِيْنَ. او الله پاک دپاره هم لکه په دې آیت کښې: هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ ۝ کله چه بنده د پاره استعمال شي نو بیا معنیٰ ئې ده، دګناه نه دَ اِطاعت طرف ته راګرځیدل، او کله چه الله پاک دپاره استعمال شي، نو معنیٰ ئې ده، توبه قبلوونکے. دا لیواځې دُ "تواب" د لفظ حکم دے. په دې معنیٰ بل لفظ تائبُ دے. د دې استعمال د الله پاک دَپاره روا نهٔ دے. اګرچه دَ لغوی معنیٰ په اعتبار هغه غلط هم نهٔ دے لیکن د الله پاک په شان کښې صرف د هغه صفتونو او لقبونو استعمال جائز دے، کوم چه په قرآن او حدیث کښې راغلی دی. باقی نور الفاظ، اګرچه د معنیٰ په اعتبار درست هم وي لیکن په قرآن او حدیث کښې د هغې استعمال الله پاک دپاره شوے نهٔ وي، دَ داسې الفاظو استعمال الله پاک دپاره درست نهٔ دی.

**د ګناه نه د توبې قبلولو اختیار دَ الله پاک نه سِوا بل چاته نشته**

له دے آیته دا هم معلومه شوه چه، دَ توبې قبلولو او دَ ګناه عفو کولو اختیار، د الله پاک نه سِوا د بل چا نشته. یهُود او نصاریٰ دَ دې قاعدے نه د غفلت په وجه په سخته فتنه کښې مبتلا شوي دي، او پادریانو ته ورځي. او هغوئ ته څهٔ هدیه و غیره ورکوي او خپل ګناهونه پرِ معاف کوي. او داګڼړي او خیال کوي، چه دے پادریانو دا ګناه معاف کړه، نو الله پاک ئې هم معاف کوي. نن هم دغه شان ډیر بې خبره مسلمانان دا سې غلطے او کچه عقیدے لري. یو عالم او پیر دَ چا ګناه په خدائے پاک باندې معاف کولے نشي. زیات نه زیات دومره کولے شي

[1] ص: ۳۲۵ [2] ص: ۳۲۵

چه دُعا اُکړي.

د آدم علیه السلام زمکے ته کُوزیدل د سزا په توګه نه بلکه د یو مقصد دَ پوره کولو دَپاره وو.

قُلْنَا اهْبِطُوْا مِنْهَا جَمِيْعًا - د جنت نه زمکے ته دَ راکوزیدلو حکم دے نه وړاندِ آیت کښے راغلے دے. دلته بیا په دوباره راوړلو کښے غالبًا حکمت دا دے چه په وړومبی آیت کښے زمکے ته دَ راکوزَولو ذِکر د عتاب او سزا په طور راغلے وو نو په هغے کښے د دنیا د مود یو بل سره د دُښمنئ ذِکر هُم اُکړے شو. او دلته کښے په زمکه بانډِ د راکوزَولو ذِکر چه شوے دے، دا دَ خلافتِ الٰهیه د خاص مقصد دَ پوره کولو دَپاره شوے دے او په عزت سره شوے دے. او په دے وجه دے سره دَ هدایت دَ لیږلو ذِکر شوے دے، چه هغه دَ خلافتِ الٰهی دَ منصب دَ فرائضو حِصّه ده. له دے نه معلومه شوه چه زمکے ته د راکوزیدو حکم په اول کښے اګرچه د زورنے او د سزا په طور وو، لیکن رُستو چه کله خطا معاف شوه، نو دَ نورو مصلحتونو او فائدو له مخے زمکے ته د لیږلو د حکم د عنے مکښے حیثیت بدل کړے شو او د زمکے د حاکم په حیثیت را اُلیږلے شو. او دا هغه حکمت دے د کوم ذکر چه د آدم علیه السلام د پیدا کولو په وخت فرښتو سره شوے وو، چه په زمکه کښے دے خلیفه جوړول غواړي.

د فکر او غم نه یواځے هغه خلق خلاصے موی چه دَ الله پاک فرمانبردار وی

فَمَنْ تَبِعَ هُدَايَ فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ۝ په دے آیت کښے دَ آسمانی هدایت تابعداری کوُونکو دپاره دَ دوؤ انعامونو ذِکر دے. یو دا چه په دوی به څهٔ ویره نهٔ وی، دویم دا، چه دوی به غمژن نهٔ وی.

خَوْفٌ د هغه تکلیف او مصیبت د اندیښنے نوم دے، کوم چه په آئنده کښے راتلونکی وی. او حُزن هغه غم ته ویلے شی چه د څهٔ مقصد او مراد د فوت کیدو نه پیدا شی. کهٔ چرے فکر اُکړے شی، نو معلومه به شی، چه د راحت او آرام چه څهٔ قسمونه دی هغه ټول بهٔ په دوؤ ټکو کښے جمع کړی دی. او له دے دوؤ ټکو د راحت او آرام یو قسم هم بهر پاتے نهٔ دے. بیا د دے دوؤ لفظونو په تعبیر کښے یو خاص فرق کړے شوے دے، هغه دا چه د خوف نفی خو په عام انداز سره کړے شوے ده.

. لیکن د حُزن متعلق ئے داندَ ی ویلی چه

لَا خَوۡفٌ عَلَیۡهِمۡ بلکه وَلَا هُمۡ یَحۡزَنُوۡنَ ئے اُ فرمایئل۔ په دے کښے اشاره دے طرف ته ده چه د یو خیز او مراد د فوت کیدلو د غم نه خلاصے صرف د اولیاء الله مقام دے کوم چه د الله پاک په ورکړے شوی هدایت پُوره پُوره عمل کوی او له دوی نه سوا بل بنیادم له دے غم نه خلاصیدے نه شی۔ خواه هغه د اُوو زمکو بادشاه ولے نه وی. ځکه چه په دوئ کښے دا سے خلق دی چه خپله اراده او رضاء د الله پاک په اراده او رضا کښے فنا کړی وی (یعنی چه څه الله پاک کوی په هغې راضی وی) نو په دے وجه دوئ ته د څه خیز په فوت کیدو هیڅ غم نه وی۔ قرآن مجید په بل ځائے کښے دا خبره هم ظاهره کړے ده، چه خاص د جنتیانو به دا حالت وی، چه جنت ته اُرسیږی، نو د الله پاک به شکر ادا کړی چه له دوئ نه ئے غم لرے کړو۔ اَلۡحَمۡدُ لِلّٰهِ الَّذِیۡۤ اَذۡهَبَ عَنَّا الۡحَزَنَ[1] له دے نه دا معلومه شوه چه په دنیا کښے څه نا څه غم کول هر یو انسان نه یو نه جُدا کیدونکے خیز دے، بغیر د هغو کسانو چه د هغوئ تعلق د الله پاک سره ټینګ او مضبوط دی.

په دے آیت کښے د الله والو نه د ویرے او غم د لرے کولو مطلب دا دے چه د دُنیا څه تکلیف، یا د څه خواهش او مراد په نه موندلو، دوئ ته به نه ویره وی او نه غم۔ د آخرت فکر او غم او د الله پاک هیبت او جلال به په دوئ د ټولو خیزونو نه زیات وی۔ له دے وجے د رسول الله صلی الله علیه وسلم په شان کښے دا راغلی دی، چه دوئ به اکثر غمژن او فکرمند وو۔ وجه دا ده چه د دوئ دا فکر او غم د څه دُنیوی نعمت د فوت کیدو یا د څه مصیبت د ویرے نه وو، بلکه د الله پاک د هیبت او جلال او د اُمت د حالاتو د وجے ؤ۔ هم له دے نه لازمیږی چه کوم خیزونه په دنیا کښے خوفناک ګڼلے شی۔ د هغې نه د انبیاء او اولیاء و بشری طور طبعی ویره هم نه وی۔ ځکه چه کوم وخت د حضرت موسی علیه السلام په مخکښے د همسانه مار جوړ شو، نو هغه اُویریدو۔ لکه چه قرآن کریم کښے دی۔ فَاَوۡجَسَ فِیۡ نَفۡسِهٖ خِیۡفَةً مُّوۡسٰی[2]۔ ځکه چه دا فطری او طبعی ویره به رومبو حالاتو کښے وه، چه کوم وخت ورته الله پاک اُفرمایئل، لَا تَخَفۡ ۔ نو دا ویره بالکل اُو وته۔

او دا هم ویلے شی چه د حضرت موسی علیه السلام دا ویره د عامو بنیادمو په شان له دے وجے نه وه چه دا مار به ده ته څه تکلیف او ز سوی بلکه له دے وجے وه چه بنی اسرائیل

چرته له دے نه په ګمراهئ کښے ګیر نشي - نو دا ویره، یو قسم د آخرت ویره ده -

آخری آیت وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا نه دا ښودلے شوے ده، چه کوم خلق د الله پاک د رالیږلی شوی هدایت تابعداری نه کوی نو جهنم به، د هغوی د پاره د همیشه پاتے کید و ځائے وی - او له دے نه مراد هغه خلق دے، چه هغه دا هدایت، هدایت نه ګنړی - او د دے د تابعداریٔ نه انکار کوی - یعنی کافر - او مومنان چه دا هدایت، هدایت ګنړي او منی - او عملاً چه هر څو مره ګنهګاران وی، د خپلو ګناهونو د سزا پوره کولو نه پس به د جهنم نه اُبینکلے شی - وَاللهُ اَعْلَم -

يٰبَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ اذْكُرُوْا نِعْمَتِيَ الَّتِيْٓ اَنْعَمْتُ عَلَيْكُمْ وَاَوْفُوْا

اے بنی اسرائیلو! یادکړئ زما هغه احسان چه ما په تاسو کړے دے او تاسو پوره کړئ

بِعَهْدِيْٓ اُوْفِ بِعَهْدِكُمْ ۚ وَاِيَّايَ فَارْهَبُوْنِ ﴿۴۰﴾ وَاٰمِنُوْا

زما اقرار نو زهٔ به پوره کړم ستاسو اقرار او له ما نه اُویریږئ او ایمان راوړئ

بِمَآ اَنْزَلْتُ مُصَدِّقًا لِّمَا مَعَكُمْ وَلَا تَكُوْنُوْٓا اَوَّلَ كَافِرٍۢ بِهٖ ۠

په هغه کتاب چه ما نازل کړے دے، رښتیا ښودونکے دے د هغه کتاب چه تاسو څخه دے او مه کیږئ سبب اول منکر کیدو د دے

وَلَا تَشْتَرُوْا بِاٰيٰتِيْ ثَمَنًا قَلِيْلًا ۫ وَّاِيَّايَ فَاتَّقُوْنِ ﴿۴۱﴾ وَلَا تَلْبِسُوا

او مه اخلئ زما په آیاتونو لږ پیسے او له ما نه ځان ساتئ او مه ګډوئ

الْحَقَّ بِالْبَاطِلِ وَتَكْتُمُوا الْحَقَّ وَاَنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ﴿۴۲﴾

په حق کښے باطل، او مه پټوئ د رښتیا او تاسو پوهیږئ -

**لنډ تفسیر :-** اے بنی اسرائیلو ؛ ( یعنی د حضرت یعقوب علیه السلام اولاد ) یادکړئ تاسو خلق زما هغه احسانونه، چه کړی دی ما په تاسو ( د دے د پاره چه د نعمت حق او پیژنئ او ایمان راوړل تاسو ته آسان شي - و رپسے د دے یادولو مراد ښائی ) او پوره کړئ زما عهد ( یعنی تاسو په تورات چه کوم د عده او عهد کړے وو، چه د هغے بیان

د قرآن په دې آیت کښې دے: وَلَقَدْ اَخَذَ اللّٰهُ مِیْثَاقَ بَنِیْٓ اِسْرَآءِیْلَ وَبَعَثْنَا مِنْهُمُ اثْنَیْ عَشَرَ نَقِیْبًا[1] (الآیة) پوره به کړمه زهٔ ستاسو عهد (یعنی ما چه کوم عهد تاسو سرهٔ کړے وو ستاسو د ایمان راوړلو په صورت کښې لکه چه د غهٔ برخې ذکر شوی آیت کښې دی: لَاُكَفِّرَنَّ عَنْكُمْ سَیِّاٰتِكُمْ) او صرف له ما اُویریږئ (د خپلو عوامو عقیدتمندُ نه مهٔ ویریږئ، چه د هغوئ عقیدت به په تاسو پاتې نشي او آمدنی به مو بنده شي) او ایمان راوړئ په هغه کتاب چه ما نازل کړے دے (یعنی قرآن باندې) په داسې حال چه هغه رښتیا ښودونکے دے هغه کتاب لره چه تاسو سره دے (یعنی د تورات د خدائې کتاب کېدو اقرار کوی او په دے کښې چه کوم تحریفات شوی دی، هغه د تورات کېدو او انجیل کېدو نه بهر دی، یعنی هغه تورات او انجیل نهٔ دے او د هغې تصدیق دے نه نهٔ لازمیږی) - او مهٔ کېږئ تاسو ړومبی انکارکوونکی دد نے قرآن (یعنی چه تاسو نور خلق اُووینی او انکار د قرآنه په دے وجے اُکړی، چه تاسو کړے دے، نو تاسو به د کُفر او انکار بانیان او سبب اُګرځئ او تر قیامته د دوئ د کفر او انکار وبال ستاسو په عمل نامه کښې به درج کیږی) او مهٔ اخلئ په بدله زما د حکمونو، حقیره او سپکه بدله او خاص له مانه پُوره پُوره اُویریږئ (یعنی د عوام الناس نه د ذلیلے او لږ دے دنیا د حاصلولو د پاره زما حکمونه مهٔ پریږدئ. یا مهٔ بدلوئ یا مهٔ پټوئ، لکه دا ستاسو عادت وو، چه دد دے تصریح ور پسے راځئ. وَلَا تَلْبِسُوا الْحَقَّ بِالْبَاطِلِ) او ګډ نهٔ کوئ حق د ناحق سره او پټوئ مهٔ حق، حال دا دے چه تاسو پوهیږئ هم (چه حق پټول بد خبره ده)

## علوم او مسئلے

**دَ آیاتو نو دَ یو بل سره تړون**

د سُورتِ بقره شروع دَ قُرآن په ذکر اُکړے شوه او دا اُښودے شو، چه دَ قرآن هدایت اګرچه د ټول مخلوق د پاره عام دے، لیکن له دے نه فائده صرف مُومنان اخلی - له دے نه پس د هغو خلقو د سخت عذاب ذکر اُشو، چه هغوئ په دے قرآن ایمان نهٔ راوړی - او په هغوئ کښې یو طبقه په ډاګه د کافرانو او منکرانو ده - دویمه د منافقانو - دَ دواړو ډلو او د هغوئ د خبیثه حالتونو او دَ غلطیانو ذکر اُکړے شو. له دے نه پس مُومنانو، مشرکانو او منافقانو درے واړو ته خطاب اُکړے شو، او ټولو ته په کلکه

[1] المائدة: ۱۲

وېښلې شو چه د يو خدای عبادت کوئ. او د قرآن مجيد د اعجاز ذکر يې اوکړو. بيا لوته يې د ايمان دعوت ورکړو، بيا د آدم عليه السلام د پيدا کولو ذکر اوکړې شو چه له دې نه دوئ ته د خپل اصليت او حقيقت او د الله پاک د قدرت کامله پته اولګي. او د الله پاک د نافرمانئ نه ډېر کېدو په فکر کښې شي.

بيا د کافرو په دغه دوو ډلو کښې، چه د هغې ذکر مخکښې اوشو، دوه قسمه خلق وو، يو بُت پرست مُشرکان، چه محض د پلار او نيکهٔ د رسمونو پابندي به يې کوله. دوئ څخه نهٔ زوړ علم وو او نهٔ نوې. عام طور سره دوئ ته اُمّي ويلې شو. لکه عام اهل مکه.

دويم هغه خلق وو، چه په پخوانو پيغمبرانو باندې يې ايمان وو. او د پخوانو کتابونو تورات انجيل وغيره علم ورسره وو. دوئ ته يوستي خلق ويلې شو. په دوئ کښې بعضو په حضرت موسیٰ عليه السلام ايمان درلو، په عيسیٰ عليه السلام نه درلود. او بعضو په حضرت عيسیٰ عليه السلام ايمان درلو، او موسیٰ عليه السلام يې په حيثيت د معصوم پيغمبر نهٔ منلو. دوئ ته نصاریٰ ويلې شو. دې دواړو ته، په قرآن کښې اهل کتاب په دې وجه ويلې شوي دي چه دې دواړو د الله پاک په آسماني کتاب تورات او انجيل ايمان درلو، دا خلق د نورو خلقو په نظر کښې معزز له دې وجې وو چه دوئ يوستي وو. په خلقو باندې يې د دوئ خبرو اثر کولو. د دوئ په سمه لار راتلو سره د نورو خلقو د مسلمان کېدو لوئې اُميد وو. په مدينه او د مدينې خواوشا کښې دا دې خلقو ګڼړ آلې وو.

سورة بقرة هرکله چه مدني سورت دې، نو په دې وجه د مشرکانو او منافقانو د بيان نه پس اهل کتابو ته په خصوصيت او اهتمام سره خطاب کړې شوې دې. د څلويښتم آيت نه واخله تر يوسل درويشت (۱۲۳) آيا تونو کښې دې خلقو سره مخاطبه ده. چه په دې آيا تونو کښې د دې خلقو د مانوس کولو د پاره اول د دوئ د خاندان د شرافت او دوئ ته په دنيا کښې حاصل شوي عزت او بيا د الله پاک د مسلسلو نعمتونو ذکر شوې دې، بيا د دوئ د بې لارې کېدو ذکر شوې دې او د دوئ سمې لارې د دعوت ورته ورکړې شوې دې. د دې آيا تونو په پخوانو اوو آيا تونو کښې اجمالي خطاب دې، چه په دريو کښې د ايمان دعوت دې او په څلورو کښې د نېکو عملونو دعوت دې. له دې نه پس په لوئې تفصيل سره دوئ ته خطاب کړې شوې دې. د تفصيلي خطاب په سر کښې او بيا بالکل په آخر کښې د اهتمام د پاره د "يا بني اسرآئيل" د الفاظو اعاده کړې شوې ده کوم چه په شروع کښې ويلې شوي وو. دا ځکه چه دا يو ډېر مؤثر او بليغ کلام طريقه ده.

**یٰبَنِيٓ إِسْرَآءِيْلَ** - اسرائیل د عبرانی ژبې لفظ دے - دد ے معنیٰ ده "عبدالله" یعنې د خدائے بنده - دا د حضرت یعقوب علیه السّلام دویم نوم دے - بعضې علماء وائی چه: د نبی صلی الله علیه وسلم نه سوا د بل پیغمبر ډیر نومونه نشته - صرف د حضرت یعقوب علیه السّلام دوه نومونه دی - یعقوب او اسرائیل - دلته په قرآن کښې دوی ته په "یا بنی یعقوب" سره خطاب اُنه کړے شو، بلکه په دویم نوم اسرائیل سره دوی ته خطاب اُشو، په دے کښې حکمت دا دے چه پخپله د لقب او نوم نه دوی ته دا پته اُلګی، چه دوی د الله پاک د سُوچه بنده اولاد دی. نو دوی له هم د غه پکار دی، چه د هغه په نقشِ قدم لاړ شی - په دے آیت کښې بنی اسرائیلو ته ارشاد اُشو چه: **پوره کړئ تاسو زما عهد** یعنې تاسو چه کوم عهد ما سره په تورات کښې کړے وو او د هغې بیان او تفصیل او وضاحت د قتاده رحمه الله او مجاهد رحمه الله په نزد په دے آیت کښې دے: وَلَقَدْ اَخَذَ اللّٰهُ مِیْثَاقَ بَنِيٓ اِسْرَآءِیْلَ اِلٰی قَرْضًا حَسَنًا (پاره ۶، سورة مائده رکوع ۳). په دے کښې د ټولو نه اهمه معاهده، په ټولو پیغمبرانو ایمان راوړل دی، چه په هغې کښې زمونږ پیغمبر صلی الله علیه وسلم په خصوصیت سره داخل دے - مونځ، زکوٰة او صدقات هم په د عهد کښې شامل دی، او د دے عهد خلاصه دا ده چه په رسول کریم صلی الله علیه وسلم ایمان راوړل او د ده مکمل تابعداری کول - نو په دے وجه حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائیلی دی چه د دے عهد مُراد، د محمد صلی الله علیه وسلم تابعداری ده - (ابن جریر)

**پوره به کړم زه ستاسو عهد** یعنې په دغه ذکر شوی آیت کښې الله پاک دا وعده کړے وه، چه کوم خلق دا عهد پوره کړی نو د هغوی ګناهونه به معاف کړے شی او په جنت کښې به داخل کړے شی، نو د وعدے مطابق به دا خلق د جنت په نعمتونو مالا مال او پوره کړے شی۔

لنډه دا چه اے بنی اسرائیلو! تاسو زما عهد، یعنې د محمد صلی الله علیه وسلم تابعداری اُکړئ، نو زه خپل عهد ستاسو د بخښنې او د جنت به پوره کړم - او صرف له ما نه ویریږئ او د عوام الناس نه مهٔ ویریږئ چه د حق په تابعدارئ سره د دوی عقیدت بدلونږ پورته شی او آمدنی به مو بنده شی -

| د اُمتِ محمدی پو خاص فضیلت | په تفسیر قرطبی[1] کښې دی چه الله پاک بنی اسرائیل ته خپل نعمتونه او احسانونه یاد کړه او د خپل اطاعت ئے ورته دعوت ورکړو - او |
|---|---|

(۱) ص: ۳۳۲

اُمتِ محمدیه ته چه کوم وخت دد ے کار د پاره دعوت ورکوی نو د احسانا تو او انعاماتو دَ ذِکرنه بغیر ورکوی۔ ارشاد کیږی : فَاذْكُرُونِيٓ اَذْكُرْكُمْ[1] یعنی تاسو ما یاد کړئ څه به تاسو یاد کړم ." په دے کښے دَ اُمتِ محمدی خاص فضیلت ته اشاره ده ، هغه دا چه دَ دوئ تعلق د مُنعِم او مُحسِن سره بغیر د څهٔ واسطے دے۔ دوئ د احسان پیژندګلو د مُحسن په پیژندګلو کوی په خلاف د نورو اُمتونو چه هغوئ د مُحسن پیژندګلو د احساناتو په پیژندګلو کوی۔

(۲) د عهد پوره کول واجب او عهد ماتول حرام دی

له دے آیته معلومه شوه چه د عهد او معاهدے پوره کول ضروری دی او عهد شکنی حرام ده۔ د سورة مائده په آیت کښے دے نه زیات وضاحت سره دا مضمون راغلے دے : اَوْفُوْا بِالْعُقُوْدِ -[2]

نبی صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه وعده ماتونکو ته په آخرت کښے کومه سزا به چه ورکیدے شی، له هغے نه ورانديه به دا سزا ورکړے شی ، چه د محشر په میدان کوم ځائے کښے چه ټول ړومبی او روستی خلق به موجود وی ، وعدے ماتوونکی باندِ به د علامے په څول یو جنډا اولګولے شی ، او چا چه څومره لویه وعده ماته کړی وی دومره لویه جنډا به د هغه وی۔ په دے طریقه د غه وعده ماتوونکے د حشر په میدان کښے به رُسوا او شرمنده کړے شی۔ (صحیح مسلم)

(۳) څوک چه د څهٔ ګناه یا د ثواب سبب جوړ شی د هغه به عملنامه کښے د کوونکو ګناه یا ثواب لیکلے شی

اَوَّلَ كَافِرٍ بِهٖ - کافر کیدل خواه هغه اول وی یا رُستو په هر حالت کښے ډیر لوے ظلم او جُرم دے۔ لیکن په دے آیت کښے دا اُ فرمائیلے شو ، چه ړومبی کافر مه کیږئ۔ په دے کښے اشاره دے خبرے ته ده چه څوک اول کُفر اُکړی ، وروستو چه څوک د هٔ ته ګوری او کُفر کوی۔ د دے وبال چه په دے سړی باندِ پریوځی ؛ په هغه ړومبی کافر هم د دے وبال پریوځی۔ د غه شان دا ړومبے کافر د خپل کفر نه زیاتی د رُستو د ا ټلو نکو خلقو د کُفر سبب ګرځی او د ټولو د کُفر دَ وبال ذمه وار کیږی او د دهٔ عذاب به څو څو چنده کیږی۔

فائده :- له دے نه معلومه شوه چه څوک په دُنیا کښے د نورو د پاره په څهٔ ګناه کښے د مبتلا کیدو سبب ګرځی ؛ د دے ټولو ګناه د غه خلقو ته به هم وځی او د غه کَس ته به هم۔ د غه شان چه څوک د نورو د پاره د څهٔ نیکئ کولو سبب اُګرځی نو څومره خلق چه د دهٔ له وجے نه عمل اُکړی

[1] البقرة : ۱۵۲

د هغې ثواب لکه چه څه رنګې د غو خلقو ته به ورکیدے شي، د غه کس ته به هم ورکیدے شي.
د هغه په عملنامه کښې به لیکلے کیږي. د قرآن مجید په ډیرو آیاتو کښې او په ډیرو احادیثو کښې دا مضمون راغلے دے.

(۴) وَلَا تَشْتَرُوْا بِاٰیٰتِیْ ثَمَنًا قَلِیْلًاؗ

په دے آیت کښې دادي، چه د الله پاک د آیاتو په بدله کښې د قیمت د اخستو د ممانعت مطلب هغه دے، چه هغه دَ آیت سیاق وسباق (وړاندې وروستو) معلومیږي، هغه دا چه د خلقو د رضا او د هغوئ غرضونو د پاره د الله پاک د آیاتو غلط مطلب ښودل یا پټول د اُمت په اجماع حرام کار دے.

(۵) د قرآن په ښودلو باندې اُجرت اخستل جائز دي

پاتې شو دا کار، چه چا ته دَ الله پاک آیاتو نه ټیک ټیک ښودل یا لوستل او په هغې باندې اجرت اخستل څه رنګې دي؛ دَ دے خبرے د مذکوره آیت سره هیڅ تعلق نشته. بیخپله دا مسئله په خپل ځائے کښې د غور او فکر کولو وړ ده؛ چه د قرآن په تعلیم باندې اُجرت او عوض اخستل روا دي او که نه. د اُمت د فقهاؤ په دے کښې اختلاف دے. امام مالک، شافعي او احمد بن حنبل ئې روا ګنړي. او امام اعظم ابو حنیفه او بعضې نور امامان ئې روا نه ګنړي. ځکه چه نبي صلی الله علیه وسلم منع کړے ده چه قرآن د معاش ذریعه جوړه کړے شي

لیکن متأخرینو حنفیو هم، کله چه د هغو حالاتو مشاهده اوکړه، چه د قرآن کریم مُعلّمینو ته د اسلامي بیت المال نه د ګذارے وظیفه ورکیدے شوه. اُوس په هر ځائے کښې په اسلامي نظام په مکمل طور عمل نه کولو په وجه د غو مُعلّمینو ته عام طور څه ورکیدے نشي. که چرے دوئ د خپل معاش د پاره په څه مزدورئ وغیره کښې اُولګي، نو بیا خو ته د قرآن دَ تعلیم سلسله به بالکل بنده شي. په دے وجه د قرآن په تعلیم باندې تنخواه او اُجرت اخستل دَ ضرورت په وجه جائز کړے شو، لکه چه دَ "هدایه" صاحب[1] وئیلي دي چه ننن صبا په دے خبره فتویٰ ورکول پکار دي، چه د قرآن په تعلیم باندے اجرت اخستل روا دي. دَ "هدایه" والا نه روستو راتلونکو نورو فقهاؤ بعضې نور داسے کارونه، چه هغه د تعلیم قرآن په شان د دین د بقا د پاره ضروري دي، لکه امامت، اذان، دَ حدیث او فقهې تعلیم وغیره شو. په دے هم اُجرت اخستل جائز دي. (در مختار)

(۶) د ثواب بخلو او رسولو د پاره په ختم قرآن اجرت اخستل په اتفاق سره روانه دی

علامه شامی د در مختار په شرح کښې او په خپله رساله شفاء العلیل کښې، ډیر تفصیل او قوی دلیلونو سره دا خبره واضحه کړې ده، چه په تعلیم قرآن وغیره اجرت اخستل کوم چه روستنو فقهاؤ روا کړے دے، د هغې علت او وجه یو داسے دینی ضرورت دے، چه که چرے په هغې کښې خه خلل راشی، نو د ټول دین په نظام کښې به خلل راشی۔ نو په دے وجه دا ضرورت په داسے موقعو پورے محدود لرل ضروری دی۔ نو مړو ته د ثواب په غرض په اجرت د قرآن ختم کول یا څه بله وظیفه لوستل حرام دی۔ ځکه چه دا څه عام دینی ضرورت نه دے۔ او هر کله چه په اجرت تلاوت حرام شو، نو بیا لوستونکی او په دے اجرت ورکوونکی دواړه ګنهګار شو۔ او کله چه لوستونکی ته څه ثواب حاصل نشو نو مړی ته به څه ثواب حاصل شی۔ علامه شامی په دے خبره د فقهاؤ ډیر تصریحات نقل کړی دی۔ لکه تاج الشریعة، عینی شرح هدایه، د بحر الرائق حاشیه د خیر الدین شوه۔ او د خیر الدین رملی دا قول ئے هُم نقل کړے دے، چه د ثواب رسولو د پاره په قبر باندې قرآن په نوره لوستل، یا په اجرت ورکولو سره د قرآن ختم کول نه د صحابو نه او نه د تابعینو او نه چرته د یو اسلاف امت نه نقل دی۔ بلکه دا بدعت دے (شامی)

(۷) د حق خبره پټول یا په هغې کښې غلط ملط کوم حرام دی

آیت وَلَا تَلْبِسُوا الْحَقَّ بِالْبَاطِلِ الخ نه ثابته شوه چه حق خبره د غلطو خبرو سره ګډه ول او بیا داسے وړاندې کول، چه د هغې مخاطب په مغالطه کښې پرېوځي، روانه دی۔ د غه شان د څه ویرے یا د څه طمع په وجه حق خبره پټول حرام دی۔ دا مسئله واضحه ده۔ په دے کښې د څه تفصیل کولو ضرورت نشته۔ امام قرطبی[1] په خپل تفسیر کښې د حق پټولو نه د خنګ کولو، یوه واقعه او تفصیلی مکالمه د حضرت ابو حازم تابعی او خلیفه سلیمان بن عبد الملک نقل کړے ده، چه دا ډیر و فائدو په وجه د ذکر کولو وړ ده۔

واقعه دا ده:

چه په مسند دارمی کښې په سند سره ذکر دی، چه یو ځل سلیمان بن عبد الملک مدینے منورے ته ورسیدو، او څو ورځے ئے هلته تیرے کړے، نو د خلقو نه ئے پوښتنه اوکړه چه په مدینه کښې به اوس داسے یو کس دی چه د هغه ملاقات د یو صحابی سره شوے دی؟ خلقو ورته اووئیل چه هو۔ ابو حازم. نو ئے یو سړے داسے شته۔ سلیمان خپل سړے ابو حازم رض پسے ور واستولو کله چه ابو حازم رض راغے۔ نو سلیمان اووے چه اے ابو حازم آیا دا بے مروتی او بے وفائی نه ده؟! ابو حازم رض

(۱) ص: ۳۳۷

اُوے چه تا زماخه بے مروتي او بے وفائي اوليده؟ سليمان اُوے، چه د مدينے تول مشهور خلق ماسره د ملاقات کولو د پاره راغلي دي او ته نه يې راغلے، نو ابوحازم اُوے - اميرالمؤمنين خه تا د خُدائے په امان او پناه کښے ورکوم چه ته څه داسے خبره اُ نکړے چه هغه د واقعے خلاف وي. د نن نه مخکښے نه ته زما نه خبروے او نه ما چرته تا سوليدلي وې - په داسے حالاتو کښے څنګه د ملاقات کولو د پاره در راتللو سوال هم نه پيدا کيږي. بيوفائي څنګه شوه؟

سليمان چه جواب واؤريده، نو ابن شهاب زهري او نورو حاضرينو ته ئے مخ واړوو. امام زهري اُوے چه ابوحازم درست وائي - تاسو غلطي کړے ده -

لدے نه پس سليمان د خبرو مخ بدل کړو، څه پُښتنے ئے شروع کړے او وے وئيل - اے ابوحازم! دا څه خبره ده چه مونږ د مرګ نه ويريږو؟ ابوحازم اُووے، وجه دا ده چه تاخپل آخرت وران کړے دے او دُنيا د آباده کړے ده - نو په دے وجه د آبادئ نه ورانئ ته تلل نه خو ښوے -

سليمان اُمنله او پُښتنه ئے اُکړه چه صبا د الله پاک په مخکښے حاضري به څه رنګ وي؟ نو ابوحازم جواب ورکړو چه ښه عمل کوُونکے د الله پاک مخ ته به داسے ځي لکه چه يو مسافر د سفر نه واپس شي او د خپل کور خلقو ته ځي - او بد عمل کوُونکے به داسے ورانده کيږي، لکه چه تختيدلے غلام اُ نيوے شي او بيا د مالک مخ ته راوستے شي۔

سليمان چه دا واؤريده، نو په ژړا شو - اووے وئيل افسوس! مونږ ته معلومه دے چه الله پاک مونږ د پاره څه صورت مقرر کړے دے - ابوحازم اووے چه خپل عملونه قرآن ته وړاندے کړه نو پته به درته اُ لګي. سليمان پُښتنه اُکړه چه د قرآن د کوم آيت نه به دا معلومه شي؟ ابوحازم اُوے چه له دے آيت نه: إِنَّ الْأَبْرَارَ لَفِي نَعِيمٍ ۝ وَإِنَّ الْفُجَّارَ لَفِي جَحِيمٍ ۝ يعني بيشکه ښه عمل کوُونکي به د جنت په مزو کښے وي او نا فرمانه ګنهګار به په دوزخ کښے وي"

سليمان اُووے چه د الله پاک رحمت خولوئے دے - حقّ چه بد کار و ته هم د خدائے تعت رسي - نو ابُوحازم اُوے: إِنَّ رَحْمَتَ اللَّهِ قَرِيبٌ مِّنَ الْمُحْسِنِينَ ۝ ترجمه: "د الله پاک رحمت ښه عمل کوونکو ته نزدے دے"

سليمان پُښتنه اُکړه اے ابوحازم! د الله پاک په بندګانو کښے د ټولو نه زيات عزت والا څوک دے؟ ابوحازم اووے، هغه خلق دي، چه عقل سليم او مُرُوّت لري۔

بیائے دا پُښتنه اُکړه چه کوم عمل ډیر غوره دے؟ نو ابوحازم اُفرمائیل چه د فرضو او واجبو ادا کول او د حرامو نه ځان ساتل۔

بیائے پُښتنه اُکړه چه کومه دُعا زیاته قبلیږی؟ نو وے فرمائیل چه په کوم کس احسان شوے وی، نو د هغه دُعا د احسان کوونکی د پاره قبلیدو ته زیاته نزدے ده۔

بیائے پُښتنه اُکړه چه صدقه کومه ډیره غوره ده؟ ابوحازم اُووے چه د خپل افلاس او خوارئ سره سره یو داسے سائل ته ورکول چه په هغه مصیبت را غلے وی او داسے خرچ کول چه نهٔ دے سره د هر څه احسان ضبا طول وی او نهٔ ئے تکره د تکره هغهٔ ته تکلیف ورکول وی۔

بیائے پُښتنه اُکړه چه کوم کلام ډیر غوره دے؟ نو ابوحازم اُفرمائیل چه د کوم سړی نه ستا ډیره وی، یا هغهٔ ته ستا څهٔ حاجت وی او ستا اُمید هغهٔ سره تړلے وی۔ دداسے کس په وړاندے بغیر د څهٔ ځ ملاؤ ے د حق خبره کول بهتره خبره ده۔

بیائے پُښتنه اُکړه چه کوم یو مسلمان د ټولو نه زیات هوښیار دے؟ ابوحازم اُووے، هغه سړے چه هغهٔ د الله پاک د فرمان برداریٔ د پاره کار کړے وی او نورو ته ئے د داسے کولو دعوت ورکړے وی۔

بیائے پُښتنه اُکړه چه په مُسلمانانو کښے کوم یو سړے ډیر زیات کم عقل دے؟ ابوحازم اُفرمائیل: هغه سړے چه د خپل رور د ظلم امداد کوی، د هغه مطلب دا شو، چه هغه د نورو خلقو د دُنیا د دُرستولو او سمولو د پاره خپل دین خرڅ کړے وی۔ سُلیمان اُووے، چه درست دِ اُووے۔

..... رُستو سلیمان په نورو واضحو الفاظو کښے پُښتنه اُکړه چه زمونږ په باره کښے ستاسو څهٔ رائے ده؟ ابوحازم اُفرمائیل، چه له دے سوال کهٔ ما معاف کړئ نو ډیره غوره به وی۔ سلیمان اُووے چه نهٔ۔ تاسو ضرور څهٔ د نصیحت کلمه اُوایئ۔

ابوحازم اُفرمائیل: چه اے امیرالمؤمنین چه ستا پلار انو او نیکو نو د تُورے په زور په خلقو تسلُّط حاصل کړے وو۔ او په زور ئے د خلقو د رضانه بغیر، په هغوئ حکومت قائم کړے وو۔ او ډیر خلق ئے قتل کړی وو۔ او دے ټولو کولو نه پس هغه ټول له دے دنیا رخصت شو۔ افسوس تاته معلومه وے، چه د مرګ نه پس به هغوئ څهٔ وائی او هغوئ ته به څهٔ وئیلے شی۔

په نوکرانو کښې يو کس رچه د بادشاه د مزاج خلاف ، د ابوحازم دا په دو اُکه وينا واؤريده ) اُوے چه اے ابُوحازم ! تا دا ډيره بده خبره کړے ده - ابوحازم اُوے ، چه ته غلط وائې - بَده خبره نه ده وئيلے شوے بلکه هغه خبره وئيلے شوے ده چه د کومے د وئيلو مونږ ته حکم دے - ځکه چه الله پاک دَ علماؤ نه عهد او پيمان اغستے دے چه حقه خبره به خلقو ته ښايئ پټوئ به ئې نه : لَتُبَيِّنُنَّهٗ لِلنَّاسِ وَلَا تَكْتُمُوْنَهٗ -

دا هغه خبره ده چه ګ هغے د پاره دا اُبده قصه امام قرطبي د مذکور آيت په تفسير کښې درج کړيده - سليمان بيا پُښتنه اُکړه چه بنه اُس زمونږ د دُرست کيدو څه طريقه ده ؟ ابوحازم اُفرمائيل تکبر پريږده - مروت په ځان کښې پيدا کړه او حقدارو ته د هغوئ حقونه په انصاف ورکړه - سُليمان اُوے چه ابوحازم آيا کيدے شي چه ته مونږ سره يا تے شے ؟ ابُوحازم اُوے چه دخدا ئے پناه غواړم - سليمان تپوس اُکړو چه ولے ؟ ابو حازم اُوے چه لدے وجے چه ماته خطره ده چه زهٔ ستا مال، دولت او عزت طرف ته مائل نهٔ شم چه د هغے په نتيجه کښې ماله بيا عذاب تيرول وی -

بيا سليمان اُوے چه بنه که ستا څهٔ ضرورت وی نو اُښايه چه مونږ ئے پوره کړو - ابُوحازم اُفرمائيل - او يو حاجت شته چه د جهنم نه خلاصے راکړه او جنت کښې م داخل کړه - سُليمان اُوے چه دا زما په اختيار کښې نهٔ دی - نو ابُوحازمؓ اُوے چه بيا څهٔ له تا نه د بل څهٔ حاجت پوښتول نهٔ غواړم -

په آخر کښې سليمان اُوے چه بنه ما د پاره دُعا اُکړئ - نو ابوحازمؓ دا دعا اُکړه : اے الله ! که سليمان تا ته خوښ وی ، نو ته د هغهٔ د پاره د دُنيا او آخرت د واړو دَ بهتر کولو عملونه آسان کړے - او که چرے دے ستا دُښمن وی نو دے دَ وينتو نه اُنيسه د خپل رضا د کارونو په طرف ئې را اُګرزوه -

سُليمان اُوے چه ماته څهٔ وصيت اُکړه - نو ابوحازمؓ اُوے چه خلاصه دا ده چه د خپل پروردګار عظمت او جلال په هغه درجه کښې ساته چه هغهٔ دِ په هغه مقام کښې او نهٔ کوری د کوم نه ئے چه منع کړے ده او د هغه مقام نه غير حاضر نهٔ شے کوم ته چه هغهٔ درا تلو حکم کړے دے -

سليمان دَ دے مجلس دَ فارغ کيدو نه پس سل اشرفئ د ډالئ په ډول ابوحازم ته اُليږلے ابوحازم دا، ديو خط سره، واپس کړے او په خط کښې ئے دا ليکلی وو چه که چرے دا سل اشرفئ زما

د خبرو بدله دئ، نو د ازما په نیزد ډېر ناکاره شی دی او خنزیر نه زیات شے دے اوکه دا ډدے وجے نه لیرے شوی وی چه په بیت المال کښې زما حق شته. نو زما په شان په ذکرکونو عالمان او د دین خدمت کاران شته. که چرے تحولو ته تا دومره ورکړی وی، نو زهٔ هم اغستے شم. او که چرے نهٔ، نو بیا ما ته ددے ضرورت نشته.

دابوحازم ډدے ارشاد نه، چه د خپل نصیحت د خبرو عوض او اجرت اغستل د ویښے او خنزیر په شان دی. په دے مسئله باندے هم رڼا پریوځی، چه د څهٔ طاعت او عبادت معاوضه اغستل، د هغهٔ په نزد روا نهٔ دی.

وَاَقِیۡمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّکٰوةَ وَارۡکَعُوۡا مَعَ الرّٰکِعِیۡنَ ﴿۴۳﴾

او قائموئ مونځ او ورکوئ زکوٰة او ټیټیږئ په مانځه کښې د ټیټیدونکو سره

اَتَاۡمُرُوۡنَ النَّاسَ بِالۡبِرِّ وَتَنۡسَوۡنَ اَنۡفُسَکُمۡ وَاَنۡتُمۡ

آیا حکم کوئ تاسو خلقو ته د ښهٔ کار او هیروئ خپل ځان او تاسو خو

تَتۡلُوۡنَ الۡکِتٰبَ ؕ اَفَلَا تَعۡقِلُوۡنَ ﴿۴۴﴾ وَاسۡتَعِیۡنُوۡا بِالصَّبۡرِ

لوستونکی یئ د کتاب بیا ولے نهٔ کوئ سوچ او مدد غواړئ د صبر

وَالصَّلٰوةِ ؕ وَاِنَّهَا لَکَبِیۡرَةٌ اِلَّا عَلَی الۡخٰشِعِیۡنَ ﴿۴۵﴾ الَّذِیۡنَ

او مانځه په ذریعه او البته دا مونځ ګران دے مګر په هغه عاجزی کوونکو نهٔ چه

یَظُنُّوۡنَ اَنَّهُمۡ مُّلٰقُوۡا رَبِّهِمۡ وَاَنَّهُمۡ اِلَیۡهِ رٰجِعُوۡنَ ﴿۴۶﴾ ع ۵

دهغوئ خیال دے چه دوئ به ملاو کیدونکی وی خپل رب سره او دا چه دوئ دهغهٔ په طرف واپس کیدونکی دی

## لنډ تفسیر

او قائموئ تاسو خلق مونځونه (یعنی مسلمان کیدٔ د سره) او ورکوئ زکوٰة او عاجزی کوئ عاجزی کوونکو سره (د بنی اسرائیلو د عالمانو بعضے خپلوان مسلمانان شوی وو. کله به چه دوئ سره خبرے کولے، نو په پټه به دے علماؤ د غه مسلمانانو ته وئیل چه بے شکه محمد صلی الله علیه وسلم په حقه پیغمبر دے. مونږ خلق د څهٔ مصلحت په وجه مسلمانان شوی نهٔ یو. لیکن

تاسو دا اسلام مه پرېږدئ. نو په دې وجه الله تعالیٰ فرمائي: څه تعجب دے چه وايئ نورو خلقو ته د ښه کارکولو (يعنې په رسول الله صلی الله علیه وسلم دايمان راوړلو اود رسول صلی الله علیه وسلم د تابعدارئ کولو) او خپل خبر نه اخلئ. حال دا دے چه تاسو لولئ کتاب (يعنې تورات چه په هغې کښې ځائے په ځائے د دا سے عالم بے عمله بدئ ذکرئ) نو بيا تاسو دو مره نه پوهيږئ او مدد اخلئ (يعنې که چرے تاسو ته د مال د محبت او مرتبے د محبت په وجه ايمان راوړل ګران معلوميږي نو مدد اخلئ) په صبر او مونځ (يعنې ايمان راوړئ، صبر کوئ او مونځ په ځان لازم کړئ. نو دا د مال محبت او د مرتبے محبت به مړ د زړه نه اوځي. که چرے څوک اوائي چه پخپله مونځ او صبر کول په ځان باندې لازمول ډېر ګران دي، نو وا اوره چه) او بے شکه دغه مونځ ګران دے مګر د چا زړونو کښې چه د الله پاک نه ويره وي، په هغوئ باندې هيڅ ګران نه دے. د الله پاک نه په زړه کښې ويره لرونکي هغه خلق دي چه د هغوئ دا خيال وي، چه د دوئ بے شکه د خپل رب په طرف بيرته تلۀ دي (نو هغه وخت د هغې حساب کتاب به هم ورکول وي. د دے دواړو خيالونو نه په رغبت هم پيدا شي او ويره هم او دا دوه څيزونه د هر عمل روح دے)

## علوم او مسئلے

**دآیاتونو دلویل سره تړون**

بني اسرائيلو ته الله پاک خپل نعمتونه او احسانونه ورياد کړه او د ايمان او عمل صالح په طرف ئے ورته دعوت ورکړو. په پړو مبودے آياتونو کښے دايمان او عقائدو متعلق هدايات وو. او په دے څلورو آياتونو کښے د اعمالو صالحو تلقين دے او په دے کښے چه کوم عملونه د ټولو نه زيات اهم دي، د هغوئ ذکر دے. او د آياتونو حاصل مطلب دا دے. که چرے تاسو ته د مال د محبت او د مرتبے د محبت په وجه ايمان راوړل ګران معلوميږي، نو د دے علاج دا دے چه په صبر او مانځه سره په دے لړ کښے مدد واخلئ. په صبر سره به د مال محبت ختم شي. ځکه چه مال په دے وجه محبوب او مطلوب وي چه د ا مال ذريعه د لذتونو او شهوتونو د پوره کولو دپاره دے، او کله چه د دے لذتونو او شهوتونو د مطلق العنانئ د پرېښودو دپاره څوک ملا اوتړي بيا د ډېر مال د پيدا کولو ضرورت پاتے نۀ شي. او نۀ د دے مال محبت دا سے غالب کيږي چه څوک د خپل سود او زيان نه ړوند کړي او مونځ کولو سره د مرتبے او د جاه محبت کميږي. ځکه چه مونځ ظاهري او باطني طور سره د خپلے

پستۍ او عاجزۍ اظهار دے، کله چه د صحیح مونځ عادت په چا کښې راشي، نو مرتبے محبت او تکبر او غرور کم شي. د فساد اصل جرړه چه د څه په وجه ایمان راوړل مشکل دي. هغه د مال او مرتبے محبت دے، کله چه د فساد دا ماده ختمه شي، نو ایمان راوړل به آسان شي.

اُس پوره شئ، چه په صبر کښې د غیرضروري خواهشونو او شهوتونو پریښودل دي. او په مانځه کښې ډیر کارونه کول دي، او ډیر جائز خواهشونه هم وختي طور سره پریښودل دي. مثلاً خوراک، څښاک، خبرے کول، ګرځیدل راګرځیدل او نور انساني ضروریات چه کوم شریعت کښې روا او مباح دي، هغوي هم په مانځه کښې پریښودل دي. او دا مونځ بیا پنځه وخته په پابندۍ سره کول دي.

دَ غیرضروري خواهشونو په پریښودلو کړے چرے بنیادم خپله ملا اُترړي نو په څو ورځو کښې طبعي تقاضے به هم ختمے شي. هیڅ مشکل به پاتے نه شي. لیکن دَ مانځه دوختونو پابندي، او دَ مانځه دَ ټولو شرطونو پابندي او په دے وختونو کښې (یعني د مانځه) د ضروري خواهشاتو نه پرهیز کول. د بنیادم په طبیعت ډیر زیات پیټے دے. په دے وجه دلته شبه کیدے شي چه دا ایمان آسانولو دپاره چه کوم نسخه مقرر کړے شوے ده، یعني صبر او مونځ. د غه نسخه او د دے استعمال خپله یو سخت څیز دے. خصوصاً د وخت پابندي. نو د دے دشوارۍ علاج به څه وي؟ ارشاد اُوشو:

---

بے شکه دا مونځ ګران ضرور دے، لیکن د چا زړهٔ کښې چه خشوع وي په هغه څه ګران نهٔ دے. په دے کښې د مونځ د آسانولو طریقه اُښودے شوه.

حاصل دا چه د مونځ د سختۍ او سبب په وجه کۀ فکر اُکړے شي نو معلومه به شي، چه دَ بنیادم زړهٔ د هر قسمه خیالونو دپاره میدان دے. او د بنیادم زړهٔ آموخته دے چه هر قسمه خیالونو کښې بغیر د څه منع ممانعت ګرځي. او د بنیادم نور ټول اندامونه د زړهٔ تابع دي. نو په دے وجه د زړهٔ تقاضا دا وي چه د دهٔ ټول تابع اندامونه د آزاد وي او مونځ خو ټول دَ دے آزادۍ خلاف دے چه مهٔ خاندۀ، مهٔ وایه، مهٔ خوره، مهٔ څکه، مهٔ ځه وغیره وغیره. نو په دے وخت زړهٔ دَ دے پابندونه تنګیږي او د دهٔ تابع اندامونه هم له دے نه تکلیف محسوسوي.

خلاصه دا شوه، چه د دے سختۍ او دشوارۍ سبب د زړهٔ حرکتِ فکر په دے، نو د دے علاج په سکون سره کول پکار دي. نو په دے وجه خشوع ے د مانځه د آسانولو دپاره ذریعه اوښودله.

ځکه چه دَ خشوع معنی ده سکونِ قلب - اُس سوال دا پيدا کيږی چه سکونِ قلب يعنی خشوع څۀ رنګ حاصليږی، نو دا خبره په تجربے ثابته ده کۀ چرے څوک د خپل زړۀ نه مختلف فکرونه او خيالونه بغير د څۀ واسطے او ذريعے اُبنکل اُ غواړی، نو دے کښے دَ دے کس کاميابی ډيره ګرانه ده - بلکه دے د پاره دا تدبير دے چه دَ بنيادم نفس، هرکله چه دَوه طرفونو ته په يو وخت کښے متوجه کيدے نشی - نو په دے وجه که چرے دا (زړۀ) په يو خيال او فکر کښے ډوب کړے شی، نو نور خيالات او سوچونه به ئے د زړۀ نه يخپله اُځیٔ - نو له دے وجے د تلقينِ خشوع نه پس، هغه خيالونه او فکر بنائیٔ، چه په هغے کښے ډوبيدل نو سره نور خيالونه د زړۀ نه اُځیٔ او د دغه خيالونو په ورکيدو سره د زړۀ حرکت ختم شی او سکون ور ته حاصل شی او د سکون په وجه په مانځه کښے ور ته آسانی حاصله شی او په مانځه باندِ هميشوالے او پابندی حاصله شی او د دغه پابندیٔ سره کبر او غرور او دَ مرتبے محبت کم شی - نو دا سے د ايمان په لاره کښے چه کوم خنډ دے هغه لرے شی او ايمان کامل شی - او س د دے خيال تعيين او تلقين ئے دا رنګ کړے دے:

دا خاشعين هغه خلق دی چه خيال لری د دے چه دویٔ بے شکه مخامخ کيدونکی دی خپل پروردګار سره - نو په دغه وخت به دۀ ته د دغه خدمت بندګیٔ انعام ورکړے شی، او چه دَدے ضمیرے خيال لری، چه دویٔ د خپل پروردګار په طرف تلونکی دی - او په دغے وخت کښے هغۀ ته به حساب کتاب ورکوی - د دے دواړو خيالونو نه رغبت او رهبت يعنی اُميد او ويره پيدا کيږی او اميد او ويره داسے څيزونه دی چه سړے په بندګیٔ کار باندے تيزوی -

اَقِيمُوا الصَّلٰوةَ - د صلٰوة لفظی معنی دُعا ده - او د شريعت په اصطلاح او ژبه کښے، دا يو خاص قِسم عبادت دے - په قرآن کريم کښے عمومًا څو مره ځل د مانځۀ په باره کښے چه تاکيد شوے دے نو د "اقامة" لفظ ور سره راغلے دے او داسے آياتونه چه په هغے کښے صرف د مونځ کولو حکم وی، هغه يو دوه آياتونه دی - په دے وجه دَ اِقامتِ صلٰوة حقيقت باندِ ځان پوهول لازمی شو - دا قامة لفظی معنیٰ ده نيغول او مضبوطول - او عادت دا دے چه کومه ستنه، ديوال يا اُونه چه نيغه ولاړه وی، د هغے د پريوتو خطره کمه وی، چه دا يو قسم دَدے مضبوطوالے دے په دے وجه "اقامة" په معنی د هميشه کولو او اُدرولو هم راځیٔ -

دَ قرآن او دَ سُنت په اصطلاح کښے، دا قامتِ صلٰوة معنیٰ دا ده چه مونځ په خپل وخت کښے پابندیٔ سره، او ټولو آدابو او شرائطو سره، چه هغه د درست مونځ د پاره مقرر دی اُ کړے شی.

صرف مونځ کولو ته اقامتِ صلوٰة و یٔلے نۀ شی۔ دمانځۀ په باره کښې چه څومره فضیلتونه او برکتونه قرآن او حدیث کښې راغلی دی دا ټول دَ اقامة صلوٰة سره تړلی دی۔ یعنی دا صرف مونځ کولو سره نۀ حاصلیږی، چه ترڅو پورے مونځ سره اقامت تل شوے نۀ وی، لکه د مثال په طور قرآن کریم وائی:

اِنَّ الصَّلٰوةَ تَنْهٰى عَنِ الْفَحْشَآءِ وَالْمُنْكَرِ | ترجمه: "بیشکه مونځ بنیادم د هر بے حیایئ او بدکار نه منع کوی"

دَ مونځ دا اثر هغه وخت ظاهریږی چه کوم وخت مونځ سره اقامت تل کړے شی۔ دغه وجه ده چه ډیر مونځ کوونکی ارمونځونه کوی، او بیا هم د بے حیایئ په کارونو کښې مبتلاوی، ځکه چه دَ دغے مونځ کونکی ارو په مونځ کښې اقامت نشته دے۔

اٰتُوا الزَّكٰوةَ: دَ زکوٰة د لفظ په لغت کښې دوه معنے دی۔ یو پاکیدل، دویم زیاتیدل۔ او دَ شریعت په اصطلاح کښې زکوٰة د مال هغه حصے ته و یٔلے شی، چه د شریعت د حکمونو موافق د مال نه بېل کړے شی او بیا د شریعت د حکم په جوړ لګولے شی۔

دلته دا خطاب موجوده بنی اسرائیلو ته دے، نو په دے وجه له دے آیته دا نۀ ثابتیږی چه مونځ او زکوٰة په بنی اسرائیلو فرض وو۔ او دا عبادت دَ اسلام نه وړاندِ دَ بنی اسرائیلو په دین کښې هم وو۔ لیکن په سورة مائده کښې دَ آیت: وَلَقَدْ اَخَذَ اللّٰهُ مِيْثَاقَ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ وَبَعَثْنَا مِنْهُمُ اثْنَيْ عَشَرَ نَقِيْبًا ۭ وَقَالَ اللّٰهُ اِنِّىْ مَعَكُمْ ۭ لَىِٕنْ اَقَمْتُمُ الصَّلٰوةَ وَاٰتَيْتُمُ الزَّكٰوةَ الخ نه دا ثابتیږی چه مونځ او زکوٰة په بنی اسرائیلو فرض وو۔ اګرچه دَ دے په طریقه او شکل وغیره کښې فرق وو۔

وَارْكَعُوْا مَعَ الرّٰكِعِيْنَ۔ رکوع په لغت کښې ښکته کیدو ته وائی۔ او دد غه معنے په وجه سجدے د پاره د رکوع لفظ هم و یٔلے شی۔ ځکه چه سجده د ښکته کیدو هغه آخری درجه ده۔ لیکن دَ شریعت په اصطلاح کښې مانځه کښې هغه خاص ښکته کیدو ته وائی چه هر مونځ کونکی ارته معلوم دی۔

دَ آیت معنیٰ دا سے ده: "چه رکوع کوی رکوع کوئ ونکو سره" یوه خبره دلته د غور کولو جوګه ده، چه د مانځه په ټولو ارکانو کښې د رکوع تخصیص و لے اُشو؟ دد ے جواب دا دے چه دلته د مونځ یو رکن، چه هغه رکوع ده، ذِکر شوه او مُراد ترې ګل ارکان دی، یعنی ذِکر

د جُزء مراد ترې ګل - لکه په قرآن کښې په يو بل ځائے کښې فرمائي : قُرْاٰنَ الْفَجْرِ -
او مُراد ترې صبا مونځ دے ، يعنې ذِکر د يوا ځې قرائت ، چه هغه د مانځه جُزء دے ، مُراد
نه دے . بلکه ټول مونځ ترې مُراد دے مجازاً - او بعضو احاديثو کښې د سجدے لفظ
ويلے شوے دے او مُراد ترې پوره رکعت يا مونځ دے - نو په دے وجه د آيت مراد دا شو ، چه
مونځ کوئ ، مونځ کوو نکو سره - ليکن دا سوال بيا پاتے کيږي ، چه د مانځه په ډيرو ارکانو
کښې د رکوع په تخصيص کښې حکمت څه دے ؟ يعنې چه د رکوع نه مراد مونځ دے ، نو د غه
د مونځ يو بل رکن مثلاً سجده ، قيام ، قرائت به ذِکر شوے وو او مراد به ترې مونځ وو - د رکوع
تخصيص ولے اوکړے شو ؟

جواب دا دے چه د يهودو په مانځه کښې سجده وغيره ارکان وو ، ليکن رکوع نه وه .
رکوع د دينِ اسلام د مانځه له خصوصيا تو ده - نو په دے وجه د "راکعين" نه مراد ، د
اُمتِ محمديه مونځ کذاردي چه د هغوي په مانځه کښې رکوع ده - او د آيت معنی دا ده ، چه
تاسو هم د اُمتِ محمدي د مونځ کذارو سره مونځ اداکوئ - يعنې اول ايمان راوړئ او بيا په
جمع مونځ اداکوئ -

**دجمع د مانځه احکام**

د مونځ حُکم او د مانځه فرضيت د اَقِيْمُوا الصَّلٰوۃَ نه معلوم شوے وو ، دلته د مَعَ الرّٰكِعِيْنَ د لفظ نه په جمع د مونځ کولو حکم
ورکړے شوے دے -

دا حکم د څه درجے دے ؟ په دے کښې د عُلماؤ او فُقهاؤ اختلاف دے - د صحابو او د تابعينو
او د فقهائے اُمت يوه ډله ، جمع واجب کنړي او د جمع پريخودل سخته ګناه ګنړي -
او بعضے صحابه خو هغه مونځ روا هُم نه ګنړي چه بغير د څه شرعي عُذر په امامت
او جمع نه وي ادا شوے - دا آيت د ظاهري الفاظو ترمخه د هغو صاحبانو د پاره دليل دے ، چه
جمع او امامتي واجبه ګنړي

له دے نه علاوه د احاديثو يو څو روايتونه دي چه د هغے نه د امامتي واجبيدل
معلوميږي - لکه يو حديث دے :
لَا صَلٰوۃَ لِجَارِ الْمَسْجِدِ اِلَّا فِی الْمَسْجِدِ (ابوداؤد) ترجمه :- "جمات ته نزدے اُسيدونکے چه دے
د هغه مونځ د جمات نه بغير په بل ځائے کښې روا نه دے" .

او د جماعت د مانځه مطلب خو ظاهره خبره ده، چه د امامتۍ مونځ دے۔ نو د حدیث د الفاظو مطلب دا شو، چه څوک جماعت ته نزدے اوسی د هغهٔ مونځ د امامتۍ نه بغیر روا نهٔ دے۔

او په صحیح مسلم کښې د ابی هریرةؓ په روایت کښې دی، چه یو ړوند صحابی نبی صلی الله علیه وسلم ته راغے او عرض ئے اُوکړو، چه ما سره څوک داسے سړے نشته چه هغهٔ ما مانځهٔ د پاره جماعت ته بوځی راولی۔ په دے وجه که ستاسو اجازت وی نو ځه به مونځ په کور کښې کوم۔ نبی صلی الله علیه وسلم ورته اول اجازت ورکړو، خو چه کوم وخت دا سړے روان شو نو نبی صلی الله علیه وسلم ترې پُښتنه اُوکړه چه د بانګ آواز ستا کور ته رسی۔ نو دهٔ اُووے چه د بانګ آواز خو زهٔ آورمه۔ نو نبی صلی الله علیه وسلم اُ فرمایل چه بیا تهٔ جماعت ته راځه او بعضو روایاتو کښې دی چه نبی صلی الله علیه وسلم اُ فرمایل، چه بیا تا د پاره یل څهٔ لار او اجازت نشته (ابوداؤد)

او حضرت عبدالله بن عباس وائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی:

مَنْ سَمِعَ النِّدَاءَ فَلَمْ يُجِبْ فَلَاصَلٰوةَ لَهٗ اِلَّامِنْ عُذْرٍ۔ ترجمه: کوم سړے چه د بانګ آواز آوری او جماعت ته نهٔ راځی، نو د دهٔ مونځ نه کیږی، مګر دا، که چرے د دهٔ څهٔ شرعی عُذر وی۔ (دا حدیث قرطبی[1] صحیح ګڼړی)

د دے احادیثو په وجه، حضرت عبدالله بن مسعودؓ او ابو موسٰی اشعریؓ وغیره صحابوؓ دا فتوٰی ورکړے ده، چه د چا کور جماعت ته دومره نزدے وی چه د بانګ آواز هلته رسی، نو که چرے دے سړی، څهٔ د عُذر شرعی نه بغیر، مونځ په کور کښې اُکړو نو د دهٔ مونځ اُ نشو۔ د آواز د آورید و نه مطلب دا دے، چه د درمیانه قسمه سړی آواز هلته رسی۔ د لاؤډ سپیکر د آواز یا د داسے سړی آواز چه هغه ډیر لوړے تلے شی، هغهٔ اعتبار نشته۔ یعنی مطلب دا، که چرے د لاؤډ سپیکر آواز، یا د هغه غیر معمولی سړی آواز یو کور کښې آورید ے شی او د درمیانه قسم آواز هلته آورید ے نشی، نو د دے کور خاوند به د هغه بر فی ذکر شوی حدیث لاندے نهٔ راځی۔

دا ټول روایتونه د هغو حضراتو دلیلونه دی، چه هغوئ امامتی واجبه ګڼړی۔ لیکن د جمهور اُمت د علماؤ فقهاؤ صحابو او تابعینو په نزد امامتی سنتِ مؤکده ده، لیکن په سنتِ مؤکده کښې د صباو سنتو په شان، چه د ټولو نه زیات مؤکد او وجوب ته نزدے دی۔ او د هغه

(۱) ص: ۳۴۹

خلقو د قرآن کریم آمر " وَارْكَعُوا مَعَ الرَّاكِعِينَ " د نورو آیاتو نو او روایتونو په بناء تاکید کړ حوُلے دے۔

او د کومو احادیثو نه چه دا معلومیږی چه د جاکورو نه جمات ته نږدے وی د هغوی مونځ بغیر د امامتیُ نه روانه دے۔ د هغے مطلب دادے چه د داسے خلقو مونځ کامل او مقبول نه دے۔ په دے باره کښے د حضرت عبد الله بن مسعود بیان ډیر واضح او کافی دے، چه مسلم روایت کړے دے چه د هغے ترجمه دا دے:

فقیه الامت حضرت عبد الله بن مسعودؓ وائی چه کوم سړے دا غواړی چه صبا (یعنی محشر کښے) الله پاک سره مسلمان ملاقات شی نو دے سړی له پکار دی چه د پنځو مونځونو ادا کولو پابندی د هغه ځائے کښے اوکړی کوم ځائے کښے چه بانګ کیږی (یعنی جمات) ځکه چه الله پاک ستا نبی ته څه د هدایت لارے ښودلے دی۔ او پنځه مونځونه په جمع کول په د غه سُنَنِ هُدیٰ (یعنی د هدایت په لارو کښے) شامل دی، او که چرے تاسو مونځونه په خپل کور کښے اوکړه لکه داد جمات نه جُدا پاتے کیدونکے چه خپل کور کښے کوی (اشاره ئے یو خاص سړی ته اوکړه) نو تاسو خپل نبی صلی الله علیه وسلم سُنت پریښودل۔ او که چرے تاسو خپل نبی سنت پریښودل نو تاسو به ګمراه شئ۔ (او کوم سړے چه اودس اوکړی او په ښه طریقے ځان پاک کړی) او بیا د جمات په لوری روان شی نو الله پاک د د هغه د هر قدم په عوض کښے نیکی د د هغه په عمل نامه کښے لیکی او د هغه یو درجه زیاتوی او یو ګناه ئے معاف کوی۔ او مونږ خپله ځان خوداسے مونده دے، چه د څرګند منافق نه سوا چا به جمع مونځ نه کولو۔ تردے پورے چه بعضو حضراتو به په ناجوړتیا کښے په دوو کسو لاسونه ایښودی وو جمات ته به راتللو او په جمع به ئے مونځ کوو۔"

په دے بیان کښے چه څه رنګ د امامت د اهمیت او ضرورت ذکر دے، ورسره ئے دا دے دا درجه هم بیان کړے ده چه دا په سُنَنِ هدیٰ کښے شامل دی او سُنَنِ هدیٰ ته فقهاء سنتِ مؤکده وائی۔ نو که چرے یو سړے د عذر شرعی نه بغیر مثلاً مرض وغیره نه بغیر ځان له مونځ اوکړی او امامتیُ سره ئے اونکړی، نو د هغه مونځ خو به اوشی۔ لیکن د سُنَتِ مؤکده په پریښودلو به د عتاب او زورنے حق دار شی۔ او که چرے د امامتیُ د پریښودو عادت ئے جوړ کړو نو سخت ګنهګار به شی۔ خصوصاً په داسے صورت کښے چه جمات وران پاتے شی او خلق په کورو نو کښے مونځونه کوی نو دا لټول د سزا حقدار دی۔ او قاضی عیاض وائی چه دا سے خلق د لوه کولو نه پس هم

د خپل عادت نه واپس نهٔ شو نو دوئ سره د جنګ اُکړے شي. (قرطبي)[1]

**د بےعمله واعظ مذمت**

اَتَأۡمُرُوۡنَ النَّاسَ بِالۡبِرِّ وَتَنۡسَوۡنَ اَنۡفُسَكُمۡ. په دے آیت کښے خطاب اګرچه د یهودو علماؤ ته دے، دوئ ته ملامتي ورکیږي چه دوئ خپلو دوستانو او خپلوانو ته وائي او نصیحت کوي چه تاسو د محمد صلی الله علیه وسلم پیروي او تابعداري کوئ) او په دین اسلام ټینګ اُسئ (او دا خبره د دے علامه ده، چه د یهودو عالمانو دینِ اسلام په یقیني طور سره حق ګڼړلو) مګر پخپله د نفس لرخوا هشاتو د و مره مغلوب وو چه اسلام قبلولو او داوُړلو ته تیار نهٔ وو. لیکن په دے آیت کښے د معنی په اعتبار سره د هر هغه سړي مذمت دے چه نورو ته خو د نیکئ کولو رغبت ورکوي، لیکن پخپله پرِ عمل نهٔ کوي، نورد الله پاک د عذاب نه ویَروي لیکن پخپله نهٔ ویریږي. د دا سے سړي په باره کښے په احادیثو کښے ډیر سخت وعیدونه راغلي دي. د حضرت انسؓ نه روایت دے چه نبي صلی الله علیه وسلم فرمائيلي دي، چه د معراج په شپه زهٔ په خهٔ دا سے خلقو تیر شوم چه د هغوئ شونډے او ژبے د اور په قینچیانو پریکیدلے ما د جبریل علیه السلام نه پښتنه اُکړه، چه دا څوک دي؟ جبریلؑ اُوے چه دا ستا د اُمّت مالداره واعظان دي چه خلقو ته به ئے د نیکئ حکم کولو او پخپله به ئے پرِ عمل نهٔ کولو. (ابن کثیر)[2]

ابن عساکر ذکر کړي دي چه نبي صلی الله علیه وسلم فرمائيلي دي چه بعضے جنتیان به بعضے دوزخیان په اور کښے اُویني نو پښتنه به ترې اُکړي چه تاسو اور ته ولے رسیدلي یئ؟ حال دا دے چه په خدائے مو د قسم دي چه مونږ په هغه نیکو عملونو جنت ته تلي یو، کوم چه تاسو مونږ ته ښودلي وو. نو دوزخیان به اُوائي، مونږ به ژبه ضرور وئيل لیکن پخپله مو پرِ عمل نهٔ کوو (ابن کثیر)[3]

**فاسق وعظ او نصیحت کولے شي؟**

لیکن د دغه مخکښے ذکر شوي بیان نه دا معلومیږي، چه بے عمله او فاسق بل ته وعظ او نصیحت کولے نشي. یعني هغهٔ له روانهٔ دي چه بل ته وَعظ او نصیحت اُکړي. ځکه چه نیک عمل کول جُدا نیکي ده او بل ته ئے عمل بل ته ښودل بله مستقله نیکي ده. او ظاهره خبره ده چه د یوے نیکئ په پریښودو دا ضروري نهٔ ده چه بله نیکي د هم پریښودے شي. لکه چه څوک مونځ نهٔ کوي، نو دا لازمه نهٔ ده چه هغهٔ د روژه هم پریږدي. بالکل د غه شان کهٔ چرے څوک مونځ نهٔ کوي. نو دا ضروري نهٔ ده چه هغهٔ د بل ته د مونځ کولو د پاره وینا نهٔ کوي. د غه شان د یو ناجائز عمل کول جُدا ګناه ده.

(۱) ج ۱، ص: ۳۵۰ (۲) ج ۱، ص: ۹۶ (۳) ج ۱، ص: ۱۵۰

او خپل اثر لا ندې خلق له د غه ناجائز فعل نه منع کول جُدا ګناه ده او دې دواړو ګناهونو د ارتکاب نه د ده چه دوه ګناه ده هُم ضرور اُکړے شي (روح المعاني)[1]

امام مالک د حضرت سعید بن جبیر رض دا قول نقل کړے دے، که چرے څوک په دے خیال امر بالمعروف او نهی عن المنکر پریږدي چه زه پخپله ګنهګار یم ـ کله چه ګناهونو نه پاک شم نو بیا به خلقو ته تبلیغ کوم ـ نو د دا سے خبرے نتیجه به دا شي چه څوک تبلیغ کوونکے به پاتے نشي ـ ځکه چه دا سے څوک د ے چه د ګناهونو نه بالکل پاک وي ـ د حسن رح ارشاد دے چه شیطان خو دا غواړي چه خلق په دے غلط خیال کښے د تبلیغ فریضه پریږدي ـ (قرطبي)[2]

بلکه حضرت حکیم الامت تهانوي رح به فرمایل چه کوم وخت ماته د خپل څه بد عادت پته ولګي نو زه د دے عادت مذمت په خپلو وعظونو کښے په ظاهري طور سره بیانوم ـ الحمد د پاره چه د وعظ برکت به زما دا عادت ختم شي ـ

خلاصه دا چه د "أَتَأْمُرُونَ النَّاسَ بِالْبِرِّ وَتَنْسَوْنَ أَنْفُسَكُمْ" آیت مطلب دا نه دے چه بے عمله بنیادم د پاره وعظ کول بند کار نه دے، بلکه د دے مطلب دا دے، چه واعظ ته بے عمله کیدل پکار نه دي او په دے دواړو خبرو کښے ډیر فرق دے لیکن د لته یو سوال دا کیدے شي چه بے عمله کیدل نه واعظ له جائز دي او نه غیر واعظ له ـ بیا د واعظ د خاص کولو وجه څه ده؟ جواب دا دے چه ناجائز خو دواړو د پاره ده ـ لیکن د واعظ جُرم د غیر واعظ په مقابله کښے زیات دروند او زیات د ملامتیا وړ دے ـ ځکه چه واعظ جُرم، جُرم ګنړي او بیا ئے کوي ـ نو د هغه دا عذر نه وي چه ماته د دے جرم کیدو علم نه وو، بخلاف د غیر واعظ نه، چه اګرچه هغه د علم نه حاصلولو ګناه ځان له کړے ده ـ لیکن د ګناه په کولو کښے هغه څه په څه درجه کښے عُذر وي ـ له دے نه علاوه عالم او واعظ که چرے څه جُرم کوي نو دا د دین سره یو قسمه خندا کول دي ـ لکه چه حضرت انس رض نه روایت دے چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي چه الله پاک به د قیامت په ورځ د علماؤ په مقابله کښے بے علمه خلق زیات معاف کوي ـ

## دوه نفسیاتي بیمارۍ او د هغې علاج

د مال محبت او د مرتبے محبت، دا دواړه د زړه دا سے بیمارۍ دي چه د دے په وجه د بنیادم د دنیا او د آخرت دواړه ژوندونه بربادیږي ـ که فکر اُکړے شي، نو معلومه به شي چه په انساني تاریخ کښے تر اُوسه چه څومره د انسانیت د شان سره غیر مناسب جنګونه شوي دي او څومره فسادونه شوي دي ـ هغه اکثر او زیات د دغه

(۱) ج ۱، ص ۲۴۸ (۲) دواړه خبرے یعني د حضرت حسن رح خبره او د سعید بن جبیر قول په قرطبي ج ۱، ص: ۳۶۷ کښے دي خو لیکن مفتي صاحب ...

دواړو بیا رد په وجه ستړی دی.

دمال د محبت نتیجې داډی :-

(۱) دَمال د محبت نه بُخل او کنجوُسی پیدا کیږی چه د هغې قومی نقصان خو دا دے چه لدا سے مال نه قوم ته څه فائده نه رسی. دوېم نقصان بخیله د دغه کس ذات ته رسی، ځکه چه په معاشره کښې دا سے کس ته په ښه نظر کتلے نه شی.

(۲) دمال د محبت نه خود غرضی پیدا کیږی، چه دمال د هوس پوره کولو د پاره بیا سړے په څیزونو کښې ګډوډ، په ناپ تول کښې کے کوی. رشوت اخلی. دَمکر و فریب او دَ دوکے نوے نوے طریقے را اُباسی او حیله کَله د مخکښې نه د زیاتے ډیکولو دَپاره د نورو ویښ شی. دَدے ټولو نتیجه دمالدارو دَمزدورو ترمینځه دَجګړے په شکل کښې ظاهر یږی.

(۳) دا سے سړی ته چه څومره مال حاصل شی بیا هم لدے زیات حاصلولو په دا سے فکر او غم کښې وی، چه دهٔ ته د تفریح او آرام کولو وخت هم نهٔ حاصلیږی. دغه فکر او غم دے خوری. نتیجه ئے دا شی چه کوم مال دهٔ د آرام او راحت ذریعه ګرځیدلے هغه دهٔ دځان د پاره وبال شی.

(۴) حقه خبره چه څومره بدبنانه واضحه دهٔ ته ورانې راشی، خو دے دَ دے دمنلو همت نهٔ لری ځکه چه دا دهٔ دمال د هوس متصادم وی او دا څیزونه په آخر کښې د ټولے معاشرے امن او سکون برباد کړی.

که ځیرے فکر اُوکړے شی نو دمرتبے د محبت هم دغه حال دے. ځکه چه د مرتبے د محبت نه تکبر، خود غرضی، حقونه نه ورکول، دا قتدار هوس. او د اقتدار حاصلولو او باقی ساتلو د پاره وینے تویول پیدا کیږی. او دا دا سے څیزونه دی چه ژوند نه عذاب جوړ وی.

د دے دواړو مرضونو علاج قرآن کریم دا اُښودو چه " وَاسْتَعِيْنُوْا بِالصَّبْرِ وَالصَّلٰوةِ " (په صبر او مانځهٔ مدد اخلئ) یعنی صبر کوئ او خپل لذتونه او شهوتونه قابو کړئ. په دے به دَ مال محبت کم شی. ځکه چه دمال محبت لدے وجے پیدا کیږی، چه مال دخوندونو او شهوتونو ذریعه دهٔ، او کوم وخت چه د دغه خوندونو او شهوتونو په ټولو سترګو تابعداری پریښودے شی، دا اګرچه په اول کښې به ګران وی لیکن رو، رو دا خوا هشونه به اعتدال ته راشی او اعتدال به ستا عادت شی، نو بیا به دمال زیاتوالی ته ضرورت پاتے نشی؛ او نهٔ دمال مینه به د و مره غالبه شی چه سړے د خپل سود زیان نه پروند کو نهٔ کړی.

او د مونځ کمېرکېته به د مرتبې محبت کم شي، ځکه چه مونځ کښې په ظاهره او باطنه دواړو کښې عاجزي او تهيټ وابے دے، او کوم وخت چه د صحيح مونځ کولو عادت په چا کښې پيدا شي، نو هر وخت هغه د الله پاک په وړاندې د خپلې عاجزئ او تهيټ والی تصور به کوي او د دغه تصور له کبله تکبر او غرور او د مرتبې محبت کمېږي۔

د خشوع حقيقت | اِلَّا عَلَى الْخٰشِعِيْنَ ۔ په قرآن او سنت کښې چه چرته د خشوع ترغيب راغلے دے، له دے نه مراد د زړه سکون او عاجزي ده چه د الله پاک د لوئے والي په محکښې په خپل ځان باندې د سپک والي د علم نه پېدا کېږي۔ او د هغې نتيجه به داوي، چه طاعت او فرمان برداري ورته آسانه وي او کله د دے نښې په بدن باندې هم ظاهرېدل شروع شي، هغه دا چه بياد ے مؤدب، متواضع او مات زړے ښکاري۔ او چه زړه کښې د الله پاک نه وېره او تواضع نه وي، نو هغه اګرچه په ظاهره څومره مؤدب او متواضع ښکاري خو په حقيقت کښې د کامل خشوع خاوند نه دے۔

بلکه د خشوع نښې قصداً ظاهرول ښه کار نه دے، حضرت عمرؓ يو ځوان اُليدو چه سر ئے ښکته کړے وو او ناست وو، نو حضرت عمرؓ ورته اُفرمائيل چه سر اُوچت کړه، خشوع په زړه کښې وي۔

د حضرت ابراهيم نخعيؒ وينا ده، چه شړه لمه جامه آغوستل، شڼل خوراک او سر ښکته نيول خشوع نه ده، خشوع خو دا ده چه د حق په معامله کښې ښه او بد دواړو سره يو شان سلوک اُکړے شي او الله پاک چه څه فرض کړي دي د هغې په اداکولو کښې الله پاک د پاره زړه خالي کړے شي[1]۔

د حضرت حسنؓ ارشاد دے چه: کوم وخت به حضرت عمرؓ خبره کوله نو په زوره به ئے کوله او چه تګ به ئے کولو نو زر به تلو، او چه وهل به ئے کول نو په زوره به ئے کول، حال دا دے چه هغه د خشوع خاوند وو۔

لنډه دا چه خپل قصد او اختيار سره د خاشعينو غوندې شکل جوړول د شيطان او د نفس دوکه ده او ښه خبره نه ده۔ البته که بے اختياره دا کيفيت ځرګند شي نو پاک نشته (قرطبيؒ[2])

فائده:- خشوع سره يو بل لفظ هم استعمالېږي چه په قرآن کښې هم ځو ځله راغلے دے۔

(۱) : تفسير قرطبي ج ۱، ص : ۳۷۵ (۲) د وړاندې نيئے مرجع او وړاندې نيئے صفحه۔

دا دواړه لفظونه تقریبًا دَ یو بل معنی الفاظ دی، لیکن د خشوع لفظ دا اصل په اعتبار سره دآواز، او د نظر دَ ښکته والی او عاجزئ دپاره ویلے شی، په دے شرط چه دا مصنوعی، بناوټي نهٔ وی، بلکه د زړهٔ دَوېرے او د تواضع نتیجه وی۔ په قرآن کریم کښې دی: وَخَشَعَتِ الْاَصْوَاتُ[۱]" او د خضوع لفظ د جسم او بدن د تواضع او انکسارئ او عاجزئ دپاره استعمالیږی۔ په قرآنِ حکیم کښې دی: فَظَلَّتْ اَعْنَاقُهُمْ لَهَا خٰضِعِيْنَ[۲]۔ ترجمه: "پس د هغوئ سټوُنه د هغې په مخکښې ټیټ شوُ۔"

په مانځه کښے دَ خشوع فقهي حیثیت

په مانځه کښے د خشوع تاکید په قرآن او سنت کښے په خوځو واره راغلے دے۔ د قرآن حکیم ارشاد دے: وَاَقِمِ الصَّلٰوةَ لِذِكْرِىْ ترجمه: "په مونځ قائم کړه زما دَ یاد دَ پاره۔" او دا ظاهره خبره ده چه غفلت د یاد ضد دے۔ څوک چه په مانځهٔ کښې د الله پاک نه غافل وی، نو هغهٔ د الله پاک د یاد دپاره فریضه ادا نهٔ کړه۔

په یو بل آیت کښے ارشاد دے: وَلَا تَكُنْ مِّنَ الْغٰفِلِيْنَ[۳]۔ ترجمه: "او ته د غافلانو نه مهٔ کیږه۔"

د نبی علیه السلام ارشاد دے چه: "مونځ خو بس ځان مسکین کول او تواضع ده۔" او دَ دے ظاهري مطلب دا دے، چه کله ځان مسکین کنړل او تواضع په زړهٔ کښے نهٔ وی، نو هغهٔ مونځ نهٔ دے۔

په یو بل حدیث کښې دی چه: "د چا مونځ چه هغهٔ د بےحیایئ او بد و کارونو نه منع نکړی، نو هغه د الله پاک نه لرے کیږی۔ او دَ غافل مونځ دَ بے حیایئ او بد و کارونو نه منع کوی نه۔" معلومه شوه چه د غفلت مونځ کول د الله پاک نه لرے کیدل دی.[۴]"

امام غزالیؒ د غه مخکښې ذکر شوی آیا تونه او روایتونه، او نور دلیلونه وړاندے کړی او ویلی دی، چه خشوع د مانځه دپاره شرط ده۔ او د مونځ دُرستی په دے اړانره ده۔ بیا امام غزالیؒ وائی: چه دَ سفیان ثوریؒ، حسن بصریؒ او د معاذ بن جبل مذهب دغه وو چه د خشوع نه بغیر مونځ نهٔ کیږی۔ بلکه فاسد دے۔

لیکن څلور امامان او جمهور فقهاء خشوع د مانځهٔ دپاره شرط نهٔ کنړی، بلکه دد دے با وجود چه خشوع د مانځهٔ روح دے، دوی صرف شرط کوی، چه د تکبیر تحریمه په وخت کښے زړهٔ حاضر

(۱) الشعراء: ۴ (۲) طه: ۱۴ (۳) ... (۴) دا اصول احادیث د امام غزالیؒ د احیاء العلوم نه اخستے شوی دی۔

وی چه صرف د الله پاک د پاره مونځ کوم او داسې په زړهٔ کښې وی چه الله پاک ته ولاړیم. په نورمانځهٔ کښې کهٔ چرې خشوع حاصله نهٔ شی، نو دے د فقهې له مخې تارك الصلوة نهٔ دے. او نهٔ په دهٔ د تارك الصـلوٰة د تعزیر وغیره احکام مرتب کیږی. البته دومره خبره ده چه دهٔ ته هغه ثواب نهٔ حاصلیږی کوم چه هغه کس ته حاصلیږی چه د هغهٔ په ټول مونځ کښې خشوع وی.

امام غزالی دَدے داوجه ښودلے ده چه فقها په باطنی احوالو او د زړهٔ په کیفیاتو باندې حکم نهٔ کوی بلکه دوئ صرف د ظاهری اندامونو، ظاهری عملونو حکم کوی. دا خبره چه دَ فلانی عمل ثواب به په آخرت کښې ورکړے شی یا ورنکړے شی. د فقهې د حد دو نه بهر ده. ځکه باطنی کیفیاتو باندې حکم لګول دَ دوئ د بحث نه بهر دی. او خشوع یو باطنی کیفیت دے، نو په دے وجه دوئ خشوع په ټول مونځ کښې شرط نهٔ ګرځوی. بلکه د خشوع معمولی او ادنیٰ مرتبه ئې شرط کړے ده او هغه دا چه کم ازکم د تکبیر تحریمه په وخت صرف دَ الله د عبادت او تعظیم نیت ئې وی.

د دے خبرے، چه خشوع په ټول مانځهٔ کښې شرط نهٔ ده، بل دلیل دا دے چه دَ قُرآن په نورو آیاتو کښې، د احکامو د تشریح دا واضح او ښکاره اصول ښودلی شوی دی، چه الله پاک په بنیادمو دا سے یو خیز نهٔ فرض کوی چه هغه دَ دوئ طاقت نه بهروی. او په ټول مانځهٔ کښې خشوع لرل، ماسوا د یو څو کسانو نه، د طاقت نه بهر خیز دے نو په دے وجه د مانځهٔ په سر کښې خشوع شرط کړے شوه، نه په ټول مانځهٔ کښې.

**مونځ د خشوع نه بغیر هم بالکل بې فائدې نهٔ دے**

په آخر کښې امام غزالیؒ وائی چه :- د خشوع د داسے اهمیت باوجود، مونږ د الله پاک نه امید لرو چه غفلت سره مونځ کوُنکے هم بیخی تارك الصّلوٰة په درجه کښې نهٔ دے. ځکه چه دَ فرضو دادا کولو اراده خو ئې کړے ده. او د لږے شیبې د پاره زړهٔ ئې الله پاک د پاره خالی کړے دے، هغه دا چه کم ازکم د نیت په وخت کښې ئې خیال صرف الله تعالیٰ ته وو. د داسے مونځ کم ازکم فائده دا ضرور ده. چه د دهٔ نوم د نافرمانانو وبلیما خوُد فهرست نه اُوتو. لیکن په بل اړخ کښې دا دیره هم ده، چه چرته د غافل حالت د تارك د حالت نه زیات خراب نهٔ وی. ځکه چه کوم غلام د آقا په خدمت کښې حاضر شی او آقا ته ئې څهٔ توجه نهٔ وی

او د حقارت نه چې کله ئې سره خبرې کوي، نو دده حالت د هغه غلام نه ډېر زيات خراب دے چې هغه د سرنه د آقا خدمت ته حاضر شوے نه وي.

لنډه دا چه دا معامله ډېرے او د اُميد ده. د عذاب ډېره هم ده او د بخښنې اُميد هم. نو په دے وجه غفلت او تساهل پرېښودلو د پاره د خپل وَس موافق کوشش کول پکار دي.

يَٰبَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ ٱذْكُرُوا۟ نِعْمَتِىَ ٱلَّتِىٓ أَنْعَمْتُ عَلَيْكُمْ وَأَنِّى

اے بني اسرائيلو ياد کړئ زما احسان چه ما په تاسو کړے دے او هغه چه ما

فَضَّلْتُكُمْ عَلَى ٱلْعَٰلَمِينَ ﴿٤٧﴾ وَٱتَّقُوا۟ يَوْمًا لَّا تَجْزِى نَفْسٌ عَن

تاسو ته نورے والے درکړے دے په ټول عالم باندے او وېرېږئ د هغې ورځې نه، چه په کار به را نشي يو سړے

نَّفْسٍ شَيْـًٔا وَلَا يُقْبَلُ مِنْهَا شَفَٰعَةٌ وَلَا يُؤْخَذُ مِنْهَا

د بل، څه قدرے او قبول به نشي د هغه د طرفه سفارش او نه به وا خستے شي د هغه له طرفه

عَدْلٌ وَلَا هُمْ يُنصَرُونَ ﴿٤٨﴾

بدله او نه به ددوئ مدد اُوکړے شي

**لنډ تفسير** اے د يعقوب (عليه السلام) اولاده، تاسو زما هغه نعمت ياد کړئ (د دے د پاره چه د شکر او د اطاعت حرکت پيدا شي) چه ما تاسو ته په انعام کښے درکړے وو (او هغه خبره ياده کړئ) چه ما تاسو ته (په خاص خاص معاملو کښے) په ټولے دنيا والو باندے اُوچت والے درکړے وو (او يو ترجمه دا هم کيدے شي چه "ما تاسو ته د مخلوق په يو لوئے برخې اُوچتوالے درکړے وو" مثلاً د هغې زمانے په خلقو باندے.

فائده:- په دے آيت کښے خطاب هغه يهودو ته دے کوم چه د نبي عليه الصّلوٰة والسلام په زمانه کښے وو. او عموماً دا سے کيږي چه په پلار او نيکه باندے کوم احسان اُوکړے شي د هغې نه د هغه اولاد هم فائده آخلي. د دے خبرے په عام طور سره مشاهده ده، نو په دے

وجه دوئ هم په دې آيت کښې مخاطب کړے شي۔

او اُويريږئ د داسې ورځې نه چه (هغې کښې) نه يو کس د بل کس د طرف نه څه مطالبه اداکولے شي او نه يو کس د پاره د بل له طرفه څه سفارش قبليدے شي (بيا چه پخپله په دغه کس کښې ايمان هم نه وي چه د کوم سفارش کولے شي) او نه د يو سړي له طرفه څه بدل له اخستے شي او نه به د دغه خلقو طرفداري اُکړے شي۔

فائده :۔ په دے آيت کښې چه د کومې ورځې ذکر دے، هغې نه مراد د قيامت ورځ ده۔ د مطالبې اداکولو مطلب دا دے چه مثلاً د چا په ذمه مونځ او روژه وي او بل کس دا اُوائي چه زما مونځ روژه دِ وا خستے شي او دده حساب دِ بے باقه شي۔ او د معاوضے مطلب دا چه څه مال وغيره داخل کړے شي او دے بچ کړے شي۔ يعني دا دواړه خبرے به نه وي۔ او بغير د ايمان نه د سفارش د نه قبليدو چه ويلے شوي دي، نو د نورو آياتو نه معلومه شوے ده چه د دے صورت به دا وي چه د داسې خلقو به سفارش نه کيږي چه هغه د قبليدو نه وي۔ او د طرفدارئ صورت دا دے چه څوک زوردار حمايت اُکړي او په زبردستئ ئې د عذاب نه را اُباسي۔

غرض دا، چه په دنيا کښې د متعدد څومره طريقې وي، هغه به هلته د عذاب نه د بچ کيدلو د پاره کار نه وي۔ هو، صرف يوه طريقه شته چه هغه ايمان دے۔

وَاِذْ نَجَّيْنٰكُمْ مِّنْ اٰلِ فِرْعَوْنَ يَسُوْمُوْنَكُمْ سُوْٓءَ الْعَذَابِ يُذَبِّحُوْنَ

او ياد کړئ هغه وخت چه خلاصے درکړو مونږ تاسو د فرعون د خلقو نه چه کول به ئې په تاسو باندې لوئ عذاب، ذبح کول به ئې

اَبْنَآءَكُمْ وَيَسْتَحْيُوْنَ نِسَآءَكُمْ ۭ وَفِيْ ذٰلِكُمْ بَلَاۗءٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ عَظِيْمٌ ﴿۴۹﴾

ستاسو ځامن او ژوندئ به ئې پريښودے ستاسو ښځې او په دے کښې ازميښت وو ستاسو د پروردګار له طرفه لوئ

لنډ تفسير : مخکښې چه د کومو معاملو حواله ورکړے شوے ده له دے ځايه د هغې تفصيل شروع شو۔ د مبنئ معامله خو داده چه او رهغه زمانه يادة کړئ، چه کوم وخت خلاصے درکړو مونږ تاسو (خلقو پلارانو نيکونو) ته د فرعون د متعلقينو نه چه په فکر کښې لګيدلي وو ستاسو د زهرة آزارولو د پاره مرئ به ئې غوڅولے ستاسو د اولاد (نارينه) او ژوندئ

به ئې پریښودلې ستاسو ښځې (چینکئ به ئې ژوندۍ پریښودلې نو هغه به لوئې ښځې شوې)

او په دې (واقعې) کښې ستاسو د پروردګار له طرفه ستاسو لوئې د ژوند امتحان دو -

فائده :- چا فرعون ته پیشن ګوئی کړې وه ، چه په بنی اسرائیلو کښې به یو داسې هلك پیدا کیږي ، چه د هغه د لاسه نه به ستا بادشاهي ختمیږي - په دې وجه چه په بنی اسرائیلو کښې به کوم هلك پیدا شو هغه به ده مړ کولو او د جینکو نه خوړې ویره نه وه ، نو دوئ ته به ئې څه نه وئیل او ژوندۍ به ئې پریښودلې - دویمه خبره دا وه چه دې ښځو نه به ده د دیخو او د خدمت کارو کار اخستو ، نو د دوئ ژوندۍ پریښودل هم د خپل مقصد د پاره وو -

او په "ذٰلِكُمْ" سره اشاره یا ذبح او قتل ته ده - او ذبح او قتل مصیبت وئې او په مصیبت کښې د صبر امتحان وی (یعنی دا معلومول وی چه دا سړے په دې مصیبت کښې څومره صبر کوی) یا په "ذٰلِكُمْ" سره اشاره خلاصئ ته ده - او خلاصې خو یو نعمت دے - او په نعمت کښې د شکر امتحان وی (یعنی دا ظاهرول وی چه دا سړے په دې نعمت شکر کوی او که نه) او د دې نجات او خلاصئ تفصیل ئې وړاندې بیان کړو -

وَاِذْ فَرَقْنَا بِكُمُ الْبَحْرَ فَاَنْجَيْنٰكُمْ وَاَغْرَقْنَآ اٰلَ فِرْعَوْنَ وَاَنْتُمْ

اوکوم وخت چې اُشلوو مونږ ستاسو په وجه دریاب بیا بچ کړی مونږ تاسو او ډوب موکړه د فرعون خلق او تاسو

تَنْظُرُوْنَ ۝۵۰ وَاِذْ وٰعَدْنَا مُوْسٰٓى اَرْبَعِيْنَ لَيْلَةً ثُمَّ اتَّخَذْتُمُ

کتل او کله چه مونږ وعده اُکړه موسیٰ سره د څلویښتو شپو ، بیا تاسو

الْعِجْلَ مِنْۢ بَعْدِهٖ وَاَنْتُمْ ظٰلِمُوْنَ ۝۵۱

سخي جوړ کړو د موسیٰ نه وروستو او تاسو ظالمان وئ -

لنډ تفسیر :- او (هغه زمانه یاده کړئ) چه کوم وخت اُشلوو مونږ تاسو ته (د لارې د رکولو په وجه ترڅو دریاب بیا مونږ ه (د ډوبید و نه) بچ کړئ تاسو او غرق موکړل د فرعون متعلقین (سره د فرعونه) او تاسو (دا) کتل -

فائده :- دا قصه هغه وخت اوشوه چه موسیٰ علیه السلام پیدا شو . بیا پیغمبر شو - او تر ډیر

وخته پورې ئې فرعون پوهه نه وو - کوم وخت چه هغه په هیڅ صورت کښې منلو ته تیار نهٔ شونو
موسیٰ علیه السّلام ته حکم اُوکړے شو، چه ته به پټه بنی اسرائیل د دے ځائے نه بوځه - په لاره
کښې دریاب راغے او په دغه وخت کښې د رُسیدونه فرعون سره د بنکره را اُرسیدو - د الله تعالیٰ
په حکم دریاب اوشلیدو او بنی اسرائیلو ته دَ تیریدلو لاره پیدا شوه - دوئ خو پورے وَتل - دَ
فرعون رسیدلو پورے دریاب د غه شان وو - هغه هُم دوئ پسے دَ تلو په غرض په دریاب
ورګډ شو - نو په دغه وخت دَ هغوی دواړو طرفو نو نه دریاب بیا را غونډ شو او په خپل پخوانی
حالت شو - فرعون او د هغه ملګری ټول هلته کښې غرق شو -

او (هغه زمانه یاده کړئ) کوم وخت چه وعده اُوکړه مُونږ موسیٰ (علیه السلام) سره (د تورات
دَ ورکولو د څه مودے په تیریدو، چه هغه کښې د سو شپو ز یاتوا لے اُشو، دَ خلوینتو شپو
(زمانه شوے وه) بیا تاسو خلقو (دعبادت دَ پاره) تجویز کړو خَسے دمُوسیٰ (علیه السلام د
تلونه) نه رُستو او تاسو (په دے تجویز کښې صریح) ظلم ته ملا تړلے وه (چه د دا سے بے ځایه
خبرے قائله شوی وئ)

فائده :- دا قصه هغه وخت اُوشوه چه کوم وخت د فرعون د غرقیدو نه رُستو بنی اسرائیل
د بعضو په قول مصر ته واپس شوّل او یا په قول د بعضو، په یو مقام کښې دیره شول - نو موسیٰ
علیه السّلام ته بنی اسرائیلو اُووئیل چه اوس مونږ بالکل په اطمینان یُو - که چرے څه شریعت
او قانون مونږ د پاره مقرر کړے شی، نو هغه به مونږ خپل دستورالعمل جوړ کړو - د مُوسیٰ
علیه السّلام په عرض کولو الله تعالیٰ وعده اُوکړه چه ته کوهِ طور ته راشه - یوه میاشت
زمونږ په عبادت کښې تیره کړه - یو کتاب به مونږ تا ته درکړو - موسیٰ علیه السلام د غه شان
اُوکړل او تورات دهٔ ته ورکړے شو - لیکن د لسو ورځو په عبادت کښې د تیرولو حکم لدے وجے
ورکړے شو چه موسیٰ علیه السلام د یوے میاشتے د روژے نیولو نه پس افطار کړے وو - او
الله تعالیٰ ته د روژه دار د خُولے بُوئی خوښ دے - نو په دے وجه موسیٰ علیه السلام ته حکم
اُشو چه لس ورځے نورے روژے اُنیسه چه هغه بوئی بیا پیدا شی - نو دا سے دا خلوینت روژے
پُوره شوے - موسیٰ علیه السّلام خو دلته وو - او هلته یو سړی چه نوم ئے سامری وو د سپینو
یا د سرو د یو خَسی قالب جوړ کړو او پکښے ئے هغه خاوره واچوله چه کومه دهٔ د جبرائیل علیه السلام
دَ اَسپه دَ خپو لاندے نه اَغستے وه او ځان سره ئے محفوظه ساتلے وه - په دغه خَسی کښې رُوح او

خارا غله او جاهلو بنی اسرائیلو د دے عبادت شروع کړو۔

ثُمَّ عَفَوْنَا عَنْكُمْ مِّنْ بَعْدِ ذٰلِكَ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿۵۲﴾

بیا معاف کړی مونږ تاسو په دے هم دے د پاره چه تاسو احسان اُمنئ

**لنډ تفسیر**:- بیا هم مونږ (ستاسو توبے کولو سره) عفو اُکړه تاسو ته، دومره غټے خبرے نه پس، په دے اُمید چه تاسو به ښیګړه اُمنئ۔

فائده:- دَ دے توبے بیان روستو په دریم آیت کښے ذکر دے۔ د الله تعالیٰ د دے امید لرلو مطلب نعوذ بالله دا نه دے، چه خدائے تعالیٰ ته شک وو بلکه مطلب دا دے چه دا عفو دا سے څیز دے، چه لید و نکو ته د شکر ګذارئ دا امید ګمان کیدے شی۔

وَاِذْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ وَالْفُرْقَانَ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ ﴿۵۳﴾

او کوم وخت چه ورکړو مونږ موسیٰؑ ته کتاب او حق د ناحق نه جُدا کوُ نکی حکمونه، د دپاره چه تاسو نیغه لار بیا مومئ

**لنډ تفسیر**:- او (هغه زمانه یاده کړئ) چه کوم وخت موسیٰ (علیه السلام) ته کتاب (تورات) مونږ ورکړو او د فیصلے څیز په دے اُمید، چه تاسو په نیغه لار روان اُسیږئ۔

فائده:- دَ فیصلے څیز یا خو هغه احکام شرعیه ته ے ویئلے دے چه کوم په تورات کښے لیکلی دی۔ ځکه چه شرع سره، د ټولو اعتقادی او عملی اختلافونو فیصله کیږی۔ یائے معجزو ته ویئلی دی، ځکه چه د دوئ سره د رښتیا وُ او دَ دروغو دَ عوو فیصله کیږی۔ یائے تورات ته ویئلی دی، چه په دے کښے د کتاب صفت هم شته او د فیصلے کولو صفت هم۔

وَاِذْ قَالَ مُوْسٰى لِقَوْمِهٖ يٰقَوْمِ اِنَّكُمْ ظَلَمْتُمْ اَنْفُسَكُمْ

او کوم وخت چه اُووے موسیٰ خپل قوم ته اے قومه! تاسو نقصان اوکړو د خپل ځان

بِاتِّخَاذِكُمُ الْعِجْلَ فَتُوبُوٓا إِلٰى بَارِئِكُمْ فَاقْتُلُوٓا أَنْفُسَكُمْ ۚ

د خخې په جوړولو نو اوس توبه اوکړئ خپل پیدا کوونکي ته او اووژنئ خپل خپل ځانونه

ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ عِنْدَ بَارِئِكُمْ ۚ فَتَابَ عَلَيْكُمْ ۚ إِنَّهٗ هُوَ

دا غوره ده تاسو د پاره، ستاسو پروردګار په نزد بیا متوجه شو په تاسو بانديې بیشک هغه دے

التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ ﴿٥٤﴾

معاف کوونکے او ډیر مهربان.

لنډ تفسیر :- او (هغه زمانه یاده کړئ) هرکله موسٰی (علیه السلام) خپل قوم ته اُووے چه اے زما قومه! بے شکه تاسو خپل لوئے نقصان اوکړو د خخې د عبادت کولو په وجه او تجویز سره - نو تاسو اوس د خپل خالق په طرف متوجه شئ - بیا بعضے خلق (چه کوموو خخې عبادت نه وی کړے) بعضے هغه خلق (کوموچه د خخې عبادت کړے دے) قتل کړئ دا (کار) تاسو د پاره به غوره دی ستاسو د پیدا کوونکي په نزد بیا په دے (کار کولو سره) الله تعالیٰ ستاسو په حال متوجه شو- بے شکه هغه خو دا سے دے چه توبه قبلوی او مهربانی کوی-

فائده :- دا د هغې طریقې بیان دے چه د دوئ د توبے کولو د پاره تجویز شو یعنی مجرم او ګنهګار خلق دِ قتل کړے شی - ځکه زمونږ په شریعت کښے هُم د بعضے ګناهونو سزا باوجود، د توبے هُم قتل او هلاکول دی- مثلاً په قصدی قتل کښے قتل دے او چه د زِنا ثبُوت په ګواهانو سره اوشی هلته رجم دے- دا ځکه چه د توبے کولو سره دا سزا ساقطیږی نو د غو خلقو په دے عمل اوکړو چه د هغې په وجه په آخرت کښے د رحمت او مهربانئ مستحق اُګرځیدل-

وَإِذْ قُلْتُمْ يٰمُوسٰى لَنْ نُّؤْمِنَ لَكَ حَتّٰى نَرَى اللّٰهَ جَهْرَةً فَأَخَذَتْكُمُ

او کوم وخت چه تاسو اُووے اے موسٰی! مونږ به هرګز یقین اُنکړو ستا چه ترڅو او نه وینو الله په ښکاره بیا اګیر کړئ تاسو

الصّٰعِقَةُ وَأَنْتُمْ تَنْظُرُوْنَ ﴿٥٥﴾

تندر او تاسو کتل

لنډ تفسیر:- او (هغه زمانه یاده کړئ) چه هر کله تاسو خلقو (دا سې) اُووې چه اې موسیٰ! مونږ ستاسو وینا به هرګز اُونه منو رچه دا د الله تعالیٰ کلام دې) ترڅو چه مونږ (پخپله) الله تعالیٰ په ځاګه اُونه وینو، نو (په د غه بې ادبئ) په تاسو تندر پریوتو او تاسو (د غه تندر پریوتل) په سترګو لیدل۔

فائده:- دا قصه دا سې شوه چه کوم وخت موسیٰ علیه السلام د طُور غرنه وا پس راغې او تورات ئې ځان سره راوړو او وې ویل چه دا د الله تعالیٰ کتاب دې. نو ځینو بې ادبو خلقو اُووې، چه الله تعالیٰ دِ پخپله مونږ ته اُووائي، چه دا زما کتاب دې، نو بیا به زمونږ یقین راشي. موسیٰ علیه السلام ورته د خدائې په اجازت اُووې چه طُور غره ته ځئ دا خبره به هلته اوشي. بنی اسرائیلو دې کار د پاره اُویا کسان منتخب کړل او موسیٰ علیه السلام سره طُور غره ته ئې اُلیږل. هلته چه اُرسیدل دَ الله تعالیٰ کلام دې خلقو پخپله واوریدو، نو بیا ئې دا اُووې چه صرف کلام آوریدو سره مونږ نه قائعه کیږو ترڅو چه مونږه خدائې تعالیٰ په سترګو لیدلې نهٔ وی. څَه بخبره لیدلو نه د خبرو آوریدو زمونږ یقین په دې وجه نشي راتلې، چه خدائې خبره ده چه خبرې کوونکې به څوک وی او کهٔ خدائې تعالیٰ په سترګو اووینو، نو بې شکه زمونږ یقین به راشي. هر کله چه په دنیا کښې څوک د الله تعالیٰ د لیدو طاقت نهٔ لري نو په دې وجه په دې بې ادبئ په دوئ باندې تندر را پریوتو او ټول هلاک شو۔ (د هلاکت متعلق بیان ور پسې آیت کښې دې)

ثُمَّ بَعَثْنٰكُمْ مِّنْۢ بَعْدِ مَوْتِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿۵۶﴾

بیا را اُوچت کړئ مونږه تاسو د مرګ کیدو نه پس، چه تاسو احسان اُ مَنئ

لنډ تفسیر

بیا مونږ (د موسیٰ علیه السلام په دُعا) تاسو ژوندی کړئ ستاسو د مرګ کیدو نه پس په دې امید چه تاسو به احسان اُ منئ۔

فائده:- "دَموت" د لفظ نه په ظاهره د معلومیږي، چه دا خلق د دې تندر دَ غورځیدو نه مړهٔ شوی وو. دَ دوئ دَ دوباره ژوندی کیدو قصه او دغه دا سې اُشوه۔

چه موسیٰ علیه السلام الله پاک ته دُعا اوکړه چه بنی اسرائیل خودا سے بدګُماندی، اوس به هغوئ دا اُوګنړی چه ما، دوئ چرته بوتلل او په څهٔ چلے او بهانے دَ دوئ کار مې ختم کړو، یعنی مړهٔ مې کړل. ما ، اے خدایه! له دے تهمت نه اُ ساتے، الله پاک په خپل رحمت دوئ بیا ژوندی کړل.

وَظَلَّلْنَا عَلَيْكُمُ الْغَمَامَ وَأَنْزَلْنَا عَلَيْكُمُ الْمَنَّ وَالسَّلْوَىٰ ط

او سورے اوکړو مونږ په تاسو دَ وریځے او نازل مو کړل په تاسو باندے مَن او سلوىٰ

كُلُوا مِنْ طَيِّبَٰتِ مَا رَزَقْنَٰكُمْ ۖ وَمَا ظَلَمُونَا وَلَٰكِنْ كَانُوٓا

خورئ پاک څیزونه ، چه مونږ تاسو ته درکړی دی او دوئ زمونږ څهٔ نقصان اُ نهٔ کړو بلکه

أَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ ﴿٥٧﴾

خپل نقصان ئے کولو

**لنډ تفسیر** او سورے اوکړو مونږ په تاسو دَ وریځے (په میدان تیه کښے) او (د غیبو خزانونه) مو اُ رَسول مونږه تاسو ته ترنجبین او مرزے (او تاسو ته مو اجازت اوکړو چه) خورئ ښهٔ څیزونه چه مونږه تاسو ته درکړی دی (لیکن په دے کښے هم دے خلقو مخالفت اوکړو) او (په دے) دوئ زمونږ څهٔ نقصان اُ نکړو لیکن خپل نقصان ئے اوکړو.

فائده :- دا دواړه قصے او واقعے په تیه کښے پیښے شوی دی. د تیه د وادئ حقیقت دا دے، چه د بنی اسرائیلو اصلی وطن د شام ملک دے. د حضرت یوسف علیه السلام په وخت کښے دوئ مصر ته راغلی وو او دلته پاتے شوی وو. او د شام په ملک باندے د عمالقه په نوم یو قوم قبضه کړے وه. فرعون کله چه ډوب شو. او دا خلق په آرام شو نو الله پاک دوئ ته د دے انکار دا سزا ورکړه چه څلوېښت کاله په یو میدان کښے سرګردانه او پریشانه ګرځیدل کور ته رسیدل ئے هم نصیب نهٔ شو.

دا میدان څهٔ لویه تهوته نهٔ وه، بلکه د مصر او شام په مینځ کښے پنځه شپږ کوسه، یعنی

تقریباً ۹ میله رقبه اوږده وه. روایت داسې دے، چه دے خلقو خپل وطن مصر ته د تلو د پاره تمامه ورځ به سفر کولو او د شپې به ئې په یو پړاؤ ډیره واچوله، چه صبا به شو نو په هغه ځائے کښې به پراته وو چه د کوم ځائے نه به روان شوي وو. نو د غه شان څلویښت کاله په د غه میدان کښې، سرګردانه او پریشانه ګرځیدل. په دے وجه دے میدان ته "تیه" ویلے شي. چه د تیه معنیٰ ده سرګرداني او پریشاني.

دا د تیه وادي یو فراخ میدان وو چه نه پکښې څه آبادي وه، نه اونه، چه د هغې لاندې د نمر له ګرمئ او یخنئ نه، سري سر په سوري کړے وے او نه پکښې چرته د خوراک او څکاک څه سامان وو، او نه د آغستلو د پاره څه څیز وو. لیکن د معجزے په ډول الله پاک د حضرت موسیٰ علیه السلام په دعا په د غه میدان کښې د دے ټولو ضرورياتو انتظام اوکړو.

بني اسرائیلو چه د نمر او ګرمئ شکایت اوکړو نو الله پاک په دوئ باندې د نرئ سپینې وریځې سورے اوکړو او د لوږے د ختمولو د پاره ئې پرې مَن او سلویٰ نازل کړو. مَن یو خوږ څیز دے چه په اونو باندې کیږي. نو د غه مَن ئې ورته په زیات درکړو او سلویٰ مرغانو ته وائي. دا بټیرې به د دوئ خواؤ شا ته جمع کیدل او له دوئ نه تختیدل نه. دوئ به دا رانیول او ذبحه کول به ئې او خوړل به ئې. او په دے طریقه به ئې دا سپکه غذا او خوراک کولو.

هر کله چه د ترنجبین د ومره ډیر والے کوم چه د معمول نه خلاف وو، او د دوئ خواؤ شا د بټیرو ځائے کیدل او له دوئ وحشت نه کول هُم خلافِ معمول وو. نو په دے وجه دا دواړه څیزونه د غیبو د خزانے نه اُشمیرلے شو او دا یو د پاره دا اُشو چه موسیٰ علیه السلام ته دا حکم اُوشو چه یو کا نړے په لختو اُووهه، نو په وهلو سره د دے کا نړي نه چینې روانے شوے لکه دا خبره په بل آیت کښې ذکر ده. دے خلقو د شپې د تیرے شکایت اوکړو. نو الله پاک د دوئ د مجلس په مینځ کښې د ستنې په شکل یو رڼا اُودروله. او هُم د غه شان په معجزانه طور د دوئ د پوشاک انتظام الله پاک اُکړو، هغه دا، چه کوم لباس دوئ آغوستے وو، هغه نه خیرنیدو او نه شلیدو او د وړو په غاړه چه کوم وو، هغه به د دوئ لویدو سره لوئیدو. (قرطبی)[1]

او دے خلقو ته دا حکم شوے وو، چه د خرخ او د ضرورت په قدر اخلئ او د راتلونکي ورځے د پاره ئې جمع کولو په حیث مه اخلئ. لیکن دے خلقو د حرص په وجه په دے کښې هم خلاف اوکړو. نو چه کومه غوښه به ئې د راتلونکي ورځے د پاره ایښے ده هغه به ډیر زر

ښځې کيدهٔ او دغې ته الله پاک ويلي دي چه دوئ خپل نقصان کوو۔

وَاِذْ قُلْنَا ادْخُلُوْا هٰذِهِ الْقَرْيَةَ فَكُلُوْا مِنْهَا حَيْثُ شِئْتُمْ

او کوم وخت مونږ اُووے چه داخل شئ دے ښار ته او خورئ په دے کښې چه کوم ځائے کښې ستاسو خوښه وي

رَغَدًا وَّادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا وَّقُوْلُوْا حِطَّةٌ نَّغْفِرْ لَكُمْ

په فراخئ سره او داخل شئ په دروازه کښې په سجده بانده او وايئ اُوبخه نو معاف به کړو مونږه

خَطٰيٰكُمْ ۚ وَسَنَزِيْدُ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿٥٨﴾

ستاسو قصورونه او زيات به هم ورکړو نيکو کارو ته

## لنډ تفسير

او (هغه زمانه ياده کړئ) کله چه مونږ دا حکم اُوکړو، چه تاسو خلق دے آبادئ ته دننه ورشئ بيا خورئ دد ے (د څيزونو نه) کوم ځائے کښې چه ستاسو خوښه وي بغير له تکليفه او (دا حکم مو هم اُوکړو چه کوم دننه ورځئ نو دروازه کښې (په عاجزئ) داخليږئ سر ښکته او (په ژبه دا) وايئ چه توبه ده (توبه ده) مونږ به معاف کړو (ستاسو ړومبنئ) خطاګانے (ستاسو د ټولو) او په دے بانده زياتي به نور ورکړو، د زړه نه ښه کار کوونکو ته۔

فائدهٔ :۔ د شاه عبد القادرؒ قول مطابق دا واقعه هُم د تيـه د زمانے ده۔ هغه دا رنګ چه هرکله دوئ د من او سلوٰی د خوراک نه تنګ شو، يعني زړه ئے ترے موړ شو او د خپل معمولي خوراک درخواست ئے اُوکړو۔ (لکه چه رُوستو په څلورم آيت کښې راځي) نو دوئ ته يو ښار ته د تلو حکم اُوکړے شو۔ چه هلته به د خوراک څکاک حسبِ معمول څيزونه اُموندے شي۔ نو دا حکم د دغه ښار ته د داخليدلو متعلق دے۔ او په دے حکم کښې، د داخليدو دپاره فعلي او قولي ادب بيان کړے شوے دے۔ په دے قول (يعني د شاه عبد القادرؒ په قول) کښ چرے څيزونه هيراُو يلے شي، نو هغه به صرف داوي چه د قصے په بيان کښې دړانډ والے او رُستو والے شوے دے، چه رُستنئ واقعه او قصه مخکښې بيان شوے ده او ړومبنئ قصه او واقعه رُستو ذکر شوے ده۔ ليکن دا خبره او اشکال څهٔ دومره

اهمیت نه لري ځکه چه د قرآن کریم مقصد اصلي د قصو بیانول نه دي بلکه د قصو نه چه کوم نتایج یا اُوځي هغه د قرآن کریم مقصد اصلي دے. نو که چرے د یوے قصے په اجزاو کښې دهر یو جزء نتیجه جُدا جُدا وي او د غه نتیجو د خه اثر په وجه که وړاندېنے جزء وُستو او وُستنے جزء مخکښې کړے شي، نو په دے کښې څه قباحت او اشکال نشته.

نورو مفسرینو، دا حکم، د هغه بنار متعلق ګنړلے دے کوم د پاره چه د جهاد کولو حکم شوے وو. او د تیه د زمانے نه وُستو بیا په دے بانډې د جهاد کولو حکم اُشو. د غه وخت یوشع علیه السلام پیغمبر وو. نو دا حکم د ده په توسط او واسطے سره د د غه ښار په حقله شوے وو.

د وړومبي قول په بنا، په وړومبي خطا کا نو کښې هغه درخواست هم داخلول بکار او مناسب دي، په کوم کښې چه من او سلوی پریښودل . او معمولي خوړاکو نه غوښتل دي. مطلب به دا شي چه دا غوښتنه خو ګستاخي وه. لیکن خیر. اوس که چرے دا ادب او حکم پوره کړے شي نو هغوي به معاف کړے شي او په هر قول خو به دا معافي ټولو دپاره عامه وي او کوم چه اخلاص سره ښه عملونه اُوکړي د هغې انعام به دے نه علاوه وي.

فَبَدَّلَ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا قَوْلًا غَيْرَ الَّذِيْ قِيْلَ لَهُمْ فَاَنْزَلْنَا

بیا بدله کړه ظالمانو خبره په خلاف د هغې چه وئیلے شوے وه دوي ته بیا نازل کړو مونږ

عَلَى الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا رِجْزًا مِّنَ السَّمَآءِ بِمَا كَانُوْا يَفْسُقُوْنَ ﴿۵۹﴾

ظالمانو بانډې عذاب د آسمان نه د دوي د حکم نه منلو په وجه

لنډ تفسیر

نو بدله کړه دے ظالمانو یوه بله کلمه چه خلاف وه د هغې کلمے د کومے (د وینا) چه دوي ته حکم کړے شوے وو. په دے وجه مونږ نازل کړو په دے ظالمانو بانډې یو آسماني آفت، ځکه چه دوي د حکم نه غاړه اُرغړولے.

فائده :- دا آیت د وړومبي آیت د پاره تتمه ده. هغه مخالفه کلمه داوه چه د "حِطَّةٌ" په ځائے د خندا او مسخرے د پاره "حَبَّةٌ فِيْ شَعْرَةٍ" وئیل ئے شروع کړل. د "حِطَّةٌ" معنی ده توبه. او د "حَبَّةٌ فِيْ شَعْرَةٍ" معنی ده غله ده، دانه ده د وړ بشے په مینځ کښې. او دا آفت سماوي

طاعون وو، چه دا دَ یوحدیث له مخه د نافرمانو عذاب، او دَ فرمانبردارو دپاره رحمت دے. دَ دے شرارت او نافرمانئ دوئ ته دا سزا ورکړے شوه چه دوئ کښې طاعون ګډ شو او ډیر خلق مړه شو. بعضو دَ هلاکیدونکو شمیر اویا زره (۷۰۰۰۰) پورے ښودلے دے (قرطبیؒ)[1]

## علوم او مسائل

**په کلام کښې د لفظي تغیر او تبدیل شرعي حکم**

له دے آیت نه دا معلومه شوه، چه بنی اسرائیلو ته دا حکم شوے وو چه دے ښار ته دَ داخلیدو په وخت کښې "حِطَّةٌ" یعنی توبه وایئ. لو دوئ دَ شرارت په وجه دا الفاظ بدل کړه او "حِنْطَةٌ" ویل ئے شروع کړه، چه دَ هغے په وجه په دوئ آسمانی عذاب نازل شو. دا الفاظو دا بدلول داسے وو، چه په هغے کښې صرف الفاظ بدل شوی نه وو، بلکه معنی هم بالکل بدله شوے وه. دَ "حِطَّةٌ" معنی وه توبه او دَ "حِنْطَةٌ" معنی غنم چه دَ دے دَ هغه کلمے سره هیڅ سمون نشته چه د کومے کلمے دوی ته حکم شوے وو. دا الفاظو دا قسم تبدیلی او بدلول، خواه هغه که په قرآن کښې وی یا په حدیث کښې، یا څه بل امرالهی کښې، لو دا بغیر د څه شکه او په اتفاق سره حرام دی. ځکه دا یو قسم خند اَیا تحریف دے.

اُوس پاتے شو دا حکم، چه معنی او مطلب باقی دی صرف په الفاظو کښې چه تبدیلی راشی نو د هغے څه حکم دے؟ امام قرطبیؒ[1] په خپل تفسیر کښې دَ دے متعلق لیکی چه په بعضو کلمو او اقوالو کښې دَ معنی په شان الفاظ هم مقصود وی. او دَ عبادت دادا کولو دپاره ضروری وی. په داسے اقوالو کښې لفظی تبدیلی هم جائز نه ده؛ ځکه دا ذات مقرر شوی الفاظو بغیر څه نور الفاظ ویل، چه هغه دَ دغه مقرر شوو الفاظو معنی اداکوی روانه دی. هم دغه شان په مانځه کښې چه کومے دُعاګانے دی. لکه: سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ، اَلتَّحِيَّات، دُعاءِ قنوت، یا د رکوع او تسبیح ګانے چه په کومو الفاظو سره نقل شوی دی، په هغه الفاظو کښې ئے ادا کول ضروری دی. په نورو الفاظو کښې، اګرچه هغه معنی محفوظ ولے نه وی، ویل جائز نه دی. دغه شان د ټول قرآن شریف دا الفاظو د غه حکم دے. چه د قرآن کریم تلاوت سره چه کوم احکام تړلی دی، هغه صرف د غه الفاظو سره تړلی دی چه په کومو الفاظو کښې قرآن کریم نازل شوے دے. که چرے څوک د دے الفاظو ترجمه په نورو الفاظو کښې اُوکړی په داسے طریقے سره چه معنی بالکل محفوظه وی لو دے ته د شریعت په اصطلاح کښې دَ قرآن تلاوت ویلے نه شی او نه په دے

---

1. ص: ۱۱ ج ۱، او دا ویناابن زید کړے ده.

بانډې هغه ثواب مونده شي چه کوم د قرآن په لوستلو مقرر شوے دے، چه د یو حرف
په لوستلو لس ۱۰ نیکیانې لیکلې شي. ځکه چه قرآن یواځې د معنی نوم نهٔ دے، بلکه د معنی
او د نازل شوو الفاظو د مجموعې نوم قرآن دے.

په دے ذکر شوی آیت کښې: فَبَدَّلَ الَّذِينَ ظَلَمُوا قَوْلًا غَيْرَ الَّذِي قِيلَ لَهُمْ
د الفاظو نه په ظاهره دغه معلومیږی، چه د دوئ ته د توبې د پاره کوم الفاظ د حِطَّةٌ ښودلے
شوی وو، د غه الفاظ هم مأموربه وو. (یعنی د دغه الفاظو د وئیلو د پاره دوئ ته حکم
کړے شوے وو) ځو دے بدلول پخپله هم ګناه ده بیا بدلول ئے داسے اوکړل چه معنی ئې
بالکل بدله کړه. نو په دے وجه د آسمانی عذاب لائق شو.

لیکن چه په کومو قولو او کلمو کښې مقصود اصلی معنی وی الفاظ نهٔ وی په دوئ کښې
که چرے لفظی تبدیلی داسے اوکړے شی چه په معنیٰ څهٔ اثر نهٔ غورځیږی. او معنی
بالکل نه له محفوظه وی، نو د جمهور و محدثینو او د فقهاو په نزد دا تبدیلی روا ده.

بعضے محدثین حضرات د نبی صلی الله علیه وسلم په حدیث کښې داسے لفظی تبدیلی هم
روا نهٔ ګنړی. قرطبی د امام مالک، شافعیؒ او امام اعظم ابوحنیفهؒ نه نقل کوی چه په حدیث
کښې روایت بالمعنی (یعنی د حدیث الفاظو کښې تبدیلی کول چه معنی ئے محفوظه وی) هُم
جائز دی. لیکن یو شرط دے چه روایت کوونکے د عربئ ژبې ماهر وی. او د خطاب د موقعو
نه (د ځایونو نه) او د هغه ماحول نه چه په کوم کښې حدیث راغلے وی، په ښهٔ طریقې خبردار
وی. دا د دے د پاره چه معنی کښې ئے فرق را نشی[1].

او د حدیث د اماما نو یو ډله چه څهٔ رنګے د حدیث الفاظ ئے آوریدلی دی هغه شان
نقل کول ئے ضروری ګنړی. څهٔ لفظی تغیر او تبدل روا نهٔ ګنړی. د محمد بن سیرین،
قاسم بن محمد وغیره حضراتو هم دا مسلک دے[2]. تر دے چه په دوئ کښې د بعضو حضراتو
تعامل دا دے که چرے د حدیث روایت کوونکی په څهٔ لفظ نقل کولو کښې څهٔ لغوی غلطی هم
کړے وی نو دهٔ نه اوریدونکی له ضروری ده چه په دغه غلطئ سره دِ روایت کوی. د
خپل طرف نه دِ څهٔ تبدیلی نهٔ کوی. ورسره دا دِ دا ظاهره کړی چه زما په خیال صحیح لفظ
داسے دے. لیکن ماته روایت داسے رسیدلے دے. د دے حضراتو دلیل هغه حدیث دے چه
په هغې کښې نبی صلی الله علیه وسلّم یو سړی ته دا تلقین کړے وو، چه کوم وخت اوده کیدو

(۱) قرطبی ج: ۱، ص: ۴۱۲ (۲) د غه ورمبنئ مرجع او صفحه.

دَ یاره کټ ته خیژے نو دا دُعا وایه :- "اٰمَنْتُ بِكِتَابِكَ الَّذِیْٓ اَنْزَلْتَ وَ نَبِیِّكَ الَّذِیْٓ اَرْسَلْتَ
نو دے سړی د "نَبِیِّكَ" په ځائے "رَسُوْلِكَ" او ویستلو، نو نبی صلی الله علیه وسلم ورته بیا
هدایت اُوکړو چه د نَبِیِّكَ لفظ وایه نو له دے نه معلومه شوه چه لفظی تبدیلی هم روانه ده.
د غه شان په یو حدیث کښے نبی صلی الله علیه وسلم فرمائی :-
نَضَّرَ اللّٰهُ امْرَأً سَمِعَ مَقَالَتِیْ فَبَلَّغَهَا كَمَا سَمِعَهَا (ترجمه) الله پاک دِ هغه سړے سرسبز او
تازه لری - چا چه زما کلام واؤریده او بیائے اُمت ته هغه شان اورسوو، څنګه چه ئے
آؤریدلے وو"

له دے نه هم ظاهره ده چه په کومو الفاظو ئے آؤریدلے وی په هغے الفاظو دِ رسوی.
لیکن د جمهورو محدثینو او فُقهاؤ په نزد اګر چه غوره خو دغه ده، چه ترڅو پورے کیدے
شی د حدیث روایت دِ په هغه الفاظو سره نقل کوی چه په کوموالفاظو سره ئے آؤریدلے
وی او په تصدیق کښے بدلول او اړول نهٔ کوی - لیکن کهٔ چرے د غه الفاظ ورته پوره
یاد نهٔ وی نو د هغے مفهوم او معنیٰ په خپلو الفاظو کښے نقل کول هم روادی - او د حدیث
"بَلَّغَهَا كَمَا سَمِعَهَا" مطلب دا هم کیدے شی چه کوم مضمون ئے آؤریدلے دے هغه دِ
بعینه نقل کړی او په مفهوم کښے دِ فرق نهٔ راولی - او د الفاظو تبدیلی دَدے څهٔ منافی
نهٔ ده - امام قرطبی[1] د دے په تائید کښے وائی چه بخپله د غه حدیث د دے دلیل دے چه دَ
الفاظو تبدیلی د ضرورت له مخه رواده. ځکه چه بخپله دَدے حدیث روایت مونږ ته په
مختلفو الفاظو رسیدلے دے -

او بدو مبی حدیث کښے چه د "رَسُوْلِكَ" لفظ په ځائے د "نَبِیِّكَ" د لفظ دو یلو
حکم اُوکړے شو، د هغے وجه دا هم کیدے شی، چه د نبی په لفظ کښے د مدح صفت په
نسبت د رسول زیات دے - ځکه چه دَ رسول لفظ د قاصد په معنی نورو خلقو دَ پاره
هم استعمالیږی چه د الله پاک له طرفه خپل خاصو بندګانو ته دَ وحی په ذریعه ورکړے شی
کوم خطاب کولے شی ورکیدے شی.

او دویمه وجه دا هم کیدے شی. چه په دُعاګانو کښے د نقل شوو الفاظو اتباع لدے
وجے پکار ده، چه د د غه الفاظو خاص اثر وی کوم چه په دُعا کښے مقصود وی او په نورو الفاظو
کښے د غه خاصیت نهٔ وی[2] د غه وجه ده، عامل حضرات په کوم تعویذونو ساختو نهٔ کوی

نو هغوئ د دے خبرے ډیر خیال ساتی. په کوم الفاظ منقول دی په هغې کښې څۀ تبدیلی راشی.
په دے وجه ویلے شی چه ماثوره دُعاګانے (یعنی نقل شوے دُعاګانے) هم په ډیرو مهمو قسم
کښے داخلے دی چه هغې کښې د معنی سره د مخصوصو الفاظو حفاظت هم مقصود وی. وَاللّٰهُ
سُبْحَانَهٗ وَتَعَالٰی اَعْلَمُ.

وَاِذِ اسْتَسْقٰی مُوْسٰی لِقَوْمِهٖ فَقُلْنَا اضْرِبْ بِّعَصَاكَ الْحَجَرَ ؕ

او کوم وخت چه اوبه اُغوښتے موسیٰ د خپل قوم د پاره نو مونږ اُوے وهه په خپله امسا کانړے

فَانْفَجَرَتْ مِنْهُ اثْنَتَا عَشْرَةَ عَيْنًا ؕ قَدْ عَلِمَ كُلُّ اُنَاسٍ

نو اُوبهیدے له دے نه دولس چینے اُوپیژندو هر قوم او قبیلے

مَّشْرَبَهُمْ ؕ كُلُوْا وَاشْرَبُوْا مِنْ رِّزْقِ اللّٰهِ وَلَا تَعْثَوْا

خپل ګودر خورئ او څکئ د الله پاک روزی او مه ګرځئ

فِى الْاَرْضِ مُفْسِدِيْنَ ﴿۶۰﴾

ملک کښے فساد کوونکی

## لنډ تفسیر:-

او (هغه زمانه یاده کړئ) چه کله (حضرت) موسیٰ (علیه السّلام) د اُبو د پاره دُعا اُکړه، د خپل قوم د پاره نو په دے خبره مونږ (موسیٰ علیه السّلام ته) حکم اُکړو چه په خپله امسا (فلانی) کانړے اُوهه (د دۀ نه به اوبۀ را اُوځی) بس (د امسا وهل وو) فوراً د هغې نه دولس چینے را اُوتے (او د بنی اسرائیلو هم دولس خاندانونه وو) هر یو سړی د خپلو اُبو ځائے معلوم کړو (او مونږ ورته دا نصیحت اوکړو چه خوراک) خورئ (او اوبۀ) څکئ د الله پاک د رزق نه او حد (د اعتدال) نه مۀ اُوځئ فساد (فتنه) کوونکی په زمکه کښے.

فائده:- دا قصه او دا واقعه هم د وادئ تیه ده. هلته چه دوئ تږی شونو اوبه ئے اوغوښتے. موسیٰ علیه السّلام دُعا اوکړه نو د خاص کانړی نه د خدائے تعالیٰ په قدرت د امسا په وهلو دولس چینے روانے شوے او د دوئ دولس خاندانونه داسے وو چه د حضرت

يعقوب عليه السّلام دولس ځامن وو۔ د هر يو اولاد نه يو يو خاندان جوړ شوے وو او د دوئ انتظامي معاملات هم جُدا جُدا وو، د ټولو مشران هم جُدا جُدا وو۔ له دے وجے دولس چينے هم را اُوتے۔

خوراک نه مراد من او سلوئ دي۔ او د څښلو نه مراد د غه اُوبه دي۔ نافرماني کولو د حکمونو پرے سنبوړلو او عمل پرے نه کولو ته ئے فتنه او فساد ويلے دے۔

قاضي بيضاوي رحمه الله عليه وائي چه د دا سے معجزو نه انکار کول ډيره لويه غلطي ده۔ ځکه چه هر کله په بعضو کانړو کښے الله پاک د عقل نه ډير لرے يو دا سے اثر اېښے دے چه هغه اوسپنه ځان ته را کاږي، نو که چرے په دے کانړي کښے ئے دا اثر اېښے وي، چه د زمکے نه اُوبه را اُکاږي او بياله دے اُوځي نو دا څه عجيبه او ناممکنه خبره نه ده۔

زمونږ د وخت عاقلانو ته پکار دي چه له دے بيانه د فائده واخلي۔ او بيا دا مثال صرف د سرسري نظر والو د پاره دے۔ ځکه که چرے پخپله د دغه کانړي په اجزاؤ کښے اُوبه پيدا شي، نو کوم محال به لازم شي؟ کوم خلق چه دا سے څيزونه محال گنړي نو هغوئ ته اُوس هم د محال حقيقت پيژندلے نه دے۔

## علوم او مسئلے

په مذکوره آيت کښے دا دی چه موسی عليه السلام د خپل قوم د پاره د استسقاء دُعا اُوکړه نو الله تعالیٰ د اُوبو انتظام اوکړو چه په کانړي باندي د امساد ګذار سره ئے روانے کړے۔ له دے نه دا معلومه شوه چه د استسقاء اصل بس دُعا ده۔ د موسی عليه السلام په شريعت کښے صرف په دُعا اکتفا اُوکړے شوه۔ او امام ابوحنيفهؒ فرمائي چه د استسقاء اصل د اُوبو د پاره دُعا کول دي۔ او دا دعا کله، د استسقاء د مونځ په شکل کښے شوے ده۔ لکه چه په صحيح حديث کښے دي، چه نبي صلی الله عليه وسلم د استسقاء د مانځه د پاره عيدګاه ته تلے وو او مونځ ئے کړے وو او خطبه ئے ورکړے وه؛ او دعا ئے کړے وه۔ او کله دا سے هم شوي دي، چه بغير د خاص مانځه نه په دُعا بسوالے شوے دے۔ لکه په صحيح بخاري او صحيح مُسلم کښے د حضرت انسؓ روايت دے، چه د جُمع په خطبه کښے نبي صلی الله عليه وسلم دُعا اُوکړه او الله پاک باران اُوورولو۔

او دا خبره قبول منی، چه استسقاء، خواه هغه د مانځه په شکل کښې وی، یا صرف د دُعا په شکل کښې، د داهله مؤثر وی چه د کنا هونو نه توبه اُوکړے شی او د خپلے غریبیٔ، عاجزیٔ او بندګیٔ څرګندول اُوکړے شی - په الله پاک لازمه نۀ دۀ چه د دا سے کسانو دُعا قبوله کړی، چه هغوئ د ګنا هونو نه مخ نۀ اړوی او د الله پاک نافرمانو ته نۀ شا کوی - دا بله خبره دۀ کۀ الله پاک په خپل کرم او فضل سره دا سے دعا قبوله کړی، ځکه چه د هغۀ قُدرت په هر څۀ شته

وَإِذْ قُلْتُمْ يَٰمُوسَىٰ لَن نَّصْبِرَ عَلَىٰ طَعَامٍ وَّٰحِدٍ فَٱدْعُ لَنَا

او کله چه اُوئے تاسو - اے موسیٰ مونږ هرګز صبر به اُنکړو په یو قسم خوراک نو اُغواړه زمونږ د پاره

رَبَّكَ يُخْرِجْ لَنَا مِمَّا تُنۢبِتُ ٱلْأَرْضُ مِنۢ بَقْلِهَا وَقِثَّآئِهَا

د خپل پروردګار نه چه راُباسی زمونږ د پاره کوم چه زمکے زرغونوی سبزی او بادرنګ

وَفُومِهَا وَعَدَسِهَا وَبَصَلِهَا ۖ قَالَ أَتَسْتَبْدِلُونَ ٱلَّذِى

او مسور او پیاز موسیٰ اُوئے آیا تاسو اخلئ هغه څیز

هُوَ أَدْنَىٰ بِٱلَّذِى هُوَ خَيْرٌ ۚ ٱهْبِطُوا۟ مِصْرًا فَإِنَّ لَكُم مَّا

چه هغه ادنیٰ دے په مقابله د هغه څیز کښې چه غوره او اعلیٰ دے کوز شئ یو ښار ته نو تاسو ته به حاصل شی

سَأَلْتُمْ ۗ وَضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ ٱلذِّلَّةُ وَٱلْمَسْكَنَةُ وَبَآءُو بِغَضَبٍ

چه کوم تاسو ئې غواړئ - او دا چوے شو په دوئ باندے ذلت او محتاجی او دا پس شو چه د خدائے غضب

مِّنَ ٱللَّهِ ۗ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ كَانُوا۟ يَكْفُرُونَ بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ وَيَقْتُلُونَ

ئے آغستے وو او دا په دے وجه اُشو چه دوئ نۀ مَنل د خدائے حکمونه او وژل ئے

ٱلنَّبِيِّـۧنَ بِغَيْرِ ٱلْحَقِّ ۗ ذَٰلِكَ بِمَا عَصَوا۟ وَّكَانُوا۟ يَعْتَدُونَ ﴿٦١﴾ ع

پیغمبران په ناحقه او دا په دے وجه چه دوئ نافرمان وو او د حد نه ئے تجاوز کولو

**لنډ تفسير:-** او (هغه وخت یادکړئ) کوم وخت چه تاسو خلقو (دا سې) اُووے چه اے موسیٰ (روزانه) يو خوراک مونږه اُونکړے شو (يعنى من سلوىٰ)، ته زمونږ د پاره دُعا اُوکړه چه هغه زمونږ د پاره دا سې څیزونه پیدا کړی چه زمکه ئې زرغونوی، ساګ (شو) بادرنګ (شو) غنم (شو) مسور (شو) پیاز (شو) موسیٰ (علیه السلام) اُووے آیا تاسو اخلئ دَ ادنیٰ درجې څیزونه دا علیٰ درجې څیزونو په بدله کښې (سبه که چرے نه منئ) يو ښار ته (لاړشئ) کوز شئ (هلته) ضرور تاسو ته دغه څیزونه به حاصل شی کوم چه تاسو ئې غواړئ۔ (اوله دا سې بے ادبو په وجه دَ څه زمانې په تیریدو دَ نقش په شان) کلک شو په دوئ باندے ذلت (چه د نورو خلقو په نظرکښې ددوئ قدر پاتے نهٔ شو) او محتاجی او بیچوالے (ځکه چه پخپله دَ دوئ مزاج کښې عزم او همت پاتے نهٔ شو) او حقدار شو د غضب خداوندی (او) دا (ذلت او غضب) له دے وجې (اُشو) چه د دے خلقو به انکار کولو دا حکامو الٰهيو نه او قتلول به ئې پیغمبران (چه دا قتل به پخپله ددوئ په نزد هم) به نا حقه (وو) او (هم) دا (ذلت او غضب) له دے وجې (اُشو) چه دے خلقو فرمانبرداری اُنکړه او (د فرمانبرداری) دَ دائرے نه به وتل۔

فائده:- دا قصه هم د وادی تیه ده۔ د من او سلویٰ نه ئې زړهٔ تور شو۔ دَ دے سبزو او غلو درخواست ئې اُوکړو۔ دَ دے میدان په حدودو کښې د ننه یو ښار آباد وو۔ دغه ښار ته د تللو حکم اُوشو، چه هلته لاړشئ او هلته کرئ او ربیئ؛ خورئ او ګټئ۔ او ذلت او خواری دا هم ده، چه دَ قیامت ته نزدے کیدو پورے له یهودو سلطنت جوړول اغستے شوی دی۔ البته چه قیامت په نزدے کیدو شی۔ دَ د جال یهودی حکومت به صرف څلو ییښت ورځو د پاره وی لیکن دے ته به يو عاقل سلطنت او حکومت اُنهٔ وائی۔

او دوئ ته د موسیٰ علیه السّلام په وا سطے دا خبره اُښودلے شوه که چرے تاسو نا فرمانی اُوکړه نو همیشه د پاره به د نورو خلقو محکوم یئ، نکه چه په سورة اعراف کښې دی:- وَإِذْ تَأَذَّنَ رَبُّكَ لَيَبْعَثَنَّ عَلَيْهِمْ إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ مَنْ يَسُومُهُمْ سُوءَ الْعَذَابِ (۱)

(د موجوده اسرائیلی حکومت حیثیت هم دَ امریکې او دَ برطانیې د غلامئ نه زیات نهٔ دے)

او په پیغمبران د یهودو د لاس نه په مختلفو وختونو کښې قتل شوی دی ـ چه د غه قتل به د مخلقو په خپل زړه کښې په ناحقه هم گڼړلو لیکن ضد او عناد پرانده کړی وو ـ

## علوم او مسئلې

**په یهودو باندې د ابدی ذلت مطلب او د اسرائیلو د موجوده حکومت د شبهې جواب.**

په مذکوره آیت کښې دا بیان شوی دی چه د یهودو سزا په دُنیا کښې همیشه ذلت او مسکنت دے او په دنیا او آخرت کښې د خدائے تعالیٰ غضب دے۔ د دوئ د دائمی ذلت او خوارئ مطلب صحابو او تابعینو نه چه کوم د تفسیر د امامانو نه منقول دے د هغې لنډیز د ابن کثیر په الفاظو کښې دا دے چه: لَا يَزَالُوْنَ مُسْتَذَلِّيْنَ مَنْ وَّجَدَهُمْ اِسْتَذَلَّهُمْ وَضَرَبَ عَلَيْهِمُ الصَّغَارَ[1]۔ یعنی دوئ که څومره مالداره شی، همیشه د پاره به په ټولو قومونو کښې ذلیل او حقیر گڼړلے شی چه د چالاس چرې برکیږی هغه به ئې ذلیل کوی او په دوئ به د غلامئ نښې لگوی۔

د تفسیر امام، ضحاک بن مزاحم د حضرت عبدالله بن عباس نه د دوئ د ذلت او مسکنت دا مفهوم نقل کړے دے چه: هُمْ اَهْلُ الْقِبَالَاتِ يَعْنِي الْجِزْيَةَ[2]۔ مطلب دا دے چه یهود به همیشه د بل په غلامئ کښې وی او بل ته به ټیکس (قلنګ) وغیره ورکوی. او بخپله به دوئ ته هیڅ قوت او اقتدار حاصل نه وی۔

د دے مضمون یو آیت په سورة آل عمران کښې د یوزیات والی سره دا رنګ راغلے دے۔ ضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ الذِّلَّةُ اَيْنَ مَا ثُقِفُوْا اِلَّا بِحَبْلٍ مِّنَ اللّٰهِ وَحَبْلٍ مِّنَ النَّاسِ ـ

(ګلکه شوے ده په دوئ باندې بے قدری او ذلت چرته چه دوی وی ـ البته، یو خو دا سے ذریعه سره چه د الله له طرفه وی یا دا سے ذریعه سره چه د خلقو له طرفه وی ـ)

د الله د ذریعه مطلب دا دے، چه کومو خلقو ته الله پاک په خپل قانون کښې امن ورکړے وی، لکه نابالغ بچی، ښځې یا دا سے عبادت کوونکی چه مسلمانانو سره جنګ نه کوی، نو هغه به محفوظ او مامون وی۔ او د خلقو د ذریعه نه مراد د صلحے معاهده ده، چه د هغې یو صورت خو دا دے چه مسلمانانو سره د صلحے معاهده او کړے شی، یا جزیه ورکړے شی۔ د هغوئ په ملک کښې د اوسیدو شی لیکن د قرآن په الفاظو کښې "مِنَ النَّاسِ" وئیلے شوی

(۱) ج ۱، ص: ۱۷۸ (۲) د پورتنی مرجع د غه صفحه۔

دے "مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ" نهٔ ـ نو په دے وجه دَدے صورت هُم احتمال دے چه د نورو غیرو مسلمو سره دَ صلحے عهد و پیمان په وجه د هغوئ په پُشت پنا هئ کښے راشي نو په امن با تے کیدے شي۔ بیا دا استثنا دَ "حَبْلٍ مِّنَ اللّٰهِ" او دَ "حَبْلٍ مِّنَ النَّاسِ" که چرے په قول د صاحبِ کشاف[1] استثنا متصله شي نو معنی به دا رنګ شي: چه یهود به هرځائے کښے خوار او ذلیل وی بغیر دَ دوو صورتونو، چه یا د الله پاک په عهد دَ دوئ بچي او ښځے وغیره دَ دے ذلت او خوارئ نه اُوځي یا دَ صُلحے په عهد و پیمان سره دوئ خپل ځان دَ ذلت او خوارئ نه بچ کړی او ګکه چه څهٔ رنګے وړاندے بیکلی شوی دی چه د عهد و پیمان په ذریعے د ذلت او دَ خوارئ نه دو تلو یو صورت دا کیدے شي چه مسلمانانو سره د صلحے عهد و پیمان اوکړی او دا هم احتمال دے چه د نورو قومونو سره د عهد و پیمان په ذریعے ځان محفوظ کوے شي۔

دا قول بیان د استثنا د متصلے په تقدیر دے او ډیرو مفسرینو حضرا تو دا استثنا منقطع ګرځولے ده نو په دے تقدیر به مطلب دا سے شي ـ چه دا خلق خو به په خپل ذاتی او اُوسی حیثیت سره ذلیل او خوار وی ، اګر چه د قانونِ الٰهی په وسعت کښے د را تلو په وجه دَ دوئ بعضے کسان به له دے نه بچ وی یا د نورو خلقو په مدد ، په خپله خوارئ او ذلت با ندے به پرده واچوی۔

په دے طریقه د سُورة بقرے د آیت وضاحت د سورة آلِ عمران په آیت سره اُوکړے شو او په دے سره هغه تولے شُبهے او شکونه لرے کړے شو، چه نن صبا په فلسطین کښے دَ یهودو دَ حکومت په قائمید و ډیرو مسلمانانو ته راوړاندے کیږی: چه د قرآن قطعی ارشاداتو نه خو دا معلومیږی چه دَ یهودو حکومت به کله قائم نهٔ کړے شی او دا واقعه خو دا ده چه په فلسطین کښے خودَ دوئ حکومت قائم شوے دے ـ جواب په دا که دے چه په فلسطین کښے د یهودو دَ موجوده حکومت نه چه څوک خبردی ، هغوئ ته ښهٔ معلومه ده چه دا حکومت په اصل کښے د یهودو نهٔ دے ، بلکه دَ امریکے او د برطانیے د لوے چاؤنړئ نه څهٔ زیات حیثیت نهٔ لری ـ دوئ په خپل ذاتی طاقت سره یوه میاشت هم ژوندی نشي پاتے کیدے ـ یورپی طاقتونو د اسلامی بلاک د کمزوری کولو د پاره دَ دوئ په مینځ کښے د اسرائیلو په نامه یو چاؤنړئ جوړه کړے ده ـ او اسرائیل دَ دوئ په نظر کښے ، دَ دوئ د فرمانبردارو غلامانو نه څهٔ زیات حیثیت نهٔ لری ـ صرف د قرآن حکیم دَ ارشاد مطابق "بِحَبْلٍ مِّنَ النَّاسِ"

په اوږد انهره د دوی شته والے قائم دے۔ هغه هُم په ذلت سره۔ نو په دے وجه د اسرائیلو موجوده حکومت په بنار د قرآن کریم په خبرُ ارشاد بانددے معمولی غوندے شُبهه هم نشی کیدے۔

له دے نه علاوه، دا خبره هُم د غور او فکر جوګه ده چه په یهودو، نصاراؤ او مسلمانانو کښے د ټولو نه وړاندے یهود دی؛ چه د هغوئ شریعت او تهذیب د ټولو نه مخکښے دے۔ که څرے په ټوله دنیا کښے د فلسطین په وړے غوندے قصبے باندے د دوئ تسلّط یو رنګ را شی هم نو د ټولے دنیا په نقشه کښے دا برخه د یو نقطے (ټکی) نه زیات حیثیت نه لری۔ د دے مقابل کښے د نصاراؤ سلطنتونه اود مسلمانانو د تنزّل د دور سلطنتونه، د بُت پرستو سلطنتونه، ځائے په ځائے د مشرق نه تر مغربه خوارۀ دی۔ اُوس د دُوئ په مقابله کښے په نیم فلسطین باندے د یهودو تسلّط، او هغه بیا د امریکے او د برطانیے د سورے لاندے د دے خبرے جواب کیدے شی، چه الله پاک په ټوله یهودی قوم باندے همیشه ذلت او خواری لګولے ده؟

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَالَّذِينَ هَادُوا وَالنَّصَارَىٰ وَالصَّابِئِينَ

بے شکه چه کوم خلق مسلمانان دی او کوم خلق چه یهود دی او نصارٰی او صابیان

مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَعَمِلَ صَالِحًا فَلَهُمْ

چه ایمان ئے راوړو (له دوئ) په الله باندے او په ورځ د قیامت باندے او کار ونه ئے اُوکړه ښۀ نو دوئ د پاره

أَجْرُهُمْ عِندَ رَبِّهِمْ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿٦٢﴾

د دوئ ثواب دے د دوئ پروردګار څخه او نۀ به وی په دوئ باندے څۀ ویره او نه به دوئ غمژن وی

## لنډ تفسیر

په دے مقام هر کله چه د یهودو د شرارت حال معلوم شو، نو آورید ونکو ته یا پخپله یهودو ته به دا خیال په زړه کښے راځی چه په دے حالاتو کښے که څرے دوئ عذر هُم وړاندے کړی او ایمان هم راوړی غالبًا دا به الله پاک ته قبول نه وی۔ نو د دے خیال د

لرے کولو د پاره په دے آیت کښے د یو قانون او ضابطے ذکر اُوکړے شو چه) مسلمانان یهودیان

نصارىٰ او د صابیانو فرقه په دے ټولو کښے چه کوم کس یقین لری الله (په ذات او صفاتو) باندے او په قیامت باندے او کار رنه عملونه ښهٔ کوی (د شریعت دَ قانون موافق) دا سے خلقو دپاره دَ دوی دَ خدمت حق هُم دے دَ دوی د پروردګار څخه (چه اُرسی) او (هلته چه اُرسی) څهٔ قِسم فکر به نهٔ وی دَ دوی او نهٔ به دوی غمژن وی۔

فائده :۔ دَ قانون حاصل ښرګند دے، هغه دا چه دَ الله پاک په دربار کښے د چا تخصیص نشته، څوک چه پوره اطاعت، اعتقاد او ښهٔ عملونه اختیار کړی وړاندے هر څنګه چه وی د الله پاک په دربار کښے مقبول او د هغهٔ د خدمت اجر به هغه ته ورکیدے شي او دا ظاهره خبره ده چه د قرآن د نازلیدو نه پس، پوره اطاعت هغه دے، چه هغه اطاعتِ محمدی وی، مطلب دا چه سړے مسلمان شي، نو هغه دَ نجاتِ اُخروی مستحق کیدے شي۔ په دے سره دَ دے خیال جواب اُشو چه دَ دے شرارتونو نه پس هم که چرے دوی مُسلمانان شي نو الله پاک به ورته عفوه اُوکړی۔

او صابیان یوه فرقه وه، چه دَ هغوئ د عقیدو او د عملونو په حقله چا ته پُوره علم نهٔ وو، نو په دے وجه په دے کښے مختلف اقوال دی۔ والله اعلم۔

په دے قانون کښے خو په ظاهره د مسلمانانو د ذکر کولو څهٔ حاجت نه وو، ځکه چه دوئ خو مُسلمانان دی لیکن په دے سره په کلام کښے یو خاص بلاغت او په مضمون کښے یو خاص وقعت پیدا شو۔ ددے مثال دا سے دے چه یو حاکم یا یو بادشاه په یو دا سے موقعه دا سے اُوائی چه زمونږ قانون عام دے، موافق وی او که مخالف، کوم سړے چه اطاعت اُوکړی هغه به د عنایت او مهربانئ حقدار وی۔ اُوس خو ظاهره ده چه موافق خو اطاعت کوی۔ آو دَ رول خو، په اصل کښے مخالف ته دی لیکن په دے کښے نُکته دا وی چه زمونږ ه مُهربانی که په موافقو خلقو ده، دَ هغ وجه دَ دوئ څهٔ ذاتی خصُوصیّت نهٔ دے، بلکه دَ دوئ د موافقت د صفت په وجه ده۔ نو که چرے مخالف هم دغه صفت اختیار کړی، نو هغه به هم دَ دغه موافق برابر کړے شي۔ نو په دے وجه مخالف سره دَ موافق ذِکر هم اُوکړے شو۔

وَاِذْ اَخَذْنَا مِيْثَاقَكُمْ وَرَفَعْنَا فَوْقَكُمُ الطُّوْرَ ؕ خُذُوْا

اوکوم وخت چه وا خستو مونږ ه لـه تاسو اقرار او اوچت موکړو په تاسو دَ طُور غر، چه اُنیسئ

مَآ اٰتَيْنٰكُمْ بِقُوَّةٍ وَّاذْكُرُوْا مَا فِيْهِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ ﴿۶۳﴾

کوم کتاب چه مونږ تاسو ته درکړو په مضبوطئ سره او یاد کړئ چه څه په دې کښې دی د دې د پاره چه تاسو ووېرېږئ

**لنډ تفسیر** :- او (هغه وخت یاد کړئ) کله چه مونږه له تاسو نه قول و قرار د غسدر (چه په تورات به عمل کوئ) او (د دے نه پس اقرار د اخستو د پاره) مونږ د طور غر اوچت کړو تاسو باندے (په برابرئ کښے) او زورونه مو کړو (او دغه وخت مو اوئیل) چه (زړه نه قبول کړئ) کوم کتاب چه مونږ تاسو ته درکړے دے (یعنی تورات) په مضبوطئ سره او یاد کړئ هغه حکمونه چه په دے (کتاب) کښے دی امید دے چه تاسو به متقیان شئ (د هغې په وجه).

فائده :- هر کله چه موسیٰ علیه السلام ته په کوه طور کښے تورات ورکړے شو او هغه چه واپس راغے او قوم ته ئے اُښودو او وائے وئیلو په دے کښے سخت او ګران حکمونه وو. لیکن دَ دے خلقو د حالت مطابق دا ئے حکمونه مناسب وو. نو اول خو دوی دا اُوے چه ترڅو پورے الله پاک پخپله مونږ ته اُنه وائی چه دا زما کتاب دے، تر هغې مونږ نه منو او دا قصه مخکښے ذکر شوے ده. غرض هغه اویا سړی چه موسیٰ علیه السلام سره کوه طور ته تلی وو، واپس راغله، د ګواهی ئے اُوکړه چه دا د الله پاک کتاب دے لیکن په دے شهادت کښے (د خپل طرف نه) دومره ئے ورونے هم اُوکړو چه "الله پاک په آخر کښے دا فرمایلی وو چه له تاسو نه څومره پورے کیږی عمل کوئ او چه نه کیږی نو معاف یئ." نو دَ خو فطری شرارت وو او سه د حکمونو ګرانی وه او څه د کړون دا حیله مُکرے شوه. مطلب دا چه په دے ئے اُوے چه مونږه په دے کتاب عمل کولے نشو. الله پاک فرښتو ته حکم اُوکړو چه د کوه طور یوه لویه برخه اُوچته کړئ او د دوی په سرونو باندے ئے زوړنده کړئ چه یا خو اُومنئ او یا خو د دے غورزیدو ته ځان تیار کړئ. په مجبورئ ئے اُومنلو.

**د یو شُبے لرے کول**

دلته خو دا شُبه کیدے شی چه په دین کښے زور نشته. دلته کښے دا زور او جبر ولے اُوکړے شو؟ جواب دا دے چه زور په ایمان راوړلو کښے نشته بلکه دا له دے وجه دے چه دوی اول خو ایمان او اسلام په خوښه قبول کړے وو او بیا له دے نه ئے بغاوت کړے وو. د باغیانو سزا په ټولو حکومتونو کښے هم دغه مو مخالفو او دښمنانو نه جُدا وی.

دوئ د پاره په هر حکومت کښې دوه طریقې وی یا اطاعت قبلول یا قتل. په دے وجه په اسلام کښې د مُرتد سزا قتل ده، او د کُفر سزا قتل نهٔ ده -

ثُمَّ تَوَلَّيْتُمْ مِّنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ ۚ فَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ

بیا تاسو اوګرځیدئ د دے نه روستو تو که چرے نه وے د الله فضل په تاسو

وَرَحْمَتُهٗ لَكُنْتُمْ مِّنَ الْخٰسِرِيْنَ ﴿۶۴﴾

او د هغه مهربانی نو ضرور تاسو به تباه شوی وئ

**لنډ تفسیر** بیا تاسو د دے قول او اقرار نه روستو هم (له دینه) اوګرځیدئ نو که چرے په تاسو خلقو باندے د الله تعالیٰ فضل او رحم نهٔ وے (او نو د دے عهد ماتولو تقاضا خو دا وه چه) ضرور تاسو (فوراً) تباه (او هلاک) کیدئ (لیکن زمونږ عنایت او عامه مهربانی ده چه د سوالی ژوند ترختمید و پورے مهلت ورکړے شوے دے، لیکن ترڅو؟ آخر به د مرګ نه روستو د عملونو په وبال کښې مبتلا کیږئ)

فائده :- په دنیا کښې د الله پاک رحمت عام دے په مومن او کافر دواړو باندے چه د هغې اثر او نښه عافیت او دُنیاوی راحت دے- د رحمتِ خاص ظاهریدل به په آخرت کښې وی. چه د هغې اثر او نښه خلاصے او الله تعالیٰ ته نِزدیکت دے-

په ظاهره د دے آیت د آخری برخې مخاطب هغه یهودیان دی کوم چه د نبی صلی الله علیه وسلم په وخت کښې وو- او هر کله چه نبی صلی الله علیه وسلم باندے ایمان نهٔ راوړل هم د عهد په ماتولو کښې داخل دی نو په دے وجه دوئ هم په عهد ماتونکو کښې ئے شامل کړه. او د مثال په توګه ئے اُوے چه په دے باندے مونږ هم په تاسو په دنیا کښې هغهٔ دا سے عذاب نازل نهٔ کړو لکه چه څنګه رنګ به پروسو عهد ماتوونکو باندے نازلیدو- دا محض د هغهٔ ا ... رحمت دے-

او د هر کله اُوس دا حاد یتو د ربها د مخه، دا سے عذابونه رانلل د نبی علیه الصلوٰة والسلام برکت دے- نو په دے وجه بعضے مُفسّرینو د فضل او رحمت تفسیر په بعثت محمدیه سره

کړې دې۔

دَدې مضمون دَ تائید دپاره دَ تیرو شوؤ بے ایمانه خلقو یوه قصه په دے ورپسے آیاتونو کښې ذکر کیږی۔

وَلَقَدْ عَلِمْتُمُ الَّذِيْنَ اعْتَدَوْا مِنْكُمْ فِي السَّبْتِ فَقُلْنَا لَهُمْ

او تاسو ته ښهٔ معلوم دی هغه خلق چه له تاسو نه ئے زیاتی کړے ده دَخالی په ورځ نو مونږ وئے هغوی ته

كُوْنُوْا قِرَدَةً خٰسِئِيْنَ ﴿٦٥﴾ فَجَعَلْنٰهَا نَكَالًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهَا

چه شئ بیزوګان ذلیله بیا اوګرځوله مونږ دا واقعه عبرت دَ هغه خلقو دپاره چه هلته کښے وو

وَمَا خَلْفَهَا وَمَوْعِظَةً لِّلْمُتَّقِيْنَ ﴿٦٦﴾

او رُوستو راتلو نکو دپاره او نصیحت دَ ویریدونکو دپاره

خلاصه تفسیر:- او تاسو پیژنئ دَ هغو خلقو حال چه هغوئ له تاسو (دشرع د حد نه) تجاوز کړے وو په باره (دَ هغه حکم کښے چه) دَ خالی دورځ (متعلق وو چه په دے ورځ کښے دَ ماهی ښکار مهٔ کوئ) نو مونږ دوئ ته (یه خپل حکم تکوینی قهری سره مسخ کولو دپاره) اُووے چه تاسو ذلیل او خوار بیزوګان شئ (نو هغوئ دَ بیزوګانو په شکل مسخ شو. بیا مونږ دغه (واقعه) عبرت (پیدا کوونکے) جوړه کړه دَ هغه خلقو دپاره هم چه د دے قوم په زمانه کښے وو او دَ هغه خلقو دپاره هم چه په روستو وخت کښے راتلو نکی وو (او هم دا واقعه) دَ نصیحت سبب (جوړه کړو خدائے) ویریدونکو دپاره۔

فائده:- دا واقعه هم دَ بنی اسرائیلو ده او دَ حضرت داؤد علیه السلام دَ زمانے ده دَ بنی اسرائیلو دپاره دَ خالی ورځ بزرګه اود عبادت کولو ورځ وه اود ماهی ښکار هم په دغه ورځ منع کړے شوے وو۔ دا خلق دَ سمندر په غاړه آباد وو او ماهی شوقیان وو. دا حکم ئے اُونهٔ منلو او ښکار ئے اُوکړو۔ نو الله تعالیٰ په دوئ دا عذاب نازل کړو چه شکل ئے ورله مسخ کړو۔ دَ بیزوګانو په شکل شو او درے ورځے پس ټول مړهٔ شو۔

دَدے واقعے لیدُونکی او آوریدونکی دوه قسمه خلق وو۔ فرمانبردار او نافرمانه۔ نو

نافرمانو د پاره دا واقعه د نافرمانئ نه د توبے کولو د پاره وه۔ په دے وجه دے ته دے
"نکال" د ئیلے دے او فرمانبردارو د پاره دا واقعه په فرمانبردارئ باندے قائم پاتے کیدو د پاره
وه نو په دے وجه دے ته "موعظه" هم و ئیلے دی۔

## علوم او مسئلے

په دینی کارونو کښے دا سے حیلے جوړول چه د هغے په وجه شرعی حکم باطلیږی حرام دی

په دے آیت کښے چه د یهودو کوم تجاویز حد شوے دے او هغه د عذاب سبب هم بنودلے شوے دے، هغه ، لکه چه د روایاتو نه ثابته ده، په چا که د شرعی حکم خلاف ورزی نه وه بلکه دا سے چیلے او بهانے وے، چه هغے سره حکم شرعی باطل کیدو۔ مثلاً د خالی په ورځ به ئے دماهی په نکئی کښے د یو مزی غوټه وا چوله او په دریاب کښے به ئے پرېښوده او دا مزے به ئے په زمکه د څه څیز سره اُتړلو۔ او بیا به ئے دا توار په ورځ ئیوو اُ به ئے خوړو۔ دا خو یو داسے حیله وه چه د دے سره د شرعی حکم باطلول خو پریږدئ د شرعی حکم سره توهین کول دی۔ نو په دے وجه دا سے حیله کوونکی ډیر لوے سرکښه او نافرمانه او گرځولے شو او عذاب پرے نازل کړے شو۔

لیکن له دے نه د هغو فقهی حیلو حرمت نه ثابتیږی، چه په هغے کښے بعضے پخپله نبی علیه الصلوٰة والسلام ښودلی دی۔ مثلاً یو سیر ښه کجورو باندے دوه سیره خرابے کجورے اغستل په سود کښے داخل دی، لیکن له دے نه د بچ کیدو لو یوه حیله پخپله نبی علیه الصلوٰة والسلام ښودلے ده، هغه دا ده چه د جنس تبادله په جنس سره مه کوه د قیمت په ذریعے سره او کړه۔ مثلاً دوه سیره کجورے په دوؤ درهمو خرڅے کړه او بیا په دے دوؤ درهمو یو سیر ښه کجورے واخله نو په دا سے حیلے کولو سره د شرعی حکم تعمیل غرض دے او باطلول ئے غرض نه دی بلکه په واقعه کښے هم و باطل نه شو۔ هم د غه شان په نورو مسئلو کښے هم، فقهاؤ د حرامو نه د بچ کیدو د پاره د غه رنگ تدبیرونه ښودلی دی۔ د غه حیلو ته د یهودو د حیلو په شان وئیل او کنټرول غلط دی۔

د یهودو د شکل د مسخ کیدو واقعه

په تفسیر قرطبی کښے دی چه یهودو خواول اول دا سے حیلے کولے او ماهیان به ئے نیول۔ هم دا سے وه چه بیا ئے په عامه ښکار کول

شروع کړهٔ . په دوئ کښې درې ډلې شوې . یوه علماؤ او صالحینو چه هغوئ به دوئ له داسې کولو نه منع کول لیکن دوئ منع نه شو، نو دوئ سره ئې د رورولئ تعلقات ختم کړهٔ او تر څنګ ئې اشنوا وبلې بلې او وه حصې شوه ، چه یو کښې د غه نافرمانه خلق پاتې کیدل او په بل کښې عالمان او صالحان . یو ورځ دوئ ته دا محسوسه شوه چه په کومه برخه کښې د غه نافرمانه اُسیدل ، هلته چپه چوپیا وه ، دوئ چه هلته ورغلهٔ ، نو وې لیدل چه دا ټول د بیزوګانو په شکل کښې مسخ شوی وو . او حضرت ابوقتادة رض فرمائي ، چه ځوانان ئې د بیزوګانو په شکل شوی وو او بوډاګان ئې د خنزیر په شکل . او د غه مسخ شوو بیزوګانو خپل رشته دارا او تعلق دار بنیادم پیژندل او دوئ ته به نږدې کیدل او ژړل به ئې .

**دَ مسخ شوی قوم نسل نهٔ پاتې کیږی**

په دې باره کښې صحیح خبره هغه ده چه پخپله د نبي علیه الصلوٰة والسّلام نه د عبد الله بن مسعودؓ په روایت په صحیح مسلم کښې نقل ده ، چه بعضو خلقو د خپلې زمانې د بیزوګانو او خنزیرانو په باره کښې دا پُښتنه اُوکړه چه آیا دا خو هغه مسخ شوی یهودیان نهٔ دی؟ نبي علیه الصلوٰة والسّلام ورته اُوفرمائیل چه الله پاک هرکله په یو قوم باندې د شکل مسخ کولو عذاب نازل کړی نو د غه قوم نسل نه پاتې کیږی (بلکه په څو ورځو کښې د ننه د ننه هلاک شی او ختم شی) او بیا ئې اُوفرمائیل چه بیزوګان او خنزیران په دنیا کښې د مخکښې نه موجود وو او نن هم دی، لیکن د مسخ شوو بیزوګانو او خنزیرانو له دوئ سره څهٔ تعلق نشته

په دې ځائے کښې بعضې مفسرینو د صحیح بخاری په حواله په بیزوګانو د زنا په سزا کښې د سنګسار کولو یوه واقعه نقل کړې ده . لیکن دا واقعه نهٔ ده صحیح . نهٔ د بخاری په صحیح نسخو کښې شته ، او نهٔ دَ روایت په اعتبار صحیح ده . قرطبي په دې ځائے کښې دَ دې تفصیل ذکر کړې دے .

وَاِذْ قَالَ مُوْسٰى لِقَوْمِهٖٓ اِنَّ اللّٰهَ يَاْمُرُكُمْ اَنْ تَذْبَحُوْا بَقَرَةً ؕ

دکله چه اُووې موسیٰؑ خپل قوم ته ، الله حکم کوی تاسو ته ، ذبح کړئ یوه غوا

قَالُوٓا اَتَتَّخِذُنَا هُزُوًاؕ قَالَ اَعُوْذُ بِاللّٰهِ اَنْ اَكُوْنَ مِنَ الْجٰهِلِيْنَ ۝۶۷

نو هغوی ووے آیا ته مونږ سره خندا کوئے هغه ووے پناه غواړم د خدائے نه چه شم زه له جاهلانو

**لنډ تفسیر** او (هغه وخت یاد کړئ) هر کله چه (حضرت) موسیٰ (علیه السلام) خپل قوم ته اُوفرمائیل چه الله تعالیٰ تاسو ته حکم کوی چه (کله چرے د مړی د وژونکی پته نکول غواړئ) نو تاسو یو غوا ایه ذبح کړئ هغوئ اُووے چه آیا ته مونږ سره ټوقے کوے (چرته د قاتل تلاش او چرته د غوا ورذبح کول د دے د واړو څه مناسبت دے) موسیٰ (علیه السلام) اُوفرمائیل نعوذ بالله چه زهٔ دَ دا سے جاهلانو پشان کار اُوکړم (چه د خدائے پاک په حکمونو کښے ټوقے کول شروع کړم)

فائده :- دا واقعه دا سے اُشوه چه په بنی اسرائیلو کښے یو قتل اُشو - چه د هغے وجه د مشکوٰة په شرح، مرقاة کښے دا لیکلے ده چه یو سړی د دے وژلی شوی سړی نه لور په نکاح غښتے وه لیکن دے سړی انکار کړے وو، نو په دے د غه سړی د جینئ پلار قتل کړو، او د قاتل پته نهٔ لګیده۔

او معالم د کلبیؒ دا قول نقل کړے دے، چه د غه وخت پورے، په توراة کښے دَ دے متعلق څهٔ شرعی قانون هم نازل شوے نه وو۔ د دے نه معلومیږی دا چه دا قصه د توراة د نازلیدو نه مخکښے ده۔

خیر بنی اسرائیلو موسیٰ علیه السلام ته عرض اُوکړو چه مونږ دا غواړو چه قاتل معلوم شی۔ نو موسیٰ علیه السلام درته د الله پاک په حکم د یو غوا ایه دَ ذبح کولو حکم اُوکړو۔ نو د وئ د خپل مزاج، عادت او فطرت مطابق په دے کښے چینجی راؤ بنکل شروع کړه۔

په راتلونکو آیاتونو کښے د دے تفصیل دے :-

قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّنْ لَّنَا مَا هِيَؕ قَالَ اِنَّهٗ يَقُوْلُ اِنَّهَا

دوی اُووے چه دعا اُوکړه زمونږ د پاره د خپل پروردګار نه چه اُښائی مونږ ته چه دا غوا څه رنګ ده هغه اُووے چه الله فرمائی

بَقَرَةٌ لَّا فَارِضٌ وَّلَا بِكْرٌؕ عَوَانٌۢ بَيْنَ ذٰلِكَؕ فَافْعَلُوْا

چه دا یو غوا ده نهٔ بوډۍ او نه تخنۍ د بوډۍ والی او د تخنۍ توب په مینځ کښے ده او س او کړئ

مَا تُؤْمَرُوْنَ ﴿٦٨﴾ قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّنْ لَّنَا مَا لَوْنُهَا ؕ

کوم چه تا سوته حکم کړے شوے دے دوی اُووے چه دُعا اُوکړه زمونږ دپاره د خپل پروردګار نه چه بیانې مونږ ته څه

قَالَ إِنَّهُ يَقُوْلُ إِنَّهَا بَقَرَةٌ صَفْرَآءُ ۙ فَاقِعٌ لَّوْنُهَا تَسُرُّ النّٰظِرِيْنَ ﴿٦٩﴾

رنګ دے د دغه رنګ هغه اُووے چه الله پاک فرمائی چه دا یوه غواده ښه تکه زیړه ددے زیړوالے خوشحالوی کتونکی

قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّنْ لَّنَا مَا هِيَ ۙ إِنَّ الْبَقَرَ تَشٰبَهَ عَلَيْنَا ؕ

دوئ اُووے چه دعا اُوکړه زمونږ دپاره د خپل پروردګار نه چه اُبنائی مونږ ته چه دا د څه قسم غوا ده ځکه چه په دے غواګانو کښے شبه شوه مونږ ته

وَإِنَّآ إِنْ شَآءَ اللّٰهُ لَمُهْتَدُوْنَ ﴿٧٠﴾ قَالَ إِنَّهُ يَقُوْلُ إِنَّهَا بَقَرَةٌ

او مونږه که خدائے اُغواړی ضرور لاره به اُمومو — هغه اُووے چه الله پاک فرمائی چه دا یوه غوا ده

لَّا ذَلُوْلٌ تُثِيْرُ الْأَرْضَ وَلَا تَسْقِي الْحَرْثَ ۚ مُسَلَّمَةٌ لَّا شِيَةَ

چه کار نه کوی نه زمکه اړوی — او نه فصل ته اُبه ورکوی — بے عیبه ده څه داغ پکښے نشته

فِيْهَا ؕ قَالُوا الْـٰٔنَ جِئْتَ بِالْحَقِّ ؕ فَذَبَحُوْهَا وَمَا كَادُوْا يَفْعَلُوْنَ ﴿٧١﴾

دوئ اُووے اُوس دِ اُوکړه درسته خبره ، بیائے دا ذبح کړه او دوئ نه وو چه دا ئے اُوکړی

## لنډ تفسير

دے خلقو اُووے چه ته اُغواړه زمونږ دپاره د خپل پروردګار نه چه مونږ ته بیان کړی چه ددے (غوا) څه صفت ده دی۔ نو موسیٰ علیه السلام اُوفرمائیل چه هغه (زما د غوښتنے په جواب کښے) دا فرمائی چه دادِ داسے غواوی چه نه بوډۍ وی او نه ځوان دره بلکه د دواړو عمر په مینځ کښے نو اُوس (زیاتی چینجی مه پټوی بلکه) اُوکړئ چه د څه حکم تا سوته شوے دے۔ دوئ اُووے چه (بنه داهم) اُغواړه زمونږ دپاره د خپل پروردګار نه چه مونږ ته دا (هم) بیان کړی چه ددے رنګ به څه وی؟ نو موسی علیه السلام اُوفرمائیل چه (د دے متعلق) الله پاک فرمائی چه دادِ د یو زیړ رنګ غواوی چه رنګ ئے تک زیړ وی او کتونکی خوشحالوی۔ دوئ اُووے چه (اُوس بیا او) زمونږ دپاره د خپل

رب نه پېښتنه اوکړه چه (دا اولنی سوال جواب په لبز تور واضح) مونږ ته بیان کړی چه د دے صفتونه به څۀ وی، ځکه چه مونږ ته په دے غواګانې (څۀ) اشتباه (دا باقی ده رچه دا به عام قِسم غوا وی یا څۀ عجیبه قسم غوا، چه په هغې کښې به د قاتل د پته لګول څۀ خاص تاثیر وی) او مونږ ضرور ان شاء الله تعالیٰ (دا حُکَل) بنه به پوهه شو. موسٰی (علیه السّلام) جواب ورکړو چه الله تعالیٰ دا سے فرمائی چه دا (څۀ عجیبه او نا آشنا) ځاروے نۀ دے، دغه عام قِسمه غوا ده، البته دومره خبره ده چه اعلیٰ ده وی دغه ذِکر شوو صفتونو سره) دا سے وی چه یوے نۀ کوی چه زمکه پرے اړوے شی او نه (په کوهی تړلی وی چه) د هغې سره د فصل اوبۀ خوړکیدے شی (مطلب دا چه د هر قسم عیب نه) بچ وی او په دے کښے (دغه قسم) څۀ داغ نۀ وی (دا ئے چه واوریدل) په دیناشو چه (او) اوس تا پوره (او واضحه) خبره اوکړه (قِصه دا چه ځاروے ئے اُلټوو او واپئے غسته) بیائے دا ذبح کړه او حال دا وو چه په ظاهره دَ دے کوونکی نۀ معلومیدل۔

فائده: په حدیث شریف کښے دی، که چرے دوی دا چنجی لټول نه کولے، نو دومره قید و نه او شرطونه به چه دوی نۀ وو لګیدلی، او کومه غوا یئے چه ذبح کړے وے، نو هغه به کافی شوے وے او کار به پرِ شوے وو۔

وَاِذْ قَتَلْتُمْ نَفْسًا فَادّٰرَءْتُمْ فِیْهَا ؕ وَاللّٰهُ مُخْرِجٌ مَّا

او کوم وخت چه وژلے وو تاسو یو سړے بیا په یو بل به موو اړولو او الله پاك خوځر کندونکے وو چه کوم

كُنْتُمْ تَكْتُمُوْنَ ﴿۷۲﴾ فَقُلْنَا اضْرِبُوْهُ بِبَعْضِهَا ؕ كَذٰلِكَ

تاسو پټوو بیا مونږ اُوے اُوهئ په دے مړی د غوا یوه ټکړه دغه شان

یُحْیِ اللّٰهُ الْمَوْتٰی ۙ وَیُرِیْكُمْ اٰیٰتِهٖ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ ﴿۷۳﴾

ژوندی به کړی الله پاك مړی او ښائی تاسو ته د خپل قدرت نمونے چه تاسو فکر اوکړئ

لنډ تفسیر:- او (هغه زمانه یاده کړئ) کوم وخت چه تاسو (کښے یو کس) یو سړے او وژلو بیا

(د څلې صفايۍ د پاره) په يو بل باندې الزام شروع کړل، او الله پاک ته د دے خبر ګندول منظور وو چه هغه تاسو (کښې مجرمانو او مشتبهو خلقو) پټ لرل غوښتل نو په دے وجه (د غوا ذبح کولو نه روستو) مونږ حکم اوکړو چه د دے (وژلے شوی په کالبوت) د دے (غوا) څه ټکړه اولګوئ (نو په لګولو سره هغه ژوندے شو، د رښے الله پاک د قيامت منکرينو ته د دے قصے نه د دليل او مثال په توګه فرمائي چه) د غه رنګ الله پاک (به قيامت کښے) مړی به ژوندی کړی او الله پاک د خپل قدرت مثالونه تاسو ته ښائي. په دے اميد چه تاسو د عقل نه کار واخلئ (او د يو مثال په وجه د دويم مثال د انکار کولو نه منع شئ).

فائده :- کله چه دے مړی سره دا کار اوکړے شو نو هغه ژوندے شو، او هغه د قاتل نوم اوښودلو او بيا زر مړ شو۔

دلته د مقتول بيان صرف له دے وجے کافی شو، چه حضرت موسٰی علیه السلام ته د وحی په ذريعه معلومه شوے وه چه دا مقتول به رښتيا وائي او که دا سے نه وه نو بيا يوا ځے د مقتول په بيان سره بغير د څه شرعي شهادت نه، په چا باندې د قتل د دعوے ثبوت کافی نه وو۔

دلته دا شبه کول هم درست نه دی، چه الله پاک د مړی ژوندی کولو خو هسے هم قدرت لرلو، يا د مقتول د ژوندی کولو نه بغير د قاتل نوم ئے ښودے شو، بيا د دے دومره معاملے ضرورت څه وو؟ خبره دا سے ده، چه د الله پاک يو کار هم د ضرورت او د مجبورۍ په وجه نه دی، بلکه د مصلحت او د حکمت د پاره وی۔ او د هرے واقعے حکمت د الله پاک د علم په احاطه کښے راتلے شي او نه مونږ مکلف يو چه د هرے واقعے حکمت معلوم کړو۔ او نه دا ضروری ده چه د هرے واقعے حکمت زمونږ د پوهے لاندې راشي۔ له دے وجے غوره طريقه منل او چپ کيدل دی، په ځائے د دے چه مونږ په دے کښے عمر ضائع کړو۔

ثُمَّ قَسَتْ قُلُوبُكُمْ مِّنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ فَهِيَ كَالْحِجَارَةِ اَوْ اَشَدُّ

بيا ستاسو زړونه سخت شول د دے څيزونو نه روستو نو هغه شو لکه کانړے يا د هغې نه هم سخت

قَسْوَةً ۚ وَإِنَّ مِنَ الْحِجَارَةِ لَمَا يَتَفَجَّرُ مِنْهُ الْأَنْهَارُ ۚ وَإِنَّ

او په کانړو کښے خو دا سے هم دي چه دهغوئ نه بهيږي نهرونه | او په دوئ

مِنْهَا لَمَا يَشَّقَّقُ فَيَخْرُجُ مِنْهُ الْمَاءُ ۚ وَإِنَّ مِنْهَا لَمَا يَهْبِطُ

کښے دا سے هم شته چه چوی او اُوبۀ ترې | اُوبۀ | او په دوئ کښے دا سے هم شته چه لاندے غرېږي

مِنْ خَشْيَةِ اللَّهِ ۗ وَمَا اللَّهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ ﴿۷۴﴾

د الله د وېرے نه | او الله بے خبره نۀ دے | ستاسو د کارونو نه

**لنډ تفسير** (د تيرو واقعاتو نه د نۀ متأثر کيدلو په وجه د شکايت په توګه ارشاد کيږي) د دا سے واقعاتو نه پس (ريکار دو چه ستاسو زړو نه نرم او د الله پاك د لويئ نه ډك وے، ليکن) ستاسو زړو نه بيا سخت يا تے شو نور دا سے ډيل پکار دي چه د دوی مثال د کانړی دے (يا دا سے اُو وايه چه دا) په سختئ کښے له دوئ نه (هم) زيات (دی) او (زيات سخت له دے وجے نه ويلے شی چه) بعضے کانړی خو دا سے دی چه دهغوئ نه (لوئ لوئ) نهرونه راوتی بهيږي او په دے کانړو کښے څۀ دا سے دی چه چوی (بيا له دوئ (که څيرے زيا تے نۀ وی نو لږے غوندے) اُو به را اُوځی او په دے کانړو کښے څۀ دا سے دی چه د الله پاك د وېرے نه د برۀ نه بښکته را اُرغړی (او ستاسو زړو نو کښے هيڅ قسم اثر نشته) او (له دے سختئ نه چه کوم بد عملونه پيدا کيږی او صادريږي) الله تعالیٰ ستاسو (د غه) عملونو نه بے خبره نۀ دے (ځه پوره به تاسو ته سزا ورکړي).

فائده:- دلته د کانړو درے اثره بيان کړے شوی دی. اول دا چه له دوئ نه زياتے اُوبۀ بهيدل. دوئم لږے غوندے اُوبۀ راوتل او بهيدل. په دے دوؤ کښے چا ته هيڅ قسم شك او شُبه نشته. دريم دا چه د الله پاك د وېرے نه بښکته را رغړيدل. په دے دريم کښے ممکنه ده چه چا ته شك او شُبه عارضه شی، ځکه چه د کانړی خو عقل او حِس نۀ وی نو بيا څۀ رنګ دے د الله پاك د وېرے نه رغړی ليکن دلته دا خيال کښے اچول پکار دی، چه د وېرے د پاره د عقل ضرورت نشته، لکه په ځناورو کښے، چه هغه عقل نۀ لری خو بيا هم د وېرے مشاهده او ليدل کيږی، البته د حِس ضرورت

شته، لیکن په کانړو کښے دَ دومره حِس نهٔ لرلو د پاره هُم څهٔ دلیل نشته. ځکه چه حِس په ژوند پورے بانده اړانه لري. ... دے، او ډیره ممکنه ده چه په دوئ کښے دا سے باریک ژوند وي چه هغه دِ زمونږ دَ علم نه بهرَ وی لکه دَ ... د ماغ د احساس ډیرو عاقلانو ته پته نشته، لیکن هغوئ صرف دَ دلیلونو په وجه دَدے قائل دی. نو ظنی دلیلونه دَ قرآن د ظاهري نص، دلالت او قوت هیڅ رنګ کم هم نهٔ دے (یعنی دَ قرآن ظاهري نص نه دَ دوئ دَ احساس پته لګی.

بیا زمونږ دا دعوٰی نهٔ ده چه دَ کانړي د رغړیدو وجه، همیشه ویره وی، ځکه چه الله پاك دا فرمائیلی دی، چه بعضے کانړي د ویرے نه رغړي نو ډیره ممکنه ده چه د رغړیدو اسباب دِ کښې او مُختلف وی، چه هغې کښے بعضے طبعي وی او څهٔ دَ الله پاک ویره وی.

دلته دَ درے قسمه کانړو په ذِکر کښے چه کوم ترتیب ورکړے شوے دے، هغه نهایت درجه باریک او د مقصُود او غرض د ښودلو د پاره نهایت بلیغ دے. هغه دا رنګ چه په بعضو کانړو کښے اثر قبلول دومره قوی وی چه هغې نه نهرونه بهیږي او دَ خلقے مخلوق تر نه فائده اخلی خو دَدے پهودیانو زړونه دا سے هم نهٔ دی، چه دَ مخلوق خدا په تکلیف او مُصیبت کښے ژړیلی شی. او بعضو کانړو کښے لږ دے نه کم اثر قبلول وی چه د هغې نه کمه فائده رسی نو دا کانړے د رومبی کانړي په مقابله کښے کم نرم دے او دَ دوئ زړونه دَ دغه دویمے درجے دَ کانړونه هم سخت دی.

او بعضو کانړو کښے که چرے دَدے درجے اثر هم نهٔ وی، لیکن بیا خو یو اثر شته چه د الله پاک دَ ویرے نه لاندِ را رغړي. دے که په درجه کښے د رومبو قسمونو نه هُم کم دے، لیکن دَ دوئ زړونه دَدے کمزورے درجے اثر قبلول هم نهٔ لري.

أَفَتَطْمَعُونَ أَنْ يُؤْمِنُوا لَكُمْ وَقَدْ كَانَ فَرِيقٌ مِنْهُمْ يَسْمَعُونَ

اوس آیا تاسو اے مسلمانانو! امید لرئ چه دوئ به ایمان راوړی ستاسو خبرو او په دوئ کښے یوه ډله وه چه اورېدو به ئے

كَلَامَ اللَّهِ ثُمَّ يُحَرِّفُونَهُ مِنْ بَعْدِ مَا عَقَلُوهُ وَهُمْ يَعْلَمُونَ ﴿۷۵﴾

دالله کلام بیا به ئے بدلولو دا پوهے باوجود او دوئ پوهیدل

## لنډ تفسير

(مسلمانانو چه دَ يهودو په مسلمانانو کښې کوم کوشش کولو او په دے لړ کښې ئے تکليف برداشت کولو، نو په دے آيت کښې، د يهودو حالاتو او واقعاتو دَ ښودلو او آورېدلو نه پس، د مسلمانانو اُميد دَ دوئ نه قطع کوي)

(ائے مسلمانانو!) آيا (دَ دے قِصو او قِصود آورېدلو نه پس) اُوس هم تاسو اميد لرئ چه دا (يهوديان) ستاسو په وينا به ايمان راوړي، حال دا دے (چه دَدے تولو ذِکر شوو قصونو نه زياته خبره هم دوئ کړے ده چه) په دوئ کښې خلق څۀ دا سے تير شوي دي چه دخدائے کلام به ئے آورېدو او بيا به ئے بدلولو (او) په دے ډېرو پوهېدو نه پس (دا سے بدلے ئے کول) او (عجيبه خو دا هُم ده) چه پوهېدل به (چه موږ بد کوو ـ صرف دَ نفساني غرضو نو د پاره به ئے دا رنګ کول)

فائده :- مطلب دا شو، چه کوم خلق دومره بے باکه او دَ خواهشاتو نفسانيو قيدیان شي، هغه دَ چا په وينا کله منع کيږي د بدو کارونو نه او هغه کله د چا آوري ـ

د کلام الله نه مراد يا خو توراة دے، او د سماع يعني د آورېدو نه مراد، د پيغمبرانو په واسطے آورېدل دي او دَ تحريف نه مراد دَ دے کلام په بعضے الفاظو يا تفسير کښې او يا په دواړو کښې بدلول دي او يا مراد د کلام الله نه هغه کلام دے چه کوم او يا دُکسانو د موسیٰ عليه السلام د تصديق په باره کښې په کوه طور آورېدلے وو ـ او د سماع نه مراد په دے تقدير، آورېدل بغير دَ واسطے دي. او تحريف نه مراد دا دے چه دوئ قوم ته دا اُوے چه په "آخره کښې الله تعالیٰ دا هم فرمائيلي وو چه کوم حکم باندې عمل لـه تاسو نۀ کيږي هغه تاسو ته معاف دے"

په دغه بَرَنو ذِکر شوو قصو کښې يوه قصه او واقعه هُم دهغه يهوديانو نه شوے نۀ وه چه کوم دَ نبي عليه الصلوٰة والسلام په زمانه کښې وو ليکن هر کله چه د دے خلقو دَ خپلو تير شوو مشرانو د غه کارونو نه نفرت نۀ کولو او بد ئے نۀ ګڼړلو ـ نو په دے چه دوئ هُم حکماً هغوئ سره په دے قصو او واقعاتو کښې شامل شو ـ

وَإِذَا لَقُوا الَّذِينَ آمَنُوا قَالُوا آمَنَّا وَإِذَا خَلَا بَعْضُهُمْ إِلَىٰ بَعْضٍ

او کله چه يو ځائے کيږي د مسلمانانو سره نو وائي موږ مسلمانان شوي يو او کله چه يو ځائے شي د يو بل سره

قَالُوٓا اَتُحَدِّثُوْنَهُمْ بِمَا فَتَحَ اللّٰهُ عَلَيْكُمْ لِيُحَآجُّوْكُمْ بِهٖ

نو وائی تاسو ولے وایئ دوئ ته هغه چه ظاهر کړے دے الله په تاسو دے دپاره چه دروغژن به کړي تاسو

عِنْدَ رَبِّكُمْ ؕ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ﴿۷۶﴾

په ددے ستاسو د پروردګار په مخکښے آیا تاسو نه پوهیږئ

## لنډ تفسير:-

اوکله چه یو ځائے کیږی (منافق یهودیان) مسلمانانو سره نو (دوئ ته خو) وائی چه مونږ (هم) ایمان راوړے دے اوکله چه یواځے شی دا بعضے (منافق یهودیان) نورو سره (بښکاره) یهودیانو سره (نو بیا د هغوئ د ملګرتیا د هغوئ په دین د کیدلو دعوئ کوی په د غه وخت) دا (نور یهود) دوئ ته وائی چه تاسو (دا) څه (عجیبه او ناکاره کار کوئ چه) مسلمانانو ته (په چاپلوسئ کښے) هغه خبرے بنایئ چه (کدوئ د مذهب د پاره فائده مند ے) الله تعالیٰ (په توراة کښے) تاسو ته ښودلی دی (یکن مونږ ے د مصلحت په وجه پټوو) نتیجه به دا شی چه دا خلق به تاسو په حجت کښے کمزوری کړی چه (اګوری) دا مضمون دالله (دطرفه ستاسو کتاب کښے راغلی) دے - آیا تاسو (په دے غټے غوندے خبره) نه پوهیږئ -

فائده :- منافقانو به کله دا سے کول چه د چاپلوسئ د پاره او د خپل ایمان په رښتیا ظاهرولو د پاره مسلمانانو ته به ئے ویئل چه په توراة کښے د نبی علیه الصّلوٰة والسّلام په باره کښے زیرے راغلی دے یاد قرآن مجید په باره کښے راغلی دے ، او دا سے نورے خبرے ، نو نورو یهودیانو به د غه خلق په دا سے کار کولو باندے ملامت کول -

اَوَلَا يَعْلَمُوْنَ اَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا يُسِرُّوْنَ وَمَا يُعْلِنُوْنَ ﴿۷۷﴾

آیا دومره هم نه پوهیږی چه الله پاک ته معلوم دی چه کوم دوئ پټوی او چه کوم ښکاره کندوی

وَمِنْهُمْ اُمِّيُّوْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ الْكِتٰبَ اِلَّآ اَمَانِيَّ وَاِنْ هُمْ اِلَّا

او بعضے په دوئ کښے نالوستی دی چه خبر نه لری د کتاب سواد دروغژنو آرزوګانو او دوئ څه ندته مګر

يَظُنُّونَ ﴿٧٨﴾ فَوَيْلٌ لِّلَّذِينَ يَكْتُبُونَ الْكِتَابَ بِأَيْدِيهِمْ

خيالونه — نو بربادي ده دوئ له چه — ليكي — كتاب — په خپل لاس

ثُمَّ يَقُولُونَ هَٰذَا مِنْ عِندِ اللَّهِ لِيَشْتَرُوا بِهِ ثَمَنًا قَلِيلًا ۖ

بيا — وائي — دا — دَ خدائے د طرف نه دي دے د پاره چه واخلي په دے باندِ لږ شان مال

فَوَيْلٌ لَّهُم مِّمَّا كَتَبَتْ أَيْدِيهِمْ وَوَيْلٌ لَّهُم مِّمَّا يَكْسِبُونَ ﴿٧٩﴾

نو بربادي ده دوئ له د خپلو لاسونو ديكلو نه — او بربادي ده دوئ له دَ خپلے دے گټے نه

**خلاصه تفسير**:- آيا دوئ ته دَ دے علم نشته چه الله تعالیٰ په هر څه خبر دے، په هغه ځيزونو هم چه هغه دوئ پټ لري او په هغه ځيزونو هم چه دوئ ئے څرګندوي (نو که ځيرے منافقانو د مؤمنانو نه خپل کفر پټ کړو نو څه، او دے ملامت کړو که دَ نبي عليه الصلوٰة والسلام د بشارت وغيره مضمونونه پټ کړه نو څه، آخر الله تعالیٰ په ټولو خبر دے. د غه وجه ده چه الله پاک، مسلمانان په دے مضمونونو ځائے په ځائے خبر کړي دي. په دے آيت کښے د يهودو دَ لوستونکو خلقو ذکر وو، ور پسے، د هغو نالوستو خلقو ذکر دا سے کوي چه):

او په دے (يهودو) کښے ځيرنالوستي دي (هم) چه د کتاب علم نه لري، ليکن (بغير دسند نه) د زړه خوشحاله کولو خبرے ورته (ځيرے ياد ے دي) او دا خلق نور څه نه (ربي دا سے بے بنياده) خيالي پولاؤ نه پخوي (او دَ دے وجه داده چه څه خو، دَ دوئ دَ د عالمانو ګمراه او کړه ون دے او زياتي پر دا چه دَ دوئ په پوهه کښے کمي ده. نو په دا سے صورت کښے، دوئ ته د بے بنياده خيالونو نه سوا دَ واقعي حقيقتونو تحقيق او علم څه رنګِ حاصليدے شي. لکه يو مَتَل دَ پښتو ژبے دے "نيم حکيم خطره دَ ځان دي"

او هرکله چه دَ دوئ په وهم پرستئ کښے دَ دوی د عالمانو دَ خيانت لوئے لاس دے نو په دے وجه د غه عالمان په جُرم او ګناه کښے د خپلو عامو خلقو نه زيات شو. دَ دے بيان اُوس د لته کوي:

(هرکله چه د غه عوام دزجر او زورنے قابل دي، او دَ دې دَ جهل اصلي سبب دَ دوئ

عالمان دی) نو لویه بربادی په د هغوئ وی چه ئیکی (ادل بدل) کتاب (توراة) په خپلو لاسونو (او) او بیا عوامو ته وائی چه دا (حکم) د خدائ د طرف نه (هم دا سے راغلی) دے (او) غرض ئے (صرف) دا دی چه په دے ذریعه څه لږ عوض دے نقد واخلی، نو لویه بربادی به ورته (مخکښې) شی دَ دوئ دَ دے (کتاب دَ تحریف) په وجه (هم) چه هغه دوئ په خپلو لاسونو لیکلو او لویه بربادی به دوی دوئ له دد ے (نفع) په وجه (هم) چه هغه په دوئ آخستو۔

فائده :۔ دَ عامو خلقو دَ رضا دَ پاره په غلطو مَلطو مسئلو ښودو لو سره دوئ ته څه مال وغیره حاصلید و او د عوامو په نظر کښې به ئے وقار او لوئے والے هم حاصلید و او پاتے کیدو۔ نو په دے عرض به ئے په توراة کښې لفظی او معنوی اَدلی بَدلی کوله۔ په دے آیت کښې دَ دا سے کولو د پاره وعید وارد وے شو۔

وَقَالُوا لَنْ تَمَسَّنَا النَّارُ إِلَّا أَيَّامًا مَّعْدُودَةً ۚ قُلْ أَتَّخَذْتُمْ

او وائی، مونږ له به هرگز اور را اُنه رسی مگر دَ شمار څو ورځے . اُ وایه آیا تاسو آ غستے دے

عِنْدَ اللَّهِ عَهْدًا فَلَنْ يُخْلِفَ اللَّهُ عَهْدَهُ ۖ أَمْ تَقُولُونَ

دَ الله له خوا نه عهد چه اوس به هرگز خلاف اُ نکړی الله د خپل عهد یا تبئ

عَلَى اللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ ﴿٨٠﴾

په الله هغه چه تاسو ته معلومه نه دَه

**لنډ تفسیر :۔** او یهودو (دا هم) اُوئے چه هرگز به مونږ ته اور دَ دوزخ) مسح نکړی (هم خو البته) مگر (ډیرے) کمے ورځے چه ریه گڼتو) شمیرلے شی (اے محمد صلی الله علیه وسلم) ته ُ (دوئ ته) دا سے اُ وایه آیا تاسو خلقو د الله تعالیٰ نه (دَ دے متعلق) څهٔ وعده آ غستے ده، چه په هغ کښې به الله خلاف نه کوی یا (معاهده آ غستے نه دَه بلکه هم دا سے) دَ الله په ذمه دَا سے خبرے نکوئ چه د هغ څهٔ علمی سَند څان سره نه لرئ

فائده :۔ دَ یهودو دَ دے خبرے مفسرینو مختلف بیانونه کړی دی، چه په هغے کښې یو بیان

دا دے چه دا ثابته خبره ده، چه مؤمن که چرے ګنهګار وی، نو د ګناه په قدر او اندازه
به دَ دوزخ په عذاب عذابیږی، لیکن د ایمان په وجه هغه به دَ دوزخ په همیشه
عذاب کښے نهٔ وی، څهٔ زمانه پس به خلاصے مُومی۔

نو دَ یهودو دَ دعوے حاصل دا وو، چه هر کله، دَ دوئ په خیال، دینِ مُوسوی
منسوخ نهٔ دے نو په دے وجه دوئ مؤمنان دی، د حضرت عیسیٰؑ او حضرت محمد
علیهما الصّلوٰة والسّلام دَ نبوت نه د انکار کولو په وجه کافر نهٔ دی۔ نو که چرے دَ
ګناه په وجه دوزخ ته لاړشی هم، نو بیا به را اُ بیستلے شی۔ او هر کله دا دعویٰ لوړ په لُوته
تیروَل دی ځکه چه دَ دینِ موسوی دَ همیشوالی دعویٰ خو غلط ده نو د حضرت عیسیٰ
او محمد علیهما الصّلوٰة والسّلام دَ نبوت نه د انکار په وجه دا خلق کافر شو۔ او د کافرو
دَ پاره په دوزخ کښے د څو ورځو تیرولو نه پس خلاصے موندل په څهٔ آسمانی کتاب کښے نشته
دے، چه دَ هغے نه الله پاک په عهد سره تعبیر دلته اُکړو۔ نو ثابته شوه چه دا دعویٰ
بغیر دَ دلیل نه ده، بلکه دَ دلیل خلاف ده۔

بَلٰى مَنْ كَسَبَ سَيِّئَةً وَّاَحَاطَتْ بِهٖ خَطِيْٓئَتُهٗ فَاُولٰٓئِكَ

ولے نه چا چه اُوکړه ګناه او راګیر کړے دے ځلے ګناه، نو دغه دے

اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿۸۱﴾ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

دَ دوزخ او سیدونکی دی دوئ به په دے کښے همیشه وی او هغه چا چه ایمان راوړے دی

وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿۸۲﴾

او عمل ښه ئے کړے وی، دغه د جنت او سیدونکی دی او په جنت کښے به همیشه وی۔

## لنډ تفسیر:-

**په اور کښے د همیشه د پاره دَ پاتے کیدو ضابطه**

(د څو ورځو نه سوا تا سو به دَ دوزخ اور کښے ولے نهٔ پاتے کیږئ؟ بلکه همیشه همیشه پورے په دے کښے پاتے کیدل ضروری دی، ځکه چه زمونږ قانون او ضابطه دا ده چه) څوک قصداً او ارادةً بد کار و نه کوی او په دهٔ باندِ د ګناه (او قصور دا رنګ) احاطه اُوکړی (چه چرته یکښے د نیکۍ

(يوځې هم نهٔ وي) نو دا سے خلق دوزخيان دي (او) دوئ به په دے كښے هميشه (هميشه) د پاره پاتے كيږي او كوم خلق چه (په الله او رسول) ايمان راؤړے وي او ښهٔ كارونه ئے كړي وي دا سے خلق په جنتيان وي (او) دوئ به په دے كښے هميشه (هميشه) وي۔

فائده :۔ د ګناهونو د احاطے چه كومه معنیٰ مخكښے اوشوه، دا سے احاطه په كافرو پورے خاصه ده ځكه چه د دوئ د كفر په وجه د دوئ څهٔ نيك كار قبول نهٔ وي بلكه كۀ چرے د كفر نه وړاندے ئے څهٔ ښهٔ كار كړے وي، هغه هم د كفر په وجه ضائع كيږي، نو په دے وجه په كافرو كښے د سر نه تر خپو پورے بد كار وي چه د هغے جزا به ابدي جهنم وي، په خلاف د مؤمنانو۔ ځكه چه اول د هغوئ ايمان پخپله لوئے عمل صالح دے، او نور فرعي عملونه د دوئ په عملنامو كښے درج كيږي۔ نو په دے وجه دوئ د نيكئ دا تره خالي نهٔ دي، نو د غه مذكوره احاطه د ګناهونو د دوئ په حالت نهٔ صادق كيږي۔

لنډه دا شوه چه هر كله كافر د دے له مخه ابدي جهنمي كيدل ثابت شو، او هر كله چه حضرت موسیٰ عليه السلام خاتم الانبياء نه دے، لهٰذا نه ورستو حضرت عيسیٰ عليه السلام او حضرت محمد عليه الصلاة والسلام هم پيغمبران دي، يهود چه د دوئ نه انكار كوي، نو په كافرانو كښے شامل شو نو په دے وجه د دے ضابطے د مخه دوئ هم هميشه په اور كښے به وي او د دوئ دا وړاندينئ د عوئ په قطعي دليل سره باطله شوه۔

وَاِذْ اَخَذْنَا مِيْثَاقَ بَنِیْٓ اِسْرَآءِيْلَ لَا تَعْبُدُوْنَ اِلَّا اللّٰهَ قف

او كله مونږ وا غستو اقرار د بني اسرائيلو نه چه عبادت مهٔ كوئ مګر د الله

وَبِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا وَّذِی الْقُرْبٰى وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنِ

او مور پلار سره سلوك ښهٔ كوئ او خپلوانو سره او يتيمانو سره او مسكينانو سره

وَقُوْلُوْا لِلنَّاسِ حُسْنًا وَّاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ ط

او وايئ ټولو خلقو ته ښهٔ خبره او قائموئ مونځ او وركوئ زكوٰة

ثُمَّ تَوَلَّيْتُمْ إِلَّا قَلِيلًا مِّنكُمْ وَأَنتُم مُّعْرِضُونَ ﴿٨٣﴾

بیا تاسو واؤړېدئ مګر لږ له تاسو نه او هم تاسو اوړېدونکي يئ۔

**لنډ تفسير:-** او (هغه وخت یاد کړئ) چه مونږ وا غسته (په توراة کښې) قول او اقرار د بنی اسرائيلو نه چه عبادت مه کوئ (د چا) بغير د الله نه او د مور پلار سره ښه قسم خدمت کوئ او د خپلوانو هم او د بے پلاره بچو هم او د غریبو محتاجو هم او عامو خلقو سره (کله چه) خبره (کول وی نو) په ښه طريقه (خوش خُلقئ سره) کوئ او پابندی کوئ د مانځه او ادا کوئ زکوٰة، بیا تاسو (اقرار اوکړو) او له دے نه واؤړېدئ، د څو کسانو نه سوا، او ستا سو خو عادت دے اقرار کول او بیا ترے اوړېدل۔

فائده: دا څو کسان هغه دی چه د توراة پوره پابند وو، د توراة د منسوخ کیدلو نه وړاندے د موسٰی علیه السلام د شریعت پابند وو، او کله چه توراة منسوخ شو، نو د شریعت محمدیه پابند شو۔

مسئله:- له دے آيته معلومه شوه چه دا حکمونه په اسلام او مخکښينو شريعتونو کښے شریک دی چه هغه توحید، د مور او پلار، رشته دارانو، یتيمانو، مسکینانو خدمت، او د ټولو بنیاد موسره په خبرو کولو کښے نرمی او خوش خلقی کول، مونځ او زکوٰة ورکول دی۔

په تعلیم او تبلیغ کښے د کافرو سره هم په خبرو کښے سختی کول درست نه دی۔

قُوْلُوا لِلنَّاسِ حُسْنًا نه مراد "قولًا ذا حُسنٍ" دے، چه د هغے مطلب داد ے چه کله د خلقو سره خبره کوئ، نو خبره په نرمئ کوئ، په خندا او ازرت زړه کوئ، خواه مخاطب نیک وی او که بد، که سُنّی وی که بدعتی وی، البته د دین په معامله کښے سُستی او حق پټول مه کوئ۔ وجه داده چه کله موسٰی او هارون علیهما السلام الله پاک فرعون ته اُلیږل نو دا هدایت ئے ورته اُوکړو چه " قُوْلَا لَهٗ قَوْلًا لَّيِّنًا " نن چه کوم خبرے کوونکی دی هغه خود حضرت موسٰی علیه السلام نه غوره نه دی او مخاطب هرڅو مره که بد شی د فرعون نه خوزیات بد او خبیث کیدے نشی۔

طلحه بن عمرؓ وائی چه ما د تفسیر او حدیث امام عطاءؒ ته اُوے چه تا څنګ د فاسد خرابے عقیدے خلق هم را جمع کیږی۔ ليکن زما په مزاج کښے خو تیزی ده۔ ما څنګ چه دا سے

خلق راشی ؛ نو ځکه هغوئ ته سخته خبره کوم ، حضرت عطاء فرمائیل چه دا سے مه گوره ،
ځکه چه د الله پاك حُكم دے چه " قُوْلُوْا لِلنَّاسِ حُسْنًا " په دے کښے خو یهودی او نصرانی
هُم داخل دے ، مسلمان که هر څنګه وی هغه به د یکښے ولے داخل نه وی ( قرطبی )

وَاِذْ اَخَذْنَا مِيْثَاقَكُمْ لَا تَسْفِكُوْنَ دِمَآءَكُمْ وَلَا تُخْرِجُوْنَ

او کله چه مونږ وا غستله وعده لـه تاسو چه نه به کوئ مرګونه په خپل مینځ کښے او نه به اوباسئ

اَنْفُسَكُمْ مِّنْ دِيَارِكُمْ ثُمَّ اَقْرَرْتُمْ وَاَنْتُمْ تَشْهَدُوْنَ ﴿۸۴﴾

خپل ځانونه د خپل وطن نه . بیا تاسو اقرار او کړو او تاسو ئے منئ

## لنډ تفسیر :-

وړاندے چه کوم عهد میثاق اغستے شوے وو ، دا آیت د هغے د بیان تتمه ده
او ارشاد دے :-

او ( هغه وخت یادکړئ ) کله چه مونږ ه تاسو نه دا قول او اقرار ( هُم ) وا غستو چه
( په خانه جنګئ سره ) د یو بل وینے مه تو یوئ او یو بل لره د وطن په پر یخودو باندے مه مجبوروئ
بیا ( زما د دے اقرار په اغستلو باندے ) تاسو اقرار هم او کړو ( ضمنا نه ، بلکه ) دا سے لکه چه
تاسو ( په دے ) شهادت ( هم ) ورکوئ -

فائده :- کله د چا د بیان نه د یو څیز د اقرار کولو ثبوت راځی ؛ او په دے کښے اقرار نه وی خو
بیا عُرفاً او عقلاً ، دا اقرار او ګنړلے شی ، لیکن د لته " ثُمَّ اَقْرَرْتُمْ " دا شبهه هم لرے کړے
شوه او دا اُ ښود لے شو ، چه دا اقرار دو مره په ډاګه او واضح وو لکه چه څه رنګ شهادت واضح وی .
د وطن نه پر یښودو مجبوره کولو مطلب دا دے ، چه چا ته آزار او تکلیف مه رسوئ چه هغه
د دے آزار نه تنګ شی او په وطن پر یښودو مجبور شی -

ثُمَّ اَنْتُمْ هٰٓؤُلَآءِ تَقْتُلُوْنَ اَنْفُسَكُمْ وَتُخْرِجُوْنَ فَرِيْقًا مِّنْكُمْ

بیا تاسو هغه خلق وئ چه دا سے به مو وینے تو یولے په خپل مینځ کښے او ويستلے به مو خپلے یو فرقے لره

مِّنْ دِيَارِهِمْ تَظٰهَرُوْنَ عَلَيْهِمْ بِالْاِثْمِ وَالْعُدْوَانِ ؕ وَاِنْ

د خپل وطنه غلبه کوئ تاسو په هغوئ باندے په ګناه او ظلم سره او که چرے

يَّاْتُوْكُمْ اُسٰرٰى تُفٰدُوْهُمْ وَهُوَ مُحَرَّمٌ عَلَيْكُمْ اِخْرَاجُهُمْ ؕ

هغوئ راشي تاسو ته د جاتيدے شي نو د هغوئ بدله ورکوئ او خلاصوئے حال دا دے چه حرام دی په تاسو باندے

اَفَتُؤْمِنُوْنَ بِبَعْضِ الْكِتٰبِ وَتَكْفُرُوْنَ بِبَعْضٍ ۚ فَمَا جَزَآءُ

د هغوئ اېستل هم نو آيا منئ بعضے کتاب او نه منئ بعضے کتاب نو هيڅ سزا نشته د دے

مَنْ يَّفْعَلُ ذٰلِكَ مِنْكُمْ اِلَّا خِزْيٌ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ

چه تاسو کښے څوک دا کار کوي مګر رسوائي د دنيا په ژوند کښے

وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ يُرَدُّوْنَ اِلٰٓى اَشَدِّ الْعَذَابِ ؕ وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ

او د قيامت په ورځ به اُړسولے شي سخت عذاب ته او الله پاک بے خبره نه دے

عَمَّا تَعْمَلُوْنَ ﴿۸۵﴾

ستاسو د کارونو نه

## لنډ تفسير :-

د ميثاق په تتمه کښے چه کوم حکمونه دوئ ته ورکړے شوے دے، د هغے د عهد شکنئ متعلق بيان په دے آيت کښے شوے دے۔

بيا (د دے صريح اقرار نه ورستو) تاسو (رښتيا) دا (د ستر کو د وړاندے) موجود يئ چه ديو بل سره قتل وقتال هم کوئ او يو بل د وطن نه په پريښودو مجبوروئ (او د دے شان سره چه) د دغه خپلو په مقابله کښے (د دوئ د مخالفو قومونو) امداد کوئ ګناه او ظلم سره (لوړا د وه حکمونه موداسے او نه منل) او (يو دريم حکم چه آسان غوندے وو ګنړلو په هغے باندے د عمل کولو د پاره تيار يئ چه) که چرے د د غو خلقو نه څوک په بند کښے تاسو ته اُړسيږي نو په دا سے خلقو مال اُ لګوئ او خلاصوئ ے حال دا دے چه دا خبره هم معلومه

(۳) چه تاسو له دوئ د وطن نه په پریښودلو مجبوره کول (او قتل خو په درجه اول هم) منع کړے شوے دے۔

**فائده** :- په دے باب کښے په دوئ درے حکمونه لازم وو۔ اول قتل نه کول۔ دویم د وطن نه په پریښودو نه مجبوره کول؛ دریم چه د خپل قوم قیدی له طرفه فدیه ورکول، د هغه خلاصول لودے خلقو اولنی دوه حکمونه خو پریښودل او په دریم حکم ئے سرما تولو۔ او صورت دا شوے وو چه د مدینے استوګن دوه قومونه وو: اوس او خزرج۔ او د دوئ په مینځ کښے به دښمنی وه۔ او کله کله به د قتل و قتال نوبت هم راتلو۔ او د مدینے ګیرچاپیره د یهودو دوه قومونه بنو قریظه او بنو نضیر آباد وو۔ د اوس او د بنی قریظو په مینځ کښے دوستانه تعلقات وو، او د خزرج او د بنی نضیرو په مینځ کښے دوستی وه۔ کله چه به د اوس او خزرج په مینځ کښے جنګ وو، نو د دوستئ په وجه بنی قریظو به د اوس مدد کولو۔ او بنی نضیرو د خزرج۔ او چه کله به اوس او خزرج وړانګیدل او بے کوره کیدل نو د دوئ دوستانو او مدد ګارانو ته به هم دا مصیبت پیښیدو او ظاهره ده چه د بنی قریظو په وژلو او بنګلو کښے به د بنی نضیرو لاس هم وو۔ او د غه شان د دے بالعکس هم۔ البته دومره وه، که چرے د یهودو د دواړو ډلو نه په جنګ کښے څوک قید به شو، نو هرے یو ډلے به خپل دوستان په مال راضی کړهٔ او دا قیدی به ئے تر خلاصولو۔ او که چرے به تر پوښتنه کولو چه دا سے ولے کوئ، نو هغوی ته به ئے جواب ورکولو چه قیدی خلاصول په مونږه واجب دی او که چرے چا به پرِ په قتل و قتال کښے مدد کولو باندِ اعتراض اوکړو نو دا به ئے وے چه څه اوکړو۔ دوستانو سره مدد نه کول شرم دے۔

په دے آیت کښے الله تعالیٰ د د دے شکایت کړے دے، او د دوئ د حیلو نه ئے پرده لرے کړے ده۔ په دے آیت کښے چه د کومو مخالفو قومونو مدد کولو ذکر شوے دے، د هغوی نه اوس او خزرج مراد دی چه اوس د بنی قریظو په موافقت کښے د بنی نضیرو مخالف وو او خزرج د بنی نضیرو په موافقت کښے د بنی قریظو مخالف وو۔

اثم و عدوان (یعنی ظلم او ګناه) په دے دوو لفظونو راوړلو کښے اشاره د دے خبرے ته کیږي چه په دے حکم نه پوره کولو کښے د وه حقه ضائع کیدل، یو د الله پاک یعنی د هغه د حکم

تعمیل نهٔ کول ، چه دا اِ شم شو. دویم د بندګانو حق ضائع کیدل یعنی هغویٔ ته تکلیف
او آزار رسول ، چه دا عُدوان شو۔
دَدے عهد شکنیٔ د شکایت کولو نه پس دَدے سزا بیان دا سے فرمائی :۔
بیه نو ( بس دا سے اُوایه چه ) دکتاب (تورات) په بعضے (احکامو) تاسو ایمان لرئ او په بعضے
(احکامو) ایمان نهٔ لرئ نو نورهٔ کومه سزا کیدل (پکار دی) دَدا سے کس چه تاسو خلقو
کښے داسے کار اُوکړی بغیر د رُسوایئ نه د دُنیا په ژوند کښے او په ورځ دَ قیامت به سخت
• عذاب کښے وا چولے شی او الله تعالیٰ (خهٔ) بے خبره نهٔ دے ستاسو (بد) عملونو نه
فائده :۔ په دے قصه کښے د یهودو دَد غوبدو اعمالو نه ، یعنی په بعضو حکمونو باندِ
دعمل نهٔ کولو تعبیر په کفر لهٔ دے وجے شوے دے ، چه دا ګناه ډیره سخته وه۔ په شرعی
محاورو کښے د غه شان دګناه د غټ والی، سخت والی په کفر تعبیر کیږی ، لکه په حدیث کښے
دی : مَنْ تَرَكَ الصَّلٰوةَ مُتَعَمِّدًا فَقَدْ كَفَرَ ۔ وغیره ۔ ورنه په ګناه کولو سره ، چه ګناه
حلاله اُنهٔ ګڼړلے شی کُفر نهٔ لازمیږی۔
دلته چه دکومو دوو سزا ګانو ذِکر دے ، په هغویٔ کښے رومبیٔ سزا یعنی په دنیا کښے
ذلت او رسوائیٔ د هغے واقع کیدل دا سے اُشو چه د نبی صلی الله علیه وسلم په زمانے کښے
مسلمانانو سره د معاهدے دخلاف ورزیٔ په وجه بنی قریظه قتل او قید شو۔ او بنی نضیر
دشام ملک ته په ذلت او خواریٔ او بنګلے شو۔

أُولَٰئِكَ الَّذِينَ اشْتَرَوُا الْحَيَاةَ الدُّنْيَا بِالْآخِرَةِ ۖ فَلَا يُخَفَّفُ

دا هغه دی چه دویٔ واخستو د دنیا ژوندون دآخرت په بدله نو نهٔ به سپکیږی

عَنْهُمُ الْعَذَابُ وَلَا هُمْ يُنْصَرُونَ ﴿٨٦﴾

له دویٔ عذاب او نهٔ به دَدوی مدد کیږی۔

لنډ تفسیر :۔
(او دویٔ د پاره د سزا وچه دا ده چه) دویٔ هغه خلق دی (چه دویٔ
د حکمونو مخالفت اُوکړو ، دَدُنیا د ژوند (خوند یٔ) واخستله په بدله دَ (نجات) دآخرت

کښې (چه د هغې ذریعه اطاعت او حکم منل دی) نو نهٔ خو ر د سزا ور کولو نکی له طرفه) دَ دوئ په سزا کښې به څهٔ کمے او سپک والے کیدے شی او نهٔ څوک (وکیل، یا دوست رشته دار) دَ دوئ طرفداری او مدد به اُو کړی۔

وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ وَقَفَّيْنَا مِنْۢ بَعْدِهٖ بِالرُّسُلِ ز

او بے شکه ورکړو مونږ موسیٰ ته کتاب او پرله پسے مو اُولیږل له دهٔ نه رُوستو پیغمبران

وَاٰتَيْنَا عِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ الْبَيِّنٰتِ وَاَيَّدْنٰهُ بِرُوْحِ الْقُدُسِ ط

او ورکړی مونږ موسیٰ عیسیٰ ځوئ د مریم ته معجزے واضحے او قوت ورکړو مونږ دهٔ ته په روح پاک سره

اَفَكُلَّمَا جَآءَكُمْ رَسُوْلٌۢ بِمَا لَا تَهْوٰٓى اَنْفُسُكُمُ اسْتَكْبَرْتُمْ ج

بیا آیا کله تاسو ته داوُړلو کوم پیغمبر هغه حکم چه ستاسو په زړونو بنهٔ نه ښکیدو نو تاسو تکبر اُوکړو

فَفَرِيْقًا كَذَّبْتُمْ وَفَرِيْقًا تَقْتُلُوْنَ ﴿۸۷﴾

بیا یوه ډله مو دروغژنه کړه او بله ډله مو اُوَژله

## لنډ تفسیر:-

او مونږ (اے بنی اسرائیلو ستاسو هدایت دپاره همیشه انتظام اُوکړو د ټولو نه اول) موسیٰ علیه السلام ته کتاب (توراة) ورکړو او (بیا) له دے نه پس (په مینځ زمانه کښې) یو بل پسے (یو څیز څیز) پیغمبران اُولیږل، او (دے خاندان د سلسلے په آخر کښې) مونږ (حضرت) عیسیٰ بن مریم ته د (نبوت) واضح دیلو نه (انجیل او معجزے) ورکړے او مونږ دهٔ ته د روح القدس (جبرئیل علیه السلام) مدد ورکړو (چه هغه ځان له په خپل ځائے کښې یو واضح دلیل دوځو) آیا (د تعجب خبره نهٔ ده چه په دے بانډې هم تاسو سرکشی کوله او) کله چه به (هم) یو پیغمبر تاسو ته داسے احکام راوُړل چه هغه به ستاسو زړونو نهٔ غوښتل (نو) تاسو به (دَداسے پیغمبرانو دَ اطاعت کولو نه) تکبر کول شروع کړه، نو (داسے پیغمبرانو کښې) بعضے خو (نعوذ بالله) تاسو دروغژن اُوګڼړل او بعضے (بیغیرهٔ څهٔ نکرنه) مو قتل کړهٔ۔

فائده :- حضرت جبرئیل علیه السلام ، په قرآن او په حدیث کښے ځائے په ځائے د روح القدس په نوم یاد شوے دے۔ لکه دَ قرآن په دے آیت کښے : قُلْ نَزَّلَهُ رُوحُ الْقُدُسِ او په حدیث کښے، د حضرت حسان بن ثابت په دے شعر کښے :

وَجِبْرِيلُ رَسُولُ اللهِ فِينَا ـــــ وَرُوحُ الْقُدُسِ لَيْسَ لَهُ كِفَاءُ

او د حضرت عیسٰی علیه السلام مدد او تائید په جبرئیل علیه السلام په څو طریقو شوے دے اول خو دَ پیدا کیدو په وخت کښے د شیطان سکیدو نه بچ شوے دے بیا دغه یعنی د جبرئیل علیه السلام د چُف کولو نه د حضرت عیسٰی علیه السلام حمل دَ مور په ځیټه کښے شوے دے۔ بیا یهودو نه چه څو حضرت عیسٰی علیه السلام مخالف وو. جبرئیل علیه السلام به دَ دهٔ حفاظت کولو۔ تر دے چه په آخره کښے حضرت جبرئیل علیه السلام دے آسمان ته پورته کړو۔

یهودو دَ څو پیغمبرانو تکذیب کړے دے ، د حضرت عیسٰی علیه السلام ئے هم تکذیب کړے دے او حضرت زکریا او حضرت یحیٰی علیهما السلام ئے قتل کړی دی۔

وَقَالُوا قُلُوبُنَا غُلْفٌ ۚ بَل لَّعَنَهُمُ اللَّهُ بِكُفْرِهِمْ فَقَلِيلًا مَّا يُؤْمِنُونَ ﴿٨٨﴾

او وائی زمونږ په زړونو باندے پردے دی بلکه لعنت کړے دے الله دَ دوی دَ کفر په وجه نو ډیر کم ایمان راوړی.

لنډ تفسیر :- او دا ( یهودیان دَ طنز په توګه ) وائی چه زمونږ زړونه ( داسے محفوظ دی ) چه په دوی کښے د مخالف دین، چه اسلام دے ، اثر نه کیږی نو په دین کښے مونږه بنهٔ پاخه یو ، الله تعالیٰ فرمائی ، چه دا محفوظ والے او پوخ والے نهٔ دے ) بلکه دَ دوی دَ کفر په وجه په دوی دَ الله وهلے دی ( اسلام چه حق دین دے له دے نه نفرت کوی او په منسوخ شوی دین ټینګ ولاړ دی ) نو ډیر کم خو نیزا ایمان لری۔

فائده :- دا لږ غوندے ایمان د هغه څیزونو باره کښے دے ، چه هغه دَ دوی په دین او اسلام کښے مشترک څیزونه دی۔ مثلاً د خدائے اقرار کول ، د قیامت منل ، چه دا داسے څیزونه وو چه دَ دے دوی هم قائل وو لیکن د نبوت محمدیهٔ او د قرآن دَ کلام الٰهی کیدو نه ئے انکار کولو نو په دے وجه پوره ئے ایمان نهٔ وو۔

او دے لرې غوندې ایمان ته ایمان دَ لغت په اعتبار ویلے شوے دے، ځکه چه دَ ایمان لغوی معنی مطلق یقین کول دی۔ شرعًا دے ته ایمان ویلے نشی، ځکه چه شرعًا ایمان هغه دے، چه په هغه ټولو څیزونو کامل یقین وی کوم چه په شرع کښے راغلی دی۔ او په هغې څیزونو کښے نبوت محمدیه او دَ قرآن کلام الٰهی کیدل هم دی۔ او په دے باندې دوئ یقین نهٔ لرلو۔

وَلَمَّا جَآءَهُمْ كِتٰبٌ مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ مُصَدِّقٌ لِّمَا مَعَهُمْ ۙ وَكَانُوْا

او کله چه راغے دوئ ته کتاب د الله له طرفه چه رښتیا ښائی هغه کتاب چه دوئ ... څخه دے او دو مخکښے

مِنْ قَبْلُ يَسْتَفْتِحُوْنَ عَلَى الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ۚ ۖ فَلَمَّا جَآءَهُمْ

نه به فتح غوښته دوئ په کافرانو باندې بیا چه راغے دوئ ته هغه چه دوئ پیژندلو نو د هغهٔ نه ئے

مَّا عَرَفُوْا كَفَرُوْا بِهٖ ۚ فَلَعْنَةُ اللّٰهِ عَلَى الْكٰفِرِيْنَ ﴿۸۹﴾

انکار اوکړو نو لعنت دے د الله په انکار کوونکو باندے

**لنډ تفسیر:-** او کله چه دوئ ته (یو) داسے کتاب راغے (یعنی قرآن مجید) چه د خدائے له طرفه دے (او) د هغه (کتاب هم) تصدیق کوونکے دے چه ر د مخکښے نه) دوئ څخه دے (یعنی توراة) حال دا دے چه له دے نه مخکښے (پخپله) به ئے بیان کولو (او) کافرو ته (یعنی د عربو مشرکانو ته چه یو نبی را تلونکے دے او یو کتاب راؤړونکے دے، مګر) بیا کله چه د غه څیز راغے چه هغه دوئ (ښهٔ) پیژندو نو د هغې ئے (صاف) انکار اوکړونو (بس) د خدائے لعنت دِ وی په داسے انکارکوونکو باندې (چه سړه د پوهے صرف د تعصب په وجه انکار کوی)

فائده:- قرآن ته د توراة تصدیق کوونکے په دے وجه ویلے شوی دی، چه په توراة کښے دَ نبی علیه الصّلوٰة والسّلام، او دَ قرآن دَ نازلیدو چه کومے پیشن ګو یانے وے، قرآن نه د هغې رښتیا والے څرګند شو۔ نو کوم چه دَ توراة په حقه منونکی دی، هغه د قرآن، او دَ صاحبِ قرآن تکذیب کولے نشی، ورنه که ئے تکذیب اوکړی نو دا به خامخا دَ توراة تکذیب هم وی۔

**يو شبهه اود هغې جواب** اوکه چرې څوك دا اووائي، چه هر کله دوی حق حق ګڼړلو نو بيا خو دوی ته مؤمن ويل پکار دی، کافر ورته څه رنګ او ويلے شو ؟

نو دې جواب دا دې چه ايمان صرف د ګڼړلو نوم نه دے، بلکه د منلو نوم دے. کله دا سې نشي، نو دا سے خو شيطان د ټولو نه زيات حق بنده ګڼړي ليکن د ګڼړلو باوجود د نه منلو په وجه په کفرکښې بنده مضبوط شوے دے. د هغه وجه ده چه دروسته راتلونکي آيت کښې د دوی د کفر وجه د دوی عناد ښودلے شوے دے، لکه چه ارشاد دے :-

بِئْسَمَا اشْتَرَوْا بِهٖٓ اَنْفُسَهُمْ اَنْ يَّكْفُرُوْا بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ

بد څيز دے هغه چه د هغې د پاره خرڅ کړه دوی ځپل ځانونه چه منکرشو د هغه څيز چه نازل کړے دے الله

بَغْيًا اَنْ يُّنَزِّلَ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ ۚ

په دے ضد بانذې چه نازل کړو الله د خپل فضل نه په هغه چا چه دے غواړي په خپلو بندګانو کښې

فَبَآءُوْ بِغَضَبٍ عَلٰى غَضَبٍ ؕ وَلِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ ﴿۹۰﴾

نو دوی اوګټلو غضب د پاسه غضب اوکافرانو د پاره عذاب دے د ذلت

**لنډ تفسير :-** هغه حالت (ډير زيات) بد دے چه هغوی غوره کړو (او په دے دوی په خپل ګمان) خپل ځانونه (د آخرت د عذاب نه) خلاصول غواړي (او هغه حالت) دا (دے) چه کُفر (انکار) کوی د دا سې څيز چه الله تعالیٰ (په يو رښتوني پيغمبر) نازل کړے (يعني قرآن او هغه انکار هم) محض (په دے) ضد او عناد چه الله تعالیٰ د خپل فضل په وجه په کوم بنده چه منظوره وه (يعني محمّد صلی الله عليه وسلم بانذې وحی) نازل کړو نو (د دے حسد په وجه چه د کُفر نه علاوه دے) دوی د يو غَضَب نه علاوه د بل غَضَب مُستحق شو او (په آخرت کښې) د غه کفرکونکو له به داسے سزاوی چه په هغې کښې (د تکليف نه علاوه) ذلت (هُم) دے.

فائده :- يو غضب او قهر د خدا ئے تعالیٰ د کفر په وجه او دو يم د حسَد په وجه دے. نو په دے وجه د غضب د پاسه غضب ئے اُوفرمايئل. عذاب سره د مُهين قيد لګولو نه مقصد دا دے، چه دا عذاب کافرو سره خاص دے، ځکه چه ګنهګار مؤمنانو له عذاب

چه دی هغه دے دپاره دی چه ددوئ پاک کړے شي، د ذلت دپاره نه دی۔

له دے نه زُستو آیت کښے چه کوم قول دَ دوئ نقل شوے دے، له هغے نه دَ دوئ کُفر ثابتیږی او حسد تر هم معلومیږی۔

وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ آمِنُوا بِمَا أَنزَلَ اللَّهُ قَالُوا نُؤْمِنُ بِمَا أُنزِلَ

او کله چه اُو ئیلے شی دوئ ته اُمنئ هغه چه الله رالیږلے دے، نو دوئ وائی مونږه منو هغه چه نازل شوے دے

عَلَيْنَا وَيَكْفُرُونَ بِمَا وَرَاءَهُ وَهُوَ الْحَقُّ مُصَدِّقًا لِّمَا مَعَهُمْ

په مونږه او نهٔ منو هغه چه له دے نه سوا دے حال دا دے چه دا کتاب رښتیا دے او تصدیق کوونکے دے د هغه کتاب دے دوئ

قُلْ فَلِمَ تَقْتُلُونَ أَنبِيَاءَ اللَّهِ مِن قَبْلُ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴿٩١﴾

سره دے، اُو ایه بیا مو ولے قتل کول د الله پیغمبران له دے نه وړاندے که چرے تاسو ایمان لرئ۔

**لنډ تفسیر:-** او کله چه دے (یهودو) ته اُو ئیلے شی چه تاسو ایمان راوړئ په هغه ټولو کتابونو چه الله تعالیٰ (په مختلفو پیغمبرانو باندے) نازل کړی دی (او په دے ټولو کتابونو کښے قرآن هم دے) نو (په جواب کښے) وائی چه مونږه (خو صرف) په هغه کتاب به ایمان راوړو چه مونږه ته (د حضرت موسیٰ علیه السّلام په واسطے) نازل شوے دے (یعنی توراة) او (باقی) خو مونږه (کتابونه) دَ دے نه علاوه ګڼو (لکه انجیل او قرآن) دَ دے (ټولو) دوئ انکار کوی حال دا دے چه دا (توراة نه ماسوا کتابونه) هُم (په خپل ځائے) حق (او واقعی) دی او (په خپل ځائے دحق کیدلو نه علاوه) تصدیق کوونکی هم دی دَ هغه (کتاب) چه دوئ سره دے (یعنی توراة) ته (دا هم) اُو ایه چه (ښه نو بیا مو ولے قتلول د الله پیغمبران دے نه وړاندے زمانه کښے که چرے تاسو (توراة باندے) ایمان لرونکی وئ۔

فائده:- د یهودو دا وینا کول چه مونږ به صرف په توراة ایمان راوړو، په نورو کتابونو به نهٔ راوړو، په دے کښے د کفر وینا ده۔ او ور سره دا وینا چه هغه کتاب چه په مونږه نازل

شوے دے (یعنی توراة) لہ دے وینا نه دَ دوئ حسد کول معلومیږی، چه د هغې صفا مطلب دا دے چه هر کله نور کتابونه په موږه نازل نه دی، نو په دے ایمان نه راوړو۔ الله تعالیٰ د دوئ دا وینا په درے قسمه رد کړے ده :-

اول دا چه هر کله د نورو کتابونو حق والے هم د لیل یقینی سره ثابت دے، نو بیا د هغه دا نکار کولو څه وجه ده؟ البته که چرے په دلیل کښے څه خبره وے نو هغه به ئے ذکر کړے وے او خپله تسلی به ئے کړے وے، انکار محض په څه وجه؟

دویم دا چه نور کتابونه، مثلاً قرآن مجید، دَ توراة تصدیق کوونکی کتابونه دی نو بیا لہ دے نه په انکارکولو سره پخپله د توراة نه انکار کول راپیدا کیږی۔

دریم دا چه دَ پیغمبرانو وژل، د ټولو آسمانی کتابونو په رنړا کښے کفر دے، نو بیا ستاسو د خاندے چه کوم څو مره پیغمبران وژلی دی، چه د هغوئ تعلیمات د توراة د احکامو تعلیمات وو، تاسو غه قاتلانو ته خپل پیشوایان وایئ نو په دا سے کولو او ښکلو نیغ په نیغه په توراة باندے کفر کول دی۔ لہ دے نه خوستاسو د ایمان دعوی کول هم غلطه معلومه شوه۔ مطلب دا چه د یوا ړخ نه هم ستاسو قول او فعل صحیح او درست نه دے۔

دے پسے په نورو وجو او دلیلونو سره دَ دے بهودو رَد الله تعالیٰ کوی۔

وَلَقَدْ جَآءَكُمْ مُّوْسٰى بِالْبَيِّنٰتِ ثُمَّ اتَّخَذْتُمُ الْعِجْلَ مِنْۢ بَعْدِهٖ

او راغے تاسو ته موسیٰ په واضحو معجزو سره بیا جوړ کړو تاسو خځے د هغه نه رُستو

وَاَنْتُمْ ظٰلِمُوْنَ ﴿۹۲﴾

او تاسو ظالمان یئ۔

**لنډ تفسیر** :- او (حضرت) موسیٰ (علیه السلام) تاسو خلقو ته صفا صفا دلیلونه (د توحید او رسالت) راوړل (مگر) د دے سره هم تاسو خلقو خځے (معبود) جوړ کړو د موسیٰ (علیه السلام طور ته د تلو نه) رُستو او تاسو (په دا سے کولو سره) ظلم کولو۔

فائده :- د بیّنات نه هغه دلیلونه مراد دی چه کوم لہ دے واقعے نه مخکښے چه لا توراة

دوئ ته هُم نهٔ وو درکړے شوے، د موسٰی علیه السّلام په حقه نبی کیدو لو د پاره قائم شوی وو. مثلاً آمسا، او تك سپین لاس، ددریاب شلیدل وغیره شو.

دَرد دَ بیان حاصل خبر ګند دے، چه تاسو خود ایمان دعوئ کوئ او په صریح شرك کښے مبتلا یئ، چه له دے نه د موسٰی علیه السّلام بلکه د الله تعالیٰ تکذیب را پیدا کیږی.

د ځنی د عبادت کولو واقعه او معامله اګر چه په هغه یهودو کښے نه وه پیښه شوے چه دَ نبی علیه الصّلوٰة والسّلام په زمانه کښے وو، لیکن هر کله چه دوئ د خپلو نیکو نو حامیان او طرفدار وو نو په دے وجه یو ګونه دوئ هم په دے رَد کښے شامل شو.

او له دے نه دا خبره هُم معلومه شوه چه دکومو خلقو تیر شوو مشرانو دَ موسٰی علیه السّلام تکذیب کړے وو، نو دوئ کهٔ چرے د محمّد صلی الله علیه وسلّم نه انکار اُوکړی نو دا دومره څهٔ عجیب نهٔ دی.

وَإِذْ أَخَذْنَا مِيثَاقَكُمْ وَرَفَعْنَا فَوْقَكُمُ الطُّورَ ۖ خُذُوا مَا آتَيْنَاكُم

او کوم وخت مونږ واغستهٔ اقرار له تاسو او پورته مو کړو تاسو باندِ کوهِ طور نیسئ چه کوم مونږ تاسو ته

بِقُوَّةٍ وَاسْمَعُوا ۖ قَالُوا سَمِعْنَا وَعَصَيْنَا وَأُشْرِبُوا فِي قُلُوبِهِمُ

درکړو په مضبوطه او واورئ اُوے واورید هٔ مونږه او نهٔ منو اُڅکوے شو دَ دوئ په زړونو کښے

الْعِجْلَ بِكُفْرِهِمْ ۚ قُلْ بِئْسَمَا يَأْمُرُكُم بِهِ إِيمَانُكُمْ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴿٩٣﴾

محبت د هغه ځنی په وجه دَ دوئ د کفر اُوا یه چه بد دے خبرے ښائی تاسو ته ایمان ستاسو که چرے تاسو ایماندار وئ.

**لنډ تفسیر:** او (هغه زمانه یاده کړئ) کله چه مونږه تاسو نه قول او اقرار اغستے وو او (ددے قول اقرار اغستلو دَ پاره) طور مُ ستاسو (په سرونو) باندے پورته کړے وو (او په دے وخت کښے حکم مُ کړے وو چه) دا خلئ کوم (احکام چه) مونږه تاسو ته درکوو په همّت (او پوخ والی) سره دا خلئ او (دا حکمونه په زړهٔ) واورئ (په دے وخت کښے دوئ) رله ویرے په ژبه خو) اُوے چه مونږه (قبول کړل او) واورید دے او (هر کله چه واقع کښے دا خبره د زړهٔ نه نهٔ وه چه) دَ دوی په زړونو (رك رك) کښے هغه ځنے ننوتے وو، دَ دوئ

(د پرومبی) کُفر په وجه ژکوم وخت چه دوی دَ دریاب شوَر نه اُو تل او یو بُت پرست قوم ئے اُلیدو، نو دوئ درخواست اُوکړو، چه مونږ د پاره یو داسے رنگ مُجسّم خدائے دِ تجویز کړے شی ته اُو ایه چه (اُو مولید ۀ دَ خپل ایمان کار ونه نو) دا کار ونه د یربد دی چه د هغے شودنه تاسو ته ستاسو ایمان کوی کهٔ چرے تاسو ژکه چه اُوس هم) ایمان داریئ (یعنی دا ایمان نهٔ دے)

فائده :- په دے آیت کښے چه کوم اسباب او مُسببات ذکر دی، د هغوئ د ترتیب حاصل دادے چه کوم وخت دوئ له دریائے شور نه اُو تل نوله دوئ نه د کُفر دیو کلمے صادریدل اُوشو- د موسٰی علیه السّلام په رټنه اگرچه دوئ توبه اُوکړه، لیکن د توبے هم مختلف درجے دی۔ هرکله چه دا توبه دا علی درجے توبه نهٔ وه، نو دَ غے د کفر د کلمے څهٔ خیرے دَ دوئ په زړونو کښے پاتے شوے وو، چه د غه خیری بیا ترقی اُوکړه او د څخی د عبادت کولو سبب جوړ کړے شو. بیا په توبه کولو کښے بعض قتل شو او بعضو ته غالبًا بغیر د قتل کولو نه مُعاف اُوکړے شوه، لکه چه بعض مفسّرینو ذکر کړے هم ده چه دَ دوئ څهٔ قدرے کمزوری به هم وه- اوکوم چه د څخی د عبادت کولو نه بچ پاتے شوی وو، نو هغوئ له پکار وو، چه دَ څخی د عبادت کوونکو نه ئے نفرت کړے وے، لیکن په دے نفرت کښے د کوتاهئ په وجه لو قسم دَ دے معصیتِ شرکیه دَ دوئ په زړونو کښے باقی وو- بهرحال د توبے کمزورئ یا دَ کفر نه نفرت نهٔ کولو دَ آثار و پاتے کیدلو، دَ دوئ په زړونو کښے سُستی پیدا کړه، چه لدے نه دَ میثاق په آخستو کښے کوم طور ته دَ دوئ په سرولو بانله دپور ته کولو نوبت راغے۔

قُلْ إِنْ كَانَتْ لَكُمُ الدَّارُ الْاٰخِرَةُ عِنْدَ اللّٰهِ خَالِصَةً مِّنْ

اُو ایه چه کهٔ چرے دے تاسو دَ پاره دَ آخرت کور الله څخه یو اځے د نورو

دُوْنِ النَّاسِ فَتَمَنَّوُا الْمَوْتَ إِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿٩٤﴾ وَلَنْ

خلقو نه نو تاسو د مرګ کیدلو آرزو اوکړئ کهٔ چرے تاسو رښتیا وایئ او هرګز به

يَّتَمَنَّوْهُ أَبَدًا ۢ بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيْهِمْ ۗ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ ۢ بِالظّٰلِمِيْنَ ﴿٩٥﴾

آرزو اونکړی د مرګ، په سبب د هغه ګناهونو چه لیږلی دی دَ دوئ لاسونو او الله ښهٔ پیژنی ګنهګاران۔

## لنډ تفسير :-

( بعضې يهود وو دا دعوى کوله ، چه د آخرت نعمتونه مونږ د پاره خاص دى او بس زمونږه حق دے ، الله تعالى د دے دعوے د باطلولو د پاره اُوفرمائيل چه اے محمد صلى الله عليه وسلم ) ته ( دوے خلقوته ) اُوايه چه که چرے ( ستاسو د وينا مطابق ) د آخرت عالم صرف ستاسو د پاره دے ، د نور چا د شرکت نه بغير ، نو تاسو ( د تصديق د پاره لږ غونډ دے ) د مرګ آرزو اُوکړئ او اُوښايئ که چرے تاسو ( په دے دعوىٰ کښے ) رښتونى يئ او ( مونږ درسره دا هم وايُو چه ) دا خلق هرګز به کله هم د دے ( مرګ ) آرزو اُونکړى په وجه د ( ويرے دسزا ) د هغه اعمال ( کفريه ) نه چه دوئ په خپلو لاسونو کړى دى او الله تعالى ته ښه پته ده د دے ظالمانو د ( حال کوم وخت چه د مقدمے تاريخ راشى په دوئ به فرد جُرم عائد کړے شى او د سزا حکم به ورته ورکړے شى )

فائده :- د قرآن د نورو آياتونو نه هم د دوئ د دغے دعوے مفهوم دا اُوحئ نکه چه :- وَقَالُوْا لَنْ تَمَسَّنَا النَّارُ اِلَّآ اَيَّامًا مَّعْدُوْدَةً ، وَقَالُوْا لَنْ يَّدْخُلَ الْجَنَّةَ اِلَّا مَنْ كَانَ هُوْدًا اَوْ نَصٰرٰى وَقَالَتِ الْيَهُوْدُ وَالنَّصٰرٰى نَحْنُ اَبْنٰٓؤُا اللّٰهِ وَاَحِبَّآؤُهٗ - وغيره -

د ټولو دعوو حاصل دا دے ، چه دوئ وائى چه مونږ په حق دين يُو ، لهٰذا دے وجے آخرت کښے مونږ ته به خامخا خلاصے حاصل شى او مونږه ، کوموچه تو به کږ بيده يا د خدائے رحمت پرِ شوے دے ، هغوئ ته خو به اول کښے به جنت حاصل شى - او چه کوم ګنهګار دى ، هغوئ به څو ورځے عذاب تير کړى - بيا به خلاص شى - او چه کوم فرمانبردار دى ، هغوئ پښان د ځامنو ، خدائے تعالىٰ ته محبوب او نږدے دى -

د بعضِ عنوانونو د قباحت نه قطع نظر دا دعوىٰ چه دوئ په دينِ حق باندے دى په خپل ځائے کښے اګر چه د رسته معلوميږى ، ليکن هر کله ، دا خلق ' د خپل دين د منسوخ کيدو په وجه په حق پاتے کيګے نشو ، لهٰذا دے وجے الله تعالىٰ ځائے په ځائے په مختلفو عنوانونو او طريقو سره د دوئ تکذيب کړے دے ، او د لته ئے يو خاصه طريقه ذکر کړے ده ، هغه دا چه د عام عادت مطابق ، که چرے بحث او دلائلو سره فيصله نه کوئ ، نو را شئ ، مافوق العادة طريقے سره يعنى د معجزے په ذريعه چه په هغ کښے نه د زياتے علم فهم ، او نه د سوچ او فکر ضرورت دے ، بلکه صرف د ژبے د خوزولو ضرورت دے ، فيصله کوو ، ليکن مونږه

پیشن گوئی کوو چه تاسو به په ژبه هرګز اُنهٔ وایئ چه "مونږ د مرګ آرزو کوو"۔ دَدے پیشن ګوئی نه پس مونږ ته وایُوچه که چرے تاسو په خپلو عووُکښے رښتینی یئ نو دا خبره اُوکړئ اوکهٔ اُمو نکړه نو بیا ستاسو دروغژن کیدل ثابتیږی۔

هر کله چه دوئ ته ښهٔ معلومه وه، چه دوئ په کفر او باطله دی او رسُول صَلی الله علیه وسَلّم او مؤمنان په حقه دی، نوله دے وجے باخو په دوئ باندِ دا سے هیبت خورشوچه دَ دوئ ژبه بالکل اُنهٔ خوزیده، یا خواُودریدل چه په ژبه دا خبره کول دی او مرګ راتلل دی او سرِدست جهنم ته رسیدل دی۔ که دا سے نهٔ وے نودَ دوئ چه نبی صلی الله علیه وسَلّم سره کومه دښمنی ده نو د هغے په وجه دَ دے خبرو دآوُریدو نه خو دوئ له په جوش کښے راتلل پکار وو او دا کلمات به ئے وئیلے وو۔

په حقیقت کښے د اسلام د حقانیت د پاره دا واقعه کافی ده۔

دلته کښے دوه نورے خبرے د ذِکر کولو جوګه دی :-

اول دا چه دا دلیل خو دیهودو وو، چه دَ نبی صلی الله علیه وسلم په زمانه کښے موجود وو او چه هغوئ دده دَ نبوت د پیژندو باوجود دَده دَ نبوت نه انکار کولو، او د هرے زمانے د یهودو دا خطاب او خبره نهٔ ده۔

دویم دا چه دا شُبه کول پکار نهٔ دی، چه تمنّا په زړهٔ او په ژبه دواړو سره کیږی ممکنه ده چه دوئ په زړهٔ کښے تمنّا کړی وی؛ دا شبه ځکه کول نهٔ دی پکار، چه اول دَالله پاک دا قول : " وَلَنۡ يَّتَمَنَّوۡهُ " دَدے خبرے صَفا تردید کوی، بل دا که چرے دوئ په زړهٔ کښے تمنّا کولے، نو په ژبه به ئے ضرور د هغے اظهار کولے، ځکه چه په دے کښے دَ دوئ بړے دوا ودَ نبی صلی الله علیه وسَلّم دَ دروغژن کولو ښهٔ موقعه وه۔

او دا شُبه هم بے ځایه ده چه دوئ به تمنا کړے وے، لیکن دَ هغے شُهرت نهٔ دے شوے دا ځکه بے ځایه ده چه د اسلام د همدردانو تعداد، د مخالفو تعداد په مقابله کښے په هره زمانه کښے همیشه کم را غلے دے؛ که چرے دا سے خبره وے، نو دوئ به دا پخپله ښهٔ مشهوره کړے وے، چه ګورئ تاسو چه دَحق کوم معیار مقرر کړے وو هغه په مونږ کښے پوره پوره موجود دے۔

وَلَتَجِدَنَّهُمۡ اَحۡرَصَ النَّاسِ عَلٰى حَيٰوةٍ ۚ وَمِنَ الَّذِيۡنَ

او ته به اُوینے دوئ د ټولو خلقو نه زیات حِرصناک د ژوندُ او زیات حرصناک دَ

أَشْرَكُوا ۚ يَوَدُّ أَحَدُهُمْ لَوْ يُعَمَّرُ أَلْفَ سَنَةٍ ۚ وَمَا هُوَ

مشرکانو هم، غواړی یو یو د دوی چه عمر اُوموی زر کاله او نه دے دا لره

بِمُزَحْزِحِهِ مِنَ الْعَذَابِ أَنْ يُعَمَّرَ ۗ وَاللَّهُ بَصِيرٌ بِمَا يَعْمَلُونَ ﴿۹۶﴾

بچ کوونکے د عذاب نه دومره قدر ژوندی پاتے کیدل او الله وینی چه څه دوی کوی۔

## لنډ تفسیر :-

او (دا خلق دومره څه تمنا کوی) ته (خو) دوی د (دُنیوی) ژوند حرصناک (او عام) بنیاد مونه (هم) زیات به بیا موُمے او (نور خو پریږده، حیرانتیا خو دا ده چه د بعضی) مشرکانو نه هم (زیات به ته دوی د ژوند اُوږدی اُوینے او د دوی دا حالت دے چه) د دوی یو یو (کس) په دے هوس کښے دے چه د ده عمر زر کاله شی او (سبه بالفرض که چرے دومره عمر ئے هم شی نو څه به اُشی؟) دا به د عذاب نه بچ کولے نه شی چه (د چاوی) عمر شی او د الله تعالیٰ په وړاندے دی د دوی عملونه (دی چه د هغے په وجه دوی ته عذاب ورکیدونکے دے)

فائده :- په دے کښے د حیرانتیا وجه دا ده چه د عربو مشرکان چه هغه د آخرت نه منکرو او چه د هغوی عیش و عشرت که څه دے نو دُنیوی دے. دوی که چرے د اُوږد عمر تمنا اُوکړی نو څه دومره د تعجب خبره نه ده لیکن یهود چه د آخرت قائل او د دوی په وینا د آخرت د عیش و عشرت مستحق دی، بیا وے په دنیا کښے د پاتے کیدو تمناکوی دا تمنا د حیرانتیا او د تعجب خبره ده۔

نو د آخرت د عقیدے لرو سره د اُوږد عمر آرزو کول د دے خبرے دلیل دے چه دوی خپل ځان د آخرت د نعمتونو مستحق گنړلو چه کومه دعوی کوی، هغه صرف دعوی ده. حقیقت ئے نشته او که حقیقت دے هغه خو دا دے چه دوی ته بنه پته ده، چه هلته د دوی ځائے د جهنم نه سوا بل ځائے نشته نو په دے وجه چه څومره پورے ژوندی وی نو بنه به وی۔

قُلْ مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِجِبْرِيلَ فَإِنَّهُ نَزَّلَهُ عَلَىٰ قَلْبِكَ بِإِذْنِ اللَّهِ

ته اُووایه چه څوک وی دښمن د جبریل، نو هغه خو نازل کړیدے دا کلام ستا په زړه باندے د الله په حکم

مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ وَهُدًى وَّبُشْرٰى لِلْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۹۷﴾

چه دے رښتيا ښوودونکے دے د هغه کلام چه له دهٔ نه وړاندې دے او لارهٔ ښائی او زېرے آوروی ايماندارو ته

مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِّلّٰهِ وَمَلٰٓئِكَتِهٖ وَرُسُلِهٖ وَجِبْرِيْلَ وَمِيْكٰلَ

څوک چه وی دښمن د الله او د دهٔ د فرښتو او د دهٔ د پيغمبرانو او د جبريل او د ميکائيل

فَاِنَّ اللّٰهَ عَدُوٌّ لِّلْكٰفِرِيْنَ ﴿۹۸﴾

نو الله دُښمن دے دَدغو کافرانو -

**لنډ تفسير :-** ( بعضې يهودو چه د نبی صلی الله عليه وسلّم دا واورېدهٔ چه جبريل عليه السّلام ماته وحی راوړی نو ووئے ويل، چه دهٔ سرهٔ زمونږه دُښمنی ده، زمونږ په قوم باندے چه کوم خوفناک واقعات او سخت احکام راځی، نو هغه دے راولی، ميکائيلؑ ښهٔ دے چه باران او رحمت دهٔ سرهٔ تړلے دے. کهٔ چرے دهٔ وحی راوړلے، نو مونږه به منلے په دے خبره الله تعالیٰ رد کوی چه اے محمد صلی الله عليه وسلم) تهٔ ( دوئ ته) دا اُوايه چه څوک ، جبريلؑ سرهٔ دُښمنی کوی ( هغه پوهه شه او هغه د ښمنی پوهه شه ليکن دَ دے کار دَ قرآن په نهٔ منلو کښے څهٔ دخل دے؛ ځکه چه دے دَ قرآن په راوړلو کښے صرف اُستاذے دے) نو ( دَ اُستاذی په توګه) دهٔ دا قرآن ستا زړهٔ ته رسولے دے د الله تعالیٰ په حکم ( نو دَ راوړونکی خصوصيت ته اعتبار ولے ورکيدے شی؛ البته قرآن ته دِ اُکتے شی، چه څهٔ رنګے دے نو) د دهٔ ( خو ښکيله) دا حالت دے چه تصديق کوی د خپل ځان نه دَ وړاندينو (آسمانی) کتابونو او لارهٔ ښائی ( دَ ضروری مصلحتونو) او زېرے آوروی ايماندارو ته (او دَ آسمانی کتابو نو دغه شان حالت وی، نو قرآن په هر حالت کښے آسمانی کتاب او دَ اتباع قابل شو بيا د جبريل عليه السلام سرهٔ د دښمنئ په وجه د قرآن نهٔ منل، يو عجيبه بے وقوفی ده. او پاتے شوه دَ جبريل عليه السّلام دَ دُښمنئ کولو مسئله. نو دَ دے فيصله دا ده، چه دَ الله تعالیٰ په نزد الله تعالیٰ سرهٔ دُښمنی کول يا د هغه ميکائيلؑ سرهٔ دُښمنی کول چه د هغهٔ دَ دوستئ تپے دوئ کوی. دے ټولو سرهٔ دُښمنی کول او جبريلؑ سرهٔ دُښمنی کول دا ټول يو شان څيز

دے۔ دے یهودو دښمنیانو دَ پاره قانون او ضابطه داده چه کوم یو) سړے د الله دُښمن دی (نو) د فرښتو دښمن وی (نو) دَ پیغمبرانو دښمن وی (نو) دَ جبرئیل دښمن (وی نو) دَ میکائیل دښمن (دی) نو (دَدے یهودو بال داده چه) الله تعالیٰ دُښمن دے دَ داسے کافرانو

وَلَقَدْ اَنْزَلْنَآ اِلَیْكَ اٰیٰتٍۭ بَیِّنٰتٍ ۚ وَمَا یَكْفُرُ بِهَآ اِلَّا الْفٰسِقُوْنَ ﴿٩٩﴾

مونږ نازل کړی دی تا ته آیاتونه روښانه او انکار به نه کوی دَدے مګر هغه چه نافرمانه دی

لنډ تفسیر :- او (بعضو یهودو نبی صلی الله علیه وسلم ته اُوے، چه په تا باندِ څه داسے واضح دلیل نازل شوے نه دے، چه هغه مونږ پیژنو، او چه له هغے وجے مونږ ایمان راوړو نو دَدے خبرے په جواب کښے اُو ویلے شو، چه دوئ دیو واضح دلیل خبرے کوی) مونږ کا خو په تا باندِ ډیر واضح دلیلونه نازل کړی دی (چه هغه دوئ بنه پیژنی، نو دَ دوئ انکار دنا پیژندګلئ په وجه نه دے بلکه دا انکار په دے وجه دے چه دوئ کښے دا عادت دے چه دَ خدائے دُحکم نه غاړه (غړوی) او (قاعدهٔ کلیه دا چه دَ داسے دلیلونو نه) انکار نه کوی، مګر یوا ځے هغه خلق چه دَ هغوئ عادت د حکم نه غاړه (غړول وی۔

اَوَكُلَّمَا عٰهَدُوْا عَهْدًا نَّبَذَهٗ فَرِیْقٌ مِّنْهُمْ ؕ بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا یُؤْمِنُوْنَ ﴿١٠٠﴾

آیا کله به چه اُوکړو دوئ څه عهد او پیمان نو اُوبه ئے غورځولو هغه یو جماعت له دوئ نه بلکه اکثر له دوئ ایمان نه راوړی

لنډ تفسیر :- (بعضے یهودو ته چه هغه عهد او پیمان یاد کړے شو، چه دوئ نه په توراة کښے په نبی علیه الصلوٰة والسلام د ایمان راوړلو په باره کښے آخستے شوے وو، نو دَ دغے عهد د آخستلو نه ئے صفا انکار اُوکړو نو دَ دغے خبرے متعلق ارشاد دے چه) آیا (دَ دغے عهد و پیمان دَ آخستلو نه دوئ انکار کوی) آو (دَ دوئ خو دا حال دے چه دوئ کله هم چیلے منلے شوے وعدے پوره کړی نه دی) کله هم چه دے خلقو (دَ دین متعلق) څه عهد کړے به وو (ضرور هغه به په دوئ کښے یو نه یو فرقے شاته غورځولے وو بلکه (دغه (په عهد باندِ نه عمل کوونکو کښے زیات خو به داسے را اُوځی چه (د سرے به دَدے عهد) یقین هم نه لری (نو عمل پرِ نه کول خو

فسق وو، یقین نهٔ کول پرد ے نه زیات کفر د ے)

فائده :- د یو ے د ے تخصیص ځکه کړ ے شو ے د ے، چه څهٔ په دوئ کښے داسے وو، چه دا وعد ے به ئے پوره کولے حتیٰ چه په آخر کښے په نبی صلی الله علیه وسلم باند ایمان ئے هم راوړو۔

وَلَمَّا جَآءَهُمْ رَسُوْلٌ مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ مُصَدِّقٌ لِّمَا مَعَهُمْ

او کله چه راغلو دوئ ته پیغمبر د الله له طرفه تصدیق کوونکے د هغه کتاب چه دوی سره د ے

نَبَذَ فَرِيْقٌ مِّنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ ۙ كِتٰبَ اللّٰهِ وَرَآءَ ظُهُوْرِهِمْ

نو اُغورځولو یو ے ډ لے د اهل کتابو نه د الله کتاب د خپلو شا گانو د رُستو

كَاَنَّهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۱۰۱﴾

گویا چه دوئ هیڅ علم نهٔ لري

**لنډ تفسیر** :- (په د ے آیت کښے د یو ے خاص عهد شکنئ، الله تعالیٰ ذکر کوی، چه په هغ کښے په رسول صلی الله علیه وسلم د ایمان نهٔ راوړلو خبر د ے، ارشاد د ے) او چه کله دوئ ته (لو ئ) پیغمبر راغ د الله له طرفه چه (رسول کید و سره) تصدیق کوی د هغه کتاب چه د ے خلقو سره د ے (یعنی د توراة، ځکه چه د ے کښے د د لا د نبوّت خبر د ے نو په د ے حالت کښے په نبی علیه الصّلوٰة والسّلام ایمان راوړل عین په توراة عمل وو، چه هغوئ[۳] دا هم کتاب الله گڼری مگر سره له د ے هم) په د غه اهل کتابو کښے یو ے فرقے خپله دا کتاب الله دا رنگ شا ته رُستو اُغورځولو لکه چه دوئ ته (د د ے مضمون یاد کتاب الله کید لو) گویا د سره علم نشته۔

وَاتَّبَعُوْا مَا تَتْلُوا الشَّيٰطِيْنُ عَلٰى مُلْكِ سُلَيْمٰنَ ۚ وَمَا كَفَرَ سُلَيْمٰنُ

او ور پسے روان شو د هغے علم چه لوستو به شیطانانو د سلیمان[ع] د باد شاهئ په وخت کښے او کفر نهٔ دو کړ ے سلیمان[ع]

وَلٰكِنَّ الشَّيٰطِيْنَ كَفَرُوْا يُعَلِّمُوْنَ النَّاسَ السِّحْرَ ق وَمَآ

لیکن شیطانانو کفر کړے وو چه ښودلو به ئے خلقو ته جادو او هغه علم چه روان شو

اُنْزِلَ عَلَى الْمَلَكَيْنِ بِبَابِلَ هَارُوْتَ وَمَارُوْتَ ط

نازل شوے وو په دوو فرښتو باندې بابل ښار کښے چه د هغوئ نوم هاروت او ماروت دے

وَمَا يُعَلِّمٰنِ مِنْ اَحَدٍ حَتّٰى يَقُوْلَآ اِنَّمَا نَحْنُ فِتْنَةٌ فَلَا تَكْفُرْ ط

او نۀ به ښودلو هغه دوو فرښتو چاته څو پورے چه به ئے اُنۀ وئیلے چه مونږ د آزمیښت د پاره یو نو ته مۀ کافر

فَيَتَعَلَّمُوْنَ مِنْهُمَا مَا يُفَرِّقُوْنَ بِهٖ بَيْنَ الْمَرْءِ وَزَوْجِهٖ ط وَمَا هُمْ

مۀ شې بیا د هغوئ نه به ئے زده کولو هغه جادو چه په هغے به ئے جُدائي کوله د سړي او د هغۀ د ښځے په مینځ کښے - او د دوئ

بِضَآرِّيْنَ بِهٖ مِنْ اَحَدٍ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ ط وَيَتَعَلَّمُوْنَ مَا يَضُرُّهُمْ

په دے سره نقصان نۀ کولو چاته بغیر د حکم د الله نه ، او زده کولو به ئے هغه څیز چه نقصان اُورکړي دوئ

وَلَا يَنْفَعُهُمْ ط وَلَقَدْ عَلِمُوْا لَمَنِ اشْتَرٰىهُ مَا لَهٗ فِى الْاٰخِرَةِ مِنْ

او فائده اُنۀ کړي او دوئ ته ښۀ معلومه وه چه چا غوره کړو جادو نشته د هغۀ د پاره په آخرت کښے څۀ

خَلَاقٍ قف وَلَبِئْسَ مَا شَرَوْا بِهٖٓ اَنْفُسَهُمْ ط لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ ﴿۱۰۲﴾

برخه او ډیر خراب څیز دے چه د هغے په بدله کښے خرڅ کړۀ خپل ځانونه که چرے دوئ پوهیدے

وَلَوْ اَنَّهُمْ اٰمَنُوْا وَاتَّقَوْا لَمَثُوْبَةٌ مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ خَيْرٌ ط لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ ﴿۱۰۳﴾

او که چرے دوئ ایمان راوړے او تقویٰ ئے کړے وے نو بدله به ئے مُوندلے د الله سره غوره که چرے دوئ پوهیدے

## لنډ تفسیر :-

او (یهودو دا سے بے عقله دی چه) دوئ (د کتاب الله تابعداری خو
اُونکړه او) د دا سے څیز (یعنی د سحر او جادو) تابعداری ئے (غوره کړه چه د هغے مشهور تیا کوله

شیطانانو (یعنی خبیثو پیریانو) دَ حضرت سلیمانؑ د بادشاهئ په (زمانه) کښې او (بعضې بې وقوفو چه په حضرت سلیمان علیه السلام د سحر گمان کوی، دا بالکل بې بنیاده خبره ده، ځکه چه سحر خو اعتقاداً یا عملاً کفر دے او) حضرت سلیمان علیه السلام (نعوذ بالله کله) کفر نهٔ وو کړے مګر (هاں) شیطانانو (یعنی خبیثو پیریانو بې شکه) د کفر (خبرے یعنی سحر ئې) کولو (دحال دا دو چه (بچپله خوئې کولو نورو) خلقو ته هم (دَ دے) سحر تعلیم ئې کولو (نو دغه سحر په میراث کښې دا رواں دے او دَ دے اتباع دا یهودیان کوی) او (دغه شان) دهغې (سحر) هُم (دا خلق اتباع کوی) چه هغه په دوؤ فرښتو (دیو خاص حکمت دپاره) نازل کړے شوے وو (چه) د بابل (ښار) کښې (اُسیدلے) چه دهغوئ نوم هاروت او ماروت وو او دے دواړو (دغه سحر) چاته به نهٔ ښودلو ترڅو (پورے چه دا احتیاط دپاره) دا به (اُنهٔ) ویل چه زمونږه وجود هم (دخلقو دپاره) یو (دخدائے) امتحان دے (چه زمونږه د ژبے نه په سحر باندې خبرید و سره څوک پکښے راګیریږی) نو (بعضې) خلقو به د غه دوؤ (فرښتو) نه دا رنګ سحر ازده کولو چه په هغې به ئې (عمل او کړو) دیو سړی او دَ هغهٔ دَ ښځے مینځ کښې به ئې جُدائی پیدا کوله او (په دے خبره څهٔ وهم او یره کښې مهٔ ګیریږئ چه جادوګر څهٔ غواړی هغه کولے شی ځکه چه یقینی خبره دا ده چه) دا خلق دَ دغه (سحر) په ذریعے چاته (دَ ذرے غوندې) هم ضرر نشی رسَولے مګر د الله په (تقدیری) حکم سره او (دا سے سحر حاصل کړی پس) دا سے څیزونه ازده کوی چه (خپله) دوئ ته (دګناه په وجه) ضرر ورکوی او (څهٔ مُعتَدبه درجه سره) دوئ ته فائده نهٔ ورکوی (نو یهود هُم دَ سحر دَ اتباع په وجه به په ضرر کښې وی) او (دا خبره یواځې زمونږه نهٔ ده بلکه) ضرور دا (یهود) هم دومره پو هیږی چه کوم سړی دا (سحر) (دکتاب الله په بدله کښې) غوره کړو دا سے سړی دپاره په آخرت کښې څهٔ برخه (باقی) نه ده او بې شکه بد دے هغه څیز (یعنی جادو او کُفر) چه دَ هغې دپاره دا خلق خپل ځانونه ورکوی، کاش دَ دوئ (دومره) عقل وے او که چرے دے خلقو په ځائے دَ دغه کفر او بد عملئ ایمان او تقوی (غوره) کړے وے، نو الله پاک څخه دَ دے بدله (لهٔ دے کُفر او بد عملئ نه په زرګونو درجے) غوره وه کاش (دومره) عقل ئې وے۔

**علوم او مسئلے**

دَ مذکوره آیاتونو په تفسیر او شانِ نزول کښې، چه کوم اسرائیلی روایتونه نقل شوی دی، د هغې نه خلقو ته قسما قسم شبهې وراندے

کیږی، دَدغو شبهو حل حضرت حکیم الامت مولانا اشرف علی تهانوی رح په ډیر آسان او واضح طریقې سره کړے دے۔ نو په دے وجه د هغې هُو بهُو نقل کول دلته کافی دی او هغه دا دے:-

۱- دا کم عقله خلق، چه سلیمان علیه السّلام ته به ئے دَ جادُو نسبت کولو، یهود وو. په دے وجه الله تعالیٰ د آیت په مینځ کښې د حضرت سلیمان علیه السّلام له دے خبرے پاک والے بیان کړے دے۔

۲- له دے آیتونو نه د یهودو بد ی بیانول غرض دی ځکه چه په دوی کښې دَ جادو شوق وو۔ دَدے آیتونو په باره کښې دَ زُهره یوه اُوږده قصه هم مشهوره ده، چه دا څۀ په معتبر روایت ثابته نه ده۔ کومو علماؤ چه دا قصه د شرعې د قواعدو نه مخالفه ګڼلے ده، هغوی دا قصه نۀ ده رد کړے۔ زمونږ فی الحال دلته دَدے غلط والی یا صحیح والی سره څۀ کار نشته۔ البته دومره خبره ضروری ده، چه دَدے آیاتونو د تفسیر کولو دے قصے ته څۀ ضرورت نشته او نۀ تفسیر په دے قصه موقوف دے۔

۳- او یهود چه هر کله دَدے تولو خبرو پیژندو باوجود عمل د علم خلاف کولو او د سوچ او فکر نه ئے کار نه اغستلو نو په دے وجه اول دد وی د پوهیدو خبر الله تعالیٰ ورکړو۔ او بیا په آخر کښې په دے فرمایلو سره چه "کاش دَ دوی علم او عقل وے" دَدغه پوهیدو نفی اوکړه او دا ځکه چه په کوم علم باندے عمل نۀ وی، نو هغه دَ جهل یعنی د نۀ علم برابر دے۔

۴- په یوه زمانه کښې، چه دَ هغې پوره تعیّن باندې یوه درسته رائے تراوُسه نه ده قائمه شوے۔ په دنیا کښې او خصوصاً په بابل کښې د جادُو ډیر شور شربت ګډ وو۔ او دَ دے عجیبه عجیبه اثرو نه چه به جاهلانو خلقو ولیدل نو د پیغمبرانو د معجزو او دَ سحر په حقیقت کښې به د دوی ته اشتباه کیده او بعضې خلقو به جادو ګر پاک او د اتباع قابل ګڼړل او جادو به ئے ښۀ کار ګنړلو او دا به ئے زده کولو او عمل به ئے پرې کولو۔ لکه چه څۀ رنګ په موجوده دور کښې د مسمریزم معامله ده۔ الله تعالیٰ دَدغې اشتباه ختمولو د پاره دوه فرښتې دَ هاروت ماروت په نوم دے غرض دَ پاره اُلیږلے چه خلقو ته د سحر د حقیقت او د هغه شعبو نه خبر ورکړے شی او دا سے دا اشتباه ختمه کړے شی۔ او چه خلق به جادو باندې عمل او دَ جادوګر تابعداری پریږدی او څۀ رنګ چه دَ پیغمبرانو نبوت په معجزو سره ثابتولے شی، هم دغه رنګ دَ هاروت او ماروت په فرښته کیدو باندے دیلونه قائم کړے شو۔

چه دَ دوئ د حکمونو او ارشاداتو تعمیل ممکن شي.

او دا کارے د پیغمبرانو نه په دے وجه وانغستو، چه اول خو په پیغمبرانو او جادوګرو کښے جُدائي کول غرض وو. په یو حیثیت پیغمبرانو د مقابل درجه نه لرله، نو په دے وجه حکم او فیصله کوونکے دَ فریقینو نه علاوه، یو دریمګړے مناسب وو.

دویم دا چه دَ دے کار تکمیل دَ جادو دَ الفاظو نقل کولو نه بغیر، عادةً کیدے نه شو او اګر چه دَ "نقل کفر کفر نباشد" په عقلي او نقلي منلے شوے قاعدے موافق، دا کیدے شو، لیکن هر کله، چه پیغمبران د هدایت مظهر وو، نو د هغوئ نه دا کار اغستل مناسب اُونه ګڼړے شو نو په دے وجه دے کار دَپاره ملائکے تجویز کړے شوے، او دا ځکه چه دَ تکوین په کارخانه کښے، چه هغه په خیر او شر دواړو باندې مشتمله ده، له دے فرښتو نه دا کار هُم آغستے کیږي چه هغه د عالَم د مجموعے په اعتبار خود مصالحو عامو په وجه خیر وي او د مفسدے د لازم کیدو په وجه في ذاته شر وي لکه دَ یو ظالم جابر یا موذي ځناور و غیره پالنه شوه: چه دا خو تکویني اعتبار سره درسته او ښه ده، او تشریعي اعتبار سره نادرسته او بده ده. او پیغمبران خو دا سے نه دي ځکه چه د هغوئ نه خاص د تشریعیاتو کار اغستلے شي، چه هغه عمومًا او خصوصًا هم خیر وي. او اګر چه دَ غه د جادو نقل کول دَ بري ذکر شوي غرض له مخه کَه یو تشریعي کار وو، لیکن بیا دَ دے خیز د نزدے احتمال په وجه چه چرته دا نقل کول هم، په جادو باندې د عمل کولو او ښه ګڼړلو سبب اُونه ګرځي، پیغمبرانو دَپاره ښه اُونه ګڼړے شو.

البته کلیاتو شرحه او سره، دَ پیغمبرانو په ذریعه دَ دے غرض تکمیل هم اُوکړے شو، خو دَ دے کلیاتو دَ جزئیاتو تفصیل د پیغمبرانو په ذریعه له دے وجے بیان نشو، چه دَ فتنے احتمال قوي وو. دَ دے مثال څه داسے دے: چه پیغمبرانو دا ښودلي دي، چه رشوت اغستل حرام دي. او دَ رشوت حقیقت ئے هُم ښودلے دے، لیکن دا جزئیات ئے نه دي ښودلي چه د رشوت اغستلو یوه طریقه دا ده، چه د چانه رشوت اَخلے، نو دا سے چَل ورسره اُوکړه او دا سے خبره ور ته اُوکړه د خیره و غیره. ځکه چه دا ر ټک تفصیلاتو بیا نولو نه خو خلق نور چلونه ازده کولے شي، یا دَ سحر قسمونو کښے مثال فرض کړه چه په قواعدو کلیو سره دا ښودلے شوي دي چه د سحر غیب د عمل په وجه د بالښت دلاندے او یا جیب کښے پیسے

حاصلیدل ناروا دی، لیکن دا نهٔ دی بنودلی شوی چه د فلانی عمل په نوستلو سره داشان ژوبئ حاصلیږی.

د خبرے خلاصه دا ده، چه فرښتې بالکل ته راغلې او خپل کار ئے شروع کړو، کار دا چه دَ سحر اصُول او فروع ئے څرگند کړه او خلقو ته ئے دَدے بد عمل نه دېچ کیدو او دَ جادو کړو نه د لرے کیدلو آگاهی ورکړه - دَدے مثال څهٔ دا سے دے، چه یو عالم اُوینی چه جاهل خلق د بے عملئ په وجه د کفر کلمے وائی نو هغه د تقریر یا د تحریر په ذریعه دا کلمے جمع کړی او خلق خبردار کړی، چه گوری دے کلمو نه ځان اُساتئ -

کله چه فرښتو کار شروع کړو، نو دوئ ته د خلقو تلګ راتلګ شروع شو - او دے خلقوله دوئ نه دا سوال اُوکړو چه مونږ ته هم دا اصُول او فروع اُښایئ چه چرته د ناپوهئ په وجه اعتقادی او عملی فساد کښے مبتلا نهٔ شو - نو په دے خت کښے فرښتو، دا احتیاط، تبلیغ او اصلاح په وجه دا خبره په ځان لازمه کړه، چه دَ دغه اصولو او فروعو بنودلو نه وړاندے به ئے ویُل چه گورئ زمونږه په دے بنودلو الله تعالیٰ د خپلو بندیانو آزمیښت هم کوی، چه څوک دے خبرو نه په خبریدو سره، د خپل دین حفاظت او اصلاح کوی، چه لهٔ دے شر نه خبر شو او ځان ئے تر ادساتلو او څوک خپل دین خرابوی او د شر نه د خبریدو باوجود شر غوره کوی، دا سے شر چه د هغے انجام کُفر دے خواه هغه کُفر عملی دی یا اعتقادی وی. گورئ، مونږه د رته نصیحت کوُو چه په ښهٔ نیت تر ځان خبر کړئ او بیا په دے نیت پېناګ اُسئ. هسے نه چه په خرابئ کښے مبتلا شئ او خپل ایمان برباد کړئ.

اُوس ظاهره ده، چه له دے نه زیاته خیرخواهی نوره کومه کیدے شوه - مطلب دا چه چا به دوئ سره د غه رنگ عهد و پیمان اُوکړو، نو دوئ به هغهٔ ته دَ جادو ټول اصُول او فروع بیان کړهٔ، ځکه چه دَ دوئ کار د غه وو، اُوس که چرے څوک د عهد خلافی کوی او بخپل اختیار دا وارا دے کافر فاجر ځان گرځوی، دا د هغهٔ خپل کار دے، په دے کښے دَدے فرښتو څهٔ قصور دے ؟ لکه لعضے په دے عهد باندے ټینګ پاتے نشو. او دا جادو ئے خلقو ته دَ تکلیف رسَولو ذریعه جوړه کړه، چه دا سے کول فسق خو یقینی دے او دَدے استعمال څهٔ طریقے کفر هم دے - نو د غه شان فاجر کافر شول -

دَد غه فرښتو دَ اصلاحی ارشاد، او دَ د غو خلقو په خپلو وعدو باندے نهٔ ټینګید و مثال

دا سے کیدے شي، چه یو سړے یو جامع معقول او منقول عالم باعمل ته دا شي او ورته دا اُوائي چه ماته ذَره یا نوے فلسفه، په دے غرض اُبنایه چه څه پخپله د هغو شُبهاتو نه بچ شمه کومے چه په فلسفه کښے د اسلام خلاف شوی دی او دَ اسلام مخالفینو ته جواب ورکړے شم. او دے عالم ته دا ترارهٔ وی چه چرته دا سے اُنشي چه دے ماته دوکه راکړی او فلسفه اِزده کړی، او بیا دَ اسلام خلاف په کار کښے اُنه سکی. نو دَ دغے ترارے په وجه، دا عالم ورته نصیحت اوکړی، چه دا سے مه کوه، فلسفه مه اِزده کوه، خودا سړے په خپله خبره ټینګ وی او عالم سره وعده اوکړی چه زهٔ به د اسلام خلاف فلسفه نهٔ استعمالومه. نو دا عالم دهٔ ته فلسفه اُبنائی. بیا دا سړے د فلسفے هغه نظریات چه دَ اسلام خلاف دی صحیح او درست گنړل شروع کړی نو خبره ظاهره ده چه په دے کښے دد غه عالم هیڅ قصور نشته. هم دغه شان چه فرښتو به دوئ ته دَ سحر اصول او فروع بنودل، پس د نصیحت کولو نه او دَ وعدے آغستلو نه چه په دے به عمل نهٔ کوئ. په دے کښے دے فرښتو ته هیڅ قصور او ملامتیا نشته.

او دَ دے فرض او کار د تکمیل نه پس غالبًا دغه فرښتے آسمان ته اُبللے شوے. والله اعلم بحقیقة الحال.

**دَ سِحر حقیقت** سِحر په کسرے سره، لُغت کښے هر هغه اثر ته وئیلے شی چه د هغه سبب څرګند نهٔ وی (قاموس)[1] خواه هغه سبب معنوی وی لکه د خاصو خاصو کلمو اثر، یا د غیر محسوسو څیزونو اثر، لکه د پیریانو، شیطانانو اثر، یا په مسمریزم کښے دَ قوتِ خیالیه اثر. یا د محسوساتو وی، لیکن هغه محسوسات پټ وی، لکه دا سپنې د اِبنکلو اثر په مقناطیسی کښے، چه کوم وخت مقناطیس د سترګو نه پټ وی، یا لکه دَ دارو ګانو اثر کوم وخت چه دا روګان پټ وی، یا دَ ستورو اثر.

نو په دے وجه دَ جادو قسمونه ډیر دی، لیکن په عُرفِ عام کښے، جادو هغه څیزونو ته وئیلے شی چه په هغے کښے د پیریانو او شیطانانو د عمل دخل وی، یا د مسمریزم د قوتِ خیالیه دخل وی، یا د څهٔ الفاظو او کلمو دخل وی، ځکه چه دا خبره د عقل او تجربے نه ثابته ده او ذَره نوے فلسفه ئے هم منی. چه په حروفو او کلمو کښے د خاصیت په وجه

(۱) ج: ۲، ص: ۳۵

څهٔ اثرونه وي. دَ یو خاص حرف یا دَ یو خاص کلمې، په خاص شمیر سره لوستلو یا لیکلو کښې، د خاص خاص اثرونو مشاهده کیږي. او دا سې اثرونه چه هغه د بنیادم د ویښتو یا نوکونو، یا نورو اندامونو، یا د هغه د استعمال دَ جامو سره د نورو څیزونو په کښېدون پیدا کیږي. چه هغې ته ټونې ټکې ویلې شي، هُم جادوګرنړې شي.

او دَ قرآن او سنت په اصطلاح کښې سحر هر هغه عجیبه څیز ته ویلې شي چه په هغې د شیطانانو په خوشحالولو سره مدد حاصل کړې شوې وي. بیا دَ شیطانانو د راضي کولو د پاره مختلفې طریقې دي، کله دا سې منترونه غښتې شي چه په هغې کښې دَ کفر او شِرک کلمې وي او شیطانانو صفت وي او یا د ستورو عبادت کړې شوې وي چه په دې هم شیطان خوشحالیږي.

او کله دا اعمال اوکړې شي چه هغه شیطان خوښوي، مثلاً په ناحقه یو کس وژل او بیا دَ هغه وینه استعمالول یا دَ جنابت او نجاست په حالت کښې پاتې کیدل د پاکئ نه ځان ساتل وغیره وغیره.

لکه چه څهٔ رنګ د الله تعالیٰ د پاکو فرښتو مدد، په هغه اقوالو او افعالو حاصلیږي. کوم چه فرښتې خوښوي، مثلاً تقویٰ، پاکي، د نجاست نه ځان لرې ساتل، د الله ذِکر او د خیر کارونه.

نو د غه شان د شیطانانو، امداد په دا سې اقوالو او افعالو سره حاصلیږي چه هغه دَ شیطان خوښ وي نو په دې وجه په سحر کښې هغه خلق کامیابه وي چه ګندهٔ او پلیت وي نو دَ پاکئ او دَ الله د نوم نه لرې وي، د بد د کارونو عادي وي. تجربه هُم دَ حیض په ورځو کښې چه دا کارکوي نو مؤثر وي. باقي شعبدو، تهکو یا دَ لاس دَ صفایئ کارونو یا مسمریزم وغیره ته سحر مجازاً ویلې شي (روح المعانی)[1]

دَ سحر قسمونه | په مفردات القرآن[2] کښې، امام راغب لیکي، چه د سحر مختلف قسمونه دي. یو قسم خو محض نظربندي او خیال کښې اچول دي، چه د هغې څهٔ واقعي حقیقت نهٔ وي لکه چه بعض شعبده باز د خپل لاس په چالاکئ او صفایئ دا سې کارکوي، چه د عامو خلقو نظر د هغې د لیدلو نه قاصر وي. یا دَ مسمریزم وغیره دَ قوت خیالیه په ذریعې دَ چا په دماغ باندې دا سې اثر اوکړې شي، چه هغه یو څیز په خپلو سترګو وینې، خو په اصل او واقع کښې دَ هغې څهٔ حقیقت نهٔ وي. کله دا کار د شیطانانو د اثر نه هم کیدې شي چه دَ یو سړي په سترګو او د ماغو باندې دا سې اثر اوکړې شي، چه په هغې دِ یو غیر واقعي څیز حقیقت اوګنړي. په قرآن مجید کښې دَ فرعون دَ ساحرانو کوم سحر چه ذِکر شوې دے

هغه د سحر او لنے قسم دویکه چه ارشاد دے : " سحروا اعین الناس" (دوی د خلقو په سترګو باندې جادو اوکړو) او " یخیل الیه من سحرهم انها تسعی "(۲)
(ددوی د سحر نه د موسی علیه السلام په خیال کښې دا راغله چه دیر ودا ماران زغلی)
د " یخیل " د لفظ نه دا معلومه شوه چه کوم پړی او همسا ګانے دوی غرځولے هغه نه په حقیقت کښې ماران جوړ شوی وو، او نه دوی څه حرکت کولو، لیکن د حضرت موسی علیه السلام په خیال کښې دا ترجوړ شوی وو، چه دا ورته زغلید و نکی ماران ښکاره شو.
بل قسم هغه تخیل او نظربندی ده چه په بعضو ختونو کښې د شیطانانو دا ثر نه پیدا کیږی، او دا د قرآن کریم له دے ارشاد نه معلومیږی :
هل انبئکم علی من تنزل الشیطین تنزل علی کل افاک اثیم (۳) (څه تاته بیان چه په کوم خلقو شیطانان نازلیږی په هر بهتان تړونکی او ګنهګار نازلیږی)
او بل ځائے کښې ارشاد دے : ولکن الشیاطین کفروا یعلمون الناس السحر (او شیطانانو کفر اوکړو او خلقو ته ئے جادو ښودلو)
دریم قسم دا دے چه د سحر په ذریعه د یو څیز حقیقت بدل کړے شی، لکه د یو بنیادم یا ځناور نه کانړے یا څه ځناور جوړ کړی.
امام راغب (۴) او ابوبکر جصاص (۵) د دا سے قسم سحر نه منکر دی. او دا، د معتزلو هم قول دے. لیکن د جمهورو علماو تحقیق دا دے، چه د څیزونو (اعیانو) په بدلیدلو کښې لکه د یو جسم نه کانړے جوړیدل، یا یو نوعه مثلاً انسان په بله نوعه کښې مثلاً په شادو بانډے بدلیدل، دا څو نه عقلی طور محال دی او نه شرعی طور.
او د فلسفیانو دا قول، چه د حقائقو بدلیدل ممکن نه دی، د دے مطلب دا دے چه د محال، ممکن او واجب حقیقتونه بدلیدل نا ممکن دی چه په دوی کښې عقلاً دا سے بدلیدل محال دی چه یو ممکن محال یا واجب شی. یا یو محال ممکن یا واجب شی. یا یو واجب ممکن یا محال شی.
او په قرآن کښې د فرعون د ساحرانو سحر ته د تخیل ویلے شوے دے، له دے دا نه لازمیږی، چه هر یو سحر د تخیل دی. او له دے زیاتی څه بل قسم نه دی او بعضے خلقو د سحر په ذریعه، د حقیقت په بدلید و بانډے، د حضرت کعب احبار رض له دے حدیث

(۱) الاعراف : ۱۱۶ (۲) طٰهٰ : ۶۶ (۳) الشعراء : ۲۲۲ - (۴) ص : ۲۲۵ (۵) ج : ۱، ص : ۵۰

دلیل نیسي چه هغه په موطا امام مالك کښې دے او د قعقاع بن حکیم نه منقول دے.
د هغې الفاظ دا دي: لَوْلَا كَلِمَاتٌ اَقُوْلُهُنَّ لَجَعَلَتْنِي الْيَهُوْدُ حِمَارًا[۳] (که چرے دا څو کلمې نه وے چه زه ئے په پابندئ سره نه لولم نو دے یهودو به ما نه خرجوړ کړے وے)

د خرجوړولو لفظ مجازًا د بے وقوف جوړولو په معنیٰ هم کیدے شي، لیکن بغیر د ضرورت نه حقیقت پریښودل او مجاز اخستل صحیح نه دي، نو په دے وجه حقیقي او ظاهري معنیٰ او مطلب د دے دا شو، که چرے ما روزانه په پابندئ سره دا کلمې نه لوستے نو یهودو به ما نه خرجوړ کړے وے.

د دے نه دوه خبرے ثابتے شوے. یوه دا، چه د سحر په ذریعه د انسان نه د خرجوړولو امکان شته، دویم دا چه هغه کومے کلمې لوستے چه د هغې دا اثر وو، چه بیا ئے جادو اثر کولے نه شو. خلقو چه د ځه نه د دے کلمو پښتنه اوکړه نو دوی ورته دا کلمې اُښودلے:

اَعُوْذُ بِاللّٰهِ الْعَظِيْمِ الَّذِيْ لَيْسَ شَيْئٌ اَعْظَمُ مِنْهُ وَبِكَلِمَاتِ اللّٰهِ التَّامَّاتِ الَّتِيْ لَا يُجَاوِزُهُنَّ بَرٌّ وَّلَا فَاجِرٌ وَبِاَسْمَآءِ اللّٰهِ الْحُسْنٰى كُلِّهَا مَا عَلِمْتُ مِنْهَا وَمَا لَمْ اَعْلَمْ مِنْ شَرِّ مَا خَلَقَ وَبَرَءَ وَذَرَءَ. اَخْرَجَهٗ فِي الْمُوَطَّا بَابُ التَّعَوُّذِ عِنْدَ النَّوْمِ

زه د لوئے خدائے پناه اخلم چه د هغه نه لوئے څوك نشته. او پناه اخلم د الله په مکملو کلمو چه د هغې نه څوك ښه او بد انسان وړاندې نشي وتلے. او پناه اخلم د الله په ټولو اسماء حسنیٰ باندے چه کوم ما ته معلومه دي او کوم چه معلومه نه دي، د هر هغه څیز د شر نه کوم چه الله تعالیٰ پیدا کړے دے او وجود ئے ورته ورکړے دے.

خلاصه دا چه د سحر درے واړه قسمونه دا سے دي چه د دے واقع کیدل ممکن دي.

**په سحر او معجزه کښې فرق** ځکه چه د پیغمبرانو د معجزو نه یا د اولیاؤ د کرامتونو نه دا سے واقعات په مشاهده کښې راغلي دي، چه هغه عادةً ممکن نه دي او چه په دے وجه دے ته خرقِ عادت وئیلے شي. د دغه رنګ آثار په ظاهره د سحر او جادو نه هم په مشاهده کښې راغلي دي او په دے وجه بعضې ناپوهه ته په دے دواړو کښې کړون کیږي او په دے وجه بیا دوی د جادوګرو تعظیم او تکریم کوي. نو په دے وجه د دواړو فرق بیانول ضروري شو.

دا فرق یوازې اصل او حقیقت له مخه دے۔ او بل د ظاهری آثارو د مخه دے۔

دَ حقیقت د مخه فرق خو دا دے، چه په سحر او جادو سره چه کوم څیزونه په مشاهده کښې راځي، نو هغه د اسبابو دا ثرے نه بهر نهٔ وی۔ فرق صرف دَ اسبابو د خرګندوالی او دَ پټ والی دے۔ چرته چه اسباب ظاهر وی، نو دا آثار د غه اسبابو ته منسوبولے شي۔ او د څهٔ تعجب خیز ګنړلے نهٔ شی۔ لیکن چه کوم ځائے اسباب پټ وی، نو هغه دَ تعجب کولو څیز وی۔ او عام خلق د نهٔ پوهیدو په وجه دا خرقِ عادت ګنړی۔ حال دا دے چه هغه په حقیقت کښې د ټولو معمولی او عادی څیزونو په شان دیو پیری او شیطان دا ثر نه کیږی۔ که چرے یو خط د مشرقِ بعید نه چه نن لیکلے شوے وی دلته دا اُغرُ ز یری نو لیدُو نکی به دا خرقِ عادت اُګنړی، او حال دا دے چه پیری یا نو او شیطانانو ته د دا سے کارونو کولو قوّت ورکړے شوے دے۔ که چرے په دے کار کښې دَ دوئ ذریعه کیدل خلقو ته خرګند وے نو بیا به دا دے خلقو ته خرقِ عادت نهٔ ښکاریدو۔ مطلب دا چه په سحر کوم ټول آثار ظاهریږی هغه دَ طبعی اسبابو لاندے وی، لیکن دَ اسبابو دَ پټ والی په وجه خلقو ته دَ دے دَ خرقِ عادت دوکه کیږی۔

او مُعجزه دا رنګ څیز نهٔ دے۔ هغه بغیر د څهٔ ذریعے او سبب دالله تعالیٰ کار وی۔ او په هغے کښې د طبعی اسبابو هیڅ دخل نهٔ وی۔ په ابراهیم علیه السلام باندِ چه د نمرُود او ر بل کړے شوے او سوړ شوے وو، دا د څهٔ طبعی اسبابو د وجه نه سوړ شوے نهٔ وو بلکه دا دَ الله تعالیٰ کار وو، چه اور ته ئے اُووے چه سوړ شه۔ او د ومره زیات هم نه چه د هغے نه ابراهیم علیه السّلام ته تکلیف اُرسی۔

نن هم بعضے خلق په بدن باندِ څهٔ مسالے وغیره لګوی او اور ته د ننه کیږی خو دا معجزه نهٔ ده۔ د مسالو اثر دے او دا مَسالے هر کله چه خلقو ته ظاهر نهٔ وی نو په دا سے کار باندِ دَ خرقِ عادت ګمان کوی۔

دا خبره، چه معجزه کښې څهٔ دَ ظاهری اسبابو دخل نهٔ وی، بلکه نیغ په نیغه دَ الله تعالیٰ کار وی۔ په د ے قرآن عزیز پخپله ګواهی کوی۔ الله تعالیٰ فرمائی:

وَمَا رَمَيْتَ إِذْ رَمَيْتَ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ رَمَىٰ [1] (یو مُوټے کنهیٔ چه تا و یشتی وی، هغه په حقیقت کښې تا نو وے ویشتے بلکه الله تعالیٰ ویشتے وے)

(۱) الانفال: ۱۷

مطلب دا چه دَ یو موټی خاوُرے اوکیڼو دَ توِلے جمع ستړکو ته رَسَولو کښے ستا هیڅ دَخل نهٔ وو۔ دا خالص د الله تعالیٰ کار وو۔ دا مُعجزه د بَدر په غزا کښے شوے وه، چه نبی صَلی الله علیه وسلم یو موټے خاوُره اوکیتیٔ دَ کافرو په ښکر باندِ اُوو یشتے اودا، دَ ټولو ستړکو کښے پریوتے۔

اُوس دلته دا سوال پیدا کیږی، چه د مُعجزے اودَ سحر په حقیقت کښے دا فرق چه بیان کړے شو، عوام الناس به ئے څه رنګ پیژنی، ځکه چه په ظاهری صورت کښے خو دا دواړه یو شان دی۔ دَ دے جواب دا دے چه دَ عوام الناس د پیژندو د فرق دپاره صُورتونه الله تعالیٰ ظاهر کړی دی۔

اول دا، چه مُعجزه او کرامت دا سے خلقو نه ظاهریږی چه د هغوئ تقویٰ اودَ اعمالو او اخلاقو پاکی هرڅوک د یئی کوری اودَ دے په خلاف دَ جادُو اثر، صرف دَ دا سے خلقو نه ظاهریږی چه هغه ګندهٔ او دَ الله تعالیٰ دَ نوم اوغسل او عبادَ کولو نه لرے وی۔ او دا څیزهم خلق په ستړګو لیدے شی او په دے د معجزے اودَ سحر په مینځ کښے فرق کولے شی۔

دویم دا چه دا د الله تعالیٰ عادت جاریه دے، چه کوم سړے د نبوت دعوی اُوکړی، او دَ جادُو په وجه د خپل نبوت تصدیق کول اُغواړی، نو په دا سے صُورت کښے بیا دَ هغه جادو کار نهٔ کوی او هیڅ اثر نهٔ لری۔ البته د نبوت دَ دعوے نه بغیر که څرے جادُو کوی نو چلیږی۔

| | |
|---|---|
| آیا په پیغمبرانو باندِ دَ جادُو اثر کیدے شی | دَ دے جواب په اثبات کښے دے، (کیدے شی) او پیغمبران دَ طبعی اسبابو نه متأثر کیدے شی او دا اثر قبلول د نبوت دشان |

سره څهٔ منافی څیز نهٔ دے۔ نکه دَ دوئ دَ لوږے او تندے نه متأثر کیدل دی، نو دغه شان د جادو، د پټو اسبابو نه هم پیغمبران متأثر کیدے شی۔

دَ صحیح احادیثو نه ثابته ده، چه یهودو په نبی علیه السلام سحر کړے وو او دَ هغے بعض آثار څرګند شوی وو۔ دَ موسیٰ علیه السلام د سحر نه متأثر کیدل خپله په قرآن کښے ذکر دی۔ الله تعالیٰ فرمائی: يُخَيَّلُ اِلَيْهِ مِنْ سِحْرِهِمْ اَنَّهَا تَسْعٰى (۱) یا " فَاَوْجَسَ فِىْ نَفْسِهٖ خِيْفَةً مُّوْسٰى (۲)" په موسیٰ علیه السلام باندِ ویره راتلل دَ جادُو اثر وو۔

| | |
|---|---|
| د سحر شرعی احکام | نکه چه وړاندے ذکر او بیان اوکړے شو، چه د قرآن او حدیث |

(۱) طٰه: ۶۶ (۲) طٰه: ۶۷

په اصطلاح او ژبه کښې ۔ سحر صرف هغه کار او عمل ته و یُلے شوے دے، چه هغې کښې دَ
فسق فجور او کفر په وجه شیطان خوشحاله کړے شوے وی، او دَ هغه نه مدد آخستے
شوے وی۔ او دَ هغه په امداد سره څهٔ عجیبه واقعات ظاهر کړے شوی وی۔ دَ بابل
دَ سحر چه قرآن کښې ئې ذکر دے هغه هم دغه وو (جصاص[۱]) نو دا سے سحر ته قرآن کفر وائی۔
ابو منصور فرمائی چه درسته دا ده چه مطلقاً دَ سحر ټول اقسام، کفر نهٔ دے، بلکه
هغه سحر کفر دے چه په هغې کښې دَ ایمان مخالف اقوال او اعمال دی (روح المعانی[۲])
او دا ظاهره خبره ده چه په قرآن او حدیث کښې بار بار را غلی دی، چه د شیطان دِ
مخالفت اُوکړے شی او په دهٔ دِ لعنت اُو یُلے شی۔ دَ دے برعکس دهٔ سره دوستی کول او
دهٔ د راضی کولو فِکر کول یخپله یوه گناه ده۔ بیا هغه هله راضی کیږی چه بنیادم په شرك
او کفر کښې مبتلا شی، یا کم از کم په فسق او فجور کښې مُبتلا شی او دَ الله د رضا او دَ فرښتو د رضا
خِلاف گنده او پلید شی۔ دا یوه گناه شوه۔ او کهٔ چرے د جادُو په وجه چا ته په ناحقه
نقصان اُرسی نو دا بله گناه شوه۔
مطلب دا دے چه قرآن او سنت کښې کوم څیز ته چه سحر و یُلے شوے دے، هغه دَ
کفرِ اعتقادی، یا کم از کم د کفرِ عملی نه خالی نهٔ دے۔ کهٔ چرے د شیطان د راضی کولو
دپاره څهٔ دَ شرك او کفر اقوال یا اعمال اُوکړے شی نو دا کفرِ حقیقی اعتقادی کیږی او کهٔ
چرے د شرك او کُفر د اقوالو یا اعمالو نه بچ شی، لیکن نور گناهونه یکښې اُوکړے شی، نو دا
دَ عملی کفر نه نهٔ خالی کیږی۔ دَ قرآن کریم په دغه مذکوره آیاتو کښې چه سحر ته کفر
و یُلے شوے دے، دا په دے وجه چه دا سحر دَ کفرِ اعتقادی او یا د کفرِ عملی نه خالی نهٔ دے۔
خلاصه دا چه په کوم سحر کښې څهٔ دا سے عمل کړے شوے وی چه د شیطانانو نه مدد
غوښتل شو، یا ستوری مستقل اثر کوونکی گنړل شو، یا سحر مُعجزه گنړل بیا د نبوت
دعوی کول شو، نو دا سے سحر په اجماع سره کفر دے او چه کوم سحر کښې دا سے کارونه کول
نهٔ وی مګر گناه کول پکښې وی، نو دا سے سحر گناهِ کبیره دے۔
مسئله :۔ هرکله چه دا معلومه شوه، چه سحر دَ کفرِ اعتقادی یا د کفرِ عملی نه خالی نهٔ وی
نو دَ سحر ایزده کول یا بل ته بښودل حرام شو او په دے باندے عمل کول حرام شو۔ البته
کهٔ چرے د دے غرض دپاره اُښودے شی چه د مسلمانانو بیا په دے سره ضرر دفع کړے شی،

نو بعض فقهاؤ دَ دے جائز وَرکړے دے (شامي ، عالمګیری) .

مسئله :- تعویذ ونه ونه ساختونه چه عاملان کوی. که چرے په دوی کښے دیر یانو، شیطانانو نه مدد غوښتلے شوے وی؛ نو دا هم په حکم کښے سحر دے، او حرام دی. او که چرے الفاظ مشتبه وی ، معنیٰ ئے معلومه نه وی او د شیطانانو او د بتانو نه د مدد د اَغښتو احتمال وی، نو دا هم حرام دی .

مسئله :- دَ بابل دَ سحر نه علاوه، د سحر نور قسمونه، که چرے په دے کښے دَ کفر او شرک ارتکاب اُوکړے شی ، نو دا هُم حرام دی .

مسئله :- او که چرے دَ کفر او شرک نه خالی دے نور وُمبا حو او جائز و څیزونو نه کار وا غستے شی، نو دا صرف په دے شرط روا دی ، چه په دے سره ناجائز مقصد او غرض حاصل نکړے شی .

مسئله :- که چرے دَ قرآن او حدیث الفاظ هُم دَ ناجائز مقصد د پاره په کار کښے راوستے شی، نو دا هم روا نه دی . مثلاً چا ته په ناحقه ضرر رسولو دَ پاره تعویذ اُوکړے شی ، یا اُوستلے شی (فتاوی قاضی خان و شامی)

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَقُولُوا۟ رَٰعِنَا وَقُولُوا۟ ٱنظُرْنَا وَٱسْمَعُوا۟ ۗ

اے دَ ایمان خاوندانو ! تاسو مه وایئ "رَاعِنَا" او وایئ "اُنظُرنا" او وا اَورئ

وَلِلْكَٰفِرِينَ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿١٠٤﴾

او کافرانو د پاره عذاب دے دردناك

لنډ تفسیر :-

بعض یهودو به دا شیطانی کوله چه نبی صلی الله علیه وسلم ته به راغله او هغوئ ته به ئے په "راعنا" لفظ سره خطاب کولو، چه د هغ معنیٰ په عبرانی ژبه کښے یو قسم خیرے دی - او دوئ به دا دیا هم په دے نیت کوله - لیکن په عربئ ژبه کښے دَ دے معنی دا : زمونږ د مصلحت او فائدے لحاظ اُوکړه ؟ نو په دے وجه عربیان په دے شیطانت نه پوهیدل - او د بنه غرض او مقصد دَ پاره بعض مسلمانانو په دے کلمے سره نبی صلی الله علیه وسلم ته مخاطبه کول شروع کړه

نو په دے سوره دغه یهودو شیطانانو ته نور گنجائش حاصل شو. چه په خپل مینځ کښې به کیناستل نو خندل به ئې، چه ترا اوسه پورے خو مونږه دَده (نبي علیه الصلوٰة والسّلام) بدی په پټه بیانوَله، او س په ډاگه دَ بیانولو خو دا سے چل په لاس راغے، چه مُسلمانان هم په دے کښې شریک شو، نو الله تعالیٰ دَ دغه گنجائش ختمولو دپاره مسلمانانو ته دا حکم اوکړو چه) اے د ایمان خاوندانو تاسو (لفظ) رَاعِنَا مَه وایئ (او ددے په ځائے) اُنْظُرْنَا "وایئ (ځکه چه دَ دے لفظ معنیٰ او دَ راعنا لفظ معنیٰ په عربیٔ کښې یو شان ده، په راعنا ویلو کښې دَ یهودو دَ شیطانئ کومو کوم مقصد او غرض دے هغه حاصلیږی - نو په دے وجه دا پریږدئ او بل لفظ استعمالول شروع کړئ) او (دا حکم په ښهٔ طریقه) واوَرئ (او یاد لرئ) او (دغه) کافرانو دپاره (خوښس) سزا دردمنده به وی (چه د پیغمبر صلی الله علیه وسلم په حق کښې دا سے بے ادبی، او دهٔ سره دا سے چالاکی کوی)

مسئله :- له دے آیته دا معلومه شوه چه کهٔ چرے دَ یو سړی دخپل یو جائز کار نه، نورو دپاره د ناجائزو کارونو موقعه پیدا اوځی، نو دا جائز کار بیا د ے سړی دَ پاره جائز پاتے نه شو. لکه دَ یو عالم دَ روا کار نه ناپوهه خلق په مغالطه کښې پریوځی او په ناروا کښې د مبتلا کیدلو خطره ئې وی - نو دے عالِم دپاره دا روا کار کول هم ښهٔ نهٔ دی لیکن شرط پکښې دا دے چه دا کار دَ شرعے ضروری کار نهٔ وی - دَ دے مثالونه په قرآن او حدیث کښې ډیر دی - دَ دے یو دلیل او مثال هغه حدیث دے، چه په هغه کښې نبي صلی الله علیه وسلم فرمائی: "چه دبیت الله تعمیر چه قریشو د جاهلیت په زمانه کښې کړے دے په دے کښې ډیر څیزونه دا سے دی، چه هغه دَ ابراهیمی تعمیر نه خلاف کړے شوی دی - زمازړه غواړی، چه دا ورانکړم او دوباره ئې سرنه دا ابراهیمی تعمیر موافق ئې جوړ کړم لیکن په دا سے کولو سره د ناپوهو عوامو په فتنه کښې دَ مُبتلا کیدو ویره ده، نو له دے وجے سرِ دست دا سے نهٔ کوم."

دا سے حکمونو ته دَ اُصولِ فقهے په اصطلاح کښې سَدِّ ذرائع وائی. دا دَ ټولو فقهاؤ په نزد مُعتبر دی او خصوصًا حنبلیان دے ته ډیره اهمیت ورکوی (قرطبی)[1]

مَا يَوَدُّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ وَلَا الْمُشْرِكِيْنَ

ژبړهٔ نهٔ غواړی دَ هغو خلقو، چه کافردی په اهل کتابو کښې او نهٔ دَ مشرکانو

(۱) ج: ۲، ص: ۵۷ دَ مرجم دَ کتلو نه پس دا بنکاره شوه چه سد ذرائع د مالکیانو مذهب دے او دا امام احمدؒ نه هم یو روایت دے

أَنْ يُنَزَّلَ عَلَيْكُمْ مِنْ خَيْرٍ مِنْ رَبِّكُمْ ۗ وَاللَّهُ يَخْتَصُّ

دا خبره چه نازل شي په تاسو څه ښه خبره ستاسو پروردګار د طرف نه او الله خاص کوي

بِرَحْمَتِهِ مَنْ يَشَاءُ ۗ وَاللَّهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيمِ ﴿١٠٥﴾

په خپل رحمت سره څوک چه اُغواړي او الله د لوئے فضل خاوند دے۔

لنډ تفسير :- رسول الله صلی الله علیه وسلم سره چه د یهودو کومه معامله وه هغه په مخکښے آیت کښے بیان کړے شوه۔ اوس په دے آیت کښے مسلمانانو سره دَ یهودو دَ معاملے بیان کیږی چه (بعضے یهود یانو به بعضے مسلمانانو ته داوئیل، چه خدائیګو مونږ د زړهٔ نه ستاسو خیرخواه یُو او د زړهٔ نه دا خوښوُو، کهٔ چرے ستاسو دینی حکمونه زمونږ دینی حکمونو نه غوره دے نو مونږ به هم دا دین قبول کړے وے لیکن څهٔ اوکړو چه ستاسو دین زمونږ دَ دین نه ښهٔ ثابت نشو۔ نو الله تعالیٰ د دوئ، دا دعوی دَ خیرخواهئ کولو رد کړه او وے فرمائیل چه) نږ هم نهٔ خوښوی کافرخلق (خواه) د اهل کتابو نه (چه وی) اَو (خواه د) مشرکانو نه، دا خبره چه تاسو ته ستاسو دَ پروردګار د طرف نه دَ څهٔ قسم بهتری (هم) حاصله شی او (دَ دوئ په حسد هم څهٔ نهٔ کیږی ځکهٔ چه) الله تعالیٰ په خپل رحمت (او عنایت) سره څوک چه اُغواړی، خاص کوی او الله تعالیٰ لوئے فضل (کولو) والا دے۔

فائده :- دَ دے یهودو، دوه دعوے وے، یوه دا چه دَ دوئ دین (یهودیت) د اسلام نه غوره دے۔ او دویمه دا، چه دوئ د مسلمانانو خیرخواه دی۔ اولنئ دعوی خو دوئ ثابته نکړے شوه۔ عجیبه دعوے سره څهٔ کیدے شی۔ او بیا دا دعوی څهٔ فضول غونډِ خبره ده۔ ځکه چه کله ناسخ دین راشی، نو منسوخ دین پریښودے شی۔ او دا دَ غوره او نا غوره په فرق موقوفه نهٔ ده۔ نو په دے وجه چه دا خبره ظاهره او ښکاره وه، دَ دے جواب ئے دلته ذکر نکړو۔ صرف په دویمه دعوے (خیرخواهئ) خبره کړے شوے ده۔ او د اهل کتابو سره د مشرکانو ذکر کول د مضمون د قوی کولو د پاره کړے شوے دے، هغه دا ہے، چه څهٔ رنګے مشرکان د مسلمانانو، یقیناً خیرخواه نهٔ دی، نو دغه شان یهود اُګنړئ چه دوئ هُم د مسلمانانو خیرخواه نهٔ دی۔

مَا نَنْسَخْ مِنْ اٰيَةٍ اَوْ نُنْسِهَا نَاْتِ بِخَيْرٍ مِّنْهَآ اَوْ مِثْلِهَا ؕ اَلَمْ تَعْلَمْ

کوم چه منسوخ کوو مونږه یو آیت یا هیروو، نو بیرته هغې نه غوره یا د هغې برابر. آیا تاته معلومه نه ده

اَنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَیْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۱۰۶﴾ اَلَمْ تَعْلَمْ اَنَّ اللّٰهَ لَهٗ مُلْكُ

چه الله په هر څيز باندے قادر دے — آیا تاته معلومه نه ده چه هم الله لره ده بادشاهي

السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ وَمَا لَكُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ مِنْ وَّلِيٍّ وَّلَا نَصِيْرٍ ﴿۱۰۷﴾

د آسمانونو او د زمکے — او نشته ستاسو دپاره د الله نه سوا څوک حمایتي او مددګار

لنډ تفسير :- (د قبلے د بدليدو د واقعه چه کوم وخت اُشوه، نو يهود وېه دے پيغور شروع کړو. ومشرکانو هم. د بعضے حکمونو منسوخ کيدو په وجه دخپل پيغور ژبے را پرا نستے. نو الله تعالیٰ د دوئ د طعن او د اعتراض جواب ورکړو او وفرمائيل چه زمونږ د يو آيت حکم چه موقوف کوو (اګرچه د آيت په قرآن کښے او د خلقو په زړونو کښے موجود وی) يا (هم) دا آيت (له زړونو) اُو باسونو (دا دځه اعتراض تا بله خبره نه ده، ځکه چه په دا سے کولو سره هم څه فائده او مصلحت وی هغه دا چه) مونږه له دے آيت نه غوره يا د دے آيت په شان ربه ځے د دے دويم څيز) را اُوړو (اعتراض کوونکيه!) آيا تاته دا معلومه نه ده چه الله تعالیٰ په هر څيز قدرت لری (نو دا سے قدرت لرونکی ته څهٔ ګرانه نه ده چه هغه د فائدو او مصلحتونو لحاظ اُوکړی او) آيا تاته دا معلومه نه ده چه الله تعالیٰ دا سے (ذات) دے چه خاص د هغه بادشاهي په آسمانونو او په زمکه ده (او هر کله چه د هغه په قدرت او بادشاهۍ کښے د هغه سره څوک شريک او حصه دار نشته دے، نو د هغه مصلحتونو او فائدو د ځے، په دويم حکم کولو کښے څوک د ده مزاحمت کولے شی ، غرض دا چه د دويم حکم په تجويز کولو کښے هم او په جاری کولو کښے هم څهٔ منع کوونکے نشته. او (په دے هم پوهه شه چه) ستا د الله تعالیٰ نه سوا څوک مددګار هم نشته. (نو هر کله چه هم هغه مددګار دے، نو هغه به ضرور په حکمونو کښے د مصلحت او فائدے لحاظ کوی او چه هر کله مددګار دے، نو د هغه په حکمونو د عمل کولو په وخت کښے تاسو به د مخالفت کوونکو د مزاحمت نه ضرور بچ کوی. البته که څه ئے د دے ضرور (د مخالفينو مزاحمت) نه څه بله لوېه د آخرت فائده حاصليدونکی وی، نو په

ظاهره کښې د مخالف مُسلّط کیدل بله خبره ده۔

## علوم او مسئلے :۔

دَ "مَا نَنۡسَخۡ" په آیت کښې د قرآن کریم دَیو آیت د منسوخ کیدو چه څو مره صُورتونه کیدے شي هغه ټول ئے په دے کښې جمع کړي دي۔ دَ ننسخ معنیٰ په لغت کښې زائل کیدل او لیکل دي۔ په دے دَ ټولو مفسرینو اتفاق دے، چه په دے آیت کښې دَ "نسخ" نه مراد، دَیو حکم زائل کول یعني منسوخ کول دي۔ او په دے وجه دَ کتاب الله او سنت په ژبه او اصطلاح کښې "نسخ" دے ته وائي چه دَیو حکم په ځائے دویم حکم جاري کړے شي، خواه هغه دویم حکم داوي چه پرومبئ حکم بالکل ختم کړے شي، یا داوي چه د هغه په ځائے بل عمل او کار اُښودے شي۔

**په احکامو الهیٰو کښې دَ نسخ حقیقت**

دَ دُنیا په حکومتونو او ادارو کښې دا مشهوره او عامه ده، چه یو حکم منسوخ کوي او د هغې په ځائے بل جاري کوي. لیکن دَ بنیادمو په حکمونو کښې نسخ کله په دے وجه کیږي چه پرومبے حکم د غلط فهمئ په وجه جاري کړے شوے وي، روستو چه بیا ورته حقیقت معلوم شي نو حکم بدل کړے شي۔ او کله په دے وجه کیږي، چه په کوم وخت کښې یو حکم جاري کړے شوے وي، نو هغه د هغه وخت دَ حالاتو مناسب وي او بنیادم ته خود وړاندے نه دراتلونکو حالاتو پته نهٔ وي، نو چه هر کله حالات بَدل شي، نو دَد غه حکم په ځائے نوے حکم جاري کړے شي او د غه شان پرومبے حکم بَدل کړے شي۔ دا دواړه صورتونه دالله پاک په حکمونو کښے کیدے نشي، او وجه ئے ظاهره دَه۔

دریم صورت دا هم کیږي، چه حکم کوونکي ته دَ اول نه دا معلومه وي، چه حالات به بدلیږي او په د غه وخت به بیا د غه مخکښې حکم مناسب نهٔ وي، بل یو حکم به مناسب وي نو هغه د خپل د غه علم مطابق ئے یو قسم حکم ورکړي او کله چه دَ دهٔ د علم مطابق حالات بدل شي نو خپل پرومبے حکم بدل کړي۔ دَ دے قِسم مثال داد ے، چه حکیم او ډاکټر چه دَ مریض موجوده حالات اُګوري نو یوه دوائي تجویز کوي او هغه پوهیږي چه، دَیو دوهٔ ورځو دا دو به خوړاکځ به دَ مریض حالات بدل شي، او بیا به د غه وخت زهٔ دهٔ ته بله دوائي تجویز کوم۔ او حکیم هم د غه رنګ کار اوکړي، چه اول دهٔ ته داولنئ ورځے دارو تجویز کړي، چه هغه دد غه ورځے او د حالاتو سره مناسب وي، او بیا دوه ورځے رُستو، د حالاتو

د بدلیدو په وجه بله دوائي تجويز کړي.
ماهر حکیم اوډاکتر دا هم کولے شي چې ډېرو مبې ورځې نه د مکمل علاج طریقه اُلیکي، او مریض ته ئے ورکړي، چه د دوؤ ورځو پورے، دا دارو خوره، بیا دریے ورځے دا نور دارو، بیا یوه هفته دا بله دوائي. لیکن داسے کولو سره د مریض په طبیعت بے وجې پیټې اچول دي. او په دے کښې د غلطي کولو په وجه د عملي خلل خطره هم ده، نو په دے وجه د وړاندے نه ټول تفصیلات ښودل پکار نهٔ دي.
د الله تعالیٰ په نازل شوو کتابونو، او احکامو کښې، صرف د آخري صُورت نسخ ممکنه ده، او کیږي. هر راتلونکي نبوت، او هر نازلیدونکي کتاب، د پرو مبني نبوت او کتاب ډېر حکمونه منسوخ کړي دي او کړدے په ځائے نوي حکمونه جاري کړي دي. او هم دغه شان د یو نبي په شریعت او نبوت کښې شوي دي، چه د څهٔ وخت د پاره یو حکم مجاري وو، بیا به هغه د الله پاک د حکمت په تقاضے سره بدل شو او د هغې په ځائے به بل حکم جاري شو. د صحیح مُسلم په حدیث کښې دي:
" لَمْ تَكُنْ نُبُوَّةٌ قَطُّ اِلَّا تَنَاسَخَتْ " (مسلم)
(کله یو داسے نبوت نهٔ دے راغلے چه د هغې په حکمونو کښې نسخ او تبدیلي نهٔ وي راغلي (قرطبي)[1])
**جاهلانه شُبهه** البته څهٔ جاهلو یهودو، د خپل جهالت په وجه دا کول چه په احکامو الهیتو کښې نسخ به څهٔ وي احکامو، د نسخ په پرو مبي دوؤ صُورتونو قیاس کوله او په نبي صلی الله علیه وسلم باندې به ئے د اعتراض او طعن ډبه راوړ بردوله. نو د دے په جواب کښې دا آیتونه نازل شو. (ابن جریر[2]، ابن کثیر[3] وغیره)
په مسلمانانو کښې د مُعتزلي فرقے بعضے خلق، شاید د د غو مخالفینو د طعن نه بچ کیدو په وجه، دا اقرار وے سے ده، چه په احکامو الهیتو کښې خو د نسخ امکان شته او څهٔ خیر د دغه امکان منع کوونکے نهٔ دے، لیکن په ټول قرآن کښې چرته نسخه راغلے نهٔ ده، نهٔ یو آیت ناسخ دے او نهٔ یو آیت منسوخ دے. د ده وینا نسبت ابو مسلم اصفهاني ته کیږي، او په دے وینا د اُمت علماؤ همیشه د پاره رد کړے دے او دا نکارئے ترکړے دے.
په تفسیر روح المعاني کښې دي: وَاتَّفَقَتْ اَهْلُ الشَّرَائِعِ عَلٰی جَوَازِ النَّسْخِ وَوُقُوْعِهٖ، وَخَالَفَتِ الْيَهُوْدُ غَيْرَ الْعِيْسَوِيَّةِ فِیْ جَوَازِهٖ، وَقَالُوْا يَمْتَنِعُ عَقْلًا وَاَبُوْمُسْلِمِ الْاَصْفَهَانِیْ فِیْ وُقُوْعِهٖ

(۱) ج۲، ص:۶۲ (۲) ج۱:۱، ص:۳۵۲ (۳) ج۱، ص:۲۷۴

فَقَالَ اِنَّهٗ وَاِنْ جَازَ عَقْلًا لٰكِنَّهٗ لَمْ يَقَعْ. (قول اهل شرائع (د دينونو خاوندان) دَ نسخ په امکان او په واقع کيدو متفق دي. او په يهودو کښې دَ عيسويه فرقې نه علاوه نور يهود دَ نسخ نه منکر دي. او وائي چه دا عقلاً محاله ده، يعنې ممکنه نه ده. او ابومسلم اصفهاني د نسخ دَ واقع کيدو نه انکار کوي، وائي چه نسخ اګرچه دَ الله پاك په حکمونو کښې ممکنه ده خو واقع شوے نه ده.

او امام قرطبي په خپل تفسير[1] کښې وائي: وَمَعْرِفَةُ هٰذَا الْبَابِ اَكِيْدَةٌ، وَفَائِدَتُهٗ عَظِيْمَةٌ لَا تَسْتَغْنِيْ عَنْ مَعْرِفَتِهِ الْعُلَمَاءُ وَلَا يُنْكِرُهٗ اِلَّا الْجَهَلَةُ الْاَغْبِيَاءُ.

ر دَ نسخ دَ باب پيژندګلو ډيره ضروري ده، او فائدے ئې ډيرے لويے دي، او دَ دے دَ پيژندګلو نه عالمان بے پرواه کيدے نشي. او دَ دے صرف جاهلان او ناپوهان انکار کوي.

قرطبي دلته يوه واقعه د حضرت علي کرم الله وجهه نقل کړے ده[2]، چه يو ځل هغه جمات ته راغے، نو يو سړي وعظ کولو، دَ د خلقو نه پښتنه او کړه چه دا سړے څه کوي؟ خلقو ورته اُوے چه دَ دے وعظ او نصيحت کوي. نو ده اُوے چه نه. دَ دے خو څه وعظ او نصيحت نه کوي، بلکه دا وئيل غواړي چه زه فلانے ځوئے د فلاني يم. مَا اُپيژنئ. بيائے دا سړے رااُبللو او تپوس ئې تر اوکړو، چه ته په قرآن او حديث کښې ناسخ او منسوخ پيژنے. ده ورته اُوے چه نه. نو حضرت علي کرم الله وجهه اُوے چه زمونږ د جمات نه اُوځه بيا چرته دلته وعظ اُ نکړے.

په قرآن کريم او سنت کښې د نسخ دَ شته والي او د واقع کيدو په حقله د صحابو کرامو او دَ تابعينو ډيره اقوال او آثار موجود دي چه دَ هغے دلته نقل کول ګران دي. په تفسير ابن جرير[3]، ابن کثير[4] او در منثور[5] وغيره کښې په قوي صحيح سندونو سره ډير روايتونه ذکر شوي دي او د ضعيفو رواياتو خو شمير نشي کيدے.

نو په دے وجه دا مسئله، په اُمت کښې اجماعي ياتے شوے ده. صرف ابومسلم او څو معتزلو د نسخ دَ واقع کيدو نه انکار کړے دے او په دے باندے امام رازي په خپل تفسير کبير کښې ښه په تفصيل سره رَد کړے دے.

---

(۱) ج ۲، ص: ۶۲ (۳) دغه مرجع او هم دغه صفحه (۲) ج: ۱، ص: ۲۶۲، ۲۶۳

**دَ نسخ په مفهوم کښې دَ وړاندېنيو او وروستنو علماوُ په اصطلاح کښې فرق**

هر کله چه دَ نسخ اصطلاحي معنیٰ دَ حکم تبديلي ده.

او دا تبديلي ګډا سے کيدے شي، چه بالکل يو حکم منسوخ کړے شي او دَ هغې په ځائے بل نوے حکم مقرر کړے شي، لکه دَ بيت المقدس په ځائے بيت الله قبله جوړيدل شو. هم دَ غه رنګ يو مطلق او عام حکم کښې، دَ څه قيد او شرط زياتيدو سره هم يو قسم په حکم کښې تبديلي راځي. دَ اُمت اسلافو نسخ په دَ غه عامه معنیٰ کښې استعمال کړے ده، چه په هغې کښې دَ يو حکم دَ سرنه پوره تبديلي شامله ده، او جزوي تبديلي، دَ يو شرط قيد، استثناء وغيره په دې هم شامله ده. نو په دَ ے وجه دَ وړاندېنيو عالمانو په نزد په قرآن کريم کښې دَ منسوخ شوي آيا تونو شمير پنځو سوو ته رسي.

او وروستني عالمان، نسخ صرف هغه تبديلي ته وائي، چه دَ هغې په وجه حکم سره هيڅ قسم موافقت او مطابقت نهٔ راځي (يعنې نسخ دَ ے ته وائي چه دَ سره پروړمبے حکم لرے کړے شي او دَ هغې په ځائے بل حکم راشي) نو دا ظاهره خبره ده چه په دَ ے اصطلاح سره به دَ منسوخ شوي آيا تونو شمير کم شي. لکه چه په وروستنو عالمانو کښې علامه سيوطي صرف شل آيا تونه منسوخ شميرلي دي او له دهٔ نه وروستو بيا شاه ولي الله، په دغو کښې دَ مطابقت او موافقت صورت پيدا کړے دے او صرف پنځهٔ آيا تونه ئے منسوخ ګڼړلي دي، او دا پنځهٔ آيا تونه داسے دي چه په دَ ے کښې دَ ډير لرے تاويل نه بغير دَ مطابقت صورت نهٔ پيدا کيږي. او دا کار له دَ ے وجې بنهٔ دے، چه په احکامو کښې اصل، دَ حکم بقا او پاتے کيدل دي. او نسخ خلاف اصل ده، نو په کوم وجه چه چرته دا توجيه او دَ تطبيق داسے صورت کيدے شي، چه په آيت عمل کول باقي پاتے شي، نو په هغې کښې بغير دَ ضرورت نه نسخ منل درسته نهٔ ده.

ليکن دَ دَ ے کمي کولو مقصد، دا هرګز کيدے نشي، چه دَ نسخ مسئله دَ اسلام او قرآن کريم دَ پاره څهٔ دَ عيب خبره وه، او دَ هغې دَ لرے کولو دَ پاره لسوکالو نه کوشش کيږي او آخري انکشاف ئے شاه ولي الله ته اُشو، چه په هغې کښې پنځهٔ پاتے شو. او اوس دَ دَ ے انتظار دے چه څوک نوے محقق دَ غه پنځهٔ هم ختم کړي او شمير بالکل صفر درجې ته اُرسوي.

دَ نسخ په مسئله کښې داسے اَپرَخ اختيارَول نهٔ دَ اسلام او نهٔ دَ قرآن کريم صحيح خدمت دے او نهٔ په داسے کولو سره دَ صحابو او تابعينو، او بيا دَ څوارلسو سوو دَ وروستنو او مخکښينو

عالمانو مقالے او تحقیق د ښځلے کیدے شي، او نهٔ د مخالفینو دَ طعن او اعتراض ترڅه پرې بندیدے شي. بلکه دا خودَ دے زمانے ملحدانو ته وسله په لاس کښې ورکول دي، چه دا سے هم کیدے شي چه څوارلس سوه کالو پورے چه دَ امت ټولو عالمانو څهٔ و یَل هغه ټول غلط دي، نو پکه دا سے کولو سره به دَ قرآن کریم او شریعت نه امن پورته شي.

په موجوده زمانه کښې د بعضے عالمانو، څهٔ دا سے تحریرو نه مالیدلی دي، چه هغوئ آیت "ما ننسخ" دَ شرط معنیٰ په ترڅ کښې دَ نیولو په وجه یو قضیه (جمله) فرضیه دَ "لَوْكَانَ فِيهِمَا آلِهَةٌ[1]" اودَ "إِنْ كَانَ لِلرَّحْمٰنِ وَلَدٌ[2]" په شان ګرځولے دهٔ او د نسخ دامکان دَ پاره ئے دلیل ګرځولے دے. او د نسخ د واقع کید و نه ئے انکار کړے دے او حالې دا دے چه دوئ ته دا معلومه نهٔ ده چه شرط په ترڅ کښې دنیولو او دَ قضیه شرطیۀ بحرفِ "لو" په مینځ کښې ډیر فرق دے. او دا هغه استدلال دے چه ابو مسلم او معتزله ئے وړاندے کوي.

لیکن دَ صحابو او تابعینو د تفسیرونو، او دَ ټول اُمت دَ ترجمو کتو نه پس، د دغه معنیٰ ته چه دا بعضے عالمانو ئے اخلي، دَ قرآن معنیٰ و یَل هیڅ رنګ قبلیدے نشي، ځکه چه صحابو کرامو ... د دغه آیت د نسخ دَ واقع کیدو دَ پاره دَ دلیل په توګه وړاندے کړے دے او ډیرے واقعے ئے شمیر کړي دي چه په هغې کښې نسخ شوے ده (ابن کثیر[3]، ابن جریر)

د دغه وجه ده چه دَ اُمت په متقدمینو او متأخرینو علماؤ کښې چا دَ نسخ دَ واقع کیدو نه انکار نهٔ دے کړے. پخپله شاه ولی الله اګرچه د تطبیق کولو په وجه دَ نسخ شمیر کم کړے دے، خو دَ نسخ دَ واقع کیدو نه ئے انکار نهٔ دے کړے، دَ دیوبند ټول اکابر د نسخ په واقع کیدو متفق دي. په دے کښې د ډیرو حضراتو مستقل یا جزوي تفسیرونه هم شته.

اَوْ نُنْسِهَا. دا دَ مشهور قرائت له مخې دَ اِنساء او نسیان نه اخستے شوے دے. (یعني جوړ کړے شوے دے) او معنیٰ ئے دا ده چه کله دَ نسخ صورت دا هم کیږي چه دا منسوخ شوی آیتونه د نبي صلی الله علیه وسلم او د ټولو صحابو د زړونو نه او بښکلے شي او هیر کړے شي، لکه چه دَ دے په تفسیر کښې ډیرے د دغه شان واقعے مفسرینو حضراتو ذکر کړي دي. او دَ دے هیرولو نه مقصد دا وي چه په را تلو نکې وخت کښې عمل کول نشته.

دَ نسخ متعلق، دَ باقي احکامو تفصیل دلته نهٔ ځائے کیږي، ځکه چه دَ دے اصلي ځائے دا اصولِ فقه کتابونه دي.

(۱) انبیاء: ۲۲ (۲) که چرے د لو کان للرحمٰن نه آیت مقصد دی نو په آیت کښې "لو" په ځائے "اِن" دے او آیت د سورة المؤمنون ۸۱ نمبر دے. (۳) ج ۱، ص ۲۶۲، ۲۶۳.

أَمْ تُرِيدُونَ أَنْ تَسْأَلُوا رَسُولَكُمْ كَمَا سُئِلَ مُوسَىٰ مِنْ قَبْلُ ۗ

آیا تاسو مسلمانان هم غواړئ چه سوال اوکړئ د خپل پیغمبر نه څهٔ رنګے چه کړے وُو د موسیٰ نه اَلرده نه وړاندے

وَمَنْ يَتَبَدَّلِ الْكُفْرَ بِالْإِيمَانِ فَقَدْ ضَلَّ سَوَاءَ السَّبِيلِ (۱۰۸)

او څوک چه کُفر واخلي په بدله دَ ایمان کښے، نو هغه ورکه کړه نیغه لاره۔

## لنډ تفسیر:-

(بعضے یهودو، د عناد په وجه، نبی علیه الصّلوٰۃ والسّلام ته اُووے چه څهٔ رنګ په موسیٰ علیه السّلام په یو ځل تورات نازل شوے وو، نو ته هم د غه رنګ په یو ځل ټول قرآن راوړه۔ په دے خبره ارشاد کیږی چه) آیا تاسو دا غواړئ چه د خپل (وخت) د رسول نه (بے ځایه بے ځایه) درخواستونه اوکړئ، لکه چه څهٔ رنګ له دهٔ نه وړاندے (ستاسو مشرانو د حضرت) موسیٰ (علیه السلام) نه هم (داسے) درخواستونه کړی وو (مثلاً په ډاګه دَ الله پاک دَ لید ود رخواست ئے کړے وو۔ او داسے درخواستونه چه د هغے نه غرض صرف په رسول ؐ باندِ اعتراض کول او دَ الله پاکؒ دَ حکمتونو مزاحمت کول دی، او بیا دَ ایمان راوړلو اراده ئے هم نهٔ وی، دیو عجیبه قِسم کُفر خبرے دی او) چاچه دایمان راوړلو په ځائے دَ کفر (خبرے) اوکړے، بے شکه د غه کس د سمے لارے نه پاتے شو دے سوال ته بے ځایه، له دے وجے اُو ویلے شو چه په هر کار کښے دالله پاکؒ مصلحت او حِکمت جُدا جُدا دی۔ بنده ته هیڅ حق نشته، چه هغه دَ طریقے دمعیّن کولو پاره دا خبره اوکړی چه دا کار داسے کول پکار وو، داسے کول پکار وو۔ د هغهٔ کار بس اٰمَنَّا او صَدَّقْنَا دے۔

د حضرت شیخ الهند په ترجمه کښے، دَ آیت مخاطب خلق مسلمانان ګرځولی شوی دی او دَ هغے حاصل او مطلب دا دے چه مسلمانانو ته د محکښے نه آګاهي ورکول وو، چه د پیغمبر نه بے ځایه سوالونه اُو نکړی۔

وَدَّ كَثِيرٌ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ لَوْ يَرُدُّونَكُمْ مِنْ بَعْدِ إِيمَانِكُمْ كُفَّارًا ۚ

د زړهٔ نه غواړی ډیر اهل کتاب چه څهٔ رنګ تاسو راواړوی دَ مسلمان کیدلو نه پس کافران

حَسَدًا مِنْ عِنْدِ أَنْفُسِهِمْ مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ الْحَقُّ ۖ

په سبب د خپل د زړهٔ د حسد پس له دے چه ظاهر شو دوی ته حق

فَاعْفُوْا وَاصْفَحُوْا حَتّٰى يَاْتِيَ اللّٰهُ بِاَمْرِهٖ ۭ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَىْءٍ

نو تاسو عفوه اوکړئ او په خیال کښې مه راولئ ترڅو پورې چه اولیږی الله خپل حکم بیشکه الله په هر څیز

قَدِيْرٌ ﴿۱۰۹﴾ وَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ ۭ وَمَا تُقَدِّمُوْا لِاَنْفُسِكُمْ

قادر دے او قائم کوئ مونځ او ورکوئ زکوٰة او څه چه تاسو وړاندې لیږئ د خپل ځان دپاره

مِّنْ خَيْرٍ تَجِدُوْهُ عِنْدَ اللّٰهِ ۭ اِنَّ اللّٰهَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ﴿۱۱۰﴾

بنیګړه بیا به مومئ هغه الله سره بیشکه الله، چه څه تاسو کوئ ټول وینی ګوری

**لنډ تفسیر:-** (بعضې یهودو، شپه ورځ په مختلفو چلونو د دوستئ او خیر خواهئ په شکل کښې هم داکوشش کولو چه مسلمانان د اسلام نه واړوی او سره د ناکامیابئ هم د خپل د غه غم او فکر نه نه منع کیدل. الله پاک مسلمانانو ته د دے خبرے آګاهي ورکړه چه) دے اهل کتابو (یهودو) کښې ډیر د زړه نه دا غواړی چه تاسو د ایمان راوړلو نه رستو بیا کافران کړی (او دا غوښتل د څه خیرخواهئ له وجې نه دی، بلکه چه څنګه دوئ وائي بلکه) صرف د حسد د وجې نه چه (دا ستاسو د طرف نه د څه څیز په وجه پیدا شوې نه دے بلکه) پخپله د دوئ د زړونو نه دے (جوش وهي او دا سے هم نه ده چه دوئ ته حق په ډاګه شوے نه دے بلکه) د حق په ډاګه کیدو نه پس (دا حالت دے. او س هرکله چه دا ځائے دے چه مسلمانان په غصه شی نو الله ارشاد کوی چه) خیر (اوس خو) معافی اوکړئ اوسترګې پټې کړئ ترڅو چه الله پاک (د دے معاملې متعلق) خپل حکمو (نوے قانون) را اولیږی (په دے اشارې سره اُښود لے شو چه الله پاک وائي چه مونږ ډیر زر د دوئ د شیطانتو د علاج دپاره د امن عامه د انتظام قانون رالیږو، یعنی د دوئ سره جنګ کول او له دوئ جزیه اغستل. نو دا خو یو طبعی خبره ده چه مسلمانان دا تعجب اوکړی چه مونږ خو کمزوری یُو او دوئ ډیر مضبوط او قوی دی. د دے قانون اجراء په څه رنګ اوکړے شی، نو ارشاد کیږی چه تاسو تعجب ولے کوئ) الله پاک په هر څیز (خواه هغه معمولی وی خواه هغه عجیبه وی) قادر دے او (فی الحال صرف) مونځو نه په پابندئ سره کوئ او (چه په چا زکوٰة فرض وی) زکوٰة ورکوئ (او کله چه دا قانون راشی نو د غه ښو عملونو سره هغه به هم کوئ)

او (دا مه گنړئ چه ترخو پورے د جهاد کولو حکم نه دی راغلے، دَ یواځے مو نځ کولو او روژے نیولو په ثواب کښے به کمی وی. داسے نه دَه بلکه) چه کوم کار د خپلے سنیگړے دَ پاره جمع کوئ چه الله ته (اُورسئ) د هغے به دپوره پوره بدله) (وموميئ، ځکه چه الله پاک ستاسو ټول کړي کارونه گوری (له دے پوتے قدرے به هم ضائع نه کړی)

فائدلا :- دَ دغه وخت تقاضا بس دغه وه. بیا الله پاک خپله وعده پوره کړه او د جهاد کولو آیا تونه نازل شو، چه د هغے نه رُستو یهود و سره په دغه قانون عمل اُوکړے شو. اوناکارو خلقو ته د هغوئ د فساد مطابق سزا یعنی قتل، یا د وطن نه شړل یا جزیه ټکول ورکړے شوه.

وَقَالُوا لَنْ يَدْخُلَ الْجَنَّةَ إِلَّا مَنْ كَانَ هُودًا أَوْ نَصَارَىٰ ۗ تِلْكَ

او وائی چه هرگز به لاړ نه شی جنت ته مگر هغه چه وی یهودی یا نصرانی دا

أَمَانِيُّهُمْ ۗ قُلْ هَاتُوا بُرْهَانَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ ١١١ بَلَىٰ ۚ

آرزوگانے دَ دوئ دی اُوایه راوړئ سند خپل که چرے تاسو رښتینی یئ دے نه

مَنْ أَسْلَمَ وَجْهَهُ لِلَّهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ فَلَهُ أَجْرُهُ عِنْدَ رَبِّهِ ۚ

چا چه تابع کړو مخ خپل د الله دَ پاره او هغوئ نیه کار کوونکی وی نو دوئ د پاره دے ثواب د وی خپل پروردگار

وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ١١٢ وَقَالَتِ الْيَهُودُ

نخه او نه ویره ده په دوئ او نه به وی دوئ غمژن او یهود خو وائی چه

لَيْسَتِ النَّصَارَىٰ عَلَىٰ شَيْءٍ وَقَالَتِ النَّصَارَىٰ لَيْسَتِ الْيَهُودُ

نصارئ نه دی په څه لاره او نصارئ وائی چه یهود نه دی

عَلَىٰ شَيْءٍ وَهُمْ يَتْلُونَ الْكِتَابَ ۗ كَذَٰلِكَ قَالَ الَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ

په څه لاره سره له دے چه ټول لولی کتاب دَ غه شان اُوے هغه کسا نو چه جاهلان دی

مِثْلَ قَوْلِهِمْ ۚ فَاللَّهُ يَحْكُمُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فِيمَا كَانُوا فِيهِ يَخْتَلِفُونَ ١١٣

دَ دوئ پشان خبره الله به حکم اُوکړی په دوئ کښے د قیامت په ورځ په کومه خبره چه (اختلاف) او جگړے کولے

## لنډ تفسير:-

(او يهودو او نصارٰی دا هم) وائی چه جنت ته به هرګز لاړ نهٔ شی مګر هغه خلق چه يهود دی (دا د يهودو وينا ده) يا هغه خلق چه نصارٰی وی (دا د نصاراؤ وينا ده)، الله تعالٰی په رد کښې فرمائی چه) دا (خالی) د زړهٔ بنګی خبرې دی (او په حقيقت کښې هيڅ څيز نه دے) ته (د دوئ نه داخو) اُوايه چه (ښه) خپل دليل راوړئ که چرے تاسو (په دے دعوے کښې) رښتونی يئ (نو دوئ به څهٔ دليل راوړی، ځکه چه څهٔ دليل شته نه. اُوس مونږه د دے خلاف او ل خود دعوٰی کوو چه) ضرور نور خلق به (هم جنت ته) ځی (بيا ئے په دے دليل راوړو چه زمونږ قانون چه هغې ته ول د آسمانی دينونو منونکی انکار کولے نهٔ شی، دا دے چه) څوک خپل مخ د الله پاک په طرف کوږ کړی (يعنی په عملونو او عقيدو کښې د الله پاک تابعداری اوکړی) او (د دے سره) هغه مخلص هم وی (چه تابعداری د زړهٔ د اخلاصه کوی، د څهٔ مصلحت او د منافقت نه، نهٔ کوی) نو دا سے کس ته د دهٔ (د تابعدارئ) بدله حاصليږی چه الله پاک ته اُرسی او دا سے خلقو ته (په قيامت کښې) نهٔ څهٔ انديښنه (واقعه کيدونکی) ده او نه دا سے خلق (په دغه ورځ) غمژن کيدونکی دی (ځکه چه فرښتې دوئ ته به زيرے ورکړی او په دے به دوئ بے غمه او بے فکره شی)

د دليل نيولو حاصل دا شو چه هر کله دا قانون منلے شوے دے، نو اوس صرف دا اُکوری چه دا خبره په چا باندِ صادقه ده؟ نو ظاهره خبره ده، چه په يو ړومبی منسوخ شوی حکم باندِ د عمل کولو په وجه چا ته تابعدار ويلے نهٔ شی نو په دے وجه يهود او نصارٰی تابعدار نهٔ شو۔ بلکه په دويم حکم عمل کول تابعداری ده، او دا خود مُسلمانانو کار دے چه د محمّد (صلی الله عليه وسلم نبوت او شريعت ئے قبول کړے دے، نو په دے وجه دوئ په جنت کښې داخل کيدونکو شمار شول۔

او د مخلصين قيد سره، منافقان اُووتل، ځکه چه هغه شرعًا په کافرو کښې داخل دی او د جهنم سزاوار دی) او ر پو حکل څهٔ يهوديان او څهٔ نصرانی جمع شول او د دين بحث ئے شروع کړو۔ نو يهودو، د خپلے عقيدے مطابق نصاراؤ ته او د نصاراؤ دين ته باطل اوويل۔ او د حضرت عيسٰی عليه السّلام د نبوت او د انجيل نه د کتاب الله کيدلو نه ئے

انکار اوکړو نو نصارٰی هم په ضد شول او تعصب کښې را غلل او یهودو ته ئے اُووے چه ستاسو دَ دین اصل نشته او ستاسو دین باطل دے او دغه شان دَ حضرت موسٰی علیه السّلام دَ نبوت نه ئے انکار اوکړو نو الله تعالیٰ دا قصه (دواقعه د رَد کولو نقل کوی او فرمائی چه) یهُود په دینا شو چه (دَ) نصاراؤ (دین) په څه بنیاد (قائم) نهٔ دے (یعنی دَ سره غلط دے) او دغه شان نصارٰی په دینا شول چه د یهودو (دین) په څهٔ بنیاد ولاړ نهٔ دے (یعنی دَ سره غلط دے) حالانکه دا ټول (دَ دواړو فرقو خلق آسمانی) کتابونه (هم) لولی (او بل ته ئے ښائی) یعنی یهود توراة او نصارٰی انجیل لولی او ویني چه په دواړو کتابونو کښې دَ دواړو پیغمبرانو او دَ دواړو کتابونو تصدیق موجود دے، او دا پیغمبران او کتابونه دَ دواړو دینونو بنیاد دے. اگرچه د منسوخ کیدلو په وجه، د عمل کولو قابل پاتے نهٔ دی، خو دا جُدا خبره ده۔

او اهل کتابو خو دا سے دعوے کولے، مشرکانو دوئ ته اوکتل. هغوئ هم په جوش کښې را غلل (او) دا شان دے خلقو (هم) چه (بالکل) بے علمه دی دَ دے زا هل کتابو) پشان وینا کول ئے شروع کړه (چه دَ دے یهودو او نصاراؤ ټولو دَ دین څهٔ بنیاد نشته په حقه هم مونږ یو) نو (دلته خو دِ هر یو خپله خپله خبره شری) الله پاک به کَد دے ټولو په مینځ کښې (عملی) فیصله اوکړی د قیامت په ورځ د دے ټولو جګړو چه په دے کښې دوئ دَ یو بل سره اختلاف کولو (او دا عملی فیصله به دا وی چه اهل حق به جنت ته بوځی او اهلِ باطل به په جهنم کښې اوغورځوی. دعملی فیصلے قید ددے وجے اُلګولے شو چه دو نیا او دَ دلیل له مخو فیصله په دُنیا کښې هم شوے ده۔

## عُلوم او مسَائل:-

په دے آیاتونو کښې الله پاک دَ یهودو او نصاراؤ په مینځ کښې دَ اختلاف کولو او په یو بل باندے دَ رد کولو په وجه چه کوم ضرر ناک اثرونه پیدا کیدل د هغے ذکر کړے دے، او بیائے اصل حقیقت ظاهر کړے دے. په دے ټولو واقعاتو کښې دَ مسلمانانو دپاره ډیرا هم هدایات دی، چه دَ هغے بیان دریے را ځی۔

یهودو او نصاراؤ دواړو، دَ دین اصل حقیقت هیر کړے وو. او دین په نوم ئے یو قومیت جوړ کړے وو. او په دوئ کښې هر یو خپل قوم جنتی او مقبول کیدلو او دنیا د نورو قومونو دَ ګمراه کیدلو او دَ دوزخی کیدلو، معتقد وُو۔

دَدے نامعقول اختلاف نتیجه دا شوه، چه مُشرکانو ته دَدے خبرے دَ وئیلو موقع په لاس را غله، چه عیسائیت هم بے بنیاده دے او یهودیت هم۔ حق او صحیح خو زمونږه بُت پرستی ده۔

الله پاكَ دَدے قومونو د جهالت او گمراهئ متعلق اُوفرمائیل، چه دا دواړه قومُونه جنت ته د تلوا صلی سبب نه غافله دی، صرف دَدین په نوم قومیت پسے نګیدلی دی۔ حقیقت دا دے که د یهودو مذهب وی او که د نصاراؤ وی یا کهٔ اسلام وی دَدے ټولو اصلی روح دوه خیزونه دی۔

یو دا چه بنده زړهٔ او ځان (ژبه) خپل ځان الله پاک ته اُسپاری، او دهغه تابعداری خپله عقیده او مذهب اُګنړی خواه دا په کوم یو مذهب کښے وی۔ دَدین حقیقت هیرول یا شاته غورزول او د یهودیت او نصرانیت په نوم قومیت جوړول دَدین او مذهب نه بے خبری ده۔

دویمه خبره دا ده، چه د جنت تلو د پاره دا بس نهٔ ده، چه څوک د زړهٔ نه دَالله پاک د فرمانبرداری قصد درست کړی، لیکن د فرمانبرداری او د عبادت طریقے د خپل ځان نه جوړے کړی۔ بلکه دا ضروری ده، چه د فرمانبرداری او د عبادت هغه طریقے خپلے کړی کومے چه الله پاک د خپل رسولؐ په ذریعے ښودلی دی۔

رومبئی خبره د "بَلٰی مَنْ اَسْلَمَ" په ذریعه او دویمه خبره دَ "وَهُوَ مُحْسِنٌ" په ذریعه واضحه کړے شوے ده، چه له هغے معلومه شوه، چه دَ آخرت د خلاصی او جنت ته د تلو د پاره یوازے د فرمانبردارئ قصد بس نهٔ دے، بلکه ښهٔ عمل هُم ضروری دے او ښهٔ عمل هغه دے چه د هغے طریقے او تعلیم قرآن او سنت نبویه کړے ید۔

الله پاكَ څخه د نسلی یهودی، او نصرانی یا مسلمان هیڅ قدر نشته، قدر دَ ایمان او عمل صالح دے

څوک چه له دے بنیادی اصولو اصل پریږدی، خواه هغه یهودی وی، یا نصرانی وی یا مسلمان وی او صرف دَ قومیت دَ نوم په وجه خپل ځان د جنت ټیکه دار او گنړی نو دا بس ځان ته دوکه ورکول دی۔ چه دَدے دَ حقیقت سره څهٔ لرے غوندے هم تعلق نشته۔ د الله پاک په نزدیوهم دَدے نومونو په وجه الله پاكَ ته نزدے کیدے نشی، خو پورے چه په هغه کښے دَ ایمان او عمل صالح رُوح

موجود نه دی۔

بیا خو د ایمان اصول په هر رسول او شریعت کښې یو شان راغلي دي۔ دومره خبره ده، چه د عمل صالح شکلونه بدل شوي را بدل شوي دي۔ د تورات په زمانه کښې عمل صالح هغه وو، چه د تورات د تعلیم موافق وو، د انجیل په دور کښې عمل صالح هغه وو، چه د انجیل او حضرت عیسی علیه السلام د تعلیم مطابق وو۔ او اوس د قرآن کریم په زمانه کښې هغه عمل نه صالح ویلې شي، چه د نبي آخر الزمان صلی الله علیه وسلم د حکم او د هغه د راوړلې شوي کتاب، قرآن مجید موافق وي۔

د خبرې خلاصه دا ده، چه د یهودو او نصاراو د دې اختلاف متعلق الله پاک دا فیصله اوکړه چه دا دواړه قومونه د جهالت خبرې کوي۔ په دې دواړو کښې یو هم د جنت ټیکه دار نه دے۔ او نه د دواړو دینونه بې اصله او بې بنیاده دي۔ بلکه د دواړو دینونو صحیح بنیاد موجود دے۔ د غلط فهمۍ اصلي سبب دا دے، چه دوی د دین اصل روح، یعنې عقیدې او عملونه او نظریې پریښې دي، د نسل یا د وطن په بنیاد یې یو قوم یهود، او بل قوم یې نصراني کنړلے دے۔

چه کوم د یهودو د نسله وي، یا د یهودو په ښار کښې اوسي، یا په شمیر کښې خپل ځان یهودي بنائي۔ هغه یې یهود اوګڼړه، هم دغه شان د نصراني تا کل او شو۔ حال دا دے چه د ایمان اصول پریښودل او د اعمالو صالحو نه مخ کړځولو نه پس نه بیا څوک له دوی یهودي پاتې دے او نه نصراني۔

په قرآن کریم کښې د دے اختلاف ذکر کول او بیا پکښې د فیصلے کولو نه غرض مسلمانانو ته ۳ کاهي ورکول دي، چه چرته دوی هم په دا سې غلط فهمۍ کښې اخته نه شي چه اووائي چه مونږه خو نسلي مسلمانان یو۔ په هر دفتر او رجسټر کښې خو زمونږه قوم مسلمان درج کړے شوے دے او په ژبه مونږه یو بل ته مسلمان هم وایو۔ نو په دے وجه د جنت د ټولو انعامونو مستحق او د ار هم مونږه یو۔

له دے فیصلے نه مسلمانانو ته، دا په ډاګه شوه، چه یو سړے نه صرف په دعوی حقیقي مسلمانان جوړیدے شي او نه چرته د مسلمان په نوم درج کولو سره، یا د مسلمان د نسل نه په کیدو سره، یا د مسلمانانو په ښار کښې په پیدا کیدو سره مسلمان جوړیدے شي

بلکه د مسلمان جوړیدو د پاره اول خو اسلام ضروری دے او د اسلام معنیٰ دا ده چه خپل ځان الله پاک ته اُو سپاری۔ او دویم به عمل ضروری دے ۔ هغه دا چه عمل ئې د سنت موافق وی ۔

لیکن د قرآن کریم د دے آګاهئ باوجود، مسلمانان، د یهودو او نصاراؤ په شان په دغه غلط فهمئ کښې نښتی دی او د الله پاک او رسول ﷺ او آخرت نه بالکل غافله دی او د خپلے مسلمانئ د پاره صرف نسلی مسلمان کیدل ئې کافی ګڼلی دی، او په قرآن کریم او حدیث کښې چه کومے وعدے د فلاح په د واړو جهانونو کښې مسلمانانو سره شوی دی، د هغې خپل ځان مستحق ګڼړی او د هغې د پوره کیدو انتظار کوی او کله چه دا وعدے ورته پوره کیدونکی اُنه ښکاری نو بیا د قرآن او حدیث په وعدو باندې شک کوونکی شی۔ او دے ته خونه ګوری چه قرآن کریم صرف نسلی مسلمانانو سره څه د وعده کړے نه ده۔ دا د دے آیت :

بَلٰى مَنْ أَسْلَمَ وَجْهَهٗ لِلّٰهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ فَلَهٗٓ أَجْرُهٗ عِنْدَ رَبِّهٖ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ۔

مطلب او خلاصه ده ۔

نن صبا د ټولے دُنیا مسلمانان په قسم قسم تکلیفونو او مصیبتونو کښې ګیر دی دا چه ناواقفه او بے عمله خلق اُوینی، نو دا ئې خیال ته راځی چه شاید د دے ټولو تکلیفونو سبب زمونږه اسلام دے ۔ لیکن د برنی ذکر شوی بیان نه واضحه شوه، چه د دے اصلی سبب زمونږه اسلام نه دے ۔ بلکه د اسلام پریښودل دی، مونږه د نوم مسلمانان یو، نه په مونږ کښې د اسلام عقیدے شته، او نه اخلاق او نه عملونه ۔ نو بیا زمونږه کوم حق دے، چه مونږه د هغو وعدو انتظار اوکړو چه کومے اسلام او مسلمانانو سره کړے شوی دی ۔

البته د لته دا سوال پیدا کیږی، چه مونږه، هر څه چه یُو، نوم خو د اسلام اخلو، د الله پاک او د هغه د رسول ﷺ نوم اخلو۔ او کافر، چه هغه په ټوله د الله پاک او د هغه د رسول ﷺ مخالف دی، او د اسلام نوم اخستل به ئې نه ګڼړی۔ هغه خو، نن صبا په دنیا کښې په هر قسم ترقئ کښې دی، د لویو لویو حکومتونو خاوندان دی۔ د دنیا د صنعتونو او تجارتونو ټیکه داران دی۔ که چرے زمونږه د بد عملئ د غه سزا مونږ ته ورکیږی چه مونږه به هر ځائے خوار او ذلیل او پریشانه یو۔ نو بیا خو کافر وته له دے زیاده سزا ورکیدل پکار دو۔ لیکن که چرے لږ غونډے سوچ او غور اوکړے شی، نو دا شُبه به په چیله ختمه شی۔

اول له دے وجے چه دوست او د ښمن سره معامله او سلوک یو شان نهٔ کیږی۔ دوست ته په هر قدم او خبره باندے ملامتیا ورکیږی۔ کوری چه اولاد او شاگرد ته په لږه غوندے خبره سزا ورکیږی۔ لیکن د ښمن سره دا خبره نهٔ وی۔ هغهٔ ته مهلت ورکیږی او چه وخت راشی، نو بیا ناسا یه نیولے کیږی۔

مسلمان چه ترکومه د ایمان او اسلام نوم آخلی، او دَ الله او دَ رسول دَ لویئی او محبت اظهار کوی، نو هغه دَ دوستانو په فهرست کښے شاملیږی۔ هغهٔ ته دَ هغهٔ د بدو عملونو سزا، عموماً په دنیا کښے ورکیږی۔ او دا دَ دے دَ پاره چه دَ آخرت پیټے ئے سپك شی۔ په خلاف دکافر چه په هغهٔ باندے د باغیانو او د ښمنانو قانون جاری دے، په دنیا کښے د سپکو سپکو سزا گانو په ورکولو سره، د هغوی د عذاب پیټے سپکیدے نهٔ شی، دوی به په یو ځل عذاب کښے راگیرولے شی۔ او نبی صلی الله علیه وسلم چه فرمائیلی دی:-

"د نیا د مؤمن دَ پاره قید خانه ده او کافر د پاره جنت دے" دَ دے ---- هم د غه مطلب دے۔

دویم ا همه خبره دَ مسلمانانو د پریشانئ او د کافرانو د راحت او ترقئی د پاره دا ده چه الله پاك دَ هر عمل جدا خاصیت مقرر کړے دے۔ دَ یو عمل په کولو سره د نورو عملونو خاصیتونه حاصلیږی نه۔ مثلاً د تجارت کولو دا خاصه ده چه په مال کښے زیاتوالے راشی، او د دوا رو خاصیت دا دے چه بدن جوړ شی۔ او س که چرے څوک شپه او ورځ په تجارت کښے اُ لگی۔ ناجوړتیا او دَ هغې علاج کولو ته څهٔ توجه او نکړی، نو صرف د تجارت په وجه به دے دَ بیمارئ نه خلاصے بیا مُومی۔ هم دغه شان دَ دارو دَ استعمال په وجه به دَ تجارت خاصیت یعنی د مال زیاتوالے حاصل نکړی۔ دَ کافرو د دنیا ترقی، او دَ مال او دولت زیاتوالے دَ دوئ د کفر نتیجه نهٔ ده، نکه چه دَ مسلمانانو خواری او پریشانی دا سلام له وجے نهٔ ده، بلکه هر کله چه کافرو د آخرت غم کول پریښودل او مکمل طور سره دَ دُنیا د مال او دولت او عیش او آرام په فکر کښے اخته شو، دَ تجارت، صنعت او د حکومت او سیاست فائدہ مندے لارے ئے غوره کړے او دَ ضررناکو طریقونه ئے ځان بچ کړو، نو په دنیا کښے ئے ترقی اوکړه۔ او که چرے دوئ هم زمونږ په شان صرف دَ خپل خپل مذهب نوم په خوله اخستے، او د دُنیا د ترقئ، دَ هغې د اصولو مطابق کوشش ئے نهٔ کولے، نو دوئ به د کفر په وجه دَ دومره حکومت خاوندان شوی نهٔ وو، نو بیا مونږه څهٔ رنگ کړو چه زمونږ اسلام

او، بیا صرف دَ نوم اسلام، مونږ ته به د بټو لو فتوحاتو دروازے پرانیزی؟ اسلام او ایمان کۀ چرے بالکل په درستو اصولو هم وی، نو دَ هغې اصلی خاتمه او نتیجه، د آخرت دخلاصی او د جنت دائمی راحت دے۔ او دَ دے په نتیجه کښے دَ دُنیا راحت او د مال زیاتوالے او ترقی لازمی نه ده، ترڅو چه دَ هغې دَ پاره مناسب کوشش اُونکړے شی۔

او دا خبره، دَ تجربے نه ثابته ده، چه چرته یو مسلمان د تجارت، صنعت، حکومت او د سیاست صحیح اصُول اِزده کړی دی، او بیائے په هغې باندِ عمل کړے دے، نو هغه هُم دَ د غه دنیوی فائدو نه محرومه پاتے شوے نهُ دے، چه کومے کافرو ته حاصلے دی۔

له دے نه دا ضحه شوه چه زمونږه د خوارئ او د مُصیبتونو او آفتونو سبب اسلام نهُ دے، بلکه یو طرف ته اسلامی اصُول او اخلاق پریښودل دَ دے سبب دے او بل طرف ته دے کارونو ته شا اړول دی، چه په هغې سره مال او دولت کښے زیاتے کیږی۔

افسوس دے چه کله مونږ د یُورپیانو سره ګډ شو او د هغوئ نه مو دَ بے حیایئ او بد اخلاقئ کارونه اِزده کړهٔ، لیکن هغه کارونه مو اِزده نهٔ کړهٔ چه دَ هغې د برکته هغوئ په دُنیا کښے کامیاب ښکاری، او دا کارونه په معامله کښے رښتیاوالے او په دنیا کښے د اثر او رسوخ پیدا کولو نوی نوی طریقے خپلول دی۔ او چه دا دے څیزدے چه دا سلام دَ تعلیماتو سره سمُون هم خوری۔ په دے څیزونو کښے خو مونږه دَ هغوئ د نقل کولو هیڅ کوشش اونکړ د۔ نو بیا دا قصور خو د اسلام نهٔ شو، قصُور کهٔ دے نو زمونږه دے۔

مطلب دا چه د قرآن کریم دے آیاتونو په ډاګه کړه، چه یوازے نسلی مسلمانی څهٔ فائدهٔ نهٔ ورکوی ترڅو، چه دے سره ایمان او عمل صالح ملګرے شوے نهٔ وی۔

وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ مَّنَعَ مَسٰجِدَ اللّٰهِ اَنْ يُّذْكَرَ فِيْهَا اسْمُهٗ

او له دۀ لوئے ظالم څوک دے چه هغه منع کړه د الله پاک جماتونو کښے چه دا ښتے شی هلته نوم دده

وَسَعٰى فِىْ خَرَابِهَا ؕ اُولٰٓئِكَ مَا كَانَ لَهُمْ اَنْ يَّدْخُلُوْهَآ اِلَّا

او کوشش ئے او کړو دَ دوی په خرابولو کښے۔ دوی له لائقه نه وه چه داخل شی په دوی کښے مګر

خَآئِفِيْنَ ؕ لَهُمْ فِى الدُّنْيَا خِزْىٌ وَّلَهُمْ فِى الْاٰخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ﴿۱۱۴﴾

په ویره ، دوی د پاره په دنیا کښے ذلت دے او دوئ د پاره په آخرت کښے لوئے عذاب دے۔

وَلِلّٰهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ ۚ فَاَيْنَمَا تُوَلُّوْا فَثَمَّ وَجْهُ اللّٰهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ

او هم د الله پاک د ے مشرق او مغرب ، نو کوم طرف ته ، ته مخ کوے ، هم هلته متوجه دے الله پاک

وَاسِعٌ عَلِيْمٌ ﴿١١٥﴾

بے شکه الله پاک بے کچه بخښنه کوونکے او هر څهٔ باندے د هغهٔ علم دے

**لنډ تفسير** :- (يهودو، د قبلے د بدليدو په وخت کښے قسم قسم اعتراضونه کول او د خلقو زړونو کښے ئے شکونه پيدا کول . کهٔ چرے دغه شکونو، په عام طور سره په زړونو اثر کولے، نو د هغے لازمي نتيجه به دا وه ، چه د رسالت په انکار شوے وے او د مونځ د پريښودو په وجه به جماتونه وران شوی وے . نو گويا کهٔ د ے يهودو ، په دے طريقه د مونځ پريښودلو، د جماتونو په ورانئ ، خصوصاً د مسجد نبوی په ورانئ کښے کوشش کولو . د روم بعضے بادشاهان چه د نصاراؤ تير شوی مشران وو . او نصاراؤ د دوئ د کارونو بد هم نهٔ منل اګرچه هغه نصرانی نهٔ وو . په يو زمانه کښے د شام په يهودو باندِ حمله کړے وه چه په دے کښے مړګ جوبله شوے وه او د دغه وخت د بعضے جاهلانو د لاسه د بيت المقدس بے عزتی شوے وه او د بد امنئ په وجه په دے کښے د مانځهٔ وغيره اهتمام هم نهٔ وو شوے . نو دا شان د نصاراؤ تير شوی مشران د مانځهٔ د پريښودو او د جمات د ورانئ سبب ګرځيدل . او خپله په نصاراؤ باندِ له دے خبرے د نهٔ انکار کولو په وجه د دے خبرے الزام لګولے شو . د دے بادشاه نوم طيطس وو او نصارا ئ ته دا واقعه له دے وجے بده نه ښکاره شوه ، چه دے کښے د يهودو ذليل کول وو ، او دوئ خو د يهودو سره د ښمنی لرله . او نبی صلی الله عليه وسلم د فتح مکے نه مخکښے مکے ته د تلو او په مسجد الحرام کښے طواف او مونځ کولو اراده اوکړه ، نو مشرانو دوئ هلته تلو ته پرے نښنودل ، نو دا شان دا مشرکان هم د مسجد حرام په ورانولو کښے کوشش کوونکی ګرځيدل . نو په دے وجه الله پاک په عام صيغه سره د دے کار قباحت او بدی بيان کړه ، يعنی) او د هغه کس نه زيات ظالم به څوک وی چه د الله پاک په جماتونو کښے (چه په هغے کښے د مکے مسجد الحرام د مدينے جمات او د بيت المقدس جمات او ټول جماتونه راغله) د دوئ د ذکر او عبادت کيدلو نه بند کړی ، او د (جماتونو) په ورانئ (او شاړ) کيدو (په باره) کښے کوشش کوی .

د دے خلقوله خو کله بے له هیبته (او بیباکه) د دے (جماتونو) کښے قدم ایښودل هم نکارنهٔ وو۔ (بلکه چه ورته تلے، نو ډیر ادب او احترام سره ورته تلے۔ هرکله چه بے باکئ سره دوئ دَ دنه ورتلو حق دار نهٔ دی، نو دَ دوئ د حرمت د هتک حق دارکله شو، نو په دے وجه د دے کارته ظلم او وئیلے شو) د دے خلقوله په دنیا کښے هم رسوائی به (په برخه) دی، او د دوئ له به په آخرت کښے لویه سزاوی۔

(یهودو د قبلے دَ بدلیدو په حکم باندے اعتراض کړے وو، چه مسلمانان ولے له دے طرفه بل طرف ته واؤړیدل۔ دَ دے په جواب کښے الله پاک فرمائی، یعنی) او هم د الله پاک ملکیت دی (ټول اړخونه) مشرق هم او مغرب هم (او دا، دَ الله پاک مکانونه، نهٔ دی)

(هرکله چه هغه دَ دے مالک دے، نو چه کوم طرف له اُغواړی، نو هغه قبله کیدل مقررکوی ځکه چه دَ قبلے په تعیّن کښے، حکمت دَ مثال په طور د عبادت کوونکو دَ شکل یو والے دے۔ او دا حکمت په هر طرف کښے حاصلید ے شی۔ چه هغه دَ کوم طرف حکم ورکوی، نو هغه دَ قبلے دَ پاره متعین کیږی۔ البته کهٔ چرے، نعوذ بالله، د معبود ذات، یو خاص اړخ سره تړلے وے، نو بیا به د ضرورت په وجه د هغه اړخ د عبادت کولو دپاره د قبله کیدو جوګه وے، لیکن د هغه ذات یو اړخ سره تړلے نهٔ دے، هرکله چه خبره داده) نو تاسو خلق چه چرته هم مخ اړوئ هلته دَ الله پاک مخ دے ځکه چه الله پاک (ږ خپله په ټولو طرفونو او څیزونو) احاطه کوونکے دے (هغه احاطه چه هغه دَ هغه د شان سره موافقه لائقه ده، لیکن دا حاطے باوجود، بیا هم د عبادت کولو اړخ ئے له دے وجے مقرر کړو چه هغه) دکامل علم مالک دے۔ (چه د هر څیز فائدے بنهٔ پیژنی، هرکله چه د هغه په علم کښے دا اړخ مقررکول د بعضے فائدو دپاره وو، نو له دے وجے دَ دے حکم ئے ورکړو)

فائدے[1]:۔

۱- د جماتو نو په وړانولو کښے کوشش کوونکو فرقو ته، په دنیا کښے، دا رسوائی ورکړے شوه چه دا ټول قومونه د اسلامی ریاست رعیت او باجګذار شول۔ او دَ آخرت عذاب خو ورله دَ کافر کیدلو په وجه څرګند دے۔ او د جماتونو د وړانولو په وجه به دا عذاب نورهم سخت کړے شی۔ او له دے نه مخکښے آیت چه دَ دے درے واړو فرقو دا دعوئ ذکرکړو، چه هم دوئ

(۱) دا فائدے د بیان القرآن را غیتے شوی دی او کوره ص:

په حقه دی، نو له دې قصې او دا قبلې د دوئ یو قسم رد هم را اُو تو چه دا سې کار د لو کولو سره بیا د حق کیدلو دعوې د شرم خبره ده۔

(۲) د قبلې د مقررکولو، چه کومه فائده او حکمت د مثال په توګه دلته ذکر شو، نو په دې سره د اسلام د مخالفت کوونکو دا اعتراض هم ختم شو چه "مسلمانان کعبه پرست دی" د دې خلاصه دا شوه، چه عبادت خو د الله پاک دې، لیکن د عبادت په وخت کښې د زړه د یو ځائې کیدو ضرورت دې۔ او د عبادت کوونکو اجتماعي شکل له هم په دې کښې دخل شته، لکه چه دا د واړه خبرې د تجربې او مشاهدې نه ثابتې دی. نو له دې وجې دغه یو ځائې والي او د اجتماعي شکل حاصلولو د پاره دا دعوې او کړی چه مونږه بُتان په دې غرض وړاندې ایږدو، چه یو ځائې والي راشي، نو اول خو د دوئ د براءت له دعوې په مسلمانانو دا اعتراض نه راځي۔ دویم دا، چه د عامو مسلمانانو او د عامو کافرانو د حالت د تفتیش نه پس دا خبره په ډاګه کیږي چه مسلمانان د کعبې په نه پرستش کښې صادق او رښتیا دی او کافران د بُتانو په نه پرستش کولو کښې دروغژن دی، دریم دا، که چرې اصلي شي چه دوئ دا بُتان د یو ځائې والي د پاره مخکښې ایږدي۔ نو بیا دې د پاره د یو نه منسوخ شوي شریعت حکم وړاندې کول لازمي دی، او دا، د مسلمانانو نه سوا، بل چا سره نشته دې۔

او د ترجمې او تفسیر په وخت کښې د حکمت بیانولو د پاره، چه د مثال په توګه د "مثلاً" لفظ زیاتوالې شوې دې، هغه له دې وجې شوې دې، چه د الله پاک په حکمونو کښې د ټولو حکمتونو احاطه د چا په وس کښې نشته، نو په دې حکم کښې به په زرګونو حکمتونه وي. د یو دوؤ په پیژندګلو دا نه شي کیدلې چه بس د دې حکم دا حکمتونه دی او نور نشته

(۳) او چه دا یې فرمائیلي دی چه "هلته د الله مخ دې" او هم د غه شان چه دا یې فرمائیلي دی چه "هغه احاطه کوونکې دې"، نو په دا رنګ مضامینو کښې زیات تحقیق او لټون پکار نه دې، ځکه چه څه رنګ د الله پاک د ذات پوره ادراک او تصور د چا بنده په وس کښې نشته، د غه رنګ د هغه د صفاتو حقیقي فهم د چا په وس کښې نشته۔ اجمالاً په دې ټولو ایمان راوړل ضروري دی او له دې نه زیات انسان ته تکلیف ورکړې شوې نه دې۔

علوم او مسائل:- په دې دوؤ آیاتونو کښې د دوؤ اهمو مسئلو بیان دې۔

هُم دې آيت ديو ځانګړي واقعې متعلق نازل شوې دې۔

هغه واقعه دا ده، چه دَ اسلام د زمانې نه وړاندې، کله چه يهودو حضرت يحيٰی عَلَيه السّلام قتل کړو، نو د روم نصاراوُ له دوئ نه د بدلې اخستلو دَپاره، دعراق يو مجوسي بادشاه سره يو ځائے شول، او دَ خپل بادشاه طيطس په مشرئ کښې د شام په بني اسرائيلو باندې ئے حمله اوکړه او دوئ ئے قتل کړل او لوټ ئے اوکړو او دَ تورات نسخې ئے اوسوځولې او په بيت المقدس کښې ئے پليتي او خنزيروا چولو، او د بيت المقدس آبادي ئے ورانه کړه۔ او دَ بني اسرائيلو دَ بدَ به ئے بالکل ختمه کړه۔ دَ نبي صلی الله عليه وسلّم تر زمانې پورې، بيت المقدس د غه شان وران پروت وو۔

دَ حضرت عمرؓ په زمانه کښې، کله چه شام او عراق فتح شو، نو د دهٔ په حکم دَ بيت المقدس جوړول شروع کړې شو، ډيرې زمانې پورې، د شام ټول ملک او بيت المقدس دَ مسلمانانو په قبضه کښې وو۔ بيا څهٔ زمانه پس، بيت المقدس دَ مسلمانانو دَ لاس نه اُوَتو۔ او تقريبًا تر شلو کالو پورې د يورپ د عيسايانو په قبضه کښې پاتې شو۔ او په شپږ مه پيړئ هجري کښې د سلطان صلاح الدين ايوبيؒ په لاس فتح شو۔

د روم د نصاراوُ په د غه بې ادبئ، چه توراة ئے اُسوځولو او بيت المقدس ئے وران کړو او دَ دهٔ بې عزتي ئے اوکړه۔ دا آيت نازل شو۔

دا قول، د مفسر القرآن، حضرت عبدالله بن عباسؓ دے۔ او حضرت ابن زيدؓ وغيرهٔ نورو مفسرينو دَ دې آيت شانِ نزول دا بنودلے دے، چه کله د مکې مشرکانو نبي کريم صَلّی الله عليه وسلّم د حديبيې په واقعه کښې مسجد الحرام ته د تللو نه منع کړو نو دا آيت نازل شو۔

ابن جرير دوهمې روايت ته او ابن کثير دويم روايت ته ترجيح ورکړې ده۔

بهرحال، دَ آيت شانِ نزول د مفسرينو په نزد دَ دوؤ واقعونه يوه خاصه واقعه ده، ليکن دَ دې ابيّان، په عام لفظونو کښې ديو مستقل ضابطې او دَ قانون په الفاظو کښې کړے شوے دے۔ او دا دے د پاره چه دا حکم دغې نصاراوُ يا مشرکانو پورې خاص او نهٔ کنړلے شي بلکه دَ دُنيا ټولو قومونو دَ پاره عام پاتې شي۔ د غه وجه ده چه په دے آيت کښې دَ خاص بيت المقدس د نوم اخستو په ځائے ئے "مساجد الله" وئيلے دي۔ چه ټولو جُماتونو ته دا حکم شامل شي۔

او دَ آيت مطلب دا شو چه کوم سړے دَ الله پاک يو جمات دَ الله دَ ذِکر نه بندَوي، يا څه دا سے

کار اوکړی چه هغه سره جمات ورانېږی ـ نو هغه هم ډیر لوئ ظالم دے ـ

دَ مساجد الله تقاضا داده چه دے ته کوم سړے داخل شی، نو هیبت او خشوع سره داخل شی، لکه چه دَ یو بادشاه دربار کښې دَ داخلیدو نه سړی باندې هیبت او خشوع راځی ـ

له دے آیته چه کوم ضروری مسئلے او حکمونه راوځی د هغوئ تفصیل داد دے :-

اولنئ مسئله دا، چه په دُنیا کښې هر څومره جماتونه چه دی، د آدابو په لحاظ ټول دَ یو بل سره برابر دی څه رنګ چه د بیت المقدس مسجد الحرام، او دَ مسجدِ نبوی بے عزتی کول لوئ ظُلم دے، هم دغه رنګ دَ نورو ټولو جماتونو بے حُرمتی کول لوئ جرم او ظلم دے. اګرچه په دے درے واړو جماتونو کښې یو خاص قسم لوے والے پټ ځائے کښې منلے شوے دے، هغه دا چه په مسجد حرام کښې دیو مانځه ثواب دیو لکو مونځونو برابر دے او په مسجد نبوی او بیت المقدس کښې د پنځوسوؤ زرو مونځونو برابر دے. د دے درے واړو جماتونو کښې دَ مانځه د پاره د لرے لرے ملکونو نه سفر کول د ثواب کار او د برکت سبب دے. بخلاف دَ نورو جماتونو نه، ځکه چه د دے درے واړو جماتونو نه سوا، یو جمات کښې مونځ کول، دَ بل جمات نه غوره ګڼړل او د هغې دَ پاره د لرے نه سفر کول، نبی علیه الصلوٰة والسلام منع کړی دی.(۱)

۲- مسئله دا معلومه شوه، چه په جمات کښې دِ ذکر او مونځ منع کولو چه څومره صُورتونه دی، هغه ټول ناجائز او حرام دی ـ په دوی کښې یو صُورت خو، واضح داد ے، چه یو جمات ته دَ تلو نه او هلته کښې، دَ مونځ او تلاوت نه په جاره منع اوکړے شی، دویم صُورت داد ے، چه په جمات کښې شور جوړ کړے شی، یا د جمات په څنګ کښې با جو ماجو په غیرو لو سره دخلقو په مانځه، ذکر و غیرة کښې خلل واچولے شی ـ دا هم دَ الله پاک د ذکر نه منع کول دی ـ

هُم د غه شان د مانځه په وختونو کښې، چه کله خلق په خپل نفلونو یا تسبیحونو یا تلاوت ذکر وغیره کښې مشغول وی، په جمات کښې په اوچت آواز سره تلاوت کول یا په زوره ذِکر کولو سره، هم په یو حیث خلق دَ ذکر الله نه منع کول دی، ځکه چه په دے سره دخلقو په مانځه او تلاوت او ذکر کښې خلل راځی ـ نو په دے وجه فقهاؤ دا هم ناروا ګڼړلی دی ـ البته کله چه جمات د عام مونځ ګزارو نه خالی وی، نو د غه وخت ذِکر، یا په زوره تلاوت کولو کښې څه باک نشته ـ

له دے نه دا هم معلومه شوه، چه کوم وخت خلق په مانځه ذکر وغیرة کښې مشغول

(۱) اذکوره صحیح بخاری ج ۱ ، ص :

دی۔ په جماعت کښې دَ خپل ځان دَ پاره سوال کول، یا دَ څهٔ دینی کار دَ پاره چنده جمع کول هم منع دی۔

۳۔ دا مسئله معلومه شوه، چه د جماعت د ورانۍ چه څومره صورتونه دی، هغه ټول حرام دی۔ په دے کښې، لکه چه څهٔ رنګ په ظاهره دَ جماعت ورانول داخل دی، هُم دغه رنګ هغه اسباب پیدا کول هم داخل دی چه د هغے دَ وجے نه جماعت ورانیږی او دَ جماعت ورانیدل دا هُم دی چه هلته مونځ ګذار د مانځهٔ د پاره راشی۔ یا کم شی۔

ځکه چه دَ جماعت آبادی، دَ جماعت د تعمیر او نقش نګار کول نهٔ دی بلکه په دے کښې دَ الله پاک ذِکر کول دی۔ لهٰذا دے وجے دَ قرآن شریف دَ یو بل ځائے ارشاد دے۔

إِنَّمَا يَعْمُرُ مَسَاجِدَ اللَّهِ مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَأَقَامَ الصَّلَاةَ وَآتَى الزَّكَاةَ وَلَمْ يَخْشَ إِلَّا اللَّهَ — (اصل کښې د جماعت آبادول هغه خلق کوی چه په الله تعالیٰ او دَ قیامت په ورځ ئے ایمان وی او مونځونه کوی او زکوٰتونه ورکوی او د الله تعالیٰ نه سوا د بل چانه نهٔ ویریږی)۔

د هغه وجه ده چه په یو حدیث کښې نبی صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی، چه قیامت ته نزدے وخت کښې به د مسلمانانو جماتونه په ظاهر کښے ډیر آباد، بنا شُته وی لیکن په حقیقت کښې به هغه وران وی۔ په دے وجه چه په هغوی کښې به مونځ ګذار کَم وی۔

دَ حضرت علی کرم الله وجهه ارشاد دے، چه د شرافت او انسانیت شپږ کارونه دی۔ درے په کور او درے په سفر کښې، دکور درے دا دی۔ دَ قرآن تلاوت کول جماتونه آبادول، او دَ دا سے دوستانو ډله جوړول، چه دَ الله پاک او دَ دین په کارونو کښې امداد کوی۔ او دَ سفر درے کارونه دا دی۔ خپله توښه په غریبو ملګرو لګول۔ په ښهٔ اخلاقو سره دَ بل سره معامله کول او دَ سفر د ملګرو سره د خوشحالئ او دَ خوش طبعئ طرزِ عمل لرل دی۔ په دے شرط چه دا خوش طبعی دَ ګناه حد ته اُنهٔ رسی۔

دَ حضرت علی کرم الله وجهه دَ جمات د آبادولو نه مطلب دا دے، چه جمات کښې په خشوع او خضوع سره حاضری ورکړے شی، او په جمات کښې ذِکر، تلاوت اُوکړے شی۔

نو اوس دَ دے په مقابله کښے دَجماعت ورانول دا شو چه هلته مونځ کوُونکی پاتے نشی. یا کم شی، یا داسے اسباب را پیدا شی چه د هغے نه په خشوع او خضوع کښے نقصان راشی.

او کۀ چرے دَ دے آیت شان نزول دَ حدیبیۀ واقعه او دَ مشرکانو دَ مکے مسلمانانو له دَ مَسجد حرام نه منع کول شی، نو دَ دے آیت نه دا هم په ډاګه شوه، چه دَ جماتونو ورانول، یواځے دا نۀ دی، چه جماعت ټوټی ټوټی کړے شی، بلکه جماتونو چه دَ څۀ غرض دَ پاره جوړ کړے شوی دی یعنی مونځ او دَ الله پاك ذکر، هغه ختم کړے شی، یا کم شی، نو دے ته دَ جماتونو ورانول وئیلے شی۔

په دویم آیت کښے نبی صلی الله علیه وسلم او صحابه کرامو ته تسلی ورکړے شوے ده چه دَ مکے مشرکانو، کۀ چرے تاسو دَ مکے او بیت الله نه په هجرت کولو مجبوره کړی یئ او په مدینه کښے دَ شپاړس اُولس میاشتو پورے تاسو ته حکم اوکړے شو چه د بیت المقدس په طرف مونځ کوئ، د دے کښے ستاسو څۀ نقصان نشته، او نۀ تاسو دَ پاره دا، د څۀ غمژن کیدو وجه کرځیدے شی، ځکه چه دَ الله پاك ذات په یو خاص طرف کښے نۀ دے.

هغه هر ځائے کښے دے نو په دے وجه مشرق او مغرب یو شان دی، کعبه که ه مانځۀ قبله شی، یا بیت المقدس په دے دواړو کښے څۀ خپل ذاتی خاصیت نشته، بلکه دَ الله پاك دحکم د تعمیل په دواړو ځایونو کښے د غوره والی سبب او وجه ده۔

نو چه کوم وخت دَ کعبے په طرف، دمځ کولو حکم وو، نو په کعبه کښے غوره والے وو، او کله چه بیت المقدس ته دمخ کولو حکم اوکړے شو، نو په ده کُښے غوره والے دے۔ ته خفه مۀ شئ۔ دَ الله پاك توجه په دواړو حالتونو کښے یو شان ده په دے شرط چه بنده د هغه دحکم تعمیل کوی۔

د څو میاشتو دَ پاره چه بیت المقدس ته دمخ کولو حکم اُوکړے شو، نو عملاً، او نبی علیه الصّلوٰة والسّلام قولاً دا خبره واضحه کړه چه یو خاص ځائے یا طرف په قبله مقررکیدلو کښے دا وجه نۀ ده، چه معاذالله، الله تعالیٰ په دے ځائے یا طرف کښے ډیر دے، او په بل ځائے کښے نۀ دے۔ بلکه الله پاك په هر ځائے او هر طرف کښے په یو شان توجه کولو سره موجود دے۔ یو خاص طرف، قبله مقررکول، نورو حکمتونو او فائدو دَ پاره دی۔ ځکه چه هرکله دالله پاك توجه یو خاص ځائے او طرف پورے تړلے نۀ ده، نو اوس د عمل دوه صورتونه

کیدے شي ـ یو دا چه هر یو سړی ته دا اختیار ورکړے شي، چه کوم طرف ته ئے خوښه شي په مانځهٔ کښې دِ هغه طرف ته مخ کوی ـ او دویم دا، چه دَ ټولو دَپاره څهٔ خاص طرف مقرر کړے شي ـ څرګنده خبره ده چه په اوّلنۍ صُورت کښې، دا فتراق او انتشار منظر ښکاری ـ او په دویم صورت کښې دا تحاد اتفاق نظاره په نظر راځي ـ نو دَدے حکمتونو په وجه د ټول عالَم دَپاره هُم یو ځائے او څیز قبله جوړول زیات مناسب دی ـ او س هغه کهٔ بیت المقدس وی او کهٔ کعبه دواړه مُقَدَّس او مُبارك ځایُونه دی ـ د هر قوم او دَ هرے زمانے مناسب، دَ الله پاك د طرف نه حکمونه راځی ـ تر یوے زمانے پورے، بیت المقدس قبله جوړه شوه ـ بیا د نبي صلی الله علیه وسلم او د صحابه کرامو، د زړهٔ د خواهش مطابق دا حکم منسوُخ شو، کعبه د نیا دَپاره قبله جوړه شوه او ارشاد او شو:

۳ قَدْ نَرٰی تَقَلُّبَ وَجْهِكَ فِي السَّمَآءِ فَلَنُوَلِّيَنَّكَ قِبْلَةً تَرْضٰهَا فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ؕ وَحَيْثُ مَا كُنْتُمْ فَوَلُّوْا وُجُوْهَكُمْ شَطْرَهٗ ؕ

کعبے ته د قبله جوړیدو د زړهٔ د خواهش په وجه د آسمان په طرف ستاسو مخ یو دم ته کول موتږه دیو، چه شاید فرښته به حکم راوړی ـ نو مُونږ به تا دَپاره مونږه تا د قبلے په طرف متوجه کوو، کومه چه ته غواړے، نو په دَے وجه، دا اوس نه خپل مخ په مانځهٔ کښے د مسجد حرام په طرف کوه ـ او دا حکم څهٔ ستا دَپاره خاص نهٔ دے، بلکه د ټول امت د پاره دا حکم دے چه تاسو کوم ځائے چه یئ تر دے کهٔ بیت المقدس کښے دَ یئ خو مانځهٔ کښے خپل مخ د مسجد حرام په طرف کوئ ـ

مطلب دا، چه آیت، لِلّٰهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ، سره دَ قبلے په طرف دَ مخ کولو مکمل حقیقت واضح کړے شو، چه دے نه غرض، معاذ الله دَ بیت الله یا د بیت المقدس عبادت کول نهٔ دی او نهٔ دَ دواړو ځایونو سره دَ الله پاك ذات خاص دے، بلکه د هغهٔ ذات په ټول عالَم باندے احاطه کوونکے دے ـ او د هر طرف نه د هغهٔ توجه یو شان ده، بیا چه د یو خاص طرف او ځائے تخصیص کیږی، په دے کښے نور حکمتونه دی ـ

دَ دے آیت د مضمون واضح کولو دَپاره، شاید دَ نبي صلی الله علیه وسلم او د صحابه کرامو دَ هجرت په اوّلنیو ورځو کښے، شپاړس او وولس میا شتو پورے دَ بیت المقدس په طرف دَ مونځ کولو په حکم کښے عملی طور سره دا او ښودلے شوه، چه د الله پاك توجه په هر طرف کښے ده او په نفلو کښے دا حکم همیشه دَپاره جاری پاتے شو ـ هغه دا سے کهٔ په سفر کښے یو سړے په څه څیز

مثلاً په اوښ، آس وغیره سورو ی لو هغه ته اجازت دے چه په سورلئ باندے سور په اشارے سره د نفلی مونځ ادکړی۔ او دهٔ دپاره دکعبے په طرف مخ کول هم ضروری نهٔ دی۔ په کوم طرف چه ددهٔ سورلئ ځیٔ، هغه طرف ته مخ کول کافی دی۔

بعضے مفسرینو آیت: فَاَیْنَمَا تُوَلُّوْا فَثَمَّ وَجْهُ اللّٰهِ، دَ نفلی مانځهٔ دپاره حکم کرځولے دے۔ لیکن دا یاد ساتل پکار دی چه دا حکم صرف په هغه سورلو کښے دے، چه په هغوئ باندے دَسورلئ په وخت کښے دَ قبلے په طرف مخ کول کران وی، او په کوم سورلو کښے چه سورته دَ قبلے په طرف مخ کول کران نهٔ وی لکه اورګاډے، دا اولوجهاز، هوائی جهاز، نو دَ دوئ هغه حکم دے کوم چه په کور کښے د قبلے د طرف حکم دے۔ هغه دا که نفلی مونځ په دوئ کښے کول وی، نو قبلے ته به مخ کوی البته دومره خبره ده، که د مانځهٔ په دوران کښے، دَ ریل یا دجهاز مخ واوړی او د مونځ ګذار په دس کښے نهٔ وی چه هغه دَ قبلے په طرف واوړی، نو دے دِ په دغه حالت کښے مونځ پوره کړی۔

او هم دغه شان که مونځ ګذار ته د قبلے طرف معلوم نهٔ وی او د شپے دَ تیرے وغیره په وجه طرفونه معلومول هم کران وی۔ او څوك بنودونکے هم نهٔ وی نو دلته هم د غه حکم دے چه هغه دِ خپله اندازه اُلګوی او چه کوم طرف ئے متعین کړو نو دغه طرف ددهٔ قبله شوه اوکهٔ چرے د مانځهٔ کولو نه روستو، دهٔ ته دا ثابته شوه چه دهٔ په غلط طرف مونځ کړے دے، بیا هم مونځ ئے درست دے۔ دُوباره دَ مونځ کولو ضرورت نشته۔

وَقَالُوا اتَّخَذَ اللّٰهُ وَلَدًا ۙ سُبْحٰنَهٗ ؕ بَلْ لَّهٗ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَ

او وائی چه الله لری اولاد، هغه خود تولو خبرو نه پاك دے بلکه دَ دهٔ دی چه څهٔ دی په آسمانونو او

الْاَرْضِ ؕ كُلٌّ لَّهٗ قٰنِتُوْنَ ﴿۱۱۶﴾ بَدِیْعُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ وَاِذَا

زمکه کښے ټول ددهٔ تابعدار دی نوے پیدا کوونکے دے اسمان او زمکے لره او کله چه

قَضٰۤی اَمْرًا فَاِنَّمَا یَقُوْلُ لَهٗ كُنْ فَیَكُوْنُ ﴿۱۱۷﴾

حکم کوی دَ څهٔ کار نو دا وائی هغه ته چه شه، هغه کیږی

لنډ تفسیر:۔ (بعضے یهودو به حضرت عُزیر علیه السّلام ته دخدائے ځوئے وئیلو۔

او نصاراؤ به حضرت عیسٰی علیه السّلام ته، او د عربو مشرکانو به ملائکو ته د خدائے زوئ وئیلے. لکه د دے خبر په مختلفو آیاتونو کښے ورکړے شوے دے. الله تعالیٰ د دے ونیا قباحت او باطل والے بیانوی چه) او دا خلق (په مختلفو تعبیرونو سره) وائی چه الله پاک اولاد لري، سبحان الله (څه بے معنیٰ خبره ده) بلکه (ددهٔ خو اولاد کیدل عقلاً ممکن نهٔ دی، ځکه دا به کیدل له دوو حالتونو خالی نهٔ دی، هغه دا، چه دا اولاد به ددهٔ د جنسه نهٔ وی او یا به ددهٔ د جنسه وی. که چرے د دهٔ د جنسه نهٔ وی، نو بیا دا عیب دے چه اولاد ئے له دهٔ د جنسه نهٔ دے. او الله پاک خود عیب نه پاک دے، عقلاً هم لکه چه دا منلے شوے خبره ده او نقلاً هم لکه چه د سبحانه معنیٰ دا ده. او که چرے ددهٔ د جنسه وی، نو له دے وجے دا خبره باطله ده چه د الله تعالیٰ هیڅوک هم جنس نشته. دا ځکه چه کوم د کمال صفات د الله پاک ذات د پاره دی، هغه تول الله تعالیٰ سره خاص دی او د الله تعالیٰ نه ماسوا په بل چا کښے نشته. او د لازم د نفی نه د ملزوم نفی را ځی. نو په دے وجه د غیر الله ذات به واجب نهٔ وی. او وجوب خو عین حقیقت یا لازم د حقیقت دے. نو یو غیر الله، د الله پاک سره په حقیقت کښے شریک نهٔ شو. نو په دے وجه هم جنس کیدل باطل شو. او س د کمال د صفتونو د الله تعالیٰ ذات پورے د خاص کیدلو د پاره د دلیلونه ذکر کیږی اول دا چه) خاص د الله پاک ملکیت دے چه څهٔ هم په آسمانونو او زمکه کښے (موجودات) دی (او دویم دا، چه دا د ملکیت کیدلو سره) تول د هغهٔ محکوم (هم) دی (په دے معنیٰ چه د هغهٔ د قدرت تصرفات، لکه وژل، سوزول وغیره څوک بند ولے نهٔ شی. اګر چه احکامو شرعیه کښے که څوک تال متهول اوکړی. او دریم دا چه الله پاک) ایجاد کوونکے (هم) دے د آسمانونو او د زمکے او (او څلورم دا چه د دے ایجاد قدرت څهٔ دا سے لوئے او عجیبه دے چه) د څهٔ کار (مثلاً پیدا کول وی) پوره کول غواړی نو بس (دومره خبره ده چه) هغه ته (دومره) وائی چه شه هغه (دغه شان) کیږی. (هغه ته د څهٔ سامان، اسبابو، کاریګرو او مددګارانو ضرورت نه پیښیږی. او دا څلور واړه کارونه، د الله پاک نه ماسوا، په بل چا کښے نشته. او دا خبرے د خلقو هم منلے کوم چه د الله پاک د پاره د اولاد کیدلو دعوے کولے. نو په دے وجه دلیل تام او ثابت شو)۔

## فائدے :-

۱- په خاص خاص کارونو ملائک مُقرَّر دي لکه باران، رِزق وغیره شو، او هم دَغه رنګ دَ اسبابو، او مادو نه کار آخستل، دا ټول دَ الله پاك په خپله حکمت بانديِ اډانړه دي۔ دے دپاره نهٔ دي، چه خلق دَ غه اسباب او مواد، حاجت روا اوګڼړي او دَ دوئ دَ مَدد طلب کار شي۔

۲- بیضاوي وئیلے دي، چه پړو مبو شریعتونو کښې الله تعالیٰ ته دَ اولنی سبب کیدو په وجه پلار به وئیلے کیدے شو۔ جاهلو خلقو له دے نه دَ بچو دکیدو مطلب واغستو۔ نو په دے وجه دا عقیده لرل، یا دا سے وئیل کُفر اُوګرځولے شو۔ او اُوس د فساد ختمولو دَ مصلحت په بنا، دَ دا سے الفاظو وئیل دَ الله پاك په باره کښې بالکل منع کړے شو۔

وَقَالَ الَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ لَوْلَا يُكَلِّمُنَا اللّٰهُ اَوْ تَاْتِيْنَآ اٰيَةٌ ؕ كَذٰلِكَ

او وائي هغه خلق چه څهٔ علم ئے نشته ولے خبرې نهٔ کوي مونږ سره الله یا ولے نهٔ راځي مونږ ته څهٔ آیت دغه رنګ

قَالَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ مِّثْلَ قَوْلِهِمْ ؕ تَشَابَهَتْ قُلُوْبُهُمْ ؕ

وئیلي وُو هغه خلقو چه له دوئ نه وړاندې وو، دَ دوئ په شان خبره، یو دي زړونه دَ دوئ۔

قَدْ بَيَّنَّا الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يُّوْقِنُوْنَ ﴿۱۱۸﴾

بے شکه مونږ ه بیان کړي دي نښې د هغه خلقو دپاره چه یقین کوي۔

**لنډ تفسیر :-** او (بعضے) جاهل (یهود او نصاریٰ او مُشرکان دَ رسول صلی الله علیه وسلم په مقابله کښې) دا سے وائي چه (پخپله) الله تعالیٰ مونږ سره خبرے ولے نهٔ کوي (خواه دَ فرښتو نه بغیر، لکه چه دے پخپله د فرښتو سره کوي، یا دَ فرښتو په ذریعه لکه چه پیغمبرانو سره دَ وحي په طور کوي او په دے خبرو خودِ یا مونږ ته پخپله حکمونه اُښائي چه بیا زمونږه بل پیغمبر ته ضرورت پاتے نهٔ شي یا کم ازکم دِ دومره اُ وائي چه محمد صلی الله علیه وسلم زمونږه پیغمبر دے، نو مونږ به دَ دهٔ رسالت اُومنو او تابعداري به ئے شروع کړو) یا (خبره نهٔ کوي نو) دِ مونږه ته بل دلیل (د رسالت د ثابتولو دپاره) راشي (الله تعالیٰ اوفرمائیل دا خبره جاهلانه رسم کیدل اوښود له چه) چه د غه رنګ دا (جاهله) خلق هم وائي، څهٔ رنګ

چه له دوئ نه مخکښے خلقو ویلے د دوئ پشان ( جاهلانه ) خبره ( نو معلومه شوه چه ده خبرے څۀ قیمت نشته او نۀ دا څۀ باریک بینئ بانـدې بنا ده - هسے دوئ خبرے بادوی، او بیائے ددوئ د وینا سبب بیان کړو چه ) د دے ټولو ( وړاندې ورستو جاهلانو ) زړونه ( په کم فهمئ او ناپوهئ ) کښے د یو بل سره مشابه دی ( نو له دے وجے د ټولو دا یوه خبره را اوځئ - او بیا په دریم ځائے کښے د دے وینا جواب کوی - او هر کله د دے وینا ډیر جُزء او حصه صرف حماقت او بے وقوفی وه، چه خپل ځان دَ ملائکو او پیغمبرانو برابر جوړول غواړی چه دا بالکل باطله خبره ده او د دے بُطلان بالکل ښکاره دے - نو په دے وجه دے احمقانه خبرے ته ئے بالکل څۀ اهمیت ورنکړو او صرف د دے خبرے د دریم جُزء جواب کوی چه تاسو خو، دیو دلیل راوړلو خبره کوئ، موږ خو ډیر دلیلونه ( د محمد صلی الله علیه وسلم د رسالت ثابتولو د پاره ) صفا صفا بیان کړی دی ( ریکن دا ) د هغو خلقو د پاره ( فائده مند او کافی کیږی شی ) چه یقین ( او اطمینان ) حاصلول غواړی ( او هر کله چه د اعتراض کوونکو مقصد او غرض صرف ضد کول دی او د حق طلب د دوئ غرض نۀ دے، نو دا ے خلقو ته د تسلئ ورکولو څوک ذمه دار نۀ شی ) فائده :- په یهودو او نصاراؤ کښے چه هغه اهل کتاب وو، د علم خاوندان هم وو، نو بیا دوئ ته ئے جاهلان ولے اُوئیل - دا له دے وجے چه هر کله دوئ د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په رسالت بانـدې د قطعی او یقینی دلیلو نو نه انکار کولو او دا ئے نۀ منل نو بیا دا د جهالت نه بدل څیز نۀ وو بلکه جهالت وو -

إِنَّآ أَرۡسَلۡنَٰكَ بِٱلۡحَقِّ بَشِيرٗا وَنَذِيرٗاۖ وَلَا تُسۡـَٔلُ عَنۡ أَصۡحَٰبِ

بے شکه موږه ته لیږلے ئے په رښتیا دین سره، زیرے ورکوونکے او ویروونکے او نۀ تا پښتنه نشته

ٱلۡجَحِيمِ ﴿١١٩﴾

د دوزخ کښے د اوسیدونکو

لنډ تفسیر :- ( هر کله چه د نبی علیه الصلاة والسلام د رحمت للعالمین د شان دا تقاضا وه، چه نبی علیه الصلوٰة والسلام به د دوئ د جهالت او عناد په وجه او د ایمان نۀ

راؤړلو په وجه خفه کیدو. نو الله دده دَ تسلئ دَپاره ارشاد کوی چه اے پیغمبره! (مونږ تا ته یو ریښتونے دین درکړو (خلقو ته مو) اُورلیږلے چه (منونکو ته) زیرے آورَوَه او (نامنونکی دَ سزا نه) ویرَوَه او تا نه به دوزخ ته د تللونکو په باره کښے تپوس نه کیږی (چه دے خلقو ایمان ولے قبول نکړو او ولے دوزخ ته لاړل. تاله د چا د منلو او نه منلو څهٔ غم کول پکار نهٔ دے)

وَلَنْ تَرْضٰى عَنْكَ الْيَهُوْدُ وَلَا النَّصٰرٰى حَتّٰى تَتَّبِعَ مِلَّتَهُمْ

او هرگز به راضی نهٔ شی له تا یهود او نه نصارٰی ترڅو چه ته تابعداره نشے دَدوی دَ دین

قُلْ اِنَّ هُدَى اللّٰهِ هُوَ الْهُدٰى ۗ وَلَئِنِ اتَّبَعْتَ اَهْوَآءَهُمْ بَعْدَ

نو اُوایه کومه لار چه الله ښائی هم هغه سمه لار ده او که چرے بالفرض ته تابعداری اوکړے دَ دوی دَ خواهشاتو

الَّذِىْ جَآءَكَ مِنَ الْعِلْمِ ۙ مَا لَكَ مِنَ اللّٰهِ مِنْ وَّلِىٍّ وَّلَا نَصِيْرٍ ﴿۱۲۰﴾

پس دَ هغه علم نه چه تا ته در رسیدلے دے نو تا دَ پاره نشته دا الله دَ لاس نه حمایت کوونکے او نه مددګار

**لنډ تفسیر:-** او کله به خوشحاله نهٔ شی له تانه دا یهود او نهٔ دا نصارٰی، ترڅو چه تهٔ (خدائے دِ نکړی) دَ دوی دَ مذهب (بالکل) تابعدار نهٔ شے (او دا سے کیدل خو ممکن نهٔ دی نو دَ دوی راضی کول هم ممکن نهٔ دی او که چرے کله دا سے خبره له دوی دَ ژبے یا دَ حالت نه اُخیژی نو) ته (صفا) اُوایه چه (روره) حقیقت کښے د هدایت خو هغه لار ده چه کومه الله پاک (د هدایت لاره) ښودلے ده (او دَ دلائلو نه دا ثابته شوے ده، چه دا سے لاره یواځے اسلام دے، نو د هدایت لاره هم اسلام شو) او (دا خبره چه تا سو نعوذ بالله دَ دوی د مذهب تابعداری کوونکی شئ - له دے وجے ممکنه نهٔ ده، چه له دے یو بل محال لازمیږی، څکه) که چرے تا سو دَ دوی د غلط خیالونو تابعداری کول شروع کړئ (چه هغه دوئ خپل مذهب ګڼړی او هغه څهٔ د تحریف په وجه او څهٔ د منسوخ کیدلو په وجه اوس یواځے د څو غلطو خیالونو مجموعه جوړه شوے ده او بیا تابعداری کول هم په کومو حالاتو کښے چه) علم (قطعی د وحی په وجه) د راتللو نه پس خو (په دا سے حالت کښے خو) ستا د خدائے نه د بچ کولو به نهٔ یاروی او نهٔ مددګار (بلکه دَ الله د قهر په پنجه کښے ګرفتاره کیدل لازمی دی)

اودا یې لا زمیدل خو محال دی، ځکه چه قطعی دیلونو سره ثابته ده چه ددوی هیڅ کله هم دا یهودی او نصاری نه راضي کیږي، تر څو چه دوی ته تابعداري ونه کړی. (ژباړه تقریبي)

اودا ے لازمیدل خو محال دی، ځکه چه قطعی دیلونو سره ثابته ده چه لدتا همیشه دپاره الله راضی دے، نو د خدائے خفه کیدل لدتا نه محال شو- او دَ دغ تابعداری نه دا لازمیدل. نو له دے وجے د دغه تابعداری محاله شوه- او بغیر دَ تابعداری کولو نه دَ دوی رضی کیدل ممکن نهٔ دی، نو دَ دوی سره خیز امید کولو دپاره څهٔ ځائے پاتے نه شو- نو له دے وجے د دے امید نه زړهٔ خالی کړه)

اَلَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يَتْلُوْنَهٗ حَقَّ تِلَاوَتِهٖ ۭ اُولٰۗىِٕكَ

هغه خلق چه هغوئ ته ورکړے دے مونږ کتاب هغوئ دا لولی چه کوم حق دے دَ لوستلو ، او دوئ

يُؤْمِنُوْنَ بِهٖ ۭ وَمَنْ يَّكْفُرْ بِهٖ فَاُولٰۗىِٕكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ﴿۱۲۱﴾

هم یقین کوی او چه څوک منکر له دهٔ نه دی نو دغه خلق نقصان موندونکی دی

**لنډ تفسير:-** ( له دے آیت نه وړاندے آیت کښے د معاندینو اهل کتابو او د اسلام د مخالفت کوونکو بیان وو، چه دوئ ایمان نهٔ راوړی او په دے آیت کښے د قرآن کریم د عادت له مخه، دَ انصاف پسند و اهلِ کتابو بیان دے، چه هغوئ د حق د څرګندیدو نه روستو، د نبي عليه الصَّلٰوة والسَّلام تصدیق اُو کړو او دَ ده تابعداری ئے غوره کړه، نو الله پاک فرمائی ) کوم خلقو ته چه مونږه کتاب (تورات او انجیل) ورکړے دے (په دے شرط چه) هغوئ دَ دے تلاوت (هغه شان) کوی چه څهٔ رنګ د تلاوت حق دے (چه خپل علمی قوت د هغ د مضامینو په فهم کښے صرف کوی او خپل قوت ارادی، د حق په اتباع لګوی) دا سے خلق (البته شاید) دے (حق دین او دَ وحی په علم) ایمان راوړی او څوک چه ئے نهٔ منی (دَ چا نقصان به اوکړی) بلکه به دا سے خلق نقصان اُومومی (د ایمان چه کوم فائدے دی د هغ نه به محرومه شی)

يٰبَنِىْٓ اِسْرَاۗءِيْلَ اذْكُرُوْا نِعْمَتِىَ الَّتِىْٓ اَنْعَمْتُ عَلَيْكُمْ وَ

اے بنی اسرائیلو! یاد کړئ احسان زمونږه چه مونږ په تاسو او کړو او هغه چه

اَنِّىْ فَضَّلْتُكُمْ عَلَى الْعٰلَمِيْنَ ﴿۱۲۲﴾ وَاتَّقُوْا يَوْمًا لَّا تَجْزِىْ نَفْسٌ

مونږه تاسو له فضیلت درکړو دَ دنیا په خلقو بانډ او اُویریږئ دَ هغ ورځے نه چه پکار به رانشی یو کس

عَنْ نَّفْسٍ شَيْئًا وَّلَا يُقْبَلُ مِنْهَا عَدْلٌ وَّلَا تَنْفَعُهَا شَفَاعَةٌ وَّ

د بل چا بدرغوندِ هم او نهٔ به قبول کړے شی د دهٔ د طرف نه بدله او نفع به ورنکړی دهٔ ته سفارش او

لَا هُمْ يُنْصَرُوْنَ ﴿۱۲۳﴾

نهٔ به دَ دوئ مدد اوکړے شی

لنډ تفسير :- له دے آيت نه مخکښے آيت پورے دَ بنی اسرائيلو په باره کښے چه دکومو خاصو مضامينو بيانول مقصد وو، هغه ختم شو۔ اوس دَ مضامينو ابتدائی تمهيد چه هغه دَ دے خاصو مضامينو اجمال وو، بيا دوباره په دے غرض بيانوی چه دے تکرار سره داذهن کښے کښينی او په دغه تمهيد کښے دَ خاص او عام انعامونو په يادګيرنے سره ترغيب ورکول وو۔ او د قيامت د عذاب نه ويرول وو۔ او دا د بلاغت دا على درجے طرز دے چه دَ مُفصّلے او اوږدے خبرے کولو نه وړاندے په يو مجمل عنوان سره دَ دے خبرے دا سے قسم بيان اوکړے شی، چه دَ هغې قدر مشترك دَ دے مُفصّلے خبرے په تفصيلاتو باندے په پوهيدلو کښے مدداوکړی۔ او بيا په آخر کښے دَ دغه تفصيل دَ خلاصے او نتيجے په طور دَ دغه مجمل عنوان راوړل اوکړے شی۔ تو د آيت يٰبَنِیٓ اِسْرَآءِيْلَ الخ دوباره راوړل هم په دے طور او غرض شوی دی)

اے دَ يعقوب (عليه السلام) اولادہ! زما هغه نعمتونه يادکړئ، چه هغه ما په تاسو (وخت په وخت) کړی دی او هغه (هم يادکړئ) چه ما تاسو ته په ډيرو خلقو باندے (په ډيرو خبرو کښے) اوچت والے درکړے دے او تاسو اوويريږئ دَ دا سے ورځے نه (يعنی دَ قيامت نه) چه په هغې کښے به نهٔ يو سړے دَ چا د طرف نه نهٔ څهٔ مطالبه (د واجبی حق) اداکونکے بيا مومندے شی او نهٔ د چا د طرف نه څهٔ بدله (دَ واجبی حق په ځائے) قبوله کړے شی او نهٔ د چا سفارش (کله چه ايمان ئے نهٔ وی) فائده مند به شی او نه دا خلق به څوك (په زور) بچ کړے شی۔

وَاِذِ ابْتَلٰٓى اِبْرٰهٖمَ رَبُّهٗ بِكَلِمٰتٍ فَاَتَمَّهُنَّ ۭ قَالَ اِنِّىْ جَاعِلُكَ

او کله چه ازميښت اوکړو په ابراهيمؑ د هغهٔ رب په څو خبرو کښے نو بيا هغه دا خبرے پوره کړے نو وے فرمايل څهٔ تا جوړه

لِلنَّاسِ إِمَامًا ؕ قَالَ وَمِنْ ذُرِّيَّتِي ؕ قَالَ لَا يَنَالُ عَهْدِي الظّٰلِمِينَ ﴿۱۲۴﴾

د ټولو خلقو پیشوا۔ هغه اوئیل اوزما اولاد نه هم الله اُوفرمایئیل اُبه نهٔ رسی زما عهد ظالمانو ته

**لنډ تفسیر:-** اوکوم وخت امتحان واغسته دَحضرت ابراهیمؑ د هغهٔ پروردګار په څو خبرو کښې (د خپلو حکمونو نه) او دا دهٔ په پوره طور سره اوکړے (د غه وخت) الله تعالیٰ (دهٔ ته) اُوفرمایئیل چه څهٔ تا (دَدے په جزا کښې، د نبوت په ورکولو یا د اُمت په زیاتوالي سره) دَخلقو پیشوا جوړومه۔ دهٔ عرض اوکړو اوزما اولاد کښې هم څهٔ کسانو ته (نبوت ورکړئ) ارشاد اوشو چه (ستاسوال منظور دے لیکن دا قانون واورئ چه) زما (دا) عهده (دَنبوت دَقانون) خلاف ورزی کوونکو ته به نهٔ حاصلیږی۔

(نو دا سے خلقو ته خو صفا جواب دے۔ البته په اطاعت کوونکو کښې به بعضو ته نبوت ورکړے شی)

**علوم او مسائل:-**

په دے آیت کښې الله تعالیٰ دا بیان کوی چه الله تعالیٰ دَحضرت ابراهیم علیه السّلام مختلف امتحانونه واغستل او حضرت ابراهیم علیه السّلام په دے امتحانونو کښې کامیاب شو۔ لو په دے کامیابئ باندې الله تعالیٰ دخلقو د پیشوا کرځو انعام ورکړو۔ بیا حضرت ابراهیم علیه السّلام دَشفقت په وجه د خپل اولاد دَپاره دَدے انعام غوښتنه اوکړه، نو دَدے انعام د حاصلیدو دپاره الله تعالیٰ دَیو ے ضابطے ارشاد اوکړو، چه په هغې کښې د حضرت ابراهیم علیه السّلام د درخواست دَمنظورولو دپاره یو شرط اُلګولے شو، چه دا انعام به ستا اولاد ته هم ورکیدے شی لیکن کوم خلق چه ستا په اولاد کښې نافرمانه او ظالمان وی نو هغوئ ته به دا انعام نهٔ حاصلیږی۔

**دَحضرت خلیل الله لوے امتحانونه او دَدے امتحانو نو مضمونونه**

د لته یو څو خبرے د غور او فکر کولو وړدی:

اول دا چه امتحان دَدے دپاره اغستے شی چه په دے سره دَیو سړی قابلیت معلوم کړے شی او الله تعالیٰ خو علیم او خبیر دے، د هر څهٔ ورته پته ده۔ دَچا یو حال او کمال له ده نه پټ نهٔ دے۔ نو بیا دَدے امتحان اغستلو غرض څهٔ وو؟

دویم دا چه دا امتحان په کوم کوم څیز کښې واغستے شو؟

دریم دا، چه کامیابی په څهٔ شکل او د څهٔ قسم وه؟

څلورم دا، چه انعام څهٔ ورکړے شو او دا انعام د څهٔ حیثیت وو؟

پنځمه دا، چه دده انعام د پاره چه کومه ضابطه مقرر کړے شوه دَ هغې څه تفصیل او وضاحت دے؟

دَ دے پنځو سوالونو جواب په تفصیل سره واورئ۔

دَ ومبئ خبره، چه دَ امتحان نه مقصد څه وو؟ دَ دے حل، د قرآن کریم یوے کلمے "رَبُّهٗ" کړے دے۔ په دے کلمه کښے دا دی چه امتحان اخستونکے پخپله الله تعالیٰ دے۔ او دهٔ داسماءِ حُسنیٰ نه د لته دَ رب په راوړلو کښے د ربوبیت شان ته اشاره ده۔ او دَ ربوبیت مطلب دا دے چه یو څیز رو رو، د کمال درجے ته رسول۔

مطلب دا شو چه دا براهیم علیه السلام دا امتحان، د څه جرم په سزا ورکولو کښے، یا د نامعلوم قابلیت د معلومولو د پاره نه وو۔ بلکه دَ دے منشا شانِ ربوبیت او تربیت وو، په دے آزمیښتونو سره د خپل خلیل تربیت کول وو، او درجو او مقاماتو ته ئے رَسَول غرض وو۔ بیا په دے جمله کښے مفعول مُقدّم او فاعل مُؤخر کړے شوے دے او داسے ارشاد دے:

وَاِذِ ابْتَلٰٓى اِبْرٰهٖمَ رَبُّهٗ۔ او په داسے کولو سره، دا براهیم علیه السلام د شان لوئے والے نور څرګند وَل دی۔

دویم سوال دا چه امتحان د څه څیزا غستے شوے وو؟ دَ دے متعلق خو، په قرآن شریف کښے صرف دَ "کَلِمٰتٍ" لفظ راغلے دے۔ او دَ دے لفظ په تفسیر او تشریح کښے د صحابه کرامو او تابعینو حضراتو مختلف اقوال دی۔ چا په احکامو الٰهیه کښے دَ لسو څیزونو ذکر کړے دے چه دس احکامو کښے امتحان اغستے شوے وو۔ او چا دیرش ښودلی دی او چا څه کم او زیات نور څیزونه ښودلی دی۔ لیکن دا خو حقیقت دے چه په دے کښے خو اختلاف نشته، چه دا څیزونه ټول د حضرت خلیل الله دَ امتحان مضامین وو۔ دا ابن جریر او ابن کثیر دغه رائے ده۔

اوس دا متحان دَ دغه مضامینو نه سوا هم څیزونه واورئ:۔

الله پاک ته دا منظوره وه، چه حضرت ابراهیم علیه السلام ته دَ خپلے دوستئ خاص انعام ورکړی نو له دے وجے دے ئے د سختو امتحانونو نه تیر کړو۔ ټول قوم حتّٰی چه خپل خاندان ئے ټول په بُت پرستئ کښے مبتلا وو۔ دَ دے ټولو د عقیدو او رسمونو نه، جُدا، یو دینِ حنیف پاك دهٔ ته الله تعالیٰ ورکړو او دَ دے دین دَ تبلیغ کولو او قوم دے دین ته دَ رابللو، دروند پیټے ئے په ابراهیم علیه السلام واچولو۔ ابراهیم علیه السلام بغیر د څه خوف

او خطرنه، قوم د الله پاک وحدهٗ لا شریك لهٗ طرف ته را اُبللو. د شرمناکې بُت پرستئ خرابئ، په مختلفو اندازونو کښې ئې ورته بیان کړے. او عملي طور سره ئې بتانو خلاف ئې جهاد اوکړو - ټول قوم دهٔ سره په جنګ کولو تیار شو. د وخت بادشاه نمرود، او دهغهٔ قوم دهٔ په اور کښې د غورځولو او ژوندے سوزولو اراده اوکړه. د الله دوست دخپل مولا د رضا دپاره په دے ټولو تکلیفونو باندې راضي شو او خپل ځان ئې په اور کښې د غورځولو دپاره وړاندې کړو - الله تعالیٰ خپل دوست په امتحان کښې چه کامیاب بیا موند نو اور ته ئې حکم اوکړو:
قُلْنَا يٰنَارُ كُوْنِىْ بَرْدًا وَّسَلٰمًا عَلٰىٓ اِبْرٰهِيْمَ ٥ (مونږه حکم اوکړو چه اے اوره ته په ابراهیمؑ باندې سوړ شه او د سلامتیا ذریعه شه)

کوم وخت چه دا د الله پاک حکم، د نمرود د اور متعلق راغے، نو دحکم الفاظ خو عام وو - دغهٔ خاص اور تعیین خو نهٔ وُو کړے شوے. نو په دے وجه په ټوله دنیا کښې چه چرته اور وو، په دے حکم الٰهي راتلو سره په خپل خپل ځائے کښې یخ شو او د نمرود اور هم، د دے د لے یوغړے وُو نو یخ شو.

په قرآن شریف کښې د "بَرْدًا" لفظ سره د "سَلٰمًا" زیاتوالے له دے وجې اوکړے شو چه د یو څیز یخ والے چه د اعتدال دحد نه واوړی، نو هغه هم د داورے په شان تکلیف ورکوونکے بلکه هلاکوونکے ګرځی. که چرے د "سَلٰمًا" لفظ ارشاد نهٔ وے شوے نو ممکن وه چه اور د داورے په شان به داسے یخ شوے وے، چه هغه به په خپل ځائے کښې یو عذاب جوړ شوے وے، لکه په جهنم کښې یو عذاب د زمهریر هم دے. چه هغه ډیر یخ والی عذاب دے.

او چه له دے امتحانه فارغ شو. دویم دا امتحان تر دا غلے شو، چه خپل اصلي وطن پریږده او شام ته هجرت اوکړه، نو حضرت ابراهیم علیه السلام، د الله پاک د رضا په شوق کښې قوم او وطن ئې هم پریښودل - او د اهل عیال سره ئې شام ته هجرت اوکړو.

او اوس ئې لا په شام کښې دومره درنګ نهٔ وو تیر کړے، چه حکم ورته اوشو چه بي بي هاجره رضی الله عنها او د تې ماشوم بچې حضرت اسماعیل علیه السلام دا خله اوله دے ځایه هم کوچ اوکړه - (ابن کثیر)

جبرئیل امین راغے. او دهٔ په ملګرتیا کښې ئې بي بي او بچې دا غستل او روان شو، په لاره

کښې به څرته چه ښځینې ځائے راغے، نو ابراهیم علیه السلام به اُفرمائیل چه دلته کښې مو پرېښوده. جبرئیل علیه السلام به ورته اُوے، چه دَدے ځائے حکم نهٔ دے شوے. دَپاتے کیدو ځائے لا، وړاندے دے. کله چه هغه اُوچ غرونه اوګرے شګے رااُرسیدلے چه هلته کښې رُستو څهٔ وخت دبیت الله تعمیر کول او دمکے دَکلی جوړول مقرر وو، نو په دغه ریګستان کښې ډیره کوز کړے شو. دَخدائے تعالیٰ دوست ابراهیم علیه السلام د خپل پروردګار په محبت کښې غرق په دے صفا میدان او اُوچ سور ځنګل کښې د خپلے بی بی او بچی سره دلته پاتے شو، لیکن دا امتحان په دے لا ختم نهٔ شو بلکه اوس حضرت ابراهیم علیه السلام ته حکم اوشو، چه بی بی او بچے دلته پرېږده او پخپله شام ته واپس شه، دَالله دوست دَحکم آورېدو سره، دحکم د تعمیل دَپاره پاسیده او شام ته روان شو. دحکم په تعمیل کښې ئے دومره قدرے ډیل نشو برداشت کولے، چه خپلے بی بی ته دومره قدر اُوائی چه ما ته هرکله دخدائے تعالیٰ حکم شوے دے، نو په دے وجه ځم راځم. حضرت هاجره رضی الله عنها، چه دے اُلیدو، چه ځی نو آوازونه ئے ورته اوکړو، لیکن دهٔ ورته جواب ورنکړو بیائے ورته آواز ورکړو او ورته ئے اُوے چه په دے اُوچ میدان کښې ته مونږ پرېږدے او پخپله چرته ځے؟ دَدے جواب ئے هم ورنکړو. لیکن دا بی بی هُم، دَالله پاک دَدوست بی بی وه، پوهه شوه، چه څهٔ چل خو دے او په وینا شوه، آیا تا ته دَالله پاک حکم شوے دے؟ نو دوی اُوے چه آو. حضرت هاجره علیها السلام ته چه کله معلومه شوه، چه دَالله پاک حکم ورته شوے دے نو په ډیر اطمینان ئے اُوویل چه ځئی. کوم مالک، چه تا ته دَتلو حکم کړے دے هغه به مونږ ضائع نکړی.

اوس حضرت هاجره خپل دَتی ماشوم سره په دے اوچ بیابان کښې وخت تیرَوُونکی شوه. دتندے زیات والی دا دَاوبو په تلاش باندې مجبُوره کړه. بچے ئے په ډاک میدان کښې پرېښودو دَصفا او مروه په غونډو باندې څو څو ځله اُوختله او راکوزه شوه، ددے دپاره چه چرته دَاُبو نښے نښانے په نظر راشی، یا څهٔ بنیادم ورته اُښکاری چه دَ هغهٔ څهٔ پته معلومه کړی او دَوه ځلو دمنډو نه رُوستو چه داوبو موندلو نه نااُمیده شوه او بچی تخته راغله نو دَ الله پاک رحمت نازل شو. جبرئیل علیه السلام راغے او په دے اوچ بیابان دَاوبو یوه چینه ئے رااُښکله، چه د هغے نوم نن زمزم دے. دَدغے اوبو په لیدلو سره، ځناور دلته کښې راغلهٔ

اودَ څناورو په ليدلو سره بنيادم هُم را غلل. او د غه شان د مکے د کلی د آباديدو انتظام اوشو. د ژوند د ضرورتونو څه آسانئ پيدا شوے.

د غه ماشوم چه د ۀ ته نن حضرت اسماعيلؑ و يلے شی د لته کښے لوئ شو او دَ کار د پار کولو قابل شو. حضرت ابراهيم عليه السّلام د الله پاک لهٔ طرفه دَ حکم په وجه د لته به کله کله راتللو. بی بی او بچے به ئے ليدلو. په د غه وخت کښے بيا الله تعالیٰ د خپل دوست نه دريم امتحان وا غستو، چه دے د غه بچے، کوم چه په ظاهری اسبابو کښے دَ پلار د شفقت او تربيت نه محروم وو او بے سرو سامانئ کښے لوئ شوے وو، ذبح کړے شی.

دَ قرآن کريم ارشاد دے:

فَلَمَّا بَلَغَ مَعَهُ السَّعْيَ قَالَ يَا بُنَيَّ إِنِّي أَرَىٰ فِي الْمَنَامِ أَنِّي أَذْبَحُكَ فَانْظُرْ مَاذَا تَرَىٰ ۚ قَالَ يَا أَبَتِ افْعَلْ مَا تُؤْمَرُ ۖ سَتَجِدُنِي إِنْ شَاءَ اللَّهُ مِنَ الصَّابِرِينَ ○

کله چه بچے دَ دے خبرے قابل شو، چه پلار سره کار روزګار او کړی نو ابراهيم عليه السّلام د ۀ ته او وے چه اے بچيه! څه خوب کښے داوينم چه زۀ تا ذبحه کوم، نو ګوره ستا څه خيال دے؟ نيک بخت بچے ورته عرض کوی چه يابا جانه! تاته چه کوم حکم درکړے شوے دے، هغه پوره کړه. تۀ به ما دَ دے حکم په تعميل انشاء الله ثابت قدم بيامومے.

لهٔ دے نه رُستو چه کومه واقعه د ۀ هغه هر مسلمان ته معلومه ده چه حضرت ابراهيم عليه السّلام، خپل بچے د منٰی بيابان ته بوتلو او د خپل طرف نه ئے د الله پاک حکم پوره کړو ليکن د لته کښے غرض او مقصد بچے ذبحه کول نهٔ وو بلکه دَ مُشفِق پلار امتحان اَخستل وو. دَ خوب دَ واقع په الفاظو د غور کولو نه معلومه ده، چه په دے خوب کښے دا ليدلے شوی نهٔ وو، چه بچے ئے ذبح کړے وو، بلکه د ذبح کولو کارئے ليدلے وو، چه هغه حضرت ابراهيم عليه السّلام او کړو. او دے عمل د خوب د وحی په ذريعه سره ښودلو کښے هم، شايد د غه حکمت او مصلحت وو، چه دَ خبرو په ذريعه دَ ذبح کولو حکم مقصود نهٔ وو. د غه د ۀ چه ارشاد او شو چه "قَدْ صَدَّقْتَ الرُّؤْيَا" (چه خوب کښے دِ څهٔ ليدلی وو تا هغه پوره کړهٔ) هر کله چه دے په دے کښے پُوره اوختو، نو الله تعالیٰ دَ جنّت نه دَ دے فِديه نازله کړه او د هغے د قربانی کولو ئے حکم ورکړو. او دا ابراهيمی سنّت، د راتلونکی دُنيا د پاره هميشه سنت جوړ کړے شو.

دا هغه سخت اوگران امتحانونه وو، چه په دے ابراهیم علیه السلام تیر شو- او دے سره دَ نورو ډیرو عملونو کول هم په ده باندې لازم کړے شو چه له هغې لس داسے دی چه دَ فطرت دَ خصلتونو په نوم یادیږی، او چه د هغوی تعلق دَ بدن د صفایئ او پاکئ سره دے.

او دا د فطرت خصلتونه د راتلونکو ټولو اُمتونو دپاره هم مُستقل حکمونه شو- نبی کریم صلی الله علیه وسلم خپل امت ته دَ دغ ټولو خصلتونو تاکید کړے دے.

او ابن کثیر د حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما، یو روایت دا هم نقل کړے دے، چه د ټول اسلام دیرش حصے دی، چه د هغے لس په سورت براءت کښے ذکر دی- او لس په سورت احزاب کښے، او لس په سورت مؤمنون کښے- حضرت ابراهیم علیه السلام د دے ټولو پوره حق ادا کړو- او په دے ټولو امتحانونو کښے کامیاب شو-

په سورت براءت کښے دَ مؤمنانو د صفتونو په بیان کښے دَ مسلمانانو د لسو خاصیتونو علامو او صفتونو بیان داسے شوے دے.

اَلتَّآئِبُوْنَ الْعٰبِدُوْنَ الْحٰمِدُوْنَ السَّآئِحُوْنَ الرّٰکِعُوْنَ السّٰجِدُوْنَ الْاٰمِرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَالنَّاهُوْنَ عَنِ الْمُنْکَرِ وَ الْحٰفِظُوْنَ لِحُدُوْدِ اللّٰهِ وَ بَشِّرِ الْمُؤْمِنِیْنَ ۝

هغوی داسے دی، چه توبه کوونکی، عبادت کوونکی حمد کوونکی، روزه لرونکی، د ښو خبرو ښودونکی او دَ بدو خبرو نه منع کوونکی، او دَ الله تعالیٰ دَ حدودو خیال لرونکی دی- او دا سے مؤمنانو ته زیرے واوروه-

او دَ سورتِ مؤمنون لس صفتونه دا دی:-

قَدْ اَفْلَحَ الْمُؤْمِنُوْنَ الَّذِیْنَ هُمْ فِیْ صَلَاتِهِمْ خٰشِعُوْنَ ۝ وَالَّذِیْنَ هُمْ عَنِ اللَّغْوِ مُعْرِضُوْنَ ۝ وَالَّذِیْنَ هُمْ لِلزَّکٰوةِ فٰعِلُوْنَ ۝ وَالَّذِیْنَ هُمْ لِفُرُوْجِهِمْ حٰفِظُوْنَ ۝ اِلَّا عَلٰۤی اَزْوَاجِهِمْ اَوْ مَا مَلَکَتْ

بے شکه، هغه مسلمانانو فلاح بیا مونده، چه کوم په خپل مانځه کښے زاری او خشوع کوونکی دی، او چه کوم دَ بے هوده خبرو نه په ډډه کیدونکی دی، او چه کوم خپل ځان پاک کوونکی دی، او چه کوم دَ خپل شرم ځایونو حفاظت کوونکی دی- ماسوا د خپلو بیبیانو یا د خپلو وینځو، ځکه چه په دوئ کښے په

أَيْمَانُهُمْ فَإِنَّهُمْ غَيْرُ مَلُومِينَ ٥ فَمَنِ ابْتَغَىٰ وَرَاءَ ذَٰلِكَ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْعَادُونَ ٥ وَالَّذِينَ هُمْ لِأَمَانَاتِهِمْ وَعَهْدِهِمْ رَاعُونَ ٥ وَالَّذِينَ هُمْ عَلَىٰ صَلَوَاتِهِمْ يُحَافِظُونَ ٥ أُولَٰئِكَ هُمُ الْوَارِثُونَ الَّذِينَ يَرِثُونَ الْفِرْدَوْسَ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ٥

دوئ پابند څۀ ملامتیا نشته دے۔ البته څوک چه لۀ دے نه دَ سِوا طلب کاروی، نو دا سے خلق دَحد نه تجاوزکوُونکی دی، او چه کوم دَخپلو امانتونو او دَ وعدو خیال کوی، او چه کوم خپل مونځوُنه په پابندئ سره کوی۔ د غه شان خلق وارث کید ونکی دی چه دَ فردوس وارث به وی او دوئ به په دے کښے همیشه وی۔

او په سُورتِ احزاب کښے ذِکر شوی لس صفتوُنه دادی :۔

إِنَّ الْمُسْلِمِينَ وَالْمُسْلِمَاتِ وَالْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ وَالْقَانِتِينَ وَالْقَانِتَاتِ وَالصَّادِقِينَ وَالصَّادِقَاتِ وَالصَّابِرِينَ وَالصَّابِرَاتِ وَالْخَاشِعِينَ وَالْخَاشِعَاتِ وَالْمُتَصَدِّقِينَ وَالْمُتَصَدِّقَاتِ وَالصَّائِمِينَ وَالصَّائِمَاتِ وَالْحَافِظِينَ فُرُوجَهُمْ وَالْحَافِظَاتِ وَالذَّاكِرِينَ اللَّهَ كَثِيرًا وَالذَّاكِرَاتِ أَعَدَّ اللَّهُ لَهُم مَّغْفِرَةً وَأَجْرًا عَظِيمًا ٥

بیشکه دَ اسلام کارکوونکی سړی او دَ اسلام کارکوونکے ښځے او ایمان راوړونکی سړی او ایمان راوړونکے ښځے او تابعداری کوونکی سړی او تابعداری کوونکے ښځے او رښتیا ویونکی سړی او رښتیا ویونکے ښځے او صبرکوونکی سړی او صبرکوونکے ښځے او خشوع کوونکی سړی او خشوع کوونکے ښځے او خیرات کوونکی سړی او خیرات کوونکے ښځے او روژه لرونکی سړی او روژه لرونکے ښځے او دَ خپل د شرم ځائے ساتونکی سړی او خپل د شرم ځائے ساتونکے ښځے او زیات الله لره یادوونکی سړی او زیات الله لره یادوونکے ښځے د دے ټولو دپاره، الله تعالیٰ بخښنه او لوئے اجر ساتلے دے۔

دَ مُفسرالقرآن، حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما دَ دے ارشاد نه معلومه شوه چه مسلمان دَپاره څو مره علمي، عملی او اخلاقی صفتونه پکار دی، هغه په دے آیاتونو کښے دد ریو سورتونو، جمع کړے شوی دی او دا صفات هغه کلمے دی چه په دے کښے دَ حضرت ابراهیم علیه السلام امتحان آخستے شوے وو۔ او په آیت : "إِذِ ابْتَلَىٰ إِبْرَاهِيمَ رَبُّهُ بِكَلِمَاتٍ" کښے د غو صفاتو ته اشاره ده۔

دے ځائے پورے، دَ دوو سوالونو جواب اوشو۔

دریم سوال دا وو، چه په دے امتحان کښے دَحضرت ابراهیم علیه السلام درجه او مقام

څهٔ رنګ دی۔ دَ هغې خو ځنځیله قرآن کریم، په خپل مخصوص انداز کښې جواب کړے دے، هغه دا چه ابراهیم علیه السّلام ته دکامیابئ سند ورکړے شو۔ دَ قرآن کریم ارشاد دے:
وَاِبْرٰهِیْمَ الَّذِیْ وَفّٰی (هغه ابراهیم چه هغه پوره کړو) چه دے مطلب دادے، چه دَ هر امتحان مکمل او سو فیصد دکامیابئ ئے ورته اعلان اوکړو۔
څلورم سوال دا چه په دے امتحان دهٔ ته څهٔ انعام ورکړے شو، دَ هغې ذکر ځنځیله په دغه آیت کښې شوے دے، چه هغه دادے:
قَالَ اِنِّیْ جَاعِلُكَ لِلنَّاسِ اِمَامًا (دَ امتحان نه رُستو، الله تعالیٰ اُفرمائیل، چه زهٔ تا دَ خلقو امام او پیشوا جوړونکے یم)
له دے نه یو خو دا معلومه شوه چه حضرت ابراهیم خلیل الله علیه السّلام ته دَ دے کامیابئ په صِله او جزا کښے د خلقو دَ امام کیدلو او پیشوا کیدلو، انعام ورکړے شو۔ او بله دا معلومه شوه، چه دالله پاک د مخلوق د پاره د امام کیدلو او پیشوا کیدلو، چه کوم امتحان اغستل ضروری وو، هغه د دُنیاد مدرسو او یو هنتونو په شان امتحان نهٔ وو، چه په هغې کښے دَ څو فنی مسائلو په تحقیق کولو باندِ دکامیابئ اعلی درجه ګټلے شی۔ بلکه د دے عهدے دَ حاصلولو دَپاره د هغو دیرشو اخلاق او عملی صفاتو کښے کامل کیدل ضروری وو چه دَ هغې ذکر، د آیاتو نو په حوالے سره اوس شوے دے۔ قرآن کریم، د غه مضمون یو بل ځائے کښے دا شان بیان کړے دے۔

وَجَعَلْنَا مِنْهُمْ اَئِمَّةً یَّهْدُوْنَ بِاَمْرِنَا لَمَّا صَبَرُوْا وَكَانُوْا بِاٰیٰتِنَا یُوْقِنُوْنَ ۝ (۱)

مونږ هغوئ امام او پیشوا جوړ کړل، چه هغوئ زمونږ په حکم خلقو ته هدایت اوکړو کله چه دوئ خپل نفس دَ خلاف شرع کارونو نه منع کړو او زمونږ په آیاتو نو ئے یقین اوکړو۔

په دے آیت کښے دَ امامت او پیشوایئ دَپاره، دَ دغو دیرشو صفتونو خلاصه په دوو لفظونو کښے بیان کړے دهٔ۔ یعنی صبر او یقین۔ یقین علمی او اعتقادی، او صبر عملی او اخلاقی کمال دے۔ او هغه دیرش صفتونه چه دَ هغې ذکر مخکښے تیر شو، ټول په دے دوو صفتونو کښے راغونډ دی۔

(۱) السجدة ۲۴

پنځم سوال دا وو، چه دَ دے څهٔ مطلب دے؟ چه را تلونکو نسلونو ته چه هغه ظالمان او فاسقان وی، دا منصب دَ امامت او پیشوایئ به نهٔ حاصلیږی۔

دَ دے وضاحت دا دے، چه امامت او پیشوائی په یو حیث دَ الله پاک خلیفه کیدل دی۔ نو دا ے یو کس ته نشی ورکیدے، چه هغه دالله پاک نه باغی وی او دَ الله پاک نافرمانی کونکے وی۔ نو په دے وجه په مسلمانانو دا لازمه ده، چه دوئ دِ په خپل اختیار سره خپل نمائنده یا امیر، دا سے سړے نهٔ مقرروی، چه هغه دَ الله پاک نه باغی وی او دَ الله پاک نافرمانه وی۔

وَإِذْ جَعَلْنَا الْبَيْتَ مَثَابَةً لِّلنَّاسِ وَأَمْنًا ۖ وَاتَّخِذُوا مِن مَّقَامِ

او کله چه مونږ مقرره کړو خانه کعبه دجمع کیدو ځائے دخلقو دپاره او ځائے دَ امن او جوړه کړئ دا براهیمؑ دَ

إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى ۖ وَعَهِدْنَا إِلَىٰ إِبْرَاهِيمَ وَإِسْمَاعِيلَ أَن

او دریدو دَ ځائے نه دَ مانځهٔ ځائے او حکم اوکړو مونږ ابراهیمؑ او اسماعیلؑ ته چه

طَهِّرَا بَيْتِيَ لِلطَّائِفِينَ وَالْعَاكِفِينَ وَالرُّكَّعِ السُّجُودِ ﴿١٢٥﴾

پاک او ساتئ زما کور د پاره دطواف کوونکو او اعتکاف کوونکو او رکوع او سجده کوونکو

**دَ لغت حل:**۔ مثابة: دا لفظ دثاب یثوب نه اخستے شوے دے، چه د هغې معنیٰ واپس کیدل دی۔ نو په دے وجه د مثابة معنیٰ دَ واپس کیدلو ځائے شو، چه هلته بنیادم په خوخو واره را ځی۔

**لنډ تفسیر:**۔ (او هغه وخت هم دَ یادَولو قابل دے چه) کوم وخت مونږ خانه کعبه دَ خلقو ځائے دَ عبادت او دَ امن (ځائے همیشه دَ پاره) مقرر کړو او (په آخر کښے امتِ محمدیہ ته ئے حکم اوکړو، چه د برکت حاصلولو د پاره) مقامِ ابراهیم (کله کله) دَ مونځ کولو ځائے جوړ کړئ او مونږ (د کعبے جوړولو په وخت کښے حضرت) ابراهیم (او حضرت) اسماعیل (علیهما السّلام) ته حکم اُلیږلو چه زما (دا) کور بیخی پاک (صفا) ساتئ

د بهرنو او مقامي خلقو (دعبادت) دپاره او رکوع او سجده کوونکو دپاره.

## علوم او مسائل

**دحضرت خليل الله مکې ته د هجرت کولو او د بيت الله دجوړولو تفصيلي واقعه**

په دې آيت کښې د بيت الله (کعبې) تاريخ ته اشاره ده او دا خبره ذکر ده چه ددې نوې تعمير د حضرت خليل الله او اسماعيل عليهما السّلام په لاس شوې دې، او ورسره د بيت الله او د مکې مکرمې دخه خصوصياتو او د بيت الله دخه احکامو ذکر هم دې. دا مضمون د قرآن کريم په ډيرو آياتونو کښې په مختلفو سورتونو کښې خوروور ذکر شوې دې. دلته مختصرًا هغه څيز بيانول غواړم چه هغه سره د دې آيت مضمون واضح شي.

دا مضمون په سورة حج آيت نمبر ۲۶ کښې داسې ذکر دې:

وَإِذْ بَوَّأْنَا لِإِبْرَٰهِيمَ مَكَانَ ٱلْبَيْتِ أَن لَّا تُشْرِكْ بِى شَيْـًۭٔا وَطَهِّرْ بَيْتِىَ لِلطَّآئِفِينَ وَٱلْقَآئِمِينَ وَٱلرُّكَّعِ ٱلسُّجُودِ ۝ وَأَذِّن فِى ٱلنَّاسِ بِٱلْحَجِّ يَأْتُوكَ رِجَالًۭا وَعَلَىٰ كُلِّ ضَامِرٍۢ يَأْتِينَ مِن كُلِّ فَجٍّ عَمِيقٍۢ ۝

(هغه وخت د ياد ولو قابل دې کوم وخت چه مونږه ابراهيم ته دخانه کعبې ځائې اوښودو، چه ما سره هيڅ څيز مه شريکوه او زما کور طواف کوونکو دپاره او رکوع او سجده کوونکو دپاره پاک ساته او خلقو کښې دحج اعلان اوکړه. خلق به تا ته را شي پياده هم او په خوارو اوښو سواره هم چه د لرو لرو لارو نه به رسيدلي وي)

په تفسير ابن کثير کښې د تفسير د اماماتو حضرت مجاهد رح وغيره نه نقل کړې دې چه حضرت ابراهيم عليه السلام په شام کښې مقيم وو، او حضرت اسماعيل عليه السّلام د ټي ماشوم وو. کوم وخت چه ده ته د الله پاک دا حکم اورسيدو، چه مونږه تا ته دخانه کعبې ځائې بنايو، ته دا صاف او پاک کړه او طواف او مونځ سره يې آباد کړه، نو ددې حکم د تعميل دپاره جبرئيل ع براق سره حاضر شو، او حضرت ابراهيم ع او حضرت اسماعيل ع ئې سره د هغه د مور ه ځان سره واخستو او سفرئې شروع کړو. په لاره کښې کله به چه کوم کلې ښکاره شو، نو حضرت ابراهيم عليه السّلام به د حضرت جبرئيل امين نه پښتنه کوله، چه آيا دلته د

کوزیدلو حکم شوے دے نو حضرت جبرئیل به ورته ویٔیل چه نه ستا منزل وړاندے دے۔ تردے حده چه دَ مکے مکرمے ځائے مخ ته راغے چه په هغے کښے غنود بوټو او د کیکر داونو نه بغیر بل څهٔ نهٔ وو۔ دَدے زمکے د ټوټے خواوُشا څهٔ خلق اُسیدل چه هغوئ ته عمالیق ویٔیلے شو۔ بیت الله، په دغه وخت کښے دَلوے غونډی په شکل وو۔ حضرت خلیل الله علیه السلام چه دے ځائے ته اُرسیدو، د حضرت جبرئیل امین نه ئے پُښتنه اوکړه چه آیا زمونږ منزل دا دے نو هغه اُوئیل چه هو۔

حضرت ابراهیم علیه السلام سرهٔ دَ خپل بچی او حضرت هاجرهٔ رض د لته کوز شو۔ او بیت الله ته نزدے یو معمولی غونډے خیرے وا چولو او حضرت اسماعیل علیه السلام او حضرت هاجرهٔ رض ئے دلته دیره کړل او دوئ ته ئے په یو ټوکرئ کښے څهٔ کجورے او په یو کُوزه کښے ئے او به کیښودے او ابراهیم علیه السلام ته دغه وخت د حصاریدو حکم نهٔ وو۔ دَغه دِتی ماشوم او د هغهٔ مورئے د الله پاک په حواله کړل او بیرته لاړو۔ د تلو تیاری چه کله حضرت هاجرهٔ رض اُولیده نو عرض ئے اُوکړو، چه مونږ په دے اوچ سُور میدان کښے پریږدے ته چرته ځے؟

په دے میدان کښے نهٔ څوک داسے شته چه هغه زمونږ مدد کارشی او نهٔ دلته دَ ژوندن څهٔ ضروریات شته۔

حضرت خلیل الله علیه السلام ورته هیڅ جواب ورنکړو او روان شو۔ حضرت هاجرهٔ رض ورسره یو ره ته شوه۔ او بیائے څو څو ځله دغه پُښتنه اوکړه خو حضرت خلیل الله لطرفه هیڅ جواب نهٔ وو۔ تردے چه پخپله دَدے په ذهن کښے خبره راغله او عرض ئے اُوکړو چه آیا الله تعالیٰ تا ته په دے ځائے کښے د پریښودلو او له دے ځایه د تلو حکم کړے دے۔ دغه وخت حضرت ابراهیم علیه السلام اُوئیل چه ما ته دا حکم دَ الله تعالیٰ لهٔ طرفه حاصل شوے دے۔

دائے چه واوُریدل نو حضرت هاجرهٔ رض اوئیل چه بیا په ډیر شوق او مینے سره ځه، چا چه تا ته دا حکم کړے دے، هغه به مونږه هیچرے ضائع نکړی۔ ابراهیم علیه السلام دالله پاک د حکم د تعمیل د پاره له دے ځایه روان شو۔ لیکن دَ زړهٔ نه ئے د تی بچی او د هغهٔ مور وتله نه۔ کله چه دلارے یو کوټ ته اُرسید و چه له هغه ځایه

حضرت هاجره رضه نشوه لیدے، نو اوده ریدو، او الله تعالیٰ ته ئے دا دُعا اُغوښتله کومه چه
د سورت ابراهیم په آیت ۳۶، ۳۷ کښے دا رنګ ذکر ده :-

رَبِّ اجْعَلْ هٰذَا الْبَلَدَ اٰمِنًا وَّاجْنُبْنِيْ وَبَنِيَّ اَنْ نَّعْبُدَ الْاَصْنَامَ -

اے زما پروردګاره! دا ښار امن والا جوړ کړے او ما او زما خاص خاص د بتانو د عبادت کولو نه بچ کړے -

بیا ئے په دُعا کښے عرض اوکړو :-

رَبَّنَآ اِنِّيْٓ اَسْكَنْتُ مِنْ ذُرِّيَّتِيْ بِوَادٍ غَيْرِ ذِيْ زَرْعٍ عِنْدَ بَيْتِكَ الْمُحَرَّمِ رَبَّنَا لِيُقِيْمُوا الصَّلٰوةَ فَاجْعَلْ اَفْئِدَةً مِّنَ النَّاسِ تَهْوِيْٓ اِلَيْهِمْ وَارْزُقْهُمْ مِّنَ الثَّمَرٰتِ لَعَلَّهُمْ يَشْكُرُوْنَ ۝

اے زما پروردګاره! زۀ خپل اولاد، ستا محترم کور ته نزدے په یو میدان کښے چه هغه د کروندے قابل نۀ دے آباد کړم. اے زما پروردګاره! دے د پاره چه دوی د مونځ اهتمام اوکړی او ته د خو خلقو زړونه د دوی په طرف مائل کړے، او دوی ته میوه د خوراک د پاره ورکړے، دے د پاره چه دوی شکر اُوکړی -

ړومبے حکم، چه د هغے په وجه د شام نه ئے هجرت اوکړو او حضرت اسماعیلؑ او د هغۀ مورے د لته راوستل، په هغے کښے دا ارشاد شوے وو چه زما کور پاک ساتئے - حضرت خلیل الله علیه السلام پو هیدو چه د پاک ساتلو مطلب دا دے چه دا د ظاهری پلیتو نه هم پاک اُساتلے شی او د کفر او شرک د باطنی پلیتو نه هم. نو په دغه وجه چه کومه دعا د ۀ د لته کښے اوکړه نو په هغے کښے دَ دے کلی د ماموں او محفوظ کیدلو دُعا ئے اوکړه، او بیا ئے دا دعا اوکړه چه زما اولاد د شرک او بُت پرستئ نه بچ کړے ځکه چه ابراهیم علیه السلام ته د الله تعالیٰ په معرفت کښے هغه مقام حاصل وو، کوم کښے چه انسان ته خپل وجود هم بیا په نظر نۀ راځی - خپل ټول عملونه او ارادے ورته داسے ښکاری چه دا ټول د الله پاک د قدرت په قبضه کښے دی او د هغه د ارادے نه ټول کارونه کیږی نو لدے وجے د کفر او شرک نه د بیت الله د پاک ساتلو کوم حکم چه ورته ورکړے شوے وو په هغے کښے ئے هم د الله تعالیٰ مدد اُغوښتو. په دے دعا کښے د کفر او شرک نه د محفوظ کیدو په سوال کښے یو خاص راز دا هم کیدے شی چه هکله

دَ بیت الله د تعظیم او تکریم حکم او شو، نو دا احتمال هم وو چه په راتلونکی وخت کښې یو ناواقف هم بیت الله معبود جوړ نکړی او په دے شان په شرک کښې مبتلا شی نو په دے وجه دا دُعا ئے اوکړه چه ما او زما اولاد دَ شرک نه محفوظ کړے.

له دے نه رُستو دِتی بچی اود هغهٔ مور باندے د شفقت په وجه دا دُعا ئے اوکړه چه ما دوئ، ستا د حکم مطابق ستا محترم کور سره نزدے دَیره کړی خودی، لیکن دا ځائے د کروندے قابل هم نهٔ دے چه خوړک د لته په خپل محنت سره دَ ژوند ضرورتونه حاصل کړی، په دے وجه هم تهٔ د خپل فضل نه دوئ ته د میوے رزق ورکړے.

دا دُعا چه ئے اوکړه نو حضرت ابراهیم علیه السّلام خپل وطن شام ته روان شو. دے خوا د حضرت هاجرهؓ څهٔ وخت د کجورو په هغې تو بنے او اُوبو تیر شو کومه چه ورته حضرت ابراهیم علیه السّلام پریښو دے وه. د اُوبو ختمیدو نه پس بچیله هم او دَ تِی ماشوم هم د تندے نه تنګ شو. په دے وخت دا اُوبو په لټون کښې دَ دے وتل کله د صفا په غونډئ باندے او کله د مروه په غونډئ باندے ختل، او دَ دواړو غونډو په مینځ کښې په منړه منړه تلل، چه حضرت اسماعیلؑ اُوینی، عام مسلمانانو ته معلومه ده چه حج کښې دَ صفا مروه په مینځ کښې سعی کول تر ننه پورے دَ دغه خبرے یادګار دے.

دَ دے قصے په آخر کښې د حضرت جبرئیل امین، د الله پاک په حکم دلته رسیدل او دَ زمزم د چینے جاری کول، او بیا د جرهم قبیلے څهٔ خلق دلته کښې راتلل او آباد کیدل. او دَ حضرت اسماعیلؑ ځوان کیدل او د جرهم قبیلے دَ یو بی بی سره وادهٔ کول. دا ټول دَ صحیح بخاری په روایت کښې په تفصیل سره ذِکر شوی دی. دا احادیثو روایا تو د مجموعے نه معلومیږی چه اول دَ سورة حج په آیت کښې دَ بیت الله د آبادو لو، او دَ پاک سا تلو حکم چه حضرت خلیل الله ته ورکړے شوے وو په دغه وخت، د ومره قدرے کار کول غرض وو چه دا ځائے د حضرت اسماعیل او هاجره علیهما السّلام په ذریعه آباد کړے شی. دَ دے حکم مخاطب یوازے حضرت ابراهیم علیه السّلام وو. ځکه چه اسماعیل علیه السّلام په دغه وخت کښې دَ تِی ماشوم وو. په دغه وخت د بیت الله د نوی تعمیر حکم نهٔ وو ورکړے شوے. دَ سورت بقرے دا آیت چه د بحث لاندے دے:. وَعَهِدۡنَآ إِلَىٰٓ إِبۡرَٰهِـۧمَ وَإِسۡمَٰعِيلَ أَن طَهِّرَا بَيۡتِيَ ، په دے کښې د حضرت ابراهیم سره حضرت اسماعیلؑ هم شریک کړے شوے دے. دا حکم د هغه

وخت دے کله چې حضرت اسماعیل علیه السلام ځوان شوے وو. نو دغه وخت د واپه وته د بیت الله د جوړولو حکم اوکړے شو.

د صحیح بخاری په روایت کښې دی، چې یوه ورځ، حضرت ابراهیم علیه السلام د عادت په توګه د حضرت هاجرے او اسماعیل علیهما السلام ملاقات ته مکے مکرمے ته راغے نو وے لیدل چې حضرت اسماعیل علیه السلام د یوے اونے لاندے ناست وو، او غشی ئے جوړول. پلار ئے چې اُولیدو، نو پاسیدو. د ملاقات نه پس حضرت ابراهیم علیه السلام اُوفرمائیل، چې ما ته الله پاک د یو کار کولو حکم کړے دے. ته به ما سره په هغې کښې مدد اوکړے؟ بچی ورته اُووے چې په سر او سترګو به اوکړم. نو په دے خبره حضرت ابراهیم علیه السلام هغه یو ځائے ته اشاره اوکړه، کوم ځائے کښې چې بیت الله وو، چې ما ته د دے د جوړولو حکم شوے دے. د بیت الله څلور واړه طرفونه، الله تعالیٰ، حضرت ابراهیم علیه السلام ته ښودلی وو. دواړو بزرګانو دا کار شروع کړو. د بیت الله زاړه بنیادونه ښکاره شو، او په د غو بانده ے دواړو آبادی کول شروع کړه. لکه چې د دے آیت نه رُستو آیت کښې د دے بیان دے:- وَإِذْ يَرْفَعُ إِبْرٰهِيمُ الْقَوَاعِدَ مِنَ الْبَيْتِ وَإِسْمٰعِيلُ ؕ چې د دے کښې دے ته اشاره ده، چې د بیت الله جوړونے په اصل کښې حضرت ابراهیم علیه السلام وو او حضرت اسماعیل علیه السلام د دهٔ مددګار وو.

په دے ټولو آیاتونو باندے، د سوچ کولو نه پس هغه حقیقت واضح کیږی کوم چې د حدیث په بعضو روایتونو او تاریخ کښې شته، هغه دا چې بیت الله شریف د ډیر اندے نه په دنیا کښې موجود وو. ځکه چې په دے ټولو آیاتونو کښې چرته د بیت الله د ځائے د ښودلو ذکر دے او چرته د بیت الله د صفا ساتلو ذکر دے. او د دے چرته ذکر نشته، چې نن څه نوے کور جوړول دی، د دے جوړول اوکړئ. له دے نه معلومه شوه چې د بیت الله شریف وجود له دے واقعے نه مخکښې وو. بیا د نوح علیه السلام د طوفان په وخت کښې وران شو یا اوچت کړے شو. صرف بنیادونه ئے وو. حضرت ابراهیم او حضرت اسماعیل علیهما السلام د کعبے بروميی جوړوونکی نه دی، بلکه د بروميی آبادئ په بنیادونو، نوے آبادی ددوئ په لاس شوے ده.

اوس پاتے شوه دا خبره، چې بروميئ آبادی چا کړے وه او په کوم وخت کښې شوے ده؟ په دے کښې څه صحیح او قوی روایت د حدیث نشته. د اهل کتابو په روایت کښې دی، چې له هغې نه معلومیږی چې د ټولو نه اول د دے جوړول د آدم علیه السلام د دنیا ته د راتلو نه مخکښې فرښتو کړی وو.

بیا آدم علیه السلام دے له نوے جوړ کړے وو، د آدم علیه السلام تعمیر د نوح علیه السلام طوفان پورے وو. په طوفان نوح کښے د ورانیدو نه روستو د ابراهیم علیه السلام زمانے پورے دا دیو غونډئ په صورت کښے باقی وو او حضرت ابراهیم او حضرت اسماعیل علیهما السلام دا سر دوباره جوړ کړو. له دے نه روستو ئے په تعمیر کښے تګ ټوک به همیشه کیدو ولیکن بالکل وران شوے نه وو. د نبی صلی الله علیه وسلم د پیغمبر کیدو نه وړاندے د مکے قریشو دا وران کړو او سر دوباره ئے جوړ کړو او په دے جوړولو کښے نبی صلی الله علیه وسلم په خاص طور سره برخه واخسته.

## د حرم متعلق احکام او مسائل

۱- "مَثَابَةً" لفظ نه معلومه شوه چه الله تعالیٰ بیت الله ته دا خاص فضیلت ورکړے دے چه دا به همیشه د خلقو مرجع وی او خلق به ورته په کرا تو مرا تو د تللو را تللو آرزومند وی. د تفسیر امام حضرت مجاهد وائی: لَا يَقْضِيْ اَحَدٌ مِّنْهَا وَطَرًا ریو سړے به هیڅ کله د دے د زیارت کولو نه موړ نشی) (قرطبی) بعضے عالمانو دا وئیلی دی، چه د حج د قبلید و یونښه دا ده چه له دلته واپس کیدو نه پس بیا دلته د راتلو شوق چه په زړه کښے وی. او عام طور سړ د دے خبرے تجربه شوے ده، چه اول ځل خومره د بیت الله د زیارت کولو شوق وی، دویم ځل د اشوق له مخکښے نه زیات وی. او خومره چه بار بار د دے زیارت کیږی، دا شوق نور هم زیاتیږی.

دا معجزه خو، د بیت الله خصوصیت دے، ورنه د دُنیا د ټولو نه غوره منظر چه بنیادم یو ځل دوه ځل اُکوری نو زړه ئے تر موړ شی. او دلته خو نه خوش نما منظر شته، او نه دلته رسیدل څه آسان کار دے او نه دلته د دُنیا کاروبار ته څه اهمیت حاصل دے. د دے ټولو باوجود ټول خلق په زړه کښے دلته د ورتللو شوق لری. په زرګونو روپئ خرچ کوی او ډیر تکلیفونه زغمی. دا صرف په دے شوق چه د بیت الله ملاقات اوکړی.

۲- د اَمْنًا لفظ، دلته د مأمن په معنیٰ، یعنی د امن ځائے په معنیٰ دے. او د بیت د لفظ نه مراد صرف بیت الله، خانه کعبه مراد نه ده بلکه ټول حرم مُراد دے.

په قرآن کریم کښے نور هم داسے شواهد شته، چه هلته د بیت الله او د کعبے لفظ وئیلے شوے دے او مراد ترے ټول حرم دے. لکه: هَدْيًا بَالِغَ الْكَعْبَةِ. په دے آیت کښے د

کعبې د لفظ نه قول حرم مراد دے، ځکه چه د ے کښې د قربانۍ ذِکر دے او په بیت الله
کښې خو قربانی نهٔ کیږی، او نهٔ دلته قربانی کول روا دی. نو په دے وجه د آیت معنیٰ
دا شوه، چه مونږ د مکے حرم، د امن ځائے جوړ کړے دے او د امن ځائے د جوړولو
مراد دا دے چه خلقو ته دا حکم ورکول دی چه په حرم محترم کښې د قتل وقتال او دَ
انتقام اخستلو نه ځان لرے ساتئ (ابن عربی)

په دے وجه په زمانه جاهلیت کښې په عربو کښې د ملت ابراهیمی چه څهٔ آثار باقی
پاتے شوی وو، په هغې کښې دا هم وو، چه په حرم کښې به کهٔ چرے یو کَس ته د خپل پلار او
رور قاتل کوتو ته ورغے، نو بیا له به ئے نهٔ آغستله. او عام جنگ او قتل به ئے په حرم
کښې هم حرام گڼړلو. د اسلام په شریعت کښې هم دا حکم د غه شان باقی پریښودے شو. دَ
فتح مکے په وخت، د څو گړو د پاره، نبی علیه الصلوٰة والسلام ته د حرم په زمکه کښې جنگ کول
روا کړے شوی وو، لیکن په د غه وخت کښې بیا همیشه د پاره حرام کړے شو. او رسول کریم
صلی الله علیه وسلم دَ فتح مکے په خطبه کښې د دے اعلان اوکړو. (صحیح بخاری)

اوس پاتے شوه دا خبره، کهٔ چرے څوک په حرم کښې د ننه، یو داسے جرم اوکړی
چه په هغې باندے د اسلامی شریعت له مخه حد او قصاص لازم شی، نو حرم داسے
کَس ته به امن نهٔ ورکوی بلکه په دے باندِ دَ قول امت اجماع ده چه په دے سړی
به حد او قصاص جاری کیږی (احکام القرآن-قرطبی)

ځکه چه د قرآن کریم ارشاد دے: فَاِنْ قٰتَلُوْكُمْ فَاقْتُلُوْهُمْ (کهٔ چرے تاسو
سره خلق په حرم کښې جنگ او قتال کوی، نو تاسو هم دوئ په دے حرم کښې وژنئ)

(البته دلته یوه مسئله داسے ده چه په هغې کښې د مجتهدینو اختلاف دے هغه مسئله
دا ده، کهٔ چرے یو کَس بهر جُرم اوکړی او بیا په حرم کښې پناه واخلی نو داسے کَس
سره به څهٔ سلوک کیږی. په دے کښې بعضے امامان په دے سړی هم په حرم کښې د حد
او قصاص جاری کولو حکم کوی او امام اعظم ابو حنیفهؒ په نزد دا کَس دَ سزا ورکولو نه خو
خلاصیدے نشی، ځکه کهٔ چرے داسے اوشی نو جرامو دَ سزا نه د بچ کیدلو دروازه به
پرانستے شی او په دنیا کښې به فساد راپورته شی او حرم به د مجرمانو ډیره اوګرځی، لیکن
د احترام په وجه د حرم د ننه به دهٔ ته سزا نهٔ ورکیږی، بلکه دے به په دے مجبور کړے شی

په د حرم نه بهر اوځي، او بهر ته وتلو نه وړستو به ورته سزل ورکړے شي۔

۳۔ وَاتَّخِذُوْا مِنْ مَّقَامِ اِبْرٰهِيْمَ مُصَلًّى۔ دلته: د مقام ابراهيم نه مراد، هغه کاڼړے دے، چه په کوم باندے، د حضرت ابراهيمؑ د قدم مبارک نښه د معجزے په طور لګيدلے وه، او چه دا، ابراهيم عليه السلام د کعبے د تعمير په وخت استعمال کړے وو (صحيح بخاری)

حضرت انس رضی الله عنه فرمائی، چه ما په هغه کاڼړی کښے د حضرت ابراهيم عليه السلام د قدم مبارک نقش ليدلے دے، ليکن د خلقو د زيات مسح کولو په وجه اوس دا نښے کمزورے شوی دی (قرطبی)۔ او حضرت عبدالله بن عباسؓ نه د مقام ابراهيم په تفسير کښے، دا هم نقل دی، چه ټول حرم مقام ابراهيم دے۔ ممکنه ده، چه له دے نه مراد داوی چه له طواف نه رُستو، د دوؤ رکعتو نو حکم په مقام ابراهيم کښے د کولو په دے آيت کښے شوے دے، د دے حکم تعميل په دے سره هم کيږی چه د ټول حرم په څه ځائے کښے دوه رکعتونه اوکړے شي۔ په دے خبره د اُمت ټول فقهاء متفق دی۔

۴۔ په ذکر شوی آيت کښے د مقام ابراهيم نه د مانځه د ځائے جوړولو حکم شوے دے۔ د دے وضاحت پخپله نبی صلی الله عليه وسلم، په حجة الوداع په خپل قول او عمل سره دا سے ښودلے ده، چه نبی صلی الله عليه وسلم د طواف نه رُستو، مقام ابراهيم ته ورغے او دا آيت ئے تلاوت کړو: وَاتَّخِذُوْا مِنْ مَّقَامِ اِبْرٰهِيْمَ مُصَلًّى۔ او بيا د مقام ابراهيم نه رُستو دوه رکعته مونځ ئے دا سے اوکړو چه مقام ابراهيم د دهٔ او د کعبے په مينځ کښے راغے (صحيح بخاری)

په دے وجه د امت فقهاؤ وئيلی دی چه کوم چا ته د مقام ابراهيم نه رُستو متصل ځائے لاس ته ورنشي، هغه چه څومره فاصلے باندے هم دا رنګ اُدريږی چه مقام ابراهيم ئے وړاندے وی او بيت الله هم نو په دا سے کولو سره دا حکم پوره کيږی۔

۵۔ دا، چه له دے آيته دا معلومه او ثابته شوه چه طواف نه رُستو دوه رکعته مونځ کول واجب دی (جصاص۔ مناسک ملا علی قاری)

البته دومره خبره ده، چه د دے دوؤ رکعتونو کول د مقام ابراهيم نه رُستو سنت دی او د حرم په څه ځائے کښے که اوکړے شي، نو کافی به شي، ځکه د رسول الله صلی الله عليه وسلم د دے دوؤ رکعتونو کول، د بيت الله دروازے سره متصل هم ثابت دی۔ او د حضرت عبدالله بن عباسؓ نه هم د غه ځائے کښے کول نقل دی (جصاص) او ملا علی قاری،

په کتاب مناسک کښې ونیلی دی، چه دا دوه رکعتونه د طواف واجب دی او سنت دا دی چه د مقام ابراهیم نه ئې ستو اُو کړې شي، لیکن که چرې د څه وجې نه هلته کښې ادا نشي نو بیا په حرم کښې یا د حرم نه بهر چه چرته ممکن وی، د دے په ادا کولو سره واجب پوره کیږی۔ رسول الله صلی الله علیه وسلم سره په حجة الوداع کښې حضرت ام سلمهؓ ته دا ئے واقعه پیښه شوے وه، چه هغې ته د طواف د واجب مونځ کولو، هلته موقع حاصله شوے نه وه نو د مسجد حرام نه بلکه د مکې بهرے ئې ستو ادا کړی وو، او د ضرورت په وجه د حرم نه په بهر ادا کولو کښې څه دم نه وا جبیږی۔ البته امام مالکؒ په دا سے صورت کښې د دم قائل دے (مناسک ملا علی قاری)

۶۔ طَهِّرَا بَيْتِيَ: په دے کښې د بیت الله د پاک ساتلو حکم دے، چه په دے کښې د ظاهری پلیتئ نه پاک ساتل، او د باطنی پلیتئ نه یعنی د کفر، شرک او د بد و اخلاقو، بغض او حسد کولو، حرص، تکبر او ریاکولو نه پاک ساتل شامل دی۔ او د دے حکم طهارت د پاره، دَ بَيْتِيَ په لفظ راوړلو کښې د دے خبرے ته اشاره هم ده، چه دا حکم د ټولو جماتونو د پاره عام دے: فِيْ بُيُوْتٍ اَذِنَ اللّٰهُ اَنْ تُرْفَعَ۔

حضرت عمرؓ په جمات کښې د یو سړی په زوره آواز واورید ونو ورته ئې اُوئیل تا ته څه پته شته، چه ته چرته ولاړ یې (قرطبی) مطلب دا، چه د جمات ادب کول پکار دی۔ په دے کښې غیر مشروع او ناروا آواز پورته کول پکار نه دی۔

حاصل دا دے، چه له دے آیته چه څه رنګ د بیت الله د ظاهری او باطنی پلیتو نه پاک ساتل لازمی دی، هم دغه شان ټول جماتونه د ظاهری او باطنی پلیتو نه پاک ساتل پکار دی۔ یعنی جمات ته په تلو نکو باندے لازم دی، چه هغوی د خپل بدن او جامے هم له پلیتونه او له بد بویانو پاکے اُساتی او د خپلو زړونو نه د شرک، نفاق او ټولو بد اخلاقو اُباسی۔ د رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد دے، چه کوم سړی پیاز، اُوږه وغیره بد بویه څیز خوړلے وی، جمات ته دِ نهٔ ځی۔ او د واړهٔ او لیونی ئې جمات ته د تلو نه منع کړی دی، ځکه چه په دوی کښې د پلیتئ خطره وی۔

۷۔ لِلطَّآئِفِيْنَ وَالْعٰكِفِيْنَ وَالرُّكَّعِ السُّجُوْدِ ۔ د آیت د دے ځو کلمو نه څو حکمونه او فائدے را اُوځی۔ اول دا چه د بیت الله د جوړولو مقصد طواف، اعتکاف او مونځ دے۔ دویم

د، چه طواف د مونځ نه وړاندې دې (لکه چه دا د روایت د عبدالله بن عباس نه شوی دی) دریم دا چه د دُنیا د کوتونو نه را غلو خلقو د پاره طواف کول د مانځه په نسبت زیات غوره دی - څلورم دا چه په بیت الله کښې د ننه مونځ خواه که فرضی وی او که نفلی جائز دی (خصاص)

وَإِذْ قَالَ إِبْرَٰهِيمُ رَبِّ ٱجْعَلْ هَٰذَا بَلَدًا ءَامِنًا وَٱرْزُقْ أَهْلَهُۥ

او کله چه اُووې ابراهیمؑ اې زما ربه جوړ کړې دا ښار د امن او روزي ورکړه دده اُسیدونکو ته

مِنَ ٱلثَّمَرَٰتِ مَنْ ءَامَنَ مِنْهُم بِٱللَّهِ وَٱلْيَوْمِ ٱلْءَاخِرِ ۖ قَالَ وَمَن

میوې، چه کوم یو د دوی کښې ایمان راوړي په الله باندې او د قیامت په ورځ باندې الله اُوفرمایل او چا چه

كَفَرَ فَأُمَتِّعُهُۥ قَلِيلًا ثُمَّ أَضْطَرُّهُۥٓ إِلَىٰ عَذَابِ ٱلنَّارِ ۖ وَبِئْسَ

کفر اوکړو هغه ته به هم نفع اُرسومه د لږ و ورځو بیا به هغه په جبر راوُبلم د دوزخ عذاب ته او دا بد ځای

ٱلْمَصِيرُ ۝١٢٦ وَإِذْ يَرْفَعُ إِبْرَٰهِۦمُ ٱلْقَوَاعِدَ مِنَ ٱلْبَيْتِ وَ

دې د اُسیدو او یاد کړه چه کله پورته کول ابراهیمؑ بنیادونه د خانه کعبې او

إِسْمَٰعِيلُ رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّآ ۖ إِنَّكَ أَنتَ ٱلسَّمِيعُ ٱلْعَلِيمُ ۝١٢٧ رَبَّنَا

اسماعیلؑ، دُعائې کوله اې پروردګاره زمونږ قبول کړې له مونږه بیشکه هم ته آوریدونکې او پوهیدونکې یې اې

وَٱجْعَلْنَا مُسْلِمَيْنِ لَكَ وَمِن ذُرِّيَّتِنَآ أُمَّةً مُّسْلِمَةً لَّكَ وَ

پروردګاره زمونږ کړه مونږ حکم منونکي خپل او زمونږ په اولاد کښې هم کړه یوه ډله حکم منونکې خپله او

أَرِنَا مَنَاسِكَنَا وَتُبْ عَلَيْنَآ ۖ إِنَّكَ أَنتَ ٱلتَّوَّابُ ٱلرَّحِيمُ ۝١٢٨

اُښایه مونږ ته قاعدې د حج کولو او مونږه معاف کړې بیشکه هم ته یې توبه قبلوونکې او مهربان

**لنډ تفسیر:-** او (هغه وخت هم د یادولو قابل دې) چه کوم وخت ابراهیم (علیه السلام) په دُعا کښې) عرض اوکړو چه اې زما پروردګاره دا (ځائې) یو (آباد) ښار جوړ کړې

(او ښار هم داسې) دَامن (امان) والا، او ورکړې او سيد ونکوته ميوو (د قسمونو) نه هم
ورکړې (اودغه تولو اُسيدونکو پاره نه وايم بلکه خاص) هغوئ دَپاره (وايم) چه
په الله تعالىٰ او په ورځ د قيامت ايمان لري (د نورو په حقله ته ُ سبقه نوهيږي) الله تعالىٰ
ارشاد اوکړو (چه هرکله رزق زمونږه خاص نه دې ـ له دې وجې به ئې ټولو ته ورکوم
مؤمن ته هم) او هغه کس ته هم چه کافروي (البته د آخرت خلاف هرکله چه اهلِ
ايمانو سره خاص دې) نو (له دې وجې) داسې کس ته (چه کافر دې) د لږو ورځو (يعني
په دنيا کښې) خوبه آرام اُرسوُم (ليکن) بيا (د مرګ نه پس) ده ُ لره به په را ښکو رابنکو دَ
دوزخ عذاب ته اُرسوُم او دا سې دَ رسيدو ځائې خو ډير بد دې (الله دِ ترهړلو
مسلمان بچ کړي او هغه وخت هم دَ ياد ولو قابل دې) کله چه خيتړول ابراهيم عليه السلام
د خانه کعبې ديوالونه (او ده ُ سره) اسماعيل ؑ هم (او دا به ئې هم ويل) اے زمونږه پروردګاره
(دا خدمت) زمونږ قبول کړې، بې شکه ته ښه آ ُ ريدونکے او علم لرونکے ئې ـ
زمونږ دُعا آ ُ ورې او زمونږ په نيتونو عالم ئې) اے زمونږه پروردګاره! او
(زمونږه دواړه دادُعا هم کوو چه) مونږه د خپل ځان زيات فرمانبردار جوړ کړې
او زمونږ په اولاد کښې هم يو داسې ډله پيدا کړې چه ستا تابعدار وي او (هم)
مونږ ته زمونږ د حج (وغيره) احکام اُ ښائې او زمونږه په حال با ندې (دَ مهربانئ)
توجه او کړې او په اصل کښې هم ته ُ توجه کوونکے او مهرباني کوونکے ئې ـ

## علوم او مسائل :-

حضرت ابراهيم عليه السلام، چه کومې قربانئ دالله پاک په
لاره کښې ورکړې ـ دالله پاک احکامو منلو په لاره کښې د خپل مال و سر او اهل وعيال نه
چه کوم قسم تير شو، دا دَ زمانې په عجائباتو کښې شميرلې شي ـ
په اهل وعيال بانډِ شفقت او ددئ سره محبت لرل، که چه څهٔ رنګ يو
طبعي او فطري خيز دې، دغه رنګ دا دالله پاک حکم هم دې ـ دغه مخکښې آيت
• دَدې خبر مظهر دې، چه په هغې کښې حضرت ابراهيم عليه السلام د خپل اهل وعيال
دَپاره دَ دين او د دُنيا د آرام او راحت دُعا غواړي ـ

| | |
|---|---|
| دَ حضرت ابراهيم عليه السلام دُعا ګانې | ابراهيم عليه السلام دُعا، د رَبَّ لفظ نه شروع کړې ده ـ |

او د رَبِّ معنیٰ دہ اے زما پالونکیه - په دے الفاظو سره ابراهیم علیه السلام د دُعا کولو چَل ښودلے دے چه دا الفاظ د الله د رحمت او کرم متوجه کولو د پاره ښهٔ طریقه ده. بیا ئے د ټولو نه اول دا دعا او کړه چه دا صفا میدان کوم کښے چه ما ستا په حکم خپل اهل و عیال ډیره کړے دے، یو ښار جوړ کړے - دے د پاره، چه دوئ ته د لته استوګنه کښے څهٔ وحشت نهٔ وی، او د ژوندن سامان ورته حاصلیږی - دا دُعا په سورةِ ابراهیم کښے دَ "هٰذَا الْبَلَدَ اٰمِنًا" په الفاظو سره راغلے ده، چه په هغې کښے "اَلْبَلَدَ" لفظ کښے الف لام ذکر شوے دے او په دے سره بلد معرفه شوے دے او دلته په بَلَد لفظ کښے الف لام نشته، یعنی بلد نکره ذِکر شوے دے. د فرق وجه غالباً دا ده چه د سورةِ بقرة والا دعا، چه پکښے بلدًا نکره راغلے دے، دا هغه وخت ئے کړے وو، کوم وخت چه دا ځائے ځنګل وو، ښار لا جوړ شوے نهٔ وو. او دویمه دُعا په ظاهره د هغه وخت ده، چه کله مکے نه یو معلوم کلے جوړ شوے وو. او دَ دے خبرے دلیل دا دے، چه د سورت آخری آیاتو نو کښے دی. اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ وَهَبَ لِیْ عَلَی الْکِبَرِ اِسْمٰعِیْلَ وَاِسْحٰقَ، چه له دے نه دا معلومیږی، چه دا دُعا حضرت اسحاق علیه السلام د پیدا کیدو نه پس شوے ده - او حضرت اسحاق علیه السلام د حضرت اسماعیل نه دیارلس کاله پس پیدا شوے وو (ابن کثیر)

او په دے دویمه دُعا کښے (چه په سورةِ ابراهیم کښے ده) دا دی چه اے خدایه! دا ښار دَ امن و امان ښار جوړ کړے - چه د قتل لوټ مار، او د کافرو د تسلط او د آفتونو نه محفوظ او په امن وی -

د حضرت ابراهیم علیه السلام دا دُعا قبوله شوه - او مکه مکرمه یو داسے آباد ښار شو، چه دا د خپلو اُسیدونکو نه علاوه دَ ټولے دنیا مرجع شوه - دَ دنیا دَ اطرافو مسلمانان هلته تلل خپل سعادت ګنړی - او دا ښار مامون او محفوظ هم شو - چه په بیت الله دیو مخالف قوم او بادشاه تسلط اُ نکړے شو - دَ هاتیانو د خاوندانو واقعه پخپله په قرآن کښے ذِکر ده، چه دوئ په بیت الله دَ حملے اراده او کړه نو ټول ښکر ئے تباه او برباد شو.

دا ښار، د قتل او لوټ مار نه هم محفوظ را روان دے - د اسلام نه وړاندے د زمانه جاهلیت والو، دَ شرک او کفر او نورو خرابو کارونو کولو باوجود دَ بیت الله او دَ بیت الله دَ حرم تعظیم خپله داسے مذهبی فریضه ګنړله، کهٔ چا ته به په حرم کښے خپل دُښمن لاس ته راغے،

نو دهغهٔ نه به ئے قصاص او بدله نهٔ اخستله۔ بلکه ټولو عربو به د حرم د اوسیدونکو ډیر عزت او احترام کولو۔ دغه وجه وه چه د مکے د خلقو شام او یمن سره تجارتی سلسله جاری وه۔ او دوی به لاره کښے هیڅ قسم بندیز نهٔ وو۔

د حرم په حدودو کښے چه څهٔ رنګ الله پاک ځناور ته امن ورکړے دے او په دے حدودو کښے ښکار کول روا نهٔ دی۔ دغه رنګ الله پاک په دغه ځناورو کښے دا قدرتی احساس پیدا کړے دے، چه کله ځناور د حرم په حدودو کښے داخل شی خپل ځان محفوظ ګنړی او د ښکاری نه هُم نهٔ ویریږی۔

د حرم د مامون کیدلو دا حکمونه چه د ابراهیم علیه السلام د دُعا اثر او نتیجه دی۔ د جاهلیت د زمانے نه را روان وو۔ اسلام او قرآن کریم دا نور تازه او مضبوط کړل۔ د حجاج بن یوسف او بیا قرامطو د ظلم او زیاتئ نه چه کوم قتل او جنګ په حرم کښے اوشو۔ اول خو دا دهغ کسانو د لاس نه اوشو چه دوئ ځان ته مسلمانان ویل۔ یو کافر قوم حمله نهٔ وه کړے۔ او څوک چه خپل کورته د خپل لاس نه اور اچوی، نو دا د امن سره څهٔ منافی خبره نهٔ ده۔ او دے نه علاوه دا خبره هم ده چه دا واقعات شاذ واقعات دی، چه د حضرت ابراهیم علیه السلام د زمانے نه واخله ترنن پورے په زرګونو کالونو کښے د شمیر یو څو واقعے دی۔ او د دغه قتل او جنګ بده نتیجه د ټولو ورانده ده۔

خلاصه دا ده چه د ابراهیم علیه السلام د دُعا مطابق الله پاک د ا ښار یو محفوظ ښار جوړ کړے دے۔ او د ټولے دنیا د پاره، قُدرتی طور سره یو مامون ځائے جوړ کړے دے۔ تردے چه دجّال به هم حرم ته د داخلیدو قدرت نهٔ لری۔ او شرعی طور سره ئے هم دا حکمونه جاری کړل چه په حرم کښے د یو بل سره جنګ جګړه خو لا پریږده چه د ځناورو ښکار کول ئے هم حرام کړل۔

د دیمه دُعائے دا او کړه چه د دے ښار اوسیدونکو ته د میوو رزق ورکړے۔ د مکے مکرمے او دے نه ګیر چاپیره زمکه د کرونده او باغ بارئ قابله نه وه۔ او هلته چرته تر دیره لرے پورے، د اُبو څهٔ نښه نښانه هم نهٔ وه، لیکن الله پاک د حضرت ابراهیم علیه السلام دُعا قبوله کړه۔ او د مکے نزدے د طائف یو داسے ټوټه ئے جوړه کړه چه په هغے کښے د هر قسم

منهٔ میوه ډیره پیدا کیږی او مکے ته د خرڅ د پاره راوړے شی۔ په بعضے اسرائیلی روایتونو کښے دی. چه طائف په اصل کښے د شام دَ ملک یوه ټکړه وه، چه دا جبرئیل امین د الله پاک په حکم دلته راوړے دے۔

حضرت ابراهیم علیه السلام په خپله دعا کښے دا اُنهٔ وئیل چه مکه او دَ دے گیر چاپیره زمکے ته گلزار جوړ کړه او دَ دے زمکه دکرو ندے قابله کړه، بلکه دا ئے دُعا ئے او کړه چه دا څیزونه بل ځائے کښے پیدا وی، لیکن دا مکے ته اُرسو ے. په دا ے قسم د عاکولو کښے شاید دا راز وو، چه ابراهیم علیه السلام دا نهٔ غوښته چه د هغهٔ اولاد دِ په زمینداریٔ کښے بوښت شی، ځکه چه دَ دے ځائے دَ آبادولو غرض د ابراهیم علیه السلام دا وو، چه دا پخپله حضرت ابراهیم علیه السلام په دُعاکښے یاد کړے دے؛ رَبَّنَا لِيُقِيمُوا الصَّلٰوةَ، چه دَ هغے نه دا ښکاره ده، چه حضرت ابراهیم علیه السلام د خپل اولاد دَ پاره مشغله د بیت الله او مونځ کولو غوښتله او که دا سے نهٔ وے نو دا بیا څهٔ گران خبره نهٔ وه، چه د مکے نه دا سے گلزار جوړ کړے شوے وے چه دمشق او بیروت به پرے رشک کولے.

**دَ میوو د رزق نه مُراد دَ ژوند ټول ضروریات دی**

ثمرات لفظ، چه د ثمرة جمع ده، دَ دے معنیٰ ده میوه، او په ظاهره کښے، له دے مراد دَ اُونو میوه ده لیکن د سورت قصص آیت نمبر ۵۷ کښے د دے دَ قبولیت اظهار په دے الفاظو کښے کړے شوے دے: يُجْبٰى اِلَيْهِ ثَمَرٰتُ كُلِّ شَيْءٍ ۔ په دے الفاظو کښے خو یو دا خبره هم ده، چه په مکه کښے دَ دے میوے پیدا کید لو وعده نهٔ ده شوے بلکه له نورو ځایونو به، دلته راوړے شی۔ ځکه چه د "يُجْبٰى" لفظ معنیٰ او مفهوم هم دغه دے۔ دویمه خبره په دے الفاظو کښے دا ده، چه "ثَمَرٰتُ كُلِّ شَجَرَةٍ" ئے وئیلی نهٔ دی بلکه "ثَمَرٰتُ كُلِّ شَيْءٍ" ئے وئیلی دی، چه په دا سے تعبیر او الفاظو کښے اشاره دے خبرے ته ده چه دَ ثمرات نه مطلق دَ هر څیز پیداوار مُراد دے، خواه هغه دَ اُونے نه پیدا وی او یا د بل څیز نه پیدا وی۔ نو په دے کښے د مشینونو پیداوار هم داخل شو او هم دغه شان د مختلفو دست کاریانو سامان داخل شو۔ مطلب دا چه دَ ژوند ټول ضروریات په دے تعبیر کښے راغلل او د حالاتو او واقعاتو د مشاهدے نه دا هم ثابته ده، چه الله تعالیٰ اگر چه د مکے زمکه نهٔ دَ کاشتکاریٔ زمکه جوړه کړے ده، او نهٔ د صنعت کاریٔ، لیکن دَ ټولے دنیا پیدا کیدونکی څیزونه، دلته حاصلیږی۔ او دا خبره به

شاید نن یو لوئ نه لوئ صنعتي بنار ته حاصله نه وي، چه هغې کښې د ټولې دُنیا مصنوعات په آسانۍ او زیات مقدار کښې حاصلیږي.

**دَ حضرت ابراهیم علیه السّلام احتیاط**

له دې دُعا نه وړاندې کله چه ابراهیم علیه السلام دَ خپل اولاد دَ پاره دَ امامت او اقتدار په دعا کولو کښې د مؤمن او کافر فرق نهٔ وو کړې، نو هلته د الله پاک له طرفه دا ارشاد اوشو چه دا دُعا دَ مؤمنانو په حق کښې قبوله ده، او د ظالمانو او مشرکانو په حق کښې قبوله نهٔ ده. حضرت ابراهیم علیه السّلام ته دلته هغه مخکښې خبره یادیږي، نو په دُعا کولو کښې احتیاط کوئ. نو په خپله د عا کښې دا قید لګوي، چه دا دَ خوشحالۍ او د امن و امان دُعا صرف مؤمنانو دَ پاره غواړم. نو الله پاک د حضرت ابراهیم علیه السّلام د دې ویرې او احتیاط دا قدر داو کړو چه د دُنیا دا خوشحالي او امن به مونږ ټولو ته ورکړو. اګرچه هغه ظالم او مُشرک والې نه وي. البته مؤمنان چه هغوئ ته به دُنیا کښې دا خوشحالي او امن ورکیږي، نو په آخرت کښې به ورته هم ورکیږي، او کافرانو ته به په آخرت کښې د عذاب ورکولو نه بل څه نهٔ وي.

**په خپل نیک عمل باندې دا عتماد او قناعت نهٔ کولو سبق او تعلیم**

رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا ـ حضرت ابراهیم علیه السّلام دَ خپل الله پاک دَ حکم په تعمیل کښې دَ شام ملک پریښودو او دَ مکې په اوچو غرونو کښې خپل اهل و عیال دیره کړو او دَ بیت الله په جوړولو کښې خپل ټول قوت ئې صرف کړو. دا داسې موقعه وه چه دَ داسې مجاهده کوونکي په زړهٔ کښې یو لوئ پیدا شي، او په خپل عمل او کار باندې فخر کوونکې شي. لیکن دلته دې موقعه کښې حضرت خلیل الله دې ـ دَ رب العزت د دربار، عزت او جلال پیژندونکې دې، چه یو بنیادم دَ الله پاک د شان برابر عبادت او اطاعت کولې نهٔ شي. هر سړې د خپل قوت او همّت برابر عمل کوي، نو له دې وجې هیڅ اله پکار نهٔ دي چه هغه په خپل لوئ نه لوئ عمل فخر اوکړي بلکه هغه له دا پکار دي، چه په ډیرې زارۍ او منت سره دُعا اوکړي چه اے الله زما دا عمل قبول کړه ـ دَ دې خبرې تلقین او تعلیم حضرت ابراهیم علیه السّلام په دې دُعا کولو کښې کوي، چه په هغې کښې حضرت ابراهیم علیه السّلام وائې چه :- اے زمونږه پروردګاره! ته زمونږه دا عمل قبول کړې، ځکه چه ته آورېدونکې او علم لرونکې ئې. زمونږه د عا آورې او

زمونږه نیتونه پېژنې.

رَبَّنَا وَاجْعَلْنَا مُسْلِمَيْنِ لَكَ : دا دُعا هم د دغه معرفت او وېرې نتيجه ده چه کوم معرفت او خشيت ابراهيم عليه السلام ته حاصل وو، چه ګوره دے بے مثله کارنامو د اطاعت او فرمانبردارئ نه پس هم دا دُعا کوی چه مونږه دواړه خپل فرمانبردار جوړ کړے. وجه دا ده، چه څومره د چا د الله پاک معرفت زياتيږی، دومره په ده کښې دا احساس هم زياتيږی، چه ما د وفادارئ او فرمانبردارئ حق پوره نکړو.

وَمِنْ ذُرِّيَّتِنَا - په دے دُعا کښې هم ئے خپل اولاد شامل کړو. دے نه دا معلوميږی چه د الله پاک بندګان، که د الله پاک په لاره کښې د خپل ځان او اولاد نه تيريږی، خو سره له دے د دوئ د خپل اولاد سره محبت هم وی. ليکن د دے محبت درستے تقاضے پوره کوی. هغه درستے تقاضے چه هغې ته عام خلق نه رسيږی. ځکه عام خلق خو صرف د خپل اولاد د صحت او راحت خيال کوی، د دوئ ټول شفقت د اولاد په باره کښې چه دے هغه يواځے د دوئ د راحت خيال دے. ليکن د الله پاک مقبول بندګان د خپل اولاد د پاره د جسمانی راحت نه زيات د روحانی راحت خيال لری او د دُنيوی راحت نه ډير د آخرت د راحت غم لری. نو په دے وجه په دُعا کښې وائی چه زما په اولاد کښې يوه ډله پوره فرمانبرداره جوړه کړے.

د خپل اولاد د پاره په دعاګانو کښې يو حکمت بل هم دے، هغه دا، چه تجربه ګواه ده چه کوم خلق په قوم کښې لوئے ګڼړے شی، د دوئ اولاد که چرے د دوئ په لاره يلتے شی. نو په عامو خلقو کښې د دوئ مقبوليت فطری کيږی، او د دوئ په صالح کيدلو سره د عامو خلقو اصلاح کيږی (بحر محيط)

د حضرت خليل الله دا دُعا هم قبوله شوه چه د ده په اولاد کښې هميشه د پاره داخلق راغلل چه حق دين بانده قائم وو او د الله پاک فرمانبردار بندګان وو. په زمانهٔ جاهليت کښې چه کوم وخت ټوله دُنيا او خصوصاً عرب په شرک او بُت پرستئ کښې غرق وو، په دغه وخت کښې هم د ابراهيم عليه السلام په اولاد کښې څه خلق داسے وو چه هغوئ د توحيد او د آخرت عقيده لرله. لکه زيد بن عمرو بن نفيل او قيس بن ساعده شوه د نبی کريم صلی الله عليه وسلم د نيکهٔ مبارک حضرت عبد المطلب بن هاشم په باره کښې هم دا روايت دے، چه هغه د شرک او بُت پرستئ نه ويزاره وو (بحر محيط)

اَرِنَا مَنَاسِكَنَا۔ مناسک د منسک جمع دہ۔ دَحج عملونو ته مناسک وئیلے شی۔ او دَ حج ځایونو ته هم۔ لکه عرفات، منیٰ، مزدلفه، مناسک وئیلے شی دلته دواړه مراد کیدے شی۔ او دُعا حاصل دا دے چه مونږ ته دَ حج اعمال او دَ حج ځایونه پوره طریقے سره اُوښائے۔ دغه وجه ده چه دَ "اَرِنَا" لفظ ئے اُفرمائیلو چه هغه ته اُوښائے مونږ ته۔ او دا ښیدل په سترګو هم کیږی او په زړهٔ هم۔ نو دَ حج ځایونه دجبرئیلؑ په ذریعه په سترګوئے ورته اُښودل۔ او دَ حج احکام ئے ورته د تعلیم په ذریعه اُښودل چه دا دَ زړهٔ کتل دی۔

رَبَّنَا وَابْعَثْ فِيهِمْ رَسُولًا مِّنْهُمْ يَتْلُوا عَلَيْهِمْ اٰيٰتِكَ وَيُعَلِّمُهُمُ

اے پروردګاره زمونږ اُلیږے دوئ کښے یو رسُول له دوئ نه چه لولی په دوئ باندے ستا آیاتونه او ښائی دوئ ته

الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ وَيُزَكِّيهِمْ ۚ إِنَّكَ أَنْتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿١٢٩﴾

کتاب او د حکمت خبرے، او پاکوی دوئ، بے شکه هم ته ئے زبردست او لوئے حکمت والا

**لنډ تفسیر:-** اے زمونږ پروردګاره! او (دا دُعا هم کوو چه) دے ځله کښے (چه دَ دے پیدا کیدلو دعا په خپل اولاد کښے کوو) له دوئ یو پیغمبر هم مقرر کړے چه دے خلقو ته ستا آیاتونه لولی او آورولی او دوئ ته دَ (آسمانی) کتاب (د مضمونونو) او (په دے کښے) دحکمت (دحاصلولو) تعلیم ورکوی (دَ دے تعلیم او لوستنے په ذریعه دَ جهالت د خیالونو وعملونو نه) پاکوی بے شکه هم ته ئے غالب قدرت او کامل انتظام والا۔

**دَ الفاظو تشریح:-**

يَتْلُوا عَلَيْهِمْ اٰيٰتِكَ : یتلو د تلاوة مصدرنه جوړ دے۔ او د تلاوت معنیٰ ده پیروی کول دَ قرآن او حدیث په اصطلاح اوړ په کښے، دا لفظ د قرآن کریم او دَ نورو آسمانی کتابونو او دَ وحی الٰهی د لوستلو دپاره استعمالیږی، ځکه چه دَ دے کلام لوستونکو باندے دَ دے کلام پوره پیروی کول لازم دی۔ چه څهٔ رنګ دَ الله پاک د طرف نه نازل شوے وی، هغه شان لوستل ئے ضروری او لازمی دی۔ دَ خپل طرفه د څهٔ لفظ یا د زور زیر زیاتول او کمول ئے روا نهٔ دی۔

امام راغب په مفردات القرآن کښے وئیلی دی، چه دکلامِ الٰهی نه سوا د بل یو کتاب لوستلو ته

تلاوت په عرف کښے نهٔ شی ویلے ۔

وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ : دکتاب نه مراد ۔ کتاب الله دے ۔ او دحکمت لفظ په عربیٔ ژبه کښے دَ ډیرو معنو دَ پاره راغلے دے ۔ یعنی حق خبرے رسیدل او ته حکمت وائی ۔ عدل انصاف ، علم او حلم ته حکمت وائی (قاموس)

امام راغب لیکی ، دحکمت لفظ هرکله چه الله پاک دَ پاره استعمال شی ، نو دَ دے معنیٰ ده دَ ټولو څیزونو مکمل پیژندګلی او مضبوط پیدا کول ۔ او کله چه دالله پاک نه ماسوا ، دَبل چا دَ پاره استعمال شی ، نو بیا دَ دے معنیٰ ده درسته پیژندګلو او ښهٔ عملونه ۔

او دلته په آیت کښے دحکمت دَ لفظ نه مراد څهٔ دے ؟ صحابه او تابعین مفسرین چه هغویٔ د قرآن کریم د معنیٰ کانو هغه تشریح کوی کوم چه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه ئے زده کړے ده ، دحکمت معنیٰ ئے دلته په مختلفو الفاظو سره بیان کړے ده ، لیکن دَ دے ټولو الفاظو خلاصه او مطلب هُم یو څیز دے ، یعنی دَ نبی صلے الله علیه وسلم سنت ۔ دَ تفسیر اماما نو ، ابن کثیر او ابن جریر د حضرت قتادهؓ نه دغه تفسیر نقل کړے دے ۔ چا دَ دے معنیٰ دَ قرآن تفسیر آخستے ده ، او چا په دین کښے پوهه حاصلول آخستے ده ۔ او چا دَ احکامو شرعیهٔ علم ، او چا هغه احکامو الٰهیو علم چه د رسول الله صلے الله علیه وسلم دَ بیان نه معلومیدے شی آخستے ده ۔ او دا ظاهره خبره ده ، چه دَ دے مطلب او حاصل ، حدیث او سنت رسول الله صلے الله علیه وسلم دی ۔

"وَيُزَكِّيْهِمْ" لفظ د زکوٰةٌ نه جوړ دے ، او دَ دے معنیٰ ده پاکی ، او دا لفظ ظاهری او باطنی دواړو قسمه پاکو دَ پاره د ویلے کیږی ۔

## علوم او مسائل :-

دذکر شوی تشریح نه دآیت مفهوم واضح شو ، چه حضرت ابراهیم علیه السلام دَ خپل راتلونکی نسل دَ دواړو جهانو دکامیابئ دَ پاره د الله پاک نه دا اُغوښتل چه زمانه او اولاد کښے یو رسول اُلیږه چه دوئ ته ستا آیاتونه لُولی او دَ قرآن او سنت تعلیم ورکوی او دوئ دظاهری او باطنی پلیتو نه پاکوی ۔ او دُعائے بیا دا سے کړے ده ، چه دا رسول د دهٔ په اولاد کښے وی ۔ دا ځکه چه اول په دے کښے د دهٔ دَ اولاد سعادت او عزت دے ۔ دویم دا چه هرکله دا رسول دَ دے قوم نه وی ، نو دوئ به د دهٔ چال چلن او خویٔ خصلت نه ښهٔ خبروی

نو په څهٔ دوکه او تېکئ کښې به مبتلا نشي - په حدیث کښې دي چه حضرت ابراهیم علیه السلام ته دَدے دُعا جواب د الله پاک له طرفه دا حاصل شو، چه ستاد دعا قبوله شوه - اودا پیغمبر به په آخره زمانه کښې اولیږلے شي (ابن جریر - ابن کثیر)

**د رسول الله صلے الله علیه وسلم دَ ولادت خصوصیات**

د امام احمد په مسند کښې یو حدیث دے، چه نبي صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دي، چه زهٔ د الله پاک په نزد هغه وخت خاتم النبیین وُم کله چه آدم علیه السلام لا پید انهٔ وو. بلکه هغه وخت چه دَ هغه خمیر جوړید و - او زهٔ تاسو ته د خپلے معاملے شروع بنایم، چه زهٔ د خپل پلار حضرت ابراهیم دَ دُعا او د حضرت عیسٰی علیه السلام د زیری او د خپلے مور مُبارکے د خوب مظهر یم - د عیسٰی علیه السلام د زیری نه دَ هغه مُراد دا قول دے: مُبَشِّرًا بِرَسُوْلٍ يَّاْتِيْ مِنْۢ بَعْدِي اسْمُهٗٓ اَحْمَدُ - او مور مُبارکے ئے دَحمل په وخت کښې دا خوب لیدلے وو چه زما د خیټے نه یو نُور اُوتو، چه هغے سره د شام د ملک لوڅے لوڅے ماڼرئ اُوځلیدے - بیا دَ قرآن کریم په دوؤ سورتونو کښې یعنی سورۀ آل عمران او سورۀ جُمعه کښې د نبي صلی الله علیه وسلم د پیغمبر لیږلو چه کومه تذکره شوے ده، په هغې دَ دغ الفاظو اعاده کړے شوے ده، کوم چه دَ حضرت ابراهیم علیه السلام په دُعا کښې دلته ذکر کړ دی - نو په دے کښې اشاره دے طرف ته ده چه حضرت ابراهیم علیه السلام دکوم پیغمبر د لیږلو دپاره دَ خدائے نه دعا کړے وه هغه نبي کریم صلی الله علیه وسلم دے - دآیت دالفاظو تشریح او دَ دهٔ د مفهوم دا ضحکیدلو نه پس، په دے لاندینو خبرو سوچ کول پکار دي: -

**دَ پیغمبر د لیږلو درے غرضونه**

د سورتِ بقرے په دے آیت کښې او د سورتِ آل عمران او سورتِ جُمعه په آیاتونو کښې، دَ نبي صلی الله علیه وسلم په باره کښې یو مضمون په یو شان الفاظو سره بیان شوے دے، چه په هغې کښې د نبي صلی الله علیه وسلم دُنیا ته د راتللو مقاصد یا دَ دهٔ د نبوت د عهدے فرائض درے بیان کړے شوي دي - یو د آیاتو تلاوت کول. دویم دَ کتاب او حکمت تعلیم ورکول - دریم دَ خلقو د اخلاقو، اعمالو وغیره پاکول -

**پرو مے مقصد د آیاتونو تلاوت**

دلته دا خبره د فکر وړ ده، چه د تلاوت تعلق د الفاظو سره دے او دَ تعلیم تعلق د معنو سره دے - نو دلته د تلاوت او تعلیم جُدا جُدا بیانولو نه دا مطلب را اُوتو چه څهٔ رنګ دَ قرآن کریم معنے: مقصد او غرض دي، هم دغه رنګ

دَدهٔ الفاظ مستقل حیثیت لري او مستقل غرض هم دی، ځکه چه د قرآن کریم د الفاظو تلاوت کول او حفاظت کول فرض او اهم عبادت دے۔ د دې دا خبره هم دَ فکر کولو قابله ده چه دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم، ېنغ په نیغه مخاطب خلق هغه عرب وو، چه هغوئ یواځې په عربئ ژبه نهٔ پوهیدل بلکه ورسره ورسره دَ عربئ ژبې فصیح او بلیغ تقریر کوونکي او شاعران وو۔ نو دوئ ته عربي قرآن لوستل خو په ظاهره د تعلیم دپاره کافي وو، دوئ ته، جُدا د ترجمې او تفسیر کولو څهٔ ضرورت نهٔ وو، نو بیا د آیاتو نو لوستلو یو جُدا مقصد او دکتاب دَ تعلیم جُدا مقصد دَ رسالت دپاره ضرورت څهٔ دے۔ هرکله چه د عمل د مخې دا دواړه مقصد و نهٔ یو کیږی۔ په دے خبره کهٔ فکر اوکړے شی نو دوه اهم نتیجې به مخې ته راشي۔ اول دا چه قرآن د نورو کتابونو په شان یو کتاب نهٔ دے، چه په هغوئ کښې مقصود صرف معنیٰ کانی دے او الفاظ پکښې اصلي مقصد نهٔ وو۔ او کهٔ په دے الفاظو کښې څهٔ معمولی رد بدل اوکړے شی هم، نو څهٔ حرج هُم نهٔ کېږي نشي، بلکه قرآن کریم کښې چه څهٔ رنګ معاني مقصُود دی، د غه رنګ الفاظ هم مقصُود دی، او د قرآن الفاظو سره د خاص خاص شرعي احکامو تعلق دے۔ د غه وجه ده چه په اصولِ فقه کښې د قرآن کریم دا تعریف کړے شوے دے چه: "هُوَ النَّظْمُ وَالْمَعْنٰی جَمِیْعًا"۔ یعنی قرآن د الفاظو او د معنیٰ دواړو نوم دے۔ چه له دے نه دا معلومه شوه، کهٔ څوک د قرآن معنیٰ کانې په نورو الفاظو کښې یا په نورو ژبو کښې بیان کړے شي، نو دے ته قرآن ویلے نشي۔ اګرچه مضامین ئے بالکل درست وے نهٔ وی۔ هم د غه رنګ کهٔ څوک د قرآن مضامین په بله ژبه کښې په مانځهٔ کښې اُو لوستلے شی نو مونځ نهٔ اداکیږی۔ او هم د غه رنګ هغه ټول احکام چه د قرآن په باره کښې دی دے ته نهٔ حاصلیږی۔ دغه وجه ده چه دَ اُمّت فقهاؤ د قرآن کریم ترجمه، بغیر د قرآن دَ متن نه د چاپ کولو او دَ لیکلو منع کړے ده۔

خلاصه دا ده، چه په دے آیت کښې دَ رسول صلی الله علیه وسلم په فرائضو کښې، د تعلیم دَ کتاب نه علاوه، د آیاتو نو تلاوت کول یو مُستقل او جُدا فریضه بیان کړه او په دے سره دے خبرے ته ئے اشاره اوکړه چه څهٔ رنګ په قرآن کښې معاني مقصود دی هم د غه رنګ د دهٔ الفاظ هُم مقصُود دی ځکه چه تلاوت خود الفاظو کیږی د معنیٰ کانو تلاوت نهٔ کیږی. نو په دے وجه څهٔ رنګ چه دَ نبي صلے الله علیه وسلم په فرائضو کښې تعلیم شامل دے، هم د غه رنګ

دده په فرائضوکښې د الفاظو تلاوت او حفاظت هم یوه مستقله فریضه ده، اګرچه په دې کښې خو، شک نشته، چه دَ قرآن د نازلیدو مقصد، دده د بنودلې شوې نظام په ژوند عمل کول او دده په تعلیماتو پوهیدل او پوهول دی. او صرف دده په الفاظو یادولو صبر او قناعت کول. د قرآن کریم د حقیقت نه ناواقفیا او دَ قرآن ناقدري ده.

لیکن سره له دې داوئیل هم هیچرې درست نهٔ دی، چه ترڅو قرآن کریم د الفاظو په معنیٰ پوهه حاصله نهٔ وی، نو د قرآن کریم الفاظ دَ طوطی په شان لوستل او لوتول بےکاره دی. دَدې خبرې وضاحت ځکه کوم، چه نن ډیر خلق، قرآن کریم په نورو کتابونو قیاس کوی، او وائی چه ترڅو دَیو کتاب په مطلب څوک نهٔ پوهیږی، د هغه د الفاظو لوستل هسې وخت خرابول دی، لیکن د قرآن کریم په باره کښې دا خیال لرل غلط دی، ځکه چه قرآن کریم د الفاظو او د معنو دواړو نوم دے. څهٔ رنګ چه دده معنو باندې پوهیدل، او دَ هغې په احکامو عمل کول فرض او اعلیٰ عبادت دے. هم د غه رنګ دده د الفاظو تلاوت کول یو مستقل عبادت او لوئے ثواب دے.

| د غه وجه ده چه رسول صلی الله علیه وسلم او صحابه کراموچه هغو دَ قرآن دَ معنیٰ کانود ټولو نه زیات علم لرلو، صرف په معنیٰ باندې | دویم مقصد دکتاب تعلیم |
|---|---|

پوهیدل او عمل کول کافی نهٔ ګنړلو. د پوهیدنو او د عمل کولو د پاره خو یوځل دَ قرآن وئیل کافی وو. لیکن هغوئ دَ قرآن لوستل د خپل ټول عُمر مشغله ګرځولے وه. تر دے پورے، چه بعضو صحابوٴ به روزانه د قرآن مجید یو ختم کولو او بعضو به دوؤ ورځو کښې ختم کولو. او اکثرو به درې ورځو کښې ختم کولو. او په هره هفته کښې د قرآن ختمول خو، د پوره امت معمول پاتے شوے دے. دَ قرآن کریم دا اووه منزله کیدل د د غه هفته وار ختم کولو د عمل علامه ده. دَ رسول صلی الله علیه وسلم او د صحابه کرامو دا عمل دا ښائی چه څهٔ رنګ د قرآن کریم په معنو باندې پوهه کیدل او عمل کول اصلی عبادت دے، د غه رنګ دده د الفاظو تلاوت کول یخپل ځائے کښې، یو اعلیٰ عبادت، او د انوارو او برکاتو سبب دے. نو په دے وجه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په فرائضو کښې د آیاتو تلاوت له یوجُدا حیثیت او مقام ورکړے شو. مطلب دا دے چه کوم مُسلمانان فی الحال د قرآن په معنو باندې نهٔ پوهیږی هغه په دې بدبختئ کښې مبتلا نهٔ شی، چه صرف الفاظ وئیل بے فائده اوګنړی او له دے ثواب نه

محروم پاتے نهٔ شی۔ دا کوشش کول ضروری دی، چه د قرآن کریم معنو باندے پوخوک پوهه شی او دَ قرآن کریم د حقیقی برکتونو مشاهده او کړی او د غه رنګ د قرآن د نازلیدلو اصلی مقصد پوره شی۔ قرآن خو معاذالله د منتر په شان نهٔ دے، چه صرف دَدم د پاره استعمال شی۔

دَ خبرے خلاصه دا ده، چه په دے آیت کښے دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم د منصب نبوت د فرائضو په بیان کښے، دا او ښودلے شو، چه د آیاتونو تلاوت د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د فرائضو نه هم یوجدا فریضه او ښودلے شوه. نوله دے نه دا خبره په ډاګه شوه، چه په قرآن کریم باندے د پوهیدو د پاره یواځے په عربئ باندے پوهیدل کافی نهٔ دی، بلکه دے د پاره دنبی صلے الله علیه وسلم د زده کړے ضرورت دے۔ لکه چه د ټولو علمونو او فنونو په زده کړه کښے یو سړے صرف دکتاب په مطالعه باندے فائده نهٔ شی آخستے بلکه هغه کهٔ چرے له دے کتابونو نه فائده آخستل غواړی نو هغه به خامخا دغو کتابونو مهر ته رجوع کوی او د هغه شاګردی به کوی۔ نو د غه شان قرآن کریم هم دے چه د دهٔ په مضامینو باندے پوهیدل یواځے د عربئ ژبے په پوهیدلو سره نهٔ کیږی بلکه د رسول الله صلے الله علیه وسلم په تعلیم سره، دقرآن کریم د مضامینو صحیح علم او فهم حاصلیدے شی۔ نو قرآن کریم د رسول الله صلے الله علیه وسلم د تعلیماتو نه جُدا کول ځان له د دکه ورکول دی. کهٔ چرے د قرآن کریم د مضامینو د ښودلو ضرورت نهٔ وے، نو بیا د پیغمبر لیږلو څهٔ ضرورت نهٔ وو. لیکن الله تعالیٰ علیم او حکیم دے، هغه ته ښهٔ معلومه ده چه قرآن کریم باندے دَ پوهه کولو دَ پاره دو نیا د نورو کتابونو نه، دَ استاد دَ ښودنے زیات حاجت دے، او بیا دے د پاره، عام استاذ هم کافی نهٔ دے بلکه دَ دے اُستاذ هغه کَس کیدے شی چه هغهٔ ته د وحی په وجه الله پاک سره د خبرو کولو عزت حاصل شوے وی، یعنی چه نبی او رسُول وی۔ نو په دے وجه قرآن کریم کښے، دنیا ته د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د لیږلو یو مقصد دا مقرر کړے شو چه دے د قرآن کریم د معنو او حکمونو تشریح او کړی۔ الله تعالیٰ فرمائی: لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ مَا نُزِّلَ إِلَيْهِمْ (مونږ ته دے وحے نه لیږلے چه ته خلقو ته، دالله تعالیٰ د نازل شوو آیاتونو تشریح او کړے)

دکتاب د تعلیم او ښودنے سره سره دَ نبی کریم الله علیه وسلم په فرائضو کښے یوه بله فریضه

دَ حکمت تعلیم او ښودنه هم مقرر شوے ده .او څهٔ رنگ چه ما وړاندے دا ښودلی دی چه د حکمت لفظ په عربئ کښے د یرو معنو دپاره را غلے دے .لیکن صحابه کرامو او تابعینو د حکمت تفسیر په سنت رسول صلی الله علیه وسلم سره کړے دے .اوله دے نه دا معلومه او واضحه شوه ، چه څهٔ رنگ دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم په ذمه بانندے دَ قرآن کریم د معنو ښودل دی ، د غه رنگ دده په ذمه بانندے په خپل عمل او قول سره د خلقو تربیت کول هم دی .او په دے وجه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی چه :"اِنَّمَا بُعِثْتُ مُعَلِّمًا" ( زهٔ معلم لیږلے شوے یم .) او دا ظاهره خبره ده ، چه هرکله دَ نبی کریم د وجود غرض او مقصد مُعلّم کیدل شو، نو دده دَ اُمَّت د وجود غرض او مقصد متعلم او شاگرد کیدل شو .نو په دے وجه هر مسلمان سړی او ښځے له طالب علم کیدل پکار شو .که چرے چا ته دَ قرآن کریم او د سُنّت د پوره علمونو حاصلولو فرصت نهٔ وی ، نو کم از کم دے د دَ ضرورت په اندازه د علم حاصلولو غم او فکر اُو کړی .

**دریم مقصد تزکیه**

دریم مقصد ، د نبی کریم صلے الله علیه وسلم د نبوت په فرائضو کښے تزکیه ده .او دَ دے معنیٰ ده ، د ظاهری او باطنی پلیتو نه پاکول .ظاهری پلیتیانے خو هر مسلمان پیژنی .او باطنی پلیتیانے ، کفر، شرک ، تکبّر، حسد، بغض، کینه، د دُنیا محبت وغیره دی .دَ قُرآن کریم او سنت په تعلیما تو کښے اگرچه دَ دے ټولو څیزونو بیان راغلے دے لیکن بیا تزکیے له دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم په جُدا او مُستقل فریضه مقرر کولو کښے ، دے خبرے ته اشاره ده ، چه څهٔ رنگ یواځے دَ الفاظو په معنو باندے د پوهیدلو نه یو فن او علم نه حاصلیږی ، د غه رنگ نظری او علمی طور سره دَ فن د حاصلیدلو نه ، دَ دے فن استعمال او په دے فن کښے کمال نهٔ حاصلیږی .ترڅو چه دَ یو تربیت ورکوونکی د نگرانئ لاندے دَ دے مشق اُو نکړے شی .

په سلوک او تصوّف کښے دَ یو کامل شیخ او پیر دَ تربیت ورکولو د غه مقام او مرتبه ده ، چه په قرآن کریم او سنت کښے چه کوم احکام علمی طور سره بیان کړے شوی دی ؛ د هغوئ د عملی کیدلو عادت په مریدانو کښے واچوی .

**دَ هدایت او اصلاح دوه سلسلے کتاب الله او رجال الله**

اوس دَ دے سلسلے دوه خبرے نورے قابلِ غور دی .اول دا ، چه الله پاک دا نسان د پیدا کولو نه وا خله ، تر دَ

خاتم الانبیاء د زمانے پورے دَ بنیاد موږ اصلاح او هدایت دَ پاره، دوه سلسلے جاری کړلی دی. یو دَ آسمانی کتابو نو سلسله او دویمه دَ غے کتابو نو د ښودونکو سلسله. څهٔ رنګ ئے چه صرف کتاب نازول دَ هدایت او اصلاح دَ پاره کافی او نهٔ کنټرول، دغه رنګ یواځے بغیر د کتاب نه د پیغمبرانو لیږل ئے دَ هدایت د پاره کافی او نهٔ کنټرول، بلکه دا دواړه سلسلے ئے جاری اُساتلے. دَ الله پاک دا عادت کوم باندے چه قرآن کریم شهادت کوی، چه د خلقو د اصلاح او فلاح د پاره ئے دا دواړه سلسلے جاری کړے، دَ یو لوئے علم دروازه پرانسته، هغه دا چه د بنیاد م صحیح تعلیم او تربیت دَ پاره نهٔ یواځے کتاب کافی دے او نهٔ یواځے یو تربیت ورکوونکے بنیادم کافی دے بلکه دے دَ پاره یو طرف ته دَ آسمانی هدایاتو او د الله پاک د قانون ضرورت دے، چه د هغے قوم کتاب یا قرآن دے او بل اړخ ته د یو معلم او تربیت ورکوونکی بنیادم ضرورت دے، چه هغه په خپل تربیت سره عامو بنیاد مولره د آسمانی هدایاتو نه خبر کړی او بیائے په دے باندے عمل کوو نکی اوګرځوی او بیا داسے عمل کوونکی، چه دا عمل دَ د دیٔ خوئ او خصلت اُوګرځی، ځکه چه دَ بنیادم اصلی مُعلّم او تربیت ورکوونکے، بس انسان کیدے شی. کتاب معلم یا تربیت ورکوونکے نه شی کیدے. البته دومره ده چه کتاب په تعلیم او تربیت ورکولو کښے مدد کولے شی.

دغه وجه ده چه څهٔ رنګ د اسلام ابتدا دَ یو کتاب او یو معلم نه اُوشوه. او د دے دواړو دَ کړیدون نه یوه درسته او مثالی معاشره، په دنیا کښے پیدا شوه. د غه رنګ دراتلونکو نسلونو د پاره هم، یو طرف ته د پاک شریعت، او بل طرف ته د خدائے د بندګانو سلسله جاری پاتے شوه. قرآن کریم ځائے په ځائے دَ دے خبرے ارشاد کړے دے. یو ځائے کښے ارشاد دے:

| | |
|---|---|
| يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَكُونُوا مَعَ الصَّادِقِينَ ﴿١﴾ | اے ایماندارو! دَ الله تعالیٰ نه اُویریږئ او دَ رښتینو خلقو سره شئ. |

په بل ځائے کښے د صادقین په بیان کښے فرمائی :-

| | |
|---|---|
| أُولَٰئِكَ الَّذِينَ صَدَقُوا وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُتَّقُونَ ﴿٢﴾ | او دغه خلق رښتونی دی او دغه خلق دی پرهیزګار |

دَ صراط مستقیم دَ هدایت د ښودلو دَ پاره چه هغه د سورۃ فاتحے مطلب او خُلاصه ده، او سورۃ فاتحه په خپل ځائے، دَ ټول قرآن کریم خلاصه ده، صراط القرآن، یا صراط الرسول او یا صراط السنة نهٔ دی ویلی شوی، بلکه د څهٔ بندګانو د خدائے پته ورکړے شوے ده، چه دا دوئ نه صراط مستقیم حاصلیږی. ارشاد دے:

(۱) التوبه : ۱۱۹ (۲) البقرة : ۱۷۷

صِرَاطَ الَّذِيْنَ اَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّآلِّيْنَ ۝[۱]

یعنی صراطِ مُستقیم دَهغو خلقولاره ده چه په هغوئ باندې دَالله تعالیٰ انعام شوے دے ، نهُ دهغو خلقولاره چه گُمراه شوی دی ۔

په بل ځائے کښې دَدے خلقو چه په هغوئ دَ الله تعالیٰ انعام دے وضاحت اوتشریح کړے شوے ده ۔ الله پاک فرمائی :۔

فَاُولٰٓئِكَ مَعَ الَّذِيْنَ اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ مِّنَ النَّبِيّٖنَ وَالصِّدِّيْقِيْنَ وَالشُّهَدَآءِ وَالصّٰلِحِيْنَ[۲]

او هُم دغه رنګ نبی کریم صَلی الله علیه وسَلم دَخپل ځان نه روستو د بعضو حضراتو په دینی معاملو کښې د تابعداری کولو حکم کړے دے ۔ دَ ترمذی په صحیح حدیث کښې دی :

يَا اَيُّهَا النَّاسُ اِنِّيْ تَرَكْتُ فِيْكُمْ مَا اِنْ اَخَذْتُمْ بِهٖ لَنْ تَضِلُّوْا كِتَابَ اللّٰهِ وَعِتْرَتِيْ اَهْلَ بَيْتِيْ

اے خلقو! زهٔ تاسو دپاره د خپل ځان نه روستو دوه څیزونه پریږدم ۔ دادواړه په مضبُوطه اونیسئ نوتاسو به گُمراه نهٔ شئ ۔ یو دالله پاک کتاب او بل زما اولاد او اهلِ بیت ۔

او دَ صحیح بخاری په حدیث کښې دی :

اِقْتَدُوْا بِالَّذِيْنَ مِنْ بَعْدِيْ اَبِيْ بَكْرٍ وَّعُمَرَ | زمانه روستو دَ ابُوبکرؓ او عُمرؓ تابعداری کوئ

او په یو بل حدیث کښې ارشاد دے :

عَلَيْكُمْ بِسُنَّتِيْ وَسُنَّةِ الْخُلَفَآءِ الرَّاشِدِيْنَ | زما په طریقه او دَخلفاؤ راشدینو په طریقه عمل کوئ

دَ خبرے خلاصه دا شوه ، چه د قرآن کریم دَدے هدایاتو نه او د نبی کریم صلی الله علیه وسلم دَدے ارشاداتو نه دا خبره واضحه شوه ۔ چه د قومونو د اصلاح او تربیت دپاره ، په هره زمانه او پیړئ کښې دوه څیزونه ضروری دی ۔ یو قرآنی هدایات او دویم په دے باندې پوهه کولو ، او د عمل کولو دمنګے پیدا کولو دپاره د شریعت د ماهرینو او دالله پاکؓ د بندګانو تعلیم او تربیت ۔

او بیا دا دواړه هُم په دا سے طریقے سره ، چه دَ هریو په حق کښې څهٔ زیاتے او کمے را نهٔ شی ۔ ځکه چه په کمی او زیاتی سره د فائدے په ځائے نقصان او د اصلاح په ځائے فساد حاصلیږی ۔ او دا زیاتے او کمے دا سے دے چه څهٔ خلق کتاب الله ، شاته غورځوی او عالمان او مشائخ دَ دخپل مقصود قبله گرځوی ۔ او دا تحقیق نهٔ کوی ، چه آیا دغه عالمان او مشائخ دَ شریعت

(۱) الفاتحة : ۶ (۲) [illegible]

موافق عمل کوی یا نه - اودا مرض خو په اصل کښې د یهودو او نصاراؤ دے چه :

اِتَّخَذُوٓا اَحۡبَارَهُمۡ وَرُهۡبَانَهُمۡ اَرۡبَابًا مِّنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ | هغوئ خپل علماء او مشائخ د الله پاک نه سواخپل معبُودان او مقصُود قبلے گرځولی دی -

اودا ظاهره خبره ده، چه دا طریقه، د شرک او کفر طریقه ده. او په نکونو خلق په دے لاره کښې برباد شوی دی او برباد یږی او بعض خلق دا سے هم شته چه د قرآن او د حدیث علوم په حاصلولو کښې د څهٔ معلم او تربیت ورکوونکی ضرورت نهٔ گڼړی . او وائی چه مونږ له صرف کتاب الله کافی دے - نه د ماهرانو عالمانو مونږ ته څهٔ ضرورت شته او نهٔ د تربیت یافتو مشائخو حاجت - اودا بله گمراهی ده چه د دے نتیجه دا ده چه سړے د دین نه اوځی - ځکه چه د ماهرینو د امداد نه بغیر د یو فن حاصلول د انسان د فطرت نه یوه مخالفه خبره ده - نو چه کوم کسان دا سے کار کوی، نو هغوئ به ضرور غلطئ کښې پریوځی - او دا غلطی کله سړے له دین نه باسی - نو په دے وجه ضروری شو چه له دے دواړو خیزونو نه په خپل مقرره حد کښې فائده واخستے شی - او دا اُگڼړے شی، چه اصلی حکم خو د الله پاک وَحۡدَهٗ لَا شَرِیۡكَ لَهٗ دے - او تابعداری خو په اصل کښې د هٔ ده - رسُول خو هم په دے باندے عمل کوونکے دے او نورو خلقو له په دے باندے عمل کوونکی جوړوونکے دے - د پیغمبرؐ فرمانبرداری صرف په دے لحاظ سره کیږی - چه د هٔ تابعداری بعینهٖ د الله پاک تابعداری ده - البته د دے سره که چرے په قرآن او حدیث باندے په پوهیدلو کښې او د دوئ حکمونو باندے په عمل کولو کښې، کوم علمی یا عملی مشکلات د وړاندے راشی، نو د دے د پاره د ماهرینو د قول او فعل نه امداد اخستل ضروری دی -

په مذکوره آیت کښې، هر کله چه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په فرائضو کښې د کتاب سره نه داخله شوه، نو له دے نه یوه بله فائده هم را اوته - هغه دا چه څرنگ قرآن کریم تر قیامته محفوظ دے، نو دا ضروری شوه، چه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم تعلیمات به حیثیت مجموعی تر قیامته محفوظ او باقی دی - که دا سے نهٔ شی، یا صرف د قرآن د الفاظو محفوظ کیدلو نه د قرآن د نازلیدلو مقصد په پوره نهٔ شی - او دا هم ظاهره خبره ده چه د رسُول صلی الله علیه وسلم تعلیمات هغه دی چه هغ ته حدیث او سنت ویلے شی او د حدیث او د سنت د حفاظت وعده د الله پاک له طرفه اگرچه د هغ درجے نه ده، چه کومه د قرآن کریم د حفاظت د پاره ده : اِنَّا نَحۡنُ نَزَّلۡنَا الذِّكۡرَ وَاِنَّا لَهٗ لَحٰفِظُوۡنَ ۝ (مونږ قرآن نازل کړے دے او بس مونږ د دهٔ حفاظت کوونکی یو)

هغه دا ے چه د قرآن کریم الفاظ حتیٰ چه زور زیر بالکل محفوظ راروان دی، او ترقیامته به محفوظ وی. او د سنت رسول صلی الله علیه وسلم اګرچه د غه رنګ محفوظ نهٔ دی لیکن په مجموعی حیثیت سره د نبی کریم صلی الله علیه وسلم سنت محفوظ کیدل د مذکوره آیت له مخې نه لازمي دی- او د الله تعالیٰ شکر دے، چه دا ترننه پورے محفوظ راروان دے. کله چه د چا د طرف نه په دے کښے د غلطو روایتو نوکے پیوند شوے دے، نو د سنت ماهرینو د غه روایات د سنت نه او بنکلی دی- او ترقیامته پورے به د غه سلسله جاری وی- رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی. چه زما په اُمت کښے به ترقیامته دا سے ډله دا هل حق او اهل علم موجوده وی چه قرآن او حدیث به په درست طریقه سره محفوظ کوی او په دے کښے، د هرے اچولے شوے رخنے به اصلاح کوی-

خلاصه دا ده، چه هرکله په قرآن کریم باندے د عمل کولو دپاره د رسول صلی الله علیه وسلم سنت ضروری دے- او دا هم ضروری خبره ده چه په قرآن باندے عمل کول ترقیامته ضروری او لازمی دی- نو له دے نه دا لازمه شوه چه ترقیامته د نبی کریم صلی الله علیه وسلم تعلیمات د هم باقی او محفوظ شی- نو په دے آیت کښے د تعلیمات رسول ترقیامته د باقی کیدلو او محفوظ کیدلو پیشن ګوئی ده، او د غه پیشن ګوئی درسته ثابته شوے ده، هغه دا ے چه الله تعالیٰ سنت نبوی د صحابه کرامو نه واخله، ترننه پورے د علم حدیث ماهر علماؤ او د مستند د کتابونو په ذریعه سره محفوظ کړے دے- او په دے خبره سره، د هغه د جل او الحاد حقیقت پرانستے شو، چه هغه ننن صبا بعضے خلق خپل ځان د اسلام د حکمونو نه د بچ کولو دپاره کوی- او وائی چه د حدیث موجوده ذخیره محفوظه او قابل اطمینان نهٔ ده- د وئی له په دے خبره ځان خبرول پکار دی، که چرے د حدیث اعتماد پورته شی، نو بیا به قرآن باندے دا عتماد کولو هڅه لاره نهٔ پاتے کیږی-

په ذکر شوی آیت کښے د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د نبوت دریم مقصد تزکیه مقرر شوے ده- او د تزکیے معنیٰ وړاندے موږ ه ذکر کړے ده- دا تزکیه په دے وجه مستقل مقصد ګرځولے شوے دے چه تعلیم که هرڅومره صحیح وی، خو عادةً صرف په تعلیم سره د اخلاقو اصلاح نهٔ شی کیدلے. د اخلاقو اصلاح هغه وخت کیدے شی چه د یو تربیت یافته په نګرانئ کښے د دوئ عملی تربیت حاصل شی- دا ځکه چه د تعلیم کار په اصل

کښې نيغه لاره ښودل دي. او دا ظاهره خبره ده، چه منزلِ مقصود ته د رسيدلو دَ پاره يواځې لاره ښودل کافي نه دي. خو پوره چه دَ قدم پورته کولو او د تللو همّت او نکړے شي. او د همت دا نسخه، بغير د خاوندانو د همت د ملګرتيا او د تابعدارئ نه څۀ بل څيز نه دے.

د عمل همت او توفيق، دَ يو کتاب د لوستلو، يا په يو کتاب باندے د پوهيدلو نه نۀ پيدا کيږي. دَ دے صرف يو ستن بيړه دے، چه د الله پاک دَ بندګانو ملګرتيا او وله دوئ نه د همّت تربيت حاصل کړے شي او دا غه څيز تزکيه ده.

دا دَ اسلامي تعليماتو يو ډير څرګند خصوصيت دے چه تعليم سره سره تزکيه ئې ضرور کړې ده، دَ تزکيې نه بغير د تعليم مقصد پوره کيدے نه شي؛ د صحابه کرامو په وخت کښې چه کومه مثالي معاشره جوړه شوې وه، او چه هغوئ به چرته تلل، فتح او نصرت به دَ دوئ ملګرے وو. دَ دے وجه صرف دا وه، چه دَ دوئ تعليم د نبي کريم صلی الله عليه وسلم په لاس شوے وو، چه دا يواځې تعليم نه وو، بلکه ورسره عملي تربيت هم وو.

نن صبا خو د تعليم ښۀ کولو د پاره قسما قسمه کوششونه کيږي، نصابونه بدليږي را بدليږي ليکن د تعليم د روح درست کولو باندے څۀ فکر نه کيږي، هغه دا چه د معلمو او مُدرسو اخلاقي حالت او مُصلحانه تربيت ته او کتے شي، نو نتيجه ئې دا ده، چه سره د ډيرو کوششونو نه يو مکمل انسان دَ د غه تعليم نه نۀ پيدا کيږي، او نۀ چرته يوه مثالي معاشره جوړيدے شي.

د دے ځائے پورے خو، د رسالت او نبوت دَ درې مقاصدو بيان اوشو. او س په آخر کښې دا ګورو، چه د غه درې مقاصدو پوره کولو کښې څومره پورے نبي کريم صلی الله عليه وسلم کامياب شوے وو. د دے خبرے دَ پاره دا پيژندل کافي دي، چه کوم وخت نبي کريم صلی الله عليه وسلم له دے دنيا نه رخصت شو، لۀ د غه وخت نه مخکښې مخکښې، دَ آياتونو تلاوت کول دَ درجے ته رسيدلے وو، چه په ټولے جزيرة العرب کښې قرآن کريم لوستلے کيدے شو، په زرګونو دده حافظان وو، په سلګونو، دا سے خلق موجود وو، چه هغوئ به هره ورځ يا په دريمه ورځ قرآن کريم ختمولو. دَ کتاب دَ تعليم او حکمت دا مقام او درجه وه چه د دُنيا ټولے فلسفے د قرآن کريم په مخکښې خړے پاتے شوے دے. دَ تورات او انجيل تحريف شوے صحيفے افسانے ګرځيدلے وے. د قرآنِ کريم اصُول او قوانين د عزت او شرافت معيار ګڼړے شو. دَ تزکيې دا حال وو، چه کوم خلق وړاندے بداخلاقه وو، او س دَ اخلاقو

دَ دَرُستے دَ پاره اُستاذان او مُعلِّمان کړ جُوړ شوې وو. د بدمه اخلاقو مریضان اوس نه یواځې جوړ شوي وو بلکه کامیاب علاج کوونکي جوړ شوي وو، چاچه نه ځکنیه لاره سنوکوله اوس لاره ښودونکي جوړ شوي وو. غرض دا چه ټولے بدے اخلاقې په ښو اخلاقو سره بدلې شوے وے.

مطلب دا چه حضرت ابراهیم خلیل الله علیه السّلام چه د کوم غرضونو د پاره دُعا کړے وه، او نبي کریم صلی الله علیه وسلم د دوئ پوره کولو دَ پاره لیږلے شوے وو، هغه درے واړه غرضونه، دَ نبي کریم صلی الله علیه وسلم په مبارکه زمانه کښے په کامیابۍ سره پوره شول. او بیا له دوئ نه رُوستو دَ دوئ اصحابوُ دَ غه غرضونه دَ مشرق نه ترمغربه او دَ جنوب نه ترشماله په ټوله دُنیا کښے عام کړل.

وَمَنْ يَّرْغَبُ عَنْ مِّلَّةِ اِبْرٰهٖمَ اِلَّا مَنْ سَفِهَ نَفْسَهٗ ؕ وَلَقَدِ

او څوک دے چه مخ اړوي د ابراهیم دَ دین نه مګر هغه چه چاکم عقل جوړ کړے ځېل ځان. او بېشکه

اصْطَفَيْنٰهُ فِي الدُّنْيَا ۚ وَاِنَّهٗ فِي الْاٰخِرَةِ لَمِنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿۱۳۰﴾

موږ ده غوره کړے دَ ده په دنیا کښے او هغه په آخرت کښے د نیکانو نه دے

اِذْ قَالَ لَهٗ رَبُّهٗٓ اَسْلِمْ ۙ قَالَ اَسْلَمْتُ لِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۱۳۱﴾ وَوَصّٰى

یاد کړه کله چه ده ته اُوے ده رب چه تابعداري کوه ته نو اُویل هغه چه زه تابعداري کوونکیم دَ ټول عالم

بِهَآ اِبْرٰهٖمُ بَنِيْهِ وَيَعْقُوْبُ ؕ يٰبَنِيَّ اِنَّ اللّٰهَ اصْطَفٰى لَكُمُ الدِّيْنَ

دَ پروردګار او د غه وصیت اوکړو ابراهیم خپلو ځامنو ته او یعقوب هم چه اے ځامنو بېشکه الله تعالیٰ غوره کړے دَ

فَلَا تَمُوْتُنَّ اِلَّا وَاَنْتُمْ مُّسْلِمُوْنَ ﴿۱۳۲﴾

تاسو له دا دین نو تاسو هرګز مه مرئ مګر مسلمانان

دَ الفاظو حل : سَفِهَ نَفْسَهٗ : سَفِهَ د جهل په معنیٰ دے او نفسه ئے له دے وجے نه منصوب دے، چه دا د فرّاء په نزد تمیز دے، او یا له دے وجے نه منصوب دے، چه دا مشابه دَ

مفعول سره دے او دا د بعضو کوفیانو قول دے۔ او یا خو لردے وجے نه منصوب دے چه دا
مفعول به دے دسَفِه دپاره۔ ځکه سَفِه، د سفّه په شان متعدی دے، او یا له دے وجے
نه چې سفه متضمن دے هغه معنیٰ لره چه هغه متعدی ده، او دا معنیٰ جهل دے۔
او دا خبره دَ زجاج قول دے۔

دشیخ الهند ترجُمه، د زجاج په قول بناده۔ نو د سَفِهَ نَفۡسَهٗ ترجمه دَ پرومبئ توجیه
له مخه ده چه کومه په لنډ تفسیر کښے اخستے شوے ده، یعنی چه هغه دخپل ذات او نفس
په اعتبار سره احمق دی۔ او دَ دویم توجیه له مخه ترجمه به دا سے شی، چه دَملت ابراهیمی
نه به څوهغه خلق اړوی، چه هغوئ ته دخپل ځان علم هم نهٔ وی چه مونږ ته څوک یو۔

## لنډتفسیره۔

او دَملت ابراهیمی خو به هغه کس مخ اړوی چه هغه دخپل ذات او نفس
دا عتبار نه جاهل او احمق وی او (دَ دا سے ملت پریښودو نکی ته احمق وئے ویلے نهٔ شی
چه دَدے ملت دا حالت وی چه د هغے په وجے) مونږ ده له (ابراهیم علیه السّلام دَرسالت دَ
عهدے دَپاره) په دنیا کښے او ټاکه او غوره کړه (او د دغه ملت په وجه) هغه په آخرت
کښے په لویو لائقو خلقو کښے شمار یږی (چه د هغوئ دپاره لوړ قول هرڅهٔ دی، او دعهدے
درسالت دَپاره ددهٔ غوره کول هغه وخت شوی وو) کوم وخت چه دهٔ ته ددهٔ پروردګار
(دالهام په ذریعه) او فرمائیل چه ته (دالله تعالیٰ) تابعداری اوکړه، نو دهٔ اُوے چه ما
تابعداری اختیار کړے ده د رب العالمین (نو دد غه اطاعت او تابعدارئ په اختیار ولو سره
مونږ دے په نبوت باندے مشرف کړو) او په دغه (بیان شوی ملت باندے د پاتے کیدلو)
حکم اوکړو ابراهیم (علیه السلام) خپلو ځامنو ته او (د غه شان) یعقوب (علیه السلام) خپلو ځامنو
ته دَهغے مضمون دا دو چه) زما ځامنو! الله تعالیٰ دا دین (اسلام او د حق اطاعت او تابعدارئ)
ستاسو دپاره غوره کړے ده، نو تاسو ترمرګه پورے دا دین مهٔ پریږدئ او) داسلام نه سوا
په بل حالت باندے مهٔ مرئ۔

## علوم او مسائل :-

په دے آیاتونو کښے دَملت ابراهیمی په بنیادی اصولو باندے د تللو
تاکید شوے دے۔ او له دے اصولو نه چه څوک مخ اړوی، دَ هغے خرابی بیان شوے ده او په

ضمن کښې د یهودو او نصاراؤ د هغې دعوٰی رد کړے شوے دے، چه دوئ به دعوٰی کوله چه مونږ دا براهیم علیه السّلام په ملت یو۔ او دا خبره هُم بیان شوے ده چه صرف اسلام دَ ملت ابراهیمي موافق ملت دے، او دا چه اسلام د ټولو پیغمبرانو شریک دین دے۔

په دے آیاتونو کښې دا هم ذِکر دی، چه پیغمبرانو به دَ خپل اولاد دیني او روحاني تربیت ته توجه کوله۔

دَ دے آیاتونو په پرومبني آیت کښې دَ ملتِ ابراهیمي فضیلت بیان کړے شوے دے او دا فرمائیلے شوی دی چه دغه ملت په وجه حضرت ابراهیم علیه السلام ته د دنیا او آخرت دواړو، بزرګي ورکړے شوے ده۔ او چه څوک دا براهیمي ملت او دین نه مخ اړوی هغه احمق او جاهل دے۔ الله تعالیٰ فرمائی: وَمَنْ يَّرْغَبُ عَنْ مِّلَّةِ اِبْرٰهٖمَ اِلَّا مَنْ سَفِهَ نَفْسَهٗ او دا ځکه چه ابراهیمي ملت او دین، بالکل فطري دین دے۔ د چا چه فطرتّ درست وی هغه له دے نه انکار کولے نهٔ شي۔ رُوستو بیا دَ دے وجه بیانوی او فرمائی چه دَ دے ملت فضیلت او شرافت له دے نه ظاهر دے چه الله پاک د دغه ملت او دین په وجه حضرت ابراهیم علیه السّلام ته په دنیا کښې عزت او برکت ورکړو او په آخرت کښې هم۔ د دنیا د عزت او برکت مشاهده خو دُنیا کړے ده، چه نمرود غوندے جابر بادشاه او قوم دَ دے یو کَس خلاف ولاړ وو او د خپل قدرت او طاقت ټول خیزونه ئے د دهٔ خلاف په کار کښې راوستی وو، تر دے چه د اور په لولے انبار او ډهیری کښې ئے اچولے وو۔ لیکن د دُنیا ټول طاقتونه، چه دکوم قادرِ مُطلق تابعداری، هغهٔ دا ټولے نمرودي منصُوبے ناکامه کړے او اور ئے په ابراهیم علیه السّلام باندے ګلزار کړو۔ او دغه شان د دُنیا ټول قومونه دَ دهٔ په رُعب او دبدبے منلو باندے مجبُوره شول۔ د دنیا ټول مؤمنان او کافران حتیٰ چه بُت پرست د دغه بُت ماتوونکی حضرت ابراهیم علیه السّلام عزت کوُونکی راغلی دی۔ دَ عربو مشرکان بهرحال د ابراهیم علیه السلام اولاد وو، سره د بت پرستیٔ نه، د حضرت ابراهیم علیه السلام په عزت کولو کښې په خپل ځان باندے اړ نهٔ وو، او د دهٔ د ملت د تابعدارئ به ئے دعوه کولے. او دَ ملت ابراهیمي څه ورانے وېجاړے تښے، دَ دوئ په عمل کښې موجُود ے وے، لکه حج، عمره، قرباني، میلمستیا۔

ابراهیمؑ او د ملت ابراهیمي دَ دغے ظهري غلبے نه علاوه، دَ دے مقبولیت او د فطرتِ انساني

سره دده بالکل پوره موافقت، هم دنیا مشاهده کړې دو، چاکښې چه ذره عوندې عقل او فهم وو، هغه د غه دین ته سر ټيټ کړې دو.

دا خو دا براهیم علیه السلام د دنیوي عزت او برکت خبره وه. د آخرت معامله، چه هغه لا تراوسه د سترګو لاندې نه ده. د هغې په حقله د قرآن کریم دې آیت په ډاګه کړې ده، چه څه رنګ الله پاک د هٔ ته په دنیا کښې عزت او برکت ورکړې دې نو هم د غه رنګ په آخرت کښې ئې دده د پاره لوئې لوئې درجې مقرر کړي دي.

د ملت ابراهیمي بنیادي اصول بس اسلام کښې دی

له دې نه رُوستو په دویم آیت کښې د ملت ابراهیمي بنیادي اصول ښودلې شوي دي. الله تعالیٰ فرمائي:-

"اِذْ قَالَ لَهٗ رَبُّهٗٓ اَسْلِمْ قَالَ اَسْلَمْتُ لِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ه" . او په دې طرز بیان کښې دا خبره هم د فکر قابله ده، چه الله تعالیٰ د خطاب "اَسْلِمْ" په جواب کښې د خطاب په انداز کښې دا ئې کید ل پکار وو چه "اَسْلَمْتُ لَكَ" لیکن حضرت خلیل الله ابراهیم علیه السلام دا رنګ د خطاب طرز پریښو دی او دا ئې عرض کوي چه "اَسْلَمْتُ لِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ". د دې وجه دا ده چه یو خو په دا ئې طرز خطاب سره دادب کولو لحاظ شوې دې او د الله تعالیٰ حمد او ثنا هم بیان شوې ده. او مقام د ثنا هم وو. دویم دا چه په دا رنګ د نیا سره د دې خبرې اظهار او شو چه ما کوم اطاعت اختیار کړې دې، په دې کښې په چا باندې احسان کول نهٔ دي، بلکه د دا ئې کولو نه ما د پاره بله لاره نهٔ وه، ځکه چه هغه د ټولو جهانونو پروردګار دې، ټولو جهانونو او د جهانونو مخلوق له دده د اطاعت کولو نه بغیر بله څهٔ لار نشته او چا چه اطاعت اختیار کړو نو خپل فرض ئې ادا کړو او خپل ځان له ئې ګټه او کړه.

اوله دې نه دا معلومه شوه چه د ملت ابراهیمي بنیادي اصول او پوره حقیقت د اسلام په یو لفظ کښې ایښودلې شوې دې، چه د هغې معنیٰ د حق اطاعت کول دي. او دا خلاصه د ابراهیم علیه السلام د دین او مذهب، او دا حاصل دې، د هغو امتحانونو، چه د هغوئ نه حضرت خلیل الله ابراهیم علیه السلام تیر شوې دې او خپل لوړ مقام ته رسیدلې دې. او اسلام، یعنی د حق اطاعت کول هغه څیز دې، چه د هغې د پاره دا ټول جهان پیدا کړې شوې دې، او چه د هغې د پاره ټول پیغمبران او آسماني کتابونه رالیږلې شوي دي.

له دې نه دا هم معلومه شوه، چه اسلام د ټولو پیغمبرانو مُشترک دین او د وحدت یوه نقطه ده.

دَحضرت آدم علیه السّلام نه واخله ترخاتم الانبیاء پورے، هر یو رتلو نکی رسُول او نبي ددغه دین دعوت ورکړے دے۔ او په دے بانده ئے خپل خپل امتونه چلولی دی۔ قرآن کریم په دا ضحو الفاظو سره فرمائیلی دی :-

اِنَّ الدِّیْنَ عِنْدَ اللّٰهِ الْاِسْلَامُ وَمَنْ یَّبْتَغِ غَیْرَ الْاِسْلَامِ دِیْنًا فَلَنْ یُّقْبَلَ مِنْهُ [1]

(دین خو دَ الله په نزد اسلام دے او کوم سړے چه د اسلام نه بغیر څهٔ بل دین اختیار کړی هغه به قبول نهٔ وی)

او دا خبره خو څرګنده ده چه څومره دینونه چه څومره پیغمبرانو راوړی دی هغه ټول په خپل خپل وخت کښے دالله په نزد مقبول وو۔ نو په دے وجه ضروری شوه چه هغه ټول دینونه دِ اسلام وی۔ اګرچه نوم د هغې څهٔ بل کیښودے شی، دَ موسیٰؑ او دَ عیسیٰؑ دین دِ ورته اُوئیلے شی، یا یهودیت او نصرانیت وغیره، لیکن حقیقت د ټولو اسلام دے، چه کوم هغې حاصل د حق اطاعت کول دی، البته په دے کښے یو خصُوصیت ملت ابراهیمی ته حاصِل دے چه حضرت ابراهیم علیه السّلام دَ خپل ملت نوم اسلام ایښے دے، او خپل اُمت ته ئے دَ اُمّتِ مسلمه نوم ورکړے۔ په دُعا کښے عرض کوی :-

رَبَّنَا وَاجْعَلْنَا مُسْلِمَیْنِ لَكَ وَمِنْ ذُرِّیَّتِنَآ اُمَّةً مُّسْلِمَةً لَّكَ [2]

(اے زمونږه پروردګاره! جوړ کړے مونږ دواړه لره مُسلمانان (یعنی فرمانبردار) او زمونږ د اولاد نه هم یوه ډله خپله فرمانبرداره اُوګرځوے)

اولاد ته د وصیّت کولو په وخت کښے فرمائی :-

فَلَا تَمُوْتُنَّ اِلَّا وَاَنْتُمْ مُّسْلِمُوْنَ ؕ [3]

دَحضرت ابراهیم علیه السّلام نه روستو، دا خصُوصی امتیاز، د حضرت ابراهیم علیه السّلام دَ تجویز موافق، اُمتِ محمدیه علی صاحبها الصّلوٰة والسلام ته حاصل شو؛ چه دَ دے نوم اُمت مُسلمه کیښودے شو او ددهٔ ملت هم دَ ملتِ اسلامی په نوم سره مشهور شو۔ دَ قرآن کریم ارشاد دے :

مِلَّةَ اَبِیْكُمْ اِبْرٰهِیْمَ ؕ هُوَ سَمّٰىكُمُ الْمُسْلِمِیْنَ ۙ مِنْ قَبْلُ وَفِیْ هٰذَا [4]

(تاسو د خپل پلار په دین بانده پاتے شئ، دهٔ ستاسو نوم مسلمان ایښے دے، مخکښے هم۔ او په دے کښے هم (یعنی قرآن کښے)

په دنیا خو، یهود هم وائی چه مونږه په ابراهیمی ملت بانده یو، او نصاریٰ هم، او د عربو

(۱) آل عمران: ۱۹ (۲) البقرة: ۱۲۸ (۳) البقرة: ۱۳۲ ، (۴) الحج: ۷۸

مشرکانو هم ـ لیکن دا ئې د غلط فهمیانے ، یا دَ دروغو دعوے وے ـ په حقیقت کښې ، بس په آخری دور کښے ملت محمد یه دَ ملتِ ابراهیمی ، او د فطری دین موافق وو ـ

د خبرے خلاصه داده ، چه دَ الله پاک له طرف نه چه څومره پیغمبران را غلی دی او څومره کتابونه نازل شوی دی ، دَ دے ټولو روح اسلام یعنی د حق اطاعت کول دی یعنی د خواهشاتو نفسانی په مقابله کښے دَ حق اطاعت ، او خواهشاتو پریښودل دی ـ

افسوس په دے خبره دے ، چه ننن د اسلام نوم آخستونکی مسلمانان هم ، دَ دے حقیقت نه ناآشنا شوی دی ـ او دَ دین او مذهب په نوم د خپلو خواهشاتو تابعداری کوی ـ او دوی ته دَ قرآن او دَ حدیث هغه تفسیر ښه لګی ، چه هغه دَ دوی د خواهشاتو برابر وی ـ او دا کوشش کوی ، چه دَ شریعت جامه سیری پیری کړے شی او د دوی د خواهشاتو بُتانو ته واغوندولے شی ، چه لید ونکی ته دَ دین او مذهب اِتباع کول ښکاره شی ـ اګرچه هغه په حقیقت کښے خالصه د خواهشاتو نفسانیو پیروی او اتباع وی ـ

دا غافلان دا نهٔ پوهیږی چه دا چلے او تأویلونه خود مخلوق په مخکښے چلیدے شی ، لیکن دخالق په مخکښے چه د هغه علم په څیز باندے احاطه کوونکے دے او چه هغه ته د زړهٔ رازونه معلوم دی ، دَ خالص او سُوچه اِطاعت نه سوا بل څه څیز فائده نهٔ ورکوی ـ

حقیقی اسلام دا دے چه بنیادم د خپل اغراضو او خواهشاتو نه بالکل خپل ذهن خالی کړی ، او په دے تلاش کښے شی چه دَ الله تعالیٰ رضا په کوم کار کولو کښے ده او د دهٔ فرمان زما د پارهٔ څهٔ دے ـ او د لو فرمانبردار غلام په شان غوږ ئے آواز ته ، ایښودے وی ، چه کوم طرف ته د تللو او د څهٔ کار کولو حکم کیږی ـ او دا کار څهٔ رنګ کول پکار دے ، چه دا کار قبول کړے شی او زما مالک له ماته راضی شی ـ عبادت او بندګی د دغه څیز نوم دے ـ

دَ دغه اطاعت او محبت د جذبے په کمال سره بنیادم ته د آخرت ترقی حاصلیږی ، چه هغه ته مقامِ عبودیت ویئلے شی ـ دا هغه مقام دے ، چه کله دے ته حضرت ابراهیم علیه السلام اُرسیدهٔ نو دهٔ ته د خلیل الله خطاب ورکړے شو او د پیغمبرانو سردار حضرت محمد صلی الله علیه وسلم ته د "عبدنا" خطاب حاصل شو ـ

د دغه عبدیت او اطاعت په ذیلی درجو باندے ، د اُمت په اولیاؤ کښے د قطبانو او ابدالو خطابونه ویئلے شوی دی ـ او دَ دغه حقیقی توحید دے چه دا په کوم بنیادم کښے راشی نو هغه بیا

دَخدائے نه ماسوا د بل چانه، نهٔ ویره کوی او نهٔ څهٔ اُمید لری۔

مطلب دا چه دَ اسلام معنیٰ او حقیقت دَ حق اطاعت کول دی، او د حق دَ اطاعت کولو لاره بس په دے کښے ده، چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم دسُنت پوره پوره تابعداری اوشی او دا قرآنِ کریم په واضحو الفاظو کښے دا سے بیان کړے ده۔

| | |
|---|---|
| فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتّٰى يُحَكِّمُوْكَ فِيْمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوْا فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ وَ يُسَلِّمُوْا تَسْلِيْمًا (۱) | ستا دَ پروردګار قسم دوئ هیڅ کله مؤمنان کیدے نهٔ شی ترڅو چه دوئ په خپلو تو لوا ختلافی معاملو کښے تا ښصفکوی نه منی۔ او بیا ستا په فیصله کے زړهٔ تنګ نهٔ شی او فیصله بنهٔ په بخځ سینے سره او منی۔ |

**مسئله:-** حضرتِ ابراهیم علیه السلام چه خپل اولاد ته کوم وصیت کړے وو او له هغوئ نه ئے عهد وپیمان په کوم مه خبره آخستے وو، هغه خبره دا وه، چه دا سلام نه سوا په څهٔ بل حالت او ملت باندے مرئ مه۔ ددے نه مراد دا دے، چه په خپل ژوندکښے په اسلام او دَ اسلام په تعلیماتو باندے په کلکه عمل کوئ، چه الله پاک ستا سو خاتمه هم په اسلام باندے اوکړی۔ لکه چه په بعضو روایتونو کښے دی چه تاسو په خپل ژوندکښے په کوم حالت باندے پابند پاتےشوئ هم په دغه حالت باندے به تاسو مرئ۔ او په دغه حالت باندے به تاسو په محشر کښے پورته کیږئ۔ دالله تعالیٰ عادت دغه دے چه کوم بنده دَ نیکئ کولو اراده کوی، او د هغے دَپاره دخپل وَس موافق کوشش کوی، نو الله تعالیٰ دهٔ ته د نیکئ کولو توفیق ورکوی۔ او دا کار دهٔ دَپاره آسانوی۔

په دے خبره او معامله کښے د هغه حدیث دَوجے نه شُبه او شک کول بیکار نهٔ دی چه کوم کښے دا سے ویلے شوی دی، چه یو سړے دَجنتیانو کارکوی کوی تردے چه دده او د جنت په مینځ کښے دَ یو لاس برابر فاصله پاتے شی، او دغه شان یو سړے دَدوزخیانو کارکوی کوی تردے چه دده او دَ دوزخ په مینځ کښے صرف د یو لاس برابر فاصله پاتے شی، بیا بیا تقدیر غالب شی او آخری عمر کښے دجنتیانو کار شروع کړی او جنت ته اُورسی۔ دَدے حدیث نه شبه څکه کول بیکار نهٔ دی چه دَ دے حدیث په بعضو الفاظو کښے دا قید هم لګولے شوے دے چه "فیما یبدو للناس" یعنی چا چه تمام عمر د جنت کارونه کول او په آخره کښے دَدوزخ کار شروع کړو۔ په حقیقت کښے دده پرومبنی کارونه هم دَدوزخ کارونه وو، لیکن خلقو ته په ظاهره کښے دَجنتیانو کارونه ښکاریدل۔ دغه رنګ چه څوک دَدوزخیانو په کارکښے مشغول وو، او په آخر کښے د جنتیانو کارئے شروع کړو، په اصل کښے

(۱) النساء: ۶۵

دهٔ دَ وړاندے نه د جنتیا نو کارونه کول یکن په ظاهره کښے خلق وهٔ ته ګنهګار و ښکاره او ګنړلو (ابن کثیر)

خلاصه دا دهٔ، چه کوم سړے په ښو کارونو کښے مشغول دی، هغه له دَ الله تعالیٰ د وعدے او عادت له وجے نه دا اُمید لرل پکار دی چه د دهٔ خاتمه به هم په نیکئ باندے کیږی۔

أَمْ كُنتُمْ شُهَدَاءَ إِذْ حَضَرَ يَعْقُوبَ الْمَوْتُ إِذْ قَالَ لِبَنِيهِ

آیا تاسو موجود وئ؟ کوم وخت چه نِزدے شو د یعقوبؑ مرګ هر کله چه دهٔ اُوے خپلو ځامنو ته

مَا تَعْبُدُونَ مِن بَعْدِي قَالُوا نَعْبُدُ إِلَٰهَكَ وَإِلَٰهَ آبَائِكَ

تاسو به دچا عبادت کوئ زمانه روستو د دوئ اُوے مونږ به عبادت کوو ستا دَ پروردګار او ستا د پلار نیکه دَ پروردګار

إِبْرَاهِيمَ وَإِسْمَاعِيلَ وَإِسْحَاقَ إِلَٰهًا وَاحِدًا وَنَحْنُ لَهُ

چه هغه ابراهیم، اسماعیل او اسحاق دی هغه بس یو معبود دے او مونږه ټول د هغه

مُسْلِمُونَ (۱۳۳) تِلْكَ أُمَّةٌ قَدْ خَلَتْ لَهَا مَا كَسَبَتْ وَلَكُم

تابعدار یو دا یوه ډله وه چه تیره شوے ده دَ دوئ دَ پاره دی کوم چه دوئ کړی دی او تاسو د پاره دی

مَّا كَسَبْتُمْ وَلَا تُسْأَلُونَ عَمَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ (۱۳۴)

چه کوم تاسو کړی دی او تاسو نه به نشی پوښتنه دَ دوئ د کارونو

**لنډ تفسیر:-** آیا (تاسو خلق څهٔ دیو صحیح نقل په وجه دا مذکوره دعوی کوئ یا) تاسو پخپله (هغه وخت) موجود وئ چه کوم وخت د یعقوب علیه السلام آخری وخت راغے (او) کوم وخت چه دهٔ خپلو ځامنو نه (د معاهدے د نوے کولو د پاره) پوښتنه اوکړه چه تاسو خلق زما (د مرګ) نه پس د څهٔ څیز عبادت به کوئ نو دوئ (په جمعه) جواب ورکړو چه مونږه د هغه (ذات) عبادت به کوو چه د هغه عبادت تا او ستا مشرانو (حضراتو) ابراهیم، اسماعیل او اسحاق (علیهم السلام) کړے دے، یعنی د هغه معبود چه وحده لاشریک دے او مونږه

(په حکمونو کښې) دده په اطاعت باندې به (ټینګ) ولاړ یودا (دده بزرګانو) پوښتنه ده چې (پخپله زمانه کښې) تیره شوې ده، دوی به کار به ددوی کارونه راشي، او ستا په کار به، ستا کارونه راشي او له تا سونه به ددوی د کارونو پوښتنه نه کیږي (او خالي ذکر به هم نه کیږي، لا پریږده ئې داخبره، چې دا به تاسو ته څه فائده ورکړي۔

## علوم او مسائل

په پرو مبنو آیاتونو کښې دَ ملتِ ابراهیمي او د اسلام د حقیقت بیان وو۔ او اوس په دغه آیاتونو کښې، یوه بله اصولي خبره دَ فکر کولو قابله ده، هغه دا چې ملت ابراهیمي او اسلام خود ټولې دنیا دپاره هدایت نامه ده۔ نو بیا دا څه وجه وه، چې دَ دې وصیت اولادِ ابراهیمؑ او اولادِ یعقوبؑ ته کیږي۔ یعني د الله پاک لوئې پیغمبران، خپل اولاد ته دَ دې په خاص طور سره وصیت کوي۔

ددې وجه د اولاد محبت او د هغوئ د ښیګړې نکر او غم دے۔ او دا د رسالت او د نبوت د مرتبې سره څه منافات نه لري۔ دَ الله تعالیٰ هغه دوست، چې یو وخت کښې د خپل رب په اشارې سره د خپل ډیر محبوب ځوئ دَ سر نه تیریږي او د هغه د ذبح کولو دپاره ملا تړي۔ دغه دوست، په بل وخت کښې، د خپل اولاد د دیني او دُنیوي آرامونو او دَ ښیګړو دپاره، د خپل رب نه دُعا غواړي، له دنیا نه د رُخصت په وخت کښې خپل اولاد ته هغه څیز ورکول غواړي چې هغه دده په نظر کښې، دَ ټولو نه لوئې نعمت دے یعني اسلام۔

دَ آیت "وَوَصّٰى بِهَآ اِبْرٰهٖمُ بَنِيْهِ وَيَعْقُوْبُ" دَ غه مطلب دے۔ او د آیت "اِذْ حَضَرَ يَعْقُوْبَ الْمَوْتُ اِذْ قَالَ لِبَنِيْهِ مَا تَعْبُدُوْنَ مِنْۢ بَعْدِيْ" هم دغه حاصل دے۔ فرق دومره دے چې دَ عامو بنیادمو په نظر کښې نعمت او دولت د دُنیا فاني څیزونه دي۔ او د ابراهیم او یعقوب علیهما السّلام حوصلې او نظرونه اوچت او لوړ دي۔ دَ دوئ په نزد اصلي دولت ایمان او عملِ صالح دے۔ یعني اسلام دے۔

څه رنګ چې عام بنیادمان د خپل مرګ په وخت کښې دا غواړي، دوئ سره چې کوم لوئې نه لوئې دولت دے، هغه دِ ددوئ خپل اولاد ته ورکړي۔ دغه رنګ انبیاء علیهم السّلام او د هغوئ په لاره تلونکي خلق، او دیار دا خواهش لري چې کوم څیز دوئ اصلي او دائمي دولت او نعمت ګڼړي، هغه دِ دَ دوئ اولاد ته پوره پوره حاصل شي۔ او دې دپاره دُعا کوي

او کوشش هم، او په آخری وخت کښې د وصیت ذکر دے کوی. لکه دا خبره د دغه آیاتو نه واضحه ده۔

**دَ اولاد د پاره څه د دولت د دین او اخلاقو بهبود لو نه غوره نشته**

دَ پیغمبرانو په دے خاص طرز کښې د عامو بنیادمو دَپاره هم دا هدایت دے، چه دوئ څه رنګ د خپل اولاد دَ دنیوی پرورش انتظام کوی او دَ دوئ دَ دنیوی آرام او راحت خیال ساتی. د غه رنګ بلکه لا له دے نه زیات په دوئ باندے لازمه ده چه د خپل اولاد علمی، عملی او اخلاقی تربیت اوکړی. ځکه چه د اولاد په رښتیا خیرخواهی او د اولاد سره اصلی محبت د غه دے، چه دوئ دَ دائمی اور او عذاب نه بچ کړی. دا دَ اولاد سره خیرخواهی او محبت نه دے، چه اولاد دَ دنیا د ګرمئ او یخنئ نه بچ کړی او دآخرت د سخت عذاب نه د بچ کولو دَ دوئ هیڅ خیال اُ نکړے شی۔

دَ پیغمبرانو دَ دغه طرز عمل نه بوه بنیادی خبره دا هم معلومه شوه. چه د بچو په مور او پلار باندے دا حق دے چه د ټولو نه اول، مور او پلار دَ دوئ د اصلاح او فلاح خیال اوکړی، او له دے نه روستو، د بچو د پاره نور و خیزونو ته توجه ورکړی او په دا سے کولو کښې دوه حکمتونه دی۔

اول دا چه دَ طبعی جسمانی تعلق په وجه د دوئ به دَ نصیحت اثر زر او په آسانئ قبول کړی، او بیا د غه اولاد، د خپل مور پلار په اصلاحی کوششونو کښې مددګار اُوګرځی۔

دویم دا چه د حق د خورولو د پاره له دے نه زیاته او فائده ناکه لاره بله نشته، چه دَ هرګور ذمه دار سړے، خپل اهل و عیال ته د حق په بنود لو کښې او بیا په حق باندے د دوئ عمل کولو کښې ګرځولو کښې د زړه د ا خلاصه کوشش اوکړی. او چه دا سے د هر کور ذمه دار فرد په دے خبرے اوکړی، نو د ټول قوم اصلاح او تربیت به اوکړے شی. قرآن کریم د غه تنظیمی اصل ته په دے آیت کښې اشاره کړے ده:-

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ قُوٓا۟ أَنفُسَكُمْ وَأَهْلِيكُمْ نَارًا [1] (اے ایمان دارو! بچ کړئ خپل ځان او د خپل اهل و عیال د لوئے اور نه)

او نبی کریم صلی الله علیه وسلم، چه دَ ټولے دُنیا پیغمبر دے، او چه د هغه هدایت تر قیامته د ټولو نسلونو د پاره دے، هغه ته هم دَ ټولو نه اول دَ دے حکم شوے وو چه:

(۱) التحریم: ۶۔

وَ اَنْذِرْ عَشِيْرَتَكَ الْاَقْرَبِيْنَ[1] | خپل نزدے خپلوان دَ الله تعالیٰ د عذاب نه اُویروه
وَاْمُرْ اَهْلَكَ بِالصَّلٰوةِ وَاصْطَبِرْ عَلَيْهَا[2] | خپل اهل و عیال ته د مونځ حکم اوکړه او خپله هم د مانځه پابند اوسه

یو دریم حکمت دا هم دے، چه ترڅو د یو سړی اهل و عیال او قریبی خپلوان دَ دهٔ دَ نظریاتو او عملی کارونو ملګری نهٔ وی، نو بیا د هغهٔ تعلیم او تبلیغ په نورو باندے دومره اثر نهٔ کوی.

نن صبا په مسلمانانو کښے د بے علمیٔ او بے دینیٔ د خوریدو وجه دا دهٔ چه مور او پلار اګرچه پخپله له دین نه خبردار، او په دین عمل کوونکی وی، خو د دے خبرے غم نهٔ کوی، چه زما اولاد دِ هم دینداره شی. او د دائمی راحت مستحق شی. عام طور زمونږ فکرونه صرف د اولاد دَ دنیوی او فانی راحت په حقله وی. الله تعالیٰ دِ ټولو مسلمانانو ته توفیق ورکړی چه دوئ دَ خپل اولاد دَ آخرت د راحت په حقله فکرمند شی.

دَ نیکه د میراث مسئله | په دے آیت کښے، د حضرت یعقوب علیه السّلام د اولاد له طرفه چه کوم جواب نقل شوے دے په هغ کښے دی:-

"اِلٰهَ اٰبَآئِكَ اِبْرٰهٖمَ وَاِسْمٰعِيْلَ وَاِسْحٰقَ"- په دے کښے دے خبرے ته اشاره دهٔ چه نیکه ته هم پلار ویلے شی، او د پلار حکم نیکه ته هم شامل دے. نو په دے وجه حضرت عبدالله بن عباسؓ له دے آیته دا دلیل نیسی، چه په میراث کښے د نیکهٔ هغه حکم دے، چه کوم حکم د پلار دے.

د پلرونو او نیکونو د عملونو جـزا او سزا اولاد ته نهٔ ورکـړے کیږی | لَهَا مَا كَسَبَتْ الآية: له دِے آیته معلومه شوه، چه دَ پلار نیکه ښهٔ عملونه، د اولاد دَ پاره هیڅ فائده ورکولے نهٔ شی. ترڅو چه دوئ خپل عملونه درست نهٔ کړی.

هم د غه رنګ دَ پلار نیکه بد عملونه د اولاد د پاره د عذاب سبب نهٔ ګرځی. کله چه دوئ د ښو عملونو پابند وی، نو له دے نه دا ثابته شوه چه د مشرکانو او کافرانو اولاد چه بالغ کیدلو نه مخکښے مړهٔ شی، نو دوئ ته به د مور او پلار د شرک او کفر په وجه عذاب ورکولے نهٔ شی. او په دے سره د یهودو د هغ عقیدے رد اوکړے شو چه دوئ به دا ویل که مونږ هر قسم عمل کوو، زمونږه بخښنه به د خپلو پلارانو او نیکونو د ښو عملونو په وجه اوکړے شی. د غه رنګ نن صباد بعضے سیّد خاندان خلق په دے خیال کښے وی چه مونږه

(۱) الشعرآء ۲۱۴ (۲) طٰه ۱۳۲

د رسول الله صلى الله عليه و سلم اولاد يو۔ مونږه چه څه کوؤ بيا هم زمونږ بخښنه به اوکړے شي۔

قرآن کريم دا مضمون، ځو ځله په مختلفو تعبيرونو بيان کړے دے:

| | |
|---|---|
| وَلَا تَكْسِبُ كُلُّ نَفْسٍ إِلَّا عَلَيْهَا (۱) | هر يو نفس چه کوم عمل کوي د هغې ذمه داري هُم په هغهٔ ده |
| وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِّزْرَ أُخْرَىٰ (۲) | د چا پيټے د قيامت په ورځ به، بل پورته نۀ کړي |

او نبي کريم صلى الله عليه و سلم فرمائيلي دي:

«اے بني هاشمو! چرته داسے او نۀ شي، چه د قيامت په ورځ، نور خلق خپل خپل نيک عملونه راؤړي۔ او تاسو بنو عملونو نه غفلت اوکړئ او صرف زما په نسب باندے تکيه اوکړئ او راشئ۔ او زۀ به په دغه ورځ تاسو ته دا اُوايم چه زۀ تاسو عذاب د خدائے نه نۀ شم بچ کولے.»

او په بل حديث کښے ارشاد دے

| | |
|---|---|
| مَنْ بَطَّأَ بِهِ عَمَلُهُ لَمْ يُسْرِعْ بِهِ نَسَبُهُ | کوم سړے چه د هغه عمل روستو کړو هغه به د هغهٔ نسب نشي مخکښے کولے۔ |

وَقَالُوا كُونُوا هُودًا أَوْ نَصَارَىٰ تَهْتَدُوا ۗ قُلْ بَلْ مِلَّةَ إِبْرَاهِيمَ

او وائي چه شئ يهود يا ن يا نصارى نو تاسو به بيا مومنئ لاره سمه، او وايه چه هرګز نه بلکه مونږه اختيار کړے ده د ابراهيم لارهٔ

حَنِيفًا ۖ وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ ﴿١٣٥﴾ قُولُوا آمَنَّا بِاللَّهِ وَمَا أُنزِلَ

چه د يو طرف وو او نه وو د شرک کوونکو نه ، ته اُوايه چه مونږه ايمان راؤړے دے په الله باندے او په هغې چه

إِلَيْنَا وَمَا أُنزِلَ إِلَىٰ إِبْرَاهِيمَ وَإِسْمَاعِيلَ وَإِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ

نازل شوے دے په مونږه باندے او چه نازل شوے دے په ابراهيمؑ باندے او اسماعيلؑ باندے او اسحاقؑ باندے او يعقوبؑ باندے

وَالْأَسْبَاطِ وَمَا أُوتِيَ مُوسَىٰ وَعِيسَىٰ وَمَا أُوتِيَ النَّبِيُّونَ مِن

او د هغه په اولاد باندے او چه ورکړے شوے دے موسیٰؑ او عيسیٰؑ ته او چه ورکړي شوي دي نورو پيغمبرانو ته د هغوئ

رَّبِّهِمْ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ أَحَدٍ مِّنْهُمْ وَنَحْنُ لَهُ مُسْلِمُونَ ﴿١٣٦﴾

د رب له طرفه، مونږ فرق نۀ کوو له دے ټولو نه په يو کښے هم او مونږه د دغه پروردګار فرمانبردار يو۔

## لنډ تفسیر

او دا (یهودیت او نصارئ) خلقو ته (مسلمانانو ته) وائي چه تاسو یهودیان شئ (دا خو به یهود وئیل) یا نصارئ شئ (دا به نصاراؤ وئیل) تاسو به هم (دحق) په لاره شئ (اے محمد صلی الله علیه وسلم) ته (په جواب کښې) اووایه چه مونږه خو (به یهودیان او نصارئ هیڅ کله نه شو بلکه) په ملت ابراهیمي (یعنی اسلام) باندې به یو چه په هغې کښې د کوږوالي نوم (هم) نشته (بخلاف د یهودیت او نصرانیت، چه هغې کښې د تحریف نه علاوه د منسوخ کیدو په وجه اوس کوږوالے راغلے دے) او ابراهیم علیه السلام مشرک هم نه وو (مسلمانانو! د یهودو او نصاراؤ په جواب کښې چه کوم اجمالاً تاسو وئیل کړی دی، چه مونږ په ملت ابراهیمي باندې یو، ددې ملت د تفصیل بیانولو دپاره) اووایئ چه (په دے ملت باندې د پاتې کیدلو حاصل دا دے چه) مونږه ایمان لرو په الله باندې او په هغه (حکم) باندې هم چه مونږ ده ته (د رسول الله صلی الله علیه وسلم په واسطې) لیږلے شوے دے او په هغه (حکم) باندې هم چه حضرت ابراهیمؑ او حضرت اسحاقؑ او حضرت یعقوب (علیهم السلام) او اولاد د یعقوبؑ (کښې چه کوم نبیان تیر شوی دی هغوئ) ته (د وحی په واسطې) لیږلے شوے دے او په هغه (حکمو او معجزے) باندې هم چه موسیٰ (علیه السلام) او حضرت عیسیٰ (علیه السلام) ته ورکړے شوے وه او په هغې باندې هم چه نورو پیغمبرانو (علیهم السلام) ته ورکړے شوے وو، د هغوئ د پروردګار د طرفه (نو په دے ټولو باندے ایمان لرو او ایمان هم) په دے شان سره چه مونږ دے (حضراتو) کښې په چا کښې هم (دا بل نه په ایمان راوړلو کښې) فرق نه کوؤ (چه چا باندے ایمان راوړو او په چا نه) او مونږه خو د الله تعالیٰ فرمانبردار یو (هغه مونږ ته دا دین بنودلے دے مونږه اختیار کړے دے نو د دے ملت، چه په هغې باندے مونږه ټینګ ولاړ یو، حاصل دا دے، چه په دے کښې چا ته په اصل کښې د انکار کولو او د غم اړولو اختیار نشته)

## علوم او مسائل

د یعقوب علیه السلام اولاد ته په قرآن کښې اسباط وئیلے شوی دی۔ او اسباط، د سبط جمع ده، او د سبط معنیٰ قبیله او جماعت ده۔ دوئ ته سبط له دے وجې وائي چه د یعقوب علیه السلام ځامن دولس وو، بیا د هر یو ځوئ نه یوه مستقله قبیله جوړه شوه۔ او الله تعالیٰ د یعقوبؑ د ځامنو په نسل کښې دومره برکت واچولو، چه کوم وخت د حضرت موسیٰ علیه السلام

په زمانه کښې د مصر نه اُ وتلو نو د دغو هريو رور د اولاد نه مُستقلې مُستقلې قبيلې جوړې شوې وې ، او د هرې قبيلې افراد په زرګونو وو - او بل برکت الله تعالیٰ د يعقوب علیه السلام په اولاد کښې دا وا چونوٓ چه د ښو پيغمبرانو نه علاوه ، باقي ټول نبيان او رسولان ددهٔ په اولاد کښې پيدا شو - د بني اسرائيلو نه علاوه باقي نبيان د حضرت آدم علیه السلام نه پس ، نوح ، شعيب هود ، صالح ، لوط ، ابراهيم ، اسحاق ، يعقوب ، اسماعيل علیهم السلام او محمد صلی الله علیه وسلم دی -

فَإِنْ آمَنُوا بِمِثْلِ مَا آمَنتُم بِهِ فَقَدِ اهْتَدَوا ۖ وَّإِن تَوَلَّوْا فَإِنَّمَا

نو کهٔ چرې دوئ هم ايمان راوړی څهٔ رنګ چه تاسو ايمان راوړې دے نو هدايت بيا موندلو دوئ او که چرې مخ واړوی نو بيا هم

هُمْ فِي شِقَاقٍ ۖ فَسَيَكْفِيكَهُمُ اللَّهُ ۚ وَهُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ (۱۳۷)

دوئ په ضد دی ، نو کافی دے ستا د پاره له دوئ نه الله او الله دے آوريدونکے او عِلم لرونکے

صِبْغَةَ اللَّهِ ۖ وَمَنْ أَحْسَنُ مِنَ اللَّهِ صِبْغَةً ۖ وَنَحْنُ لَهُ عَابِدُونَ (۱۳۸)

مونږ قبول کړو د الله رنګ او د چا رنګ ښهٔ دے د الله رنګ نه او مونږ ددهٔ عبادت او بندګی کوُو

لنډ تفسير (هر کله چه په دے برنی ذکر شوی طريقه کښې اسلام ثابت شو) نو کهٔ چرې دوئ (يهود او نصاریٰ) هم په دے طريقې سره ايمان راوړی چه په کومے طريقې تاسو (مسلمانانو) ايمان راوړې دے نو هله به دوئ هم (د حق) په لاره شی او کهٔ چرے دوئ (له دينه) مخ واړوی نو (تاسو د دوئ د مخ اړولو نه څهٔ تعجب مهٔ کوئ ځکه) دا خلق خو (هميشه) مخالفت کوُونکی دی (او د دوئ په مخالفت څهٔ فکر کول پکار نهٔ دے) نو (پوهه شهٔ) له ستاله طرفه به زر اُوری دوئ سره الله او الله تعالیٰ (ستاسو او د دوئ خبرے) آوری (او ستاسو او د دوئ معامله) پيژنی (تاسو ته د غم او فکر کولو څهٔ ضرورت نشته) (اے مسلمانانو! اُ وايئ ، مونږه چه تاسو ته کومه خبره په جواب کښې کړې ده ، چه مونږ به په ابراهيمی ملت ... دده خبرے حقيقت دا دے چه) مونږه (د دين) په هغه حالت باندے به يو د ... حالت باندے (مونږه) الله تعالیٰ رنګ کړی يو (او د رنګ په شان دا ... ت زمونږ په زړګو نو کښې خور شوے دے) او (دديم) څوک دے چه د هغهٔ

دَ رنګ ورکولو حالت دَ الله تعالیٰ (دَ رنګ ورکولو حالت نه) ډیر زیات ښهٔ وی (هرکله چه یو بل دا رنګ نشته نو مونږ دَ بل یو دین هم غوره نهٔ کړو) او (دے دَ پاره) مونږه دَ دهٔ بندګی غوره کړے ده۔

## علوم او مسائل :-

فَإِنْ آمَنُوا بِمِثْلِ مَا آمَنْتُمْ بِهِ :- دَ سورة بقرے دا اول نه تردے ځائے پورے، دا یمان حقیقت چرته مجمل او چرته مفصل بیان شوے دے. او په دے آیت کښے یو داسے اجمال دے چه دَ هغے لاندے ټول تفصیلات او تشریحات دا یمان راځی. ځکه چه دَ "آمَنْتُمْ" مخاطب رسول الله صلی الله علیه وسلم او صحابه کرام دی. او په دے آیت کښے دَ دوی ایمان یو مثالی نمونه ښودلے شوے ده، او دا حکم شوے دے، چه الله تعالیٰ ته هغه ایمان منظور دے، کوم چه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم او د صحابه کرامو وو، او کوم ایمان چه دَ دوی دَ ایمان نه دَ وینځه برابر مختلف وی، نو هغه الله ته قبول نهٔ دے.

مطلب دا چه په کومو څیزونو باندے دوی ایمان راوړے وو په هغے کښے د څه کمے او زیاتے نهٔ وی او چه کوم اخلاص سره ئے راوړے وو، نو په هغے کښے د څهٔ فرق نهٔ وی، ورنه بیا دا په نفاق کښے داخل دے۔ دَ الله تعالیٰ د ذات او صفتونو دَ فرښتو، پیغمبرانو، دَ آسمانی کتابونو په باره کښے چه کوم ایمان دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم او د هغه دَ صحابو رض وو هغه الله تعالیٰ ته قبول وو، او د دے خلاف په دے کښے څهٔ تاویل کول، یا بله معنیٰ آخستل الله تعالیٰ ته قبول نهٔ دی۔ د فرښتو او پیغمبرانو دپاره چه کومه مرتبه دنبی کریم صلی الله علیه وسلم دَ عمل او وینا نه څرګنده شوے ده، په هغے کښے څهٔ زیاتی کول یا کمی کول ایمان سره منافی دی۔

په دے وضاحت سره دهغو ټولو باطلو فرقو په ایمان کښے خلل او نقصان په ډاګه شو، کومے فرقے چه دَ ایمان د عوی خو کوی، لیکن په اصل کښے هغوئ دا یمان دحقیقت نه ترے دی، ځکه چه زبانی د عوے خو مشرکانو هم کولے او یهودوا و نصارا ؤ هم، لیکن هرکله چه دَ هغوئ ایمان په الله تعالیٰ او په ورځ دَ آخرت او ملائکو غیره باندے داسے نهٔ وو چه څهٔ رنګ دنبی کریم صلے الله علیه وسلم او د هغه د ملګروو۔

مشرکان بعضے داسے وو چه دَ ملائکو وجود نه ئے انکار کولو او بعضے داسے وو چه ملائکو ته به

دَ ملائکو او د پیغمبرانو په محبت کښے اعتدال کول لازمی دی، د حد نه تیریدل ګمراهی ده

ئے د خدائے تعالیٰ نو نره ویئلے۔ دَ دواړو رد "بِمِثْلِ مَآ اٰمَنْتُمْ بِهٖ" سره اُوشو۔ دَ یهودو او نصاراؤ بعضو فرقو د خپلو پیغمبرانو مخالفت کولو۔ تر دے چه بعضے ئے قتل کړی هم وو، او بعضو فرقو د پیغمبرانو عزت او لوئے والے دومره حد نه زیات کړے وو، چه پیغمبران ئے خدایان یا د خدائے تعالیٰ ځامن کرځولی وو۔ دَ دے دواړو فرقو د غه زیاتی او کمی ته کمراهی ویئلے شوے ده۔

دا ځکه چه په اسلام کښے دَ رسول عزت او قدر محبت کول فرض دی۔ له دے نه بغیر ایمان نه حاصلیږی، لیکن ورسره دا هم شته، چه پیغمبر د خدائے تعالیٰ سره په څه صفت، علم، قدرت وغیره کښے برابر کنړل کمراهی او شرک دے۔ او هم د غه په قرآن کریم کښے، د شرک حقیقت ښودلے شوے دے، چه دالله نه سوا بل څوک په څه یو صفت کښے دَ الله تعالیٰ سره برابر اُوګنړلے شی۔ او دَ "اِذْ نُسَوِّيْكُمْ بِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ" د غه معنیٰ او مُراد دے۔ نن هم چه کوم خلق نبی کریم صلی الله علیه وسلم عالم الغیب او دَ خدائے په شان هرځائے کښے حاضر ناظر کنړی، او دا وائی چه دا سے عقیدے لرلو سره مونږه د رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ عظمت او محبت حق ادا کوو۔ حال دا دے چه دوئ خپله په دا سے عقیدے لرلو د رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ حکم او د هغه د قول عمرد کوشش نو مخالفت کوی۔ په دے آیت کښے دا سے خلقو د پاره هم سبق دے، چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم کوم عزت، محبت او عظمت الله تعالیٰ ۔ تا سونه غواړی، دا هغه قسم غواړی چه کوم صحابه کرامو رسُول الله صلی الله سره لرلو او په د غه قسم عزت، محبّت او عظمت کښے کمی کول هم جُرم او ګناه ده، او زیاتے کول هم کمراهی ده۔

دَ نبی، رسول، ظلی، بروزی او لغوی قول د خپله ځانه جوړ شوی قسمونه کمراهی ده

هُم د غه شان چه کومو فرقو له دے نه انکار اُوکړو چه نبوت ختم نهٔ دے۔ او د نوی نبی د پاره ئے دروازه بیرته کول اُو غوښتل، او په دے خپل مقصد حاصلو لو کښے د "خاتم النبیین" صراحت یو قسم ختم اُوکنړلو، نو دوئ له خپل طرفه د نبی او رسُول ډیر قسمونه جوړه کړل او هغوئ لدے د ظلی نبی، بروزی نبی، وغیره نومونه کیښودل او په دا سے کولو سره ئے، دَ نوی نبی د تللو د پاره لاره هواره کړه۔ نو د غه ذکر شوی آیت نه دا معلومه شوه چه دا خلق دجالان او کمراهان دی، ځکه چه د رسُول الله صلی الله علیه وسلم او د صحابه کرامو په ایمان

کښې څوچرته دظلي، بروزي وغيره نبي نوم نښه نښته - دا سې تول زندقه لقيت او دالحاد نه بغير بل څه نه دی -

**په آخرت باندې د ايمان باطل تاويلونه مردود دی**

دغه رنګ هغه خلق، چه د هغوی ذهنونه د مادې او ماديانو نه چکړ دی، د عالم غيب او د عالم آخرت خيزونه، هرڅه چه دوی ته د عقل نه لرې ښکاری، نو قسم قسم تاويلونه کوی، او دا خيال کوی چه مونږه په دا سې کولو سره د دين خدمت کوو او دين پوهې ته نږدې کوو، نو د دا سې خلقو تاويلونه د "بِمِثْلِ مَآ اٰمَنْتُمْ بِهٖ" خلاف دی او له دې وجې باطل دی. د آخرت ټول واقعات او حالات چه څه رنګ په قرآن کريم او حديث کښې راغلی دی په هغوی باندې بغير د څه تاويل کولو نه ايمان راوړل اصلي او حقيقي ايمان دې. د حشر اجساد په ځائې حشر روحاني، د جسماني ثواب او عذاب په ځائې د روحاني عذاب او ثواب تاويلونه کول ټول د الله په نزد مردود او باطل دی -

**الله تعالیٰ د نبي کريم صلي الله عليه وسلم د حفاظت ذمه اخستې ده**

په "سَيَكْفِيْكَهُمُ اللّٰهُ" کښې په دې اله وينا شوې ده، چه ته د مخالفينو زيات فکر او سوچ مه کوه مونږ به پخپله دوی سره پوهه شو. او دا خبره دا سې ده لکه چه په يو بل آيت کښې الله تعالیٰ فرمائيلی دی :- "وَاللّٰهُ يَعْصِمُكَ مِنَ النَّاسِ"[1] (ته د مخالفينو نکرمه کوه، الله تعالیٰ پخپله ستا حفاظت به کوی)

**دين او ايمان يو پوخ رنګ دې چه د بنيادم د مخ نه ښکاری**

"صِبْغَةَ اللّٰهِ" - له دې آيت نه وړاندې، په بل آيت کښې د اسلام د دين نسبت. حضرت ابراهيم عليه السلام ته شوې وو - مِلَّةَ اِبْرٰهٖمَ حَنِيْفًا "او دلته کښې نيغ په نيغه د دين نسبت الله تعالیٰ ته اوشو، او په دې کښې اشاره دې خبرې ته ده، چه دين په حقيقت کښې د الله تعالیٰ دې، او د پيغمبر ته کوم چرې دده نسبت اوشي، نو هغه نسبت مجازی نسبت دې - او بيا د دين نه تعبير په صبغه سره اوشو، په دې کښې د دوه خبرو ته اشاره ده - اول دا چه په دې سره د نصاراو د يو رسم ترديد اوکړې شو - هغه دا سې، چه د نصاراو دا عادت وو چه کوم بچې به پيدا شو، نو هغه به ئې په اوومه ورځ په رنګ شوو او بو کښې لمبولو او د ختنې (سنتولو) په ځائې به ئې د غه لمبولو سره بچې پاک ګڼړلو، او د غه رنګ به ئې د نصرانيت يو پوخ رنګ ګڼړلو - دې

[1] المائدة : ٦٧

آیت دا او ښودل چې د اوبو دا رنګ په وینځلو ختمیږی، او د دې رُوستو څهٔ نښه نهٔ پاتې کیږی، او ورسره د نهٔ سُنتو لو کومه پلیتی چې په جُثه کښې ده، هغه په دې رنګ سره نهٔ لرې کیږی - او اصل رنګ د دین او ایمان رنګ دے، چې د دې سره ظاهری او باطنی هر قسمه پلیتیانې لرې کیږی۔

دویم دې خبرې ته اشاره ده چې څهٔ رنګ رنګ ستر کولید لے شی نو دغه رنګ د یو مؤمن د ایمان ښې د هغهٔ د خیرے او کړهٔ وړهٔ نه ظاهر وی۔

قُلْ اَتُحَآجُّوْنَنَا فِی اللّٰهِ وَهُوَ رَبُّنَا وَرَبُّكُمْ ۚ وَلَنَآ اَعْمَالُنَا وَلَكُمْ

وایه آیا تاسو معارضه کوئ مونږ سره د الله په باره کښې حال دا دے چې هغه زمونږ پروردګار دے او ستاسو پروردګار دے او زمونږ د پاره دی مونږ

اَعْمَالُكُمْ ۚ وَنَحْنُ لَهٗ مُخْلِصُوْنَ ﴿۱۳۹﴾ اَمْ تَقُوْلُوْنَ اِنَّ اِبْرٰهٖمَ

عملونه او ستاسو د پاره دی ستاسو عملونه او مونږ خو د هغهٔ مخلصان یو آیا تاسو وایئ چې ابراهیمؑ

وَاِسْمٰعِيْلَ وَاِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ وَالْاَسْبَاطَ كَانُوْا هُوْدًا اَوْ

او اسماعیلؑ او اسحاقؑ او یعقوبؑ او د دهٔ اولاد خو یهودیان وو یا

نَصٰرٰى ۗ قُلْ ءَاَنْتُمْ اَعْلَمُ اَمِ اللّٰهُ ۗ وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ كَتَمَ

نصاریٰ اُو وایه چې تاسو ته زیاته پته ده یا الله ته او د هغه نه لوئے ظالم څوک دے چې هغه پټوی

شَهَادَةً عِنْدَهٗ مِنَ اللّٰهِ ۗ وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ ﴿۱۴۰﴾

هغه ګواهی چې ثابته شوې ده هغه ته د الله د طرف نه او الله بے خبره نهٔ دے ستاسو د کارونو نه

تِلْكَ اُمَّةٌ قَدْ خَلَتْ ۚ لَهَا مَا كَسَبَتْ وَلَكُمْ مَّا كَسَبْتُمْ ۚ

دا یوه ډله ده چې تیره شوې ده د دے د پاره دے هغه چې دے کړی دی او تاسو د پاره دی هغه چې تاسو کړی دی

وَلَا تُسْئَلُوْنَ عَمَّا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۴۱﴾

او تاسو نه به پُښتنه نهٔ وی د هغوئ د کارونو

## لنډ تفسیر :-

ته (دے یهودو او نصاراؤ ته) اُووایه چه آیا تاسو (اوس هم) مونږ سره معارضه کوئ دالله تعالیٰ په معامله کښے (چه هغه به په قیامت کښے مونږ نه بخښی) او حال دا دے چه هغه زمونږ او ستاسو د ټولو رب (او مالک) دے (نو په پالنه کښے ستاسو د پاره څه خصوصیت نشته، بلکه چه څه رنګ دا خصوصیت ستاسو بعضو د عوونه معلومیږی لکه نَحْنُ اَبْنٰٓءُ اللهِ) او مونږ ته به زمونږ کړے شوے عمل حاصل شی او تاسو ته به ستاسو کړے شوے عمل (دا خو تاسو هم منئ) او (دَ الله تعالیٰ شکر دے چه) مونږ صرف د الله تعالیٰ (د رضا) د پاره خپل (دین د شرک وغیره نه) پاک کړے دے (بخلاف ستاسو د موجوده طریقے نه ځکه چه دا د منسوخ کیدلو نه علاوه، د شرک سره ګډه ده. لکه چه دا خبره د "عُزَيْرُ ابْنُ اللهِ" نه ښکاره ده، نو بیا سره له دے چه مونږ ته خلاصے نه حاصلیږی نو چا ته به حاصلیږی) یا (اوس هم د خپل ځان د پاره په حق باندے یه کیدو د پاره دا) وائی چه ابراهیمؑ او اسماعیلؑ او اسحاقؑ او یعقوبؑ (او د یعقوبؑ) اولاد (کښے چه کوم پیغمبران تیر شوی دی دا ټول صاحبان) یهود یا نصارا وو (او په دے خبرے سره چه دَ دوئ طریقه او زمونږه طریقه یوه ده، د خپل دحق کیدلو ثبوت ورکوی، نو دَ دے په جواب کښے اے محمد صلی الله علیه وسلم دومره لنډه غوندے خبره دوئ ته) اُووایه چه (ښه دا اُووایئ چه) تاسو زیات خبریئ او که الله پاک (او دا ظاهره خبره ده چه هُم الله پاک زیات ښه خبر دے. او هغه خو دا ثابته کړے ده چه دا ټول پیغمبران په دین اسلام باندے وو لکه چه دا خبره اوس مخکښے ذکر کړے شوے ده) او (الله پاک عالم دے چه دا کافران پوهه دی خو پټوی ئے) د دا سے کس نه به ډیر ظالم څوک وی، چه هغه د داسے شهادت پټول کوی چه هغه ته د الله پاک له طرفه رسیدلی وی او (اے اهل کتابو) الله تعالیٰ ستاسو د کړو نه بے خبره نه دے (هرکله چه دا خلق یهود او نصارا نه وو، نو تاسو بیا که د دین په طریقه کښے د دوئ پیښان شوئ، نو ستاسو په حق باندے کیدل ثابت نه شو) دا (د هغه بزرګانو) یوه ډله وه چه (په خپله زمانه کښے) تیره شوے ده دوئ ته به خپل کړه رسی او تاسو ته به خپل کړه رسی او تاسو نه به دَ دوئ د کړو پښتنه هم نه کیږی (او هرکله چه تاسو نه دَ دوئ د کړو پښتنه نه کیږی، نو د هغوئ د کړو نه تاسو ته څه فائده رسیدل خو ډیره لویه خبره ده)

# علوم او مسائل

## دَ اخلاص حقیقت

وَنَحْنُ لَهٗ مُخْلِصُوْنَ ۔ په دے کښې دَامتِ مُسلمه یو خصوصیت دا ښودلے شوے دے، چه اُمتِ مُسلمه دَالله پاک دَپاره مخلص دے او دَ اِخلاص معنیٰ حضرت سعید بن جبیرؓ دا ښودلے ده، چه بنیادم په خپل دین کښې مخلص وی او الله پاک سره څوک شریک نهٔ کړی، او خپل عمل صالح دَالله پاک دَپاره کوی۔ دَ دے دَپاره نهٔ کوی چه خلقو ته ښهٔ ښکاره شی، یا خلق دَده دَ مدحه او صفت اُوکړی او یا دَده دَ شُکر اُوکړی۔

بعضے بزرګانو دا وئیلی دی، چه اخلاص یو داسے عمل دے، چه هغه نهٔ فرښتے پیژندے شی او نهٔ شیطان۔ دا یواځے دَبنده او دَالله پاک په مینځ کښې یو راز دے۔

ن ۴/۱۲/۹۷ ۱۳ نیټه تفسیر معارف القرآن پښتو لومړی پاره د لوی الله (ج) په فضل سره تاسی لوستونکو ته چمتو او زمونږ له ویبپاڼې څخه ډاونلوډ او په خپل کمپیوټرونو او سمارټ ټیلیفونونو کښلته (ډاونلوډ) کولی شی

محترم الله سلطانزی
آمرکبه
0706912702

# تفسير معارف القرآن پښتو

## پاره

## 2

تالیف : مولانا مفتي محمد شفیع رحمة الله علیه

مجلس ترجمه ونظر ثانی

1 ډاکټر قاضي محمد مبارک

2 ابو حسین مولانا ګل برخان سواتی

3 مولانا سیف الحنان حقانی

باهتمام : ډاکټر محمددین

برېښنايي کوونکی : عزت الله سلطانزي

آریکه واټس اپ : 009370691272

سَيَقُولُ السُّفَهَآءُ مِنَ النَّاسِ مَا وَلّٰهُمْ عَنْ قِبْلَتِهِمُ الَّتِيْ

اوس به اووائی بے وقوفه خلق چه څه شیز وا‌ړول مسلمانان د خپلے قبلے چه په هغے

كَانُوْا عَلَيْهَا ۭ قُلْ لِّلّٰهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ ۭ يَهْدِيْ مَنْ

باندے دوی وو - تهٔ اووایه چه هم د الله پاک دے مشرق او مغرب - روانوی چه چاله

يَّشَاۗءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ۝۱۴۲

ئے خوښه شی په نیغه لاره -

## لنډ تفسیر:-

(هر کله چه کعبه قبله مقرر شوه - او د یهودو قبله پریښودے شوه . نو د خفګان له وجے)

اوس خو (دا) بے وقوفه خلق ضرور به وائی چه د (مسلمانان) دوی (د مخکښنی اړخ د) قبلے نه

(چه بیت المقدس وو) چه هغے طرفته به دوی مخکښنے مخ کولو، څهٔ خبره (دویم طرفته) واړول

ته (په جواب کښے) اؤ وایه چه ټول (طرفونه که) مشرق (وی) او (که) مغرب (دی) د الله پاک

ملک دی (الله پاک ته مالکانه اختیار دے، چه کوم طرف غواړی مقرر کوی، چاته د احق نه

رسی. چه د وجے پښتنه اوکړی - او د احکامو شرعیو په حقله هم دغه عقیده لرل ضروری دی.

لیکن بعضو خلقو ته د دا سے عقیدے لرلو توفیق نه وی ورکړے شوے . نو هغوی وجے لهوی (البته)

چاته چه الله پاک (په خپل فضل سره) او غواړی (دا) نیغه لاره ورته اوښائی -

## علوم او مسائل

په دے آیت کښے، د قبلے په بدلیدلو باندے د مخالفینو اعتراض نقل کړے شوے دے - او بیا

د هغے نه جواب کړے شوے دے . د دے اعتراض او جواب نه مخکښے، په جواب باندے د پوهیدلو

د پاره د قبلے حقیقت او د هغے لنډ غوندے تاریخ واؤرئ :-

د قبلے لفظی معنیٰ ده - د مخ کولو اړخ - او دا ظاهره خبره ده، چه د مؤمن د مخ د پاره اړخ په

هر عبادت کښے یو لئے د یو الله لاشریک له طرف وی - او د الله پاک ذات د مشرق او مغرب شمال

او جنوب د اړخونو نه پاک دے، د هغه ذات په څه خاص طرف کښے نه دے . د دے حقیقت طبعی

اثرخو دا دو، چه یو عبادت کوونکے، څه خاص ارخ ته د مخ کولو پابند نه وے، چه کوم طرف ته ئې زړه غوښتلے، په مانځه کښے هغه طرف ته ئې مخ کولے۔

لیکن د الله پاک یو بل حکمت دا او غوښتله، چه د ټولو عبادت کوونکو، مخ یو طرف ته دِ وی۔ او دا حکمت دا دے، چه د عبادت ډیر قسمونه دی، بعضے داسے عبادتونه دی چه سړے ئې یواځې کوی، او بعضے داسی دی چه سړے ئې یواځې نه کوی۔ بلکه د نورو په ملګرتیائے کوی۔ د الله پاک ذکر او روژه دا هغه عبادت دے چه سړے ئے د بل د ملګرتیا نه بغیر، او په پټه کولے شی۔ مونځ او حج دا یو داسے عبادت دے، چه دا په ملګرتیا او ښکاره سره کولے شی۔ په دے کښے د عبادت سره سره، مسلمانانو ته په ګډه د ژوند کولو آداب ښودل، هم مقصود دی۔ او دا هم بالکل ظاهره ده، چه په ګډه ژوند تیرولو (اجتماعی) نظام د پاره، د ټولو نه لوئے بنیادی اصل دا دے، چه ډیرو افرادو کښے وحدت او یووالے وی۔ او دا یووالے چه څومره مضبوط وی، دومره اجتماعی نظام مضبوط وی، بیولځے والے (انفرادیت) د اجتماعی نظام د پاره زهرِ قاتل دے۔ بیا د وحدت (یو والی) د نقطے د معین کولو د پاره په هره پیړئ او زمانه کښے خلقو مختلفے لارے نیولی دی۔ چا د نسل او نسب لاره نیولے ده۔ چا د وطن او د جغرافیئ لاره د یو والی د پاره غوره کړے ده۔ او چا د رنګ او د ژبے۔

لیکن د الله پاک دین، او د پیغمبرانو شریعتونو، د غه غیر اختیاری څیزونه، د یو والی د پاره د مرکز کیدلو قابل اُنه ګنړل۔ او دا څیزونه په اصل کښے داسے څیزونه نه دی چه د انسان ټول افراد په یو نقطه باندے راغونډ کړی۔ بلکه کچرے غور اُو کړے شی چه دا داسے څیزونه دی چه د انسان افرادو کښے، د تقسیم او د اختلافاتو اسباب ګرځی۔

د اسلام دین، چه په حقیقت کښے د ټولو پیغمبرانو دین دے، د یو والی د پاره اصل مرکز د فکر، خیال او عقیدے د یو والی مرکز اُګرځولو۔ او دنیا ته ئې د یو ذاتِ حق الله پاک د عبادت کولو دعوت ورکړو، او په داسے کولو سره ئې، د کړوړونو ناحقو خدایانو په عبادت سره، تقسیم شوے دُنیا راغونډه کړه۔ د داسے الله پاک عبادت او اطاعت کولو ته ئې دعوت ورکړو، چه په هغے سره د مشرق، او مغرب د ماضی او مستقبل ټول افرادِ انسانی راغونډ یدے شی۔ بیا د غه حقیقی، فکری او نظری

یو والی، د مضبوتیا او عملی شکل دپاره، څه ظاهری وحدتونه هم مقرر کړے شو، او په دغه ظاهری وحدتونو کښے هم دد ے اصل لحاظ وکړے شو، چه دا د هم عملی او اختیاری وی، چه د انسان ټول افراد ئے اختیار کړی، او د روړولئ، په رشته کښے او نخته شی ـ نسب، نسل، رنګ، ژبه او وطن اختیاری څیزونه نه دی. یو سړے چه په کوم خاندان کښے پیدا شوے وی ـ هغه هیڅ کله په بل خاندان کښے پیدا کیدے نه شی. کوم سړے چه په پاکستان کښے پیدا شو، هغه په انګلستان یا افریقه کښے پیدا کیدے نه شی. او کوم سړے چه تور دے، هغه په خپل اختیار سره غنم رنګے کیدے نه شی ـ

اوس کچرے دغه څیزونه د وحدت دپاره مرکز مقرر کړے شی، نو د انسانیت دویش نه په ټکو ټو، کرو ړو ټو کښے تیښته ممکنه نه ده ـ نو په دے وجه دین اسلام، دغه څیزونه، چه دے سره تمدنی مفاد تړلی شوی دی، د دوئ ئے پوره احترام کړے دے، خو دائے د انسان دپاره د وحدت مرکز مقرر کړے نه دے ـ

او دغه ظاهری وحدتونه، چه د فکری او نظری وحدت مضبوطیا دپاره مقرر کړے شوی دی ـ په دوئ کښے د دے خبرے پوره پوره لحاظ کړے شوے دے، چه دا د دا سے آسان وی، چه نن څخه، توستے، نالوستے، ښارے او کلی وال بانډیچے، امیر او غریب ټول ئے کولے شی. د غه وجه ده چه په اسلامی شریعت کښے د دنیا ټول خلق، د پوشاک، استوګنے، خوراک، څکاک د یوے طریقے پابند کړے شوی نه دی. ځکه د هر یو ځلئے د موسم ـ او د مختلفو طبائعو، ضرورتونه مختلف وی. نو کچرے ټول، د پوشاکے لباس (شعار) پابند کړے شی، نو ډیر مشکلات به پیدا شی ـ

د غه وجه ده، چه په اسلامی شریعت کښے، مسلمانانو دپاره یو شعار (دَریش) مقرر کړے شوے نه دے ـ په مختلفو قومونو کښے، چه کومے طریقے د لباس رائج دی، په هغوی ټولو باند ے ئے نظر اچولے دے، په دوئ کښے چه کوم صورتونه، د بے ځایه اسراف، او د فخر، او یا د یو غیر مسلم قوم د پیژندګلو وو، صرف هغه ئے منع کړی دی. او په باقی څیزونو کښے ئے، هر یو سړے او قوم آزاد او خود مختاره پریښے دے. او د وحدت مرکزیئ دا سے څیزونه مقرر کړی دی ـ چه اختیاری هم دی او

آسان او ارزان هم. لکه د امامتۍ په ماځه کښې صفونه تړل. د یو امام د حرکا تو پابندي کول. په حج کښې د لباس او د ځائې یو والے.

هم دغه رنګ یو اهم څیز، د قبلے د اړخ یو والے هم دے. الله پاک اګرچه د هر اړخ او طرف نه پاک دے. د ده د پاره، شپږ واړه طرفونه برابر دي. لیکن په ماځه کښې د اجتماعي صوّت د پیدا کولو د پاره او د وحدت د پیدا کولو د پاره، یو بهترینه، آسانه، او بے قیمته ذریعه د وحدت دا ده چه د ټولے دنیا د بنیا د موځ د یو طرف او اړخ ته شي. اوس دا اړخ او طرف د کوم وي، کچرے د دے مقرر تیا بنیا د موته پرینښوے شي، نو دا به یو لوئے سبب د اختلاف او د جګړے شي. نو په دے وجه دا ضروري شوه چه د دے مقرر تیا د الله پاک د طرف نه وي. حضرت آدم علیه السلام چه دنیا ته راکوز کړے شو. نو دینه وړاندے د ملائکو په ذریعه د بیت الله بنیاد ایښود لے شوے وو. نو د حضرت آدم علیه السلام او د هغه د اولاد د ټولو نه اولنۍ قبله دغه بیت الله مقرر کړے شوه ارشاد دے:-

"اِنَّ اَوَّلَ بَیْتٍ وُّضِعَ لِلنَّاسِ لَلَّذِیْ بِبَکَّةَ مُبٰرَکًا وَّهُدًی لِّلْعٰلَمِیْنَ" (د ټولونه اولنے کور، چه خلقو د پاره جوړ کړے شو، هغه کور دے، چه په مکه کښې دے او د برکت والا، او د دنیا د خلقو د پاره د هدایت والا کور دے)

تر نوح علیه السلام پورے د ټولو قبله دغه بیت الله وو. د طوفانِ نوح علیه السلام په وخت کښې ټوله دنیا غرقه او تباه شوه. د بیت الله آبادي هم ورانه شوه. او دے نه پس حضرت خلیل الله ابراهیم علیه السلام د الله پاک په حکم دوباره بیت الله جوړ کړو. او دائے او د ده د امت قبله شوه. ده نه پس د بني اسرائیلو د پیغمبرانو د پاره بیت المقدس قبله مقرر کړے شوه. او د ابو العالیه په قول وړاند ینو پیغمبرانو چه به بیت المقدس کښې موځ کولو، نو دا سے کار به ئے کولو، چه صخرة بیت المقدس او بیت الله ئے دواړه مخے ته راشي. (قرطبي)[1]

په حضرت خاتم الانبیاء صلی الله علیه وسلم چه کله موځ فرض کړے شو، نو د بعضے

(۱) ج : ۲، ص : ۱۵۱

عالمانو په قول اول دده قبله، دده دنیکه قبله بیت الله مقرر کړے شوه۔ د مکے مکرمے نه د هجرت کولو نه پس او په مدینه منوره کښے د قیام کولو نه وروستو، او بعضے روایاتو کښے مدینے ته د هجرت کولو نه څه ورځے وړاندے۔ دوی ته د الله پاک د طرفه دا حکم اُوشو، چه ته بیت المقدس ته په مونځ کولو کښے مخ کوه۔ د صحیح بخاری د روایت مطابق، نبی کریم صلی الله علیه وسلم، شپاړس اولس میاشتے مونځ د بیت المقدس په طرف کړے دے[1]۔ په مسجد نبویؐ کښے اوس هم هغه نښے شته۔ چرته چه به نبی کریم صلی الله علیه وسلم اُودریدلو، او دَ بیت المقدس په طرف به ئے مونځ کولو۔

نبی کریم صلی الله علیه وسلم د حکم خداوندی د تعمیل کولو یو ژوندے نمونه وه۔ او د حکم خداوندی په مطابق د بیت المقدس په طرف به ئے مونځ کولو. لیکن دده د طبیعت او زړه آرزو دا وه، چه دده قبله دِ بیا هغه قبله شی چه کومه د آدم علیه السلام او دَ ابراهیم علیه السلام قبله وه۔ او عادة الله هم دا دے، چه هغه د خپل مقبول بندګانو مراد او خواهش پوره کوی۔

نو دغه وجه ده، چه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم دا اُمید وو، چه دده آرزو به الله پاک پوره کړی، نو په دے وجه د وحی په انتظار کښے به دوی بیا بیا د آسمان په طرف کتل۔ چه بیان ئے د قرآن کریم په دے آیت کښے دے:۔

" قَدْ نَرٰى تَقَلُّبَ وَجْهِكَ فِى السَّمَآءِ فَلَنُوَلِّيَنَّكَ قِبْلَةً تَرْضٰهَا فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ " (مونږه د یو ستا بیا بیا آسمان طرف ته کتل، نو مونږ به ستا قبله هغه جوړه وُو، چه کومه ته غوره کوے. له دے وجے د بیا د پاره په مانځه کښے خپل مخ د مسجد حرام په لوری کوه)

**په مانځه کښے بیت الله طرف ته په مخ کولو کښے یوه فقهی مسئله**

دلته دا یو فقهی نکته ذکر کول ضروری دی هغه دا چه په آیت کښے د کعبے، یا د بیت الله په ځائے د مسجد حرام لفظ ذکر شوے دے۔ په دے کښے دے خبرے ته اشاره ده، چه د لرو (پرتو) ځایونو اوسیدونکو د پاره دا ضروری نه ده، چه خاص بیت الله ته مخ کړی۔ ددوی د پاره

(۱) قرطبی: ج: ۲ - ص. ۱۵۰ -

دا ضروري دي، چه د بيت الله په طرف په مانځه کښې خپل مخ کړي. او کوم کس چه په مسجد حرام کښې وي. يا په دلته يو نزدے ځائے (عز) بانده وي چه هغه نه بيت الله په سترګو وينې. نو د دلته کس دپاره خاص بيت الله ته مخ کول ضروري او لازمي دي. په دے صورت کښې، کچرے د ده مخ د بيت الله يو سے حصے ته او نه شي، نو د ده مونځ نه کيږي. بخلاف د هغه خلقو چه د هغوي نظر په بيت الله نه لګي، نو دا سے خلقو د پاره په مانځه کښې صرف د بيت الله په اړخ مخ کول کافي دي.

بهرحال مدينے منورے ته هجرت کولو نه شپاړس اولس مياشتے پس ورستو د مسلمانانو قبله بيت الله مقرر کړے شوه. نو په دے بانده يهودو، بعضے مشرکانو، او منافقانو دا اعتراض کول شروع کړل. چه د مسلمانانو دين په يو سے خبره ټيکاؤ نه نيسي. ذ دوي قبله هم هر ه ورځ بدليږي رابدليږي.

قرآن کريم د دوي دغه اعتراض په مخکښې ذکر شوي آيت کښې نقل کړو ليکن ورسره ئے دومره خبره زياته کړه چه بيوقوفان خلق دا اعتراض کوي. او د دوي دا اعتراض چه کوم جواب ورکړے شوے دے نو له هغے نه د دوي بيوقوفي په ډاګه کيږي. ارشاد دے:- قُلْ لِّلّٰهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ. (ته اُوايه چه خاص الله دپاره دے مشرق او مغرب، هغه چه چاله اُوغواړي، نو په نيغه لاره ئے روان کړي)

په دے آيت کښې خانه کعبے ته د مخ کولو حقيقت واضح کړے شو، چه د کعبے او بيت المقدس دپاره په مخ کولو کښې څه خاصيت نشته دے. صرف دا يو حکم رباني دے، چه دوي ته ئے مخ کول مقرر کړي دي. هغه کچرے دا اُوغواړي نو له دے دواړو نه سوا يو دريم يا څلورم څيز هم قبله کولے شي. بيا چه کوم څيز ئے قبله کړے دے، نو هغه ته په مخ کولو کښې چه کوم فضيلت او ثواب دے، نو د هغے لُب لباب بس د حکم رباني دا طاعت نه سِوا بل څه نه دے. او د حکم رباني اِطاعت هغه څيز دے چه هغه د کعبے د جوړولو نکي حضرت ابراهيم عليه السلام د ملت بنيادي اصل دے. او دا خبره په بل آيت کښې نوره هم ښه واضحه کړيده فرمائي:- لَيْسَ الْبِرَّ اَنْ تُوَلُّوْا وُجُوْهَكُمْ قِبَلَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ وَلٰكِنَّ الْبِرَّ مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ[1] (په دے کار کښې څه خپله نيکي او ثواب نشته چه تاسو مشرق ته

(۱) البقرة : ۱۷۷ -

مخ کړئ یا مغرب ته. لیکن په دے کښې شته چه تاسو په الله باندې ایمان راوړئ او د الله اطاعت اوکړئ)

او په بل آیت کښې فرمائی:-

اَيْنَمَا تُوَلُّوْا فَثَمَّ وَجْهُ اللهِ[1] (تاسو چه د الله دحکم برابر چرته مخ کوئ. نو د الله توجه به په دغه طرف کښې بیاموئ)

له دے آیاتو نو نه داخبره واضحه شوه. چه مقررشوے قبلے ته په مخ کولو کښې چه کوم فضیلت او ثواب دے، دا د دغه مقرر شوی قبلے خپل څه خصوصیت نه دے، بلکه دا یو حکم ربانی دے. او په حکم ربانی سره په دغه مقرر شوی قبلے کښې دغه فضیلت پیدا شوے دے. او شاید، د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د قبلے په بدلیدو را بدلیدو کښې دغه حکمت وو، چه عملی طور سره، خلقو ته دا واضحه کړے شی چه قبله څه بوت نه دے، چه عبادت ئے اوکړے شی. بلکه اصل څیز د خدائے حکم دے. حکم د بیت المقدس دپاره چه راغے نو په هغے باندے عمل اوکړے شو او بیا چه د کعبے دپاره راغے، نو کعبے ته مخ کول عبادت کړے شو.

او داخبره له دے آیت نه په ډاگه معلومیږی:-

وَمَا جَعَلْنَا الْقِبْلَةَ الَّتِيْ كُنْتَ عَلَيْهَآ اِلَّا لِنَعْلَمَ مَنْ يَّتَّبِعُ الرَّسُوْلَ مِمَّنْ يَّنْقَلِبُ عَلٰى عَقِبَيْهِ. (کوم قبلے ته چه تاو راندے مخ کولو هغه لره قبله جوړول صرف له دے وجے وو، چه داخبره څرگنده شی چه څوک د رسول الله صلی الله علیه وسلم تابعداری کوی. او څوک په شاگرځی (یعنی تابعداری پریږدی)

په دے بیان سره چه په دے کښې د قبلے حقیقت واضح شو. د دغوبے وقوفو مخالفو پوره جواب هم اوکړے شو، کوم چه په قبله کښې بدلون را بدلون دا سلام د اصولو سره منافی گڼړلو. او مسلمانانو ته ئے پر طعنے ورکولے. په آخر کښې فرمائی:-

يَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ. په دے کښې دا بنائی چه نیغه لاره هغه ده چه بنیا دم د الله تعالٰی حکم منلو ته ملا تړلے منتظر وی، چه کوم حکم ورته ورکړے

(1) البقرة : 115 -

شي په هغې باندې بنيږ دغه چون چرا نه عمل کوي. او دا نيغه لاره دخدائ تعالیٰ په فضل مسلمانانو ته حاصله شوې ده.

دَ امام احمد په مسند کښې دحضرت عائشهؓ په روايت ذکر دي چه نبي کريم صلی الله عليه وسلم فرمائيلي دي، چه اهلِ کتاب مسلمانانو سره په درېو خبرو حسد کوي. يو دا چه هفته کښې د يوې ورځې خاص کولو حکم دعبادت د پاره څولو امتونو ته شوې وو، يهودو دخالي ورځ غوره کړه، او نصاراو دَ اتوار، او په حقيقت کښې د غه ورځ، چه دعبادت د پاره د هغې دخاص کولو حکم شوې وو. دَ جُمعې ورځ وه او دا د مسلمانانو په انتخاب کښې راغله. دوېمه هغه قبله چه دَ بيت المقدس نه پس مسلمانانو د پاره مقرر کړې شوه. چه بل يوامت ته دَ دې توفيق نه دوه ورکړې شوې. دريم د امام نه ورستو آمين وئيل. دا درې څيزونه دا سې څيزونه دي، چه يوازې مسلمانانو ته ورکړې شوي دي. او اهلِ کتاب ترې نه محرومه دي.

وَكَذٰلِكَ جَعَلۡنٰكُمۡ اُمَّةً وَّسَطًا لِّتَكُوۡنُوۡا شُهَدَآءَ

او دغه شان اوکړئ مونږه تاسو اُمتِ معتدل، دے د پاره چه شئ تاسو گواهان

عَلَى النَّاسِ وَيَكُوۡنَ الرَّسُوۡلُ عَلَيۡكُمۡ شَهِيۡدًا ؕ

په خلقو باندې او شي رسول په تاسو باندې گواهي کوونکے.

## لنډ تفسير:

او (لکه دمحمد صلی الله عليه وسلم تابع داري کوونکو) دغه شان مونږه تاسو له يو داسې ولږ جوړه کړې ده چه (هر لحاظ سره) ډيره معتدله ده. دے د پاره چه (دَ دنيوي شرافت او امتياز نه علاوه په اُخرت کښې هم ستاسو لوئي او ډير شرافت ظاهر شي چه) تاسو (په يو لويه مقدمه کښې چه په هغې کښې به يو فريق نبيان عليهم السلام وي، او بل فريق به د دوی مخالفت کوونکي وي، د دغه (مخالف) خلقو په مقابله کښې گواهان يئ او (د شرافت د پاسه شرافت دا شو چه) ستاسو د شهادت د قبلولو او معتبر گرځولو د پاره رسول الله صلی الله عليه وسلم به گواه وي (او دده په شهادت سره به ستاسو د شهادت

دَ معتبر کرزید و تصدیق وی او بیا به ستاسو په شهادت سره، د دے مقدمے اوجگړے فیصله د نبیانو علیهم السلام په حق کښے کیږی او مخالف به مجرم کیږی۔ او سزا به ورته ورکیږی)

# علوم او مسائل

**دامّت محمّدی خاص اعتدال** لفظ وَسَط د سین په زوَر سره، د اوسط په معنیٰ دی، غوره څیزونو ته په عربئ ژبه کښے وَسَط ویلے شی۔

په ترمذی کښے د ابوسعید خدریؓ په روایت، نبی کریم صلی الله علیه وسلّم دَ وَسَط تفسیر په عدل سره کړے دے چه د هغے معنیٰ "بهترین" ده (قرطبی)[1]

په دے آیت کښے دَ اُمّتِ محمّدی د امتیازی فضیلت او خصوصیت ذکر دے۔ هغه داچه دا اُمّت یو معتدل امت دے۔ په دے آیت کښے دا اُوښودلے شوچه څه رنګ مونږ مسلمانانو ته هغه قبله ورکړه چه دَ ټولو نه افضله او اشرفه ده دغه شان مونږه امت محمّدی ته یو خاص امتیازی فضیلت ورکړے دے، چه دا مونږه یو معتدل امّت جوړ کړے دے۔ چه د دے اثر به دا وی چه په میدان حشر کښے هرکله د ټولو نبیانو امتیان د خپلو نبیانو د تبلیغ منکر شی او دا اُووائی چه مونږ ته نه څه کتاب راغلے دے او نه څه نبی، نو په دغه وخت کښے به اُمّتِ محمّدی د نبیانو له طرفه دګواه په طور باندِ را وړاندے شی او دا شهادت به اوکړی چه پیغمبرانو په هره زمانه کښے دوئ ته د الله پاک له طرفه راوړے شوے هدایت رسَولے دے او خپل بنه کوشش ئے کړے دے، چه دوی په نیغه لاره راولی۔ پیغمبرانو دغه اُمتیان دَ امت محمّدی په ګواهئے باندِ به داجرحه اُوکړی، چه دا امّت محمّدی خو څمونږ په زمانه کښے نه وو، نو دوی ته څمونږه دَ معاملو څه علم دے، د دوی ګواهی څمونږه په مقله څرنګ تبلید شی۔ اُمت محمّدی به د دے جرح جواب دا اُوکړی، چه هو، مونږه خو په دغه وخت کښے نه وو، لیکن د دوئ دَ حالاتو او واقعاتو خبر مونږ ته یو رښتونی پیغمبر او د الله پاک کتاب راکړے وو، چه په هغے باندِ څمونږه ایمان دے او دا خبر مونږه دومره صحیح او رښتیا ګڼو څرنګ چه یو څیز مونږه په خپلو سترګو کورو وینو، بلکه لا، له دے نه زیات، نو په دے وجه مونږه په خپلے ګواهئ کښے حق بجانب او رښتونی یو۔ په دغه کښے به رسول کریم صلی الله علیه وسلّم را وړاندے شی او د دغه ګواهانو صفائی به اُوکړی،

(۱) ج:۲، ص: ۱۵۳۔

چه هودوی چه څه وئیلی دی صحیح دی. د الله پاک دَ کتاب او حُما تعلیم په ذریعه دوی ته درست حالات او واقعات معلوم شوی دی.

دمحشر دده واقعه تفصیل په صحیح بخاری، ترمذی، نسائی او مسندِ امام احمد کښې ذِکر ده.

## دَاعتدال امت حقیقت اَهمیّت او ددې څه تفصیل

(۱) داعتدال معنیٰ او حقیقت څه څیز ده؟ (۲) دَ اعتدال صفت ته دا اهمیت ولې حاصل دی چه دائې دفضیلت دپاره مدار کرځولے ده. (۳) دا اُمت محمّدی دمعتدل کیدلو، دَ واقعاتو په ترس کښې څه ثبوت ده؟ دَدې دریځ واړو سوالونو جوابُونه بالترتیب اوری،

۱) داعتدال لفظی معنیٰ ده برابرکیدل. دالفظ دعدل نه وَتے ده. او دعدل معنیٰ هم برابرکول دی.

۲) داخبره چه اعتدال دومره اهمیّت لری، چه دا دبنیادم دشرف او فضیلت معیار کرځولے شوے ده، لږ غوندِ تفصیل غواړی. ددې ته دپاندے یو محسوس مثال نه اوګورئ. ددنیا چه څومره طریقے دبنیادم دبدن دَصحت ساتلو دپاره که په طب یونانی کښے دی، یا ویدک کښے دی یا ایلوپیتهک کښے دی یا هومیو پیتهک کښے دی. دَ ټولو په دے اتفاق دے، چه دبنیادم دبدن صحت، دمزاج په اعتدال باندے ولاړ دے. اوچرته چه په دے اعتدال کښے دیو اړخ نه خلل راشی، نو هغه دبنیادم دبدن مریض کیدلو سبب کرځی. او خصوصًا دیونانی طب بنیادی اصل خوّدَ مزاج په پیژندلو باندِاړانړه ده. په یُونانی طب کښے دی، چه دَ بنیادم بدن دڅلور وخلطونو: وینه، بلغم، سوداء، او صفراء نه مرکب ده. او له دے څلور وخلطونو، چه کوم څلور کیفیتونه پیدا کیږی، هغه دبنیادم دبدن دپاره ضرور دی. هغه څلور کیفیتونه کرمی، یخنی اُچوالے اولُوند والے ده. ترڅو پورے چه دا څلور کیفیتونه دبنیادم دمزاج برمعتدل حالت کښے وی. نو دبنیادم بدن تندرست وی. او کوم وخت چه په دوی کښے یو کیفیت دبنیادم دمزاج دحدنه او وځی یا کم شی، نو بدن ناجوړه شی. او کچرے دَدے اصلاح او علاج اُنکړے شی، نو بیا دا مرض دمرګ سبب اوکرځی.

ددے محسوس مثال نه پس، اُس دوحانیاتو او اخلاقیاتو نو ته راشئ. نو تاسو ته به

معلومہ شی، چہ پہ دوی کښې هم دَ اعتدال او بے اعتدالئ دغه طریقه جاری ده ـ دَ اعتدال پہ وجه د دوی تندرستی او د بے اعتدالئ پہ وجه دَ دوی مریض کیدل دی او کچرے د دوی د بے اعتدالئ او مرض علاج اُونکړے شی۔ نو دَ هغې نتیجه بیا روحانی مرګ د ے۔ او دا هم یو صاحب بصیرت بنیادم نه پټه خبره نه ده۔ چه بنیادم په کوم جوهر سره د ټولو مخلوقاتو حاکم کرځولے شوے د ے، هغه د هغه دا بدن یا د بدن اخلاط یا د اخلاطو نه پیدا شوی کیفیتونه، نه دی ځکه چه دا اجزاء اخلاط، او کیفیات دَ دنیا په ټولو ځناورو کښې هم شته دے۔ بلکه د بنیادم نه دا په نورو ځناورو کښې ډیر دی۔

دغه جوهر څه بل څیز دے، چه په بنیادم کښې په مکمل طریقے سره موجود دے۔ په نورو مخلوقاتو کښے دغه جوهر په دغه درجه کښے نشته۔ او د دغے جوهر متعین کول او معلومول څه باریک او مشکل کار نه دے، دغه جوهر د بنیادم روحانی او اخلاقی کمال دے۔

او هرکله چه دا معلومه شوه، چه د بنیادم د شرافت او فضیلت مدار د بنیادم روحانی او اخلاقی کمالات دی۔ او دا مخکښے معلومه شوے ده، چه د بنیادم د بدن په شان د بنیادم په رُوح کښے هم اعتدال او بے اعتدالی راځی۔ او څرنګ چه د بنیادم دَ بدن صحت او تندرستی د ده د مزاج او اخلاطو په اعتدال کښے ده، نو هم دغه رنګ دَ ده د روح صحت او تندرستی د روح او د اخلاقو په اعتدال کښے ده۔ په دے وجه انسانِ کامل هغه سړے کیدے شی چه هغه کښے بدنی تندرستیا سره روحانی تندرستیا هم وی۔ دا کمال ټولو پیغمبرانو ته په خصوصیت سره ورکړے شوے دے۔ او خصوصًا پیغمبر محمّد صلّی الله علیه وسلّم ته د نورو پیغمبرانو نه دا کمال ډیر ورکړے شوے وو۔ نو په دے وجه دَ انسانِ کامل اولنے مصداق نبی کریم صلّی الله علیه وسلّم دے۔ او چه څرنګ الله تعالیٰ د جسمانی علاج معالجے د پاره په هره زمانه کښے او په هرځائے کښے دَ طبیبانو او دَ ډاکټرانو انتظام کړے دے۔ نو دغه شان ئے د رُوحانی علاج د پاره په خلقو کښے د اخلاقو د اعتدال د پاره پیغمبران رالیږلی دی او آسمانی هدایات ئے راليږلی دی، او د ضرورت مطابق ئے ورله مادی طاقتونه ورکړی دی۔ چه د دے په ذریعه معنوی په دُنیا کښے د اعتدال دا قانون نافذ کړی۔ د دغه مضمون قرآن کریم په سورتِ حدید کښے دا رنګ بیان کړے دے۔

لَقَدْ اَرْسَلْنَا رُسُلَنَا بِالْبَيِّنٰتِ وَاَنْزَلْنَا مَعَهُمُ الْكِتٰبَ وَالْمِيْزَانَ لِيَقُوْمَ النَّاسُ بِالْقِسْطِ ۚ وَاَنْزَلْنَا الْحَدِيْدَ فِيْهِ بَاْسٌ شَدِيْدٌ وَّمَنَافِعُ لِلنَّاسِ (۱) (مونږ خپلو پيغمبرانو ته ښکاره دليلونه ورکړي او دوئ سره مو ليږلي، او نازل مو کړل دوئ سره کتاب او تله دې دپاره چه خلق په عدل او انصاف باندې ټينګ پاتې شي. او مونږ نازله کړه اوسپنه، په دې کښې سخت جنګ دے او د خلقو کار هم پرې روان دے.

په دے آيت کښې د پيغمبرانو د ليږلو او په دوئ باندې د کتابونو د نازلولو هم د غه حکمت بيان کړے شوے دے، چه الله تعالیٰ د دوئ په ذريعه اخلاقي او عملي اعتدال پيدا کوي. کتاب ئې د اخلاقو او روحاني اعتدال دپاره او تله ئې په لين دين کښې اعتدال د پاره نازله کړې ده. او دا هم ممکنه ده، چه د تلې نه مراد، د هر پيغمبر شريعت وي، چه هغه د حقيقي اعتدال معلومولو ذريعه ده. او عدل او انصاف په دې سره تاميږي.

له دې تفصيل نه به تاسو ته معلومه شوې وي، چه د ټولو پيغمبرانو استول، او په دوئ باندې د کتابونو نازلول د دې غرض دپاره دي، چه د خلقو په اخلاقو او اعمالو (کاروبار) کښې اعتدال راشي، چه دا د خلقو صحت مندي او تندرستي ده.

**په اُمت محمدي کښې د هر قسم اعتدال** په آيت مذکوره کښې د اُمت محمديه علیٰ صاحبها الصلوٰة والسلام فضيلت صرف په اُمَّةً وَّسَطًا (۱) بيان شويدے خو ګړے سړے په دے ټکي غور او فکر او کړي. نو دا يو داسې لفظ دے، چه په دُنيا کښې څومره کمالات په يو کَس يا يو قوم کښې راتلې شي، هغه ټول په دغه يو ټکي کښې راجمع شوي دي.

په دے لفظ کښې امت محمديه په اُمتِ معتدل بللي، دا ښود نه کوي چه د بنيادم شرافت او فضيلت جوهر په دے اُمت کښې په کامله درجه سره موجود دے. او چه د کوم غرض دپاره د دے آسمان او زمکې نظام جوړ شوے دے، او چه د کوم غرض دپاره پيغمبران او کتابونه راليږلي شوي دي، نو دا امت په دے غرض کښې د نورو ټولو امتونو نه ممتاز او غوره دے.

(۱) ۳۵ -

قرآن کریم دده امّت ددغه خاص صفت د فضیلت په مختلفو آیاتونوکښے
په مختلفو عنوانونو سره بیان کړے دے. د سورتِ اعراف په آخرکښے دُ امّتِ
محمّدیه په صفت کښے ارشاد دے:-
وَمِمَّنْ خَلَقْنَآ اُمَّةٌ يَّهْدُوْنَ بِالْحَقِّ وَبِهٖ يَعْدِلُوْنَ (۱) . (په هغه خلقو کښے چه
مونږ ه پیدا کړی دی. یو داسے اُمّت دے، چه صفا او دَحق لاره ښائی او ددې موافق
انصاف کوی)

په دے آیت کښے دُ امّتِ محمّدیه دَ اخلاقی او روحانی اعتدال وضاحت کړے شوے دے،
چه دوئ خپل ذاتی مفادات او خواهشات پریږدی او د آسمانی هدایت مطابق خپله عمل
کوی، او نورو ته په دے باندِ دعمل کولو بلنه ورکوی. او کچرے په څه کارکښے ئے اختلاف
او جګړه پیدا شی، نو د هغے فیصله دَدغه آسمانی قانون په ذریعه کوی.

او په سورة آل عمران کښے دَ اُمّتِ محمّدیه ددغه اعتدال اثرات په دے الفاظو کښے
بیان کړے شوی دی:
كُنْتُمْ خَيْرَ اُمَّةٍ اُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ، تَاْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ
الْمُنْكَرِ وَتُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ (۲) (تاسو په ټولو اُمتونو کښے غوره يئ. او د نيا ته
(خلقو ته) ليږلے شوی يئ. حکم کوئ د ښو کارونو او منع کوئ د بدو کارونو نه او الله
پاک باندِ ايمان راوړئ)

يعنی چه څرنګ دوئ ته په ټولو پيغمبرانو کښے غوره پيغمبر او په ټولو
کتابونو کښے جامع او کامل کتاب ورکړے شوے دے. هم دغه رنګے دوی ته د تومونو
معتدلانه مزاج او اعتدال په داسے اندازے سره ورکړے شوے دے چه دوئ د
ټولو قومونو او امتونو نه غوره اُمت ګرځولے شوے دے. په دوئ باندِ دعلونو دروازے
پرانستے شوی دی. د ايمان، تقویٰ او عمل ټولے خانګے ددوئ د قربانو نه ښيرازے او
شنے به وی، او دوئ به په يو خاص ملک او وطن پورے تړلی نه وی. بلکه د دوی دعمل
دائره به په ټوله دنيا، او د بنيادم په ټولو ارخونو خوره وی. دَ دوئ وجود به هم دے
دپاره وی، چه د نورو ښيګړه د په دوئ وی. په "اُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ" کښے دے ته اشاره ده،

(۱) ۱۸۱ - (۲) ۱۱۰ -

چه دا اُمّت د نورو د خیرخواهئ د پاره پیدا کړے شوے دے. او د دوئ فرض منصبی او قومی تبنه داده. چه خلقو ته د ښو کارونو هدایت اوکړی او د بدو کارونو نه ئے منع کړی.

په یو حدیث کښے رسول الله صلی الله علیه وسلّم فرمائیلی دی چه :-

اَلدِّيْنُ النَّصِيْحَةُ. (د دے مطلب هم دادے چه دین د دے خبرے نوم دے، چه دَ نورو خیرخواهی اُوکړے شی. بیا په بد و کارونو کښے، کفر، شرک، بد عتونه، بدرسمونه فسق او فجور او د هر قسمه بد اخلاقیانے شاملے دی. او له دے منعُ کول. کله په ژبه، کله په لاس، کله په قلم، او کله په تُوره کیږی. مطلب دا چه په دے کښے د هر قسمه جهاد داخل شو. او دا صفت چه په څومره اهتمام او عام والی سره په اُمّت محمّدیه کښے مُوندلے شوے دے. په نُورو مېنو اُمتونو کښے نه دے موندلے شوے.

(۳) دا خبره چه دَ دے اُمّت اعتدال او میانه روی، د واقعاتو نه ثابت کړے شی. نو دا خبره لویه اوږده ده او دے خبرے ته بنده ده، چه د نورو ټولو اُمتونو عقیدو و عملونو او اخلاقی کارونو سره د دے اُمّت د عقیدو، عملونو او اخلاقی کارونو موازنه او مُقابله اُوکړے شی، په دغه لړ کښے، یو څو څیزونه دَ مثال په طور ذکر کوم :

**اعتقادی اعتدال :** د ټولو نه اول اعتقادی او نظری اعتدال وا خلئ نو پرومبنو اُمتونو کښے به یو اړخ ته دا ښکاره شی، چه هغوئ دالله پاک پیغمبران دَ الله پاک ځامن ګڼړل او دَ هغوی عبادت ئے کولو قَالَتِ الْيَهُوْدُ عُزَيْرُ اِ بْنُ اللهِ وَقَالَتِ النَّصٰرٰى الْمَسِيْحُ ابْنُ اللهِ (۱) او بل اړخ ته، د دغه اُمتونو افراد داسے وُو، چه د پیغمبر د معجزو باوجود، کله چه به پیغمبر دوی ته دغه جنګ او جهاد کولو وینا کوله. نو دوی به ویل اِذْهَبْ اَنْتَ وَرَبُّكَ فَقَاتِلَآ اِنَّا هٰهُنَا قٰعِدُوْنَ (۲) (ته او ستا پروردګار دِ لاړشی او دَ دښمنانو سره دِ جنګ اُوکړی، مونږ خو به دلته ناست یُو)

په خلاف دَ اُمّتِ محمّدیه چه دے په هر وخت او زمانه کښے دخپل پیغمبر سره داسے محبّت لری، چه په هغه باندے خپل ځان، اولاد او مال قربانوی، او بل طرف ته دوئ په اعتدال کښے دے، چه پیغمبر لا پیغمبر او خدائے لا خدائے ګڼړی، او رسول الله صلی الله

(۱) التوبه : ۳۰ (۲) المائدة : ۲۴

علیه وسلم لره سره دده نه پرته نور کمالونو او فضیلتونو د خدائے بنده او پیغمبر گنړی. دوی ده
په مدح او صفت کښے هغه پیمانه اختیار وی کومه چه د قصیده برده والا اختیار کړه دا.

دَعْ مَا ادَّعَتْهُ النَّصَارٰی فِیْ نَبِیِّهِمْ ۞ وَاحْکُمْ بِمَا شِئْتَ مَدْحًا فِیْهِ وَاحْتَکِمِ(۱)

(هغه د کفر کلمه پریږده کومه چه نصاراو د خپل پیغمبر په حقله اختیار کړے ده (چه
معاذ الله دے د خدائے ځوئے دے) له دے نه سوا چه څه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم
په صفت کښے وائے. هغه ټول ټیک او درست دی.

## په عمل او عبادت کښے اعتدال

له دے نه وروستو عمل او عبادت ته راشئ. په دے کښے پرومبنی اُمتونه خو یو طرف ته داسے ښکاری، چه د خپل شریعت احکام
په څو پیسو باندے خرڅوی، بدلے اخلی په آسمانی کتاب کښے ترمیمونه کوی یا غلط فتوے
ورکوی. او قسما قسم حیلے بهانے د شرعی حکمونو د بدلونو دپاره جوړوی او د عبادت نه
ځان خلاصوی. او بل طرف ته چه گورے نو په عبادت خانو کښے داسے خلق هم ښکاری، چه
هغوی دُنیا پریښے ده او رهبانیت ئے غوره کړے دے. او د الله پاک ورکړی شوی حلال
نعمتونه ئے په ځان باندے حرام کړی دی او سختیانے تیروُلے ئے عبادت، او ثواب گڼلے دے.
اُمتِ محمدیه خو، یو طرف ته، دغه رهبانیت، په انسانیت باندے ظُلم او زیاتے گڼلے دے،
او بل طرف ته، د الله پاک او د پیغمبر په احکامو باندے د قربانید وجنه به لری. او د قیصر و
کسریٰ د تخت او تاج په مالک کیدلو سره دُنیا ته دا ښائی، چه په دین او دنیا کښے روغه جوړه
شته. او دین صِرف د جماتونو او خانقاهونو په کوټونو کښے بند نه دے، بلکه د دین حکمرانی
په بازارونو او د فترونو هم ده. او وزارتونو او امارتونو باندے هم.

## معاشرتی او تمدنی اعتدال

دے نه پس معاشرت او تمدن ته اوگورئ. نو په پرومبنو اُمتونو کښے به تاسو یو طرف ته داسے اعتدالی او وینئ
چه هغوی د انسانی حقوقو څه پرواه نه لری، حق او ناحق سره څه کار نه لری، د خپل
غرض د حاصلولو دپاره کچرے څوک ځنځری کړی، نو څه باک نشته، لوټ مار کول خو
کمال دے. د یو مشر په ورشو کښے کچرے د چا او ښ ورگډ شی او څه نقصان اُوکړی
نو د حرب بسوس په نوم ترسلو کالو پورے جنگ کیږی، په زرگونو بنیادم پکښے مری ـــ

(۱) ص:

بخښو ته. انساني حقوق ورکول خو پرېږده، دوی ته د ژوندی پاتې کېدو اجازت نه ورکوي کله ئې په وړکو بچو باندې هم رحم نه کوو او نه ئې پرېښودل چې ژوندي پاتې شي. او چرته ئې د مړو بناوند انو سره سوزوي.
او بل طرف ته د خندا وړه رحم دلې، چې چنجي مېنځي وژل حرام کنړي. او د څناورواو ښکارو و ذبح کول، او د الله پاک د حلال شوي څناورو غوښې او خرمنې نه فائده آغستل حرام کنړي.
اُمت محمديه د دې ټولو بې اعتداليانو خاتمه اوکړه، يو طرف ته ئې انسان ته د انساني حقوقو خودنه اوکړه، او دا نه يوازې د صلح په وخت کښې، بلکه عين په ميدانِ جنګ کښې د مخالفينو د حقوقو د حفاظت ښودنه ئې هم اوکړه، ځکه ته ئې د سرو پښان حقونه ورکول. او بل طرف ته ئې، د هر څيز حد مقرر کړو، چې د هغې نه وړاندې کېدل يا د وستو پاتې کېدل ئې جرم او ګناه مقرر کړه. او د خپلو حقوقو په باره کښې د عفو او درګذر تعليم ورکړو، او د نورو د حقوقو په پوره اهتمام سره د پوره کولو آداب ئې اوښودل.

## اقتصادي او مالي اعتدال

په دې کښې هم نورو قومونو او اُمتونو، په قسم قسم بې اعتداليانو کښې ګير ښکاري. يو طرف ته د سرمايه دارۍ نظام دے، چې په دې کښې د حلالو او حرامو فرق، او د نورو خلقو د خوشحالۍ، يا بدحالۍ نه سترګې پټول او زيات نه زيات مال او دولت را ټولول ئې انساني کمال ګڼړلے شي. نو بل طرف ته د سره شخصي او انفرادي ملکيت جرم نشي ګڼړلے. او ګيرے فکر اوکړے شي، نو د دواړو اقتصادي نظامونو حاصل او بُنياد بس د مال او دولت پرستش دے، او دا د ژوند مقصد ګڼړل دي، او د دې د پاره سخت کوشش کول دي.
امتِ محمديه په دې کښې هم د اعتدال يو عجيبه شکل پيدا کړے دے. هغه دا چې يو طرف ته ئې، دولت لره د ژوند مقصد ګرځول منع کړي دي. او دولت ئې د انسان د عزت شرافت، منصب او د عُهدے د پاره، بُنياد نه دے مقرر کړے. او بل طرف ته ئې، د دولت د وېش د اسې پاک سُتره اُصول مقرر کړي دي، چې په هغې سره يو بنيادم هم د ژوند د ضروريات نه محرومه کېږي نه او نه يو سړے ټول دولت جمع کولے شي. او کوم څيزونه چې د شرکت قابل دي، هغه ئې مشترک ګرځولي دي. په خاص څيزونو کښې، د انفرادي ملکيت

احترام او اهتمام ئے کړے دے. د حلال مال فضیلت او د هغے د ګټلو او استعمال صحیح طریقے ئے خودلی دی.

دَ اُمت محمدیه اعتدال بیا نول دومره او د تفصیل غواړی، چه مستقل کتاب پرې لیکلے شی. فی الحال مُونږ د مثال په توګه یو څو نمونے د اُمت محمدیه دَ میانه روئ، او دَ نورو امتونو دبے اعتدالئ وړاندے کړے، چه دَ هغے نه د مذکوره آیت وضاحت اُوکړے شو، چه امت محمدی یو معتدل او بهترین اُمت دے.

**دشهادت د پاره عدالت اوثقه توب ضروري دے** لِّتَكُونُوا شُهَدَاءَ عَلَى النَّاسِ. د یعنی اُمتِ محمدیه وَسَط، عَدل، او ثقه دے وجے نه جوړ کړے شو، چه دا امت د شهادت کولو جوګه شی. له دے نه دا معلومه شوه، چه کوم سړے عادل نه وی د هغه شهادت قابل قبول نه وی. د عَدَل ترجمه ثقه، یعنی هغه چه په هغه باندے اعتماد کیدے شی. او د دے مکمل شرطونه دفقهے په کتابونو کښے ذکر دی.

**د اِجماع حجت کیدل** قرطبیؒ[1] وئیلی دی چه دا آیت د دے خبرے دلیل دے چه دَ امت اجماع دلیل کیدے شی. او دا ځکه چه هرکله الله پاک دے اُمت ته شهادت کوُنکی اُووئیل او د نورو اُمتونو په مقابله کښے ئے د دوئ خبره حجت او دلیل اوګرځوله، نو له دے نه دا ثابته شوه، چه د دے اُمت اجماع او اتفاق په یو مسئله باندے حجت او دلیل کیدے شی او په دغے اجماع باندے بیا عمل کول واجب او لازمی دی. او په تفسیر مظهریؒ[2] کښے دی، چه له دے آیت نه دا معلومه شوه، چه د دے اُمت هغه اعمال او کاروونه ښه او مقبول دی، چه په کومو باندے د دے اُمت اتفاق وی، ځکه ګڼړے د دوی دا اتفاق په غلطه باندے اُومنلے شی، بیا د دے وینا مطلب څه؟ چه دا امت وَسَط او عدل دے.

او امام جصاصؒ[3] دا وئیلی دی: چه په دے آیت کښے دا دلیل دے، چه د هرے زمانے د مسلمانانو اجماع معتبره ده. د اجماع حجت کیدل. د مسلمانانو د رومبنئ پیړئ سره یا یو خاص زمانے پورے، خاص نه دی. ځکه چه په آیت کښے خطاب ټول امت ته دے. او دَ رسول صلی الله علیه وسلم اُمت یوائے هغه خلق نه وو. کوم چه د رسول صلی الله علیه وسلم په زمانے کښے وو. بلکه تر قیامته پورے د مسلمانانو نسلونه ټول د رسول صلی الله

(۱) ج: ۲، ۱۵۶. (۲) ج: ۱، ص: ۱۳۹. (۳) ج: ۱، ص: ۱۰۳.

علیه وسلم اُمتیان دی، نو د هرے زمانے مُسلمانان شهادت کوونکی شو، او د دوی اتفاق حُجت شو، او دا چه دوی ټول په غلطه او خطا باندے متفق کیدے نه شی.

وَمَا جَعَلْنَا الْقِبْلَةَ الَّتِىْ كُنْتَ عَلَيْهَآ اِلَّا لِنَعْلَمَ مَنْ

او نه وو مقرر کړے قبله په کومه چه ته وړاندے وے مګر دے دپاره چه معلوم کړو

يَّتَّبِعُ الرَّسُوْلَ مِمَّنْ يَّنْقَلِبُ عَلٰى عَقِبَيْهِ ؕ وَاِنْ كَانَتْ

چه څوک تابع پاتے کیږی د رسول او څوک آوړی واپس په پوندو، او بے شکه دا خبره

لَكَبِيْرَةً اِلَّا عَلَى الَّذِيْنَ هَدَى اللّٰهُ ؕ وَمَا كَانَ اللّٰهُ

ګرانه ده، مګر په هغوی نه چا ته چه لار ده اُوښودله الله پاک. او الله پاک دا سے نه دے

لِيُضِيْعَ اِيْمَانَكُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ بِالنَّاسِ لَرَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ ﴿۱۴۳﴾

چه ضائع کړی ستاسو ایمان. بیشکه الله پاک په خلقو باندے ډیر شفقت کوونکے او ډیر مهربانه دے.

**لنډ تفسير:** (او په حقیقت کښے مونږ د شریعت محمدی په دپاره، کعبه قبله کیدل تجویز کړی وو) او د کومے قبلے په طرف چه ته (د څو ورځو دپاره) پاتے شوے وے (یعنی بیت المقدس) هغه خو صرف د دے (مصلحت) دپاره وه چه مونږ ته (په ظاهری طور باندے هم) معلومه شی چه (د دے په مقرر کیدو ویا بدلیدو سره، په یهودو او غیر یهودو کښے) څوک خو د رسول الله صلی الله علیه وسلم تابعداری غوره کوی او څوک شاته جار اُوځی (او نفرت او مخالفت کوی. د دغه امتحان دپاره، دغه عارضی قبله مقرر کړے شوه، او بیا په اصلی قبله دا منسوخه کړے شوه) او د دے قبلے بدلول (د سمے لارے نه په آوړیدو خلقو باندے) خو ډیر دروانه دی (هغه) مګر چه کوم خلقو ته الله پاک (د نیغے لارے هدایت کړے دے (چه د هغے نه مخکښے ورته شوے دے، چه د خدائے حکمونه به بے د چون وچرا منل، هغوی ته څه هم ګران نه دی. لکه څرنګ چه وړاندے ئے دا د خدائے تعالیٰ حکم ګڼړلو، اُوس هم دا د خدائے تعالیٰ حکم ګڼړی) او (څومره چه د دے ویلو چه بیت المقدس اصلی قبله نه وه، د چا ته دا وسوسه پیدا نه شی. چه کوم مونځونه ده

بيت المقدس ته کړې دي، د هغې ثواب به د ه ته کم ورکيدے شي، ځکه چه د ے په اصلي قبله نه وو. نو دا ډنګه وسوسه د په زړه کښې نه را وُړی ځکه) چه الله پاک دا سے نه دے چه ستاسو د ايمان (متعلق عملونه، مثلاً د مونځ ثواب) ضائع (او ناقص) کړي (او) واقعي الله تعالىٰ خو ر دا سے خلقو باند ے د ير شفقت کوونکے (او) مهربانه دے. (نو په دا سے شفيق او مهربانه ذات دا سے کمان کله کيدے شي. ځکه چه د يوے قبلے اصلي او غير اصلي کيدل خو مونږ پيژنو، تاسو خو دوارو ځمونږ حکم قبلوَل کنړلی وو. نو په د ے وجے ثواب به هم د چا کم نه وی)

## علوم او مسئلے

**د کعبے قبله کو ځيدل په مانځه کښے کله شروع شو**

په د ے خبره کښے د صحابؓو او تابعينو اختلاف د ے. چه د هجرت نه وړاند ے، په مکه مکرّمه کښے کله چه مونځ فرض شو، د غه وخت بيت الله قبله وه، يا بيت المقدس. د حضرت عبد الله بن عباس وينا ده، چه د اول نه قبله بيت المقدس وه، چه د هجرت نه ورستو هم سپارس او ولس مياشتو پورے پاتے شوه. او له د ے نه وُرستو، دَ بيت الله د قبلے جوړولو حکمونه نازل شو. هغه د ومره خبره د ه چه دَ نبي کريم صلى الله عليه وسلّم عمل، په مکّه کښے د هجرت کولو نه وړاند ے دا وو، چه دوی به د حجراسود او رُکنِ يماني په مينځ کښے مونځ کولو، چه بيت الله او بيت المقدس دواړو ته مخ راشي. او هر کله چه مدينے ته لاړل، نو دا سے کول ممکن پاتے نه شو، او په د ے وجه، د قبلے د بدليد و شوق ئے پيدا شو. (۱) ابن کثيرؒ)

او نورو حضرات دا وائي: چه هر کله مونځ فرض کړے شو. نو د مسلمانانو رومبۍ قبله په مکه کښے، بيت الله وو، ځکه چه د حضرت ابراهيم عليه السلام او اسماعيل عليه السلام قبله هم بيت الله ؤو. او نبي صلى الله عليه وسلم چه ترڅو پورے په مکه کښے وو، نو بيت الله ته به ئے مونځ کولو، بيا د هجرت نه وروستو د دوی قبله بيت المقدس مقرر کړے شو. او په مدينه کښے سپارس او ولس مياشتے دوی بيت المقدس ته مونځ اوکړو. او له د ے نه ورستو بيا دَ دوی رومبۍ قبله بيت الله مقرر کړے شوه. او د د ے په طرف د مانځه کولو حکم اُوکړے شو. په تفسير قرطبيؒ (۲) کښے د ابوعمر په حواله دا دوئم قول، زيات

(۱) ج: ۱، ص: ۳۳۳ - (۲) ج ۲، ص: ۱۵۰ -

صحیح کنړے شوے دے۔ او حکمت دا بیان کړے دے، چه مدینے ته په راتللو هر کله چه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم، یهود و سره واسطه راغله، نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم د یهودو د مانوس کولو دپاره، د الله پاک په اجازت او حکم سره د دوی قبلے ته په مانځه کښے مخ کول شروع کړل۔ لیکن بیا د تجربے نه ثابته شوه، چه د اخلق، د خپل جهل نه وتونکی نه دی، نو بیا د دوی نه دا حکم ورکړے شو، چه خپلے اصلی قبلے ته مخ کوئ۔ چه هغه دوی ته د خپلو نیکونو حضرت ابراهیم علیه السلام او اسماعیل علیه السلام د قبلے کیدلو په وجه ډیر محبوبه وه۔

او قرطبی[1] دا ابوالعالیه ریاحی نه نقل کړے دے، چه د حضرت صالح علیه السلام د جمات قبله بیت الله وه۔ او بیا ابوالعالیه نه دا خبره هم نقل کړے ده چه د ابوالعالیه یو یهودی سره مناظره او شوه۔ یهودی وئیل، چه د موسیٰ علیه السلام قبله صخره بیت المقدس وه. ابوالعالیه ورته اُووے چه نه۔ موسیٰ علیه السلام د صخره بیت المقدس په خوا کښے مونځ کولو، خو د هغه مخ د بیت الله په طرف وو۔ یهودی له دے نه انکار اوکړو۔ نو ابوالعالیه اووے، چه بنه چه ځما او ستا د دے جګړے فیصله په د حضرت صالح علیه السلام جمات اوکړی. هغه جمات چه د بیت المقدس نه بنکته په یو غر باندے دے، نو چه هغلته لاړل. نو دائے اُولیدل، چه د حضرت صالح علیه السلام قبله بیت الله وه۔

او کوم حضرات، چه پرومبنے قول غوره کړے دے۔ د دوی په نز د حکمت دا وو۔ چه په مکه مکرمه خود مشرکانو نه مخالفت کول او له دوی نه جُدائی راوستل وو۔ نو په دے وجه د دوی قبله پریښودے شوه، او بیت المقدس قبله کړے شوه۔ بیا د هجرت نه پس په مدینه منوره کښے، د یهودو او نصارا و نه جدائی کول او د دوی مخالفت کول غرض وو. نو په دے وجه د دوی د قبلے په ځائے بیت الله قبله کړے شوه۔ د دغے اقوالو د اختلاف په وجه د آیت په تفسیر کښے هم اختلاف دے، چه د اَلْقِبْلَةَ الَّتِیْ كُنْتَ عَلَيْهَا نه څه مطلب او مراد دے؟ د پرومبنی قول مطابق له دینه مراد بیت المقدس دے، چه دا دده پرومبنی قبله وه۔ او د دوئیم قول له مخه، له دینه کعبه هم مراد کیدے شی۔ ځکه چه دا دده پرومبنی قبله وه۔

(۱) پرومبنی مرجع ۱۵۱۔

او په دواړو صورتونو کښې د آیت مفهوم دا دے، چه مونږ ه د قبلې بدلول ستا تابعداری کوونکو مسلمانانو د پاره یو قسم امتحان مقرر کړے دے، چه په ظاهری طور سره هم دا معلومه شی، چه څوک ستا صحیح حکم منونکی دی، او څوک د خپلې رائے تابع دی او د اسلام نه وا پس کیدونکی دی او ځرنګے چه د قبلې د بدلیدو حکم نازل شو نو بعضې دکمزورو ایمان خاوندانو، یا هغه چه د هغوی په زړونو کښې څه منافقت وو، اوئیل "چه دا خو د خپل قوم د دین په طرف کوږ شو"۔

**کله سنت په قرآن سره هم منسوخ کیدے شی**

جصاص[1] په احکام القرآن کښې وئیلی دی: چه په قرآن کریم کښې چرته دا صراحت نشته، چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته، د هجرت نه وړاندے، یا د هجرت نه وروستو، د بیت المقدس په طرف مخ کولو حکم شوے وی۔ بلکه د دے خبرے ثبوت صرف په احادیثو او نبویه کښې دے۔ نو کوم څیز چه د سنت نبویه په ذریعے ثابت شوے وو۔ نو د قرآن دے آیت هغه منسوخ کړو او ددوی قبله ئے بیت الله مقرر کړه۔

له دینه دا هم ثابته شوه، چه حدیثِ رسول هم په یو حیثیت قرآن دے۔ او دا چه څه احکام چه په قرآن کریم کښې موجود نه دی۔ هغه یوازے د حدیث نه ثابت دی۔ قرآن کریم د هغوی شرعی حیثیت منی، ځکه د دغه آیت په آخر کښې دا هم ذکر دی، چه کوم مونځونه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په حکم، د بیت المقدس په طرف شوی دی، هغه معتبر او الله پاک نه منظور دی۔

**چه کله قوی قرینے د خبرِ واحد د ثبوت د پاره موجود وی نو په هغه سره قرآنی حکم منسوخ کیدے شی۔**

په بخاری او مسلم، او نورو ټولو معتبر کتابونو د حدیث کښې، د ډیرو صحابو[رض] په روایت دا خبره نقل شوے ده، چه هر کله نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته د قبلې د بدلیدو حکم راغے، نو نبی علیه السلام د ماز یګر مونځ د بیت الله په طرف اوکړو (او بعضې روایاتو کښې د ماز یګر په ځائے د ما سپخین ذکر دے)

ابن کثیر[2] نو بعضې صحابه د مانځه نه پس بهر ته لاړل۔ او ئے لیدل چه د بنی سلمه قبیلے

(۱) ج: ۱، ص: ۹۹، ۱۰۰ - (۲) ج: ۱، ص: ۳۴۰ -

خلق، په خپل جماعت کښې دوړاندې په شان د بیت المقدس په طرف مونځ کوی. نو دوی ورته آواز وکړو، چه اُس قبله د بیت الله طرف مقرر کړے شوے دے. مونږ ته او رسُول الله صلی الله علیه وسلم اُس د بیت الله په طرف مونځ کړے دے او له هغه دخوا نه راغلی یو. نو دے خلقو، د مانځه په مینځ کښې، خپل مخ، بیت المقدس نه د بیت الله په طرف کړو. د نویله بنت مسلم په روایت کښې دی "په دغه وخت کښې چه خلقو په مانځه کښې د قبلے د بدلید وخبر واوریدو او په مانځه کښې د بیت الله په طرف را وګرځیدل. نو ښځے د سړو ځائے ته راغلے او سړی د ښځو ځائے ته راغلل" (ابن کثیر[1])

د بنو سلمه قبیلے خلقو خو په ماسپخین یا ماز یګر کښې، د قبلے د بدلید و په حکم باندے عمل اوکړو. لیکن په قُباء کښې دا خبر د دا تلونکے ورځے د صبا په مانځه کښې اورسیدُ. لکه چه بخاری او مسلم کښې د ابن عمرؓ په روایت کښې دی، چه د قباء والو هم د مانځه په مینځ کښې خپل مخ د بیت المقدس نه د بیت الله په طرف واړولو. (ابن کثیر[2] وجصاص[3])

امام جصاصؒ د حدیث د دغه ډیرو روایتونو نقل کولو نه ورستو دا وئیلی دی:

هٰذَا خَبَرٌ صَحِيحٌ مُسْتَفِيضٌ فِي أَيْدِي أَهْلِ الْعِلْمِ قَدْ تَلَقَّوْهُ بِالْقَبُولِ فَصَارَ فِي حَيِّزِ التَّوَاتُرِ الْمُوجِبِ لِلْعِلْمِ [4]

(دا حدیث اګر چه په اصل کښې خبرِ واحد دے. لیکن د قوی قرینو په وجه ئے د تواتر درجه حاصله کړیده چه د هٔ سره یقینی علم حاصلیږی.

لیکن د اَحنافو دا قاعده ده، چه خبر واحد سره یو قطعی حکم منسوخ کیدے نه شی، نو په دوئ باندے دا سوال وارد کیدل روس هم شته، چه د دے شهرت او تَلَقِّی بِالْقَبُول خو ورستو شوی دی. بنو سلمه او اهلِ قباء ته خو، ناساپه یو سړی خبر ورکړے وو، په دغه وخت کښې دغه حدیث ته د شهرت او تواتر درجه حاصله شوے نه وه. نو دوی په دے څرنګے عمل اوکړو. جصاص[5] وائی چه خبره په اصل کښې دا ده چه دے حضراتو او ټولو صحابوته دا، د مخکښې نه معلومه وه چه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم دا مینه ده، چه د ده قبله دِ بیت الله شی. او دوی دَدے دپاره دُعا هم کوله. د دغه رغبت او دُعا په وجه د صحابو کرامو په زړه کښې دا احتمال پیدا شوے وو. چه بیت المقدس ته

(۱) ج ۱، ص: ۳۴ - (۲) ج ۱، ص: ۳۰۱ (۳) احکام القرآن ج ۱، ص ۱۰۰ -

(۴) پورتنئ مرجع او هم دغه مخ - (۵) پورتنئ مرجع او مخ ۱۰۱ -

دغه کولو حکم په آئنده کښې پاتې نه شي. نو په دې احتمال سره د بيت المقدس قبله پاتې کيدل ظني شو، نو د دې د منسوخ کولو د پاره د اخبر واحد کافي شو. کچرې دا سې نه شي نو صرف خبر واحد سره څه قطعي قرآني فيصله منسوخ کيدې نه شي.

## دلوډ سپيکر په آواز باندې رکوع او سجده کول، مونځ نه فاسدوي

په صحيح بخاري کښې، په باب ماجاء في القبلة کښې د حضرت عبد الله بن عمر په حديث کښې، چه په هغه کښې اهل قباء ته د قبلې د بدليدلو د حکم رسيدل، او د دې خلقو په مانځه کښې د بيت الله په طرف راګرځيدل ذکر دي، په دغه حديث باندې علامه عينيؒ دا ليکي:

فِيْهِ جَوَازُ تَعْلِيْمِ مَنْ لَيْسَ فِي الصَّلٰوةِ مَنْ هُوَ فِيْهَا. (عمدة القاري ج: ۴، ص: ۲۴۸)

د په دې حديث کښې دا خبره ده، چه کوم سړې په مانځه کښې شريک نه وي، هغه يو مونځ کوونکي ته تعليم او تلقين کولې شي)

او علامه عيني په يو بل ځائ کښې د دې حديث په لمن کښې ليکي:

وَفِيْهِ اِسْتِمَاعُ الْمُصَلِّيْ بِكَلَامِ مَنْ لَيْسَ فِي الصَّلٰوةِ فَلَا يَضُرُّ صَلٰوتَهُ. هٰكَذَا استنبطه الطحاوي (عمدة القاري ج: ۱ ص: ۲۴۲).

او دا د خبرې دليل دې چه د بهر نه د و خلقو خبرې اوريدل په مانځه کښې مونځ ګذار مونځ ته نقصان نه ورکوي.

او عام فقهاء احناف چه د مانځه نه د بهر يو سړي اقتدا او اتباع کولو ځ د مانځه د پاره فاسدوونکې ګرځولې ده په عام حنفي متونو او شروحو کښې نقل هم ده. د هغه علت دا دې، چه په مانځه کښې د غير الله اتباع کول د مانځه د فساد سبب دې. ليکن کچرې يو سړې د امر الٰهي اتباع اوکړي او په دغه اتباع کښې، يو بل سړې واسطه شي نو دا د فساد د مانځه سبب نه ګرځي.

فقهاؤ چه دا مسئله ليکلې ده، چه کچرې يو سړې د جمع په مانځه کښې شامليدو د پاره هغه وخت راورسي، چه صف بالکل پوره شوې وي. او دده ځائ پکښې پاتې نه وي. نو دده له پکار دي چه د دغه پوره شوي صف نه د يو سړې ځان ته را کاږي او بل صف د جوړ کړي، خو يوازې دِ نه اودريږي. په دې مسئله کښې هم دغه سوال پيدا کيږي، چه دده په وينا کوم سړې روستو کيږي، نو ده په مانځه کښې د غير الله د امر اتباع اونه کړه؟ پکار

دی، چه په دے سره دغه سړی مونځ فاسد شی. لیکن په درمختار[1] کښے په باب الامامت کښے ددے مسئلے متعلق دا سے لیکلی دی :

ثُمَّ نَقَلَ تَصْحِيْحَ عَدَمِ الْفَسَادِ فِيْ مَسْئَلَةِ مَنْ جُذِبَ مِنَ الصَّفِّ، فَتَأَخَّرَ، فَهَلْ ثَمَّ فَرْقٌ فَلْيُحَرَّرْ، په دے علامه طحطاوی لیکلی دی : لِأَنَّهٗ اِمْتَثَلَ اَمْرَ اللّٰهِ (یعنی په دے صورت کښے د مانځه د نه فاسید و وجه دا ده، چه په حقیقت کښے دغه سړی. دراتلونکی سړی تابعداری کړے نه ده - بلکه دامر الٰهی تابعداری کړے ده. چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په ذریعه ده ته را رسیدلے دے - هغه امر دادے چه هرکله دغه رنګے صورت راشی نو ړومبنی صف والا له پکار دی، چه روستو راشی. او هغه یو لئے سړی سره شامل شی.

هم دغه رنګے شرنبلالیؒ په شرح وهبانیه کښے ددے مسئلے ذکر کړے دے. اول ئے هغه قول نقل کړے دے، چه کوم کښے د مانځه د فاسدکید لو ذکر دے - او بیائے ددے رد کړے دے. او د هغه الفاظ دا دی :

اِذَا قِيْلَ لِمُصَلٍّ تَقَدَّمْ فَتَقَدَّمَ (الی) فَسَدَتْ صَلٰوتُهٗ لِاَنَّهٗ اِمْتَثَلَ اَمْرَ غَيْرِ اللّٰهِ فِي الصَّلٰوةِ -

ددے ټولو روایتونو نه، دا ثابته شوه. کچرے یو مونځ کوونکے، د یو دا سے سړی په آواز باندے عمل اُوکړی، چه هغه ده سره، په مانځه کښے شریک نه وی، نو د دے دوه صورتونه دی. یو دا کچرے د دغه سړی زړه ساتل او اتباع وی، نو دا خو د مانځه د فساد سبب کرځی. لیکن کچرے، دَ یو شرعی حکم ښودل وی. او د هغے اتباع مونځ کوونکی کړی وی، نو دا په حقیقت کښے د امر الٰهی تابعداری ده. او ددے سړ مونځ نه فاسدیږی په دے وجه طحطاوی فیصله داکړے ده چه :

اَقُوْلُ لَوْ قِيْلَ بِالتَّفْصِيْلِ بَيْنَ كَوْنِهٖ اِمْتَثَلَ اَمْرَ الشَّارِعِ فَلَا تُفْسِدُ، وَبَيْنَ كَوْنِهٖ اِمْتَثَلَ اَمْرَ الدَّاخِلِ مُرَاعَاةً لِخَاطِرِهٖ مِنْ غَيْرِ نَظَرٍ اِلٰى اَمْرِ الشَّارِعِ فَتُفْسِدُ لَكَانَ حَسَنًا - (طحطاوی علی الدر المختار ج ۲، ص : ۲۴۷)

او س زیر بحث، د لاؤډ سپیکر مسئله کښے فیصله کول آسان شو. ځکه چه د لته کښے د دغه لاؤډ سپیکر د تابعداری کولو خو هیڅ ګمان قدرے نشته. بلکه د رسول کریم صلی الله علیه وسلم

(۱) ج : ۱ ، ص : ۴۳

د دے حکم تابعداری ده . چه کله امام رکوع ته لاړشی . نو تاسو رکوع ته لاړشئ کله چه هغه په سجده پریوځی ، نو تاسو هم په سجده پریوځئ . د لاؤډ سپیکر نه خو صرف دا معلومیږی ، چه اوس امام رکوع ته لاړو . یا سجدے ته ښکته کیږی . او دامام تابعداری یو حکم الهی دے . او دا خبره د لاؤډ سپیکر په باره کښے په هغه وخت کښے ده ، چه د لاؤډ سپیکر آواز هو به هو دامام آواز اُنه گڼړے شی . بلکه د امام د آواز نقل او حکایت اُگڼړے شی . او د دے فن ماهرانو نو ، د لاؤډ سپیکر آواز عین د امام آواز گڼړے دے . نو په دغه تحقیق باندے بیا په لاؤډ سپیکر کښے د مانځه په جواز باندے څه اشکال پاتے نه شو . او مونځ پرکیږی . د دے مسئلے په تحقیق ما ، یو مستقله تفصیلی رساله لیکلے ده . هغه کتل پکار دی .

وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُضِيْعَ اِيْمَانَكُمْ . د لته کړے د ایمان نه معروفه او مشهوره معنیٰ واغستے شی ، نو د آیت مطلب دا دے ، چه د قبلے په بدلیدلو سره چه کوم بیوقوف خلق دا گمان کوی . چه دا خلق یعنی مسلمانان د دین نه کاږه شو . او د دوئ ایمان ضائع شو ، نو د دے خبرے جواب اُوکړے شو ، چه الله پاک ستاسو ایمان ضائع کوُونکے نه دے . د دے وقوفو خلقو په خبره څه غوږ مه کړوئ .

د حدیث په بعضے روایتونو ، او د سلفو په اقوالو کښے د لته ، د ایمان تفسیر په مانځه سره شوے دے . او معنیٰ دا شوه چه کوم مونځونه مخکښے د بیت المقدس په طرف شوی وی ، الله پاک د هغے ضائع کوُونکے نه دے ، هغه درست او منظور شوی دی ، د قبلے په بدلید و سره په هغوئ هیڅ اثر نشته .

په صحیح بخاری کښے د ابن عازب په روایت او په ترمذی کښے د ابن عباس په روایت نقل دی ، چه هر کله د نبی کریم صلی الله علیه وسلم قبله کعبه کړے شوه . نو خلقو دا پوښتنه اوکړه چه کوم مسلمانانو د بیت المقدس په طرف مونځونه کړی دی او مړه دی او د بیت الله په طرف هغوی ته مونځ کول نصیب شوی نه دی . نو د هغوی به څه حال وی ؟ نو په دے خبره دا آیت نازل شو چه په هغے کښے د مونځ نه د ایمان په لفظ تعبیر کړے شوے دے او پکښے دا وضاحت کړے شوے دے ، چه د دغو خلقو ټول مونځونه درست او منظور کړے شوی دی ، په دوی باندے د قبلے د بدلید و هیڅ اثر نشته .

قَدْ نَرٰى تَقَلُّبَ وَجْهِكَ فِي السَّمَآءِ ۚ فَلَنُوَلِّيَنَّكَ قِبْلَةً

بې شکه مونږه وينو، بار بار پورته کيدل ستا د مخ د آسمان په طرف، نو ضرور وا به ړوُمونږ تا د هغې قبلې

تَرْضٰىهَا ۠ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ؕ وَحَيْثُ

په طرف چه ته ئې خوښوې، اوس واړوه مخ خپل د مسجد حرام په طرف، او کوم ځائې کښې چه

مَا كُنْتُمْ فَوَلُّوْا وُجُوْهَكُمْ شَطْرَهٗ ؕ وَاِنَّ الَّذِيْنَ

تاسو يئ، اړوئ مخونه خپل د دهٔ په طرف- او چا ته چه ورکړې

اُوْتُوا الْكِتٰبَ لَيَعْلَمُوْنَ اَنَّهُ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّهِمْ ؕ وَ

شوې دې کتاب (هغوی) ضرور پوهيږي، چه دا درسته ده د دوی د پرورد ګار له طرفه- او

مَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۴۴﴾

الله بې خبره نه دې د هغه کارونو نه چه کوم دوئ کوي-

## لنډ تفسير :

ر ته صلی الله عليه وسلم چه دا خواهش لرے چه کعبه قبله شي- او د وحی په اميد
کښې بار بار آسمان ته کورے نو) ستا د مخ بار بار د آسمان په طرف پورته کيدل، مونږ وينو
(او هرکله چه مونږه ته دا منظوره ده- چه ستا خوشحالي پوره کړو) له دے وجې (مونږه
وعده کوو چه) تا به د هغه قبلې ته واړوو، چه کومه ته خوښوے (واخله بيا مونږه حکم
درته کووچه) د اُس نه خپل مخ په مانځه کښې د مسجد حرام په طرف کوه (او دا حکم يوازې
ستا د پاره نه دے بلکه د ټولو خلقو (پيغمبر د پاره او امتيانو د پاره دے) چرته چه يئ-
(که مدينې کښې يئ يا بل ځائے کښې، تر دے پورے چه که په بيت المقدس کښې هم
يئ) خپل مخونه د هغه (مسجد حرام) په طرف کوئ (او د دے قبلې مقررکيدو متعلق) دا
اهل کتاب هم (عام طور سره د خپلو کتابونو د پيشين ګويانو په وجه چه د نبی آخرالزمان
قبله به د هغه رنګے وی) په يقين سره پوهيږي چه دا حکم بالکل درست دے- (او) د دوی
د پرورد ګار د طرف نه دے (ليکن د عناد د کبله نه مني) او الله تعالیٰ د دوئ د کارونو نه

ته بےخبره نه دے۔

## علوم او مسائل

دد ے آیت په ړومبنیٔ جمله کښے د نبی کریم صلی الله علیه وسلّم کعبے ته په مانځه کښے دمخ کولو د شوق ذکر دے۔ دد ے شوق مختلفے وجے بیان شوی دی. او په دے ټولو وجو کښے، دیو بل سره. څه ټکر هم نشته۔ نو دا ټولے دد ے شوق وجے کیدے شی۔

مثلاً دا، چه نبی کریم صلی الله علیه وسلّم، د پیغمبر کیدلو نه وړاندے، په خپل طبیعت او فطرت سره دَ ملّتِ ابراهیمی تابع وو۔ او د پیغمبر کیدَلو نه ورستو، هم دَ ده شرافت، د ملّتِ ابراهیمی مطابق اوګرځولے شو۔ او د حضرت ابراهیم او حضرت اسمٰعیل علیهما السلام قبله کعبه وه۔ نو په دے وجے د دهٔ د زړه دا آرزو وه، چه د ده او د مسلمانانو قبله دِ دغه کعبة الله مقرر شی۔

دا وجه هم وه، چه د عربو قبیلے هم، په ژبه خو ملّتِ ابراهیمی منلو، او دَ دے د تابعدارئ دعوائے کوله، د مسلمانانو قبله کعبه کیدلو کښے، ددوی اسلام ته د مائل کیدلو اُمید وو۔ او د دے نه مخکښے د بیت المقدس په قبله کیدلو کښے د اهلِ کتابو اسلام ته دَ مائل کیدلو چه کومه توقع وه، هغه د شپاړسو اُوَ لسو میاشتو د عمل نه پس هم قطعه شوه۔ ځکه چه د مدینے یهود، د دے په وجے اسلام ته دَ نِزدے کیدلو په ځائے لا دَ اسلام نه په لرے کرځید و شو۔

بهرحال د نبی کریم صلی الله علیه وسلّم دا د زړه آرزو وه، چه د مسلمانانو قبله دِ بیت الله، کعبه مبارکه مقرر شی۔ او الله تعالیٰ ته د نِزدو پاکو خلقو (پیغمبرانو) دا عادت دے چه د دیٔ خپل خواست او خواهش د الله تعالیٰ په دربار کښے تر هغه وخته پورے نه وړاندے کوی، چه ترڅو پورے دوئ ته د دے درخواست د وړاندے کولو اجازے معلومتیا اُونه شی۔ له دینه دا معلومیږی، چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته د دغے دعا کولو اجازت، د وړاندے نه حاصل شوے وُو۔ او دوئ د دے د پاره دعا کوله او د دے د قبلید و امید ئے کولو۔ او په دے وجے باد بار آسمان ته ئے کاته۔ چه شاید یو فرښته په حکم راوُړی۔ په ذکر شوی آیت کښے د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د دغه حالت په بیان کښے الله تعالیٰ اول د دُعا د قبلولو وعده اُکړه۔ فَلَنُوَلِّيَنَّكَ مونږ به ستاځ د دے په

طرف وا ړوو. چه دا تا ته ډیره غوره ده، او له دینه وُروستو د دغه ځای اړولو حکم ئے هم نازل کړو: فَوَلِّ وَجْهَكَ په دے طریقے کښے یو خاص مزه وه. هغه دا چه اول ورته د وعدے خوشحالی حاصله شی، او بیا دَ وعدے په پوره کولو سره دوچنده خوشحالی اُورسی (دا ټول مضمون د قرطبی[1]، جصاص[2]، او مظهری[3] نه اخستلے شوے دے.

**قبلے ته د مخ کولو مسئله**

دا تحقیق وړاندے کړے شوے دے، چه الله تعالیٰ ته خو ټول طرفونه برابر دی (قُلْ لِّلّٰهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ) لیکن دامت د مصلحتونو د پاره د حکمت د تقاضا په وجه د ټولے د نیا مسلمانانو له د پاره یو اړخ لره قبلے کرځولو کښے دا غرض وو. چه دَ وحدتِ دینی یو عملی مظاهره حاصله شی، د غه یو طرف د ټولو د پاره بیت المقدس هم کیدے شو. لیکن دَ رسول کریم صلی الله علیه وسلم دآرزو مطابق دغه طرف کعبه مقرر کړے شوه. او د دے حکم په دے آیت کښے ورکړے شو. لیکن د کعبے یا د بیت الله په ځائے شطرالمسجدالحرام الفاظ له دے وجے راوړے شو، چه په دا سے کولو سره ډیر اهم مسائل، قبلے ته دَ مخ کولو په باره کښے واضح کړے شی.

اول دا، چه اګرچه اصلِ قبله بیت الله دے. لیکن دا ظاهره خبره ده، چه اصل بیت الله ته مخ کول هغه ځائے کښے کیدے شی. کوم ځائے کښے چه بیت الله ښکاری. او چه کوم خلق لرې دی، او بیت الله دوئ ته نه ښکاری. که چرے په دوی باندے دا پابندی لازمه شی چه عینِ بیت الله ته دِ مخ کوئ، نو په دے باندے عمل کول ګران شی. نو د خلقو د آسانتیا د پاره د بیت الله یا کعبے په ځائے د مسجد حرام لفظ راوړے شو، ځکه چه مسجد حرام د بیت الله په نسبت ډیرے زیاتے ارتے رقبے باندے مشتمل دے. او د ده په طرف خلقو ته، د لرے لرے نه مخ کول آسان دی.

بیا دویمه آسانی، دَ شطر په لفظ راوړلو کښے هم ده. که چرے آسانی کول غرض نه وے نو بیا مختصر لفظ الی المسجد الحرام وو. او دا ځکه چه د شطر دوه معنی دی. یوه معنیٰ نیم، او دویمه معنیٰ طرف. او د مفسرینو په دے خبره اتفاق دے، چه د شطر نه دلته مراد، طرف دے، نو د شطر د لفظ نه دا ښکاره کول غرض دی، چه د لرو وطنو خلقو

(۱) ج: ۲، ص: ۱۵۰ - (۲) احکام القرآن ج ۱، ص: ۹۸ - (۳) ج ۱، ص: ۱۴۳

دپاره داهم ضروري نه ده چه عين مسجد حرام ته دې مخ کړي . بلکه دوئ دپاره دمسجد حرام په طرف مخ کول کافي دي - (بحر محيط)[1]

مثلاً ، مشرقي وطنونه ، لکه هندوستان پاکستان وغيره دپاره دنمر د پريوتو دارخ دمسجد حرام ارخ دے - نو دنمر دپريوتو دارخ ته ، په مخ کولو سره دا خلق ، قبلے ته دمخ کولو فرض پوره کولے شي - او هرکله دګرمئ او دَ يخنئ په موسمونو کښے دَ نمر دَ پريوتلو په طرف کښے فرق راځي - نو په دے وجه فقهاؤ هغه طرف ته د قبلے او دَ نمر دَ پريوتو طرف وَئيلے دے ، چه کوم دَ دواړو موسمونو د نمر دَ پريوتو په مينځ کښے دے او دَ رياضئ دقاعدے په مطابق د دے به دا صورت وي ، چه دَ اوړي د نمر دَ پريوتو ارخ او دَ ژمي دنمر د پريوتو دارخ په مينځ کښے ۴۸ ډګرئ پورے ، د قبلے ارخ کيدے شي . مطلب دا چرے سرے ۲۴ ډګرئ پورے هم ښي يا ګسے غاړے ته کوږ شي - نو له دَه نه دَ قبلے طرف غلطيږي نهٔ - مونځ ئے درست دے . د رياضي قديم کتاب شرح چغمني په څلورم باب کښے د نمر دَ پريوتو دواړو طرفونو ناصله دغه ۴۸ ډګرۍ ښودلې دَه -

**دَ قبلے ارخ معلومولو دپاره شرعًا آلاتِ رصد او دَ رياضئ دَ حسابونو حاجت نشته -**

دَ دے خبرے نه دَ هغو خلقو جهالت هم په ډاګه شو . کوم چه دَ هندوستان او پاکستان په جُماتونو کښے ، دَ قبلے دارخ نه لږ غوندے دوه څلور ډګرئ کوږ والے ليدلے دے - نو فيصله ئے دا کړے دَه - چه په دا سے جماتونو کښے مونځ نه کيږي - دا سر تر پايه جهالت دے او بغير دڅه وجے نه په مسلمانانو کښے انتشار او جدائي راوستل دي -

اسلامي شريعت ، هرکله ، تر قيامته راتلونکو نسلونو دپاره ، او د دنيا دټولو وطنونو دپاره دے - نو په دے وجه شرعي حکمونه د ژوند په هره څانګه کښے دومره آسان مقرر شوي دي - چه د هغے باندے عمل کول ټولو کښے خلق ، د رياضئ باريک حسابونو يا اصطرلاب وغيره نورو اوزارونو ته محتاج نهٔ شي - په مشرقي وطنونو کښے اوسيدونکو دپاره ۴۸ ډګرۍ پورے دَ نمر دَ پريوتو طرف ، قبله مقرر کړے شوے دَه - که په دے کښے دېمخو يا لسو ډګرو فرق راشي ، نو په دے سره په مانځهٔ کښے څه فرق نه راځي - او د نبي کريم صلی الله

[1] ج : ۱ ، ص : ۴۲۹ -

علیه وسلّم د حدیثونو د دے نور وضاحت کیدے شی. نبی کریم صلی الله علیه وسلّم فرمائی، "مَا بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ قِبْلَةٌ" (رواه الترمذی عن ابی هریرة) (د مشرق او د مغرب په مینځ کښے قبله ده) د نبی کریم صلی الله علیه وسلّم دا و ینا مبارکه د مدینے د خلقو د پاره وه. ځکه چه د مدینے د خلقو قبله د مشرق او مغرب په مینځ کښے د سویل په طرف وه. د دے حدیث، گویا د "شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ" د لفظ تشریح کړے ده. چه د مسجد حرام په طرف مخ کول کافی دی.

البته د جماتونو جوړولو په وخت کښے دا کوشش کول پکار دی، چه د جمات مخ څومره چه تیک د بیت الله په طرف کیدے شی، اُو دِ کړی. د صحابو کرامو او د تابعینو او د سلفو صالحینو طریقه د قبلے په معلومولو کښے ډیره ساده وه. هغه دا وه چه کوم ځائے کښے به د صحابو د لاس جوړ جمات وو، نو د خوا و شا جماتونو مخ به ئے د دے جمات سره برابر کوو. په دے وجه په لرو وطنونو کښے، د قبلے د طرف معلومولو صحیح طریقه چه د سلفو نه را غلے ده. هغه دا ده، چه په کومو وطنونو کښے چه کوم پرومبنی جماتونه موجود دی، د هغه جماتونو پیروی دِ او کړے شی. ځکه چه په اکثرو وطنونو کښے صحابو یا تابعینو د جماتونو بنیادونه ایښودی دی. او د قبلے اړخ ئے متعین کړے دے. او بیا په نورو کلو کښے مسلمانانو په خپل خپل ځائے کښے جماتونه هغه جوړ کړی دی، چه اول دوئ د هغه مخکښینو جماتونه کتلی دی چه د صحابو یا د تابعینو د لاس جوړ وی.

په دے وجه دا تول جماتونه د مسلمانانو، د قبلے دا اړخ د معلومولو د پاره کافی دی. په دوئ کښے بغیر د څه وجے نه فلسفیانه شبهے را وُبسکل د شریعت له مخه بنه کار نه دے. بلکه ډیر وارے د دے شبهو دا نتیجه را وُوځی، چه په صحابو او تابعینو او په عامو مسلمانانو بد گمانی کیږی، چه د دوئ قبله او مونځونه درست نه وُو.

دغه وجه ده، چه د اَتے صدئ هجری عالِم ابن رجب حنبلیؒ د قبلے په اړخ معلومولو کښے آلات رصد یه، او د ریاضی باریکو تو پسے تلل منع کړی دی. هغه وائی:

| | |
|---|---|
| وَاَمَّا عِلْمُ التَّسْيِيْرِ فَاِذَا تَعَلَّمَ مِنْهُ مَا يَحْتَاجُ اِلَيْهِ لِلْاِسْتِهْدَاءِ وَمَعْرِفَةِ الْقِبْلَةِ وَالطُّرُقِ كَانَ جَائِزًا عِنْدَ | علم تسییر خو دجمهورو په نزد دومره قدرے حاصلول روا دی، چه په هغے سره لاره پیدا کول، او د قبلے او د لارو شناخت اُو کړے شی. |

الْجُمْهُوْرِ، وَمَا زَادَ عَلَيْهِ فَلَا حَاجَةَ إِلَيْهِ وَهُوَ يُشْغِلُ عَمَّا هُوَ أَهَمُّ مِنْهُ، وَرُبَمَا أَدَّى التَّدْقِيْقُ فِيْهِ إِلَى إِسَاءَةِ الظَّنِّ بِمَحَارِيْبِ الْمُسْلِمِيْنَ فِيْ أَمْصَارِهِمْ، كَمَا وَقَعَ فِيْ ذٰلِكَ كَثِيْرٌ مِّنْ أَهْلِ هٰذَا الْعِلْمِ قَدِيْمًا وَحَدِيْثًا، وَ ذٰلِكَ يُفْضِيْ إِلَى اعْتِقَادِ خَطَأِ الصَّحَابَةِ وَالتَّابِعِيْنَ فِيْ صَلَوَاتِهِمْ فِيْ كَثِيْرٍ مِّنَ الْأَمْصَارِ، وَهُوَ بَاطِلٌ. وَقَدْ أَنْكَرَ الْإِمَامُ أَحْمَدُ الْإِسْتِدْلَالَ بِالْجَدْيِ، وَقَالَ إِنَّمَا وَرَدَ مَا بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ قِبْلَةٌ".

او له دېنه د زیات، هیڅ ضرورت نشته - ځکه چه زیات ازده کول د ضروري کارونو نه مشغولوونکی دی - او کله په فلکي بادیکو کښې پر یوتل په سړي کښې دا بد ګماني پیدا کوي چه په عاموا سلامي وطنونو کښې چه کوم جماتونه جوړ دي دا د قبلې نه کاږه دي - او دغه شان ګمانونه فعلاً د دې فن د خلقو نه صادر شوي هم دي - او په دې فن کښې زیات شغل دا عقیده هم پیدا کوي چه د پروښا دونوکښې د صحابو او تابعینو مونځونه په غلط اړخ شوي دي - او دا سې ګمانونه کول بالکل باطل دي، او امام احمد د قطب دستوري نه - د قبلې اړخ معلومول منع کړي دي - او وئیلي دي چه په حدیث کښې خو صرف دا راغلي دي، چه د مشرق او مغرب په مینځ کښې ټول اړخ قبله دے.

او په کومو ځنګلونو یا نوو آباد و کښې چه وړاندې جماتونه نه وي - هلته شرعي طریقه (چه هغه د صحابو او د تابعینو د عمل نه ثابته ده) دا ده، چه د نمر سپوږمۍ قطب وغیره ذریعو سره د اندازه اُوکړے شي - او د قبلې اړخ دِ متعین کړے شي. کم اړخ غوښتل، مشهور په دے کښې لږ غوندے کوږوالے هم وي - نو دیته ۔نه کوري - ځکه چه دَ بدائع صاحب دَ لرے وطنونو دَ خلقو دپاره په اندازه سره مقرر شوے طرف، د کعبے قائم مقام کرځولے دے[1].

علامه بحرالعلوم په رسائل الارکان کښې دا خبره په دے الفاظو کښې بیان کړے ده:

وَالشَّرْطُ وُقُوْعُ الْمُسَامَتَةِ عَلٰى حَسَبِ مَا يَرَى الْمُصَلِّيْ، وَنَحْنُ غَيْرُ مَأْمُوْرِيْنَ بِالْمُسَامَتَةِ عَلٰى مَا يَحْكُمُ بِهِ الْآلَاتُ الرَّصَدِيَّةُ، وَلِهٰذَا أَفْتَوْا أَنَّ

قبلې ته مخ کولو کښې شرط او ضروري صرف دا دي چه د مونځ ګذار په رائے او اندازه کښې کعبې ته برابر سے شوے وي او مونږ په دے مکلف نه یو، چه کعبے ته هغه قسم سے

(۱) کاساني ج ۱: ص: ۱۱۸ فوټو طبع محمّد سعید کراچي ۱۲

الإنحِرَافَ الْمُفْسِدَ اَنْ يَتَجَاوَزَ الْمَشَارِقَ وَالْمَغَارِبَ ـ (رسائل الارکان، ص: ۵۳)

او کړو۔ کوم چه د الات رصد یه په ذریعه کیدے شی، په دے وجهے د علماؤ فتویٰ داده، چه ما نځه کښے د قبلے نه هغه کږیدل دما نځه دپاره فاسدونکی دی، چه هغه کښه د مشرق او مغرب دمینځ نه تجاوز کړے شوے وی (یعنی د دے دوو طرفو په مینځ کښے چه کوم قبله ده دے نه بیخی بل طرف ته کوږ شوے وی)

د دے مسئلے مکمله تشریح، او د حسابا تو او د ریاضی په مد د سره د قبلے د طرف معلومو شرعی حیثیت ما په رساله سمتِ قبله کښے بیان کړے دے، که د چا زیات تفصیل ته مینه کیږی نو دغه رساله دِ اُوګوری۔

وَلَئِنْ اَتَيْتَ الَّذِينَ اُوتُوا الْكِتٰبَ بِكُلِّ اٰيَةٍ مَّا تَبِعُوْا

کچرے ته دا وړے اهلِ کتابو ته هرقسمه نښے نو هم به دوئ اونه

قِبْلَتَكَ ۚ وَمَا اَنْتَ بِتَابِعٍ قِبْلَتَهُمْ ۚ وَمَا بَعْضُهُمْ بِتَابِعٍ

منی ستا قبله، او مه ته منه ددوئ قبله، او نه، په دوئ کښے یو منی د بل

قِبْلَةَ بَعْضٍ ۗ وَلَئِنِ اتَّبَعْتَ اَهْوَاۗءَهُمْ مِّنْۢ بَعْدِ مَا

قبله، او کچرے ته لاړے ددوئ په خواهش پسے، پس د هغه علم

جَاۗءَكَ مِنَ الْعِلْمِ ۙ اِنَّكَ اِذًا لَّمِنَ الظّٰلِمِيْنَ ۝ ۱۴۵

نه چه تا ته راغلے دے۔ نو بیشکه ته هم شوے ددغه بے انصافو څخه

## لنډ تفسیر:

او (سره له دے، چه دا خلق سره د هرڅه د علم نه دومره ضد ماردی چه) کچرے ته (دے) اهلِ کتابو ته ټول (د دنیا) دلیلونه (جمع کړے) وړاندے کړے هغه وخت هم دوی (کله) ستا قبله به قبوله نه کړی او (ددوئ د موافقت امید، له دے وجهے ۸۰ کوه، چه ستا قبله هم منسوخ کیدلو واله نه ده، په دے وجهے) ته هم ددوی قبله

قبلوله نه شئ (نو د موافقت څه صورت پاتې نه شو) او (څرنګه چه د دې اهلِ کتابو نه تاسره ضد دے په دوی کښې د یو بل سره موافقت هم نشته ځکه چه) د دوی څه (فرقه) هم د بلې (فرقې) قبله، قبلوی نه (مثلاً یهودو بیت المقدس قبله ګرځولے وو. او نصاراؤ د نمر ختوا رخ قبله کړے وو. او (خدائے دِ نه کړی. ته د دوی منسوخه نا روا قبله ځکه قبلولے نشې چه) ګچرے تا د دوی (هغه) نفساني خیالاتو له (چه هغه په اصل کښې آسماني حکم چرته کښې وو. لیکن اوس د منسوخ کیدو په وجهے په هغې باندې عمل کول صرف نفساني تعصب دے) (نو ګچرے تا داسے خیالات قبول کړل) او دا هُم) تا څخه د علم (قطعي یعنې وحی) را تللو نه پس، نو یقیناً ته (نعوذ بالله) په ظالمانو کښې به شمار کړے شې (هغه ظالمان چه د الله تعالیٰ حکم پریږدی، او ستا ظالم کیدل په دے وجهے محال دی، چه ته معصوم یې، نو په دے وجهے دا هم محال شو، چه ته د دوی خیالات چه په هغې کښې د دوئ قبله هم ده، قبول کړے)

## علوم او مسائل

وَمَآ اَنْتَ بِتَابِعٍ قِبْلَتَهُمْ کښې دا اعلان اوکړے شو، چه اُس تر قیامته پورے ستا قبله به بیت الله وی. د دے خبرے دا غرض وو، چه د یهودو او نصاراؤ دا خیالونه ختم کړی، چه دوئ به دا خیال کولو چه د مسلمانانو قبله په ځائے نه اُودریږی. ځکه ښې بیت الله وو. بیا بیت المقدس شو. او بیا بیت الله شو. اوس هم ممکنه ده چه دوباره بیت المقدس قبله مقرر شی (بحر محیط)[1]

وَلَئِنِ اتَّبَعْتَ اَهْوَآءَهُمْ دا خطاب رسول الله صلی الله علیه وسلم ته بطورِ فرضِ محال شوے دے. او د دے د واقع کیدو هیڅ احتمال هم نشته. او اصل کښې اُمتِ محمدّیه ته اَوَرَوَل دی، چه د دے خلاف ورزی داسے څیز دے، چه ګچرے بفرضِ محال پخپله رسول الله صلی الله علیه وسلّم داسے اوکړی. نو هغه به هم په ظالمانو کښې شمیر شی.

---

(۱) ج: ۱، ص: ۴۲۲.

اَلَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يَعْرِفُوْنَهٗ كَمَا يَعْرِفُوْنَ اَبْنَآءَهُمْ
چا ته چه مونږ ورکړے دے کتاب، دغوئ پیژنی دا څرنګے چه پیژنی دوئ بچی ځامن
وَاِنَّ فَرِيْقًا مِّنْهُمْ لَيَكْتُمُوْنَ الْحَقَّ وَهُمْ يَعْلَمُوْنَ ﴿۱۴٦﴾
او بے شکه یو فرقه په دوئ کښے پټوی حق لره او حال دا دے چه دوئ پوهیږی.
اَلْحَقُّ مِنْ رَّبِّكَ فَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْمُمْتَرِيْنَ ﴿۱۴۷﴾
حق هغه دے چه ستا رب نه وائی، بیا ته مه شه د شک کوونکو نه.

## لنډ تفسیر:

له دے نه په وړاندے آیت کښے د دے خبرے ذکر وو چه اهل کتاب په زړه کښے پوهیږی چه د مسلمانانو قبله درسته ده، لیکن په ژبه ئے نه منله. او په دے آیت کښے د دے خبرے ذکر دے، چه دا هل کتابو د قبلے د خاوند، یعنی د رسول کریم صلی الله علیه وسلم په باره کښے هم د غه حال دے، چه زړه کښے حق پیژنی، خو په ژبه ئے نه منی.

کوم خلقو ته چه مونږ ه کتاب (تورات او انجیل) ورکړے دے د غه خلق رسول الله صلی الله علیه وسلم (په تورات او په انجیل کښے راغلی بشارت (زیری) په وجه، په حیثیت د پیغمبر) داسے (بے شکه بے شبهے) پیژنی څرنګے چه بچی ځامن (د دغوی د شکلونه پیژنی (چه د خوئ شکل او وینی، نو کله ورته دا شبه نه کیږی، چه دا څوک دے؟) لیکن پیژندلو سره هم ټول مسلمانان کیږی نه، بلکه بعضو خو ایمان راوړو) او بعضے په دوئ کښے (داسی دی چه دے) واقعی څیز سره د دے چه ښه ئے پیژنی (لیکن) پټوی (حال دا دے) چه دا واقعی څیز د الله د طرف نه (ثابت شوے) دے نو (دا سے واقعی دالله د طرف نه ثابت شوی څیز کښے، هریو سړی ته و ئیلے شی چه) هرګز شک او شبه کوونکو کښے شمیر مه شه.

## علوم او مسائل

په دے آیت کښے د رسول کریم صلی الله علیه وسلم په حیثیت د رسول پیژندګلوله د خپلو ځامنو د پیژندګلو سره تشبیه ورکړے شوے ده - هغه داسے چه دا خلق، څرنګے

خپل ځامن۔ په بنه او مکمله طریقه پیژنی۔ او په دے پیژندګلو کښے دوئ ته څه قسم اشتباه او شک نه راځی، دغه رنګے په تورات او انجیل کښے چه کوم زیرے، او وا ضحے تینبے نبانے د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په یقین سره پیژنی۔ او انکار ځو، صرف د عناد په وجے کوی۔

د لته داخبره هم دغور رکولو وړه ده، چه د پوره او مکمل پیژندګلو د پاره د ځامنو مثال ورکړے شوے دے، د مور او پلار مثال نه دے ورکړے شوے او حال دا دے چه سړے خپل مور او پلار هم بنه پیژنی۔ وجه د دے خبرے دا ده، چه د ځامنو پیژندل د مور او پلار د پیژندلو په نسبت ډیر زیات دی۔ ځکه چه بنیادم خپل ځامن د پیدا کیدلو د وخت نه په خپلو لاسونو پالی۔ د دوئ د بدن دا سے حصه کیدے نه شی چه هغه د مور او پلار د نظر نه غائبه پاتے شوی وی۔ په خلاف د مور او پلار، ځکه چه د هغوئ پټ اندامونه اولاد ته معلوم نه دی۔

لردے بیان نه دا هم په ډاګه شوه، چه دلته کښے د ځامنو د پیژندګلو نه مراد، د ځامنو پیژندګلو په حیثیت د ځامنو کیدلو، نه دے ځکه چه په دے باره کښے په بنیادم (پلار) باندے کله اشتباه کیدے شی۔ چه ممکنه ده موڅه چرته خیانت کړے وی۔ او دا ځوئ د ده خپل نه وی۔ بلکه د دے مراد، د ځامنو شکل او صورت پیژندل دی۔ ځوئ څوک چرے واقع کښے خپل وی یا نه وی، لیکن چه څا په حیثیت د ځوئ یو بنیادم پاللے وی۔ نو بیا ده ته د هغه په شکل او صورت پیژندګلو کښے دغه قسم شک او شبه نه راځی۔

وَلِكُلٍّ وِّجْهَةٌ هُوَ مُوَلِّيهَا فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرَاتِ أَيْنَمَا

او هر چا د پاره یو اړخ دے یعنی قبله، چه مخ کوی دهغے په طرف، نو تاسو وړاندے والے کوئ په نیکو

تَكُونُوا يَأْتِ بِكُمُ اللَّهُ جَمِيعًا إِنَّ اللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ

کښے، چرته چه تاسو یئ، الله تعالیٰ به راولی تاسو یوځائے ته، بے شکه الله هر څیز کولے

قَدِيرٌ (۱۴۸) وَمِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ

شی۔ او د کوم ځائے نه چه ته اووځے، نو مخ کوه خپل، د

رکوع الثاني

الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۖ وَإِنَّهُ لَلْحَقُّ مِن رَّبِّكَ ۗ وَمَا اللَّهُ بِغَافِلٍ

مسجد حرام په طرف، او بې شکه هم دا حق دے ستا د پروردګار له طرفه، او الله تعالی بے

عَمَّا تَعْمَلُونَ ﴿١٤٩﴾ وَمِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ فَوَلِّ وَجْهَكَ

خبره نه دے ستا کاروونو نه، او د کوم ځائے نه چه ته اووځے مخ کوه خپل د

شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۚ وَحَيْثُ مَا كُنتُمْ فَوَلُّوا وُجُوهَكُمْ

مسجد حرام په طرف، او چه کوم ځائے کښے تاسو یئ، مخ کوئ د هغے

شَطْرَهُ لِئَلَّا يَكُونَ لِلنَّاسِ عَلَيْكُمْ حُجَّةٌ إِلَّا الَّذِينَ

په طرف. د دے د پاره چه پاتے نه شی د خلقو د پاره تاسو سره د جګړے کولو موقع. لیکن کوم

ظَلَمُوا مِنْهُمْ فَلَا تَخْشَوْهُمْ وَاخْشَوْنِي وَلِأُتِمَّ نِعْمَتِي

چه په دوئ کښے بے انصافه دی، نو د هغوئ نه یعنی د هغوی د اعتراض نه مه یریږئ او له مانه او یریږئ او

عَلَيْكُمْ وَلَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ ﴿١٥٠﴾

د دے د پاره چه پوره کړم که په تاسو باندے فضل خپل او د دے د پاره چه تاسو نیغه لاره بیا مومئ.

## لنډ تفسیر:

او (دویم حکمت، د قبلے په بدلید وکښے دا دے، چه دا الله پاک دا یو روان عادت دے چه) د هر (مذهب) سړی د پاره جُدا جُدا قبله پاتے شوے ده. چه د هغے په طرف هغه (په عبادت کولو کښے) مخ کوی (هرکله چه شریعت محمدی هم یو مستقل دین دے، نو د ده قبله هم یو خاص طرف ته اوګرځولے شو. نو هرکله چه حکمت هم تولو ته معلوم شو) نو (مسلمانانو! تاسو د اوس دا بحث پریږدئ د خپل دین) په بنه نیکو کار د ونو کښے د مخکښے کید لو کوشش کوئ (ځکه چه یو ورځ، د خپل مالك سره واسطه پریوتونکے ده، نو په دے وجهے) تاسو به چرته یئ (لیکن) الله تعالی به تاسو ټول (خپل اجلاس کښے) حاضر کړی (او په دغه وخت به په نیکیانو باندے جزا او په بدیانو باندے سزا ورکړی او) په یقین سره الله تعالی

په هر کار پوره قدرت لري او (ددے حکمت تقاضا هم دغه ده چه ځرنګه په حضر (یعنی نه سفر) کښے د کعبے په طرف مخ کول دي، نو دغه رنګے ځرے د مدینے نه یا دیو بل ځائے نه) چه د کوم ځائے نه هم (چرته په سفر کښے) ته بهر لاړشے نو (هم) خپل مخ (په مانځه کښے) د مسجد حرام په طرف کوه. (مطلب دا چه د حضر او سفر دواړو حالتونو کښے دا قبله ده، او دا (عام حکم د قبلے) بالکل حق (او درست) دے (او) د الله د طرف نه (دے) او الله تعالیٰ ستاسو د کړو کارونو نه لږ غونډ هم بے خبره نه دے.

## د تحویل قبلے دریم حکمت

او (دوباره بیا وئیلے شي چه) ته د کوم ځائے نه هم (سفر کښے) بهر ته لاړشے (او په حضر کښے په درجۀ اَولیٰ) خپل مخ (په مانځه کښے) د مسجد حرام په طرف کوه او (دغه شانے ټول مسلمانان دِ واؤري چه) تاسو خلق چه چرته (موجود) یئ خپل مخونه (په مانځه کښے) دغه (مسجد حرام په) طرف کوئ (او دا حکم له دے وجے نه مقرر کیږي) چه (دغه مخالف) خلقو ته ستاسو په مقابله کښے (ددے) وینا (مجال) پاتے نه شي (چه ځرے محمّد صلی الله علیه وسلم، هغه نبي موعود آخر الزمان وي، نو دَ هغه په علامتونو کښے دا هم ده، چه د هغه اصلي قبله به کعبه وي، او دے خو بیت المقدس ته مونځ کوي. دا دریم حکمت دے، د قبلے په بدلیدو کښے. هغه) مګر په دوئ کښے چه کوم (بالکل) بے انصافه دي (هغوي اُس هم ځینجي بهوي چه دے ځرنګه نبي دے، چه د دومره نبیانو برخلاف د کعبے په طرف مونځ کوي. لیکن، هر کله چه دا سے بے کاره اعتراضونو سره، حق دین ته هیڅ قسم ضرر نه رسي.) نو د داسے خلقو نه (لږ غوندے) فکر مه کوه (او د دوئ د اعتراضونو د جواب په فکر کښے مه پریوزه) او له مانه ویریږه (چه ځما د حکمونو مخالفت اُو نه کړے شي. چه دغه مخالفت ضرورتا ته ضرر درکوي) او (مونږ ه تاته په دغه حکمونو باندے د عمل کولو توفیق هم ورکړے دے) د دے دپاره چه په تا باندِ (چه) کوم ځما انعام (اکرام متوجه دے (تالره په آخرت کښے په جنت کښے ورداخلولو سره) دا پوره کړم او ددے دپاره چه (دنیا کښے) ته په (حق) لاره باندِ (یعني په اسلام باندِ ټینګ) پاتے شے. (چه په هغے باندے دغه تکمیلِ نعمت مُرتّب کیږي)

---

# علوم او مسائل

په بره ذکر شوي آيتونو کښې د قبلې د بدليدلو د پاره الفاظ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ درې ځله راغلي دي او "حَيْثُمَا كُنْتُمْ فَوَلُّوا وُجُوهَكُمْ شَطْرَهُ" دوه ځله راغلي دي۔

د دې تکرار يو عام وجه دا ده، چه د قبلې د بدليدلو حکم، خو د مخالفو خلقو د پاره د شور او شغب ذريعه وه۔ مسلمانانو د پاره په خپله په عباداتو کښې يو عظيم انقلاب وو۔ بيا دې حکم سره د تاکيد ونو تکرار نه وې کړې شوې، نو د دوئ زړونو ته به سکون او اطمينان په آسانه نه وو حاصل شوې۔ نو په دې وجه دا حکم بار بار اوکړې شو۔ او په دې تکرار کښې دې طرف ته دا هم اشاره اوشوه، چه دا بدلون آخري او قطعي دې۔ او له دې نه پس د نورې تبديلۍ څه امکان قدرې هم نشته۔

د بيان القرآن په لنډيز تفسير کښې چه د تطبيق کوم صورت ليکلې شوې دې، قرطبي هم يو داسې بيان نقل کړې دې، چه د هغې په وجه محض تکرار نه پاتې کيږي۔ نکه چه هغه دا دې: چه اول ځل چه کوم حکم فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَحَيْثُمَا كُنْتُمْ فَوَلُّوا وُجُوهَكُمْ شَطْرَهُ" راغې، نو دا حکم د حضو (نه سفر) د حالت دې۔ يعنې کله چه ته په خپل ځلې کښې ئې۔ نو ته د مسجد حرام په طرف مخ کوه۔ او بيا ټول امت ته دې حکم اوکړې شو۔ او د حَيْثُمَا كُنْتُمْ مفهوم د دې بيان له مخه دا شو، چه په خپل وطن او ښار کښې چه چرته ئې، نو په مانځه کښې بيت الله ته مخ کول لازمي دي، دا حکم يوازې مسجد نبوي پورې خاص نه دې۔

بيا دويم ځل، چه د غه الفاظو سره حکم اوکړې شو، نو د هغې نه وړاندې وَمِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ الفاظو دا واضحه کړه چه دا حکم د وطن د وتلو او د سفر د حالت د پاره دې۔ او هر کله چه د سفر حالات مختلف وي، کله د څو ورځو د پاره په يو ځاې کښې پاتې کيدل راځي، او کله د سفر ختمولو موقع راځي، نو د دې دواړو حالتونو د عام کولو د پاره دريم ځل بيا د دې الفاظو د وَحَيْثُمَا كُنْتُمْ ذيادتولو سره اوښودلې شو، چه د سفر چه کوم يو حالت وي، په هر حالت کښې، په مانځه کښې د مسجد حرام په طرف مخ کول لازمي دي۔ او په دې دريم ځل تکرار سره، د قبلې د بدليدو يو حکمت دا هم اوښودلې شو، چه

مخالفو خلقو ته دا د وينا موقعه په لاس ورنه شي، چه د نبي آخر الزمان قبله خو د تورات او انجيل په ذريعه د ابراهيم عليه السلام کعبة الله ښکاره وه. او دا رسول خو د کعبې په ځائے بيت المقدس ته مخ کوي.

وَلِكُلٍّ وِّجْهَةٌ هُوَ مُوَلِّيْهَا - د وِجْهَةٌ لغوي معنىٰ ده، د يو شي په طرف مخ کول. حضرت ابن عباسؓ وائي چه د دے نه مراد قبله ده. او د حضرت اُبيّ بن کعبؓ په قراءت کښې د وجهةٌ په ځائے قِبْلَةٌ هم نقل دے. د آيت نه مراد، د جمهورو مفسرينو په نزد دا دے چه د هر قوم قبله، چه د هغې په طرف په عبادت کښې دوي مخ کوي، جدا جدا ده. خواه په دے کښې دوي ته د الله پاک د طرف نه حکم شوے وي. يا دوي په خپله يو طرف مقرر کړے وي. بهرحال، دا يو واقعي امر دے، چه د مختلفو قومونو مختلفې قبلې راغلې دي. نو په دا سے حالت کښې، که چرے د نبي اُمّي صلى الله عليه وسلم د پاره هم يوه خاصه قبله مقرر کړے شي. نو په دے کښې، د انکار او تعجب کولو څه خبره ده؟

**په مذهبي او ديني مسئلو کښې د فضول بحثونو نه د ځنګ کولو هدايت**

فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرٰتِ - له دے نه په وړاندې نيمه جمله کښې دا فرمائيلي وو، چه د مختلفو قومونو مختلفې قبلې دي، يو د بل قبلې مني نه، نو په دے وجه، د خپلې قبلې په حق کيدلو کښې د دے خلقو سره بحث کول بے فائدے دي. د دے جملې حاصل دا دے، چه هر کله دا معلومه ده، چه د دے بحث سره د دے خلقو ته څه فائده نه رسي، نو بيا دا بے فائدے بحث پريږده، په خپل اصلي کار کښې اخته شه. او دا کار په ښه کارونو کښې خوارۍ کول او په دے کښې د وړاندې کيدو کوشش کول دي. او هر کله چه په فضول بحثونو کښې وخت برباد وَل، او په ښو کارونو کښې د وړاندې کيدلو نه سستي کول، په عام طور سره د آخرت نه د غافله کيدلو په وجه کيږي. او چا ته چه د خپل آخرت غم وي. هغه هيڅ کله په فضول بحثونو کښې نه اخته کيږي. هغه د خپل منزل په ختمولو کښې مشغول وي. نو په دے وجه په وروستي جمله کښې د آخرت د ياد وَلو د پاره ارشاد اُوکړے شو: اَيْنَ مَا تَكُوْنُوْا يَاْتِ بِكُمُ اللّٰهُ جَمِيْعًا، چه د هغې مطلب دا دے چه بحثونو کښې ګټه بيلات، او د خلقو د اعتراضونو ځه د يخ کيدلو فکر او غم ټول د دنيا د ژوندون د پاره دے. او د يو ذره هغه ورځ را تلونکے ده، چه په هغې کښې به الله تعالىٰ د دنيا ټول قومونه، يو ځائے کښې د حساب اخستلو د پاره راجمع

کړی- نو دعا قل سړی کار خو دا دے، چه خپل ټول وختونه د دغه ورځے په فکر او غم کښے تیر کړی۔

**په عبادتونو او نیکو کارونو کښے بغیر د دغه وجے دوستو والے کول بیه کار نه دے، تلوار کول کښے پکار دی؛**

دَ "فَاسْتَبِقُوا" د لفظ نه دا هم معلومه شوه چه بنیادم له پکار دی، چه دغه نیک کار ه موقعه ورته په کومو ورځو و رشی، نو د دغه کار په کولو کښے د دوستو والے نه کوی، ځکه چه په بعضے وختونو کښے په دغه دوستو والی سړه، د سړی نه د دغه کار کولو توفیق ختم کړے شی، خواه دا کار مونځ وی که روژه وی، حج وی، که خیرات وی او که بل څه نیک کار وی۔ په قرآن کریم کښے دغه مضمون په ډیر بنه وضاحت سره د سورة انفال په دے آیت کښے بیان شوے دے:

يَآ اَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اسْتَجِيْبُوْا لِلّٰهِ وَلِلرَّسُوْلِ اِذَا دَعَاكُمْ لِمَا يُحْيِيْكُمْ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ يَحُوْلُ بَيْنَ الْمَرْءِ وَقَلْبِهٖ۔

اے د ایمان خاوندانو! تاسو د الله او د رسول وینا پوره کوئی، کله چه رسول تاسو له تاسو د ژوند د رکولو څیز طرف ته بلی۔ او پوهه شئ چه الله تعالیٰ آړ کرځی د بنیادم او د بنیادم د زړه ترمینځه۔

**آیا هر یو مونځ په اول وخت کښے کول، بهتر دی؟**

په نیکو کښے د دے ورا ندے کید و نه، بعضے فقهاؤ د دے خبرے د لیل نیولے دے، چه هر یو مونځ په اول وخت کښے کول غوره کار دے۔ او د حدیث روایاتونه د دے خبرے په تائید کښے نقل کړی دی۔ چه په هغوی کښے، په اول وخت کښے د مونځ کولو د غورہ والی ذکر دے۔ او دَ امام شافعیؒ دغه مذهب دے، لیکن امام اعظم او امام مالك رحمهما الله تعالیٰ، د حدیث د نورو روایاتونو په بناء باندے، په دے معامله کښے تفصیل کړے دے، هغه دا سے چه په کومو مونځونو کښے نبی کریم صلّی الله علیه وسلّم د روستو کولو تعلیم په خپل وینا او عمل د وارد و سره کړے دے، نو د دا سے مونځونو غوره وخت دغه دے (یعنی تاخیر کول غوره دی) باقی نور مونځونه په خپل اصل باندے په اول وخت کښے کول غوره دی۔ مثلاً په بخاری کښے د حضرت انسؓ په روایت کښے د ماسخوتن د مانځه روستو کول ذکر دی۔ او حضرت ابی هریرةؓ وئیلی دی، چه نبی کریم صلّی الله علیه وسلّم ته دَ

ماسخښتن مونځ وروستو کول غوره وو. (قرطبی)[1]

هم دغه شانې په بخاری او ترمذی کښې د ابوذرؓ په روایت نقل دی، چه یو سفر کښې حضرت بلالؓ د ماسپخين د مانځه د پاره د آذان کولو اراده اُوکړه، نو نبی کريم صلی الله علیه وسلم له دا سې کولو نه د ے منع کړو. او و ے فرمائيل: چه کله وخت لږ غونډ ے يخ شی. نو دغه وخت کښې آذان اُوکړه. ځکه چه د ګرمئ زيات والے، د دوزخ د اور ځنې د ے. مطلب دا شو چه د ګرمئ په موسم کښې نبی کريم صلی الله علیه وسلم، د ماسپخين مونځ روستو کول غوره ښکاره کړل.

د دغې دوا يتونو په بناء، امام ابوحنيفهؒ او امام مالکؒ وائی: چه دا سې مونځونه په اول وخت کښې د کولو دا شکل د ے، چه هر کله وخت مستحب مونځونو د پاره داخل شی، نو بيا د تاخير نه کوی. (يعنی د لته د اول نه مراد د مستحب وخت اول مراد د ے) او کوم مونځونو کښې چه د تاخير کولو حکم راغلے نه د ے، نو په دغه مونځونو کښې، بالکل اول وخت غوره د ے، لکه د ما ښام شو.

بهرحال، د برنی ذکر شوی آيات نه په اتفاق سره دا معلومه شوه. چه کله د مانځه وخت راشی نو بغير د څه شرعی او طبعی ضرورت نه مونځ کښې روستو والے کول، غوره کار نه د ے. ضرورت شرعی خو هغه د ے چه مخکښې ذکر شو، چه په بعضو مونځونو کښې د روستو والی حکم نبی کريم صلی الله علیه وسلم کړے د ے - او ضرورت طبعی دا د ے چه د بيمارئ يا د نورو حاجتونو په وجه تاخير اوکړے شی.

كَمَآ اَرْسَلْنَا فِيْكُمْ رَسُوْلًا مِّنْكُمْ يَتْلُوْا عَلَيْكُمْ اٰيٰتِنَا

څرنګه چه اوليږلو مونږه په تاسو کښې پيغمبر له تاسو نه چه لولی په تاسو باندې څمونږه آياتونه

وَيُزَكِّيْكُمْ وَيُعَلِّمُكُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ وَيُعَلِّمُكُمْ

او پاکه وی تاسو لره او ښائی تاسو ته کتاب او دغه دانونه او ښائی تاسو ته هغه

مَّا لَمْ تَكُوْنُوْا تَعْلَمُوْنَ ﴿۱۵۱﴾ فَاذْكُرُوْنِيْٓ اَذْكُرْكُمْ

څه تاسو ته ئے علم نشته. نو يادکړئ ما، څه به يادکړم تاسو

[1] ج: ۲، ص: ۱۶۶

ع ۱۸
۲

وَاشْكُرُوْا لِیْ وَلَا تَكْفُرُوْنِ ﴿۱۵۲﴾

او احسان اُومنئ ځما او ناشکري مه کوئ ځما۔

**لنډ تفسير:** (بعض موږ د کعبې قبله مقرر کړه ـ او د حضرت ابراهیم علیه السلام دعا چه د کعبې جوړولو د مقبولیت په حقله وه ـ دا ئې قبوله شوه) ځکه (چه د هغه دوېمه دعا، چه د محمّد صلی الله علیه وسلّم د لیږلو متعلق وه ـ قبوله کړې شوه چه) په تاسو خلقو کښې موږ ده یو (د لوئ شان) پیغمبر اولیږلو (چه هغه) له تاسو نه (د ې او هغه) ځمونږ ده آیاتونه (او حکمونه) لولي تاسو ته ئې اَوَرَوي او (د وَهمونو، جاهلی رسمونو نه) ستاسو صفائي کوي او تاسو ته د کتاب (الٰهي) او د پوهې خبرې ښائي او تاسو ته داسې (د فائدې) خبرې د راز ده کوي او ښائي چه د هغې تاسو ته هډو خبر هم نۀ وُو ـ (او نه د هغې د پاره د ومبنې کتابونه او نه عقل کافي وو ـ او داسې شان، د رسول لیږلو د پاره ابراهیم علیه السلام دعا کړې وه، نو د هغه ظهور اوکړې شو) د هغه (ذکر شوي نعمتونو باندې ما (د نعمت ورکوونکي په حیثیت سره) یاد کړئ، څه به تاسو (په مهربانئ کولو سره) یاد کړم او ځما (د نعمت) شکر اداکړئ او (د نعمت نه په انکار کولو سره یا نابعدارئ پریښودو سره) ځما ناشکري مه کوئ ـ

## علوم اؤمسائل

تردې خوه قبلې بحث را روان وُو ـ او اُس دا بحث ئې په داسې مضمون باندې ختم کړو چه د دې بحث په تمهید کښې، د حضرت ابراهیم علیه السلام په دعا کښې ضمناً راغلی وُو ـ یعنې رسول الله صلی الله علیه وسلّم د ابراهیم په اولاد کښې، په یو خاص شان لیږلو په دې کښې د دې خبرې ته هم اشاره اُوشوه ـ چه د رسول الله صلی الله علیه وسلّم په لیږلو کښې، د کعبې د جوړونکي د دعا هم دخل او لاس وُو ـ نو په دې وجه که چرې د د هغه رسول قبله کعبه جوړه کړې شوه ـ نو په دې کښې دا نکار او تعجب کولو څه خبره نشته ـ

"كَمَا اَرْسَلْنَا" کښې کاف حرف تشبیه، د دې یوه توجیه خو هغه ده چه کومه لنډ بن تفسیر کښې ذکر شوه ـ دوېمه یو توجیه دا هم کیدې شي چه هغه قرطبي[1] کړې ده۔

(۱) ج: ۲، ص: ۱۷۰، ۱۷۱ ـ

چه د دے حرفِ (کاف) تعلق دَ دوستنی آیت: "فَاذْكُرُونِي" سره دے. او معنیٰ ئے دا ده چه څرنګے مونږه په تاسو باندے یو نعمت دَ قبلے کړے دے، بیا دویم نعمت د رسول الله صلی الله علیه وسلم د لیږلو کړے دے. داسے یو نعمت ذِکر الله هم دے. د دے ټولو نعمتونو شکر دا کوی، د دے د پاره چه دا نعمتونه نور هم زیات شی. قرطبی وائی چه د كَمَا أَرْسَلْنَا کاف داسے دے، لکه چه په سورةِ انفال کښے د "كَمَا أَخْرَجَكَ" او د سورةِ حجر په آخر کښے د "كَمَا أَنْزَلْنَا عَلَى الْمُقْتَسِمِينَ" کاف دے.

"فَاذْكُرُونِي أَذْكُرْكُمْ" دَ ذکر اصلی معنیٰ یادَول دی. چه د هغے تعلق د زړه سره دے په ژبے سره ذکر کولو ته هم ذکر له دے وجے وئیلے شی، چه ژبه دَ زړه ترجمانی کوی. له دینه معلومه شوه، چه د ژبے ذکر هله معتبر دے، چه د هغے سره په زړه کښے هم د الله پاک یادول وی.

لیکن دے سره دا هم یاد لرل پکار دی چه کچرے یو سړے په ژبے سره په ذکر تسبیح کښے مشغول وی. لیکن د هغه زړه په ذکر کښے لګیدلے نه وی. نو دا هم د فائدے نه خالی نه دے. حضرت ابوعثمان ته چا د دغے رنګے حالت شکایت اوکړو چه مونږه خو په ژبه باندِ ذکر کوو لیکن په زړو نو کښے د دے هیڅ قسم خوږ والے نه مومو. دوئ ورته اووئیل په دے باندِ هم د الله تعالیٰ شکر کوه. چه هغه ستا یو اندام یعنی ژبه، په خپل طاعت کښے لګیا کړے ده. (قرطبی)[1]

**د الله پاک دَ ذکر فضیلتونه**

ډیر دی، او د دغه یو فضیلت خو څه کم نه دے، چه کوم بنده الله تعالیٰ یاد وی. نو الله پاک هم هغه یادَ وی. ابوعثمان نهدی وائی: چه زه هغه وخت پیژنم کوم وخت چه الله پاک مونږه یادَ وی. خلقو تری نه پوښتنه اوکړه، چه تاته دا څرنګے معلومیدے شی، نو هغه اووئیل، چه دا، دا رنګے، چه د قرآن کریم مطابق، کله چه مؤمن بنده الله تعالیٰ یادَ وی. نو الله تعالیٰ هم هغه یادوی

نو په دے وجے دا پوهیدل ټولو ته آسان دی. چه کوم وخت مونږه د الله پاک په یادولو کښے مشغول یو. نو الله تعالیٰ هم مونږه یادَ وی.

او دَ آیت دا معنیٰ هم کیدے شی، چه تاسو ما لره، څما د احکامو په اطاعت سره یاد کړئ.

(۱) ج: ۲، ص: ۱۷۱ -

نو څه به تاسو په ثواب د رکولو او بښنې سره یاد کړم - حضرت سعید بن جبیر د ذکر الله دغه تفسیر کړے دے. هغه وائی . فَمَنْ لَّمْ يُطِعْهُ لَمْ يَذْكُرْهُ وَاِنْ كَثُرَتْ صَلٰوتُهٗ وَتَسْبِيْحُهٗ. (یعنې چا چه د الله پاک د حکمونو پیروی اُ نکړه ، هغه الله تعالیٰ یاد نه کړو ، اګرچه په ظاهره د ده مونځونه او تسبیحونه ډیر ولے نه وی)

## د الله پاک د ذکر اصلی حقیقت ،

قرطبیؒ[۱] د ابن خویز منداد د احکام القرآن په حواله ، یو حدیث د دے مضمون نقل کړے دے ، چه د هغے ترجمه دا ده ، چه رسول الله صلی الله علیه وسلّم فرمائیلی دی : چه چا د الله پاک اطاعت اُوکړو ، یعنې د هغه د احکامو تابعداری اوکړه ، نو هغه الله پاک یاد کړو . اګرچه د هغه (نفلی) مونځ او روژه وغیره کم وی . او چا چه د الله پاک د حکمونو تابعداری اُونه کړه ، نو هغه الله پاک هیر کړو . اګرچه په (ظاهره) د هغه مونځونه روژے تسبیحونه وغیره زیات وی .

حضرت ذوالنون مصریؒ فرمائیلی دی چه کوم سړے په حقیقی طریقے سره الله پاک یادَ وی ، نو هغه د الله پاک په مقابله کښے ټولو شیزونو له هیرَ وی . او د دے په بدلے کښے الله تعالیٰ پخپله د ده د پاره د ټولو شیزونو حفاظت کوی . او د ټولو شیزونو عوض ده ته ورکوی .[۲]

او حضرت معاذؓ فرمائی : چه د بنیادم یو عمل هم هغه د خدائے د عذاب نه خلاصولے نه شی څرنګے چه د خدائے یاد خلاصے ورکوی .[۳] او په یو حدیث قدسی کښے د حضرت ابوهریرهؓ نه نقل وی چه الله تعالیٰ فرمائی چه څه د خپل بنده سره تر هغه وخته یم ، ترڅو چه هغه ما یادَ وی . او څما په ذکر کښے د هغه شونډے خوځی .[۴] د ذکر الله فضائل بے شمیره دی . د دے لنډ خُلاصه ما پخپله رساله "ذکر الله" کښے کړے ده .

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اسْتَعِيْنُوْا بِالصَّبْرِ وَالصَّلٰوةِ ؕ

اے مسلمانانو ! مدد حاصلوئی په صبر او په مانځه سره

اِنَّ اللّٰهَ مَعَ الصّٰبِرِيْنَ ﴿۱۵۳﴾

بیشک الله صبر کوونکو سره دے

(۱) د دو مبنی مرجع هم دغه ځے . (۲) د دو مبنی مرجع ص : ۱۷۳ . (۳) قرطبی ج ۲ ، ص : ۱۷۲ . (۴) د دو مبنی مرجع او هم دغه ځے .

**تړون:** د قبلې په بدلیدلو باندې، د مخالفینو دا ارخ نه چه کوم اعتراض وُو، د هغې درې اثرونه وو. یو په مذهب اسلام باندې ! چه اعتراض کولو نه د مذهب اسلام په حق والی کښې شبهه پیدا کول وُو. په وړاندې تیرو آیاتونو کښې د دې اعتراض نه جواب ادا کړے شو او هم د غه شان د دې اعتراض اثر د مذهب اسلام نه دفع کړے شو. دویم اثر د اهل اسلام په طبیعتونو باندې وُو. هغه دا سے چه اعتراض کولو سره او بیا خصوصاً د جواب د کولو نه پس هم، په دې باندې د بےځایه اصرار کولو په وجه په زړه کښې غم او صدمه پیدا کیږی. نو په دې آیت کښې د دې دویم اثر د لرے کولو د پاره، دا طریقه اوښودلے شوه، چه صبر کوئ او مونځ کوئ.

**لنډ تفسیر:**

اے د ایمان خاوندانو ! (د خپل طبیعتونو نه د غم سپکولو د پاره) د صبر او د مونځ نه مدد حاصل کړئ بے شکه الله تعالیٰ (هرځنګه) صبر کوونکو سره وی (نو د مونځ کوونکو سره خو لا زیات وی. وجه دا ده چه مونځ د ټولو نه لوئ عبادت دے. نو هرکله چه په صبر کولو کښې دا وعده ده، نو مونځ چه هغه د صبر نه لوئ دے، نو په دې کښې خو په دا وعده او زیرے په درجه اَولیٰ وی.

## علوم او مَسائل

**صبر او مونځ د هر مشکل حل او د هر تکلیف علاج دے.**

اِسْتَعِيْنُوْا بِالصَّبْرِ وَالصَّلٰوةِ ! په دے آیت کښې دا هدایت دے، چه د بنیادم د ټولو حاجتونو د پوره کولو، او د ټولو آفتونو او د تکلیفونو د لرے کولو نسخه د دوه اجزاؤ نه جوړه ده. یو صبر، بل مونځ. د دے نسخے د عام کیدلو په حقله، چه دے سره ټول حاجتونه پوره کیږی او ټول غمونه ختمیږی، قرآن کریم دا سے اشاره کړے ده. چه " اِسْتَعِيْنُوْا " ئے عام پریښودے دے. د غه خاص څیز ذکر ئے نه دے کړے چه په فلانی کار کښې د دے دوه څیزونو نه مدد اخلئ. نو له دے نه معلومه شوه چه دا دوه څیزونه دا سے دی، چه په دوی سره د بنیادم په هر ضرورت او حاجت کښې مدد حاصلیدلے شی. په تفسیر مظهری[1] کښې دا عام والے واضح

[1] ج ۱ ص : ۱۵۱.

کړے شوے دے. اوس دد ے نسخے په دے دوو اجزاؤ باندې ځان پوهه کړئ:

**دصبر اصل حقیقت**

د صبر اصلی معنیٰ ده - خپل نفس منع کول او په نفس باندې قابو مُوندل - په قرآن او سنت کښے، د صبر درے ځائکے دی: یو خپل نفس د حرامو او ناروا وُخیزونو نه بندَول - دوئیم نفس د عبادتونو او د الله تعالیٰ د فرمانبردارے پابندَول - دریم په مصیبتونو او آفتونو باندې صبر کول - یعنې چه کوم مصیبت راشی هغه د الله پاک له طرف نه ګڼل - او د هغے د بدلے اُمید لرل - او د دے سره ځکړے دَ تکلیف او دَ پریشانئ د ځرګند ولو د پاره څه الفاظ دخولے نه اُوځی، نو دا، د صبر سره منافی نه دی (دا خبره ابن کثیر[2] د سعید بن جبیر نه ذکر کړے ده -)

دا درے واړه ځائکے دصبر په فرضونو کښے داخلے دی - په هر یو مسلمان باندې دا پابندی ده، چه درے واړه صبرونه دِکوی - دعامو خلقو په نزد صبر صرف دریم ځائکے ته وائی او اولنئ او دوئیم شعبه، چه دا د صبر اصل او بُنیاد دے، په صبر کښے داخل نه ګڼړی -

د قرآن او حدیث په اصطلاح کښے، صابرین د هغو لقب دے، چه هغوی دَ صبر په درے واړو ځانکو باندې کلک ولاړ وی - په بعضو روایاتو کښے دی - چه د قیامت په ورځ به آواز اوکړے شی چه صابرین چرته کښے دی؟ نو هغه خلق به پاسی چاچه د صبر په درے واړو ځانکو باندې کلک خپله زندګی تیره کړی دی، او دوئ ته به بغیر د حساب نه جنت ته دَ داخلید و اجازت وکړے شی - ابن کثیر[2] د دے روایت د نقل کولو نه پس وئیلی دی چه: د قرآن د دے آیت: اِنَّمَا يُوَفَّى الصَّابِرُوْنَ اَجْرَهُمْ بِغَيْرِ حِسَابٍ[3]، کښے د دغے خبرے ته اشاره ده -

د دے نسخے دوئیم جزء، مونځ دے چه هغه د بنیادم د ټولو ضرورتونو پوره کولو د پاره او ټولو پریشانو او تکلیفونو دَ لرے کولو د پاره اکسیر دے - د صبر چه کوم بیان اوس اوس او لیکلے شو، د هغے نه دا معلومه شوے ده، چه په حقیقت کښے مونځ او ټول عبادتونه دَ صبر جزئیات دی، لیکن د مونځ جدا ذکر، په دے وجے اُوکړے شو، چه په ټولو عبادتونو کښے، مونځ یو داسے عبادت دے چه د صبر مکمله نمونه ده - ځکه چه د مانځه په حالت کښے، نفس په عبادت او طاعت باندې بند وُلے شی او د وسره، د ټولو ګناهونو

(۱) ج: ۱، ص: ۲۴۶ - (۲) په دمبنئ مرجع هم دغه ځے - (۳) الزمر: ۱۰ -

او مکروهو کارونو نه، بلکه د ډېرو مباحو کارونو نه هم منع کولے شي. نو له دې وجه نه د صبر (چه د هغې معنی ده نفس په قابو کښې کول. او د ټولو طاعتونو فرمان بردارۍ جوړول، او د ګناهونو نه بېزاره کول) مونځ یو عملي مثال دے.

له دې نه زیاتي، د مونځ د پاره د بنیادم د ټولو حاجتونو په پوره کولو کښې او د ټولو مصیبتونو نه په خلاصولو کښې یو خاص اثر هم دے، اګرچه د دے وجه او سبب معلوم هم نه وي. لکه چه بعضے دارُو مؤثر بالخاصه منلے شي. یعني د ګرمۍ او یخنۍ د کیفیاتو په حساب سره لکه چه د یو خاص مرض د لرې کولو د پاره بعضے دارُوګان مؤثر بالخاصه وي. لکه د پښتورګي د درد د پاره د فرنګي دانے په لاس یا په خوله ایښودل، او د ډېرو مرضونو د پاره عودِ صلیب وغیره په غاړه کښې اچول، مؤثر بالخاصه دي. سبب ئے معلوم نه دے. د اُسپنې را ښکل د مقناطیس اثر بالخاصه دے. څه سبب ئے معلوم نه دے. د غه رنګے مونځ د بنیادم د ټولو حاجتونو پوره کولو کښې او د تکلیفونو نه په خلاصولو کښې اثر بالخاصه لري. لیکن شرط په کښې یو دا دے چه مونځ په پوره آدابو او خشوع او خضوع سره ادا کړے شي. څو نږه مونځونه چه اثر نه لري، د هغې وجه بس څو نږه قصور دے. چه د مانځه په آدابو او خشوع خضوع کښې کوتاهي کوو، ګنې دا سے نه وي، نو د رسول الله صلی الله علیه وسلم خو دا عادت مبارک وُو. چه کله به څه مُهم ورته پېښ شو، نو مانځه ته به ئے رجوع کوله. او د مانځه په برکت به ئے الله تعالیٰ دا مهم پوره کولو. په حدیث کښې دي؛

اِذَا حَزَبَهٗ اَمْرٌ فَزِعَ اِلَى الصَّلٰوةِ" (رسول الله صلی الله علیه وسلم ته چه به کله څه ضرورت او حاجت پېښ شو، نو مانځه ته به ئے رجوع کوله.)

**صبر او مونځ د ټولو مشکلاتو او تکلیفونو د نجات سبب په دے وجه دے، چه په صبر سره د الله تعالیٰ ملګرتیا حاصلیږي**

اِنَّ اللّٰهَ مَعَ الصّٰبِرِيْنَ. په دې جمله کښې دا راز ښودلے شوے دے، چه صبر د مشکلاتو د حَلْ او د مصیبتونو د لرې کولو سبب څرنګے ګرځي. د ارشاد حاصل دا دے چه د صبر په نتیجه کښې، بنیادم ته د الله تعالیٰ ملګرتیا حاصلیږي. او دا ظاهره خبره ده، چه چا ته د الله تعالیٰ ملګرتیا حاصله شي. نو د هغه کوم یو کار بند پاتے شي. او کوم یو

مصیبت نعغه عاجز کولے شی ؟

وَلَا تَقُوْلُوْا لِمَنْ یُّقْتَلُ فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ اَمْوَاتٌ ؕ

او مه وایه هغوی ته چه مړه شی د الله پاک په لاره کښے چه دوی مړه دی،

بَلْ اَحْیَآءٌ وَّ لٰكِنْ لَّا تَشْعُرُوْنَ ﴿۱۵۴﴾ وَ لَنَبْلُوَنَّكُمْ بِشَیْءٍ

بلکه دوی ژوندی دی لیکن تاسو ته پته نشته ـ او خامخا مونږ به از میښت کوو به

مِّنَ الْخَوْفِ وَ الْجُوْعِ وَ نَقْصٍ مِّنَ الْاَمْوَالِ وَ الْاَنْفُسِ

تاسو باندې په لږ شه ویرے او لوږے او نقصانونو سره ـ د مالونو، او د ځانونو

وَ الثَّمَرٰتِ ؕ وَ بَشِّرِ الصّٰبِرِیْنَ ﴿۱۵۵﴾ الَّذِیْنَ اِذَآ اَصَابَتْهُمْ

او د میوو ـ او زیرے ورکړه صبر کوونکو ته ـ چه کله او رسیږی دوی ته

مُّصِیْبَةٌ ۙ قَالُوْآ اِنَّا لِلّٰهِ وَ اِنَّآ اِلَیْهِ رٰجِعُوْنَ ﴿۱۵۶﴾ اُولٰٓئِكَ

مصیبت ، نو وائی مونږه د الله مال یُو او مونږ د هغه په طرف واپس کیدونکی یُو ـ دا هغه خلقو

عَلَیْهِمْ صَلَوٰتٌ مِّنْ رَّبِّهِمْ وَ رَحْمَةٌ ۫ وَ اُولٰٓئِكَ هُمُ

باندې مهربانئ دی د هغوی د پروردګار ـ او دغه خلق دی په

الْمُهْتَدُوْنَ ﴿۱۵۷﴾

نیغه لار ـ

**تړون :** په دې اندینو آیت کښے، په یو خاص ناګواره واقعه باندې د صبر کولو تعلیم او د صبر کوونکو، فضیلت بیان کړے شوے وو او س په دے آیا تونو کښے، د بعضے نورو، خلاف طبع واقعاتو د تفصیل ، او په دے باندې د صبر کولو د ترغیب او د فضیلت بیان دے. او په دغے واقعاتو کښے د کافرو سره د جنګ جګړے مضمون ئے په دوو وجو و راندے کړو ـ اول دا چه دا لوئے دے ـ او په لوئی ځیز باندې صبر کوونکے خو په طریق اولی په وړوکی

باندې صبر کوی. دوئم له دې وجې نه چه د مقام د مناسبت په وجه، ځکه چه مذکوره معترضینو ته دا معامله پېښه شوې وه.

## لنډ تفسیر:

او کوم خلق چه د الله په لاره کښې (یعني د دین د پاره) قتل کړے شي د دوی (دا سې فضیلت دے چه دوی) په باره کښې داسې مه وایئ چه دوی (د معمولي مړو په شان) مړه دي بلکه دا خلق (په یو جداګانه ژوند سره) ژوندي دي لیکن تاسو (په خپلو موجودو حواسو سره د دې ژوند) معلومول نه شئ کولے او (اوګورئ) چه مونږ به (د رضا او رغاړې ایښودو صفت، چه هغه د ایمان تقاضا وه) ستاسو امتحان وا خلو څه قدرے ویرې سره (چه هغه د مخالفینو په حملے سره او یا د حادثاتو او تکلیفونو په راتلو سره راځي) او (قدرے فقر) او لوږې سره او (څه قدرے) د مال، جان او د میوو په کمی سره (مثلاً غاروي مړه شي، یا یو بنیادم مړ شي، یا ناجوړه شي یا میوه او د زمکے پیدا وار خراب شي نو تاسو صبر کوئ) او (چه کوم خلق په دې امتحانونو کښې پوره او خیږي او مستقل پاتے شي نو) ته داسې صبر کوونکو ته زیرے واوروه (چه د چا دا عادت وی) چه په دوی باندې کله څه مصیبت راشي نو دوی (په عقیده او یقین سره داسې) وائي چه مونږ خو (سره د مال او عیال نه په اصل کښې) د الله تعالیٰ ملکیت یو (او حقیقي مالک له، په خپل ملک کښې د هر قسمه تصرف کولو اختیار حاصل دے، په دې سره، د مملوک د تنګولو څه معنیٰ او مطلب نشته) او مونږ ټول (له دنیا نه) الله تعالیٰ ته تلونکي یو (نو د دے ځائے د نقصانونو بدله به راکړے شي، چه هلته ورشو. او د زیری هغه مضمون کوم چه دوی ته اوورولے شي، هغه دا دے چه) په دې خلقو باندې (جدا جدا) خاص خاص رحمتونه هم د خپل پروردګار له طرفه به وی او (په ټولو باندې په شریکه سره) عام رحمت به هم وی او دا هغه خلق دي چه دوی (حقیقتِ حال ته) رسیدلی دي (چه الله پاک د هر څیز مالک ګڼړی او د نقصان عوض ورکوونکے ګڼړی ئے)

## علوم او مسائل

**د شهیدانو، او د انبیا نو د برزخ ژوند، او په دې کښې درجې،** دا خو ټولو ته معلومه ده چه د اسلام د روایاتو له مخه هر مړ کیدونکی ته په برزخ کښې یو خاص قسم

ژوند حاصل وي. چه هغې سره هغه دَ قبر عذاب یا د ثواب احساس کولے شي. په دے ژوند کښے د مؤمن او د کافر صالح او د فاسق څه فرق نشته. لیکن د دغه برزخي ژوند مختلف درجے دي. یو درجه کښے خو ټول برابر دي. او څه درجے دَ نبیانو او صالحانو دپاره خاصے دي. او دوئ هم یو تربله په دے ژوند کښے درجے لري. د دے مسئلے په تحقیق د علماؤ بے شماره مقالے او رسالے شته دے. لیکن په دوئ کښے چه کوم خبره کتاب الله او سنت رسول نه نزدے ده. او د شبهو نه پاکه ده. هغه حضرت حکیم الامة تهانوی" په بیان القرآن[1] کښے واضحه کړے ده. ولته کښے د دے نقل کول بنه ګڼړم.

ف: دا سے قتل کړی شوی نه چه د الله تعالیٰ په لاره کښے قتل شي شهید ویلے شي. او دده په حقله داسے ویل، چه دے مړشو صحیح او روا دي. لیکن دده مرګ د نورو مړو په شانے ګڼړل منع کړے شوی دي. د دے وجه دا ده چه د مرګ نه پس اګرچه برزخي ژوند هرچا ته حاصل دے. او د دے په وجه د جزا او دَ سزا علم لري. لیکن شهید ته په دے ژوند کښے د نورو مړو نه یو قسمه فرق حاصل دے. او هغه دا دے چه د دے ژوند نښے نښانے او اثرونه په ده کښے د نورو مړو نه قوي دي. لکه چه د ځینو ګوتو سرونو او پوند و دواړو کښے اګرچه ژوند شته. او دَ ژوند نښے په دواړو کښے هم شته، لیکن د ګوتو په سرونو کښے د ژوند آثار لکه احساس وغیره، دَ پوندو په مقابله کښے زیات وي. دغه رنګے په شهیدانو کښے، د ژوند آثار د عامو مړو نه زیات وي. تر دے چه د شهید د ژوند د قوت یو اثر، د معمولي مړو خلاف، دده ظاهري جثه ته هم رسیدلے دے. هغه دا، چه دده جثه باندے سره د دے نه چه دا دَ غوښے او دَ پوستکي مجموعه ده. خاوره اثر نه کوي او دَ ژوندي جسم په شانے صحیح سالم وي. لکه چه په دے باندے احادیث او مشاهدے ګواه دي. نو دَ دے امتیاز په وجه شهیدانو ته ژوندي ویلے شو. او دَ دوئ په باره کښے دا اُو ویلے شو، چه دوئ ته، د نورو مړو په شانے مړه مه وایئ لیکن په ظاهري حکمونو کښے دوئ د عامو مړو په شانے دي. دَ دوئ میراث تقسیمیږي. د دوئ بیبیانے د نورو خلقو سره نکاح کولے شي. او دغه برزخي ژوند دے چه په هغې کښے نبیان د شهیدانو نه هم زیات امتیاز او قوت لري. تر دے پورے چه د جسم سالم پاتے

(۱) ج: ۱، ص: ۸۷ چاپ مکتبة الحسن - لاهور.

کیدلو نه علاوه د دغې ژوند ... څه اثرات په ظاهري حکمونو باندې نه غورځیږي.
مثلاً دَدوی میراث نه تقسیمیږي، دَدوی بیبیانوسره دنورو نکاح نه کیږي.

نو په دې ژوند کښې د نورو نه زیات قوي پیغمبران او بیا شهیدان دي - او عام مړو کښې خو دا ژوند شته، لیکن دشهیدانو په شان نه. البته دَ بعضې احادیثو نه معلومیږي چه بعضې اولیاء او صُلحاء هم په دغه فضیلت کښې دشهیدانو سره شریک دي، نو دَ دې احادیثو مطلب دا دے، چه د نفس سره په مجاهده کښې مړ کیدونکی ته په معنیٰ کښې دَ شهادت درجه حاصله ده - یا خو دا سے اُو وئیلے شی چه په آیت کښې دشهداء تخصیص دعام خلقو په اعتبار سره کړے شوے دے - دشهداؤ سره دیوے مرتبے دنورو خلقو صالحینو او صدیقینو په اعتبار سره نه دے کړے شوے -

او که چا ... دیو شهید جُثه بناورے شوے موندلی وي، نو هغه دِ او گڼړي چه ممکنه ده چه دَده نیت به خالص نه وُو. او د شهادت مدار په نیت باندِ دے - صرف قتل کیدل شهادت نه دے - او کچرے فرضاً داسے یو شهید بیا موندے شی چه دهغه جُثه بناوَرو خوړلی وي - او په لاره دخدائے کښې د ده قتل د شهادت د ټولو شرطونو سره پوره هم وي - نو د دے په وجه کښې دا وئیلے شی - چه په حدیث کښې دکوم څیز تصریح ده، هغه دا ده چه دنبیانو او دشهیدانو جسم زمکه نه خوري - یعنی بناوَره دَدوی جسم خرابَولے نه شی - دا اجزاء ارضیه دخاوَرے وغیره نه علاوه څه بل څیز سره ددوی دجسم متأثر کیدل او فنا کیدل بیا هم ممکن دي - ځکه چه په زمکه کښې الله تعالیٰ نور ډیر قسمونه دډهاتونو او دهاتونو داجزاؤ ایښودلی دي. نو کچرے دغه څیزونو دَیو شهید جسم متأثر شی، نو دا دے آیت سره ټکره نه خوري -

لکه چه دنورو مرکبو اجسامو، مثلاً دوسلے، دَ دارو ګانو، دخوراکونو، د اُبو، اور او دَ باد دوا ثر دنبیانو په جسم باندِ هم ثابت دے - او د شهیدانو ته وند د مرګ نه ورستو دنبیانو دَژوند ( مخکښے د مرګ ) نه ډیر قوي خو نه دے - د زمکے په بعضے حصو کښې بعضے غیر اجزاء ارضي هم شامل وي - لکه چه څرنګے په نورو عناصرو کښې هم نور مختلف عناصر شامل وي - نو کچرے د دغے غیر اجزاء ارضیه په وجے دَدوی اجسام متأثر شی، نو له دینه په هغه احادیثو باندِ څه قسمه اشکال نه راځي - چه هغے

کښے حُرمت دا جساد الانبیاء عَلَی اَلْاَرْضِ راغلے دے (یعنی په زمکه بانډِ دا حرام کړے شوی دی۔ چه دَ نبیانو جُثے اُوخوری)

او یو جواب دا دے، چه د شهیدانو دجُثو دا متیاز دپاره دا کافی ده۔ چه دَ نورو مړو په مقابله کښے، تر ډیرمودے پورے، دَ دوی جُثے د بناؤ روڼه، نه متأ ثرے کیږی اګرچه څه وخت ورستو بیا متأ ثرے شی۔ او دَ احادیثو نه دا خبره غرض ده۔ چه د دوی دجثو محفوظ پاتے کیدل دعادت نه بهرخبره ده۔ او دعادت بهرکیدَلو دپاره دوه صورتونه دی، یو صُورت دهمیش دپاره محفوظ پاتے کیدل او دویم اُوږد محفوظتیا، او هرکله چه عالمِ برزخ په حواسو سره نه معلومیږی، نوله دے وجے نه ئے "لَا تَشْعُرُوْنَ" اُوویل چه تاسو د دے حیات حقیقت نه شئ معلُومَولے۔

**په مصیبتونو بانډِ صبرکول دَ دے دَ آسانولو یو خاص تدبیر دے**

ف: دَ الله پاک له طرفه، په بندیانو چه کوم امتحان کیږی، دَ هغے حقیقتُ وَاِذِ ابْتَلٰی اِبْرٰهِیْمَ رَبُّهٗ په تفسیر کښے تیرشوے دے۔ او دَ حوادثو درا تلو نه وړاندے د دوی دخبر ورکولو فائده دا شوه، چه صبرکول آسانیږی۔ ولے چه ناڅاپه مصیبت کښے سړے ډیرپریشانه کیږی دا نه شی، نو په ناساپه صد مے سره زیاته پریشانی راځی۔ او دا خطاب ټول اُمت ته دے، نو ټولو له یو هبدل پکار دی چه دُنیا د تکلیفونو ځائے دے۔ او په دے وجے د دے ځائے حوادثُ عجیب او غریب اوګنړلے شی چه بے صبری را نه شی۔ او هرکله چه دا خلق صرف دصبر په عمل کښے ټول مشترک دی، نو په دے وجے د دے بدله مشترکه، عام رحمت دے، چه دَ هغے وعدهٔ صرف په صبر بانډے کړے شوے ده۔ او هرکله چه د هرصبرکوُونکی د صبر مقدار او شان جُدا جُدا دے. نو د هغے جدا والی بدله به په جُدا جُدا مهربانو سره وی۔ لکه په دُنیا کښے دَ انعامونو ورکولو په موقعه کښے دخوراک دعوت خو عام وی۔ لیکن روپئ او جوړے هر یو ته دحیثیت او دَ خدمت په قدر ورکولے شی۔

**په مصیبت کښے اِنَّا لِلّٰہِ په پوهه سره لوستل، د تسکین قلب هم بهترین علاج دے۔**

دصبرکوونکو متعلق چه دا ئے فرمایلی دی چه دوی د مصیبت په وخت کښے اِنَّا لِلّٰہِ وَ اِنَّآ اِلَیْہِ رٰجِعُوْنَ وائی۔ له دینه مقصد دا تعلیم ورکول دی، چه په تکلیف او مصیبت کښے ګیرخلقو له دا سے ویل پکار دی، ځکه چه

په داسې ویلو کښې ثواب هم لوئ دے. او کېږي د زړه د پوهې نه د الفاظ او ویلې
شی، نو دغم د لرې کولو د پاره، او د زړه د تسلئ د رکولو د پاره دا کسیر ا ثر هم لری.

إِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَآئِرِ اللّٰهِ ۚ فَمَنْ حَجَّ الْبَيْتَ

بے شک صفا او مروه د نښو څخه دی دالله پاک. نو چا چه حج اوکړو د بیت الله

أَوِ اعْتَمَرَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ أَنْ يَطَّوَّفَ بِهِمَا ۚ وَمَنْ

یائے عمره اوکړه نو څه گناه نشته په ده چه طواف اُوکړی په دے دواړو کښے. او څوک

تَطَوَّعَ خَيْرًا ۙ فَإِنَّ اللّٰهَ شَاكِرٌ عَلِيْمٌ ﴿۱۵۸﴾

چه د خپلے مرضئ نه اوکړی څه نیکی، نو الله پاک قدردان دے هرڅه باندے علم لرونکے دے.

تړون: په تیرو آیتونو کښے "وَإِذِ ابْتَلٰى إِبْرٰهِيمَ" نه واخله تر لرے پورے،
دخانه کعبے مفصل ذکر شوے دے، چه د هغې په اول کښے، دخانه کعبے دځائے دعبادت کیدلو
بیان دی او ورپسے د ابراهیم علیه السلام ددعا تصدق وه، چه هغوی دا درخواست
کړے وو. چه مونږ ته دمناسک حج (اعمال حج) احکام اُبنائے. او په مناسکو د حج کښے حج
او عمره هم داخله ده. نو د بیت الله ځائے دعبادت کیدل څرنګه چه دے نه ظاهر کړے
شو، چه دا د مانځه د پاره قبله جوړه کړے شوه. نو دغه رنګے په حج او عمره کښے بیت الله
مقصد جوړ کړے شو او د بیت الله اهمیت ظاهر کړے شو.

اُس په دے آیت کښے دیو داسے مضمون بیان دے، چه د هغې تعلق دے خبرے سره
دے، چه د حج او عمرے نه مقصد بیت الله دے. (یعنی د بیت الله زیارت کول دی).
او دا مضمون دا دے چه صفا او مروه په مکه کښے دوه غونډئ دی. په حج او عمره کښے
د کعبے د طواف کولو نه پس، خلق د دوئی په مینځ کښے منډے وهی. او دے منډو ته سعی
ویلے شی. او هرکله چه دا سعی په جاهلیت په زمانه هم کیدے شوه. او په دغې زمانے
کښے په صفا او مروه کښے څه بتان هم ایښودے شوی وو. نو په دے وجه د بعضے مسلمانانو
دا شبه په زړه کښے پیدا شوه، چه دا (یعنی سعی) د جاهلیت رسم به وی. او د گناه سبب

بدوی ۔ او بعضو خلقو دا په جاهلیت کښې هم گناه گڼله ۔ نو دوی ته دا شبه پیدا شوه چه شاید دا به په اسلام کښې هم گناه وی ۔ نو په دے آیت کښې الله تعالیٰ د دے شبهے دفع اوکړه ۔ او س د دے مضمون اوله دے نه په وړاندینی مضمون کښې د تړون وجه دا شوه، چه پرومبنی مضمون کښې په کعبے باندې د مانځه د پاره د قبلے د جوړیدلو، د کفارو د شبهے او اعتراض دفع کول وو او په دے مضمون کښې د صفا او مروه په مینځ کښې د سعی په باره کښې، چه دا هم د کعبے سره تعلق لری، د مسلمانانو د شبهے دفع کول دی ۔

**لنډ تفسیر:** (د صفا او مروه په سعی کښې څه شک مه کوئ، حکم) چه بے شکه صفا او مروه (او د دوی په مینځ کښې سعی کول) د بعضے یادګارونو (د دین) خداوندی څخه دی نو کوم سړی چه حج اُکړو د بیت الله یا (د دے) عمرے اُکړه په هغه باندے لږ غوندې هم گناه نشته (لکه چه څرګنده تاسو ته شبه شوے ده) د دے دواړو په مینځ کښې (د سعی معلوے طریقے برابر) په تللوا ژتک کولو کښې (چه د ګڼوم سعی ده او گناه لا څه، بلکه د ثواب کار دے، ځکه چه دا سعی خو د شرع په نظر کښې یو ښه کار دے) او (خصوصی خو دا قاعده او قانون دے چه) کوم سړے په خوشحالیٰ سره څه ښه کار اُکړی نو الله تعالیٰ (د دے لوپه) قدردانی کوی (او د دغه ښه کار کوونکی نیت او خلوص) ښه پیژنی (نو د دے قاعدے له مخه، سعی کوونکی ته به د هغه د اخلاص مطابق ثواب ورکړے شی)

## علوم او مسئلے

د ځنو الفاظو تحقیق: شعائر الله، شعائر جمع د شعیره ده۔ او د شعیره معنیٰ ده علامه، او شعائر الله نه مراد هغه عملونه دی چه کوم الله تعالیٰ د دین د پاره علامے مقررے کړے دی ۔ د حج لفظی معنیٰ قصد کول دی ۔ او د قرآن کریم او سنت رسول صلی الله علیه وسلم په اصطلاح اوډ به کښې، د خانه کعبے زیارت کول او هغه خاص عملونو اداکولو ته حج ویلے شی۔ د عمرے لفظی معنیٰ ده زیارت کول۔ او د شرع په ژبه کښې مسجد حرام ته حاضریدلو، د کعبے نه طواف کولو او سعی کولو ته وائی ۔

### د صفا او مروه په مینځ کښې سعی کول واجب دی

د حج، عمرے او د سعی کولو طریقے د فقهې په کتابونو کښې ذکر دی. او سعی کول د امام احمدؒ په نزد مستحب یا سنّت دی. او د امام مالکؒ او امام شافعیؒ په نزد فرض دی. او د امام ابوحنیفهؒ په نزد دا سعے واجب دی چه په پریښودلو سره ئے یو ګډه، چیلے ذبح کول لازمیږی.

دَ پوره ذکر شوی آیت د الفاظو نه دا شُبه په ذهن کښې راوستل پکار نه دی. چه په دے آیت کښې د صفا او مروه په مینځ کښې خو دَ سعی متعلق دومره قدرے وئیلے شوی دی، چه دا ګناه نه ده. له دے خبرے نه خو زیات نه زیات دومره ثابته شوه، چه مُباحو کښې یو مُباح دے. دَ شُبهے نه کولو وجه دا ده، چه دلته کښې "دَلَاجُنَاحَ" الفاظ دَ سوال په مناسبت راوړلے شوی دی. سوال دَ دے خبرے وو چه په صفا او مروه کښې بُتان ایښودلے شوی وو، او دَ جاهلیت د زمانے خلقو به د دوئ د عبادت کولو دَپاره د صفا او مروه په مینځ کښې سعی کوله. نو په دے وجه دا کار حرام کیدل پکار دی. د دے په جواب کښې اُفرمائیلے شو، چه په دے کښې څه ګناه نشته، ځکه چه دا په اصل کښې ابراهیمی سنت دے. د چا د جاهلی عمل په وجه دا څه ګناه نه کیږی. نو دا سعے وینا د دے د واجب کیدلو سره څه منافات (ټکر) نه خوری.

إِنَّ الَّذِينَ يَكْتُمُونَ مَا أَنزَلْنَا مِنَ الْبَيِّنَٰتِ وَالْهُدَىٰ

بے شکه چه کوم خلق پټوی څه چه مونږ ه نازل کړی دی دَ صاف حکم او هدایت خبرے

مِن بَعْدِ مَا بَيَّنَّٰهُ لِلنَّاسِ فِي الْكِتَٰبِ ۙ أُولَٰٓئِكَ يَلْعَنُهُمُ

پس له هغے نه چه مونږه دا واضح کړی دی دَ خلقو دپاره په کتاب کښے، په دوی باندے لعنت کوی

اللَّهُ وَيَلْعَنُهُمُ اللَّٰعِنُونَ ﴿١٥٩﴾ إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا وَأَصْلَحُوا

الله او لعنت کوی لعنت کوونکی، مګر چه چا توبه اُکړه او درسته کړے یې خپلے خبرے،

وَبَيَّنُوا فَأُولَٰٓئِكَ أَتُوبُ عَلَيْهِمْ ۚ وَأَنَا التَّوَّابُ الرَّحِيمُ ﴿١٦٠﴾

او بیان ئے کړه دحق خبره، نو دا سے خلق معاف کوم، او زه یم لوئے مُعاف کوونکے نهایت مهربانه۔

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَمَاتُوا وَهُمْ كُفَّارٌ أُولَٰئِكَ عَلَيْهِمْ

بے شک چہ کوم خلق کافر شو او مړه شو، او دوی کافروی، نو په دوی باندې

لَعْنَةُ اللَّهِ وَالْمَلَائِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ ﴿١٦١﴾ خَالِدِينَ

لعنت دے د الله او د فرښتو او د خلقو ټولو، همیشه به وی په دغه لعنت

فِيهَا لَا يُخَفَّفُ عَنْهُمُ الْعَذَابُ وَلَا هُمْ يُنظَرُونَ ﴿١٦٢﴾

کښې، نه به سپکیږی په دوی باندې عذاب او نه به دوی ته مهلت ورکیږی۔

**تړون:** وړاندې د قبلې د بحث په ترس کښې دا خبره ذکر شوې وه چه اهلِ کتاب حق پټوی - او په دے آیت کښې د دغ خبرے تکمیل دے، هغه دا سے چه حق پټوونکو د پاره او حق پټولو کښې اصرار کوونکو د پاره د الله پاک عذاب او لعنت دے او څوک چه له دے نه توبه تائب شی هغه د پاره د معافئ وعده ده۔

**لنډ تفسیر:**

کوم خلق چه پټوی هغه مضمونونه چه مونږ نازل کړی دی او چه هغه پخپله واضح دی او (د نور و د پاره) هدایت کوونکی دی (او پټسول هم) د هغه (حالت) نه ورستو چه مونږ ئ دغه (مضمونونه) کتاب (خدائی توراة او انجیل) کښې (په نازلولو سره) عامو خلقو ته ظاهر کړی دی۔ په دا سے خلقو باندې الله تعالی هم لعنت لیږی (چه د خپل خاص رحمت نه ئے لرے کوی) او (نور ډیر خلق) لعنت کوونکی هُم (کوم چه د دا سے کارونو نه نفرت کوی) په دوی باندې لعنت لیږی (چه دوی ته ښیرے کوی) مګر کوم خلق (چه په دغه پټوونکو خلقو کښې د خپل دغه کار نه) توبه (یعنی د الله پاک په وړاندې د تیرو بدو کارونو نه عُذر) اُغواړی او (چه کوم خرابی د دوی د دے کار نه شوی وی۔ نو آئنده د هغې) اصلاح اوکړی (او د دے اصلاح طریقه دا ده، چه دغه پټ کړی مضمونونه په عامو خلقو ظاهر کړی (چه ټول خبرشی، او په دوی باندې د خلقو د ګمراه کولو بوج پاتے نه شی - او ظاهرول په شرع کښې هغه مُعتبر دی چه اسلام قبول کړی، ځکه کچرے اسلام قبول نکړی، نو د نبوت محمدی حق کیدل به په خلقو پټ پاتے شی، خلق به دا اُوګنړی چه کچرے نبوت

محمدی حق وی، نو دا دَ کتاب پوهیدُ ونکی خلق ایمان ولے نه را وَړی. مطلب دا چه داخلق مسلمانان شی) نو دا سے خلقو به (حال) څه (به مهربانی سره) متوجه کیږم، (او د دوی گناه معاف کوم) او څما خو ډیر عادت دے توبه قبلول او مهربانی کول. (څوک توبه کوؤونکی پکار دی) البته چه کوم خلق (به دوی کښے) اسلام را نه وړی او به دغه غیر اسلامی حالت باندِ مړه شی په دا سے خلقو باندِ (دغه ذکرشوے) لعنت د الله پاک، او د فرښتو او دخلقو هم ټولو (د لسے وریږی چه) دوی به همیشه دپاره په دغه (لعنت) کښے وی (مطلب دا چه دوی به همیشه په جهنم کښے وی او په جهنم کښے دهمیش دپاره پاتے کیدونکی خلق، دَ خدائے دخاص رحمت نه لرے هم وی. او همیشه په لعنت کښے هم وی، چه جهنم ته د داخلیدلو نه پس څه وخت ورستو) له دوی نه (دجهنم عذاب سپکیږی به (هم) نه، او نه (جهنم ته د ورتللو نه وړاندے) دوی ته (ترڅه پورے مودے پورے) به ډیل ورکیدے شی (څکه چه ډیل هغه وخت ورکیدے شی، چه کله مقدمه کښے گنجائش وی. او په گنجائش نه کیدلو کښے په اولے پیشیٔ کښے دَ سزا ورکولو حکم وی)

## عُلوم او مسئلے

**دَعلم دین ظاهرول او خورول واجب دی او د دے پټول حرام دی.**

په ذکرشوی آیت کښے دا ارشاد شوے دے، چه د الله پاک له طرف نه چه کوم واضح هدایتونه نازل کړے شوی دی، هغے لره دخلقونه پټول دومرهٔ لوئے جُرم او گناه ده، چه په دے باندِ الله تعالیٰ هم لعنت لیږی او ټول مخلوق هم لعنت لیږی. نو له دے نه څو حکمونه حاصل شو.

اول دا چه دَکوم څرګندول او خورول ضروری دی. د هغے پټول حرام دی. رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی:

مَنْ سُئِلَ عَنْ عِلْمٍ يَعْلَمُهُ فَكَتَمَهُ أَلْجَمَهُ اللّٰهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ بِلِجَامٍ مِّنَ النَّارِ (رواه ابوهریرة وعمرو بن العاص واخرجه ابن ماجة)

"کوم سړے چه د دین د یو حکم علم لری، او له ده نه د دغه حکم پوښتنه اُشی، بیا دے ده دا پټ کړی نو د قیامت په ورځ به د ده په خوله کښے دا د اور واڼے واچولے شی."

فقهاء روائي، چه دا وعید په هغه صورت کښے دے چه کوم وخت کښے له ده نه سوا بل یوکس د دے مسئلے د بیا نولو د پاره په دغه ځائے کښے موجود نه وي او ګچرے نورعالمان هم موجود وي. نوګنجائش شته د ے خبرے د پاره، چه هغه دا اُووائي چه نورو عالمانو نه تپوس اوکړه (قرطبي[1]، جصاص[2])

دویمه دا خبره له دینه معلومه شوه چه چاته درست علم حاصل نه وي، نو هغه له دا پکار نه دی، چه هغه دَ مسئلو او حکمو نو بنودلو جرأت اُکړي۔

دریم دا، چه له دے آیت نه دا مسئله معلومه شوه، چه دا سخت وعید د هغو علمو نو او مسئلو په باره کښے دے، چه کوم په قرآن او سنّت کښے په ډاګه بیان شوي دي او چه د هغوي د ظاهرولو او خورولو ضرورت دے۔ او هغه بار یکے مسئلے چه هغه د عامو خلقو د پوهے نه بهر وي. بلکه په هغے کښے دا خطره وي چه د دا سے مسئلو په ظاهرولو کښے، د عامو خلقو په غلط فهمئ کښے مُبتلا کیدل وي نو په دا سے مسئلو کښے پټول غوره دي۔ او دا سے مسئلے دعلم پټولو په حکم کښے نه راځي۔ په ذکر شوي آیت کښے دَ "مِنَ الْبَيِّنَاتِ وَالْهُدٰى" الفاظو سره د دغه خبرے ته اشاره ده۔ ده دا سے مسئلو په باره کښے حضرت عبد الله بن مسعود وئیلي دي: که چرے تاسو عوامو ته دا سے حدیثونه واؤروئ چه په هغے تاسو پوره نه پوهیږئ، نو دوئ به په فتنه کښے مُبتلا کړئ (قرطبي[3])

هم دغه شان په صحیح بخاري کښے دحضرت علي کرم الله وجهه نه نقل دي چه عامو خلقو ته صرف دَ ومره علم څرګندَوَنه کوئ۔ څومره چه د هغوي په عقل او پوهه کښے راځي۔ آیا تاسو دا غواړئ چه خلق الله تعالیٰ او رسول الله صلی الله علیه وسلّم د دوغ زن اُګنړي، ځکه چه کومه خبره دوئ په پوهه کښے را نشي، نو دَ دوئ په زړونو کښے به له دینه شبهے او شکونه پیدا شي او ممکنه ده چه دوئ به له دینه انکار اُکړي۔

له دے نه دا معلومه شوه، چه دَ عالِم دا هم یوه ذمه واري ده، چه دے دمخاطب حالت ته ګوري، او پس د هغے نه دے خبره کوي، او چه د کوم سړي په غلط فهمئ کښے دَ مبتلا کیدلو خطره وي د هغه دَ وړاندے دِ دا سے مسائل نه بیا نوي۔ دغه وجهٔ

(۱) ج: ۲، ص: ۱۸۵۔ (۲) په جصاص کښے دګنجائش د خبرے ذکر نشته، او ګورئ باب النهي عن کتمان العلم ج: ۱، ص: ۱۱۶، ۱۱۷۔ (۳) ج: ۲، ص: ۱۸۴، ۱۸۵۔

چه فقهاء حضرات د ډېرو مسئلو د بیان نه پس لیکلي" هٰذَا مِمَّا یُعۡرَفُ وَلَا یُعَرَّفُ " (دا مسئله داسې ده، چه اهلِ علمو له به دے پوهېدل پکار دي، لیکن به عامو خلقو ته د نه خودَوي)

په یو حدیث کښې نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي:

لَا تَمۡنَعُوا الۡحِکۡمَةَ اَهۡلَهَا، فَتَظۡلِمُوۡهُمۡ، وَلَا تَضَعُوۡهَا فِيۡ غَيۡرِ اَهۡلِهَا فَتَظۡلِمُوۡهَا

(دحکمت خبرے له داسے خلقو نه، مه منع کوی، چه هغوی د دے خبرو اهل وی. ګکه چرے تاسو داسے اُوکړل. نو دا به په دے خلقو باندې ظُلم وی. او چه کوم خلق ئے اهل نه وی، نو هغوی ته دَ حکمت خبرے مه کوئ. ځکه په داسے کولو به حکمت باندې ظلم کول دی)

امام قرطبیؒ وائی: چه له دے تفصیل نه دا معلومه شوه. چه داسے کافر ته چه هغه مسلمانانو سره مناظرے او بحثونه کوی، یا داسے بدعتی ته، چه خلق په خپلو غلطو خیالونو گمراه کوی. علم دین تر هغه وخته پورے ښودل پکار نه دی چه تو ځو پورے په غالب گمان دا معلومه نه شی، چه په دے علم ښودلو سره به د ده خیالات دُرست شی.

هم دغه شان یو بادشاه او حاکم ته داسے مسئلے ښودل روا نه دی چه د هغے په ذریعه هغه ته په رعیت باندې دَ ظلم کولو لاره په لاس راځی. هم دغه شان د عامو خلقو په وړاندې د دین په حکمونو کښے دَ اجازت او دحیلو صورتونه بیانول روا نه دی (قرطبی)[1]

**درسول الله صلی الله علیه وسلم حدیث هم دَ قرآن حکم لری،** په صحیح بخاری، دحضرت ابو هریرهؓ په روایت کښے دی، چه هغه اُووئیل، ګکه چرے دَ قرآن دا آیت نه دے، نو ما به تاسو ته یو حدیث هم نه وُو بیان کړے. دده مراد له آیت نه، دغه یو آیت دے چه پکښے دعلم په پټولو باندے دلعنت سخت وعید راغلے دے. هم دغه رنګے بعضے نورو صحابه کرامو، حدیث ذکر کولو سره. دغه رنګے الفاظ وئیلی دی چه ګکه چرے د قرآن کریم دا آیت دعلم د پټولو په باره کښے نه وے نو ما به داحدیث تاسو ته نه وو بیان کړے.

له دے روایتونو نه دا معلومه شوه، چه دصحابه کرامو په نزد دَ نبی صلی الله علیه وسلم

(۱) ج: ۲، ص: ۱۸۵.

حدیث د قرآن حکم لري. ځکه چه په آیت کښې د پټولو وعید د هغه خلقو دپاره راغلې چه هغوی به قرآن کښې نازل شوي حکمونه او هدایات پټول. په دې آیت کښې په ډاګه د حدیث د پټولو ذکر نشته. لیکن صحابه کرامو، حدیث هم د قرآن په حکم کښې اُګڼلو او د ده پټول ئې د وعید سبب اُګڼلو.

**د بعضې ګناهونو وبال داسې وي، چه په هغې باندې ټول مخلوق لعنت لیږي**

وَيَلْعَنُهُمُ اللّٰعِنُوْنَ کښې قرآن کریم لعنت کوونکي په ګوته کړي نه دي. چه کوم خلق لعنت لیږي. د تفسیر اِمامان، مجاهد او عکرمه والي، چه په ده عدم تعین کښې دې خبرې ته اشاره ده. چه د دنیا هغو ټولو شیز او مخلوق، په دوي باندې لعنت لیږي، تر دې چه ټول ځناور او د زمکې چینجي مینجي هم په دوي باندې لعنت وائي. ځکه چه د دوي د بد و عملونو په وجه دې ټولو مخلوقاتو ته نقصان رسیږي، د حضرت براء بن عازب د حدیث نه د دې تاکید کیدې شي، چه په دې حدیث کښې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائي چه د اللّٰعِنُوْنَ مراد په زمکه ټول تلونکي ځناور دي.(۱)

**یو معلوم او خاص سړي باندې لعنت وئیل، تر هغه وخت پورې روا نه دي، چه تر څو پورې دا یقین حاصل نه شي چه دے په کفر باندې مړ دے.**

"وَمَاتُوْا وَهُمْ كُفَّارٌ" د لفظ نه جصاص(۲) او قرطبي(۳) وغیره دا مسله راوبښکلې ده. چه د کوم کافر په کفر باندې د مرګیدو یقین پېښه حاصل نه وي، نو په هغه باندې لعنت وئیل روا نه دي، او هر کله چه مونږ ته د چا د خاتمې حالت په یقین سره معلوم نه دے. نو په دې وجه دیو کافر نوم اَخستل او بیا په هغه باندې لعنت وئیل روا نه دي. او نبی کریم صلی الله علیه وسلم چه د کومو کافرانو نومونه اَخستي دو او لعنت ئې پرې وئیلے وو، نو دا هغه(۴) ته د وحي په ذریعه په یقین سره معلومه شوې ده. چه دوي به د کفر په حالت کښې مري. البته په عامو کافرانو، ظالمانو، بغیر د نوم اَخستلو نه، لعنت وئیل د دست دي.

له د ینه دا معلومه شوه، چه هر کله، د لعنت وئیلو معامله دومره سخته ده، نو چه دا په یو کافر باندې هم تر هغه پورې وئیل روا نه دي چه تر څو پورې په یقین سره معلومه

(۱) ج: ۲، ص: ۱۸۶، ۱۸۷ - (۲) ج: ۱، ص: ۱۱۷ - (۳) ج: ۲، ص: ۱۸۸

نه وی چه دے به د کفر په حالت کښې مری. نو په یو مسلمان یا په یو کافر او رباندې لعنت
ویل څرنګے روا کیدے شی؟ عوام او خاص کر ښځې خو بالکل غافلې دی. چه په خبره
خبره د لعنت الفاظ د خپلو تعلق دارو په باره کښې د خولې نه اُباسی. او لعنت صرف دَ
لعنت د لفظ په ویلو کښې نه دے. بلکه دے لفظ سره چه کوم الفاظ نورے په معنیٰ کښې
شریک دی. هغې سره هم د لعنت مطلب او حکم حاصلیدے شی. دَ لعنت اصلی معنیٰ ده.
دَ خدائے دَ رحمت نه لرے کیدل. نو په دے وجے چا ته مردود، دَ خدائے د دربار نه شړلے
شوے. یا نور الفاظ ویل چه دا مطلب ځنے ترِ را وځی، هم دَ لعنت حکم لری۔

وَاِلٰهُكُمْ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ ۚ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الرَّحْمٰنُ الرَّحِيْمُ ﴿۱۶۳﴾ ع ۱۹ ۱۱ ۳

او معبود ستاسو ټولو هم یو معبود دے. نشته معبود بغیر له ده نه چه ډیر مهربان او ډیر رحم والا دے۔

اِنَّ فِىْ خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَاخْتِلَافِ الَّيْلِ

بے شکه د آسمان او د زمکے په پیدا کولو کښې، او د شپے او د ورځ په بدلولو

وَالنَّهَارِ وَالْفُلْكِ الَّتِىْ تَجْرِىْ فِى الْبَحْرِ بِمَا يَنْفَعُ

را بدلولو کښې، او بیړو کښې چه اُړی په دریاب کښې د خلقو د کار څیز و نه، او په اُبو

النَّاسَ وَمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ مِنَ السَّمَآءِ مِنْ مَّآءٍ فَاَحْيَا

کښې چه هغه الله پاک نازلے کړے دَ آسمان نه، بیائے ژوندئ کړه

بِهِ الْاَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا وَبَثَّ فِيْهَا مِنْ كُلِّ دَآبَّةٍ ۪

په دے زمکه، دَ هغې د مړکیدلو نه پس، او خواره ئے کړه په دے کښې د هر قسمه ځناور

وَّتَصْرِيْفِ الرِّيٰحِ وَالسَّحَابِ الْمُسَخَّرِ بَيْنَ السَّمَآءِ وَ

او د هواګانو په بدلیدلو کښې، او په ورېځو کښې چه تابعدارے دی دده دَ حکم دَ زمکے او

الْاَرْضِ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّعْقِلُوْنَ ﴿۱۶۴﴾

دَ آسمان په مینځ کښې بے شکه په دے ټولو څیزونو کښې نښے دی د عقلمندو دپاره۔

**تړون:** دعربو مشرکانو چه هر کله آیت " وَاِلٰهُكُمْ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ " د خپلې عقیدې نه مخالف واورېدو. نو په تعجب سره ئې اُووې، چه دا څرنګه کېدے شي. چه د ټول جهان دِ یو معبود وي، او که چرې دا دعویٰ درسته وي، نو څه دلیل په دے باندې راوړل پکار دي، نو الله پاک د دے پسے آیت کښے دلیل بیان کړو.[1]

## لنډ تفسیر:

او (داسے معبود) چه ستاسو د ټولو د معبود کېدو لائق وي، هغه خو همیو معبود (حقیقي) دے له دې نه سوا څوک د عبادت لائق نه دے، هغه رحمان دے او رحیم دے (او څوک په دے صفتونو کښے کامل نشته، او د معبودیت د صفتونو د کمال نه بغیر د معبود کېدو حق داری باطله ده، نو بغیر د معبود حقیقي نه څوک نور د عبادت حق دار نه شُو) بے شکه د آسمانونو او د زمکے په جوړولو کښے، او د شپے او د ورځے په راتللو کښے او د جهازونو (په تللو) کښے چه په دریابونو کښے اُړي د بنیادمو د نفعے څیزونه او (د باران) په اوبو کښے چه هغه الله تعالیٰ د آسمان نه اُورَوِلے. بیا یې دے (اوبو) سره ئې زمکه تروتازه کړه، د دے د اُچیدلو نه پس (یعني په دے کښے ئې بوټي پیدا کړل) او (د هغه بوټونه) د هر قسمه ځناورے په دے (زمکه) کښے خواره کړه (ځکه چه د ځناورو ژوندا و بچي راوړل د دغه بوټو د خوراکے په وجه دي) او د هواګانو (په طرفونو او کیفیتونو) په بدلېدلو کښے (چه کله د یو طرف نه الوځي او کله د بل طرف نه، کله ګرمه وي، کله یخه) او د وریځے (په کېدو) کښے چه د زمکے او د آسمان په مینځ کښے بندے (او زورېنده) وي (په دے ټولو څیزونو کښے) دلیلونه (د توحید موجود دي) د هغو خلقو (د دلیل نیولو) د پاره چه (روغ) عقل لري.

## علوم او مسئلے

**د توحید وسیع مفهوم** | " وَاِلٰهُكُمْ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ " د الله پاک توحید او یو والے په مختلفو حیثیتونو سره ثابت دے ... مثلاً هغه یو دے، یعني په مخلوقاتو کښے څوک د

---

(۱) حضرت مولانا مرحوم د تړون په سلسله کښے د دے دوو آیاتونو ترمینځه تړون بیان کړے دے. خو د دے آیاتونو تړون له مخکښے تیر شوو آیاتونو سره بیان نه کړو - (مترجم)

دہ نظیر او مثال نشته او نه څوک د دہ برابر دی، نو په دے وجه هغه د دے حقدار دے، چه هغه ته یو اُو بلے شی۔

دویم په دے حیثیت، چه هغه یو دے، د عبادت په حق دار ګڼے: یعنی له دہ نه سوا بل څوک د عبادت حق دار نه دے۔

دریم په دے حیثیت چه هغه یو دے، یعنی اجزا ئے نشته، هغه د اجزاؤ او اندامونو نه پاک دے، او نه د هغه تقسیم ولیش او تجزیه کیدے شی۔

څلورم په دے حیثیت، چه هغه یو دے، یعنی خپل اَزلی ابدی کیدلو کښے یو دے هغه وخت هم موجود وُو، کله چه څه څیز موجود نه وُو۔ او هغه وخت به هم وی، کله چه څه څیز موجود پاتے نه شی۔ نو په دے وجه هغه دد دے حق دار دے، چه ورته واحد اُو بلے شی۔ د واحد په لفظ کښے، دا ټول حیثیتونه د توحید پرانه دی (جصاص)[1]

دے نه پس د الله پاک په واحد حقیقی کیدلو باندے، تکوینی علامے او دلیلونه ښودے شوی دی چه هغے باندے هر سړے، عالم او جاهل پوهیدے شی۔ هغه دا چه د زمکے او آسمان پیدا کول، د شپے او د ورځے دا همیشه بدلیدل، د هغه د کامل قدرت او توحید روښانه دلیلونه دی چه د دے څیزونو په پیدا کولو او ترڅه مودے پورے په ساتلو کښے، د یوے بلے هستئ هیڅ قسم دخل نشته۔

د غه شان په اُوبو باندے د جهازونو تلل، د قدرت یوه لویه علامه دہ، چه اُوبه الله پاک دا سے یو بهیدونکے جوهر جوړ کړو۔ چه سره د نرمئ او بهیدلو نه د دے د پاسه په تکونو منونو جهاز، چه کښے د یر په منونو څیزونه هم پراته وی، د مشرق نه مغرب پورے ځی راځی۔ او بیا د دے جهازونو د تللو د پاره د هواګانو چلول، او بیا په خپل حکمت سره د هواګانو مخ بدلول، دا ټول د دے خبرے پته ورکوی، چه د دے څیزونو پیدا کونکے او چلونکے یو لوئے علم والا او حکمت والا دے۔ ګیرے د اُبو ماده بهیدونکی نه وے، نو دا کار بیا نشو کیدے۔ او که بهیدونکے هم وے، خو هواګانے نه وے نو بیا به جهازونو، دا او بهٔ د ۀ او بهٔ د ۀ سفرونه کړی نه وُو قرآن کریم د غه مضمون بیان کړے دے۔

(۱) ج: ۱، ص: ۱۱۸۔

"إِنْ يَشَأْ يُسْكِنِ الرِّيحَ فَيَظْلَلْنَ رَوَاكِدَ عَلَىٰ ظَهْرِهِ"[1] (کچرے الله پاک اُغواړی نو هوا کانے به اُودرَوی۔ او دا جهازونه به د دریاب دَپاسه ولاړ پاتے شی)

"بِمَا يَنْفَعُ النَّاسَ" لفظ کښے اشاره اُشوه، چه دَ اُبو دَ جهازونو په ذریعے دیو ملک سامان، بل ملک ته په اُړولو کښے، عامو بنیادمو ته بے شمیره فائدے دی۔ او دا فائدے په هره زمانه، او په هر ملک کښے نوی نوی صُورتونو کښے راڅرګندیږی۔

هم دغه رنګے دَ آسمان نه اُبه څاڅکی څاڅکی راغورذَول، چه چا ته نقصان اُنهٔ رَسی۔ کچرے دا اُبه دَ سیلاب په شکل راتلے، نو بنیادم، څناور او سامان به نهٔ پاتے کیدے۔ بیا دَ ورَولو نه پس، دا اُبه په زمکه باندے محفوظ ساتل، دَ بنیادم دَ وَس خبره نه ده۔ کچرے دا ویلے شوے چه د شپږو میاشتو خپله خپله ذخیره دِ هر سړے جمع کړی نو هر یو سړی به ددے دسا تلو دپاره څه انتظام کولو؟ او کچرے انتظام ئے کړے وے نو دا به ئے د خرابیدلو نه څنګے بچ کړے وے؟ قُدرت دا ټول انتظامونه پخپله کړیدی۔ الله پاک فرمائی:

"فَأَسْكَنَّاهُ فِي الْأَرْضِ وَإِنَّا عَلَىٰ ذَهَابٍ بِهِ لَقَادِرُونَ"[2] (هم مونږه اُبه په زمکه کښے حصارے کړے۔ اګرچه څمونږه دا قدرت هم شته، چه دَ باران اوبهٔ بیَوَو اوختے ئے کړو۔

لیکن قدرت د زمکے اوسیدونکو بنیادمو اوښکارو دپاره اُبه چرته د تالابونو په شکل کښے جمع کړے او چرته دَ غرونو په زمکه کښے دَ خوروشوو رَکونو په ذریعے، دَ زمکے اندرون ته اُرسَولے، او بیائے په ټوله زمکه کښے یوداسے دَ پَیپونو لیګنږ خود کړو، چه کوم سړے چه چرته ئے ذړه اُغواړی نو زمکه اُکنی او اُبه راوَباسی۔ او ددے اُبو یوه لویه ذخیره ئے دواوُرو په شکل کښے په غرونو باندِ وا چَوَله۔ چه خرابیدلو نه هم محفوظه ده۔ او په آرام آرام سره وِیلی کیږی۔ او دَ زمکے دننه دَ قدرتی پَیپ لیګنږنو په ذریعے، ټولے دنیا ته رسیږی۔

مطلب دا، چه په مذکوره آیت کښے، د قدرتِ کامله، دیوڅو مظاهرو بیان اُکړے شو او توحید ترے ثابت کړے شو۔ مفسرین علماؤ په دے ټولو څیزونو باندِ په

(۱) الشوری: ۳۳۔ (۲) المؤمنون: ۱۸۔

تفصیل سره بحث کړے دے . (جصاص(۱) ، قرطبی(۲) وغیره اُګورئ)

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّتَّخِذُ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اَنْدَادًا يُّحِبُّوْنَهُمْ

او بعضے خلق هغه دی چه جوړوی د الله برابر نور - او دوئ سره داسے محبت کوی ،

كَحُبِّ اللّٰهِ ؕ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَشَدُّ حُبًّا لِّلّٰهِ ؕ وَلَوْ يَرَى الَّذِيْنَ

لکه د الله سره محبت ، او د مؤمنانو د الله پاک سره محبت زیات دے ، او کچرے اوګوری

ظَلَمُوْٓا اِذْ يَرَوْنَ الْعَذَابَ ۙ اَنَّ الْقُوَّةَ لِلّٰهِ جَمِيْعًا ۙ وَّ

دا ظالمان هغه وخت کوم وخت کښے چه اُګوری عذاب ، چه ټول قوت الله د پاره دے . او

اَنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعَذَابِ ﴿۱۶۵﴾

دا چه د الله پاک عذاب سخت دے .

**تړون :** په دړاندینو آیاتو کښے د توحید ثبوت وُو ، او اُس په دے آیت کښے د مشرکانو دغلطئ او د وعید بیان دے .

**لنډ تفسیر :** او څه کسان هغه (هم) دی چه د خدائے نه علاوه نور هم (دخدائے) شریک ګرځوی (او دوئ خپل کارسازان ګڼړی او) دوئ سره داسے محبت کوی لکه چه الله پاک سره محبت (کول) ضروری دی ، (د احالت خو د مشرکانو دے) او چه کوم مؤمنان دی د هغوئ (ریوائے) الله پاک سره ډیر محبت دے (ځکه کچرے یو مشرک ته دا ثابته شی ، چه ما ته ځما د معبود نه څه ضرر رسیږی ، نو محبت به ئے فوراً قطع شی . او مؤمن سره له دینه چه د نفع او نقصان ورکولو عقیده صرف په خدائے لری . لیکن بیا هم هغه په محبت او په رضا بالقضاء ټینګ وی . او دا هم ده ، چه اکثر مشرکان ، د سخت مصیبت په وخت کښے خپل خُدایان پریږدی . او مؤمنان د ایمان په حیث ، په مصیبت کښے هُم الله پاک نه پریږدی . او په محاوره کښے دا سے خبرے د غالب حالت په بنا هُم صادقے ګڼړلے شی) او څه بنه به وے کچرے دے ظالمانو (مشرکانو) کله (د دُنیا کښے) ته مصیبت لیدلے نو د هغے په راتلو

(۱) ج: ۱ ، ص: ۱۱۸ - ۱۲۲ - (۲) ج: ۲ ، ص: ۲۰۱ -

کښې غور کوي نو) دا پوهه به قبلولې چه ټول قوت هم الله پاک د پاره دے. او نور ټول د ده مخکښې عاجز دي. بلکه چه دا مصيبت نه چا منع کړو او نه ئې دوستو کړو او نه به دا سې وخت کښې څوک بل ياد پاتې شو) او (د مصيبت په سختئ کښې نه فکر کوي) دا (پوهه ئې تر قبلولې) چه د الله پاک عذاب (آخرت کښې چه د جزا او سزا کور دے نور هم) سخت به وي (نو په دا سې غور او فکر کولو سره د خپلو جوړ کړو معبودانو عاجز ولے او د حق تعالیٰ قدرت او لوئے ولے به ئې ښکاره شي او دوئ به توحيد او ايمان را وړي غور ئې کړو)

اِذۡ تَبَرَّاَ الَّذِيۡنَ اتُّبِعُوۡا مِنَ الَّذِيۡنَ اتَّبَعُوۡا وَرَاَوُا الۡعَذَابَ

کله چه بيزار به شي هغه چه د هغوي پيروي شوې ده د هغوي نه چه هغوئ پيروي کړې ده. او

وَتَقَطَّعَتۡ بِهِمُ الۡاَسۡبَابُ ﴿۱۶۶﴾ وَقَالَ الَّذِيۡنَ اتَّبَعُوۡا لَوۡ

او به ګوري عذاب او قطع به شي د دوي ټولے علاقے. او به وائي پيروي کوونکي چه څه ښه به وه که موږ

اَنَّ لَنَا كَرَّةً فَنَتَبَرَّاَ مِنۡهُمۡ كَمَا تَبَرَّءُوۡا مِنَّا ؕ كَذٰلِكَ

ته واپس دنيا ته تلل حاصل وے، چه بيا موږ له دا سو نه بيزاره شوے وو. لکه چه څنګه دا سو له موږ نه بيزاره شول.

يُرِيۡهِمُ اللّٰهُ اَعۡمَالَهُمۡ حَسَرٰتٍ عَلَيۡهِمۡ ؕ وَمَا هُمۡ

دغه شان او به ښئ الله پاک دوئ ته د دوئ کارونه افسوس درکوونکے. او دوئ

بِخٰرِجِيۡنَ مِنَ النَّارِ ﴿۱۶۷﴾

به هرګز وتونکي نه وي د اور نه.

ع ۲۰ ۴

ترون: په دې اندې آيت کښې د آخرت د عذاب سخت والے بيان شوے دے. او په دې آيت کښې د دغه سخت والي حالت بيا شوي.

لنډ تفسير:

(د دے عذاب سختي به هله معلومه شي) کله چه (په دے مشرکانو کښې دا ثر او رسوخ خاوندان) خلق چه د هغوي په وينا نور (عام خلق) تلے دے (عامو) خلقو نه به

بالکل جُدا شی، کوم چه دَ دوئ په وینا به تلل او هغوی (عام او خاص) به عذاب اووینی او دَ دوئ په مینځ کښے چه کوم تعلقات وو (چه یو بل پورې کو و نکی وو- او دَ بل پیروی به کیدله وغیره وغیره) دغه ټول به قطع شی (لکه چه دُنیا کښے هم دا لیدے شی چه جُوم او گناه کښے ټول شریک او متفق وی. او د مقدمے په آخر کښے ټول ځان ځان له بچ کیدل غواړی. تودے چه بیا د یو بل د آشنائیے نه هم اِنکار کوی) او (کله) چه دا پیروی کوونکی خلق (د پیروی کړی شوو دغه کلکے سترګے او وینی، نو ډیر به ستوما نه شی، او څه به کیږیٔ) نو داسے به په وینا شی چه څرنګے مونږ ه ټولو لره (دنیا ته) صرف لږ غونډ یو ځل تګ حاصل شوے، نو مُونږ به هم له دوئ نه (د دمره بدل خو واخلو، چه کجرے بیا دوئ مُونږ ته دخپل تابع کولو رغبت راکړو، نو مونږ به هم دوئ ته) صاف (پوره پوره جواب درکړو) جُدا به شو تر لکه چه څرنګے دوئ له مونږ ه (هغه وخت) بالکل جُدا شُو (او اُبه وایُو، جناب عالی، چه تاسو خو هغه خاق یئ چه عین دَ موقعے په وخت کښے مو زمونږه نه بے پروا هی کړے وه. اُس مُونږ سره ستاسو څه عرض دے؟ الله تعالیٰ فرمائی چه په دغه تجویز و نو او سوچو دؤ سره هیڅ لاس ته نه راځی، صرف دا) الله پاک دغه رنګے دَ دوی بد عملونه دخالی آرزوګانو (په شکل کښے) دوئ ته به اُښائی او دغه (پیروی کوونکی او پیروی کړی شوی خلق ټولو ته به دوزخ نه وتل هم چرته په برخه نهٔ شی، ځکه چه دَ شِرک سزا، په دوزخ کښے همیش د پاره پاتے کیدل دی)

يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ كُلُوْا مِمَّا فِى الْاَرْضِ حَلٰلًا طَيِّبًا ۖ

اے خلقو! خورئ دَ زمکے شیزونه حلال پاکیزه

وَّلَا تَتَّبِعُوْا خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ ؕ اِنَّهٗ لَـكُمْ عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ ﴿۱۶۸﴾

او پیروی مه کوئ دَ شیطان، بے شکه دے ستاسو ښکاره دُښمن دے -

اِنَّمَا يَاْمُرُكُمْ بِالسُّوْٓءِ وَالْفَحْشَآءِ وَاَنْ تَقُوْلُوْا عَلَى اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿۱۶۹﴾

دے خو به هم دغه حکم کوی تاسو ته چه بد کاری او بے حیائی او کړئ او دروغ اُتړئ په الله باندے هغه خبرے چه تاسو نه پیژنئ

## لنډ تفسير:

( بعضې مُشرکانو، دَبتانو په نوُم ځناور پرېښودل، او له هغوئ نه به ئې فائده آخستل حرام کړله. او خپل دا کار به ئې دَخدائے تعالیٰ حکم ګڼړلو. او دا اعتقا به ئې لرلو. چه دغه بُتان، چه دکومو په نومونو باندِ به ئې ځناور پرېښودل. دَ دوئ دَپاره به د الله پاک په دربار کښې شفاعت اُکړی. نو الله تعالیٰ په دے عقله فرمائی چه) اے خلقو! چه کوم څیزونه په زمکه کښې موجوُد دی نو په هغې کښې (شرعی) حلال پاک څیز ( چه اجازت دے چه هغه) خورئ (استعمالوئ) او (په دے کښې دیو حلال څیز متعلق دا عقیده لرل، چه له دهٔ ځان ساتلو کښې او فائده نه آخستلو کښې د الله پاک رضا حاصلول دی، دا ټول شیطانی خیالونه دی تاسو) دشیطان په نقش قدم باندِ مه ځئ په حقیقت کښې دغه (شیطان) ستاسو په دا کښې دُښمن دے (چه هغه په دا خیالونو، او دجهالت په کارونو کښې تاسو همیشه زیان کښې ګرفتاره کړی ئې او دُښمن کیدلو په وجه) هغه تاسو ته دهغه خبرو تعلیم درکوی چه (په شرع کښې) بدے اوګنده پلیتے دی او دا هُم (تعلیم ورکوی) چه په الله پاک باندِ هغه خبرے اُتړئ، چه د هغے دپاره تاسو څخه څه سند او دلیل هم نشته (مثلاً دا، چه موږ ته الله تعالیٰ دد اسے کولو حکم کړے دے)

## علوم او مسئلے

دا لفاظو معنیٰ: حَلٰلاً طَیِّبًا دَ حِلّ لفظ، اصلی معنیٰ دهٔ غوټه پرانستل. چه کوم څیز بنیادم دپاره حلال کړے شو، نو کویا یوغوټه پرانستے شوه، او پابندی لرے کړے شوه. حضرت سهل بن عبد الله وائی: چه خلاصے په درېو څیزونو دا نړه دے (۱) حلال خوړل (۲) د فرضونو ادا کول (۳) درسول الله صلی الله علیه وسلّم دَ سُنّت پیروی کول، او دَ طیّب د لفظ معنیٰ دهٔ پاک. چه په دے کښې شرعی حلال هم داخل دی. او هغه حلال چه طبیعت ئې هم غواړی دا هم داخل دی.

خطوات: دَخُطوَة جَمع دهٔ. دومره مقدار ته خُطوه وئیلی شی. کوم چه دَ دوو قدمونو په مینځ کښې فاصله دهٔ. دَخُطواتِ شیطان نه مراد، شیطانی عملونه او کارونه دی.

اَلسُّوْٓءِ وَالْفَحْشَآءِ ، سُوء هغه څيز دے ، چه د هغې په ليدلو سره يو شريف عاقل ته غم درد درسي. فحشاء د بے حيائۍ کار ته وائي. بعضے عُلماء حضرات وائي چه د لته کښے دَ سُوء نه مراد مطلق گناه ده. او د فحشاء نه مراد لويه گناه ده.

اِنَّمَا يَاْمُرُكُمْ. دَ شيطان د اَمر او د حکم نه مراد ، په زړه کښے وسوسه اَچول دی. لکه چه د حضرت عبد الله بن مسعودؓ په حديث کښے دی چه رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمائيلی دی چه د بنيادم په زړه کښے يو شيطاني الهام او اثر وی. او دويم د فرښتے د طرف نه الهام او اثر وی. د شيطاني وسوسے اثر دا وی ، چه د بد کار کولو فائده او نفعے ئے مخے ته راځی ، او د حق دَ دروغ ژن گڼړلو لارے ورته پرانستے کيږی. او د فرښتے اثر او الهام دا وی چه ده ته په ښه کار و نو کولو کښے د انعام او خلاصی وعده ښکاری ، او د حق په رښتيا گڼړلو سره د ده زړه مطمئن کيږی.

**مسئله :** سانډه وغيره چه د بُتانو په نامے پرېښودے شی او مشلے شی ، يا يو بل څناور لکه چرگ ، چيلۍ وغيره ، دَ يو بزرگ يا دَ چا بل غير الله په نوم مَنَل . د دے حرام کيدل دَ څلورو آيتونو نه پس" وَمَآ اُهِلَّ لِغَيْرِ اللهِ" دلائلو را تلونکے دے. او په دے آيت : " يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ" کښے د دا سے څناور د حرام کيدلو نفی کول غرض نه دی ، لکه چه بعضو خلقو ته د دے شُبه شوے ده ، بلکه د دے آيت نه غرض دا دے ، چه د يو بُت په نوم يو څناور منل ، او بيا دا نه خوړل او له ده نه فائده نه اَغستل باعثِ برکت او الله پاک ته نزديکت گڼړل ، او دا خيال کول ، چه دا سے مونږ د الله پاک په حکم کوو. يعنی الله تعالیٰ مونږ ته د دا سے کولو حکم کړے دے. دا ټول کارونه ناروا دی. او دَ دوئ کول گناه ده.

نو د آيت د مطلب خُلاصه دا ده ، چه کوم څناور چه الله تعالیٰ حلال کړيدی ، هغه د بُتانو په نومونو کول او حرام گڼړل مه کوئ. بلکه په خپل حالت ئے پرېږدئ او خورئ او سکئ. او کچرے دا سے کار ، د جهالت په وجه اوکړے شی ، نو د نيت د اصلاح سره سره ، ايمان تازه کړئ ، او توبه اُوکړئ او د احرام والے (چه تاسو پخپله په ځان باندِ حرام کړځولے دے) ختم کړئ. د غه شانے دا څناور د تعظيم په وجه (يعنی په دے وجه چه دا د بُتانو په نامه کړے شوی دی) حرام گڼړل گناه ده. ليکن دوئ د غير الله په نامے کوَل او منل ، دوئ مُردار دَ وی او پليتسوی. هرکله چه دا مردار او پليت شو ، نو حرام شو.

**مسئله:** له دینه دا هم معلومه شوه. چه کوم یو سړی د جهالت یا ناپوهئ په وجه څه ګناو ر. د غیر الله په نوم او منلو، او پرېښودو. نو د ده توبه داده، چه د خپل دے خیال نه د رجوع اُوکړی او بیا له دا سے کار کولو نه ځان ساتی. نو بیا د دے ګناو د غوښه حلاله شی. والله اعلم۔

وَاِذَا قِيْلَ لَهُمُ اتَّبِعُوْا مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ قَالُوْا بَلْ

او کله چه خوک د دوئ ته اُووائی چه تابعداری اوکړئ د هغه حکم چه نازل کړے دے الله پاک نو دوئ

نَتَّبِعُ مَآ اَلْفَيْنَا عَلَيْهِ اٰبَآءَنَا ۭ اَوَلَوْ كَانَ اٰبَآؤُهُمْ

وائی هو کنه، موږ به خو تابعداری کوو د هغے چه په هغے باندې موږ موندلی دی خپل نیکونه او پلاران

لَا يَعْقِلُوْنَ شَـيْـــًٔـا وَّلَا يَهْتَدُوْنَ ﴿١٧٠﴾ وَمَثَلُ

اګرچه د دوئ پلاران او نیکونه نه پوهیدل او نه ئے پیژندله نیغه لاره. او مثال

الَّذِيْنَ كَفَرُوْا كَمَثَلِ الَّذِىْ يَنْعِقُ بِمَا لَا يَسْمَعُ

د دے کافرانو داسے دے، لکه چه آواز اُوکړی یو سړے داسے څیز ته چه هغه څه نه آوری

اِلَّا دُعَاۗءً وَّنِدَاۗءً ۭ صُمٌّۢ بُكْمٌ عُمْيٌ فَهُمْ لَا يَعْقِلُوْنَ ﴿١٧١﴾

بغیر د چغو او شور و نه، کانړه، ګونګیان، ړاندۀ دی نو دوئ په څه نه پوهیږی۔

**لنډ تفسیر:** او کله چه خوک دے (مشرک) خلقو ته اُووائی چه الله پاک کوم حکم (خپل پیغمبر ته) لیږلے دے په هغے باندے ځئ نو (په جواب کښے) وائی (چه نه) بلکه موږ خو هغه (لارے باندې) به ځو چه کومه باندے موږ خپل پلار او نیکه موندلی دے (ځکه چه د اخلق، په دے لار آخستلو کښے د الله پاک له طرف نه مامور وو. الله پاک په دوئ ردکوی فرمائی) آیا (هرحالت کښے د اخلق د خپل پلار او نیکه په لاره به ځی) اګرچه د دوئ پلار او نیکه نو دین څه پوهه نه لرله او نه (د څه آسمانی کتاب) هدایت ئے لرلو. او د دے کافرانو (د ناپوهئ) حالت او کیفیت د هغه (ګناور) د حالت او کیفیت په شانے دے (چه د هغے ذکر

په دے مثال کښے کیږی) چه یو سړے دے چه هغه د یو داسے (څناورته) ورستو نه چغے وهی چه بغیر د چغو او د سورو نه د څه (مضمون او مطلب نه پوهیږی) خبره نه آوری (هم دغه رنګے) دا کافران (هم ظاهری خبرے اترے خو آوری. لیکن د کار د خبرو نه بالکل) کاڼه دی. (داسے معلومیږی چه هیڅ نه آوری) ګونګیان دی. (چه چرته داسے خبره په ژبه نه کوی) ړانده دی (ځکه چه فائده او نقصان نه وینی) نو (هرکله چه ئے ټول حواس خراب دی نو) پوهیږی په هیڅ نه (او نه پوهه کولے شی)

## علوم او مسئلے

له دے آیت نه یکه چه څرنګے دا ثابته شوه. چه د مورا او پلار په ړنده باندِ پیروی کول ښه کار نه دے، هم دغه رنګے دا هم معلومه شوه، چه د جائزے او روا پیروی د پاره څه شرطونه، او ضابطے دی او دا، د لَا یَعْقِلُوْنَ، او د لَا یَهْتَدُوْنَ د لفظ سره معلومیږی، ځکه چه دے الفاظونه دا معلومه شوه. چه د پلار، او نیکونو پیروی له دے وجے نه منع شوه، چه نه د دوئ کښے عقل وُو. او نه هدایت. او د هدایت نه مراد، هغه حکمونه دی چه د الله تعالیٰ له اړخه په صریح طور سره نازل شوی دی. او د عقل نه مراد هغه حکمونه دی، چه د اجتهاد په ذریعه، د شرعی نصوصونه را وَخکلی شوی وی.

نو د دوی د پیروی د نه روا والی وجه دا ده، چه نه د دوئ سره د الله تعالیٰ له طرف نه نازل شوی حکمونه شته. او نه په دوئ کښے د دے صلاحیت شته. چه د الله د حکمونه نور حکمونه را وَباسی. نو په دے کښے دے ته اشاره شوه، چه د کوم عالِم په حقله دا اطمینان حاصل شی، چه دے په قرآن او سنّت باندِ ښه پوهیږی، او ده ته د اجتهاد درجه هم حاصله ده چه کوم احکام په قرآن او سنّت کښے په صراحت سره ذکر نه دی هغه له هغے د قرآن او د سنّت د نصوصونه، د قیاس په ذریعے را وُخکلے شی، نو د داسے عالِم او مجتهد پیروی او تقلید کول روا دی. او دا، دے د پاره نهٔ، چه د ده حکم منل او هم د ده پیروی کول دی. بلکه دے د پاره، چه د الله پاک حکم منل دی او د الله پاک د حکم پیروی کول دی. لیکن هرکله چه مونږ ه براه راست د الله پاک د حکمونو واقف او خبریدلے نهٔ شو، نو په دے وجے د یو عالِم مجتهد پیروی کوُو چه د الله پاک په حکمونو باندِ عمل اُکړے شی.

له دے نه دا معلومه شوه چه کوم خلق مطلقاً د مجتهدانو د پیروئ کولو نه خلاف کوی، او دے د پاره دا رنګے آیاتونه دلیلونه کرځوی. هغوی دا دے آیاتونو په صحیح مطلب باندے پوهه شوی نه دی.

امام قرطبیؒ[1] د دے آیت په تفسیر کښے وائی چه په دے آیت کښے د پلارو نیکه د پیروئ کولو نه که منع کړے شوے ده. نو د هغے نه مراد دا دے، چه د پلارو نیکه په باطل عملونو او عقیدو کښے پیروی کول ناروا دی. په صحیح عقیدو، او په ښه عملونو کښے پیروی کول په دے آیت کښے داخل نهٔ دی. لکه چه د دے دواړو فرق، دَ حضرت یوسف علیه السلام په خبره کښے په سورت یوسف کښے په وضاحت سره راغلے دے.

إِنِّي تَرَكْتُ مِلَّةَ قَوْمٍ لَّا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَهُم بِالْآخِرَةِ هُمْ كَافِرُونَ ۝ وَاتَّبَعْتُ مِلَّةَ آبَائِي إِبْرَاهِيمَ وَإِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ[2] (ما د هغو خلقو ملت او مذهب پریښودے دے کوم چه په الله باندے ایمان نه لری او چه د آخرت نه منکر دی. او ما تابعداری کړیده دَ خپلو پلارانو. ابراهیمؑ، اسحاقؑ او یعقوبؑ.)

نو له دینه په ډاګه معلومه شوه، چه د پلارانو په باطله کښے، تقلید او پیروی کول حرام دی. او په حق کښے تقلید کول او پیروی کول روا، بلکه ښه کار دے.

امام قرطبیؒ د دے آیت په لمن کښے د مجتهدینو اماما نو د تقلید، او پیروی کولو په حقله مسائل بیان کړی دی. هغه وائی:

تَعَلَّقَ قَوْمٌ بِهٰذِهِ الْآيَةِ فِي ذَمِّ التَّقْلِيْدِ، وَهٰذَا فِي الْبَاطِلِ صَحِيْحٌ أَمَّا التَّقْلِيْدُ فِي الْحَقِّ فَأَصْلٌ مِّنْ أُصُوْلِ الدِّيْنِ وَعِصْمَةٌ مِّنْ عِصَمِ الْمُسْلِمِيْنَ يَلْجَأُ إِلَيْهَا الْجَاهِلُ الْمُقَصِّرُ عَنْ دَرْكِ النَّظَرِ (قرطبی ج ۲، ص ۱۹۴)

څه خلقو دا آیت د تقلید په بد والی کښے وړاندے کړے دے. دا خو د باطل په حقله صحیح دے. لیکن دَ حق په باره کښے، د دے آیت د تقلید سره څه تعلق نشته. په حق کښے تقلید او پیروی کول خو د دین دا صولونه یو اصل دے. او دَ مسلمانانو دَ دین دَ حفاظت دَ پاره یوه ډیره لویه ذریعه ده چه په کوم سړی کښے دَ اجتهاد صلاحیت نه وی، نو هغه دَ دین په معامله کښے په تقلید او پیروئ کولو باندے بروسه او تکیه کوی.

(۱) ج: ۲، ص: ۲۱۱ - (۲) یوسف: ۳۸ -

يَآيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا كُلُوْا مِنْ طَيِّبٰتِ مَا رَزَقْنٰكُمْ

اے ایمان دارو! خورئ پاکیزه څیزونه چه په رزق کښے درکړے دے مونږ ۀ

وَاشْكُرُوْا لِلّٰهِ اِنْ كُنْتُمْ اِيَّاهُ تَعْبُدُوْنَ ﴿۱۷۲﴾ اِنَّمَا

او شکر کوئ د الله پاک ګچرے تاسو هم دده بندګی کوئ ۔ هغه په تاسو

حَرَّمَ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةَ وَالدَّمَ وَلَحْمَ الْخِنْزِيْرِ وَ

باندِ حرام کړی دی مره ځناور او وینه ، او غوښه د خنزیر او په

مَآ اُهِلَّ بِهٖ لِغَيْرِ اللّٰهِ ۚ فَمَنِ اضْطُرَّ غَيْرَ بَاغٍ وَّ

کوم ځناور باندِ چه واخستے شی نوم د الله پاک نه سوا د بل ۔ بیا که څوک ډیر لاچار شی او نه خونا فرمانی

لَا عَادٍ فَلَآ اِثْمَ عَلَيْهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۱۷۳﴾

کوی او نه زیات ولے ، نو په هغه باندِ ګناه نشته ، بے شکه هم الله ډیر بښونکے ډیر مهربان دے ۔

## لنډ تفسیر :

مخکښے د پاکیزو څیزو نو د خوراک په باره کښے د مشرکانو غلطه عقیده او ښود ے شوه اُس په دے آیت کښے مؤمنانو ته د دے خبرے خبر داو ے ورکړے شوے دے ، چه دوئ دِ په دے غلطئ کښے د مشرکانو سره برابرے نه کوی ۔ او په دے ضمن کښے مومنانو ته دَ خپلو انعامونو ذکر کړے دے . او په دے انعامونو باندِ د شکر کولو تعلیم ئے هم ورکړے دے .

اے مؤمنانو ! (ځما له طرفه تاسو ته اجازت دے چه ) کوم (د شرع له مخه ) پاک څیزونه مونږ ه تاسو ته درکړی دی په د دئ کښے (کوم چه تاسو اُغواړئ ) خورئ (فائده ترِ نه اخلئ ) او (د دے اجازت سره دا حکم هم دے چه ) د الله پاک شکر او باسئ (په ژبه هم په لاس خپو هم او په اطاعت کولو هم ، او په زړه سره هم ، یعنی دا خیال او تصور کول چه دا نعمتونه د الله پاک له طرفه دی ) ګچرے تاسو خاص دده سره د غلامئ تعلق لرئ . (او دا تعلق څرګندا هر او منلے شوے دے ، نو د شکر واجبیدل هم ثابت شُو )

**نزول** : په اولنی آیت کښے د دے خبرے بیان وو چه حلال مه حرا مَوئ . او س دریمے

دا بيان دے چه حرام، حلال مه گڼئ، لکه چه څرنګے مشرکان په دے کښے اخته وو. مثلاً مُردار خُناور، يا بيو داسے خُناور چه هغه د الله پاک د نامے نه بغير په بلے نامے باندے ذبح کړے شوے وی. مشرکانو به داخوړو. نو له داسے کار نه منع اُشوه. په دے ترس کښے دا هم اُښودے شوه، چه کوم کوم خُناور د الله پاک په نزد حرام دی او له دے نه سوا، نور خُناور د خپل طرف حرامول غلط دی. او په داسے انداز بيان سره د مخکښنی مضمون تائيد هم اُشو.

الله پاک په تاسو باندِ صرف (هغه څيزونه) حرام کړی دی (او هغه څيزونه ئے حرام کړی نه دی چه کوم تاسو د خپل طرف نه حرام کوئ، لکه چه تير شو. يعنی) مُردار (خناور چه کوم بغير د شرعی ذبح نه مړشی) او وينه (چه بهيږی) او د خنزير غوښے، (او دا شانے د ده ټول اجزاؤ هم) او داسے خناور چه (په اراده دے د نږدے کيدو) د الله پاک د نامے نه سوا بله نامه پرے وئيلے شوی وی (دا ټول ئے بے شکه حرام کړی دی) بيا هم (په دے کښے ئے دومره آسانی کړے ده چه) کوم سړے (د لوږے نه ډير) بيتابه شی او په دے شرط چه نه (په خوړو لو کښے) د لذت اغستلو طلبګاروی او نه (د قدرِ ضرورت او حاجت نه) تجاوز کوونکے وی نو (په دے حالت کښے، له دے څيزونو په خوړلو کښے هم) په دے سړی باندِ څه ګناه نشته، واقعی الله پاک دے ډير بخونکے او مهربان (چه په داسے وخت کښے ئے دا رحمت اوکړو، چه د ګناه د څيزونو نه ئے هم ګناه لرے کړه)

## علوم او مسئلے

په دے آياتونو کښے، لکه چه څرنګے د حرام خوراک نه منع شوے ده. نو هم دغه رنګے د حلال څيزونو د خوراک، او هغے باندِ د شکر ادا کولو تلقين کړے شوے ده - او داځکه چه څرنګے په حرام خوراک سره، بد اخلاقی پيدا کيږی، د عبادت خوند ختميږی، او دُعا نه قبليږی، نو دغه رنګے د حلال خوراک نه بيو نُور پيدا کيږی، د خرابو اخلاقو نه نفرت، او ښو اخلاقو ته مينه پيدا کيږی. په عبادت کښے زړهٔ لګی. د ګناه نه زړهٔ ويريږی، دُعا قبليږی. دغه وجه ده، چه الله پاک، خپل ټولو پيغمبرانو ته دا هدايت کوی:-

يٰٓاَيُّهَا الرُّسُلُ كُلُوْا مِنَ الطَّيِّبٰتِ وَاعْمَلُوْا صَالِحًا ؕ[1] (اے پيغمبرانو، خورئ پاک

(۱) المؤمنون: ۵۱

څيزونه او بنه عملونه کوي -)

په دې کښې دې خبرې ته اشاره ده، چه په بنه کاروونو کو نوکښې دَ حلال رزق ډير زيات لاس دے - هم دغه شان په دُعا قبليدو کښې حلال خوراک ډير امداد کوي - او حرام خوراک دعا لره د قبليدو نه منع کوي - نبي کريم صلى الله عليه وسلّم فرمائي: "چه ډير داسې خلق دي چه هغوئ اُوږده اوږده سفرونه کړي وي، او ډير پريشانه حال وي - او الله تعالىٰ ته دُعا کولو د پاره خپل لاسونه اُوږده وي او دَ "يارب يارب" چغې وهي. ليکن خوراک دَ دوئ حرام وي، څښاک ئې حرام وي، لباس ئې حرام وي، نو په داسې حالت کښې کله دَ دوئ دُعا قبليدے شي؟" (ابن کثير[1])

اِنَّمَا حَرَّمَ . دَ اِنَّمَا لفظ د حصر د پاره راځي - نو په دې وجه دَ آيت مطلب دا شو، چه الله تعالىٰ هم هغه څيزونه حرام کړي دي چه د هغې بيان وړاندې راځي - او له دوئ نه سوا بل څه حرام نه دي - او دا خبره د "اِنَّمَا" د لفظ نه معلومه شوه. او په بل ځائې په يو بل آيت کښې په ډيره زياته صراحت او وضاحت سره هم راغلې ده:

قُلْ لَّآ اَجِدُ فِيْمَآ اُوْحِيَ اِلَيَّ مُحَرَّمًا عَلٰى طَاعِمٍ[2] الآية چه دې کښې حضرت رسول الله صلّى الله عليه وسلّم ته دا حکم کړے شوے دے. چه ته دا اعلان اُکړه. چه ما ته کومه وحي شوې ده. په هغې کښې د يو څو څيزونو نه سوا. چه د هغوي ذکر وړاندې کړے شوے دے، نور څه څيز حرام نه دے -

ليکن په دې باندې دا اشکال راځي، چه دَ قرآن په نورو آياتونو؛ او په احاديثو نبوي کښې، دې څو څيزونو نه علاوه، د نورو څيزونو حُرمت او حرام والے هم ثابت دے، نو دا حصر، يعنې د دې څيزونو نه علاوه، د نورو څيزونو د حرام والي، نيشتوالے څرنګ به درست شي -

د دې اشکال جواب دا دے، چه د لته د دې آيت کښې، د مطلق حلالو او حرامو بيان مقصد نهٔ دے، بلکه د دې خاصو څيزونو د حلال والي او حرام والي بيان مقصد دے، چه دوئ په باره کښې د مکې مشرکانو، دَ خپلو مشرکانه عقيده و په وجه به غلطيانې کولې - لکه دا خبره وړو مبنې آيت نه په وضاحت سره معلومه ده، چه دې مشرکانو به ډير حلال

(۱) ج: ۱، ص: ۳۶۰ (۲) الانعام: ۱۴۵

څناور حرام کړي ول. او يا به ئې په خپل ځان بانډې حرام کړي ول، نو په دغه آيت کښې د دې مخالفت اُ کړې شو. او د دې خبرې په مقابله کښې. په دې اوسنی آيت کښې، دا او ښودې شو، چه د الله پاک په نِزد فلانې، فلانې څناور حرام دي، چه دغه نه تاسو مشرکان ځنګ او ډډه نه کوئ. او چه کوم د الله پاک په نز د حلال دي د هغې نه تاسو ډډه کوئ.

خُلاصه دا شوه. چه دلته ئې کښې حصر، مطلق حصر نه دې. بلکه دا حصرِ اضافی او نسبتی دې. يعنې د مشرکانو د باطلو عقيدو په مقابله کښې دې.

د ذکيې په دې آيت کښې چه کوم څيزونه حرام کړې شوي دي. هغه څيزونه څلور دي. (۱) مرداره. (۲) وينه (۳) د خنزير غوښه (۴) هغه څناور چه په هغه بانډې د الله پاک د نامه نه سوا د بل چا نوُم اخستلې شوې وي. او د دغې څلورو څيزونو زياته تشريح، د قرآنِ کريم په نورو آياتونو. او صحيح حديثونو کښې راغلې ده. چه د هغې په دنړا ئيځ کښې، د دې څلورو څيزونو حکمونو تفصيل دا لاندې دې:

ميتته | چه دې ته په پښتو کښې، مُرداره وائي هغه څناور دې. چه د هغې د حلالولو دپاره د شرع د مخه ذبح کول ضروري دي. ليکن هغه د ذبح نه بغير، خپله مړ شو. يا ئې مړ ئې خپه کړې شي. يا څه بل طريقې سره مړ کړې شي. نو دغه څناور، مُردارا وحرام دې. ليکن د قرآن کريم د يو بل آيت "وَاُحِلَّ لَكُمْ صَيْدُ الْبَحْرِ"(۱) نه معلومه ده. چه د درياب څناور دپاره. ذبح کول شرط نه دي، هغه د ذبح نه بغير هم حلال دې. په دغې وجې په صحيح حديثونو کښې مَهۍ او مُلخ د ميتته نه جُدا کړې شوې. او حلال کړې شوې دې. رسُول کريم صلی الله عليه وسلّم فرمائي: مونږ دپاره دوه مړه (يعنې بغير د ذبح نه مړ) حلال کړې شوي دي. يو مَهۍ او دويم مُلخ، او دوه وينې حلالې کړې شوي دي (کليجې، اينه) او تورې. (ابن کثير)(۲)

هغه دومره خبره ده چه کوم کب مړ شي او اُ بوته په سر راشي هغه مردارا وحرام دې.(۳) (جصاص)

هم دغه شان د ښکار هغه څناور، چه هغه په قابو کښې نه راځي چه ذبح کړې شي، بکړې دغه څناور د بسم الله ويلو نه پس، په غشي يا په بل تيره څيز اُ ويشتلې شي) چه

(۱) المائدة: ۹۶. (۲) ج: ۱، ص: ۲۶۱. (۳) ج: ۱، ص: ۱۲۵.

هغې سره هغه زخمي شي، او د زخمي کېدو نه پس مړشي، نو دا خناور اګرچه ذبح شوې نه دې خو حلال دې.

مسئله: د توپک په ګولۍ چه کوم خناور زخمي شي او د ذبح نه وړاندې مړشي، نو هغه دا سې دې لکه چه په کاڼړي یا په لختې وهلو سره مړشي. او دې ته قرآن کریم کښې "مَوْقُوْذَةُ" ویلې شوي دي چه حرام دي. البته که چرې د مړ کېدو نه وړاندې وړاندې ذبح کړې شي، نو بیا حلال دې.

مسئله: ننَ صباد توپک څه ګولۍ څوکې دارې جوړې شوي دي. او دا سې ګولو په حقله بعضو عُلماء دا وائي، چه دا د غشي په حکم کښې داخلې دي. لیکن د عامو عالمانو په نزد دا هم د غشي په شانې نه دي. یعنې "جارحه" نه دي بلکه دا "خارِقه" دي یعنې د مارو د زور په وجه غوښه شلوي. پخپله کښې څه تیزوالې نشته چه خناور زخمي کړي، نو په دې وجه د دا سې ګولۍ ښکار هم بغیر د ذبح حلال نه دې.

مسئله:- په ذکرشوي آیت کښې "مَیْتَةُ" مطلقاً حرام کړې شوې ده. نو په دغه وجه چه څرنګ د دې غوښه خوړل حرام دي، د غه رنګ د دې خرڅول او آغستل هم حرام دي. او دا حکم د ټولو پلیتو څیزونو دې، چه د هغوی استعمال، خرید و فروخت، او له دوئ نفع آغستل حرام دي. تردې چه مُردار خناور، یا پلیت څیز په څه خناور د خوړول هم ناروا دي. هغه که چرې خناور ئې پخپله اُوخوري، نو باک نشته (جصاص[1]. قرطبي[2])

مسئله:- په دې آیت کښې د مَیتَة د حرام کېدو عام حکم دې، چه د ې کښې د مَیتَة ټول اجزاء شامل دي. لیکن په دویم آیت کښې د دې تشریح "عَلٰی طَاعِمٍ یَّطْعَمُهٗ"[3] په الفاظو سره کړې شوې ده. چه د هغې نه دا معلومیږي، چه د مُردار شوي خناور هغه اجزاء حرام دي چه هغه خوړې شي. نو په دې وجه د مردار شوي خناور هډوکي، او ویښته چه د خوراک څیزونه نه دي، پاک دي او د هغې استعمال روا دې. د قرآن کریم آیت "وَمِنْ اَصْوَافِهَا وَاَوْبَارِهَا وَاَشْعَارِهَا اَثَاثًا وَّمَتَاعًا اِلٰی حِیْنٍ"[4] کښې د د غنو خناورو د ویښتو نه مطلقاً فائده اغستل روا کړې دي او د ذبح شرط ورسره نشته (جصاص[5])

(۱) احکام القرآن ج ۱، ص ۱۳۵- (۲) ج: ۲، ۲۱۸- (۳) انعام: ۱۴۵-
(۴) النحل: ۸۰- (۵) احکام القرآن ج: ۱، ص ۱۴۰-

په خرمن باندې، هرکله چه وینه وغیره تورې پلیتي تګیدلې وي. نو په دې وجې د رنګ کولو نه وړاندې د هغې استعمالول روا نه دي، او د رنګ کولو نه پس د هغې استعمال روا دې. په صحیح حدیثونو کښې د دې زیات وضاحت شته دې. (جصاص)[1]

مسئله : د مردارشوي ځناور، وازده او د وازدې نه جوړ شوي څیزونه هم حرام دي. د هغې استعمال په بوټان هم روا نه دې. خرڅول او په بیعه ئې اخستل هم حرام دي.

مسئله : د یورپ وغیره نه چه کوم صابون وغیره څیزونه راځي کوم کښې چه وازده استعمالیږي، نو د دوی نه ډډه کول غوره دي. لیکن د استعمال ګنجائش پکښې ځکه شته چه دا خبره په یقین سره معلومه نه ده چه په دغه صابون کښې د مردارشوي یا د یو بل پلیت ځناور وازده شته دې. او بله وجه په پکښې دا هم ده، چه بعضو صحابو کرامو، لکه ابن عمر، ابو سعید خدري او ابو موسیٰ اشعري به صرف د مردارشوي ځناور وازده خوړل حرام ګڼړله. او د خوړلو نه علاوه نور استعمال به ئې نا روا نه ګڼړلو نو په دې وجه د دې خرڅول او اخستل ئې هم روا ګڼړل (جصاص)[2]

مسئله : له پیونه په پنیرجوړولو کښې یو څیز استعمالیږي، چه هغې ته په عربۍ ژبه کښې "انفحه" وئیلې شي. او دا د ځناور د خیټې نه راوخکلې شي. دا چه په پیوکښې واچولې شي. نو پئې کلک شي. او س کچرې دا ځناور د الله په نوم ذبح شوې وي. نو د دې په استعمالولو کښې څه حرج نشته، ځکه چه د ذبح شوي ځناور غوښه، وازده وغیره ټول حلال دي. لیکن کچرې دا څیز د داسې ځناور د خیټې نه واخستې شي چه هغه ذبح شوې نه وي. نو بیا په دې کښې د فقهاؤ اختلاف دې. امام ابو حنیفه او امام مالک دې ته پاک وائي. لیکن امام ابو یوسف او امام محمد او ثوري وغیره دې ته پلیت وائي. (جصاص[3]، قرطبي[4])

د یورپ او د نورو غیر اسلامي ملکونو نه چه کوم پنیر راځي. د دې په باره کښې د جمهورو فقهاؤ د رائې متعلق پرهیز کول پکار دي، ځکه چه احتمال شته چه

(۱) د غه مرجع اوګورئ : ۱۴۱ - (۲) د جصاص د کتاب احکام القرآن نه دا په ډاګه کیږي چه دا خبره د غه صحابه د هغو غوړو متعلق کوي په کوم کښې چه مړه مږې شي او د وازدې متعلق خو جصاص یو مستقل باب مقرر کړې دې چه د مردار وازدې نه نفع اخستل حرام دي. (۳) احکام القرآن ۲ ج : ۱، ص ۱۳۹ - (۴) ج : ۲، ص : ۲۲۰ -

په دے کښے به د مُردارشوی څناور او یا دَ یو بل غیر حلال څناور دغه غیز استعمال شوے وی۔ او ګنجائش پکښے هم په دے وجه شته چه امام ابوحنیفهؒ او امام مالکؒ دغه غیز ته پلیت نه وائی۔ البته دومره خبره ده، چه د یورپ نه بعضے داسے پنیر ونه هم راځی چه په هغے کښے د خنزیر وازده ګډه شوی وی۔ او په دې باندے دغه خبره یقینی شوی هم وی، نو دغه پنیر یقیناً حرام او پلیت دے۔

وینه | بل څیز چه په آیت کښے دَ هغے د حراموالی ذِکر دے۔ هغه وینه ده۔ دَ "دم" لفظ چه معنیٰ ئے وینه ده، په آیت کښے، اګرچه مطلقه ده، لیکن د سورة انعام په آیت کښے ورسره د مسفوح۔ یعنی د بهیدونکے شرط لګولے شوے دے۔ په دے وجه کلکه وینه لکه ایٔنه (کلیجی)۔ تورے وغیره پاک او حلال دی۔

مسئله: هرکله چه حرامه وینه صرف هغه وینه ده چه بهیږی، نو هغه وینه چه دَ ذبح نه ورستو غوښے سره نګیدلی وی، هغه پاکه ده۔ د فقهاوُ، صحابوُ، او تابعینو په دے خبره اتفاق (اجماع) دے۔ هم دغه شان د ماشی، چچ، او د کټملو وینه پلیته نه ده۔ البته دومره خبره ده چه زیاته شی۔ نو وینځل ئے پکار دی۔ (جصّاص)[1]

مسئله: څرنګ چه د وینے خوړل او څښکل حرام دی، هم دغه رنګ د دے دخوړلو او څکلو نه علاوه بهرنۍ استعمال ئے روا نه دے۔ او څرنګ چه د نورو ټولو پلیتو نه فائده اغستل او خرڅول او په بیعه آغستل روا نه دی۔ هم دغه رنګ وینه هم ده۔ ځکه چه په قرآن کښے مطلقاً وینه حرام شوے ده چه پکښے د استعمال ټول صورتونه شامل دی۔

**مریض ته دَ بل د وینے ورکولو مسئله** په دے مسئله کښے تحقیق دا دے، چه د بنیادم وینه د بنیادم جزء دے او چه د بدن نه اُوځی، نو پلیته هم ده۔ نو د دے اصلی تقاضا خو دا ده، چه د یو بنیادم وینه په بل بدن کښے د ننه کول۔ د دوو وجونه حرام دی۔ یو دا چه د بنیادم د اجزاوُ احترام واجب دے، او دا سے کول احترام سره منافی کار دے۔ دویم دا چه وینه سخته پلیتی ده۔ او د پلیتو څیزونو استعمال روا نه دے۔

لیکن دَ مجبورتیا په حالت کښے۔ او په عام وعلاجونو کښے، د اسلامی شریعت په آسانو کښے د غورا و فکر کولو نه پس دا لاندنۍ خبرے ثابتیږی۔

---

(۱) احکام القرآن ج: ۱، ص ۱۴۳۔

اول دا، چه وینه اګرچه د بنیادم جزء دے. لیکن دا د یو بل بنیادم بدن کښے منتقل کولو سره د بنیادم د اجزاؤ پریکولو ضرورت نه راځی. د ستنے په ذریعه وینه اوخکلے شی او په دوئیم بدن کښے اچولے شی. د دے مثال د پیو په شان شو، چه د بنیادم د بدن نه بغیر د پریکولو را پریکولو را اُوځی، او د دوئیم بنیادم جزء ګرځی. او اسلامی شریعت دَ ماشوم دَ ضرورت له وجے د بنیادم پئ ے دَ هغه خوراک مقرر کړے دے. او په مور باندے خپلو بچو ته پئ (رتے) ورکول ئے واجب کړی دی، ترڅو چه دا مور، د بچو دَ پلار په نکاح کښے وی. دَ طلاق نه پس مور په پیو (تی) ورکولو مجبوره کولے نه شی. بچو ته خوراک څکاک ورکول د پلار ذمه داری ده، چه هغه دے بچو ته، د یو بلے ځځے پئ (رتے) ورکوی. یا دغه مور ته څه عوض ورکړی چه هغه دے بچو ته پئ (رتے) ورکړی په قرآن کریم کښے دا په ډاګه ذکر دی:

" فَاِنْ اَرْضَعْنَ لَكُمْ فَاٰتُوْهُنَّ اُجُوْرَهُنَّ"[1] (کچیرے ستاسو طلاقے شوے ځځے ستاسو بچو ته پئ (رتے) ورکوی، نو هغوئ ته اُجرت او معاوضه ورکړئ)

خلاصه دا شوه چه ماشوما نو ته د پیو (تی) ورکولو اجازت د ضرورت په وجه ورکړ شوے دے، حالانکه دا دَ بل بنیادم (مور) جزء دے. او د علاج په طور، تو بیو ته هم دَ دے اجازت شته لکه چه په عالمګیری کښے دی:

وَلَا بَاْسَ بِاَنْ يَّسْعَطَ الرَّجُلُ بِلَبَنِ الْمَرْاَةِ وَيَشْرَبَهٗ لِلدَّوَاءِ[2] (په دے کښے څه باک او حرج نشته. چه د دارو په طور، یو سړے د زنانه پئ په پوزه کښے واچوی، یائے اوڅکی)

او د ابن قدامه په مُغنی کښے د دے مسٔلے تفصیل په دے بر بنه طریقے سره شوے دے (مُغنی کتاب الصید ج ۸، ص: ۶۰۲)

او س کچیرے وینه په پیو باندے قیاس کړے شی، نو دا د قیاس نه لرے خبره نه ده. ځکه چه پیئ هم، د وینے یو بل شکل دے. او دوا په د بنیادم د بدن اجزاء دی. فرق صرف دومره دے. چه پئ پاک دی، او وینه پلیته ده. نو د حرمت پر و مبنئ وجه، یعنی د بنیادم جزء کیدل د ممانعت دپاره وجه پاتے نه شوه. صِرف د پلیتئ معامله او خبره پاتے شوه، نو دَ علاج او د دارو په باب کښے بعضے فقهاؤ، د وینے د استعمال هم اجازت ورکړے دے.

(۱) الطلاق: ۶- (۲) ج: ۵، ص: ۳۵۵، چاپ مکتبه ماجدیه کوئټه ۱۳۹۸ھ-

نو په دے وجه د بنیادم و وینه په بل بدن کښے د منتقل کولو نه شرعی حکم دا معلوم شو، چه په عامو حالتو نو کښے خو روا نه دی. لیکن د مجبورئ په حالت کښے بغیر د شک نه روا دی. دَ مجبورئ د حالت نه مراد دا دے، چه د مریض ژوند په خطره کښے وی. او بل دارو، دده دَ ژوند بچ کولو دپاره مؤثر، یا موجُود نه وی. او په وینه ورکولو کښے دا غالبګمان وی، چه دده ژوند به بچ شی. نو په دے شرطونو سره، وینه ورکول، د دے قرآنی آیت له مخے روا شو، کوم کښے چه مجبور له د مردارے د خوړلو اجازت ورکړے شوے دے. او چرے د مجبورئ حالت نه وی، یا بو بل دارو کار کولے شی، نو په دا سے حالت کښے، بیا هم د فقهاؤ اختلاف دے، د بعضو په نزد روا دی. او د بعضو نورو په نزد نا روا دی. او د دے خبرے تفصیل د فقهے کتابونو کښے په باب "دارو په حرامو څیزونو سره کولو" ذکر شوے ځما هم یوه مستقله رساله په دے موضوع باندے شائع شوے ده، چه د هغے نوم دے "اعضائے انسانی کی پیوند کاری".

**دخنزیر حرام ولے** دریم څیز چه په آیت کښے حرام کړے شوے دے، هغه دخنزیر غوښه ده. په آیت کښے دَ خنزیر د حرام والی سره د "لحم" (غوښے) قید لګولے شوے دے. امام قرطبی وائی: چه له دے نه غرض دا خبره ده. چه د غوښے په کوته کول مقصود نه دی؛ بلکه دده ټول څیزونه هډوکی، څرمن، وینته، پلے وغیره ټول دَاُمّت په اجماع سره حرام دی. لیکن دَ "لحم" لفظ زیاتی کولو کښے د دے خبرے ته اشاره ده. چه خنزیر د نورو حرامو ځناورو په شان نه دے، چه هغه په ذبح کولو سره پاکیږی. اګرچه خوړل ئے حرام دی. ځکه چه دَ خنزیر غوښه په ذبح کولو سره هم نه پاکیږی. او خنزیر نجس العین (یعنی په اصل کښے پلیت) هم او حرام هم دے. صرف د څرمنے د ګنډلو دَ پاره دده د وینتو استعمال په حدیث کښے روا ښودلے شوے دے (قرطبی[1]، جصاص[2])

**مَآ اُهِلَّ بِهٖ لِغَيْرِ اللّٰهِ** څلورم څیز چه کوم په آیت کښے حرام کړے شوے دے، هغه ځناور دے، چه دالله پاک نه سوا د بل چا په نوُم مقرر کړے شوے وی. دَ دے درے شکله مشهور دی. اوّل دا، چه ځناور، د الله پاک نه سوا. دَ بل چا د نزدیکت او رضا حاصلو

(۱) ج: ۲، ص ۲۲۲، ۲۲۳. (۲) احکام القرآن ج: ۱، ص ۱۴۴. او حدیث ذکر دَ وینتو په باره کښے قرطبی کړے دے.

دپاره ذبح کړے شی۔ او د ذبح په وخت پرِ د دغه غیرالله نوم واخستے شی۔ دا شکل هم په اتفاق او اجماع سره حرام دے۔ او دا څنا ور مردار دے۔ دده د شه جزء نه نفع اخستل روا نه دی۔ ځکه چه دا صورت او شکل "وَمَا أُهِلَّ بِهٖ لِغَيْرِ اللّٰهِ" په ډاګه معنیٰ ده او په دے کښے د چا اختلاف نشته۔

دویم شکل او صورت دا دے چه یو څناور، دَغیرالله د نزدیکت او رضاحاصلولو دپاره ذبح کړے شی۔ یعنی د هغه د وینے تویولو غرض دا وی، چه دا غیرالله خوشحاله شی۔ لیکن دَ ذبح کولو په وخت کښے، په هغه باندِ دالله نوم واخستے شی۔ لکه چه ډیر ناخبره مسلمانان، د بزرګانو او پیرانو په نوم د هغوئ د رضاحاصلولو دپاره چیلئ، چرګه وغیره ذبح کوی۔ لیکن د ذبح په وخت کښے په هغے باندِ دالله پاک نوم آخلی، دا شکل هم په اتفاق د فقهاؤ حرام دے، او ذبح شوے څیز مُردار دے۔

لیکن دَ دلیل په راوستو کښے څه اختلاف شته۔ بعضے فقهاء او مفسرین دا هم د "مَا أُهِلَّ بِهٖ لِغَيْرِ اللّٰهِ" په ډاګه معنیٰ کښے شاملوی۔ لکه چه د بیضاوی په حاشیه کښے دی:
فَكُلُّ مَا نُوْدِيَ عَلَيْهِ بِغَيْرِ اِسْمِ اللّٰهِ فَهُوَ حَرَامٌ وَاِنْ ذُبِحَ بِاِسْمِ اللّٰهِ تَعَالٰى، حَيْثُ اَجْمَعَ الْعُلَمَاءُ، لَوْ اَنَّ مُسْلِمًا ذَبَحَ ذَبِيْحَةً، وَقَصَدَ بِذَبْحِهِ التَّقَرُّبَ اِلٰى غَيْرِ اللّٰهِ صَارَ مُرْتَدًّا وَّ ذَبِيْحَتُهٗ ذَبِيْحَةُ مُرْتَدٍّ۔[1] (هر هغه څناور، چه دَغیرالله په نوم مقرر کړے شی، هغه حرام دے۔ اګرچه د ذبح په وخت کښے دالله پاک نوم پرِ واخستے شی۔ په دے وجه دَعلماؤ اتفاق دے، چه کوم څناور د غیرالله د نزدیکت او رضاحاصلولو دَپاره چرے یو مسلمان ذبح کړی، نو دغه مسلمان مرتد شو او دا ذبیحه (حلال کړے څیز) دَ مُرتد ذبیحه شوه)

او هم دارنګ د درمختار په کتاب الذبائح کښے دی:
ذُبِحَ لِقُدُوْمِ الْاَمِيْرِ وَنَحْوِهٖ كَوَاحِدٍ مِّنَ الْعُظَمَاءِ يَحْرُمُ لِاَنَّهٗ اُهِلَّ بِهٖ لِغَيْرِ اللّٰهِ وَلَوْ ذُكِرَ اسْمُ اللّٰهِ۔[2]
وَاَقَرَّهُ الشَّامِيُّ ج ۵، ص ۲۱۴۔

د یو امیر یا د یو لوئ سړی په راتلو باندِ څناور ذبح کول، حرام دی، ځکه چه دا په

(۱) (۲) ج ۴، ص: ۴۵

مَا أُهِلَّ بِهٖ لِغَيْرِ اللّٰهِ کښې داخل دی. اګرچه دَ ذبح په وخت کښې د الله پاک نوم پرې اخستلے شی. او شامی د دې خبرې تائید کړے دے.)

او بعضو حضراتو، دا شکل او صورت، د مَا أُهِلَّ بِهٖ لِغَيْرِ اللّٰهِ صریح معنیٰ نه ده کړځولے. ځکه چه دا، د عربیت په حیثیت د تکلف نه خالی نه دے. لیکن په دے وجه چه علت د دے صورت او د ځنګښې صورت چه هغه د غیر الله د رضا حاصلولو نیت دے. یو دے نو په دے وجه دائے دَ مَا أُهِلَّ بِهٖ لِغَيْرِ اللّٰهِ سره لګولے دے او حرام کړے دے. او ځما په نیز د دغه وجه زیاته دَ احتیاط وجه ده.

او له دے نه سوا د دے صورت د حرمت د پاره یو مستقل آیت دلیل هم دے چه هغه " مَا ذُبِحَ عَلَى النُّصُبِ " دے. نُصُب هغه تو لو ګیزو نو ته وئیلے شی. چه د هغے په باطل طور باندے عبادت کیدے شی. معنیٰ ئے دا ده چه هغه ځناور حرام دی. چه هغه د باطلو معبودا نو د پاره ذبح کړے شوی وی. او دَ مَا ذُبِحَ عَلَى النُّصُبِ ځکښې دَ مَا أُهِلَّ بِهٖ لِغَيْرِ اللّٰهِ ذکر دے. نو معلومه شوه. چه دَ مَا أُهِلَّ بِهٖ لِغَيْرِ اللّٰهِ معنیٰ صریحه، هغه ځناور دے، چه په هغه باندِ د ذبح په وخت کښې د غیر الله نوم وا خستے شی. او ذُبِحَ عَلَى النُّصُبِ دده په مقابله کښې دے، چه په هغے کښې د ذبح په وخت کښې د غیر الله نوم نه دی آخستلے شوے. لیکن صرف دُ بتانو وغیره د خوشحالولو په نیت ذبح کړے شوی وی.

امام قرطبی په خپل تفسیر کښې د دغه خبره غوره کړے ده د هغه عبارت دا سے دے:

وَجَرَتْ عَادَةُ الْعَرَبِ بِالصِّيَاحِ بِاسْمِ الْمَقْصُوْدِ بِالذَّبِيْحَةِ، غَلَبَ ذٰلِكَ فِيْ اِسْتِعْمَالِهِمْ حَتّٰى عُبِّرَ بِهٖ عَنِ النِّيَّةِ الَّتِيْ هِيَ عِلَّةُ التَّحْرِيْمِ (تفسیر قرطبی ج ۲، ص ۲۰۷)

(د عربو عادت وُ چه د چا د پاره به ئے ذبح کوله، د ذبح په وخت کښے به ئے د هغه نوم په اوچت آواز آخستو. او دا رواج په دوئ کښې عام وُو تر دے پورے چه په دے آیت کښې دے، چه د غیر الله نزدیکت نه د أُهِلَّ په لفظ سره تعبیر اوکړے شو. کوم چه دَ حراموالی اصلی علت

قرطبی د دے خپل تحقیق بنیاد، د حضرت علی کرم الله وجهه، او د حضرت عائشه رض فتویٰ ګرځولے دے. دَ حضرت علی کرم الله وجهه په زمانه کښې د فرزدق شاعر، پلار غالب یو اُوښ ذبح کړے وُو. سره له دے چه هغه پرِ د غیر الله نوم نه وُو آخستے، لیکن حضرت علی کرم الله وجههٗ، دَ هغه دَ اِرادے او دَ قصد په وجه، چه هغه غیر الله دُ

په مَا اُهِلَّ بِهٖ لِغَيْرِ اللّٰهِ کښې داخل کړو او حرام ئې اُوګرځولو. او ټولو صحابو د دغه دا خبره قبوله کړه. همدغه رنګې د حضرت عائشې رض یو لوئ او بډ د حدیث دے چه د دغې په آخر کښې دا دے چه یو ښځې عائشې ته یو ښتنه اوکړه، چه ځمونږ ځه د پیو رشته دار عجمی خلق دی. او ډ دوی خو هره ورځ څه نه څه اختروی، او په دغه اختر و نو کښې څه تحفې مونږ ته رالیږی. آیا مونږ ه دا خوړے شُو او که نه؟ نو حضرت عائشې رض اوفرمائیل: اَمَّا مَا ذُبِحَ لِذٰلِكَ الْيَوْمِ فَلَا تَاْكُلُوْا وَلٰكِنْ كُلُوْا مِنْ اَشْجَارِهِمْ (تفسیر قرطبی ج:۲، ص: ۲۰۷) (کوم ځناور ددے اختر د ورځې د پاره چه ذبح شوی وی، نو هغه مه خورئ لیکن د دوی د ونو میوه وغیره خوړے شئ)

دا دهغه صورت او شکل بیان وُوکوم کښې چه د غیر الله رضا حاصلول مقصد وی، خو د ذبح په وخت کښې پرے د الله پاک نوم آخستلے شوے وی. نو دا صورت خو اول دعلت او وجې د حرمت د یو والی په وجه، چه "هغه نیت د غیر الله د رضا حاصلولو دے، دَ مَا اُهِلَّ بِهٖ لِغَيْرِ اللّٰهِ په حکم کښې دے. دوئیم صورت "د مَا ذُبِحَ عَلَى النُّصُبِ" معنیٰ ده. نو په دے وجه حرام دے.

دریم صورت او شکل دا دے، چه د یو ځاروی غوږ پریکړے شی، یا څه بله علامه پرِ اُولګوے شی دَ غیر الله دَ تعظیم او د رضا حاصلولو د پاره پریښو دے شیٰ چه نه خو ترِ بیا څهٔ کار آخلی، او نه ئې ذبح کوی. بلکه بیا د هغې ذبح کول حرام ګڼړئ نو دا سے ځاروے په مَا اُهِلَّ بِهٖ لِغَيْرِ اللّٰهِ او په مَا ذُبِحَ عَلَى النُّصُبِ" دوا پو کښې داخل نه دے. دا سے ځاوری ته بحِيْرَة یا سائبة وئیلے شی. او حکم ئې دا دے، چه دا کار د قرآن په نص سره حرام دے. چه دا به په آیت: مَاجَعَلَ اللّٰهُ مِنْۢ بَحِيْرَةٍ وَّلَا سَآئِبَةٍ"[۱] کښې انشاء الله تعالیٰ راشی.

لیکن دَ دوی دے حرام کار او ددے ځاوری په حرام ګڼړلو سره، دا ځاورے حرامیږی نهٔ بلکه دَ نورو عامو ځاورو په شان حلال دے.

او شرعی اصولو مطابق دا ځاروے دخپل مالک د ملکیت نه اُوځی. اګر چه هغه په خپله باطله عقیده کښې دا ګڼړی چه دے دده ملک نه وتلے دے او دغیر الله ملک ګرځیدلے دے.

(۱) المائده: ۱۰۳.

اوس کچرے دغه سړے پخپله دغه ښاروے، په ځایا نو ئے خرچ کړی، یا ئے ځایانه اُوبخښی نو دغه دپاره داښاروے حلال دے. لکه چه بعضے ناپوهه مسلمانان په بعضے مزارونو کښے داسے عمل کوی. چیلئ یا چرګه وغیره هلته پریږدی، او مجوَرانو ته اختیار ورکوی، چه هغوی داخرچ کړی، نو چه کوم خلق دغه ښاروی وغیره دَ دغه مجوَرانو نه واخلی، نو دَ هغې خرڅول آخستل او ذبح نه پس دَ هغه خوراک ټول روادی،

**دغیرالله په نوم منسُوبتَه،** دلته یوڅلورم صورت بل دے، چه د هغې تعلق دَ څناورو نه علاوه دنورو څیزونو سره هم دے. مثلاً خوږ، دیګ وغیره چه هغه دغیرالله په نوم د نذر په طور رهند وان دَ څپلو بُتانو په نوُم منی، یا ناپوهه مُسلمانان دَ بزرګانو د مزارونو په نوم منی. نو دغه صورت هم فقهاوُ، دَ تقرب الی الله دعلت په وجه دَ مَا اُهِلَّ بِهٖ لِغَیْرِ اللّٰهِ په حکم کښے شریکوی او حرام ورته وائی. دا مسئله دفقهې په کتابونو کښے په تفصیل سره ذکر ده۔

**دَ مجبُورئ حکمُونه** په آیتِ مذکوره کښے دڅلورو څیزونو دحرامولو نه پس یو استثنائی حکم ذکر دے فَمَنِ اضْطُرَّ غَیْرَ بَاغٍ (الآیة) په دے حکم کښے دومره آسانی شوے ده. چه کوم سړے دَ لوږے نه دِ مرګ تابه شی، او شرط دا دے چه دا سړے خونه په خوراک کښے د لذت حاصلولو طلب ګاروی، او نه دَ حاجت دَ قدر نه تجاوز کوُونکے وی، نو په داسے حالت کښے ده ته په دغه حراموڅیزونو خوړلو کښے څه ګناه نشته۔

او مُضطر یعنی مجبور د شرع په ژبه کښے هغه سړی ته ویلے شی، چه د هغه ژوند په خطر کښے وی. په معمولی تکلیف یا ضرورت سره مجبور نه شی ګڼلے. کچرے یو سړے لوږه کښے داسے حالت ته اورسیږی چه کچرے هغه څه اونه خوری، نو مړبه شی. نو دغه سړے مضطراو مجبور دے او ده له دغه حرام څیزونه خوړل روادی. خو د سره یو شرط بل داهم دے چه دحد نه تجاوز اُونه کړی.

**یوه اهمه فائده** دلته قرآن کریم، دمجبورئ په حالت کښے هم حرام څیزونه خوړل حلال بللی نه دی، بلکه لَا اِثْمَ عَلَیْهِ وئیلی دی، چه ددے مطلب دادے چه دا څیزونه اوس هم پخپل ځائے حرام دی. لیکن د دوئ خوړونکی ته، دمجبورتیا په وجه دَ حرامو داستعمال ګناه معاف کړے شوے ده. په حلالیدو. او په ګناه معاف کیدو کښے ډیر فرق دے.

کچرے د مجبورتیا په حالت کښے، د دے څیزونو حلال کیدل غرض وے، نو د حرمت نه صرف استثناء کول به کافی وُو. لیکن دلته دَ استثناء سره وَلَآ اِثْمَ عَلَيْهِ دَ لفظ اضافه دے خبرے ته اشاره شوه. چه حرام خو بخپل ځائے حرام دی او د هغے استعمال گناه ده لیکن د مجبوری نه دا گناه معاف کړے شوے ده۔

**د مجبورتیا په حالت کښے د حراموڅیزونو په طور د دارو استعمال**

دَ ذکرشوی آیت نه دا هم ثابته شوه، چه د کوم سړی ژوند په خطره کښے وی، نو هغه د ژوند بچ کولو د پاره، حرام څیزونه په طور د دارو استعمالولے شی. لیکن په هغه شرطونو چه کوم دَ آیت نه معلومیږی۔ اول دا، چه حالت د مجبورتیا وی، دَ ژوند خطره وی۔ د معمولی بیمارئ دا حکم نه دے۔ دوئیم دا، چه د حرامونه بغیر، څه بل څیز د علاج د پاره مُوثر نه وی۔ یا موجُود نه دی۔ دریم دا چه د دغه حرامو په استعمال سره دَ ژوند بچ کیدل یقینی وی۔ لکه چه د لوږے نه د مجبور ژوند، په یوے یا دوو نورو بچ کیدل یقینی وی۔ کچرے یو دارو داسے وی۔ چه دَ هغے استعمال فائده مند دی۔ لیکن هغے سره شفا موندل یقینی نه وی، نو د دغو حرامو دارو استعمالول د ذکرشوی آیت په استثنائی حکم کښے نه راځی۔ او ورسره هغه دوه شرطه هم دَ نظر لاندې وی چه کوم په دے آیت کښے ذکرشوی دی۔ چه د هغے د استعمال نه لذت حاصلول غرض نه وی، او د ضرورت د قدر نه زیات ئے استعمال نه کړی۔

د ذِکرشوی آیت د صراحت او اشارو نه چه کوم قیدونه او شرطونه راوُځی، نو په هغه قیدونو سره د هرے حرامے او ناپاکے دوائی استعمال چه څنګه وی، دامت په اتفاق سره روا دے د دغے قیدونو خلاصه پنځه څیزونه دی:

(۱) دا چه حالت د مجبُورتیا وی۔ (۲) څه حلال دوائی کوونکی یا موجود نه وی، (۳) په دے حرامو دارو سره د مرض لرے کیدل یقینی وی۔ (۴) د هغے استعمال د لذت د حاصلولو د پاره نه وی۔ (۵) دا چه د ضرورت د قدر نه زیات استعمال نه شی۔

**د غیر مجبورتیا په حالت کښے د عام علاج او د دارو د پاره د حرامو استعمال**

د مجبورتیا د حالت مسئله خو، په ذکر شوؤ شرطونو سره د قرآن د نص نه ثابته مسئله ده، او اِجماعی حکم دے۔ لیکن په عامو بیماریانو

کېن هم دغه ناپاکه یا حرامه دوائی استعمال جائز دے او که نه؟ په دے مسئله کښے، د فقهاؤ اختلاف دے۔ اکثر فقهاء دوائی، چه بغیر د مجبورتیا او د هغو شرطونو نه چه وړاندے ذکرشو۔ د حرامو دارو کانو استعمال روانه دے۔ ځکه چه په حدیث کښے دی: چه الله پاک مؤمنانو د پاره په حرامو کښے شفا ایښودے نۀ ده (بخاری شریف)

بعضے نور فقهاء، د یوے خاصے واقعے د حدیث نه دلیل نیسی او جائز ئے ګڼړی۔ او دا واقعه د عرنیینو واقعه ده، د حدیث په ټولو کتابونو کښے ذکر ده چه څۀ د کلی خلق نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته راغلل۔ چه د دوی مختلفے بیماری وے۔ نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم د اوښانو د پیو او د متیازو ختلو د استعمال اجازت ورکړو، چه په هغے سره دوی جوړ شو۔

لیکن په دے واقعه کښے ډیر احتمالونه دی، چه د هغے په وجه د حرام څیز استعمالول شکوک کیږی، نو په وجه اصل حکم خو دا دے چه په عام مرضونو کښے ترڅو چه د مجبورتیا ذکر شوی شرطونه موجود نۀ وی، تر هغے پورے د حرامو دارو استعمال روانه دے۔

لیکن متاخرینو فقهاؤ، په موجوده زمانه کښے، د حراموا و ناپاکو دارو کانو د ډیر والی او د عامے ابتلاء په وجه، او د عامو خلقو د کمزورتیا په وجه په دے شرط اجازت ورکړے دے، چه څه بله حلاله او پاکه دوائی، د دے مرض د پاره مؤثره . دی یا موجوده نۀ وی.

فِي الدُّرِّ الْمُخْتَارِ قُبَيْلَ فَصْلِ الْبِئْرِ، أُخْتُلِفَ فِي التَّدَاوِي بِالْمُحَرَّمِ، وَظَاهِرُ الْمَذْهَبِ الْمَنْعُ، كَمَا فِي رِضَاعِ الْبَحْرِ، وَلٰكِنْ نَقَلَ الْمُصَنِّفُ ثَمَّ وَ هٰهُنَا عَنِ الْحَاوِي قِيلَ يُرَخَّصُ إِذَا عُلِمَ فِيهِ الشِّفَاءُ وَلَمْ يُعْلَمْ دَوَاءٌ آخَرُ، كَمَا رُخِّصَ فِي الْخَمْرِ لِلْعَطْشَانِ، وَعَلَيْهِ الْفَتْوَى۔ (۱)

در مختار کښے د فصل بیر نه مخکښے ذکر دی، چه د حرامو څیزونو په استعمال کښے په طور د دارو سره، اختلاف دے او په ظاهر مذهب کښے د دے نه منع شوے ده لکه چه د بحرالرائق په کتاب الرضاع کښے ذکر دی۔ لیکن د تنویر الابصار مصنف په د غه ځائے کښے او (په رضاع کښے هم) د حاوی قدسی نه نقل کړی دی، چه بعضے علماء وائی، چه د حرامو څیزونو استعمال، د دارو په ډول حلال دے دا دی چه د دغو دارو په استعمال سره شفا یقینی وی، او بله حلاله دوائی دا کار کولے نۀ شی۔ لکه چه څرنګ د تږی د پاره، د شرابو د یو ګوټ کولو اجازت دے۔

او هم دغه رنګ خبره دعالمګیري په ۵ جلد، مخ ۳۵۵ کښې ذکر ده.

مسئله: په دې تفصيل سره د هغه دارو ګانو حکم معلوم شو، کوم چه د يورپ وغيره نه راځي، او پکښې د شرابو وغيره پليتو څيزونو ګډون معلوم او يقيني وي. او د هغو دارو ګانو حکم هم معلوم شو، چه په هغوی کښې د حرامو او ناپاکو څيزونو ګډون شکي وي.

إِنَّ الَّذِينَ يَكْتُمُونَ مَآ أَنزَلَ اللَّهُ مِنَ الْكِتَٰبِ وَ

بې شک چه کوم خلق پټوي، چه څه نازل کړي دي الله کتاب، او

يَشْتَرُونَ بِهِۦ ثَمَنًا قَلِيلًا ۙ أُو۟لَٰٓئِكَ مَا يَأْكُلُونَ فِى

اخلي په هغې بانديې بيعې، هغوی نه ډکوي خپله

بُطُونِهِمْ إِلَّا النَّارَ وَلَا يُكَلِّمُهُمُ اللَّهُ يَوْمَ الْقِيَٰمَةِ وَ

خيټه مګر په اور، او خبرې به نه کوي دوئ سره الله پاک د قيامت په ورځ

لَا يُزَكِّيهِمْ ۖ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿١٧٤﴾ أُو۟لَٰٓئِكَ الَّذِينَ

او نه به پاکوي دوئ. او دوئ د پاره دې عذاب دردناک. دا هغه کسان دي

اشْتَرَوُا۟ الضَّلَٰلَةَ بِالْهُدَىٰ وَالْعَذَابَ بِالْمَغْفِرَةِ ۚ

چه دوئ واخسته ګمراهي د هدايت په بدله، او عذاب د بخښنې په بدله کښې

فَمَآ أَصْبَرَهُمْ عَلَى النَّارِ ﴿١٧٥﴾ ذَٰلِكَ بِأَنَّ اللَّهَ نَزَّلَ

نو څومره صبر کوونکي دي په دوزخ بانديې؟ دا دې د پاره چه الله پاک نازل کړ

الْكِتَٰبَ بِالْحَقِّ ۗ وَإِنَّ الَّذِينَ اخْتَلَفُوا۟ فِى الْكِتَٰبِ لَفِى

کتاب د رښتونې. او چا چه اختلاف واچولو په کتاب کښې، نو دوئ

ع ۲۱ شِقَاقٍۭ بَعِيدٍ ﴿١٧٦﴾ ۵ ۹

په ضد کښې لرې تللي دي.

## لنډ تفسیر :

د دے نه وړاندِ د هغو حرامو څیزونو ذکر وُو چه کوم په سترګو ښکاری ـ او په دے آیاتونو کښے د هغو حرامو ذکر دے چه په سترګو نه ښکاری ـ بلکه هغه په ښکاره او په پټه دواړو کښے د شرعملونه دی ـ مثلاً د یهودو دَ عالمانو دا عادت وُو، چه د عامو خلقو نه به ئے رشوت واغستو، او د هغوئ د مطلب او مقصد مطابق فتوے به ئے ورکولے ـ او د تورات په آیاتونو کښے به ئے بد لون او تحریف د عوامو د مطلب مطابق کولو په دے خبره اُمتِ محمدیه ته هم آګاهی ده ـ چه د دلسے کارونو کولو نه ډه کوئ د څه نفسانی غرض د پاره، د حق احکامو په ظاهرولو کښے کوتاهی مه کوئ ـ

**د دین د خرڅولو سزا** | په دے کښے څه شک نشته چه کوم کسان دَ الله پاک د لیږ لی شوی کتاب (مضامین) پټوی او د دے (خیانت) په بدله کښے (دَ دنیا) لږ څیز اخلی، دا سے خلق نور څه نهٔ، خپلے خیټے دا اور (د سرو زرو ټکو) نه ډکوی او الله پاک به دوئ سره نهٔ په قیامت کښے (په مهربانئ سره) خبرے اُوکړی او نه (به ئے ګناه معاف کړی) د دوئ صفائی به اوکړی او د دوئ سزا به دردناکه وی ـ دا دا سے خلق دی چه دوئ (په دنیا کښے خو) هدایت پریښودو او ګمراهی ئے غوره کړله او (په آخرت کښے ئے) بخښنه پریښودله او عذاب ئے (په سر واغستو) نو (شاباسے د دے د دوئ همت له) دوزخ (ته تللو) د پاره څومره همت لری (او) دا (د ټولے ذکر شوے) سزا ګانے (د دوئ د پاره) په دے وجه دی چه الله پاک (د غه) کتاب درست درست لیږلے وو او کوم خلقو چه (دا سے درست درست لیږلی شوی) کتاب کښے لارے نوب (غوره) کړی نو ظاهره ده چه په ډیر لرے خلاف کولو کښے به (مبتلا) شی (او په دا سے خلاف کولو باندِ ضرور، دوئ به دَ سختو سزا ګانو حق دار شی ـ)

## علوم او مسئلے

1 مسئله : دَ آیت نه دا په ډاګه شوه چه کوم سړے د مال په لالچ کښے، یو شرعی حکم بدل کړی. هغه چه د غه حرام مال خوری، نو ګویا دے خپله خیټه د جهنم دَ اور نه ډکوی ـ ځکه چه د دے عمل انجام هم د غه څیز دے ـ او بعضے محقق عالمان وائی ـ چه حرام مال په حقیقت کښے د جهنم اور دے ـ اګرچه دده اور کیدل په دنیا کښے نه محسوسیږی. لیکن د مرګ نه پس

د ده دا عمل دا او د په شکل کښے به څرګند شی۔

لَيْسَ الْبِرَّ اَنْ تُوَلُّوْا وُجُوْهَكُمْ قِبَلَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ

نیکی دا څه نه ده، چه مخ کړئ خپل دمشرق په طرف یا د مغرب په طرف

وَلٰكِنَّ الْبِرَّ مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَالْمَلٰٓئِكَةِ

لیکن لویه نیکی خو دا ده چه څوک ایمان راوړی په الله پاک او د قیامت په ورځ او په فرښتو

وَالْكِتٰبِ وَالنَّبِيّٖنَ ۚ وَاٰتَى الْمَالَ عَلٰى حُبِّهٖ ذَوِى الْقُرْبٰى

او په ټولو کتابونو، او په پیغمبرانو، او ورکړی مال د هغې په محبت، خپلوانو ته

وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنَ وَابْنَ السَّبِيْلِ ۙ وَالسَّآئِلِيْنَ وَ

یتیمانو ته، او مسکینانو ته، او مسافرو ته، او غوښتونکو ته، او

فِى الرِّقَابِ ۚ وَاَقَامَ الصَّلٰوةَ وَاٰتَى الزَّكٰوةَ ۚ وَالْمُوْفُوْنَ

ستونو خلاصولو ته، او قائموی مونځ، او ورکوی زکات، او پوره کوونکی دی

بِعَهْدِهِمْ اِذَا عٰهَدُوْا ۚ وَالصّٰبِرِيْنَ فِى الْبَاْسَآءِ

د خپلے وعدے کله چه وعده اُوکړی۔ او صبر کوونکی وی په سختئ کښے

وَالضَّرَّآءِ وَحِيْنَ الْبَاْسِ ۗ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ صَدَقُوْا ۗ

او په تکلیف (مرض) کښے او د جګړے په وخت کښے، دغه خلق دی رښتونی

وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُتَّقُوْنَ ﴿۱۷۷﴾

او دغه خلق دی پرهیزګار۔

**ترون چه دَ بیان القرآن نه اخستلے شوے دے۔**

دَ سورت دشروع نه تر دے ځایه پورے تقریبًا دا د سورت نیم ده۔ د خبرے مخ تر ډیره حده پورے کافرو ته وو۔ ځکه چه دَ ټولو نه اوّل د قُرآن دَ حق کیدلو ثبوت اُکړے شو۔ په دے ترس

کښې ده دَ منونکو او نا منونکو ذکر اُکړے شو. بيا دَ توحيد او دَ رسالت ثبوت اُکړے شو. بيا دَ ابراهيم عليه السلام په اولاد باندِ دَ انعامونو او احسانونو بيان اُکړے شو- او دغه ځائے کښې د قبلے بحث هم اُچيړے شو، چه دا بيان د صفا او مروه په بحث باندِ ختم شو. بيا د توحيد د ثابتولو نه ورستو، د شِرک د جرړو او څانګو باطل والے بيان شو، چه تر دے ځائے پورے راغے. دے ټولو مضمونونو نه را په ډاګه شوه، چه منکرو ته زيا ته آګاهي ورکول دي. او په دے ضمن کښې که څه خطاب مسلمانانو ته اُشي نو دا بلـه خبره ده.

اوس په دواړو را تلونکو آيا تونو کښې چه دا د سورتِ بقره باقي نيمه حصه ده، تر زياته حده پورے پکښې مسلمانانو ته، د بعضے اصولو او څانګو تعليم ورکول دي. اګرچه ضمناً پکښې غير مسلمانانو ته هم څه خطاب شوے دے. او دا مضمون د سورت آخري حد پورے چليدلے دے. او د دے مضمون شروع په يو مجمل عنوان د "بِرّ" سره شوے ده. او "بِر" په عربئ ژبه کښې مطلق د خير کارونه وَيلے شي. چه پکښې ظاهري او باطني ټول د خير کارونه پراته دي. د دغه مضمون په ړومبنۍ آيت کښې په جامع الفاظو سره د کليا تو او د اصولو تعليم ورکړے شوے دے. چه ايمان بالکتاب، مال ورکول، وعده پوره کول. او په تکليف وغيره کښې صبر کول دي، دا دا سے کُليات او اُصول دي چه د وئ کښے دَ قرآن ټول حکمونه راغلي دي. ځکه چه د شريعت د ټولو حکمونو مغز د دے څيزونه دي. (۱) عقائد (۲) اعمال (۳) اخلاق. باقي ټول جزئيات د دے کليا تو دَ لاندِ داخل دي. او په دے آيت کښې د دے درے واړو قسمونو لوئ لوئ څانګے راغلي دي.

ورپسے د دے "بِرّ" تفصيل اُروان دے، چه په بعضے کښې پرحکمونه، د وخت او د مکان دَ تقاضے له مخه، بيان شوي دي. لکه قصاص، وصيّت، روژه، جهاد، حج، انفاق، حيض ايلاء، قسم، طلاق، نکاح، عدت، مهر، د جهاد او انفاق في سبيل الله دوباره ذکر، او بعضے معاملات، خرڅول، آخستل او شهادت شو. او بيائے سورة د رحمت او مغفرت د وعدے په زيري باندِ ختم کړے دے. سبحان الله! څومره قدرے بليغ ترتيب دے.

هرکله چه د دے مضمونونو مغز د بِرّ بيان دے. نو په دے وجه کړے د دے مجموعے ته د "اَبْوَابُ الْبِرّ" لقب ورکړے شي، نو ډير ښه او ښا ئسته به وي-

## لنډ تفسير:

**دَ "بِرّ" بابونه**

څه ټول کمال په دې کښې نه (دې راغلی) چه تاسو خپل مخ مشرق
ته کړئ یا مغرب ته (کوئ) لیکن (اصلی) کمال خو دا دے چه
یو سړے د الله تعالیٰ (په ذات او صفتونو باندې) یقین لری او (هم دغه شان) دَ
قیامت د ورځ (په راتلو) باندې (هم) او په فرښتو باندې (هم چه دوئ د الله پاک فرمان
بردارے بندګانے دی۔ د نُور نه جوړې دی، د ګناه نه پاکې دی، د خوراک، څکاک
او د انسانی شهوتونو نه پاکې دی) او (ټولو آسمانی) کتابونو باندې (هم) او (ټولو)
پیغمبرانو باندې (هم) او (دغه کس) مال ورکوی د الله پاک په مینه کښې (خپلو
حاجتمندو) خپلوانو ته او (بے ماله) یتیمانو ته (یعنی هغه بچو ته چه هغوئ نابالغ وی
او پلارئے مړ وی) او (نورو غریبو) محتاجانو ته (هم) او (بے خرڅه) مسافرو ته او
(د لاچارئ د وجے نه) سوال کوونکو ته او (د قیدیانو او غلامانو) په خلاصولو
کښے (هم مال لګوی) او (دغه کس) د مانځه پابندی (هم) لری او (مقرر شوے)
زکوٰة هُم اداکوی او کوم خلق (چه دے عقیده او عملونو سره دا اخلاق هم لری چه)
دَ خپلو وعدو پوره کوونکی وی کله چه (د یو روا کار) وعده اُوکړی او (دا صفت
خو په خصوصیت سره او وایم چه) دغه خلق (په دے موقعو کښے) مستقل (مزاجه) پاتے
کیدونکی وی (یو خو) په تنګ دستئ کښے او (دوئیم) په بیمارئ کښے او (دریم د کفارو
سره) په جنګ کښے (یعنے پریشانه او کم همته نه وی هم) دغه خلق دی چه رښتیا
(د کمال وُر) دی او دغه خلق دی (چه په رښتیا) متقیان دی

په دے کمالاتو کښے د دین یو کمال مونځ کول دی۔ او په مانځه کښے مخ کول یو
خاص طرف ته، دا د مانځه یو تابع څیز دے او شرط، ځان له مستقل کمال نه دے۔
کچرے مونځ نه وے، نو یو خاص طرف ته مخ کول به عبادت نه وے۔

## علوم او مسئلے

هر کله چه د مسلمانانو قبله د بیت المقدس نه ځائے بیت الله ته اُوګرځولے شوه نو
یهود، نصارا او مشرکان، چه په مسلمانانو کښے د عیب لټولو په کوشش کښے اخته ود

په شور او شغب شو، او قسما قسم اعتراضونه ئې په رسول الله صلی الله علیه وسلم او په اسلام باندې شروع کړل. چه د هغې جوابونه په روميو آياتونو کښې په ښه وضاحت او تفصيل سره ذکر شوي دي.

په دې آياتونو کښې چه اُس ذکر شُو، دغه بحث په يو خاص طريقې سره ختم کړې شو، چه دَ هغې مطلب دا دې، چه تا سو دين هُم په يوه خبره کښې را بند کړې دې. يعنې يو خاص طرف ته په مانځه کښې مخ کول، ګويا د شريعت او د دين بل څه حکم نشته.

او دا هم کيدې شي چه په آيت کښې خطاب يهودو، نصارئ او مسلمانانو ټولو ته دې او غرض او مطلب ئې دا دې، چه اصل "برّ" او نيکي د الله پاک په حکم منلو کښې ده، هغه چه کوم طرف ته د مخ کولو حکم اُکړي، هغه د ثواب او درست کار دې. چنپله يو طرف هم خواه که هغه مشرق يا مغرب وي يا يو بل طرف، څه اهميت نه لري او نه ثواب، بلکه ثواب په اصل کښې د حکم په منلو کښې دې. ترڅو چه د بيت المقدس په طرف د مخ کولو حکم وُو هغه د ثواب او د نيکئ کار وُو. او کله چه دَ بيت الله په طرف د مخ کولو حکم اُشو، نو اُس دا دَ ثواب او دَ نيکئ کار دې.

څرنګ دَ آياتونو د تيرو په لړ کښې دا خبره تيره شوې ده. چه له دې آيته نه د سورت بقره يو نوے باب شروع کيږي، اصل خبره مسلمانانو ته تعليم او هدايات ورکول دي. او مخالفينو ته ځړې څه خطاب وغيره شته. نو هغه ضمني خبر دې، نو په دې وجه دې آيت ته، د اسلامي حکمونو د پاره يو جامع آيت وئيلې شي.

په دې آيت کښې په اصولي طور سره، د ټولو شرعي حکمونو، د عقيدو، عبادتونو، معاملو او د اخلاقو اجمالي ذکر راغلې دې.

رومبئ خبر چه هغه عقيدې دي، دَ هغې ذکر په "مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ" کښې راغلې دې، دوېم خبر عبادات او معاملات دي، په دې کښې د عباداتو ذکر په اَقَامَ الصَّلٰوةَ وَاٰتَى الزَّكٰوةَ کښې راغلې دې. بيا د معاملاتو ذکر په وَالْمُوْفُوْنَ بِعَهْدِهِمْ سره کړې شوې دې. بيا د اخلاقو ذکر په "وَالصّٰبِرِيْنَ" سره کړې شوې دې. او په آخر کښې دا ښودلې شوي دي چه رښتوني مؤمنان هغه خلق دي، چه د دې ټولو حکمونو پيروي پوره کوي. او دغه حکمونو ته د تقوی شعار (نښه) وئيلې شي.

د دغ حکمونو په بيانولو کښې ډېرے بليغ اشارے دی. مثلاً د مال په نکولو کښې دَ عَلٰی حُبِّهٖ" قيد نکولے شوے دے چه په دے کښې درے احتمال دی. يو دا چه دَ حُبِّهٖ ضمير الله تعالٰی ته راجع شی. نو معنٰی به ئے دا سے شی، چه د مال په نکولو کښے نفسانی غرض او خواهش کښې نه وی. بلکه پوره اخلاص سره، يوازے د الله پاک سره د مينې په وجه دا مال نکوی

دويم دا احتمال کيدے شی. چه دا ضمير دَ مال په طرف راجع وی. نو معنٰی به ئے دا رنګ شی چه د الله تعالٰی په لار کښې هغه مال نکول کارِ ثواب دے، چه کوم مال بنيادم ته د پرخوښ وی. بے کاره څيزونه کوم چه د غورځولو قابل وی. د هغې په ورکولو کښې ثواب نه حاصليږی. اګرچه دَ غورځولو په مقابله کښې غوره خبره دا وی چه د چا په کار راشی، نو هغه ته ئے ورکړی.

دريم احتمال دا دے، چه دا ضمير د "اِيتَاء" په طرف راجع وی او "اِيتَاء" دَ اتٰی لفظ نه معلوميږی ځکه چه اِيتَاء د اٰتٰی مصدر دے، نو که دا رنګ شی. نو معنٰی به ئے دا سے شی چه هغه په خپل دے مال نکولو کښې د زړه نه راضی او خوښ وی. دا سے نه وی چه مال خو نکوی. ليکن د ننه زړه ئے پر دے نکولو ډير يږی.

امام جصاص[1] وئيلی دی، چه ممکنه ده چه دا درے واړه څيزونه په مُراد کښې داخل وی، بيا دے ځائے کښې دَ مال خرڅ کولو دوه صورتونه (يعنی واجبی صدقه، او نفلی صدقه)[2] د زکوٰة نه علاوه وړاندې بيان کړے شو. او د زکوٰة بيان رُستو کړے شو. په دے کښې شايد دے خبرے ته اشاره وی. چه په عام طور سره، خلق په دے حقونو کښې غفلت او کوتاهی کوی. او صرف زکوٰة ادا کول کافی ګڼړی، نو چه بيان د زکوٰة دَ بيان نه وړاندې کړو، نو د دے اهميّت ته اشاره اُشوه او خلقو ته داښود نه اُشوه، چه له دے نه غافل کيږی مه. دا ډير اهم څيز دے.

مسئله: له دے نه دا خبره هم ثابته شوه، چه مالی فرض صرف په زکوٰة د زکوٰة سره نه پوره کيږی، د زکوٰة نه علاوه هم په ډيرځايونو کښې د مال نکول فرض او واجب کيږی (جصاص، قرطبی[3])

(۱) احکام القرآن ج: ۱، ص: ۱۵۲ - (۲) مترجم

نکه چه په هغه رشتنه دارانو بانډِ مال تکول واجب دی کوم چه د کتلو نه معذ ور دی . کچرې یو مسکین او غریب دلوږې نه یا د نغه بل حاجت دَ وجے د مرګ په غاړه ولاړ وی . او تا مخکښې خپل زکوٰت ادا کړے وی . نو په دے وخت کښې په دے مسکین او غریب بانډِ تاله مال تکول اودَ هغه ژوند باقی ساتل لازمی او فرض دی .

همدغه شان د ضرورت په ځائے کښې جُمات جوړول ، یا دینی تعلیم دپاره مدرسے جوړول د مال په فرائضو کښې داخل دی . فرق دومره دے ، چه د زکوٰة دپاره یو خاص قانون او قاعده ده ، چه د هغے مطابق په هر حالت کښې زکوٰت اداکول ضروری دی . او دا دویم قسم تکول د مال په لاره د الله تعالیٰ کښې په ضرورت او په حاجت بانډے موقوف دی . کوم ځائے کښې چه ضرورت د تکولو وی . هلته تکول فرض دی . او چرته چه ضرورت نه وی هلته تکول فرض نه دی . بلکه هسے بنه او د ثواب کار دے .

**فائده** کوم خلقو بانډِ چه مال تکول دی مثلاً ؛ ذوی القربیٰ ـ مساکین ، مسافر او سوال کوونکی ، او فقیر ، دا ټول ئے په یو انداز بیان کړل . بیائے " وَفِي الرِّقَابِ " کښې " فِي " په زیاتولو سره دے خبرے ته اشاره اُکړه . چه غلامانو ته په مال ورکولو کښې مقصد دا نه دے ، چه دوئ د مال مالکان شی ، بلکه مقصد دا دے چه دوئ د مالکانو نه واغستلے شی او آزاد دِ کړے شی ـ اوله دے نه پس د " اَقَامَ الصَّلٰوةَ وَاٰتَى الزَّكٰوةَ " ذکرهم په هغه طریقے راغے لکه چه څرنګ د نورو څیزونو وُو . وروستو چه هرکله دَ معاملاتو ذکرکول وُو نو په دے کښې د بیان طریقه ئے بدله کړه ـ په ځائے د ماضی دَ صیغے " وَالْمُوْفُوْنَ " د اِسم فاعل صیغه ئے راوړله په دے کښے دے خبرے ته اشاره اُشوه . چه د وعدے د پوره کولو عادت دِ په سړی کښے د همیش دَ پاره وی . اتفاقی طور سره کچرے یو سړے وعده پوره کړی ، نو دا خو هرکافر او فاجر هم کله کله کوی ، نو د دغه اتفاقی وعدے پوره کولو څه اعتبار نشته .

دغه شان د معاملاتو په باب کښې صرف د وعدے د پوره کولو ذکر اُکړے شو ، حکمه کچرے فکر اُکړے شی ، نو بیع ، شراء ، شرکت ، اجاره وغیره د ټولو معاملو روح او مغز د وعدے پوره کول دی .

هم دغه رنګ وروستو دَ اخلاقو ، یعنی د باطنی اعمالو ذکرکول وُو . په دے کښے

صرف صبر ذکر کړے شو. ځکه چه دَ صبر معنیٰ ده په نفس باندِ قابو موندل او دَ بدو نه بچ کول. کچرے فکر اُکړے شی، نو دَ ټولو باطنی اعمالو جرړے صبر دے. دَدے په ذریعه بنه اخلاق پیدا کیږی. او ددے په وجه د بدو اخلاقو نه خلاصے حاصلیږی.

د بیان په طریقه کښے یو بل بدلون د لته دا شوے دے چه د اَلْمُوْفُوْنَ په شان دلته کښے "وَالصّٰبِرُوْنَ" ئے اونه فرمائیل، بلکه وَالصّٰبِرِیْنَ ئے اُو فرمائیل. د تفسیر خاوندان وائی: چه دا نصب، یعنی (والصّابرین شکل) دَ مدح په وجے دے، چه مطلب ئے دا دے چه دلته کښے د مدح لفظ پټ دے او صابرین د هغه مفعول دے، یعنی په ټولو نیکوکارو خلقو کښے په خصوصیت سره د مدح قابل صابرین دی. ځکه چه صبر یو داسے صفت او قوت دے، چه دَ هغے په ذریعه په ټولو د پاسِ ذکر شوُو کارو نو کښے مدد اخستلے شی،

نو دغه شان په دے ذکر شوی آیت کښے د دین د ټولو شانګو اهمے جرړے راغلے او بلیغو اشارو سره، د هر یو د اهمیت د رجه هم معلومه شوه.

یٰۤاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا كُتِبَ عَلَیْكُمُ الْقِصَاصُ فِی

اے د ایمان خاوندانو! فرض شو په تاسو باندِ (قصاص) برابری کول په

الْقَتْلٰى ؕ اَلْحُرُّ بِالْحُرِّ وَالْعَبْدُ بِالْعَبْدِ وَالْاُنْثٰى بِالْاُنْثٰى ؕ

مقتولانو کښے، د آزاد بدله آزاد، او د غلام بدله غلام، او د ښځے بدله ښځه،

فَمَنْ عُفِیَ لَهٗ مِنْ اَخِیْهِ شَیْءٌ فَاتِّبَاعٌۢ بِالْمَعْرُوْفِ

بیا چا ته چه معاف کړے شی د هغه د رورله طرف نه هم، نو تابعداری کول پکار دی د دستور مطابق

وَاَدَآءٌ اِلَیْهِ بِاِحْسَانٍ ؕ ذٰلِكَ تَخْفِیْفٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ وَرَحْمَةٌ ؕ

او ادا کول پکار دی هغه ته په ښه طریقے سره، دا آسانی اُشوه ستاسو د ربّ له طرفه او مهربانی

فَمَنِ اعْتَدٰى بَعْدَ ذٰلِكَ فَلَهٗ عَذَابٌ اَلِیْمٌ ﴿۱۷۸﴾ وَ

بیا چه څوک زیاتے اُکړی دَدے فیصلے نه ورستو، نو د هغه دپاره دے عذاب دردناک. او

وَلَكُمْ فِي الْقِصَاصِ حَيٰوةٌ يّٰٓاُولِي الْاَلْبَابِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ ﴿۱۷۹﴾

او تاسو دپاره په قصاص کښې لوئے ژوند دے اے عاقلانو! دے دپاره چه تاسو بچ شئ.

## د آیاتونو تړون او لنډ تفسیر:

له دے نه وړاندې آیاتونو په تفسیر کښې، تاسو ته معلومه شوے ده، چه په دغو آیاتونو کښې په اجمالی طور سره، د نیکئ اصول ښودلے شوی دی. وروستو به د دے تفصیل راځی، چه دے ته "اَبْوَابُ الْبِرِّ" ویلے شی. نو اُس له دے آیاتونو نه د اَبْوَابُ الْبِرِّ دغه جزئی حکمونو بیان شروع کیږی، چه د حالاتو او واقعاتو په تبع بیان شوی دی.

## رومبے حکم قصاص

ای د ایمان خاوندانو! په تاسو باندې (قانون) قصاص فرض کړے شی (د قصدی قتل) د مقتولینو په باره کښې (یعنی هر) آزاد بنیادم د قتل کړے شی د هر بل) آزاد بنیادم په بدله کښې او (دغه شان هر) غلام (د دویم هر) غلام په بدله کښې او (دغه رنګ هره) ښځه (د بلې) ښځې په بدله کښې (اګرچه د قتل کوونکی د لوے درجے وی او مقتولین د وړے درجے وی. بیا د هم د قتولونه برا بر قصاص واخستلے شی، یعنی قاتل د د قتل په سزا کښې قتل کړے شی) هغه چه کوم (قاتل) ته د هغه د مقابل (د مقدمے) د طرف نه څه معافی او شی (مګر پوره مُعاف نه وی) نو (په دے سره د قتل د سزا نه خو به خلاص شی. لیکن د دِیَتْ او خُون بها په طور باندې د یو مال معینه حصه د قاتل په ذمه باندې به لازمه شی- نو په دغه وخت کښې د فریقینو په ذمه د دغو دوه څیزونو رعایت ضروری دے، د مقتول د وارث په ذمه خو) په معقول طور سره (د دے مال) مطالبه کول (چه قاتل زیات تنګ نه کړی) او (مدعا علیه یعنی د قاتل په ذمه) په ښه طریقے سره (د دے مال) دهٔ ته (مدعی ته) رسول (چه په مقدار کښې کمی اُنه کړی او بے وجهے پکښې ډیل اُنه کړی) دا (قانون د دِیت او عفوے) ستاسو د پروردګار له طرف نه (سزا کښې) آسانی ده او (شاهانه) مهربانی ده (که دا سے نه وی، نو بیا د قتل نه سوا بله سزا به وه) بیا کوم سړے د دے (قانون) د (مقرر کیدو نه) پس د زیاتئ کولو مرتکب شی (مثلاً په چا باندې په دروغه یا د اشتباه په وجه د قتل دعوی

اُو کړي. یا ئې معاف کړي او بیا د قتل پېروي اُکړي.) نو دوې سړي له (په آخرت کښې) به دردناک عذاب وي. او لے عاقلانو (په دے قانون) قصاص کښې ستاسو کُخا نو لویه بچ والے دے (ځکه چه د دے قانون ذویرے نه، د قتل کولو نه به ویریږي) نو ډیر ژوند به بچ شي) موږ ده امید کوو چه تاسو به (ذامن د دا سے قانون د خلاف کولو نه) پرهیز کوئ۔

## علوم او مسئلے

د قصاص لفظي معنی ده برابري۔ مطلب دا دے چه څومره ظلم چا په بل کړے وي نو دومره بدله آغستل د بل د پاره جائز او روا دي۔ او له دے نه زیاتے کول روا نه دي د قرآن مجید په آیت کښے او په دغه سورت کښے دد دے وضاحت دا سے راغلے دے:

فَاعْتَدُوا عَلَيْهِ بِمِثْلِ مَا اعْتَدٰى عَلَيْكُمْ[1] ۔ او د سورتِ نحل په آخري آیاتونو کښے: وَاِنْ عَاقَبْتُمْ فَعَاقِبُوْا بِمِثْلِ مَا عُوْقِبْتُمْ بِهٖ[2] هم دغه مضمون د پاره راغلے دے۔

نو په دے وجه د شرع په اصطلاح کښے قصاص دے ته وائي، چه د قتل کولو، او د زخمي کولو په سزا کښے برابري او یو وا ئے اُکړے شي۔

مسئله: قتلِ عمد (په قصد قتل) دے ته وائي، چه په اراده دا سپینے په وسله یا په یو دا سے څیز قتل اُکړے شي چه په هغے غوښه او څرمن پریکړے شي او وینه اُبهیږي۔ قصاص (یعني د ساه اُښکلو په بدل کښے ساه اُښکل) د دا سے قتل د پاره سزا ده۔

مسئله: په دا سے قتل کښے لکه چه آزاد بنیادم، د آزاد په بدله کښے قتلولے شي نو دغه رنګے آزاد د غلام په بدله کښے هم قتلولے شي۔ او څرنګ چه ښځه د ښځے په بدله کښے وژلے شي نو دغه رنګ سړے هم د ښځے په بدله کښے وژلے شي۔

او په آیت کښے که د آزاد په بدله کښے آزاد، او د ښځے په مقابله کښے ښځه راغلے ده، دا د هغے خاصے واقعے په بنا ده، د کومے په باره کښے چه دا آیت نازل شوے دے۔

ابن کثیر[3] د ابن ابي حاتم په روایت نقل کړي دي، چه د اسلام د زمانے نه وړاندې د عربو په دوو قبیلو کښے جنګ اُشو۔ د دواړو طرفونو نه ډیر آزاد، او غلامان، او ښځے مړے شوے، لا تر اوسه د دے معاملے صفائي شوے نه وه، چه د اسلام زمانه شروع شوه

(۱) البقرة: ۱۹۴ - (۲) النحل: ۱۲۶ - (۳) ج: ۱، ص: ۳۶۸، ۳۶۹ -

او د ا د واړه قبیلې په اسلام کښې داخلې شوې - د اسلام راوړلو نه وړستو دخپلو خپلو قتل شوو خلقو په باره کښې دے دواړو قبیلو خبرې شروع کړې - نو یوې زورآورې قبیلې دا سے اووئیل ، چه مونږ تر هغه وخت نه راضي کیږو ، چه ترڅو مونږ ده دخپل غلام په بدله کښې ستاسو آزاد سړے او دښځې په مقابله کښې ستاسو سړے وژلے نه وی -

نو د دغه جاهلانه او ظالمانه مطالبې دَ ردکولو دَ پاره دا آیت نازل شو :

اَلۡحُرُّ بِالۡحُرِّ وَالۡعَبۡدُ بِالۡعَبۡدِ وَالۡاُنۡثٰی بِالۡاُنۡثٰی ، چه مطلب ئے د دغې مطالبې رَد کول وُو - په کومه کښې چه د غلام په بدله کښې آزاد ، او دښځې په مقابله کښې دسړی په قتل زور ورکولے شو - اګرچه په حقیقت کښې هغه قاتل نه وی - اسلام خپل دا عادلانه قانون نافذ کړو ، چه چا قتل کړے وی بس هغه دِ په قصاص کښې قتل کړے شی - کچرے ښځه قتل شوی وی . نو یو بے ګناه سړے دَ هغې په بدله کښې قتل کول یا یو بے ګناه آزاد سړے د غلام په بدل کښې قتلول ډیر لوئے ظلم دے چه اسلام دا هرګز برداشت کولے نه شی -

نو دے نه دا معلومه شوه ، چه دَ آیت حاصل او مطلب هم دا دے چه چا قتل کړے وی هم هغه دِ په قصاص کښې قتل کړے شی ، هغه ښځه وی او که غلام ، د قاتلے ښځې او غلام په ځائے دَ یو بے ګناه سړی یا د آزاد قتل کول روا نهٔ دی -

دَ آیت دا مطلب هرګز نه دے ، چه ښځې لره که یو سړے اُو وَژنی ، یا غلام لره یو آزاد قتل کړی ، نو د هغه نه به قصاص اغستلے نه شی - دَ قرآن شریف دد غه آیت په سر کښې چه کوم الفاظ " کُتِبَ عَلَیۡکُمُ الۡقِصَاصُ فِی الۡقَتۡلٰی " راغلی دی ، هغه دَ دغه عام والی واضح دلیل دے - او په نورو آیا تونو کښې لا دے نه هم زیات وضاحت راغلے دے - مثلاً : " اَلنَّفۡسُ بِالنَّفۡسِ [1] "

مسئله : کچرے په قصدی قتل (قتل عمد) کښې ، قاتل ته پوره معافی ورکړے شی - هغه مثلاً دا سے ، چه د قتل شوی سړی صرف دوه ضامن وی - او دواړو ضامنو خپل حق ورته معاف کړو - نو په دا سے صورت کښې په قاتل باندِ څه مطالبه پاتے نه شوه . او کچرے پوره معافی ورته اُنهٔ شوه - مثلاً په دے دوؤ ضامنو کښې یو خپل حق معاف کړ

(۱) المائدة : ۴۵ -

او بل معاف نه کړ و ـ نو د قصاص د سزا نه خو قاتل بری شو ـ لیکن کوم څوک چه ورته معافی نه ده کړې ـ هغه ته به نیم دیت ورکوی ـ او دیت په شریعت کښې سل اوښان، یا زر دیناره او یا لس زره درهم دی ـ او درهم د نن صبا په رائج قول سره تقریباً درې نیمې ماشې سپین زر کیږی، نو مکمل دیت کو یا دوه زره، نهه سوه شپاړس تولې او اته ماشې (۸-۲۹۱۶) کیږی ـ یعنی ۳۶ سیر ۴۶ تولې ۸ ماشې ـ

مسئله: لکه چه څرنګ په نا مکمله معافی کښې مال ورکول لازمیږی ـ هم دغه رنګ کچرې د فریقینو په مینځ کښې د مال په څه مقدار باندې صُلح اُشی، نو بیا هم قصاص ساقطیږی او مال لازمیږی ـ لیکن په دې کښې څه شرطونه دی، چه هغه د فقهې په کتابونو کښې ذکرشوی

مسئله: د قتل شوی سړی چه څومره میراث خواره دی، نو دوی په قصاص او دیت کښې هومره حصه دار دی چه څومره حصه ئې په میراث کښې رسیږی ـ کچرې دیت واخستلے شی نو دا به په میراث خور وکښې، د میراث د حصو مطابق تقسیم کړے شی ـ او کچرې دَ قصاص اغستلو فیصله اُشوه، نو د قصاص حق هم به په ټولو میراث خوروکښې شریک دی، لیکن هر کله چه قصاص کښې تقسیم راتللے نه شی، نو په دې وجه کچرې یو لږ غوندې حق لرونکی خپل د قصاص حق معاف کړو ـ نو دَ نورو وارثانو حق د قصاص هم معاف شو ـ البته دومره خبره ده چه دوی ته به د دیّت حساب دَ خپلې برخې مطابق حاصلیږی ـ

مسئله: د قصاص اغستلو حق اګرچه د قتل شوی د وارثانو دے ـ لیکن دَ اُمت په اجماع دوئ دا خپل حق پخپله نه شی اغستلے، چه هم پخپله قاتل مړ کړی ـ بلکه دَ مسلمانانو بادشاه، یا د هغه د نائب حکم کول ضروری دی ـ ځکه دا خبره چه قصاص په کوم صورت کښې واجبیږی او په کوم صورت کښې نهٔ، د دې جزئیات دومره باریک دی ـ چه هر سړے ئې معلومولے نهٔ شی ـ له دې نه علاوه دا خبره هم ده چه د مقتول خپلوان به دَ غصے نه مغلوب شی او زیاتی به اُکړی، نو په دې وجه دَ اُمت د علماؤ په دے اتفاق دے، چه دَ قصاص دَ حق اغستلو د پاره، اسلامی حکومت ته رجوع کول ضروری دی ـ (قرطبی)[1]

(۱) ج: ۲، ص: ۲۵۶ ـ

كُتِبَ عَلَيْكُمْ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ إِنْ تَرَكَ خَيْرًا

فرض کړے شو په تاسو باندے کله چه حاضرشي چا ته تاسو کښے مرګ په دے شرط چه پریږدي ځه مال

الْوَصِيَّةُ لِلْوَالِدَيْنِ وَالْأَقْرَبِينَ بِالْمَعْرُوفِ حَقًّا

وصیت کول د مور و پلار د پاره او خپلوانو د پاره په انصاف سره، دا حکم لازم دے

عَلَى الْمُتَّقِينَ ﴿۱۸۰﴾ فَمَنْ بَدَّلَهُ بَعْدَ مَا سَمِعَهُ فَإِنَّمَا

پرهیزګارانو باندے بیا چه چا بدل کړو وصیت پس د هغې نه چه ئے واورېدو، نو د

إِثْمُهُ عَلَى الَّذِينَ يُبَدِّلُونَهُ إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ

دے ګناه هم په هغه باندے ده چه چا بدل کړو، بیشکه الله پاک آورېدونکے

عَلِيمٌ ﴿۱۸۱﴾ فَمَنْ خَافَ مِنْ مُوصٍ جَنَفًا أَوْ إِثْمًا

او پوهېدونکے دے، بیا چه څوک اُویرېدو د وصیت کوونکی نه د طرفدارئ یا د ګناه، بیا ئے دوئ

فَأَصْلَحَ بَيْنَهُمْ فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَحِيمٌ ﴿۱۸۲﴾

په مینځ کښے صُلح ئے اوکړه، نو په ده باندے څه ګناه نشته، بے شکه الله ډیر بخښونکے ډیر مهربان دے۔

۲۲ ع

## د آیاتونو تړون او دلنډ تفسیر:

**د "ابواب البر" دوئم حکم وصیت**

وصیت هر هغه څیز ته وئیلے شي، چه د هغې کولو حکم اوکړے شي خواه کول ئے په ژوند کښے وي یاد مرګ نه پس. لیکن په عرف کښے هغه کار ته وائي، چه د هغې کول د مرګ نه پس وي۔

"خیر" په ډیرو معنو کښے استعمالیږي. یوه معنی ئے مال هم ده. لکه چه په قرآن کریم کښے دي: "وَإِنَّهُ لِحُبِّ الْخَيْرِ لَشَدِيدٌ"[۱] او دلته د مفسرینو په اتفاق سره، د خیر نه مراد مال دے۔

د اسلام په ړومبي دور کښے "تر څو چه د میراث شرعي حصے مقررے شوے نه وے، نو هر سړي پورے دا حکم وو چه د میراث په ذریعه حصه کښے مړکید ونکے د خپل مور او پلار

(۱) العادیات: ۸۔

د پاره او د نورو خپلوانو د پاره چه څومره بنه ګڼړی وصیّت اُکړی. د ومره قدر دے د دے خلقو حق وُو. باقی چه به څه پاتے کېدو هغه ټول به دَ اولاد حق وُو. په دے آیت کښے د غه حکم ذکر د ے یعنی :

په تاسو فرض کولے شی چه کله چا ته (د علاموته) مرګ نزدے ښکاره شی، په دے شرط چه څه مال په میراث کښے پرېږدی نو (خپل) مور پلار او (نورو) خپلوانو د پاره په معقوله طریقے سره (چه مجموعه ئے د یو درېیمے حصے نه زیاته نه شی) څه نه څه د اُښانی (د دے نوم وصیّت دے) څوک چه د خدائے نه وېرېږی د هغوی په ذمه دا ضروری (کول) دی بیا (کوم خلقو چه دغه وصیّت آورېدلے دے په هغوی کښے) چه کوم سړی دَ آورېدو نه پس (د) دَه (مضمون) بدل کړو (او په مینځ کښے دَ ویش او د فیصلے په وخت کښے غلط ئرکند کړی او په دغه فیصلے سره د چا حق ضائع شی) نو دَ د غې (حق ضائع کولو) ګناه به په هغو خلقو باندِ وی چه کوم د غه (مضمون) بدلوی. (د عدالت حاکم، یا ثالث او یا په مړکېدونکی باندِ به ګناه نه وی ځکه) چه الله تعالیٰ خو یقیناً آورېدونکے او پوهېدونکے دے (نو دَ بدلوونکی خبره هم آوری، او دَ ناخبره حاکم عُذر هم پېژنی) البته (د بدلولو د یو قسم اجازت هم شته هغه دا چه) کوم سړی ته د وصیّت کوونکی له طرفه (د وصیت په حقله) د څه غلطیٔ یا (قصداً دَ وصیت د قانون د یو د نې د خلاف کولو) د څه جرم کولو یقین شوے وی (او د دغه قاعدے وصیت له کبله د دے مړی د میراث خورو دَ جګړے خطره یا جنګېدل یقینی وی) بیا دا سړے په دوئ کښے مصالحت اُکړی (او مصالحت اګرچه د وصیت د مضمون نه برخلاف وی. چه دا په ظاهره کښے د وصیّت بدلول دی) نو په دے سړی باندِ څه (پېټے) دَګناه نشته (او) واقعی اِلله تعالیٰ خو (پخپله دَګناهونو) معاف کوونکے دے او (په ګنهګارانو) رحم کوونکے دے (او دے سړی خو څه ګناه نه ده کړے. ځکه چه په وصیت کښے تبدیلی دا صلاح د پاره کړے ده، نو په ده به رحمت ولے نه وی)

## علوم او مسئلے

په دے آیت کښے هغه مړکېدونکی ته چه د هغه نه و رستو مال پاتے کېږی د وصیّت

کولو حکم شوے دے. او د دے حکم درے اجزاء دی. یو دا، چه د مړکېدونکی په میراث کښے د اولاد نه سوا د نورو وارثانو حصے مقررے نه دی. د دوی د برخو تعین به د مړکېدونکی د وصیت له مخه کیږی. دویم دا چه دا ئے خپلوانو د پاره په مړکېدونکی باندِ وصیت کول فرض دی. دریم دا، چه د مال د درېیمے حصے نه زیات وصیت کول روا نه دی.

په دے درے حکمونو کښے پُومبے حکم خو د اکثرو صحابؤ او تابعینو په نزد د میراث په آیت سره منسوخ شوے دے. ابن کثیر[1] د حضرت عبد الله بن عباس په روایت یو حدیث نقل کړے دے. چه دا حکم د میراث په آیت: لِلرِّجَالِ نَصِيبٌ مِّمَّا تَرَكَ[2] الایة سره منسوخ شوے دے. او دغه روایت "حاکم" صحیح ګرځولے دے.

او د حضرت عبد الله بن عباس په دویم روایت کښے د دے تفصیل دا دے، چه د میراث آیت د هغو خلقو د پاره وصیت کول منسوخ کړل، چه د چا په میراث کښے برخه ده. نور هغه رشته داران چه د کومو په میراث کښے برخه نشته. د هغوئ د پاره د وصیت کولو حکم اُس هم باقی دے. (جصاص[3]، قرطبی[4])

لیکن د اُمت په اتفاق (اجماع) سره دا خبره ظاهره ده، چه د کومو رشته دارانو د پاره په میراث کښے برخه نشته، هغوئ د پاره په مړی باندِ وصیت کول څه فرض او لازمی کار نه دے. نو په دے وجه د دوئ د پاره د وصیت کولو فرض کیدل هم منسوخ شو - صرف مستحب کیدل ئے پاتے شو. او هغه هم د ضرورت په شرط (جصاص[5]، قرطبی[6])

**دویم حکم د وصیت فرض کیدل -**

دا هم د امت په اجماع سره منسوخ دے. او د دے ناسخ هغه متواتر حدیث دے، چه د کښے اعلان رسول کریم صلی الله علیه وسلم د حجة الوداع په خطبه کښے تقریبًا د یو نیم لکو صحابؤ د وړاندِ کړے دے:

اِنَّ اللّٰهَ اَعْطٰى لِكُلِّ ذِىْ حَقٍّ حَقَّهٗ فَلَا وَصِيَّةَ لِوَارِثٍ - اَخْرَجَهُ التِّرْمِذِىُّ وَقَالَ هٰذَا حَدِيْثٌ حَسَنٌ صَحِيْحٌ،

الله تعالیٰ د هر حق خاوند ته د هغه حق ورکړے دے، نو په دے وجه اُس یو میراث خور د پاره وصیت کول روا نه دی -

دغه حدیث، د ابن عباس په روایت کښے په دے الفاظو سره راغلے دے:-

---

(۱) ج ۱، ص ۲۴۲ - (۲) النساء: ۷ - (۳) ج: ۱، ص ۱۹۲ - (۴) ج: ۲، ص ۲۶۳ -
(۵) ج: ۲، ص: ۲۶۳ - (۶) ج: ۱، ص: ۱۹۳ -

لَا وَصِيَّةَ لِوَارِثٍ اِلَّا اَنْ يُجِيْزَهُ الْوَرَثَةُ (دیو وارث دپاره وصیت کول ترهغه وخته روا نه دی ترڅو چه نور و باقي وارثانو د دے اجازت ورکړے نه وی) جصاص[1]
د حدیث حاصل دا دے چه الله تعالی د وارثانو حصے پخپله مقرر کړی دی. نو په دے وجه دے دپاره د وصیت کولو ضرورت پاتے نه شو. بلکه د وارث په حق کښے د وصیت کولو اجازت هم نشته. البته دومره خبره ده، کچرے نور وارثان د دے وصیت اجازت ورکړی، نو روا ده،
امام جصاص[2] وائی، چه د دے حدیث روایت د صحابو یو ډله کوی، او د اُمت فقهاؤ دا قبول کړے دے. نو په دے وجه دا حدیث په حکم کښے متواتر شو او د قرآن د آیت منسوخ کیدل پرے روا شو.
او امام قرطبی[3] وائی چه په دے خبره د اُمت د علماؤ اتفاق دے چه کله یو حکم د رسول کریم صلی الله علیه وسلم د ذاتے نه په یقیني طور سره معلوم شی، نو که خبر متواتر او مشهور، نو هغه بالکل د قرآن په حکم کښے دے. او هغه هم په حقیقت کښے د الله پاک حکم دے، نو په دے وجه په دا سے حدیث سره د قرآن د یو آیت منسوخ کیدل څه د شک خبره نه شی کیدے. بیا ئے وئیلی دی: چه دا حدیث اګرچه مونږ ته د خبر واحد په طریقه رسیدلے دے. لیکن سره له دے د حجة الوداع د لوئ لوئے جمع کښے یو لک نه زیات و صحابو په مخکښے دے اعلان کول. او په دے باندے د صحابو اجماع، دا خبره ښکاره کوی، چه دا حدیث د دغو حضراتو په نزد قطعی الثبوت دے. او کچرے د شک او شبهے ګنجائش وے. نو بیا ئے د دغے په وجه د قرآن کریم د حکم په پریښودلو اجماع نه کوله.

**دریم حکم چه وصیت د مال د دریمے حصے نه زیات روا نه دے**

دا هم د اُمت په اتفاق سره باقی دے. البته د وارثانو په اجازت سره، د دریمے حصے نه زیات، بلکه د ټول مال وصیت کول روا او قبول دی.

مسئله:- د ذکر شوی تفصیل نه معلومه شوه، چه د کومو وارثانو حصے په قرآن کریم

(۱) ج: ۱، ص: ۱۹۳- (۲) دغه مرجع او دغه ځے-
(۳) په قرطبی کښے دا ذکر نشته، چه د دے حدیث اعلان د حجة الوداع په ګڼه جمع د صحابو کښے کړے شوے دے، د دے خبرے ذکر جصاص کړے دے او کوری ج: ۱، ص: ۱۹۳-

کړے مقرر کړے شوې دی۔ هغوئ دپاره اُس وصیت کول واجب نه دی. بلکه د نورو وارثانو د اجازت نه بغیر روا هم نه دی . البته چه کوم خپلوان شرعی وارثان نه دی، هغوئ د پاره د وصیت کولو اجازت د دریمے حصے د مال پورے دے.

مسئله :- په دے آیت کښے د یو خاص وصیت کولو ذکر وو- چه مړکید ونکی به د خپل ورستو پاتے کید ونکی مال متعلق کولو، او چه منسوخ هُم شو. لیکن چه د کوم سړی په ذمه بانډې د نورو حقوق واجب وی- یا د هٔ سره د چا امانت پروت وی. نو په ده بانډې لازمه ده چه د دے حقوقو او امانتونو د ادا کولو وصیت اُکړی. نبی کریم صلی الله علیه وسلّم په یو حدیث کښے فرمائی : "چه د کوم سړی په ذمه بانډې د چا حقونه وی- په هغه بانډې دا سے درے شپے تیرے نهٔ شی، چه په هغے کښے د هٔ څخه د دغو حقونو د رکولو او اداکولو په حقله وصیت لیکلے نه وی۔

مسئله :- سړی ته چه د مال په دریمه برخه کښے د وصیت کولو حق ورکړے شوے دے هغه ته په خپل ژوند کښے دا حق هم حاصل دے، چه په دے وصیت کښے څه تبدیلی اُکړی یائے بالکل ختم کړی۔ (جصاص)

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ كُتِبَ عَلَيۡكُمُ ٱلصِّيَامُ كَمَا

اے د ایمان خاوندانو! فرض کړے شوه په تاسو روژه، لکه چه

كُتِبَ عَلَى ٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِكُمۡ لَعَلَّكُمۡ تَتَّقُونَ ۝١٨٣

فرض کړے شوے وه له تاسو نه په وړاندے خلقو، دے دپاره چه تاسو پرهیز کاران شئ۔

أَيَّامٗا مَّعۡدُودَٰتٖۚ فَمَن كَانَ مِنكُم مَّرِيضًا أَوۡ عَلَىٰ

څو ورځے دی د شمار، بیا چه څوک تاسو کښے بیمار وی، او یا

سَفَرٖ فَعِدَّةٞ مِّنۡ أَيَّامٍ أُخَرَۚ وَعَلَى ٱلَّذِينَ يُطِيقُونَهُۥ

مسافر، نو په هغوئ بانډې د دے شمار دے د نورو ورځو نه. او د چا چه طاقت دے د روژے،

فِدْيَةٌ طَعَامُ مِسْكِيْنٍ ؕ فَمَنْ تَطَوَّعَ خَيْرًا فَهُوَ خَيْرٌ لَّهٗ ؕ

دهغوی په ذمه باندې بدله د يو فقير د ډوډۍ ورکول، بيا چه کوم کس په خوښه سره اوکړي نيکي، نو ښه ده د

وَاَنْ تَصُوْمُوْا خَيْرٌ لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ﴿۱۸۴﴾

دپاره - او روژه نيول خو ښه دي تاسو دپاره؛ کچرې تاسو پوهيږئ -

## لنډ تفسير:

دريم حکم روژه: اے د ايمان خاوندانو! په تاسو روژه فرض کړے شوه لکه چه څرنګې له تاسو نه وړاندے (د امتونو) په خلقو فرض کړے شوے وه - په دے اميد چه تاسو (د روژے په وجه د ورو) متقيان شئ ځکه چه د روژے نيولو په وجه د ډيرو تقاضو نه د نفس د بند ولو عادت به جوړېږي، او د دے عادت د پوخ والي بنياد تقوى ده نو) دلږ ورځو روژه نيسئ (د دے لږو ورځو نه مراد رمضان دے لکه چه وروستو آيت کښے راځي) بيا (په دے کښے هم دومره آساني ده چه) کوم سړے له تاسو نه (داسے) ناجوړه وى (چه هغه ته روژه نيول ګران وى. يا روژه نيول ورته ضرر کوي) يا (شرعي) سفر کښے وى نو (داسے سړى ته په رمضان کښے د روژے نه نيولو اجازت دے، او د رمضان په ځاے) د نورو ورځو (هم دومره) شمير (د اُکړي چه په هغې کښے روژه) لرل (په ده واجب) دى او (دويمه آساني، چه هغه بيا وروستو منسوخه شوه داده چه) کوم خلق د روژے ساتلو طاقت لري (او بيا د روژے ساتل ئے زړه نه غواړي نو) د دوى په ذمه (صرف د روژے) فديه (يعنى بدله) ده چه هغه يو غريب ته خوراک ورکول، يا خوړول) دى او کوم سړے چه په رضا سره (زيات) خير (خيرات) اُکړي، (چه فديه زياته ورکړي) نو داذے سړي دپاره نور هم غوره خبره ده او (اګرچه مونږ د آسانئ دپاره، په دغه حالتونو کښے، د روژے د نه نيولو اجازت ورکړے دے ليکن) ستاسو روژه نيول (په دغه حالت کښے هم) زيات ښه دى کچرے تاسو ته (څه د روژے د فضيلت) خبر وى -

## علوم او مسئلے

دصوم لفظي معنىٰ ده اِمساک يعنى بنديدل او پټ کيدل - او د شرع په ژبه کښے روژه،

دغو راک، څکاک او څښے سره د نږدیکت نه، د بندیدلو او دلرے کیدلو نوم دے. په دے
شوطچه دا، دَ صبا صادق نه شروع شی او د نمر دَ ډوبیدو پورے اُشی او ورسره نیت هم
د روژے وی، دغه وجه ده، چرے د نمر دَ ډوبیدو نه یو منټ وړاندِ هم څه اُخوړلے
یا اُشکلے شی، نو دا روژه اُونشوه. او هم دغه رنګے، چرے د دغه ټولو څیزونو نه، ټوله
ورځ پرهیز اُکړے شی، خو نیتَ دَ روژے نه وی، نو دا هم روژه نه ده.

روژه د اسلام د هغو عبادتونو نه یو عبادت دے، چه کوم د اسلام د پاره ستنے او
نیبے دی. د دے فضائل هم ډیر دی، خو دا ځائے د هغے د پاره نه دے.

### په ړومبنو اُمتونو کښے د روژے حکم

دَ روژے حکم مسلمانانو ته په یو خاص مثال سره ورکړے شوے دے. دحکم سره دا ویلے شوی دی،
چه دَدے روژو فرضیت څه تاسو پورے خاص نه دے. په ړومبنو اُمتونو باندِ هم روژے
فرض کړے شوے وے. په دے خبره د روژے خاص اهمیّت هم معلوم شو. او ورسره
دَ مسلمانانو دل جمعی هم اُشوه. او دا دے چه روژه اګرچه د مشقت څیز دے، لیکن
دا مشقت له تاسو نه وړاندِ اُمتونو هم اُوچت کړے دے. او دا یو طبعی خبره ده چه په
مشقت کښے خومره ډیر خلق شریک شی نو هومره دا مشقت آسان شی (روح المعانی)[1]

د قرآن کریم الفاظ: "اَلَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ" عام دی، دَ حضرت آدم علیه السلام نه
واخله تر حضرت محمّد صلی الله علیه وسلّم پورے شریعتونو او اُمتونو ته شامل دی،
نو معلومه شوه چه څرنګے د مانځه د عبادت نه، یو شریعت او امت تش نه دے پاتے شوے.
دغه رنګے روژه هم په هر شریعت کښے فرض راغلے ده.

اوکوم صاحبانو چه ویلی دی چه د "اَلَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ" نه مراد نصاری دی،
نو دا خبره د مثال په طور ده، له دینه د نورو امتونو نفی نه شی کیدے (روح المعانی)[2]

په آیت کښے خو صرف دومره قدر ښودلے شوی دی چه روژے څرنګے په مسلمانانو
فرض کړے شوے، په ړومبنو اُمتونو باندِ هم فرض کړے شوے وے. او له دے نه دا نه
لازمیږی چه د ړومبنو اُمتونو روژے دِ په ټولو حالتونو او صفتونو کښے دَ مسلمانانو د
روژو په شان وی. مثلاً د روژو شمیر او د روژو د وختونو تعیین او دا، چه په کومو

(۱) ج: ۲، ص: ۵۶. (۲) دا خبره نه په روح المعانی کښے شته او نه په روح البیان کښے شته.

درځو کښې دا نیولے شي. دا یو داسې څیز ونه دی چه په دې کښې اختلاف کیدے شي.
لکه داسې هم وه، چه په شپږ کښې به زیاتے اوکړے کیدو. او د روژې په درځو او وختونو
کښې فرق کیدو (روح المعانی)[1]

لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ کښې اشاره ده، چه دَ تقوٰی دَ صفت په حاصلولو کښې د روژې لوئے دخل دے. ځکه چه په روژې سره په سړی کښې دا ملکه پیدا کیږی چه دے بیا په خپلو خواهشاتو پابندی قابو لرلے شي. او د تقوٰی بنیاد هم دغه څیز دے.

**دَ مریض روژه** | فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَرِيْضًا. دَ مریض نه مراد هغه مریض دے، چه هغه ته په روژې نیولو کښې د برداشت کولو نه زیات تکلیف رسی یا دا چه ده ته دا قوی خطره وی که دے روژه اُنیسی نو مرض به ئے لا زیات شي. ورپسے راتلونکی آیت وَلَا يُرِيْدُ بِكُمُ الْعُسْرَ کښې دے خبرے ته اشاره ده. او جمهورو فقهاؤ دغه مسلک دے.

**دَ مسافر روژه** | اَوْ عَلٰى سَفَرٍ. دلته کښې دَ "مسافر" دلفظ په ځائے دَ اَوْ عَلٰى سَفَرٍ لفظ راوړلو کښې یو څو اهم مسئلو ته اشاره کړے شوے ده:

اول دا چه مطلقاً لغوی، سفر، یعني دَ خپل مُلک او وطن نه وتل د روژې نه ساتلو دپاره کافی نه دی، ترڅو چه دا سفر څه قدرے اوږد نه وی، ځکه چه دَ عَلٰى سَفَرٍ لفظ معنٰی داده چه دے په سفر سور وی. مطلب دا ئے دے چه مسافر دکور نه صرف دڅلورو پنځو میلو په مزل بهر نه وتلے وی. لیکن دَ سفر مقدار د قرآن په الفاظو کښې ذکر نه دے. امام اعظم ابوحنیفه او نورو ډیرو فقهاؤ دَ دے سفر مقدار دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم دبیان او دصحابوُ دعمل دمخې، درے منزله بنودلے دے. یعني دومره مسافت چه مسافر ئے په آسانئ سره په دریو ورځو کښې قطع کولے شي. او دا مسافت د ورستو زمانے فقهاؤ دَ میلونو په حساب اته څلویښت میله ښودلے دے.

دویمه مسئله د دغه لفظ "عَلٰى سَفَرٍ" نه دا اُووتله، چه مسافر ته دا اجازت تر هغه وخت پورے حاصل دے، ترڅو چه د هغه د سفر دغه سلسله جاری وی. او دا ظاهره خبره ده، چه دَ آرام کولو دپاره، یا دیو څه کار دپاره په یو ځائے کښې ایساریدل دَ سفر دغه سلسله نه قطع کوی، ترڅو چه دومره قدرے موده پورے ایساریدل اُنه شي،

(۱) ج: ۲، ص: ۵۶.

چه په کوم د سفر سلسله قطع کیږی. او دغه موده نبی کریم صلی الله علیه وسلم پنځلس ورځے بښودلے ده، یعنی چه یو سړے په یو ځائے کښے د سفر په دوران کښے د پنځلسو ورځو د پاتے کیدو نیت او اراده اُوکړی. نو بیا دا سړے "عَلٰی سَفَرٍ" نه دے. او په دے وجه د اجازت حق دار نه دے.

مسئله: له دے نه دا هم معلومه شوه چه کچرے یو سړے د پنځلسو ورځو پاتے کیدو نیت، په یو ځائے کښے اُ نه کړی. بلکه په ډیرو ځایونو او ښارونو کښے اُ کړی، نو دے لا د غسے مسافر دے او د اجازت حق دار دے، ځکه چه دے د "عَلٰی سَفَرٍ" په حالت کښے دے.

**د روژے قضا** | فَعِدَّةٌ مِّنْ اَيَّامٍ اُخَرَ. یعنی په مسافر او په مریض د خپلو قضا شوو روژو د شمیر برابر، نورو ورځو کښے روژے نیول واجب دی. او په دے الفاظو کښے د دے خبرے ښود نه کیږی، چه په مریض او مسافر د قضا شوو روژو قضا هله واجبه ده چه دوئ د سفر نه په واپس کیدو او د مرض نه په جوړیدو لو دومره وخت بیا موندلی چه په هغے کښے دوئ د دغو ورځو قضا کولے شی او کچرے د دومره ورځو وخت ئے بیا نه موندلو، یعنی د سفر نه په واپس کیدو لو سره یا د مرض نه په جوړیدو لو سره سم دستی مړشو نو په ده قضا لازمه نه ده. فائده ئے دا شوه چه په ده دا وصیت کول لازم نه دے. چه ځما له طرفه دِدَ دومره ورځو روژو فدیه ورکړے شي هرکله چه "فَعِدَّةٌ مِّنْ اَيَّامٍ اُخَرَ" د الفاظو نه دا مقصد ادا کول دی، نو په دے وجه دا محقق الفاظ د "فعلیه القضاء" پریښودے شو، ځکه چه په دے الفاظو کښے دے خبرے ته اشاره نه کیږی.

مسئله: هرکله چه په "فَعِدَّةٌ مِّنْ اَيَّامٍ اُخَرَ" کښے دا قید نشته، چه دا روژے دِ پرله پسے اُنیولے شی، یا بے ترتیبه، بلکه عام اختیار دے چه چا ته څرنګه آسانه وی هم هغه رنګه دِ اُنیسی. نو په دے وجه کچرے د یو سړی نه د رمضان په ومبئ لس روژے قضا شوې وی، هغه په قضا راوړلو کښے د لسمے او نهمے وړاندے قضا راوړله او د ومبنو ورځو قضائے ورستو راوړله، نو په داسے کولو کښے هیڅ حرج نشته، هم دغه رنګه کچرے د دغو ورځو قضائے پرله پسے راوُنه ړه. نو هم روا دی، ځکه چه په فَعِدَّةٌ مِّنْ اَيَّامٍ اُخَرَ کښے د داسے کولو ګنجائش شته.

**دَ روژے فدیه** | وَعَلَى الَّذِينَ يُطِيقُونَهُ : دَ دے آیت بے تکلیفه معنیٰ هغه ده چه کومه په لنډ تفسیر کښے تیره شوے ده، یعنی چه کوم خلق، د مسافر او د مریض په شان دَ روژے نیولو څه تکلیف نه لری، بلکه د نیولوئے طاقت لری. لیکن دغه وجے نه ذړه ئے روژه نیول نه غواړی، نو دوئ دپاره هم دا گنجائش دے، چه دوئ دِ د روژو په ځائے فدیه، د صدقے په شکل کښے وَرکړی۔ او ورسره ئے دومره هم اوفرمائیل: "وَاَنْ تَصُوْمُوْا خَيْرٌ لَّكُمْ" چه تاسو دپاره غوره خبره داده چه روژه اُونیسئ۔

دا حکم، دا سلام په شروع کښے وُو۔ یعنی هغه وخت کښے وُو چه کوم وخت کښے خلق ئے د روژے نیولو ته راارول۔ له دے نه وروستو دا حکم دَ عامو خلقو په حق کښے په راتلونکی آیت "مَنْ شَهِدَ مِنْكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ" سره منسوخ شو، صرف د هغو خلقو په حق کښے دا امّت په اجماع سره باقی پاتے شو، چه ډیر بوډاگان وی۔ (جصاص)[1] یا دائے بیماران وی چه د هغوی دجوړیدو اُمید پاتے نهٔ وی۔ دَ جمهورو صحابوُ او تابعینو هم دا وینا ده۔ (جصاص[2]، مظهری[3])

مسئله: په "عِدَّةٌ مِّنْ اَيَّامٍ اُخَرَ" کښے د پرله پسے یا که وو په دو دو ژو ساتلو څه قید نشته بلکه اختیار ورکړے شوے دے چه څوک دَ رمضان شریف دَ قضا شوو ړومبو روژو قضا په دے ډول راوُړی چه نهمه اولسمه رُوجے اُساتی او بیا ورپسے د نورو پاتے روژو قضا راوُړی۔ دا هم روا دی چه جُدا جُدا دَ دغه روژو قضا راوُړی۔

صحیح بخاری، مسلم، ابوداؤد، نسائی، ترمذی او طبرانی او نورو ټولو دَ حدیث اماما نو" دحضرت سلمه بن اکوعؓ نه نقل کړی دی چه څه وخت دا وَعَلَى الَّذِينَ يُطِيقُونَهُ آیت نازل شو نو موږ له اختیار راکړے شو چه دَ چا زړه غواړی نو روژه دِ اُساتی یا دِ دَ هرے روژے فدیه ورکړی او بیا دَ بل آیت مَنْ شَهِدَ مِنْكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ په نازلیدو سره دا اختیار واخستے شو او دَ روژے په توان لرونکو هُم روژه نیول مقرر شُو۔

دَ امام احمدؒ په مسند کښے دَ معاذ بن جبلؓ په یو اُوږد حدیث کښے راغلی دی۔ چه دَ اسلام په شروع کښے د مانځه او روژے دوا ړو معامله درے واره بدله شوے ده۔ دَ روژے معامله په دے ډول بدله شوه۔

---

(۱) ج: ۱، ص: ۲۰۶۔ (۲) ج: ۱، ص: ۲۰۷۔ (۳) ج: ۱، ص: ۱۹۲۔

(۱) دَ هجرت نه پس په هر یو میاشت کښې درے روژے او د عاشورے دَ ورځے روژه به حضور علیه السلام نیوله کُتِبَ عَلَیۡکُمُ الصِّیَامُ سره دَ رمضان شریف روژے نیول فرض شوے. ولے دَ اختیار دا حکم هر مُسلمان ته وو چه که غواړی نو دغه روژے دِ اُنیسی یا دِ دَ هرے روژے فدیه ورکړی. خو روژه نیول ئے غوره بُنه بنکاره کړل بیا دَ بل آیت "مَنۡ شَهِدَ مِنۡکُمُ الشَّهۡرَ فَلۡیَصُمۡهُ" په نازلیدو روغ جوړ او وَسمَن بنده هم په روژه نیولو پُرِ بنکاره کړے شو او یوائے هغه کسانو ته دا اختیار په ځائے پریښودے شو کوم چه ډیر بُوډا کان وی یا هغه رنځوران وی چه دَ هغوی دَ رغیدُ اُمید نشی کیدے.

دَ روژے مُعامله په دویم وار داسے بدله شوه چه په اول کښې دخوراک څښکاک او جماع اجازت صرف تر هغه وخت پورے وو چه دَ روژه ماتی (ماښام) نه پس به دوژنی اوده شوے نهٔ وو دَ ماښام نه پس په اُوده کیدو سره به بله روژه تر بل ماښام پورے بے اختیاره پخپله شروع شوه نو الله تعالیٰ دا آیت اُحِلَّ لَکُمۡ لَیۡلَةَ الصِّیَامِ الرَّفَثُ نازل کړو چه بتوله شپه دصبا دختونه روپے پورے دخوراک څښکاک وغیره آسانی ئے پکښے اُفرمائیله او دَ اوده کیدو نه پس پیښیدو کول سُنّت اُتاکلے شو. بخاری. مُسلم، ابُوداؤد کښے هم دا رنګ احادیث راغلی دی (ابن کثیر)[۱]

**دفدیے اندازه او دے سره تړلے مسئلے** دَ یو روژے فدیه نیم اُوګے (صاع) غنم یا د دے قیمت دے دَ اِتیا تولو تخمیني په رواجی سیر نیم اُوګے تقریبًا یا وُکم دوه سیره خیژی دَ بازاری قیمت نګولو په جوړ دا فقیر مسکین ته په دے دول ورکول دَ یو روژے فدیه جوړیږی چه هغه دَ دے مالک جوړ کړے شی او دَ مدرسے طُلبات یا دَ بل څه خدمت په بدل کښے نهٔ دی.

مسئله: دیو روژے فدیه په دوه کسانو تقسیمول یا دَ څو روژو فدیه یو کَس ته په یو تاریخ کښې ورکول روا نهٔ دی لکه چه د بحر په حواله دَ قُنیه نه چه شامی[۲] نقل کړی دی. او بیان القرآن هم دا نقل کړی دی. لیکن په امداد الفتاوی کښے حضرتؒ د دے دواړو صُورتونو دجواز فتویٰ نقل کړے ده لکه څنګه چه شامی هم نقل کړے ده. خو بیا هم په امداد الفتاوی کښے دی چه یو فدیے نه زیاته فدیه یو کَس ته په یو تاریخ کښې ورکول احتیاطًا پکار نهٔ دی که

(۱) ج: ۱، ص ۲۲۸ - (۲) ج: ۲، ص: ۱۳۰ -

ئے ورکړه نو روا به نه شی. دا فتویٰ دَ امداد الفتاویٰ ۱۳۵۳ھ دویم جلد په ۱۲۴مخ درج ده
مسئله: یخوے دَخدے ئے ورکولو وَس نه لري نو دغه کَس دِ بخښنه غواړی او دا اراده
دِ لري چه وَس مونډ لو سره به ئے ادا کوی (بیان القرآن)[1]

شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِیْٓ اُنْزِلَ فِیْهِ الْقُرْاٰنُ هُدًی لِّلنَّاسِ

میاشت دَه د رمضان کومه کښې چه نازل شو قرآن هدایت دے د پاره دَخلقو

وَبَیِّنٰتٍ مِّنَ الْهُدٰی وَالْفُرْقَانِ ۚ فَمَنْ شَهِدَ مِنْكُمُ

او د بیانونه دوښانه دَ لارمونډلو او حق لره دَ باطل نه دجُدا کولو. نو چه څوک بیاموي له تاسو

الشَّهْرَ فَلْیَصُمْهُ ؕ وَمَنْ كَانَ مَرِیْضًا اَوْ عَلٰی سَفَرٍ فَعِدَّةٌ

دا میاشت نو روژے دِ ساتی دَ. او چه څوک وی رنځور، یا مسافر نو دَ دے شمیر پوره کول

مِّنْ اَیَّامٍ اُخَرَ ؕ یُرِیْدُ اللّٰهُ بِكُمُ الْیُسْرَ وَلَا یُرِیْدُ بِكُمُ

پکار دی له نورو ورځو، الله غواړی په تاسو آسانی ، او نه غواړی په تاسو

الْعُسْرَ وَلِتُكْمِلُوا الْعِدَّةَ وَلِتُكَبِّرُوا اللّٰهَ عَلٰی مَا

سختی ، او دے له پاره چه تاسو پوره کړئ شمیر. او چه لوئ او کړئ دالله په دَخبره

هَدٰىكُمْ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿۱۸۵﴾

چه تاسو ته ئے هدایت اکړو، او دَے د پاره چه تاسو شکرګزاره شئ.

## (لنډه تفسیر او د آیتونو تړون)

**دَ روژے د ورځو ټاکل** ارشادِ الٰهی شوے وو چه ټاکلے روژے ساتئ اُس ددغ
لږو ورځو بیان دے (دغه لږے ورځے کومې کښې چه دَ روژے ساتلو حکم شوے دے) د رمضان
میاشت ده چه په دغه کښې (داسے برکت دے چه دَ دغے په یو خاص برخه یعنی شب قدر کښې) قرآن مجید
(د لوح محفوظ نه کوزنی آسمان ته) لیږلے شوے دے، چه دَ دغه (یو خوبی دا هم ده چه) دَخلق

(۱) ج: ۱، ص: ۱۱۳.

دَ پاره ذریعه دَ هدایت دے او (دویمه خوبي ئے داده چه د هدایت طریقو بنودلو کښے دَ هغے هره یوه برخه) ښکاره دلالت کوُونکی ده (او په دے دوا پو خوُبو کښے) دَ هغه (آسماني) کتابونو په پله کښے حساب دے (کوم چه دادوا په خوبئ لری یعني ذریعه) دَ هدایت (هم) دی او (د ښکاره دلالت کولو له کبله دَ حق او باطل په مینځ کښے) فیصله کوونکی (هُم) دی نو کوم کس چه په دے میاشت کښے موجود وی هغه له خامخا په دے کښے روژه نیول پکار دی (او وړاندے ذکرشوے دَ فدیے اجازت موقوف او منسوخ شو) او (رنځور او مسافر د پاره چه کوم مخکښے قانون وو نو هغه اُس هم هغه شان باقی دے) کوم کس چه (داسے) رنځور وی (چه په دے کښے د روژه نیول گران یا مُضِره وی) یا په (شرعی) سفر کښے وی نو (هغه ته په رمضان کښے دَ روژے نه ساتلو اجازت دے او د رمضان د ورځو په ځائے) د نورو ورځو (هومره) شمیر (د روژے پُوره) کول (په ده واجب دی) الله تعالیٰ ته تاسو سره (په احکامو کښے) آسانی (درکول) منظور دی (له دے خاطره ئے داسے احکام مقرر کړل کوم چه تاسو به آسانه پوُره کوے شئ لکه څنګه چه ئے په رنځ او سفر کښے آسان قانون مقرر کړو) او تاسو سره (په احکامو او قوانینو مقرر ولو کښے) سختی منظور نهٔ ده (چه سخت احکام ئے تجویز کړے وے) او (دا ذکرشوی احکام مُونږ دَ خاص خاص مصلحتونو په بنا مقرر کړل لکه اول دَ روژے نیولو او بیا په شرعی عُذر سره دَ روژے نه نیولو په صورت کښے په نورو ورځو کښے دَ دے دَ قضا راوړلو حکم ئے له دے وجے اُکړو) چه تاسو خلق دَ الله (تعالیٰ) لوئی (او ثناء) بیانوئ په دے چه تاسو ته ئے (یو داسے) طریقه اُښودله (چه په هغے سره تاسو د روژے دَ برکتونو او خوږ ونه بے نصیبه پاتے نه شئ ځکه چرے قضا راوړل واجب نهٔ وے نو چا به دوئم روژے نیوے او ثواب به ئے کټلو؟ او (دعُذر په وجه خاص په رمضان کښے دَ روژے نه ساتلو اجازت ئے په دے وجه ورکړو) چه تاسو خلق (دَ آسانئ په دے نعمت د الله تعالیٰ) شُکر کوئ (ګڅرے دا اجازت نهٔ وے نو ډیر تکلیف به وو)

# پوهے او مسئلے

په دے آیت کښے دَ ړومبی مُجمل آیت بیان هم دے او دَ رمضان شریف د میاشت دَ نورو والی ذکر هم دے. بیان په دے ډول دے چه په ړومبو آیتونو کښے دَ اَیَّامًا مَّعۡدُوۡدٰتٍ لفظ

مجمل دے نو په دے آیت کښے د هغے تشریح دا اُشوه چه دا د رمضان غونډے ورځے دی او دَ
غوره والی ذِکر دا رنګ اُشو چه الله تعالیٰ دَخپلو وحیو او آسمانی کتابونو نازلولو دپاره
هم دا میاشت غوره کړے ده چه پکښے قرآن هم نازل شو. په مسند احمدؒ کښے دَ واثلہ بن اسقع
نه روایت دے چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه د حضرت ابراهیم
علیه السلام صحیفے دَ دے (رمضان) په وړومبۍ نیټه، تورات په شپږمه، انجیل په دیارلسمه
او قرآن کریم په څلیریشتمه نیټه نازل شو. او دَ حضرت جابرؓ په روایت کښے دا هم دی چه
زبور په دولسم دَ رمضان او انجیل ئے په اتلسم نازل شو (ابن کثیر)[1]

فرق صرف دومره دے چه نور دا ټول آسمانی کتابونه دَ رمضان په دغه نیټو ټول په یوځل
په انبیاؤ نازل شوی دی صرف د قرآن کریم خصوصیت دے چه دا دَ رمضان شریف په
یو شپه کښے ټول په یوځل د لوح محفوظ نه وړومبی آسمان ته نازل شوځو په حضور علیه السلام
بیا په درویشت (۲۳) کاله کښے رو رو (برخه برخه) نازل شو.

دَ قرآن شریف دَ نازلیدو دغه شپه هم دَ قرآن شریف د تصریح له مخه اِنَّا اَنْزَلْنٰهُ
فِیْ لَیْلَةِ الْقَدْرِ[2] د تیرشوی حدیث په جوړ دَ رمضان څلیریشتمه جوړیږی. ځکه حسن بصریؒ
دَ رمضان څلیریشتمه شپه شب قدر ګڼړی که دا جوړښت اُنه مِنْهُ شی نو بیا هم دَ قرآن
شریف دَ تصریح نه انکار نشی کیدے چه قرآن په شب قدر کښے نازل شوے دے دا که د میاشتے
هره یوه نیټه اُګڼړے شی.

• "فَمَنْ شَهِدَ مِنْكُمُ الشَّهْرَ فَلْیَصُمْهُ" په دے یو جُمله کښے د روژے ډیرو احکامو
او مسئلو ته اشاره شوے ده. ځکه چه دَ "شَهِدَ" تکے له "شهود" نه جوړ دے چه معنیٰ ئے
حاضریدل او موجودیدل دی او دَ "اَلشَّهْرَ" معنیٰ میاشت ده او مطلب ئے دَ رمضان
میاشت ده ځکه چه وړاندِ ذکر ده نو دَ ټولے جُملے معنیٰ دا شوه چه څوک له تاسو په رمضان
کښے موجود او حاضر وی په هغه دَ رمضان دَ ټولے میاشتے روژے نیول فرض دی. نو په
تیرشوی بل آیت کښے دَ فدیے ورکولو عام اختیار په دے جُمله منسوخ شو.

په رمضان کښے د موجودیدو او حاضریدو مطلب دا دے چه هغه دِ دَ روژے ساتلو جوګه
دی یعنی مُسلمان، عاقل، بالغ، مقیم او روغ وی، نا روغه نه دی او دَ حیض نفاس نه دِ

۱. ج = ۱: ص ۳۸۰. ۲. القدر: ۱ -

پاک وی۔

څوک چه بتول رمضان کافر، نابالغ او لیونے پاتے شو او د روژے نیولو جوګه نهٔ وو نو دغه کَس د دے حکم لاندِ نهٔ راځی۔ مطلب دا چه د دغه رمضان روژے په دے کسانو فرض نهٔ دی او څوک چه د روژے نیولو خو جوګه دی مګر د عُذر (مثلاً حیض، نفاس، رنځورتیا یا د شرعی سفر) په وجه د روژے ساتلو نه پاتے راشی نو دغه کسان د دغه رمضان په روژے نهٔ نیولو ګناهګار نهٔ دی خو د دے قضاء راوړل پرِ ځکه فرض دی چه بنیادی طور دوئ د روژے نیولو جوګه دی او د آیت حکم لاندِ بے شکه راځی۔

مسئله: د دے آیت نه معلومه شوله چه د رمضان میاشت موندل د روژو فرض کید لو دپاره په دا سے حالت کښے شرط دی چه هغه د روژے ساتلو جوګه وی که چا د رمضان پوره میاشت په دا سے حالت کښے بیا موندله نو په هغه ټولے روژے فرض شوے او که چا کمه بیا موند له نو هومره روژے په هغه فرض شوے۔ بنا په دے ګڼرے یو کافر د رمضان په څه برخه کښے مسلمان شو یا نابالغ بالغ شو نو په دوئ باقی پاتے راتلونکے روژے فرض دی د تیرو شوؤ ورځونهٔ۔ یعنی د هغے قضا پرِ نشته خو بیا هم بالغ لیونے مسلمان چه د رمضان په هره برخه کښے روغ شو نو په هغه د تیرو شوو روژو قضا راوړل ځکه فرض دی چه هغه د بلوغ او اسلام په وجه بنیادی طور د روژے نیولو جوګه دے او هم دا حکم د حیض او نفاس والا ښځے دے کومه چه د رمضان په څه برخه کښے روغه شی او د هغه رنځور او مُسافر هم، کوم چه د رمضان په څه برخه کښے روغ او مُقیم شی۔

مسئله: د رمضان میاشت مُوندل په درے طریقو ثابتیږی۔ یځیله[1] د رمضان میاشت اُکوری، په معتبرے[2] ګواهئ میاشت لیدل ثابت شی یا دا دواړه نهٔ وی مګر د شعبان[3] د میاشت دیرش ورځے پوره شی۔

مسئله: د شعبان د یوکم دیرشمے ښځے پوره کیدو په ماښام ګڼرے رنځرے او دُوند په وجه د رمضان میاشت ښکاره نهٔ شی او نه د دے ګواهی ثابته شی نو راتلونکے ورځ د شک بللے شی او په دے ورځ روژه نیول فرض نهٔ بلکه مکروه ده ځکه چه په حدیث کښے د دے نه منع راغلے ده چه په فرضو او نفلو کښے ګډون او یو زنګوالے راننشی (جصاص)

مسئله: د کومو وطنو نو چه شپے ورځے په میاشتو اُوږدے وی هلته د رمضان میاشت

مُوندل شوکیدے نشی نوځکه دَ دغه ځائ په مسلمانانو روژے فرض نهٔ دی لکه چه حلوانی او قبالی حنفیانو دمانځه په باره کښے هم په دے فتوی ورکړے ده مطلب ئے دا دے چه دَ دے خلقو مونځونه به دَ دوئ دَ شپو ورځو په جوړوی مثلاً دَ کوم وطن صباچه ماښام پسے راخیژی نو هغه دماسخوتن مونځ فرض نهٔ دے (شامی)[1]

معلومیږی دا سے چه دَ شپې میا شتیږے ورځے مونځونه به هم نیځه وی او رمضان به هلته نهٔ وی. نو روژے نیول به هم نهٔ وی. حضرت حکیم الامت تهانوی په امداد الفتاویٰ کښے دَ روژے په باره کښے هم دا قول غوره کړے دے.

مَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَّرِيْضًا اَوْ عَلٰى سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِّنْ اَيَّامٍ اُخَرَ. په دے کښے رنځور او مسافر ته اجازت ورکړے شوے دے چه هغوئ دِ په دے وخت کښے روژه نهٔ ساتی چه روغ شی او مقیم شی نو دغه ورځو قضا دِ راوړی. دا حکم په وړومبی آیت کښے هم وو لیکن دَ روژے نیولو په ځائے دَ فدیے ورکولو دَ عام حکم په منسوخ کیدو دا شک کیدے شو چه دَ رنځور او مسافر اجازت هم منسوخ شوے وی نو دوئیم باره ئے ځکه اُو فرمائیل،

وَاِذَا سَاَلَكَ عِبَادِىْ عَنِّىْ فَاِنِّىْ قَرِيْبٌ ۭ اُجِيْبُ دَعْوَةَ

او کله چه تانه تپوس اوکړی څما بندګان څما نو څهٔ نزدے یم، قبلوم دُعا غوښتونکی دُعا

الدَّاعِ اِذَا دَعَانِ ۙ فَلْيَسْتَجِيْبُوْا لِىْ وَلْيُؤْمِنُوْا بِىْ

کله چه ما نه دُعا اُغواړی نو بکار دی چه هغه څما حکم اُمنی او یقین دا وَړی په ما

لَعَلَّهُمْ يَرْشُدُوْنَ ﴿۱۸۶﴾

د پاره دَدے چه په نیکه لار راشی دوئ

## لنډ تفسیر او دَ آیتونو تړون

په وړومبو درے آیتونو کښے د رمضان داحکامو او فضائلو ذکر وو او دے نه پس هم په یو اُوږده آیت کښے د روژے او اعتکاف داحکامو په تفصیل ذکر دے. په دے مینځنی لنډ

(۱) ج ۱: ص: ۲۶۶ -

آیت کښے د بندګانو په حال د الله تعالیٰ د خاص احسان او د دوی د دُعا کانو آورېدو او قبلولو په وجه دوی ته د احکامو د تابعدارئ شوق ورکړے شوے دے ځکه چه د اجازتونو او آسانتو ورکولو سره بیا هم د روژے په عبادت کښے څه قدر تکلیف او مشقت شته، نو د هغے برے کولو او آسانتو د پاره ئے د خپل خاص احسان ذکر دا سے اُوفرمائیلو چه څه چیلو بندګانو ته نږدے یم کله هُم چه هغوی دُعا غواړی نو څه د هغوی دُعا قبلوَم او د هغوی حاجتونه پوره کوم۔

په دے حالاتو کښے بنده له هم پکار دی چه څما د حکمونو په منلو کښے څه مشقت برداشت کړی — او امام ابن کثیرؒ[1] د دُعا د شوق ورکولو د دے مینځنئ جملے دا حکمت بنودلے دے چه په آیت کښے د دے خبرے ته اشاره ده چه د روژے نه پس دُعا قبلیږی له دے وجے د دُعا خاص خیال ساتل پکار دی۔ رسول الله صلی الله علیه وسلّم فرمائیلی دی۔

لِلصَّائِمِ عِنْدَ فِطْرِهٖ دَعْوَةٌ مُّسْتَجَابَةٌ (ابوداؤد طیالسی بروایت عبدالله بن عمر) | "یعنی د روژے ماتولو په وخت کښے د روژه دار و دُعا قبوله وی۔"

هم دا وجه ده چه حضرت عبد الله بن عمرؓ به د روژه ماتی په وخت ټول د کور خلق د دُعا کولو د پاره راجمع کول، د آیت تفسیر دا دے:

او را ے محمد صلی الله علیه وسلّم) څه وخت چه څما بندګان څما په باره کښے معلومول غواړی (چه څه دوی ته نږدے یم که لرے) نو (څما له طرفه هغوی ته اُوفرمایه چه) څه هم نږدے یم (او د نامناسب خواست نه بغیر) قبلوُم (هر) خواست د خواستګرچه هغه څما په حضور کښے خواست اُکړی نو (چه څنګه څه د هغوی خواست قبلوُم) هغوی له پکار دی چه احکام (په ځلے راؤړلو د پاره) قبلوی (او هر کله چه په دے احکامو کښے یو حکم هم نامناسب نه دے له دے وجے په دے کښے هیڅ استثناء نشی کیدے) او په ما یقین لری، (یعنی څما په هستئ هم څما په حاکمیت هم څما په حکیمیت هم او په رعایتونو او ښیګړو هم دا شان) اُمید دے چه د غه خلق به سمے (لارے) بیا موندے شی۔

مسئله: په اِنِّیْ قَرِیْبٌ کښے دے خبرے ته اشاره ده چه دُعا روا او پټه کول پکار ده په زوره دُعا کول ښه نه دی۔ ابن کثیرؒ[2] د دے آیت شانِ نزول هم دا سے ذکر

(۱) ج : ۱، ص ۲۸۷۔ (۲) پړومبئ مرجع مخ ۲۸۳۔

کړے دے چه چا کلی والو خلقو د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه تپوس اُکړو چه څومره
رب کچرے نزدے وی نو مونږ به دُعا په دوعوا پرو او کچرے مُونږ نه لرے وی نو په اُوچت
آواز به ئے بَلو. نو دد ے په جواب کښے دا آیت نازل شو۔

أُحِلَّ لَكُمْ لَيْلَةَ الصِّيَامِ الرَّفَثُ إِلَىٰ نِسَائِكُمْ ۚ هُنَّ

حلال شو تاسو ته د روژے په شپه کښے بے پردے کیدل خپلو ښځو ته ، هغوی

لِبَاسٌ لَّكُمْ وَأَنتُمْ لِبَاسٌ لَّهُنَّ ۗ عَلِمَ اللَّهُ أَنَّكُمْ

آغوستن دی ستاسو او تاسو آغوستن یئ د هغوی ، الله ته معلومه ده چه تاسو

كُنتُمْ تَخْتَانُونَ أَنفُسَكُمْ فَتَابَ عَلَيْكُمْ وَعَفَا عَنكُمْ ۖ

به خیانت کولو خپلو ځانونو سره نو تاسو ئے معاف کړئ او تاسو نه ئے درګذر اُکړو،

فَالْآنَ بَاشِرُوهُنَّ وَابْتَغُوا مَا كَتَبَ اللَّهُ لَكُمْ ۚ وَكُلُوا

نو بیا یو ځائے کیږئ خپلو ښځو سره او لټوئ هغه چه لیکلی دی الله ستاسو د پاره ، او خورئ

وَاشْرَبُوا حَتَّىٰ يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الْأَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ

او څکئ تر کومے چه صفا ښکاره شی تاسو ته کرښه سپینه

الْأَسْوَدِ مِنَ الْفَجْرِ ۖ ثُمَّ أَتِمُّوا الصِّيَامَ إِلَى اللَّيْلِ ۚ وَ

د صبا د کرښے تورے نه ، بیا پوره کوئ روژه تر شپے او

لَا تُبَاشِرُوهُنَّ وَأَنتُمْ عَاكِفُونَ فِي الْمَسَاجِدِ ۗ تِلْكَ

مه یو ځائے کیږئ ښځو سره تر کومے چه تاسو اعتکاف لرئ په جماتونو کښے ، دا ترلی شوی

حُدُودُ اللَّهِ فَلَا تَقْرَبُوهَا ۗ كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ آيَاتِهِ

پولی دی د الله نو تاسو دے ته نزدے مه ورځئ ، دا رنګ بیانوی الله خپل اَیتونه

لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ ﴿١٨٧﴾

خلقو د پاره د دے د پاره چه هغوی ځان ساتلے لری۔

## دَ تفسير لنډيز

په دے کښے دَ روژے دَ پاتے احکامو څه تفسير ذکر دے۔

ستاسو خلقو دپاره د روژے په شپه کښے خپلو بيبيانو سره مشغوليدل حلال کړے شو (او دپاندے چه کوم بنديز وو هغه معطل کړے شو) ځکه چه (د نزديکت او يوځائے کټ په وجه) هغوی ستاسو (په ځائے) د آغوستلو او ورپورے تړلو دی او تاسو دَ هغوی (په ځائے) دَ آغوستلو او ورپورے تړلو يئ خدائے تعالیٰ ته دَ دے خبر وو چه تاسو (په دے حکم الٰهی کښے) دَ خيانت (کولو) په ګناه کښے ځان مبتلا کولو (مګر) خير (چه بيا تاسو سره دَ معذرت نه په وړاندے راغلئ نو) الله تعالیٰ په تاسو احسان اُکړو او تاسو ئے دَ ګناه نه اُوبخښلئ نو (هر کله چه اجازت اُشو نو) نو اُس هغوی سره يوځائے کيږی او يوځائے کوئ او چه کوم (قانوُن د اجازت ئے) تاسو دَپاره تجويز کړے دے (بے تکلفه) دَ هغے سامان کوئ او (ځنګه چه دَ روژے په شپو کښے بی بی سره دَ يوځائے کيدو اجازت دے) دغه رنګ دا هم اجازت دے چه په ټوله شپه کښے کله چه غواړئ) خورئ (هم) او څښئ (هم) تر هغه وخته پورے چه تاسو ته سپينه ليکه دَ صبا (صادق د رڼا) صفا ښکاره شی دَ تورے ليکے نه (يعنی دَ شپے د تيارے نه) نو بيا (صبا صادق نه شپے (را تلو) پورے روژه پوُره کوئ۔

دصبا د سپينوالی دَ سپينے ليکے دَ شپے دَ تورو والی د تورے ليکے نه د فرق معلوميدو مطلب دا دے چه صبا صادق يقيناً ثابت شی۔

**پنځم حکم اعتکاف** (او د دے بيبيانو (دَ بدن) سره خپل بدن هم (په شهوت سره) يوځائے کيدو ته مه پريږدئ په کومو ورځو کښے چه تاسو خلق اعتکاف کوُونکی يئ (چه) په جماتونو کښے (کيږی) دا (مذکوره) ټول ذکر شوی احکام، خداوندی ضابطے دی نو دَ دے (ضابطو) نه (وتلو خوا ته) وتلو ته نږدے کيږئ هُم مه (او لکه ځنګه چه الله تعالیٰ دا احکام بيان کړی دی) دغه رنګ الله تعالیٰ خپل (نور) احکام (هم) دَ خلقو (دَ اِصلاح) دَپاره بيانوی په دے اُميد چه دا خلق (په احکامو خبر شی دَ دے دَ خلاف کولو نه) پرهيز کوی۔

## پوهے او مسئلے

دَ اُحِلَّ لَکُمۡ لفظ نه معلومه شوه چه کوم څيز دَ دے آيت په واسطه حلال کړے شوے دے۔

هغه دوی ته وړاندې حرام وو - د براء بن عازب په روایت په صحیح بخاری وغیره کښې ذکر دی چه د رمضان د روژو د فرض کید و په شروع کښې د روژه ماتي نه پس د خوراک څښاک او بیبیانو سره د یوځائې کید و صرف تر هغه وخته اجازت وو چه اُوده شوې به نه وه، هر کله به چه اُوده شو نو دا ټول څیزونه به تر بل روژه ماتي پورې حرام شو. څه صحابه کرامو ته په دې کښې ډیرې ګرانئ پیښې شوې - قیس بن صرمه انصاریؓ ټوله ورځ مزدوری کړې وه او د روژه ماتي په وخت چه کور ته راغلو نو په کور کښې د خوراک د پاره هیڅ نه وو، بي بي ورته اُووئیل چه څه څه انتظام کوم او دا د پر کله چه دا واپس راغله نو د ستومانتیا په وجه د هغه صحابي اُوده شوې وو چه بیدار شو نو خوراک پرې حرام شوې وو صبا له ئې بیا په نهره روژه اُساتله نو په غرمه کښې بې هوشه شو (ابن کثیرؒ) هم دا شان بعض صحابه کرام د اُوده کید و نه پس خپلو بیبیانو سره یوځائې شو نو ډیر پریشانه شو، نو دا آیت نازل شو چه پرې د و مبې حکم منسوخ شو او د نمر د و بید و (د روژه ماتي) د وخت نه تر صبا پورې ټوله شپه د خوراک څښاک او د جماع عام اجازت ورکړې شو اګر چه په دې دوران کښې اُوده شوې هم وي بلکه د اُوده کید و نه پس د پېشمني خوراک سنت اُوګڼلې شو او دا په حدیثو کښې په ښکاره ډول بیان شوې دې لکه څنګه چه په دې آیت کښې بیان شوې دي.

د رَفَث لفظي معنی دا ده چه یو سړې د خپلې بي بي سره د خواهش پوره کولو خبرې اُوکړي یا عمل کوي لیکن په اتفاق د اُمت سره عمل یعنی جماع مراد ده.

**د شرعي احکامو ثابتولو د پاره د رسول الله صلی الله علیه وسلم احادیث هم په حکم د قرآن کښې دي**

د آیت نه دا نه معلومیږي چه په دې د اُوده کید و نه پس د خوراک څښاک او د جماع د حرمت حکم منسوخ شوې دې بلکه د رسول الله په تعلیم سره صحابه کرامو په دې حکم عمل کولو، لکه څنګه چه امام احمدؒ په خپل مسند کښې روایت کړې دې)

په دې آیت کښې د ومبې حکم نه د حکم الهٰی نسخ ورکړې شو او بیا آسانتیا د پاره منسوخ کړې شو دې نه دا هم معلومه شوه چه په سنت سره بعض ثابت شوي احکام د قرآن په ذریعه هم منسوخ کولې شي. (جصاصؒ وغیره)

(۱) ج : ۱ ص: ۳۸۸ - (۲) په احکام القرآن کښې مولف دوسره خبره ده و منسخه به ما تقدم من الحظر یعنی په دې آیت د وړمبې ممانعت منسوخ شو او په قرطبي کښې دي: وَ ابْتَدَأَ وَ اَیْضًا عَلٰی اَنَّ السُّنَّةَ تُنْسَخُ بِالْقُرْاٰنِ او ماهران په قرآن سره د سنت د منسوخ کید و قائل دي.

### دَ پیشمنی دخوراک څکاک آخري وخت

"حَتّٰى يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الْاَبْيَضُ" په دے آیت کښے دَ صبا پیښوالی ته سپینه لیکه او دَ شپے توروالی ته توره لیکه وئیلو سره دَ روژے شروع کیدو او دَ خوراک څکاک دَ حرامیدو صحیح وخت ئے اُښا کلو او په دے کښے ئے دَ کمی زیاتی ختمولو دَ پاره دَ حَتّٰى يَتَبَيَّنَ لفظ زیات کړو مطلب ئے دا دے چه نه خو دَ وهمی خلقو په شان دَ صبا راختو نه ړومبے خوراک څکاک وغیره حرام ګڼړل پکار دی. او نه دَ بے پروائی دے حد ته رسیدل پکار دی چه دَ صبا په راختو ځان نا غرضه کړی او دَ صبا رڼا ښکاریدلو باوجود بیغمه خوراک څکاک کوی بلکه دا مینځو میانه لار اختیارول پکار دی چه دَ صبا صادق په یقینی کیدو سره خوراک څکاک بندول پکار دی. یعنی دَ صبا راختو نه وړاندې خوراک څکاک حرام ګڼړل هم ښۀ نۀ دی او دَ صبا راختو نه پس خوراک څکاک کول حرام او روژه ماتوونکی دی اګرچه یو منټ قدر هم وی خبره دَ یقین ده په دَ صبا راختل یقینی نۀ وی نو خوراک څکاک حرام ګڼړل ښه نۀ دی چه صبا راختل یقینی شو نو بیا خوراک څکاک کول حرام او روژه ماتوونکی شو. په صحابه کرامو دَ اتو رنګول درست نه دی چه دَ پاپه دے وینا چه صبا راختلے دے یو صحابی هم دغسے خوراک څکاک کولو ځکه چه دَ دغه صحابی پخپله دَ صبا راختو یقین نه وو راغلے نۀ چه دَ بل صحابی په وینائے یقین نۀ کولو بلکه دَ هغه وینائے په بے احتیاطئ بنا ګڼړله.

په یو حدیث کښے رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد فرمائیلی دی چه دَ حضرت بلال اذان دِ ستاسو دَ پیشمنی په خوراک څکاک کولو کښے مانع نۀ شی ځکه چه هغه په شپه کښے اذان کوی له دے وجے تاسو دَ بلال په اذان آوریدو دَ خوراک څکاک نه مه بندیږئ. ترڅو چه دَ ابن مکتوم اذان وانۀ وری. ځکه چه هغه تیک دَ صبا صادق په راختو اذان کوی (بخاری) دَ دے حدیث پوره نۀ نقل کولو په وجه څه موجوده علماؤ ته دا غلط فهمی شوے ده چه دَ صبا اذان نه پس هم څه شیبه خوراک څکاک کول څه باک نۀ لری او څوک چه نا وخته راویښ شو او دَ صبا اذان کیدو نو دے کس ته ئے روا کړله چه هغه زر زر څه اُخوری اُڅکی سره دَ دے چه حدیث په صفا ټکو کښے ښائی چه دَ ابن اُمّ مکتوم په اذان خوراک څکاک ځکه بندول ضروری دی چه دَه به دَ صبا په راختو اذان کولو دے نه علاوه قرآن پخپله کومه حد بندی چه کړے ده هغه دَ صبا صادق یقینی راختل دی چه دَ هغے نه رستو

یو منٹ د پاره هم دَ خوراک څکاک اجازت ورکول د قرآن دَ ښکاره بیان نه خلاف کول دي.
دَ صحابه کرامو او دَ اُمت پخوانو علماؤ نه په روژه ماتي او پیشمنی کښې دَ نرمۍ کولو روایتونه
دَ قرآن د دے ښکاره بیان په جوړ هم په دے بنا دي چه دَ صبا صادق دیقیني کیدو نه وړاندِ
دَ احتیاط په نوم ډیره تنګی دِ اُنکړے شي لکه چه ابن کثیرؒ هم دغه روایتونه په دے خبره
بِنا کړي دي که داسے نهٔ وے نو دَ قرآن دَ ښکاره بیان نه مخالفت کوم مسلمان نه غلطے شي، او
بیا دَ صحابهٔ کرامو له طرفه خو داسے کول په خیال کښے هم نهٔ راځي، خصوصًا په داسے وخت
کښې چه دَ آیت په آخر کښے ئے تِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ سره فَلَا تَقْرَبُوْهَا اُفرمائیل او دَ احتیاط
کولو خاص تائید ئے اُفرمائیلو.

مسئله: دا نوے خبرے دَ هغه چا په باره کښے دي کوم چه دَ صبا[1] صادق په خپلو سترګو
لیدلو سره یقین کولے شي. دَ صبا[2] راختو ځائے ورته صفا وي او بغوي[3] دَ صبا صادق پیښوالے
هم پیژني- داسے خلقو له ضروري دي چه دَ خپلو سترګو په کتلو دِ عمل اُکړي ګړے دے
درے داړو صُورتونو کښے یو هُم نهٔ وي نو هغه په نورو نخښو نښانو یا دَ ریاضي وغیره په
حساب کتاب وختونه تالی ښکاره خبره ده چه په دوی داسے وخت به هم راځي چه صبا
صادق کښے ورته شک وي نو په داسے حالت کښے جصاصؒ په احکام القرآن کښے فرمائي چه
په دے حال کښے اصلي خبره دا ده چه په خوراک څکاک دِ شروع نهٔ کوي او ګړے دَ یقین حاصلو
نه وړاندِ وړاندِ ئے خوراک څکاک اُوکړو نو ګناهګار خو نهٔ دے البته که بیا هم دغه صبار اختل
یقیني ثابت شُو نو دَ دغه روژے قضا راوَړل پرِ داسے فرض شُو لکه په دیرشم شعبان چه دَ رمضان
دَ میاشت نیته ثابته شي نو دَ بے خبرۍ په وجه په دغه ورځ روژه نهٔ نیوونکی ګناهګار خو نهٔ
دي مګر د دغې روژے قضاء پرِ فرض ده یا لکه دَ وریځے په ورځ په غلطۍ چه څوک دَ ماښام
نه وړاندِ روژه ماته کړي او بیا ثابته شي چه ماښام شوے نهٔ وو. نو دے ګناهګار نهٔ دے
خو دغه قضاء پرِ فرض ده- دَ امام جصاصؒ د دے بیان نه ثابته شوه چه دَ صبا راختو نه پس
راوِ پښید ونکی کس که بے تحقیقه خوراک څکاک اُکړو نو ګناهګار هُم دے او قضا پرِ هم فرض
ده او که شکمن وخت کښے ئے خوراک څکاک اُکړو نو ګناهګار خو به نهٔ شي لیکن قضا به پرِ
خامخا وي او په څه درجه کښے مکروه والے به هُم وي.

(۱) ج: ۱: مخ: ۳۹۲ - (۳) ج: ۱: مخ: ۲۷۱-

**اعتکاف** د اعتکاف معنیٰ په لغت کښې "چرته ټکاو یدل" دی او د قرآن او سُنت په اصطلاح کښې خاص شرائطو سره په جُومات کښې ټکاو یدو ته اعتکاف وئیلې شي "دَالْمَسَاجِدِ" دَعموم نه معلومیږي چه اعتکاف په هر جُومات کښې کیدے شي دَ فقهاؤ دا شرط نکول چه "اعتکاف یوائے دَجمع په جُومات کښې کیدے شي" په دے بِنا دي چه لفظ دَ "مسجد" هغه ځائے د پاره استعمالیږي کوم کښې چه په جمع مونځ کیږي هسے خو په کور دُکان یا پټي کښې هم مُونځ کیدے شي۔

مسئله: په روژه کښې دَ شپے دَخوراک څکاک او بیبیانو سره دَجماع حلالوالے د پاره بیان شو خو په اعتکاف کښې فرق لري مطلب دا چه اعتکاف کښې دَ شپے خوراک څکاک حلال دے مگر جماع د شپے هم حلاله نه ده ځکه ئے په آیت کښې دا حکم بیل بیان کړو۔

مسئله: دَ اعتکاف نور ے مسئلے څه خو دَ ے دَ لفظ نه معلومیږي او څه دَ رسُول الله صلی الله علیه وسلّم د فرمان او عمل نه ښکاره شوي دي هغه مسئلے دا دي چه اعتکاف کښې روژه نیول شرط دي او دَ دغه جومات نه بغیر له عُذرِ شرعي یا طبعي وَتل ناجائز دي۔

**دَ روژے په معامله کښې دَ احتیاط حُکم** دَ آیت په آخر کښې تِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ فَلَا تَقْرَبُوْهَا دے خبرے ته اشاره کوي چه په روژه کښې دَ خوراک څکاک او جماع وغیره بندیز دَ الله تعالیٰ پولے او حد بندئے دي، دے ته نزدے هم مه ورځئ ځکه کیدے شي چه دَ پولے نه پرے وا وړئ، بِنا په دے په خوله و یخلو کښې داسے بے احتیاطي مکروهه ده کومه نه چه دَ اوبو تیرېدو او خیټے ته دَ ننوتو خطره کیدے شي۔ په خوله کښې د ننه څه دارُو اچول مکروه دي۔ بي بي سره غاړه غټے کیدل او دَ هغې ښکلول مکروه دي۔ دا رنګ دا احتیاط کول پکار دي چه دَ پیشمنۍ خوراک څکاک د رے څلور منټه وړاندې بند کړي او دَ روژه ماتي په وخت کښې درے څلور منټه رُسنو خوراک څکاک شروع کړي۔ په دے تولو خبرو کښې سستي او بے پروائي کول دارشادِ الٰهي نه خلاف دي۔

وَلَا تَأْكُلُوْٓا اَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ وَتُدْلُوْا بِهَآ

او مه خورئ مال دَ یو بل په خپلو کښې ناحقه او مه رسوئ ئے

إِلَى الْحُكَّامِ لِتَأْكُلُوا فَرِيقًا مِّنْ أَمْوَالِ النَّاسِ
حاکمانو ته چه اُخوری څه برخه دَ خلقو د مال نه په

ع بِالْإِثْمِ وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿١٨٨﴾
ظلم کولو (ناحقه) او تاسو ته معلومه ده۔

**دَ آیتونو ترون او لنډ تفسیر** په دوهمو آیتونو کښے دَ روژے احکام ذکر دُو په کوموچه دَ حلال څیزونو استعمال په مقرره زمانه او مقرر وخت کښے حرام کړے شوے دے. د ے نه پس دَ حرام مال دَ حاصلولو او دهغے دَ استعمال بندیز په دے مناسبت ذکر کیږی چه دَ روژے دعبادت اصل مقصد هم دا دے چه بنده څه وخت دپاره دحلالو څیزونو نه دَ بندیز عادت شی او په دے ورته دحراموڅیزونو نه بندیز آسان شی بل مناسبت دا هم کیدے شی چه دَ روژے په ختمیدو روژه ماتی دَپاره حلال مال تیار وَل پکار دی چاچه سالمه ورځ روژه اُنیوه او ماښام ئے په حرام مال ماته کړه نو دهغه روژه الله ته قبوله نه ده۔

**د تفسیر لنډیز** او په خپلو کښے دَ یو بل مال په ناحقه مه خوری او دا (په دروغ مقدمه) حاکمانو ته په دے غرض مه اوړی چه (د دے په ذریعه) د خلقو د مالونو یو برخه په طریقه دَ ګناه (یعنی په ظلم) اُخوری هرکله چه تاسو ته (دخپلو دروغو او ظلم) علم هم وی۔

## علوم او مسئلے

په دے آیت کښے په حراموطریقو د مال ګټلو او دَ هغے د استعمال بندیز دے ځکه چه دَ سورتِ بقره په آیت ۱۶۸ کښے په حلالو طریقو دَ مال ګټلو او دَ هغے دَ استعمالولو دَ اجازت بیان تیر شوے دے - ارشاد دا دو:

يَا أَيُّهَا النَّاسُ كُلُوا مِمَّا فِي الْأَرْضِ حَلَالًا طَيِّبًا وَلَا تَتَّبِعُوا خُطُوَاتِ الشَّيْطَانِ إِنَّهُ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِينٌ ۝

اے خلقو خوری دَ څیزونو دَ زمکے نه حلال او پاک او دَ شیطان په قدم مه ځئ ځکه چه هغه ستاسو ښکاره دُښمن دے۔

او په سورتِ نحل کښے اِرشاد دے:-

فَكُلُوا مِمَّا رَزَقَكُمُ اللّٰهُ حَلٰلًا طَيِّبًا ۖ وَّاشْكُرُوا نِعْمَتَ اللّٰهِ اِنْ كُنْتُمْ اِيَّاهُ تَعْبُدُوْنَ[1]

نو خورئ له هغې کوم چه روزي کړې ده تاسو ته الله تعالیٰ حلال او پاک څيزونه او شکر کوئ د الله تعالیٰ د احسان کچرې تاسو د هغه عبادت کوئ.

## د مال ګټلو ښې او بدې چارې او د ښه والی او بد والی مقرر اندازه

نه څنګه د دُنيا ټول قومونه دا اتفاق لری چه مال ضروري څيز دے بلکه ژوند د دپوره ترې دے د غه شان په دے هم اتفاق لری چه د دے د ګټلو ښې چارې هم شته او بدے هم. غلا داکه ټګی ټوری ټوله دُنيا بد ه ګڼړی ليکن دَ دے چار و دَ ښه والی بد والی صحيح اندازه لګول دخلقو په لاس کښے ځکه نه ده چه دا دَ ټولے دُنيا بنيا د موسره ترون لري دے د پاره صحيح اندازه صرف هغه کيد ے شی کومه چه په ذريعه دَ وحی ربّ العالمين راليږلے ده. دَ بنيا دمو په مقرر اندازه که ټولے دُنيا بنيادم هيچرے متفق شوی نه دی اونه متفق کيد ے شی نکه څنګه بين الملکی کانفرنسونو او معاهدو نه چه تا بتيږی بلکه دَ دے نتيجه اکثر د ظلم بے انصافئ زور کيرئ جنګ جدل او دَ تباهئ په شکل کښے ښکاره کيږی.

## هم اسلامی معاشی نظام په دنيا کښے عام امن را وستلے شی

د حلال او حرام او روا نا روا دَ په باره کښے دَ اسلام جوړ کړے قانون ښکاره په وحیِ الٰهی ايز نه دے هم دا داسے معقول فطری او جامع قانون دے چه په هر قوم او وطن کښے چليدے شی هم دا دَ عام امن ځکه ضامن دے چه په کښے د شرکت جوګه څيزونه شريک ټهلګلے شوی دی نکه سواء اُبه، نا کرلے کياه دَ او دکرمی، آزاد ځنګلونه (چه څوک مالک ئے نه وی) دَ عزيز ځنګلونو پيدا وار په کومو څيزونو کښے د شرکت نه چه فساد پيدا کيږی، جنګ جګړے او مرګ جوبله تر جوړيږ په هغې کښے ئے د ځان ځانئ قانون جاری کړو. دَ يو زمکے يا د هغې دَ د صل دَ ابتدائی ملکيت قانون جُدا دے او دَ هغې دَ منتقل کولو قانون جُدا دے او دَ دے په هره دفعه کښے دا لحاظ ساتلے شوے دے چه هيڅ يو بنده د دَ ژوند ضروريا تو نه محرومه پاتے نشی خو شرط دا دے چه دَ دے دَ حاصلو لو کوشش هم وکړی او هيڅ يو بنده د نورو بندګانو حقوق غصب نکړی او نه دِ نورو ته نقصان اُرسوی مال دولت يو څو کسانو ته را پنډ کړی. دَ قانونِ الٰهی په جوړ دَ ميراث په ذريعه ملکيت منتقل کيږی او که دَ خريد و فروخت په

(۱) النحل: ۱۴

ذریعه دَ دواړه خواو په خوښۍ سره د مزدورۍ په ذریعه وي یا د څه مال په بدل کښې وي. خو دے تولو کښې دا ضروري ګڼلے شوے ده چه څه دهوکه او چلاکي تېرې دِ پکښې نهٔ وي او نه دِ د شک شبهے یا بوسُو کښې داُو بوتلو څه خبره پکښې وي.

په دے ټولو معاملو کښې دا هم لحاظ ساتلے شوے دے چه دَ دواړو خوا خوښي دِ اصلي وي دَ دُوړے دباؤ او دَ زورزبردستۍ خوښي دِ نهٔ وي. اسلامي شریعت چه کومو معاملو ته باطلے، فاسدے یا ګناه ویلې دي هغه ټولے په دے بنا دي چه دغه معاملو کښې یو ته ذکر شوي نقصانونه او ناکاروائي یو نه یو به وي کله به پکښې دهوکه او چلاکي وي، کله به دَ نامعلوم څیز یا نامعلوم عمل معاوضه وي کله به دَ بل چا حق لاندې شوے وي، کله به دَ بل دَ نقصان په بدل کښې خپله فائده ګول وي کله به په عامو حقونو کښې ناجائز دخل ورکول وي سُود او جواري هم په دے وجه حرام دي چه دعامو حقوقو د پاره مُضر دي دَ دے په نتیجه کښې یو څو کسان ترقي کوي لیکن پُوره قوم پرې خواریږي دا سے معاملے که دَ دواړو خوا په رضا هم اُشي بیا هم حُکه حرام دي چه د دے کښې دَ ټول قوم دَ نقصان په وجه دا سخت جُرم دے. تېر شوے آیت په دے ټولو ناجائزو صورتونو مشتمل دے. ارشاد دے "وَلَا تَأْكُلُوٓا أَمْوَٰلَكُم بَيْنَكُم بِٱلْبَٰطِلِ" یعنې دَ یو بل مال په ناجائزه طریقه مه خورئ." په دے کښې دا یو خبره د غور کولو وړه ده چه دَ قرآن کریم په الفاظو کښې "أَمْوَٰلَكُمْ" راغلے دے. دَ کومو اصلي معنیٰ چه خپل مالونه دي دا دے خبرے ته اِشاره ده چه که مثلاً بل څوک ستا په مال کښې د غسے ناجائز دخل مداخلت اُکړي نو تاته به څومره درد رسیږي که دغه خیال ته دَ بل چا په حق کښې اُکړے نو ته به دا اُګنړے چه دَ هغه مال تالا ترغه ګول دَ خپل مال تالا ګول دي. یو بله اشاره دے طرف ته هُم کیدے شي چه دَ بل مال په ناجائزه لاندې کول دے ته لار جوړول دي چه بَل به هم د غسے ستا مال لاندې کوي نو کو یا کښې د بل په مال خېټه اچول دا سے شو لکه په خپل مال خېټه اچول مثلاً څوک غوړه کښې تیل. شله ګړه وي او ناجائزه پیسے پرې ګټي نو بل به په یو کښې اُبه او به مساله کښې خښتے لرګي او دَ چایو په پانړه کښې د چیږو پوستکي ګډ وي او دَه نه به پرې زیاتے پیسے ګټي نو دا دَ کم عقلۍ انتها ده چه یو کس په یو څیز کښې ګډون کولو سره ناجائزه لږے پیسے ګټي او دَ ګډون څیزونو په اَغستو سره په شل چنده زیاتے بیلاتے کوي.

bawar.net

بله خبره هم د غور کولو جوګه ده چه د خدا وندی ارشاد الفاظ عام دی مطلب ئے دا دے چه په باطلو او ناجائزو طریقو د بل مالونه مه خورئ په زور زبردستئ، ال اُغتنل په دے کښے راځی په غلا دا که مال اَغتنل پکښے داخل شو. په سُود. جوارئ، رشوت، ناجائزو سوداګانو او ناجائز لین دین سره مال ګټل ټول په دے کښے شامل دی اګرچه په دے کښے د دواړو طرفو خوشحالی او رضا وی په دروغ ویلو یا په دروغو قسمونو څه مال ځان ته کول یا دا سے ګټه کول حرام او باطل دی کوم چه شریعت بند کړی دی اګرچه په دے د سړو ښے خپوله تلی وی د قرآن په الفاظو کښے صرف خوراک راغلے دے خو مطلب ئے هر قسم استعمال دے هغه اَغوستل اَستو کنه وی او که بله طریقه دا د عربئ یو محاوره ده بعینه دا سے مَتَل پښتو کښے هم کیږی چه فلانی مال اُخوړو اګرچه هغه مال د خوراک جوګه نه وی بلکه مطلب ئے د مال لاندِ کول او پرِقبضه کول وی۔

**شانِ نزول** د دوو صحابه کرامو په یو زمکه جګړه شوه حضور علیه السلام د شریعت مطابق مدعیٰ علیه ته د قسم ورکولو حکم ورکړو چه د مدّعی ګواهان نه وو. قسم خوړو ته چه دغه کس تیار شو نو حضور علیه السلام ورته نصیحت د پاره دا آیت واورولو: اِنَّ الَّذِیْنَ یَشْتَرُوْنَ بِعَهْدِ اللّٰهِ وَاَیْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِیْلًا [۱] د قسم په زور د مال ځان ته کولو په دے آیت کښے بدی بیان شوے ده. نو ځکه مدعیٰ علیه صحابی د قسم کولو نه ډډه اُوکړه او دغه مال ئے مدّعی ته پریښودو (روح المعانی)

نو دا هغه واقعه ده دکومے په باره کښے چه دا آیت نازل شو په دے کښے ناجائز طور د بل مال خوړل یا ځان ته کول حرام ښکاره شوی دی او د دے په آخر کښے د دروغو مقدمه جوړول په دروغه قسمونه خوړل، په دروغه ګواهی کول یا ګواه نیول ئے په سخته بند کړل او دزورنه پرِ بروورد ګار ورکړے ده. فرمائی وَتُدْلُوْا بِهَآ اِلَی الْحُکَّامِ لِتَاْکُلُوْا فَرِیْقًا مِّنْ اَمْوَالِ النَّاسِ بِالْاِثْمِ وَاَنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ۝ مطلب دا چه د مالونو مقدمے حاکمانو ته مه اُوړئ چه د هغوی په ذریعه تاسو د خلقو د مالونو څه برخه د ګناه په طریقه اُخوړئ سره د دے چه پوهه یئ چه ستاسو حق په دے کښے نشته او د دروغو مقدمه جوړوئ "وَاَنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ" نه معلومه شوه که یو سړے په غلطئ سره یو خیز خپل حق اُګڼړی او د دے ځان ته کولو د

(۱) آل عمران ۷۷ (۲) ج ۲ : ۲ : ص : ۷۰

پاره عدالت کښې مقدمه جوړه کړي نو هغه دَ دې وعید او زوورَنې لاندې نهٔ راځي لکه حضور علیه السلام فرمائیلي دي:

اِنَّمَا اَنَا بَشَرٌ وَّاَنْتُمْ تَخْتَصِمُوْنَ اِلَیَّ وَلَعَلَّ بَعْضَکُمْ اَنْ یَّکُوْنَ اَلْحَنَ بِحُجَّتِهٖ مِنْ بَعْضٍ فَاَقْضِیَ لَهٗ عَلٰی نَحْوِمَا اَسْمَعُ مِنْهُ فَمَنْ قَضَیْتُ لَهٗ بِشَیْءٍ مِّنْ حَقِّ اَخِیْهِ فَلَا یَاْخُذَنَّهٗ فَاِنَّمَا اَقْطَعُ لَهٗ قِطْعَةً مِّنَ النَّارِ - (رواه البخاری ومسلم عن ام سلمة)

یعنی څه یو بنیادم یم او تاسو ما ته خپلې مقدمې راوړئ په دې کښې دا هم کیدې شي چه څوک خپله معامله په زیات رنګ روغن کښې را وړاندې کړي او څه پرې مطمئن شم. او دَ هغه په حق کښې فیصله اُوکړم نو یاد لرئ چه حقیقت خو ځیله معامله دا ښه پیژني، کچرې په واقع کښې دا دَ هغه حق نهٔ وي نو هیڅرې دِ نهٔ اخلي ځکه چه په دې صورت کښې ده ته څه چه څه ورکوم نو هغه به دَ جهنم یو ټکړه وي.

دحضور صلی الله علیه وسلم دې ارشاد ښکاره کړله چه کچرې دمسلمانانو حاکم یا قاضي په غلطۍ یو فیصله اُکړي نو دَ هغې په بنیاد دغه حق دغیرمستحق د پاره حلال نهٔ شو، او دَ مستحق دَ پاره حرامیږي نهٔ مطلب دا چه عدالتي فیصلې دَ حلال حرام معیار نهٔ دے کچرې څوک په دروغ شهادت، قسم یا په ټګۍ دَ بل حق دعدالتي فیصلې په ترس کښې لاندې کړي نو دَ هغې وبال به دَ هغه په کردن وي. پکار دي چه هغه دِ دَ آخرت حساب کتاب او دَ علیم، خبیر په عدالت کښې خپله پیشي را یاده کړي او حق دِ مقدار ته پریږدي.

دامام ابوحنیفه په نزد دَ دروغو ګواهۍ یا قسم په بنیاد د قاضي په فیصله دهغه معاملې دَ تړلو وَړانولو یا دَ هغې دَ ځیل او حرمت احکام جاري کیږي په کومو کښې چه تړل یا وړانول کیدې شي او قاضي ته هم په هغې کښې دشریعت له مخه اختیارات حاصل وي خو دَ دروغو دَ قسم یا دَ ګواهۍ وبال به د دغه کس په سَر وي.

## دحلال مال برکتونه او دحرام مال سپیره توب

حرام مال نه دَ ځان ساتلو او دَ حلال مال حاصلولو تاکید په مختلفو سرخطونو سره قرآن کریم کړے دے په یو آیت کښې دا اشاره شوې ده چه د بنیادم په عمل او اخلاقو کښې دَ حلال خوراک څکاک ډیر دَخل او اثر دے کچرې خوراک څکاک حلال نهٔ وي نو بیا دَ ښو خویونو او نیک کارونو کول ډیر ګران دي ارشاد دے.

يٰٓاَيُّهَا الرُّسُلُ كُلُوْا مِنَ الطَّيِّبٰتِ وَاعْمَلُوْا صَالِحًا ۚ اِنِّيْ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ۝ | يعنې = اے دانبياوُ تو ټوله حلال او پاک څيزونه خورئ او نيک عمل کوئ څه تاسو دَعملونو دَ حقيقت نه خبريم -

په دے آيت کښے دا اشاره ښکاري چه نيک عملونه هله کيدے شي کله چه د بنيادم خوراک څکاک حلال وي - او په يو حديث کښے نبي کريم صلى الله عليه وسلم دا خبره په ډاګه کړے ده چه دَحلال مال خوراک حکم بيواځے پيغمبرانو عليهم السلام ته نه دے بلکه ټولو مسلمانانو ته دے او دَ دے حديث په آخر کښے ئے دا هم فرمائيلي دي چه دَحرام مال خورونکي دُعا نه تبليږي ډير خلق په عبادت کښے ډيره خواري کوي بيا دَ الله تعالى په وړاندې دُعا لاسُونه خوروي د " يا ربّ يا ربّ " نعرے وهي مګر خوراک ئے حرام څکاک ئے حرام اغوستن ئے حرام نو دَ هغوي دا دُعا به څنګه قبوله شي ؟

دَ نبي کريم صلى الله عليه وسلم ډير تعليمات او هدايات په دے کښے تکيدلي (راغلي) دي چه اُمّت دِ حلال استعمالوي ، او دَحرامونه دِ ځان ساتي -

په يو حديث کښے ئے دا ارشاد فرمائيلے دے چه چا حلال اُخوړل او دَ سنّتو په جوړے عمل اُکړو او خلق دَ هغه دَ ضرر وُنونه بچ شول نو هغه به جنّت ته ځي صحابه کرامو عرض اُکړو چه يا رسول الله نن صبا خو دا حالات ستا په امّت کښے عام دي زيات مسلمانان دے دے پابند دي، هغوي اُفرمائيل " اَو " په راتلونکے هره زمانه کښے به داسے خلق وي چه دے احکامو پابندي به کوي (دا حديث ترمذي روايت کړے دے او صحيح ئے ورته وئيلے دے)

په يو بل حديث کښے ارشاد دے چه نبي کريم صلى الله عليه وسلم حضرت عبدالله بن عمرؓ ته اُفرمائيل چه څلور داسے خويونه دي چه هغه په تاسو کښے ترڅو وي نو تاسو له بس دي که بيا دُنيا کښے نور هيڅ هم درسره نه وي - هغه څلور خويونه دا دي (۱) دَ امانت حفاظت (ساتل) (۲) دَ رښتيا وئيل (۳) ښه خوئ (۴) په خوراک کښے دِ حلالو غم (کوشش) کول -

حضرت سعد بن ابي وقاصؓ دَ نبي کريم صلى الله عليه وسلم نه خواست اُکړو چه ما دَپاره دُعا اُکړئ چه څه مقبولُ الدُّعا . شم (يعني هره دُعا م تبليږي ) هغوي اُفرمائيل چه لے سعدَ! خپل خوراک حلال او پاک جوړ کړه نو مستجاب الدعوات به شے . او قسم م دِ وي په هغه ذات دَچا په قبضه کښے چه دَ محمّد (صلى الله عليه وسلم) ځان دے بنده چه کله په

خپله خېټه کښې حرامه نوړۍ وراچوي نو ترڅلوېښتو ورځو د هغه هېڅ عمل نه قبليږي او د کوم کس غوښه چه د حرام مال نه جوړه شوې وي نو هغې سره هم د جهنم اور بهتر دے (يعني مُناسب دے) حضرت عبد الله بن مسعودؓ فرمائي چه نبي کريم صلی الله عليه وسلم اُفرمائيل په هغه ذات م دِ قسم وي د چا په قبضه کښې چه زما ځان دے چه بنده تر هغې مسلمان نشي ترڅو چه د هغه زړه او ژبه مُسلمان نشي - او ترڅو چه د هغه ګاونډي د هغه د ضررونو نه محفوظ نشي او کله چه يو بنده حرام مال خوري او بيا ئې خيرات کوي نو هغه نه قبليږي او که چرې د هغې نه خه لګوي (خرڅ کوي) نو برکت به ئې نه وي او که چرې وارثانو ته ئې پريږدي نو د جهنم په طرف د هغه د تللو توښه وي بيشکه الله تعالیٰ په بد څيز بد عمل نه ويخي خو ښه عمل سره بد عمل ويخي -

**په قيامت کښې دَ هر يو بنده نه پنځه خبرې پوښتنې**

حضرت معاذ بن جبل رضی الله تعالیٰ عنه فرمائي چه حضور صلی الله عليه وسلم فرمائيلي دي :

مَا تَزَالُ قَدَمَا عَبْدٍ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ حَتّٰى يُسْأَلَ عَنْ اَرْبَعٍ عَنْ عُمْرِهٖ فِيْمَا اَفْنَاهُ وَعَنْ شَبَابِهٖ فِيْمَا اَبْلَاهُ وَعَنْ مَالِهٖ اَيْنَ اِكْتَسَبَهٗ وَفِيْمَا اَنْفَقَهٗ وَعَنْ عِلْمِهٖ مَا ذَا عَمِلَ فِيْهِ -

(البيهقی ترغيب)

په ميدان محشر کښې د قيامت په ورځ هېڅ يو بنده به د خپله ځايه نه خوزي ترڅو چه د هغه نه د څلورو سوالونو جواب نه وي اخستے شوے[1] يو دا چه هغه خپل عُمر په کوم کار کښې ختم کړو - دويم دا چه هغه خپله ځواني په کوم شُغل (مشغولتيا) کښې تباه کړله دريم دا چه خپل مال ئې له کومه ځايه اُګټلو او کوم ځائې کښې ئې اُلګولو او څلورم دا چه په خپل علم ئې ترڅو مره عمل کړے وو -

حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما فرمائي چه نبي کريم صلی الله عليه وسلم يو ځل خطبه ورکړه په هغې کښې ئې اُفرمائيل چه اے د مهاجرينو ټوليه! پنځه خويونه دا سے دي چه د هغې په باره کښې د الله تعالیٰ نه ځه پناه غواړم هسې نه چه په تاسو کښې پيدا شي يو خو دا چه کوم قوم کښې بے حيائي خوره شي نو په هغوئ طاعون، وباګانې او دا سې نورې نوې رنځونه اُنښلولے شي چه د هغوئ پلارانو او نيکونو به هم نه وي آوُرېدلي - بلهٔ

(۱) بعضې روايتونو کښې پنځه راغلي دي هغه دا سے چه د مال سوالونه ئې په دوه حساب کړي دي يعني د مال ګټل او لګول -
(محمد شفيع)

چه کوم قوم کښې د تول مېچ کمولو مرض پیدا شي نو هغوئ په قحط، گراني، خوارو تکليفونو او د حاکمانو په ظلم کښې راګير شي. درېيم دا چه کوم قوم زکوٰة نه ورکوي نو په هغوئ باران بند شي او څلورم دا چه کوم قوم د الله تعالیٰ او د هغه رسولی سره کړے لوظ قول مات کړي نو الله تعالیٰ په دغه قوم يو پردے (بهرې) دشمن مسلط کړي چه د هغوئ مال به په ناحقه شوکوي او پنځم دا چه د کوم قوم واکمن خلق د کتاب الله په قانون فيصله نه کوي او د الله تعالیٰ نازل کړي احکام د هغه زړه پورے نه وي نو الله تعالیٰ هغوئ په خپل منځ کښې په جنګ جګړو اوبل په کړکه کولو اخته کړي (دا روايت ابن ماجه او بيهقي وغيره نقل کړے دے او حاکم د مسلم په شرط دے ته صحيح وئيلي دي)

الله تعالیٰ د مونږ ته او ټولو مسلمانانو ته د دے آفتونو نه د محفوظ پاتے کيدو کامل توفيق راکړي وَاٰخِرُ دَعْوَانَا اَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ○

يَسْئَلُوْنَكَ عَنِ الْاَهِلَّةِ ۭ قُلْ هِيَ مَوَاقِيْتُ لِلنَّاسِ وَالْحَجِّ ۭ

تا نه پښتنه کوي د مياشتو، او وايه چه دا ښيئ دي د پاره د خلقو او د حج،

وَلَيْسَ الْبِرُّ بِاَنْ تَاْتُوا الْبُيُوْتَ مِنْ ظُهُوْرِهَا وَلٰكِنَّ

او دا نيکي نه ده چه راځئ کورونو ته له طرفه د شاګانو د دے او ليکن

الْبِرَّ مَنِ اتَّقٰى ۚ وَاْتُوا الْبُيُوْتَ مِنْ اَبْوَابِهَا ۠ وَاتَّقُوا

نيکي دا چه څوک اوبيريږي د الله نه او راځئ کورونو ته په دروازو د دے او ويريږئ د

اللّٰهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴿۱۸۹﴾ وَقَاتِلُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ الَّذِيْنَ

الله نه د دپاره چه تاسو مراد ته اورسيږئ، او جنګ کوئ په لار د الله تعالیٰ کښې هغه خلقو سره

يُقَاتِلُوْنَكُمْ وَلَا تَعْتَدُوْا ۭ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِيْنَ ﴿۱۹۰﴾

چه جنګيږي تاسو سره او مه کوئ زياتے په چا، بيشکه الله تعالیٰ نه خوښوي زياتي کوونکو لره،

وَاقْتُلُوْهُمْ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوْهُمْ وَاَخْرِجُوْهُمْ مِّنْ حَيْثُ

او وژنئ دوئ چه کوم ځائے کښے ئے راګیر کړئ او د کوم ځائے نه چه اېستلی دی دوئ

اَخْرَجُوْكُمْ وَالْفِتْنَةُ اَشَدُّ مِنَ الْقَتْلِ ۚ وَلَا تُقٰتِلُوْهُمْ

تاسو لره ؟ او دین نه اړول زیات سخت دی له قتله، او مه جنګیږئ دوئ سره

عِنْدَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ حَتّٰى يُقٰتِلُوْكُمْ فِيْهِ ۚ فَاِنْ قٰتَلُوْكُمْ

په خوا د مسجد حرام کښے ترڅو چه دوئ نه جنګیږی تاسو سره په دے کښے، بیا که دوئ پخپله جنګیږی

فَاقْتُلُوْهُمْ ۭ كَذٰلِكَ جَزَاۗءُ الْكٰفِرِيْنَ ۝۱۹۱

تاسو هم نو وژنئ تاسو دوئ لره، هم دغه ده سزا د کافرانو ۔

**د آیتونو تړون** | د "لَيْسَ الْبِرَّ" په تشریح کښے بیان شوے دے چه دے نه به پس د اَبْوَابُ الْبِرِّ" بیان وی چه په ډیرو ضروری احکامو شرعی او به مشتمل وی په دے کښے اول حکم د قصاص و و دوئم د وصیت دریم او څلورم د روژے او هغے سره د تړلو مسئلو. پنځم د اعتکاف او شپږم د حرام مال نه د بچ کیدو وو او س دے دوؤ آیتونو کښے د حج او جهاد د حکمونو او مسئلو بیان دے او د حج د حکم نه وړاندے دا اُښودے شو چه په روژه او حج کښے به د سپوږمئ د حساب اعتبار وی.

لغات: اَهِلَّة د "هِلَالٌ" جمع ده۔ د سپوږمئ د میاشتے د ړومبو څو شپو سپوږمئ میاشت بللے شی۔ "مَوَاقِيْتُ" د "مِيْقَاتٌ" جمع ده۔ د میقات معنیٰ یو لږ وخت ده یا د وخت آخری برخه ده (قرطبی)

## دَ تفسیر لنډیز

**اوم حکم په حج او نورو کښے د سپوږمئ حساب له اعتبار دے** (څه سړی) تاسو نه د (د دے) میاشتو (هره میاشت د کمیدو زیاتیدو د) حالت (او په هغو کښے د میاشتے فائدے) تحقیقات کوی تاسو اُووایئ چه (د دے فائده داده چه) دغه میاشت (د خپلو د دے کمیدو او زیاتیدو په لحاظ خامخا یا د پاره د آسانتیا) د نیټو پیژندلو یو ذریعه ده د خلقو

(۱) ج = ۲ = ص = ۳۴۳ -

(د اختیاري معاملو مثلاً د عدّت او د حقوقو د مطالبے) د پاره او (غیر اختیاري عباداتو مثلاً حج (زکوٰة او دوژے وغیره) دَ پاره۔

**اتم حکم دَجاهلیت درواج اِصلاح**

د اسلام نه وړاندِ څه خلق به دَ حج د احرام تړلو نه وروستو کچرے په احرام کښے څه ضرورت د پاره خپل کور ته ورتلل نو په دروازه به ئے دا ندنه ننوتل، دَ شا په دیوال کښے به ئے مورے اُکړه او په هغے به ئے دننه ورتلل بهتر ګڼړل الله تعالیٰ دَحج د بیان کولو نه وروستو په دے لړکښے ارشاد فرمائی، او په دے کښے هیڅ بهتري نشته چه (خپلو) کورونو ته دَ هغے د شاله اړخه راځي لیکن بهتري دا ده چه څوک (دَ حرامو رخیز ونو نه) بچ شي او (هر کله چه دَ دروازے په لارکورونو ته دننه ورتلل حرام نه دی خو دے نه ځان ساتل هم ضروري نه شو که ورتلل غواړئ) کورونو ته د هغے په دروازو راځئ او (د بنیادي خبرهٔ خو داده چه) د خدائے تعالیٰ نه ویریږئ (نو البته ) امید دے چه تاسو (په دواړو جهانو کښے ) بریالی شئ۔

**نهم حکم کفارو سره جنګ**

دشپږمے هجری کال دمیانے په میاشت کښے دعُمرے ادا کولو په قصد حضور صلی الله علیه وسلم مکے معظّمے ته تشریف یوړلو دغه وخت مکه معظّمه لاد کفارو په قبضه او حکومت کښے وه دے خلقو حضور صلی الله علیه وسلّم او دَ هغویٔ مذکری مکه مکرّمه کښے دننه تلو ته پرِیځ نه ښودل او عُمره پاتے شوه آخر دَ ډیرو خبرواَترو نه پس دا تیره کیښودے شوه چه را تلونکی کال کښے دعمرے اداکولو دپاره تشریف راوَړی دغه رنګ په اُوم کال دهجرت دمیانے په میاشت کښے بیا هغویٔ په دے اراده تشریف یوړلو لیکن دهغویٔ ملګرو ته دا اندیښنه وه چه کیدے شي مشرکان خپله تیره ماته کړي او مقابلے او جنګ ته تیار شي په دا سے حال کښے چپ پاتے کیدل هم بنه نه دی او که مقابله اُشي نو دَ میاشے په میاشت کښے به جنګ کول راشي او دا په هغه خلو رو میاشتو کښے حساب ده په کوموکښے چه جنګ کول تردغه وخته حرام او بند وُو دا څلور میاشتے دمیانے. لوئے اختر. عاشورے او دَ رجب (ذیر که وے غرض دا چه مسلمانانان په دے تردُّد او پریشانئ کښے وُو نو الله تعالیٰ دا آیتونه نازل کړل چه دے خاص تیره اِبنولو سره د تیږ ے په خاطر تاسو ته په جنګ کښے د پیل کولو اجازت نشته خو که دغه خلقو تیره ماته کړه او تاسو سره جنګ کولو ته تیار شُو نو تاسو هیڅ بے فکره اُسئ او (بے فکره) تاسو (هم) جنګیږئ دَ الله په لار کښے (یعنی په دے نیت چه دغه خلق د دین

مخالفت کوي)، دغې خلقو سره چه (تېرې ماته کړي) تاسو سره جنګ روان کړي او (هغې د تېرې د حد نه مه تېرېږئ (چه تېره ماته کړئ او په جنګ شئ) واتقوا الله تعالیٰ (د شرعي قانون د حد نه تېرېدو نه خونبوي او ډ ... کله چه هغوي پخپله تېره ماته کړي نو که غواړئ په بدله زيږه) هغوئ وژنئ کوم ځائې کښې ئې چه را لاندې کړئ او که غواړئ) هغوئ (د مکې نه بهرته) اُباسئ د کوم ځائې نه چه هغوي تاسو (تنګ کړي وَئ او تکليفونه ئې درکړي وو) په وَتلو (او په هجرت کولو ئې) مجبور کړي وَئ او که تاسو د هغوئ نه مرګ جو بلې اُکړئ او د وطن نه ئې بهر اُکاږئ نو بيا هم د عقل په موجب په هم دوئ وي ځکه چه تېره دوئ ماته کړې ده چه ډېر غټ ورانے دے او دا سې) وړانے (په ضرر کښې) قتل (او اُبنکلو) نه ډېر سخت دے (ځکه چه د دغې قتل او اُبنکلو باعث هم د هغوي خپل ورانے دے) او (هغوئ سره په جنګ کښې ستاسو پېل کول د تېرے ماتولو نه زيات يو بل بند يزلوي هغه دا دے چه حرم شريف يعني مکه او د هغې نه ګېرچاپېره د ډېر عزّت د ځائې دے چه په هغې کښې جنګ کول د هغې بے احترامي ده نو له دے وجے حکم ورکولے شي چه) هغوئ سره د مسجد حرام په خوا (وُشا) کښې (چه په حرم بللے شي) جنګ مه کوئ ترڅو چه هغه خلق هلته تاسو سره پخپله اُنه جنګېږي هغه يکړے هغوئ (کُفاد) پخپله د جنګ کولو انتظام اُکړي نو (د غه وخت بيا تاسو ته هم اجازت دے چه) تاسو (هم) هغوي او ژنئ د دا سے کافرانو (چه په حرم کښې جنګېږي) هم دا سے سزا ده ـ

# علوم او مسئلے

په دومبي آيت کښې د صحابه کرامو يو سُوال او دَ الله تعالیٰ له طرفه دَ هغې جواب ذِکر دے.

امام المفسّرين حضرت عبد الله بن عباسؓ فرمائي چه دَ نبي کريم صلی الله عليه وسلّم دَ صحابه کرامو يو خاص شان دا دے چه هغوئ دَ حضور عليه السلام دَ هيبت او جلال په وجه دَ هغوئ نه ډېر کَم سوالونه کړي دي بل طرف ته نورو اُمتونو د خپلو پيغمبرانو عليهم السلام نه ډېر سوالونه کړي دي او دا سے ادب ئې نه دے کړے. د حضرت ابن عباسؓ د وينا په بجوړ په قرآن کريم کښې د صحابه کرامو دَ څوارلسو سوالُونو ذِکر راغلے دے يو دغه سُوال "وَإِذَا سَأَلَكَ عِبَادِي" اُس وړاندې تېر شو، دوئيم سوال دا دے نور شپږ سوالُونه هم په سُورتِ بقره کښې به راځي او پاتے نور شپږ سوالُونه په مختلفو سورتونو کښې ذکر دي.

په دے اُسنی آیت کښے د صحابه کراموؓ دغه سوال ذکر دے کوم ئے چه د حضور علیه السلام نه د "اَهِلَّه" د هرمیاشتے د میاشتے په باره کښے په دا ډول کړے وو چه دَ دے شکل د نمر نه مختلف دے څکه چه دا خو ډیر وړے نرئ وی بیا رو رو غټیږی چه پُوره ګکو ړے شی نو بیا رو رو دغه شان په کیدوشی اُس دا سوال په دے بِنا کیدے شی چه صحابه کرامو دَ دے حقیقت پښتلو او په دے هم بِنا کیدے شی چه دَ دے حکمت او مصلحت ئے پښتلو مګر په جواب کښے دحکمت او مصلحت بیان دے اُس که دا تپوس (سُوال) دحکمت او مصلحت په باره کښے وی نو دا جواب هم د سوال په جوړ شو او که دا سوال د حقیقت په باره کښے وی (چه کوم د صحابه کرامؓ دَ شان سره سمُون نه خوری) خو بیا هم دَ حقیقت بنو دلو په ځائے یواځے دحکمت او مصلحت په بیانولو کښے دے خبرے ته اِشاره ده چه د آسمانی څیزونو (لکه نمر سپوږمئ وغیره) حقیقتونو معلومول دَ انسان دَ وس نه بهر دی او دے ته دَ دین او دُنیا هیڅ یو کار بند هم نهٔ دے ګویا کښے الله تعالیٰ په دا سے ډول جواب ورکولو سره ښیلو بندګانو ته دا خپل اُښودلو چه دَ حقیقت معلومَولو سوال کول بے فائدے دی سوال دا سے کول پکار دی چه دَ میاشتے سپوږمئ په غټیدو کیدو او پټیدو ښکاره کیدو سره څومره کوم ښیګړے تړلی دی نو جواب ئے دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم په ذریعه داد ے چه سپوږمئ میاشتے سره ستاسو دا تړلی دی چه دَ دے په ذریعه تا سوته دَ خپلو معا میلو او معاهدو نیټے تا کل او د حج درځے معلومَول آسان شی۔

**دسپوږمئ او نمر دَ حساب شرعی حیثیت**

دے آیت نه خو دومره معلومه شوه چه دَ سپوږمئ نه تاسوته دَ نیټو او میاشتو حساب معلومیږی کوم چه ستاسو معاملے، حج او نور عبادتونه موقوف دی، هم دا مضمُون په سُورتِ یُونس کښے دا سے دے۔

وَقَدَّرَهٗ مَنَازِلَ لِتَعْلَمُوْا عَدَدَ السِّنِيْنَ وَالْحِسَابَ[1] دے نه معلومیږی چه دَ سپوږمئ مختلف منزلونه او حالات بدلیدل دَ کالونو، میاشتو او نیټو معلومَول فائده ورکوی مګر سُورتِ بنی اسرائیل کښے دا فائده اِغستل د نمر نه هم څه دا سے ثابتیږی (لکه چه روح المعانی لیکی[2])

فَمَحَوْنَآ اٰيَةَ الَّيْلِ وَجَعَلْنَآ اٰيَةَ النَّهَارِ مُبْصِرَةً لِّتَبْتَغُوْا فَضْلًا مِّنْ رَّبِّكُمْ | بیا مونږه ورکه کړه نمُونه د شپے او دَ لید و موجوده کړه نمُونه دَ ورځے دے دَ پاره

(۱) یونس ۔ ۵

وَلِتَعۡلَمُوا عَدَدَ السِّنِيۡنَ وَالۡحِسَابَ ؕ | چه تاسو اُلټوئ دخپل رب فضل او چه معلوموئ شمیر دَ کلونو او حساب .

مګر قرآن په "هِيَ مَوَاقِيۡتُ لِلنَّاسِ وَالۡحَجِّ ؕ" سره پوره ښکاره کړے ده چه دَ ټولو دینی کارونو او عبادتونو حساب او نیټے پواځے په میاشت او سپوږمئ پورے تړلے شی په نمونه .

اسلامی شریعت دَ سپوږمئ حساب د هر قسم عامو خلقو دَ آسانئ دپاره تړلے دے ، په نمر حساب کول هرڅوک نه شی کړے ځکه چه هغه رصدی آلاتو او دَ ریاضئ په قواعدو پورے تړلے دے مطلب ئے دا شو چه دَ عباداتو په باره کښے دَ سپوږمئ حساب ئے فرض اوګرځولو او په نورو معاملو، تجارت وغیره کښے ئے هم داځکه غوره کړو چه دا د اسلامی عبادت ذریعه بلکه داسلام یو خصوصی نښه ده اګرچه دَ نمر حساب ئے ناروا کړے نه دے خو دے دَپاره شرط دا دے چه د دے حساب په مقابله کښے خلق دَ سپوږمئ حساب بیخی هیر نه کړی ځکه چه په داسے کولو به بیا په عباداتو نو دوژ واوچ کښے خلل راځی . څومره چه په ټولو دفتری کاروباری بلکه شخصی معاملو کښے په داسے دول شمسی حساب د اسلامی غیرت نه هم خلاف دے دکوم په مقابله کښے چه دَ سپوږمئ حساب بالکل داسے پریښودے شوے دے چه دَ اسلامی میاشتو نومونه تقریباً هم اکثرو مسلمانانو ته یاد نه دی نو که چرے دفتری کاروبار او معاملے په شمسی حساب په دے غرض اداره کړے شی چه دَ دے ترون غیر مسلمو سره هم وی نو خیر دے خو کم نه کم دَ اسلامی غیرت تقاضا دا ده چه په خپلو امورو ذاتی کارونو او ذاتی خط وکتابت کښے دَ سپوږمئ حساب ځکه اوکړے شی چه په داسے کولو به د فرض اداکولو ثواب هم اوشی .

مسئله : "لَيۡسَ الۡبِرُّ بِاَنۡ تَاۡتُوا الۡبُيُوۡتَ مِنۡ ظُهُوۡرِهَا" آیت نه دا مسئله هم معلومیږی چه هغه څیز یا کار ضروری ګڼړل ناروا دی کوم لره چه شریعت ضروری نه ګرځی هم دارنګ دَ هغه کار یا څیز ناجائز ګڼړل ګناه ده کوم چه شریعت روا ګرځی د بدعتونو دَ ناروا کیدو اصلی باعث هم دغه دے چه دَ دے په زور روا څیزونه او چارے ناروا او ناروا روا ګرځولے شی لکه څنګه چه دغه خلقو به په احرام کښے خپلو کورونو ته په دروازه راتلل ناروا ګڼړل ، او شریعت کښے روا دُو . دکورونو دَ شا په مورئ راتلل به ئے ضروری ګڼړل . او شریعت کښے ضروری نه وُو .

(۱) الاسراء : ۱۲ .

**نهم حکم دجهاد او دجنګ** | دَ ټول اُمت په دے اتفاق دے چه مدینے منورے ته دهجرت کولو نه وړاندې مُسلمانانو ته کفارو سره دجهاد کولو بندیز او دصبر، مُعافئ او درګذر کولو درته ښودنه وه دَ هجرت نه پس دا رُومبے آیت دے چه پکښے دجهاد کولو حکم اُشوے چه ربیع بن انس او نورو اکثرو صحابوؓ او تابعینو فرمائیلی دی -

دجهاد په باره کښے دحضرت ابوبکرؓ دا آیت "اُذِنَ لِلَّذِيْنَ يُقَاتَلُوْنَ بِاَنَّهُمْ ظُلِمُوْا" رُومبے ښودلے په دے بناوی چه دا دجهاد په رُومبو آیتونو کښے شمیر دے نه چه پخپله رُومبے دے -

په دے آیت کښے دا حکم دے چه مسلمانان دصرف هغه کُفارو سره جنګ کوی کوم چه جنګ دَ پاره راغلی وی دا سے کفار په جهاد کښے وژل نادروا دی چه هغوئ شل ګډه معذ وره وی دغه کفارو سره خوارئ مزدُوری کوی خو په جنګ کښے ورسره شریک نه وی دکفارو ماشومان ښځے دَ هغوئ راهبان، پادریان، بانیزان وغیره چه په جنګ کښے نه شریکیږی دا شرط ځکه ضروری دے چه فقهاء کرام دَ هغه ښځو، بوډا ګانو، پادریانو بانیزانو وغیره قتلول هم روا ګڼړی کوم چه کفارو سره په جنګ کښے دَ مسلمانانو په مقابله کښے شریک وی یا دَ څه قسمه ملاتړ یا امداد ورسره په جنګ کښے کوی ځکه چه دوئ په "اَلَّذِيْنَ يُقَاتِلُوْنَكُمْ" کښے داخل دی -
(مظهری، قرطبی، جصاص)

په دے باره کښے دنبی کریم صلی الله علیه وسلم هغه هدایات ډیر واضح دی کوم به ئے چه دَ جهاد په موقعه صحابه کرامو ته ورکول لکه په صحیح بخاری او مسلم کښے حضرت عبدالله بن عمرؓ روایت کوی -

| | |
|---|---|
| "نَهٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ قَتْلِ النِّسَاءِ وَالصِّبْيَانِ" | حضور علیه الصلوٰة والسلام دښځو او ماشومانو دَ وژلو نه منع کړے ده - |

او په ابوداؤد کښے دحضرت انسؓ په روایت سره راغلی دی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم په جهاد دوان صحابه کرامو ته دا هدایات ورکړی وو چه " تاسو دالله تعالیٰ په نوم او دَ رسول الله په ملت جهاد دَ پاره ځئ څوک بوډا کمزورے، ورکوټے ماشوم او څوک ښځه مه وژنئ" - (مظهری)

یزید بن ابی سفیانؓ له چه ابوبکرؓ دشام ملک ته لیږلو نو ورته ئے دا هدایت کړے وو

(۱) الحج ۳۹۰ - (۲) په قرطبی کښے دا خبره په بنه ښکاره ډول شته : ج ۲ : ص ۳۴۸ ، ۳۴۹ او مظهری او احکام القرآن کښے اشاره شته - او ګورئ جصاص ص ۳۰۲ او مظهری ۲۱۲ -
ګ جلد ۱ : صفحه ۲۱۲ - ۹

چه عابدان، راهبان او دَ کار فرومزدوران هم مه وژنئ ترکومے چه داکسان په جنګ کښے برخه نه آخلی (قرطبی)[1]

د "وَلَا تَعْتَدُوْا" نه جمهور مفسرینؒ هم دا مطلب آخلی چه په جنګ کښے تاسو دا سے تیرے زیاتے مه کوئ چه ښځے، ماشومان وغیره هم وَژنئ۔ وَاقْتُلُوْهُمْ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوْهُمْ وَاَخْرِجُوْهُمْ مِّنْ حَيْثُ اَخْرَجُوْكُمْ دَ تفسیر په خلاصه کښے بیان اُشو چه دا آیت هغه وخت نازل شوے دے کوم وخت چه دصُلح حدیبیه نه پس دَ هغے دیو شرط په جوړ حضور صلی الله علیه وسلّم سره صحابه کرامؓ دعُمرے قضا راوُړلو دَپاره مکے شریفے ته روانیدل او صحابه کرامو دا شک بنکاره کړو چه دَکفارو دَ لوظ قول اعتبار نشته هسے نه چه هغوئ جنګ ته تیارشی نو مونږ لره بیا څه پکار دی؛ دَدے په جواب کښے آیت دا اجازت ورکړو چه هغوئ جنګ کولو نو تاسو هم هغوئ لره چه کوم ځائے بیا مُومئ نو وژنئ ئے او که وَس مو وو نو د مکے مکرے نه ئے اُباسئ لکه چه څنګه هغوئ مسلمانانو لره دَ مکے مکرّے نه اُبشکلی وو۔

او دَ مکے مکرّے په مقوله زمانه کښے مسلمانان کفارو سره دَ جنګ کولو نه منع شوی وو. تَل ورته دَمعافئ او درګذر کولو ښودنه کولے شوه، ددے آیت په نازلیدو دَ صحابه کرامو داخیال وو چه دَکفارو قتلَول بد او بند دی نو دَدے خیال ختمَولو او لرے کولو دَ پاره ئے دا اُفرمائیل "وَالْفِتْنَةُ اَشَدُّ مِنَ الْقَتْلِ" یعنی دا ښکلے شوے خبره ده چه دَچا قتلَول سخت او بدکار دے مګر د مکے دکُفارو په خپل کفر او شرک ټینګ پاتے کیدل او مسلمانانو لره دَعبادت او حج او عُمرے اداکولو نه بندَول ددے نه هم زیات سخت کار دے چه دَ هغے نه ځان ساتلو دپاره د هغوئ دَ وژلو اجازت ورکړے شو۔ په آیت کښے دَ ذکرشوی لفظ "وَالْفِتْنَةُ" مطلب کفر شرک او مسلمانانو لره دَعبادت نه بندول دی۔ (جصاص[2]، قرطبی[3] وغیره)

په آیت کښے ذکر وو چه کوم ځائے کُفار بیا مومئ وژنئ ئے نو تخصیص دپاره ئے اُفرمائیل. وَلَا تُقٰتِلُوْهُمْ عِنْدَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ حَتّٰى يُقٰتِلُوْكُمْ فِيْهِ چه د مسجد حرام په خوا وُ شا د مکے مکرے په مقول حَرَم کښے تاسو دغے خلقو سره تر هغے جنګ مه کوئ ترڅو چه هغوئ تاسو سره جنګ نهٔ دی شروع کړے۔

مسئله، د مکے مکرّے په حرم کښے د ښکاری ځناور وَژل هم نا روا دی بنیادم خو لاپریږده

(۱) جلد ۲ ؛ ځ ۳۴۸ - (۲) جلد ۱ ؛ ص ۳۰۴ - (۳) جلد ۲ ؛ ص ۳۵۱ -

لیکن جمهور فقهاء په دے متفق دی چه دَ خپل بچاؤ له خاطره (چه څوک پرِ حمله اُکړی نو حرم کښے هم هغه سره جنګ کول روا دی)

مسئله : دَ دے آیت نه دا هم معلومیږی چه خاص دَ مکے په ټول حرم کښے جنګ او جهاد شروع کول منع دی په نورځایونو کښے جهاد شروع کول هغے روا دی څنګه چه دِفاعی جهاد ضروری دے .

فَاِنِ انْتَهَوْا فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿١٩٢﴾ وَقٰتِلُوْهُمْ

بیا که چرے هغوئ منع شی نو بیشکه الله تعالیٰ بخښونکے او ډیر مهربانه دے . او جنګیږئ هغوئ سره

حَتّٰى لَا تَكُوْنَ فِتْنَةٌ وَّيَكُوْنَ الدِّيْنُ لِلّٰهِ ۖ فَاِنِ انْتَهَوْا

چه پاتے نۀ شی فساد او پاتے شی حکم دَ الله تعالیٰ . بیا که چرے هغوئ منع شو

فَلَا عُدْوَانَ اِلَّا عَلَى الظّٰلِمِيْنَ ﴿١٩٣﴾ اَلشَّهْرُ الْحَرَامُ بِالشَّهْرِ

نو بیا هم زیاتے نشته . مګر په ظالمانو . دعزت والا میاشت په بدل (مقابل)

الْحَرَامِ وَالْحُرُمٰتُ قِصَاصٌ ۚ فَمَنِ اعْتَدٰى عَلَيْكُمْ فَاعْتَدُوْا

دعزت والا میاشتے او ادب ساتلو کښے بدله ده . بیا چه چا زیاتے اُکړو په تاسو نو زیاتے اُکړئ تاسو

عَلَيْهِ بِمِثْلِ مَا اعْتَدٰى عَلَيْكُمْ ۖ وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْلَمُوْآ

په هغه څنګه چه هغه زیاتے کړے دے په تاسو . او ویریږئ دَ الله تعالیٰ نه او پوهه شئ

اَنَّ اللّٰهَ مَعَ الْمُتَّقِيْنَ ﴿١٩٤﴾ وَاَنْفِقُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَلَا تُلْقُوْا

چه الله تعالیٰ دَ پرهیزګارو سره دے . او مال لګوئ په لار دَ الله کښے او مه اچوئ

بِاَيْدِيْكُمْ اِلَى التَّهْلُكَةِ ۛۚ وَاَحْسِنُوْا ۛۚ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿١٩٥﴾ مع

خپل ځان په هلاکت کښے ، او نیکی کوئ بیشکه الله تعالیٰ خوښوی نیکی کوونکو لره .

## دَ تفسیر لنډیز

بیا که چرے (دَ جنګ شروع کولو نه پس هم) هغه خلق (یعنی دَ مکے مُشرکان دَ خپل کفر

منع شی (او اسلام قبول کړی) نو (د هغوی اسلام به بې قدره نشی گڼلې بلکه) الله تعالیٰ به (د هغوی هغه تیر کفر) اُبخښی او (د بخښنې نه تیرې بې شمېره نعمتونه به ورکړی او به دوئ به) مهربانی (هم) اُکړی او (کچرې هغه خلق اسلام راؤ نه ړی نو اگرچه د نورو کفارو د پاره اسلامی قانون دا دے چه هغوی د اسلامی حکومت حکم اُمنی او جزیه قبوله کړی نو د هغوی وژل روا نه دی بلکه د هغوی د تولو حقونو حفاظت به اسلامی حکومت قد غن شی، مګر د اهلِ عربو کفارو د پاره د جزیې قانون نشته د هغوی د پاره صرف دوه لارے دی. یا خو به اسلام راؤړی او یا به وژلے شی نو په دے وجه) هغوی سره تر هغې جنګیږئ چه (هغوی کښې) د عقیدے ګند (شرک) پاتې نشی او (د هغوی) دین (خالص) هم د الله شی، (او د چا دین او مذهب خالص (هُم) د الله کیدلو مطلب دا دے چه هغه اسلام قبول کړی) او کچرے هغه خلق (د کفر نه) راواؤ ړی (چه د هغې ذکر هم اُس شوے دے) نو (په آخرت کښې د بخښنې او رحمت جوړګه کید و سره سره هغوی د پاره تاسو ته دُنیا کښې دا قانون ښودلے شی چه د سزا) سختی په چا نشی کولے بغیر د بے انصافو خلقو (چه د بے انصافئ په طریقه د خدائے تعالیٰ احسانات سیر کړی او کفر او شرک کوی کله چه هغه خلقو اسلام راؤړو نو بے انصافه پاتې نه شو، له دے وجې د قتل غوندې سختې سزا حکم هُم پاتې نه شو او لے مسلمانانو تاسو دا شک شُبه او فکر مه کوئ چه کوندی کفار تیره میاشت کښې ماته کړی نو د میاشتې (حرامې) میاشتې کښې بیا تاسو هم ورسره جنګ کوئ ځکه چه) عزت منده میاشت (کفارو سره د جنګ کولو نه تاسو لره بندوُونکے) ده په بدل (د دے چه د دے) عزت منده میاشتې (په وجه هغوی هم تاسو سره جنګ نه کوی) او (وجه داده چه) دا عزتونه (لحاظونه) خو د بدل خیزونه دی (ځکه چه تاسو سره د عزتونو لحاظ ساتی نو تاسو هم لحاظ ساتئ او) چه په تاسو (د دا سے حُرمتونو لحاظ اُنکړی) زیاتے اُکړی نو تاسو هم په هغه زیاتے کوئ لکه چه هغه په تاسو زیاتے کړے دے. (او د دے ټولو حکمونو په ځائے راوړلو کښې) د الله تعالیٰ نه ویریږئ (چه په هیڅ څیز کښې د قانونی حد نه و ړ واؤ نه ړئ) او یقین اُلرئ چه الله تعالیٰ (په خپلې مهربانئ او رحمت سره) د ے ویریدونکو سره وی.

## لسم حُکم په جهاد کښې مال لګول

او تاسو خلق (د ځان ورکولو سره مال هم) لګوئ د الله تعالیٰ په لار (په جهاد) کښې او خپل ځانونه د خپله لاسه په تباهئ کښې مه غورځوئ

(چه په داسې ځايونو کښې دځان نه وَژکولو سره په مال نکولو کښې شو منتوب کوئ او دَ دې په نتيجه کښې ستاسو ضعيف او کمزورې مخالف قوي او مضبوط شي نو دا يعني تباهي ده) او (چه کوم) کار (کوئ) په ښه شان ئې کوئ (مثلاً په دې موقع مال نکوئ نو دَ زړه دَ اخلاص سره په خوشئ او ښه نيت سره ئې نکوئ) بيشکه الله تعالىٰ خوښوي په ښه شان کار کوُونکو لره۔

## علوم او مسئلے

دصلح حديبيه د قانون په جوړ دَ هجرت په اوم کال نبي کريم صلى الله عليه وسلم صحابه کرام ځان سره واغستل او د قضا عمرے ادا کولو دپاره روان شُو نو صحابه کرام دکُفارو په لوظ قول او صُلح اعتبار يان نهٔ وو ځکه ئے دا ويره پيدا شوه چه کُفار که جنګ کوي نو صحابه کرام به بوخو په مکه کښې په جنګ کولو مجبُور شي چه اسلام کښې ناجائز دي ، د دې جواب په تير شوي آيت کښې ورکړے شو چه دَ مکے دَ حَرَم عزت او احترام کول مسلمانانو لازم دي ليکن که چرے کُفارو دغلته جنګ شروع کړو نو تاسو له هم دغلته دفاعي جنګ کول روا دي۔

دويمه تلوسه داوه چه دمياشت مياشت کښې جنګ را تلو کومه چه حرامو مياشتو کښې حساب ده او په دے مياشت کښې په هيڅ ځائ کښې هم جنګ کول روانهٔ دي نو دَ دے جواب کښې دا آيت نازل شو مطلب ئے دا دے چه کُفار جنګ شروع کړي نو مُسلمانانو لره دفاعي جنګ کول جائز دي لکه څنګه چه حرمِ مکه کښې دَ دفاعي جنګ اجازت ورکړے شو۔

مسئله : حرمت والا مياشتے څلور دي، ذي القعده (دميانے مياشت) ذي الحجه (دلوئے اختر مياشت) محرم (دعاشورے مياشت) او رجب (بزرګه مياشت) دَ اسلام نه وړاندې هم دے څلورو مياشتو کښې جنګ حرام ګڼړے شو او دَ مکے مشرکان هم دَ دے پابند وُو او اسلام کښې تر اُووکالو دَ هجرت پورے هم دا قانُون جاري وو نو صحابه کرامو ته دا کرانه څکه پيښه شوه ، دے نه پس دجنګ دا حُرمت منسوخ شو او په اجماع اُمت سره دعام جنګ اجازت ورکړے شو مګر اُس هم دا بهتره ده چه دے څلورو مياشتو کښې جنګ شروع نکړے شي، صرف دفاعي جنګ دِکوے شي په دے بُنياد به دا وينا صحيح وي چه دَ مياشتو حرامو حرمت اُس هم باقي دے منسوخ نهٔ دے لکه چه صرف داسے صُورت په حرم مکه کښې دَ ضرورت په بنياد جائز کړے شوے وو او په عام ډول دَ هغې حرمت اُس هم منسوخ نهٔ دے۔

## لسم حکم دجهاد دپاره مال لګول

وَاَنْفِقُوْا فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ په دے حکم سره په مسلمانانو دا قدغن لګولے شوے دے چه دَ ضرورت په وخت جهاد (دَ الله په لار) کښے خپل مالونه لګوئ فقهاؤ دَ دے نه دا حکم ثابت کړے دے چه په مسلمانانو دَ فرض زکوٰة ورکولو نه علاوه خپل مالونه په نورو ځایونو کښے هم لګول فرض دی چه هغه دَ زکوٰة په شان نه څو هیشه دَ پاره دی او نه هغے دَ پاره څه نصاب او اندازه ټاکلے شوے ده، بلکه په هر مُسلمان دا فرض دی چه دَ ضرورت په وخت په جهاد کښے خپل مالونه لګوی که ضرورت نه وو نو بیا فرض نه دی۔

دَ " وَلَا تُلْقُوْا بِاَیْدِیْکُمْ اِلَی التَّهْلُکَةِ " لفظی معنٰی ښکاره دی چه دَ خپله لاسه خپل ځان هلاکت کښے غورځول منع دی۔ په هلاکت کښے دخپل ځان غورځول دلته اُس څه معنٰی لری؟ په دے کښے مفسرینؒ مختلف اقوال کوی، امام جصاصؒ رازی[1] په خپل خیال کښے دَ دے ټولو جوړښت راوَلی او وائی چه دا ټول قولونه مراد اخستے شی۔ حضرت ابوایوب انصاریؓ فرمائیلی دی "چه دا آیت څمونږ په باره کښے نازل شوے دے مونږ دَ دے په تفسیر نه پوهیدو. خبره داده چه اسلام څه وخت دالله په فضل غالب او قوی شو۔ نو مونږ داخبره اَترے اُکړے چه اُس دَ جهاد څه ضرورت دے؟ خپل وطن کښے به پاتے کیږو او خپل مال جائیداد به سنبالوُو نو دا آیت نازل شو چه دا اُښودل چه هلاکت نه مطلب جهاد نه کول دی او دے نه ثابته شوه چه دَجهاد نه کول او پریښودل دَ مسلمانانو دَ هلاکت او تباهئ موجب دی۔ هم دغه وجه ده چه حضرت ابوایوب انصاریؓ ټول عُمر جهاد اُکړو۔ تر دے چه قسطنطینیه کښے شهید شو او هلته دفن شو۔ دَ حضرت ابن عباسؓ۔ حذیفهؓ۔ قتادهؒ۔ مجاهدؒ ضحاکؒ غوندے اماما نو دَ تفسیر نه هم دارنګ مضمون نقل دے۔

حضرت براء بن عازبؓ فرمائی چه دَخپلو ګناهونو په وجه دَ الله تعالیٰ د رحمت او مغفرت نه نا اُمیدی کول دخپله لاسه ځان هلاکول دی ځکه داسے نا امیده کیدل حرام دی۔

څه عالمانو دا هم فرمائیلی دی چه دالله په لار کښے داسے بیځرته مال لګول ځان دخپله لاسه هلاکول دی او رناجائز) إسراف دے په کوم چه دَ اهل وعیال او بال بچ حق ضائع کیږی۔

---

(۱) ج = ۱ء ص = ۳۰۹۔

ځه علماء د هلاکت دا مطلب بیا نوی چه د ښمن سره په جنګ کولو کښے فیصله بربادی او شکست په اندازه لګولو ونیئ کوری او بیا هم ورسره جنګ کوی -

ځنګه چه امام جصاص اُسی اُس اُ فرمائیل دا بتول احکام دَ دے آیت نه ثابتیږی -

"وَأَحْسِنُوٓا إِنَّ ٱللَّهَ يُحِبُّ ٱلْمُحْسِنِينَ" دا جمله د ټولو کارونو په ښه طریقه کولو شوق را بیدارَوی - کار په ښه طریقه کولو ته قرآن "احسان" وائی - دا احسان یو په عبادت کښے او دویم په خپلو معاملو او بنیا د موسره په امروزه تعلّقا توکښے کیدے شی لکه نبی کریم صلی الله علیه وسلم حدیثِ جبریل کښے دا حسان تفسیر داسے فرمائی چه عبادت داسے کوئ لکه چه تاسو خدائے تعالیٰ وینئ کورئ که دا تصوّر نه شئ تا مُوَے نوکم نا کم دا اعتقاد چو ړول خو پر ضروری دی چه خدائے تعالیٰ تاسو وینی -

او دَ خپل مینځ په معاملو او امروزه تعلّقاتو کښے د احسان تفسیر دَ مسند احمدؒ په حواله حضرت معاذؓ د نبی کریم صلی الله علیه وسلّم نه داسے روایت کوی چه "تاسو د ټولو خلقو دَ پاره هم هغه خوښوئ کوم چه ځان دَ پاره خوښوئ او کوم یو څیز چه ځان دَ پاره بد کنړئ هغه دَ نورو د پاره هم بد کنړئ - (مظهری)[1]

وَأَتِمُّوا۟ ٱلْحَجَّ وَٱلْعُمْرَةَ لِلَّهِ ۚ فَإِنْ أُحْصِرْتُمْ فَمَا ٱسْتَيْسَرَ

او پوره کوئ حج او عمره دَ الله دَ پاره - بیا که چرے تاسو بند کړے شئ نو په تاسو دی هغه چه کوم آسان

مِنَ ٱلْهَدْىِ ۖ وَلَا تَحْلِقُوا۟ رُءُوسَكُمْ حَتَّىٰ يَبْلُغَ ٱلْهَدْىُ

وی له قربانئ . او حجامت مه کوئ دَ خپلو سرونو تر څو چه اُنهٔ رسی قربانی ځپلے

مَحِلَّهُۥ ۚ فَمَن كَانَ مِنكُم مَّرِيضًا أَوْ بِهِۦٓ أَذًى مِّن رَّأْسِهِۦ

ځائے ته ، بیا چه په تاسو کښے څوک رنځور وی یا هغه ته تکلیف وی دَ سر ،

فَفِدْيَةٌ مِّن صِيَامٍ أَوْ صَدَقَةٍ أَوْ نُسُكٍ ۚ فَإِذَآ أَمِنتُمْ فَمَن تَمَتَّعَ

نو بدله دِ ورکړی دَ روژے یا خیرات یا قربانئ ، بیا چه تاسو ژه جمع شی

(۱) ج ۱ ص ۲۱۶ -

فَمَنْ تَمَتَّعَ بِالْعُمْرَةِ اِلَى الْحَجِّ فَمَا اسْتَيْسَرَ مِنَ الْهَدْيِ ۚ

نو چه څوک فائده پوره کوی عُمره یوځائے کړی حج سره نو په هغه ده کوم چه آسانه وی قربانی۔

فَمَنْ لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ ثَلٰثَةِ اَيَّامٍ فِي الْحَجِّ وَسَبْعَةٍ

بیا چه څوک بیا نهٔ مومی قربانی نو دوه درے د ساتی درے دحج په ورځو کښے او اووه دورځے چه کله

اِذَا رَجَعْتُمْ ۭ تِلْكَ عَشَرَةٌ كَامِلَةٌ ۭ ذٰلِكَ لِمَنْ لَّمْ يَكُنْ

تاسو راواګرځئ ، دا لس ورځے شوے پوره ، دا حکم هغه چا د پاره دے چه د هغوئ

اَهْلُهٗ حَاضِرِي الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۭ وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْلَمُوْٓا

کور واله نهٔ اُسیږی مسجد حرام سره ، او ویریږئ د الله تعالیٰ نه او پوهه شئ

اَنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ﴿۱۹۶﴾ ع اَلْحَجُّ اَشْهُرٌ مَّعْلُوْمٰتٌ ۚ ۲۴ ع ۸

چه بیشکه د الله تعالیٰ عذاب سخت دے ۔ د حج څو میاشتے دی معلومے ،

فَمَنْ فَرَضَ فِيْهِنَّ الْحَجَّ فَلَا رَفَثَ وَلَا فُسُوْقَ ۙ وَلَا جِدَالَ

نو بیا چه چا په ځان اُمنلو په دے کښے حج ، نو ښځے سره بے پردے کیدل روا نهٔ دی ، او نهٔ ګناه کول او نهٔ جګړه

فِي الْحَجِّ ۭ وَمَا تَفْعَلُوْا مِنْ خَيْرٍ يَّعْلَمْهُ اللّٰهُ ۭؔ وَتَزَوَّدُوْا وقف النبی ﷺ

کول د حج په زمانه کښے ، او چه تاسو کوئ څه نیکی ، نو خبر دے په هغے الله تعالیٰ ۔ او د لارے توښه اخلئ

فَاِنَّ خَيْرَ الزَّادِ التَّقْوٰى ۡ وَاتَّقُوْنِ يٰٓاُولِي الْاَلْبَابِ ﴿۱۹۷﴾

چه بیشکه غوره فائده د لارے د توښے ځان ساتل دی د سوال نه او ما نه ویریږئ اے هوښیارو۔

لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ اَنْ تَبْتَغُوْا فَضْلًا مِّنْ رَّبِّكُمْ ۭ فَاِذَآ

څهٔ ګناه نشته په تاسو چه لټوئ فضل د خپل پروردګار ، بیا چه

أَفَضْتُمْ مِّنْ عَرَفٰتٍ فَاذْكُرُوا اللّٰهَ عِنْدَ الْمَشْعَرِ الْحَرَامِ ص

طواف دپاره راګرځئ دعرفاتو نه نو یاد وئ الله تعالیٰ نزدې مشعر حرام سره

وَاذْكُرُوهُ كَمَا هَدٰىكُمْ ج وَإِنْ كُنْتُمْ مِّنْ قَبْلِهٖ لَمِنَ الضَّآلِّيْنَ ﴿١٩٨﴾

او یاد وئ هغه لره څنګه چې تاسو ته اُښودلې او بیشکه وئ تاسو دې نه وړاندې ناخبره۔

ثُمَّ أَفِيْضُوْا مِنْ حَيْثُ أَفَاضَ النَّاسُ وَاسْتَغْفِرُوا اللّٰهَ ط

بیا طواف دپاره راګرځئ دکوم ځائې نه چې راګرځي ټول خلق، او بخښنه غواړئ دالله تعالیٰ نه

إِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿١٩٩﴾ فَإِذَا قَضَيْتُمْ مَّنَاسِكَكُمْ فَاذْكُرُوا

بیشکه الله تعالیٰ بخښونکے دے مهربان دے، بیا چې پوره کړئ تاسو د حج کارونه نو یاد کړئ

اللّٰهَ كَذِكْرِكُمْ اٰبَآءَكُمْ أَوْ أَشَدَّ ذِكْرًا ط فَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّقُوْلُ

الله لره څنګه چې به یادول تاسو خپل پلاران او نیکونه بلکه د دې نه هم زیات یاد کړئ بیا څه خلق خو وائي

رَبَّنَآ اٰتِنَا فِي الدُّنْيَا وَمَا لَهٗ فِي الْاٰخِرَةِ مِنْ خَلَاقٍ ﴿٢٠٠﴾ وَمِنْهُمْ

اے پروردګاره ځمونږ، راکړې مونږ له دنیا کښې او د هغه له پاره په آخرت کښې هیڅ برخه نشته۔ او څه

مَّنْ يَّقُوْلُ رَبَّنَآ اٰتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَّفِي الْاٰخِرَةِ حَسَنَةً وَّ

په دوئ کښې وائي اے پروردګاره ځمونږ راکړه مونږ ته په دنیا کښې ښه والے، او په آخرت کښې ښه والے، او

قِنَا عَذَابَ النَّارِ ﴿٢٠١﴾ أُولٰٓئِكَ لَهُمْ نَصِيْبٌ مِّمَّا كَسَبُوْا ط وَاللّٰهُ

اُساتې مونږ د عذاب د دوزخ نه، هم دے کسانو د پاره برخه ده د خپلې ګټې نه، او الله تعالیٰ

سَرِيْعُ الْحِسَابِ ﴿٢٠٢﴾ وَاذْكُرُوا اللّٰهَ فِيْٓ أَيَّامٍ مَّعْدُوْدٰتٍ ط

زر حساب اخستونکے دے، او یاد کړئ الله تعالیٰ لره په څو د شمیر ورځو کښې،

فَمَنْ تَعَجَّلَ فِيْ يَوْمَيْنِ فَلَآ اِثْمَ عَلَيْهِ ۚ وَمَنْ تَاَخَّرَ فَلَآ اِثْمَ

بیا چه څوک زر لاړ و هم په دوو ورځو کښې نو نشته گناه په ده، او چه څوک پاتې شو نو په هغه هم څه گناه

عَلَيْهِ ۙ لِمَنِ اتَّقٰى ۗ وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّكُمْ اِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ ﴿۲۰۳﴾

نشته کوم چه ویریږي، او ویریږئ د الله تعالیٰ نه او پوهه شئ چه تاسو ټول به د هغه په خوا کښې جمع کړی شئ

## د تفسیر لنډیز

یو لسم حکم د حج او عمرې په باره کښې | او کله چه حج یا عمره کول وي نو دا حج او عمره د الله د (راضي کولو د) پاره پوره پوره ادا کوئ (چه اعمال او آداب هم ټول په ځائے راوړئ او نیت هم سپیځلے د ثواب وي) بیا که چرے (د څه دښمن یا د رنځ په وجه د حج او عمرې د پوره کولو نه) حصار کړے شئ نو (په دے حال کښې دا حکم دے چه) د قربانئ ځناور چه کوم په لاس راشي (د هغه حلال (ذبح) کړئ او د حج او عمرې کوم شان او حالت چه ئے جوړ کړے وي هغه دِ ختم کړئ کوم ته چه احرام ماتول وئيلے شي. او د هغې طریقه سرخریل دي او د ویښتو پریکول هم د غه حکم او اثر دے) او (د دا سے نه ده چه د حصار نه سمدستي تاسو ته احرام ماتول روا شي، بلکه) خپل سرونه (د احرام ماتولو په غرض) هغه وخته پورے مه خرایئ ترڅو چه (هغه) قرباني (په دے حالت کښې د حلالولو ځاروے) خپل ځائے ته اُنه رسي (او دا خپل ځائے هم د حرم علاقه ده کوم کښې چه د دے قسم قرباني ځاروے حلالولے شي چرے پخپله هلته نشي تلے نو د بل چا په لاس دِ اُلیږي او حلال دِ کړی شي چه ځاروے حلال (ذبح) شي نو هله به احرام ماتول روا وي) البته چرے څوک په تاسو کښې (خر) رنځور وي یا د هغه په سر کښې څه (زخم، دړد یا د سپږو) تکلیف وي (او د دغې رنځورتیا یا تکلیف په وجه د دے نه د سر خریلو ضرورت پیښ شي) نو (اجازت دے چه سر اُخرئ) فدیه (یعنی د دے شرعي بدل) دِ ورکړي (که غواړي) (شپږ ورځے روژے د نیولو) سره یا (شپږ و مسکینانو ته د هر یو په سر د سر ساځے برابر یعني نیم اوږے غنم د) خیرات (په دول ورکولو) سره یا (د یو چیلي په) حلالولو سره بیا چه تاسو د امن په حالت کښې یئ (چه یا خو د ده ته څه ویره یا کړبړنه وي را پیښ شوي یا د را پیښیده وسره ختم شوي وي) نو

(په دې صورت کښې دَ حج او عُمرې متعلق قربانی کول دَ هرچا په ذمه نشته بلکه خاص) هغه کس چه عُمره دَ حج سره په یو ځائے کولو نفع مُوندلې وی (یعنی دَ حج په ورځو کښې ئې عُمره هم کړې وی) نو (یو ئے په هغه واجب دی چه) څه کومه قربانی تر لاسه شی (حلاله دِې کړی او چا چه یواځے عُمره کړې وی یا یواځے حج، نو په هغه هیڅ قربانی نشته) بیا (دَ حج په ورځو کښې کښیا (حج او عُمره یو ځایئے کوُونکی) کَس ته دَ قربانئ څاروے په لاس رانشی (زکه غریب مفلس وی) نو (دَ هغه په ذمه دَ قربانئ په ځائے) د درے ورځو روژے (نیول) دی په (ورځو دَ حج کښې (چه آخرئ دَ ذوالحجے د میاشتے نهمه نیټه جوړیږی) او اُوه (ورځے پس دَ حج (نه دَواپسئ په ورځو کښې (چه حج اُکړی واپس دَ حج دَ ځایه راځی او که نهٔ راځی) دا پُوره لس (ورځے روژے) شوے (او دا هم یاد لرئ چه اُس کوم دَ حج او عُمرے یو ځائے کولو حکم شوے دے) دا (یو ځائے کول هر یو دَ پاره درست نهٔ دی بلکه خاص) هغه کَس دَ پاره (درست) دی چه دچا اهل (او بال بچ) مسجد حرام (یعنی د کعبے) په خوا (وُشا) کښې استوګنه نه کوی (یعنی دَ مکے د حرم حدُود د هغه دَ استوګنې ځائے نهٔ وی) او (دَدے ټولو احکامو په ځائے راوړلو کښې) د الله تعالیٰ نه ویریږئ (چه چرته د حکم خِلاف ورزی دَرنه اُنشی) او (بنه) پوهه شئ چه بیشکه الله تعالیٰ (بے پروائی او مخالفت کوُونکو ته) سخته سزا ورکوی۔

دَ (اعمالو دَ) حج (زمانه) څو میاشتے دهٔ چه (دغه میاشتے مشهورے او) معلومے دی (یو دَ شوال دویمه دَ ذوالقعدے او دریمه دَ ذوالحجے لس ورځے) نو چه کوم کَس په دے (ورځو) کښې (په ځپله ذمه) حج اُتهاکی (چه دَ حج احرام اُتړی) نو بیا (دغه سړی له) نهٔ خوښه څره خبره (روا) دهٔ او نهٔ خوښه نافرمانی (درسته) دهٔ او نهٔ څه تِسم جګړه (او شرشِدت) مناسب دهٔ (بلکه بکار دی چه هر وخت په نیکو کارونو کښې بوُخت وی) او کوم نیک کار چه کوئ خدائے تعالیٰ په هغے خبر دے۔ (د هغے نیکه بدله به تاسو ته دَرکوی) او (کله چه حج ته دوا ئیږئ) نو توښه خامخا (ځان سره) اَخلئ د ټولو نه لویه خبره (او ښه والے) په (مال) نګولو کښې (دَسوالګرئ نه) ځان ساتل دی او اے دَ عقل خاوندانو (په دے حکمونو منلو کښې) ما نه وَیرږئ (او دَ هیڅ حکم خِلاف مه کوئ)

(او ګورے په حج کښې دَ تجارت سامان ځان سره اُړلو کښې خیر اُګڼړئ) نو تاسو ته په دے کښې لږه غونډِ ګناه هم نشته چه (په حج کښې دَ) ژوند (ضروریات) اُلټوئ چه (ستاسو په قسمت کښې) ستاسو دَ پرورِدګار له طرفه (لیک) دے، بیا چه تاسو عرفات (کښې تپکاؤ شئ د هغه ځایه) په بیرته

دوان شئ نو دَ مشعر حرام په خوا کښې (یعنی په مزدلفه کښې د شپې تېکاؤ شئ) دَ خدائے تعالیٰ ذِکر (یاد) کوئ او (دَ دغې ذکر (یاد دَولو) په طریقه کښې خپله رائے مه چَلوئ بلکه) داشان ذکر کوئ څنګه چه تاسو ته (الله تعالیٰ) ښودلے دے او په (اصل) حقیقت کښې دَ دے (ښودلو) نه دمخه تاسو بیخي ناخبره وئ بیا (داخبره هم یاده لرئ چه د ځانه څه رواج جوړ وَل روا نه دی لکه چه قریشو جوړ کړے وو نورو حاجیانو به دَ عرفات نه په واپسئ کښې مزدلفے ته راتلل او هغوئ به دَسره عرفات ته نه تلل یوائے مُزدلفے ته به راتلل) بیا تاسو ټول (که قریش دی یا نور) له هغه ځایه په واپسئ کښې راځئ له کومه ځایه چه نور خلق واپسئ کښې راځي او (دَ حج په حکمونو او افعالو کښې په زړو رواجونو دَ عمل کولو نه) دَ خدائے تعالیٰ په وړاندې توبه اُباسئ الله تعالیٰ به یقیناً معاف کړي او مهربانی به اُکړي۔

جاهلیت کښې دَ څه خلقو دا عادت وو چه دَ حج نه په اُزګاریدو به په منیٰ کښې راجمع شول او دَ خپلو پلارانو نیکونو فخرونه او غورَ والے به ئے بیانولو حق تعالیٰ د دے عبث مشغولتیا په ځائے دَ خپل ذکر دَ پاره تعلیم ورکوي چه بیا کله چه تاسو دَ حج خپل اعمال پوره کوئ نو دَ حق تعالیٰ (شکر او لوئی سره) ذکر کوئ څنګه چه تاسو دَ خپلو پلارانو (او نیکونو) ذِکر کوئ بلکه دا ذکر دَ دے نه (په ډیرُ درجو) زیات (دِ) دی او دَ څه خلقو عادت وو چه حج کښې خو به ئے دَ الله تعالیٰ ذکر کولو لیکن دَ آخرت نه مَنلو په وجه به دَ دوئ ټول ذِکر صرف دنیا دَ پاره دُعا غوښتل وو حق تعالیٰ صرف د دُنیا غوښتو بدی بیانوَي او دَ دے په ځائے دَ دواړو جهانونو دخیر غوښتو شوق ورکوي۔ څه کسان (چه کافران دی) داسے دی چه (په دُعا کښې داسے) وائی چه اے خُموږ پروردیګاره موږ ته (چه کومه راکړه وی) دنیا کښې راکړه (او بس نوکه دوئ ته څه ورکړه وی یوائے په دنیا کښې به وی) او دَ داسے کس به په آخرت کښې (د آخرت نه منلو په وجه) هیڅ برخه نه رسی او څه خلق (چه مُومنان دی) داسے دی چه (په دعا کښې داسے) وائی چه اے خُموږ پروردِګاره موږ ته په دنیا کښې هم غورَ والے راکړے او په آخرت کښې هم غورَ والے راکړے او دَ دوزخ دَ عذاب نه موږ ساتے (نو دا خلق دَ وړاندې ذِکر شوو خلقو په شان بے برخے نه دی بلکه) دَ داسے خلقو (به په دواړو جهانو کښې) غټه برخه رَسی په برکت دَ دوئ دَ دے عمل (یعنی دَ دواړو جهانو دَ خیر غوښتلو) او الله تعالیٰ هُم زر حساب آخستونکے دے (ځکه چه حساب به په قیامت کښې وی او دا ګیا دے دا نزدے کیږی۔ هوکله چه حساب ذرکیدو نکے

دے نو دهغه خلئے غوږ والے مه هیرَوی ) او (په منیٰ کښے په خاص طریقه هُم ) د الله تعالیٰ ذکر کوئ په څو ورځو د شمیر کښے (خاص طریقه ګاده چه خاص درے سلی په کښو اُو یشتے شی چه د شمیر ورځے د ذی الحجه یولسم او دولسم نیټه ده - یا دیارلسمه نیټه هم. په کوم کښے چه دغه عملی په کیتهو ویشتے شی ) بیا چه کوم کس (دَ لسمے نیټے نه پس کښتهٔ اُولی ) په دوه ورځو کښے او مکے ته واپس راګرځید و کښے ) تلوار اُکړی نو په هغه هم څه ګناه نشته او چه کوم کس په (دے) دوو ورځو کښے (مکے ته په واپس راتلو کښے ) ډیل اوکړی (یعنی په دولسمه نه بلکه په دیارلسمه نیټه مکے ته راشی) په هغه هم څه ګناه نشته (او دا ټولے خبرے ) دَ هغه کس دپاره (دی) چه (دَ خدائے تعالیٰ نه ) ویریږی (او دَ نه ویریدو نکی خو ګناه ثواب سره څه کار نشته) او الله تعالیٰ نه ویریږئ او پوخ یقین لرئ چه ستاسو ټولو به هم خدائے تعالیٰ سره راغونډید ل دی.

# علوم او مسئلے

**دَ حج او عمرے احکام** دا ابواب البر کومه لړئ چه دَ سورتِ بقره د نیمے نه را روانه ده په هغے کښے یولسم حکم دَ حج دے دَ حج جوړ مکے مکرمے او بیت الله شریف سره دے په دے وجه دَ دے څه مسئلے دَ قبلے په بیان کښے په ضمنی ډول دَ سورتِ بقره دَ ۱۲۵ آیت نه تر ۱۲۸ آیت پورے یعنی دَ " وَاِذْ جَعَلْنَا الْبَيْتَ مَثَابَةً " نه تر " وَاَرِنَا مَنَاسِكَنَا " پورے بیان شوے وے بیا دَ قبلے دَ بحث په ختمیدو په ۱۵۸ آیت " اِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ " کښے دَ صفا او مروه په مینځ کښے دسعی کولو حکم هم په ضمنی ډول بیان شوے دے اُس ۱۹۶ آیت نه تر ۲۰۳ آیت یعنی اَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ " نه تر " فَمَنْ تَعَجَّلَ فِيْ يَوْمَيْنِ دَ آخره پورے پرله پسے اته آیتونه دَ حج او عُمرے داحکامو او مسئلو په باره کښے دی.

په دے دُ اُمت اجماع ده چه حج د اسلام یو رُکن او دَ ژوند په ټول عمر کښے یو ځل ضروری فرض دے. په دے ډیر آیتونه او ډیر شهره صحیح احادیث ګواه دی.

دجمهورو علماؤ دَ وینا په جوړ دَ غزوهٔ اُحد یعنی دَ هجرت په دریم کال په دے آیت " وَلِلّٰهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ " آلایه حج فرض شو (ابن کثیر[1]) په دے آیت کښے دَ حج دَ شرطو نو ذکر دے او ... دَ توفیقه دَ حج په نه کولو دَ سخت وعید بیان دے.

د پور ... ذکر ... وی اُتو آته ... په دے آیت اَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لِلّٰهِ " په اتفاق

د مفسرینوؒ د حدیبیهٔ په قصه کښے نازل شوے دے کومه چه په شپږم کال د هجرت کښے شوے وه، معلومیږی چه په دے آیت کښے دَ حج او دَ عمرے خاص احکام بنودل مُراد دی. دَ حج فرضیت بنودل مُراد نهٔ دی ځکه چه هغه د وړاندے بنودلے شوے دے.

**دَ عُمرے حکم** | په سورت آلِ عمران کښے یوائے دَ حج د فرضیت بیان دے. دَ عمرے هډو یځنے ذکر نشته او په دے آیت کښے دَ عُمرے ذکر کولو مطلب دا دے چه په احرام تړلو سره دَ حج او عُمرے پوره کول او سرته رسَول دا سے فرض شو لکه څنګه چه دَ نورو نفلی عبادتُونو (مونځ، روژے وغیره) دَ غه حکم دے، دے آیت نه دا مسئله هیچرے نهٔ ثابتیږی چه عمره اداکول واجب دی.

د ترمذی احمد، بیهقی په حواله ابن کثیر د حضرت جابرؓ نه نقل کړی دی چه هغویٔ دَ رسول الله صلی الله علیه وسلّم نه سوال اُوکړو چه عُمره واجب ده ؟ هغویٔ اُفرمائیل چه واجب خو نهٔ ده لیکن که دِ اُوکړه نو غوره ده او افضل ده (ترمذی وائی چه دا حدیث حسن صحیح دے) هم دا وجه ده چه دَ امام ابوحنیفهؒ او امام مالکؒ وغیره په نزد عمره واجب نهٔ ده په تیر شوی آیت کښے هر کله چه دا بیان اُشو چه دَ حج او عمرے په احرام تړلو سره دَ دے پوره کول واجبیږی اُس دا سوال پیدا شو چه دا احرام تړلو نه پس که چرے څه مجبوری دا سے را پیښه شی چه حج او عمره نهٔ شی اداکولے نو څه به کیږی ؟ دَ دے جواب ئے "فَإِنْ أُحْصِرْتُمْ" سره اُفرمائیلو.

**دَ دا سے مجبوریٔ په راپیښیدلو به څه کیږی چه دَ احرام تړلو نه پس حج یا عُمره نشی کولے ؟**

دا آیت په واقعه دَ صلح حدیبیه کښے هغه وخت نازل شوے دے چه حضور علیه السلام او صحابه کرامو دَ عُمرے احرام تړلے وو او کفارو دوی له دَ عمرے اداکولو نه دا سے منع کړل چه په مکه دننه ورتلو نه ئے بند کړل په دے کښے دا حکم نازل شو چه یو آسانه قربانی (دَ غوا، چیلئ یا اُوښ) دِ په فدیه کښے ورکړی او احرام دِ مات کړی مګر په "لَا تَحْلِقُوا رُءُوسَكُمْ" سره ئے دا بنکاره کړه چه دا احرام ماتولو شرعی صورت دَ سر دِ ښته خرئیل یا لنډول تر هغے روا نهٔ دی ترڅو چه دَ هغه قربانی خپل ځائے (دَ مکے حرم) ته اُنهٔ رسی او حلاله (ذبح) نشی.

خپل ځائے ته دَ رسید لو مطلب امام اعظمؒ دا بنائی چه دَ قربانئ ځاروے د حرم په حدُود کښے داخل او ذبح شی که چیرله ئے نشی کولے نو په بل چا دِ اُکړی. دَ مجبوریٔ یو خاص قسم دَ

دبیمن دَ احِصَارَ دَ لوصوَت په آیت کښې ښکاره ذِکر دے. امام اعظم" اوځه نور وامامانو
زغګورتیا ته هم مجبوُری حُکه و ښیلے ده چه علّت (راحصارید ل او پاتے کید ل) دَ دواړو یو
او شریک دے. دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم عملی بیان نه دا حکم هم ثابت شو چه دَ
دغه پاتے شوے عُمرے ځ په راتلونکی کال کښې قضا راوُړے وه.

دَ سر و ښیټه خرئیل یا لنډَ وَل دا احرام ماتَوَلو نښه مقرَر دَل دَدے خبرے دَ لیل دے چه
په احرام کښې دا کار منع دے دَدے په جوړ راتلونکے حکم دا اُښودلے شو چه دَ حج او عُمرے دَ
افعالو اداکولو مجبورَی نه وی نو صِرف دَ سر دَ ویښتو خرئیلو یا لنډَ وَلو څه بله مجبورئ راپیښهٔ
کښې به څه کولے شی؟

**تړلی احرام کښې دَ سر خرئیلو مجبوری راپیښه شی نو څه به کولے شی؟**

فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَّرِيْضًا اَوْ بِهٖٓ اَذًى مِّنْ رَّاْسِهٖ سره دا ښائی چه دَ څه بیمارئ یا دَ سپږو
په وجه کچرے دسر یا دَ بل اندام دَ ویښتو خرئیلو/لنډَ وَلو مجبوری راپیښه شی نو دضرورت
په مُناسب ویښته خرئیل/لنډَ وَل دوا دی خوفدیه او بد له بهٔ روژے، خیرات یا قربانی
خامخاوی. دَ قربانئ دَ پاره دَ حرم حدود تاکلے شوی دی مګر روژو او خیرات د پاره څه
ځائے نه دے تاکلے شوے، هرځائے کښې کیدے شی، قرآن دَ دروژو شمیر او دَ خیرات څه اندازه
نه ده تاکلے مګر دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ فرمان نه ثابتیږی چه روژے درے دی
یا شپږ و مسکینانو ته نیم نیم اُوبدے ورکول دی څنګه چه کعب بن عُجرهؓ ته ئے دَ سپږو په
مجبورئ کښې فرما ئیلی وُو (صحیح بخاری) دا تیانولو دسیر په حساب نیم اُوبدے تقریبًا
یا وُکم دوه سیره غنم جوړیږی چه دَ هغے قیمت خیرات کول هم کافی کیږی.

**دَ حج په میاشتو کښې دَ حج او عُمرے یوځائے کولو احکام**

دَ جاهلیت دَ زمانے عربو به دا سخته ګناه ګنړله چه دَ شوال میاشت په شروع کیدو سره دَ حج په زمانه کښې حج
او عُمره یوځائے اُکړے شی. دَ آیت په آخر کښې دا ښکاره کړے شوه. چه په میقات کښې دَ ننه
اوسیدونکو دَ پاره دَ حج او عُمرے دَ یوځائے کولو دغه بندیز همدغسے حُکه پریښودے شو چه
دَ عُمرے دَ پاره دوباره سفر کول دوئ ته آسان دی یکن دَ میقات نه بهر اُسیدونکو پاره دا بندیز
خُکه پورته کړے شو چه هغوئ ته دوباره عُمرے دپاره سفر کول ګران پریوځی. او دَ حج او عُمرے
یوځائے کولو اجازت ورکړے شو. میقات د مکے مکرمے کیرچاپیره هغه مختلف ځایونه دی چه دَ

الله تعالیٰ له طرفه دَ ټولے دُنیا دَ حج او عمره کوونکو دا احرام تړلو دپاره ټاکلی شوی دی. دغه میقاتونو نه احرام تړل دا سے ضروری دی چه دا احرام تړلو نه بغیرله دے ځایه مکے طرف ته وړاندِ تلل جُرم او ګناه ده دَ ﴿لِمَنۡ لَّمۡ يَكُنۡ اَهۡلُهٗ حَاضِرِي الۡمَسۡجِدِ الۡحَرَامِ﴾ همدغه مطلب دے چه هغه خلقو دَپاره حج او عُمره یوځائے کول روا دی کوم چه دَ میقات دننه اَستوګنه کوی. خو په حج او عُمره یوځائے کوونکو خلقو دشکرانے په ډول واجب دی چه دَ کبه چیلی یا غوا، غوئ یا اوښ قربانی ورکړی کوم یوه چه په کوټو ورشی او څوک چه دَ قربانئ کولو مالی توفیق نهٔ لری نو په هغه دا واجب دی چه لس ورځے روژے اُنیسی درے دَ حج په ورځو کښے چه دعرفے تر ورځے ختمے شی او اُوه پاتے روژے دَ حج ختمولو نه رُستو اُنیسی که په مکه مکرمه کښے نیسی او که بل هرځائے کښے نیسی که چا دَ حج په ورځو کښے درے روژے اُ نشوے نیولے نو امام ابوحنیفہؒ او نورو صحابه کرام دا موقف لری چه هرکله توفیق ئے اُشی هم قربانی پرِ واجب ده بل څه نهٔ او دا قربانی دَ بل چا په لاس هم دمکے په حرم کښے کول روا دی (جصاص)

**تمتُّع او قِران** | دَ حج په میاشتو کښے حج سره عُمره یوځائے کول په دوُو طریقو کیږی، یو دا چه دَ میقات نه دَ حج او عُمرے په یوځل احرام اُتړی دے ته په اِصطلاح دَحدیثو کښے قِران وائی کله چه دَ حج اِحرام ما تیږی نو دَ عُمرے به ورسره یځیله مات شی، دَدے نه وړاندِ دا احرام نهٔ شی ماتولے، دویمه طریقه دا ده چه دَ میقات نه یوائے دَ عُمرے اِحرام اُتړی په مکه مکرمه کښے دَ عُمرے دا فعالو دا کولو نه پس دغه اِحرام مات کړی کله چه دَ ترویئے (اَتمے ورځ دَ ذوالحجے) په ورځ مِنیٰ ته ځی نو دَ حرم شریف دننه احرام دَ حج اُتړی دے ته په اصطلاح کښے تمتُّع وئیلے شی هسے خو دَ تمتع لفظی معنیٰ دَ حج او عمرے په یوځائے کولو فائده اَخِستل دی چه تمتُّع او قِران دواړو صورتونو له شاملیږی او په آیت کښے دَ ﴿فَمَنۡ تَمَتَّعَ﴾ نه دغه دواړه مُراد دی۔

**دحج او عمرے په احکامو کښے بے غوري کول دَ عذاب باعث ده** | دَ آیت په آخر کښے اوّل دَ تقویٰ کولو حکم دے معنیٰ ئے دا ده چه دَ الله تعالیٰ په احکامو کښے دخِلاف کولو نه ډیره اوځان ساتل اُکړے شی او دَدے نه پس دا فرمان دے ﴿وَاعۡلَمُوۡٓا اَنَّ اللّٰهَ شَدِيۡدُ الۡعِقَابِ﴾ یعنی چه کوم خلق په قصد دَ الله تعالیٰ دا احکامو خِلاف کوی، نو هغه دپاره دَ الله تعالیٰ عذاب سخت دے نن صبا اکثر حج او عمره کوونکی دے نه بے پروا

دی، اول خو دَ دے دوا پوو دَ احکامو پیژندلو کوشش نهٔ کوی که وے ئے پیژنی نو اکثر پرِ عمل نهٔ کوی دَ غلطوا وغلط کارو معلّمانو او ملګرو دَ بے پروا یئ له وجے دِ یر واجبات پاتے شی، سنّت او مُستحب خو هسې وَخته شِهیر کیږی نو الله تعالیٰ دِ ټولو ته دَ عمل بنه کولو توفیق ور کړی۔

## دَ حج دَ احکامو بیانو لو یه لړ کښے دَ اتو آیتونو نه دویم آیت او دَ هغے مسئلے

اَلۡحَجُّ اَشۡهُرٌ مَّعۡلُوۡمٰتٌ اَشۡهُرٌ دَ شَهۡرٌ جمع ده چه معنیٰ ئے ده میاشت، په تیرشوی آیت کښے دا فرمان وو چه دَ حج او عمرے احرام اُترى نو ضروری دی چه دَ هغې احکام دِ پوره ادا کړی په دے دوا پو کښے عُمرے دَ پاره څه نیټه او میاشت نه ده ټاکلے شوے هر کله چه اُغوا پری منو کیدے شی لیکن دَ حج میاشتے، افعال، اعمال، وختونه او نیټے ټاکلے شوی دی دَ آیت په رُومبی سر کښے دَ حج او عُمرے بیلتون اُکړے شو دا اُبنو دے شو چه دَ حج دپاره څه میاشتے ټاکلے شوی دی چه مشهورے دی او دَ جاهلیت او اِسلام په دے ټولو اتفاق دے، دا میاشتے شوال، ذی القعده او لس ورځے دَ ذی الحجے دی لکه چه حدیث کښے دَ ابو امامهؓ او ابن عمرؓ په روایت راغلی دی (مظهری) دشوال نه دَ حج دَ میاشتو دَ شروع کیدو مطلب دا راؤخی، چه دَ دے نه وړاندِ دَ حج احرام نهٔ شی تړلے (یعنی روا نهٔ دی) بلکه څه امامان خو په دا سے احرام هسې دَ حج دَ ادا کیدو قائل نهٔ دی امام اعظم ابوحنیفهؒ فرمائی چه په داسے احرام به حج ادا شی خو مکرُوه به وی (مظهری)

فَمَنۡ فَرَضَ فِیۡهِنَّ الۡحَجَّ فَلَا رَفَثَ وَلَا فُسُوۡقَ وَلَا جِدَالَ فِی الۡحَجِّ " په دے کښے دَ حج احرام تړونکو ته دَ څه طریقو او کارونو نهٔ کولو حکم شوے دے۔ دَ کومو نه چه په احرام کښے ځان ساتل واجب دی هغه درے څیزونه دی رفث[۱]، فسوق[۲]، جدال[۳]۔

رفث یو هم ګیر لفظ دے مطلب ئے دا دے چه یواځے ښځے سره جماع کول نهٔ بلکه جماع ته رابلونکی او تیاوَ دُونکی ټول حرکتونه او خبرے په احرام کښے حرام دی۔ البته په خبرو خبرو کښے آوُدوَل او اشارے کول باک نهٔ لری۔

دَ فسوق لفظی معنیٰ وَتَل دی او دَ قرآن په اصطلاح کښے دَ څه علماؤ په نزد مطلب ئے دُحکم نه منل او نا فرمانی ده او دے کښے ټول ګناهونه شامل دی مګر حضرت عبد الله بن عمرؓ دے نه مطلب یواځے هغه څیزونه او کارونه بنائی کوم چه په اِحرام کښے بند او

ناروا دی لکه چه دا دَ دے ځائے مناسب تفسیر دے ځکه چه عام ګنا هونه خو بغیر د احرام نه هم بند دی دلته مطلب هم هغه ځیزونه او کارونه اِعستل یکار دی چه یوائے په احرام کښے بند او ناروا دی۔

کوم ځیزونه چه صرف په احرام کښے ناروا ګرځی شپږ دی : ښځے سره جماع کول او هغے ته دا یکُوتکی او تیا دُونکی خبرے کول او نه او خبرے۔ دا و ښکار ښکار کول یا بل ښکاری ته ښودل، ویښته یا نُوکونه خرئیل او پریکول، دَخوشبوئی استعمالول۔ دا شلور واړه ځیزونه دَ نر ښځے دواړو دَ پاره په احرام کښے ناروا دی پاتے دوه ځیزونه صرف نارینه وَ دَ پاره ناروا دی۔ ګنډلے جامے اغوستل او سَر، مخ پټول دا امام اعظم ابوحنیفه او امام مالک په نزد په احرام کښے مخ پټول دَ ښځے دپاره هم ناروا دی چه شریک ناروا بللے شی۔ ښځے سره جماع کول په فسوق کښے داخل دی بیا هم په رفث کښے دَ دے دوباره ذِکر کول دا بنائی چه دَ دے نه په احرام کښے ځان ساتل دیتولو نه زیات ځکه ضروری دی چه په احرام کښے دَ نورو ناروا ځیزونو په کفارے او بدل ورکولو سره حج پُوره کیږی مګر جماع کولو سره بعضے وخت ( مثلاً په عرفات دَ وقوف نه وړاندِ) حج ماتیږی ، راتلونکی کالونو کښے دَ دے حج قضا راوړل فرض شی او کفاره یا بدل ئے هم نشی کیدے او دغوا او بنے دَ قربانئ کولو جُرما نه به لا تیرے پوره دائی۔

دَجدال معنی دیو بل دَ را پرځولو کوشش دے ، نو ځکه دَ دے معنی سخته جګړه کیدے شی ځکه چه دا لفظ عام دے دغه رنګ بعض مفسرینو دَ دے هُم دغه عامه معنی مُراد اخستے ده او ځه علماؤ دَ دے معنی خاصه اخستے ده۔ مطلب ئے هغه جګړه ده چه دَ جاهلیت عربو به په حج کښے دَ وقوف په ځائے کښے تیا کولو چا به دَحقیقت په جوړ په عرفات وقوف ضروری ګڼلو او چا به په مزدلفه دا سے ضروری ګڼلو چه هلته وعرفات ته به تلل هم نه ، او وئیلے به ئے چه صرف په مزدلفه ابراهیم علیه السلام وقوف کړے وو۔ دَ حج په وختونو به هم جګړه کیدله چا به دَ دے وخت ذی قعده ګڼله او چا به ذی الحجه ګڼله۔ په دے به جګړے جوړے شوے او یو بل ته به ګمراه وئیل له دے وجے الله تعالیٰ په " لَاجِدَالَ " دا ټولے جګړے دا سے ختمے کړے چه فرض وقوف په عرفات او واجب وقوف په مزدلفه دے او حج به صِرف دَ ذی الحجه په ورځو کښے کیږی اُس په دے خبره جګړے کول بند او ناروا دی۔

دَ دے تفسیر نه دا ښکاره شوه چه په آیت کښے یوائے د هغه ځیزونو ذِکر دے کوم چه په احرام

کښې بند او نا روا دی . اگرچه په عام وخت لا هم کښې نا روا نه دی لکه څنګه اخلاقي ناکاره خبرې کول چه په عام ډول بند او نا روا نه دی مګر رومبی دوا په په دوزه کښې او دريم دا په ټول په حالت کښې بند او نا روا دی -

ځه علما و صحابه نو د فسوق او جدال عامه معنیٰ دا سې اغستې ده چه دا دواړه هر وخت او په هر ځائے کښې ناروا دی مګر د احرام په حالت کښې دا نوره هم زیاته سخته ګناه جوړه شي چه ورځے مبارکې ځائے مبارک د احرام لباس ورته لا زیاتی ورباندې وي، چه دا وخت او ځائے د عبادت دے نو په دے کښې جنګ جګړه بدے ردے او بدے چارے کول لویه بد نصیبی او ډیره زیاته سخته ګناه ده -

د دے عامے معنې په اعتبار سره د فسوق او جدال بند ولو او حرامولو یو حکمت دا هم کیدے شي چه د حج په موقعه بنیادم اکثر دے ګناهونو کښې راګیر یږی ځکه چه حاجی په دے وخت کښې دخپل بال بچ او کور والئ نه ډیر جدا وی او بیا د مطاف، مسعیٰ، عرفات، مزدلفه او منیٰ په ګنړه کښې خو سره د ډیره احتیاط سره خوا ګانې ورته د ځوا ګيدون راځي چه په دغه وخت کښې ځان قابو کښې کول ډیر ګران شي هم دغه وجه ده چه ټولو نه اول ئے د رفث حرامولے بیان کړو په دے ګنړه کښې د غلا او نورو ګناهونو کولو ډیرے موقعے هم په لاس راځي. په دے وجه ئے د لا فسوق هدایت اُکړو دغه رنګ ګنړه کو نړه کښې د ځائے تنګوالے او نورے دا سے ډیرے وجے په حج کښې جوړیږی چه د هغه نه خپلو ملګرو او نورو خلقو سره جنګ جګړے راولا پیږی چه " لاجدال" سره ختم کړے شوے -

**د قرآن بلاغت** په احرام کښې د رفث، فسوق او جدال نه منع کول دو چه هغه د نهي په صیغه کیدے شو لکه لا ترفثوا ولا تفسقوا ولا تجادلوا معنیٰ به ئے دا وه چه رفث فسوق او جدال مه کوئ خو د دے په ځائے د نفي په صیغه ئے راوړل لا رفث ولا فسوق ولا جدال (معنیٰ ئے دا ده چه نشته رفث او فسوق او جدال) دا بنائي چه د دے کول خو لا پریږده دا خیزونه د سره په حج کښې شته دے هم نه مطلب دا دے چه دا په حج کښې هیڅ ځائے نه لري -

وَمَا تَفْعَلُوا مِنْ خَيْرٍ يَعْلَمْهُ اللّٰهُ په احرام کښې د بندو او حرامو څیزونو بیانولو نه پس دے جملے سره دا هدایت ورکړے شو چه د حج په مبارکو او پاکو ورځو کښې یوائے

دحرامو ورکنا هو نونه ځان ساتل نهٔ دی پکار بلکه په عبادت، دالله په ذکر او نیکو کارونو کښے بوختیدل غنیمت اُګڼړئ ځکه چه ستاسو هرنیک کار کول دَ الله تعالیٰ په علم کښے دی، چه په هغے به تاسو ته غښتلی انعامونه ورکوی۔

وَتَزَوَّدُوْا فَاِنَّ خَيْرَ الزَّادِ التَّقْوٰى په دے کښے دَ هغه خلقو اِصلاح کول مطلب دی څوک چه دَ توکّل په نوم تش لاس دَ حج او عُمرے دَ پاره روانیږی بیا په دے سفر کښے خیرغواړی (دَ خلقو نه سوال کوی) پخپله هم په تکلیف کښے وی او نور خلق هم تنګوی دوئی ته هدایت اُشو چه دَ سفرِ حج او عُمرے ضروریات ځان سره اخستل دَ توکّل نه خلاف نهٔ دی بلکه دا بعینه توکّل دے چه دَ الله تعالیٰ ورکړے مال او سامان ځان سره واخلی یاجمع کړی ځکه چه دَ توکّل هم دا تفسیر دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه منقول دے، اسباب او ضروریات پریښودل توکّل ګڼړل دا سے جهالت دے لکه چه یو کَس بے خوراکه ځان موړ بولی یا بے جائیداده، بے ګرونده او اُبه خور دَ خوړاک او نو غلے په طمعٔ وی۔

| دحج په سفر کښے تجارت یا مزدُوری کول څنګه دی؟ |
|---|

"لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ اَنْ تَبْتَغُوْا فَضْلًا مِّنْ رَّبِّكُمْ" یعنی په تاسو دَ دے خبرے هیڅ ګناه نشته چه دَ حج په سفر کښے په تجارت یا مزدُوری کولو څه روزی یا دَ الله تعالیٰ ورکړے رزق حاصل کړئ۔ دَ دے آیت دَ نزول واقعه دا ده چه دَ جاهلیت په زمانه کښے دَ جاهلیت دَ زمانے عربو ټول عبادتونه او معاملات په خپلو غلطو رسمونو او رواجونو شاملول لو سره ګډ وډ کړی وو۔ او لویے بتوقے ئے ترجوړے کړے وے هم دغه طریقه دَ حج په عباداتو کښے به دوئی کوله۔ دَ منیٰ په لو یه ټولنه کښے به دَ دوئی خاص خاص بازارونه لګیدل نُمایِشونه به کیدل او دَ تجارتی ترقئ طریقے به پکښے لټوے شوے دا سلام په راتلو سره په مُسلمانانو حج فرض شو دَ دغه ټولو هبثو رسمونو جرړے پریکړے شوے نو دَ الله تعالیٰ درضا په لټون او دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم په تعلیماتو ځان بَیلُونکی صحابه کرام رضوان الله علیهم اجمعین دا خیال راغے چه کوندی دَ حج په ورځو کښے تجارت یا مزدُوری کولو سره څه ګټل هم بند او حرام وی ځکه چه دا هم دَ جاهلیت دَ خلقو کار وو ترد دے چه یو صاحب دحضرت عبد الله بن عمرؓ خواته راغے اوَ تپوس ئے تر اُکړو چه په مزدُوری او بنان چلول ځمونږ کسب دے کله نو حاجیان په مزدُوری په دغه اُوبنانو سواره موونږ حج ته بوځو په دے حالت کښے ځمونږ خپل حج نشی کیدے؟ نو

حضرت عبداللہ بن عمرؓ دوئنہ اُفرمائیل چہ ھم دغسے تپوس یوکس دنبی کریم صلی اللہ علیہ وسلّم نہ کرے دو ھغہ وخت ھغوئی چپ شوَل ځہ جواب ئے ورنکړو ورپسے دا آیت نازل شو" لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ اَنْ تَبْتَغُوْا فَضْلًا مِّنْ رَّبِّكُمْ" حضورصلی اللہ علیہ وسلم ھغہ کس را اُبللو او ورتہ ئے اُفرمائیل چہ ھَوستاسوچ درست دے۔

دے آیت دا پوُرہ ښکارہ کړہ چہ پہ تجارت یا مزدُورئ سرہ څہ کټل گناہ نہ دہ خو پہ فَضْلًا مِّنْ رَّبِّكُمْ کښے دے خبرے تہ اشارہ دہ چہ بهترئ پہ دے کښے دہ چہ دَغہ کټہ دَاللہ تعالیٰ فضل او ورکړہ اُگنړے شی او شُکرئ اُکړے شی۔ صرف مال راغونډول مقصُود اُنشی گنړے ځکہ چہ دَعربو کُفار دوئی لرہ دَ تجارت مَنعہ ھی او دَنمائش ځائے گنړلو او پہ لَاجُنَاحَ عَلَيْكُمْ کښے دے دویمے خبرے تہ اشارہ دہ چہ داسے کټل گُناہ نہ دہ البتہ دے کښے دا اشارہ هم کیدے شی چہ پہ تجارت او مزدُورئ سرہ دَکټلو نہ کہ بچہ اُکړے شی نو دا بہ ځکہ بهترہ وی چہ پہ اخلاصِ کامل کښے فرق رانشی۔ اصل مسئلہ دادہ چہ کچرے دَ یوکس اصل مقصد او نیّت مال کټل۔ تجارت یا مزدُوری وی خو ورسرہ تبعًا دَحج نیت اُکړی۔ یا دواړہ نیتُونہ پہ برابرہ درجہ کښے وی نو دا دَ اِخلاص خِلاف خبرہ دہ چہ دَحج ثواب پرکمیږی او دَحج سرہ مناسب پورہ برکات پرنہ حاصلیږی او کچرے اصل ارادہ او نیّت ئے دَحج وی لیکن دَحج یادکورلی ضروریاتو پہ بارہ کښے ئے لاس تنگ وی چہ دَ ھغے دَ پورہ کولو دَپارہ څہ محنت مزدُوری یا تجارت اُکړی نو دا اخلاص سرہ سمُون خوری او دَ اخلاص منافی نہ دہ خو بیا هم بهترہ خبرہ دادہ چہ دَحج دپارہ پنځو خاصو ورځو کښے څہ خواری مزدُوری او تجارت اُنکړے شی او دَغہ پنځہ خاصے ورځے پہ عبادت او ذکر کښے تیرے کړے شی هم دغہ وجہ دہ چہ بعضے علماؤ پہ دغہ پنځو ورځو کښے تجارت او خواری مزدُوری کول نارواگنړلی دی۔

## پہ عرفات او دَ ھغے نہ پس پہ مزدلفہ وقوف

دے نہ پس پہ دے آیت کښے ارشاد دے فَاِذَآ اَفَضْتُمْ مِّنْ عَرَفٰتٍ فَاذْكُرُوا اللّٰهَ عِنْدَ الْمَشْعَرِ الْحَرَامِ وَاذْكُرُوْهُ كَمَا هَدٰىكُمْ ۚ وَاِنْ كُنْتُمْ مِّنْ قَبْلِهٖ لَمِنَ الضَّآلِّيْنَ ۝ معنیٰ ئے دادہ چہ کلہ تاسو عرفات نہ پہ بیرتہ راروانیږئ نو دَ مشعرحرام پہ خواکښے دَخدائے تعالیٰ یاد کوئ او داسے یادَول کوئ ځنگہ چہ ئے تاسو تہ ښودلی دی او پہ حقیقت کښے دا اللہ تعالیٰ دښودنے نہ دہاندِ تاسو بیخی ناخبرہ وَئ"۔ پہ دے کښے دا خبرہ اُښودلے شوہ چہ دَ عرفات نہ پہ واپسئ کښے پہ

مزدلفه قیام کول (تم کېدل) او په هغې خاص ذکر کول واجب دي.

عرفات د جمع لفظ دے د لته د يو خاص ميدان نوم دے د کوم کېږچا پېره غلور واړه پوړي چه مشهورے دي د حرم نه بهر پروت دے د غلته د عرفې په ورځ د نمر سرخېدو نه وروسته تر ماښامه تم کېدل د حج په پير ضروري فرضونو کښې شمېر دي چه د هغې د پاتې کېدو د قضائيه هيڅ کفاره او فديه نشي کېدے.

دے ميدان ته عرفات په ډيرو وجوهو ويلے شي. ښکاره وجه يکښې دا ده چه په دے ميدان کښې د خپل رب معرفت او د عبادت او ذکر په وجه د الله تعالیٰ نزديکت حاصلېږي. بله وجه ئے دا ده چه د ټولے دُنيا مسلمانان د غلته يو بل اُپيژني. قرآن کريم په دے خبره ډير زور ورکوي چه د عرفې د ورځې په ماښام د عرفات نه په واپسۍ کښې د مشعر حرام په خوا کښې تم کېدل پکار دي. مشعر حرام په مزدلفه کښې د يو غر نوم دے. د مشعر معنیٰ شعار (خاص نښه) ده او د حرام معنیٰ مقدس او محترم ده مطلب ئے دا شو چه دا غر د اسلامي شعار ښکاره کولو د پاره يو مقدس او پاک ځائے دے د دے خوا و شا ميدان په مزدلفه بللے شي. د لته شپه تېرول او د ماښام او ماسختن مونځ په يو ځل او يو ځائے کول واجب دي. هسے خو په مشعر حرام کښې د الله تعالیٰ هر قسم ذِکر کېدے شي مګر د ماښام او ماسختن مونځ د غلته په يو ځائے ادا کول د دغې ځائے يو خاص عبادت دے. د آيت دا برخه وَاذْكُرُوْهُ كَمَا هَدٰىكُمْ دے خبرے ته اشاره لري چه ذِکر دِ په هغه د ول اُکړے شي کوم چه الله تعالیٰ تاسو ته درښائے او قياس له دِ دخل ورنکړے شي. ځکه چه قياس دا ښائي چه د ماښام او ماسختن مونځونه دِ په خپلو خپلو وختونو کښې جُدا جُدا ادا کړے شي. ليکن الله تعالیٰ ته دا غوره ده چه د غلته دِ په دغه ورځ د ماښام مونځ ماسختن ته رُسنو کړے شي او هغې سره دِ يو ځائے ادا کړے شي. وَاذْكُرُوْهُ كَمَا هَدٰىكُمْ نه دا اصولي مسئله هم سرکنديږي چه د الله په ذِکر او عبادت کښې انسان په خپله خوښه عمل نشي کولے چه يکښې زياتے کمے اُکړي يا وړاندې رُسنو اُکړي. بلکه دا صرف د شريعت په ټاکلو شوو طريقو کولو ته عبادت او ذکر کېدے شي چه هغې نه خِلاف کول الله تعالیٰ ته نه خوښيږي. د آيت دا برخه دا غلطي هم ښکاره کوي چه په نفلي عبادتونو او خيراتونو کښې د خپله ځانه څه زياتے کول يا خصوصيت ټاکل چه الله تعالیٰ او رسول صلی الله عليه وسلم ئے ضروري نه ګڼړي د جاهليت عبادت بللے شي. کوم لره چه دوئ د خپله ځانه څه طريقے جوړے

کړے وے یا به ئے دخپله ځانه جوړے کړو طریقو ته عبادت وئیلو۔

دوے ته پس په دویم آیت کښے اِرشاد دے ثُمَّ اَفِیضُوْا مِنْ حَیْثُ اَفَاضَ النَّاسُ وَاسْتَغْفِرُوا اللّٰهَ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِیْمٌ ٥ معنیٰ ئے دا ده چه بیا تاسو ټولو دپاره ضروري ده چه له هغه ځایه راستنیږئ له کوم ځایه چه نور خلق راستنیږي او دَ الله تعالیٰ په وړاندې توبه کوئ یقیناً به الله تعالیٰ معافي او مهرباني اُکړي۔

دَ دے جُملے شانِ نزول دا دے چه قریش دَ بیت الله شریف مُحافظان او مُجوران وو، ټولو عربو دَ دوئ اقتدار منلو او دَ دوئ یو ځان له شان وو هم دا وجه وه چه دوئ به په مزدلفه (حرم) کښے تم کاویدل او دَ حرم نه بهر په عرفات وقوف به ئے دَ خپل شان خلاف دا سے گڼلو چه مُونږ دَ بیت الله شریف محافظان او مجوران یُو۔ څُونږ به څه خصوصیت پاتے شي چه دَ نورو خلقو په رنګ مُونږ هم دَ حرم نه بهر په عرفات وُقوف اُکړُو۔ دا قسم جیلے بهانے تږغرور او خپل خصُوصي شان ثابتوَل الله تعالیٰ ته خوښ نه دے حکمه ئے دَ دوئ غلطي ښکاره کړه او حکم ئے ورکړو چه دَ نورو خلقو په شان عرفات ته ځئ او بیرته بیا هغوئ سره مزدلفے ته راځئ۔

هسے هُم خپل شان ځان له بیل ثابتوَل لوئ کول دي چه ډیره سخته گُناه ده ځان ترِ ساتل پکار دي خو دَ حج په ځائے او په ورځو کښے دا حکه نوره هم سخته گُناه جوړیږي چه دَ حج لباس، اِحرام، قیام، وقوف او مقام یو رنګ والے دا سبق ورکوي چه بنیادم ټول برابر دي دَ غریب امیر، عالم، جاهل او دَ لوئے ورکوټي هیڅ بیلتُون او فرق نِشته۔

**دَ انساني مساوات یو قیمتي سبق او دَ هغے ډیرغوره عملي شکل**

اِرشادِ قُرآني دا باب ښکاره کړو چه لوئے خلق دِ دَ ورو خلقو نه ځان له جُدا او بیل خصوصي شان، په ځائے، استوګنه او تمکاویدو کښے نه جوړوي چه یو تر بله دور وَلي، همدردي، محبت او تعلق پیدا شي، دَ امیر غریب بیلتُون ورک شي دَ مزدُور او مالک جنګ ختم شي، رسول الله صلی الله علیه وسلّم دَ حجة الوداع په خُطبه کښے دا خبره ښه ښکاره کړے وه فرمائيَ چه عربي دَ عجمي پاکوره (سُورسپین) دَ کالا (تور) نه غوره نه دے دَ غوره والي بنا په تقویٰ او خُدائے تعالیٰ په تابعداري ده۔ هم دا وجه ده چه یو ځائے په مزدلفه تمکاویدل او عرفات ته نه تلل گُناه اُبلے شوه او دَ هغے نه د توبے اُبنکلو او استغفار کولو حکم ورکړے شو چه الله تعالیٰ دغه گُناه مُعاف

کړی او خپل رحمت اُکړی۔

## په منیٰ کښې دَجاهلیت دَرسمونو اصلاح او دَ سبے ځایه غونډو کولو بند یز

په غلورم پنځم او شپږم آیت کښې دَجاهلیت دیو څو رسمونو اِصلاح

اُکړے شوه دَجاهلیت دَعربو یو دا رَسم وو چه دَعرفات، مُزدلفې، طواف او قُربانئ نه په اُزګاریدو چه کله به منیٰ ته راغلل نو هلته به ئے مشاعرے کولے، خپلے او دَخپلو پلارا نو، نیکو نو کارنامے او په هغې فخرونه به ئے بیانول۔ په دے ټولو کښې به دَ الله ذِکر نه وو، دا مبارکه ورځے به ئے په عبثو او بے فائدے خبرونو کښے تیرَولے۔ دغه وجه وه چه اِرشاد اُشو۔ "کله چه تاسو دا حرام کار دُونه پوره کړئ او په منیٰ کښې تهکاوُشئ. نو هلته دَ الله تعالیٰ ذِکر کوئ دَخپلو پلارا نو نیکو نو دروغ رښتیا کارنامے بیانوَل او په هغې فخر کول پریږدئ څومره چه تاسو هغوئ یادَوَئ نو هومره بلکه هغې نه زیات الله تعالیٰ یادوئ د الله تعالیٰ په ذِکر کښې مشغوله اُسیږئ. دَ قرآن دے آیت دعربو یو جاهلانه رَسَم مات کړو مسلمانانو ته ئے دا هدایت اُکړو چه دا ورځے او مقام د الله تعالیٰ عبادت او ذِکر دَپاره ټاکلے شوی دی چه دَ هغې برکاتو او غوریزوالے به بیا په لاس را نشی دا غنیمت ګڼړل پکار دی۔

بله خبره داده چه حج داسے یو عبادت دے چه اکثر داُوږدو سفرونو دَتکلیف، دبال بچ دجُدا ئیئ، دکار روزګار پریښودلو دَ زرګونو روپو او ډیر وخت لګولو نه پس حاصلیږی په دے کښې داسے هُم پیښیږی چه انسان سره دَکوشش په خپل مقصد (دحج) کښې کامیاب نهٔ شی کله چه الله تعالیٰ په خپل فضل دا ټول بند یزونه اُوچت کړل او په خپل مقصد کښے ئے کامیاب کړئ۔ دَحج فرائض مو پوره کړل نو دَ الله تعالیٰ شکر داسے پکار دے چه دے نه زیات دَ الله تعالیٰ ذِکر اُوکړئ۔ دا وختونه په عبثو ټولنو، عبثو کار ونو او خبرو کښے تیر نهٔ کړئ دَ جاهلیت خلقو به دَپلارا نو نیکو نو کوے یادګیرنے چه کولے په هغې کښې دَدین دُنیا هیڅ فائده نهٔ ده۔ تاسو دَ هغې په ځائے دَ الله تعالیٰ ذِکر کوئ کوم چه دَدُنیا او آخرت دواړو دَپاره ټول نُور نُور او نفع نفع ده۔ نن صباخو په مسلمانانو کښې دَجاهلیت دا رَسمُونه اګرچه پاتے نهٔ دی۔ مشاعرے نهٔ کوی او دَپلارا نو نیکو نو فخریه کارنامے نهٔ بیانوی مګر په زرګونو مسلمانان اُس هم شته چه دا ورځے په عبثو ټولنو دعوتُونو او سیلُونو کښے تیرَوی۔ دا آیت د هغوئ دخبردارئ دپاره بس دے۔ څه مفسرینو" د دے آیت په تفسیر کښے فرمائیلی دی چه تاسو الله تعالیٰ داسے

یا دَوی لکه چه په ورکتوب کښے ماشوم خپل پلار یادوی - او د توتلو نه ژبا تے خبرے دَ هغه داوی چه اے پلاره! اے پلاره! تا سو اُس عاقلان بالغان او ځوانان یئ - دَ اے پلاره! اے پلاره! په ځائے اے ربه! اے ربه! وایئ او دا فِکر اُکړئ چه ماشوم په هرکار کښے خپل ځان دَ پلار محتاج گنړی - انسان که لږ فکر اُکړی نو هغه به خپل ځان دَ هغے نه زیات دَ الله تعالیٰ محتاج گنړی ځکه چه ماشوم خپل ځان دَ پلار محتاج گنړی هم دا شان ټول خلق خپل پلار په فخر سره دا سے یادوی لکه څنګه چه دَ جاهلیت خلقو به خپل پلاران په فخر سره یادول نو په دے آیت کښے الله تعالیٰ دا هدایت هم اُوکړو چه فخر او عزت د پاره هم دا الله تعالیٰ دَ ذکر نه بل څیز زیات مؤثر نهٔ دے -

## دجاهلیت دیو بل رسم اصلاح او د دین دنیا په غوښتلو کښے اسلامی میانه روی

دجاهلیت یو عبث دا رسم وو چه په دے مبارکو ورځو کښے به ئے خپل پلاران نیکونه یادَول او مشاعرے به ئے کولے هم دا شان د بعض خلقو دا عادت وو چه دَ حج په ورځو کښے به ئے دالله تعالیٰ ذِکر او دُعا گانے کولے لیکن دا ټولے دعا گانے به دَ دُنیا دحاجتونو راحتونو عزتونو او دولتونو دپاره وے دآخرت فِکر به ئے نهٔ وو دَ دا سے قسم خلقو دَ اصلاح دپاره دَ آیت په آخر کښے اِرشاد شوے دے چه څه خلق هغه دی چه په حج کښے هم ځے دَ دُنیا دَ نیکړے دُعا گانے کوی دَ آخرت غم ورسره نهٔ وی دَ دغے خلقو به په آخرت کښے هیڅ برخه نهٔ وی ځکه چه دا عمل ښائی چه دَ دوی حج دَ رسم په دول وو یا دَ دُنیا دفخر او بیا ایئ دپاره دَ الله تعالیٰ رضا او دَ آخرت خلاصے او کامیابی هیڅ دَ دوی په خیال کښے هم نه راځی -

"رَبَّنَآ اٰتِنَا فِي الدُّنْيَا" ته که فِکر اُکړے شی نو معلومه به شی چه دوئ په دُنیا کښے هم دَ ښه والی غوښتنه نهٔ دی - صِرف دا غواړی چه خواهش به ئے ځنګه پوره شی که ښه وی او که خراب دَ دے خبرے معلومیدَ و دا وجه ده چه دَ دُنیا دُعا غوښتونکی په خپلو دُعا گانو کښے دَ حَسَنَة لفظ نهٔ وائی -

په دے آیت کښے هغه مُسلمانانو ته خبردارے دے کوم چه په حج یا په پاکو ځایو نو کښے ښپلے اکثر دُعا گانے دَ دُنیاوی غرضونو دپاره کوی که حاجِ واغسته شی نو اکثر مالدا ر او غنۍ خلق څپله یادَ نو دو بزرگانو په ذریعه دَ خپل دولت او تجارت دَ ترقئ په غرض دُعا کانے او وظیفے کوی په دے غرض ټولے وظیفے او نفلُونه کول عبادت گنړی خو دا دنیا پرستی ده کوم

خلق چه ژوندو یا مړو بزرګانو سره په دے غرض تړون یا عقیدت لری چه دَ هغوئ په دُعا یا تعویذونو به دَ دوئ کاروبار کیږی. دَ دنیا آفتونه او تکلیفونه به ترلرے کیږی، او په مال کښے به ئے برکت وی۔ دا آیت دَ دے قسمه خلقو دپاره خاص هدایت لری۔ کارونه او معاملے ټولے دَ الله تعالیٰ په اختیار کښے دی۔ هرکَس دِ دَ خپلو عملونو جاج اَخلی چه په وظیفو، نفلونو او دُعاګانو کولو کښے هغه څه نیت لری او حج او زیارت کښے دَ هغه نیت څه دے؟ دَ دے آیت په آخر کښے دکم نصیبو او بد قسمته خلقو دَ بیان کولو نه پس الله تعالیٰ دَ خپلو نیکو او مقبُولو بندګانو ذِکر دا رنګ فرمائیلے دے۔

وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّقُوْلُ رَبَّنَآ اٰتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَّ فِي الْاٰخِرَةِ حَسَنَةً وَّ قِنَا عَذَابَ النَّارِ ۝ یعنی په دوئ کښے داسے خلق هم شته چه په خپلو دُعاګانو کښے د الله تعالیٰ نه د دُنیا او آخرت دواړو فائدے او ښیګړے غواړی او دَ جهنّم د عذاب نه پناه غواړی۔

دلته دَ "حَسَنَةً" لفظ ټولو ظاهری باطنی ښه والو او ښیګړو له شامل دے مثلاً د دُنیا په "حَسَنَةً" کښے دَ خپل بدن او دَ خپل آل وعیال روغوالے دَ حلال درزق فراخی او برکت، ټول دُنیوی ضرورتونه پُوره کیدل، نیک عملونه، ښه خویُونه، نافع علم، عزت او محبوبیت والے، دَ عقیدو سَمْوالے او درستوالے، دصراطِ مستقیم هدایت، په عبادتُونو کښے کامل اخلاص، ټول داخل دی او دَ آخرت په "حَسَنَةً" کښے جنّت او دَ هغے بے شمیره نه فنا کیدُونکی نعمتونه، دَ الله تعالیٰ رضامندی او دَ هغهٔ دیدار ټول داخل دی۔

خلاصه دا چه دا دُعا همه ګیره او راغونډوونکے دُعا ده چه پکښے دَ بنیادم دَ دین دُنیا ټول مرادُونه راځی۔ په دُنیا او آخرت کښے آرام او اطمینان نصیب کیږی په آخر کښے په خصوصیّت سره دَ جهنّم دَ اورنه دَ پناه غوښتو هم ذکر دے هم دغه وجه ده چه حضور صلی الله علیه وسلم به دا دُعا ډیره زیاته کوله رَبَّنَآ اٰتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَّ فِي الْاٰخِرَةِ حَسَنَةً وَّقِنَا عَذَابَ النَّارِ ۝ او په طواف کښے خاص طور دَا دُعا کول سُنّت دی۔ په دے آیت کښے دَ هغه جاهلو درویشانو اصلاح هُم شوے ده کوم چه یواځے هم د آخرت دُعا غوښتل عبادت ګڼړی او وائی چه مونږ دَ دُنیا پرواه نه لرُو۔ دَ دوئ دا دعویٰ ځکه غلط او خیال ئے کچه دے چه انسان په خپل میشته کیدو، باقی پاتے کیدو، عبادت او فرمانبردارئ ټولو کښے دَ دُنیوی ضروریاتو حاجتمند دے۔ دا چه نه وی نو دَ دین هُم څه کار کول ګران دی۔ په دے وجه دَ انبیاء علیهم السلام سُنّت دا دی چه هغوئ

دَآخرت دَ نېکړو او فائدو سره سره دَ دُنیا ښېګړے او آرام هم غواړی. ځکه چه دَ دُنیا دی حاجتونو دَ پاره دُعا کول دَ زُهد او بزرګئ خلاف ګڼړی هغه دا نبیاؤ علیهم السلام دَ مقام نه نا خبره او جاهل دے. دوېمه خبره دا چه دُنیوی حاجتونه اصلی مُراد نه دی جو ړول پکار دا یو ذریعه ګڼړل پکار دی دَ اصلی مراد په توګه دَ آخرت فِکر زیات پکار دے او دَ هغې دپاره دُعا غوښتل پکار دی.

دَ آیت په آخر کښے دَ هغه خلقو دَ انجام بیان دے کوم چه په خپلو دُعا ګانو کښے دَ دُنیا او آخرت دواړو ښېګړے او فائدے غواړی فرمائی چه دَ دوئ دَ نیک او صحیح عمل او دَ دُعا ګانو نتیجه به دوئ ته په دُنیا او آخرت دواړو کښے مِلاویږی. دَ دے نه پس فرمائی "وَاللّٰهُ سَرِيْعُ الْحِسَابِ" یعنی الله تعالیٰ ژر حِساب اخِستونکے دے ځکه چه دَ ټول مخلوقات ځاند ځانله د ټول عمر دَ ذرے ذرے حِساب اخستو کښے دَ هغه محیط علم او کامِل قدرت دَ نورو بنیادمو په شان دَ ساما نونو او ذریعو حاجتمند نه دے. په دے وجه الله تعالیٰ به دَ ټول مخلوق حساب ډیر ژر واخلی، او جزا سزا به پرِ بنا کړی.

| دَ حج داحکامو په آخری (دلته آتم) آیت کښے دالله تعالیٰ ذکر ته دحاجیانو | په منیٰ کښے دَ دوؤ یا دَرے ورځو تګاویدل او دَ الله تعالیٰ دَ ذکر تاکید |
| --- | --- |

مخه کړزولے شوے ده او دَ حج مقصد پوره کولو او دَرا تلونکی ژوند سمولو ورته دا سے ارشاد شوے دے. وَاذْكُرُوا اللّٰهَ فِيْٓ اَيَّامٍ مَّعْدُوْدٰتٍ یعنی دَ الله تعالیٰ ذکر دَ شمیر په یو څو ورځو کښے کوئ چه مطلب ئے ایامِ تشریق دے کوم کښے چه دَ هر فرض مونځ نه پس تکبیرونه ویل واجب دی.

بیا ورپسے دا مسئله بیان شوه فَمَنْ تَعَجَّلَ فِيْ يَوْمَيْنِ فَلَآ اِثْمَ عَلَيْهِ وَمَنْ تَاَخَّرَ فَلَآ اِثْمَ عَلَيْهِ چه څوک دلوئے اختر دَ ورځے نه پس دوه ورځے په منیٰ کښے تګاؤشی او بېرته راشی دے کښے هم په ده ګناه نشته او څوک چه درېیمه ورځے پورے ډیل اُکړی دے کښے هم په ده ګناه نشته مطلب دا چه دَ جاهلیت دَ خلقو دا اختلاف او پرے کوَ ندئ کول غلطی ده او نیالئے دے چه څه څوبه دَ ذی الحجے تر دولسمے نیټے پورے جمرے ویشتل ضروری ګنړلے او څه به تر دیارلسمے نیټے پورے او دے دوؤ ډلو به په خپل مینځ کښے یو بل ته ګنا هګار ده ویل او دَیو بل دا کار به ئے نا روا بللو دَ آیت د مطلب خلاصه دا شوه چه په منیٰ کښے دَ لوئے اختر نه پس دوه ورځے تګاویدل او جمرے ویشتل یا درے ورځے تګاویدل او جمرے

د اشتغال د واړه هيڅ پاک او ګناه نه لري. په منئ کښې د وه ورځې تکاو يد ل او جمرې و يشتل ضروري دي او په دريمه ورځ حصار يد و کښې اختيار دے -

د دوو يا دريے ورځو اختيار رخو ورکړے شو خو بهتره او فوريزه خبره داده چه دريے ورځې پورے تګاؤ شي او جمرے اُولي. فقهاءُ فرمائي چه د دويے ورځے د نمر د و بيد و نه وړاند که څوک منئ نه را اُوتو نو د دريے ورځے رمّي په هغه واجب نه وه او که چرے نمر پر منئ کښې پروب شو نو په دريمه ورځ رمّي نه بغير واپس راتلل روا نه دي البته د دريے ورځے په رمّي کښې دا آساني ورکړے شوے ده چه دا د صبا نه رستو د نمر سرخيد و نه وړاندِ پورے هم کيدے شي.

لِمَنِ اتَّقٰى نه معلوميږي چه په دويمه يا دريمه ورځ د منئ نه په واپسئ کښې اختيار ورکول هغه حاجي ته دي کوم چه الله تعالیٰ نه ويريږي او د هغه د احکامو پابندي کوي ځکه چه په اصل کښې خو حج هم د داسے کس د ے لکه قرآنِ کريم بل ځائے کښې فرمائي. اِنَّمَا يَتَقَبَّلُ اللّٰهُ مِنَ الْمُتَّقِيْنَ ٥ يعنی الله تعالیٰ هم د هغې خلقو عبادت قبلوي چه الله تعالیٰ نه ويريدلکي او د هغه فرمانبرداره بندګان دي او کوم کس چه د حج نه وړاندِ هم په ګناهونو کښې بوښت وي او په حج کښې هم بے احتياطي او بے پرواهي اُکړي. د حج نه پس هم د ګناهونو نه پرهيز اُنکړي نو د ده دا سے حج سُودمند خو نه شو البته فرض ے ادا شُو د حج نه کولو د جُرم نه خلاص شو.

په آخر کښې ارشاد د ے وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّكُمْ اِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ ٥ يعنی د الله تعالیٰ نه ويريږئ او يقين لرئ چه تاسو بتول به د الله تعالیٰ په خوا کښې را جمع کولے شئ. هغه به ستاسو د ښکاره او پټو عملُونو حِساب اَخلي، په هغې به در ته جزا او سزا ورکوي. دا جُمله په حقيقت کښې د تيرو شوو ټولو احکامو د حج رُوح ده. د د ے معنیٰ داده چه کوم وخت د حج په کارونو کښې لګيا يئ هغه وخت هم د الله تعالیٰ نه ويريږئ د حج په احکامو کښې څه کوتاهي مه کوئ او رُستو هم په خپل حج مه مغرُوره کيږئ. بلکه الله تعالیٰ نه هميشه ويريږئ او ګناهونو نه ځان ساتئ ځکه چه د اعمالو د ټول په وخت د بنيادم ګناهونه به اُلګی د هغه نيک عملُونه به اُخوري او د تر به ئے ختم کړي. يو حديث کښې راځي چه د حج نه په واپسئ کښې به حاجي د ګناهونو نه داسے پاک او صفا وي لکه چه نن د مور نه پيدا وي. حاجيانو ته په خاصه توګه د تقوٰی اختيارولو هدايت وجه هم داده چه تاسو په حج کولو سره د ګناهونو نه پاک شوي يئ د ے پسے احتياط کوئ نو د دُنيا او آخرت ښيګړه او فائد ے ستاسو د پاره دي او

کہ دَحج نہ پس بیا پہ گناھونو کښے گرفتار شی، نو ھغہ د و مبیٔ صفائیٔ او پاکیٔ دکارہ اُوتہ بلہ عُلماء فرمائی چہ دَ قبول شوی حج نښہ دا دہ چہ دَحج نہ دا رنگ راشی چہ زړہ ئے دُنیا نہ اوچت شوے وی او آخرت پورے تړلے وی دَ دا سے کسی حج او دُعا قبولہ، گناہ ئے معاف وی کہ خوک دا یاد اُ لری چہ دَ بیت اللہ شریف مخ تہ ھغہ اللہ تعالیٰ سرہ ځائے پہ ځائے دَ ھغہ دَ اطاعت او فرمانبرداریٔ وعدہ او لوظ او قول کړے دے نو دو دے پورہ کول پہ را تلونکی عُمر کښے بیا څہ گران نۂ دے۔

یو بزرگ فرمائی چہ دَحج نہ پہ واپسیٔ کښے ځما پہ زړہ کښے دَیو گناہ وسوسہ راغلہ دغیبو نہ یو آواز ما تہ اُشو چہ تا حج نۂ دے کړے؟ دا آواز ځما او دَ ھغے گناہ پہ مینځ کښے یو دیوال جوړ شو۔ او اللہ تعالیٰ ځہ دَ ھغے نہ اُساتلم۔

یو تُرکی بزرگ بہ ھر وخت خپل سر د پا سہ یو نوُر لیدو۔ دَحج کولو نہ پس ھغہ نوُر بیخی ورک شو۔ خپل پیر مولانا جامی رحمۃ اللہ علیہ نہ ئے وجہ اُپوښتلہ۔ ھغویٔ ورتہ اُفرمائیل چہ دَحج کولو نہ دُ وبے تا نہ خپل ځان گناھگار ښکاریدو دَ اللہ پہ مخکښے بہ دِ زاری ژړا او فریاد کولو عاجزی او انکسار درکښے وو، مگر دَحج نہ پس دِ ځان بزرگ او نیک اُگڼلو، مغرورہ شوے او دغہ نوُر دَدنہ پہ غرور ورک شو۔

دحج داحکامو پہ ختمید و دَ تقویٰ تاکید دا را ښکارہ کوی چہ حج یو لوئے عبادت دے دَ بنیادم غټ دُښمن شیطان دَ بزرگیٔ او لویٔ خیال دَحاجی پہ زړہ کښے ودا چولو سرہ دَہ کښے تکبّر او غرور دراشی۔ ټول عمل ئے بیکارہ شی ھم دغہ وجہ دہ چہ اللہ تعالیٰ پہ آخر کښے فرمائی چہ حج کولو نہ دہ انہ او پہ حج کښے چہ ځنگہ دَ اللہ تعالیٰ نہ ویرہ او دَ ھغہ فرمانبرداری فرض دہ دحج کولو نہ پس دا نورہ ھم زیاتہ کړئ، ھسے نہ چہ دا شوے عبادت مو برباد شی۔ "اَللّٰھُمَّ وَفِّقْنَا لِمَا تُحِبُّ وَتَرْضٰی مِنَ الْقَوْلِ وَالْفِعْلِ وَالنِّیَّۃِ"

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ یُّعْجِبُکَ قَوْلُہٗ فِی الْحَیٰوۃِ الدُّنْیَا وَ

او بعضے بنیادم ھغہ دے چہ خوښیږی بہ ستا دَ ھغہ خبرہ دُنیا دژوند پہ کار د و کښے او

یُشْھِدُ اللّٰہَ عَلٰی مَا فِیْ قَلْبِہٖ ۙ وَھُوَ اَلَدُّ الْخِصَامِ ﴿۲۰۴﴾ وَاِذَا

گواہ کوی اللہ تعالیٰ لرہ دَ خپل زړہ پہ خبرہ او ھغہ سخت جگړمار دے۔ او کلہ چہ

تَوَلّٰى سَعٰى فِى الْاَرْضِ لِيُفْسِدَ فِيْهَا وَيُهْلِكَ الْحَرْثَ وَالنَّسْلَ ۗ

بیرته لاړشی ستا له خوا نه نو منډې وهی په وطن کښې چه خرابی پکښې واچوی او تباه کړی فصلونه او نسلونه

وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ الْفَسَادَ ﴿۲۰۵﴾ وَاِذَا قِيْلَ لَهُ اتَّقِ اللّٰهَ اَخَذَتْهُ

او الله تعالیٰ نه خوښوی فساد لره ـ او څه وخت چه اُوبیلے شی ده ته چه الله تعالیٰ نه اوویریږه نو

الْعِزَّةُ بِالْاِثْمِ فَحَسْبُهٗ جَهَنَّمُ ۭ وَلَبِئْسَ الْمِهَادُ ﴿۲۰۶﴾ وَمِنَ

تیاروی ده لره غرور په ګناه نو بس دے ده لره دوزخ او بیشک دا بده ځاکوټه ده ـ او په خلقو

النَّاسِ مَنْ يَّشْرِىْ نَفْسَهُ ابْتِغَآءَ مَرْضَاتِ اللّٰهِ ۭ وَاللّٰهُ

کښے یو کس هغه دے چه خرخوی خپل ځان لره د الله تعالیٰ په رضا لټولو کښے ، او الله تعالیٰ

رَءُوْفٌۢ بِالْعِبَادِ ﴿۲۰۷﴾

بے حده مهربان دے په خپلو بندګانو ـ

**د آیتونو ربط** په تیرو شوو آیتونو کښے د دُعا غوښتونکو دوه قسمه بیان کړلے شوی وو. یو هغه قسم چه صرف دُنیا دے دپاره غواړی چه هغه کافر دی او آخرت نه منی. دویم هغه قسم دے چه د دنیا د فائدو او بیګړو سره سره د آخرت فائدے او بیګړے هم ځکه غواړی چه هغه مُؤمن وی او د آخرت منونکے وی اُس په دے راتلونکی آیت کښے د نفاق او اخلاص په اعتبار سره دا اړول تقسیم کوے شی. فرمائی چه څه مُنافقان او څه مُخلصان دی ـ

**د تفسیر لنډیز** (اخنس بن شُریق نومے یو ډیر فصیح او بلیغ سړے به د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کښے حاضریدو او د اِسلام د خپلے دعوے چنونو او مضبوطولو دپاره به ئے قسمونه خوړل کله به چه د غه مجلس نه پاسیدو او بهر به اُوتو په فساد او ورانئ به ئے لاس پورے کړو او خلقو ته به ئے تکلیفونه او نقصانونه رسول ـ د دا سے منافق په باره کښے فرمائی)

او څه خلق دا سے هُم دی چه د هغه وینا کومه چه محض د دُنیوی غرض دپاره وی (چه د اسلام ظاهرولو په وجه د مسلمانانو په شان په نزدیکانو او خاصانو کښے شامل شم ـ د هغه د فصاحت او بلاغت په وجه) خوندناکه ښکاریږی او هغه (د خپل اعتبار زیاتولو دپاره) الله تعالیٰ لره

ګواه جوړوي دخپل زړه په ربښتینی باندې سره ددې چه (یعنې د دوغږن دے ځکه چه په واقع کښې هغه (ستاسو په) مخالفت کښې (ډیر زیات) سخت دے او (ځکه چه ستا مخالف دے دا رنګ نور دو مسلمانانو ته هم ضرر درسوي) څه وخت چه (ستاسو د مجلس نه) بیرته جاراوځي نو په دے منډه وترړو کښې ګرځي چه په ښار کښې (څه) فساد اُکړي او (دچا) فصل او څاروي تباه کړي (ځکه چه د یو مسلمان ئې داسے نقصان اُکړو) او الله تعالیٰ (د) فساد (خبرے) نه خوښوي ـ او (ایږدے مخالفت او ضرر رسانئ ته دے حده مغرور دے چه) کله څوک ده ته وائي چه خدائے تعالیٰ نه او یریږه نو (نور زیات) تیارکړي ده له غرور په ګناه نو داسے کس له بس دے (سزا د) جهنم او هغه خرابه تهکانړه ده او څه خلق داسے هم دي چه د الله تعالیٰ د رضا بتولو په بدل کښې خپل ځان (پورے) خرڅوي او الله تعالیٰ د داسے بندګانو په حال ډیر زیات مهربانه دے ـ

## علوم او مسئلے

د آیت په آخری برخه کښې د مؤمن مُخلص د حال بیان دے کوم چه د الله تعالیٰ رضا بتولو دپاره خپل سر په تلی کښې ږدي دا د هغه صحابه کرامو په شان کښې نازل شوے دے کوموچه بے مثاله قربانیانے د الله تعالیٰ په لار کښې وړاندې کړي دي ـ مستدرک ـ حاکم ، ابن جریر ، مسند ابن ابی حاتم او نورو کښې په صحیح سند سره نقل دي چه دا آیت د حضرت صهیب رُومیؓ په هغه واقعه کښې نازل شوے دے کله چه هغهؓ د مکے نه مدینے ته د هجرت په غرض روان شو نو د قریشی کفارو یو ټولی ورته لار بنده کړه ددے په لید و حضرت صُهیب رُومیؓ د خپلے سورلئ نه راکوز شو او اُودرید و او د خپل تُخلی نه ئې ټول غشی را اُبسکل او دغه ټولی ته ئې دا رنګ وینا شروع کړه چه اے د قریشو قبیلے ! تاسو ټول پوهه یئ چه څه په غشو ویشتو کښې تاسو ټولو نه زیات ماهر یم ځما غشے کله هُم نه خطا کیږي او اُس څه په الله تعالیٰ قسم خورم چه تاسو ما ته ترهغے نه شئ رارسیدے ترڅو چه ځما تخلی کښې یو غشے هُم پاتے وي د غشو ختمید و نه پس به څه د تورے نه کار اخلم ترکومے چه ما کښې څاغږي بیا چه څه کوئ راسره اُکړئ تاسو که د فائدے سودا کول غواړئ نو څه د خپل مال پته درکوم کوم م چه په مکه کښې پروت دے هغه مال واخلئ او ځما لار پریږدئ په دے د قریشو هغه ټولے راضی شو او حضرت صهیب رومیؓ روغ جوړ د نبی کریم صلی الله علیه وسلّم په حضور کښې پیش شو او ټول حال ئې ورته بیان کړو:

نبی کریم صلی الله علیه وسلم دوه ځل اُفرمایل:

رَبِحَ الْبَيْعُ اَبَا يَحْيٰى رَبِحَ الْبَيْعُ اَبَا يَحْيٰى | ستا دَ پاره (تجارت) نفع مند شو ابا یحیٰ! ستا سودا سُود منده شوه اَبا یحیٰ!

دے آیت د نبی کریم صلی الله علیه وسلم دَ دے گُفت تصدیق اُکړو۔
څه مفسرینو رحمهم الله د دے آیت شانِ نزول د وصحابه کرامو دا ډولی واقعات هم بیانولی دی (مظهری)

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا ادْخُلُوْا فِى السِّلْمِ كَاۗفَّةً ۠ وَلَا تَتَّبِعُوْا

اے ایماندارو داخل شئ اسلام کښے پوره او مه ځئ

خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ ۭ اِنَّهٗ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ ﴿۲۰۸﴾ فَاِنْ زَلَلْتُمْ

په قدمونو دَ شیطان، بیشکه هغه ستاسو ښکاره دُښمن دے. بیا که ښوئیږئ تاسو

مِّنْۢ بَعْدِ مَا جَاۗءَتْكُمُ الْبَيِّنٰتُ فَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ

وروسته د رسیدو نه تاسو ته صفا حکمونو پوهه شئ چه الله تعالیٰ زورآور دے،

حَكِيْمٌ ﴿۲۰۹﴾ هَلْ يَنْظُرُوْنَ اِلَّآ اَنْ يَّاْتِيَهُمُ اللّٰهُ فِيْ ظُلَلٍ

حکمت والا۔ دا! هغوی د دے لار گوری چه راشی په هغوی الله تعالیٰ د وریځې

مِّنَ الْغَمَامِ وَالْمَلٰۗىِٕكَةُ وَقُضِيَ الْاَمْرُ ۭ وَاِلَى اللّٰهِ تُرْجَعُ الْاُمُوْرُ ﴿۲۱۰﴾ ع ۲۵ ع ۱۴ ۹

په ټمبوانو کښے، او فرښتے، او ترسره شی قصه، او الله طرف ته به راسیږی ټول کارونه۔

**دَ آیتونو تړون** پورته دَ مخلص تعریف وو۔ کله په اخلاص کښے غلطی او زیاتے هم راځی۔ مطلب دا چه اراده خو دَ ډیرے فرمانبرداری وی مګر دا په زور نظر د شریعت او سنت دَ حد نه تیروتے وی چه نوم ئے بدعت دے۔

خبره دا ده چه یهودیت کښے دَ خالی ورځ لویه تاکلے شوے وه او داُوښ غوښه حرامه، هرکله چه عبدالله بن سلامؓ او نور داسے صاحبان د یهودیت نه اسلام ته راواوُښتل نو دا خیال ئے اُکړو چه په یهودیت کښے دَ خالی ورځ لویه تاکلے شوے ده۔ او داُوښ غوښه حرا

خو بل طرف ته په دینِ محمدی کښے دَدے دواړو خلاف کول واجب او فرض نهٔ دی، نو که موږ ده دَ خالی دَ ورځے تعظیم کوؤ او دَ اُوښ غوښه (حرامه نهٔ کنړوخو) نهٔ خورو، نو دَ دواړو دینونو او دَ الله تعالیٰ دَ فرمانبردارئ لحاظ به اُساتلے شی او څه بدیت به ئے نهٔ وی. الله تعالیٰ په دے آیت کښے دَدے خیال اِصلاح په تاکید سره دا رنګ فرمائی، چه اسلام کامِل فرض دے. مطلب ئے دا دے چه په اسلام کښے دَ څه لحاظ ساتل چه ضروری نهٔ وی. دَ هغے لحاظ دِ اُنشی ساتلے او که داسے کار ته څوک دین وائی نو دا شیطانی دوکه ده او دَدے عذاب دَ ښکاره ګناهونو نه زیات کیدے شی۔

**دتفسیر لنډیز** اے ایماندارو په اسلام کښے پُوره پُوره داخل شئ (داسے نهٔ چه څه خیال او لحاظ پکښے دَ یهودیت هم اُساتئ) او (داسے خیال کولو سره) دَ شیطان په قدمونو مه ځئ (شیتیادی چه دے ستاسو ښکاره دښمن دے (داسے سبق درته لوَلوی چه په ظاهر کښے خو قول دین ښکاری او درحقیقت ئیخې دَ دین نه خلاف وی) بیا که ئے تاسو ددے نه پس چه تاسو ته ښکاره دلیلونه (احکام او دَ اسلام لارے کوُدرے) رسیدلی دی (بیا هم دَ صراطِ مستقیم نه) خوئیدل شروع کړئ نو یقین لرئ چه الله تعالیٰ (لوئے) زورآور دے. (سخته سزا ورکوی او ترڅه وخته که سزا ورنکړی نو په هغے دوکه مه خورئ ځکه چه هغه) حکمت والا (هم) دے (دَ څه حکمت او مصلحت په بنا کله په سزا ورکولو کښے ډِیل هم کوی. معلومیږی) دا خلق (چه دَحق دلیلونو ښکاره کیدو نه دُستوکړه لارغوره کړی) صرف دَ دے غبرے سا رنه، او انتظار کوی چه الله تعالیٰ او فرښتے دوریځو په تمبوانو کښے دَ هغوئ خوا ته (سزا ورکولو دَ پاره) راشی او یتوله قِصه تو سره شی (یعنی بیا! نو دا وخت به هغه خبره قبوله کړی چه الله ته دَ منظوریدو وخت نهٔ دے) او دا توله (دَ جزا سزا) مقدمے به هم الله تعالیٰ ته را وُړلے شی (بل څوک به اختیارمند نهٔ وی نو دَ داسے زورآور سره دَ مخالفت کولو خاتمه دَ خرابیدو نه بغیر بله څه کیدے شی؟)

## علوم او مسئلے

اُدْخُلُوْا فِي السِّلْمِ كَآفَّةً سِلْم دَ سین په زوَر او زیر سره دوه معنے لری یو معنیٰ صُلح او بله معنیٰ اسلام او دلته دَ جمهور صحابه کرامؓ او تابعینوؒ په نزد دا دویمه معنیٰ مُراد

ده (ابن کثیر) "کافّةً" په معنیٰ دجمیعًا او عامّةً راځي. دلته دا لفظ په ترکیب کښې حال واقع شوے دے چه د وه احتمالونه لري. یو احتمال دا دے چه دا د ضمیر دَ اُدْخُلُوْا نه حال شي. او دویم دا چه دَ اسلام په معنیٰ کښې دَ سِلْم نه حال اُمنلے شي په اُوَمبی صورت کښې به دا ترجمه وي چه تاسو په پوره پوره اسلام کښې داخل شئ. مطلب دا چه ستا سو لاس، پښې، غوږونه، سترګے، زړه او دماغ ټول دَ اسلام په دائره کښې او دالله تعالیٰ په فرمانبرداري کښې داخلیدل پکار دي. داسے نهٔ چه لاس پښو باندِ خو دِ دَ اسلام عمل وي لیکن زړه او دماغ کښې دِ دَ اسلام پوره ځاے نهٔ وي او یا خو په زړه او دماغ کښې اسلام وي مګر په دے ظاهري اندامونو عمل نهٔ وي.

په دویم صورت کښې به دے ترجمه دا وي چه تاسو مکمل او پوره اسلام کښې داخل شئ. داسے نهٔ چه دَ اسلام څه احکام خو قبلوئ او څه کښې اخوا دیخوا کوئ. هر کله چه اسلام دَ ژوند دَ مکمل هغه نظام نوم دے کوم چه په قرآن او سنّت کښې بیان شوے دے دَ هغې تړون دعباداتو او عقائدو سره وي یا معاملو او معاشرت سره وي. حکومت او سیاست سره ئے تعلّق وي یا تجارت او کار کسب وغیره سره وي نو په دے وجه دا ټول قبلول په مکمّل توګه اسلام کښې داخلیدل بللے شي. د دواړو صورتونو خلاصه نزدے نزدے ده مطلب دا دے چه دَ اسلام ټول هغه احکام دَ زړه دَ اخلاصه قبلول او عمل پرِ کول اسلام بللے شي دَ دے نه لږ هم خِلاف کونکے مُسلمان نهٔ شي بللے.

پوره نه بیان کړے شوي دَ دے آیت دَ شانِ نزول خُلاصه هم دا ده چه صرف په اسلامي تعلیماتو سترګے غړول پکار دي. که دا په پوره توګه اختیار کړے شي نو دَ نورو ټولو مذهبونو او دینونو ضرورت پاتے نشي.

**خبردارے:** په دے کښې هغه خلقو ته خبردارے دے کوم چه یوائے جماتونو او عبادتونو کښې اِسلام ګڼړي لکه چه د معاملو او معاشرت احکام دوئ هلته وَ دَ اسلام برخه نهٔ ګڼړي. دا مرض په بے علمه دینداره کښې زیات دے ځکه خو هغوئ دَ حقوقو او معاملونه او خصوصًا دَ حقوقو دَ معاشرت نه بیخي ناخبره دي. داسے ښکاري چه دا احکام هلته وَ دَ اسلام ګڼړي نهٔ. نهٔ ئے دَ معلُومَولو اِرده کولو او پرِ دَ عمل کولو څه تکل کوي نعوذ بالله

کم نهٔ کم ځما دَ استادِ محترم سیدي حکیم الامّت لنډه رساله "آداب معاشرت" هر مُسلمان

زړونو ته رسېږي، دا خبره هم په روایتونو کې ثابته ده چې د الله تعالیٰ تجلي به د ورېځو په سیورو کې وي.

ولې دومره خبره ضروره ده چې دا الفاظ د متشابهاتو څخه دي، ځکه چې په ظاهر کې الله تعالیٰ د سوري او د ورېځو او ملائکو سره یو ځای نه راځي. نو د دې آیت څخه به څه مطلب وي؟ نو ښه خبره دا ده چې د دې لفظ په حقیقت کې ځان نه سرګرداني کوو. بلکه د الله تعالیٰ په علم یې وسپارو، او خپل ځانونو ته پکار دي.

دا الله تعالیٰ او فرښتو راتلل د ورېځې په سیوري کې د قیامت په ورځ به وي. د الله تعالیٰ دا سې راتلل متشابهات بلل شي. د جمهورو صحابه کرامو، تابعینو او د نورو بزرګانو دین په نیز د دې مطلب دا دی چې حق او صحیح ګڼل شي. دا لفظونه په دې دي چې د دغه راتلل به څنګه وي، ځکه چې دا معلومول د انسان د عقل نه بهر دي.

سَلْ بَنِيٓ إِسْرَآءِيلَ كَمْ اٰتَيْنٰهُمْ مِّنْ اٰيَةٍۭ بَيِّنَةٍ ۗ وَمَنْ يُّبَدِّلْ

تپوس اوکړه له بني اسرائیلو څومره ډېرې دي موږ هغوئ ته ښکاره نښې ورکړې . او څوک چې بدل کړي

نِعْمَةَ اللّٰهِ مِنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَتْهُ فَإِنَّ اللّٰهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ ﴿٢١١﴾

د الله تعالیٰ نعمت پس له هغې چې رسیدلې وي دا نعمت هغه ته نو د الله تعالیٰ عذاب سخت دی .

زُيِّنَ لِلَّذِينَ كَفَرُوا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا وَيَسْخَرُونَ مِنَ الَّذِينَ

عاشقان کړي دي کافران د دنیا په ژوند ؛ او دوئ خاندي مومنانو

اٰمَنُوا ۘ وَالَّذِينَ اتَّقَوْا فَوْقَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۗ وَاللّٰهُ يَرْزُقُ

پورې . او کوم چې پرهیزګار دي هغوئ به د دې کافرانو نه زیات پورته وي د قیامت په ورځ . او الله تعالیٰ

مَنْ يَّشَآءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿٢١٢﴾

روزي ورکوي چا ته چې اوغواړي بې شمېره .

**د آیتونو ربط** پورته یې فرمائیلي وو چې د ښکاره دلائلو نه پس د حق مخالفت کول د سزا باعث دي . د دې اُسني رومبي آیت کښې د دې د دلیل بیان دی چې بعضې بني اسرائیلو ته په دا سې مخالفت کولو سزا ورکړې شوې ده .

**د تفسیر لنډیز** تاسو (علماء) له بني اسرائیلو (خو د شان) تپوس اوکړئ (چې) موږ هغوئ ته (یعنې د هغوئ مشرانو ته) څومره ښکاره دلیلونه ورکړي وو (مګر دې نه د هدایت حاصلولو په ځائې دغه خلق اُلټا په ګمراهۍ ټینګ شو بیا اکوري سزا کانې یې هم

اُخوړے مثلاً د تورات په ملا ویدو د هغې قبلول هغوئ له پکار وو خو انکار ئې تر اُوکړو نو دَ کوهِ طور راغورځولو پرِ ویره تیره کړے شوه. د مثال په طور بله دا چه د الله تعالیٰ د کلام په آوریدلو سره هغه په سر سترګو ایښودل پکار وُو لیکن هغوئ پکښے شکونه او شبهے راپیدا کړے نو په تندر هلاک کړے شو، فرعون نه خلاصی ورکولو دَ پاره هغوئ ته به دریاب کښے اُوچے لارے جوړے کړے شوے، نو دَ دے د احسان منلو په ځائے هغوئ د خځی عبادت شروع کړو او هغوئ ته په سزا کښے د قتل سزا ورکړے شوه. هغوئ باندِ دمَنْ (ترنجبین) او سلوی (مرزانو) نازلولو شکر به ادا کول وُو خو دَ هغې په ځائے هغوئ نافرمانی اُکړه. مَنْ (ترنجبین) او سلویٰ (مرزان) په ساتلو او راغلل دے نه ئے کړکه اُکړه نو هغه پرېند شُو او ذکر کړوندے مصیبت ورپغا په شو. په هغوئ کښے پیغمبران راتلل د غنیمت ګڼړلو او شکریئ اداکولو په ځائے دَ هغې پیغمبرانو قتلول ئے شروع کړل. دَ هغې سزا دا ورکړے شوه چه حکومت او بادشاهی ترو اغستے شوه. دا سے نور هم ډیرے ناکړدے ئے دَ سورتِ بقره په اوّل کښے بیان شوی دی) او (هم خوبو قانون دا دے چه) کوم کس دَ الله تعالیٰ (دا سے نوئے) نعمت لرهٔ (واضح دلیلونه) بدلوی هغه ته دَرسید لو نه پس (یعنی دَ دے نه دَ هدایت حاصلولو په ځائے اُلټا ګمراه جوړیږی) نو یقیناً الله تعالیٰ (دا سے کس ته) سخته سزا ورکوی.

(په دویم آیت کښے دَ حق دَ مخالفت کولو د یر پیښیدُ ونکے اصلی عِلّت بیانوی، چه هغه دَ دُنیا محبّت دے چه دَ هغې څه نښه دَ اهلِ دینو (دینداروخلقو) سپک ګڼړل هم دی، ځکه چه د دنیا دَ غلبے په وخت دُ دین طلب نهٔ وی بلکه د خپلو دُنیوی غرضونو په لار کښے دِین یو دیوال اُګڼړی نو دے غورځوی او بیا دیندارو خلقو پورے خاندی لکه چه د بنی اسرائیلو بعضے سردارانو او د عربو مشرکینو جاهلانو به غریبو مسلمانانو پورے ټوقے کولے. دَ دغ خلقو دا سے بیان کوی چه) دُنیوی ژوند کُفارو ته ښائسته معلومیږی او (له دے وجے هغه مسلمانانو پورے ټوقے کوی سره دَ دے چه دا (مسلمانان) کوم چه کفر او شرک نه ځان ساتی دَ دے کافرانو نه به په اوچته درجه کښے وی دَ قیامت په ورځ (ځکه چه کفار به په جهنم کښے وی او مسلمانان به په جنت کښے) او (بنیادم له د دُنیا په ډیروالی مغروره کیدل نهٔ دی پکار ځکه چه) دوزی خوچا ته چه الله تعالیٰ غواړی بے اندازے (یعنی ډیره) ورکوی.

(نو دا په قسمت موقوف ده په کمال او مقبولیّت بانذِ نهٔ ده. دا ضروری نهٔ ده چه د چا روزی

زیاته وی نو هغه د الله تعالیٰ په نزد هم عزت مند وی او لوئے عزت هم هغه دے چه د الله تعالیٰ په نزد معتبر وی بیا په دے بنیاد خپل ځان عزتمند او بل ذلیل ګڼل بے وقوفی ده)

## علوم او مسئلے

دَ دنیا په مال دولت او عزت او عهدے باندې دَ مغروره کید و او غریبو خلقو پورے د خندا کولو حقیقت به دَ قیامت په ورځ دستر ګو وړاندې راشی۔

دَ حضرت علی مرتضیٰ رضی الله تعالیٰ عنه نه روایت دے چه څوک چا مؤمن سړی یا ښځے له دخوارئ غریبئ په وجه سپک او ذلیل ګڼړی الله تعالیٰ به دَ قیامت په ورځ دغه کس دَ اولینو او آخرینو په ټولی کښے شرمنده او ذلیله کړی او څوک چه یو مسلمان سړی یا ښځے پورے دَ دروغو تور پورے کوی یا داسے عیب په هغه لګوی کوم چه پکښے نهٔ وی، الله تعالیٰ به دَ قیامت په ورځ دَ اور په یو لوړه غونډئ اُودرَوی تر هغے چه هغه خپل ځان دروغژن اُنهٔ بولی۔ (دا حدیث قرطبی ذکر کړے دے)

كَانَ النَّاسُ اُمَّةً وَّاحِدَةً فَبَعَثَ اللّٰهُ النَّبِيّٖنَ مُبَشِّرِيْنَ

ؤو ټول خلق په یو دین، بیا اولیږل الله تعالیٰ پیغمبران زیری ورکوونکی

وَمُنْذِرِيْنَ وَاَنْزَلَ مَعَهُمُ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ لِيَحْكُمَ بَيْنَ

او ویرَوونکی او راکوزے کړو دوئ سره کتاب دَ رښتیني چه فیصله اُکړی دَ خلقو په

النَّاسِ فِيْمَا اخْتَلَفُوْا فِيْهِ وَمَا اخْتَلَفَ فِيْهِ اِلَّا الَّذِيْنَ

مینځ کښے په کومه خبره کښے چه هغوئ جګړه کوی۔ او نه ده جګړه اچولے په کتاب کښے مګر هم هغه خلقو

اُوْتُوْهُ مِنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَتْهُمُ الْبَيِّنٰتُ بَغْيًاۢ بَيْنَهُمْ فَهَدَى

چاته چه دا (کتاب) ورکړے شوے وو۔ دَ هغے نه پس چه هغوئ ته اورسیدے صفا حکم خپل مینځ کښے ضد له وَجے بیا اُس هدایت

اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لِمَا اخْتَلَفُوْا فِيْهِ مِنَ الْحَقِّ بِاِذْنِهٖ

اوکړو الله تعالیٰ مؤمنانو ته دَ هغے (رښتینی) خبرے په کومه کښے چه هغوئ جګړه کوله په خپل حکم

وَاللّٰهُ يَهْدِىْ مَنْ يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿۲۱۳﴾

او الله تعالیٰ ښائی چا ته چه اغواړی لاره سمه

**دَ آيتونو تړون** پورته اُښودلے شو چه حق دین سره دَ اختلاف کولو علت دَ دُنیا محبّت دے اُس وروستو دوه دے مضمون ښکلے کیږی چه پخوا راسے دا سے قصه را روانه ده چه مونږ به حق دین باندِ ښکاره دلیلونه قائمُوو او د دنیا طلبګار دَ خپلو دُنیوی غرضونو په اړا نړه دَ دے خلاف کړے دے.

**دَ تفسیر لنډیز** (یو یو وخت کښے) ټول خلق په یو طریقه وو (ځکه چه په دنیا کښے دَ تولونه اوّل حضرت آدم علیه السلام او د هغه بی بی تشریف راوړے وو او کوم اولاد به ئے چه پیدا کید و هغوئ ته به ئے دَ حق دین تعلیم ورکولو او هغوئ به په دے تعلیم عمل کولو څه مُوده په دے حال تیره شوه بیا دَ طبیعتونو دَ اختلاف په اړا نړه په غرضونو او مرادونو کښے اختلاف شروع شو تردے چه څه مُوده پس عقائدو او اعمالو کښے هم دَ اختلاف وار راغلو) بیا (دَ دے اختلاف پورته کولو دَ پاره) الله تعالیٰ (مختلف) پیغمبران را اُلیږل چه (حق منونکو ته به ئے (د) خوشحالئ (وعدے) آوروله او (نا منونکی به ئے دَ عذاب نه) ویرول او هغوئ (یعنی دپیغمبرانو مجموعی ټولی) سره (ئے آسمانی) کتابونه په صحیح ډول نازل کړل (او دَ غه پیغمبرانو لیږل او دکتابُونو نازِلول) په دے غرض (وو) چه الله تعالیٰ (دَ دے رسولانو او کتابونو په ذریعه دَ اختلاف کوُونکو) خلقو په منځ کښے دَ هغوئ په اختلافی څیزونو (مذهبی وُ) کښے فیصله اُکړی (ځکه چه رَسولان او کتابُونه واقعی څیزونه ظاهِروی چه غیر واقعی څیزونه پرِ ښکاره غلط ثابتیږی. دَ دے پیغمبرانو دا وړلی شوی کتابُونه مَنل پکار وو او هم په دے سره ختلافات ورکول پکار وو مګر بعضے خلقو هغه کتابُونه یا خود سره اُنهٔ مَنل او یائے پکښے اختلاف کول شروع کړل) او په دے کتاب کښے (دا) اختلاف بل هیچا نهٔ دے کړے مګر صرف هغه خلقو چا ته چه (سر کښے هغه کتاب ملاؤ شوے وو (یعنی دَ علم او پوهے خاوندانو ځکه چه په سَر کښے مخاطب هم دا خلق وی، نورا مُیان خلق خو دوئ پسے روان دی او اختلاف ئے کوم وخت کښے اُکړو) پس له دے چه هغوئ ته واضح دلیلونه رسیدلی وو (یعنی دهغوئ په دماغو کښے ناست او پراته وو او اختلاف ئے دَ څه وجے نه اُکړو صِرف) یو تربله دَ ضِد ضد ابئ په وجه) (او دَ ضد ضد ابئ اصلی وجه دَ دُنیا دَ مال

یادمو بېټه ثبتت وي) بیا (د کفارو دا پوول اختلاف کله هُم ایماندارو د پاره مُضر نه شو بلکې) الله تعالیٰ (همیشه) ایماندارو ته هغه حق ښیې او نه کوم کښې چه یه (اختلاف کوونکو) اختلاف کولو د الله تعالیٰ په فضل (ریه) رسولانو او کتابونو د ایمان راوړلو په برکت) اوښودل او الله تعالیٰ چا لره چه اُغواړي هغه ته سمه لار ښائي۔

# علوم او مسئلې

په دے آیت کښې دا بیان شوے دے چه په یوه زمانه کښې د ټولو بنیادمو یو مذهب یو دین یو عقیده او یو خیال وو چه هغه د حق او د فطرت دین دے بیا د هغوي د طبیعتونو شوقونو او د سوچ فکر د اختلاف په وجه ډیر مختلف خیالات او عقیدے پیدا شوے په کوم کښې چه د حق او ناحق بیلتون کول گران وو نو الله تعالیٰ د دے بیلتون ښودلو د پاره پیغمبران علیهم السلام رالیږل او په هغوي ئے وحی او کتابونه نازل کړل د انبیاء علیهم السلام د کوشش، اصلاح او تبلیغ نه پس خلق دوه ډلے شول یو هغه خلق شُو چا چه د الله تعالیٰ را لیږلې شوي هدایات قبول کړل او د پیغمبرانو منونکي شُو چه مومن بللے شي دویم هغه خلق شو چا چه آسماني هدایات او پیغمبران علیهم السلام دروغژن اُگنړل د هغوي خبره ئے اُونه منله۔ دا خلق کافر بللے شي۔ د دے آیت په سر کښې ارشاد دے کَانَ النَّاسُ اُمَّةً وَّاحِدَةً امام راغب اصفهانيؒ په مفردات القرآن کښې فرمائي چه په عربي لغت ژبه) کښې اُمَّةً "دا سے هر ټولي ته ویلے شي کوم کښې چه په څه وجه تړون او یو والے وي۔ دا تړون او یو والے د خیالاتو او عقیده دوي، که په یو ملک کښې د یو ځائے استوګن وي یا په بله علاقه کښې د یل نسب ژبے او رنګ وي نو د ټولے جملے مطلب دا دے چه په یو څه زمانه کښې ټول بنیادم یو ځائے او یو ټولے وُو۔ دلته دوه خبرے د غور کولو جوګه دي۔

(۱) د یو والي نه کوم یو والے مُراد دے؟ (۲) دا یو والے په کومه زمانه کښې وو؟

د لومړۍ خبرے فیصله خو د آیت آخري جملے داسے اُکړه چه په دیرو لاروکښې د حق لار ښودنکو لو او ټاکلو د پاره د پیغمبرانو علیهم السلام او کتابونو لیږل دا ښائي چه دا اختلاف د عقائدو او خیالاتو وو نو د یو والي نه په مُراد یو والے د عقیدے، مذهب، فکر او خیالاتو حُکمه وي چه کتابونه او پیغمبران علیهم السلام درنګ، نسل، وطن او ژملنے د اختلاف فیصله کولو د پاره نه شي را لیږلے۔

نو د آیت بنکاره مطلب دا شو چه یو زمانه کښے ټول خلق په یو عقیده، خیال، مذهب او مسلک متفق وو دا احتمال شته چه دغه یوه عقیده دا یمان او توحید وه او دا هم احتمال شته چه دغه عقیده د کفر او ګمراهئ وه. مګر جمهور مفسرین دا خبره غوره ګنړی چه دغه عقیده د توحید او ایمان وه لکه چه سورت یونس کښے فرمائی:

| | |
|---|---|
| وَمَا كَانَ النَّاسُ إِلَّآ أُمَّةً وَاحِدَةً فَاخْتَلَفُوا وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِن رَّبِّكَ لَقُضِيَ بَيْنَهُمْ فِيمَا فِيهِ يَخْتَلِفُونَ ۝ | یعنی ټول خلق یو اُمت وو بیا په خپل مینځ کښے اختلاف پریوتو. او که چرے د الله دا ازلی فیصله نه وے (چه په دے دُنیا کښے به حق باطل، کړه کوټه، |

دروغ رښتیا یو ځائے چلیږی) نو قدرت الٰهی به د دے ټولو جګړو دا سے فیصله کړے وے چه حق سره د اختلاف لرونکو نوم به هُم نه وو پاتے شوے.

او په سورت انبیاء کښے فرمائی:

| | |
|---|---|
| إِنَّ هَٰذِهِ أُمَّتُكُمْ أُمَّةً وَاحِدَةً وَأَنَا رَبُّكُمْ فَاعْبُدُونِ ۝ | دا ستاسو ټولے دے او زه ستاسو پروردګار یم له دے وجے تاسو ټول هم زما عبادت کوئ. |

دارنګ په سورت مؤمنون کښے فرمائی:

| | |
|---|---|
| وَإِنَّ هَٰذِهِ أُمَّتُكُمْ أُمَّةً وَاحِدَةً وَأَنَا رَبُّكُمْ فَاتَّقُونِ ۝ | دا ستاسو ټولے یو ټولے دے او زه ستاسو رب یم له دے وجے هم زما نه ویریږئ. |

د دے ټولو آیتونو نه معلومیږی چه د یو والی نه مطلب یو والے د عقیدے، مذهب او مسلک دے کوم چه ایمان او توحید دے. اُس د دے یو والی زمانه کومه وه، دا یو والے تر څو مره قائم وو؟ په مفسرینو صحابه کرامو کښے شمیر دا اُبی بن کعب او ابن زید په نزد دا د ازل د ورځے واقعه ده په کومه کښے چه الله تعالیٰ د ټولو بنیادمو روحونه پیدا کړل، او دعده ئے ترے واخسته اَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ (آیا زه ستاسو پروردګار نه یم؟) او ټولو دا جواب ورکړے وو چه ولے نه خو تهٔ پروردګار ئے دا هغه یوه حقه عقیده ده چه نوم ئے ایمان او اسلام دے او په دوه ازل کښے پر ټول بنیادم قائم وو (قرطبی)

حضرت عبدالله بن عباس فرمائی چه د یو والی د عقیدے دا واقعه د هغه وخت ده چه آدم علیه السلام خپلے بی بی سره دُنیا ته تشریف راوړو د هغوی اولاد پیدا شو او په دنیا

کښې خو د شو نو د غه ټول د حضرت آدم علیه السلام په دين وُو د هغوئ د تعليم او ښو د نې تابع وُو او دَ توحيد اقرار يان وُو او دَ قابيل نه بغير ټول دَ شريعت تابعدار او منونکی وُو .

په مسند بزاز کښې د حضرت عبد الله بن عباسؓ دے قول سره دا هم ذکر شوی دی چه دَ عقيدے يو والے دَ حضرت آدم عليه السلام نه تر حضرت ادريس عليه السلام پورے وو، چه دَ لسو قرنو زمانه ده يو قرن سل کاله شکاری چه ټوله دغه زمانه بيا زر کاله جوړيږي .

بعضے صاحبانو دا فرمائيلی دی چه د طوفانِ نوح عليه السلام نه پس شوی خلق ټول په يو عقيده قائم وو ټول مسلمانان او موحدان وو او دَ حق دين تابعدار وو .

په حقيقت کښې دا درے واړه قولونه مختلف دا سے نه دی چه درے واړو زمانو کښې ټول بنيادم په حق دين قائم ، يو ټولے او يو اُمت وو .

دَ آيت په دويم جُمله کښې ارشاد دے فَبَعَثَ اللّٰهُ النَّبِيّٖنَ مُبَشِّرِيْنَ وَمُنْذِرِيْنَ وَاَنْزَلَ مَعَهُمُ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ لِيَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ فِيْمَا اخْتَلَفُوْا فِيْهِ يعنی الله تعالیٰ خوشحالی اَوَرَ وونکی او ويرَوُونکی پيغمبران اُليږل او هغوئ سره ئے کتابونه هم په صحيح طريقه دے دپاره (اُليږل) نازل کړل چه دَ خلقو په منځ کښې د هغوئ دَ اختلافی څيزونو فيصله اُکړی .

دا خبره هم دَ غور کولو جوګه ده چه په ظاهر دَ دے دواړو خبرو څه جوړښت نه راځی . يو دا چه ټول بنيادم يو ټولے او يو اُمت وو او په دے تفريع شوے . بلهٔ دا خبره چه پيغمبران عليهم السلام او هغوئ سره کتابونه د اختلاف لرے کولو او فيصله کولو دپاره ليږلی شوی وو . په ظاهر څه جوړښت ښکه نه راځی چه اختلاف په يو عقيده او يو اُمت کښې نه وو نو دَ اختلاف لرے کولو دَ پاره دَ کتابونو ليږل بيا څه معنیٰ لری ؟ ليکن جواب ئې ښکاره دے . هغه دا دے چه دُنيا په اوّل کښې ټول بنيادم د يو حق عقيدے قائل او پابند وُو بيا چه رو دو اختلافات پيدا شول نو دَ پيغمبرانو او کتابونو ليږلو ضرورت پيښ شو .

هر کله چه خبره دا سے ده نو دَ اُمَّةً وَّاحِدَةً سره ئے دَ اختلاف ذکر ونه اُنکړو ، ځکه چه په قرآن څه پوهه لری نو هغه ته دا شک ښکه نه راځی چه قرآن کريم پوره او ټول تحواني حالات او پوره قصه نه بيانوی بلکه په مينځ مينځ کښې هغه خبرے پريږدی کوم چه دَ قصے دَ روانئ نه پخپله معلوميږی لکه دَ يوسف عليه السلام قصه کښې دَ قيدی را خلاصيدل ، دَ هغه (قيدی) بادشاه ته دَ يوسف عليه السلام نه دَ خوب تعبير پُښتلو تجويز دړاندې کول ، ذکر

نه دی او خبره دے ځائے ته شروع کیږی یُوۡسُفُ اَیُّهَا الصِّدِّیۡقُ دا هم ذکر نشته چه بادشاه دَ هغه تجویز خوښ کړو، دَ یوسف علیه السلام خوا ته ئے بندی خانے ته اُلیږلو او هغه ته په رسید وئے دا و بیا شروع کړه ځکه چه دَ دوړاندِ رُستو په جُملو یو ځائے کولو دا ټولے خبرے پخپله دِماغو ته راځی.

دغه رنګ دا اُمّت دیو والی نه پس دَ اختلاف پیدا کیدلو دَ بیان ضرورت ځکه نهٔ وو چه دا ټول خلق وینی ګوری او هر کَس ته په خپل ځان دَ اختلاف پیدا کیدو تجربه شته، لیکن ضرورت د دے خبرے ښکاره کول وو چه دا سے یو وخت او زمانه هم تیره شوے ده چه ټول بنیادم دَ یو مذهب، ملّت او دَ یو حق دین منونکی وو، دا ئے بیان کړه خو دَ تیرشوی دلیل په جوړ اختلاف پیدا کیدل ئے بیان نه کړه صِرف دومره ئے اُفرمائیل چه دا اختلاف په دور کینے الله تعالی دَ حق لارے ښودلو او هدایت څه انتظام اکړو فرمائی فَبَعَثَ اللّٰهُ النَّبِیّٖنَ یعنی الله تعالیٰ پیغمبران علیهم السلام په دے غرض دَا اُلیږل چه حق دین منونکو له دتل آرام او خوشحالئ زیرے ورکړی او دے نامنونکو ته دَ جهنم دَ عذاب وعید واوَ دَوی هغوئ سره ئے وحی او کتابونه هم په دے غرض را اُلیږل چه کوم دوعقیدو او خیالاتو کښے ورته صحیح او حق په ښنه کړی. بیا ئے دا اُو فرمائیل چه دَ پیغمبرانو او رسولانو دَ ښکاره فیصلو نه پس هم دا دُنیا په دوَو ډلو کښے او ویشلے شوه څه خلقو دغه ښکاره هدایات قبول نهٔ کړل دَحیرانتیا خبره دا ده چه اول نامنونکی هم هغه خلق وو کوم وو ته چه دا پیغمبران علیهم السلام او الٰهی آیاتونه لیږلے شوی وو او په یهودو او نصارا وَ بللے شی. ډیره زیاته دحیرانتیا خبره دا ده چه په آسمانی کتابونو کښے دَ کمې ون او شک څه دا سے ځائے نهٔ وو دَ کوم له وجے چه دوئ ته غلطی کیدے شوه یا دَ دوئ پرِ پوهه نه راتله بلکه سره دَ پوهے دغے خلقو صرف دَ ضِد په وجه اِنکار اُکړو.

دوئیم ډلے دَ پیغمبرانو علیهم السلام او دَ آسمانی کتابونو فیصلے دَ زړه دَ اخلاصه اُمنلے، ځکه چه الله تعالیٰ دوئ ته هدایت اُکړو. دا دوه ډلے قرآن کریم په سورت تغابن کښے دا سے بیانوی خَلَقَکُمۡ فَمِنۡکُمۡ کَافِرٌ وَّمِنۡکُمۡ مُّؤۡمِنٌ : الله تعالیٰ تاسو پیدا کړئ بیا له تاسو څوک کافر، منکر، او څوک مؤمن، مُسلمان شول.

دَ: کَانَ النَّاسُ اُمَّةً وَّاحِدَةً خلاصه دا ده چه په اول کښے د دُنیا ټولو بنیادمو یو حق دین لرلو دَ کړ دو په طبیعتو نو له وجے غرضونه او مقصدونه کم و ډ شو او څه موده پس عملونه او

عقیدے هم کېږے وړے شوے چه د حقو او باطلو بېلېدون نه شو کیدے نو الله تعالیٰ د دے بېلتون کولو، د حقے لارے ښودلو او په حق دین د بیا روانېدلو او ټینګېدلو د پاره پیغمبران علیهم السلام او کتابونه را اولېږل څه خلقو اُمنل او څه خلقو ضد او عِناد له وجے اُنه مَنل۔

## مسئلے

د دے آیت نه یو خو خبرے معلومیږی اول دا چه په ډیرو پیغمبرانو او کتابونو لیږلو کښے د الله تعالیٰ حکمت دا وو چه د حق دین نه اوړیدلی او ړے د ے شوی خلق بیا قبول په یو حق دین را یو ځائے کړی کله به چه ډے پرے ګوندئ او اختلافات زیات شو نو الله تعالیٰ به یو بل پسے پیغمبران او کتابونه بیا را یو ځائے کولو او ډے ختمولو د پاره همدا رنګ را لیږل د دے مثال داسے اُبولئ چه روغتیا او ناروغتیا ډیرا و بیشمیره قسمونه لری هر ناروغتون د پاره بیل بیل دارو ګان او بیل بیل پرهیزونه وی خو په آخر کښے دا سے قول اثره دارو اوپاکل چه د ټولو ناروغتونو د پاره تر ډیره کامیاب ثابتیږی ترڅو چه دا د نیا آباده ساتل درته منظور وو۔ دا ټول اثره دارو د تیر شوو دارو ځائے نیوونکی او په دا تلونکی وخت کښے د نورو ټولو دارو نه خلاصوونکی دی د دے دارو نوم اسلام دے دکوم د پاره چه خاتم الانبیاء صلی الله علیه وسلم او قرآن کریم را اُلیږلے شو او د هغه د حفاظت انتظام الله تعالیٰ پخپله ځکه اُکړ و چه د نورو تیرو شوو دینونو، کتابونو او د پیغمبرانو د تعلیماتو په شان د دے کښے څه بدلون یا کمے زیاتے اُنکړے شی او تر قیامته په اُمتِ محمدیه علیٰ صاحبها الصلوٰة والسلام کښے د دا سے یو ټولی اُدر ولو وعده ئے اُفرمائیله کوم به چه تل په حق دین ټینګ ولاړه وی او د کتاب و سنت صحیح تعلیم به په مسلمانانو کښے خوره وی د چا د ښمنی او مخالفت به په دغه ټولی هیڅ اثر نه غورځوی هم دغه وجه ده چه د وحی او پیغمبری دروازه بندیدل ضروری شوه او د ختم نبوت اعلان اُشو۔

د خبرے خلاصه دا شوه چه د ډیرو پیغمبرانو علیهم السلام او د مختلفو آسمانی کتابونو را لیږلو حکمت اختلاف او ړے ګوندئ جوړول نه وُو بلکه د دے دا سے ختمول وو چه ټول خلق بیا په حق دین هغه شان را غونډ او یو ځائے شی څنګه چه وړاندې یو ټولے یو موټے او یو ملت وو.

مسئله : فَمِنۡكُمۡ كَافِرٌ وَّمِنۡكُمۡ مُّؤۡمِنٌ د دے خبرے ګواهی ورکوی چه د مذهب او عقیدے

د اختلاف په اړه د قومونو ويش کېږي او دوه ډلې د مسلمانانو او کافرانو پېژندل کېږي چه اصل بنياد ئې يو قوميت دے حق دين او حقه عقيده ده نه چه يو وطنيت دے تر څو د قرآن کريم ارشاد كَانَ النَّاسُ اُمَّةً وَّاحِدَةً بنائي چه دا ټول بنيادم د پيدا کېدو په شروع کښې په دے اعتبار يو قوم وو چه د دے ټولو يوه صحيح عقيده وه او د يو حق دين منونکي او تابعدار وو. بيا وروستو خلقو کښې اختلاف پيدا شو. پېغمبرانو عليهم السلام هغوئ د غه اصلي يو والي طرف ته راوبلل چا چه دا بلنه قبوله نه کړه هغوئ د اصلي يو والي نه بېل شو او په بل جُدا قوم (کافرانو) اوبللے شو.

مسئله: د دے آيت نه د ريمه خبره دا معلومېږي چه سنت الله د ازل نه دا سے راروان دے چه د هر پېغمبر او آسماني کتاب خلاف ناکاره او بدانو خلقو کړے دے اُس هم که څوک ناکاره خلق دا سے کوي نو هغوئ د خپلو مشرانو تابعداري کوي. صالحانو مومنانو له پکار دي، چه هغوئ د خپلو مشرانو (پېغمبرانو عليهم السلام) تابعداري اوکړي، کوم چه د هغو ناکاره خلقو په ناکړدو صبر کولو هغه به ئے په خوا خاطر کښې نه راوستل او په حکمت وعظ ونصيحت او نرمئ به ئے حق دين طرف ته برابره بلنه ورکوله، کيدے شي چه د دے جوړښت په اړه مسلمانانو ته په آفتونو او مصيبتونو د غم او صبر ښودنه او تلقين شوے وي فرمائي:

أَمْ حَسِبْتُمْ أَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ وَلَمَّا يَأْتِكُمْ مَثَلُ الَّذِينَ

ولے ستاسو دا خيال دے چه جنت ته به لاړشئ سره د دے چه په تاسو نه دي تېر شوي حالات د هغه

خَلَوْا مِنْ قَبْلِكُمْ مَسَّتْهُمُ الْبَأْسَاءُ وَالضَّرَّاءُ وَزُلْزِلُوا

خلقو په شان چه د وستاسو نه د مخه تېر شوي وو ورسيدلي وو هغوئ ته سختۍ او تکليفونه، او اوجڼ کړے شو

حَتَّىٰ يَقُولَ الرَّسُولُ وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ مَتَىٰ نَصْرُ اللَّهِ

تر دے چه گويا به شو پېغمبر او هغه کسان چه ورسره ايمان راوړے وو، کله به راځي د الله تعالیٰ امداد

أَلَا إِنَّ نَصْرَ اللَّهِ قَرِيبٌ ﴿٢١٤﴾

وا اورئ د الله تعالیٰ امداد نږدے دے،

**دآیتونو تړون** | وراندئ تیرشوی آیتونو کښې مسلمانانو ته تسلیٔ ورکولو د پاره پیغمبرانو او مومنانو سره د کفارو د اختلاف کولو بیان وو اوس دا بیان دے چه تل د پاره پیغمبرانو او مومنانو سره د کفارو د برړے تیرے شوی دی د هغوی په تکلیفونو رسولو تو قومسخرو کولو به پیغمبرانو او مومنانو د غم او صبر نه کار اخستو په دے موجوده مسلمانانو ته تسلی ورکول دی چه دا کار څه نوے نه دے تاسو هم پرې صبر او د غم نه کار اخلئ ځکه چه د آخرت کامل راحت او آرام هم د دُنیا په تکلیفونو تیرولو بنا دے۔

**دتفسیرلنډیز** | ر دوئیمه خبره دا وُری ولے! ستاسو دا خیال دے چه جنت کښې به بے مشقته) ورداخل شئ سره د دے (چه څه زور مونه دے تیر کړے ځکه چه) تاسو ته لا د (مسلمانانو) خلقو په شان عجیبه واقعه نه ده پیښه شوے کوم چه تاسو نه وراندئ تیر شوی دی په هغوی به (د مخالفینو په سبب) داسے داسے تنگیٔ او سختئ راتلے او (په مصیبتونو به) هغوی دومره اُجر قوے شو چه (د هغے زمانے) پیغمبره پورے او د هغوی په ملګرتیا کښے چه اهلِ ایمان وو (ناقلاره شول) په وینا شو چه د الله تعالیٰ امداد (د کوم چه وعده شوے ده) به کله وی (په دے جواب هغوی ته به دا تسلی ورکړے شوه چه) یادلرئ د الله تعالیٰ امداد (ډیر) نزدے (کیدُونکے) دے۔

## علوم او مسئلے

په دے آیت کښے څو خبرے د غور کولو جوګه دی:

اوله خبره دا د آیت نه معلومیږی چه بے مشقته محنته او مصیبتونو او تکلیفونو کښے داکیریدو نه بغیر جنت ته څوک نشی تلے سره د دے چه پرو آیتونو نه دا معلومیږی چه پیر ګنهګاران به صرف د الله تعالیٰ په مهربانیٔ او بخښنے سره جنت کښے داخلیږی په هغوی به څه مشقت هم نه وی وجه داده چه د محنت مشقت مختلف درجے دی کمه درجه داده چه نفس او شیطان سره مقابله اُکړی یا د حق دین د مخالفینو په خلاف کولو سره خپله عقیده درسته کړی لکه چه هر مؤمن ته کوی دے پسے دوه درجے (منځنیٔ او لوړے) نورے دی چه په محنتونو او مشقتونو اړه نړه دی۔ څومره چه محنت او مشقت وی هومره به جنت ته د داخلیدو درجه وی خلاصه دا چه هره درجه کښے محنت او مشقت شته څه کښے کم او څه کښے

زیات لکه چه نبی کریم صلی الله علیه وسلّم فرمائی۔

اَشَدُّ النَّاسِ بَلَاءً الْاَنْبِیَاءُ ثُمَّ الْاَمْثَلُ فَالْاَمْثَلُ | دَ ټولو نه زیات غمونه او مصیبتونه انبیاء علیهم السلام ته رسیږی بیا هغوته څوک چه دوئ ته زیات نژدے وی۔

دویمه خبره داده چه د پیغمبرانو علیهم السلام اود هغوئ د ملګرو دا وینا او عرض کول "چه دَ الله تعالیٰ امداد به کله وی؟" په څه شک شبه بنا څکه نه وو چه دا د هغوئ د شان سره نه ښائی دا الله تعالیٰ په وعده ئے کامل یقین وو۔ خو چه هرکله دَ امداد د راتلو وخت نه وو ټاکلے شوے نو دَ هغوئ دا عرض کول په دے بنا وُو چه مدد دِ ژر راکړے شی. ځکه چه مونږ ته په دے وَس شوا الله تعالیٰ ته زاری کول دَ هغه ځان محتاج ګڼړل او خپله بے وَسی ورته ښکاره کول الله تعالیٰ ته ډیر محبوب او غوره دی. دَ انبیاء علیهم السلام او د نیکانو دَ شان مُناسب دی او دَ توکل یا د نبوّت دَ منصب هرګز خلاف نه دی۔

يَسْـَٔلُوْنَكَ مَاذَا يُنْفِقُوْنَ ؕ قُلْ مَآ اَنْفَقْتُمْ مِّنْ خَيْرٍ

تا نه تپوس کوی چه څه اُ لکوی ، اُوایه چه لګوئ تا سو څه مال نو

فَلِلْوَالِدَيْنِ وَالْاَقْرَبِيْنَ وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنِ وَابْنِ

مور پلار دَ پاره او خپلوانو د پاره او یتیمانو دَ پاره او محتاجو د پاره او

السَّبِيْلِ ؕ وَمَا تَفْعَلُوْا مِنْ خَيْرٍ فَاِنَّ اللّٰهَ بِهٖ عَلِيْمٌ ﴿۲۱۵﴾

مسافرو دَ پاره، چه کوئ تا سو څه ښیګړه نو هغه بیشکه الله تعالیٰ ته ښه معلومه ده۔

**دَ تفسیر لنډیز** | خلق تا سو نه تپوس کوی چه (ثواب د پاره) څه خیز لګوُو (او په کوم ځائے کښے ئے لګوُو) تا سو ُا فرمایئ چه کوم مال تا سو لګول غواړئ نو (د هغے تاکل خو تا سو په همت بنا دی مګر ځائے ئے درته مُونږ ښایُو چه) د مور پلار حق د دے دَ خپلوانو او بیا پلاره ماشومانو او محتاجو او مُسافرو او چه کوم نیک کار کوئ (که دَ الله تعالیٰ په لار کښے لګول دی او که بل څه وی) نو الله تعالیٰ ته دَ هغے ښه خبر دے (په هغے به ثواب درکوی)

**علوم او مسئلے** : په پورتنی آیتونو کښے دے مضمون له ډیر زور ورکړے شوے دے چه

کفرا و منافقت پرېږدي، او په اسلام کښې په پوره توګه داخل شي. د الله تعالیٰ د حکم په مقابله کښې د بل چا خبره مه آوري. د الله تعالیٰ د رضا د پاره ځان او مال ورکوي، او په هر تکلیف او غم صبر او زغم کوي. اُس له دے ځایه د الله تعالیٰ د تابعدارۍ او د هغه د حکم منلو، د هغه په لار کښې د ځان او مال ورکولو په باره کښې د بعضے خاصو خبرو تفصیل بیانیږي کوم چه ځان، مال او نورو معاملو (لکه نکاح طلاق وغیره) سره تعلق لري او پورته نه د نیکو د احکامو بیانولو کومه لړۍ چه راروانه ده دا ټول په هغې کښې داخل دي. د دے خاصو خبرو د بیانولو انداز هم خاص ځکه دے چه د اکثرو تپوس صحابه کرامو د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه کړے دوا او د هغې جواب پیغمبر په ژبه د "رحمٰن د عرش" نه په واسطه د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره ورکړے شو دا ویل به هم څه مُبالغه نه وي چه هم الله تعالیٰ د هغې فتوی ورکړے ده لکه چه پخپله فرمائي ﴿قُلِ اللّٰهُ يُفْتِيْكُمْ فِيْهِنَّ﴾ دا ویل هم صحیح دي چه فتوی د نبي کریم صلی الله علیه وسلم وي خو په ذریعه د وحي ورته ښودلے شوي وي۔

په دے رکوع کښې د صحابه کرامو د سوالونو جوابونه چه احکامِ شرعیه ترڅنا بیتیږي نمو اهمیت لري په ټول قرآن کریم کښې په داسے انداز ثابت شوي شرعي احکام په اوولسو ځایونو کښې راغلي دي اُوه هم دلته په سورتِ بقره کښې یو په سورتِ مائده کښې او یو په سورتِ انفال کښې دا نهه سوالونه د صحابه کرامو له طرفه دي۔ دوه په سورتِ اعراف کښې او یو یو په سورتِ بني اسرائیل، سورتِ کهف، سورتِ طٰهٰ او سورتِ نازعات کښې دا ټول شپږ سوالونه د کفارو له طرفه دي چه قرآنِ کریم کښې د هغې جواب هم د جواب په عنوان سره ورکړے شوے دے۔

مُفسّرِ قرآن حضرت عبدالله بن عباس رض فرمائي چه ما د محمد صلی الله علیه وسلم د صحابه کرامو نه زیات غوره بل توے نه دے لیدے (چه دین او رسول الله صلی الله علیه وسلم سره د ډیرے مینے او محبت لرلو باوجود هغوئ ډیر کم سوالونه کړي دي) د ټولو دیارلسو مسئلو په باره کښې ئے سوالونه کړي دي ځکه چه هغوئ بے ضرورته سوال نه کولو (قرطبی)[1]

پورته ذکر شوي آیت کښې د صحابه کرامو سوال په دے الفاظو کښې نقل شوے دے:-

﴿يَسْئَلُوْنَكَ مَاذَا يُنْفِقُوْنَ﴾ یعنی خلق تاسو نه تپوس کوي چه څه لګوو، په دے رکوع کښې هم دا سوال د دوه آیتونه رُستو بیا هم په دے الفاظو کښې سر دوباره کړے شوے دے فرمائي ﴿وَيَسْئَلُوْنَكَ

(۱) ج : ۳ ، ص : ۴۰ ۔

مَاذَا يُنْفِقُوْنَ " مگر جواب ئې نه ئې بدل بدل دی. دَ دې حکمت هله معلومېږی چه دې سره په تړلې واقعاتو غور اُوکړې شی. مثلاً د دې آيت شانِ نزول دا دې چه عمرو بن جمُوح د رسول الله صلی الله عليه وسلم نه سوال کړې وو " مَا نُنْفِقُ مِنْ اَمْوَالِنَا وَاَيْنَ نَضَعُهَا؟ (اَخْرَجَهٗ اِبْنُ الْمُنْذِرِ مَظْهَرِی)[1] يعنې مونږه د خپلو مالونو نه څه او په کوم ځائې کښې اُلګوُو او دَ ابن جريرؒ[2] د روايت په جوړ دا سوال يو ځائې دَ ابن جمُوح نهٔ بلکه دَ عامو مسلمانانو دو دَ دې سوال دوه برخې دی يو دا چه کوم مال اوخومره اُلګوُو او دويم دا چه دا چا ته ورکړو دَ لګولو ځائې ئې کوم دې.

د دې نه دوه آيته پس د دغه رنګ سوال والا آيت شانِ نزول په روايت دَ ابن ابی حاتم دا دې چه کله قرآنِ کريم کښې مسلمانانو ته دَ دې حکم ورکړې شو چه خپل مال دَ الله تعالیٰ په لار کښې اُلګوئ نو څو صحابه کرام دَ حضور صلی الله عليه وسلم په خدمت کښې حاضر شو او عرض ئې اوکړو چه دَ الله تعالیٰ په لار کښې دَ مال لګولو مونږ وضاحت غواړو چه څه مال او کوم يو خيز دَ الله تعالیٰ په لار کښې لګوُو. د دې سوال صرف يوه برخه شوه يعنې " څه اُلګوو؟ " په دې بِنا دَ دواړو سوالونو نوعيت بدل شو، دَ وړومبی سوال دَ جواب نه معلومېږی چه د دې دويمې برخې (کوم ځائې کښې ئې اُلګوُو) ته ډېر اهميت ورکړې شوې دې چه جواب ئې ښه ښکاره ورکړې شوې دې او دَ وړومبئ برخې (څه اُلګوُو) جواب ئې ضمنی او اجمالی رنګ کښې ورکول کافی اُګڼړل. اُس دَ دې آيت په دواړو برخو نظر واچوه. دَ يو برخې چه " کوم ځائې اُلګوُو " دا جواب ورکوې شی مَا اَنْفَقْتُمْ مِّنْ خَيْرٍ فَلِلْوَالِدَيْنِ وَالْاَقْرَبِيْنَ وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنِ وَابْنِ السَّبِيْلِ يعنې کوم مال چه تاسو دَ الله تعالیٰ دَ پاره لګوئ دَ هغې حقدار، مور پلار او بې پلاره واپه او رداړنګ) مسکينان او مسافر دی.

او دويمې برخې " چه څه اُلګوو " جواب په دې الفاظو کښې ضمنی ډول ورکړې شوې دې. وَمَا تَفْعَلُوْا مِنْ خَيْرٍ فَاِنَّ اللّٰهَ بِهٖ عَلِيْمٌ ۝ يعنې چه کومه ښېګړه تاسو کوئ الله تعالیٰ په هغې ښه خبر دې، دا دې خبرې ته اشاره ده چه دَ الله تعالیٰ له طرفه څه حد بندی او پابندی نشته چه څه مو وَس کېږی هومره لګوئ الله تعالیٰ سره به دَ هغې بدله او ثواب بيا مُومئ.

غرض دا چه غالبًا سوال کوُونکوته اهميت د دې سوال وو چه څمونږ د مال لګولو ځائې دِ

(۱) ج: ۱، ص: ۲۵٦ - (۲) ج: ۳، ص: ۱۹۳ -

حکم وی نو په جواب کښې اهمیت هم دے نه ورکړے شو چه فلانی فلانی ځائے کښې اُلګوئ

او په رُستی آیت کښې سوال صرف دا وو چه څه اُلګوُو نو جواب هم دومره ورکړے شو "قُلِ الْعَفْوَ" یعنی تاسو اُفرمایئ چه دَ خپلو ضرورریاتو نه زیاتی مال لګوئ دے دواړو آیتونو نه دَ الله تعالیٰ په لار کښې دمال لګولو په باره کښې څو هدایات او مسئلے معلومے شوے۔

مسئله: ۱ ړومبئ داچه دواړه آیتونه دَ فرض زکوٰة په باره کښې نه دی ځکه چه زکوٰة دپاره دمال نصاب هم مقرر دے او دَ هغے دلګولو فرض شوے اندازه هم نبی کریم صلی الله علیه وسلم تاکلے ده حالانکه چه دے دواړو آیتونو کښې نه نصاب یاد لګولو اندازه نه ده ښودلے شوے نو معلومه شوه چه دادَ نفل خیرات سره تړون لری او اُس دا شبه هم پاتے نه شوه، چه په ړومبی آیت کښې دخیرات لګولو ځائے مور پلار هم ښودلے شوی دی که دا فرض خیرات وے نو مور و پلار ته فرض زکوٰة نشی ورکولے۔

مسئله ۲: دَدے آیت نه دویم هدایت دا اُموندلے شو چه مور و پلار او نورو خپلوانو عزیزانو ته څه ډالئ ورکولو یا په دوئ خوَرَ لو څښَلو کښې ګجرے دالله دَحکم په ځائے راوړلو نیت وی نو اجر او ثواب به هم ورکړے کیږی او دا به دَ الله تعالیٰ په لار کښې لګول (انفاق فی سبیل الله) حسابیږی۔

مسئله ۳: دریم هدایت دے نه دا اُموندلے شو چه په نفلی خیرات کولو کښې به هله ثواب مُوندلے شی چه دا دَ هغه دضرورت نه په زیاتی مال کښې کړے شوے وی او ګجرے خپل ځان تنګ لنډکړی یا په خپل بال بچ تنګی راولی۔ یا قرض ادا نکړی او نفلی خیرات اُکړی نو دَ الله تعالیٰ په نزد دا ښه کار نه دے۔ حضرت ابوذر غفاریؓ او څه نور وصاحبانو دَ زیاتی مال لګولو دا مطلب اغستے دے چه دخپل ضرورت نه زیاتی ټول مال دالله په لار کښې لګول واجب دی او دا زیاتی مال ځان سره ساتل هیڅ روا نه دی۔ مګر جمهور صحابه کرامؓ، تابعینؒ او دَ دین امامان صاحبانؒ دقرآن ددے آیت مطلب دا ښائ چه نفلی خیرات کولو دپاره شرط دادے چه هغه دِ خپلو ضروریاتو نه په زیاتی مال کښې وی دا مطلب ئے نه دے چه دضرورت نه زیاتی ټول مال دالله تعالیٰ په لار کښې خیرات کول واجب دی ځکه تخنګه دَ صحابه کرامو دَ کړه وړه (تعامل) نه هم چه ثابتیږی۔

كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِتَالُ وَهُوَ كُرْهٌ لَّكُمْ ۚ وَعَسَىٰ أَن تَكْرَهُوا

فرض شو په تاسو جنګ او هغه ناخوښه دے ستاسو۔ او کیدے شی چه تاسو نه خوښوئ

شَيْئًا وَّهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ ۚ وَعَسٰٓى اَنْ تُحِبُّوْا شَيْئًا وَّهُوَ شَرٌّ

یو څیز او هغه به غوره وي تاسو د پاره ، او کیدے شي چه خوښوئ به تاسو یو څیز لره او هغه به بد وي تاسو

لَّكُمْ ۗ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ وَاَنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ع ﴿٢١٦﴾ يَسْئَلُوْنَكَ عَنِ ع ٢٦ ١٠

د پاره ، او الله تعالیٰ پوهیږي او تاسو نهٔ پوهیږئ ۔ تاسو نه پښتنې د

الشَّهْرِ الْحَرَامِ قِتَالٍ فِيْهِ ۭ قُلْ قِتَالٌ فِيْهِ كَبِيْرٌ ۭ وَصَدٌّ

میاشتے حرامے چه په دے کښے جنګ کول څنګه ؟ اُوا یه چه جنګیدل په دے کښے لوئے ګناه دے ۔ او بندول

عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَكُفْرٌ ۢ بِهٖ وَالْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۤ وَاِخْرَاجُ اَهْلِهٖ

د الله تعالیٰ د لارے نه او هغې لره نهٔ منل او د مسجد حرام نه بندول او اُبستل د هغې د خلقو

مِنْهُ اَكْبَرُ عِنْدَ اللّٰهِ ۚ وَالْفِتْنَةُ اَكْبَرُ مِنَ الْقَتْلِ ۭ وَلَا

د هغې ځائے نه هم زیاته ګناه ده د الله تعالیٰ په نزد او خلقو لره د دین نه اړول لوئے ګناه ده د قتل نه ، او کفار

يَزَالُوْنَ يُقَاتِلُوْنَكُمْ حَتّٰى يَرُدُّوْكُمْ عَنْ دِيْنِكُمْ اِنِ

به تل ترتله تاسو سره جنګیږي تر دے چه واړوي تاسو لره ستاسو د دین نه ، که چرے

اسْتَطَاعُوْا ۭ وَمَنْ يَّرْتَدِدْ مِنْكُمْ عَنْ دِيْنِهٖ فَيَمُتْ وَهُوَ

وس ئے اُرسید و ۔ او که څوک واړوي به تاسو کښے له خپله دینه ، بیا مړ شي د

كَافِرٌ فَاُولٰۗئِكَ حَبِطَتْ اَعْمَالُهُمْ فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ ۚ وَ

کفر په حالت کښے نو د داسے خلقو برباد شول عملونه د دوئ په دنیا او آخرت کښے او دا

اُولٰۗئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿٢١٧﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ

خلق اُوسیدونکي دي د دوزخ دوئ به په هغې کښے تل پاتے کیږي ۔ او بیشکه کوم خلق چه

اٰمَنُوْا وَالَّذِيْنَ هَاجَرُوْا وَجٰهَدُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۙ اُولٰۗئِكَ

ایمان راوړے او کوم چه هجرت اوکړو ۔ او اُجنګیدل د الله تعالیٰ په لار کښے دا کسان

يَرْجُوْنَ رَحْمَتَ اللّٰهِ ؕ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۲۱۸﴾

امید وار دی دَ الله تعالیٰ د رحمت ، او الله تعالیٰ بخښونکے او مهربانه دے ۔

## دَ تفسیر لنډیز

**دیارلسم حکم د جهاد دَ فرض کیدو** جهاد کول په تاسو فرض کړے شوی دی او هغه تاسو ته (په طبیعت) دَرُوند بریښي او دا سے کیدے شی چه تاسو کوم څیز سخت (دَرُوند) اُګڼړئ او (په واقع کښے) هغه ستاسو په حقله خیر (او فائده) وی او دا (هم) کیدے شی چه تاسو یو څیز خوږ اُګڼړئ او (په واقع کښے) هغه ستاسو په حقله بد (ثابت) شی او (د هر څیز حقیقتِ حال) الله تعالیٰ پیژنی او تاسو (پوره پوره) نه پیژنئ (دَ بنده او بد فیصله دَ خپلے خوښے په بنیاد مه کوئ دَ الله تعالیٰ چه څه حکم اُشی دهغے په منلو کښے دَ ځان خیر او مصلحت ګڼړئ)

**څوارلسم حکم په میاشته حرامه کښے دَ جنګ کولو تحقیق** په یو سفر کښے دَ بعضے صحابه کرامو دَ لاسه یو کافر په مقابله کښے په دا سے ورځ قتل شو چه صحابه کرامو ته دَ جمادی الاُخریٰ (خلورمے خور) دیرشمه معلومیده خو په حقیقت کښے دا دَ رجب (میاشتے رُومبئ ورځ وه په کومه کښے چه جنګ شروع کول منع دی ۔ کفارو په دے واقعه مسلمانانو ته پیغورئ او تو نسُونه ورکول مُسلمانانو دَ خپلے فکرمندئ له وجے دحضور صلی الله علیه وسلم نه تپوس اُکړو او په بعضے روایتونو کښے راغلی دی چه دَ قُریشو بعضے کفارو دَ حضور علیه السلام په وړاندِ دَ اعتراض په توګه دا سوال را اوچت کړو نو جواب ئے دا سے فرمائیلے دے ،

خلق تاسُونه په میاشت حرامه کښے دَ جنګ کولو په باره کښے سوال کوی تاسو اُفرمایئ چه په دے کښے بالخصوص (یعنی په قصد) جنګ کول لوئے جُرم دے (لیکن مسلمانانو دا کار په قصد نه دے کړے بلکه په تاریخ کښے دغلطئ راتلو په وجه دا سے اُشو ۔ دا خو تحقیقی جواب دے) او (الزامی جواب دا دے چه په مسلمانانو د کُفارو له طرفه دَ اعتراض کولو هیڅ وحق نشته چه په میاشته حرامه کښے جنګ کول اګرچه لوئے جُرم دے لیکن دَ دے کفارو چه کوم کړه وړه دی یعنی) دالله تعالیٰ دلارے (دین) نه (خلقو له) بند وَل (یعنی په مسلمانید و دومره تکلیفونه ورکول چه نور خلق بیا دَ ویرے مسلمانان نه شی) او په الله تعالیٰ کفر کول او په مسجد حرام (یعنی په خانه کعبه) کُفر کول (چه هلته ئے په بُتان اُودرَ ولی وو او دَ خدائے تعالیٰ د عبادت کولو په ځائے ئے دهغوئ

عبادت او طوا فونه کول) او کوم خلق چه د مسجد حرام اهل وو (یعنی رسول الله صلی الله علیه وسلّم او نور مؤمنان) هغوی لره (په تنګولو او پریشانه کولو) د دے (مسجد حرام) نه اُبِستل (یعنی په وَ تو مجبُوره کول چه هجرت کوی نو ته خبره او رسیدی - نو دا کار د ونه کول په حق دین کښے فتنے را پورته کول دی) او (دا سے) فتنے را پورته کول (د دے خاص) قتل نه (کوم چه د مسلمانانو د لاسه شوے وو) په ځو ځو چنده (قباحت کښے) زیات دے (حکم چه د دے قتل نه حق دین ته څوګه ضرر نه دے رسیدلے د زیات نه زیات ګوے څوک ئے په قصد هم اکړی، نو بچیله په ګنهګار وی او د کفارو د دے حرکتونو نه حق دین ته دا سے ضرر د معا چه ئے په پوټه تر ق ئے چِصاره کړی) او دا کفار تا سو سره تر تله جنګ (جګړه جاری) ساتل غواړی په دے غرض ګوے رخدائے دِنه کړی) په تا سوے کونتہ سوره شی نو تا سو به ستا سو د دین (اسلام) نه واړوی (د دوی د دا سے کارونو په وجه دین سره ښکرا ړ مَوَل ښکاره خبره ده)

**د مُرتدکید و انجام** | او چه کوم کس په تا سو کښے د خپل دین (اسلام) نه واوړی بیا هم د کفر په حالت کښے مړ شی - نو دا سے خلقو (نیک) عملونه به د دُنیا او آخرت (دواړو) کښے (هتول) نُوټ کیږی او دا خلق به دوزخ کښے تر تله پاتے کیږی (مسلمانانو ته د دے جواب په اوریدو د ګناه د نیشتوالی خو یقین والغے مګر دا شک ئے بیا هم وو چه ثواب به ئے نه وی شوے اُس د دے باره کښے ورته تسلی ورکوے شی -

**د نیت په اخلاص د ثواب وعده** | په حقه چه چا ایمان راوړے دی او چا چه د خدائے تعالیٰ په لار کښے وطن پریښے وی او جهاد (غزا) ئے کړی وی دا سے خلق خوځند لئے تعالیٰ د رحمت اُمید لری (او په تا سو کښے دا صفتونه په طریقه د منع آلخلو (ارُومرُو) شته دے، بلکه چه ایمان او هجرت ښکاره دے په دغه خاص جهاد کښے شک کیدے شو نو هرکله چه په دغه موقعه هم ستا سو نیت د جهاد وو، څُو نږ (د الله تعالیٰ) په نزد دا هم په جهاد کښے شمیرشو. نو اُس تا سو نا اُمیده وے یئ؛) او الله تعالیٰ به (دا غلطی) مُعاف کړی او (د ایمان، جهاد او هجرت په وجه به په تا سو) رحمت اُکړی.

## علوم او مسئلے

**د جهاد د بعضے احکام** | مسئله : د تیرو شوو آیتونو په رُومبی آیت کښے د جهاد د فرض

کیه وحکم په دے الفاظو سره شوے دے "کُتِبَ عَلَیۡکُمُ الۡقِتَالُ" یعنی په تاسو جهاد فرض کړے شو. دَ الفاظو د ظاهر نه دا معلومیږی چه په هر مسلمان په هر حالت کښے جهاد فرض دے. خو د بعضے آیتونو د قرآن او د رسول الله صلی الله علیه وسلّم دَ بعضے احادیثو نه معلومیږی چه جهاد په هر مسلمان فرضِ عین نهٔ دے بلکه فرضِ کفایه دے. مطلب دا چه څه مسلمانان جهاد اُکړی نو دَ پاتے شو ونو دو کسانو هم غاړه خلاصه شی. او که په یو ملک یا په یو زمانه کښے هیڅ یو هم دَ مسلمانانو، دَ جهاد فرض ادا نهٔ کړی نو ټول مسلمانان به دَ دے فرض په پریښودو ګنهګار وی دَ حدیث شریف "اَلۡجِهَادُ مَاضٍ اِلیٰ یَوۡمِ الۡقِیٰمَةِ" هم دا مطلب دے چه د جهاد کولو د پاره تر قیامته پورے دَ یو ټولی موجودګی ضروری ده. د قرآن مجید په یو بل آیت کښے ارشاد دے.

فَضَّلَ اللّٰهُ الۡمُجٰهِدِیۡنَ بِاَمۡوَالِهِمۡ وَاَنۡفُسِهِمۡ عَلَی الۡقٰعِدِیۡنَ دَرَجَةً ؕ وَكُلًّا وَّعَدَ اللّٰهُ الۡحُسۡنٰی ؕ[1]

یعنی الله تعالیٰ مجاهدینو له په جهاد پریښودونکو فضیلت ورکړے دے. او الله تعالیٰ دواړو سره دَ ښیګړے وعده کړے ده.

دَ څه عذر په وجه یا دَ بل څه دینی خدمت کولو وغیره په وجه که څوک جهاد کښے شامل نه شو په دے آیت کښے هغوی سره هم دَ ښیګړے وعده شوے ده. ظاهره خبره ده که په هر یو مسلمان جهاد کول فرض عین وے نو دَ جهاد نهٔ کوونکو سره به هیڅ رے د ښیګړے وعده نهٔ وے شوے.

داشان په یو بل آیت کښے دی:

فَلَوۡلَا نَفَرَ مِنۡ كُلِّ فِرۡقَةٍ مِّنۡهُمۡ طَآئِفَةٌ لِّیَتَفَقَّهُوۡا فِی الدِّیۡنِ[2]

او ولے بهر نهٔ اُنهٔ وتلو ستاسو دَ هر لوئے ټولی نه د ر کوټه ټولے دے کار دَ پاره چه هغه په دین کښے پوهه حاصله کړی

دلته په مجمله قرآن عمل په داسے تقسیم کړو چه څه مسلمانان دِ جهاد کوی، او څه دِ په علم دین حاصلو لو کښے لګیا وی دا په هله کیدے شی چه جهاد فرضِ عین نهٔ بلکه فرضِ کفایه شی.

هم داشان په صحیح بخاری او صحیح مسلم کښے حدیث دے چه یو سړی دَ حضور صلی الله علیه وسلم نه په جهاد کښے د شریکید و اجازت اُغوښتو نو هغوی تپوس اُکړو چه ستا مور و پلار ژوندی دی؟ هغهٔ عرض اُکړو چه او ژوندی دی. هغوی ورته اُفرمائیل چه بیا څه او دَ مور په خدمت کولو سره د جهاد ثواب حاصلوه دے نه دا هم معلومیږی چه جهاد فرضِ کفایه دے.

(۱) النساء ۹۵ - (۲) التوبة ۱۲۲ -

هر کله چه د مسلمانانو یو ټولے په جهاد کښے تګیا وي نو نورو مسلمانانو په نورو دیني خدمتونو او دیني کارونو کښے لګیا کیدے شي. هغه! کله چه څه وخت د مسلمانانو بادشاه د عام جهاد اعلان ضروري اُګڼي نو بیا په ټولو مسلمانانو فرض عین شي لکه په سورت توبه کښے ارشاد دے:

يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا مَا لَكُمْ إِذَا قِيلَ لَكُمُ انْفِرُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ اثَّاقَلْتُمْ (۱) | ائے مسلمانانو په تاسو څه شوي دي چه هر کله تاسو ته اُویلے شي چه د الله تعالیٰ په لار کښے اُوځئ نو تاسو ځانونه درانه کړئ۔

او هم دغه شان کله چه کفار په یو اسلامي ملک حمله اُکړي او جنګیدونکي مُسلمانان د هغوئ پُوره مقابله نه شي کولے نو په دے وخت کښے بیا جهاد په ټولو مسلمانانو فرض عین شي کله چه نزدے ټول مُسلمانان د جهاد دپاره ناکافي وي نو ورسره خوا کښے نور مسلمانان تر دے چه د دنیا په هر یو مُسلمان جهاد فرض عین شي. د قرآن دا ټول آیتونه د جمهورو فقهائو او محدثینو په نظر کښے وو نو هغه عام حالاتو کښے جهاد ته فرض کفایه ویلي دي۔

مسئله:- فرضِ کفایه جهاد ته د مور و پلار د اجازت نه بغیر تلل روا نه دي۔

مسئله: یو قرضدار چه قرض نه وي ادا کړے په فرضِ کفایه جهاد کښے ورله شریکیدل روا نه دي، هغه! کله چه د عام جهاد اِعلان اُشو نو بیا په ټولو مسلمانانو جهاد فرض عین شو په دے کښے د شریکیدو دپاره د هیچا نه د اجازت غوښتو ضرورت نشته دلته بیا خو نه قرضدار څه شُد دے او نه طلب د علم دین او نه بل څه دیني ضرورت. د دے آیت په آخر کښے د جهاد شوق دا پیدا ته کولو دپاره فرمائي چه اګرچه ستاسو په طبیعتونو جهاد درون لګی لیکن بنده یاد لري چه انساني مهارت عقلمندي او تدبیر او محنت د انجام او نتیجے په باره کښے اکثر پاتے او ناکام دا ځي او بیر عقلمند خلق فائده مند څیز و نه مُضر، او مُضر څیز و نه فائده مند ګڼري لکه چه د هر یو کس عامه تجربه هم د دے خبرے ګواه ده یو شاعر فرمائي چه: "خویش را دیدم و رسوائی خویش" چه خپل ځان م ځپلے ناکامئ اُپیژندو۔

د دے فرمانِ خدا وندي خلاصه دا ده چه په جهاد کښے د مال و جان نقصان لیدل کیږي په اصل او حقیقت کښے نتائج دا شي نو ښکاره به شي چه دا نقصان نُقصان نه وو بلکه سوا سري فائده وه او د همیشه آرام دپاره سامان وو۔

---

(۱) التوبه : ۳۸

**په میاشتو حرامو کښې د جنګیدو حکم** | په تیرو شوو آیتونو کښې د دویم آیت دا
مطلب دے چه په څلورو (ذی القعده، ذی الحجه، محرم او رجب) میاشتو کښې جنګیدل حرام
دی او په نورو درېو آیتونو
کښې په دے میاشتو کښې د جنګیدو بندیز راغلے دے. مثلاً "مِنْهَآ اَرْبَعَةٌ حُرُمٌ ذٰلِكَ الدِّيْنُ الْقَيِّمُ"[1]
او د حجة الوداع په مشهوره خطبه کښې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی "مِنْهَا اَرْبَعَةٌ حُرُمٌ ثَلٰثٌ مُتَوَالِيَاتٌ وَرَجَبُ مُضَرَ" د دے نه څلور میاشتے حرامے دی. درے پرله پسے دی او (څلورمه) رجب د مضر ده.

د دے آیتونو او روایتونو نه ثابتیږی چه په دے څلورو میاشتو کښې جنګیدل تل د پاره حرام دی لکه چه د تفسیر امام عطاء بن ابی رباح په قسم خوړو چه دا حکم تل د پاره باقی دے، دا سے نور کښې تابعین صاحبانؒ دا حکم ثابت او نا منسوخ ښائی. مګر د جمهورو فقهاؤ په نزد او د امام جصاصؒ[2] په قول د ښارونو د عامو فقهاؤ په مسلک دا حکم منسوخ دے اوس په دیو میاشت کښې هم جنګیدل منع نه دی.

خبره دا پاتے شوه چه بیا د دے منسوخ د پاره ناسخ کوم یو آیت دے؟ په دے کښې د فقهاؤ مختلف اقوال دی بعضے "فَقَاتِلُوا الْمُشْرِكِيْنَ كَآفَّةً"[3] د دے ناسخ ښائی خو کښې صاحبان د دے ناسخ "فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِيْنَ حَيْثُ وَجَدْتُّمُوْهُمْ" تاکی او دلته د "حَيْثُ" د لفظ معنیٰ "زمانه" کوی مطلب ئے دا شو چه "مشرکان کوم ځائے او کوم وخت کښې چه را لاندې کړئ وژنئ ئے" او څه فقهاء فرمائی چه د دے ناسخ د رسول الله صلی الله علیه وسلم خپل عمل دے چه حنینؓ په میاشتو حرامو کښې د طائف محاصره (قلا بندی) کړے وه. حضرت عامر اشعریؓ ئے په میاشتو حرامو کښې د اوطاس جهاد د پاره لیږلے وو.

روح المعانی د دے آیت په تفسیر کښې او بیضاویؒ[4] د سورت براءت د پنځم رکوع په تفسیر کښې د دے حکم په منسوخ کیدو د امت اجماع نقل کړے ده (بیان القرآن)

مګر د تفسیر مظهری صاحب دا منسوخ نه ګڼړی. ځکه چه "اِنَّ عِدَّةَ الشُّهُوْرِ عِنْدَ اللّٰهِ اثْنَا عَشَرَ شَهْرًا فِيْ كِتٰبِ اللّٰهِ يَوْمَ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ مِنْهَآ اَرْبَعَةٌ حُرُمٌ" (کوم چه "آية السيف" بللے شی او د جهاد په آیتونو کښې د ټولو نه رستو نازل شوے آیت دے) کښې په ښکاره

(۱) التوبه ۳۶ - (۲) ج ۱، ص ۳۸۹ و ۳۸۰ (۳) التوبه: ۳۶ - (۴) ج ۲، ص ۱۰۹ (۵) (۶) ج ۱۰، ص ۱۲۳ (۷) ج ۱۰، ص ۲۶۱ و ۲۶۲

ووڵ د میاشتو حرامو دَ حُرمت ذکر شته دے او دَ حجة الوداع په خُطبه کښې په ښکاره وو ڵ دَغَو میاشتو دَ حُرمت ذکر شته کوم چه حضور صلی الله علیه وسلم دَ خپل وفات نه ا تیا ورځې وړاندې ورکړے وه۔ دَ طائف محاصره (قلا بندی) هم رسول الله صلی الله علیه وسلم په ذوالقعدهٔ کښې نهٔ بلکه شوال کښې کړے وه دا هم حُکم ناسخ نشی جوړیدے البته دده آیت "اَلشَّهْرُ الْحَرَامُ بِالشَّهْرِ الْحَرَامِ" په جوړ دا خبره به صحیح وی چه په میاشتو حرامو کښې دجهاد کولو منع به په دے خاص صورت کښې منسوخ گڼړے شی کله چه کُفار او مشرکان په دے میاشتو کښې دَ جنګ پیل اُکړی۔

خلاصه دا شوه چه په میاشتو حرامو کښې جنګ کول یعنی حرام دی نو کله چه کفار د جنګ پیل اُکړی نو مسلمانانو دَ پاره دِفاعی جهاد بیا حرام نهٔ دے لکه چه امام جصاص په دوایت د حضرت جابرؓ نقل کړی دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم به په میاشتو حرامه کښې تر هغې جهاد نهٔ کولو ترڅو به چه کفارو دَ جنګ پیل نه وو کړے۔

**دمرتد کیدو انجام** | دآیت "یَسْئَلُوْنَكَ عَنِ الشَّهْرِ الْحَرَامِ" په آخر کښې د اسلام د اوړلو نه پس دَ مرتد کیدو دا حکم ذکر شوے دے چه "حَبِطَتْ اَعْمَالُهُمْ فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ" یعنی ددلسے خلقو په دنیا او آخرت دواړو کښې عملونه به سرتا پا یه لوټ او برباد شی۔

مسئله: په دنیا د عمل لوټ کیدل بی بی ځ دَ نکاح نه وتل دی۔ د مسلمان (مورث) د میراث نه محرومه کیدل دی۔ په اسلام کښې قبول کړی مونځونه، روژے او نور عبادتونه بیکاره او نیشت کیدل دی۔ په داسے مړی به جنازه نشی کولے او د مسلمانانو په ادیره (مقبره) کښې به نشی ښخولے۔

او په آخرت کښې دعمل لوټ کیدو مطلب دادے چه د هیڅ عبادت ثواب به ورته نشی ورکولے۔ او تَل تر تله به دوزخ کښې پاتے کیږی۔

مسئله: کچرے داسے کس بیا مسلمان شی نو په آخرت کښې دعذاب نه دده بچ کیدل او په دنیا کښې راتلونکی وخت دپاره په داسے کس اسلامی احکام جاری کیدل یقینی دی خو امام ابوحنیفهؒ په رومبی حَل اسلام کښې دده کړے حج ختم بولی چه وَس ئے اُشو، فرض حج به بیا کوی او دَ رومبی حَل اسلام روژے، مونځ وغیره عبادتونو ثواب هم په آخرت کښې دَ ده دَ پاره نهٔ منی او امام شافعیؒ په دے دواړو صورتونو کښې اختلاف لری۔

مسئله: دَ اصلی (دَ سره) کافر د قتولو نیکو ثواب ذو ربَند ه وی کله چه مُسلمان شی نو به هغو به ورته ثواب حاصلیږی او که په کفر مړ شو نو دغه ټول بیکاره شو دحدیث "اَسْلَمْتُ

عَلٰى مَآ اَسْلَفْتَ مِنْ خَيْرٍ" هم دا مطلب دے۔

مسئله: دَ مرتد حالت دا صلی کافر نه ډیر زیات خراب دے له دے وجې اصلی کافر نه جزیه قبلولے شی۔ او مرتد که مسلمان نشو نو قتلولے به شی (که سړے وی) او همیشه دپاره بند یوانه ساتلے شی (که ښځه وی) ځکه چه دے سړه دَ اسلام سپکاوے شوے دے۔ د سزا په ډول سرکاری سپکاوے دے سره جوړیږی۔

يَسْئَلُوْنَكَ عَنِ الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ ط قُلْ فِيْهِمَآ اِثْمٌ كَبِيْرٌ وَّمَنَافِعُ لِلنَّاسِ وَاِثْمُهُمَآ اَكْبَرُ مِنْ نَّفْعِهِمَا ط

تا نه پښتنې حکم دشرابو او جوارئ اُوا يه چه دواړو کښے غټه ګناه ده او فائدے هم شته دَ خلقو، او دَ دے دواړو ګناه ډیره غټه ده دَ دے دواړو دَ فائدے نه۔

**پنځلسم حکم دَ شرابو او جوارئ په باره کښے**

خلق تا سوُنه د شرابو او جوارئ په باره کښے تپوس کوی۔ تا سو اُوفرمایئ چه (دَ) دے دواړو (څیزونو په استعمال) کښے دګناه غټے خبرے هم (پیدا کیږی) او خلقو ته (بعضے) فائدے هم شته او (هغه) دګناه خبرے دَ هغے فائدو نه ډیرے غټے دی (ځکه دواړه د پرېښودو جوګه وی)

## علوم او مسئلے

په دے سورت کښے دَ صحابه کرامو دسوالاتو دلړئ دا هم یوسوال دے چه الله تعالیٰ ئے جواب ورکړے دے دا دواړه (یعنی سوال او جواب) مسئلے ډیرے زیاتے ضروری دی ځکه دَ دے پوره حقیقت او احکام څه قدرے تفصیل سره وا وُرئ۔

**دشرابو حرمت (حراموَلے) او دے سره تړلی حکمونه**

دا سلام په شروع کښے د نوروجا هلی طریقو په شان شراب نوشی هم عامه وه هر کله چه رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ هجرت کولو نه پس مدینے منورے ته تشریف راوړو نو دغلته هم دَ شرابو څکلو او جوارئ کولو رواج وو عام خلق دَ دے دواړو څیزونو په ظاهری فائدو عاشقان وُو دے کښے دننه ډیرو خرابو او نا کارو الو ته دَ هغوئ فکر نه وو لیکن دَ الله تعالیٰ دعادت په جوړ په هر قوم او ملک کښے څه عقلمند خلق هم وی چه عقل لره په طبیعت غلبه ورکوی او دعقل په مقابله کښے خواهش پریږدی۔ په دے معامله کښے د نبی کریم صلی الله علیه وسلم مقام ډیر زیات لوړ دو۔ کوم څیز چه دُوستو حرامیدُ و نکے وو د هغوئ طبیعت دَ هغه نه

دَ هغې نه کرکه کوله صحابه کرامؓ کښې هم څه داسې صاحبان وو کوم چه دَ حلال والی په زمانه کښې هم کله شرابو له لاس نه وو ورا ړے. مدینې طیبې ته په رسیدو یو څو صحابه کرامؓ ته د دے دَ خرابو او ناکاره والو زیات احساس اُشو لکه چه حضرت فاروق اعظمؓ، معاذ بن جبلؓ او یو څو نور انصاری صحابهؓ هم د دے احساس له کبله د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شو او عرض ئے اُوکړو چه شراب او جواری خو دَ انسان عقل هم خرابوی او مال هم تباه کوی د دے باره کښې ستاسو څه حکم دے د دے په جواب کښې دا آیت نازل شو. دا هغه اُومبے آیت دے چه کوم کښې مسلمانانو له د شرابو او جوارئ نه منع کولو د پاره رومبے قدم پورته کړے شو.

په دے آیت کښې دا ښودلے شوی دی چه په شرابو او جوارئ کښې څه ظاهری فائدے خو اَرُو مرُو شته. مګر دَ ګناه غټې غټې خبرے هم تر پیدا کیږی چه په فائدو ئے غالبے دی. دَ ګناه د خبرو نه مطلب دَ ګناه سببُونه دی مثلاً په شرابو کښې د بتولو نه غټه خرابی دا ده چه عقل او پوهه پرِ ختم شی کوم چه دَ بتولو انسانی کمالاتو او شرافت جرړه ده ځکه چه صِرف دَ عقل په زور دَ بدو کارونو نه انسان منع کیدے شی دا چه نهٔ وی نو دَ بتولو بدو کارونو د پاره لار پرانستے شی.

په دے آیت کښې په ښکاره ډول شرابو نه حرام نه دی وَیلے شوی خو خرابئ او نقصانونه ئے بیان کړے شو چه دَ شرابو څښلو په وجه بنیادم په ډیرو ګناهونو او خرابو کښې راګیریدے شی ګویا کښې د شرابو پریښودو د پاره یو مشوره ورکړے شوے ده هم دغه وجه ده چه دَ دے آیت په نازلید و دَ صحابه کرامو دوه ډلے جوړے شوے، یوے ډلے خو دا مشوره قبوله کړه او شراب ئے بیخی پریښودل او څه صحابه کرامو په دے خیال دَ دے څکل جاری اُساتل چه دا خو حرام نهٔ کلے شوی نهٔ دی صِرف دَ خرابو او نقصانونو ذکرئے شوے دے. دغه نقصانونو او خرابو نه به ئے ځان ساتلو تر دے چه یو ورځ دحضرت عبد الرحمٰن بن عوفؓ له طرفه په ورکړے شوی دعوت کښې دَ خوراک نه پس شراب اُڅکلے شو دَ ماښام وخت وو دَ مانځهٔ دَ پاره ئے کوم کس چه امام جوړ کړے وو هغه دَ نشے په حالت کښې "قُلْ يَآ اَيُّهَا الْكٰفِرُوْنَ" په مانځه کښې غلط اُولوستو نو دَ شراب بندولو دَ پاره دَ دویم پوړئ په ډول دا آیت نازل شو.

| | |
|---|---|
| يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَقْرَبُوا الصَّلٰوةَ وَاَنْتُمْ سُكٰرٰى[1] ـ | اے ایماندارو تاسو دَ نشے په حالت کښې دَ مانځهٔ خواته مه ځئ ـ |

(۱) النساء ـ ۴۳

دے سره صرف د ما ښځه په وختونو کښې شراب بيخي حرام کړے شو او په نورو وختونو کښې بيائے هم اجازت دو بوے چه دے دَ صحابه کرامو ونړانږ نه شراب پريښې دو کله چه دا آيت نازل شو نو هغوئ اُوئيل چه کوم يو څيز دَ مونځ نه سړے منع کوی هغه د مونږ وتے اکړ څکه چه په هغے کښې هيڅ خير نشته مګر دَ مونځ دَ وختونو نه بغير هر کله چه د شرابو حراموالے اُس هُم په ښکاره ډول نهٔ وو نازل شوے نو بعضے صحابه کرامو به دَ ما ښځه دَ وختونو نه بغير شراب څکل ترد ے چه دَ عتبان بن مالک رض له طرفه په ورکړے شوی دعوت کښې دَ خوراک څکاک نه پس دَ رواج په جوړ شرابو اُڅکلے شو دَ نشے په حالت کښې دَ دستور په مطابق دشعر وشاعری اوُ دَ فخرونو کولو بيان شروع شو. سعد بن ابی وقاص رض په يو قصيده کښې د انصارو بد او دَ خپل قوم ښه - اُوئيل. يو انصاری ځلمی له غصه ورغله او د اُوښ دَ جاغے هډوکے ئے دَ سعد بن ابی وقاص رض سر له را پر پينودو، هغه رض سخت جوبل شو. حضرت سعد رض دَ حضور صلی الله عليه وسلم په خدمت کښې دَ انصاری ځلمی ګيله اُکړه نو نبی کريم صلی الله عليه وسلم دا دُعا اُکړه: اَللّٰهُمَّ بَيِّنْ لَنَا فِی الْخَمْرِ بَيَانًا شَافِيًا " چه اے الله د شرابو په باره کښې مونږ ته څه ښکاره بيان او قانون را کړے نو دَ شرابو په باره کښې دريم حُکم د بيخي حرمت (حراموالي) حکم دسورتِ مائده دا تفصيلی آيت نازل شو :

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْاَنْصَابُ وَالْاَزْلَامُ رِجْسٌ مِّنْ عَمَلِ الشَّيْطٰنِ فَاجْتَنِبُوْهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ○ اِنَّمَا يُرِيْدُ الشَّيْطٰنُ اَنْ يُّوْقِعَ بَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَآءَ فِی الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ وَيَصُدَّكُمْ عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ وَعَنِ الصَّلٰوةِ فَهَلْ اَنْتُمْ مُّنْتَهُوْنَ (۱) .

اے ايماندارو خبره دا ده چه شراب او جواری او بتان او دَ جواری غشی دا ټول ګنده څيزونه شيطانی خبرے دی تاسو بيخي دے نه ډډه کوئ دَ پاره ددے چه تاسو خلاصے بيا مومئ، شيطان خو دا غواړی چه دَ شرابو او جواری په ذريعه ستاسو مينځ کښې بُغض او دشمنی پيدا کړی او دَ الله تعالیٰ دَ ياد او دَ ما ښځه نه تاسو بند کړی،

ښه نو اُس به هُم منع شئ ؟

**دَ شرابو د حراموالي پوړۍ په پوړۍ حکمونه**

دَ الله تعالیٰ د حکمونو اصلی او حقيقی حکمتونه هم احکم الحاکمين پيژنی مګر په احکام شرعيه وُ کښې په

(۱) المائده = ۹۰ و ۹۱

په ډېرو کتو سره دا معلومیږي چه دَ اسلامي شریعت په احکامو کښې دا نساني جذباتو پوره خیال ساتلے شوے دے چه په دے عمل کولو کښې بنیادم ته ډېر تکلیف نه وي پخپله قرآنِ کریم فرمائي: لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا " یعنی الله تعالیٰ په انسان دا سے حکم نه چلوي، چه دَ هغه د طاقت او توفیق نه بهر وي. هم د دے رحمت او حکمت تقاضا وه چه دشرابو په حرامَولو کښې اِسلام دوا ر په وار نه کار اخستے دے.

وار په وار دشرابو بندَولو او حرامَولو دَ قرآني تاریخ خلاصه دا ده چه دشرابو په باره کښې څلور آیتونه نازل شوي دي. یو آیت دسورتِ بقره دے دکوم تفسیر چه اُس کیا دے کوو. دے کښې دشرابو نه دپیدا کیدُونکو ګناهونو او نقصانونو بیان دے دحراموالي بیان ئے نشته کو یا کښې دَ دے دَ پرېښودو مشوره ئے ورکړه دَ دے حکم ئے ورنکړو.

دَ سورتِ نساء په بل آیت لَا تَقْرَبُوا الصَّلٰوةَ وَاَنْتُمْ سُكَارٰى" کښې خاص دَمونځونو په وختونو کښې شراب حرام اُتا کلے شو په نورو وختونو کښې ئے اجازت وو.

دریَم او څلورم دسورتِ مائده دا دوه آیتونه دي چه اُس و یاندِ تېر شوي دي په دے کښې شراب بیخي حرام اُتا کلے شو.

اسلامي شریعت دَشرابو حرامَول وار په وار ځکه اُکړل چه دَ ټول عُمر عادت بیا په تیره تېره دَ نشے عادت پرېښودل بنیادم ته ډېر ګران پریوځي. علماء کرام فرمائي فِطَامُ الْعَادَةِ اَشَدُّ مِنْ فِطَامِ الرَّضَاعَةِ یو عادت پرېښودل دے نه ډېر زیات ګران دي چه یو ماشوم دَ تِی نه پرېکړے شي له دے وجے اسلامي شریعت دَحکیمانه اصُولو په جوړ اول دَ دے بد والے په دماغو کښې کښېنولو بیا ئے دَ مونځونو په وختونو کښې حرام کړل بیا دَ یو خاصے مُودے نه پس ئے بیخي حرام کړل.

وار په وار دَشرابو حرامَول دَحکمتِ خدا وندي تقاضا وه دغه رنګ دَ حرامولو نه پس هم دغه قانُون په پوره سختئ سره جاري کول هم دَحکمتِ خدا وندي تقاضا وه له دے وجے رسولُ الله صلی الله علیه وسلّم دَشرابو په باره کښې اوّل دَعذاب سخت وعیدُونه اُبنودل لکه فرمائي چه دا اُمُّ الْخَبَائِثُ (دپلیتو جرړه) او اُمُّ الْفَوَاحِشِ (دبیحیایو جرړه) ده"." د دے په څکلو بنیادم په خرابو خرابو ګناهونو کښې کیریږ ے شي".

(۱) البقره - ۲۸۶ -

په یو حدیث کښې اِرشاد فرمائی چه شراب او ایمان یو ځائے کیدے نشی (دا دواړه روایتونه په نسائی کښې دی. په جامع ترمذی کښې د حضرت انسؓ نه روایت دے چه حضور صلی الله علیه وسلم د شرابو په باره کښې په لسو کسانو لعنت وئیلے دے. په جوړوونکی، جوړوونکی، څکوونکی، څښوونکی، دَ دے په باروونکی او راوړونکی، چا ته چه را وړے شی، په خرڅوونکی، اغستونکی، دَ دے په بخښونکی او گټه خوړونکی، بیائے دَ خلے په تعلیم او تبلیغ بس نکړه بلکه په عملی او قانونی دولئے اِعلان اُفرمائیلو چه چا سره کوم قِسم شراب وی هغه دِ فلانی ځائے کښې جمع کړی.

**صحابه کرامؓ د حکم منلو بے کچه جذبه لرله**

دَ دومبی حکم په آورېدو سره منونکو صحابه کرامؓ په خپلو خپلو کورونو کښې دَ خپل استعمال دپاره ایښې شراب هم هغه وخت توئے کړل. دَ حضرت عبدالله بن عمرؓ بیان دے چه کله دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم له طرفه یو ندو چی (اِعلان کوونکی) دَ مدینے منورے په کوڅو کښې دَ شرابو دَ حرامیدو اعلان اُکړو نو کوم چا په لاس کښې د شرابو لوښے وو هم هلته ئے اُغورځولو چا سره چه دَ شرابو صُراحی یا دُ ونړی وَه هغه ئے دکور نه بهر ماته کړه. حضرت انسؓ په یو مجلس کښې دَ شرابو ساقی جوړ شوے وو ابوطلحه، ابوعبیدة بن الجَراح، اُبیّ بن کعب او سهیل رضوان الله علیهم اجمعین غوندې جلیل القدر صحابه کرام د غلته موجود وو دَ اعلان کوونکی داَواز په آورېدو سره ټولو وئیل چه اُس دا ټول شراب واړوَی. دَ دے جام او صُراحی ماته کړئ په څنے روایتونو کښې راغلی دی چه دَ حرامیدو دَ اِعلان په وخت دَ شرابو جام که دَ چا شونډو ته رسیدلے هم وو نو هم هغلته ئے اُغورځولو. په مدینه منوّره کښې په هغه ورځ شراب دَ باران داُوبو په شان ترے یوو رخو بهیدل کله به چه باران اُشو نو دَ شرابو بوئے او رنګ به دَ زمکے نه را برسیره شو.

په یو ځائے کښې دشرابو جمع کولو حکم آورېدو سره فرمانبردارو صحابه کرامو هغه شراب هم هلته جمع کړل کوم چه بازار کښې د تجارت په غرض پراته وو هلته حضور صلی الله علیه وسلم په خپلو لاسو مبارکو دشرابو ډیرے مشکیزے څیرے کړے او نورے ئے دصحابه کرامو په لاس څیرے کړے. دَ شرابو یو صحابی سوداګر دَ شام نه را وړی شراب دَ مدینے منورے نه بهر په یو غونډئ ځکه پریښودل چه دَ دے د حرامیدو پته ورته نکیدے وه. دَ حضور صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شو او دَ هغے شرابو په باره کښې ئے دحکم تپوس ترې اُکړو نو حضور صلی الله علیه وسلم دَ خدائے تعالیٰ دَ حکم په جوړ دَ ټولو مشکیزو دَ څیری کولو او دَ شرابو بهیولو حکم ورکړو نو

دَخدائے تعالیٰ او رسول ﷺ په مینه مست دغه فرمانبرداره بنده خپله توله موړی دخپله لاسه بے سوچه او بے فکره په زمکه واړوله دَ صحابه کرامو رضی الله عنهم دا بیمثاله فرمانبرداری کول او خبره مثل دَ اسلام معجزه ده ځکه چه معلومه خبره ده په کوم څیز چه څوک را واوړی او عادت ئے شی، نو دَ هغے نه منع کیدل دَ لږ ساعت دَپاره هم ډیر گران شی دَ الله تعالیٰ یو حکم او د رسول ﷺ یو فرمان دَ دوی په عادتونو کښے داسے بدلی راوسته چه اُس تر دومره کرکجن وو څومره چه پرِ دِ راندِ را وُ پیدلی وُو۔

## دَ اسلامی سیاست اودَ عام ملکی سیاستونو لوئے فرق

په تیرُشو و آیتونو کښے دشرابو دَ حراموالی دحکم په نتیجه کښے دَ مسلمانانو عملی نمونه مخامخ راغله دا دَ اسلام معجزه بوے یا دَ پیغمبر دَ تربیت بے مثاله اثر او یا دَ اسلامی سیاست لازمی نتیجه اُگنړے یو خوا دا مثال چه دَ شرابو دَ نشئ دعمرونو عادت او داسے دواج چه لږ ساعت دپاره هم دَ هغے پریښودل ډیر گران معلومیدل مگر دَ دے دَ حراموالی دَ اعلان په آوَریدو دَ مسلمانانو طبیعت بیخی بدل شو هغوئ خپل ډیر خوښ څیز سمدستی بد او پلید اُگنړلو۔

او بل خوا دهغه ترقی موند و نکی سیاست (چه زړونه ورته پټخیږی) خصوصًا دَ امریکے دسیاست مثال واخلئ چه هغلته څو کاله زُوجبے هر کله چه دَ صحت او معاشرے ماهرانو دشرابو بے حده او مهلکے خرابئ او نقصانونه اولیدل او محسوس ئے کړل نو د خپل قانون په ادانه دَ هغے دَ بندَولو دپاره دَ خپل ملک دنشر و اشاعت اعلیٰ نوے ذریعے په کار راوَستے په دے باره کښے په سوونو اخبارونه او رِسالے دَ لکونو په شمیر کښے خورے کړے بیا دَ امریکے په آئین او دستور کښے د ترمیم کولو په ذریعه دَ شرابو دَ بندیز قانون جاری کړے شو مگر نتیجه ئے ټولے دُنیا دا اُلیدله چه دَ شرابو دَ آزادئ په نسبت دَ شرابو دَ بندیز په زمانه کښے ډیر زیات شراب څکلے شوی وو دَ امریکے حکومت هم اُمنله او دَ شرابو دَ بندیز قانون ئے بیا مات کړو دا دستر کو لیدلے حال دے چه هیڅوک ورته دروغ او غلط نه شی وَیلے خو اُس دا کمل یکاردی چه دعربو نو صحابه وُ مسلمانانو او دا موکینانو (چه په نوے زمانه کښے ډیر ترقی یافته بللے شی) دَ حالاتو او معاملو په مینځ کښے د دے ډیر لوئے فرق اصلی سبب اودازخه دے؟

اوله وجه دا ده چه اسلامی شریعت د قانون جاری کولو نه رُومبے دَ ذهنونو جوړَولو کار کړے دے مگر امریکے د قانون په ادانه ذهن جوړَول غوښتل۔ او دویمه وجه دا ده

چه اسلام دَ ذهنونو په جوړَولو کښې دَ زُهد، تقوىٰ، عبادت او په تیره تیره دَ آخرت دَ فکر کیمیائی نُسخه استعمال کړے ده چه امریکه دے نه بیخی خالی ده هم دغه اثر وو چه دَ نفخ په وجه دَ مکے په زمانه کښې دَ فِد ایانو هغوے چې په شو چه دَ رسولؐ په آواز به ئے خپل مال وځان قربانولو او دَ زهد، عبادت، تقوىٰ او په تیره دَ آخرت دَ فِکر دَ نیشتوالی په وجه امریکه ناکامه بلة شوه - عقل لرونکو دپاره اُس هم دا دَ عبرت خبره ده کاش چه دا خلق دَ اسلامی دغه نُسخے په وجه دنیا ته امن او آرام ورکړی -

**دشرابو دخرابوا و فائدو په مینځ کښې موازنه او مقابله کول** په آیت کښې دشرابو او جوارئ دوارو دواړو ډلې فائدے او دَ ډیرے خرابئ او گناه ذکر شوے دے ته تفصیل به ددے بیان کړو او په آخر کښې به دَ ددے آیت نه راپورته شوی یو څو فقهی ضابطے بیا نوُو -

دَ شرابو فائدے په عامو خلقو کښې دا مشهورے دی چه په دے سره خوند او خوشحالی مونده شی (په عارضی ډول) قوت او طاقت پرې زیاتیږی رنگ ورسره صفا کیږی او سُوکیږی مگر ددے په مقابله کښې ئے خرابئ ډیرے زیاتے دی - مثلاً دشرابی معده روډه وي بیخی بیکاره شی خوراک کولو ته ئے ډیر زړه نه کیږی - دَ مخ خیره ئے بدله شی - خیټه ئے غټه شی او دیو جرمنی ډاکټر دَ وینا په جوړ دَ شرابو دعادت په وجه دَ شرابی دَ ټول بدن دَغونږه دَ خلو ښتو کالو په عُمر کښې داسے کمزورے شی لکه چه دَ شپیته کلن بنیادم وی یعنی په ځوانئ کښې دَ هغه ټول بدن د بوډا کانو په شان کمزورے شی - شرابو څکلو سره زړه او ینتوَریدی خرابیږی خصوصًا نرے رنځ ترِ پیدا کیږی چه دَ یورپ دَ ډاکټرانو دَ وینا په جوړ دَ دغه ملکونو زیات خلق دَشرابو په وجه په نری رنځ کښې گرفتار دی - او دَ بعضے دغه ډاکټرانو دَ وینا په جوړ په یورپ کښې نیم خلق دَ دغه داولاړ شوی نری رنځ نه مری - کوم چه دشرابو څکلو په وجه پیدا کیږی . (او نیم خلق د نورو ټولو رنځونو نه مری) دلیل ئے دا دے چه دشرابو دَ زیات رواج نه وړاندِ هلته نرے رنځ په خال خال چرته وو - هرکله چه شرابو رواج زیات شونو نرے رنځ هم دغلته زیات شو -

دا دشرابو بدنی خرابئ دی خو په عقل باندِ پریوتی اثرات ددے نه زیات دی کومو لره چه خلق دنشے په حالت کښې کمزی چه نشئ په شُد بُد کښې نه وی او عقل ئے کار نه کوی هرکله چه نشه لاړه شی نو عقل ئے کار شروع کړی لیکن دا خبره دَ حقیقت په رڼا کښې ځکه کمزورے

ده چه دَ شرابو اثر په عقل باندِ مستقل پاتې دا او دَ عمر سره سم وی چه دَ هوش په حالت کښې هَم د ده عقلي قوت کمزورے وی دا دَ ماهرو ډاکټرانو تحقیق دے دَ خانه خبره نهٔ ده چه کله خو شرابي هم دَ شرابو په وجه لیونے کیږی۔ دا رنګ طبیبان او ډاکټران په دے متفق دی چه شراب دَ بدن یوه برخه نهٔ جوړیږی نهٔ تر وینه جوړیږی چه بدن پرِطاقت واخلی بلکه دَ دے کار صرف دومره وی چه په عارضی ډول وینه دا پارَوی او عارضی قوت پرِ محسوسیږی او دَ وینے دا پاریدل کله کله ناګهانی مرګ سبب جوړیږی چه ډاکټران ورته هارټ فیل وائی۔

دَ شرابو څکلو په وجه هغه رګونه سختیږی دَ کومو په ذریعه ټول بدن ته چه رُوح رسیږی دَ دے نتیجه دا وی چه شرابی زر بوډا کیږی۔

دَ دے اثر په مرئ او ساه دا سے کیږی چه تل توخے وړځی آوازئ غټ شی او بالآخر نرے دغځ ترجوړ شی۔ دَ دے بد اثر په نسل دا سے پریوځی چه دَ شرابی اولاد کمزورے وی. او کله خو اولاد ئے پیدا کیږی هُم نهٔ۔

دشرابیانو دا وینا چه شرابو سره چُستی او قوت پیدا کیږی ځکه غلط ده چه په شروع کښې خو دا سے ښکاری مګر دَ دے جر پے دوروسه خورے شی چه بیا تر ے دغه تیر شوی نقصانات را ولاړ شوی وی او قابو مونډل پرِ هیچرے نشی کیدے۔

په معاشره کښې دشرابو یو خرابی دا هم ده چه دے نه اکثر جنګ جګړے د بنهنی او بُغض دا ولاړیږی چه نتیجه ئے ډیره خرابه وی ځکه خو په سورت مائده کښې دا خرابی په ښکاره الفاظو کښې په خصوصیت سره بیان کړے شوے ده فرمائی :

اِنَّمَا يُرِيْدُ الشَّيْطٰنُ اَنْ يُّوْقِعَ بَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَآءَ فِي الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ[۱] یعنی شیطان دا غواړی چه دَ شرابو او جوارئ په ترځ کښې ستاسو په مینځ کښې بُغض او عداوت پیدا کړی۔

د شرابو یو خرابی دا هم ده چه څنګه وخت شرابی په خپله بیخودئ کښې خپل پټ رازونه ښکاره کړی چه نتیجه ئے ډیره خرابه وی خصوصًا په هغه وخت کښې خوئے نتیجه ډیره مُهلکه ثابته شی او په ملک کښې تر پوره انقلاب راپورته کیږی۔ ملکی سیاست او جنګی

(۱) المائده : ۹۱ –

مصلحتونه تول بربادېږي کله چه دغه بخوده روا ز بنکاره کوونکے ) دحکومت یوخاص ذمه دار کس وي او دا زهم دَحکومت وي او جاسوسان هم دَ دے بهون پسے وي۔

دَ شرابو یو خرابي دا هم ده چه شرابي بنیادم د خلقو بکه دَ وړو هم ځکه دَ خندا شي چه دَ هغه خبرے او کړه وړه بے توے، بے رَدَه او بے کوُدده وي دَ ټولو نه لو یه خرابي ئے دا ده چه دا دَ پلیتو مور (بُنیاد) ده غټ غټ جرمونه او گناهونه تر دا ولا پېږي، زنا و قتل آکثر هم دَ دے نتیجے دي لکه څنګه چه تا بته ده چه عامے شراب خلنے د قتل او زنا اډے وي۔

دا خو د شرابو بدني ضررُونه شو روحاني ضررُونه ئے هم بنکاره دا سے دي چه دَ بخودۍ په حالت کښے مونځ، دَ الله تعالیٰ ذکر او عبادت تړ پاتے وي. لکه چه قرآن کریم فرمائي: وَيَصُدَّكُمْ عَنْ ذِكْرِ اللهِ وَعَنِ الصَّلٰوةِ "یعنی تاسو لره شراب دَ الله تعالیٰ دَ ذکر او مونځ نه بندَ وي۔

مالي نقصانئے هم دا سے بنکاره دے چه یَو آبادي کښے دَ شراب خانے په پرا نستلو سره دَ هغه ټولے آبادۍ مال دولت را غونډ وي او دا جاړو کوي ځکه چه دَ دے څنے قسمونه په ډیر کرانه بیعه اخستے شي لکه دَ شیر شمیرے څنے ماهرا نو دَ یو بنار دَ شرابو ټوله بیعه دَ ټول فرانس حکومت د لګښت برابره ښودلے ده۔

دشرابو دا دیني دُنیوي جسماني او روحاني خرابۍ حضور اکرم صلی الله علیه وسلم په دے الفاظو کښے را جمع کړي دي چه ورته ئے أُمُّ الْخَبَائِثُ یا أُمُّ الْفَوَاحِشُ (دَ پلیتو یا دَ بحیا یو جر ره) دَ نیلی دی. لکه دَ یو جرمني ډاکتر دا خبره دَ مَتَل په توګه په ټوله دُنیا کښے مشهوره ده چه کچرے نیمے شراب خانے بندے شي نو څه دَ دے خبرے ضمانت ورکوم چه نیمے شفاخانے (دارُوخانے) او نیمے جیلخانے به ځکه بندے شي چه ضرورت به ئے پاتے نشي۔ (دمفتي محمد عبده المنار تفسیر ص: ۲۲۶ ج: ۲)

علامه طنطاوي په خپل کتاب الجواهر کښے دَ دے لړۍ څنے ضروري معلومات لیکلي دي چه څه له هغے د لته را نقل کولے شي۔

یو فرانسي محقق په خپل کتاب (خواطر و سوانح في الاسلام) کښے لیکي: "ډیره زیا نه هلاکوونکي وَسله او دوه اړخیزه تیره توره چه دَ اهلِ مشرق (مسلمانانو) مونږ پر

(۱) المائده ۵: ۹۱ - (۲) ج: ۱، ص: ۱۹۳ مصر، مصطفیٰ البابي. ۱۳۵۰ ھ

بربکېږے شو ـ او دوی پر قتل کړے شو ـ هم دا شراب وُو ـــ مؤنږ دا الجزائر په خلقو را وَسله اُزما ئیله یکن اسلامی شریعت څمونږ په لاره کښے اَرجو رشو په هغوی څمونږ د دے وَسلے هیڅ اَثر اُنشو او په نتیجه کښے دَ هغوی نسل هم دا رنګ نکیا دے زیاتیږی دے خلقو که څمونږ دا ډالئ دا سے قبوله کړے وے مکه څنګه چه دَ دوی یو مُنافقه قبیلے کړے ده ـ نو دوی به هم څمونږ په مخکښے ذلیل او خوار وو ـ نن دکومو خلقو کورونو کښے چه څمونږ دَ شرابو دورونه چلیږی هغوی څمونږ په مخکښے دا سے سپک او ذلیل شُوچه سَرنشی دا پورته کولے

یو انګریز قانون دان بنتام لیکی چه :

" دَ اسلامی شریعت په ډیرو بنو والو کښے یو بنه والے دا هم دے چه په دے کښے شراب حرام دی ـ مؤنږ اُلیدل چه کله دَ افریقے خلقو دَ دے استعمال شروع کړو نو دَ هغوی په نسلونو کښے لیونتوب ورننوتو او دَ یورپ کومو خلقو ته چه دَ دے خوند ترخوے شی نو دَ هغوی په عقلونو هم کائرے پریوتو ـ بکار دی چه دَ افریقے په خلقو دا بند کړے شی او دَ یورپ خلقو ته په دے پورے سخته سزا کانے ورکړے شی ."

غرض دا چه کوم یو شریف سړی په سړه سینه غور لیدل اوکړل نو بے اختیاره ئے چغه کړے ده چه دا (شراب) پلیتی ده ـ شیطانی کار دے ـ زهر دی ـ د تباهئ او بربادئ سامان دے ـ دَ پلیتو دَ دے جرړے نه وا وَړی ـ فَهَلْ اَنْتُمْ مُّنْتَهُوْنَ ؟

دَ نشه یو د حرامو الی او بندیز په باره کښے د شلورو آیتونو بیان وړاندے اُشو ـ مناسب بکاری چه دَ سورتِ نحل دَ هغه بل آیت بیان هم اُشی په کوم کښے چه په یو بل دول دَ نشئ څیزونو ذکر راغلے دے ـ فرمائی :

وَمِنْ ثَمَرٰتِ النَّخِيْلِ وَالْاَعْنَابِ تَتَّخِذُوْنَ مِنْهُ سَكَرًا وَّرِزْقًا حَسَنًا ۭ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّقَوْمٍ يَّعْقِلُوْنَ ۝

او دَ کجورو او دَ انګورو دَ میوو نه تاسو خلق نشئ څیزونه[1] او دَ غوره خوراک څیزونه جوړوئ ـ بیشکه په دے کښے دَ هغه خلقو دَ پاره لوئے دلیل دے چه عقل لری ـ

**وضاحت او تفسیر**

په رُومبی آیتونو کښے دَ الله تعالیٰ د هغه نعمتونو ذکر دو چه دَ انسانی خوراک دَ پاره دَ هغے دَ پیدا کولو نه دَ الله تعالیٰ عجیبه غریبه کاریګری او قدرت

(۱) النحل : ۶۷

را برسېره کېږي. اول دَ بېو (شودو) ذِکر دے. کوم ئے چه دَ څاروو په خېټو کښې دَ وینو او

خټو (سوټو او پچوم) د مېنځ نه د بنیادم له پاره صفا سُتره خوراک جوړ کړے دے او د بنیادم

دَ نورے کاریګرۍ او عمل په دے کښې ضرورت نشته دَ "نُسۡقِيكُمۡ" لفظ هم دا حکمت ښکاره

کوي (یعنې موږ یئ اُڅکوَل) دد ے نه پس ئے اوفرمائیل چه دَ تجورو او انګورو دَ څه

میوونه دَ خپل خوراک او فائدے څیزونه جوړوي مطلب دا چه دانسان په عمل دخل دا څیزونه

تیارېږي او جوړېږي خو بیا دا څیزونه دوه قسمه وي یو نشئي څیزونه چه خمر یا شراب

ورته وئیلے شي. دوئم د عوره خوراک څیزونه یعنې تازه قجورے او انګور یا اُوچې قجورے

او اُوچ انګور. خلاصه دَ خبرے دا شوه چه بنیادم له الله تعالیٰ قجورے او انګور غوندې

میوے په خپل کامل قدرت سره ورکړے او دَدے نه دَ خپل خوراک جوړَولو دا اختیارئے

هم دُرته ورکړو چه دے تربنه دَ خوراک کار واخلي او قوّت پرِ بیا موسي یا نشئي څیز ترِ

تیارکړي چه خپل عقل پرِ بېکاره او خراب کړي.

دد ے تفسیر په جرړ دَدے آیت نه دَ نشئي څیزونو په حلالوالي څه دلیل ځکه نشي نیوے

چه دلته الله تعالیٰ په خپل قدرت پیدا کړي شوي نعمتونه بیانوي. دَدے احکام نه بیانوي

او دا ښکاره کوي چه دَ نعمت اصلیت په دے نه بدلیږي چه څخه دره یو انسان بے ځایه

استعمال کړي لکه د قجورُو او انګورو دَ نعمت نه (شراب) دَ زحمت څیزونه جوړکړي خو بیا هم

یو باریکه اشاره دا ښے اُشوه چه د "سَكَرًا" په مقابله کښې د "رِزۡقًا حَسَنًا" ذکر کول دا ښائی

چه "سَكَر" ښه رزق نهٔ دے. جمهور مفسرینو[1] د "سَكَر" معنیٰ "نشئي څیز" کوي (روح المعاني

قرطبي[2]. جصّاص[3])

په اتفاق دَ اُمّت سره دا مکي آیتونه دي او د شرابو حراموالے په مدینه طیبه کښې نازل

شوے دے. دَدے آیتونو دَ نازلیدو په وخت اګرچه شراب حلال دوا و مسلمانانو

په عمومي توګه څکل خو دا یو رته ذِکر شوے اشاره کښې اَرُو مرُو وه. چه د شرابو څکل ښه

کار نهٔ دے په سختئ د شرابو حراموالے په ښکاره توګه دَدے نه پس نازل شو (خلاصه[4] دجصاص

او قرطبي[5])

**دَ جوارئ حراموالے:** "میسِرٌ" مصدر دے په اصل لغت کښې دَدے معنیٰ ویشل دي

(۱) ج ۲، ص: ۱۱۲ - (۲) ج: ۳، ص: ۵۲ (۳) ص: ۳۸۳ - (۴) ص: ۳۸۲ - (۵) ج: ۳، ص ۶۰ و ۹۱

او دَ "یا سِر" معنیٰ " و یشوٗنکے" دعربو دجاهلیت په زمانه کښے دَ قسما قسم جوارد رواج وو، یو رواج دا هم وو چه دَحلال رذبح) کړی شوی اوښ په ویشلے شوے غوښه کښے به چه دَچا برخه اُنهٰ رسیده نو ددغ اوښ ټول قیمت ربیعه) به تړ اغښتے شو. هوله غوښه به په فقیرانو ویشلے شوه پخپله به ئے نهٰ استعمالوله -

په دے خاص جوارئ کښے دَ فقیرانو عاجزانو فائده او دجوارګرو دَ سخی توب اظهار وو. نو ځکه به ئے په دے لوبه فخر کولو. او چا به چه دے جوارئ او لوبه کښے برخه نهٰ اخِستهٔ هغه ته به ئے سپیره او شوم ویلو -

دَ ویش په مناسبت سره جوارئ ته "میسر" ویلے شی ټول صحابهؓ او تابعینؒ په دے متفق دی چه په "میسر" کښے دَجوارئ ټول صوٗرتونه داخل دی او ټول حرام دی. په تفسیر ابن کثیرؒ او دَجصاص په احکام القرآن[۲] کښے نقل دی چه د قرآن مفسر عبد الله بن عباسؓ ابن عمرؓ، قتادهؓ، معاویه بن صالحؒ، عطاءؒ او طاؤس فرمائیلی دی :

| | |
|---|---|
| اَلْمَيْسِرُ الْقِمَارُ حَتّٰى لَعِبُ الصِّبْيَانِ بِالْكِعَابِ وَالْجَوْزِ. | هر قسم جوارئ "میسر" بللے شی تردے چه ماشومان ئے کهٔ دَ لرګی په کیټو او په غوزانو کوی |

ابن عباسؓ فرمائی "اَلْمُخَاطَرَةُ مِنَ الْقِمَارِ" یعنی په مال سره شرط تړل دَجوارئ یو قسم دے (جصاص)[۳] ابن سیرینؒ فرمائی چه شرط تړل په "میسر" (جوارئ) کښے داخل دی (روح المعانی)[۴]

مخاطره دا ته کار او شرط ته ویلے شی چه په هغے په اتکل سره کله خو د یر مال لاس ته ورشی او کله خو هیڅ کوٗنتوله ورنشی (یعنی کټپات بیلات کښے وی لکه ن صبا چه لاټری ده) دا ټول دَ میسر (جوارئ) قِسمونه او حرام دی. خُلاصه دا چه دَ میسر او جوارئ تعریف دا دے چه دَ مال مالک جوړیدل په دا سے شرط پورے اُتړی چه دَ هغے شته والے او نیشتوالے دواړه برابر وی. او دغه رنګ دَخالصے ګټے او دَخالص تاوان دواړه اړخونه هم برابر وی (شامی ص۲۵۵ جلد ۵ كِتَابُ الْحَظْرِ وَالْاِبَاحَةِ)

مطلب دا چه مُعمّے او تجارتی لاټرا یانے ټولے په جوارئ کښے داخلے دی. هغه اِنجوے یو ائے دَ یو اړخ نه بغیر له فیسه په څه کار کولو انعام مقررشی. او دَ بیلات اړخ کښے ته دی.

---

(۱) ج: ۱، ص ۲۵۳ - (۲) ص ۳۸۸ - (۳) پورتنئ مرجع او دُ دے مخ -
(۴) ج: ۱، ص ۳۴۰ -

نو دا جائز دی -

دَ صحیح احادیثو له مخه شطرنج او چوسر وغیره ځکه حرام ګڼلے شوی دی چه په دے کښے د مال ګټلو بیلات راځی کوم تاش وغیره کښے چه د پیسو ګټو ګټلو بیلات راشی نو دا هم جواری ده -

په صحیح مسلم کښے د بریده رضی الله عنه په روایت ذکر دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائی چه کوم کس نردشیر (چوسر) لوبه کوی نو داسے ده لکه چه دَ خنزیر په غوښه او وینه خان رنګوی - او حضرت علی رضی الله عنه شطرنج ته په جواری کښے داخل وائی او حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه شطرنج ته د نردشیر (چوسر) نه هم زیات بد وئیلی دی (تفسیر ابن کثیر)[1]

دَ اسلام په شروع کښے دَ شرابو په شان جواری هم روا وه. په مکه مکرمه کښے هر کله چه دَ سورتِ رُوم "غُلِبَتِ الرُّوْمُ"[2] آیتونه نازل شُو او قرآن کریم دا خبر ورکړو چه اګرچه رُوم دَ خپل حریف کسریٰ نه اُس ماتے خوړه لیکن څو کاله پس به رُومیان بیا غلبه راځی دَ مکے مُشرکانو دَ قرآن دا پیشنګوئی اُو نه منله نو حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه داسے شرط ورسره اُوتړلو چه دَ دومره کاله کښے دَ رُومیان غلبه شو نو تاسو به دومره مال راکوئ دا اُمنلے شو او دَ قرآنِ کریم دَ خبر په جوړه رُومیان غالب شُو نو حضرت ابوبکر رضی الله عنه دغه مال (دَ شرط) قبضه کړو او حضور صلی الله علیه وسلم ته ئے پیش کړو هغوئ خوشحاله شول، مګر دَ مال دَ خیرات کولو حکم ئے اُوکړو -

دے نه معلومیږی چه په راتلُونکی زمانه کښے حرامیدُونکی مال نه الله تعالیٰ ته دَ خپل پیغمبر او دَ هغه دَ خاصو صحابه کرامو رضی الله عنهم په هغه زمانه کښے هم حفاظت کړے دے کومه زمانه کښے چه دا حلال وو -

په یو روایت کښے دی چه جبریل امین، رسول الله صلی الله علیه وسلم ته خبر راوړو چه الله تعالیٰ ته دَ جعفر طیار رضی الله عنه څلور خویُونه ډیر خوښ دی نو حضور صلی الله علیه وسلم دَ حضرت جعفر رضی الله عنه نه تپوس اُوکړو چه ستا دغه خویُونه کوم یَو دی هغوئ رضی الله عنه عرض اُوکړو چه دا تر اُوسه ما چا ته نه دی ښکاره کړی هر کله چه الله تعالیٰ پر تاسو خبر کړئ نو اُوس ئے درته ښکاره کوم - ما اُولیدل چه شراب عقل لره خَتموی نو ځکه چرے دَ هغے خوا ته هم نه یَم تلے

(۱) ج : ۲، ص : ۶۳۴ - (۲) الروم : ۱ -

ما آولیدل چه دُبتانو په لاس کښې دَچا فائده نُقصان نِشته نو په جاهلیت کښې هم ماچرے بُت پرستی نه ده کړے. څه دَ ځلے بی بی او لُونړو په باره کښې ډیر غیرتی یم نو ځکه ما چرے هُم زنا نهٔ ده کړے. مٰا اُلیدل چه دروغ و یُیل نیچ توب او رذیل توب دے. نو په جاهلیت کښې هم ماچرے دروغ نه دی ویلی (روح البیان)

## دَجوارئ اجتماعی او معاشرتی نقصانونه

دَجوارئ په باره کښې قرآن هم هغه فرمائی کوم چه دَ شرابو په باره کښې فرمائی. یعنی دا چه دے کښې څه فائدے شته مګر دنفع نه دَ هغې نقصان او ضرر زیات دے. دَجوارئ دا یو فائده خو هر کس پیژنی چه جوارئ کیږونکے خوار او بد حاله کس په یو ورځ کښې په ناسته ناسته مالدار او دَ غټې ګټے خاوند جوړیدے شی. لیکن دد ے معاشی اجتماعی او روحانی خرابئ او نقصانونه ډیر کم خلق پیژنی خلاصه ئے دا ده چه دَجوارئ لوبه داسې معامله ده چه په دے کښې یو کس فائده بل کس په سودا نقصان سره راځی. که یو فائده په بل تاوان سره وی. په دے لوبې کولو سره دولت زیاتیږی نه، په ځائے ولاړ وی په دے لوبه کښې دَ ټول قوم تباهی او دَ سرمایه دارو تو دَ خوبونو مرګ دارنګ دے چه هغه بنیادم یو تغیرونکے ځنا ورجوړیږی چه دَ بل په نقصان خپله فائده (یعنی دَبل په بیلاتے خپل ګټات) اوړا وړه کوی دَ خپل دور (مُسلمان) په مرګ خپل ژوند دَ هغه په غم خپله خوشحالی اوړا وړه کوی او خپل ټول قابلیت په دے خود غرضئ کښې لګوی کوم بنیادم لره چه خپل دا اصلی شان جوړول یکاد دوچه هغه دِ ټول مخلوق ته فیض رسان وی هغه دِ دَ قربانئ او همدردئ مجسمه وی) په تجارت، او خرڅولو اخستلو کښې دواړه طرفونه فائده وی په مال بدلولو سره دولت زیاتیږی او خرڅوونکی اخستونکی دواړه ته په دے کښې فائده بنکاری نو ځکه تجارت روا او جواری ناروا اُګرځولے شوه.

په جوارئ کښې یو غټ نقصان دا دے چه په جوارئ عادت کس دَ اصلی کټے وټے او کار کسب نه دَ پاتے کید و عادت شی ځکه چه په ناستے ناستے بے خوارئ بے محنته دَ بل مال صرف په شرط لګولو سره په خومنټه کښې خپل ځان ته کوی. ځنے علماؤ دَجوارئ دنوم مَیسر ایښودو دا وجه ښودلے ده چه په دے دَبل مال په آسانئ سره خپل جوړیږی. دَ یو کس په نقصان دَبل کس فائده اوړا وړه وی او که دَ کبر و کسانو په نقصان دَ یو کس فائده اوړا وړه وی دا ټول

(۱) ج: ۱، ص: ۳۳۹.

د جوارئ قسمونه دي او حرام دي. د سُود په نوي قسمونو را اُبنکلو او د بینک د نورو نورو طریقو په جوړولو دا نه روا کیږي لکه څنګه چه د شرابو په نورو نورو مُونو اینبودو سره چه شرا ب ښکل نه روا کیږي. دا ځکه چه په دے کښے د بټول قوم نقصان دے په دے طریقه د بټول قوم دولت یو څو غټانو او مالدارو یا یو څو کورنو ته راغونډ شي او نور بټول قوم خوار او تباه بر باد پاتے شي لکه چه "سټه بازار" او د جوارئ په نورو قسمونو سره اَمروزه (هره ورځ) دا شے کیږي. د پوره (بټول) قوم دولت یو څو کسانو یا کورنو ته راغونډیدو قرآن هم مخالفت کوي. فرمائي: "لِكَيْلَا يَكُونَ دُولَةً بَيْنَ الْأَغْنِيَاءِ مِنْكُمْ"[1] یعنی د غنیمت مال په مختلفو طبقو کښے د ویشلو کومے ضابطے چه قرآن کریم ټاکلي دي د هغے منشا هُم دا ده چه دولت یو څو مالدارو کسانو یا څو مالدارو کورنو ته راغونډ نشي.

د جوارئ خرابي دا هم ده چه د شرابو په رنګ په خپل مینځ کښے د جنګ جګړے او د فتنے فساد موجب جوړیږي د بائلونکی کس په زړه کښے کټونکی کس سره کرکه او دښمني پیدا کیږي. او تمدّن، انساني ژوند د ستور د پاره هلاکونکے او بربادوونکے څیز دے هم دغه وجه ده چه قرآن حکیم بالخصوص دا نا کاروائے بیان کړے دے. فرمائي:

اِنَّمَا يُرِيدُ الشَّيْطٰنُ اَنْ يُّوقِعَ بَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَآءَ فِي الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ وَيَصُدَّكُمْ عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ وَعَنِ الصَّلٰوةِ[2]

شیطان هم دا غواړي چه د شرابو او جوارئ په ترڅ کښے ستاسو په مینځ کښے دښمني او بغض او کرکه پیدا کړي او تاسو د الله تعالیٰ د ذکر او مونځ نه منع کړي.

دا رنګ د جوارئ یو لازمي اثر دا دے چه د شرابو په شان په دے کښے هم دا سے بوُبنت او مست وي چه د الله ذکر او مونځ ته ئے پام نه وي. غالبًا هم دغه وجه ده چه قرآن کریم جواری او شراب دواړه په یو ځائے کښے په یو دول بیان کړي دي چه د جوارئ هم یو قسم نشه وي. چه بنیادم لره بنه او بد ته د پام کولو جوګه نه پریږدي. په دے آیت کښے هم په جمع د دواړو (جوارئ او شرابو) د خرابو او نقصاناتو بیانولو په ترڅ کښے دا بیان شوي دي چه دواړه په هیڅ د بغض، دښمنئ او د الله تعالیٰ د ذکر او مونځ نه د بندولو سبب جوړیږي.

په جوارئ کښے یو بنیادي خرابي دا هم ده چه په دے سره د بل مال په ناروا طریقو هضمو[illegible]

شی او دَخه مناسب بدلے نه بغیر دَ بل مسلمان ورو رمال اخستے شی کوم لره چه قرآن کریم په دے الفاظو سره منع کړے دے۔

لَا تَأْكُلُوٓا اَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ | دَ خلقو مالونه په باطله طریقه مه خورئ۔

په جوارئ کښے یو غټه خرابی دا هم ده چه په یو خل ډیر کوروونه برباد یږی، په یو ساعت کښے تک پتی سړے فقیر شی چه بد اثر ئے په ټولے کورنئ پریوځی که ځوړ نظر اوکړے شی نو دغه بد اثر په ټول قوم پریوځی ځکه چه دَ دغه سړی دَ مالی حالت په اډا نړه چا چه ورسره معاهدے او معاملے کړی دی قرضونه ئے ورکړی دی نو هغوئ به هم دیوالیه شی او په دے ډول ټول قوم تباه برباد شی۔

په جوارئ کښے یو خرابی دا هم ده چه بنیادم پرډ کاروزګار نه پاتے شی۔ اودَ وهمی نفعو په تکل کښے وی۔ دا زنګ تل په دے کوشش کښے وی چه پښه په پښه کښینی اود چلو لاسو او دماغو پښو سترئ کولو په ځائے بے هیسه دَ بل په دولت او کښه وَتہ قبضه اوکړی۔ په دے لنډ بیان سره دا خبره ښه ښکاره کیږی چه یوائے جوارکړنه بلکه دَ هغه ټوله کورنئ خه چه ټول قوم پر برباد یږی۔ ځکه خو قرآن کریم فرمائی۔

وَ اِثْمُهُمَآ اَكْبَرُ مِنْ نَّفْعِهِمَا | یعنی دَ شرابو او جوارئ خرابئ او نقصانونه دَ دے دَ فائدو او ګټے نه زیاتے دی۔

**دَ فقهے یو ضابطے او فوائد** | په دے آیت کښے دَ شرابو او جوارئ فائدو منلو سره دا دوا په دَ دے ضابطے په بنیاد حرام ګڼلے شوی دی چه دَ دے دَ فائدو په نسبت دَ دے مجموعی خرابئ او نقصانات ډیر زیات دی۔ هسے خو په دنیا کښے یو څیز او یو کار هم بے فائدے نشته لکه مثلاً مار، لړم او زهرا کوره چه فائدے هم لری او سره دَ دے هغه مضر او نقصانی بللے شی۔ دَ غلا، ډاکے، زنا او تهګئ بتورئ وغیره فائدے هم شته ځکه خوئے هغه خلق کوی کوم چه په چالاکئ بیدارئ، هوښیارتیا او عقلمندئ کښے مشهور ګڼلے شی لیکن هرکله چه ددے څیزونو دینی دنیوی خرابئ او نقصانات دَ دے دَ فائدو او ګټے نه زیاتے دی نو اسلامی شریعت هم دا څیزونه دَ هغے ضابطو لاندے حرام اُ تهاکل کوے چه دَ ټولو عقلمندو او هوښیارو خلقو منلے شوی دی۔

**دَ فقهے یو بله ضابطه** | دَ دے آیت نه دا هم معلومه شوه چه دَ فائدو اخستو نه دَ ضرر

دنغ کول وړاندې دی. مطلب ئې دا شو چه د نقصاناتو له کبله د یو څیز فائدې پرینبودل ضروری دی (لکه د دوه آنو فائدې د پاره چه څوک بانار ته د تلو خواری او زیات تاوان نهٔ کوی او دوه آنې گران څیز په خپل کلی کښې اخلی. مترجم)

وَيَسْـَٔلُونَكَ مَاذَا يُنفِقُونَ ۖ قُلِ الْعَفْوَ ۗ كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ

او تا نه هغوی پښتی چه څهٔ اُ لګوی ، اُو ایه چه د خپل خرچ نه زیاتی - دا رنګ بیانوی

اللَّهُ لَكُمُ الْآيَاتِ لَعَلَّكُمْ تَتَفَكَّرُونَ ﴿٢١٩﴾ فِي الدُّنْيَا

الله تعالیٰ تاسو د پاره حکم ، دے د پاره چه تاسو فکر اُ کړئ ، د دنیا او د

وَالْآخِرَةِ ۗ وَيَسْـَٔلُونَكَ عَنِ الْيَتَامَىٰ ۖ قُلْ إِصْلَاحٌ

آخرت په خبرو کښې ، او تا نه پښتی د یتیمانو حکم ، ته ورته اُو ایه چه د هغوی د

لَّهُمْ خَيْرٌ ۖ وَإِن تُخَالِطُوهُمْ فَإِخْوَانُكُمْ ۚ وَاللَّهُ يَعْلَمُ

کار ښه کول بهتر دی ، او کچرے د هغوی نګینت یو ځلئے کړئ نو هغوی ستاسو ورونړه دی - او الله تعالیٰ پیژنی

الْمُفْسِدَ مِنَ الْمُصْلِحِ ۚ وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ لَأَعْنَتَكُمْ ۚ إِنَّ

ورانی کوُونکی او ودانی کوُونکی دره ، او کچرے الله غوښتے نو په تاسو به ئې سختئ راوستے ، بیشکه

اللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴿٢٢٠﴾ وَلَا تَنكِحُوا الْمُشْرِكَاتِ حَتَّىٰ يُؤْمِنَّ ۚ

الله تعالیٰ (غالب) زبردست دے (انتظام) تدبیر والا - او نکاح مه کوئ مشرکانو ښځو سره ، تر څو چه ایمان را نهٔ وړی.

وَلَأَمَةٌ مُّؤْمِنَةٌ خَيْرٌ مِّن مُّشْرِكَةٍ وَلَوْ أَعْجَبَتْكُمْ ۗ وَ

او البته وینځه مسلمانه ښه ده د مشرکے ښځے نه ، اګرچه هغه تاسو ته ښه ښکاری او

لَا تُنكِحُوا الْمُشْرِكِينَ حَتَّىٰ يُؤْمِنُوا ۚ وَلَعَبْدٌ مُّؤْمِنٌ خَيْرٌ

په نکاح مه ورکوئ مشرکانو ته (خپلې خوېندې) تر څو چه هغوی ایمان را نوړی - او البته مریئ مُسلمان ښه دے

مِّنۡ مُّشۡرِكٍ وَّلَوۡ اَعۡجَبَكُمۡ ؕ اُولٰٓئِكَ يَدۡعُوۡنَ اِلَى النَّارِ ۖۚ

دَ مشرک نه اګرچه هغه تاسو ته ښه ښکاري۔ هغوئ بلي دوزخ اړخ ته،

وَاللّٰهُ يَدۡعُوۡۤا اِلَى الۡجَنَّةِ وَالۡمَغۡفِرَةِ بِاِذۡنِهٖ ۚ وَ

او الله تعالیٰ بلي جنت او بخښنې اړخ ته په خپل حکم۔ او

يُبَيِّنُ اٰيٰتِهٖ لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمۡ يَتَذَكَّرُوۡنَ ۠ (۲۲۱)

ښائي خپل حکم خلقو ته دے دَ پاره چه هغوئ نصیحت قبول کړي۔

ع ۲۷ ۵ ۱۱

## د تفسیر لنډیز

**شپاږسم حکم، دَمال لګولو انداز ه** او خلق تا سو نه معلومول غواړي چه (په خیر خیرات کښې د) څومره مال لګوی تاسو ورته او فرمایئ چه څومره آسان وی (چه دَ هغې په لګولو سره پخپله په دُنیوی تکلیف کښې کېر نهٔ شي یا دَ بل حق برباد و لو سره دَ آخرت په تکلیف کښې کېر نشي) الله تعالیٰ احکام دا رنګ صفا صفا بیانوي دے له پاره چه تاسو ر ته دَ هغې علم اُشي او دَ هغې علم په وجه دَ هر عمل کولو نه وړاندِ) دَ دُنیا او آخرت په معاملو کښې (دغه احکام) په فکر کښې لری (او په هره معامله کښې په فکر سره دَ دغې احکامو په جوړ عمل کوئ)

**اووسم حکم، یتیم سره کهون** (په اول دَ اسلام کښې دَ هندوستان په شان په عربو کښې هم یتیمانو ته په خپل حق ورکولو کښې پُوره احتیاط نهٔ وو۔ په دے وجه دا وعید وادُرَو لے شو چه دَ یتیمانو مال خوړل داسے اُګټرئ لکه خپله خیټه دَ اور په سکروټو ډکول دے وعید په آوریدلو صحابه کرامو دَ ډیر احتیاط کولو په وجه دَ یتیمانو خوراک څکاک بېلے اَخلے دَ خانه بیل کړو دَ هغوئ دَ خوراک نه پاتے څیز به هم داسے سخا او چړیښ شو ځکه چه نه خوبهٔ ئې پخپله دغه پاتے څیز استعمالوَلے شو او نه ورته دهغې دَ خیرات کولو اختیار دو۔ په دے ډول خلقو ته هم تکلیف وو او دَ یتیم مال به هم بے ځینه بربادیدو۔ هرکله چه دے باره کښې حضور آکرم صلی الله علیه وسلم ته عرض اُشو نو په اَیت کښې داسے ارشاد اُشو) او خلق له تاسو دَ یتیمو ما شومانو رځانده یا کړې مال لګولو) حکم پُښتي۔ تاسو اُ فرمایئ چه (هغوئ اصل

مقصد دَ دوئ په مالونو دَ خیانت اچولو نه منع کول دی چه دَ هغوئ خیر بنیګړه بربادہ نشی هرکله چه دَ دوئ بنیګړه په ګډ مال تګولو کښے ده نو) دَ هغوئ دَ بنیګړے خیال ساتل (دَ هغوئ دَ بنیګړے خلاف ځانله تګولو نه) ډیر زیات ښه دی او تاسو چه هغوئ سره ګډ خوخ کوئ نو (څه دَ ویرے خبره ځکه نه ده چه) هغوئ (ماشومان) ستاسو (دینی) رونړه دی (او رونړه دَ رونړو سره هم ګډ اُسیږی) او الله تعالیٰ بنیګړه خرابوونکی او دَ بنیګړے خیال ساتونکی (ځانله ځانله) پیژنی (له دے وجے په خوراک څکاک کښے ګډون به دے دول پکار دے چه دَ یتیم بنیګړه پرے برباده نشی او په ناپوهئ کښے یا بے ارادے کچرے څه کے زیاتے اُتشی نو په دے به ځکه ګرفت نه وی چه الله تعالیٰ ته دَ دوئ نیک نیتی معلومه ده) او کچرے الله تعالیٰ غوښتے نو (په دے معامله کښے په سخت قانون ئے کالو سره به ئے) تاسو به مصیبت کښے اچولی وئ (ځکه چه) الله تعالیٰ زور ور (زبردست) دے (مګر آسان قانون ئے په دے وجه اُټاکلو چه هغه) حکمت والا (هم) دے (دَ وس نه بهر حکم نه ورکوی)

## اتلسم حکم کفارو سره نکاح کول۔

او نکاح مه کوئ کافرو ښځو سره ترڅو چه مُسلمانے نه شی او مسلمانه زیګرے) ونیځه (هم وی په زرکرته) غوره ده دَ کافرے ښځے نه (هغه که آزاده (اصیله) بی بی هُم وی) اګرچه هغه (کافره ښځه دَ ښائست او مال په وجه) تاسو ته غوره ښکاری (لیکن بیا هم مسلمانه ښځه په حقیقت کښے دَ هغے نه غوره ده) او (دا شان ستاسو په اختیار کښے) ښځے دَ کافرانو په نکاح کښے مه ورکوئ ترڅو چه هغے مُسلمانے نه شی او مسلمان سړے (که) مریئ (هُم وی په زرکرته) غوره دے دَ کافر سړی نه (هغه دِ آزاد (اصیل) ولے نه وی) اګرچه هغه (کافر سړے دَ مال حال او عُهدے په وجه) تاسو ته غوره ښکاری (مګر بیا هم مُسلمان په حقیقت کښے دَ هغه نه غوره دے او دَ کافرانو دَ بدوالی وجه کومه چه په اصل کښے دَ نکاح د بندیز وجه ده داده چه) دا (کافر خلق دوزخ ته (دَ بوتلو) باعث جوړیږی (ځکه چه کُفر ته بلل باعث دَ جهنم دی) او الله تعالیٰ جنت او مغفرت (حاصلوطرف) ته بلل کوی په خپل حکم سره (او دا حکم په دے دول ښکاره شو چه کفارو سره ئے د نکاح دَ بندیز حکم اُکړ وچه دَ هغوئ دَ بلنے دَ اثر نه په مکمل دول ساتنه او حفاظت اُشی کوم چه دَ جنت او مغفرت حاصلولو باعث جوړیږی) او الله تعالیٰ دے له پاره خپل احکام ښائی چه هغه خلق په نصیحت عمل اُکړی (او دَ جنت او مغفرت مستحق شی)

## فوائد دَ بیانُ القرآن نه

مسئله: کوم قوم چه دَ کړو وړو نه اهلِ کتاب ښکاری لیکن په عقائدُ وکښے اهلِ کتاب ثابت نشی نو دَ داسے خلقو ښځے په نکاح سره اخستل روا نه دی لکه څنګه چه نن صبا عام خلق انګریزانو لره عیسایان ګڼړی او په حقیقت کښے دَ دوی عقیدے دَ ملحدانو دی. نه خو دا خلق دَ خدائے تعالیٰ منونکی دی نه دَ عیسیٰ علیه السلام دَ پیغمبریٔ منونکی دی. او نه خو انجیل لره آسمانی کتاب مَنِي. خلق په دے باره کښے ډیره غلطی کوی چه بے تحقیقه دَ یورپ ښځو سره نکاح (ودُونه) کوی.

مسئله: داشان چه کوم سړے دکړو وړو نه مُسلمان ښکاری لیکن عقیدے ئے کُفری وی نو ده ته مُسلمانه ښځه په نِکاح ورکول روا نهٔ دی او کچرے دَ نکاح کولو نه پس ئے عقیدهٔ کُفری شوی وی نو بیا هم نکاح ماتیږی لکه څنګه چه نن صبا دَ رسم ورواج او دَ سائنس دَ اثر نه عقیدے تباه کیږی. په جینئی دا الوٗ واجب دی چه اوّل دِ دَ سړی دَ عقید و تحقیق کوی. هله دِ ورله لُور خور په نکاح ورکوی.

## علوم او مسئلے

**دَ مسلمان او کافر په مینځ کښے یو تړ بـله نکاح کول منع دی**

په تیرو شوو آیتونو کښے دَ کافرو او مسلمانانو په مینځ کښے دَ نکاح دبندیز حکم په دے اړا نړه ووچه کافران نو ښځے جهنم اړخ ته بلل کوی. تفصیل ئے دادے چه دَ ښځے خاوند په مینځ کښے دَ زړو رتړون او مینے محبّت په وجه دَ مسلمان نریا ښځے په زړه کښے دَ کُفر شوق پیدا کیږی یا کم ناکم دکُفر سره کرکه دَ مُسلمان نریا ښځے دَ زړهٔ نه اُوځی. نتیجه ئے دا را اُخیژی چه دغه مسلمان نر یا ښځه په مُشرک او کافر شی چه جهنّم ته دَ تلو باعث جوړیږی. هم دغه وجه ده چه الله تعالیٰ اُفرمائیل چه دا خلق جهنّم اړخ ته بلنه ورکوی او الله تعالیٰ جنّت او بخښنے اړخ ته بلنه ورکوی او خپل احکام صفا صفا بیانوی چه خلق په نصیحت عمل اُکړی. دلته یو ښو خبرے دغور کولو جوګه دی.

اوله خبره دا ده چه په آیت کښے دَ مشرک (لفظ) نه مراد کچرے عام کافروی نو په بل آیت (وَالْمُحْصَنٰتُ مِنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِكُمْ) سره دَ اهلِ کتابو کافرے ښځے دَ

دے نه مستثنیٰ کیږی او کړے دَ مشرک نه دلته دَ اهلِ کتابو نه بغیر کا فرمرا د وی نو دَ اهلِ
کتابو ښځو مستثنیٰ کولو بیا ضرورت نشته ۔
دویمه خبره داده چه دَ مسلمانان او کافر په مینځ کښے دَ نکاح د بندیز کومه وجه چه قرآن
کریم ښودلے ده هغه په ټولو کافرو کښے موندے شي بیا دَ کتابي ښځو مُستثنیٰ کولو څه وجه ده؟
جواب ئے ښکاره دے چه دَ نورو کافرو په نسبت مُسلمانانو سره دَ اهلِ کتابو اختلاف په
دے وړول کم دے چه دَ اسلام په درے بُنیادی عقیدو کښے مُسلمانانو سره اهلِ کتاب متفق
دی. دَ آخرت په عقیده کښے یهود او نصاریٰ هیڅ اختلاف نه لری ۔ دَ توحید عقیده دَ اهلِ
کتابو په مذهب کښے هم داسے کلک ده چه الله سره شریک کنړل هغوئ کُفر بولی. دا بله خبره ده
چه دَ عیسیٰ علیه السلام بے پایانه عظمت او محبت هغوئ لره شرک ته اُرسَول ۔
صرف درسالت په معامله کښے هغوئ پدے وړول اختلاف لری چه محمّد رسول الله صلی الله
علیه وسلم لره نبی او رسول نه مَنی اگرچه دا هم دَ اسلام یو بنیادی عقیده ده خو الله تعالیٰ
د نورو کافرو په نسبت دا اختلاف کم اُګنړلو او دَ مسلمانانو دَ آسانتیا دپاره ئے کتابي
ښځو سره نکاح کول روا کړلی ۔
دریمه خبره داده چه هرکله دَ مسلمان نکاح کتابي ښځے سره روا شو نو دَ مسلمانے ښځے نکاح کتابي
سړی سره ولے نه روا کیږی. وجه ئے داسے ښکاره ده چه ښځه دسړی په قبضه کښے وی او هسے
هم ښځه فِطرتًا کمزورے وی نو دَ خاوند د کُفر اثر په ښځه باندِ پریوتل ډیر زر او قوی وی.
مګر د ښځے دعقائدو او مذهبی خیالاتو اثر په خاوند باندِ پریوتل دَ عقل نه لرے ګنړلے شوے
ده کړے په یو ښځو نک دَ ښځے داسے پوول زور اثر اُلیدے شی نو دا په حساب کښے نه راځی. او
دے لره هیڅ اعتبار نشته ځکه چه دا ډیره کمه پیښیږی ۔
څلورمه خبره داده چه هرکله دا احتمال هم کیدے شو چه ځکه د ښځے خاوند دکُفر اثر
په یو بل پریوتے شی. دارنګ دَ اسلام اثر هم په یو بل پریوتے شی له دے وجے ئے دَ مُسلمان
سړی او کتابي ښځے نکاح یو تو بله روا کړے شو ۔
دلته دَ حکمت یوه خبره داده چه په یو ځینو کښے دَ نفع اُمید او دَ ضرر خطره بیا موندے
شی نو عقلِ سلیم غواړی چه داوے په نسبت دَ دو یمے خبرے زیات خیال اُساتلے شی، ځکه دَ
نکاح په معامله کښے هم دا دویم خیال (چه هسے نه څوک مسلمانان کافر شی) ضروری اُګنړلے شو۔

او دا په وچې خیال پر بنا ده شو (چه کوندی کا فرانکی او مسلمان شی)

پنځمه خبره دا ده چه کتابی ښځو سره دَ مُسلمان د نکاح دَ اجازت مطلب دا دے چه نکاح به درست شی او د او لاد نسب به هم ثابت شی. خو دا غور پوځکه نه دے چه رسول کریم صلی الله علیه وسلم مُسلمانے دینداره ښځے سره په نکاح کولو زور داسے ورکړے دے چه په دیندارئ کښے دَ خاوند مددگاره ثابته شی او اولادئے هم دیندار وی. داسے قسم احادیثو نه ثابتیږی چه هرکله غیر دینداره مُسلمانے ښځے سره نکاح کول بهتر نشی کیږے نو چا بید یے (کافره کتابی) ښځے سره نکاح کول به څنګه بهتر اُکنړلے شی؟ هرکله چه حضرت عمرؓ ته دا خبر اُرسید وچه شام او عراق کښے اکثر و مسلمانانو د کتابی ښځو سره نکاح کړے دے نو دَ فرمان په ذریعهٔ دا بند کړل او دے خبرے ته ئے مسلمانانو له مخه کړه چه داسے نکاحُونه کول دَ مسلمانانو تبره (فامیلونو) دَ پاره دَ دینی او سیاسی نقصانونو او خرابو باعث او سبب دے (کتاب الآثار د امام محمدؒ) لکه څنګه چه میجرجنرل محمد اکبرخان په خپل کتاب "حدیثِ دفاع" کښے سره دَ حوالو او تفصیلا نو بیان کړی دی چه کتابی ښځے د نکاح په نوُم مُسلمانانو کورونو کښے راننوتی دی او دَ دغوئ عقیدو او خیالاتو خرابو لونه علاوه دَ دغوئ راز و نه ئے معلوم کړی دی او د پرسیاسی نقصانات ئے ورته رسولی دی. دکومو چه څه عیسائی مصنفینو په خپلو کتابونو کښے اقرار هم کړے دے.

اکثر دیورپه داسے کسان چه اهلِ کتاب بللے شی یا دَ سرکاری شمېر په کتابونو کښے اهلِ کتاب (یهود او نصارٰی) بیلے شی دَ سره بے دینه وی، یهودیت او عیسائیت سره هیڅ تعلق نه لری په حضرت موسٰیؑ، په حضرت عیسٰیؑ، په تورات انجیل بلکه په آخرت او خدائے تعالیٰ ایمان نه لری داسے خلقو نه لور خور په نکاح اخستل ښځی حرام دی داسے خلق د قرآن دَ آیت په "وَالْمُحْصَنٰتُ مِنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ" په استثناء کښے پیچرے داخل نهٔ دی.

وَيَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الْمَحِيْضِ ۭ قُلْ هُوَ اَذًى ۙ فَاعْتَزِلُوا

او تا نه پُښتنی حکم دَ حیض، اُو ا په هغه گندگی ده، نو تا سو بیرته اُسیږئ

النِّسَاۗءَ فِي الْمَحِيْضِ ۙ وَلَا تَقْرَبُوْھُنَّ حَتّٰى يَطْهُرْنَ ۚ

له ښځو دَ حیض په وخت، او نزدے کیږئ مه هغوئ ته. ترڅو چه پاکے نشی،

فَإِذَا تَطَهَّرْنَ فَأْتُوهُنَّ مِنْ حَيْثُ أَمَرَكُمُ اللَّهُ ۚ إِنَّ

بیا چه ښې پاکې شي نو ځئ د هغوی خوا ته د هغه ځائې نه چه حکم درکړے دے تاسو ته خدائے (پاک) بېشکه

اللَّهَ يُحِبُّ التَّوَّابِينَ وَيُحِبُّ الْمُتَطَهِّرِينَ ﴿٢٢٢﴾ نِسَاؤُكُمْ

الله تعالیٰ خوښوی نو به کوونکی، او خوښوی د کندګۍ نه ځان ساتونکی . ستاسو ښځې ستا سو د

حَرْثٌ لَكُمْ فَأْتُوا حَرْثَكُمْ أَنَّىٰ شِئْتُمْ ۖ وَقَدِّمُوا

کروندے ځائې دے . نو ځئ خپل پټی ته د کوم اړخه موچه خوښه وي ، او د وړاندې انتظام کوئ

لِأَنْفُسِكُمْ ۚ وَاتَّقُوا اللَّهَ وَاعْلَمُوا أَنَّكُمْ مُلَاقُوهُ ۗ

د خپل ځان دپاره ، او ویریږئ د الله تعالیٰ نه او پوهه شئ چه تاسو هغه سره یو ځائې کیدونکی یئ

وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِينَ ﴿٢٢٣﴾

او زیرے ورکړه مؤمنانو لره .

## د تفسیر لنډیز

**په حیض کښې د کور والی حرامولے او د پاکۍ شرطونه**

او خلق تاسو نه د حیض (په حالت کښې د کور والی وغیره کولو) حکم پښتی تاسو ته او فرمائی چه هغه (حیض) د کندګۍ څیز دے ، نو د حیض په حالت کښې ښځو (سره د کور والی کولو نه) بېرته اُسېږئ او د په دے حالت کښې هغوی سره یو ځائې کټ مه کوئ تر څو چه هغوی (د حیض نه) پاکې نشی بیا کله چه هغوی (ښځې) په ښه شان پاکې شی (چه د ناپاکۍ شک شبهه پاتې نشی) نو د هغوی خوا ته ځئ راځئ (یعنې هغوی سره کور والے کوئ) د کوم ځائے نه چه تاسو ته خدائے تعالیٰ اجازت درکړے دے . (یعنې د وړاندینی اندام نه) یقینًا الله تعالیٰ مینه لري تو به کوونکو سره (مثلًا ناګهانه یا په بے احتیاطۍ په حیض کښې کور والے اُکړو بیا چه خبر شو نو توبه ئے اُکړه) او مینه لري د پاک او صفا اُسېدونکو سره (د حیض په حالت کښې د کور والی او نورو منع شوو څیزونو نه ځان ساتی ، او د پاکۍ په حالت کښې په وړاندې اندام کښې د کور والی اجازت ورکول دے د پاره دی) چه ستاسو بیبیانے ستاسو دپاره (په شان د) پټی دی (چه په هغې کښې نطفه د تخم

او بچي د پيدا وار ا و حاصلات تو مثال لري) نو خپل پټي ته د کوم اړخ نه چه غواړئ راځئ (او دَ

پټو په شان خپلو بيبيانو ته هُم دَ پاکئ په حالت کښے د هر اړخ نه دَ را تللو اجازت دے. يعنې په

اړخ، په ملا ستے، ناستے، له وړاندِ، له رُستو، له ښکته، له بره هر څنګه چه وي خو پټي (وړاندِ

اندام کښے به کوروالے کول وي) ته به راتلل وي ځکه چه رُستو اندام هيڅ پټے نشي جوړيدے

او په دے خوند و نو کښے دومره مه بو بښتيږئ چه آخرت هم در پسے هير کړئ بلکه) دَراتلونکي

وخت په غرض خپل ځان د پاره څه (نيک عملونه) کوئ او دَ الله تعالیٰ نه (په هرحال کښے)

ويريږئ او دا يقين لرئ چه بيشکه تاسو دَ الله تعالیٰ په وړاندِ پيش کيدُونکی يئ (اے محمد

صلی الله عليه وسلم دا سے) مُؤمنانو ته (چه نيک عملونه کوئ د الله تعالیٰ نه ويريږي او دالله

تعالیٰ په وړاندِ دَ پيش کيدو يقين لري) دَ خوشحالئ خبر واوروه (چه هغوئ ته به په آخرت

کښے هر قسم نعمتونه ملاويږي)

وَلَا تَجۡعَلُوا اللّٰهَ عُرۡضَةً لِّاَيۡمَانِكُمۡ اَنۡ تَبَرُّوۡا وَتَتَّقُوۡا وَ

او مه جوړوئ دَ الله تعالیٰ نوم لره نښه دَ خپلو قسمو نو خوړلو دَ پاره چه دَ نيکئ کولو، پرهيزګارئ او

تُصۡلِحُوۡا بَيۡنَ النَّاسِ ؕ وَاللّٰهُ سَمِيۡعٌ عَلِيۡمٌ ﴿۲۲۴﴾

دَ نورو خلقو په مينځ کښے دَ صُلح کولو نه ځان ساتئ او الله تعالیٰ هر څه آوري پرې پوهيږي.

## دَ تفسير لنډيز

او (دَ) الله تعالیٰ (نوم) دَ خپلو قسمونو په ذريعه دَ دے څيزونو مانع مه جوړوئ

چه تاسو نيکئ او تقویٰ او دَ خلقو په مينځ کښے دَ اِصلاح کار اکړئ (يعنې دَ الله په نوم

دا قسم مه خورئ چه موږ به نيک کار نه کوُو) او الله تعالیٰ هر څه آوري او پيژنی (نو

په سنبالـه ژبه خبرے کوئ او په زړه کښے خراب خيالونه مه راوَلئ.

لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللّٰهُ بِاللَّغۡوِ فِيۡۤ اَيۡمَانِكُمۡ وَلٰكِنۡ يُّؤَاخِذُكُمۡ

نه نيسی تاسو لره الله تعالیٰ ستاسو په عبثو قسمُونو، ليکن نيسی تاسو لره

بِمَا كَسَبَتْ قُلُوبُكُمْ ۗ وَاللَّهُ غَفُورٌ حَلِيمٌ ﴿٢٢٥﴾

په هغه قسمونو د کوم چه قصد کړے دے ستاسو زړونو، او الله تعالیٰ بخښونکے زغم کوونکے دے۔

## د تفسیر لنډیز

**د دروغو قسمونو خوړلو حکم**

الله تعالیٰ به په آخرت کښے ستاسو گرفت نه کوی ستاسو په قسمونو کښے په داسے عبث قسم چه په هغے کښے بے ارادے دروغ ویلے شوی وی. لیکن د هغه دروغو په قسم چه پرے ستاسو زړونو د دروغو ویلو اراده کړی وی او الله تعالیٰ بخښونکے دے (چه په داسے عبث قسم گرفت نه کوی) زغم کوونکے دے.
(چه د دروغو د ارادی قسم خوړلو سزائے تر آخرته اُزنبه وله)

لِلَّذِينَ يُؤْلُونَ مِنْ نِّسَآئِهِمْ تَرَبُّصُ اَرْبَعَةِ اَشْهُرٍ ۚ

کوم خلق چه قسمونه خوری خپلو ښځو خوا ته د تللو نه هغوی د پاره نیته ده د څلورو میاشتو،

فَاِنْ فَآءُوْ فَاِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٢٢٦﴾ وَاِنْ عَزَمُوا

بیا که رے په خپل مینځ کښے یو ځائے شو نو الله تعالیٰ بخښونکے مهربان دے، او که رے قصد ئے کړے وو

الطَّلَاقَ فَاِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿٢٢٧﴾

د پرېښودو، نو بېشکه الله تعالیٰ اورېدونکے پوهېدونکے دے.

## د ایلاء حکم

کوم خلق چه د څه مودے تر کلو نه بغیر، یا څلورو میاشتو یا د دے نه زیاتے مودے د پاره قسمونه خوری د خپلو ښیبانو خوا ته د تلو نه هغوی د پاره تر څلورو میاشتو نیته ده که رے (د څلورو میاشتو کښے د ننه) دا خلق (خپل قسمونه مات کړی او د ښځے خوا ته) رجوع اُکړی (نو بیا خو به ئے نکاح په حال وی او) الله تعالیٰ (به د داسے قسمونو ماتولو گناه په کفاره سره) معاف کړی (او هر کله چه اُس ئے د بی بی حق پوره کول شروع کړل نو په ده به رحمت اُفرمائی او که رے د ښځی پرېښودو پخه اراده ئے کړے وی (او په څلورو میاشتو

کښې دننه ځ په خپل قسم ما تولو سره رجوع اُنکړه ) نو ( په څلورو میاشتو تیریدو به یې طلاق اُغوزځېږی او ) الله تعالیٰ ( د ښځوی قسمونه هم ) آوری ( او د ښځوی پټے اراده هم پیژنی ( نو په دے خاطرهٔ مناسب حکم اُفرمائیلو )

وَالْمُطَلَّقٰتُ يَتَرَبَّصْنَ بِاَنْفُسِهِنَّ ثَلٰثَةَ قُرُوْٓءٍ ۭ وَلَا يَحِلُّ

او طلاقے شوے ښځے دِ په انتظار کښے لری خپل ځانونه تر درے حیضو پورے ، او ښځوی دپاره حلال

لَهُنَّ اَنْ يَّكْتُمْنَ مَا خَلَقَ اللّٰهُ فِيْٓ اَرْحَامِهِنَّ اِنْ كُنَّ

نهٔ دی چه پټوی هغه چه پیدا کړی دی الله تعالیٰ د ښځوی په خیټو کښے ، کچرے ښځوی

يُؤْمِنَّ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ۭ وَبُعُوْلَتُهُنَّ اَحَقُّ بِرَدِّهِنَّ

ایمان لری په الله تعالیٰ او په ورځ د رُستنئ ، او د ښځوی خاوندان حق لری د ښځوی د راګرځولو

فِيْ ذٰلِكَ اِنْ اَرَادُوْٓا اِصْلَاحًا ۭ وَلَهُنَّ مِثْلُ الَّذِيْ عَلَيْهِنَّ

په دغه موده کښے ، کچرے غواړی په ښه دول اَستوګنه ، او د ښځو هم حق شته لکه چه څنګه د سړو په

بِالْمَعْرُوْفِ ۠ وَلِلرِّجَالِ عَلَيْهِنَّ دَرَجَةٌ ۭ وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ﴿۲۲۸﴾ ع ۲۸ ع ۱۲

ښځوی حق دے د دستور په جوړ . او سړو لره په ښځو بهتری ده ، او الله تعالیٰ زور آور دے تدبیر کوونکے .

## د تفسیر لنډیز

### د طلاقے شوے ښځے عدت او د رجوع کولو د مودے بیان

او طلاقے شوے ښځے ( کومے چه دا صفتونه لری : خاوند ورسره کوروالے یا خلوتِ صحیحه کړے وی . حیض ئے راځی - اصیلہ وی او د شریعت په قاعده وینځه نهٔ وی ) خپل ځانونه دِ ( د بل نکاح کولو نه ) بند لری درے حیضو ( ختمیدو ) پورے ( چه عدت بللے شی ) او د دغے ښځو لره ( دا خبره ) حلاله نه ده چه خدائے تعالیٰ څه چه د ښځوی رحم ( بچه دانئ ) کښے پیدا کړی وی ( حمل وی که حیض ) هغه پټ کړی ( ځکه چه د هغے په پټولو سره د عدت حساب غلطیږی ) کچرے هغه ښځے په الله تعالیٰ

او په ورځ د آخرت یقین لري (په وجه دَ دې چه دا یقین د دې خبرې تقاضا لري چه الله تعالیٰ به دا اُو بریږي چه قیامت کښې دَ دې نافرمانئ کولو سزا ورنکړې شي) او دَ هغې ښځو خاوندان (کوم ته چه طلاقِ رجعي ورکړې شوې وي. بیان به ئې اُس وړیسې راځي) دَ هغوئ (نِکاح تازه کولو نه بغیر) بیا دَ واپس کولو حق لري (څو) په دې عدت کښې دننه (دې واپس کولو ته (رجعت) دجوع وائي) په شرط د دې چه (رجوع کولو سره) دَ اِصلاح قصد لري (که داسې نه وي نو دَ تنګولو په غرض رجوع کول بې فائدې دي. اګرچه رجوع خو به روا شي) او (دَ اِصلاح دا حکم په دې وجه اُشو چه) د ښځو حقوق دي (په سړو) لکه چه (په نفسِ وجوب کښې) په شان دَ هغه حقونو کوم چه په ښځو دي (د سړو چه هغوئ ته) دَ قاعدې (شرعي) په جوړ (ادا کول دي) او (دومره خبره هرومرو شته چه دَ ښځو په مقابله کښې) دَ سړو درجه اُچته ده (په دې وجه دَ دوئ (سړو) دحقوقو حیثیت دَ ښځو دَ حقوقو دَ حیثیت نه لوړ او اعلیٰ دې) او الله تعالیٰ زبردست (حاکم) دې (او) حکیم (هم) دې.

آیت سره تړلي مسئلې دبیان القرآن نه

(۱) ښځې دَ شهوت دَ غلبې له وجې دَ حیض په حالت کښې کور والې اُشو نو بنه تو به کول واجب دي او که څه خیرات هم دَ خدائې په نوم ورکړي نو ډېره غوره به وي.

(۲) دَ ښځې په دُستې اندام کښې کور والې کول حرام دې.

(۳) دَ لغو (عبث) قَسم دوه معنې دي. یو خو دا چه دَ تیرې شوې خبرې په باره کښې دَ دروغو قَسم بې ارادې دَ خولې نه اُوځي یا خو په اراده اُوځي. لیکن په خپل خیال کښې ئې صحیح ګڼړي مثال به ئې دا وي چه یو کس په خپل ګمان دَ زید دَ راتلو قسم اُخوري مګر هغه په واقع کښې نه وي راغلې یا په راتلونکې خبره بې اختیاره قسم ئې دَ خولې نه اُوځي. په دې قسم کښې ګناه نشته ځکه ورته "لغو" قسم وائي. په آخرت کښې به هم په دې ګرفت نه وي. دَ دې په ضِد په کوم قَسم چه ګرفت کیږي هغه یمین غموس بللې شي دا هغه قسم دې چه په تیرې شوې خبره قصدًا په دروغه خوړې شي دَ دې ګناه شته مګر امام ابوحنیفهؒ په دې کښې هم کفاره لازمه نه ګڼړي لکه څنګه چه په دې بیان کړي لغو قسم یقینًا کفاره نشته په دې آیت کښې د دې دوو هغو قسمونو بیان دې په کومو کښې چه کفاره نشته. دَ "لغو" دویمه معنیٰ هغه قسم دې په کوم سره چه کفاره هم لازمیږي. دَ منعقده قسم دا مطلب دې چه په راتلونکې داسې خبره

قسم اُخوړے شی کومه چه ترسره نشی.

(۴) ښځے بی بی سره دَ کور والی نهٔ کولو قسم خلور صُورتونه لری.

یو داچه مُوده اُنه تا کی. دویمه داچه دَ خلورو میاشتو مُوده اُنه تاکی. دریمه داچه دَ خلورو میاشتو نه زیاته مُوده اُتهاکی، خلورمه داچه دَ خلورو میاشتو نه کمه مُوده اُتهاکی. اول، دویم، دریم صُورت شریعت کښے ایلاء بللے شی او ددے دریے واړو حکم داد ے چه په خلورو میاشتو کښے دننه خپل قسم مات کړی او بی بی سره نزدیکت اُکړی نو کفاره به ورکوی او نکاح بهٔ مات نهٔ شو او که په خلورو میاشتو کښے دننه قسم مات نکړو، نو طلاق پریوتل اُس دغه ښځه ته بے دَ نکاح کولو رُجوع نشی کیدے خو نکاح به هم هله صحیح وی چه ښځه خاوند دواړه پرِ رضاوی، او په دے صوُرت کښے دَ حلالے ویستو هم ضرورت نشته. نیغ په نیغه نکاح صحیح دے.

دَ خلورم صورت حُکم داد ے چه په قسم ماتولو کفاره لازمیږی او که چرے تهاکلے مُوده تیره هم شی بیا هم طلاق نه غورځیږی (بیان القرآن)

# علوم او مسئلے

**دَ نر ښځے په مینځ کښے دَ فرق او دَ ښځے خاوند په مینځ کښے دَ یو بل دَ حقوقو او مرتبو په باره کښے یو جامع آیت**

وَلَهُنَّ مِثْلُ الَّذِیْ عَلَیْهِنَّ بِالْمَعْرُوْفِ دا آیت په دے معامله کښے د شرعی ضابطے حیثیت لری چه ښځے خاوندان یو تر بله کوم حقوق وظیفے (ذمه واری) او درجے (مرتبے) لری دَ دے آیت نه د پاسه او رُستو یه څو رکوع کانو کښے دَ دے ضابطے دَ اَهمو غړو بیان شوے دے.

**په اسلام کښے دَ ښځے مقام** مناسب ښکاری چه دلته د ښځے هغه مقام ښکاره کړے شی کوم چه ورته شریعت ورکړے دے که په دے څوک پوهه شی نو اَدو مرُو به ددے خبرے اقراری شی چه اسلام یو منصفانه او درمیانه نظام دے او دا به هُم اُمنی چه ددے نه ښکته. بو رته بل خیال لرل یا ښخی ئے نه مَنَل د بنیادم دَ پاره دُنیا او آخرت عظیمه او لویه خطره ده.

په زوره کتنه دا ښکاری چه دُنیا د بقا، آبادیٔ او ترقیٔ دپاره دوه څیزونه (ښځه او مال دولت د بنیادی اړا نړے حیثیت او شان لری. او بل طرف ته دا دواړه څیزونه دَ فتنو فساد دو

او د مرګ جوړېدو سبب جوړېږي. مطلب ئې په پوره ډول دا ښکاريږي چه دا څيزونه په اصل کښې د دُنيا د آبادئ، ترقئ او دَ دے د رونق ذريعه ده. کچرے دَ غه اصل او بنياد نه لږ هم اُخوا څوا شي نو دَ دُنيا ذورانئ او فتنو فساد دونو سبب جوړيږي.

دا د دواړه څيزونه قرآن کريم دَ انساني ژوند په نظام کښې په خپل خپل صحيح مقاماتو په دا سے ډول ايښي دي. چه ترې کښې فائدے او نفعے په لاس راځي او د فتنې فساد بوئ نئ هم ترې نه راځي. دَ مال دولت صحيح مقام، دَ هغے دګټلو ذريعے او لګولو طريقے او دَ دے دَ تقسيم او ويش مُنصفانه نظام يو مستقل علم دے چه دَ "اسلام د معاشي نظام" په نوم بيلے شي دَ دے بيان به انشاء الله تعالىٰ په بله موقعه اُشي. دحضرت مفتي صاحبؒ چاپ شوے رساله دَ "دولت تقسيم" په نوم هم دَ ضروري اشارو کار ورکوي.

اُس د دے وخت کښې د ښځو دَ هغه حقوقو او وظيفو (ذمه وارو) بيان دے کوم چه تير شوي آيت کښې په دے ډول اِرشاد دے چه" لکه څنګه په سړو دَ ښځو حقوق پوره کول ضروري دي دغه رنګ په ښځو دَ سړو حقوق پوره کول هم ضروري دي. خو دا فرق ضرور شته چه دَ سړو درجه دَ ښځو نه اُوچته ده." او هم په دے ډول مضمون په سورتِ نساء کښې دے، فرمائي:

اَلرِّجَالُ قَوّٰمُوْنَ عَلَى النِّسَآءِ بِمَا فَضَّلَ اللّٰهُ بَعْضَهُمْ عَلٰى بَعْضٍ وَّ بِمَآ اَنْفَقُوْا مِنْ اَمْوَالِهِمْ۔

يعني سړي حاکمان دي په ښځو، له دے وجے چه لوئ الله ورکړه يو له په بل، او له دے وجے چه لګولي دي هغوئ (سړو) خپل مالونو

## دَ اسلام نه په وړاندے معاشره کښې دَ ښځے درجه.

دَ جاهليت دَ زمانے ټولو قومونو ښځے لره دَ کوټي استعمال دَ يو څيز حيثيت ورکړے وو. دَ څارو و په شان به خرڅيدے شوے دَ خپل واده بنا دَ کولو هيڅ اختيار ئے نه لرلو د دوئ اختيار د منو به چه چانته ورپناه کړے دَ هغے نه بغير به ئے بل ورکړ نه دَوو. دَ خپلوانو په ميراث کښې دَ دوئ برخه نه وه بلکه د نورو څيزونو په شان به دوئ دَ سړو په ميراث کښې راتلے او دَ سړو ملکيّت (مال دولت) به ګڼړے شوے دَ دوئ په ملکيّت او قبضه کښې به هيڅ نه وو او که به نوم به څه وُو هم نو دَ سړو دَ اجازت نه بغير به ئے په دغه مال کښې هم دخل نه شو لرلے. دَ دے خاوند ته پوره اختيار وو چه دَ دے (ښځے) مال ئے په څه ډول چه غوښتو، په هر ځائے

کښې تکوړې شوې او دې به دَ تیوس کونو حق هم نه لرلو تر دې چه ځنې مغربي ملکونو کښې
(چه ډیر ترقي یافته بللې اُوګڼړې شي) ځنې سړو به ښځه هډو بنیادمه نه ګڼړله۔

په دین او مذهب کښې دَ ښځې برخه نه وه، نه دې ته دَ عبادت کولو حق وو، او نه به د جنت حقداره ګڼړلې شوه۔ د رُوما په ځنې مجلسونو کښې دا فیصله په مشورې سره شوې وه چه دا یو پلیت ځناور دے۔ کوم چه رُوح نه لري دَ یو پلار دَ پاره به دا روا ګڼړلې شو چه هغه خپلې ژوندۍ لُونړه په زمکه کښې ښخې کړي بلکه دا عمل به دَ عزّت نښه او دَ شرافت معیار ګڼړلې شو، ځنې خلقو دا خیال لرلو چه دَ ښځې په قاتل نه څو قصاص شته او نه خودیت او دَ مړشوی خاوند سره به دَ هغه ښځه ژوندۍ په اور ستي کولې شوه۔ دَ رسول کریم صلی الله علیه وسلم دَ ولادت باسعادت نه پس او دَ هغوی دَ نبوت نه وړاندې په ۵۸۶ء کښې فرانس دَ ډیرو اختلافاتو نه پس دا قرار داد پاس کړو په هغې کښې صرف دومره اُمنلې شوه چه ښځه یو بنیادمه ده مګر دَ سړي دَ خدمت دَ پاره ده او دا ئې په ښځه لوئې احسان اُګڼړلو۔

غرض دا چه دَ دُنیا ټولو قومونو او مذهبونو ښځې سره هغه قِسم سلوک کولو چه دَ هغې په آورېدو غوږ زیک کیږي دے عاجز مخلوق سره به نه دَ عقل پوهې په جوړ معامله شوې شوه او نه دَ عدل او انصاف په جوړ۔

په رحمة للعلمین صلی الله علیه وسلم او دهغه په راوړلی شوی دینِ حق باندې قربان شم چه دا انسان سترګې پرانستې۔ انسان ته ئې دَ انسان د قدر او عزت یو طریقه اُښودله، دَ عدل و انصاف قانون ئې جاری کړو دَ ښځو حقوق ئې په سړو داسې لازم کړل لکه څنګه چه دَ سړو حقوق په ښځو لازم دي هغه ئې دَ سړو په شان آزاده خپل اختیاره او دَ خپل مال وجان داسې مالکه اُګټاکله چه یوې ښځې لره خپل پلار نیکه هُم په نکاح کولو نشي مجبوره کولې او که چرې دَ هغې دَ اجازت نه بغیر بل چا ته په نکاح کړې شوه۔ نو ددې په انکار به نکاح باطلیږي۔ او ددې په منظورولو به صحیح کیږي دَ دې په مال کښې هیڅ یو نارینه دَ دې دَ اجازت او رضا نه بغیر هیڅ قِسم دخل مُداخلت نشي کولې۔ دَ خاوند دَ مرګ یا طلاق ورکولو نه پس دا خپل اختیاره ده څوک پرې ور زیاتے نشي کولې۔ په میراث کښې دنارینه وُ په شان ښځه هم برخه لري۔ په ښځه مال لګولو او دَ هغې رضا ساتلو لره شریعتِ محمدیه علیٰ صاحبها الصلوٰة والسلام عبادت ګټلې دے۔ که چرې خاوند دَ هغې واجب حقوق لره نه ورکوي

کوی نو هغه د اسلامی عدالت په ذور خپل حقوق یا طلاق اخستے شی.

## ښځو لره دَ سړو دَ مشرئ او انتظام دَ لاندې نه ویستل هم دَ دُنیا دَ فساد دَ پیرلوئے سبب دے

ښځو لره خپل مُناسب حقوق نهٔ ورکول زور ظلم سنګدلی او بدبختی وه کوم

لره چه اسلام ورکه کړه دغه رنګ دے لره بے مُهاره پریښودل او دَ سړو دَ مشرئ او انتظام نه آزادَول او دَ خپل ګذران او دو تهی ځائے کټلو دَپاره هم دا ذمه داره جوړول دَ هغے حق تلفی او بربادی ده نه دَ هغے دَ بدن جوړښت دا پیټے اُچتولے شی. او نه دَ کورنی کار دو نو ذمه داری او دَ خپل اولاد دَ پالنے داعتبار کار دَ دغے پیټی پورته کولو دے ته څه موقعه ورکوی دے نه علاوه دَ سړو دَ مشرئ او انتظام نه په وتلو سره ښځه دَ ټولے اِنسانی معاشرے دَپاره لو یه خطره جوړیږی په دنیا کښے تر فساد او مرګ جو بله را پورته کیږی او دے عمل نه را پورته شوے قسما قسم فتنے پیدا کیدل لازمی او دَ امروزه لید لو کتلو خبرے دی، هم دا وجه ده چه قرآن کریم دَ ښځو دَ واجب حقوقو دَ بیان سره سره دا هم ارشاد اُکړو چه "وَلِلرِّجَالِ عَلَيْهِنَّ دَرَجَةٌ" دَ سړو درجه دَ ښځو نه اُوچته ده او په نورو ټکو کښے مطلب ئے دا دے چه سړی دَ ښځو منتظمان او ذمه داران دی.

مګر څنګه چه دَ اسلام نه وړاندې "جاهلیتِ اُولیٰ" کښے دَ دُنیا ټول قومونه دَ غلطئ ښکار شوی وو چه ښځو لره به ئے دَ کورَ نو توکو یا دَ خارو و په شان سا تلے دغه رنګ دَ اسلام دَ تنزل په زمانه کښے دَ "جاهلیتِ اُخریٰ" دور شروع شو دَ پرومبئ غلطئ را تمبیدل دَ هغے په ضد دَ دویمے غلطئ په صورت کښے کولے شی چه په ښځو باندې ولاړ دَ سړو دَ دوموره مشرئ نه هُم دَ خلاصید او خلاصَولو پرله پسے کوشش روان دے چه په نتیجه کښے ئے فحشا و بےحیائی عامه شوه دُنیا د جنګ جګړو او دَ فساد کورجوړ شو. مرګ جوبلے دوموره ډیرے شوے چه "جاهلیتِ اولیٰ" ئے اُشرمَولو دَ عربو یو مشهور متل دے "اَلْجَاهِلُ اِمَّا مُفْرِطٌ اَوْ مُفَرِّطٌ" جاهل دَ حد نه زیاتے کوی یا کمے خو په خپل حال برابر او په میانه روئ هیچرے قائم نه پاتے کیږی.

اُس هم دا حال دَ زمانه ساز و خلقو دے چه یا خو به ئے ښځه بنیادمه نه بلله او نه ګڼله او چه ترقی ئے اوکړه نو دَ ښځو په تخت پروت دَ سړو دَ مشرئ او منتظمئ جغ ئے اُغورځولو کوم چه دَ دُنیا دَپاره دَ حکمت او ښیګړے خبره وه دَ دے بد انجام مونږ په خپلو سترګو

دینؤ او یقین اوکړئ چه ترکومے دَ قرآنی اِرشاد په تړانګ تیټ نشئ نو فتنے فسادونه به ورځ تر ورځ زیاتیږی۔

اُسنی حکومتونه په دُنیا کښے دامن او سکون د پاره اَمروزه نوی نوی قانونونه جوړوی دے دَپاره نوے نوے اِدارے قائموی په کروړونو رُوپئ پرے لګوی لیکن دکومے چینے نه چه فتنے راخیژی دَ هغے تپوس او هیڅوک خیال نشی لرے. ځکه دُنیا کښے دَ فتنو فسادونو، مرګ ژوبلے، جګړو او جنګونو دَ اسبابو دَ تحقیق دپاره یو کمیشن جوړ کړے شی نو ځما په خیال کښے دَدے اسباب نیم په نیمه نه زیات بنځه او دَ هغے بےمهاره آزادی به را اُخیژی مګر دَموجوده زمانے د هوښیارو خلقو سترګے ځکه دَدے نه پټے دی چه هغوئ نفس پرستئ کښے تردے حده رسیدلی دی چه دَ نفسانی خواهشونو په ضد نڅیر بیګړے هیڅ یو بندیز نه شی زغملے۔

الله تعالیٰ دِ مُسلمانانو زړونه دَ ایمان په نور روښانه کړی او په کتاب الله او د حضور اکرم صلی الله علیه وسلم په هدایتونو دِ دَپوره عمل کولو توفیق مونږ ته راکړی ځکه چه هم داخیزونه د دُنیا او آخرت دَ نیک بختئ پنګه ده۔

مسئله : دَدے آیت په تړس کښے دا معلومه شوه چه قرآن حکیم بنځے خاوند ته خپلے خپلے ذمه وارئ داسے اُښودلے چه دَ سړو په ذمه د بنځو حقونه اداکول داسے فرض دی ځنګه چه دَ بنځو په ذمه د سړو حقونه اداکول فرض دی. په دے کښے دے خبرے ته اشاره ده چه بنځه خاوند دِ دَ خپلو خپلو حقونو دغوښتے په ځائے دَ خپلو خپلو ذمه وارو خیال ساتی که داسے اُشو نو دَ حقونو دَ غوښتلو قضیه به دَ مینځه اُوځی. ځکه چه دَ سړی ذمه دارئ هم دَ بنځے حقوق دی او دَ بنځے ذمه دارئ هم دَ سړی حقوق دی چه هر یو تَن خپلے ذمه وارئ پوره کړی نو دَ هر یو تَن حقوق به دَ هغے په تړس کښے پوره پوره ادا شی نن صبا دَ ټولے دُنیا جګړے هم دے نه راپورته کیږی چه هر یو کَس دَ خپلو حقوقو غوښتنه په وړاندِ لری مګر دَ خپلے ذمه دارئ پوره کولو هډو خیال نهٔ لری۔

ددے نتیجه دا شوه چه دحقوقو دَ غوښتنے جنګونه جوړشوُل کوم چه دَ حکومتونو، عوامو، بنځو خاوندانو او دَ هر وګړی په مینځ کښے روان دی۔ دَ قرآن دے اشارے دَ خبرے اړخ داسے بدل کړو چه هر کس دِ خپلو حقوقو غوښتلو کښے دَ نرمئ، چشم پوشئ، معافئ

او هر کله ئې نه کار واخلي او په خپلو ذمه واریو او کولو دِ ذور و د کړي. په دے قرآني تعليم که عمل اُشي نو دَ کو دَ نو بلکه دَ ملکونو او حکومتونو اکثر جګړے به ختمے شي۔

**د ښځے خاوند په مینځ کښے دَ درجے اُچتوالے صرف په دُنیا کښے کیدے شي په آخرت کښے به هیچرے دا قانون نشي چلیدے،**

د دُنیا د انتظام، انساني فطرت او دَ ښځو دَ خیر ښیګړے غوښتنه داوه چه سړي دِ نه یوازے دَ ښځو حاکمان او محافظان جوړ کړے شي۔ بلکه داوِ دَ هغوئ فرض اُتا کلے شي۔ دا بیان په "اَلرِّجَالُ قَوّٰمُوْنَ عَلَی النِّسَآءِ" کښے شوے دے لیکن دے نه دا نه ثابتیږي چه ټول سړي دَ ټولو ښځو نه بهترا و غوره دي ځکه چه دَ الله تعالیٰ په نزد په آخرت کښے دا قسم غوره والے یوازے په ایمان او عملِ صالح انحصار دے۔ داسے کیدے شي چه هلته به ځنے ښځے دَ طاعت او عبادت په سبب په ډیرو سړو اُوچتے درجے لري لکه څنګه چه دَ قرآن وحدیث په صفا ټکو کښے دا بیان راغلے دے۔

دَ قرآن کریم دَ واضح بیان په جوړ دَ شرعي احکامو او دَ عملونو دَ جزا او سزا په لحه کښے اګرچه سړي او ښځے برابر دي۔ کوم ځائے چه فرق شته نو هلته ئے دا فرق په وضاحت سره بیان کړے دے لیکن په عامه توګه خِطاب سړو ته دے۔ او دے دَ پاره دَ مذکر صیغے اِستعمال شوي دي دا ډول بیان یوازے د قرآن کریم نه دے بلکه دَ ټولو حکومتونو قوانین هم دَ مذکّر په صیغو کښے بیان شوي دي۔ سره دَ دے چه قانون دَ ښځو سړو دواړو دَ پاره یوشان او برابر وي دَ دے اصلي وجه هغه کیدے شي چه د قرآن کریم په آیت کښے اُس وړاندې بیان شوه چه دَ سړو درجه په یو حیثیت سره په ښځو اوچته ده۔

کیدے شي چه بله پټه وجه ئے دا هم وي چه دَ مستورا تو (زنانو) دَ ذکر کولو سَتر او پرده بهتره ده خو کله چه دا سوال پیدا شو چه هر ځائے دَ سړو ذکر دے دَ ښځو ذکر دلے نشته لکه څنګه چه اُمّ المؤمنین حضرت اُمّ سلمه رضی الله تعالیٰ عنها دَ حضورِ اکرم صلی الله علیه وسلّم نه سوال کړے وو نو دَ سورۂ احزاب دا آیت نازل شو:

اِنَّ الْمُسْلِمِيْنَ وَالْمُسْلِمٰتِ وَالْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنٰتِ وَالْقٰنِتِيْنَ وَالْقٰنِتٰتِ - الآية

په کوم کښے چه دَ سړو سره سره دَ ښځو مستقل ذکر واضح کړے شو چه طاعت، عبادت او دَ دے له وجے الله تعالیٰ سره نزدیکت، دَ هغه رضا او دَ جنّت په درجو حاصلولو کښے

زنانه د نارینوؤ نه کے نه دی (دا دروایت په نسائی، احمد او تفسیر ابن جریر وغیره کښے په تفصیل سره ذکر دے)

او په تفسیر ابن کثیر کښے دا دروایت هم شته چه کُښے مُسلمانے زنانه دَ ازواجو مطهراتو خوا ته راغلے او تپوس ئے اُوکړو چه په قرآن کریم کښے ځائے په ځائے د نارینوؤ ذکر دے کښے ځایونو کښے دَ ازواجو مطهراتو مستقل ذِکر هم شته خو دَ عامو مسلمانانو زنانوؤ ذکر نشته نو دا آیت نازل شو.

خلاصه دَ خبرے دا شوه چه په زنانوؤ یوائے د دُنیوی انتظام په لړ کښے د زنانوؤ د خیر ښیګړے په غرض نارینوؤ لره په درجه کښے لوړ والے ورکړے شو هسے خو دَ آخرت په جزا سزا او درجو کښے هیڅ فرق نشته دَ قرآن کریم په یو بل آیت کښے هم دا مضمون په ډیر وضاحت دا رنګ بیان شوے دے

| کوم نارینه یا زنانه چه نیک عمل اُوکړی او هغه مؤمن هُم وی نو موږ به ورته پاکیزه ژوند ورکړو. | مَنْ عَمِلَ صَالِحًا مِّنْ ذَكَرٍ اَوْ اُنْثٰى وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَلَنُحْيِيَنَّهٗ حَيٰوةً طَيِّبَةً (الآیة) |
|---|---|

دَ دے تمهید نه پس دَ اصل آیت الفاظ په زور نظر اُګوړئ فرمائی "وَلَهُنَّ مِثْلُ الَّذِىْ عَلَيْهِنَّ" یعنی دَ دوئ حقونه د سړو په ذمه دی لکه څنګه چه دَ دوئ په ذمه د نارینوؤ حقونه دی، صفا ښکاری چه دَ زنانوؤ حقونه په آیت کښے اول بیا ورپسے د نارینوؤ حقونه ذِکر دی، دَ دے یو وجه دا ده چه نارینه خو به خپل قوّت او دَ خدائے تعالیٰ ورکړے شوی اُختیار او لو ړوالی په وجه دَ زنانوؤ نه خپل حقونه هر رنګه پوره کولے شی. خو دَ زنانوؤ دَ حقوقو فِکر پکار دے چه هغوئ په دے ډول خپل حقونه نشی حاصلولے.

دویمه اشاره دا ده چه دَ زنانوؤ حقونو ادا کولو کښے دِ نارینه وړاندِ والے کوی. دلته دَ "مِثْل" مطلب دا نه دے چه کوم کار نارینه کوی هم هغه رنګ دِ زنانه کوی. یا بالعکس ځکه چه نظرتاً د نارینوؤ او زنانوؤ کار دو نو کښے فرق او جُدا والے دے بلکه اصلی مطلب ئے دا دے چه خپلے خپلے ذمه داری پوره کول په هر یو فرض دی. او دَ دے د نه کولو یا پکښے د کوتاهی کولو سزا به هم دوا ړو ته یو شان ورکړے کیږی.

دلته دا هم کتل پکار دی چه په یو لنډه او مختصره جُمله کښے دَ حقوقو او فرائضو یو عظیم الشان دفتر څنګه ځائے کړے دے. ځکه چه دَ آیت په مفهوم کښے د زنانوؤ او بالعکس ټول حقوق یې کښے داخل او شامل دی. (بحر محیط) د دے جُملے په آخر کښے د "بِالْمَعْرُوْفِ" لفظ په راوړلو سره دَ دوئ په

منځ کښې د پېښېدُونکو جګړو خاتمه ئې اُکړه. د حقوقو اداکول په معرُوفه طریقه سره (بِالْمَعْرُوْفِ) اداکول دا معنیٰ لري چه هغه دِ شرعًا هم بد او ناجائز نه وي او په عام عادتونو، دواړو کښې هُم په دے کښې سختي او زیاتے نه وي. حاصل ئې دا شو چه د ښځې خاوند په خپل منځ کښې کورني حقونه پوره کول او یو بل له رسولو نه پس کول صرف په ضابطے اَوره کول نه دي پکار بلکه د عام عرف او عادت په اعتبار سره هم کتل پکار دي چه یو بل ته ضرر او نقصان ونه رسي، مثلاً بے رُخي او بے التفاتي یا داسے نورے خبرے خو نشته کوے چه عُرف او عادت کښے نامناسب او بدے ګڼړلے شي کوے چه ضابطے لاندې نه راځي. د دے نه پس فرمائي "وَلِلرِّجَالِ عَلَيْهِنَّ دَرَجَةٌ" چه ئې مشهور مطلب دا اَخستے شي چه دوا په اپخپل حقونه برابر دي خو بیا هم الله تعالیٰ نارینو له په زنانو یو قسم اوچتوالے او حاکمیت ورکړے دے په دے کښې نور ډیر حکمتونه هم دي کوم ته چه په آخر د آیت کښې په "وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ" سره اشاره شوے ده لکه چه حضرت عبد الله بن عباس رض هم د دے جُملے مطلب دا بیان کړے دے چه "د زنانو په نسبت نارینو له الله تعالیٰ لویه درجه ورکړے ده هغوئ له پکار دي چه زغم نه کار اَخلي کچرے د زنانو له اړخه د دوئ په حقونو کښې څه کوتاهي او تقصیر اُشي، نو د خپلے دے درجے په جوړه دِ هغے له زغمي او صبر دِ کوي او بله دا چه د هغوئ (زنانو) په حقونو کښے دِ کوتاهي نه کوي (قرطبي)

اَلطَّلَاقُ مَرَّتٰنِ ص فَاِمْسَاكٌۢ بِمَعْرُوْفٍ اَوْ تَسْرِيْحٌۢ بِاِحْسَانٍ ط

طلاق رجعي دي دوه کرتو پورے، د دے نه پس ساتل دي د دستور په جوړه، یا پرېښودل په ښه ډول،

وَلَا يَحِلُّ لَكُمْ اَنْ تَاْخُذُوْا مِمَّآ اٰتَيْتُمُوْهُنَّ شَيْـًٔا اِلَّآ

او تاسو له روا نه دي چه واخلئ خپل درکړے شوے (څیز) ښځو نه، مګر هر کله چه

اَنْ يَّخَافَآ اَلَّا يُقِيْمَا حُدُوْدَ اللّٰهِ ط فَاِنْ خِفْتُمْ اَلَّا

خاوند ښځه دواړه ویریږي د دے خبرے نه چه ټینګ به اُنه کړے شي حکم د الله تعالیٰ. بیا که تاسو خلق ویریږئ

يُقِيْمَا حُدُوْدَ اللّٰهِ لا فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا فِيْمَا افْتَدَتْ بِهٖ ط

د دے خبرے چه دا دواړه به ټینګ اُنه ساتلے شي حکم د الله تعالیٰ نو څه ګناه نشته په دواړو په دے چه ښځه بدله ورکړي

تِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ فَلَا تَعْتَدُوْهَا ۚ وَمَنْ يَّتَعَدَّ حُدُوْدَ

دا د الله تعالیٰ ټاکلې پولې دي، نو له دې نه وړاندې مه تیریږئ او څوک چې تیر شو د الله تعالیٰ د

اللّٰهِ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿۲۲۹﴾ فَاِنْ طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ

ټاکلې شوو پولو نه، نو هم دا خلق دي ظالمان. بیا که چېرې دا ښځې طلاق کړه (دریم وار) نو

لَهٗ مِنْۢ بَعْدُ حَتّٰى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهٗ ۗ فَاِنْ طَلَّقَهَا

اوس دوانه ده ده لره دغه ښځه تر هغه نه پس څو پورې چه نکاح اونکړي بل خاوند سره، بیا که طلاق ورکړي دویم

فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَآ اَنْ يَّتَرَاجَعَآ اِنْ ظَنَّآ اَنْ يُّقِيْمَا

خاوند نو څه ګناه نشته په دې دواړو چه بیرته یو ځای شي، که خیال ئې لرلو چه ټینګ به لري حکم دالله

حُدُوْدَ اللّٰهِ ۗ وَتِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ يُبَيِّنُهَا لِقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ ﴿۲۳۰﴾

تعالیٰ، او دا پولې ټاکلې شوې دي دالله تعالیٰ بیانوي دے لره د پاره د پوهیدونکو.

## د تفسیر خلاصه

طلاق دوه واره دے بیا (دوه واره طلاق ورکولو نه پس دوه اختیاره دي) چه رجوع اوکړي ښځې لره د قاعدے په جوړ اوساتي یا (دا چه رجوع اونکړي عدت پوره کیدو ته پریږدي او دا شان) په ښه طریقه ښځې لره پریږدي دي. او تا سو د پاره دا خبره روا نه ده چه د بیبیانو د پریښودو په وخت د هغوئ نه څه واخلئ هم اګرچه هغه اغستې شوے د هغې مال نه وي نه وي چه هم تا سو هغوئ ته په مهر کښې ورکړے وي یو صورت البته روا دے هغه دا دے چه څوک ښځه خاوند دا سے وي چه دواړو نه خطره وي چه د ښځې خاوند په باره کښې به هغوئ د الله تعالیٰ ټاکلے ضابطے ټینګے اونه شي ساتلے ګڼړے تا سو ته (ښځې خاوند ته) دا ویره وي چه هغه دواړه به خدائ ونډي ضابطے ټینګے اونه شي لرے نو په دواړو به څه ګناه نه وي (د هغې مال په ورکړه دا کړه کښې) چه د کوم په ورکولو سره ښځه خپل ځان خلاص کړي (په شرط د دے چه مهر نه زیات نه وي) دا ټول احکام خدائي ضابطے دي تا سو دے

نه پوهېږي او څوک او چه کوم کس خدائي ضابطې ماتې کړې او پوهه نه لري نو دا سې خلق هم خپل نقصان کوونکي دي. بیا کچرې دوه طلاقونه پس دریم طلاق هم ورکړي نو بیا هغه ښځه د دې دریم طلاق نه پس په هغه سړي ته روانه نه وي ترڅو چه هغه د دې خاوند نه بغیر دویم سړي سره (د عدت نه ورستو) نکاح اونکړي (او دغه ښځې خاوند حقونه ادا نه کړي یعنې جماع اونکړي) بیا کچرې دا دویم خاوند هغې ته طلاق ورکړي (او د هغې عدت هم تېر شي) نو په دې دواړو په دې کښې هیڅ ګناه نشته چه دوباره په خپل مینځ کښې نکاح اوکړي او په دستور بیا یوځائې شي خو په شرط د دې چه دا دواړه په خپلو ځانو نو دا اعتماد لري چه دا تلونکي وخت کښې به خداوندي ضابطې ټینګې اولري او دا خداوندي ضابطې دي حق تعالی هغه لره بیا نوي دا سې خلقو د پاره چه عقلمند دي.

# علوم او مسئلې

د طلاق نکاح احکام د پټول قرآن کریم په ډېرو آیتونو کښې راغلي دي مګر دا څو ذکرشوي آیتونه په دې معامله کښې دا هم ضابطو شان لري د هغې د پېژندلو د پاره د نکاح شرعي حیثیت پېژندل ضروري دي.

**د نکاح او طلاق شرعي حیثیت او حکیمانه نظام**

د نکاح یو شان د یو تربله معاملې او معاهدې په څېر دې لکه د خرڅولو اخستلو او ورکړه راکړه په رنګ او دویم شان ئې د سنت او عبادت په څېر دې، په دې د ټول امت اتفاق دې چه نکاح د عامو معاملو او معاهدو نه پورته د عبادت او سنت یو شرعي شان لري له دې وجې د نکاح کولو د پاره په اجماع د امت سره څه دا سې شرطونه ضروري دي چه په عامو معاملو یعنې خرڅولو اخستلو کښې نه وي.

اول خو دا چه هرې یوې ښځې او هر یو سړي سره نکاح نشي کېدې په دې باره کښې شریعت یو مستقل قانون لري د کوم له مخه چه د ډېرو ښځو او سړو یو تر بله نکاح نشي کېدې.

دویمه خبره دا ده چه د ټولو معاملو او معاهدو کولو او تر سره کولو د پاره ګواهي شرط نه ده د ګواهۍ هله ضرورت پېښېږي کله چه فریقینو کښې اختلاف پیدا شي لیکن د نکاح معامله د دې په عکس ده حکم چه دا تر هغې کېدې نشي ترڅو چه ګواهان نه وي کچرې یو ښځه او سړي

يو تر بله بغير د ګواهانو نکاح اوکړي چه اختلاف يا انکار هم يو تر بله نه لري بيا هم دغه نکاح به شرعًا باطل او کالعدم (نيشت) وي ترڅو چه د ګواهانو په وړاندې د دواړو ايجاب او قبول نه وي شوې بلکه سُنّت طريقه داده چه د نکاح کولو عام اعلان اوشي دغه رنګ نور ډير شرائط او طريقې شته کوم چه د نکاح دپاره ضروري يا سُنّت دي۔

د امامِ اعظم ابوحنيفهؒ او د نورو ډيرو امامانوؒ په نزد په نکاح کښې د معاهدے او معاملے په نسبت د عبادت او سُنّت شان غالب دے په کوم چه د قرآن او حديث دليلونه قائم دي

د نکاح اِجمالي حقيقت معلوم شو نو پس طلاق هم داسے اوګڼئ ځکه چه د طلاق خلاصه داده چه د نکاح معامله او معاهده ختم کړے شي څنګه چه اسلامي شريعت د نکاح معامله او معاهده د عبادت په رنګ کښې د عامو معاملو او معاهدو نه لوړه ساتلې ده او په دے ئې ډيرے پابندئ لګولي دي دا رنګ د دے معاملے ختمول ئې هم د نورو عامو معاملو او د کړو اکړو په شان آزادے نه دي ساتلي چه څوک کله او څنګه چه غواړي نکاح ختمولے شي او بل سره يکدم دا معامله جوړولے شي بلکه د دے دپاره ئې يو خاص حکيمانه قانون جوړ کړے دے د کوم بيان چه په ذکر شوي آيتونو کښې راغلے دے۔

د اسلامي تعليماتو اصل خو دا داده چه د نکاح معامله او معاهده دِ د تول عمر دپاره وي د ختمولو او ماتولو دِ چرے هم څه خبره پيښه نه شي ځکه چه د دے د ختمولو اثر يواځې په فريقينو (ښځه خاوند) نه پريوځي بلکه د نسل او اولاد تباهي او بربادي او ځينې وخت د نورو ډيرو کورنو او قبيلو په مينځ کښې تر فساد پورے رسيږي او په پوره معاشره د دے بد اثر پريوځي هم دغه وجه ده چه کوم اسباب او څيزونه چه د دے معاملے د ورانولو سبب جوړيدے شي د قرآن او سنّت تول ذکر شوي هدايات په دے اهتمام دي چه د دوي دا قائم تعلق دِ تل تر تله همېدا رنګ مضبوطيږي او ماتيږي دِ نه۔ د ناجوړښت په صورت کښې اول د يو بل د پوهولو بيا د خبرداري او زورنے هدايات ورکړے شوي دي کچرے خبره زياته شي او په دے هم کار نه کيږي نو د جوړښت را وستو دپاره د خپل ټبر او کورنۍ څوک ثالثونه د حَکَم او دريمګړي جوړولو هدايات ئې ورکړي دي۔ دا خبره د څومره حکمتونو نه ډکه ده ځکه که خبره بهر ته اوځي نو د ناجوړښت زياتيدو او په زړونو کښې د زيات خيرې او لرے والي پيدا کيدو خطره ده ځکه خو ارشادِ قرآني دے:- فَابْعَثُوا حَكَمًا مِّنْ أَهْلِهِ وَحَكَمًا مِّنْ أَهْلِهَا ۔

لیکن ځینې وخت داسې صورتونه هم پیښیږي چه د جو ړښت راوستو تول کوشش نه بیکاره شي او په نکاح باندې دا پاته فائده و په ځائے د دواړو بیا یوځائے اُسیدل عذاب جوړ شي. په داسې حال کښې دا تعلق ختمول د دواړو آړخیز آرام او سلامتیٔ لارجوړه شي هم دا وجه ده چه اسلامي شریعت د ځینې نورو مذهبونو برعکس دا مزے نه شلیدونکے اُنه ټاکلو بلکه د طلاق او د نکاح فسخ کولو قانونُ ئے جوړ کړو د طلاق اختیارئے صرف سړي ته ځکه ورکړو چه په دې کښې د ښځے په نسبت عادتاً د سوچ فکر او زغم ماده ډیره وی د ښځے په لاس کښې ئے دا اختیار ځکه ورنکړو چه د سړي په نسبت دا د وخت اثرات او زور ډیر ژر قبلوي چه د طلاق سبب جوړیږي.

لیکن ښځه ئے هم د دے حق نه بيځي محرومه نه کړه چه تل تر تله د خاوند د ظلم لاندې دیږي بلکه دا حق ئے ورکړو چه خپله معامله د شرعي او اسلامي عدالت ته وړاندې کړي، خپل مُشکلات او شکایات د ثابت کړي او د دغه عدالت په ذریعه د طلاق حاصل کړي، یا نکاح د فسخ کړي.

خاوند ته خو ئے د طلاق پُوره اختیار ورکړو مګر ورسره ئے دا هم اُفرمائیل چه د دے اختیار استعمالول او په عمل کښې راوستل د الله تعالیٰ په نزد ډیر ناخوښه او بد دي د دے اجازت صرف د مجبوریٔ په حالت کښې دے لکه حدیث شریف کښې ارشاد دے.

أَبْغَضُ الْحَلَالِ إِلَى اللهِ الطَّلَاقُ | د الله تعالیٰ په نزد د ټولو نه زیات ناخوښه او بد په حلال خیزونو کښې طلاق دي.

دویمه پابندي ئے دا اُلګوله چه د قهر غصّے په وخت یا د ناګهاني او معمولي ناچوړښت په وخت کښې دا اختیار (د طلاق) نه استعمالوي هم دا حکمت دے چه د حیض په حالت کښې ئے طلاق ورکول منع اُټاکل او په هغه پاکیٔ کښې هم چه پکښې جماع شوي وي وجه ئے دا ده چه د ښځے عدّت پرې ډیر اوږد دیږي او ورته تکلیف زیاتیږي دے دواړو خبرو د پاره قرآن کریم داسې ارشاد فرمائی، "وَطَلِّقُوْهُنَّ لِعِدَّتِهِنَّ" یعنی که د طلاق ورکولو ضرورت پیښ شي نو په داسې وخت کښې طلاق ورکوئ چه بے تعیسه د ښځے عدّت اُوږد نشي د حیض په حالت کښې طلاق ورکولو سره به دغه حیض په عدّت کښې نشي شمیرلے - دے پسے به ټول طُهر هم دا تیرشي او ورپسے د بل حیض نه به عدّت شمیرلے شي - او په کوم طهر کښې چه جماع شوي وي.

په هغه سره د حمل کید و امکان شته چه و رسره به د حمل تر زیګید و پورے عدت ډیر اوږد شي.
د طلاق ورکولو دپاره د طُهر وخت ټاکلو کښې دا حکمت هم کیدے شي چه د انتظار په ډیر چاؤ (وقفه) کښې ډیره ممکنه ده چه غُصه سره شي مُعافي او غیره وخلاص رفع دفع اُشي او د طلاق اراده بیخي ختمه شي.

دریم بندیزئے دا اُلګولو چه د عام ورکړه راکړه او خرڅولو اغستلو او نورو معاملو پشان د نکاح ماتولو فسخ کولو او طلاق ورکولو معامله ډِ هم داسے نه وي چه کله دا کار اُشي نو معامله ډِ سمدستي ختمه شي دوا ړه اړخونه ډِ سمدستي داسے آزادي شي چه څه ئے زړه غواړي هغسے ډِ اُکړي بلکه د نکاح ماتولو د پاره ئے روښے د درے طلاقو ورکولو صورت اُټاکلو بیائے پرِ د عدت بندیز اُلګولو ځکه چه د عدت پوره کولو پورے د نکاح د معاملے ډیرا ترات به باقي وي. بنځے د پاره به دویم نکاح کول روا نه وي د سړي د پاره به څه بندیزونه باقي وي.

څلورم بندیزئے دا اُلګولو چرے په ښکاره او صفا لفظونو کښې یو یا دوه طلاقه ورکړے شو نو د ے سره سمدستي نکاح نه ماتیږي بلکه دا به د عدت تر پوُره کید و پورے هم داسے باقي وي چرے په عدات کښې دننه رجوع اُکړي نو پُروښے نکاح به په خپل حال پاتے شي.

خو د رجوع کولو اختیارئے صِرف د یو یا دوُو طلاقو په صوَرت کښې ځکه راکیرکړو چه څوک ظالم خاوند داسے اُنشي کړے چه طلاق ډِ د ځمار ورکوي او په بیا بیا رجوع کولو سره ډِ بنځه تول عُمر په قید او بند کښې ساتي بلکه په دریم طلاق ورکولو سره بیا د رجوع کولو اختیار سړي د پاره پاتے نه شو کیدے بیا هم د دے نه پس دوئ دوا ړه په رضا صلاح خپل مینځ کښې نکاح کول غواړي نو د دے د پاره ئے دخاص صورتونو او بندیزونو نه بغیر دوباره نکاح کول روا نکړل رچه بیان به ئے د دے نه پس کیږي)

په تیرشوي آیتونو کښې د طلاقو د دے نظام ضروري احکام بیان شوي دي. په ذوره کتنه به دا معلومه شي چه "اَلطَّلَاقُ مَرَّتٰنِ" طلاق دوه کرته دي بیا په دواړو طلاقو کښې ئے دا ځائے اُساتلو چه په دے سره نکاح بیخي ختم نشو. بلکه د عدت پوره کید و پورے سړي لره اختیار دے چه په رجوع کولو سره خپله بنځه په خپل نکاح کښې همدا رنګ اُساتي یا عدت پوره کید و پورے ورته رجوع اُنکړي او د پُروښي نکاح تعلق ختم شي نکه قرآن فرمائي "فَاِمْسَاكٌۢ بِمَعْرُوْفٍ اَوْ تَسْرِيْحٌۢ بِاِحْسَانٍ" چه یا خو ډِ د شرعي قاعدے په جوړ په رجوع کولو سره ډِ بنځه په خپل نکاح

هغه لره ننګ اُسانتی یا خو بیا په ښه شان او په ښه په دل عدت پوره کیدو نه پریږدي چه هغه (ښځه) آزاده شي۔

دَ دریم طلاق بیان لا پاتې دے چه ترمنځه یوه بله مسئله راغله کومه چه په داسې حالاتو کښې پیښیږي هغه دا ده چه ځنې ظالمان خاوندان ښځه ساتل نه غواړي. نه دَ هغې حقونه اداکوي نه طلاق ورکوي نو ښځه تنګه شي چه مجبورئ نه ئې خاوند ناروا فائده اخلي، و طلاق ورکولو دپاره دَ هغې نه څه مال اخستل غواړي یا لږ نه لږ دا غواړي چه مهر ورته اُبخښي۔ قرآن کریم دا حرامه اُګرځوله لکه چه فرمائي: وَلَا يَحِلُّ لَكُمْ أَنْ تَأْخُذُوا مِمَّا آتَيْتُمُوهُنَّ شَيْئًا تاسو لره دا روا نه دي چه دَ طلاق ورکولو په بدل کښې هغوئ (ښځو) نه خپل ورکړے مال او مهر وغیره واپس واخلئ۔

البته یو صورت ئې مستثنیٰ کړو په کوم کښې چه دَ مهر واپسي یا بخښل روا شو هغه دا سے چه دَ ښځې خاوند دواړو په طبیعتونو کښې دومره کرکه، لږے والے او اختلاف په خپل منځ کښې دے حد ته رسیدلے وي چه ښځه نه هم دَ خاوند حقوق اداکول په بوګران ښکاري او سړے هم داسې کیږي نو په دے صورت کښې روا دي چه دَ مهر دَ واپسئ یا معافئ په بدل کښې خاوند طلاق ورکړي یا ښځه طلاق واخلي۔

دَ ضمني مسئله بیا نولو نه پس دریم طلاق ئې داسې ذکر کړو "فَإِنْ طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهُ مِنْ بَعْدُ حَتَّىٰ تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ" مطلب دا چه شریعت کښې ناخوښ دریم طلاق هم اُشو نو اُس دَ نکاح مزے بیخي اُشلیدو۔ خاوند لره اختیار پاتې نشو چه هغه دغه ښځې ته رجوع اُکړي او هر کله چه خاوند دَ شریعت د حدودو نه تجاوز اُکړي چه دریم طلاق ئې بے وجې ورکړو نو اُس دَ دۀ سزا دا ده چه دے بیا هم راضي بازي شي او خپل منځ کښې بل نکاح کول غواړي نو هغې دَ پاره دا شرط کیښودے شو چه ښځه به دَ طلاق نو دَ عدت تیرولو نه پس بل یو سړي سره نکاح کوي او د هغه دَ خاوند وَلئ پوره حقوق ادا کولو سره هم هغه سره به خپل ژوند تیروي چرے دَ دویم خاوند له اړخه هم طلاق ورکول راپیښ شو (یا دغه خاوند مړ شو) نو د دے عدت پوره کولو نه پس بیا په رضا صلاح دُومبي خاوند سره نکاح کولے شي۔ د آیت دَ آخري جُملې "فَإِنْ طَلَّقَهَا فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا أَنْ يَتَرَاجَعَا" هم دا مطلب دے۔

**درے طلاقه او دَ هغې دَ احکامو تفصیل**

دَ قرآن کریم په انداز بیان د ذورے کښې په نتیجه کښې دا خبره ښه ښکاره کیږي چه دَ طلاق ورکولو اصلي شرعي طریقه صرف دا ده

طلاق ته ورکول دي. او دريم طلاق ته خبره رسول مناسب نه دي لکه چه دَ الطَّلَاقُ مَرَّتَانِ" نه پس ئې اِنْ شرطيه سره دا سے بيانول "فَإِنْ طَلَّقَهَا" دے خبرے ته اشاره کوي ورنه سمدم به ئے دا سے فرمايلي وو چه اَلطَّلَاقُ ثَلٰثٌ هم دا وجه ده چه امام مالکؒ او نورو ډيرو فقهاوُ صرف په دے شرط درے طلاقه جائز کړي دي چه ځان ځانله په درے طُهر وکښے بيل بيل درے طلاق ورکړے شي دغه فقهاوُ په خپله اصطلاح کښے د طلاقو دے طريقے ته هم سُنّت طريقه وئيلے ده مګر په دوئ کښے يو نقيه هم دَ دے نه څرګنده مطلب نه اخلي چه دا سے ډول درے طلاق ورکول سُنّت طريقه او غوره کار دے. بلکه دَ طلاق بدعت په مقابله کښے دے ته په دے معنیٰ طلاقِ سُنّت وئيلي شوي دي چه دا صورت هم په بدعت کښے داخل نه دے۔

د قرآن او سُنّت دَ ارشاداتو او دَ صحابوؓ او تابعينوؒ دکړه وړو نه دا معلوميږي چه ډير غوره طلاق هغه بللے شي چه يو طلاق په هغه طُهر کښے ورکړے شي په کوم کښے چه جماع نه وي شوي څو دا هله چه دَ طلاقو ورکولو نه بغير بل هيڅ څه صورت پاتے نشي دلتے يو طلاق دَ عدت تيرولو نه پس دَ نکاح مزے پخپله شليږي دا سے قِسم طلاق ته فقهاوؒ احسن (ډير غوره) او صحابه کرامو دے طريقے ته بهتره (غوره) طريقه وئيلے ده۔

ابن ابي شيبهؒ په خپل مصنّف کښے د ابراهيم نخعيؒ نه نقل کړي دي چه صحابه کرامو به د طلاق ورکولو دا طريقه خوښوله چه صِرف يو طلاق ورکړے شي او دَ طلاقو عدّت (درے حيض) تيريدو ته پريږدي چه ښځه آزاده شي۔

دَ قرآن کريم دَ ذکر کړے شوي الفاظو نه دا اجازت هم معلوميږي چه دوه طلاقو پورے ورکړے شي. مګر په مَرَّتَانِ لفظ کښے دا اِشاره ښکاري چه دوه طلاقه دِ په يو ځل نه وي بلکه په دوه طُهر وکښے دِ بيل بيل وي. ځکه چه اَلطَّلَاقُ طَلَاقَانِ نه بلکه اَلطَّلَاقُ مَرَّتَانِ ئے اُفرمائيل کوم نه چه دا خبره ثابتيږي چه دوه طلاقه بيل بيل (يعنی دوه کرته) وي. مثلاً څوک چا ته دوه روپئ په يو ځل ورکړي نو هغے ته به دوه کرته نشي وئيلے د قرآن په الفاظو کښے دوه کرته (مَرَّتَانِ) دا مطلب لري چه په بيل بيل طُهر کښے بيل بيل دوه طلاقه ورکړے شي (رُوح المعاني)

په هر ډول چه وي دوه طلاقه دَ قرآن حکيم دَ الفاظو نه ثابتيږي له دے وجے امامانو دَ مذهبؒ او فقهاء کرامؒ دے لره سُنّت طلاق بولي او بدعت ورته نه وائي. دريم طلاق ته قرآن حکيم ښکاره اشاره کړے ده. چه ښه نه دے له دے وجے دے لره څوک هم ښه نه ګڼي

او په دے کښے هیڅ اختلاف نه لري۔

او د رسول الله صلی الله علیه وسلم د یو ارشاد نه دا ثابتیږي چه دریم طلاق ناخوښه او مکروه دے لکه چه امام نسائیؒ په روایت د محمود بن لبید نقل کړے دے۔

اُخْبِرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ رَجُلٍ طَلَّقَ امْرَأَتَهٗ ثَلَاثَ تَطْلِيْقَاتٍ جَمِيْعًا فَقَامَ غَضْبَانًا ثُمَّ قَالَ اَيُلْعَبُ بِكِتَابِ اللّٰهِ وَاَنَا بَيْنَ اَظْهُرِكُمْ حَتّٰی قَامَ رَجُلٌ وَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَلَا اَقْتُلُهٗ ؟

(نسائی الطلاق ص۹۸، جلد ۲۔)

رَسُوْلِ کریم صلی الله علیه وسلم ته د یو سړي په باره کښے خبر ورکړے شو چا چه خپلے ښځے ته په یو ځل درے طلاقه ورکړي وو۔ هغوی په غصه کښے اودریدل او بیائے اُوفرمائیل چه بنه ! کِتاب الله سره لوبے کولے شی سره د دے چه څه په تاسو کښے موجود یم! په دے کښے یو سړے پاسیدو او وے وئیل چه اے د الله رسوله هغه څه اُونه وژنم؟

د دے حدیث اسناد لره حافظ ابن قیمؒ په شرط د مسلم صحیح تا کلے دے (زاد المعاد) علامه ماوردی د دے حدیث سند ته صحیح او ابن کثیر د دے اسناد لره جیّد (ګڼړه) بللے دے او ابن حجر دے لره د مؤثقانو (اعتبار یانو) روایت بللے دے۔

په دے بِنا حضرت امام مالکؒ او څه نورو اماما نو د فقهے دریم طلاق لره بیخی نا روا او طلاقِ بدعت بللے دے پاتے نورو اماما نو اګرچه په درے طُهرونو کښے درے طلاقو لره سنّت کښے داخل او د طلاقِ بدعت نه خارج بللی دی مګر په دے کښے د هیچا هم اختلاف نشته چه دا بنه نشی کیدلے۔

خلاصه دا ده چه درے طلاقو د پاره شریعت چه کومے درے درجے (په درے واره) ښودلی دی د هغے دا مُطلب هیچرے نه دے چه دا درے واړه درجے پوره کول ضروري یا بهتر (غوره) دی بلکه د شریعت منشا هم دا ده چه اول خو طلاق ورکول یو خراب او ناکاره کار دے او کچرے مجبوري وی نو د کے درجے (یعنی یو) طلاق دِ ورکړے شی او د هغے عدّت دِ تیریدو ته پریښودے شی د کوم په تیریدو سره به چه سمدستی د نکاح تړنے اُشلیږي او ښځه به دے ته آزاده شی چه بل خاوند سره نکاح اُکړي دا قِسم طلاق احسن (ډیر غوره) بللے شی چه په کښے دا فائده هم ده چه په صفا ټکو کښے یو طلاق ورکولو سره به دواړو (ښځے خاوند) ته د صُلح صفایئ لارے پرانستے وی،

د عدت ختمیدو نه وړاندې صرف د خاوند د رجوع کولو د نکاح په ځاىٔ پاتې کیږي او دوباره به ښځې وي او د عدت په تیریدو اگرچه نکاح خو ماته شوه او ښځه آزاده شوه خو بیا هم که راضي وي بیا زوې اُشي او دواړه په خپله خوښه په خپل مینځ کښې دوباره نکاح کول غواړي نو حلاله اُبنکلولو بغیر نیغ په نیغه دوباره نکاح کیدې شي.

لیکن که څوک خاوند په طلاق احسن ورکولو کفایت اُنکړي او د عدت په موده کښې ونه په بنکاره تکو کښې ښځې ته دویم طلاق ورکړي نو هغه د نکاح ماتولو د پاره د دوو درجونه بې ضرورت تیر شو چه شریعت ئې هم بنه نه گڼړي. او د عدت په زمانه کښې د رجوع کولو او د عدت نه پس د نوي نکاح کولو حکم به د دیو طلاق د حکم په شان وي خو دا فرق بنکاره دې چه خاوند د خپلو اختیاراتو په یو برخه کړي ماتولو سره دوو طلاقونو ته اُرسیدو. دا هغه سرحد دې کوم چې پس یو بل (دریم) طلاق ورکړي نو تعلق او وجوه به یعنې ختم شي.

کوم یو خاوند چه د طلاق دې دواړو درجونه تیر شو نو هغه ته دا بنودنه اُشوه، چه فَإِمْسَاكٌ بِمَعْرُوفٍ أَوْ تَسْرِيحٌ بِإِحْسَانٍ په "إِمْسَاكٌ بِمَعْرُوفٍ" د ده حکم دا بنودنې شو. یو دا چه د عدت په موده کښې رجوع کولو سره د نوي نکاح حاجت نشته او ښځه په دوهم نکاح کښې پاتې شوه او که د وړاندې پشان هم هغه رنگ ئې ښځه ده.

دویم دا چه خاوند ته دا هغه ایت اُشو کړې د هغه اراده د اصلاح، بسیکړې، روغ رغبت او صلح صفایۍ وي او وراتلونکې وخت کښې به کذران کول غواړي نو هغه د رجوع اُکړي کوند عدت د تیریدو ته پریږدي چه د نکاح مزې یعنې اُشلیږي دا سې نه ده یکار چه صرف د ښځې پریشانه کولو او عذابولو د پاره ورته رجوع اُکړي او شرعي حقوق ئې نه پوره کوي.

او بل اړخ ته ئې "أَوْ تَسْرِيحٌ بِإِحْسَانٍ" سره دې ته اشاره اُکړه چه تعلق پریکولو د پاره د بل څه عمل یا د بل طلاق ضرورت نشته چه عدت تیرشي تعلق به په خپله اُشلیږي ځکه چه د تسریح معنی پرانستل او آزادول (پریښودل) دي.

د حدیث شریف امام ابوداؤد نه د ابورزین اسدي په روایت منقول دي چه دې ایت په نازلیدو یو سړي د حضور اکرم صلی الله علیه وسلم نه تپوس اُکړو چه الله تعالیٰ "اَلطَّلَاقُ مَرَّتٰنِ" افرمائیل او دریم طلاق ئې ولې ذکر نکړو؟ حضور صلی الله علیه وسلم اُفرمائیل چه دې پسې "أَوْ تَسْرِيحٌ بِإِحْسَانٍ" الفاظ د دریم طلاق دي (روح المعاني) د دې خبرې مطلب

دجمهورو علماؤ په نزد دادے چه دَ ښځے خاوند مېنځ کښے دَ تعلقاتو بېخي پرېکولو کوم کار چه په درے طلاقو سره کېدے شو هم هغه کار دَ پاره دا بَس ده چه په عدت کښے دننه ورته رجوع اُنکړی، وځنګه چه "اِمۡسَاكٌ" سره ئے "بِمَعۡرُوۡفٍ" په لګولو دا ښودنه اُفرمائیله چه ښځے ته رجوع کول په دے، اراده پکار دی چه ښځے سره به ښه ګذران کوی. دغه رنګ "تَسۡرِيۡحٌ" سره په "بِاِحۡسَانٍ" لګولو سره ئے دا ښودنه اُکړه چه لکه ځنګه نورے معاملے اومعاهدے یوشریف انسان په ښه ذړه او ښه سلوک سره کوی هم دغه رنګ دَ نکاح ماتولو معامله (طلاق) دِ هم په غصو، جګړو اوظلم زیاتئ نهٔ بلکه په ښه سلوک او ښیګړے سره کوی. هغه داسے چه دَ رخصتولو په وخت دِ طلاقے کړے ښځے ته څه دِ الئ دجامو، کالو یا بل څه ورکوی چه بیان ئے دَ قرآن کریم په دے آیت کښے دے.

مَتِّعُوۡهُنَّ عَلَى الۡمُوۡسِعِ قَدَرُهٗ وَعَلَى الۡمُقۡتِرِ قَدَرُهٗ.

(یعنی طلاقے کړو ښځو ته) څه جامے جوړے ورکړئ او رخصت ئے کړئ دخپل مالی وَس په حِسٰاب

او بیا هُم داسے اُنکړل بلکه دریم طلاق ئے هم ورکړو او دشریعت له اړخه ورکړے شوے اسانتیاوے ئے ټولے ترے اُغورځولے اوخپل ټول اختیارات ئے بے وجے اوبے ضرورته بېخي ختم کړل نو اُس دَ هغه سزا داده چه نه خو ورته رجوع کولے شی او نه خود هغے دَ دویم واده کولو (حلالے) نه بغیر دے ورسره دوباره نکاح کولے شی.

بیا چا په ناخوښه ډول یا دشریعت نه په خلاف طریقه درے طلاق ورکړل نو دهغے اثر به څه وی؟

ددے عقلی او عُرفی جواب هم دا دے چه سره دَ دے چه الله او رسُول پرِخفه کیږی او دامُت علماؤ ورته بد وئیلی دی مګر بیا هم ددا سے طلاقو اثر به هم هغه وی کوم چه په غوره ډول یا دَ شریعت په طریقه ورکړے شوی وی یعنی مکمّل جدائی به ورسره راځی. په عدّت کښے دَ رجوع کولو اختیار ترلاسه او دویم ځلی نکاح دَ پاره به ښځے ته دَ حلالے کولو ضرورت وی. ځکه چه دَ ګناه اوظلم بو کارهم هغه اثرلری کوم چه د نیکئ او انصاف کار لری. مثلاً په ناجائزے کولئ او توره هم سړے مری لکه ځنګه په جائزه کولئ او توُره چېمری همدا رنګ دَ سړی دَ لاسه مال داسے هم اُوځی چه څوک ترِغلا (نا روا) اُکړی او داسے هم اُوځی چه چانه پرِڅه خیږیا کارځګی مت (جائز) واخلی.

دَ رسول الله صلّی الله علیه وسلم فیصله گواه ده چه دَ غصے او قهر درے طلاق هم هغه اثرلری کوم چه دآرام او په سړه سینه درے طلاق لری داسے دیر واقعات دَاحادیثو په کتابونو کښے ذِکرشوی دی. ځنے علماؤ په دے مسئله مستقل کتابونه لیکلی دی چه پکښے متعلقه واقعات ذِکر دی. دَ مولانا ابوالزاهد محمّد سرفراز صاحبؒ "عمدة الاثاث" نومے اُسنے کتاب په دے باره کښے کره پوره دے. دلته صِرف دوه درے حدیثه رانقل کوے شی. دَ نسائیؒ په حواله دمحمود بن لبید په روایت تیرشوی حدیث کښے دَ یو وخت په درے طلاقو دحضورِ اکرم صلی الله علیه وسلم خفگان، قهر او غضب منقول دے. دَ صحابه کرامو رضٰ خفگان، قهر او غصه تر دے حده منقوله ده چه هغویٰ دَ غه سړے دَ قتل مستحق اُگڼلو مگر داسے هیچرے په حدیثو کښے منقول نه دی چه حضور اکرم صلی الله علیه وسلم داے ردکړی، په یوځل) طلاقو لره طلاقِ رجعی گرځولی وی، او دا یے طلاقه کړے ښځه یے هغه ته بیا سپارلے وی.

بلکه دے پسے را تلونکی روایت کښے په ښکاره دول شته چه حضور اکرم صلی الله علیه وسلم دحضرت عویمرؓ په یوځل درے طلاق جاری کړل سره ددے چه هغویٰ په دے دَ خفگان اِظهار هم کړے وو. دارنگ دَ محمود بن لبید په باره کښے دَ ذکرشوی حدیث دا الفاظ هم قاضی ابوبکر بن عربی نقل کړی دی چه دَ حضرت عویمرؓ دَ درے طلاقو په شان یے دا درے طلاقه هم مؤثر او جاری کړی وو. الفاظ یے دا دی:

فَلَمْ يَرُدَّهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَلْ اَمْضَاهُ كَمَا فِيْ حَدِيْثِ عُوَيْمِرِ الْعَجْلَانِيِّ فِي اللِّعَانِ حَيْثُ اَمْضٰى طَلَاقَهُ الثَّلَاثَ وَلَمْ يَرُدَّهُ.
(تهذیب سنن ابی داؤد)

نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم هغه لره رد نه کړل. بلکه جاری یے کړل لکه دَ عویمر عجلانی لعان والاحدیث کښے دی چه هغویٰ دَ هغهٔ درے طلاق جاری کړی وو او رد کړی یے نهٔ وو.

طبع مصر ج ۳ ص ۱۲۹ دعمدة الاثاث نه)

دویم حدیث دبخاری شریف په دے الفاظو دحضرت عائشے صدیقےؓ په روایت څه داسے دے:

اَنَّ رَجُلًا طَلَّقَ اِمْرَاَتَهُ ثَلَاثًا

یو سړی خپله ښځه طلاقه کړه په درے طلاقو

فَتَزَوَّجَتْ فَطَلَّقَ فَسُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَتَحِلُّ لِلْاَوَّلِ قَالَ لَا حَتّٰى يَذُوْقَ عُسَيْلَتَهَا كَمَا ذَاقَهَا الْاَوَّلُ۔

(صحيح بخاري ص: ۷۹۱۔ ج: ۲۔ صحيح مُسلم ص: ۴۶۳)

هغې بل خاوند سره نکاح اُوکړو۔ نو هغه (دویم خاوند هم) طلاق ورکړه۔ نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه تپوس اُوشو چه آیا دا ښځه رومبی خاوند ته روا کیږی۔ وے ئے فرمائیل نه ترڅو چه هغه (دویم خاوند) د دے کبین کوچے داسے نه وی څکلے لکه څنګه چه رومبی (خاوند) څکلے وو۔ (یعنی تر هغے رومبی خاوند دپاره نه روا کیږی ترڅو چه دویم خاوند د طلاق ورکولو نه وړاندے داسے (جماع ورسره نه وی کړی څنګه چه رومبی خاوند کړے وه)

د روایت دا الفاظو نه هم دلته ښکاری چه دا درے طلاق په یو وخت (ځل) ورکړے شوی وو لکه چه د احادیثو شروحو فتح الباری، عمدة القاری، قسطلانی وغیره د دے روایت مطلب دا ټاکلے دے چه په یو ځل ئے درے طلاق ورکړی وو او په حدیث کښے د حضور اکرم صلی الله علیه وسلم دا فیصله ذکر ده چه هغوی د دغه درے طلاق جاری اُټاکل او دا حکم ئے اُوکړو چه ترڅو دویم خاوند سره جماع نه وی شوی۔ نو په دلته طلاق ورکولو دا رومبی خاوند ته نه روا کیږی۔

دریم روایت د حضرت عویمر عجلانی رض دے کوم چه د حضور اکرم صلی الله علیه وسلم په حضور کښے ښځے بی بی سره لعان اُوکړو او د ښځے نه پس ئے عرض اُوکړو۔

فَلَمَّا فَرَغَا قَالَ عُوَيْمِرٌ كَذَبْتُ عَلَيْهَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنْ اَمْسَكْتُهَا فَطَلَّقَهَا ثَلَاثًا قَبْلَ اَنْ يَّاْمُرَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ۔ (صحيح بخاري سره دفتح الباري ص: ۳۰۱۔ ج: ۹ صحيح مسلم ص: ۴۸۹۔ ج: ۱)

نو هر کله چه هغوی دواړه د لعان نه اوزګار شو۔ عویمر اُووئیل چه اے د الله تعالیٰ رسوله! ما به په دے دروغ وئیلی وی که ځان سره م اُساتله! نو هغه (عویمر رضی الله تعالیٰ عنه) ښځے له درے طلاق ورکړل۔ د دے نه وړومبے چه رسول کریم صلی الله علیه وسلم ورته حکم ورکړے وے۔

او د حضرت سهل بن سعد رض په روایت دا واقعه ابوداؤد په دے الفاظو نقل کړے ده۔

فَاَنْفَذَهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

نو حضور اکرم صلی الله علیه وسلم ښځے له ده

وَكَانَ مَاصَنَعَ عِنْدَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُنَّةً قَالَ سَعْدٌ حَضَرْتُ هٰذَا عِنْدَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَضَتِ السُّنَّةُ بَعْدُ فِي الْمُتَلَاعِنَيْنِ اَنْ يُّفَرَّقَ بَيْنَهُمَا ثُمَّ لَا يَجْتَمِعَانِ اَبَدًا ـ

(ابو داؤد ص: ۳۰۶ چاپ اصح المطابع)

جاري کړل او کوم چه د حضور اکرم صلی الله علیه وسلم په وړاندې اُشو. هغه سُنت شو. سعدؓ فرمائي چه حاضر وُدم. د دې واقعه کښې د حضور صلی الله علیه وسلم په حضور کښې نو د دې نه دا طریقه جاري شوه د لعان کوونکو په باره کښې چه د هغوئ په مینځ کښې جُدائي اکړې شي او بیا هغوئ کله هم نه جمع کیږي ـ

په دې حدیث کښې پوره وضاحت سره ثابته شوه چه رسولِ کریم صلی الله علیه وسلم د حضرت عویمرؓ په یوځل و د کړې شوي درې طلاقه هم درې اُتا کل او جاري ئې کړل.

او د ابوبکر ابن عربي په جوړه د محمود بن لبید په تیر شوي روایت کښې د دا سې (په یوځل) درې طلاقو جاري کولو ذکر شته که دا هم نه وې نو داخو چرته هم منقول نه دي چه هغوئ دې لره طلاقِ رجعي گنړلی وي او دا سې طلاقه شوې ښځه ئې بیا هغه ته سپارلې وي.

حاصل د کلام دا دې چه د تیر شوو درې واړو احادیثونه دا ثابته شوه چه په یوځل درې طلاقو ورکولو باندې حضور اکرم صلی الله علیه وسلم خفګان بلکه قهر غصه ښکاره کړې ده مګر دا ئې هم د درېو طلاقو په حیث جاري کړې دي ـ

## د حضرت فاروق اعظمؓ واقعه او په هغې د اشکال جواب

د تیر شوي ټیکلو نه ثابته شوه چه په یوځل د کړې شوي درې طلاقه هم درې گنړل د رسُول الله صلی الله علیه وسلم خپله فیصله وه. مګر د لته یو اشکال د حضرت عمر فاروقؓ د یو واقعې نه پیدا کیږي کوم چه صحیح مُسلم او د حدیثو په اکثرو کتابونو کښې منقوله ده ـ الفاظ ئې دا دي.

عَنْ اِبْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ الطَّلَاقُ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاَبِيْ بَكْرٍ وَسَنَتَيْنِ مِنْ خِلَافَةِ عُمَرَ طَلَاقُ الثَّلَاثِ وَاحِدَةً فَقَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ اِنَّ النَّاسَ قَدِ اسْتَعْجَلُوْا فِيْ اَمْرٍ كَانَتْ لَهُمْ فِيْهِ اَنَاةٌ فَلَوْ

د حضرت ابن عباسؓ نه روایت دې چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کښې او د حضرت ابوبکرؓ په خلافت کښې او د حضرت عمرؓ د خلافت په شروع کښې دوه کاله د طلاق دا طریقه وه چه درې طلاقه به یو طلاق شمیرلے شو نو حضرت عمرؓ فرمائیل

اَمْضَیْنَاهُ عَلَیْهِمْ فَاَمْضَاهُ عَلَیْهِمْ ۔ (صحیح مُسلم ص: ۴۷۷ ج: ۱) | چه خلقو په یو داسے معامله کښے تلوار شروع کړیده په کومه کښے چه دوی د پاره مهلت

وو نو په دوی دَ هغې جاری کول په مُناسب دی نو هغوی په دوی د اجاری کړه ۔

دَ فاروقِ اعظمؓ دا اعلان په مشوره دَ فقهاءِ صحابهؓ سره دَ صحابهؓ او تابعینو په عامه مجمع کښے اُشو ۔ دَچا شک یا انکار په دے باره کښے منقول نه دے له دے وجے دَحد یثو حافظ امام عبد البرّ مالکیؒ په دے مسئله اِجماع نقل کړے ده ۔ دمؤطا په شرح زرقانی کښے دا الفاظ راغلی دی :

وَالْجُمْهُوْرُ عَلٰی وُقُوْعِ الثَّلَاثِ بَلْ حَکَی ابْنُ عَبْدِ الْبَرِّ الْاِجْمَاعَ قَائِلًا اَنَّ خِلَافَهٗ لَا یُلْتَفَتُ اِلَیْهِ (زرقانی په شرح دَ مؤطا (ص ۱۶۷ ج: ۳) | او دَ امت جمهور علماء دَ دریے طلاقو په واقع کیدو متفق دی بلکه ابن عبد البرّ په دے اجماع نقل کړیده او فرمائی چه دَ دے خلاف کول شاذ دی چه هغې ته التفات نه دے پکار ۔

او شیخ الاسلام امام نوویؒ په شرح دَ مسلم کښے فرمائی :

قَالَ الشَّافِعِیُّ وَمَالِکٌ وَاَبُوْحَنِیْفَةَ وَاَحْمَدُ وَجَمَاهِیْرُ الْعُلَمَاءِ مِنَ السَّلَفِ وَالْخَلَفِ یَقَعُ الثَّلَاثُ وَقَالَ طَاؤُسٌ وَبَعْضُ اَهْلِ الظَّاهِرِ لَا یَقَعُ بِذٰلِکَ اِلَّا وَاحِدَةٌ ۔ | امام شافعیؒ امام مالکؒ امام ابوحنیفهؒ او امام احمدؒ او ورانديـنو رستنو جمهورو علماؤ فرمائیلی دی چه دریے طلاقه واقع کیږی او طاؤس او څنې اهل ظاهرو ویلی دی چه په دے سره هم یو طلاق واقع کیږی ۔

امام طحاویؒ په شرح دَ معانی الآثار کښے فرمائیلی دی :

فَخَاطَبَ عُمَرُ بِذٰلِکَ النَّاسَ جَمِیْعًا وَّفِیْهِمْ اَصْحَابُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُمُ الَّذِیْنَ قَدْ عَلِمُوْا مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذٰلِکَ فِیْ زَمَنِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ یُنْکِرْ عَلَیْهِ مِنْهُمْ مُّنْکِرٌ وَّلَمْ یَدْفَعْهُ دَافِعٌ ۔ | نو حضرت عمرؓ په دے سره ټول خلق مخاطب کړل او په دوی کښے دَ رسُول کریم صلیّ الله علیه وسلم هغه صحابهؓ هم وو کوم ته چه وړاندے نه دَ رسول کریم صلی الله علیه وسلم دَ زمانے دَ طریقے عِلم وو نو په دوی کښے هیچ یو انکار کوونکی هم انکار نه دے

له شرح معانی الآثار ص: ۲۹ ج: ۲

کړے او نه چا رَد کړو ځکه چې دے لره رَد کړے دے۔

په تیره شوے واقعه کښې اُمت د پاره دَ عمل لار په اجماع دَ صحابهؓ او تابعینوؒ ټاکلے شوه چه په یو ځل درے طلاقه ورکول اګرچه ناخوښه او دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ خفګان سبب دے مګر سره دَدے. که دا غلطی ئے اوکړه نو ښځه به پرے حرامه شی او بل سړی سره دَ حلالے ویستلو نه بغیر دَه سره ئے بیا نکاح نه کیږی۔

لیکن دلته علمی او نظری دوه سوالونه داسے پیدا کیږی چه تیر شوی ډیرو روایتونو دَ حدیث نه دا ثابته شوه چه په یو ځل ورکړی شوی درے طلاقونه رسول الله صلی الله علیه وسلم هم درے جاری کړی دی په دے کښې ئے د رجوع یا دَ عدّت تیریدو نه پس دَ بل نوی نکاح بغیر دَ حلالے ویستو نه اجازت نه دے ورکړے. نو اُس په دے واقعه کښې دَ حضرت عبد الله بن عباسؓ دَ دے خبرے څه مطلب کیدے شی. چه دَ حضور صلی الله علیه وسلم او د ابوبکر صدیقؓ په زمانه کښې او دَ حضرت عمرؓ دَ خلافت دَ دُویمی دوو کالو په زمانه کښې درے طلاق به هم یو ګڼړے شو رُستو بیا حضرت عمرؓ دا فیصله اوکړه چه درے طلاق هم درے ګڼړلے شی کم نه؟

دویم سوال دا دے چه خبره ځګړے یو رتښتیٰ صحیح شی نو حضرت عمرؓ دغه فیصله رُستو بیا څنګه بدله کړه او بالفرض دَ هغه نه که غلطی شوی وی نو نورو صحابه کرامو داخنګه اُمنله؟

دَ دے دواړو سوالونو فقهاؤ او محدثینو رحمهم الله مختلف جوابونه ورکړی دی. په دغو کښې صفا او بے تکلّفه جواب دا امام نوویؒ دے. کوم ته ئے چه دَ مسلم په شرح (نووی) کښې اصح (ډیر صحیح) وئیلی دی. هغه دا دے چه دَ حضرت عمرؓ دغه فیصله دَ هغه درے طلاقو په باره کښې ده چه الفاظ ئے داسے وی.

"ته طلاقه ئے. ته طلاقه ئے. ته طلاقه ئے." یعنی درے واره ئے داسے الفاظ وئیلی وی. په داسے صورت کښې دا احتمال هم کیدے شو چه د داسے وئیونکی مطلب درے طلاق وی او دا احتمال هم کیدے شی چه مطلب ئے یو طلاق وی خو تاکید دَ پاره ئے بیا بیا دا الفاظ وئیلی وی هر کله چه دَ دے تعلق دَ نیت سره دَ دے نو دَ صحابه کرامو دَ صدق او دَ یانت په وجه به حضور اکرم صلی الله علیه وسلم دا هسے یو طلاق ګڼړلو چه وئیونکی لره به ئے دا قسم ورکړو چه مطلب ئے تر یو طلاق وَو؟

دَدے خبرے تصدیق دَ رکانهؓ دهغه حدیث نه کیږی کوم کښے چه بیان دے چه هغه ښځے بی بی ته په البتهٔ لفظ سره طلاق ورکړی وو چه دعربو په رواج کښے به درے طلاق کیدے شو هرکله چه دا مطلب تردلته ښکاره نه وو او رکانهؓ هم پرِقسَم اُخوړو چه ځما نیت دَ دریو طلاقو نه وو نو ځکه حضور صلی الله علیه وسلم دوے مطلب یو طلاق اُګڼلو.

ترمذی، ابوداؤد، ابن ماجه او دارمی کښے داحدیث په مختلفو سندونو او مختلفو الفاظو سره نقل شوے دے ځنے الفاظ داسے هم دی چه حضرت رکانهؓ ښځے بی بی ته درے طلاق ورکړی وو، مګر ابوداؤدؒ داخبره غوره کړے ده چه رکانهؓ ښځے بی بی ته په البتهٔ لفظ سره طلاق ورکړی وو. هرکله چه په دغه وخت دا لفظ دَ درے طلاقو دپاره استعمالیده ونو چا روایت کوونکی ځکه دے لره درے طلاق اُبلل.

هرڅنګه چه دے حدیث نه په اتفاق سره داخبره ثابته ده چه رسول الله صلی الله علیه وسلم دحضرت رکانهؓ طلاق هغه وخت یو اُګڼلو چه هغه په قسم دا بیان ورکړو چه ځما نیت دَ درے طلاقو نه وو او دا هم ثابتیږی چه الفاظ هم په ښکاره دول دَ درے طلاقو نه وو کوندی بیا به دَ درے طلاقو د نیت نه کولو څه احتمال یاد هغویؓ نه دَ تپوس کولو څه ضرورت نه وو البته په دے پیښه کښے دَ یو یا درے طلاقو تاکلو دَ پاره دَ هغویؓ په قسم ځکه اعتبار اُکړے شو چه دغه دربښتیاؤ او امانت زمانه وه داسے هیڅ نه توکیدے چه هغویؓ به په دروغه قسم خوړلے وے.

دحضرت ابوبکرؓ په ټول خلافت کښے او دَ فاروق اعظمؓ دخلافت دړومبی دوؤ کالو په زمانه کښے هم داطریقه چلیده بیا فاروق اعظمؓ ته داخیال راغے چه اُس د ربښتیاؤ او دینداری کمزوری شوه او دَ ورپسے حدیث په جوړیدا کمزوری به نوره هم زیاتیږی بل اړخ ته دیرعمل داسے پیښه شوه چه درے طلاق ورکوونکو به دا بیان ورکولو چه ځمونږ نیت دَ یو طلاق وو. دَ فاروق اعظمؓ دا خیال په ځائے وو چه په راتلونکی وخت کښے به یو دروغژن هم په دے قسم خوری چه دَ درے طلاقو نه ځما مطلب او نیت صِرف یو طلاق وو او داسے به په یرغلق طلاقه کړے ښځے په حرامه ځان سره ساتی د فاروق اعظمؓ دا زیرکتیا ذَوره کتنه او دینی انتظام ټولو صحابه کرامؓ په اتفاق سره اُمنلو ځکه چه ټول صحابهؓ دحضور اکرم صلی الله علیه وسلم دَ طبیعت شریف نه خبر دار وو هغویٔ پوهیدل کچرے په دے زمانه

کښې حضور اکرم صلی الله علیه وسلم موجود وے نو په دا سې پېښه کښې به ئې هېڅ کله هم نه قسم هم دَ یو طلاق نیت نه وے قبول کړے نو دا قانون ئې اُس جوړ کړو چه درے کرته درکړی طلاق به هُم درے حسابیږی په دے ترتیب کښې به دَ هغه دا خبره په قسم هم نشی منلے چه مطلب او نیت ئې تر دَ یو طلاق وو ـ لکه چه د فاروق اعظمؓ دَ گفتنه هم دا مطلب صفا ښکاریږی فرمائی ـ

اِنَّ النَّاسَ قَدِ اسْتَعْجَلُوْا فِیْ اَمْرٍ کَانَتْ لَهُمْ فِیْهِ اَنَاةٌ فَلَوْ اَمْضَیْنَا عَلَیْهِمْ

خلقو په داسې پېښه کښې تلوار شروع کړو په کومه کښې چه هغوئ د پاره مُهلت او ډېل وو نو ښهٔ دا وی چه اُس ئې پرېجاری کړو ـ

دَ فاروق اعظمؓ دا فرمان او دصحابه کرامو پرا جماع د احادیثو په احادیثو ره د ښستیا ثابتیږی او دَ تیرشوی پوُره بیان هغه دوه شبهے مخپله پوره کیږی او ختمیږی کوم چه په دے بوول را پوره کیدے چه دَ ابن عباسؓ دَ روایت په مطابق حضور اکرم صلی الله علیه وسلّم په درے طلاق په قسم تسلّه یو شمیرلو بیا فاروقِ اعظمؓ دَ حضور اکرم صلی الله خلاف څنګه اُکړو او په دے ورسره صحابه کرامو څنګه اتفاق اُکړو؟ ځکه چه ډیرو پېښو کښې درے طلاق حضور اکرم صلی الله علیه وسلّم هم درے ټاکلی دی په هغه صُورت کښې چه دَ درے تکی ئې وئیلی وی یا ئې خو یو (طلاق) وی خو وئیلے ئې درے کرته وی او نیت ئې تر دَ درے طلاقو وی اَو فاروقِ اعظمؓ (معاذ الله) دحضور اکرم صلی الله علیه وسلّم خِلاف نهٔ بلکه دَ هغوئ دَ درکړے آسانئ بے ځایه استعمالولو نه ئې بندیز راوستے دے.

الحمد لله په دے بوول ټولے شبهے ختمے شوے ځما مقصد دا نهٔ دے چه کوندی ما درے طلاقو سره ټرے ټولے مسئلے بیان کړے ځکه چه دَ حدیثو په شرحُ کښې دا مسئلے په پوره فراخئ بیان شوی دی. او عُلماؤ پرځان له رسالے لیکلی دی. ما خو داسے اُنشو کړے دیو هیدو دَ پاره دا کافی اکنړئ الله تعالیٰ توفیق ورکوونکے او مدد ګار دے ـ

وَاِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ فَبَلَغْنَ اَجَلَهُنَّ فَاَمْسِكُوْهُنَّ بِمَعْرُوْفٍ

او کله چه طلاق ورکړل تاسو ښځو ته بیا اُرسید ے خپل عدّت ته نو اُساتئ هغوئ لره دَ دستور په

اَوْ سَرِّحُوْهُنَّ بِمَعْرُوْفٍ ۪ وَلَا تُمْسِكُوْهُنَّ ضِرَارًا لِّتَعْتَدُوْا ۚ

جو پیا پریږدئ هغوئ لره په ښه دول ، او بندے مه ساتئ هغوی لره تنګولو دپاره چه ظلم زیاتے اوکړئ

وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ فَقَدْ ظَلَمَ نَفْسَهٗ ؕ وَلَا تَتَّخِذُوْٓا اٰيٰتِ

او څوک چه دا سے کوی نو بیشکه هم خپل نقصان به کوی ، او مه ګرځوئ د الله حکمونه

اللّٰهِ هُزُوًا ؗ وَّاذْكُرُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَمَآ اَنْزَلَ

ټوقې ټوخندا ، او یاد وئ د الله تعالیٰ احسان چه په تاسو دے او هغه لره چه را لیږلی ئے

عَلَيْكُمْ مِّنَ الْكِتٰبِ وَالْحِكْمَةِ يَعِظُكُمْ بِهٖ ؕ وَاتَّقُوا

په تاسو کتاب او علم خبرے چه تاسو ته نصیحت کوی په دے سره ، او ویریږئ د

۹ ۲۳ ۱۳ اللّٰهَ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَیْءٍ عَلِيْمٌ ۝۲۳۱ ۧ وَاِذَا

الله تعالیٰ نه او پوهه شئ ژر کیږئ چه الله تعالیٰ په هر څیز ښه پوهه دے ۔ او کله چه

طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ فَبَلَغْنَ اَجَلَهُنَّ فَلَا تَعْضُلُوْهُنَّ اَنْ

طلاق ورکړل تاسو ښځو ته او بیائے پوره کړو خپل عدت نو اُس مه بندوئ هغوئ لره د دے نه

يَّنْكِحْنَ اَزْوَاجَهُنَّ اِذَا تَرَاضَوْا بَيْنَهُمْ بِالْمَعْرُوْفِ ؕ

چه نکاح اُکړی خپلو هغه خاوندانو سره کله چه راضی شی دوئ په خپل مینځ کښے د دستور په توګه

ذٰلِكَ يُوْعَظُ بِهٖ مَنْ كَانَ مِنْكُمْ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ

دا نصیحت هغه چا ته کولے شی کوم چه په تاسو کښے ایمان لری په الله تعالیٰ او د قیامت په

الْاٰخِرِ ؕ ذٰلِكُمْ اَزْكٰى لَكُمْ وَاَطْهَرُ ؕ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ وَ

ورځ په دے کښے تاسو دپاره ډیره صفائی او پاکی ده ، او الله تعالیٰ پوهیږی او

اَنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ۝۲۳۲

تاسو نه پوهیږئ ۔

## د تفسیر لنډیز

او کله چه تاسو ښځو ته طلاق ورکړی وی بیا هغوی عدّت تیرولو ته نږدے شی نو تاسو هغوئ ته د قاعدے په توګه (رجوع کوئ) په نکاح کښے ساتئ یا د قاعدے په توګه هغوئ خلاصوئ او هغوئ د تکلیف رسولو په غرض مه بندوئ په دے نیت چه په هغوئ ظلم اُکړے شی او څوک چه داسے کړه کوی نو هغه به هم خپل نقصان کوی او د حق تعالیٰ احکامو لره لوبے مه سازوئ او د حق تعالیٰ کوم نعمتونه چه په تاسو دی هغه یاد کړئ خصوصًا کتاب او د حکمت خبرو لره چه الله تعالیٰ په تاسو (په دے ډول) نازل کړی دی چه د هغے په ترځ کښے تاسو ته نصیحت کوی او د الله تعالیٰ نه ویریږئ او یقین لرئ چه الله تعالیٰ هرڅیز لره ښه پیژنی او کله چه تاسو خپلو ښځو ته طلاق ورکړئ او ښځے د خپل عدّت میعاد پُوره کړی نو تاسو هغوئ لره د دے نه مه بندوئ چه هغوئ خپلو (خیال کښے راوستو) خاوندانو سره نکاح اُکړی کله چه هغوئ لول په خپل مینځ کښے راضی بازی شی. د قاعدے په توګه په دے مضمون سره نصیحت کیږے شی هغه کس ته کوم چه په تاسو کښے په الله تعالیٰ او په ورځ د قیامت یقین لری د دے نصیحت قبلول تاسو د پاره د ډیرے صفایئ او پاکئ خبره ده او الله تعالیٰ (ستاسو د خیر کار د نه) پیژنی تاسو ئے نه پیژنئ۔

# علوم او مسئلے

د دے نه وړاندِ هم دوؤ آیتونو کښے د قانونِ طلاق ډیرے ضروری دفعے او په اسلام کښے طلاقو سره تړلے د انصاف او برابری نظام د قرآن حکیم په حکیمانه انداز کښے بیان شوے دے اُس په دے دوؤ آیتونو کښے څو احکام او مسئلے بیان شوی دی۔

### د طلاق د احکامو نه پس د رجوع کولو یا بیخی د نکاح ختمولو د واړو د پاره خاص هدایات

په ړومبی آیت کښے ړومبئ مسئله دا بیان شوے ده چه په طلاقِ رجعی سره طلاقے شوے ښځے کله چه عدت تیرولو ته نږدے شی نو خاوند لسئ د دوؤ خبرو اختیار دے یو دا چه رجوع ورته اُکړی او په خپل نکاح کښے ئے جاری اُساتی. دویم دا چه رجوع اُنکړی نکاح. بیخی ختم کړی او هغه څوته خلاصه کړی۔

لیکن د دے دواړو خبرو سره قرآن کریم دا شرط لګولے دے چه په نکاح کښے جاری ساتل

او چې ټه خلاصول دِ دواړه دَ شرعي قاعدے مُطابق وي دَ غصے او جذباتو نه دِ کار نه آخلي نکه د "بِالْمَعْرُوفِ" لفظ چه ښکاره کوي په دواړو صورتونو کښې دَ شرعي قاعدو ښکنے بیان مجمله قرآن کړے دے او نور تفصیلات حضور اکرم صلی الله علیه وسلم بیان کړی دي۔

مثلاً د طلاق ورکولو نه پس دَ جدائي ترینې انجام ته پام کیدو په وجه چرے رجوع کولو سره دَ نکاح جاري ساتلو خیال او اراده ئے اُشي نو هغے دپاره دَ شریعت دا قاعده ده چه اول خو دِ غُصے او خفګان دَ ذهره نه اُباسي دَ ښه ګزران کولو او ښه ژوند تیرولو او حقونو ادا کولو فِکر به ئے په وړاندِ وي. ښځه هسے په خپل بند کښے دَ ساتلو، دَ هغے د تنګولو او ورته د ضرر ورکولو خیال او اراده به ئے نه وي نکه چه فرمائي " وَلَا تُمْسِكُوهُنَّ ضِرَارًا لِّتَعْتَدُوا "

دویمه قاعده ( د رجوع کولو ) هغه ده چه سورت طلاق کښے دا سے بیان ده :
وَأَشْهِدُوا ذَوَيْ عَدْلٍ مِّنكُمْ وَأَقِيمُوا الشَّهَادَةَ لِلَّهِ" او په خپل مینځ کښے دوه اعتباري سړي ګواهان جوړ کړئ بیا چرے دَ ګواهئ ضرورت پیښ شي نو صحیح صحیح دَ ځ مُلاحظے نه بغیر ګواهي ورکوئ۔

په دے ګواهانو جوړولو کښے ډیرے فائدے دي یو فائده هغه دا ده چه چرے ښځه دَ رجوع کولو په خلاف څه دعوی قائمه کړي نو دغه ګواهي به ورله دعوی ماته کړي۔

بله فائده دَ سړي پکښے دا سے راځي چرے دے دَ ضِد خواهش یا دَ شیطان په لمسه دَ عدت تیریدو نه پس دَ دروغو دعوی اُکړي چه ما عدت تیریدو نه وړاندِ رجوع کړے وه. هرکله چه په دے کښے دا ایمان او آخرت زیان دو نو دَ دے نه د بچ کیدو دپاره دا ګواهان ډیر سُودمند ثابتیږي۔

دَ پښتے دویم اړخ دا دے چه د عدت ډیل ، او سوچ فکر وخت ملاویدو سره چرے بیا هم دَ زړه خیرے او خفګان اُونه ځي او شلیدے تهون جاري ساتل وي نو په دا سے حال کښے دَ دښمنئ او انتقامي جذباتو را پورته کیدلو ویره دا سے وي چه دوه اړخیز فامیلونه پکښے راګیر شي او دُنیا او آخرت دواړه ئے خرابیدے شي. لهذا دَ دے بندولو دپاره ئے دا لنډ ارشاد اُفرمائیلو" أَوْ سَرِّحُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ" مطلب ئے دا دے چه دَ پریښودو او د نِکاح دَ مزی پخی شلول دِ هم دَ قاعدے په مُوافق وي۔ دَ دے قاعدے څه تفصیل مجمله قرآن کریم کښے

ذکر شوي دي او باقي نور تفصيلات ئې د حضور اکرم صلی الله علیه وسلم په قولي او عملي بيان سره ثابت دي.

مثلاً دې ته وړاندې آيت کښې دا ارشاد دې "وَلَا يَحِلُّ لَكُمْ أَنْ تَأْخُذُوا مِمَّا آتَيْتُمُوهُنَّ شَيْئًا" يعنې بغير د يو شرعي عُذر د ښځې نه د طلاق ورکولو په بدله کښې سره خپل ورکړې سامان يا مَهر د ښځې نه واپس واخلي يا ترې لږ څه بدل اُغواړي.

او دې نه وُستي آيت کښې ئې اُوفرمائيل "وَلِلْمُطَلَّقَاتِ مَتَاعٌ بِالْمَعْرُوفِ حَقًّا عَلَى الْمُتَّقِينَ" چې کومو طلاقو شوو ښځو ته فائده ورسَوَل د قاعدې مُوافق لازمي شوي ده په هغه چا چې د الله تعالیٰ نه وېرېږي. د فائدې رَسَولو تفسير دا دې چې د رخصتولو په وخت طلاقې شوې ښځې ته څه نغديت يا لږ نه لږ يو جوړه جامې ورکړې شي.

په دې باره کښې په سړي د طلاقې کړې ښځې څه حقوق واجب او لازم کړې شوُ او څه د احسان او ښيګړې په دول ورباندې کښېودې شُو دا د اُچتو اولو پو اخلاقو او پاکيزه ګُذراَن يو ښکلې تعليم دې په دې کښې دا هدايت حاصلېږي چې څنګه نکاح يو معامله کول دو هغه رنګ طلاق د هغه معامله ښکول دي نو دا هم په داسې دول وي چې طلاقې شوې ښځې ته څه فائده ورکول ځکه پکار دي چې وُستو ته څه جنجال، جنګ جګړه او دُښمني جوړه نشي د دې فائدې تفصيل دا دې چې د عدت په مُوده کښې دِ ښځه په خپل (د سړي) کور کښې استوګنې ته پرېښودې شي. خرچ خوراک دِ پُوره ورکړې شي که مَهر ئې لا ترا اُسه نه وي ورکړې او خلوت ورسره شوې وي نو ورته دِ پوره مَهر ادا کړي او چرې خلوت ئې ورسره نه وي کړې نو نيم مَهر دِ په خوشحالۍ ورته ادا کړي دا واجب او لازم حقوق دي خو مستحب او غوره دا هُم دي چې ښځې ته د رُخصتولو په وخت کښې څه نغديت يا لږ نه لږ يو جوړه جامې ورکړې شي، سُبحان الله څه پاکيزه تعليم دې کوم څيز و نه چې د جنګ جدل باعث جوړيدې شو چې خاندانونه پرې تباه کيدل. هغه ئې په دائمي محبّت او خوشحالۍ کښې تبديل کړل.

دې ټولو احکامو بيانولو نه پس ئې اُوفرمائيل "وَمَنْ يَفْعَلْ ذَٰلِكَ فَقَدْ ظَلَمَ نَفْسَهُ" يعنې کوم کَس چې د دې حدود د خدای وندی خلاف کوي هغه هم خپل نُقصان کوي ځکه چې دا خو ظاهره ده چې په آخرت کښې د هر ظُلم بدل به د خدائې تعالیٰ په دربار کښې اخستې شي ترڅو ئې چې د مظلوم بدل د ظالم نه نه وي اَخستې وړاندې به نه تيرېږي.

که د بصیرت او تجربې په رڼا کښې په ژور نظر اوکتې شي نو معلومه به شي چه ظالم خو په ظاهره اګرچه په مظلوم خپل زړه یخ کړي لیکن نتیجه ئې په دنیا کښې د ظالم دخوار وېد او ذلیله کیدو په صورت کښې سرګندیږي او دا رنګ ظالم پوهیږي او که نه پوهیږي په واخ آخرتو نو کښې راګیریږي چه د دغې ظلم نتیجه وي لکه چه شیخ سعدیؒ فرمائي:

پنداشت ستمګر که جفا بر ما کرد ⁂ بر ګردنِ وے بماند و بر ما بګذشت

یعنی ظالم داګنړي چه ظلم ئې اوکړو او بس خبره خلاصه شوه (داسې نه ده) په مونږه تیره شوه او د هغه په ګردن (بدله) پاتې شوه.

د قرآنِ کریم پوحکیمانه انداز بیان دے چه هغه خپل قوانین د دنیا د تعزیری قوانینو په رنګ کښې نه بیانوي بلکه په مربیانه او مشفقانه انداز کښې د قانون او د هغې د حکمتونو او مصلحتونو بیان په دلسې وضاحت سره اوکړي چه د سړي توب په جامه کښې هر یو بنیادم د هغې په خلاف کولو کښې خپل داسې نقصانات او تاوانونه وینې چه بیا په دغه جرمونو کولو هڅ زړه نشي کولے لکه چه د هر قانون په شا د خدائے تعالیٰ خوف او د آخرت حساب ورپاد وے شي۔

## نکاح او طلاق نه لوبې مه جوړوئ

په دے آیت کښې دویمه مسئله دا بیان شوه چه د الله تعالیٰ آیتونه لوبه مه جوړوئ:

وَلَا تَتَّخِذُوٓا اٰیٰتِ اللّٰهِ هُزُوًا "د لوبې جوړولو یو تفسیر خو دا دے چه د نکاح او طلاق د پاره د الله تعالیٰ نهاکلی حدود مات کړے شي۔ او دویم تفسیرئے د حضرت ابوالدرداء رضی الله عنه نه داسې منقول دے چه د جاهلیت په زمانه کښې به څینې خلقو طلاق ورکولو یا د مرئي آزادو نه پس وئیل چه ما ټوقې کولے او د څیلے خبرے نه به په دے رنګ واوړیدو، نو په دے باندې په د آیت تفسیر داسې شي چه د ټوقو طلاق او نکاح به هم جاری کیږي دنیت نه کولو عذر به په دے کښې نشي قبلولے۔ لکه چه حضور اکرم صلی الله علیه وسلم فرمائی چه په درے څیزونو کښې ټوقې او رښتیا دواړه برابردي یو نکاح دویم عتاق (مریئ او وینځه آزادول) دریم طلاق (اخرجه ابن مردویه عن ابن عباسؓ و ابن المنذر عن عبادة بن الصامتؓ) او په دے حدیث کښې د حضرت ابوهریرهؓ نه دا الفاظ منقول دي:

ثَلَاثٌ جِدُّهُنَّ جِدٌّ وَهَزْلُهُنَّ جِدٌّ | درے څیزونه داسې دي چه د هغې په رښتیا او

اَلنِّكَاحُ وَالطَّلَاقُ وَالرَّجْعَةُ | په توقه وئیل دوا په برابر دي (یو) نکاح

(دویم) طلاق او (دریم) رجوع کول (مظهری)

په دے درے څیزونو کښے شرعی حکم دا دے چه دوه کسه (سړے او ښځه) په توقه کښے هم دَ دوه ګواهانو په وړاندِ یګړے دَ نکاح ایجاب او قبول اُکړی نو دا نکاح اُشو او دا حکم دَ طلاق عتاق او رجوع هم دے -

دِدے حکم بیانولو نه پس قرآن کریم په خپل مخصوص انداز کښے بنیادم ته دحق تعالیٰ دَ طاعت او دآخرت دَخوف سبق ورکړو ۔ فرمائی " وَاذْكُرُوا نِعْمَتَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَمَا اَنْزَلَ عَلَيْكُمْ مِّنَ الْكِتٰبِ وَالْحِكْمَةِ يَعِظُكُمْ بِهٖ وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ (یعنی یاد کړی دَ الله نعمت لره چه په تاسو ئے نازل کړو او هغه خاص نعمت لره چه دَ کتاب او حکمت په صورت کښے تاسو ته درکړے شو او دا اُکنړئ چه الله تعالیٰ هر څیز لره ښه پیژنی (ستاسو دنیتونو، ارادو او دَ زړونو دَ پټو رازونو نه خبر دے) له دے وجے یګړے په طلاق ورکولو سره ښځے لره ښځې آزاد دَ ول غواړئ ۔ نو په خپل مینځ کښے دَ جنګ جګړو د حق تلفئ او ظلم نه دَ بچ کیدو او بچ کولو په نیت سره ئے اُکړئ او کوئ دَ غصے د بدل اغستو یا ښځے لره دَ ذلیل او رسوا کولو یا تکلیف ورکولو په نیت ئے مه کوئ ۔

په طلاق کښے اصل خبره دا ده چه صریح او رجعی طلاق دِ ورکړے شی | په آیت کښے دے دریمے مسئلے ته اِشاره شوے ده چه دَ شریعت او سنت په نظر کښے اصل خبره دا ده چه طلاق دِ صرف دَ مجبورئ دَ کیلډی او دا دَ مجبورئ طلاق دِ یو څو په ښکاره ټکو کښے وی او بل دِ دا رجعی وی چه تر عِدت پورے ورته دَ رجوع کولو حق حاصل وی داسے الفاظ دِ نه وائی چه ورسره سمد ستی دَ تعلق مزے اُشلیږی کوم ته چه طلاقِ بائن وئیلے شی او نه دِ درے طلاقه وی په کوم سره چه بیا نوے نکاح هم (بغیر حلالے نه) حرام شی دا اشاره دَ "طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ" نه سرکندیږی چه ذکر ئے مطلق (بغیر دَ څه قیده) شوے دے ځکه چه په آیت کښے صرف دَ طلاقِ رجعی (یو دوو) حکم بیان شوے دے دَ طلاقِ بائن یا درے طلاقو حکم نه دے بیان شوے ۔ هر کله چه قرآن کریم څه قید یا شرط اُنه لګولو نو دے اړخ ته اِشاره اُشوه چه اصل شرعی دوا طلاق طلاق رجعی وی دَ طلاق نورصورتونه دَ مکروه والی او ناخوښئ نه خالی نه دی ۔

**دَ شرعي وجې نه بغیر طلاق شوې ښځې دَ خپلې خوښې دَ واده کولو نه بندَوَل حرام دي۔**

په دویم آیت کښې دَ هغې ناروا ظالمانه طریقې بندیز راغلې دے کوم چه اکثر طلاق شوې ښځې سره کولے شي یعنې د دویم واده کولو نه ښځه بندوله شي په وجه خاوند هم دا سے کوشش ځکه کوي چه دا خپله بیعزتي ګڼړي او څه وخت د ښځې خپلوان هم دَ ښځې دویم نکاح اکثر په دے طمع او لالچ بندَ وي چه خپل ځان دَ پاره پرِڅه مال دولت حاصلَوَل غواړي څه وخت ښځه په ومبي خاوند سره په دوباره نکاح کولو راضي شي. لیکن دَ هغې خپلوان هغه طلاق دُشمنئ ته راآړوي او هغه سره ئے دویم نکاح کولو ته نه پرېږدي. هرکله چه دا ټول ضُورتونه دَ ظُلم وو نو په آیت کښې ځکه ددے بندیز راغلو۔

ددے آیت نزول هم دَ دا رنګ واقعې په باره کښې شوے دے صحیح بخاري کښې راغلي دي چه حضرت معقل بن یسار رضي الله عنه د خپلې خور نکاح یو سړي سره کړے وو هغه ورله طلاق ورکړل عدت هم تیر شو دے نه پس دغه سړے په خپلو کړو پښیمانه شو دوباره نکاح ئے ورسره کول غوښتل دغه بي بي هم راضي وه لیکن معقل بن یسار په دغه طلاق غصه وو داسئ خپله بے عزتي ګڼړله او دَ دوباره نکاح کولو اجازت ئے هرګز نه ورکولو۔

دغه رنګ یو بله واقعه دَ حضرت جابر بن عبد الله رضي الله عنه د ترلے پېښه شوے وه. هم دغه واقعات وو چه پکښې دا آیت نازل شو او دائے ښکاره کړه چه دَ حضرت معقل بن یسار رضي الله عنه او دَ جابر بن عبد الله رضي الله عنه رویّه ناخوښه او ناروا ده۔

هرکله چه صحابه کرام رضي الله عنهم دالله تعالیٰ او دَ هغه دَ رسول صلی الله علیه وسلم رښتني عاشقان وو، دا آیتِ کریمه په آورېدو دَ معقل بن یسار غصه سړه شوه۔ لاړو او خپله ئے د خپلې خور بي بي نکاح دغه کس سره اُکړو او دقسم کفاره ئے ادا کړله۔ دغه رنګ جابر عبد الله هم تعمیل اُکړلو

دے آیت کښې ړومبنو خاوندانو ته هم او دَ ښځې خپلو خپلوانو ته هم خطاب دے چه "فَلَا تَعۡضُلُوۡهُنَّ اَنۡ يَّنۡكِحۡنَ اَزۡوَاجَهُنَّ اِذَا تَرَاضَوۡا بَيۡنَهُمۡ بِالۡمَعۡرُوۡفِ" مه بند وئ (منع کوئ) طلاق شوې ښځو لره دَ دے خبرے نه چه هغوئ خپلو (تجویز کړو) خاوندانو سره نکاح اُکړي" دا که هغه ړومبني خاوندان وي کوم چه طلاق ورکړي دي یا که نور خلق وي مګر ورسره ئے دا شرط اُلګولو" اِذَا تَرَاضَوۡا بَيۡنَهُمۡ بِالۡمَعۡرُوۡفِ" هرکله چه دواړه رسره ښځه) دَ

شرعي قاعدے په مطابق راضي شي نو نکاح نه ئے مه منعٔ کوئ په دے کښے دے خبرے ته اشاره ده چه کچرے دوئ خپل مینځ کښے رضا نه وي نو په چا باندِ زور زبردستي کول غواړي نو هغوئ له دَ منعٔ کولو حق شته یا خو رضا مندي هم وي مګر د شرعي قاعدے په مطابق نهٔ وي مثلاً د نکاح کولو نه بغیر خپل مینځ کښے ښځه خاوند جوړ شي یا درے طلاق شوي نه پس په نارواؤ خپل مینځ کښے نکاح اُکړي یا د عدت په ورځو کښے بل خاوند سره نکاح کول غواړي نو هر مُسلمان دوئ منع کولے شي خصوصًا دَ دے سړي او ښځے خپلوانو او متعلقینو له دَ دوئ منع کول او خصا دَ دول واجب وي۔

دارنګ که یو جینئ دَ خپلو (اولیاؤ) مشرانو دَ اجازت نه بغیر په بل کُفو (سیال) کښے نکاح کول غواړي یا دَ خپل مهرِ مثل نه په کم نکاح کول غواړي د کوم اثر چه په خاندان پریوځي (ځکه چه دائے حق نه لري) نو دا رضا مندي هم دَ شریعت موافق نه ده۔ په دے حالتونو کښے جینئ له خپل اولیاء (مشران) د نکاح نه دَ بندَ ولو او منعَ کولو حق لري۔ "اِذَا تَرَاضَوْا" کښے دا اشاره ده چه دَ عاقلے بالغے جینئ نکاح بغیر دَ هغے دَ رضا یا اجازت نه نشي کیدے۔

داَیت په آخر کښے درے جُملے اِرشاد شوے۔ یو "ذٰلِكَ يُوْعَظُ بِهٖ مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَ الْيَوْمِ الْاٰخِرِ" چه دا احکام هغه خلقو لپاره دي چه په الله تعالیٰ او دَ قیامت په ورځ ایمان لري"۔ دے کښے اشاره دے خبرے ته اُشوه چه په الله تعالیٰ او دَ قیامت په ورځ دَ ایمان داؤرلو لازمي نتیجه دا ده چه بنیادم دِ دَ دے احکام الٰهیه پوره پابند. وي او کوم خلق چه د دے احکامو په منلو کښے کوتاهي کوي هغوئ دِ پوهه شي چه ایمان کښے ئے خلل دے۔

دویم جمله دا "ذٰلِكُمْ اَزْكٰى لَكُمْ وَاَطْهَرُ" چه د دے احکامو پابندي کول ستاسو دَ پاره دَ پاکئ او صفائي ذریعه ده۔ په دے کښے دے خبرے ته اشاره ده چه دَ دے خلاف کول دا نتیجه لري چه دَ ګناهونو په پلیتو کښے ککړ شي او فتنه او فسا دتړ راولاړه شي۔ ځکه چه عاقلے بالغے ځوانے جینکئ دمطلق نکاح نه بے هیسه بندَ وَل یوخوا په هغوئ ظلم او د هغوئ حق وَهَل دي او بل خوا دَ هغوئ حیا او شرم په خطره کښے اَچوَل دي۔ دریم دا چه خدائے دِ نه کړي کچرے دغسے جینکئ ښځے په څه ګناه کښے اَخته شي. نو دَ هغے وبال په هغه خلقو هم وي چا چه دوئ له دَ نکاح کولو نه منع کړي وي۔ او دَ اٰخرت دَ وبال نه وړاندِ وړاندِ دا سے وبال هم په دُنیا کښے را پیښیدے شي چه دَ دے په نتیجه کښے سړي خپل مینځ کښے په

جنګ جګړه او مرګ ژوبله کښې ژغنته شي لکه چه اُموږ ورځ دا سې پیدا کېږي کتلے شي کېږي د مطلق نکاح نه بندېږي خونه وي بلکه د جېنۍ د خوښې د نکاح نه ئې بندېږي اُکړو او بل سړي سره ئې په نکاح کولو مجبوره کړه نو د دے نتیجه به هم تل ناجوړښت او فتنه فساد یا طلاق او خلع وي، چه بد اثرات ئې ښکاره دي له دے وجې فرمائي چه ځان له تجویز کړي خاوند امو سره ښځې له د نکاح کولو نه منع کول ستاسو د پاره د پاکئ او صفائي ذریعه ده۔

دریمه جمله دا ده "وَاللّٰهُ يَعْلَمُ وَاَنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ" چه ستاسو ښیګړې الله تعالیٰ پېژني تاسو ئې نه پېژنئ مطلب ئې دا چه کوم خلق طلاقې شوې ښځې د نکاح کولو نه بندوي او په هغې کښې ځان له د عزت، غیرت څه خیال لري یا د هغوي د ودونو په بدل کښې ځان د پاره د مال دولت څه فائدے ګټري نو د دے شیطاني تیګي او بے ځایه فائدے او ښیګړے ګټرلو ته کول ئې دا سې اُکړل چه "الله تعالیٰ ستاسو په فائدو او ښیګړو ښه پوهېږي هم د هغې په رڼا کښې تاسو ته احکام رالېږي او هر کله چه تاسو د اصل او حقیقت نه او د معاملو د انجام نه ناخبره یئ نو تاسو په خپل ناقصه رائے او په خپل نیمګړي غور او فکر کښې کوم څیزونه چه د خپلے فائدے او ښیګړے ګټرئ هغه ستاسو د هلاکت او بربادئ موجب کېدے شي تاسو چه کوم عزت او غیرت دا ټینګ کړے دے یعني طلاقې ښځې د قابو نه بهر شوے نو دغه عزت او غیرت به مو په خاورو د وامنلو لے شي او کېدے شي چه د مالي فائدو خیالي پولاؤ تاسو دا سې جنګ جګړو کښې آخته کړي چه دغه مالي فائده مو ندل خو لا څه کوے ځان به هم درېبائیلئ۔

## د قانون جوړولو او د هغې په جاري کولو کښې د قرآن کریم بېمثاله حکیمانه اصول،

قرآن کریم دلته یو قانون بیان کړو چه طلاقې ښځې د خپلې خوښې د نکاح نه بندول جرم دے ځکه دے قانون د عمل کولو د آسانتیا د پاره د عوامو د هغوئ جوړولو په غرض درے جملے ئې ارشاد کړے په اوله جمله کښې ئې د قیامت د حساب کتاب او د مجرمونو سزا نه ئې انسان اُویرولو او په دغه قانون ئې د عمل کولو د پاره تیار کړو- په دویمه جمله کښې دغه قانون نه د ابخ کولو خرابئ او ضرر دونه ئې انسان ته په ګوته کړل چه انسان ترځان ئې کړي او په هم دغه تاکلي قانون عمل اُکړي. په دریمه جمله کښې ئې دا بیان کړل چه د خدائے تعالیٰ په دغه قانون باندې عمل کولو کښې ستاسو کټه او خیر دے. د دے نه په خلاف کولو کښې که تاسو ته څه ګټه یا خیر ښکاري نو دا ستاسو لنډ نظري او د انجام نه ناخبري ده۔

دَ قرآن کریم دَ بیان دا یو ول یواځې دلته نهٔ بلکه په ټولو احکامو کښې جاری دے. هرکله چه یو قانون بیان شی نو ورسره دَ خدائے تعالیٰ او دَ آخرت دَ عذاب او حساب نه ویرولے شی دَ هر قانون نه وړاندې رستو "اِتَّقُوا اللّٰهَ" یا "اِنَّ اللّٰهَ خَبِیْرٌ بِمَا تَعْمَلُوْنَ" یا "اِنَّ اللّٰهَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِیْرٌ" یا داسې نورې جُملې تړلے شوې وی. قرآن کریم دَ ټولے دنیا او تر قیامته دا تلونکو ټولو نسلُونو دپاره یو مکمّل نظامِ حیات او دَ ژوند په هر اړخ حاوی (راتاؤ) قانون دے. په دے کښې دَ حدود او تعزیراتو بیان هُم شته. لیکن دَ دُنیا دَ ټولو قانونی کتابُونو نه په بل یو ول دے. دَ دے طرز حاکمانه نه زیات مُربیانه دے دَ هر قانون بیانولو دَ انداز نه بنکاریږی چه دَ دے خلاف وِخوک اُنکړی چه دَ سزا مستحق شی دَ دُنیا دحکومتونو په شان نهٔ چه قانون جوړَ ولو او جاری کولو سره ئے دلته خبر داره پکښے وی چه دَ دے قانون په خلاف کولو کښے به فلانئ سزا مُوندے شی.

دَ دے نه زیاته بله خبره دا چه دَ قرآنِ کریم مخصُوص انداز بیان نه یو اوبِه دمیعاده بله غټه فائده دا ده چه دَ دے په لیدلو او آوَریدلو سره اِنسان دَ دے پابندی صرف په دے بِناء کوی چه دَ دے په خلاف کولو به دَ دُنیا خه سزا او مُوندے شی بلکه دَ دے نه ویرلو ژکردا پیدا شی چه الله تعالیٰ به خفه شی او دَ آخرت سزا به ورکولے شی او دَ دے فِکر په مل کید وسره پُهدونه. پټه او بنکاره برابر شی داسے کسّ پیا هلته هم دَ دے قانون خلاف نشی کولے، چرته چه دَ بنکاره او پټ پولیس رسائی هُم نه وی ځکه چه داسے فِکر سره دا عقیده لازمی ده چه الله تعالیٰ هر ځائے کښے حاضر ناظر او دَ ذرے ذرے نه خبر دے هم دا وجه ده چه قرآنی تعلیم کوم اصُولِ معاشرت چه تیار کړی دی هر مُسلمان د دے پابندی کول دَ خپل ژوند مقصد گنړی.

دَ قرآنی نظامِ حکومت هم دا امتیاز دے چه یو اړخ ته دَ قانون دَ حدونو او قیدونو ذِکر دے او بل اړخ ته دَ ترغیب او ترهیب (مینه پیدا کولو او ویرولو) په ادا تره دَ انسان اخلاق او کردار دومره لوړ کړے شوی دی چه دغه قانونی حد ونه او قیدونه دده دپاره یو طبیعت جوړ شی دکوم په وړاندې چه دے خپل جذبات او ټول نفسانی خواهشات شاته غورځوی. دَ دنیا دحکومتونو او قومُونو په تاریخ او په هغے کښے دَ جرمونو او سزا کانو په باب دَ ور نظر اچولو سره معلومیږی چه تش قانون جاری کولو سره دهیڅ قام یا غری اصلاح

(بنیګړه) نه ده شوې. یوائې په پولیس او فوځ چړې هم د جرمونو بند یز نه دے راغلے۔ ترڅو چه د قانون سره سره د الله تعالیٰ ویره او لوئی په زړه کښې کښیني. په اصل کښې د جرمونو نه بندَ دُونکے څیز د الله تعالیٰ نه ویره او د آخرت د حساب کتاب فکر دے کله چه دانه وی نو هیڅوک جرمونه نشی پرینبودے۔

وَالْوَالِدٰتُ يُرْضِعْنَ اَوْلَادَهُنَّ حَوْلَيْنِ كَامِلَيْنِ لِمَنْ

او د ورومیندے دِ تے ورکوی خپلو ورو نه دوه کاله پوره چه څوک

اَرَادَ اَنْ يُّتِمَّ الرَّضَاعَةَ ؕ وَعَلَى الْمَوْلُوْدِ لَهٗ رِزْقُهُنَّ

غواړی چه پوره کړی موده د تی ورکولو، او د ورو په پلار دی خوراکه

وَكِسْوَتُهُنَّ بِالْمَعْرُوْفِ ؕ لَا تُكَلَّفُ نَفْسٌ اِلَّا وُسْعَهَا ۚ

او جامے د دغه ښځو د دستور موافق، زور نشی اینبودے په چا مګر د هغه د توان مطابق

لَا تُضَآرَّ وَالِدَةٌۢ بِوَلَدِهَا وَلَا مَوْلُوْدٌ لَّهٗ بِوَلَدِهٖ ۗ وَ

ضرر دِ نشی ورکوے مور ته د هغے د بچی په وجه او نه هغه چا ته چه د چا بچے وی (پلار ته) د هغه د بچی په وجه

عَلَى الْوَارِثِ مِثْلُ ذٰلِكَ ۚ فَاِنْ اَرَادَا فِصَالًا عَنْ تَرَاضٍ

او په وارثانو هم دا قدغن دے، بیا که چرے (مور پلار) دواړه غواړی د تی نه پریکول په رضا او

مِّنْهُمَا وَتَشَاوُرٍ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا ؕ وَاِنْ اَرَدْتُّمْ اَنْ

صلاح د دواړو نو په دغوی څه ګناه نشته، که چرے تاسو غواړئ

تَسْتَرْضِعُوْٓا اَوْلَادَكُمْ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ اِذَا سَلَّمْتُمْ مَّآ اٰتَيْتُمْ

چه تی ورکول خپلو بچو ته د دائی نو هم څه ګناه نشته په تاسو کله چه اُسپارئ تاسو هغه (مال) لره د کوم

بِالْمَعْرُوْفِ ؕ وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ﴿۲۳۳﴾

ورکول موتاسو منلی وو د دستور موافق او ویریږئ د الله تعالیٰ نه او اوګورئ چه الله تعالیٰ ستاسو ټول عملونه ښه وینی ګوری۔

## دَ تفسیر لنډیز

او میندے دِ خپل اولاد ته دوه کاله پوره تے ورکوی (دا موده دَ هغه چا دَ پاره ده) چه غوښتل دَ ئی دوه دَ لو تکمیل غواړی او د چا چه بچے دے دَ هغه په ذمه دی دَ دغه میندو خوراک جامه دَ قاعدے موافق او هیڅ چا ته حُکم نشی کولے مګر دَ هغه دَ وس مُطابق هیڅ یو مور ته تکلیف نه دی ورکول پکار دَ هغے د بچی په وجه او نه هیڅ یو پلار ته د هغه د بچی په وجه (پکښے پلار ته مراد وی) نو دَ تیرے شوے طریقے په شان (د ماشوم دَ پالنے انتظام) دَ هغه دَ نږدے خپلوانو په ذمه دی (چه دَ شریعت له رُوے دَ دغه ماشوم وارث جوړیدے شی) بیا دا اُګرئی پکښے دواړه (مور و پلار دَ دوَو کالو نه په کمه مُوده کښے) دَ تی نه پریکول غواړی یو تر بله رضا او صلاح سره نو هم په دے دواړو څه ګناه نشته او پکښے تاسو خلق (د مور و پلار په موجودګئ کښے هم دَ څه ضروری بښکرے په خیال مثلاً د مور دَ تی پئ د بچی دَ پاره مُضر وی) خپلو بچو ته دَ چا بلے دائی تے دَ وَرکول غواړئ نو بیا هم په تاسو څه ګناه نشته خو هله چه اُسپادئ تاسو هغوئ ته هغه څیز لره دکوم ورکول مُو چه تماکلی وی دَ قاعدے موافق او دَ حق تعالیٰ نه ویریږئ او یقین لرئ چه الله تعالیٰ ستاسو عملونه ښه وینی ګوری۔

## علوم او مسئلے

په دے آیت کښے رضاعت (ماشومانو ته دَ تی ورکولو) سره د تړلو احکامو بیان دے۔ دَ دے نه وړاندِ او رُستو آیتونو کښے دَ طلاق دَ احکامو بیان دے په مینځ کښے دَ تی ورکولو احکام په دے جوړښت بیان شوی دی چه اکثر دَ طلاق نه پس ماشوم ته په تی ورکولو او دَ هغه په پالنه جګړے پیښیږی له دے وجے په دے آیت کښے داسے مُعتدل احکام بیان شوی دی چه د ښځے خاوند دواړو دَ پاره مُناسب او آسان دی خواه داسے پیښه په حالت د نکاح کښے راشی یا دَ طلاق نه پس راشی په دواړو صُورتونو کښے په دواړو واړو خو دَ زور ظلم څه لار پاتے کیږی نه او نه دَ جنګ جګړے فتنے فساد څه ځائے پاتے کیږی۔

مثلاً د آیت په رُومبئ جُمله کښے ئے دا اُفرمائیل "وَالْوَالِدَاتُ يُرْضِعْنَ أَوْلَادَهُنَّ حَوْلَيْنِ كَامِلَيْنِ لِمَنْ أَرَادَ أَنْ يُتِمَّ الرَّضَاعَةَ" چه میندے دِ خپلو بچو ته ئے ورکوی دوه کاله پوره خو هله چه څه مضبوط عُذر ئے دَ دے مودے نه وړاندِ په تی پریکولو مجبُوره نکړی۔

دَ دے آیت نه دِرضاعت یو څو مسٔلے معلومه شوے۔

**تے ورکول دَمور په ذمه واجب دے** پومبئ دا چه تے ورکول دَمور په ذمه دیانتًا واجب دے۔ دَ څه ضد یا خفګان په وجه بے له عُذره که تے نه ورکوی نو ګنهګاره به وی تر څو چه په نکاح کښے وی نو خپل خاوند نه دِ تی ورکولو بدله یا مزدُوری نشی غوښتے ځکه چه دا دَ هغه خپل فرض او ذمه واری ده۔

**دَ تی ورکولو پُوره مُوده** دویمه دا مسٔله معلومه شوه چه دَ تی ورکولو پُوره مُوده دوه کاله ده تر څو چه یو خاص عُذر دَ نه وی را پیښ شوے نو دَ بچی دا حق دے چه ورته دومره مُوده تے ورکړے شی۔

دَ دے نه دا هم معلومه شوه چه دَ تی ورکولو مُوده دوه کاله تا کلے شوے ده، البته دَ ځنے قرآنی آیتونو او احادیثو په بناء امام اعظم ابوحنیفهؒ دَ دے خبرے قائل دے چه دوه نیم کاله دَ (عمُر) په مُوده کښے په تی ورکولو سره دَ رضاعت احکام ثابتیدے شی او دَ بچی دکمزورئ یا دَ بل څه عذر په وجه دَ دوه نیم کالو تر عمُره پورے ماشوم ته دَ تی ورکولو څه ګناه هم نشته دَ دغے عمُر نه رُستو بچی ته دَ مورے تے ورکول په اتفاق دَ علماؤ سره حرام دی۔ دَ دے آیت په دویمه جُمله کښے ارشاد دے: " وَعَلَى الْمَوْلُودِ لَهُ رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ لَا تُكَلَّفُ نَفْسٌ إِلَّا وُسْعَهَا " چه دَ میندو خوراکه او جامه دَ قاعدے موافق دَ پلار په ذمه ده۔ هیچا ته دا سے حکم نشی ورکولے دکوم چه توان نه لری۔

په دے کښے پُومبئ خبره دَغور جوګه ده هغه دا چه قرآن مجید کښے دَ میندو دَ پاره دَ "وَالِدَاتُ" لفظ استعمال شوے دے او دَ پلار دَ پاره دَ " وَالِدُ " په ځائے " اَلْمَوْلُودِ لَهُ " ئے اختیار کړو سره دَ دے چه دَ قرآن کریم په یو بل ځائے لَا يَجْزِي وَالِدٌ عَنْ وَلَدِهِ " کښے هم دَ " وَالِدُ " لفظ راغلے دے۔ دے کښے یو خاص راز دا معلومیږی چه دَ قرآن کریم دَ قانُون طرزِ بیان دَ دُنیا وی حکومتونو دَ قانُون په عکس داسے مُربیانه او مشفقانه دے چه انسان لره دَ هغے قبلَوَل او په هغے عمل کول آسان وی۔

بچے دَمور پلار په شریکه وی نو پلار ته دا یو ذیاتے او بیجا بنکاره کیدے شو چه قرآن کریم دَ ټول لره دَ بچی دَ مور دَ خوراک او جامے او دَ ژوندون دَ نورو ضرورتونو ذمه وار ترهغے اکرځولو تر څو چه دغه مور دَ پلار په نکاح کښے یا عدّت کښے وی هر کله چه نکاح ختم شو

او عدت هم تېر شي نو د زوجيت نفقه به هم ورسره ختم شي مګر بيا هم د تي ورکولو معاوضه ادا کول د پلار په ذمه به اوس هم واجب وي ځکه چه دلته د "وَالِدٌ" په ځای د "اَلْمَوْلُوْدُ لَهٗ" لفظ اختيار ولو کېدو د قرآن کريم دا حکمت معلومېږي چه بېشکه د بچي په پيدا کښې مور او پلار دواړه شريک دي. مګر دے هم د پلار ګڼړے شي. نسب ئے هم د پلار چلېږي. (مظهري)

### د بچي نفقه د خاوند د حيثيت (توان) مناسب پکار ده که د بچي د حيثيت مناسب؟

په دے خبره خو ټولو علماؤ اتفاق دے چه ښځه خاوند دواړه اميران (مالداران) وي نو د بچي نفقه به اميرانه واجب وي او که دواړه غريبان وي نو نفقه به غريبانه واجب وي البته که د دواړو مالي حالت بدل بدل وي نو په دے کښې د فقهاؤ اختلاف دے. صاحب هدايه د "خصاف" په دے قول فتوی ورکړې ده چه کچرے ښځه غريبه او سړے مالدار وي نو د هغې نفقه به درميانه درجے وي چه د غريبانو نه به زياته او د مالدارو نه به کمه وي او د "کرخي" په نزد نفقه به د خاوند د حال مطابق ورکولے شي لکه چه فتح القدير کښې د ډېرو فقهاؤ" فتوی هم په دے نقل ده. والله اعلم.
(فتح القدير ص ۳۲۳ ج: ۳)

په آيت کښې د احکامو بيانولو نه پس ارشاد دے "لَا تُضَآرَّ وَالِدَةٌۢ بِوَلَدِهَا وَلَا مَوْلُوْدٌ لَّهٗ بِوَلَدِهٖ" چه د بچي په وجه نه څوک مور او نه څوک پلار په تکليف کښې اچول روا دي. مطلب دا دے چه مور پلار دے خپل مينځ کښې ضد ضدائي نه کوي. مثلاً مور د تي ورکولو نه معذوره وي او پلار سره د بچي په زبردستۍ په ښځے تي ورکول اړ دي يا مثلاً پلار خوار دے او مور بے عذره (سره د توانه) ئے په دے غرض نه ورکوي چه پلار مړي که چرې بل چا دائي نه په اُجرت او معاوضه د بچي له تي ورکوي.

### مور لره بچي ته په تي ورکولو مجبوره کول يا نه مجبوره کول به په کوم صورت کښې وي؟

"لَا تُضَآرَّ وَالِدَةٌۢ بِوَلَدِهَا" نه پنځمه مسئله دا معلومه شوه چه کچرے مور د څه ضرورت په وجه بچي ته د تي ورکولو نه انکار کړي، نو پلار لره د هغې مجبوره کول روا نه دي او کچرے بچے د بلے ښځے تي يا د څاروي پئ نه اخلي نو مجبوره کول ئے روا دي. دا مسئله د "وَلَا مَوْلُوْدٌ لَّهٗ بِوَلَدِهٖ" نه معلومه شوه.

☆

**بنځه ترڅو چه نکاح کښے ده نو خپل بچی ته دَ تی ورکولو اُجرت نه شی غوښتے مګر دَ طلاق او عدّت نه پس غوښتے شی**

شپږ مه دا مسئله معلومه شوه چه مور څو پورے نکاح کښے وی نو بچی ته دَ تی ورکولو اُجرت ځکه نشی غوښتے چه هغې لره دَ دغے دوران دَ شریعت تا کلے نفقه کافی ده. دَ دے نه زیاته خرڅه غوښتل پلار ته ضرور ورکول دی دَ طلاق دعدّت تیریدو نه پس هرکله چه دغه تا کلے خرڅه ختمه شوه نو دَ تی ورکولو دَ خرڅ غوښتنه نه پوره کول دَ پلار له اړخه مور ته ضرور ورکول دی خو شرط پکښے دا دے چه دَ نورو ښځو (مناسب) نه زیاته خرڅه نه غواړی کله ئے چه زیاته غوښتنه اُکړه نو پلار دا حق لری چه دَ بلے دائی انتظام اُکړی.

---

**یتیم بچی ته دَ تی ورکولو ذمه دَ چا ده؟**

په آیت کښے دا هم ارشاد دے "وَعَلَى الْوَارِثِ مِثْلُ ذٰلِكَ" یعنی که چرے پلار ژوندے نه وی نو بچی ته د تی ورکولو انتظام په هغه چا دے څوک چه دَ دغه ماشوم دا سے نزدے خپل وی چه دَ هغه شرعی وارث جوړیدے شی که چرے دا دول وارثان ئے کنړ دی نو بیا په هر یو په قدر دَ میراث به دغه ذمه واری وی

امام اعظم ابو حنیفهؒ فرمائی چه یتیم بچی ته دَ تی ورکولو ذمه داری په وارث باندِ اچولو نه دا هم معلومه شوه چه دَ نا بالغ بچی خرڅه دَ تی نه دَ پریکولو نه پس هم په وارثانو ده ځکه چه تے ورکول څه خاص خبره نه ده اصل مطلب دَ ماشوم (یتیم) پالنه ده مثلاً که چرے یتیم بچی مور او نیکه (دَ پلار پلار) ژوندی وی نو دا دواړه دَ بچی نزدے خپلوان او دَ هغه وارثان دی له دے وجے دَ ده نفقه به په دے دواړو دَ میراث دَ برخے په قدر وی. یعنی دریمه برخه نفقه به په مور او په درے وُ کښے دوه برخے به په نیکه وی. دَ دے نه دا هم معلومه شوه چه دَ یتیم نمسی په خپل نیکه باندِ ده دَ بالغو ځامنو (دَ یتیم د ترونو) نه هم زیات حق دے، ځکه چه دَ بالغ اولاد نفقه دَ ده په ذمه نه ده او دَ یتیم نمسی نفقه دَ ده په ذمه واجب ده، خو دَ ځامنو په موجودګئ کښے نمسی دَ میراث حقدار جوړول دَ میراث دَ اصولو او انصاف نه خِلاف ده ځکه چه نزدے (نیغ په نیغه) اولاد وی نو لرے (بالواسطه) اولاد ته میراث کښے حقدار جوړول دَ عقل نه هم لرے خبره ده او دَ بخاری شریف دَ حدیث "لِاَوْلٰى رَجُلٍ ذَكَرٍ" (یعنی نزدے نارینه اولاد دَ پاره دے) نه هُم خِلاف دے البته نیکه دَ ضرورت کنړلو په وخت دا حق لری چه یتیم نمسی دَ پاره څه وصیت اُکړی. دغه وصیت به دَ ده دَ ځامنو دَ

برخه نه زیات ورکړل نه دی؛ په دې ډول دَ یتیم ضرورت هم پوره کیږی او دَ میراث هغه اصول هم په خپل حال محفوظ پاتې شول. په کوم کښې چه فرمائیلې شوی دی "چه دَ نزدې وارث په موجودګئ کښې لرې ته میراث ورکول روا نه دی."

**دَ تی نه د پریکولو احکام**

دې نه پس په آیت کښې دا ارشاد دې "فَاِنْ اَرَادَا فِصَالًا عَنْ تَرَاضٍ مِّنْهُمَا وَتَشَاوُرٍ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا" کچرې دَ بچی مور و پلار دواړه په رضا صلاح سره دَ بیو دَ مودې (دوه کاله) پوره کیدو نه وړاندې ده لره دَ تی نه دَ پریکولو اراده اوکړی دا که د مور د معذوری، یا د بچی دَ ناروغتیا (رنځورتیا) په وجه وی نو څه ګناه پکښې نشته. دَ رضا صلاح شرط دَ بچی دَ بنیګړې په خیال لګولې شی هسې نه چه په جګړه او اختلاف کښې ما شوم خاورې ایرې (خراب) شی.

**دَ مور نه سوا دَ بلې ښځې دَ تی ورکولو احکام**

په آخر کښې ارشاد دې "وَاِنْ اَرَدْتُّمْ اَنْ تَسْتَرْضِعُوْٓا اَوْلَادَكُمْ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ اِذَا سَلَّمْتُمْ مَّآ اٰتَيْتُمْ بِالْمَعْرُوْفِ" کچرې تاسو دا غواړئ چه دَ څه بنیګړې له خاطره بچی ته دَ مور په ځائې دَ دائی تے ورکړئ نو په دې کښې څه ګناه نشته خو په شرط دَ دې چه تی ورکوونکی ته دَ هغې تړلې شوې اُجرت پوره ورکړې شی په دا رنګ نه کولو سره به ګناه دَ دوئ په ذمه پاتې شی.

دې نه دا هم معلومه شوه چه کچرې مور په تی ورکولو راضی وی لیکن پلار دَ دې پئ بچی دَ پاره مُضِر ګنړی نو روا دی چه دَ مور پئ پر بند کړی او بلې ښځې (دائې) نه دَ تی ورکولو دَ پاره ئې اُسپاری.

دې نه دا هم معلومه شوه چه تی ورکولو دَ پاره تاکلې شوې ښځې سره دَ اُجرت خبره بنه صفا کړې شی چه تر جګړه دا ولاړه نشی. او بله دا چه په تاکلی وخت دِ ورته اُجرت ورکړی او اَخوا دیخوا دِ پکښې نه کوی.

دَ رضاعت احکام بیانولو نه پس دَ خپل بے مثله ښکلی طرز موافق په قانون بانډې عمل آسانولو او په ظاهر، باطن کښې دَ دې پابند جوړیدلو دَ پاره الله تعالیٰ نه دَ ویرې او دَ هغه دَ علم محیط تصورئې را وړاندې کړو. اِرشاد دې "وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ" دَ الله تعالیٰ نه ویریږئ او اُګنړئ چه الله تعالیٰ ستاسو ښکاره

پټ ظاهر او غائب په پوره ډول وينې کوري او هغه ستاسو د زړونو د پټو، ارادو او نيتونو نه خبردے د کوم يو فريق له اړخه چه د تړون د کولو د احکامو خلاف اُشو يا د چې ښيکاره ئے شانه اُغورځوله. او بل څه فيصله ئے او کړه نو هغه به د سزا مستحق وي.

وَالَّذِيْنَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَيَذَرُوْنَ اَزْوَاجًا

او کوم کسان چه مړه شي له تاسو څخه او پرېږدي ښځې نو پکار دي چه هغه

يَّتَرَبَّصْنَ بِاَنْفُسِهِنَّ اَرْبَعَةَ اَشْهُرٍ وَّعَشْرًا ۚ فَاِذَا بَلَغْنَ

ښځې په انتظار کښې او ساتي ځېل ځانونه څلور مياشتې او لس ورځې، بيا کله چه پوره کړي

اَجَلَهُنَّ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيْمَا فَعَلْنَ فِيْٓ اَنْفُسِهِنَّ

ځېل عدت لره نو په تاسو څه ګناه نشته په دے خبره کښې چه اُکړي هغوئ په ځېل ځان کښې د

بِالْمَعْرُوْفِ ۗ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ ﴿٢٣٤﴾ وَلَا جُنَاحَ

قاعدے موافق، او الله تعالیٰ له ستاسو د ټولو کارونو خبر دے. او هيڅ ګناه نشته

عَلَيْكُمْ فِيْمَا عَرَّضْتُمْ بِهٖ مِنْ خِطْبَةِ النِّسَآءِ اَوْ

په تاسو په دے کښې چه په اشاره کښې اُوايئ د نکاح پيغام (ربلنه) د دغه ښځو، يا

اَكْنَنْتُمْ فِيْٓ اَنْفُسِكُمْ ۭ عَلِمَ اللّٰهُ اَنَّكُمْ سَتَذْكُرُوْنَهُنَّ

پټ اُساتئ په ځېلو زړونو کښې، الله تعالیٰ ته معلومه ده چه تاسو به هرومرو د دغه ښځو يادګيرنه

وَلٰكِنْ لَّا تُوَاعِدُوْهُنَّ سِرًّا اِلَّآ اَنْ تَقُوْلُوْا قَوْلًا مَّعْرُوْفًا ڛ

کوئ. ليکن هغوئ سره د نکاح کولو پټه وعده مه کوئ مګر هم دا چه اُوايئ څه خبره د شريعت د رواج موافق

وَلَا تَعْزِمُوْا عُقْدَةَ النِّكَاحِ حَتّٰى يَبْلُغَ الْكِتٰبُ اَجَلَهٗ ۭ

او اراده مه کوئ د نکاح تړلو څخه چه اُرسيږي تر کله شوے عدت خپلے انتها ته،

وَاعۡلَمُوۡۤا اَنَّ اللّٰهَ یَعۡلَمُ مَا فِیۡۤ اَنۡفُسِکُمۡ فَاحۡذَرُوۡهُ ۚ

او پوهېږئ چه الله تعالیٰ ته معلوم دي هغه چه ستاسو په زړونو کښې دي. نو د هغه نه ویرېږئ.

وَاعۡلَمُوۡۤا اَنَّ اللّٰهَ غَفُوۡرٌ حَلِیۡمٌ ﴿۲۳۵﴾ ع ٣٠ ٣ ١٣

او پوهېږئ چه الله تعالیٰ بخښونکے او زغم لرونکے دے.

## د تفسیر لنډیز

**دخاوند د مرګ د عدت بیان** — **صورت کښې د عدت بیان**

وَالَّذِیۡنَ یُتَوَفَّوۡنَ مِنۡکُمۡ (تر) وَاللّٰهُ بِمَا تَعۡمَلُوۡنَ خَبِیۡرٌ ۝

او کوم خلق چه په تاسو کښې وفات شي او بیبیانې پرېږدي نو هغوئ (بیبیانې) د خپل ځان نه (د نکاح وغیره نه) بند لري څلور میاشتې او لس ورځې بیا کله چه خپله د (عدت) نیټه ختمه کړي نو ستاسو په (هم) څه ګناه نه وي دا سے خبره (دوالیانو) کښې چه دغه ښځې خپلو ځانونو د پاره څه کاروائي (د نکاح) اوکړي د قاعدے موافق (البته که چرے څه خبره د شرع د قاعدے خلاف کوي او تاسو د توان لرلو سره هم هغوئ منع نه کړئ نو په ګناه کښې به ورسره تاسو هم شریک یئ) او الله تعالیٰ ستاسو د ټولو کارونو خبر لري او په تاسو به څه ګناه نه وي چه دغه ښځونه (کومے چه د وفات په عدت کښې دي) د پیغام (د نکاح) ورکولو په باره کښې څه خبره اشارةً اوایئ (مثلاً داسے چه ما ته یو نیکے ښځے سره د نکاح کولو ضرورت دے) یا په خپل زړه کښې (د را تلونکې نکاح کولو اراده) پټه اُساتئ، (نو بیا هُم څه ګناه نشته او د دے اجازت وجه داده چه) الله تعالیٰ ته دا خبره معلومه ده چه تاسو به دد غې ښځو (هرُو مرُو) یاد ګیرنه کوئ (خیر دے یاد ګیرنه کوئ) لیکن هغوئ سره (په صفا توګه کښې) د نکاح وعده (او خبرے اترے) مه کوئ مګر دا چه څه خبره د قاعدے موافق اُکړئ (نو څه بدیت ئے نشته او د قاعدے مطابق خبره هم هغه ده کومه چه په اشارو اشارو کښې اُکړئ) او تاسو د نکاح د تعلُّق (سمدستي) اراده هم مه کوئ تر دے چه عدت په خپل تاکلي وخت ختم شي او یقین لرئ چه الله تعالیٰ له خبر دے ستاسو د زړونو د خبرو د نو الله تعالیٰ نه ویرېږئ (او د ناروا خبرو په زړه کښې اراده هم مه کوئ) او (داهم) یقین لرئ چه الله تعالیٰ مُعاف کوُونکے هم دے او زغم لرُونکے هم.

# علوم او مسئلې

**دَعدّت څنې احکام** (۱) دَچا چه خاوند مړشي نو هغې لپاره په عدّت کښې خوشبوئي لګول دول سنګار کول دا نجه او تیل بې له ضرورته (دَدارو او علاجه) لګول نکریزه پورېکول زنګینه جامې اغوستل بنه نه دي او دَدوئیم نکاح په څرګند خبرې کول هم بنه نه دي لکه چه دا تلوتکی آیت کښې په راشې په بل کورکښې شپه تېرول هم روا نه دي. په ترجمه کښې "نکاح" سره د "وغیره" لفظ لګولو نه مطلب هم دا خبره دی او دا حکم دَ هغه ښځې دَپاره هم دے چاله چه طلاق بائن ورکړې شوې وي په کوم کښې چه رجوع کول روا نه دي مګر دا سې ښځې دپاره دَو رڅې هم بغیر دَسختې مجبورئ نه وتل بنه نه دي.

(۲) کچرې دَسپوږمئ په شپه ئې خاوند مړ شوې وي نو دَعدّت دا درې میاشتې اولس ورځې به هم دَسپوږمئ په حساب پوره کولې شي چه کله به دېرش او کله به یوکم دېرش ورځې وي او کچرې دَسپوږمئ شپې نه پس وفات شوې وي نو دا ټولې میاشتې به دَدېرشو دېرشو ورځو شمېرلې شي چه ټولې ترشپېږ نیمې سلې ورځې جوړیږي. دَدې مسئلې نه ډیرخلق نا خبره دي په کوم وخت چه وفات شوې وي دَعدّت دَختمېدو آخري وخت به هم دَ هغې دَشروع نه شمېرلې شي کله چه دَعدّت ټوله نیټه ختمه شي. دا فرمان "کچرې ښځې دقاعدې مُوافق څه کوي نو تا سو ته هم څه ګناه نشته" دا مطلب لري چه خِلاف شرع کارکوونکې له منع کول (په قدرد وَس) په ټولو مسلمانانو واجب دي که منع ئې نه کړو نو دغه خلق به ورسره ګناهګاروي، او د "قاعدې مُوافق" مطلب دادې چه تجویز شوې نکاح دِشرعًا صحیح او جائزوي او دَ دوا والي ټول شرائط دِ پهلته جمع وي۔

لَاجُنَاحَ عَلَيْكُمْ اِنْ طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ مَا لَمْ تَمَسُّوْهُنَّ

هیڅ ګناه نشته په تا سو کچرې طلاق ورکړل تا سو ښځو ته هغه وخت چه تا سو ورپورې لاس هم نه وي لګولې

اَوْ تَفْرِضُوْا لَهُنَّ فَرِيْضَةً ۚ وَّمَتِّعُوْهُنَّ ۚ عَلَى الْمُوْسِعِ

او نه مو ورله څه مهر تړلے وي، او هغوئ ته څه خرڅه ورکوئ دَ وس خاوند باندې دَ هغې

قَدَرُهٗ وَعَلَى الْمُقْتِرِ قَدَرُهٗ ۚ مَتَاعًا بِالْمَعْرُوْفِ ۚ

موافق او تنګئ والا (بے وسه) باندې د هغې موافق کومه خرڅه چه د قاعدے موافق ده،

حَقًّا عَلَى الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۲۳۶﴾ وَاِنْ طَلَّقْتُمُوْهُنَّ مِنْ قَبْلِ

لازمه ده په نیکو کارو خلقو، او که چرے طلاق مو کړے دوی (ښځو) له د لاس وړلو نه

اَنْ تَمَسُّوْهُنَّ وَقَدْ فَرَضْتُمْ لَهُنَّ فَرِيْضَةً فَنِصْفُ

وړاندې او ټاکلے مو وی هغوئ له مهر، نو لازم شو نیم مهر د

مَا فَرَضْتُمْ اِلَّاۤ اَنْ يَّعْفُوْنَ اَوْ يَعْفُوَا الَّذِىْ بِيَدِهٖ

هغې چه کوم مو ټاکلے وی مګر چه تیر په هیره کړی هغوئ (ښځے) یا تیر په هیره کړی هغه کس د چا په

عُقْدَةُ النِّكَاحِ ۭ وَاَنْ تَعْفُوْۤا اَقْرَبُ لِلتَّقْوٰى ۭ وَلَا

اختیار کښے چه غوټه کول د نکاح دی (یعنی خاوند) او تاسو سړی چه تیر په هیره کړئ نو دا به نزدے وی پرهیزګارئ ته او

تَنْسَوُا الْفَضْلَ بَيْنَكُمْ ۭ اِنَّ اللّٰهَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ﴿۲۳۷﴾

هیر دوئ احسان کول په خپل مینځ کښے. بیشکه الله تعالیٰ (هغے له) چه کوم تاسو کوئ بنه وینی کوری۔

## دَ تفسیر لنډیز

**د طلاق قبل الدُخول په صُورت کښے دَ مهر دَ واجبید او نه واجبید بیان**

دَ طلاق قبل الدُخول مطلب دا دے چه خاوند ښځے ته په داسے وخت کښے طلاق ورکړی چه نه خو یے ورسره جماع کړی وی او نه ورسره یې ځان له ځانے کښے

یوځائے شوے وی دے کښے دوه صُورتونه جوړیږی۔ اوّل دا چه دَ نکاح په وخت ټاکلے مهر نه وی ایښودے شوے۔ او دویم دا چه ایښودے شوے وی دَ دُومبی صورت حکم په دے ذکر دے فرمائی:

لَاجُنَاحَ عَلَيْكُمْ اِنْ طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ مَا لَمْ تَمَسُّوْهُنَّ (تر) حَقًّا عَلَى الْمُحْسِنِيْنَ ۝

یعنې په تاسو (دَ مهر) څه کرفت نشته چه بیبیانو ته په دلسې حالت کښې طلاق ورکړئ چه نه مو وَرله لاس وراُړے دے (او نه مو ورله څه مَهر تا کلے دے (نو په دا سې صُورت کښې مَهر په خپله ذمه مه کنړئ) او (صِرف) هغوئ ته (یو) فائده رسوئ دَوس خاوند په ذمه دَ هغه دَحیثیت موافق دی او دَ (غریب) تنګدستِه په ذمه دَ هغه دَحیثیت موافق دی یو خاص فائده دَرسول چه دَ قاعدے موافِق واجب دی په ښو معاملهٔ روخلقو (یعنې په ټولو مسلمانانو څکه چه دَ ښے معاملے کولو حکم ټولو مسلمانانو ته دے، دَ دے نه مراد یوجوړجامے ورکول دی)

او دَ دویم صُورت حکم دا دے وَاِنْ طَلَّقْتُمُوْهُنَّ (تر) اِنَّ اللّٰهَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ۝ او کچرے تاسو بیبیانو ته طلاق ورکړئ وړاندِ دَ دے چه لاس مُو ور اُړے وی او څه مَهر مو ورله تاکلے وی نو (په دے صُورت کښې) څومره مَهر چه تاسو تاکلے وی دَ هغے نیم (واجب) دے. (او نیم مُعاف دے) مګر (دوه صُورتونه دَ دے مجموعي حکم نه مستثنیٰ دی، یو صُورت خو دا چه دغه ښځے (خپل نیم مَهرهُم) مُعاف کړی (نو په دے صُورت کښې نیم هم واجب پاتے نه شو) یا (دویم صُورت) دا (دے) چه هغه سړے فراخدلی اُکړی دَ چا په لاس کښې چه دَ نکاح تعلق رسا تل او ماتول) دی (یعنې خاوند ټول پوره مهر ورکړی نو په دے صُورت کښې به دَ خاوند په مرضئ پوره مَهر ادا کول وی) او (اے اهلِ حق) ستاسو (خپلو حقوقو لره) معاف کول (دا غښتلو په ځائے) تقوئ ته زیات نزدے دی (ځکه چه په مُعاف کولو ثواب حاصیږی او ظاهره خبره ده چه دَ ثواب کار کول تقوئ بللے شی) او خپل منځ کښې اِحسان (او مخ ملاظه) کولو نه غفلت مه کوئ (بلکه هرکَس دِ دَ بل سړه دَ پت پاللو خیال لری) بیشکه الله تعالیٰ ستاسو ټول عملونه ښه وینی (نو که تاسو چا سره پت پالئ یا ورسره احسان کوئ الله تعالیٰ به تاسو ته بهتره بدله درکړی) (بیان القرآن)

## علوم او مسئلے

لَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ (تر) اِنَّ اللّٰهَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ۝ دَ مهر او جماع په نسبت دَ طلاق څلور صورته کیدے شی دَ دوو حکم په دے آیتونو کښې بیان شوے دے (۱) یو دا چه نه خو مهر تاکلے وی او نه خو جماع او خلوت شوے وی. (۲) دویم دا چه مَهر خو تاکلے وی مګر جماع او خلوت نه

وی شوے (۳) دریم داچه مَهر هُم تاکلے وی او جماع هُم شوی وی نو تاکلے پوُره مَهر به دلته ورکوے شی. دا حکم دَ قرآن کریم په بل ځائے کښے بیان شوے دے (۴) څلورم صُورت دا دے چه مَهر څو تاکلے نه وی مګر جماع یا خلوت صحیحه نه پس طلاق ورکړے شوی وی په دے صُورت کښے پوُره مَهرمثل ورکول دی دَ دے بیان هُم په یو بل آیت کښے راځی. مَهرمثل هغه دے چه دَ ښځے په قام کښے دکوم دواج وی.

په تیرشوی آیت کښے دَ ډومبی دوه قسمو حکم بیان شوے دے. په دے کښے دَ ډومبی صورت حکم دا دے چه مَهر څو هیڅ هُم واجب نه دے مګر په خاوند دا واجب دی چه دَ خپله ځانه ښځے ته څه ورکړی لږ نه لږ دا چه یو جوړه جامے ورله ورکړی. اصل خبره دا ده چه قرآن کریم دَ دے بخښیش هیڅ اندازه نه ده تاکلے البته دا ئے اُښودل چه مالدار دِ دَ خپل حیثیت په جوړ ورکوی مطلب ئے دا دے چه دشو متوب نه دِ کار نه اخلی. حضرت حسنؓ هم په داسے یو پیښه کښے چه طلاق بی بی ته شل زره درهمه بخښیش ورکړے وے او قاضی شریحؒ پنځه سوه درهمه او حضرت ابن عباسؓ فرمائی چه لږ نه لږ درجه ئے دا ده چه یو جوړه جامے ورکړی (قرطبیؒ)

او دوئیم صورت حکم دا دے چه دَ کومے ښځے مهر دَ نکاح په وخت کښے تاکلے شوے وی، او دجماع یا دَخلوتِ صحیحه نه وړاندِ طلاق ورکړے شو نو دَ دغه تاکلی مَهر نیمه برخه اداکول به دَ سړی په ذمه واجب وی البته که ښځه دا هم اُبخښی یا سړے ئے پوُره ورکړی نو دا دَ خوښے خبره ده لکه دا آیت "اِلَّآ اَنۡ يَّعۡفُوۡنَ اَوۡ يَعۡفُوَا الَّذِىۡ بِيَدِهٖ عُقۡدَةُ النِّكَاحِ" نه چه معلومیږی.

دَ سړی له اړخه پوُره مَهر اداکولو ته ئے مُعاف کول (بخښل) دَ عربو دواج په مطابق ئے اُفرمائیل چه هغوئ به هم دواده په موقعه ټول مَهر اداکولو. هرکله چه ده به دَ جماع یا دَخلوتِ صحیحه نه وړاندِ طلاق ورکړو نو دَ شرعی حُکم مُطابق دے دَ هغه نیم ورکړی مَهر واپس غوښتلو حقدار وو نو ځکه دغه واپس نه غوښتلو ته ئے مُعاف کول (بخښل) اُفرمائیل. دے قسم معاف کولو او بخښلو ته ئے دِ پرغوره او تقوی ته ډیر نزدے حُکم اُفرمائیل چه دَ نکاح مزے نشید ل هم په اِحسان او ښه سلوک سره اُشو چه دَ شریعت مراد او دَ عظیم ثواب مُوجب دے. برابره ده چه مُعافی دَ سړی له اړخه وی او که دَ ښځے له اړخه!

"اَلَّذِىۡ بِيَدِهٖ عُقۡدَةُ النِّكَاحِ" تفسیر پخپله حضورِ اکرم صلی الله علیه وسلم داسے

کړې دې" وَلِیُّ عُقْدَةِ النِّکَاحِ الزَّوْجُ " یعنی د نکاح د غوټې اختیارمند خاوند دے" دا حدیث په دارقطنی کښې په روایت د عَمْرِوبْنِ شُعَیْبٍ عَنْ اَبِیْهِ عَنْ جَدِّهٖ منقول دے او د حضرت علی او ابن عباس رضی الله تعالیٰ عنهما نه هُم (قرطبی)

دے نه دا هم ثابته شوه چه د نکاح مکمل کیدو نه پس د نکاح د قائم ساتلو یا د هغې د ختمولو اختیارمند خاوند دے. طلاق هم هغه ورکولے شی په طلاق ورکولو کښې د ښځې هیڅ اختیار نشته.

حٰفِظُوْا عَلَی الصَّلَوٰتِ وَالصَّلٰوةِ الْوُسْطٰی ۚ وَقُوْمُوْا

خبردار اوسیږئ د ټولو مونځونو نه او د منځنی مونځ نه ، او ولاړ اوسیږئ

لِلّٰهِ قٰنِتِیْنَ ﴿۲۳۸﴾ فَاِنْ خِفْتُمْ فَرِجَالًا اَوْ رُکْبَانًا ۚ فَاِذَآ

د الله تعالیٰ په وړاندې ادب سره ، بیا که چرې ستاسو ویره وی د چا نو پیاده ادا کوئ یا په سورو ، بیا کله چه

اَمِنْتُمْ فَاذْکُرُوا اللّٰهَ کَمَا عَلَّمَکُمْ مَّا لَمْ تَکُوْنُوْا تَعْلَمُوْنَ ﴿۲۳۹﴾

تاسو امن بیا مومئ نو یاد دوئ الله تعالیٰ لره څنګه ئے چه تاسو ته ښودلی دی هغه چه تاسو له نه و درتلل.

## د تفسیر لنډیز

**د مونځونو د ساتنې بیان** | د دے نه وړاندې زښتو د طلاق احکام دی په منځ کښې د مونځ احکام بیانول دے خبرے ته اشاره ده چه اصل مقصود حق تعالیٰ ارخ ته توجه کول دی او د معاشرے او معاملاتو د احکامو مطلب ، د دنیاوی مصلحتونو ښیګړه نه علاوه د دے توجه ساتنه او ترقی ده. د خدائی احکامو کښې لږ په هول په دے هر کله چه عمل اکړے شی نو توجه به ورسره لازمه وی بیا دا چه په دے احکامو کښې د بندګانو حقوق هم ادا کول دی. او د حقوق العباد په برخه د ولوسره د خدائے تعالیٰ د دربار نه لرے وتل دی دے سره لازمه خبره دا ده چه د الله تعالیٰ او د هغه د بندګانو د حقوقو نه بے توجهی پیدا اکیږی. هر کله چه په مانځه کښې دا سے توجه پیدا کیدل ډیر ښکاره دی ، نو له دے وجې په منځ کښې د دے بیانول د دے توجه په مقصودیت دلالت کوی چه بنده د ځے هر وخت خیال لری حٰفِظُوْا

عَلَى الصَّلَوٰتِ وَالصَّلٰوةِ الْوُسْطٰى (تر) مَا لَمْ تَكُوْنُوْا تَعْلَمُوْنَ ، سا ر نه کوئ د تولو
مونځونو (عموماً) او د منځنۍ مونځ (د ماذیګر خصوصاً) او (په مونځ کښې) ولاړ اوسیږئ
د الله تعالیٰ په وړاندې عاجزه چو پرشوي بیا ګڅ ستاسو (با قاعده مونځ اداکولو کښې د
چا دُشمن وغیره ) ویره وي نو په ولاړه یا په سورلئ سوړ (په څه ډول چه کیدے شي
قبلے ته مخ کیدے شي که رکوع او سجده په اشاره هم وي) اداکوئ (په دے
حالت کښې هم د دے سا ر نه کوئ او داهم پریږدئ) بیا هر کله چه ستاسو (بیعنی) اطمینان (تسلی
اُشی (او ویره موو رکه شي) نو تاسو د خدائے تعالیٰ یاد (یعنی مونځ اداکول) په داسے ډول
کوئ په کوم چه تاسو ته (د اطمینان او تسلئ په حالت کښې) ښودلے دے او هغه مو (د دے نه وړاندې)
نه پیژندلو۔

## علوم او مسئلے

د ځنے احادیثو په دلیل سره اکثرو علماؤ منځنۍ مونځ ماذیګر ته ویلے دے ځکه چه د دے
یو اړخ ته دوه د ورځے (صبا او ماسپښین) مونځونه دي او بل اړخ ته دوه د شپے (ماښام او
ماسختن) مونځونه دي۔ د دے تاکید په خصوصیت سره ځکه شوے دے چه اکثر خلق په د ے
وخت کښې په کارکښې ډیر بُوښت وي او په حدیث کښې د "عاجزئ" تفسیر "بیچ اُسیدل"
شوے دے۔

د دے آیت نه مخه په مونځ کښې د خبرو کولو بندیز دے اوّل به په مونځ کښې خبرے کیدے
شوے او دا مونځ د ولاړے په اشاره به هله درست وي چه په یو ځائے ولاړ وي خو د سجدے
اشاره به د رکوع د اشارے نه زیاته ټیټه کوي او په تلو کښې مونځ کول روا نه دي۔ البته ګڅ ے
په یو ځائے ولاړه نه شو کیدے (مثلاً خاص د جنګ په وخت کښې) نو بیا به ئے بل وخت قضا
ګذاري۔ (بیان القرآن)

وَالَّذِيْنَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَيَذَرُوْنَ اَزْوَاجًا ۖ ج
او کوم خلق چه له تاسو سره شي او پریږدي ښځے ، نو
وَّصِيَّةً لِّاَزْوَاجِهِمْ مَّتَاعًا اِلَى الْحَوْلِ غَيْرَ اِخْرَاجٍ ج فَاِنْ
وصیت دے اوکړي د خپلو ښځو د پاره خرڅه ورکول ته یو کاله پورے بغیر د و یستو د کور نه ، بیا ګڅ ے

خَرَجْنَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيْمَا فَعَلْنَ فِيْٓ اَنْفُسِهِنَّ

دغه ښځې پخپله دکوره اُوځي نوځه ګناه نشته په تاسو په هغې کښې چه کوي هغه ښځې په خپل حق کښې

مِنْ مَّعْرُوْفٍ ؕ وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ﴿۲۴۰﴾ وَلِلْمُطَلَّقٰتِ

ښه خبره ، او الله تعالیٰ زبردست دے حکمت والا ۔ او طلاق شوو ښځو لره

مَتَاعٌۢ بِالْمَعْرُوْفِ ؕ حَقًّا عَلَى الْمُتَّقِيْنَ ﴿۲۴۱﴾ كَذٰلِكَ

خرځه ورکول دی دقاعدے موافق ، لازم دی په پرهیزګارو ، دا شان

۳۱
ع۷
۱۵
يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ اٰيٰتِهٖ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ ﴿۲۴۲﴾ ع

بیانوی الله تعالیٰ ستاسو دپاره خپل حکمونه په دے خاطر چه تاسو پوهه شئ ۔

## د تفسیر لنډیز

وَالَّذِيْنَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ (تر) وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ○ او کوم خلق چه وفات شی له تاسو او پریږدی خپلے بیبیانے (دهغوی په ذمه لازم دی) هغوی دِ وصیّت کوی دخپلو بیبیانو دَ پاره یو کال پورے (دخرخ خوراک او کور کښے د استوګنے نه) دفائدے اخستو په دا سے شان چه هغوی دکورنه اُونشی و یستے هغه کړے (ځلور میاشتے او لس ورځے یا د بچی تر ځا ئیګید لو پورے چه عدت تیر کړی) پخپله اُوځی نوستا سو څه ګناه نشته دقاعدے په هغه خبره کښې کومه چه هغوئ په خپله باره کښے (تجویز) کوی (لکه نکاح وغیره) او الله تعالیٰ زبردست دے (دهغه خلاف حکم مه کوئ) او حکمت والا دے (چه تولو احکامو کښے ستاسو بنیګړے او خیر په خیال کښے لرلے دے اګرچه ستاسو په پوهه کښے را نشی)

وَلِلْمُطَلَّقٰتِ مَتَاعٌۢ بِالْمَعْرُوْفِ (تر) لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ ○ او ټولو طلاق شوو ښځو لره څه ناڅه فائده رسول (په څه درجه کښے تاکلی دی) دقاعدے موافق (او دا) تاکلی دی په هغه چا چه (دَشرک او کفرنه) پرهیز کوی (یعنی په مسلمانانو دا تاکل واجب وی او که مستحب) دا شان حق تعالیٰ ستاسو (عمل کولو) دَ پاره خپل احکام بیانوی ، په دے اُمید چه تاسو (په هغې) پوهه شئ (او عمل پرِ اُکړئ)

# علوم او مسئلے

(۱) وَالَّذِيْنَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ (تر) وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ د جاهلیت په زمانه کښے دَ خاوند دَ مرګ عدّت یو کال وو او په اسلام کښے داخلو رمیاشتے او لس ورځے اُټاکلے شو. مګر دے کښے دَ ښځے دومره خیال ساتلے شوے وو. هرکله چه تر دے وخته د میراث حکم نه وو نازل شوے دَ نو دو حقداری صرف دَ مړی په وصیت بنا وه لکه چه آیت (كُتِبَ عَلَيْكُمْ اِذَا حَضَرَ) دَ تفسیر نه معلومه شوے ده له دے وجے دا حکم شوے وو کړے ښځه دَ خپل خیر ښیګړے په خاطر دَ خاوند نه پاتے کور کښے اُسیږی نو تر یو کاله پورے دا حق لری او هم دومره موده به دَ مړی دَ پاتے مال نه خرڅ خوراک ورکولے شی. په دے آیت کښے دا بیان دے او خاوندانو ته حکم دے چه دا رنګ وصیت دِ کوی او هرکله چه دا دَ ښځے حق وو دَ دے اِختیار یا پریښودل دَ هغے په اختیار کښے وو له دے وجے وارثانو لره دوا نه وو چه دا دَ کوره اُباسی خو ځپله ځے دا سے کولے شو چه دَ دغه کوره اُوځی او دَ خاوند وارثانو ته خپل حق پریږدی خو په دے شرط چه عدّت ئے پوره شی او نکاح وغیره قبول صحیح وو او دَ "قاعدے دَ خبرے"[عه] مطلب هم دا دے. البته په عدّت کښے دننه دَ کوره وتل او نکاح وغیره دا قبول ګناه وو (ښځے د پاره هم او سره دَ وسه دے لره نه منع کوونکو دَ پاره هم) بیا هرکله چه دَ میراث آیت نازل شو. دَ خاوند نه په قبول پاتے مال کښے ښځے ته خپل حق ورکړے شو نو دا آیت منسوخ شو اُس به په خپله برخه (کور کښے اُسیږی او خپله برخه (مال) به نګوی.

(۲) وَلِلْمُطَلَّقٰتِ مَتَاعٌ بِالْمَعْرُوْفِ ﴿ طلاق شوو ښځو ته مُتعه (فائده رسول) دے نه په پورتنی آیتونو کښے هم راغلی دی. مګر هغه صرف دَ دوه قِسمه طلاق شو ښځو له پاره وو. یو فائده رسول دَ جوړه جامو ورکولو په صُورت کښے هغه ښځو له پاره دی کوم سره چه جماع او خلوتِ صحیحه نه وی شوے او مهر ئے دَ نکاح په وخت کښے نه وی ټاکلے شوے. بله فائده رَسول د نیم مهر په صورت کښے دَ دے قِسمه هغه ښځو له پاره وو چه مهر ئے ټاکلے شوے وی. کومے ښځے چه دَ جماع

[عه] او دَ قاعدے مطلب به هم دا تفصیل وی او دَ هر صُورت دَ وجوب او استحباب فرق په نورو دلائلو ثابتولے شی او دَ "حقًّا" معنی به واجب نه کړو "علی" به دَ "لازمولو" د پاره نه وی بلکه خالص تاکید دَ پاره به وی اګرچه په درجه دَ استحباب کښے وی (بیان القرآن) مطلب دا چه دلته علیٰ دَ استحباب دَ تاکید له پاره دَ وجوب دَ پاره نه دے. (مترجم)

یا خلوتِ صحیحه نه ؤ ستو طلاقې شوې وی - هغوی ته فائده رسول تول مهر په هغه صورت کښې ورکول دی چه مهرې تاکلې شوې وی - او مهر مثل ئې دُ دخول نه پس په هغه صورت کښې دې چه مهرې نه وی تاکلې شوې -

په آیت کښې دُ "مَتَاعًا" معنیٰ مطلق فائده رسول که شی نو دُ دې ورکړې تفصیل په موجب دا واجب دی - او که معنیٰ ئې جوړه جامې ورکول شی نو دا اول قسم ښځې ته ورکول واجب دی او نورو درې واړو قسمو ښځو ته ورکول مستحب دی - بل که دُ متاع معنیٰ نفقه شی نو دا به دُ عدّت والا طلاقو کښې تر عدّت ختمیدو پورې ورکول واجب وی - دا طلاق رجعی وی او که بائن - غرض دا چه دآیت عام الفاظ دے ټولو صورتونو ته شامل دی -

اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ خَرَجُوْا مِنْ دِيَارِهِمْ وَهُمْ اُلُوْفٌ

آیا تا نه دی لیدلی هغه خلق چه اوتل له خپلو کورونو او هغوی به زرګونو ؤو دُ

حَذَرَ الْمَوْتِ ۖ فَقَالَ لَهُمُ اللّٰهُ مُوْتُوْا ۗ ثُمَّ اَحْيَاهُمْ ۗ اِنَّ

مرګ له ویرې بیا او فرمایل هغوی ته الله تعالی چه مړه شئ بیائې هغوی لره ژوندی کړل. بیشکه

اللّٰهَ لَذُوْ فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا

الله تعالی فضل کوونکے دے په خلقو، لیکن اکثر خلق

يَشْكُرُوْنَ ﴿۲۴۳﴾ وَقَاتِلُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ

شکر نه کوی - او جنګ کوئ دُ الله تعالی په لار کښې او ګڼړئ چه بیشکه الله تعالی

سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ﴿۲۴۴﴾

ښه آورې او ښه پوهیږی

## دُ تفسیر لنډیز

(اے مخاطبه) آیا تا ته دُ هغه خلقو قصه نه ده ثابته شوې کوم چه دُ خپلو کورونو نه اُوتل او هغوی په زرګونو وو دُ مرګ نه خلاصیدو دپاره نو الله تعالی هغوی له یاده (حکم) اُو فرمایلو

چه مړه شي (نو ټول مړه شول) بیائے را ژوندي کړل. بیشکه الله تعالیٰ لوئے فضل کوونکے دے (دَ) خلقو (په حال) مګر اکثر خلق شکر نه کوي (او په دے واقعه (پیښه) ژور فکر او کړئ) دَ الله تعالیٰ په لاره کښے جنګ کوئ او یقین لرئ دَ دے خبرے چه الله تعالیٰ ښه آورید ونکے او ښه پوهید ونکے دے (دَجهاد کوونکو او نه کوونکو خبرے آوري او د هر یو په نیت پوهیږي نو لوئے به مناسبه جزا او بدله ورکوي)

## عُلوم او مسئلے

په دے تیر شوي دریو آیتونو کښے په عجیبه بلیغ انداز سره دَ الله تعالیٰ په لاره کښے دَ ځان او مال قربانۍ پیش کولو هدایت دے. ځکه چه دَ دے احکامو بیانولو نه وړاندِ د تاریخ یو اهمه پیښه بیان شوے ده دکوم نه چه واضحه کیږي چه مرګ او ژوند دَ تقدیر الٰهي تابع دے جنګ او جهاد ته تلل دمرګ سبب نه دے او په بزدلۍ ځان اِنغښتل دَ مرګ دَ خلاصید و ذریعه نه ده په تفسیر دَ ابن کثیر کښے دَ صحابه کرامو او تابعینو بزرګانو په حواله دَ دے واقعے تشریح داسے بیان شوے ده چه دَ بني اسرائیلو یو ټولي په یو ښار کښے استوګنه کوله هلته سخته وبا (طاعون وغیره) راغله دا خلق (دلسونو زرو په شمیر کښے) په ویره کښے شو دغه ښار ئے پریښودو او ټول دَ دوو غرونو دَ مینځ په یو میدان کښے دیره شول الله تعالیٰ په دوی او دَ دُنیا په نورو قامونو دے ښکاره کول وو دَ پاره چه مرګ نه تیښته نشته دمیدان دوا ړو خواو (رغاړو) نه دوه فرښتے اُلیږلے دَ هغوی په یو قسم آواز دا ټول په مینځ کښے په یو ځل مړه شول - هر کله چه ګیرچاپیره خلق خبر شو دَ هغوی کفن دَ پاره راغلل خو دلسو زرو کسانو کفن دفن څه آسان کار نه وو ځکه ئے دَ هغوی نه ګیرچاپیره دلرې وښو یو شپول غوندِ جوړ کړو او ترلاړل ـــــــ دَ دوی بدنونه سخا او خا ورے شول او هډوکی ئے په دغه شپول کښے ګډ وډ پراته وو - دَ یو ډیر زمانے پس د بني اسرائیلو حزقیل نومے یو پیغمبر په دغه زمکه تیرید دَ ښیاد مو خوا ره واره هډوکو او ښکرو لید لو سره حق حیران شو - دَ وحي په ذریعه دَ دے خلقو پوره قصه ورته اُ ښودلے شوه - دَ حضرت حزقیل علیه السلام په دُعا دوی بیا الله تعالیٰ دا سے ژوندي کړل چه دَ خدائے تعالیٰ په دے ښودلی الفاظو ئے ورته خطاب اُکړو -

اَیَّتُهَا الْعِظَامُ الْبَالِیَةُ اِنَّ اللّٰهَ یَاْمُرُکِ اَنْ تَجْتَمِعِیْ | اے زړو هډوکو الله تعالیٰ تا سو ته حکم درکوي چه

| دَ هر هر بند هډوکی دِ خپل خپل ځائے کښے راپورته شی

بے عقله او بے شعوره هډوکو هم دَ الله تعالیٰ حکم اُمنلو بلکه هر یو څیز دَ الله تعالیٰ هر یو (تکوینی) حکم دره منونکے دے لکه دَ قرآن کریم ارشاد دے۔

اَعْطٰى كُلَّ شَيْءٍ خَلْقَهٗ ثُمَّ هَدٰى | الله تعالیٰ هر څیز پیدا کړے دے بیا ئے هر یو ته دَ خپل خپل شان مناسب هدایت کړے دے۔

مولانا رُوم هم فرمائی : خاک و باد و آب و آتش بنده اند

با من و تو مرده با حق زنده اند

(خاوره، باد، اوبه او اور بندګان (دَ خدائے تعالیٰ دَ حکم تابع) دی" ما او تا ته مړه ښکاری خو دَ الله تعالیٰ په وړاندې ژوندی دی") یعنی حکم (تکوینی) ئے منی

هر کله چه دغه هډوکی په خپلو خپلو ځایونو پیوند شول. بیا حکم اُشو چه دا آواز ورته اُکړه۔

اَيَّتُهَا الْعِظَامُ اِنَّ اللّٰهَ يَاْمُرُكِ اَنْ تَكْتَسِيْ لَحْمًا وَّعَصَبًا وَّجِلْدًا۔ | اے هډوکو الله تعالیٰ تاسو ته حکم درکوی چه تاسو خپله غوښه واغوندئ او پلے او څرمنے درسته (رسے) کړئ۔

په دے وینا سره دا الله تعالیٰ په حکم دَ هډوکو ته کالبُونو نه جوړ شول بیا حکم اُشو چه اُس روحونو ته دا خطاب اُکړه۔

اَيَّتُهَا الْاَرْوَاحُ اِنَّ اللّٰهَ يَاْمُرُكِ اَنْ تَرْجِعَ كُلُّ رُوْحٍ اِلَى الْجَسَدِ الَّذِيْ كَانَتْ تَعْمُرُهٗ۔ | اے روحونو تاسو ته الله تعالیٰ حکم درکوی چه خپلو خپلو بدنونو ته واپس راشئ، دَ کوموآبادی او ژوند چه تاسو سره تړلے وو۔

دَ دے آواز په اَورېدو ټول کالبُوتونه ژوندی شول او اُدریدل او په او تره ئے یو څوا بل څوا کتل او دائے ویستل " سُبْحٰنَكَ لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنْتَ"

دَ ویرے دکه دا پیښه یوا پرخ ته دَ دُنیا سا ئینسدانان او هوښیاران دوباره ژوند او قیامت منلو ته رابلی او بل اړخ ته دا هم ښکاره کوی چه مرګ نه تیښته نشته، جهاد نه یا طاعون وغیره نه په تیښته دَ مرګ نه هیڅوک ځان نشی خلاصولے۔ دا کار په تقدیر باندې دَ ایمان نه دَلو دلیل دے چه الله تعالیٰ پرخصه کیږی دا یقین مضبُوطول پکار دی چه دَ مرګ وخت نه خو یو سیکنډ وړاندې کیږی او نه یو سیکنډ رُستو کیږی۔

اُس دَدے پیښے په باره کښے د قرآن کریم الفاظ او واند ازکښل پکار دی ۔ فرمائی ۔

| | |
|---|---|
| اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ خَرَجُوْا مِنْ دِيَارِهِمْ | آیا تا سو دَ هغې خلقو پیښه نه ده لیدلے چه دَ خپلو کورونو نه د مرګ له ویرے بهر ته تلی وو ۔ |

اُکثر ئې دا پیښه دَ حضور اکرم صلی الله علیه وسلم دَ زمانے نه ډیره کاله وړاندې تیره شوے ده ۔ دے لره دَ حضور اکرم صلی الله علیه وسلم دَ لیدلو هیڅ سوال نه پیدا کیږی، نو بیا دَ "اَلَمْ تَرَ" وینا مطلب څه شو؟ علماء مفسرین رحمهم الله فرمائی چه دَ داسے قسم تولو خطابونو مطلب "د زړه لیدل" وی چه معنیٰ به ئے داسے کولے شی "اَلَمْ تَعْلَمْ" (آیا ته علم نه لرے) خو دَ الفاظو په بدلولو کښے حکمت خدا وندی داوی چه دا پیښه داسے مشهوره او لیدلے شوے ده کویا کښے چه اُس هم ستا دَ سترګو وړاندې وی لکه چه دَ عربی ژبے دَ قاعدے موافق د "اَلَمْ تَرَ" نه پس دَ "اِلىٰ" په حرف زیاتولو سره هم دے خبرے ته اشاره ملاویږی۔

دے نه پس قرآن کریم کښے دَ "وَهُمْ اُلُوْفٌ" نه ښکاریږی چه داخلق دَ زرګونو په شمیر کښے ډیر کښو وو، بیکن دعربی قاعدے موافق داجمعَ کثرت ده چه دَ لسو زرونه په کم سے اِطلاق نه کیږی مطلب دا چه دغه کسان دلسو زرونه کم شمیر کښے نه وو ۔

دے نه پس دالله تعالیٰ ددے فرمان چه "مړه شئ" دواړه مطلبه صحیح کیدے شی چه الله تعالیٰ ورته نیغ په نیغه فرمایلی وی ۔ لکه "اِذَآ اَرَادَ شَيْئًا اَنْ يَّقُوْلَ لَهٗ كُنْ فَيَكُوْنُ" او یائے ورته دَ فرښتے په واسطه فرمایلی وی ۔

"اِنَّ اللّٰهَ لَذُوْ فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ" نه هم دواړه مطلبه احتمال صحیح دی چه "فضل" نه یو مطلب دَ دغ خلقو دوباره ژوندی کول دی یا اُمتِ محمد ﷺ ته په ښکاره کولو سره ئے دا پیښه دوئ د پاره دَ عبرت سبق جوړه کړه ۔

په آخر کښے "وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَشْكُرُوْنَ" فرمایلو سره هغه خلق را بیداول مطلب دی کوم چه غفلت او بے پروائی خپل عادت جوړ کړے وی ۔ او سره د داسے پیښو په وړاندې را تلو هم اکثر خلق شکر ګذاره نه وی ۔

## دے سره تړلے مسئلے

دَ دے آیت نه څو مسئلے او احکام معلوم شول ۔

**تقدیر په تدبیر غلبه دے** اول دا چه دَ تقدیر الٰهی په وړاندې تدبیر هیڅ کار نشی

کوے لکه د جهاد یا طاعون (وبا) نه تیښته د مرګ نه د خلاصیدو ذریعه نشي جوړیدے۔ او نه په دے دواړو کښے شاملیدو او پاتے کیدو سره په هر وخت مرګ راځي بلکه دا معلومه ده چه د مرګ د پاره یو ټاکلے وخت دے، هغه کښے کے زیاتے نشي راتلے۔

په کوم آبادئ کښے چه څه وبا (طاعون وغیره) وی نو هلته دبل ځائے نه ورتلل یا ددغه ځائے د خلقو دے نه تښتیدل دواړه ناروا دی

دوئیمه مسئله داده چه په کوم کلی یا ښار کښے څه وبا (طاعون وغیره) خوره شی نو هغه نه بل خوا تښتیدل روا نه دی د رسول کریم صلی الله علیه وسلم په ارشاد کښے د یو بل خبرے اضافه دا سے هم شته چه د بل ځائے د خلقو هلته تلل هم بنه نه دی فرمائی

إِنَّ هٰذَا السُّقْمَ عُذِّبَ بِهِ الْأُمَمُ قَبْلَكُمْ فَإِذَا سَمِعْتُمْ بِهِ فِي الْأَرْضِ فَلَا تَدْخُلُوهَا وَإِذَا وَقَعَ بِأَرْضٍ وَأَنْتُمْ بِهَا فَلَا تَخْرُجُوا فِرَارًا۔

(بخاری ومسلم وابن کثیر)

(یعنی) ددے رنځ (طاعون) په ذریعه الله تعالیٰ ستاسو نه وړاندِ قامونو عذاب راوستے دے۔ نو کله چه تاسو واورئ چه په یو زمکه (طاعون وغیره) څه وبائی رنځ خورشوے دے هلته مه ځئ۔ او په کومه زمکه چه دا رنځ خورشی او تاسو هلته یئ نو له هغه ځایه مه اوځئ په تیښته۔

په تفسیر قرطبی کښے دی چه یو ځل حضرت فاروقِ اعظم رضی الله عنه د شام په اراده سفر اوکړو د شام په سرحد د سَرْغ په مقام تبوک سره نزدے په رسید و ورته معلومه شوه چه د شام په ملک کښے په عمواس نوم مشهور ښار کښے سخت طاعون خور شوے دے کوم چه د شام په تاریخ کښے یوه لویه پیښه وه۔ عمواس د هغه ځائے نوم دے دکوم نه چه رومبے دا رنځ شروع شوے وو۔ کوم چه بیت المقدس نه نزدے دے او بیا ټول ملک کښے خور شو په زرګونو خلق چه صحابه او تابعین پکښے هم وو په دے وبا شهیدان شوی وو۔

حضرت فاروقِ اعظم دغلته حصار شو او صحابه کرامو سره ئے په دے خبره صلاح مشوره اوکړه چه شام ته لاړ شو او که بیرته لاړ شو هیڅ یو صحابی رضی الله عنه دے باره کښے د رسول الله صلی الله علیه وسلم څه فرمان نه وو آورید لے خو آخر کښے حضرت عبد الرحمٰن بن عوف رضی الله عنه خبر ورکړو چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د دا سے پیښے په باره کښے دا سے فرمائیلی دی۔

إِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | رسول الله صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسلم د

ذَكَرَ الْوَجَعَ فَقَالَ رِجْزٌ وَعَذَابٌ عُذِّبَ بِهِ الْاُمَمُ ثُمَّ بَقِيَ مِنْهُ بَقِيَّةٌ فَيَذْهَبُ الْمَرَّةَ وَيَاْتِي الْاُخْرٰى فَمَنْ سَمِعَ بِهِ بِاَرْضٍ فَلَا يَقْدِمَنَّ عَلَيْهِ وَمَنْ كَانَ بِاَرْضٍ وَقَعَ بِهَا فَلَا يَخْرُجْ فِرَارًا مِّنْهُ (رواه البخاري عن اسامة بن زيد وَاخرجه الائمة بمثله)

(طاعونی رسوړنې د) د ړدیا دکیږنه اُکړه نو وے فرمایل چه دا یو عذاب دے چه په دے ځنے اُمتونو ته عذاب ورکړے شوے وو. بیا دَ دے نه څه پاتے شواُسُ ئے داحال دے چه کله ځی او بیا راځی نو څوک چه دا واوری چه په فلانئ زمکه داعذاب راغلے دے نو هغه له پکار دی چه دغه زمکے ته نه ځی. او څوک چه په دغه زمکه کښے د وړاند نه موجود وی نو دَ دے نه تښتید و دپاره دِ له هغه ځایه نه اُوځی.

(بخاری وغیره)

هرکله چه فاروق اعظمؓ داحدیث واوُرید و نو ملکرو ته ئے دَ بیرته تلو حکم ورکړو. دَ شام ملک کوږ نو حضرت ابوعبیدهؓ هم په دے موقعه موجُود وو دَ فاروق اعظمؓ دَ حکم په آوُرید و ئے اُوفرمایل "اَفِرَارًا مِّنْ قَدَرِ اللهِ" آیا تاسو دَ الله تعالیٰ دَ تقدیر نه تښتئ؟ فاروق اعظمؓ اُوفرمایل چه کاش تا سو نه سوا داخبره بل چا کړے وے. مطلب ئے دا وو چه ستاسو دَ خُلے نه دا الفاظ وتل دَ حیرانتیا خبره ده او بیا ئے اُوفرمایل.

نَعَمْ نَفِرُّ مِنْ قَدَرِ اللهِ اِلٰى قَدَرِ اللهِ | آو! مُونږ دَ الله تعالیٰ دَ تقدیر نه هم دَ الله تعالیٰ تقدیر ابرخ ته تښتو.

مطلب ئے دا وو چه مُونږ دا کار دَ الله تعالیٰ په حکم کوو. ځکه چه دَ رسُول الله صلی الله علیه وسلم فرمان هم دَ الله تعالیٰ په حکم بنا دے.

**د طاعون په باره کښے دَ ارشادِ نبوی حِکمتونه**

دَ رسول کریم صلی الله علیه وسلم دَ تیرشوی ارشاد نه معلُومه شوه چه دَ طاعون وغیره (وبائی رنځونو) دَ زمکے نه تیښته (دمرګ له ویرے هم منع ده او د بلے زمکے نه هلته ورتلل هم منع دی. دے سره دَ اسلام دا بنیادی عقیده چه اُتږلے شی (چه چرته تلل دَ مرګ سبب نه جوړیږی او نه چرته تیښته دَ (مرګ نه) دَ خلاصید و سبب جوړیدے شی) نو بیا دا حکم دَ ډیرو عقلونو دَ ورے وتو حکمتونو نه ډک دے د بهرنی خلقو هلته تلو نه منع په دے حکمت بنا ده چه دَ مسلمانا نو عقیده په دے دول خرابه نشی چه دغلته دَ بهرنه تلُونکی کس مرګ دغلته دَ تلو په سبب اُګنړلے شی. حالانکه

دغه کس به پوره وه په دغه وخت به مړکيد وکه هرڅرته وے. بل حکمت دادے چه الله تعالیٰ (تر خپله وسه) تکليفونو او مُضر ځيزونو نه خپل ځان ساتل واجب کړځولی دی. له هغې ځنې دا يو تدبير هم دے چه دَ وبا ځائے ته لاړ نشی او دا رنګ دَ الله تعالیٰ دحکم تعميل اُشی دا شان دغه ځائے نه دَ مرګ له ويرے دَ تيښتے بنديز هم په ډيرحکمتونو ابناء دے.

يو حکمت اجتماعي او عوامي داسے دے چه بيے او طاقت والا خلق خو به دغه ځائے نه اُتښتي. غريبانان او بے طاقته خلق کوم چه پاتے شي هغوئ به له هيبته او وحشته هُم مړه شي او بله دا چه دَ پاتے بے وسه او غريبانانو دَ نحوَرانو پال پرهيز او انتظام له به څوک پاتے نشي او نه به ئے دَ مړونی دکفن دفن انتظام څوک کولے شي، بلّ حکمت دادے چه دَ دغه ځائے خلقو کښے دَ وبا دَ جراثيمو نشونل څه لرے خبره نه ده. که دغه ځائے نه به تيښته وَتي کسان په لاره (په سفر کښے) دَ دغه جراثيمو په وجه رنځوران شي نو په دوئ به څه تيريږی؛ لکه چه ابن المدينيؒ د علماؤ دا قول نقل کړے دے.

| | |
|---|---|
| مَا فَرَّ اَحَدٌ مِّنَ الْوَبَاءِ فَسَلِمَ (قرطبی) | يعني کوم کس چه دَ وبا نه تښتي هغه کلهُم روغ نه پاتے کيږی. |

دريم حکمت دادے چه کړے دغه خلق ځان سره دَ وبا جراثيم يوسي نو هغه ځايونو کښے به هم وبا خوره شي. کومو کومو ز مکوته چه دوئ تښتيدلی وی که دوئ صبر اوُ توکّل کړے وے او پخپل ځائے تکاؤ دغلته په خپله نيته مړه شوے وے نو دَ شهادت درجه به ئے موندلے وه لکه چه حديث شريف کښے راځی.

| | |
|---|---|
| رَوَى الْبُخَارِيُّ عَنْ يَحْيَى بْنِ يَعْمُرَ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّهَا سَاَلَتْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الطَّاعُوْنِ فَاَخْبَرَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ كَانَ عَذَابًا يَبْعَثُهُ اللّٰهُ عَلٰى مَنْ يَّشَاءُ فَجَعَلَهُ اللّٰهُ رَحْمَةً لِّلْمُؤْمِنِيْنَ فَلَيْسَ مِنْ عَبْدٍ يَقَعُ الطَّاعُوْنُ فَيَمْكُثُ فِيْ بَلَدِهٖ صَابِرًا يَّعْلَمُ اَنَّهٗ لَنْ يُّصِيْبَهٗ اِلَّا مَا كَتَبَ اللّٰهُ لَهٗ اِلَّا | امام بخاريؒ د يحيى بن يعمرؒ په روايت نقل کړيدی چه حضرت عائشه صديقهؓ هغهؓ ته خبر ورکړو چه هغےؓ د رسول الله صلی الله عليه وسلم نه دَ طاعون په باره کښے تپوس کړے وو. نو هغوئ هغےؓ ته خبر ورکړو چه دا (رنځ) په اصل کښے دَ عذاب په دول نازل شوے وو او کومو خلقو لره به چه عذاب نول الله تعالیٰ ته منظور وو نو په هغوئ به ئے را وَسنو. بيا دے لره الله تعالیٰ دَمومنانو |

كَانَ لَهُ مِثْلُ اَجْرِشَهِيْدٍ، وَهٰذَا تَفْسِيْرٌ لِقَوْلِهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلطَّاعُوْنُ شَهَادَةٌ وَّالْمَطْعُوْنُ شَهِيْدٌ.
(قرطبی: ص ۲۳۵، ج:۳)

دَ پاره رحمت جوړ کړو نو څوک (دالله تعالیٰ) بنده دَ طاعُون راتلو نه پس چه دغه ځیله علاقه کښے په صبراو آرام سره پاتې شی او دا عقیده لری چه هغه ته صرف هغه مصیبت رسیدے شی کوم چه الله تعالیٰ ده دَ پاره لیکلے دے۔ نو دا سے کَس ته به دَ شهید هومره ثواب ملاویږی او دا دَ هغه حدیث تشریح ده کوم کښے چه ارشاد دے چه "طاعُون (وبا) شهید کیږی او طاعُون زلے شهید دے"۔

## دَ ځنے خاص صورتونو استثنا

دَ حدیث شریف دَ الفاظ "فَلَا تَخْرُجُوْا فِرَارًا مِّنْهُ" نه معلومیږی چه که یو کَس دَ بل ضرورت (دمرګ نه دَ تښتیدو په وجه نه) په وجه دَ دغه ځایه بل خوا لاړشی نو دا منع نه دی دغه رنګ که یو کَس دا پخه عقیده لری چه مرګ نه خلاصے نشته هرځائے چه یم دَ څه نه پوره وی مرم به او بل ځائے ته مثلاً دا آب وهوا بدلولو په خاطر لاړشی نو دا هم منع نه دی۔

دغه رنګ دَ کوم کَس چه دغه قِسم پخه عقیده وی او بیا دَ وبا ځائے ته لاړشی نو روا دی۔ دَ دے آیت نه دریم مسئله دا راځی چه دَ مرګ له ویرے دَ جهاد نه تښتیده هم حرامه ده۔ دَ قرآن کریم په بل ځائے کښے دا مسئله په پوره تفصیل او وضاحت سره بیان شوے ده او هلته ځنے خاص صورتونه دے نه مستثنیٰ کړے شوی دی۔ تقریباً دَ دے آیت غونډ مضمون په بل آیت کښے دَ هغه خلقو په باره کښے راغلے دے کوم چه دَ جهاد نه تیښته کوی۔ یا پکښے نه شاملیږی۔ هغه آیت دا دے:

اَلَّذِيْنَ قَالُوْا لِاِخْوَانِهِمْ وَقَعَدُوْا لَوْ اَطَاعُوْنَا مَا قُتِلُوْا قُلْ فَادْرَءُوْا عَنْ اَنْفُسِكُمُ الْمَوْتَ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ۝

ځنے خلق چه پخپله هم جهاد کښے شریک نشو او په جهاد کښے شهید کیدونکو په باره کښے وائی که هغوی زمونږ خبره آوریدلے وے نو نه به وُو شهیدان شوی تاسو ورته اُووایئ چه تاسو منع کړئ دَ خپل ځان نه مرګ لرے کړے یئ تاسو رښتینی۔

د قدرت عجائبات دی چه په صحابه کرامو کښے دَ ټولو نه لوئے جنګی جرنیل سیف الله حضرت خالد بن ولید رضی الله تعالیٰ عنه ټول عُمر په جهاد کښے تیر شوے وو۔ لیکن په جهاد کښے

شهید نه شو نا جوړه شو او په خپل کټ پوځې وفات شو دَ څنکدن په وخت ئې په خپل دے پوَل وفات په افسوس سره خپل کوروالا وَ ته اُو فرما ئیل چه څه په فلانی فلانی عظیم الشان جنګونو او جهادونو کښے شریک شوم څما په بدن کښے داسے یوا ندام نشته چه په هغے دَ غشی دَ نیزے یا دَ بل شی دګوذار دَ زخم اثر او نخښه به نه وی - افسوس دے چه نکه دَ خر اُوس په خپل کټ پوځې وفات کیږم - خدائے تعالیٰ دِ بزدلو (بے زړه) خلقو ته آرام ورنکړی هغوئ ته څما نصیحت اُرسوئ -

په دے آیت کښے دَ بنی اسرائیلو دا پیښه دَ تمهید په ډول بیان شوه په راتلونکی آیت کښے دَ جهاد او جنګ حکم ورکړے شوے دے کوم چه دَ دے قصے اصل مقصود وو مطلب ئے دا وو چه جهاد ته تلل مرګ او دَ جهاد نه تیښته دَ مرګ نه خلاصے مه بولئ بلکه دَ الله تعالیٰ دَ احکامو تعمیل کوئ او دَ دواړو جهانو کامیابی حاصلوئ. الله تعالیٰ ستاسو تولو خبرو له آوَریدونکے او په هغے پوهیدونکے دے -

په دریم آیت کښے دالله تعالیٰ په لار کښے دمال لګولو دَ فضیلت (بهترئ) بیان دے -

مَنْ ذَا الَّذِىْ يُقْرِضُ اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا فَيُضٰعِفَهٗ لَهٗۤ

څوک دے هغه کس چه قرض ورکړی الله تعالیٰ ته ښه قرض، بیا دُ وچند کړی الله تعالیٰ دَ

اَضْعَافًا كَثِيْرَةً ؕ وَاللّٰهُ يَقْبِضُ وَيَبْصُۜطُ ۪ وَاِلَيْهِ

لره چندُونه ډیر ، او الله تعالیٰ تنګی کوی او فراخی کوی او دَ هغه

تُرْجَعُوْنَ ﴿۲۴۵﴾

اړخ ته به تاسو راګرځولے شئ -

## د تفسیر لنډیز

دجهاد غونډ نور دَ خیر په کار ونو کښے دَ مال لګولو مینه پیدا کول

څوک دے (داسے) چه قرض ورکړی الله تعالیٰ ته په ښه ډول قرض ورکول (یعنی په اخلاص) بیا الله تعالیٰ دے لره (دقرض ثواب لره) زیات کړی کمزے برخے ګړی او ز ددے ویره مه کوئ

چه په تکولو به مال کم (لږ) شي ځکه چه داخو) دالله تعالیٰ (په قبضه کښې ده هم هغه) کموَی
او (هم هغه) فراخي کوي (څه په مال تکولو او نه تکولو دَے (اصلي مادو مدار نه دے) او
تاسو هم دَ هغه اړخ ته (دمرګ نه پس) بوتلے به شئ (نو هغه وخت به په نیک کار کښې دَ مال
تکولو جزا او په ضروري موقعه دَ مال نه تکولو سزا درکولے شي)

## علوم او مسئلے

(۱) "یُقْرِضُ اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا" قرض نه مراد نیک عمل کول او دَ الله تعالیٰ په لار کښې مال تکول
دي دے ته ئے مجازاً قرض اُوئیلے هسے خو ټول هم دَ الله تعالیٰ ملکیت دے. مطلب ئے دا
شو چه دَ دے بدله به هَرُو مُرُو ملاوېږي دَ زیاتولو بیان په یو حدیث شریف کښې
داسے راغلے دے چه دَ یوے خجُورے (دَ الله تعالیٰ په لار کښې) ثواب به الله تعالیٰ دَ اُحُد غر
نه هم زیاتِ کړي.

الله تعالیٰ ته دَ قرض ورکولو دا مطلب هم بیان شوے دے چه دَ هغه بندګانو ته قرض
ورکړے شي او دَ دهغوئ حاجتونه پوره کړے شي لکه چه په حدیث شریف کښې د قرض ورکولو
په یو فضیلت راغلے دے رسول کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دي.

| | |
|---|---|
| مَا مِنْ مُّسْلِمٍ يُقْرِضُ مُسْلِمًا قَرْضًا مَرَّةً اِلَّا كَانَ كَصَدَقَتِهٖ مَرَّتَيْنِ. (مظهري بحواله ابن ماجه) | کوم یو مسلمان چه بل مسلمان ته قرض ورکوي دا قرض ورکول دالله تعالیٰ په لار کښې دَ دغه مال دوه واره صدقے (خیرات) کولو برابر دي. |

(۲) ابن عربي فرمائي چه دَ دے آیت په آورېدلو دَ خلقو درے ډلے جوړے شوے یوه ډله
دَ هغه بد نصیبو خلقو ده چا چه دَ دے آیت په آورېدو داسے اُوئیل چه دَ محمد صلی الله علیه
وسلم رَبّ خمونږ محتاج دے او مونږ غنیان یو. دَ دے خبرے جواب دَ قرآن کریم په یو
بل آیت کښې داسے ورکړے شوے دے.

| | |
|---|---|
| لَقَدْ سَمِعَ اللّٰهُ قَوْلَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ فَقِيْرٌ وَّنَحْنُ اَغْنِيَآءُ ۘ | یقیناً واورېده الله تعالیٰ خبره دَ هغه خلقو چا چه اُوئیل چه الله تعالیٰ محتاج دے او مونږ غنیان یو. |

دویمه ډله دَ هغه خلقو ده چا چه دَ دے آیت په آورېدو دَ دے خلاف اُوکړو او شومتوب

ئے اختیار کړو۔ دَمال سره دَ زیاتے مینے او حرص په وجه هغوئ ئے داسے اُتړل چه هغوئ ته دَ الله تعالیٰ په لار کښے دَمال لګولو هیڅ وخت توفیق اُنشو۔ دریمه ډله دَ هغه مخلصو مسلمانانو ده چا چه سمدستی په دے آیت عمل اُکړو او خپل غوره (دَ خوښے) مال ئے دَ الله تعالیٰ په لار کښے ورکړو لکه دَ ابُوالدّحداح رضی الله عنه وغیره په شان کُښے تفنګ دا آیت نازل شو نو حضرت ابوالدّحداح رضی الله عنه دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کښے حاضر شو او هغوئ نه ئے تپوس اُکړو "اے دَ الله تعالیٰ رسوله! زما مور پلار دِ په تا قربان وی۔ آیا مونږ نه خدائے پاک قرض غواړی۔ سره دَدے چه دَ هغه قرض ته حاجت نشته؟" هغوئ اُفرمائیل چه او الله تعالیٰ دا غواړی چه دَ هغے په ذریعه تاسو لره په جنت کښے داخل کړی ابوالدحداح رضی الله عنه ددے په آورېدو اُوئیل چه اے دَ الله تعالیٰ رسوله! لاس را وړاندِ کړئ هغوئ لاس ور وړاندِ کړو نو ابوالدحداح رضی الله عنه داسے وینا شروع کړه۔

"زۀ دَ ققجورو دَ دوو باغونو مالک یم دَدے نه بغیر زما په مِلک کښے بل څۀ نشته، زۀ خپل دغه دواړه باغونه الله تعالیٰ ته قرض ورکوم"

حضورِ اکرم صلی الله علیه وسلم ورته اُفرمائیل چه یو دَ الله تعالیٰ په لار کښے وقف کړه او بل دَ خپل بال بچ دَ ژوند ضرورياتو دَپاره ځان سره اُساته۔ ابوالدحداح رضی الله عنه اُفرمائیل تاسو ګواه اُسئ په دے دواړو کښے ډیر ښه باغ دَ الله تعالیٰ په لار کښے خرڅ کوم په کوم کښے چه دَ ققجورو شپږ سوه اُونے دی۔ هغوئ اُفرمائیل چه دَدے په بدل کښے به الله تعالیٰ تا ته جنّت دَدا اُبخښی۔

ابوالدحداح رضی الله عنه خپل کور ته راغے او خپلے بی بی رضی الله عنها ته ئے دَدے خبر ورکړو نو هغه رضی الله عنها هم دَ ابوالدحداح رضی الله عنه په دے ډیرے غوره سودا ډیره خوشحاله شوه رسول کریم صلی الله علیه وسلم اُفرمائیل۔

| | |
|---|---|
| كَمْ مِّنْ عِذْقٍ رَدَاحٍ وَدَارٍ فَيَاحٍ لِأَبِي الدَّحْدَاحِ (قرطبی) | دَ ققجورو نه برجے بیشمیره اُونے او څومره پراخه محلونه دَ ابوالدحداح دَپاره تیار دی! |

(۳) په قرض کښے دَ واپسئ په وخت څۀ دَ زیارت څیز شرط نه وی اینبودے شوے او قرضدار په خپله خوښه قرض خواه ته څۀ زیات شے ورکړو نو دا غوره دی۔ رسول کریم صلی الله علیه وسلم فرمائی:

| | |
|---|---|
| إِنَّ خِيَارَكُمْ أَحْسَنُكُمْ قَضَاءً | په تاسو کښے ډیر غوره کَس هغه دے چه خپل حق (قرض) لره په ښه |

په دل ادا کړی۔

لیکن کچرے د زیا توالی شرط پکښے پروبے نه لګوے شوے وی نو هغه حرام او سُود دے۔

اَلَمۡ تَرَ اِلَى الۡمَلَاِ مِنۡۢ بَنِىۡۤ اِسۡرَآءِيۡلَ مِنۡۢ بَعۡدِ مُوۡسٰى ۘ

آیا نه دے لیدلے تا یو ټولے د بنی اسرائیلو، موسیٰ علیه السلام نه پس

اِذۡ قَالُوۡا لِنَبِىٍّ لَّهُمُ ابۡعَثۡ لَنَا مَلِكًا نُّقَاتِلۡ فِىۡ سَبِيۡلِ

کله چه هغوی اُوئیل خپل نبیؑ ته چه اُتاکه موږ د پاره یو بادشاه، له پاره د دے چه موږ اُجنګیږو په لاره د

اللّٰهِ‌ؕ قَالَ هَلۡ عَسَيۡتُمۡ اِنۡ كُتِبَ عَلَيۡكُمُ الۡقِتَالُ اَلَّا

الله تعالیٰ کښے (پیغمبر) اُوئیل آیا تاسو نه هم دا اُمید شته چه تاسو ته حُکم د جنګ اُشی نو بیا به اُنه

تُقَاتِلُوۡا ‌ؕ قَالُوۡا وَمَا لَـنَآ اَلَّا نُقَاتِلَ فِىۡ سَبِيۡلِ اللّٰهِ

جنګیږئ، هغوی اُوئیل او موږ له څه شوی دی چه جنګ به نه کوُو د الله تعالیٰ په لار کښے

وَقَدۡ اُخۡرِجۡنَا مِنۡ دِيَارِنَا وَاَبۡنَآٮِٕنَا ‌ؕ فَلَمَّا كُتِبَ عَلَيۡهِمُ

او موږ خو اُ شړلے شوی یُو د خپلو کودونو او ځامنو نه، بیا چه کله حکم اُشو هغوی ته د

الۡقِتَالُ تَوَلَّوۡا اِلَّا قَلِيۡلًا مِّنۡهُمۡ‌ؕ وَاللّٰهُ عَلِيۡمٌۢ بِالظّٰلِمِيۡنَ ﴿۲۴۶﴾

جنګ نو هغوی تول واوړیدل مګر لږ پکښے د هغوی نه، او الله تعالیٰ ښه پیژنی ګنا هګارانو لره۔

وَقَالَ لَهُمۡ نَبِيُّهُمۡ اِنَّ اللّٰهَ قَدۡ بَعَثَ لَـكُمۡ طَالُوۡتَ مَلِكًا ‌ؕ

او فرمائیل هغوی ته د هغوی نبیؑ بیشکه الله تعالیٰ تاکلے دے ستاسو د پاره طالوت لره بادشاه،

قَالُوۡۤا اَنّٰى يَكُوۡنُ لَهُ الۡمُلۡكُ عَلَيۡنَا وَنَحۡنُ اَحَقُّ بِالۡمُلۡكِ

هغوی اُوئیل څنګه کیدے شی د هغه بادشاهی په موږ، او موږ ډیر حقدار یُو د بادشاهئ کولو

مِنۡهُ وَلَمۡ يُؤۡتَ سَعَةً مِّنَ الۡمَالِ‌ؕ قَالَ اِنَّ اللّٰهَ اصۡطَفٰٮهُ

د ده نه، او هغه ته نه ده ورکړے شوے فراخی د مال۔ پیغمبر اُ فرمائیل بیشکه الله تعالیٰ غوره کړے دے

عَلَيْكُمْ وَزَادَهُ بَسْطَةً فِي الْعِلْمِ وَالْجِسْمِ ۖ وَاللَّهُ يُؤْتِي

په تاسو او زیاته فراخي ئې ورکړې ده دهٔ ته په علم او جُوثه کښې، او الله تعالیٰ ورکوي

مُلْكَهُ مَنْ يَشَاءُ ۚ وَاللَّهُ وَاسِعٌ عَلِيمٌ ﴿٢٤٧﴾ وَقَالَ لَهُمْ

خپل مُلک هغه چا ته چه خوښه ئې شي او هم الله تعالیٰ فضل کوُونکے او په هر څه پوهیدُونکے دے. او اُوفرمایل

نَبِيُّهُمْ إِنَّ آيَةَ مُلْكِهِ أَنْ يَأْتِيَكُمُ التَّابُوتُ فِيهِ

هغوئ (بني اسرائیلو) ته دَ هغوئ نبي چه هغه (طالوت) دباداشاهۍ نښه دا ده چه راشي تاسو خواته یو صندُوق چه په هغې کښې

سَكِينَةٌ مِنْ رَبِّكُمْ وَبَقِيَّةٌ مِمَّا تَرَكَ آلُ مُوسَىٰ وَآلُ

تسلّي دَ زړه ده ستاسو دَ ربّ له طرفه او څه پاتې شیزونه دي دَ هغو نه چه پریښي وو اولاد دَ مُوسیٰؑ او اولاد دَ

هَارُونَ تَحْمِلُهُ الْمَلَائِكَةُ ۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لَكُمْ

هارونؑ راوړي به ئې (صندُوق) لره فرښتے، بیشکه په دے کښې پوُره نشاني ده ستاسو دَ پاره،

إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ ﴿٢٤٨﴾ ع فَلَمَّا فَصَلَ طَالُوتُ بِالْجُنُودِ ٣٢ ع ٢ ١٦

که چرے تاسو یقین لرئ، بیا کله چه بهر اُووتو طالُوت سره دَ خپلو فوځونو

قَالَ إِنَّ اللَّهَ مُبْتَلِيكُمْ بِنَهَرٍ فَمَنْ شَرِبَ مِنْهُ فَلَيْسَ

وے ویٔل بے شک الله تعالیٰ آزمیښت کوُونکے دے ستاسو په یو نهر سره، نو چا چه اُوبه اُوڅکلے دَ دغه نهر، نو نه دے

مِنِّي وَمَنْ لَمْ يَطْعَمْهُ فَإِنَّهُ مِنِّي إِلَّا مَنِ اغْتَرَفَ غُرْفَةً

هغه څما نه، او چا چه دا اُوبه نهٔ څکلے نو هغه بیشکه څما دَ ځنې دے، مگر څوک چه واخلي یو چونګ په خپل

بِيَدِهِ ۚ فَشَرِبُوا مِنْهُ إِلَّا قَلِيلًا مِنْهُمْ ۚ فَلَمَّا جَاوَزَهُ

لاس، بیا اُوڅکلے هغو لو مگر لږ و کښې دَ هغوئ نه بیا هر کله چه پورې وَتو

هُوَ وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ قَالُوا لَا طَاقَةَ لَنَا الْيَوْمَ

هغه (طالوت) او هغه کسان چه ایمان ئې راوړے وو سره دَ هغه، نو وے ویٔل چه طاقت نشته څمونږ ه نن،

بِجَالُوتَ وَجُنُودِهِ ۚ قَالَ الَّذِينَ يَظُنُّونَ أَنَّهُم مُّلَاقُوا

جالوت او د هغه فوځونو سره د جنګیدو، او وویل هغه خلقو د چا چه خیال وو چه د هغوی به الله تعالیٰ

اللَّهِ كَم مِّن فِئَةٍ قَلِيلَةٍ غَلَبَتْ فِئَةً كَثِيرَةً بِإِذْنِ

سره ملاقات وی۔ ډیر کرته کمه ټولے غلبه شوے ده په ګڼو ټولو د الله

اللَّهِ ۗ وَاللَّهُ مَعَ الصَّابِرِينَ ﴿٢٤٩﴾ وَلَمَّا بَرَزُوا لِجَالُوتَ

په حکم، او الله تعالیٰ صبر کوونکو سره دے، او هر کله چه مخامخ راغلل د جالوت او د

وَجُنُودِهِ قَالُوا رَبَّنَا أَفْرِغْ عَلَيْنَا صَبْرًا وَثَبِّتْ أَقْدَامَنَا

هغه د فوځونو، نو وے ویل چه اے ربه څموږ واچوے څموږ په زړونو کښے صبر او ټینګے کړے څموږ پښے

وَانصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكَافِرِينَ ﴿٢٥٠﴾ فَهَزَمُوهُم بِإِذْنِ

او څموږ مدد اوکړے په دے کافر قوم، بیا ماتے ورکړه مومنانو د جالوت فوځونو

اللَّهِ وَقَتَلَ دَاوُودُ جَالُوتَ وَآتَاهُ اللَّهُ الْمُلْكَ

ته د الله تعالیٰ په حکم، او اووژلو داؤد جالوت لره، او ورکړه داؤد ته الله تعالیٰ بادشاهی او

وَالْحِكْمَةَ وَعَلَّمَهُ مِمَّا يَشَاءُ ۗ وَلَوْلَا دَفْعُ اللَّهِ النَّاسَ

حکمت، او وے ښودل هغهٔ ته هغه چه غوښتل ئے، او که چرے نه وے دفع کول د الله

بَعْضَهُم بِبَعْضٍ لَّفَسَدَتِ الْأَرْضُ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ ذُو فَضْلٍ

تعالیٰ یو په بل سره، نو خراب شوے به وے ملک، لیکن الله تعالیٰ ډیر مهربان دے

عَلَى الْعَالَمِينَ ﴿٢٥١﴾

د جهان په خلقو۔

## د تفسیر لنډیز

**د آیتونو تړون** | په دے ځائے کښے مقصود د جنګ کولو شوق پیدا کول دی تیره شوے

قصہ د دے تمہید دے د اللہ تعالیٰ پہ لار کښے مال لګول د دے تائید دے بیا ورپسے د طالوت
او جالوت قصہ د دے تاکید دے ۔ دارنګ پہ دے قصہ کښے اللہ تعالیٰ د قبض او بسط شاهد
اُکړه کوم ئے چہ پہ تیر شوی آیت کښے پہ " وَاللّٰهُ يَقْبِضُ وَيَبْصُطُ " سره کړے وو۔ مطلب
دا چہ فقیر لره بادشاه جوړول او بادشاه نه بادشاهی اخستل ټول د اللہ تعالیٰ پہ اختیار
کښے دی۔

## د طالوت او جالوت قصہ

(دے مخاطبہ) آیا تا تہ د بنی اسرائیلو د ټولی قصه کومہ
چہ د موسیٰ علیہ السلام نہ پس شوے ده، نہ ده ثابتہ شوے؟ (چہ د پراند برکافر جالوت
غالب راغلے وو او د هغوی ډیرے صوبے ئے را لاندې کړے وے) کله چہ دغہ خلقو خپل
پیغمبر تہ اُوئیل چہ څمونږ د پاره یو بادشاه اُټاکہ چہ مونږه (هغہ سره شو) د اللہ تعالیٰ پہ
لار کښے (جالوت سره) جنګ اُکړو هغہ پیغمبر او فرمائیل چہ آیا دا احتمال شتہ کړے تا سو تہ د
جهاد حکم درکړے شی چہ تا سو بہ (د دغہ وخت) جهاد اُنکړئ هغہ خلقو اُوئیل چہ څمونږ د
پاره بہ داسے کومہ وجہ وی چہ مونږ د اللہ تعالیٰ پہ لار کښے جهاد اُنکړو سره د دے چہ
(جهاد د پاره یو باعث هم شتہ دے هغہ دا چہ) مونږ (د هغہ کافرانو د لاسہ) د خپلو آبادو
او ځامنو نہ جُدا کړی شوی یو (ځکہ چہ د هغوی ځنے آبادئ هم کافرانو را لاندې کړے وے،
او د هغوی او لادے ئے هم قید کړے وو) بیا کلہ چہ دغہ خلقو تہ د جهاد حکم اُشو نو سوا د لږ و
(لوز) ټول وا اُوړیدل (رنګہ څنګہ چہ د دے پسے د جهاد پہ غرض د بادشاه ټاکلو او د دغ خلقو
د اُوړیدلو تفصیلی بیان بہ راشی) او اللہ تعالیٰ ظالمانو (یعنی د حکم نہ خلاف کوونکو)
لره بنہ پیژنی (نو لو تہ بہ مناسب سزا ورکوی) او دغہ خلقو تہ د هغوی پیغمبر اُفرمائیل چہ
اللہ تعالیٰ پہ تا سو طالوت لره بادشاه مقرر کړو هغوی اُوئیل هغہ لره پہ مونږ ه د حکم چلولو
حق څنګہ کیدے شی سره د دے چہ پہ نسبت د هغہ مونږ ه د حکم چلولو زیات حقدار یو او
هغہ تہ څہ مالی فراخی هم نہ ده ورکړے شوے (ځکہ چہ طالوت غریب سړے وو) دغہ پیغمبر
د پہ جواب کښے) اُفرمائیل چہ (اول خو) اللہ تعالیٰ ستا سو پہ مقابلہ کښے هغہ لره ټاکلے دے
(او د ټاکلو بنیګړے او خیر و نہ اللہ تعالیٰ ښہ پیژنی) او (دویم دا چہ) علم (د سیاست او
حکومت چلولو) او جسم کښے ئے هغہ تہ زیاتوالے ورکړے دے (او بادشاه کیدو د پاره د دے
علم زیات ضرورت دے ځکہ چہ پہ ملکی انتظام قادروی او جسامت هم پہ دے معنیٰ سره دے

چه دَ موافق او مخالف دواړو په زړونو کښې دَ ده ځائے او هیبت وی) او (درېم داچه) الله تعالیٰ (مالک الملک دے) خپل ملک چاته چه غواړی ورکوی (د هغه تعالیٰ نه دَ نپوس کولو څوک حق نه لری) او (څلورم داچه) الله تعالیٰ فراخی ورکوونکے دے (مال ورکول خو هغه ته څه گران نه دی دَ کوم په اعتبار سره چه تاسو ته شک شُبه ده او) پېژندونکے دے (چه څوک دَ بادشاهۍ قابلیت لری) او (کله چه دے خلقو د پېغمبرؑ نه دا درخواست اُوکړو چه ځرګه دَ الله تعالیٰ له اړخه دده دَ بادشاه جوړېدو څه ظاهری دلیل هم مُونږ ته او ښوو نو زیاته تسلّی به مو اُشی دغه وخت) هغوی ته دَ هغوی پېغمبرؑ اُفرمائیل چه دده (د الله تعالیٰ له اړخه) د بادشاه جوړېدو دا نښه ده چه ستاسو خواته هغه صندوق (ستاسو دَ راوړلو نه بغیر پخپله) راشی چه په هغې کښې دَ آرام (او برکت) څیز دے ستاسو د رب له اړخه (یعنی تورېت او دا چه تورېت په ظاهره د الله تعالیٰ له اړخه دے) او څه پاتې څیزونه دی کوم لره چه حضرت موسیٰؑ او حضرت هارون علیهما السلام پرېښی دی (یعنی ددے پېغمبرانو څه دَ اُغستو جامے وغیره غرض داچه) هغه صندوق به فرښتے راوړی په دے (صندوق په دا شان راتلو) کښے ستاسو خلقو دَ پاره پوره نښانی ده کچرے تاسو یقین لرونکی یئ، بیا کله چه (بنی اسرائیلو طالوت لره بادشاه اُمنلو، او دَ جالُوت مقابلے دَ پاره خلق جمع شول او) طالوت سره دَ فوځونو (دخپل مقام یعنی بیتُ المقدس نه دَ عمالقه وُ اړخ ته) روان شو نو هغوئ (طالُوت دخپل ملګری پېغمبرؑ دَ وحی په ذریعه معلُومه کړه او ملګرو ته ئے) اُوئیل چه اُس حق تعالیٰ (محکمیتیا او نا محکمیتیا کښے) په تاسو به امتحان کوی دَ یو نهر په ذریعه (چه لار کښے به راځی او تاسو به دَ سختے تندے په وخت په هغې تېرېږئ) نو چه کوم کس دَ دے نه (څه پرېمانه زیات) اُبه اُڅکی هغه به ځما دَ ملګرو نه وی او څوک چه هغه ژبے ته هم رانوړی (او اصل حُکم هُم دغه دے) هغه ځما په ملګرو کښے دے لیکن څوک چه دَ خپل لاس یو چُونګ ډک کړی (نو د مره اجازت دے غرض داچه هغه نهر را اُرسید وتنده زیاته وَه) نو ټولو دَ هغې نه (په اړهمبو اُبه) څکل شروع کړل مګر لږ غوندے سړو په هغوئ کښے (احتیاط اُکړو چا بیخی اُنه څکلے او چا دَ چُونګ نه زیاتے اُنه څکلے) نو هر کله چه طالُوت او کوم مومنان چه ورسره وو دَ نهر نه غاړے ته پورے وتل (او دخپل تورے ئے اُوبیدو نو لږ شان خلق پاتے وو دغه وخت ځنے خلقو په خپل منځ کښې)

ویل چه ډېر لږ خلق دي چه هغوي نه برداشت کوي) نو کله چه هغه خلق جالوت ته مخامخ شو نو هغوي وويل چه (مونږ خو ډېر کمزوري يو) نن خو زمونږ جمع د دومره لږو ده چه دے حال کښې) په مونږ کښې د جالوت او د هغه د لښکرو د مقابلے توان نه ښکاري (په دے سره دا دوي د ستګو ته خلقو ته دا خيال (په دوي راغلو) او چه هغوي به د الله تعالیٰ په وړاندې پیش کیدونکی وی، او ویل چه ډیر واړه (داسے پیښې شوي دي چه) ډیر واړه ټولې په لویو لویو ټولو د خدائے په حکم سره غالب راغلی دی (اصل خبر مستقل مزاجی ده) او الله تعالیٰ د مستقل مزاجو ملګرتیا کوی او هر کله چه (د عمالقه وعلاقے ته او رسیدل او) د جالوت او د هغه د لښکرو مخے ته میدان ته راغلل نو په دعا کښې حق تعالیٰ ته ئے) او ویل چه اے خاونده پروردګاره په مونږه (یعنی زمونږ په زړونو) مستقل مزاجی (د غیب نه) نازله کړه او (د مقابلے په وخت) زمونږه پښے مضبوطے اوکړے، او مونږه په دغه کافر قوم غالب کړه. بیا طالوت والو جالوتیانو ته د خدائے تعالیٰ په حکم سره ماتے ورکړه او داؤد علیه السلام (چه دغه وخت د طالوت په ښکر کښې وو او تر دغے وخته پیغمبر شوے لا نه وو) جالوت لره قتل کړو (او بریالی بیرته راغلل) او (ددے نه پس) هغه (یعنی داؤد علیه السلام) ته الله تعالیٰ بادشاهي او حکمت (دلته د حکمت نه مراد پیغمبری ده) اوبخښلو او نور هم چه څه ورته منظور شول هغه ته ئے ورزده کړل (لکه بے سامانه صرف په لاس زغره جوړول او د ځنا ورو په خبرو پوهیدل، اُس ورپسے ددے پیښے یو عام ښیګړه او خیر بیانوی) او که چرے دا خبره نه وے چه الله تعالیٰ ځے خلقو لره (چه مفسدان وي) د ځنو (نورو) په ذریعه (چه مصلحان وي وخت په وخت) دفع کولے (یعنی که چرے مصلحینو لره ئے په مفسدینو نه برکولے) نو مځکه (ټول په) د فساد نه ډک شوے وے، لیکن الله تعالیٰ لوئے فضل کوونکے دے په جهان (دُنیا) والو باندې (ددے وجے وخت په وخت ئے اصلاح کوی)

## علوم او مسئلے

(۱) إِذْ قَالُوا لِنَبِيٍّ لَّهُمُ ابْعَثْ لَنَا مَلِكًا نُّقَاتِلْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ" دے بنی اسرائیلو د الله تعالیٰ احکام پریښی وو. عمالقه کفار په هغوي مسلط کړے شول دغه وخت دغے خلقو سره د اصلاح فکر شو او د کوم نبی چه دلته ذکر دے د هغه مشهور نوم شموئیل دے.

(۲) أَن يَأْتِيَكُمُ التَّابُوتُ په بنی اسرائیلو کښې یو صندوق راروان وو په کوم کښې چه د موسیٰ علیه السلام او د نورو پیغمبرانو علیهم السلام تبرکات وو. بنی اسرائیلو به

دغه صندوق په جنګ کښې وړاندې وړاندې اوړلو الله تعالیٰ به ورله ددې په برکت بریٰ ورکولو
هرکله چه جالوت په بنی اسرائیلو بریٰ بیامونده و نو دغه صندوق ئې هم تری یوړو. بیا کله
چه الله تعالیٰ ته د صندوق واپس رسول منظور شول نو داسې ئې اوکړل چه کوم ځائې به
دغه کافرانو (عمالقو) دغه صندوق کیښودو هلته به وبا اوغوځیدنه، مصیبتونه راتلل
پنځه ښارونه وران او برباد شول. هغوئي مجبور شول په دوه غوایانو ئې بار کړو او خوشې
ئې کړل. فرښتو دغه غوایان په شړلو شړلو د طالوت دروازې ته راوستل. بنی اسرائیلو
ددې نښې په لیدو د طالوت په بادشاه کیدو یقین اوکړو او طالوت ئې لښکر جوړ کړو جالوت ئې
پوځونه وراغوږځول او موسم د سختې ګرمئ وو.

(۳) "قَالَ اِنَّ اللّٰهَ مُبْتَلِيْكُمْ بِنَهَرٍ" ددې امتحان حکمت او توجیهه ته احقر په ذوق کښې
دا معلومیږی چه په داسې پېښو کښې د جوش وخروش له وجې ډیره ګڼه ګوڼه جوړه شی،
لیکن په اصلی وخت کښې مستقل مزاجه خلق ډیر کم پاتې کیږی او په دغه وخت کښې پیښې
شو ئیدو نکی خلق د نورو پیښې هم بنویوی. الله تعالیٰ ته د داسې خلقو بیلول منظور وو،
ورله ئې امتحان دا مقرر کړو چه ډیر زیات مناسب دې، ځکه چه په جنګ کښې د
استقلال او د سختئ اړولو او تیرولو ضرورت وی، نو په سخته تنده کښې اوبو ته نه لو
سره ځان قابو کول د مستقل مزاجئ دلیل دې. اُس ورپسې د یو خلاف عادت خبره بیان
دې چه ډیرې زیاتې اُبه څکونکی خلق به غیبی ډول هم زیات بیکاره شول، لکه چه روح المعانی
کښې په سند د ابن ابی حاتم د حضرت ابن عباسؓ نه روایت دې او په دې قصه کښې چه کوم
احوال او اقوال بیان شوی دی د هغې نه معلومیږی چه په دغه خلقو کښې درې قسمه خلق وو،
ناقص الایمان چه امتحان کښې فیل شو او کامل چه په امتحان کښې پاس شو. مګر د خپل نږ والی
فکر ئې درسره وو. او اکمل هغه خلق چه دا فکر هم ورسره نه وو.

تِلْكَ اٰيٰتُ اللّٰهِ نَتْلُوْهَا عَلَيْكَ بِالْحَقِّ ۭ وَاِنَّكَ

دا آیتونه د الله تعالیٰ دی، مونږه ئې تاته اوروو صحیح صحیح، او ته بیشکه

لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ ﴿۲۵۲﴾

ځینې په رسولانو کښې ئې

## د تفسیر لنډیز

هرکله چه دَ قرآن کریم یو لوئ مقصد دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم دَ نبوّت ثابتول هُم دی نو دے وجے کوم ځائے کښے چه دَ مضمون سره مناسبت وی دا هلته بیا بیا را دوبارهٔ کوے شی په دے موقعه دَ دے قصے صحیح صحیح خبر ورکول ځکه دَ دوئ معجزه ده او دَ دوئ دَ نبوّت صحیح دلیل دے، چه نه خوئ چا نه لوستے او نهٔ ئے چا نه آؤریدلے وه. هم دا وجه ده چه دَ دے آیتونو نه دَ دوئ په نبوّت دلیل قائموی.

**دَ محمّد صلی الله علیه وسلم په پیغمبرئ دَلیل قائمول**

دا (آیتونه په کوموکښے چه دا قصه بیان شوه) دَ الله تعالیٰ آیتونه دی چه په صحیح صحیح دول تاته په لوستلو لوستلوئے مونږ آؤرَدو او (دَ دے نه ثابتیږی چه) تا سو بے شکه (بے شُبهے) دَ پیغمبرانو (له ډلی) څخه یئ.

# تفسیر معارف القرآن پښتو

## پاره

## 3

تالیف : مولانا مفتي محمد شفیع رحمة الله علیه

مجلس ترجمه ونظر ثانی

1 ډاکټر قاضي محمد مبارک

2 ابو حسین مولانا ګل برخان سواتی

3 مولانا سیف الحنان حقانی

باهتمام : ډاکټر محمددین

برېښنايي کوونکی : عزت الله سلطانزي

آړیکه واټس اپ : 009370691272

وقف لازم

تِلْكَ الرُّسُلُ فَضَّلْنَا بَعْضَهُمْ عَلٰى بَعْضٍ مِنْهُمْ مَّنْ

دا ټول رسولان غوره والي ورکړې دے مونږ ځنو لره په ځنو باندې - ځوک د دوئ نه هغه دي

كَلَّمَ اللّٰهُ وَرَفَعَ بَعْضَهُمْ دَرَجٰتٍ ۚ وَاٰتَيْنَا عِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ

چه خبرې کړې دي الله تعالیٰ د دوی سره او اوچتې کړې دي د ځنو مرتبې - او ورکړې دي مونږ عیسیٰ ځوئ د مریمٔ ته

الْبَيِّنٰتِ وَاَيَّدْنٰهُ بِرُوْحِ الْقُدُسِ ۗ وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ مَا اقْتَتَلَ

معجزې ښکاره - او قوت مو ورکړه هغهٔ ته په روح پاک (یعنې جبرائیلؑ) سره او که غوښتلے الله تعالیٰ نو نه به جنګیدل

الَّذِيْنَ مِنْ بَعْدِهِمْ مِّنْ بَعْدِ مَا جَآءَتْهُمُ الْبَيِّنٰتُ وَلٰكِنِ

هغه خلق چه وو روستو د دې پیغمبرانو نه پس د دینه چه راورسیدل دوی ته ښکاره حکمونه - لیکن په

اخْتَلَفُوْا فَمِنْهُمْ مَّنْ اٰمَنَ وَمِنْهُمْ مَّنْ كَفَرَ ۗ وَلَوْ شَآءَ

دوی کښې اختلاف پریوت - پس بیا په دوی کښې ایمان راوړونکي او ځوک په کښې کافر شو - او که غوښتلے الله

٢٣ ع ٥ ١ اللّٰهُ مَا اقْتَتَلُوْا ۗ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يَفْعَلُ مَا يُرِيْدُ ﴿٢٥٣﴾

تعالیٰ نو دوی به یو تربله نه وُو جنګیدلی - لیکن الله تعالیٰ کوی هغه څهٔ چه غواړی

# لنډ تفسیر

د ځنې پیغمبرانو او امتونو ځنې حالات:

دا حضرات پیغمبران (د کوموچه ذکر اوس په اِنَّكَ لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ کښې راغلے دے) داسې دی چه مونږ د دوینه ځنو لره په ځنو اوچتوالے ورکړې دے (مثلاً) ځنې په دوی کښې هغه دی د کوموسره چه الله تعالیٰ (بغیر د واسطې د فرښتې نه) خبرې کړې دی (مراد ترې موسیٰ علیه السلام دے) او ځنو لره په دوی کښې په ډیرو مرتبو (په اوچت مقام سره) اوچت کړې دی او مونږ حضرت عیسیٰ ځوئ د مریمې (علیه السلام) ته ښکاره ښکاره دلیلونه (یعنې معجزې) ورکړې او مونږ د هغوی مضبوطیا په پاک روح (یعنې جبرائیلؑ) سره

او فرمایله (د یهودو نه د حفاظت کولو د پاره په هر وخت د دوی سره جبرائیل علیه السلام وُه) او که چرې الله تعالیٰ ته منظوره وې نو (د امت) کوم خلق چه د دوی (پیغمبرانو) نه پس وُو (کله به هم په دین کښې د اختلاف کولو په وجه) د یو بل سره جنګ جګړې نه کولې) پس د دې چه هغوی ته (د حق) دلیلونه (د پیغمبرانو په ذریعه) رسیدلي وُو (د کوم چه په حق دین باندې د یوموټي او سیدو تقاضا وه) لیکن (په دې کښې د الله تعالیٰ حکمتونه وُو د هغې وجه نه ئې په دوی کښې د مذهب اتفاق پیدا نه کړو) دغه خلق یو تر بله (په دین کښې) مختلف شول نو په دوی کښې څا ایمان راوړو او څوک کافر پاتې شول (بیا په دې اختلاف کښې خبره مړګ ژوبلې ته اورسیده) او که چرې الله تعالیٰ ته منظوره وې نو دغې خلقو به په خپل مینځ کښې جنګ جګړې نه وې کړې. لیکن الله تعالیٰ (په خپل حکمت) چه څهٔ غواړي (په خپل قدرت سره) هُم هغه کوي۔

# مَعلُومَات اَوْمسئلې

(۱) تِلۡكَ الرُّسُلُ الآیة۔ په دې مضمون کښې یو قسم نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته تسلّي ورکول دي۔ ځکه چه هر کله د هغوئ پیغمبرۍ په دلیل سره ثابته وه کومه چه ئې په اِنَّكَ لَمِنَ الۡمُرۡسَلِيۡنَ سره فرمایلې ده او بیا هم منکرو خلقو نه منله نو په دې سره هغوئ ته ډیر غم او افسوس وُه۔ د دې وجه نه الله تعالیٰ دا خبره واوروله چه د مختلفو مُلکو نو پیغمبران هم تیر شویدي لیکن د یو پیغمبر په زمانه کښې هم ټول اُمتیان په جمع نه دي مؤمنان شوي چا د دوی خبره منلې ده او چا نه ده منلې او په دې کښې هم د الله تعالیٰ حکمتونه دي چه هر څوک پرې نه پوهیږي البته دومره عقیده په دې لړ کښې ضروري دي چه په دې کښې به خامخا څهٔ حکمت وي۔

(۲) تِلۡكَ الرُّسُلُ فَضَّلۡنَا بَعۡضَهُمۡ عَلٰى بَعۡضٍ۔ دلته دا اشکال پیدا کیږي چه دا آیت خو ښکاره په دې خبره دلالت کوي چه ځنې پیغمبران د ځنو نه غوره دي۔ او په حدیث کښې خو نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمائي چه:

لَا تُفَضِّلُوۡا بَيۡنَ اَنۡبِيَآءِ اللهِ۔ د انبیاؤ په مینځ کښې د یو په بل غوره کول مه کوئ۔

دا ارشاد فرمائي:

لَا تُخَيِّرُوۡنِيۡ عَلٰى مُوۡسٰى۔ ما لوره په موسیٰ علیه السلام فضیلت (غوره والې) مه ورکوئ۔

او فرمایلی ئې دي:
لَا اَقُوْلُ اَنَّ اَحَدًا اَفْضَلُ مِنْ يُّوْنُسَ بْنِ مَتّٰى : زۀ نه شم ویلې چه څوک د یونس بن متی نه غوره دے۔
په دے احادیثو کښې د ځنې پیغمبرانو عم په ځنو باندے د غوره کولو ممانعت راغلے دے۔
جواب دا دے: چه د احادیثو مطلب دا دے چه د دلیل نه بغیر په خپله رائې سره ځنو لره په ځنو فضیلت مه ورکوئ۔ وجه ئې دا ده چه د یو پیغمبر د غوره والي معنیٰ دا ده چه د الله تعالیٰ په نزد د هغۀ مرتبه ډیره زیاته ده۔ او دا خو ښکاره خبره ده چه د دے علم په رائې او په قیاس سره نه شي حاصلیدے۔ لیکن د قرآن او حدیث په څۀ دلیل که چرے د ځنې پیغمبرانو فضیلت په ځنو معلوم شي نو هم د هغې مطابق به عقیده لرلے شي۔
یا تے شو د حضورﷺ دا ارشاد چه: لَا اَقُوْلُ اَنَّ اَحَدًا اَفْضَلُ مِنْ يُّوْنُسَ بْنِ مَتّٰى : او دا چه: لَا تُخَيِّرُوْنِيْ عَلٰى مُوْسٰى : نو دا د هغه وخت سره تعلق لري کله چه دوئ ته دا علم نه وو د زکړے شوے چه تاسو د ټولو پیغمبرانو علیهم السلام نه غوره یئ۔ وروستو بیا د وحئ په ذریعه دوئ ته دا خبره اوخودلے شوه او صحابه کرامو ته ئې د هغې اظهار هم اوکړو (مظهري)
۳: مِنْهُمْ مَّنْ كَلَّمَ اللّٰهُ : د موسیٰ علیه السلام سره خبرے اگرچه د فرشتے په ذریعه نه وے مگر حجاب او پرده وه: بیا د سورت شورٰی په ایت: مَا كَانَ لِبَشَرٍ اَنْ يُّكَلِّمَهُ اللّٰهُ الخ کښې چه د بے پردے خبرو کولو نښتوالے راغلے دے د دے خبرے سره څۀ ټکراؤ نه راځي۔ البته د مرگ نه پس بے حجابه خبرے کول هم په شریعت کښې روا بللے شي۔ نو پس د سورت شورٰی د ایت مطلب دا دے چه په دنیا کښې دا سے نه شي کیدے۔ (یعنے د دغې ایت تعلق د دنیا سره دے)

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَنْفِقُوْا مِمَّا رَزَقْنٰكُمْ مِّنْ قَبْلِ اَنْ يَّاْتِيَ يَوْمٌ

اے ایماندارو! خرچ کوئ د هغې نه کوم چه درکړیدی مونږ تاسو له وړاندے د راتلو د هغې ورځے نه

لَّا بَيْعٌ فِيْهِ وَلَا خُلَّةٌ وَّلَا شَفَاعَةٌ ۗ وَالْكٰفِرُوْنَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿۲۵۴﴾

چه په هغې کښې به اخستل خرڅول نه وي او نه به آشنائي او سفارش وي۔ او هم کافران ظالمان دي۔

# لنډ تفسیر

دَ الله تعالیٰ په لاره کښې په مال لګولو کښې تلوار کول: اے ایماندارو لګښت وکړئ دَ هغه څیز ونو نه چه مونږه درکړے دی تاسوته وړاندے دَ راتلو دَ هغې ورځے نه (یعنې دَ قیامت ورځ) په کوم کښې به چه هیڅ څیز دَ نیکو عملونو بدل نه شي کیدے ځکه چه په هغې کښې به خرڅول اغستل نه وي (چه دَ بل څیز په بیعه به نیک عملونه واغستے شي) او نه به (داسے) دوستي وي (چه تاسو ته به څوک خپل نیک عمل درکړي) او نه (دَ الله تعالیٰ دَ اجازت نه بغیر) به دَ چا سفارش وي (دَ کوم دَ وجې چه به ستاسو دَ نیک عمل ضرورت پاتے نه شي) او هم کافران ظلم کوي (چه عملونه او مالونه بے موقع استعمالوي داسے چه مالي او بدني عبادتونه پریدي او مالي بدني ګناهونه کوي۔ نو تاسو داسے مه جوړیږئ)

## مَعلُومَات او مسئلے

په دے سورت کښې دَ عباداتو او معاملو په باره کښې ډیر احکام بیان شو چه په هغې عمل کول نفس ته ناخوښه او ګران ښکاري۔ او انسان ته په ټولو عملونو کښې زیات ګران دَ ځان او مال خرچ کول وي۔ او دَ خدائے پاک ټول حکمونه چه دی نو چه فکر ورته او کړے شي یا دَ ځان متعلق وي یا دَ مال۔ او بنده له په ګناه کښې اکثر یا دَ ځان محبت اخته کوي یا دَ مال نو ګویا دَ دے دواړو محبت دَ ګناهونو ذریعے دي او دَ دے نه خلاصے دَ عباداتو دَ آسانید ولاره ده۔ نو په دے وجه دَ احکامو بیانولو نه پس دَ جهاد او مال خرچ کولو بیان مناسب شه نو په: وَقَاتِلُوا فِي سَبِيلِ اللّٰهِ الخ: دَ اول حکم بیان دے او په: مَنْ ذَا الَّذِي يُقْرِضُ اللّٰهَ الخ: کښې دَ دویم ذکر دے۔ او بیا په قصه دَ طالوت سره تاکید دَ اول اوشو۔ او په: اَنْفِقُوا مِمَّا رَزَقْنٰكُمْ الخ: سره اوس دَ دویم تاکید کیدے شي۔ او چونکه په خرچ کولو دَ مال ډیر کارونه دَ عباداتو او معاملو موقوف دي نو دَ دے په بیان کښې دَ زیات تفصیل او تاکید نه کار واغستو۔ نو اوس په راتلونکو اکثرو رکوع ګانو کښې دَ دویم کار یعنې مال خرچ کولو ذکر دے۔ نو خلاصه معنیٰ دا شوه چه اوس دَ عمل وخت دے په آخرت کښې نه عمل خرڅیږي او نه ئے څوک په دوستانه سره ورکوي۔ او نه څوک په سفارش سره دَ چا ګوتې خلاصے کولے شي۔ تر څو چه ئے نیوُنکے پرے نه دي۔

اَللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَۚ اَلْحَیُّ الْقَیُّوْمُ ۚ لَا تَاْخُذُهٗ سِنَةٌ وَّلَا نَوْمٌ ؕ

د الله نه سوا بل څوک د عبادت لایق نیشته ژوندے دے تولو له تینګونکے دے - نه نیسي ده له پرکالې او نه خوب

لَهٗ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَمَا فِی الْاَرْضِ ؕ مَنْ ذَا الَّذِیْ یَشْفَعُ عِنْدَهٗۤ اِلَّا

خاص د ده دي څه چه په اسمانونو او زمکه کښے دي - دا سے څوک دے چه سفارش اوکړي د هغهٔ په وړاندے مګر د

بِاِذْنِهٖ ؕ یَعْلَمُ مَا بَیْنَ اَیْدِیْهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ ۚ وَلَا یُحِیْطُوْنَ بِشَیْءٍ مِّنْ

هغهٔ په اجازت - پیژنی هغه چه په مخ د مخلوق کښے دي او کوم چه ئے روستو دي - او دوي نه شي راګیره ولے یو شي له د

عِلْمِهٖۤ اِلَّا بِمَا شَآءَ ۚ وَسِعَ كُرْسِیُّهُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ ۚ وَ

معلوماتو د هغهٔ نه مګر دومره چه هغهٔ ئے اوغواړي - ځائے کوي کرسئ د هغه آسمانونو او زمکے له - او

لَا یَـُٔوْدُهٗ حِفْظُهُمَا ۚ وَهُوَ الْعَلِیُّ الْعَظِیْمُ ﴿۲۵۵﴾

ګران نه دي هغهٔ ته تینګول د دے دواړو - او هم هغه دے د ټولو نه بنهٔ پورته لوئے والا -

## لنډ تفسير

الله تعالیٰ (دا سے دے) چه د هغهٔ نه بغیر بل څوک د عبادت لایق نیشته ژوندے دے (چه هغه لپه چرته هم مرګ را نه شي) سنبالونکے دے (ټول عالم له) نه هغهٔ له پرکالې راتلے کولے شي او نه خوب (ئے) را تلے کولے شي) د هغهٔ مِلکیت دي ټول څهٔ چه (هُم) په اسمانونو کښے (موجود) دي او څهٔ چه په زمکه کښے دي - دا سے څوک دے چه د هغهٔ په وړاندے (څه) سفارش اوکړے شي بغیر د هغهٔ د اِجازت نه - هغه پیژنی د (تمامو مخلوقاتو) تمامو حاضرو او غائبو حالاتو له او دا (مخلوقات) د هغهٔ (الله تعالیٰ) د معلوماتو نه څهٔ څیز له د خپل علم په احاطه کښے (دائره کښے) نه شي راوستے مګر څومره (علم ورکول) چه هغهٔ) اوغواړي د هغهٔ کرسئ (دومره لویه ده چه هغے) ټول اسمانونو او زمکے له په خپل ځان (منځ) کښے ځائے کړے دي او الله تعالیٰ له د دے دواړو (اسمانونو او زمکے) حفاظت نه ستومانه کوي هغه عالیشان او عظیم الشّان دے -

# معلومات او مسئلې

**د آیة الکرسۍ خاص فضیلتونه**

دا آیت د قرآن مجید د ټولونه یو عظیم الشان آیت دے په احادیثو کښې د دے ډیر لوئې فضیلتونه او برکتونه ذکر شوي دي۔ د مسند احمدؒ په روایت کښې دي چه نبي کریم صلی الله علیه وسلم دے ته د ټولو نه زیات غوره آیت فرمایلے دے۔ او په یو بل روایت کښې دي چه نبي کریم صلی الله علیه وسلم د اُبَيّ ابن کعب رضی الله تعالیٰ عنه نه تپوس اوکړو چه په قرآن مجید کښې د ټولو نه عظیم آیت کوم یو دے؟ اُبَيّ ابن کعب عرض اوکړو۔ چه آیة الکرسی۔ نبي کریم صلی الله علیه وسلم د هغه تصدیق اُوکړو اُو ئې فرمایل چه اے أبو المنذر تا ته دے علم مُبارک شي۔

حضرت اَبو ذَرّ رضی الله تعالیٰ عنه د حضور صلی الله علیه و سلم نه تپوس اُوکړو چه یَا رسول الله صلی الله علیه وسلم! په قرآن کریم کښې د ټولو نه عظیم آیت کوم یَو دے؟ او ئې فرمایل چه آیة الکرسی۔ (ابن کثیر د مسند امام احمدؒ نه)

حضرت ابو هریره رضی الله تعالیٰ عنه فرمائي چه نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي۔ په سورتِ بقره کښې یو آیت دے چه د قرآن د آیتونو سَرْدار دے۔ دا چه په کوم کور کښې اُولوستلے شي شیطان د هغې کور نه اوځي۔

د نسائيؒ په یو روایت کښې دي چه نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي څوک چه د هر فرض مونځ نه پس آیت الکرسی لُوَلِي نو جنّت ته په داخلیدو کښې د دهٔ د پاره بغیر د مرګ نه بل څه منع کونکے نیشته۔ یعنے د مرګ نه پس به فوراً دے د جنت ښَنیے ښَنانے آرام او راحت او وینی او مومي به ئې۔

په دے آیت کښې د الله جلّ شانهٗ یَوْ وَالے د هغهٔ د ذات او صفاتو بیان په یو عجیبه او نَا اَشْنَا انداز کښې شوے دے۔ په دے کښې د الله تعالیٰ جلّ شانهٗ شته والے۔ او د هغه همیشه ژوندون۔ او لیدونکے اَوْریدُونکے کیدل، خبرے کُونکے، په خپل وجود سره همیشه موجود کیدونکے، تَل تر تَلَه کیدونکے، د ټولو کائناتو نوِنے پیدا کونکے او خالق کیدُونکے، د تغیر تبدیل د اثراتو نهٔ قبلونکے، د ټولو کائناتو مالک کیدُونکے او خاوند د لوئي او بړائي دے چه د دهٔ په وړاندے څوک بغیر د دهٔ د اجازت نه خبرے هم نه شي کولے۔ د داسے کامل قدرت مالک دے چه د ټولو مخلوقاتو او کائناتو

په پیدا کولو د هغې په ساتلو او پوخ انتظام کولو هغه ته څه ستړې کیږي او نه سستي او کمزوري په کښې راځي - د دا سې لوئې علم مالك دے چه بښکاره پټ څیز او څه ذره او قطره ترې پاتې نه ده دا ئې اجمالي بیان (یعنې سرسري بیان) وه - اوس ئې په تفصیل سره د الفاظو معنی واورئ :-

په دے آیت کښې لس جملې دي : اول جمله ده : اَللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ؕ په دے کښې لفظ د "الله" ذاتي نوم دے معنی ئې داده چه هغه ذات چه ټول کمالات په کښې جمع دي او د ټولو نقصانونو نه پاک دے - په لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ کښې د دغه ذات بیان دے چه لائق د عبادت د دغې ذات نه سوا بل هیڅ شے نیشتے -

دویمه جمله ده : اَلْحَیُّ الْقَیُّوْمُ ، د "حَیٌّ" معنی په عربۍ ده "ژوندے" - د الله تعالیٰ په نومونو کښې د دے نوم په راوړو سره دا خودنه کول دي چه هغه همیشه ژوندے او باقي پاتې کیدو والا دے - هغه د مرګ نه بالاتر دے هیڅ ره نه مري - د "قَیُّوْمُ" لفظ د قیام نه وتے دے د قیام معنی ده او دریدل - "قائم" او دریدونکي ته وائي ؛ قَیُّوْمُ او قَیَّامُ : ترے د مبالغې صیغې دي - معنی ئې دا سې ده چه هغه ذات چه په خپله هم قائم دے او نورو لره هم قائم ساتي او سنبالوي ئې - قَیُّوْم : د الله تعالیٰ یو خاص صفت دے چه بل مخلوق په کښې ورسره نشي شریك کیدلے - ځکه چه کوم څیزونه چه په خپل وجود او باقي پاتې کیدو کښې د بل چا محتاج وي نو هغه به بل څیز څه رنګ سنبال کړے شي - نو په دے وجه چا انسان ته قَیُّوْم ویل روا نه دي - کوم خلق چه عَبْدُ الْقَیُّوْم : نوم وران کړي او صرف ؛ قَیُّوْم : ورته وائي نو ګناه ګار دیږي -

د الله تعالیٰ جل شانه په صفتي نومونو کښې د : اَلْحَیُّ الْقَیُّوْمُ : دا دواړه جمع نومونه د ډیرو صاحبانو په نزد اسم اعظم : دے - حضرت علي مرتضیٰ رضي الله تعالیٰ عنه فرمائي چه د بدر په غزا کښې ما یو پیره اراده او کړه چه نبي کریم صلی الله علیه وسلم اوګورم چه روئي څه کوي ؛ چه ورا غلم نو ما او لید و چه په سجده پروت دے بیا بیا : یَا حَیُّ یَا قَیُّوْمُ یَا حَیُّ یَا قَیَّامُ : وائي -

دریمه جمله ؛ لَا تَاْخُذُهٗ سِنَةٌ وَّلَا نَوْمٌ ؛ ده - د سین په زیر سره لفظ د : سِنَةٌ : پرکالي ته وائي - کومې چه د خوب اوّلنۍ نښې وي (چه بنده په کښې جو تے خوري) او : نَوْمٌ : پوره خواب یعنې اوده کیدو ته وائي - د ټولې جملې مطلب دا شو چه " الله جل شانه د

خو ب او پرکالئ دواړه نه بالاتر دے یعنې خوب او پرکالی پرے چرته نه شی راتلے - په تیره شوے جمله کښے چه د: قَیُّوم: لفظ انسان ته دا اوخودل چه الله جَلّ شانهٔ ټولو آسمانونو او زمکو او په دوی کښے ځائے شوو ټولو کائناتو لره پنوُ نکے او سنبالونکے دے او دا ټول کائنات د دهٔ په حفاظت سره او ساتنے سره قائم دی۔ نو د یَو انسان خیال د خپل فطرت په وجه دے طرف ته تلے شی چه کوم پاک ذات دومره لوئے کار کوی - نو هغهٔ به د انسان په شان ستړے کیږی هم او څهٔ وخت به ورلوه د آرام او خوب د پاره هم په کار وی نو په دے جمله کښے انسان په دے باندے خبر کړے شه - چه الله تعالیٰ جَلّ شانهٔ دے په خپل ځان یا نور مخلوقات باندے نه قیاس کوی (یعنے دے دے د مخلوق په شان نه ګنړی) هغه ذات د مثل او مثال نه ډیر اوچت دے هغه بے مثله دے مثل ئے نیشتے - د هغهٔ قدرت او طاقت دومره لوئے دے چه دا ټول کار هغهٔ ته هیڅ ګران نه دے۔ او نه دا کار هغهٔ لره ستړے کولے شی - د هغه پاک ذات دا نهٔ څهٔ اَ شَو کولے شی نه ستړے کیدے شی او نهٔ ورلوه پریشانی او خواب راتلے شی - هغهٔ د دے هر څهٔ نه بے پروا دے -

څلورمه جُمله: لَهٗ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَمَا فِی الْاَرْضِ: ده - د دے په شروع کښے د: لَهٗ: لام د مِلْکِیَّت د معنیٰ د پاره راغلے دے - نو معنیٰ ئے دا شوه چه ټول څیزونه کوم چه په آسمانونو او په زمکه کښے دی دا ټول د الله تعالیٰ مِلْکِیَّتُ دی د هغهٔ اختیار دے څنګه چه غواړی تصرّف په کښے کولے شی۔

پنځمه جمله: مَنْ ذَا الَّذِیْ یَشْفَعُ عِنْدَهٗٓ اِلَّا بِاِذْنِهٖ: یعنے دا سے څوک دے چه د دهٔ په وړاندے د چا سفارش او کړے شی بغیر د اجازت د دهٔ نهٔ - په دے کښے یَو څو مسئلے بیان شوی دی:-

اوّل دا چه هر کله الله تعالیٰ د ټولو کائناتو مالک دے څوک د دهٔ نه لوئے او په دهٔ باندے حاکم نیشتے - نو څوک د دهٔ نه د څهٔ کار کولو په باره کښے د تپوس کولو هم حقدار نیشتے - هغه چه کوم حکم جاری کړی په هغے کښے د چا واحق نیشتے چه اَفْوَادِیْځوا په کښے او کړی - خو البته دا کیدے شوه چه څوک د چا سفارش یا شفاعت او کړی - نو دغه خبره ئے هم ښکاره کړه چه په دربار د لوئی او عزت کښے څوک د ساه اَغِستلو مجال هم نهٔ لری - البته کوم بندګان چه الله تعالیٰ ته نزدے او مقبول وی هغوی ته به

په خاص طور سره دَ ځینو کَولو او شفاعت اجازت ورکړے شي - غرض دا دے چه بے اجازته به څوک دَچا سفارش او شفاعت هم نه شي کَولے - په حدیث شریف کښے دي چه: نبي کریم صلے الله علیه وسلّم فرمایلي دي چه په محشر کښے به دَ ټولو نه اول زهٔ دَ ټولو امتونو شفاعت کَوم دا دے نوُم مقام محمود دے چه دَ نبي کریم صلے الله علیه وسلّم دَ خصُوصیاتو نه دے -

شپږمه جمله دا ده: يَعْلَمُ مَا بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ : یعنے الله تعالیٰ دَ خلقو دَ وړاندے دُروستو دَ ټولو حالاتو او واقعاتو نه خبردار دے او پوهه دے پرے - دَ مخکښے او دُروستو دا معنیٰ هُم کیدے شي چه دَ دوی دَ پیدا کیدو نه اوّل او دَ دوی دَ پیدا کیدو نه پس ټول حالات او واقعات دَ الله تعالیٰ په علم کښے دي - او دا معنیٰ هم کیدے شي چه دَ وړاندے نه مراد هغه حالات دي کوم چه بندهٔ ته ښکاره دي او دَ دُروستو نه مراد هغه حالات دي کوم چه ترے پټ دي - نو معنی به ئے دا شي چه دَ انسان علم خو په بعض ځیزونو باندے شته او په بعضے باندے نیشته - څهٔ ځیزونه دهٔ ته ښکاره دي او څهٔ دَ دهٔ نه پټ دي - لیکن دَ الله جلّ شانهٔ په مخ کښے دا ټول ځیزونه برابر دي - دَ دهٔ علم په دے ټولو ځیزونو باندے برابر دے - او دا ټولے معنے په دے روایت کښے داخلے دي -

اوومه جُمله ده: وَلَا يُحِيْطُوْنَ بِشَيْءٍ مِّنْ عِلْمِهٖۤ اِلَّا بِمَا شَآءَ : یعنے انسان او ټول مخلوقات دَ الله تعالیٰ دَ علم یو حِصّه هُم نهٔ شي قابو کَولے - مګر الله تعالیٰ چه په خپله چاته څومره حِصّه دَ علم وَرْبخښش کوي صرف دغه هومره علم هغهٔ ته کیدے شي - په دے کښے داخبره اُو خودے شوه چه دَ ټولو کائناتو دَ ذرّے ذرّے قابو کولے علم صرف دَ الله جلّ شانهٔ خاص صفت دے - انسان یا بل څوک مخلوق په دے کښے نهٔ شي شریکیدے ورسره -

اَتمه جمله ده: وَسِعَ كُرْسِيُّهُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ : یعنے دَ هغهٔ کرسئ دومره لویه ده چه اُووَه آسمانونه او زمکه ئے په خپل مینځ کښے ځائے کړي دي - الله تعالیٰ دَ ناستے پاستے او دَ ځائے ځائیګی نه بے پروا دے او بالاتر دے - دا قسم آیاتونه په خپل ځان باندے قیاس کول نهٔ دي په کار - رچه کوندے الله تعالیٰ هم زمونږ په شان ناسته پاسته کوي) دَ دے خبرے اندازه او حقیقت دَ انسان په عقل کښے نهٔ شي راتلے البته دَ احادیثو په صحیح روایتونو سره دومره معلومیږي چه عرش او کرسي ډیر

لوئ جسم لري چه د ټولو آسمانونو او زمکې نه په ثو درجو لوئ دی -
ابن کثیر په روایت د ابو ذر غفاري رضي الله تعالیٰ عنه نقل کوي چه دوی د حضور صلی الله علیه وسلم نه تپوس اوکړو چه کرسي څۀ ده او څنګه ده؟ حضور ﷺ وفرمایل قسم دے په هغه ذات د چا په قبضه کښې چه زما روح دے چه د اُوه آسمانونو او زمکو مثال د کرسئ په مقابله کښې داسې دے لکه د یو لوئ میدان په مینځ کښې چه د کوتۍ کړے وا چوّلے شي -
او په بعضو نورو روایاتو کښې دي چه د عرش په مقابله کښې د کرسئ مثال هم داسې دے لکه په یو لوئ میدان کښې چه د کوتۍ کړے وا چوّلے شي -
نهمه جمله ده: وَلَا يَئُودُهُ حِفْظُهُمَا: یعنې الله تعالیٰ ته د دے دواړو لویو مخلوقاتو آسمان او زمکې حفاظت او ساتنه څه ګرانه نۀ معلومیږي - ځکه چه د دے قادرِ مطلق د کامل قدرت په وړاندے دا ټول څیزونه ډیر آسان دي -
لسمه او آخري جمله ده: وَهُوَ الْعَلِيُّ الْعَظِيمُ: یعنې هغه لوئ شان او عظیم الشان دے - په تیرو نهو جملو کښې د الله تعالیٰ د ذات او د صفتونو کمالونه بیان شو - نو د دے په کتو او پوهیدو سره هر هغه انسان چه عقل په کښې وي په دے ډیناً مجبوره دے چه د هر یو عزت لوئے او برائي مالک او لائق هم دغه پاک ذات دے - په دے لسو جملو کښې د الله جل شانهٗ د کمال صفتونه او د هغه د یو والي بیان څۀ په پوره وضاحت او تفصیل سره بیان شو -

لَآ اِكْرَاهَ فِي الدِّيْنِ ۙ قَدْ تَّبَيَّنَ الرُّشْدُ مِنَ الْغَيِّ ۚ فَمَنْ يَّكْفُرْ

زبردستي نشته د دین په معامله کښې - بے شکه جدا شوے دے هدایت د ګمراهۍ نه - او س چه څوک نه مني

بِالطَّاغُوْتِ وَيُؤْمِنْۢ بِاللّٰهِ فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقٰى

ګمراه کونکو لره او یقین راوړي په الله تعالیٰ نو هغۀ اونیوله کړے مضبوطه چه

لَا انْفِصَامَ لَهَا ۗ وَاللّٰهُ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ﴿۲۵۶﴾

ماتیدونکې نه ده - او الله تعالیٰ هر څۀ آوري او پوهه دے -

# لنډ تفسير

(دَاسلام دَ) دين (په قبلولو) کښې زور (هډو) زبردستي نيشته (ځکه چه) هدايت يقيناً دَ ګمراهۍ نه بېل شوے دے (يعنې دَاسلام حق والے په دلائلو سره ښکاره شوے دے. نو په دے کښې دَ زبردستۍ موقع څه ده. زبردستي خو په ناخوښه شي دَ مجبورکولو په وجه وي. او هر کله چه دَاسلام ښۀ والے په يقين ثابت دے) نو دَ کوم سړي چه په شيطان عقيده بده شوه او په الله تعالىٰ ئې عقيده ښۀ شوه (يعنې اسلام ئې قبول کړه) نو دۀ ډېره مضبوطه کړۍ اونيوه چه په هيڅ شان سره ماتيدے نۀ شي. او الله تعالىٰ خۀ اوريدونکے دے (ځبرو ښکاره دَولوه) او خۀ پوهيدونکے دے (په پټو حالاتو باندے).

# معلومات او مسئلے

کوم کس چه اسلام لره مضبوط نيولے وي او تښتيدلې پرے ولاړ وي نو دے دَ هلاکت او محرومۍ باتے کيدو نه بچ وي. په دے وجه ئې دَ دۀ تشبيه دَدا سے سړي سره ورکړه چه دَ مضبوطے رسۍ کړۍ ئې په لاس کښې کلکه نيولے وي دَ غورزيدو نه په امن وي. او لکه څه ونګې چه دَ داسے رسۍ دَ شوکيدو او دَ دۀ دَ غورزيدو ويره نه وي. ترڅو چه رسۍ په خپله پرے نه دي - دغه شان په اسلام کښې دَ خۀ قسم هلاکيدو او تاوان نيشتے او که څوک په خپله إسلام پاتے کړي نو دا خو بله خبره ده (بيان القرآن)

دا آيت چه او وينې نو بعضے خلق دَا اعتراض کوي چه کوم دے آيت نه معلو ميږي چه په دين کښې زبردستي نيشتے. او حال دا دے چه په اسلام کښې خو دَ جهاد کولو او جنګ کولو تعليم ورکړے شوے دے چه دَ دينه مخالف دے -

که لږ په غور سره اُوکتے شي نو معلومه به شي چه دا اعتراض صحيح نه دے. ځکه چه په اسلام کښې دَ جهاد او جنګ کولو تعليم دَ دے دَ پاره نه دے چه خلق په ايمان راوړو باندے مجبوره کړي. که داسے وے نو بيا خو به دَ کفارو نه جزيه اَغستل او او دوی لره په خپل حفاظت کښې ساتل او دَ دوی دَ جان ومال حفاظت کولو احکام ځنګه جاري کيدل - بلکه جهاد او جنګ خو دَ فساد دفع کولو دَ پاره دے ځکه چه فساد دَ الله تعالىٰ خو بدښه دے او کافران فساد خوره وي - لکه چه الله تعالىٰ فرمائي :-

وَ يَسْعَوْنَ فِي الْأَرْضِ فَسَادًا وَ اللّٰهُ لَا يُحِبُّ الْمُفْسِدِينَ ○

او دا خلق په زمکه کښې فساد خوروي او الله تعالیٰ فساد کونکي نه خوښوي -

په دې وجه الله تعالیٰ دَجهاد او جنګ کولو په ذریعه دَدې خلقو دَ فساد لرې کولو حکم کړې دې - پس دَدې خلقو قتلول دا سې دي لکه دَ مار، لړم او بل ضرر رسوونکي ځناور وَژل چه شو -

اسلام دَ ښځو، بچو، بوډاګانو، شلوګوډو وغیره قتل خوعین په میدان دَ جنګ کښې هم په سختۍ سره منع کړې دې - ځکه چه دوی فساد نه شي کولې - او دغه شان ئې دَ هغه خلقو قتل هم منع کړې دې کوم چه دَ جزیې ورکولو وعده او کړي دَ اسلامي قانون پابندي کوي او اسلامي قانون اومَنِي -

دَ اسلام دَ دې خبرو نه معلومه شوه چه هغهٔ په جهاد او جنګ سره خلق په ایمان قبلولو نه مجبوره کوي بلکه په دې سره اسلام په دنیا کښې زور زیاتې ختمول او دَ عدل او انصاف او امن وَ آمان نظام جوړه ول او قائم کول غواړي - حضرت عمرؓ یو نصراني بوډۍ ته دَ اسلام بَلَنه ورکړه نو هغې په جواب کښې او وې: اَنَا عَجُوْزٌ كَبِيْرَةٌ وَّ الْمَوْتُ اِلَيَّ قَرِيْبٌ: یعنې زهٔ مرګ ته نزدې بوډۍ یَمه په آخري وخت کښې خپل مذهب څنګه پاتې کړم؟ حضرت عمرؓ چه دا واورېده نو دا ئې په ایمان راوړلو مجبوره نه کړه بلکه دا آیت ئې تلاوت کړو: لَاۤ اِكْرَاهَ فِي الدِّيْنِ: یعنې په دین کښې زبردستي نیشته -

په حقیقت کښې دَ ایمان په قبلولو زور زیاتې کیدې هم نه شي ځکه چه دَ ایمان تعلّق دَ ظاهري اندامونو سره نه دې بلکه دَ زړهٔ سره دې - او دَ زور زیاتي تعلّق صرف دَ ظاهري اندامونو سره وي - دَجهاد او جنګ اثر صرف په ظاهري اندامونو کیدې شي - نو په دې وجه دَدې په ذریعه دَ ایمان په قبلولو زور نه شي کیدې نو دَ دینه ثابته شوه چه دَ جهاد او جنګ دَ آیتونو دَ: لَاۤ اِكْرَاهَ فِي الدِّيْنِ: سره څهٔ مخالفت او معارضه نیشته - (مظهري، قرطبي)

اَللّٰهُ وَلِيُّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا يُخْرِجُهُمْ مِّنَ الظُّلُمٰتِ اِلَى النُّوْرِ ○

الله مددګار دې دَ ایمان دارو او باسي دوی لره دَ تیارو نه دَ رڼا طرف ته -

وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اَوْلِيٰٓـئُهُمُ الطَّاغُوْتُ ۙ يُخْرِجُوْنَهُمْ مِّنَ

او کوم خلق چه کافر دی د هغوی ملګری دی شیطانان را او باسی دوی لره د

ع ۳۴ ۲ النُّوْرِ اِلَى الظُّلُمٰتِ ؕ اُولٰٓـئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿۲۵۷﴾

رڼا نه تیرو طرف ته - دغه خلق دی دوزخیان - دوی به دے کښے همیشه اوسی

## لنډ تفسير

د اَللهُ وَلِيُّ الَّذِيْنَ نه تر خٰلِدُوْنَ پورے ده الله تعالیٰ ملګرے دے د هغه خلقو چه ایمان راوړی، دوی لره د (کفر د) تیرو نه او باسی یا ساتی نور د (اسلام) طرف ته ئے راولی، او کوم خلق چه کافر دی د هغوی ملګری شیطانان دی (بنی آدم او پیریان) هغه دوی لره د نور (د اسلام) نه را او باسی یا ساتی د (کفر) تیرو ته ئے بیائی - داسے خلق (کوم چه اسلام پریدی کفر اختیار کړی) د دوزخ اوسیدونکی دی (او) دا خلق به همیشه په دے کښے اوسی -

## معلومات او مسئلے

د دے ایت نه معلومه شوه چه ایمان د ټولو نه لوئے نعمت دے او کفر د ټولو نه لوئے مصیبت دے - او دا هم چه د کافر نه دوستی هم تیاره ده -

وقف لازم اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِىْ حَآجَّ اِبْرٰهٖمَ فِىْ رَبِّهٖٓ اَنْ اٰتٰىهُ اللّٰهُ الْمُلْكَ ۘ

آیا نه دے لیدلے تا هغه سړے چا چه جګړه اوکړه دا ابراهیم ع سره د هغه د رب په باره کښے په دے وجه چه ورکړے وه الله

اِذْ قَالَ اِبْرٰهٖمُ رَبِّىَ الَّذِىْ يُحْىٖ وَيُمِيْتُ ۙ قَالَ اَنَا اُحْىٖ وَاُمِيْتُ ؕ

هغه ته حکومت - هر کله چه اووے ابراهیم ع زما رب هغه دے چه ژوندی کوی او مړه کوی هغه اووے زه هم ژوندی کوم او وژنم

قَالَ اِبْرٰهٖمُ فَاِنَّ اللّٰهَ يَاْتِىْ بِالشَّمْسِ مِنَ الْمَشْرِقِ فَاْتِ

او وے ابراهیم ع بے شکه هغه راخیژوی نمر لره د مشرق نه او س ئے ته راوله

بِهَا مِنَ الْمَغْرِبِ فَبُهِتَ الَّذِىْ كَفَرَ ؕ وَاللّٰهُ لَا يَهْدِى

د مغرب نه پس حیران پاتے شه هغه کافر - او الله نیغه لار نۀ ښائی

الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۲۵۸﴾

بے انصافو ته -

# لنډ تفسير

(اے مخاطبه!) آیا تا ته دَ هغه کس قصّه نه ده رسیدلې، اګر شوی (یعنې دَ نمرود) چا چه دَ ابراهیم (علیه السلام) سره مباحثه کړے وه دَ خپل پروردګار (دَ وجُود) په باره کښے (یعنې تو به ئې دے دَ خدائے پاک دَ وجُود نه مُنکر وَه) په دے وجه چه خدائے تعالیٰ دهٔ ته حکومت ورکړے وه (یعنې په کار خو دا وَه چه دَ حکومت په دے نعمت ورکولو دَ خدائے تعالیٰ احسان منلے وے او ایمان ئې راوړے وے - خو دَ دے په خلاف دهٔ اِنکار او کفر شروع کړه او دا مُبَاحَثَه هغه وخت شروع شوے وَه) کله چه ابراهیم علیه السلام (دَ دهٔ په تپوس کولو باندے چه خدائے څنګه دے - په جواب کښے) او فرمایل چه زما رب دا سے دے چه هغه ژوندی کول او مَړهٔ کول کوی (یعنې ژوندی کول او مړه کول دَ هغهٔ په قدرت کښے دی - هغه بدبخت دَ ژوندی کولو او مَړهٔ کولو په مطلب هم و پوهه نه شو او وے ویل چه (دا کار خو زهٔ هم کولے شم چه) زهٔ هم ژوندی کوم او مړهٔ کوم (نو چا لره چه غواړم قتلوم ئې او ژل دی او چا لره چه غواړم دَ قتل نه ئې معاف کوم دا ژوندی کول دی) ابراهیم علیه السلام (چه اُولیدل چه دا خو بیخي بے عقله دے، چه دے کار ته ژوندی کول او مړهٔ کول وائي او حال دا دے چه ژوندی کول خو په بے روحه شي کښے روح اچول دی. او دغه شان دَ وژلو معامله ده. نو چه دهٔ ته معلومه شوه چه دے دَ مرګ او ژوند په حقیقت هم و نه پوهه دے نو دَ بل طرف نه ئې ورته جواب ورکول شروع کړهٔ او) اوئې فرمایل چه (ښهٔ) نو الله تعالیٰ نمر لره (روزانه) دَ مشرق نه راخیژه وی نو ته ئې (یو ورځ) دَ مغرب نه را او خیژه وه (او ئې ښایه) په دے خبره هغه کافر حیران پاتے شه (او څهٔ جواب ترے جوړ نه شه - دا وخت په کار دا وَه چه دهٔ هدایت قبول کړے وے مګر دے په خپلے ګمراهئ باندے ټینګ پاتے شه نو په دے وجه دهٔ ته هدایت او نه شه) او دَ الله تعالیٰ (دا عادت دے چه) دا سے بے لارے تلونکو ته هدایت نه کوی.

---

# معلومات او مسئلې

د دې ایت نه معلومه شوه چه کله الله تعالیٰ چا کافر ته د دنیا عزت او شرافت مُلک او حکومت ورکړي نو په دغې نوم سره ئې یاده وَل روا دي - دا د نمرود د دې نه دا هم معلومه شوه چه د ضرورت په وخت کښې مناظره او مُباحثه هم جائز ده چه په حق او ناحق کښې فرق ښکاره شي - (قرطبي)

د بعضِ خلقو په دې ځائې کښې دا شُبه پیدا کیږي چه کیدې شوه چه دهٔ د لته په دغه وخت کښې دا ویلي وې چه که خدائې موجود دې نو هغه دې ورلره د مغرب نه را او خیژه وي - نو د دې شُبې دفع دا ده چه د دهٔ په زړهٔ کښې دا خبره بې اختیاره پیدا شوه چه خدائې پاک ضرور شته - او دا د مشرق نه را خیژول د هغهٔ کار دې - او هغهٔ ئې د مغرب نه هم را خیژه ولې شي - او دا سړې پیغمبر دې د دهٔ په وَینا به ضرور دا سې او شي - او په دا سې کیدو سره به په دنیا کښې یو لوئې بدلون راشي او هسې نه چه د فائدې په ځائې نقصان او شي مثلاً چه خلق دا معجزه او وینې ځما نه به واوړي او د دهٔ سره به شي او په لږه خبره به زما نه حکومت لاړ شي - نو دا جواب ئې ځکه ور نه کړه او بل جواب خو وُو نه په دې وجه حیران پاتې شه -

(بیان القرآن)

اَوْ كَالَّذِيْ مَرَّ عَلٰى قَرْيَةٍ وَّهِيَ خَاوِيَةٌ عَلٰى عُرُوْشِهَا ۚ قَالَ

آیا تا نه دې لیدلې هغه کس چه تیر شه په یو ښهر باندې او هغه پریوتې وه په خپلو چتونو باندې - اُوئې وې

اَنّٰى يُحْيِيْ هٰذِهِ اللّٰهُ بَعْدَ مَوْتِهَا ۚ فَاَمَاتَهُ اللّٰهُ مِائَةَ عَامٍ ثُمَّ

څنګه به ژوندی کړي دې لره الله پس د مرګ د دې نه - پس مړ کړه دهٔ لره الله سل کاله بیا ئې

بَعَثَهٗ ؕ قَالَ كَمْ لَبِثْتَ ؕ قَالَ لَبِثْتُ يَوْمًا اَوْ بَعْضَ يَوْمٍ ؕ قَالَ بَلْ

پورته کړه - اُوئې وې تا څو مره وخت تیر کړه - اوئې وې وخت م تیر کړه یو ورځ یا د ورځې نه څهٔ کم - اُوئې وې نه دهٔ بلکه

لَبِثْتَ مِائَةَ عَامٍ فَانْظُرْ اِلٰى طَعَامِكَ وَشَرَابِكَ لَمْ يَتَسَنَّهْ

تا دخت تيو کړه سل کاله - او س او گوره خپل خوراک او څښاک ته چه نه دی بدبويه شوی

وَانْظُرْ اِلٰى حِمَارِكَ وَلِنَجْعَلَكَ اٰيَةً لِّلنَّاسِ وَانْظُرْ اِلَى

او او گوره خپل خر ته او د دا ځکه چه مونږ تا ګرځو نه جوړه کړو د دوباره د خلقو او او گوره هډوکو

الْعِظَامِ كَيْفَ نُنْشِزُهَا ثُمَّ نَكْسُوْهَا لَحْمًا ط فَلَمَّا تَبَيَّنَ

ته چه څنګه ئے مونږ راپورته کوو پيوند کوو ئے بيا ورته اغوندو غوښه - بيا چه کله دا ورته ښکاره

لَهٗ قَالَ اَعْلَمُ اَنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿٢٥٩﴾

شو دا حال نو اوئے وے چه ما ته معلومه ده چه بے شکه الله تعالیٰ په هر څه قادر دے۔

# لنډ تفسير

د اَوْ كَالَّذِيْ مَرَّ عَلٰى قَرْيَةٍ نه تر اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ پورے - آيا تاسو ته دا قسم قِصّه هم معلومه ده - لکه يو سړے وُو چه (په تلو تلو کښے) په يو کلی په داسے حالت کښے تير شو - چه کورونه ئے په چتونو خپلو باندے پريوتلی وُو (يعنے اول ئے چتونه پريوتی وُو بيا پرے د پاسه ديوالونه پريوتی وُو - مراد دا دے چه په څه حادثه سره دغه کلے وران شوے وه - او ټول خلق ئے مړه شوی پراته وُو - دغه سړی چه دا حال اوليد نو په حيرانتيا سره ئے) او وے چه (معلومه نه ده) الله تعالیٰ به دے کلی لره (يعنی د دے بنهر دے مړو لره) کله دوی د مرګ نه پس په څه طريقه سره (په قيامت کښے) ژوندی کړی (دا يقين خو ئے وه چه الله تعالیٰ به په قيامت کښے مړی ژوندی کوی مګر دا او خت د دے وران بنهر او مړو په ليد وسره څه حيران غوندے شو او څه عجيبه شانے حيرانی ئے په زړه غالبه شوه - او چونکه يو کار خو الله تعالیٰ په هر شان سره کولے شی - په دے وجه د ده خيال د دے خبرے په تلاش او لټون کښے شه چه خدائے خبر چه دا ژوندی کول به په څه شکل سره وی؟ الله تعالیٰ ته دا خبره منظوره شوه چه د دے تماشا

دهٔ ته هم په دنیا کښې اوښائی ـ دَ دے دَ پاره چه دَ یو مثال دَ واقع کیدو په وجه
خلقو ته دیات هدایت (ښودنه) اوشی) پس (دَ دے دَ پاره) الله تعالیٰ (دَ دغه سړی
روح واخستو دے ئے) دَ سلو کالو پورے مړ اوساته بیائے (دَ سلو کالو نه پس) دے ژوندے
پورته کړو (او بیائے ترے) تپوس اوکړو چه ته څومره موده په دے حالت کښې وے؟ دَ
سړی جواب ورکړو چه یوه ورځ پاتے شوے یم یا دَ یوے ورځے نه هم کم (یعنے لږ وخت)
الله تعالیٰ اوفرمایل چه داسے نه ده بلکه ته (په دے حالت کښې) سل کاله پاتے شوے یې
(او که په دے خبره کښې ته تعجب کوے چه ځما بدن ولے په دے سل کاله کښې روغ پاتے شوے
دے) نو دَ خپل خوراک سکاک څیز ونو ته اوګوره چه (یوه ذره هم) سخا شوی نه دی
(یو قدرت خو ځما دا دے) او (ځما دَ دویم قدرت دَ لیدلو دَ پاره) خپل (دَ سوارلئ)
خر ته دے اوګوره (چه په وُرستیدو ئے څه حال شوے دے او مونږ دا لره
دیر زر ستا په مخ کښې ژوندے کوو) او (مونږ تا لره دَ دے دَ پاره دوباره پس دَ
مرګ ژوندے کړو) چه مونږ تا لره (دَ دے خپل قدرت) یو مثال دَ خلقو دَ پاره جوړه
کړو (چه په دے مثال سره دَ قیامت دَ ورځے په ژوندی کیدو یقین اوکړی)
او (اوس ګورے خر ته) هډوکو ته ګوره چه مونږ دوی څه رنګے یو ځائے کوو. بیا
دوی ته غوښه اغوندوو (بیا په کښې روح اچوو ـ غرض دا ټول کاروونه هم دَ غسے او
شو) بیا چه دا ټول طریقه دے سړی ته (په مخامخ) ښکاره شوه نو (بے اختیاره په
جوش کښې راغے) او ئے وے چه زهٔ (په زړهٔ سره) یقین لرم چه بے شکه الله تعالیٰ په هر څه قادر دے۔

وَاِذْ قَالَ اِبْرٰهٖمُ رَبِّ اَرِنِیْ كَیْفَ تُحْیِ الْمَوْتٰی ؕ قَالَ اَوَلَمْ

او یاد کړه کله چه او وے ابراهیمؑ اے ځما ربه او ښایه ما ته چه ته څنګ ژوندی کوے مړی؟ ـ او ئے فرمایل

تُؤْمِنْ ؕ قَالَ بَلٰی وَلٰكِنْ لِّیَطْمَىِٕنَّ قَلْبِیْ ؕ قَالَ فَخُذْ اَرْبَعَةً

چه آیا ته یقین نه کوے؟ او ئے وے ولے نه کوم ـ لیکن دَ دے دَ پاره چه ځما دَ زړهٔ تسلی اوشی ـ او ئے فرمایل چه او نیسه

مِّنَ الطَّیْرِ فَصُرْهُنَّ اِلَیْكَ ثُمَّ اجْعَلْ عَلٰی كُلِّ جَبَلٍ

څلور جانوران الوتونکی بیائے عادت کړه دَ ځان سره ـ بیا کیده ه په هر غر باندے

مِّنْهُنَّ جُزْءًا ثُمَّ ادْعُهُنَّ يَأْتِينَكَ سَعْيًا ۚ وَاعْلَمْ أَنَّ اللَّهَ

د دوی د بدن یوه حصه بیا دوی را اوبله. راځی به تا ته په منډه. او پوهه شه چې بیشکه الله

عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴿٢٦٠﴾

زبردست دے حکمت والا دے.

# لنډ تفسیر

او د هغه وخت (دا قصه) رایاده کړه کله چه ابراهیم علیه السلام (الله تعالیٰ ته) عرض اوکړو چه اے زما پروردګاره ماته (دا) اوخائے چه ته به مړو لره (په قیامت کښې مثلاً) په څه طریقه سره ژوندی کوے (یعنې د ژوندی کولو یقین م شته لیکن د ژوندی کولو مختلفې طریقې او اندازے کیدے شی چه هغه ما ته معلومې نه دی. نو زما زړه د هغې معلومول غواړی. په دے سوال کولو سره د ناپوهه سړی په زړه کښې دا شك راتلے شو چه ګناه غواړم په خدائے سره "د ابراهیم علیه السلام د مړګی نه پس په ژوندی کیدو یقین نشته. نو په دے وجه الله تعالیٰ په خپله د ابراهیم علیه السلام نه سوال اوکړو خبره ئے ښکاره کړه. نو د ابراهیم علیه السلام د سوال په جواب کښې ئے اول) ارشاد اوفرمایه چه ولے ته (په دے) یقین نه لرے. هغوئ (په جواب کښې) عرض اوکړو چه یقین ولے نه لرم لیکن دا درخواست په دے غرض سره کوم چه زما زړه ته (ښکاره په ښکاره د ژوندی کولو په لیدو سره) تسکین راشی (او فکرم د نورو خیالاتو د چکر نه اوځی) نو ارشاد ورته اوشو چه څه ده نو ته څلور مرغئ واخله بیا دوی (اوپاله) د ځان سره ئے عادت کړه (چه ښه شناخت ئے اوشی) بیا (ټول ذبح کړه او د هډو کو و نو دو سره د دوی نه قیمه شان جوړه کړه او خو حصې ئے کړه او خو غرونه په خپله د ضا خوښی کړه) په هر غر د دوی نه یوه یوه حصه کیده (او) بیا دوی ټولو لره را اوبله (رکوره) ستا خوا ته په (ژوندئ کیدو) رامنډے وهی او ښه یقین لره په دے خبره چه حق تعالیٰ زبردست (قدرت والا) دے (هر څه کولے شی بیا هم بعضې خبرے

نه کوی دَ هغې وجه داده چه هغه) حکمت والا دَے (هر کار دَحکمت او مصلحت په مطابق کوی-

# معلومات او مسئلې

**دَحضرت خلیل الله درخواست دَمرګ نه پس دَژوندی کیدو ښکاره لیدلو دَ شکونو لرې کول**

دا دریمه قصه ده چه په دے تیر ذکر شوی ایت کښې فرمایلے ده لنډه داسے ده چه حضرت خلیل الله ابراهیم علیه السلام الله تعالیٰ ته دا درخواست او کړه چه ما ته په ظاهره سره داسے اوښایه چه ته به مړی څنګه ژوندی کوے؟ الله تعالیٰ ورته اوفرمائل چه دا درخواست دے ولے او کړو- وَلے ستا ځما په کامل قدرت باندے یقین نیشته؟ چه هغه هرڅهٔ کولے شی- حضرت ابراهیم علیه السلام ورته خپل اصلی حال اووے چه یقین م ولے نیشته ستا دَکامل قدرت او طاقت نښے نښانے خوزهٔ هروخت هرساعت ډاګ په ډاګه ښئے ښکاره وینم- او غور او فکر کوونکی ته خو په خپله په خپل وجود او دَ دنیا او کائنات په یوه یوه ذرّه کښې ظاهرے لیدے شی- لیکن بنی آدم پیدائشی داسے دے چه کوم کار کیدل دهٔ دَ سترګو په وړاندے ښکاره په ښکاره نه وی لیدلے نو که دا ډیر یقینی ولے نه وی خو دَدهٔ فکر په کښے ګرځ وَرځ کیږی- چه دا به څنګه او په څهٔ شان وی؟ او دَ دے ګرځ وَرځ خیالاتو او فکرونو په وجه زړهٔ ته آرام او اطمنان نهٔ وی- نو په دے وجه م دَ مخامخ لیدو درخواست او کړه چه دَمړو ژوندی کیدو دا مختلفې طریقې چه فکر په کښې ګرځ وَرځ کیږی دَ لیدو په وجه م زړهٔ په آرام او مطمئن شی-

الله تعالیٰ دَ هغهٔ درخواست قبول کړو- نو هغه ته ئے دَخودَلو دَپاره هم داسے عجیبه شکل تجویز کړو چه دَ بیا دوباره ژوندون نه دَمنکرو خلقو دَ ټولو شکونو دَ لرے کولو ټوله نظاره ئے ورته مخامخ اوخوده- او هغه داسے چه حکم ئے ورته اوکړو چه څلور مارغان دَځان سره جمع کړه بیا ئے دَځان سره او ساته، عادت ئے کړه او دا سے ئے عادت کړه چه ته ئے رابلے او دوی درله راځی او چه ته ئے هم بنهٔ او پیژنے چه دا شک دے بیا نه وی چه دا به کوم یو مارغه وی- بیا دا څلور واړه ذبح کړه او دَ هډوکو او وَزرونو سره ترے څهٔ قیمه شان جوړه کړه- بیا ئے څو حصے کړه- او په خپل تجویز سره بیا په مختلفو غرونو دَ دے قیمے یوه یوه حصه کیږده بیا دوی ځان ته را اوبله نو دَ الله تعالیٰ په کامل قدرت سره به دوی ژوندی شی

په منډه منډه به تالره راځي -
په تفسیر روح المعاني کښې په سند د ابن المنذر د حضرت حسن رضی الله تعالیٰ عنه نه روایت دے - چه حضرت ابراهیم علیه السلام دا سے اوکړل - او بیا ئے دغه مرغان ځانته راوبلل نو فوراً هډوکے د هډوکي سره، وزر د وزر سره، وینه د وینے سره، غوښه د غوښے سره یو ځائے شو ټول په خپل خپل اصلي شکلونو سره ژوندی شو په منډه د ابراهیم علیه السلام خوا له راغلل - نو الله تعالیٰ اوفرمایل چه اے ابراهیمؑ د قیامت په ورځ به دغه شان ټول اجزاء او جوسے یو ځائے کړم او په یو دم به پکښے روح ور واچوم - او ژوندی به ئے کړم -
د قرآن په الفاظو کښے : يَأْتِينَكَ سَعْيًا : راغلی دے - چه دا مرغان به په منډه راځي - نو د دینه معلومه شوه چه په هوا به نه راځي - ځکه چه په هوا کښے په راتلو سره د اشتباه کیدے شه چه که د نظر پناه شي نو بدل به شي - او چه په زمکه راځي نو بالکل مخامخ او د نظر په وړاندے به وي - په دے واقعه کښے الله تعالیٰ د قیامت نه پس د بیا ژوندی کیدو دا سے نمونه او شکل حضرت ابراهیم علیه السلام ته اوخود وچه د مشرکانو او منکرانو خلقو ټول شکونه او شبهے ئے ورته د سترګو په لید وسره لرے کړے -
پس د مرګ نه په دوباره ژوندی کیدو کښے او د آخرت په ژوند کښے د نه منونکو د ټولو نه لوئے شک دا دے - چه انسان د مرګ نه پس خاورے شي - او دغه خاوره بیا څه په هوا کښے والوزي څه په اوبو کښے او بهیږي او څه په زمکه کښے خلط شي د ونو او فصلونو په شکل کښے راوځي - او خس خس شي د دنیا په لرے لرے طرفونو کښے خوره وره شي - نو د انسان د دے خورو ورو ذرو او اجزاؤ جمع کول او بیا په کښے روح اچول د سرسري نظر کونکي سړي په فکر کښے ځکه نه راځي چه دے هر څه په خپل ځان او خپل طاقت قیاس کوي - او د خپل ځان او قیاس نه پورته او اوچت قدرت او طاقت ته فکر نه کوي -
حال دا دے چه که دے لږ شان دے خپل وجود ته فکر اوکړي نو دے به اوویني چه نن هم د ده دا وجود د ټولے دنیا د خورو ورو ذرو او یو ټونه جوړ دے -

دَ انسان پیدائیښت چه دَ کوم مورا او پلار په ذریعه کیږي- او دَ کوم موخوراکونو نه چه دَ دهٔ وینه او جسم جوړیږي- هغه په خپله دَ دنیا دَ مختلفو کوټو نه راغونډ شوي ذرّے دي- بیا دَ پیداکید و نه پس چه انسان دَ کوم موخوراکونو په ذریعه پالَنه موَمي دَ کوم نه چه دَ دهٔ غوښه وینه او پوستکے جوړیږي- نو چه دے ته فکر او شي نو په دے خوراکونو کښے یو یو شے داسے دے چه دَ ټولے دنیا دَ مختلفو ذرونه جوړ دي- که یُو سُکَیٔ، نو دا به دَ یوے غوا یا مینخے یا بیزے اَجزاء وي - او په دے څاروکښے دا اجزاء دَ هغه گیاه گانو او دانو نه پیدا وي کوم چه دوي خوړلي وي- او دا گیاه گانے او دانے معلومه نه وي چه دَ زمکے دَ کومے کومے ټکړے نه راغلي وي -او په ټوله دنیا کښے چلید ونکو هوا گانو په دوي کښے دَ کومے کومے زمکے نه راوړے ذرّے شاملے کړے وي - په دے شان دَ دنیا دانه دانه او میوه او ترکاریانے او دَ بنی آدمو ټول خوراکونه او دوایانے چه دَ دهٔ دَ بدن حِصّه جوړیږي په هغه دَ دنیا دَ کوم کوم کوټونه په څهٔ څهٔ طریقو سره دَ الله تعالیٰ کامل قدرت او مضبوط انتظام دَ یو بنی آدم په بدن کښے جمع کړیدي- که غافل او تنګ نظرے انسان نوره دنیا پاتے کړي او صرف دَ خپل بدن تحقیق او تلاش شروع کړي نو دهٔ ته به معلومه شي چه دَ دهٔ بدن په خپله دَ داسے بے شماره اجزاؤ او ټوکړونه جوړ دے چه څهٔ دَ مشرق دي او څهٔ دَ مغرب څهٔ دَ جنوبي دنیا دي او څهٔ دَ شمالي حصے- نو نن هم الله پاک دَ خپل قدرت په محکم نظام سره دَ ټولے دنیا مختلف اجزاء دَ دهٔ په بدن کښے جمع کړیدي او چه دے مړ شي نو بیا به هم دَ دهٔ دَ بدن دا اجزاء دغه شان تیتے خوارهٔ شي - نو اوس بیا دَ دغے اجزاؤ راجمع کول دَ هغهٔ کامل قدرت ته څهٔ گران نه دي چه په اوّل وار ئے دغه خوارهٔ اجزاء دَ دهٔ په بدن کښے جمع کوَلے شو نو اوس ئے دوباره په راجمع کولو هم قادر دے -

**په دے تیره واقعه یو څو سوالونه او دَ هغے جوابونه**

دَ دے تیر ایت په مضمون کښے یو څو سوالونه پیدا کیږي۱- **اوّل سوال** دا دے چه دَ ابراهیم علیه السلام په زړهٔ کښے دا سوال څنګه پیدا شه؛ او حال دا دے چه دغه وخت په ټوله دنیا کښے دَ الله تعالیٰ په کامل قدرت باندے دے څو لو نه زیات یقین لرونکے وهٔ؟

نو دَ دے سوال جواب دَ دے تقریر په مینځ مینځ کښے راغلے دے کوم چه بره او شه- چه

په حقیقت کښې د حضرت ابراهیم علیه السلام سوال د شك په وجه نه وُه - بلکه مقصد د سوال داوُه - چه په قیامت کښې خو به الله تعالیٰ په خپل کامل قدرت سره مړی ژوندی کوی او دا ژوندی کول د مړو د هغه د کامل قدرت نه څۀ لرې خبره نۀ ده او نۀ څۀ د حیرانتیا خبره ده بلکه څۀ یقینی خبره ده - لیکن د مړی ژوندی کولو دا کار د بنی آدم د طاقت نه باهر دے - او چونکه یو مړے ئے په ژوندی کیدو کښې لیدلے نۀ دے - او د مړو د ژوندی کولو طریقے او صورتونه خو هر شان کیدے شی - او انسان خو پیدائشی داسے دے چه کوم شے دۀ لیدلے نه وی نو د هغۀ د څۀ رنګ والی په خیال کښې همیشه فکرمند وی - او د هغے مختلفے لارے چارے د دۀ په خیال کښې راځی - او فکر ئے په هغے کښې همیشه کیږدی - او دے داغوا ړی چه څما دا ذهنی پریشانی لرے شوے چه زړۀ ته م آرام او سکون راشی نو د دے د پاره حضرت ابراهیم علیه السلام دا درخواست پیش کړے وُه -

د دینه دا هم معلومه شوه چه په ایمان او اطمینان (تسلی د زړۀ) کښې څۀ فرق دے - ایمان د هغۀ اختیاری یقین نوم دے کوم چه بنده ته د رسول په اعتماد سره د غیب په څۀ خبره حاصل شی - او اطمینان د زړۀ د آرام او تسلیٔ نوم دے - بعضے وخت د نظر نه په پناه شی یقین کامل خو وی (یعنے دائے کامل یقین وی چه دغه شے خو په شتو سره شتے) لیکن زړۀ ته سکون څکه نه راځی چه د دۀ د څه رنګ والی علم ورته نه وی (چه په څۀ انداره به وی) دا د زړۀ سکون او آرام صرف په مخامخ لید و سره حاصلیږی - نو حضرت ابراهیم علیه السلام هم پس د مرګ نه په ژوندانه کامل یقین لرلو - سوال ئے صرف د ژوندی کولو د طریقے متعلق وُه -

**دویم سوال** دا دے چه هر کله د ابراهیم علیه السلام سوال د ژوندی کولو د طریقے متعلق وُه او په اصل ژوندانه کښې پس د مرګ نه ئے څۀ شك او شُبه نۀ وَه نو بیا خو د الله تعالیٰ د دے ارشاد چه اَوَلَمْ تُؤْمِنْ: دے (یعنے چه ستا یقین نیشته) د فرمایلو خو څۀ موقع پاتے نه شوه -

نو جواب ئے دا دے چه کوم سوال چه ابراهیم علیه السلام پیش کړه چه په اصل واقعه کښې م څۀ شك نیشته - نو د دے سوال نه یو ه دا خبره هم معلومیده چه د ژوندی کولو طریقه لیدل غواړم -

او د سوال د دغے الفاظو نه یوه دا خبره هم معلومیدے شی - چه په اصل قدرت

کېنې دَ شك یا انکار نه پیدا کیږی- لکه چه دَ یو پښې متعلق تا سو دا یقین لرئ چه فلانی سړے
دانه شی پورته کولے- او دَ دهٔ دَ عاجزئ دَ ښکاره کولو دَ پاره تاسو او وائی چه کوره ته به دا پښه
څنګه او چتوے- نو چونکه دَ ابراهیم علیه السلام دَ سوال دا غلط مطلب هم چا اغستے شو
په دے وجه الله تعالیٰ ابراهیم علیه السلام لره دَ دے غلطے خبرے دَ بریٔ ثابتولو دَ پاره
دا ارشاد او فرمایه چه : اَوَ لَمْ تُؤْمِنْ : دَ دے دَ پاره چه ابراهیم علیه السلام دَ دے په
جواب کښې : بَلٰی : او فرمائی دَ دروغ جوړه ډُنګو دَ حملے نه بچ شی-

**درېیم سوال** دا دے چه دَ ابراهیم علیه السلام دَ دے سوال نه خو کم نه کم دومره
معلومه شوه چه پس دَ مرګه په ژوندی کیدو دهٔ ته اطمینان حاصل نه وو- حال دا
دے چه حضرت علی کرم الله وجههٔ فرمائی چه که دَ عالم غیب نه پرده او چته کړے شی- نو
ما په یقین او اطمینان کښې به هیڅ زیاتے او نهٔ شی ځکه چه په ایمان بالغیب باندے
ما ته پوره اطمینان حاصل دے- نو چه بعضے امتیا نو ته دَ اطمینان درجه حاصله
نو دا څنګې کیدے شی چه دَ الله تعالیٰ خلیل ته دے دَ اطمینان درجه حاصله نه وی-
دَ دے خبرے متعلق دومره پوهیدل په کار دی چه دَ اطمینان (تسلیٔ) هم ډیرے
درجے دی- یو هغه اطمینان دے چه اولیاء الله او صدیقینو ته حاصل دے- او یو دَ
دینه ډیرا او چت درجے والا اطمینان دے چه عامو انبیاؤ علیهم الصلوٰة والسلام ته
حاصل دے- او یو دَ دینه هم ډیرا او چت دے چه خاصو خاصو ته دَ مشاهدے دَ
ځانځ لیدو) په صورت کښې ورکولے شی-

نو حضرت علی کرم الله وجههٔ ته چه کومه درجه دَ اطمینان حاصله وه هغهٔ بے
شکه چه حضرت خلیل الله ته حاصله وه- بلکه دَ دینه ورته اعلیٰ درجه اطمینان حاصل
وه کوم چه دَ نبوت دَ مقام سره خاص دے- په دے اطمینان کښې حضرت خلیلؑ دَ نورو
ټولو امتیانو نه اُوچت وه- خو دے چه کوم اطمینان غوا ړی هغه دَ ټولونه دَ اعلیٰ
مقام اطمینان دے کوم چه خاص خاص پیغمبرانو ته ورکولے شی- لکه چه سردار دَ
کائناتو سردار دَ انبیاؤ صلی الله علیه وسلّم ته دَ جنّت او دوزخ په لیدو سره خاص
اطمینان ورکړے شو-

غرض دا دے چه دَ دے سوال په وجه سره دا ویل هم صحیح نه دی چه ابراهیم علیه
السلام ته اطمینان حاصل نه وه- دلته صرف دا ویلے شی چه هغه کامل اطمینان کوم چه

په لیدو سره حاصلیږي هغه نه وه. نو ددې د پاره ئې د ادرخواست کړې وه.
د آیت په آخر کښې ئې او فرمايل: إِنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ. يعنې الله تعالیٰ زبردست دے. او حکمت والا دے. په زبردست کیدو کښې ئې د کامل قدرت بیان کړو. او حکمت والا ئې او وے دے طرف ته ئې اشاره او کړه. چه د حکمت مقتضا دا ده چه هر چا ته د مړی نه پس د ژوندی کیدو نظاره نه ښائی. ورنه حق جل جلاله ته دا هیڅ ګرانه نه وه چه هر یو انسان ته د مړی نه پس ژوندون اوښائی او ورته ئې او وئیلی. خو بیا چه د ایمان بالغیب (یعنې په غیبو باندې د ایمان راوړو) کوم غوره والے دے هغه به هیڅ هم چا ته نه شي.

---

مَثَلُ الَّذِينَ يُنْفِقُونَ أَمْوَالَهُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ كَمَثَلِ حَبَّةٍ أَنْبَتَتْ

مثال د هغه خلقو چه خرچ کوی خپل مالونه په لاره د خدائے کښې داسے دی لکه یو دانه چه زرغون شي

سَبْعَ سَنَابِلَ فِي كُلِّ سُنْبُلَةٍ مِائَةُ حَبَّةٍ وَاللَّهُ يُضَاعِفُ لِمَنْ

ترے اوه وږی په هر یو وږی کښې سل سل دانے وی. او الله زیاتوی د چا د پاره چه

يَشَاءُ وَاللَّهُ وَاسِعٌ عَلِيمٌ ﴿٢٦١﴾ الَّذِينَ يُنْفِقُونَ أَمْوَالَهُمْ

او غواړی. او الله بے انتها بخښش کونکے دے. هر څه پیژنی. کوم خلق چه خرچ کوی مالونه خپل

فِي سَبِيلِ اللَّهِ ثُمَّ لَا يُتْبِعُونَ مَا أَنْفَقُوا مَنًّا وَلَا أَذًى

په لاره د الله کښې بیا پس د لګولو نه په چا څه احسان نه کوی او نه ئې تنګوی - هم

لَهُمْ أَجْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ

د دوی د پاره دے ثواب د دوی د رب سره. او نه به وی ویره په دوی او نه به دوی

يَحْزَنُونَ ﴿٢٦٢﴾ قَوْلٌ مَعْرُوفٌ وَمَغْفِرَةٌ خَيْرٌ مِنْ صَدَقَةٍ

غمجن وی - نرم جواب ورکول او درګذر کول غوره دی د هغه خیرات نه

يَتْبَعُهَآ اَذًى ۭ وَاللّٰهُ غَنِيٌّ حَلِيْمٌ ﴿٢٦٣﴾ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تُبْطِلُوْا

سو تا چه وروسته ئې خرابوي (ضايع کوي). او الله بې پرواه دے او ډیر زغم کونکے دے۔ اے ایماندارو مه خرابوئ

صَدَقٰتِكُمْ بِالْمَنِّ وَالْاَذٰى ۙ كَالَّذِيْ يُنْفِقُ مَالَهٗ رِئَاۗءَ النَّاسِ وَ

خیرات خپل په منت (احسان) ښودلو او تنګولو باندے د هغه چا په شان چه خرچ کوی خپل مال خلقو ته د ښکاره کولو او

لَا يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ۭ فَمَثَلُهٗ كَمَثَلِ صَفْوَانٍ عَلَيْهِ

د باره او ایمان نهٔ راوړی په الله او په ورځ د قیامت ۔ پس مثال د دهٔ په شان د کاڼی صافی دے چه پرته وی

تُرَابٌ فَاَصَابَهٗ وَابِلٌ فَتَرَكَهٗ صَلْدًا ۭ لَا يَقْدِرُوْنَ عَلٰي شَيْءٍ

پرے خاوره پس اُورسی ورته سخت باران پس پاتے کړی هغه بالکل صاف ۔ چه هیڅ هم په لاس رانهٔ شی ثواب

مِّمَّا كَسَبُوْا ۭ وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْكٰفِرِيْنَ ﴿٢٦٤﴾ وَمَثَلُ

ځنے ئې چه دوی کړی وی ۔ او الله نه خائی نیغه لار کافرانو ته ۔ او مثال د هغه چا

الَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمُ ابْتِغَاۗءَ مَرْضَاتِ اللّٰهِ وَتَثْبِيْتًا

چه خرچ کوی خپل مالونه د پاره د خوشحالی حاصلولو د الله پاک او د پاره د مضبوطولو

مِّنْ اَنْفُسِهِمْ كَمَثَلِ جَنَّةٍۢ بِرَبْوَةٍ اَصَابَهَا وَابِلٌ فَاٰتَتْ

د خپلو زړونو د اسے دے لکه چه یو باغ وی په لوړه زمکه پس اورسی ورته باران په شیبو نو اونیسی

اُكُلَهَا ضِعْفَيْنِ ۚ فَاِنْ لَّمْ يُصِبْهَا وَابِلٌ فَطَلٌّ ۭ وَاللّٰهُ بِمَا

میوه خپله دوچنده ۔ او که اونهٔ رسی ورته باران نو پرخه ورلره هم بوره ده ۔ او الله پاک

تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ﴿٢٦٥﴾ اَيَوَدُّ اَحَدُكُمْ اَنْ تَكُوْنَ لَهٗ جَنَّةٌ مِّنْ

ستاسو کارونه ښهٔ وینی ۔ آیا خوښوی یو تاسو کښے خوک دے لره چه وی دهٔ لره یو باغ د

نَخِيلٍ وَّأَعْنَابٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهٰرُ لَهٗ فِيهَا

کجورو او انګورو چه بهیږی لاندے د هغهٔ نه ویالے - او دهٔ لره وی په دے باغ کښے

مِنْ كُلِّ الثَّمَرٰتِ وَأَصَابَهُ الْكِبَرُ وَلَهٗ ذُرِّيَّةٌ ضُعَفَآءُ

نورے هم هر قسم میوے - او رسیدلے وی دهٔ ته زوړوالے او دهٔ اولاد وی ضعیفان (واړهٔ)

فَأَصَابَهَآ إِعْصَارٌ فِيهِ نَارٌ فَاحْتَرَقَتْ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ

نو پس راشی په دے باغ بانندے یوه چپه د سیلئ چه اور پکښے وی - پس اوسوزی ټول دغه باغ - هم داسے بیانوی

اللّٰهُ لَكُمُ الْاٰيٰتِ لَعَلَّكُمْ تَتَفَكَّرُوْنَ ﴿۲۶۶﴾ ع ۳۶

الله پاک تاسو ته آیاتونه په دے غرض چه تاسو فکر (او غور) او کړئ-

# لُبِّ تفسیر

کوم خلق چه د الله تعالیٰ په لاره کښے (یعنے د خیر په کارونو کښے) خپل مالونه خرچ کوی د دوی د خرچ کړو مالونو حال (په نزد د الله پاک) داسے دے لکه د یوے دانے حال چه د هغے نه (فرض کړه) اوه وږی اوتو کیږی (او) په هر وږی کښے د ننه سل دانے وی (د دغه شان الله تعالیٰ د دوی ثواب اوه سوه حصو ته زیاتوی) او دا زیاتے خو لئ یا ک چالوه چه غواړی (په قدر د هغهٔ د اخلاص او مشقت) ورکوی او الله تعالیٰ ډیر فراخئ والا دے (د هغهٔ سره د هیڅ شی کمے نیشته هغه هر چا لوه دا زیاتے ورکولے شی مګر د دے سره سره) پوهیدونکے (هم) دے (په دے وجه د نیت اخلاص وغیره ته ګوری بخشش کوی) کوم خلق چه خپل مالونه د الله تعالیٰ په لاره کښے خرچ کوی بیا د خرچ کولو نه پس نهٔ خو (چا له چه ئے ورکړے وی په هغهٔ باندے په ژبه سره) څه ملا ذه زباطوګا او نهٔ (په څهٔ عمل سره هغوی ته آزار رسوی) دے خلقو ته به د دوی (د عمل) ثواب ملاؤ شی د دوی د رب په نزد (چه هلته لا یه شی) او نهٔ (به د قیامت په ورځ) په دوی څهٔ یره وی او نهٔ به دوی غم جن وی (د غریبئ په وخت کښے چه څهٔ د ورکړو نه وی؛ معقوله او) مناسب خبره کول او (که چرے سوال کوونکے

دَخپلې بې وقوفۍ په وجه غصه ورَولي يا په مخه ويلو سره تنگول کوي نو دَهغهٔ نه درگَند رِ
کول (په زړه درد) غوره دي (دَ داسې خيرات ورکولو) نه چه ورستو ورپسې آزار رَسول دي
او الله تعالیٰ (په خپله) غني دے (دَ چا مال ته ئې حاجت نيشته څوک چه مال خرچ کوي نو دَ
ځان دَپاره نو آزار بيا وَلې رَسوي - او په آزار رَسولو سره چه فوراً سزا نه ور کوي
نو دَ هغې وجه داده چه هغهٔ زغم کونکے (حِلم) دے - اے ايمان دارو تاسو په خپلو ملاذه کولو
يا په ضرر رَسولو (دَ) خپل خيرات (ثواب دَ زيا تيدونه) مه بربادوئ لکه څنگه چه هغه
سړے (په خپله دَ خپل خيرات اصل ثواب برباد وي) چه خپل مال خرچ کوي (محض)
خلقو ته دَ ځان خودَلو په غرض سره او ايمان نهٔ لري په الله او په ورځ دَ قيامت بالله
(مراد دَ دينه په قرينه دَ نفي کولو دَ ايمان سره منافق دے) پس دَ داسې سړي حالت داسې
دے لکه يو هوار خُوَيه کا نړے (فرض کړه چه پدٰه) کله خاوره (پر يوتې) وي - (او دَ دے
خاوړے سره څهٔ خَزَلے مَزلے جمع شوے وي) بيا په دے په شيو باران راشي پس دے لره (لکه
څنگه چه وي هغسې) پاکه صافه کړي (دغه شان چه دَ دغه منافق دَ لاسه دَ الله تعالیٰ په
لاره کښې څهٔ خرچ شي نو داخو اگر چه په ظاهر کښې يو نيک عمل چه دَ ثواب اميد ترے
کيدے شي ليکن دَ دهٔ نفاق دهٔ لره هم دَ غسې دَ ثواب نه خالي پاتے کړو نو په دے وَجه
په قيامت کښې) په داسې خلقو ته دَ خپلے کټې نه هيڅ هم په لاس رانهٔ شي (ځکه چه کټه نيک
عمل دے او دَ دے په لاس راتلل دَ ثواب مِلاويدل دي او دَ ثواب ملاويدو شرط
ايمان او اخلاص دے او په دے خلقو کښې دا نيشته - ځکه چه رِيا کار هم دي او
کافر هم دي) او الله تعالیٰ به کافرانو ته (دَ قيامت په ورځ دَ ثواب دَ کور يعنې دَ جنت)
لاره ونه ښائي (ځکه چه دَ کفر په وجه دَ ددې هيڅ عمل قبول نه دے چه ثواب ئې دَ آخرت
دَپاره ورلره جمع کړے شي او چه ددې هلته اورَسي او بيا دَ دے په وجه جنت ته داخل کړے
شي) او دَ هغې خلقو دَ خرچ شوي مال حال کوم چه خپل مالونه خرچ کوي دَ الله تعالیٰ دَ
رَضا حاصلَوَلو په غرض سره (کوم چه خاص په دے عمل سره وي) او په دے غرض سره
چه خپل نفسونه (دَ دے سخت عمل سره عادت کړي) مضبوطيا په کښې پيدا کړي (دَ دے دَپاره
چه نور نيک عملونه په آسانۍ سره بيا کوَلے شي - پس دَ دے خلقو دَ مال خرچ کولو او خيراتونو
حال) په شان دَ حال دَ يو باغ دے چه په او چت ځائے باندے وي (دَ داسې ځائے هوا نرمه او
بارداره وي او) په دهٔ په شيبو باران اوشي بيا هغه (باغ دَ نرمے هوا او باران په سبب دَ

دَ نورو باغونو نه یا دَ نورو پیړو نه) دوچند (څوچنده) میوه اونیسي۔ او که شیبو بارانِ پرې او نه شي نو نرې پرخه (یعنې نرې باران) هم دے لره پوره دے (ځکه چه زمکه او موقع دَ دے باغ ښهٔ ده) او الله تعالیٰ ستاسو کارونه ښهٔ وینې (په دے وجه چه هغه کله دَ چا اخلاص او وینې نو ثواب ور لره زیا توی) څهٔ تو بیتاسو کښے دَ چا اخبزه خوښه ده چه دَ دهٔ یو باغ وی دَ کجورو او دَ انګورو (یعنې زیاتے وُنے په کښے دَ دے وی) په دے (باغ) کښے (دَ وُنو) لاندے نهر و نه بهیږي (چه دا باغ پرے ډیر خیرازه او سمسور وی او) دَ دے سړی دلته په دے باغ کښے (دَ کجورو او انګورو نه علاوه) نورے هم دَ هر قسم (مناسب) میوے وی او دے سړی لره زوړ والے راغلے وی (کومه چه دا زمانه زیاته دَ مُحتاجۍ وی) او دَ دهٔ اهل و عیال هم وی چه په هغوی کښے (دَ کټے) طاقت نه وی (په دے وجه به دَ دهٔ دَ اهل و عیال نه هم دَ خیر خیګړے اُمید نه وی۔ خو بَس صرف دغه باغ به دَ دهٔ دَ معاش دَ ژوند تیره ولو؛ وَسیله وی) پس په داسے حالت کښے داسے اوشي چه) په دے باغ دَ هوا یوه چپه راشي چه په هغے کښے (دَ) اُور (ما ده) وی بیا (په دے سره) دَ غه باغ او سوزی (ښکاره خبره ده چه دَ هیڅا دَ ځان دَ پاره داخبره خوښه نهٔ وی۔ نو دَ دے په شان داخبره هم ده۔ چه څوک صدقه ورکړی یا خیرخیرات او کړی چه دَ قیامت په ورځ ترے دَ پکار راتلو اُمید کوی؛ او دغه خیرات صدقه دهٔ دَ ډیر احتیاج او ضرورت په وخت کښے کړے وی چه په دغه سے وخت ئے دَ قبلیدو زیات دارمدار وی او بیا دے دغه خپل خیرات او صدقه په ضرر رسولو او منځ ملاذه کولو سره بر باد او بے برکته کړی۔ نو دغه وخت به بیا څومره افسوسونه وی نو هر کله چه تاسو په دنیا کښے خپل داسے قسم باغ ته داسے پیښه نه خوښوَ ئے نو په مخ ملاذه کولو او ضرر رسَولو سره خپل خیراتونه او صدقے وَلے برباده وئے) الله تعالیٰ داسے مثالونه بیا نوی ستاسو دَ (پوهه کولو دَ) پاره دَ دے وجه نه چه تاسو فکر او سوچ او کړئ (او ښهٔ پوهه شئ چه دَ سوچ او فکر موافق عمل اوکړی؛ چه په اٰخرت کښے ستاسو په کار راشي؛-

# مَعلُومَات او مَسئلے

دا دَ سورة بقره شپږ دیرشم رکوع ده چه دَ ایت ۲۶۲ نه شروع ده - او س دَ
سورة بقره پنځه رکوع گانے پاتے دی چه په اخری رکوع کښے دَ کلیاتو او ډیر و ضروری
اصولی څیز ونو بیان دے او دَ دینه پهٔ دے ورپسې څلورو رکوع گانو کښے دَ ایت نمبر ۲۶۲
نه تر ۲۸۳ ایته پورے ټول یو ویشت ۲۱ ایاتو نه دی - چه په دے کښے دَ مالونو سره تعلق
لرونکی خاص هدایات او دا سے ارشادات دی چه که دُنیا ئې په دے پوره په پوره عمل
کونکے شی نو دَ معاشی نظام مسئله به خود بخود یعنے دَ ځانه حل شی په کوم کښے چې نن دُنیا
سوگرانه ده او چرته دَ سرمایه دارئ نظام دے نو بل ځائے دَ دے په مقابله کښے دَ اشتراکیت
او اشتمالیت نظام دے - او دَ دے دواړو نظامونو دَ یو بل سره مقابلے دَ دُنیانه دَ جنګونو
جګړو او قتلونو یو جهنم جوړ کړے دے - په دے ۲۱ ایاتونو کښے دَ اسلام دَ معاشی نظام
یو ضروری اړخ بیان شوے دے - چه دَ هغې دوه حصے دی :-

۱:- دَ خپل ضرورت زیاتی مال دَ الله تعالیٰ دَ رضا دَ پاره په حاجتمندو او غریبانو
باندے دَ خرچ کولو تعلیم دے چه صدقاو خیرات ورته ویلے شی -

۲:- دویم دَ سود لین دین ئے حرام کړو دَ هغې نه دَ ځان ساتلو هدایات دی -

دَ دینه په اولو دوه څلورو رکوع گانو کښے دَ صدقو او خیراتونو فضیلتونه او غوره
والو طرفته دَ خلقو مخه کول او دَ دے متعلق حکمونه او هدایات دی - او وروستئ
دوه رکوع گانے دَ سُودی کاروبار دَ حراموالی او دَ هغې نه دَ منع کولو او دَ قرض دَ
جائزو طریقو بیان دے -

کوم ۲۱ ایاتونه چه بره لیکلی شوی دی په هغوی کښے اوّل دَ خدائے تعالیٰ په لاره
کښے دَ خرچ کولو دَ فضیلتونو او غوره والی بیان دے - او دَ دینه پس دَ داسے شرطونو
بیان دے چه دَ هغې په وجه صدقه او خیرات دَ الله په نزد قبول وی او ثواب پرے
ورکیدے شی - بیا دَ داسے څیزونو بیان دے چه دَ انسان صدقه او خیرات برباد
کړی نیکی برباد گناه لازم یعنے دَ ښه د ستړے خدائے ناراض "مثل ترے جوړ شی -

دَ دینه پس ئے دوه مثالونه بیان کړی دی - یو دَ هغه صدقو او خیراتونو په باره کښے
چه دَ الله پاک په نزد قبولے وی - دویم دَ هغه خیراتونو او صدقو په باره کښے چه نامقبولے
او فاسدے وی -

دا ټنګه مضامین دي چه په دے رکوع کښے بیان شوي دي۔

ولته په دے مضمون نو بانده د پوهیدلو نه اول دا خبره یاد ساتل پکار دي۔ چه په قرآن کریم کښے د الله په لاره کښے مال خرچ کولو ته چرته لفظ د انفاق ویلے شوے دے۔ او چرته لفظ د اطعام او چرته لفظ د صدقے او چرته لفظ د ایتاء الزکوٰة۔ د قرآن دے الفاظو او د دے ځائے په ځائے په استعمال چه نظر د اچولے شي نو معلومیږي چه لفظ د انفاق، اطعام او صدقے عام دي چه هر قسم صدقو خیراتو نو او د الله تعالیٰ د رضا حاصلولو د پاره مال خرچ کولو ته ویلے شي خواه که فرض او واجب وي یا نفلي او مستحب وي۔ او د فرض زکوٰة د پاره قرآن کریم یو ممتاز لفظ د "ایتاء الزکوٰة" استعمال کړے دے چه په دے کښے دے طرفته اشاره ده چه د دے خاص صدقے د پاره د مال حاصلولو او د خرچ کولو دواړو د پاره څه خصوصیات دي۔

په دے رکوع کښے اکثر په لفظ د انفاق سره او چرته په لفظ د صدقے سره تعبیر شوے دے چه دا ترے معلومیږي چه دلته د عام صدقو او خیر خیرات بیان دے او کوم احکام چه دلته ذکر شو یدي هغه د هر قسم صدقو او د الله په لاره کښے خرچ کولو له او د دے ټولو صورتو نو له شامل دي او ټول په کښے راګیر دي۔

د الله په لاره کښے د خرچ کولو یو مثال

په اول آیت کښے ئے فرمایلي دي چه کوم خلق د الله په لاره کښے خرچ کوي یعنے په حج کښے یا په جهاد کښے، یا په فقیرانو مسکینانو او په کونډو وینیمانو، یا په نیت د امداد په خپلو خپلوانو دوستانو باندے۔ نو د دے مثال داسے دے لکه چه یو سړے د غنمو یو دانه په ښه زمکه کښے او کري د دے دانے نه د غنم یو بوټے او شي او په هغے کښے اووه وږي پیدا شي او په هر یو وږي کښے سل دانے وي چه نتیجه ئے دا شوه چه د یوے دانے نه اووه سوه دانے حاصلے شوے۔

نو مطلب ئے دا شو چه د الله تعالیٰ په لاره کښے د خرچ کونکي اجر او ثواب د یونه وا خله تر اووه سوه پورے رسي۔ چه یوه پیسه خرچ کړي نو د اووه سوه پیسو خرچ کولو ثواب به ورته ملاو شي۔

په صحیحو او معتبرو احادیثو کښے دي چه د یوے نیکئ ثواب لس چنده ملاو یږي۔ او اووه سوه چنده ته رسي۔ حضرت عبد الله ابن عباس فرمایلي دي چه په جهاد او حج کښے په یوه روپئ خرچ کولو سره ثواب د اووه سوه روپو برابر دے۔ دا روایت ابن کثیر په

حواله دَ مسند امام احمد بیان کړے دے۔

غرض دا دے چه دے آیت دا خبره اوخودله چه دَ الله تعالیٰ په لاره کښے دَ یو د وې خرچ کونکی ثواب دَ اوه سوه د وې دَ خرچ کولو برابر ملا ویږی۔

| | |
|---|---|
| دَ صدقو دَ قبلیدو مثبت شرطونه | قرآن کریم دے مضمون لره په ځائے دَ دے چه په لنډو او صافو الفاظو کښے بیان کړی دَ غنم دَ دانے دَ مثال په صورت کښے ئے |

بیان کړو۔ چه په دے کښے دے خبرے ته اشاره ده چه څهٔ رنګه زمیندار دَ غنم دَ یوے دانے نه اوه سوه دانے په هغه صورت کښے حاصلولے شی کله چه دا دانه دَ غنم ښهٔ وی خرابه نه وی اودانه کرونکے زمیندار هم دَ زمیندارئ په فن کښے پوهه او ماهر وی او په کومه زمکه کښے چه دغه دانه کری هغه زمکه هم ښهٔ وی۔ ځکه چه په دے کښے که یو شے هم کم شی نو یا خو به دغه تخم ضائع شی یو دانه به ترے هم اونه شی اویا به دا سے بارا ونه کړی چه اوه سوه دانے ترے اوشی۔

دغه شان دَ عامو نیکو عملونو او خاص کر دَ خدائے په لاره کښے دَ خرچ کولو دَ قبولیت او زیاتے اجر دَ پاره هم دا شرطونه دی۔ چه کوم مال دَ الله په لار کښے خرچ کوی هغه پاک او حلال وی۔ ځکه چه په حدیث شریف کښے راځی چه الله تعالیٰ دَ پاک او حلال مال نه سوا بل څهٔ شے نه قبلوی۔

دویم خرچ کونکے هم نیک نیته او صالح وی۔ بد نیته یا دَ نوم نمائش دَ پاره خرچ کونکے دَ هغے ناپوهه زمیندار په شان دے چه دانه په څهٔ داسے ځائے کښے اوغورزه وی چه هغه ضائعه شی۔

دریم چا لره چه ئے ورکوی هغه هم دَ صدقے اخستو مستحق وی، چا غیر مستحق لره ئے ورنه کړی چه ضائع نه شی۔

دغه شان په دے مثال سره دَ الله تعالیٰ په لاره کښے دَ خرچ کولو لوئے فضیلت هم معلوم شه او ورسره ورسره ئے درے شرطونه هم بیان شو۔ چه مال دے حلال خرچ کوی، او دَ خرچ کولو طریقه دے هم دَ سُنّتو مطابق وی، او مستحق دے تلاش کوی په هغوی دے خرچ کوی۔ محض دَ جیب نه په راویستو او غورزه وَلو سره دا فضیلت او غوره والے نه شی حاصلیدے۔

په دویم آیت کښے ئے دَ صدقے ورکولو صحیح او سنت طریقے بیان داسے اوفرمایه

چه کوم خلق د الله تعالیٰ په لاره کښې خرچ کوی بیا د دې کولو نه پس پرې نهٔ ژبا تنه کوی او نه ورته څه ضرر رسوی، نو د دوی ثواب د دوی د رب سره محفوظ دے نهٔ به دوی باندے د را تلو نکی د پاره څهٔ یره شته او نهٔ به په تیر یا ندے څه غم جن شی -

**د صدقے د قبولیت منفی شرطونه**

په دے ایت کښې ئے د صدقے د قبلید و دوه منفی شرطونه بیان کړیدی - یو دا چه ورئے کړی نو بیائے پرے ژباتی نهٔ - دوئیم دا چالوه چه ئے ورکړی هغه ذلیل او خوار نه ګنړی - او څهٔ داسے سلوک ورسره نه کوی چه په هغې سره هغه خپل سپکا وے او ذلت محسوس کړی یا دهٔ ته څه ضرر به دے سره اورسی -

په دریم ایت: قَوۡلٌ مَّعۡرُوۡفٌ: سره هم د صدقو او خیراتو نو د الله په نزد د قبلید و د دے دوه شرطو نوزیات وضاحت اوشه د کوم بیان چه د دینه په مخکښې ایت کښې شویدے - یو دا چه د مال خرچ کولو د الله په لاره کښې په چا ژبا تو نه مه کوئ دوئیم دا چالره چه ئے ورکړئ د هغهٔ سره داسے سلوک مه کوئ چه هغه پرے خپل ذلت او سپکا وے محسوس کړی - یا چه ضرر پرے ورته اورسی -

وضاحت ئے داسے اوکړو چه د غریبئ یا معذورئ په حالت کښې د سوال کوونکی په جواب کښې څه معقول او مناسب عذر پیش کول، او که سوال کونکے د بد تمیزئ په وجه غصه درولی نو معافی کول ورته په زړ درجے غوره دی د داسے خیرات ورکولو چه وروستو پسے ضور اورسولے شی (یعنی بدے ردے ورته اووائی) او الله تعالیٰ په خپله غنی (بے حاجته) دے - او برُدباره دے - د هغهٔ د چا مال ته حاجت نیشته څهٔ چه خرچ کوی څوک د خپلے نفعے د پاره ئے کوی - نو یو هوښیار سړی لره د خرچ کولو په وخت کښې د دے خبرے لحاظ ساتل په کار دی. چه څما په چا احسان نیشته - زهٔ د خپلے نفعے او خپلے فائدے د پاره خرچ کوم - او که د خلقو د طرفه څه ناشکری هم محسوس کړی - نو د الهٰی اخلاقو په رڼاکښے دے د معافئ او درګذر نه کار اخلی -

په څلورم ایت کښې ئے هم دغه مضمون په بل عنوان سره نور هم په تاکید سره داسے اوفرمایه چه خپل صدقات د ژبے په زباتنے یا په ضرر رسولو سره مه برباد وئے -

دَ دے نه دا خبره معلومه شوه چه دَ کوم صدقے او خیرات نه پس ژبانتوَ نه یا چالره چه ئے ورکړی وی هغهٔ ته دَ ضرر رسولو څه قسم صورت اوشی نو هغه صدقه باطله او دَ نشت برابره وه - په هغے هیڅ ثواب نه ملاویږی - په دے آیت کښے ئے دَ صدقے دَ قبلیدو دَ یو بل شرط دا سے بیان فرمایلے دے چه کوم سړے خلقو ته دَ ځان ښودلو او دَ نوم نمائش دَ پاره خرچ کوی - او په الله تعالیٰ او په ورځ دَ قیامت ایمان نه لری دَ دهٔ مثال داسے دے لکه چه په یوه صافه او هواره کټه باندے څهٔ خاوره پرته وُه او په دغے کښے څوک تخم اوکری - بیا په دے باندے دَ باران شیبه راشی او هغهٔ دغه کټه بالکل صافه کړی - داسے خلقو ته به دَ خپلے کټے هیڅ هم په لاس ورنه شی - او الله تعالیٰ کافرانو ته لار نه ښائی - دَ دینه دَ صدقے او خیر خیرات دَ قبولیت دا شرط هم معلوم شه - چه خالص دَ الله تعالیٰ دَ رضا حاصلولو او دَ آخرت دَ ثواب په نیت سره دے خرچ کوی - دَ ځان ښودلو او نوم نمائش په نیت سره دے نه وی - دَ نوم نمائش په نیت سره خرچ کول خپل مال برباد ول دی - او په آخرت ایمان لرونکے مؤمن هم که څهٔ خیرات محض دَ نوم نمائش او ریاء دَ پاره کوی - نو دَ هغهٔ هم دا حال دے چه دهٔ ته هیڅ ثواب نهٔ ملاویږی - بیا دلته دَ: لَا یُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ: په زیاتولو سره شائد دے طرفته اشاره کول دی - چه دریاء کاری او دَ نوم نمائش دَ پاره دَ کار کولو دَ داسے سړی نه تصور هم نه شی کیدے چه په الله تعالیٰ او په ورځ دَ آخرت باندے ایمان لری - ریاکاری دَ دهٔ په ایمان کښے دَ خلل نښه ده -

دَ آیت په آخر کښے چه کوم دا ارشاد دے چه الله تعالیٰ کافرانو ته لار نه ښائی - دَ دے مطلب دا دے چه دَ الله تعالیٰ لیږلی شوی هدایتونه او آیتونه کوم چه دَ ټولو خلقو دَ پاره عام دی کافران چه دے هدایاتو ته نهٔ گوری بلکه مسخرے او ټوقے پورے کوی دَ دے په نتیجه کښے الله تعالیٰ دوی دَ توفیق نه محرومه کوی چه دَ هغے اثر دا سے اوشی چه دوی څهٔ هدایت قبول نه کړی -

په پنځم آیت کښے ئے دَ قبولے شوے صدقے او خرچ یو مثال بیان کړے - چه کوم خلق خپل مال خالص دَ الله تعالیٰ دَ رضا حاصلَولو په نیت سره خرچ کوی چه په خپلو نفسونو کښے پوخوالے پیدا کړی دَ دوی مثال داسے دے لکه چه یو باغ وی په اوچت ځائے باندے او په دے باندے په شیبو باران راشی بیا هغه خپله میوه دوچنده

او نیسي۔ او کرداسې په شیبو باران پرې هم اونه شي نو معمولي پرخه هم دَ دې دَ پا ره پوره وه۔ او الله تعالیٰ ستاسو کارونو لوه خهٔ وینې او پوهه دې پرې۔
په دې کښې دَ اخلاص دَ نیت او شرطونو پوره کولو سره سره دَ الله په لاره کښې دَ خرچ کَونکي لوئ غوره والي په دې مثال سره واضح کړې شه۔ چه په نیک نیتیٔ او اخلاص سره کم لږ خرچ هم او شي نو هغه ډیر دې او دَ آخرت دَ فائدې او نفع سبب دې۔
په شپږم آیت کښې ئې په صدقه او خیرات کښې دَ ذکر شوو شرطونو نه په خلاف کولو دَ صدقې دَ باطلید وا و رَدَ کید و بیان هم په یو مثال سره دا سې بنکاره کړ و۔ چه آیا یَتا سو کښې دَ چا داخبره خوښه ده چه دَ دهٔ یو باغ وي دَ کجورو او دَ انګورو او دَ لاندې ترې نهرونه بهیږي۔ او دَ دې سره ئې په دې باغ کښې دَ هر قسم میوې وي او دا سړې بوډا شوې وي او دَ دهٔ اهل و عیال هم وي چه کمزوري وي او په دې حالت دې په دې باندې دَ سیلئ یوه چپه راشي چه اوُر په کښې وي بیا دغه باغ اوسوځي۔ الله تعالیٰ دغه شان مثا لونه بیانوي ستاسو دَ پاره چه تا سو سوچ او کړئ۔
مطلب دا دې۔ چه دَ دغې شرطونو نه خلاف صدقه کونکي مثال دا سې دې چه په ظاهره خو دې صدقه کوي دَ آخرت دَ پاره ډیره پنګه جمع کوي۔ لیکن دَ الله تعالیٰ په نزد دا پنګه (ذخیره) په هیڅ کار هُم نه راځي۔
او په دې مثال کښې چه ئې یو خو قید و نه زیاتُ کړي دي۔ چه دې زو ړ شوې وي۔ او لادُ ئې هم دې، او دغه اولاد ئې واړهٔ بچي او کمزوري ضعیفا ن دي۔ دَ دې قید و نو مقصد دا دې۔ چه دَ ځوانئ په حالت کښې که دَ چا باغ یا فصل اوسوځي نو دا امُید کید ې شي چه بیا به باغ او لګسوُم۔ او دَ کوم سړي چه اولاد نه وي او دَ دوباره باغ لګبولو امُید ئې هم نه وي۔ نو دَ باغ سوزید و نه پس هم دَ دهٔ سره دَ معاش څهٔ خاص فکر نه وي۔ یوائې سړې هر څنګه چه وي په لنډه تنګه کښې ګذاره کولې شي۔ او چه اولا دُ ئې هم وي مګر ځوانان او صالحان وي نو امُید ترې کید ې شي چه دَ پلار کار به روان کړي او مد د به ئې او کړي۔ په دا سې صورت کښې هم انسان ته دَ باغ په سوځید و څهٔ خاص فکر او پریشا نی نه وي۔

ځکه چه د اولاد فکر ورسره نه وي - بلکه اولاد د ده بوج هم او چتولے شي - غرض دا دے په دے درے قیدونو ذکر کولو سره ئے د ده ډیر احتیاج بیان کړو - چه دا سے سړے چه هغهٔ خپل مال او طاقت خرچ کړے وي او دیو باغ ئے لګوه ولے وي او هغه باغ تیار شي میوه هم اونیسي او په دے حالت کښے بیا ده لره زوړوالے راغلے وي کمزورے شوے او د دے سړي اولاد هم وي او اولاد بیا داسے چه واړهٔ او کمزوري ئې وي نو په دے حالت کښے چه د ده د دغه لګوه ولے باغ او سوزیدي نو څومره سخت غم به وي او څومره لوئے تکلیف به وي -

دغه شان کوم سړي چه په ریاکارئ سره صدقه او خیرات او کړه نو دا کویا ده یو باغ او لګاؤ - بیا د مرګ نه پس د ده حال د دغه بوډا پشان شه چه د کښتے او دوباره باغ لګوه ولو قدرت نه لري - ځکه چه د مرګ نه پس بیا هیڅ عمل هم نشي کولے - او لکه څنګه چه عیالداره بوډا دے خبرے ته زیات محتاجه وي چه تیره کښته د ده محفوظ وي چه اوس ئے په کار راشي - نو چه یو طرفته په ده دا حالت راشي او بل طرفته د ده باغ او مال متاع هرڅهٔ اوسوځي نو د ده د غم درد خو به څه انتها نه وي - دغه شان دا صدقه او خیرات چه د ریا او نوم نمائش د پاره شوے وي عین په داسے وخت کښے به د لاسه لاړه شي چه دغه وخت به ورته د ډیر زیات حاجتمند وي -

د دے ټول ایت لنډ مطلب دا شو - چه د خیر و خیرات د الله تعالیٰ په نزد د قبلیدو لوئے شرط اخلاص دے - چه خاص د الله د رضا حاصلولو د پاره او کړے شي - هیڅ قسم نوم نمائش په دے کښے نه وي -

اوس چه د دے ټولے رکوع په ټولو ایاتو نو باندے بیا بیا نظر واچولے شي نو په دے کښے د الله تعالیٰ په لاره کښے د خرچ کولو او د صدقو او خیراتو نو د الله په نزد د قبلیدو د پاره شپږ شرطونه معلوم شو -

اول دا چه کوم مال د خدائے په لاره کښے خرچ کوي هغه حلال وي - دویم چه په طریقه د سنتو خرچ شي - دریم چه په صحیح ځائے کښے خرچ شي - څلورم چه د خیرات ورکولو نه پس پرے احسان یعنے څه ملاذه نه کوي - پنځم چاله چه ئے ورکړے وي د هغوی سپکاوے بیا نه کوي - شپږم څهٔ چه خیرات کوي نو چه د اخلاص د نیت سره ئے خرچ کوي یعنے اخلاص په کښے وي - مطلب ئے خاص د الله رضا وي نوم نمائش په کښے نه وي -

دَ دویم شرط یعنې دَ سنتو په طریقه دَ خرچ کولو مطلب دا دے - چه دَ الله په لاره کښې دَ خرچ کولو په وخت کښې به دَ دے خبرے خیال ساتي چه دَ چا حقدار حق او نه وهلے شي دَ خپل اهل وعیال ضروري خرچ کَوَل پابندَ ول بغیر دَ هغوی دَ رضا ندا او دغه مال صدقه خیرات کول دَ ثواب کار نه دے - حاجتمند وارثان محرومه کول او ټول مال صدقه او خیرات کول یا وقف کول دَ سنتو نه خلاف دے - دَ الله تعالیٰ په لاره کښې دَ خرچ کولو په زړکو نو صورتو نه دي -

دَ سنت طریقه دا ده چه کوم ځائے کښې دَ صدقے یا خیرات مال خرچ کوی او ځایونه دَ خرچ کولو دي نو چه کوم مَصْرَف په کښې زیات ضروري وي په هغے کښې دے ورکوي - اکثر خلق دیته نه ګوري -

دَ دریم شرط مطلب دا دے - چه دَ ثواب حاصلولو دَ پاره صرف دومره خبره یو ره نه ده چه دے په خپل خیال سره یو کار نیک اوګنړي او په نیک نیت سره ئے حلته اُولګوي بلکه دا کتل هم ضروري دي چه دغه ځائے دَ شریعت په لحاظ سره هم نیک او غوره دے او که نه - یو سړے دَ ناجائزو لوبو او تماشو دَ پاره خپل جائداد وقف کړي نو په ځائے دَ ثواب به دَ عذاب لائق شي - دغه حال دَ ټولو هغو کارونو دے کوم چه دَ شریعت په لحاظ سره غوره او نیک نه وي - (یعنې په کار دي چه خپل صدقه او خیرات په داسے ځائے کښې اولږوي چه دَ دهٔ دَ پاره ثواب اوګټي نه چه عذاب ورله ګټي) -

---

| |
|---|
| يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَنفِقُوا مِن طَيِّبَاتِ مَا كَسَبْتُمْ وَمِمَّا |
| اے ایمان دارو خرچ کوئ پاک څیز د نه دَ خپلے ګټے نه او دَ هغے شي نه |
| أَخْرَجْنَا لَكُم مِّنَ الْأَرْضِ ۖ وَلَا تَيَمَّمُوا الْخَبِيثَ مِنْهُ |
| چه مونږ پیدا کړی دي ستاسو دَ پاره دَ زمکے نه او قصد مه کوئ دَ ګنده شي دَ هغې نه چه |
| تُنفِقُونَ وَلَسْتُم بِآخِذِيهِ إِلَّا أَن تُغْمِضُوا فِيهِ ۚ وَ |
| تاسو ئے خرچ کوئ حال دا دے چه تاسو به دغه څیز وانه خلئ مګر دا چه سترګے پټے کړئ - او |

اعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ غَنِیٌّ حَمِیْدٌ ﴿٢٦٧﴾ اَلشَّیْطٰنُ یَعِدُكُمُ الْفَقْرَ وَ

پوهه شئ چه الله بے پرواه دے ستائلے شوے۔ شیطان وعده کوی ستاسو سره د تنګسئ او

یَاْمُرُكُمْ بِالْفَحْشَآءِ ۚ وَاللّٰهُ یَعِدُكُمْ مَّغْفِرَةً مِّنْهُ وَ

حکم درته کوی د بے حیائۍ۔ او الله وعده کوی ستاسو سره د خپل بخشش او د

فَضْلًا ؕ وَاللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِیْمٌ ﴿٢٦٨﴾ یُّؤْتِی الْحِكْمَةَ مَنْ یَّشَآءُ ۚ

فضل۔ او الله ډیر فراخئ والا دے ټول هرڅه پیژنی۔ ورکوی پوهه هغه چاته چه غواړی

وَمَنْ یُّؤْتَ الْحِكْمَةَ فَقَدْ اُوْتِیَ خَیْرًا كَثِیْرًا ؕ وَمَا یَذَّكَّرُ

او چاته چه ملاؤ شی پوهه نو هغهٔ ته ورکړے شه ډیر خیر۔ او نصیحت هغه څوک قبلوی

اِلَّآ اُولُوا الْاَلْبَابِ ﴿٢٦٩﴾ وَمَآ اَنْفَقْتُمْ مِّنْ نَّفَقَةٍ اَوْ نَذَرْتُمْ مِّنْ

چه د عقل خاوندان وی۔ او هغه چه خرچ کوئ تاسو څهٔ خیرات او یا منئ تاسو څهٔ

نَّذْرٍ فَاِنَّ اللّٰهَ یَعْلَمُهٗ ؕ وَمَا لِلظّٰلِمِیْنَ مِنْ اَنْصَارٍ ﴿٢٧٠﴾ اِنْ تُبْدُوا

منَّته پس بے شکه الله ته هرڅهٔ معلوم دی۔ او د ظالمانو هیڅوک مددګار نیشته۔ که ښکاره ورکوئ

الصَّدَقٰتِ فَنِعِمَّا هِیَ ۚ وَاِنْ تُخْفُوْهَا وَتُؤْتُوْهَا الْفُقَرَآءَ فَهُوَ

خیرات نو څهٔ ښه خبره ده۔ او که پټ ئے ورکوئ او رسوئ ئے فقیرانو ته نو دا غوره

خَیْرٌ لَّكُمْ ؕ وَیُكَفِّرُ عَنْكُمْ مِّنْ سَیِّاٰتِكُمْ ؕ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ

دهٔ ستاسو په حق کښے۔ او لرے به کړی ستاسو نه څهٔ ګناه ستاسو۔ او الله ستاسو د کارونو نه

خَبِیْرٌ ﴿٢٧١﴾ لَیْسَ عَلَیْكَ هُدٰىهُمْ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ یَهْدِیْ مَنْ

څهٔ خبردار دے۔ نهٔ دی په ذمه ستا په لارے کول د دوی لیکن الله په لارے کوی هغهٔ چا لره چه

يَّشَآءُ ؕ وَمَا تُنْفِقُوْا مِنْ خَيْرٍ فَلِاَنْفُسِكُمْ ؕ وَمَا تُنْفِقُوْنَ

غواړي - او څه چه خرچ کوئ تاسو مال پس د خپل ځان د پاره - تر څو پورې چه خرچ کوئ

اِلَّا ابْتِغَآءَ وَجْهِ اللّٰهِ ؕ وَمَا تُنْفِقُوْا مِنْ خَيْرٍ يُّوَفَّ اِلَيْكُمْ

د الله د رضا حاصلولو د پاره - او څه چه خرچ کوئ خیرات پس پوره به ملاؤ شي تاسو ته

وَاَنْتُمْ لَا تُظْلَمُوْنَ ﴿٢٧٢﴾ لِلْفُقَرَآءِ الَّذِيْنَ اُحْصِرُوْا فِيْ سَبِيْلِ

او ستاسو څه حق به پاتې نۀ شي - خیرات د هغه فقیرانو د پاره دے کوم چه بند شوي دي د الله په

اللّٰهِ لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ ضَرْبًا فِي الْاَرْضِ يَحْسَبُهُمُ الْجَاهِلُ

لاره کښې گرځیدے نۀ شي په زمکه کښې گمان کوي پرے نا خبره (خلق)

اَغْنِيَآءَ مِنَ التَّعَفُّفِ ۚ تَعْرِفُهُمْ بِسِيْمٰهُمْ ۚ لَا يَسْئَلُوْنَ النَّاسَ

د مالداران د سوال نۀ کولو په وجه - ته به پیژنې دوی لره د مخونو د دوي نه سوال نۀ کوي د خلقو نه

اِلْحَافًا ؕ وَمَا تُنْفِقُوْا مِنْ خَيْرٍ فَاِنَّ اللّٰهَ بِهٖ عَلِيْمٌ ﴿٢٧٣﴾ ع الَّذِيْنَ ع ۳۷ ۵

داسے چه ورپورے اونخلي - او څۀ چه خرچ کوئ د کار شے پس بے شکه الله تعالیٰ ته معلوم دے - کوم خلق چه

يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ بِالَّيْلِ وَالنَّهَارِ سِرًّا وَّعَلَانِيَةً فَلَهُمْ

خرچ کوي خپل مال د الله په لاره کښې د شپے او د ورځے په پټه او په ښکاره پس دوي لره دے

اَجْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ ۚ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ﴿٢٧٤﴾

ثواب د دوي د خپل رب سره - او نۀ به وي یره په دوي باندے او نۀ به دوي غمجن وي -

## لنډ تفسیر

اے ایماندارو (په نیک کار کښې) خرچ کوئ غوره څیز د خپلے گټے نه او د غوره څیز لره)

دَ هغې نه کوم چه مونږ ستا سو ر په کار ر او ستو م دَ پاره دَ زمکے نه پیدا کړه او ر دَ ډیر نا کاره ) شی طرف ته نیت مه کوئے چه دَ هغې نه خرچ کړے حالانکه ( داسے شے که څوک تاسو لره ستا سو دَ واجب حق په بدله کښے یا په چالی کښے درکوی نو ) تاسو چرته هم دَ هغې اخستو نکی نه ئې مګر چه ستر ګے پټے کړئ ( او د رعایت او کړئ نو دا بله خبره ده ) او دا یقین ساتئ چه دَ الله تعالی چا ته حاجت نیشته ( چه په داسے نا کاره څیز و نو باندے خوشحاله شی ) دَ ستائینے لائق دے ( یعنے په ذات او صفات کښے کامل دے نو دَ هغهٔ په دربار کښے هم شے دَ کامل صفت لایق پیش کول په کار دی ) شیطان ، تا سو دَ محتاجئ نه یره وی ( چه که خرچ او کړئ یا غوره مال خرچ کړئ نو محتاج به شئ ) او تاسو ته دَ نا کاره خبرے ( یعنے بُخل ) مشوره درکوی . او الله تعالی ستاسو سره وعده کوی ( دَ خرچ کولوا و دَ غوره شی دَ خرچ کولو ) دَ خپل طرفی نه دَ ګناه معاف کولوا و دَ زیا تو درکولو ( یعنے په نیک ځائے کښے خرچ کول عبادت دے او په عبادت سره دَ ګناه کفاره کیږی ، نو ګناه پرے هم معاف کیږی او الله تعالی چا لره په دنیا کښے هم او په آخرت کښے تولو لره دَ خرچ کولو بدله زیاته ورکوی ) او الله تعالی فراخئ والا دے ( هغهٔ هرڅهٔ ورکولے شی ) خهٔ پوهه دے ( دَ نیت موافق فائده ورکوی . او دا تول خبرے ښے ښکاره دی لیکن په دے هغه څوک پوهیږی دَ چا سره چه دَ دین پوهه وی او الله تعالی ) دَ دین پوهه چالره چه غواړی نو ورکوی او ( رشتیا خو دا ده چه ) چا ته دَ دین پوهه ملاؤ شی دهٔ ته دَ ډیر لوئے څیز ملاؤ شو ( ځکه چه دَ دنیا یو نعمت دَ دے هومره فائده مند نه دے ) او نصیحت هغه خلق قبلوی چه عقل په کښے وی ( یعنے چه څوک صحیح عقل لری ) او تاسو خلق چه دَ څهٔ قسمه خرچ کوئے یا څهٔ منخته منئ پس الله تعالی یقیناً چه دَ ټولو نه خبر دے او دَ بے ځایه کار کوونکو ر په قیامت کښے ) څوک ملګرے ( امدادی ) به نه وی . که تاسو ښکاره ورکوئ صدقے نو هم څهٔ خبره ده او پټوئے ئے او د په پټه سره ئے ) فقیرانو لره ورکوئے نو دا پټ والے ستاسو دَ پاره زیات غوره دے ( او الله تعالی به ( دَ دے په برکت سره ) ستاسو څهٔ ګناهونه هم لرے کړی او الله تعالی ستاسو دَ کړ و کا رونو نه خهٔ خبردار دے ( چونکه ډیر و اصحابو رض به په دے نیک خیال سره خیرات نهٔ ورکا وه چه شاید په دے تدبیر سره څهٔ خلق مسلمانان شی . او دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم هم دا رائے ورکړے وه چه د ے

وجه په دې ایت کښې په دوه حو وله خطاب او شه فرمائی چه اے محمد صلی الله علیه
وسلم) دا (کافران) په هدایت را وستل ستا په ذمه (فرض واجب) نه دی (چه د
هغې د پاره دومره د لوئے لوئے پورے غم کوے) لیکن (دا خو د) خدائے تعالیٰ (کار) دے
چا لره چه غواړی په هدایت ئے راولی (ستا کار خو صرف هدایت رسول دی خواه
څوک په هدایت راځی او که نه راځی او د هدایت رسول ستا په دے بندیز بانده
موقوف نه دے) او (اے مسلمانانو) هر څه چه تاسو خرچ کوئ د خپلے فائدے په
غرض سره ئے کوئ او (د دغه فائدے بیان دا دے چه) تاسو په بل هیڅ غرض سره
نه خرچ کوئ بغیر د رضا حاصله ولو د الله پاک (چه ثواب د دے سره لازم دے
او دا د هر یو حاجتمند په حاجت پوره کولو سره حاصلیږی نو بیا خاص والے په کښے
د مسلمان فقیر ولے کوئ) او (دا رنګ) هر څه مال چه خرچ کوئ دا ټول (یعنې د
دے بدله او ثواب) به پوره پوره (خاص) تاسو ته (په آخرت کښې) ملاویږی او
ستاسو د پاره به په دے کښې یوه ذره کمی او نه کړے شی (پس تاسو لره د خپلے
بدلے سره غرض ساتل په کار دی او بدله به په هر حال کښې ملاویږی نو بیا ستاسو
د دے بحث سره څه غرض دے چه زمونږ صدقه دے مسلمان ته ملاؤ شی کافر ته
دے ملاؤ نه شی صدقے) اصل کښې حق د هغه حاجتمندو دے چه حصار شوی
وی د الله په لار (یعنې د دین په خدمت) کښې (او د دین په دے خدمت کښې د
حصاریدو او مشغول پاتے کیدو په وجه) دغه خلق (د معاش په تلاش کښې) چرته
په ملک کښې د ګرځیدو راګرځیدو (وعادةً) امکان نه لری (او) ناپوهه په دوی د
مالدارانو ګمان کوی د دوی د سوال نه د ځان ساتلو په سبب سره (خامخا) تاسو به
دا خلق د دوی د طرز (شکل) نه پیژندے شئ (ځکه چه د لوږې غم په مخونو او بدنو نو
کښې یو قسم له مړاوے والے خامخا راځی او هسے هم) دوی د خلقو نه په نښتلو سره سوال
نه کوی (چه پدے سره ئے څوک حاجتمند اوګڼړی. یعنې د سرونه سوال نه کوی ځکه کوم
خلق چه د سوال عادت وی دوی په نښتلو سره غواړی) او (د دے خلقو په خدمت کښې)
چه کوم مال خرچ کړئ بے شک الله تعالیٰ د دینه څه خبر دے (د نورو خلقو له ئے د ورکولو
نه د دوی په خدمت کښې په خرچ کولو سره به زیات ثواب ورکړی) کوم خلق چه خرچ
کوی خپل مالونه د شپے او د ورځے (یعنې بغیر د خاص کولو د وختونو نه) پټ او ښکاره

(یعنې بې د اخلاص کولو د حال نه) پس د دې خلقو ته به د دې ثواب ملاؤ شي (د قیامت په ورځ) د دوی د رب سره (چه لا هرشي) او نه به وي (په دغه ورځ) په دوی څه یره (د راتلونکې) او نه به دوی غمجن وي۔

# معلومات او مسئلې

د دې نه په مخکښې رکوع کښې د الله تعالیٰ په لاره کښې د خرچ کولو بیان وُه۔ او س د دې سره د متعلق کار د نو زیات بیان د دې رکوع په اوه آیاتو نو کښې اوشه۔ چه تفصیل ئې دا لاندې دې۔

(د) یَآ یُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْۤا اَنْفِقُوْا (نه تر) غَنِیٌّ حَمِیْدٌ ه (پورې) په شانِ نزول کښې ئې د طَیِّب معنیٰ په: عمده: یعنې ښه څیز سره کړې ده ځکه چه بعضې خلقو به خراب څیزونه راوړه۔ نو دا آیت پرې نازل شو۔ او بعضو د لفظ د عموم په وجه د "طَیِّب" معنیٰ په حلال سره کړې ده۔ ځکه چه بوره ځۀ والحصله راځي چه حلال هم وي۔ نو په دې وجه په آیت کښې د دې هم تاکید اوشه۔ او په اوّلنۍ تفسیر په نورو دلیلو نو سره د دې تاکید ثابتو لې شي۔ او یا د ساته چه دا د هغۀ سړي د پاره دې د چا سره چه عمده شې وي او سره د دې بیا دې نا کاره او خراب شې خیرات کوي۔ لکه څنګه چه لفظ د: مَا کَسَبْتُمْ: او د: اَخْرَجْنَا: د ښۀ شي په شتَه والي دلالت کوي۔ او: لَا تَیَمَّمُوا الْخَبِیْثَ مِنْهُ تُنْفِقُوْنَ: قصداً د نا کاره او خراب شي په خرچ کولو باندې دلالت کوي۔ او د چا سره چه عمده یعنې ښۀ شې د سرۀ نه نۀ وي هغه د دې مما نعت نه آزاد دې او د هغۀ دغه نا کاره شې هم مقبول دې۔

د لفظ د: مَا کَسَبْتُمْ: نه بعضې عالمانو دا مسئله هم راویستلې ده چه پلار له د خپل ځوئي د کټې نه خوړل جائزدي۔ د د جه د دې قول د نبي علیه السلام نه:۔

اَوْلَادُکُمْ مِنْ طِیْبِ اَکْسَابِکُمْ فَکُلُوْا مِنْ اَمْوَالِ اَوْلَادِکُمْ هَنِیْئًا۔ (قرطبي)

"ستاسو اولاد ستاسو د کټې یو پاکیزه حِصّه ده۔ پس تاسو د خپل اولاد د کټې نه په مزه سره خورئ"

## د زمکې د عشر حکمونه

په مِمَّآ اَخْرَجْنَا لَکُمْ مِّنَ الْاَرْضِ: کښې د لفظ د اَخْرَجْنَا: اشاره دې طرفته ده چه په عشري زمکه کښې

عُشر واجب دے ۔ دَدے ایت دَ عموم نه امام ابوحنیفهؒ دا دلیل نیولے دے چه دَ عُشری زمکے په هر لږ او ډیر پیداوار عشر واجب دے ۔ دَ سورهٔ انعام ایت: اٰتُوا حَقَّهٗ یَوْمَ حَصَادِهٖ: په واجب والی دَ عُشر باندے بالکل واضح او ښکاره دے ۔ عُشر او خراج دَ اسلامی شریعت دوه اصطلاحی لفظونه دی ۔ په دے دواړو کښے یوه خبره شریکه ده چه دَ اسلامی حکومت دَ طرف دا دواړه په زمکو ایخودے شوے ټیکس (ټلنګ) دے فرق دا دے چه عُشر صرف ټلنګ نه دے بلکه دَدے اصلی حیثیت دَ مالی عبادت دے دَ ذکوٰة په شان ۔ په دے وجه دیته دَ زمکے زکوٰة هم وائی ۔ او خراج خالص ټلنګ دے چه په هغے کښے دَ عبادت هیڅ حیثیت نیشته ۔ مسلمان چونکه دَ عبادت اهل او پابند دے ۔ دَ دهٔ نه چه دَ زمکے دَ پیداوار کوم حصه اخستے شي ۔ دیته عُشر وائی ۔ او غیر مسلم دَ عبادت اهل نه دے نو کوم دوی په زمکو چه څهٔ لږه ولے شي دَ هغے نوم خراج دے ۔ په عملی طور سره په زکوٰة او عشر کښے دا فرق هم دے چه په سرو سپینو او دَ تجارت په مال کښے زکوٰة هله فرض کیږی چه کال پرے تیر شي ۔ او په عُشر کښے چه دَ زمکے نه فصل کله حاصل شي نو واجب کیږی ۔

دویم فرق ئے دا هم دے چه که زمکه فصل او نه کړی نو عُشر ترے نه لږی ۔ لیکن په سرو سپینو او دَ تجارت په مال که څه نفع اُوهُم نه شي خو چه کال پرے تیر شي زکوٰة پرے فرض وی ۔ دا موقع دَ عُشر او خراج دَ مسئلو دَ تفصیل نه ده ۔ دَ فقه په کتابونو کښے شته ۔ او احقر (یعنے مفتی محمّد شفیع صاحب) په خپل کتاب "نظام الاراضی" کښے په تفصیل سره لیکلی دی ۔ چه په کښے دَ پاکستان او هندوستان خاص احکام هم لیکلی شوی دی ۔

اَلشَّیْطٰنُ یَعِدُکُمُ الْفَقْرَ تر وَمَا یَذَّکَّرُ اِلَّآ اُولُوا الْاَلْبَابِ ه پورے ۔ هر کله چه دَ چا په زړهٔ کښے دا خیال راشي چه که خیرات کوم نو غریب به شم او دَ الله پاک دا تاکیدی بیان واوری بیا ئے هم زړهٔ نه کیږی او زړهٔ ئے مال خرچ کول نه غواړی او دَ الله تعالیٰ دا وعدے ئے ته او غوږ نه وی او دَ شیطان وعدے ئے زړهٔ ته پرے وُځی او اعتماد ئے وی پرے نو دے دے دا یقین اوکړی چه دا دَ شیطان خبرے دی ۔ دا سے دے نه وائی چه شیطان خو ما چرته لیدلے هم نه دے نو حکم به را ته څنګه کوی ۔ او که دا سے ئے په خیال او زړهٔ کښے راځی چه په خیرات او صدقه سره به زمونږ کنا هونه او بخښلے شي او مال به زمونږ هم ترقی اوکړی او برکت به په کښے راشي نو دے دے پوهه شي چه دا خبرے دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه دی ۔ او دَ الله تعالیٰ شکر دے

اداکړی. او د الله تعالیٰ په خزانو کښې هیڅ کمے نیشتے. د هر چا په ظاهر، باطن، نیت او عمل خدائے پو هه دے.

## د حکمت معنیٰ او تفسیر

يُؤْتِي الْحِكْمَةَ مَنْ يَشَاءُ: لفظ د حکمت په قرآن شریف کښې بار بار راغلے دے. او هر ځائے د دے په تفسیر کښې مختلفې معنې بیان شویدی. په تفسیر د بحر محیط کښې ئې په دے ځائے کښې د تفسیر کونکو تهول قولونه جمع کړیدی چه تقریباً دیرش دی. لیکن په آخر کښې فرمائی چه په حقیقت کښې دا ټول قولونه یو بل ته نزدے دی په دوی کښې څه اختلاف نیشتے صرف د تعبیرونو فرق دے. ځکه چه لفظ د حِكْمَتْ د اِحْكَام: والف په زیر سره مصدر دے چه معنیٰ ئې داده: یو کار یا وینا د هغې د ټولو صفتو نو سره پوره او مکمله کول:

نو په دے وجه په بحر محیط کښې د سورت بقره د: اٰتٰهُ اللهُ الْمُلْكَ وَالْحِكْمَةَ: کوم چه د حضرت داؤد علیه السلام په باره کښې دے. په تفسیر کښې فرمائی:

| | |
|---|---|
| وَالْحِكْمَةُ وَضْعُ الْاُمُوْرِ فِيْ مَحَلِّهَا عَلَى الصَّوَابِ وَكَمَالُ ذٰلِكَ اِنَّمَا يَحْصِلُ بِالنُّبُوَّةِ " | "د حکمت اصل معنیٰ هر شے په خپل محل کښې لرل دی. او د دے کمال صرف په نبوة سره کیدیشی. نو ځکه دلته د حکمت تفسیر په نبوّت سره شوے دے." |

امام راغب اصفهانیؒ په مفردات القرآن کښې فرمائی چه لفظ د حکمت هرکله چه د الله تعالیٰ د پاره استعمال شی نو معنیٰ ئې د ټولو شیو نو پوره پیژندګلو او محکم ایجاد دی. او هرکله چه نسبت ئې غیر الله طرفته او شی نو د موجوداتو صحیح پیژندګلو او د هغې مطابق عمل ترے مراد دی.

د دے مفهوم کښې تعبیرونه په مختلفو الفاظو کښې شوی دی څنې ځائے د دے نه مراد قرآن دے څنې ځائے کښې حدیث. په څهٔ ځائے کښې صحیح علم، او چرته نیک عمل، چرته رشتیا وینا، چرته روغ عقل، چرته پوهه په دین کښې. چرته د رائے ټیک والے، او چرته د خدائے یره. او دا آخری معنیٰ خو په خپله په حدیث کښې هم ذکر ده: رَاْسُ الْحِكْمَةِ خَشْيَةُ اللهِ: یعنې اصل حکمت د خدائے تعالیٰ نه یره ده. او په آیت: يُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ: کښې د حکمت تفسیر د صحابهؓ او تابعینؒ نه بحدیث او سنت: نقل دی. او څنې حضراتو

فرمایلي دي چه په دې آیت کښې د: یُؤْتِی الْحِكْمَةَ: نه دا ټول خیزونه مراد دي (بحر محیط ص ۳۳۲ ج ۲)

او ظاهر قول دا دے. او د قرآن د ارشاد: وَمَنْ يُؤْتَ الْحِكْمَةَ فَقَدْ أُوتِيَ خَيْرًا كَثِيرًا: نه هم دے طرف ته اشاره راوځي. چه معنیٰ ئې دا ده چه چا ته حکمت ورکړے شه نو هغه ته ډیر لوئې خیر ورکړے شه. والله تعالیٰ اعلم.

وَمَا أَنْفَقْتُمْ مِنْ نَفَقَةٍ (نه تر) وَمَا لِلظَّالِمِينَ مِنْ أَنْصَارٍ (پورے). په څه قسم خرچ کولو کښې ټول خرچونه راغله. هغه خرچونه هم په کوم کښې چه د ذکر شوو ټولو شرطونو لحاظ ساتلے شوے وي. او هغه هم په کوم کښې چه د ټولو یا د څنو لحاظ نه دي ساتلے شوے مثلاً د الله تعالیٰ د پاره کښې نه وي بلکه په کار د ګناه کښې وي. یا په کښې ریا شامله شوے وي. یا خرچ اوکړي بیا پرے زبا تنه کوي، یا حلال او ښه مال نه وي، د غه شان د نذر په عموالي کښې ټول نذرونه راغله. مثلاً د مالي عبادت نذر (منتنه) وي. او په دے مناسبت سره ئې د انفاق سره نذر راوړے دے. یا د بدني عبادت نذر وي یا هغه مطلق او یا په څه کار پورے پیوست وي، بیا ئې دا پوره کړے وي یا نه وي. او مقصود د دے وینانه دا دے چه الله تعالیٰ ته د دے ټولو خیزونو علم دے. هغه به د دے جزا ورکړي. او د دے اوره ونه ئې څکه اوکړه چه د مقرره شرطونو د لحاظ ساتلو طرفته د خلقو مینه پیدا کړے شي او د دے په لحاظ نه ساتلو اویره ولے شي. او د بے ځایه کار کونکو خلقو نه هغه خوک مراد دي چه د ضروري شرطونو لحاظ نه ساتي نو دوی ته ئې ښکاره سزا واوروله.

إِنْ تُبْدُوا الصَّدَقَاتِ فَنِعِمَّا هِيَ (نه تر) وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ (پورے) په ظاهره دا آیت فرض او نفل ټولو صدقو له شامل دے. او په ټولو کښې پټول غوره دے. په دے کښې دیني مصلحت هم دے چه ریاء په کښې نه وي. او د اغستونکي هم نه شرمیږي. او د دنیا خیر په کښې هم دے. چه د مال اندازه ئې عامو خلقو ته نه لږي. او د پټ خیرات ورکولو غوره والے في نفسه (ذاتي) دے پس که په یو ځائے کښې په څه وجه سره لکه د تهمت لرے کولو په وجه یا د نورو خلقو دے طرف ته مخه کولو د پاره خیرات په ښکاره ورکول د غه غوره والي سره هم منافات نه لري. یعني غوره والے ئې په ځائے وي. وَيُكَفِّرُ عَنْكُمْ مِنْ سَيِّئَاتِكُمْ: د ګناهونو ریژیدل د پټ والي سره خاص نه دي. صرف په دے خبره بانده دے د خبره د لو

دَ پاره دلته دَاخفاء (پټه) سره ذکر او کړه. چه کله په پټه ورکولو کښې ئې تا ته ظاهري فائده په نظر رانشي نو په دې خفګان مه کوه ځکه چه ستاسو ګناهونه الله تعالی معاف کوي او دا ستاسو دَپاره یوه لویه فائده ده -

لَيْسَ عَلَيْكَ هُدٰىهُمْ (نه تر) وَاَنْتُمْ لَا تُظْلَمُوْنَ (پورې) په دې ایت کښې دا اوخودې شوه چه نیت هم ستاسو په اصل کښې دَ خپلې فائدې دَحاصلولو دې - او په حقیقت کښې به هم فائده ستاسو وي. نو بیا وَلې دې زیاتي خبرو ته ګورئ - چه دا فائده دې هم خاص په دې طریقه حاصله کړې شي چه صدقه دې خاص مسلمان له ورکړې شي. کافر له دې ورنه کړې شي -

دلته په دې خبره هم پوهه شه چه دَ دې صدقې نه مراد نفلي صدقه ده چه ذِمّي کافر له ئې هم ورکول جائز دي - واجب صدقه ترې مراد نه ده - ځکه چه واجب صدقه سِوا دَ مسلمان نه بل چالره ورکول جائز نه دي (مظهري)

مسئله[۱]: حربي کافر له دَ هرڅه قسم صدقه وغیره ورکول جائز نه دي -

مسئله[۲]: کافر ذِمّي یعنې غیر حربي له صرف زکوٰة او عشر ورکول جائز نه دي - او نورې واجب صدقې او نفلي صدقې ورکول ورله جائز دي - او په ایت کښې زکوٰة داخل نه دې -

لِلْفُقَرَآءِ الَّذِيْنَ اُحْصِرُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ (نه تر) فَاِنَّ اللّٰهَ بِهٖ عَلِيْمٌ (پورې) دلته دَ فقیرانو نه مراد هغه ټول خلق دي کوم چه دَ دیني شُغل په وجه سره بل څه کار نه شي کولې - (یعنې په دیني کارونو کښې مشغول دي کار روزګار ته نه وُزګار دي.)

يَحْسَبُهُمُ الْجَاهِلُ اَغْنِيَآءَ مِنَ التَّعَفُّفِ - دَ دې ایت نه معلومه شوه چه که یو فقیر قیمتي کپړې اَغوُستې وي نو په دې وجه هغهٔ ته غني نه شي ویلې کیدې - بلکه دهٔ ته به فقیر ویلې شي. او دا سې سړي ته زکوٰة ورکول هم صحیح وي -

تَعْرِفُهُمْ بِسِيْمٰهُمْ: دَ دینه معلومه شوه چه په نښو نښانو لیدلو سره حکم لږه ول به هم صحیح وي - (قرطبي) نو په دې وجه که یو مړې په دې قسم سره بیاموُ ندې شو چه زنّار ئې په غاړه وُه او سنّت شوې هم نه وُه. نو دې به دَ مسلمانانو په مقبره کښې نه شي ښخولې - (قرطبي)

لَا يَسْئَلُوْنَ النَّاسَ اِلْحَافًا: دَ دې ایت نه په ظاهره داسې معلومیږي چه دې دَسوال

کولو به وخت کښې په چاپو دې ننبلي - خو نه نختونکې هم به دے کښې داخل دے مُهرتړې نه دے - چه د بعضې حضراتو هم دا رنګ قول دے - لیکن د جمهورو علماؤ په نزد ئې معنیٰ داده چه بالکل سوال نه کوی: لِاَنَّهُمْ مُتَعَفِّفُوْنَ عَنِ الْمَسْأَلَةِ عِفَّةً تَامَّةً (قرطبی) (یعنې دوی ځان ساتی د سوال نه په پوره ځان ساتلو سره) -

اُوم اٰیت: اَلَّذِیْنَ یُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ بِالَّیْلِ وَالنَّهَارِ: په دے اٰیت کښې د هغه خلقو د لوئې ثواب او عوده والی بیان دے چه د الله تعالیٰ په لاره کښې ئې خرچ کول عادت وی په ټولو حالاتو او وختونو کښې په شپه کښې او په ورځ کښې په پټه او په ښکاره په هر طریقه سره د الله تعالیٰ په لاره کښې خرچ کوی - په دے کښې ئې داخبره هم او خودده چه د صدقې او خیراتو د پاره څۀ وخت مقرر نه دے - نه په کښې د شپې څه مقرر دوالے شته او نه د ورځې - دغه شان په پټه او ښکاره دواړه طریقو سره د الله تعالیٰ په لاره کښې د خرچ کولو ثواب دے خو په دے شرط چه په اخلاص سره ئې خرچ کوی نوم نمائش ئې مقصود نه وی - د پټ خرچ کولو غوره والے هم د دے حده پورے دے چه د ښکاره خرچ کولو د پاره څه خاص ضرورت نه وی؛ او کوم ځائے چه د ښکاره کولو ضرورت وی هلته په ډاګه خرچ کول غوره دی -

روح المعانی په حواله د ابنِ عساکر نقل کوی چه حضرت صدیق اکبرؓ څلویښت زره دیناره د الله تعالیٰ په لاره کښې داسے خرچ کړه چه لسؔ زره ئې د ورځې لس زره ئې د شپې او لس زره ئې په پټه او لس زره ئې په ښکاره ورکړه - بعض تفسیر لیکونکو د دے اٰیت شانِ نزول هم دغه واقعه د حضرت صدیق اکبر رضی الله تعالیٰ عنه بیان کړے ده - د دے د شانِ نزول متعلق نور هم مختلف قولونه دی -

اَلَّذِیْنَ یَاْکُلُوْنَ الرِّبٰوا لَا یَقُوْمُوْنَ اِلَّا کَمَا یَقُوْمُ الَّذِیْ

کوم خلق چه خوری سود نه به پورته کیږی په قیامت کښې مګر هغه شان چه پورته کیږی هغه سړے

یَتَخَبَّطُهُ الشَّیْطٰنُ مِنَ الْمَسِّ ؕ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَالُوْٓا اِنَّمَا

چه حواس ئې بے کاره کړی وی پیریانو په نختو ورپورے - داحال ئې په دے وجه دے چه دوی وے چه

اَلْبَيْعُ مِثْلُ الرِّبٰوا ۘ وَ اَحَلَّ اللّٰهُ الْبَيْعَ وَحَرَّمَ الرِّبٰوا ۭ فَمَنْ

سوداګري هم د سود په شان ده - او حلال کړې ده الله بیعه او حرام کړې ئې دے سود - پس چا ته

جَآءَهٗ مَوْعِظَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ فَانْتَهٰى فَلَهٗ مَا سَلَفَ ۭ وَاَمْرُهٗٓ

چه اورسیده نصیحت د خپل رب د طرف نه پس بیا منع شو نو ده لره دی کوم چه تېر شویدی او معامله د ده

اِلَى اللّٰهِ ۭ وَمَنْ عَادَ فَاُولٰۗىِٕكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ هُمْ فِيْهَا

حواله د الله ته او څوک چه بیا واخلي سود پس دغه خلق دوزخ والا دي دوی به په دے کښې

خٰلِدُوْنَ ۝275 يَمْحَقُ اللّٰهُ الرِّبٰوا وَيُرْبِي الصَّدَقٰتِ ۭ وَاللّٰهُ

همیشه دي - ورکوي الله پاک سود لره او زیاتوي خیرات لره - او الله تعالی

لَا يُحِبُّ كُلَّ كَفَّارٍ اَثِيْمٍ ۝276 اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا

نه دے خوشحاله د ناشکره ګناهګار نه - کوم خلق چه ایمان راوړي او عمل کوي

الصّٰلِحٰتِ وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتَوُا الزَّكٰوةَ لَهُمْ اَجْرُھُمْ

نیک او قائم ساتي مانځه لره او ورکوي زکوٰة د دوی د پاره ئې ثواب د دوی

عِنْدَ رَبِّهِمْ ۚ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا ھُمْ يَحْزَنُوْنَ ۝277

په نزد د رب د دوی او نه په دوی ویره ده او نه به دوی غمجن وي

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَذَرُوْا مَا بَقِيَ مِنَ الرِّبٰٓوا

اے ایماندارو ویرېږئ د الله نه او پاتے کړئ څه چه پاتے شوے وي سود

اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ۝278 فَاِنْ لَّمْ تَفْعَلُوْا فَاْذَنُوْا بِحَرْبٍ

که یقین وي ستاسو په وینا د الله پاک - پس که نه پاتے کوئ نو تیار شئ جنګ ته

مِّنَ اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ ۚ وَاِنْ تُبْتُمْ فَلَكُمْ رُءُوْسُ اَمْوَالِكُمْ ۚ

دَ الله سره او دَ رسول دَ هغه سره - او که توبه کوئ نو تاسو لره دے اصل مال ستاسو -

لَا تَظْلِمُوْنَ وَلَا تُظْلَمُوْنَ ﴿۲۷۹﴾ وَاِنْ كَانَ ذُوْ عُسْرَةٍ فَنَظِرَةٌ

نه تاسو په چا ظلم کوئ او نه دے څوک په تاسو - او که وی تنګدسته نو مهلت ور کول په کار دی

اِلٰى مَيْسَرَةٍ ۭ وَاَنْ تَصَدَّقُوْا خَيْرٌ لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ﴿۲۸۰﴾

دَ فراخئ پورے - او که ورته ئے اوبخئ نو ډیره غوره ده ستاسو دَ پاره که تاسو پو هیږئ -

وَاتَّقُوْا يَوْمًا تُرْجَعُوْنَ فِيْهِ اِلَى اللّٰهِ ۣ ثُمَّ تُوَفّٰى كُلُّ

او ویره کوئ دَ هغې ورځے نه چه واپس به شئ په کښے الله طرف ته - بیا به پوره ورکړے شی هر سړی ته

نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ ﴿۲۸۱﴾ ۳۸ ع ۸ ۶

څۀ چه دۀ ګټلی وی او په دۀ به ظلم نۀ وی -

# لنډ تفسیر

کوم خلق چه سود خوری (یعنے سود اخلی) نۀ به پورته کیږی (په قیامت کښے دَ قبرونو نه) مګر څنګه چه پورته کیږی داسے سړے چه شیطان پرغړی کړے وی په مسه کولو سره (یعنی حیران او بے خوده) داسزا ئے ځکه ده چه دے (سود خوارو) خلقو (دَ سود دَ حلال ګڼلو په دلیل کښے) ویلی ؤ چه تجارت هم دَ سود په شان دے (ځکه چه په دے کښے هم مقصد نفع حاصلول وی. او تجارت خو یقیناً حلال دے، بیا سود هم چه دَ دے په مثل دے په کار ده چه حلال وی) حال دا دے چه (په دواړو کښے بنکاره فرق دے چه) الله تعالیٰ (کوم چه دَ حکمونو مالک دے) تجارت حلال کړے دے او سود ئے حرام کړے دے (دَ دے نه زیات به بل څۀ فرق وی) پس کوم سړی ته چه دَ دۀ دَ رب دَ طرف نه (په دے باره کښے) نصیحت اورسید او دے (دَ دے سود دَ کار نه او دَ دے کفر دَ وینا نه یعنے دَ ورته حلال ویلو نه)

واپس شه (یعنې حرام ئې او کانه او اغستل ئې هم پرېښودل) نو څه چه (د دې حکم د راتلو نه) وړاندې (اغستل) شوي دي هغه د ده شو (یعنې په ظاهر د شریعت په بنا د ده توبه قبوله شوه او اغستلې مال د ده ملکیت دے) او (باطنی) معامله د ده (چه دے د زړه نه واپس شوے دے یا منافقانه توبه ئې کړې ده دا) خدائې ته حواله ده (که په زړه سره ئې توبه کړې وي نو د الله په نزد به فائده مند وي او که نه وي نو بیا هیڅ نه ده - او تاسو لره پرې د بدګمانۍ څه حق نیشته) او کوم سړے چه (د دا نصیحت واورې هم او دے ډېنا او کار ته) بیا واپس شي نو (په وجه د دے چه د ده دا کار په خپله ګنا ه کبیره: لوئې ګناه: دے) دا خلق به دوزخ ته ځي (او په دے وجه چه د دوي دا ډېنا کفر دے په دے وجه به) دوي به دے (دوزخ) کښې همیشه اوسي (او اګر چه په سود اغستو سره فی الحال د مال زیاتوالے په نظر راځي لیکن اخر کار) الله تعالی سود لره وړکوي (که خو په دنیا کښې هم تول برباد شي ورنه په اخرت کښې خو یقیني برباد دے ځکه چه هلته به په ده عذاب وي) او (د دې په خلاف صدقه په ورکولو سره که یا فی الحال مال کمیدل په نظر راځي لیکن اخر کار الله تعالی) صدقې زیاتوي - (که خو په دنیا کښې هم ورنه په اخرت کښې خو یقیناً زیاتیږي ځکه چه هلته به ده ته په دې چیر ثواب ملاویږي که په پورته ایا تونو کښې چه تیر شوي دي) او الله تعالی نه خوښوي (بلکه بد ئې ګڼړي) چا کفر کوونکي لره (کوم چه دا سې د کفر کلمې د خولې نه اوباسي او دغه شان نه خوښوي) چا د ګناه کار کوونکي لره (چه د ګوشوي کار یعنې د سود په شان لوئې ګنا هو نه کوي)

بے شکه کوم خلقو چه ایمان راوړې دا دوي نیک کارونه اوکړه او (خاص کر) د مانځه پابندي ئې اوکړه او زکوٰة ئې ورکړه - د دوي د پاره به د دوي ثواب وي د دوي د رب په نزد او (په اخرت کښې به) په دوي څه یره (د واقع کیدو کیدو والا) نه وي او نه په دوي (د څه مقصود په فوت کیدو سره) غم جن وي -

اے ایمان والو! د الله تعالی نه اویریږئ او څه چه د سود بقایه ده دا پاتې کړئ که چرې تاسو ایمان دار يئ (ځکه چه د ایمان تقاضا دا ده چه د الله تعالی حکم اومنلے شي) بیا که تاسو (په دې عمل) اونه کړئ نو خبر واورئ د جنګ د الله تعالی د طرف نه او د هغه د رسول د طرف نه (یعنې ستاسو خلاف به جهاد وي) او که

تاسو تو يه او باسئ نو تاسو ته به ستاسو اصل مالونه ملاوېږي (دا دې قانون نه
پس) نه دې تاسو په چا ظلم اوکړئ (چه د اصل مال نه ترې تاسو زياتي واخلئ) او نه
به په تاسو څوک ظلم اوکړې شي (چه ستاسو اصل مال هم درنه کم کړي) او که چرې (قرض
دارې) تنګدست وي (او په مقرره ميعاد ئې نه شي درکولې) نو (د هٔ ته) د مهلت درکولو
حکم دې تر اسانتيا پورې (يعنې چه کله دې د دا اکولو قابل شي) او دا (خبره) چه
(بالکل) ئې معاف کړئ دا ډېره غوره ده ستاسو د پاره که چرې تاسو (د دې د
ثواب نه) خبر يئ -

او (مسلمانانو) د هغې ورځې نه اوېرېږئ په کومه کښې به چه تاسو (ټول) الله تعٰ
ته د پېشئ د پاره راوستلې شئ بيا به هر سړي ته د هغه کړي (يعنې د هغې بدله)
پوره پوره ملاوېږي او په دوي به د هيڅ قسم نه ظلم نه وي (نو تاسو د پېشئ د
پاره خپله کارګذاري ټيک او برابره ساتئ - او د څهٔ قسم خلاف ورځې مه کوئ)

# معلومات او مسئلې

په دې آياتونو کښې د سود حرامولې او د دې د احکامو بيان شروع
شوې دې دا مسئله په څواړخونو سره ډېره اهمه او ضروري ده - يو
طرفته په سود او رباء باندې د قرآن شريف او احاديثو سختې سزاګانې
او بل طرف ته د دنيا په کاروبار کښې د دې يو لازمي حصه جوړه يدل او د دې
نه د ځان خلاصولو د مشکلاتو يو اوګډه مسئله ده - او په ډېرو اړخونو سره
په دې باندې غور کول دي -

اوّل په دې باره کښې د قرآن پاک د آياتونو صحيح تفسير او د صحيح احاديثو
په رنړا کښې دا مقرر کول چه د قرآن او سنت په اصطلاح کښې ربا څهٔ شې دې؟ او
کوموکومو معاملو لره شامل ده - او د دې په حرامولې کښې کوم حکمت او مصلحت دې
او د دې څهٔ قسم نقصانونه دي؟ -

دويم حيثيت د دې عقلي او معاشي دې - چه آيا په حقيقت کښې ربو داسې شې دې
چه د دنيا د کاروبار د ترقئ ضمانت درکوي - او که دا ختم کړې شي نو لازمي نتيجه

به ئې د تجارت او عام کاروبار تباهي وي، او یا که دا تول چکر صرف د خدائ تعالیٰ او آخرت نه د غافله ومانو پیدا اوړو دے - ورنه بغیر د دینه هم تولے د ژوند مسئلے حل کیدے شي، او نه دا چه صرف مشکلات حل کیدے شي بلکه په دنیا کښے کاروباری امن او تسلّي د سود په پرېخودو پورے موقوفه ده - او دا چه د دنیا د کاروباری تکلیفونو د تولو نه لوئے سبب سود او ربو ده -

دا دریم بحث یو معاشي او اقتصادي مسئله ده - چه د دے لاندے ډیر زیات اُصولي او فرعي بحثونه دي چه تعلق ئې د قرآن د تفسیر سره نیشته - په دے وجه به دلته کښے صرف په ورومبئ بحث مسئله کیږي - چه هغه هم ډیره اوږده ده -

دا شپږ آیاتونه دي چه د سود د حرام والي او احکامو بیان دے - په دے کښے د اول آیت په اوله جمله کښے د سود خورو د ناکاره انجام او په قیامت کښے د دوي د شرم او ګمراهئ بیان دے - فرمائي کوم خلق چه سود خوري هغوي به نه شي پورته کیدے مګر څنګه چه پورته کیږي هغه سړے چه شیطان پورے نخښتے وي او پرغزي ئې تړے جوړ کړے وي - په حدیث شریف کښے دي چه د پورته کیدو نه مراد په قیامت کښے د قبر نه پورته کیدل دي چه سود خور کله د قبر نه پورته کیږي نو د پاګل او لیوني په شان به پورته کیږي څنګه چه شیطان پرغزي جوړ کړے وي -

د دے جُملے نه یوه خبره خو دا معلومه شوه چه د پیریانو او شیطانانو په اثر سره انسان بے هوشه یا لیونے کیدے شي - او د تجربه کونکو پرلیسے تجربے په دے ګواه دي - او حافظ ابن قیم جوزي رحمة الله علیه لیکلي دي چه طبیبانو او فلاسفرانو (حکیمانو) هم دا خبره منلے ده چه مرګي، بے هوشي یا لیونتوب د ډیرو وجهو نه کیدے شي - په دے کښے بعضے وخت د پیریانو او شیطانانو اثر هم د دے سبب وي - کومو خلقو چه د دینه انکار کړے دے د هغوي سره په غیر د ظاهري نا شوني والي نه بل څه دلیل نیشته (یعنے دوي وائي چه دا نه شي کیدے چه پیریے یا شیطان دے هم په چا داسے اثر واچوي) -

بله د غور قابله خبره دا ده چه قرآن دا نه دي فرمایلي چه سود خور به په قیامت کښے پاګل یا لیونے جوړ شي را پورته به شي - بلکه د لیونتوب یا بے هوشئ یو

خاص شکل ئے ذکر کړه داسے چه لکه شیطان په چا پورے نښتے وی او پړغزی کړے ئے وی. په دے کښے شاید دے طرفته اشاره دهٔ چه بے هوشه اولیونے خو بعض وخت چپ چاپ پروت وی. نو د دوی به دا حال نه وی بلکه د دوی به د پړغزئی په شان بګواس او کړیکے و هے وائی او د لیونو په شان حرکتونه به کوی چه په دے سره به دوی پیژندلے شی (چه دا په دنیا کښے سودخوړونکی وُو)

او شاید چه دے طرفته په کښے هم اشاره وی چه د ناجوړه کید و یا بے هوشه یا لیونی کیدو نه پس د بنده حواس بالکل باطل شی او دے بیا په هیڅ شئے نه پوهیږی او په خپل تکلیف یا سختئه باندے بیاخبر نه وی. نو د دوی به دا حال نه وی بلکه د دوی حال به د پیړی یا شیطان د وهلی شوی په شان وی چه په خپله سختئه او تکلیف به پوهیږی.

او س دلته دے خبرے ته تکوکول په کار دی. چه په جرم او د هغے په سزا کښے مناسبت په کار دی. د الله تعالیٰ د طرفه چه کوم سزا چا سړی یا جماعت ته ورکولے شی د هغهٔ جرم په مقابله کښے هغه یقیناً د هغے جرم سره مناسب وی په دے وجه به سودخواره په محشر کښے د پړغزیانو په شان ځکه راپورته کوی چه دوی د روپو پیسو په حرص کښے دومره بے هوشه وُو چه نه ئے په چا غریب رحم کړ ته او نه ورته ئے شرم او درید ه. دے چونکه په دنیا کښے په حقیقت کښے بے هوشه وهٔ د کمال په حرص کښے نو په دے وجه په محشر کښے هم په دے حالت کښے اوتړ او پړغزی راپورته کړے شه. یا ورلره داسزا ځکه ورکړے شوه چه په دُنیا کښے دهٔ خپله بے عقلی د عقل په رنګ کښے ظاهره کړه چه تجارت او سود ئے برابر کړل نو په دے وجه دے بے عقله راپورته کړے شه.

دلته دا خبره هم د یادساتلو قابله ده چه په آیت کښے ذکر د سود خوړلو دے او مراد ترے مطلق سود اخستل او د دے استعمالول دی خواه په خوراک کښے ئے استعمال کړی یا په جامه کښے یا په مکان او د دے په سامان کښے. لیکن خوړل ئے ورته ځکه اووے چه کوم شئے اوخوړلے شی د هغے د واپس کولو بیا هیڅ صورت نه وی. په خلاف د نورو ضرورتونو د استعمال نه چه هغه بیا واپس کولے شی په دے وجه پوره قبضے او تصرف ته خوړل ویلے شی. او دا نه صرف د عربی ژبے بلکه د اردو فارسئ وغیره اکثرو ژبو دا محاوره ده. چه کوم شئے مکمل قبضه شی هغے ته خوړل وائی.

دَ دینه پس په دویمه جمله کښې ئې دَسود خوَرو دَ دے سزا وجه بیان کړے ده چه دے خلقو ده جهونه او کړه. یو ئې په ذریعه دَ سود حرام مال اُوخوړو - دویم ئې دا حلال او گا ټره - او دیته دَحرام وَیُو نکو په جواب کښې ئې دا اُووے چه اِغِستل خرڅول خو هم دَ سُود په شان دی لکه څنګه چه دَ سُود په ذریعه فائده حاصلولے شی دغه شان اغستل خرڅول هم دَ فائدے او نفعے دَ پاره وی. نو که سود حرام وی بیا خو اِغِستل خرڅول دے هم حرام شی - او حال دا دے چه دیته خو هیڅ څوک هم حرام نه وائی - دلته په ظاهره خو په کار دا وه چه خلقو دا سے ویلے چه سُود هم په مثل دَ بَیعے دے نو چه بَیعه حلاله ده نو سود هم حلال په کار دے - لیکن دوی دَ خبرے طرز بدل کړه په حرام ویُونکو یو رے ئې یو قسم تو قه اُوکړه چه تاسو سُوُد ته حرام وائی نو بیعے ته هم حرام اووائی-

په دریمه جُمله کښې دَ دے خلقو دَ خبرے جواب الله تعالیٰ اُور کړو چه واخلق بیعه دَ سُود په شان اُو دَ هغې سره ئې برابره وی - حال دا دے چه دَ الله تعالیٰ دَ حکم مطابق په دے دواړو کښې دَ زمکے او آسمان فرق دے - چه الله تعالیٰ یو حلال کړے او بل ئې حرام کړے دے - بیا دواړه څنګه برابر کید ے شی -

په دے جواب کښې داخبره دَ غور قابل ده - چه دَ دے خلقو اعتراض په عقلی طور وُه - چه هر کله دَ دواړو معاملو مقصد نفع گټل دی - نو دَ دواړو حکم یو په کار دے - الله تبارک وتعالیٰ دَ دوی دَ عقلی اعتراض جواب په عقلی طور دَ فرق په ښکاره کولو ورنه کړو - بلکه په حاکمانه انداز کښې ئې داجواب ورکړو، چه مَالِكُ دَ مُلک او حکومت الله جل شانهٗ دے هغهٗ دَ هر شی نفع او ضرر او ښهٔ بَدْ چه پیژنی - نو هر کله چه هغهٔ یو حلال او بل حرام کړو - نو پوهه شئ چه کوم شے هغهٔ حرام کړے دے په هغهٔ کښې به ضرور څهٔ نقصان، ضرر او څهٔ نا کاروالے وی. خواه که عام خلق پرے پوهیږی او که نهٔ ځکه چه دَ دے ټول مخلوق پوره حقیقت او په نفع او ضرر ئې صرف هغه خبردار دے او پوهه یا وشاه پوهیږی دَ چا دَ علم نه چه دَ جهان یوه ذره هم پټه نه ده - دَ دنیا مخلوق او سری خو په خپلو خو بدو پوهیدے شی خو دَ ټولے دنیا په نفع او

نقصان نه شي پوهیدی ے- او نه ئې په احاطه کښې راوستے شي - بعض خیزونه داسې وي چه څخه دیوتن یاجماعت دپاره خونفعمند وي مګر د قوم یا ټول ملک دپاره په هغې کښې نقصان وي -

د دینه پس په دریمه جمله کښې داارشاد دے چه د سود د حرامولي نه اول چه کوم سړي کوم رقم جمع کړے وه - لیکن کله چه سود حرام کړے شو- نو که د آئنده دپاره دهٔ توبه اوکړه او واپس شه ترے . نو د دے مخکښې جمع کړے رقم د شرع په ظاهري حکم سره د دهٔ شه او د دهٔ د باطن معامله چه په زړه سره ترے منع شوے دے او که منافق دے نو د دهٔ دا معامله خدائے ته حواله ده-

که په زړهٔ سره ئې توبه کړي نو د الله تعالیٰ په نزد فائده مَنَه ده او که د زړهٔ ئې توبه نهٔ وي نو بیا هیڅ نهٔ دهٔ - عامو خلقو ته پرے د بدګمانۍ کولو حق نیشته - او کوم سړے چه نصیحت واؤري او بیا هم دغې دُنیا او کار طرف ته واپس شي نو چونکه دا کار (د سُود خورئ) ګناه دے دا خلق به دوزخ ته ځي - او چونکه د دوی دا خبره چه سُود په مثل د بیعے حلال دے دا کُفر دے په دے وجه به دوی په دوزخ کښې همیشه وي -

په دویم اٰیت کښې چه کوم داارشاد دے چه الله تعالیٰ سُود وراندِ وِي او صدقے زیاتوي - دلته د سُود سره د صدقو ذکر په یو خاص مناسبت سره راوړے شوے دے چه سُود او صدقے دواړه د یو بل ضِدّ دي - او نتیجے ئې هم د یو بل نه خلاف او مُتَضاد دي- او عام طور سره د دے دواړو کارونو د کونکو خیالات هم د یو بل نه خلاف او مُتضاد وي - او غرضونه او نیتونه ئې هم د یو بل نه جُدا جُدا وي -

په حقیقت کښې ئې تضاد او خلاف دا دے - چه په صدقه کښې بغیر د څهٔ بدل نه خپل مال نورو لوه ورکولے شي - او په سُود کښې بغیر د څهٔ بَدَل او معاوِضې نه د بَل مال اَغستے شي - د دې دواړو کارونو د کونکو نیت او غرض ځکه د یو بل نه جُدا وي چه صدقه کونکے محض د الله تعالیٰ د رضا حاصلولو او د اٰخرت د ثواب دپاره د خپل مال کَمَولو یا ختمَولو فیصله کوي - او سُود اَغستونکے په خپل موجوده مال باندے د ناجائز زیاتوالي خواهشمند وي - او د نتیجو یعنے د اَنجام تضاد او خلاف ئې د قراٰنِ کریم

دَ دے آیت نه ښکاره شوه چه الله تعالیٰ دَ سود دَ ګټلی مال نه یا دَ هغه برکت ورک کړی یا هغه دَ سود مال ختموی - او دَ صدقه کونکی مال یا دَ هغې برکت زیاتوی - چه حاصل ئے داشي چه دَ مال دَ حرص کونکی مقصد پوره نه شي - او دَ الله تعالیٰ په لاره کښے خرچ کونکے چه دَ خپل مال په کمیدو خوشحاله وه دَ دهٔ په مال کښے برکت راشي او مال او فائدے ورته زیاتے حاصلے شي -

دلته دا خبره دَ غور کولو قابله ده چه په آیت کښے دَ سود دَ ورکیدو او دَ صدقو دَ زیاتیدو څهٔ مطلب دے؟ بعضے تفسیر لیکونکی فرمائی چه دا ورکیدو او زیاتیدو دَ آخرت سره تعلق لری - چه دَ سود خور مال به په آخرت کښے دَ دهٔ په هیڅ کار رانشي بلکه دغه مال به دَ دهٔ دَ پاره عذاب جوړ شي - او دَ صدقے او خیرات کونکی مال به دَ دهٔ دَ پاره په آخرت کښے دَ همیشه نعمتونو او راحتونو سبب جوړ شي - او دا بالکل ښکاره خبره ده هیڅ شك شبه په کښے نیشته - او عام مفسرین (تفسیر لیکونکی) فرمائی چه دَ سود ورکیدل او دَ صدقو زیاتیدل دَ آخرت دَ پاره خو دی - لیکن دَ دے څهٔ نښے په دُنیا کښے هم لیدلے شي -

سود چه په کوم مال کښے شامل شي بعض وخت خو هغه مال په خپله هلاك او برباد شي او هغه زوړ مال هم دَ ځان سره لاهو کړی - لکه چه دَ سود او سټے په بازار ونو کښے همیشه خلق وینی چه لوئے لوئے کروړ پتیان دَ سترګو په رپ کښے دیوالیه او فقیران جوړ شي پرے سوده تجارت کښے هم نفع او نقصان کله کله وی او ډیر سوداګر په څنے وخت تاوان هم اوکړی خو دا تاوان داسے تاوان نه وی چه لکه دَ سود خوړونکی کروړپتی وی او صبا دَ پیسے محتاج وی - دا صرف دَ سود او سټے په بازار ونو کښے وی - او دَ تجربه کونکو بے شماره خبرے په دے باره کښے مشهورے دی چه دَ سود مال که فوری طور خو مره زیات هم شي خو اکثر نا پائیدار او ختمیدونکے وی چه فائده ئے اولاد او نسلونو ته دَ رسی - اکثر څهٔ نه څهٔ آفت راشي او دا برباد کړی - حضرت معمرؒ فرمائی چه مونږ دَ مشرانو نه آوریدلی دی چه په سود خور خلویښت کاله نه وی تیر شوی چه په مال ئے "محاق" یعنے کمیدل شروع شي -

او که په ظاهری طور ئے مال برباد او ضائع هم نه شي - خو دَ فائدو او برکتونو نه ئے محرومی یقینی او لازمی ده - ځکه چه دا خبره څهٔ پټه نه ده - چه سړهٔ سپین په خپله څه دَ کار شے نه دے په دے نه لوږه دفع کیږی او نه پرے تنده ماتیږی او نه دَ ګرمئ او یخنئ نه دَ

بیخ کیدو د پاره عبوره ولې یا اغوستلې شي. او نه د کپړو او لوخو کار ورکولې شي - او پیاد دے د حاصلولو د پاره چه څومره تکلیفونه او سختۍ په ځان تیره ولې شي نو د یو هوښیار سړي په نزد د دینه سوا نور هیڅ نه شي کیدے چه سره سپین ذریعه ده د دا سې څیزونو د حاصلولو چه په هغې د انسان ژوند خه کیدے شي او دے پرے د راحت او عزت ژوند تیر کړے شي - او د انسان دا فطري خواهش وي چه دا راحت او عزت څنګه چه ده ته حاصل دے د ده اولاد او متعلقینو ته دے هم حاصل وي -

دا هغه څیزونه دي چه د مال دولت فائدے او ثمرے ورته ویلې شي نو د دے په نتیجه کښې دا دلیل صحیح دي چه کوم سړي ته دا فائدے او ثمرے حاصلې شوے نو د هغهٔ مال په یو حیثیت سره زیات شو اګر چه په لیدو کښې کم وي - او چا ته چه دا فائدے او مزے حاصلې نه شوے نو د ده مال په یو حیثیت سره ورک او کم شو اګر که د سترګو په نظر کښې ډیر ښکاري -

چه په دے خبره پوهه شوے نو او س د سود د کاروبار کونکوا و صدقے او خیرات کونکو د کار و نو جائزه واخلئ - نو دا خبره به درته ښکاره شي چه د سود خور مال اګر چه زیاتیدو ونکے په نظر راځي لیکن دغه زیاتیدل داسې دي لکه د یو انسان په بدن چه پړسوب وغیره راشي نو د پړسوب زیاتے اګر چه د بدن زیاتے دے لیکن یو هوښیار سړے هم دا زیاتے نه خوښوي ځکه چه دے پو هیږي چه دا زیاتے د مرګ استازے دے - نو دغه شان که د سود خور مال هر څومره زیات شي - خو د مال د فائدو او مزو یعنې د راحتونو او عزتونو نه همیشه محرومه وي -

د لته به شاید چه څینې خلقو ته دا شك راځي چه نن صبا خو سود خواره په لوئیو لوئیو راحتونو او مزو کښې دي د کوټو او بنګلو مالکان دي - د عیش او آرام ټول سامان ورته حاصل دے - د خوړلو سکلو اغوستلو د اوسیدلو ټول ضروري سامانونه بلکه د عیش وعشرت او فضولیاتو ټول هر څه ورته حاصل دي - د نوکرچاکر شان شوکت ټول سامان ورته موجود دے - لیکن که غور او فکر او کړے شي نو هر سړے به پوهه شي چه په سامان د راحت او په عین راحت کښې لوئے فرق دے - د راحت سامان خو په کارخانو کښې جوړیږي او په بازارو نو کښې خرڅیږي او د سرو سپینو په بدله کښې حاصلیدے شي - لیکن راحت چه د څه شي نوم دے او څه ته چه ویلې شي هغهٔ نه په یو کارخانه کښې جوړیږي

نهٔ په یوه منډه هم کښې خوځیږی - هغه یو دا سې رحمت دے چه نیغ په نیغه د الله تعٰ
د طرفه ورکیدے شی دغه بعض وخت د زرگو نو سامانونو سره سره هم نه حاصلیږی
د خوب دا آرام داسې دے چه د دے د حاصلولو د پاره خو دا کول شی چه د خوب نه خونه
مکان ورله جوړه ولے شی د هوا او رنڼا خهٔ پوره انتظام په کښې کولے شی او خهٔ خائسته
او ښکلے سامان او بستر په کښې تیاره ولے شی - کټونه گدے او تکیه گانے به کښې د
غوره نه غوره تیاره ولے شی خو که دا هرڅه په کښې تیار کړی نو خوب به ورلوه راشی؟
که پتا سو په خپله چرته داسې حالت نه وی راغلے نو په زرگونو داسې خلق موجود
دی چه هغه به او وائی چه په دے سامانونو تیاره ولو کښې خواب نیشتے چا لوه چه
په څه وجه یا عارضه خواب نه ورځی - یعنے د خواب راحت د دے سامانونو په
تیاره ولو سره هم کونه شی حاصلیدے - د امریکے غوندے د مالدار او متمدن
ملک د بعضے رپوټونو نه معلوم شوے ده چه هلته په سلو کښې پنځه اویا (۷۵)
کسان د خواب راوستونکو گولو د خوړلو نه بغیر نه شی اوده کیدے - او بعض
وخت خو دا د خواب گولئ هم کار نه کوی - د خواب سامان خو به د بازار نه واغستے
شی خو خواب په هیڅ قیمت هم د بازار نه نهٔ شی اغستے کیدے - دغه شان د نورو
راحتونو او خوندونو حال دے چه سامان خوئے په روپیو د بازار نه
اغستے شی خو خپله راحت او مزه چرته هم په بازار کښې نه شی اغستے -
په دے خبره د پوهیدو نه پس د سودخورو د حال اندازه واخلئ د دوی
سره به تاسو هرڅهٔ او وینئ خو د آرام او راحت نوم به ورسره هم بیا نهٔ مومئ - دوی
به تاسو د خپلو یو کروړ روپو یونیم کروړ کولو او یونیم کروړ دوه کولو کښې داسې
مست او وینئ چه نهٔ به ورسره د خپل خوراک سکاک هوش وی او نه د خپل بال بچ
څوملونه چلیږی څو جهازونه د بل ملک نه راغلو څو لاړه په دے سوچونو او فکرونو
کښې صبا کیږی او بیگا کیږی - افسوس چه دے لیونو د راحت سامان لره د راحت
نوم ورکړے دے او په حقیقت کښې تر دے راحت په میلونو لرے دے -
دا حال خو د دوی د راحت دے او س ئے عزت ته او گورئ - د دے خلقو زړهٔ
سخت او بے رحمه وی - د دوی کسب دا وی چه د غریبانو د غریبئ نه - او د
کمزورو د کمزورئ نه فائده واخلی وینه ئے اوسکی او خپل بدن پرے اوپالی

نو په دے وجه داکیدے نه شی چه د خلقو په زړونو کښے د دوی څه عزت او وقار وی، د خپل ملک د بنړیا ګانو او د شام د یهودیانو تاریخ اُولولئ، د هغوی حالات اُوګورئ چه د هغوی ګلے، سیفونه (تجوریانے) څومره د سرو سپینو او جواهراتو نه ډکے وی لیکن د دُنیا په یو کوټ کښے هم د بنی آدمو یو طبقے د وی ته د عزت په نظر نه ګوری کتلی. بلکه د دوی د دے کار لازمی نتیجه دا شی چه د کمزورو او غریبانو خلقو په زړونو کښے د وی ته بُغض او نفرت پیدا شی. او نن صبا خو د دُنیا ټول جنګونه د دے بغض او نفرت نښے دی. د محنت او سرمائے جنګ په دُنیا کښے د اِشتراکیت او اِشتمالیت نظریئے پیدا کړے. د ګمیونزم د دُړانو سوکرمئ هم د دے بُغض او نفرت نتیجه ده. چه د ټولے دُنیا نه ئے د جنګونو او جګړو په وجه یو جهنّم جوړ کړے دے. دا حال خوئے د خپل راحت او عزّت دے. او په تجربه سره معلومه شوے ده چه د سود مال د سود خور د راتلونکو نسلونو ژوند هم نه مزیدار کوی. یا خو د سره دغه مال ضائع شی او یائے دوی د حقیقی مزو او راحتونو نه محرومه او ذلیل اوسی.

خلق به د یورپ د سود خورو د مثال نه شاید چه په دهوکه کښے راشیٔ چه هغوی خو ټول خهٔ خوشحاله دی. او نسلونه ئے هم بیئهٔ په ترقیٔ دی لیکن اوّل خو د دوی د خوشحالئ یو سرسری خاکه (نقشه) پیش کړه.

دویم د دوی مثال داسے دے لکه سړی خور چه د نورو خلقو وینے اُوسکی خپل بدن پرے غټ پټ کړی. او داسے یو څو سړی خواره په یوه محله کښے آباد شی او تاسو څوک دے محلے له بوځیٔ او ورته او ښائیے چه اوګوره دا خلق څنګه غټ پټ او صحت مند شوی دی. لیکن یو هوښیار سړے چه د ټول مخلوق د خیګړے خواهشمند دے هغه به صرف دے محلے ته نه ګوری بلکه د دے په مقابله کښے به هغه کلو ته هم ګوری د کومو وینے چه دوی سکلے وی او هغوی له دے نیم مړوه (نه مړه او نه ژوندی) جوړ کړی وی. په دے محلے اوږه دغه کلو نظراچوُنکے به چرته د دے محلے په خربیه وخوشحاله نه شی. او دے به چرته هم د دوی دے کار ته د انسانی ترقیٔ ذریعه اونه وائی بلکه دے به د دوی دے عمل ته انسانی تبا هی او بربادی خامخا وائی.

د دے په مقابله کښې د صدقو او خیرات کونکو حال ته او گورئ - هغوی به تاسو چرته هم په مال پیسے دغه شان حیران او سرگردان اُوته وینئ - دوی ته اگر که د راحت سامان ډیر کم حاصل وی - لیکن د دغه ډیر وسامانو نو د خاوندانو نه به ورته اړام راحت او سکون د زړه چه اصلی راحت دے ډیر زیات دوی ته حاصل دی - او په دنیا کښې به هرسړے دوی ته د عزت په نظر سره گوری -

---

**یَمْحَقُ اللّٰهُ الرِّبٰوا وَيُرْبِي الصَّدَقٰتِ:**

خلاصه داده چه په دے ایت کښې کوم ارشاد دے: چه الله تعالیٰ سُود له ورکوی او صدقے زیاتوی: دا مضمون خو د آخرت په اعتبار سره بالکل صفا دے - او د دنیا په اعتبار سره هم که لږ په حقیقت د پوهیدو کوشش اُوشی نو بالکل ښکاره دے - هم دا دے مطلب د دے حدیث په کوم کښې چه نبی کریم صلّی الله علیه وسلّم فرمائی:-

اِنَّ الرِّبٰو وَاِنْ كَثُرَ فَاِنَّ عَاقِبَتَهٗ تَصِیْرُ اِلٰی قُلٍّ -

یعنے سُود اگر چه څومره زیات شی مگر آخر کار نتیجه ئے کم والے دے -

دا روایت په مسند احمدؒ او ابن ماجه کښې ذکر دے -

دا ایت په اخر کښې ارشاد دے: وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ كُلَّ كَفَّارٍ اَثِيْمٍ: یعنے الله تعالیٰ نه خوښوی چا کفر کوونکی او د گناه کار کوونکی لره - په دے کښې اشاره ده دے خبرے ته چه کوم خلق سود حرام نه گنړی هغوی په کفر کښې اَخته دی - او څوک چه د حرام گنړلو سره بیا هم په هغے کښې مُبتلا او اَخته وی هغه گناهگار او فاسقان دی -

په دریم ایت کښې د نیکانو صالحانو مسلمانانو مومنانو ذکر دے چه د ه ما نځه روژے پابندی کوی - د دوی د لوئے اَجر او ثواب او د اخرت د راحتونو او مزو ذکر دے - چونکه د دینه په اوّلنی ایت کښې د سُود خورو د پاره د جهنّم د عذاب او د دوی د ذلّت او خوارئ ذکر راغلے وُه - نو د قرآن کریم د عام اُسلوب (طریقے) په مطابق د دے سره سم ئے د ایمان او نیک عمل او د مونځ روژے د پابندئ کوونکو د ثواب او د آخرت د درجو ذکر او کړه -

خلورم ایت: يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَذَرُوْا مَا بَقِيَ مِنَ الرِّبٰوا اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ٥: دَ دے خلاصه دا ده چه دَ سُود او ربو دَ حُرمت نازلیدو نه پس چه کوم دَ سُود رقمونه دَ چا په ذمّه پاتے وُو دَ هغې ورکول اَغستل ئے هم حرام کړه -

**وضاحت** دَ دے دا دے چه دَ سُود دَ حُرمت نازلیدو نه اوّل په عامو عربو کښے دَ سود رِوَاج خورشوے وُه. دَ دے ایت نه په وړمبو ایتونو کښے دَ دے منعې راغلو نو دَ عادت مطابق تولو مسلمانانو دَ سُود معاملے پاتے کړے - لیکن دَ ځینے خلقو دَ سُود پاتے رقمونه دَ ځینے خلقو په ذمه واجب الاداء وُه - په دے باره کښے دا سے دا قعه پیښه شوه - چه دَ بنی ثقیف او بنی مخزوم دَ یو بل سره دَ سود معامله وه - او دَ بنی ثقیف دَ څهٔ خلقو سُود دی مُطالبه په بنی مخزوم باندے وَه. بنی مخزوم مسلمانان شو. نو دَ اسلام راوړو نه پس هغوی دَ سُود رقم اداکول جائز نه ګڼړل - اَخوا دَ بنی ثقیف خلقو مطالبه شروع کړه - ځکه چه دا خلق مسلمانان شوی نه وُو. لیکن دَ مسلمانانو سره ئے صلح کړے وه، دَ بنی مخزوم خلقوا وَے چه په اسلام کښے دَ داخلیدو نه پس موږ نړه اسلامی ګټه دَ سُود په ادا کولو کښے نه خرچ کوُو.

داجګړه په مکه مکرّمه کښے راپیښه شوه. دغه وخت مکه فتح شوے وه. دَ حضور صلے الله علیه وسلم دَ طرف نه دَ مکے امیر حضرت معاذ رض او په بل روایت کښے عتّاب بن اُسیدؓ وُه. هغوی دَ دے جګړے فیصله دَ حضور صلے الله علیه وسلم په خدمت کښے دَ حکم معلومولو په غرض اُولیږله. نو په دے باندے دَ قرآن شریف دا ایت نازل شو - چه لنډ مطلب ئے دا دے چه: په اسلام کښے دَ داخلیدو نه پس دَ سُود تول مخکنی معاملات ختم دی تیر سُود به هم نه شی وصول کولے - صرف رأس المال (یعنے اصل مال) به وصول کولے شی -

دا اسلامی قانون رائج کړے شو نو مسلمانان خو دَ دے پابند وُو. او کوم چه غیر مسلم قبائل په طور دَ صلح او معاهدے اسلامی قانون قبول کړے وُه هغوی هم دَ دے پابند شوی وُو. لیکن دَ دے سره سره چه کله نبی کریم صلے الله علیه وسلّم دَ حجّة الوداع (اخري حج) په خطبه کښے دَ دے قانون اعلان اوکړو. نو دا خبره ئے هم ښکاره کړه چه دا قانون دَ چا خاص سړی یا قوم یا دَ مسلمانانو دَ مالی فائدے دَ تر مخه نه دے - بلکه دَ تول انسانیت دَ تعمیر ځیګړے او کامیابۍ دَ پاره جاری کړے شوے دے.

په دے وجه مونږ د ټولو نه اول د مسلمانانو چه کوم سود رقمونه چه د غیرمسلمو په ذمه وه ـ هغه پاتے کوو ـ نو اوس به دوی د خپل سودی پاتے رقم په بریخو دو کښے څه عُذر نه کوی ـ چنانچه په دے خطبه کښے ئے داسے اُوفرمائیل:

اَلَا اِنَّ کُلَّ رِبًوا کَانَ فِی الْجَاهِلِیَّةِ موضوع عنکم کله لکم رؤس اموالکم لاتَظلِمونَ ولاتُظلَمونَ واول ربوا موضوع ربا العباس ابن عبد المطلب کله (ابن کثیر بحواله ابن ابی حاتم)

یعنے د جاهلیت په زمانه کښے چه کوم سودی معاملات شوی دی ـ د ټولو سود پاتے کړے شو ـ اوس به هر سړی ته خپل اصل رقم ملاویږی ـ د سود زیاتی رقم به ورته نه ملاویږی ـ نه به تاسو د زیاتی وصول کولو په وجه په چا ظلم کوئے او نه به څوک ستاسو په اصل مال کښے کمے کوی (یعنی په تاسو ظلم کوی) ـ او د ټولو نه اول چه کوم سود پاتے کړے شو هغه د عباس بن عبدالمطلب سود دے ـ چه د هغے ډیر زیات رقم د غیرمسلمو په ذمه په طور د سود واجب الاداء وه ـ د قرآن کریم په دے ذکر شوی ایت کښے دے واقعے طرف ته اشاره ، او د سود د پاتے رقم د بریخو دو حکم مذکور دے ـ

د دے ایت شروع داسے اوشوه چه مسلمانانو ته ئے خطاب اول د: اِتَّقُوا اللهَ: یعنے حکم سره واورا وه چه د الله تعالیٰ نه اویریږئ د دے نه پس ئے د اصل مسئلے حکم اوخودو ـ دا د قرآن شریف هغه خاص طرز دے چه په دے سره دے د ټولے دُنیا د قانون د کتابونو نه ممتاز (اُوچت شان والا) دے ـ چه کله یو داسے قانون جوړولے شی چه په هغے عمل کول خلقو ته گران معلومیږی نو د هغے نه وړاندے ورستو د الله تعالیٰ نه یریدلو، او د قیامت په ورځ په مخکښے حاضری د اعمالو حساب او د اخرت د عذاب او ثواب ذکر اُوکړی د مسلمانانو ذهنونه او ذهنونه په دے باندے عمل کولو ته تیار کړی ـ او د دینه پس بیا حکم آوره وَلے شی ـ دلته هم د سود مال پاتے کول مسلمانانو ته یو بار شان معلومیده نو په دے وجه ئے تر دے اول: اِتَّقُوا اللهَ: او فرمایل او د دینه پس ئے حکم ورکړو چه: ذَرُوْا مَا بَقِیَ مِنَ الرِّبٰوا: دے ـ یعنے پاتے کړئ بقایا سود لوره ـ او د ایت په اخر کښے ئے او فرمائیل: اِنْ کُنْتُمْ مُّؤْمِنِیْنَ: یعنے که چرے تاسو ایماندار یئے ـ په دے کښے ئے اشاره او کړه چه د ایمان تقاضا (خواهش) دا ده چه د الله تعالیٰ حکم اُومنلے شی ـ

او د الله تعالیٰ نافرني د ایمان نښتې والې ده. دا حکم چونکه په طبیعتونو بانديې ګران وه
په دې وجه ئې د حکم کولو نه وړمبی: اِتَّقُوا اللهَ: او د حکم کولو نه پس: اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ: او
فرمايل۔

د دینه پس ئې په پنځم ایت کښې د دې حکم خلاف کونکو ته سختې سزا ګانې واوره ولې
چه مضمون ئې دا دے چه که تاسو سود پاتې نه کړو نو د الله تعالیٰ او د هغه د رسول د
طرفه اعلانِ جنګ واورئ: دا سخته سزا ده چه د کفر نه سوا په بل یو د داسې
لويو نه په لوئې ګناه داسې سخته سزا نه ده راغلې۔ بیا د دې ایت په اخر کښې ارشاد
فرمائي:

وَاِنْ تُبْتُمْ فَلَكُمْ رُءُوْسُ اَمْوَالِكُمْ لَا تَظْلِمُوْنَ وَلَا تُظْلَمُوْنَ: یعنې که تاسو توبه اوکړه
او د آئنده د پاره مو د سود د پاتې رقم د پريښودلو قصد اوکړو نو تاسو ته به
ستاسو اصل مال ملاويږي: نه به تاسو د اصل مال نه په زياتي حاصلولو په بل ظلم
کوئې، او نه به څوک ستاسو په اصل مال کښې کمې کوي چه په تاسو به ظلم کوي۔ په دې
ئې د اصل رأس المال د ملاويدو سره دا شوط تړلے دے چه تاسو توبه اوکړئ
او د آئنده د پاره د سود پاتې کولو قصد اوکړئ۔ نو پس د هغې به درته اصل رأس
المال (یعنې ستاسو اصلي مال) ملاؤ شي۔

د دے په ظاهره دے طرفته اشاره ده چه که د سود پاتې کولو د قصد کولو
سره توبه او نه کړي۔ نو اصل رأس المال به هم نه ملاويږي۔ پس د دے تفصيل
دا دے۔ چه که د مسلمانانو وباوجود هغه وسود حرام او نه ګنړي او په دے وجه د
سود پاتې کولو نه توبه او نه کړي پس دا سړے د اسلام نه خارج او مرتد دے
چه د ده حکم دا دے چه د مرتد مال د ده د ملک نه (تصرف نه) اوځي۔ بیا چه کوم مال
ده په زمانه د اسلام کښې ګټلے وي هغه به د ده مسلمان وارثانو ته ملاؤ شي او کوم
چه ئې د کافر کېدو نه پس ګټلے دے هغه به په بيت المال کښې جمع کړے شي۔ په دے
وچه د سود نه توبه نه کول که د حلال ګنړلو په وجه سره وي۔ نو ده ته به اصل رأس
المال هم نه ملاويږي۔ او که حلال ئې نه ګنړي خو عملاً ترې نه واپس کيږي او د لره
جوړه وي د اسلامي حکومت مقابله کوي نو دے باغي دے۔ د ده به هم ټول مال ضبط
کولے شي او په بيت المال کښې به امانت ايښودے شي۔ چه کله دے توبه اوباسي نو پس

دَ هغې به دَ دهٔ مال دهٔ ته واپس شي. شائد چه دا یې قسم جزئیاتو طرفته دَ اشاره کوَلو دَپاره ئې دَ شرط په صورت کښې دا سې فرمایلي وي: وَإِنْ تُبْتُمْ فَلَكُمْ رُءُوسُ أَمْوَالِكُمْ: یعنې که تاسو توبه اونه کړه نو ستاسو رأس المال به هم ضبط شي.

دَ دې نه پس په شپږم آیت کښې دَ سُود خورئ غونډ ې انسانیت سوز او انسان دشمن حرکت په مقابله کښې دَ پاکیزه اخلاقو او دَ غریبانو او نادارو سره دَ نرمئ او مهربانئ دَ سُلوک کولو تعلیم ورکولے شي فرمائي: وَإِنْ كَانَ ذُو عُسْرَةٍ فَنَظِرَةٌ إِلَىٰ مَيْسَرَةٍ وَأَنْ تَصَدَّقُوا خَيْرٌ لَكُمْ: یعنې که ستاسو قرضدار ې تنګدسته وي ستاسو قرضه نه شي اَدا کولے نو شرعي حکم دا دے چه دهٔ ته تر فراخئ او وَ سُعت رسیدو پورې مهلت دې ورکړے شي. او که تاسو دهٔ ته خپله قرضه معاف کړئ نو دا ستاسو دَپاره زیات ته غوره ده.

دَ سوخورو عادت دا وي چه که قرضدار ئې مُفلِس وي او په مقرر میعاد قرضه نه شي اداکولے نو دَ سود رقم دَ اصل سره جمع کوي او دَ سود در سود سلسله چلَوي او دَ سود مقدار هم نور سِوا کوي.

نو دلته دَ حاکمانو حاکم دا قانون جوړ کړه چه که یو قرضدار ې واقعي مُفلِس وي او دَ قرض په اَدا کولو قادر نه وي نو دَ دهٔ تنګول جائز نه دي بلکه دهٔ ته دَ هغې وَخته پورې مُهلت ورکول په کار دي ترڅو چه دے په اَدا کولو قادر شوے نه وي. او دَ دې سره ئې دا ترغیب (مینه) هم ورکړه چه دے غریب ته که خپل قرض معاف کړئ نو دا ستاسو دَپاره زیاته غوره ده.

دلته معاف کول قرآن په لفظ دَ صدقې سره بیان کړل چه دیته په کښې اشاره ده چه دا معاف کول به ستاسو دَپاره دَ صدقې په حکم کښې شي یو لوئے ثواب به اُوګټئ. دا رنګې دا چه ئې اوفرمایل چه: معاف کول ستاسو دَپاره زیات غوره دي: او حال دا دے چه په ظاهره خو دَ دوي دَپاره دَ نقصان سبب دے. چه دَ سُود پاتے کول خهٔ وُو چه اصل سرمایه ورسره هم لاړه. لیکن قرآن دے ته غوره اُووے. دَ دې دوه وجې دي. اوّل دا چه دا غوره والے به دے دَ دې دنیا دَ دې څو ورځې جوندون نه پس او وینی چه کله دَ دې معمولي مال په بدله کښې دهٔ ته دَ جنّت هغه همیشه پاتے کیدونکي نعمتونه ملاؤ شي.

دویم شاید چه دے طرفته هم اشاره وی. چه په دنیا کښے به هم تاسو ته ستاسو د دے عمل غوره ګټه معلومه شي. چه ستاسو په مال کښے به برکت راشي. د برکت حقیقت دا دے چه په لږ مال به ډیر کار کیږی. دا ضروری نه ده چه د مال مقدار یا تعداد به زیات شي. پس دا لیدلے شویدی چه د صدقو او خیرات کونکو په مال کښے بے شماره برکت وی. د دوی په لږ مال سره دومره کار کیږی چه د حرام مال والو په ډیرو ډیرو مالونو سره د غه هومره کار نه کیږی.

او په کوم مال کښے چه بے برکتي وی د هغه دا حال وی چه د کوم مقصد د پاره ئے خرچ کوی هغه مقصد نه حاصلیږی او یا په غیر مقصودی څیزونو مثلاً په دوایانو، علاجونو، د ډاکټرانو په فیسونو کښے د داسے مال دارانو لوئے لوئے رقمونه خرچ کیږی چه غریبانانو ته چرته هم دغه ضرورتونه نه راپیښیږی، اوّل خو الله تعالیٰ غریبانو له روغ ساتی چه په علاجونو ئے هیڅ خرچ ته ضرورت نه راځی. او که بیماری ورله چرته راهم شي نو په معمولی خرچ سره جوړیږی په دے وجه سره غریب قرضداری ته قرض معاف کول اګرچه په ظاهره د ده د پاره په کښے نقصان ښکاریده. خو د دے قرآنی تعلیم په رڼا کښے هغه یو فائده مند کار جوړ شه.

د غریب قرضداری سره د نرمئ او په هغهٔ د اسانئ راوستو په باره کښے چه د تعلیم د پاره په صحیح احادیثو کښے کوم ارشادات راغلی دی د هغے یو څو جملے واورئ

د طبرانی په یو حدیث کښے دی چه: کوم سړے داغواړی چه د هغهٔ په سر دے د الله تعالیٰ د رحمت سورے وی په هغه ورځ کله چه چا ته هیڅ سورے د سر پټولو د پاره نه ملاویږی. نو دهٔ له په کار دی چه د تنګدست قرضدار ی سره د نرمئ او آسانئ معامله کوی، یائے معاف کړی:-

د دے مضمون یو حدیث په صحیح مسلم کښے هم دے. او په مسند احمدؒ کښے په یو حدیث کښے دی چه: کوم سړے یو غریب قرضداری له مهلت ورکړی. نو دهٔ ته به هره ورځ د دومره رقم د خیرات کولو ثواب ملاویږی څومره چه د دے قرضداری په ذمه واجب الاداء دے، او دا حساب د قرضے د میعاد پوره کیدو نه د مخکښے مهلت د پاره دے، او کله چه د قرضے د ورکولو میعاد پوره شي الاخر ورته

بیا نو مهلت ورکړی هر کله چه دغه قرضد اړے په قرضه اداکولو باندے قادر نه وی. او که تهٔ بیا هم ورته معافی ورکړی نو دغه قرضه که صدقه شی نو تهٔ لره به ثواب ملاویږی؛ (لکه چه) نو دهٔ ته په هر ورځ عوض کښے دومره دوه چنده مال صدقه کولو ثواب ملاویږی؛

په یو حدیث کښے دی چه: که څوک داغوښتی چه د دهٔ دُعا دے قبوله وی یا دے د دهٔ مصیبتونه لرے شی نو دهٔ لره په کار دی چه تنګ ست قرضدار لره مهلت ورکړی: -

د دینه پس په آخری آیت کښے بیا د ورځے د قیامت یره او د محشر په حساب کتاب او د ثواب عذاب په ذکر سره ئے د سود د احکامو آیاتونه ختم کړه. ارشاد فرمائی چه:-

وَاتَّقُوْا یَوْمًا تُرْجَعُوْنَ فِیْهِ اِلَى اللّٰهِ ثُمَّ تُوَفّٰى كُلُّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ وَ هُمْ لَا یُظْلَمُوْنَ ه: "یعنے اوویریږئ د هغے ورځے نه په کومه کښے چه به تاسو ټول د الله تعالیٰ په وړاندے پیش کړے شئ، او بیا به هر سړی ته د خپل خپل عمل پوره پوره بدله ملاؤ شی"

حضرت عبد الله ابن عباس رضی فرمائی چه دا آیت د نزول په اعتبار سره د ټولو نه آخری آیت دے۔ د دهٔ نه پس یو آیت نازل نه شه، د دینه یو دیرش ورځے پس د نبی علیه الصلوة والسلام وفات اُوشه - او په بعض روایتونو کښے وائی چه صرف نهٔ ورځے پس وفات اُوشه -

تر دے ځائے پورے د سود د احکامو سره تعلق لرونکی د سورهٔ بقرهٔ د اوؤه آیتونو تفسیر راغلے دے - د سود په حرمت او ممانعت باندے په قرآن کریم کښے په سورهٔ بقرهٔ کښے دا ذکر شوی اوؤه آیاتونه، او په سورهٔ آل عمران کښے یو آیت په سورهٔ نساء کښے دوه آیاتونه راغلی دی - او یو آیت په سورهٔ روم کښے هم دے چه په تفسیر کښے ئے اختلاف دے بعض حضراتو دے لرهٔ هم د سود بیاج په مفهوم باندے حمل کړے دے بعضو ئے بل شان تفسیر بیان کړے دے - دغه شان په قرآن شریف کښے لس آیاتونه دی چه د سود او رباء احکام په کښے ذکر دی -

د سود د پوره حقیقت خودلو نه اول مناسب ده چه د هغه باقی آیاتونو ترجمه او تفسیر هم دلته او لیکلے شی کوم چه په سورتِ آلِ عمران او سورتِ نساء او سورتِ روم کښے راغی - د دے د پاره چه ټول آیاتونه یو ځائے شی او د سود

په حقیقت باندې د پوهه کید وخبره کښې آساني راشي.

د سورت آل عمران د دیارلسم رکوع یوسلو دیرشم ایت دا دے:

| | |
|---|---|
| يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَأْكُلُوا الرِّبَا أَضْعَافًا مُضَاعَفَةً وَاتَّقُوا اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ٥ | یعنی اے ایماندارو سود مه خورئ د حصې نه زیات او د الله تعالیٰ نه اویرېږئ امید دے چه تاسو کامیاب شئ" |

د دے آیت د نزول یو خاصه واقعه ده چه په عربو کښې د جاهلیت په وخت کښې د سود خورئ په عام طور سره دا طریقه وه چه د یو خاص مقرر میعاد پورې به ئې قرض په سود باندې ورکاوه. او کله چه به هغه مقرره نیټه راغله او قرضدار به ئې په ادا کولو قادر نه وه نو نور مهلت به ئې ورلوه په دے شرط ورکاوه چه د سود مقدار دے زیات کړے شي. دغه شان چه به په دے دویمه نیټه هم ادا نکی او نه شوه نو د سود مقدار به ئې نور هم زیات کړو. دا واقعه په عامو د تفسیر په کتابونو او خاص په لُبَابُ النقول کښې په روایت د مجاهد ذکر ده.

د جاهلیت د عربو د دے قوم تباه کونکی رسم د ورکولو د پاره دا ایت نازل شو. په دے وجه په دے ایت کښې ئې: اَضعافًا مُّضَاعفةً (یعنې څو حصې زیاتې) او فرمایل د دوی د رواجی طریقې بد والی د قوم تباهي او خود غرضي ئې دوی ته ښکاره کړه او حرام ئې مقرر کړو. د دے دا معنی نه ده چه که چند در چند نه وی نو بیا حرام نه دے. ځکه چه په سورت بقره او سورت نساء کښې ئې صفا حرام والی ذکر دے که اضعاف مضاعف (چند در چند) وی او که نه وی. د دے مثال داسې دے چه لکه په قرآن شریف کښې ئې ځائې په ځائې فرمایلی دی چه: لَا تَشْتَرُوا بِآيَاتِي ثَمَنًا قَلِيلًا: "یعنې زما په ایاتونو باندې لږ شان قیمت مه اخلئ" په دے کښې ئې لږ شان قیمت ځکه اوفرمایه چه د الله تعالیٰ د ایاتونو په بدله کښې که د اوه قونجه دنیا حکومت هم واغستے شي خو دا به لږ قیمت وی. د دے دا معنیٰ نه ده چه قرآن د ایاتونو په بدله کښې لږ قیمت اغستل حرام دی او زیات اغستل جائز دی. دغه شان په دے ایت کښې د اَضْعَافًا مُّضَاعَفَةً لفظ د دوی په دے شرمیدلې طریقې باندې د فکر کولو د پاره راوړے شو د حرمت شرط نه دے.

اوکه د سود په دے رواجی طریقې باندې غور اوکړے شي نو دا هم ویلے شي چه کله

(یعنې څو څو چنده زیاتي)

دَسود خوړلو عادت پرے وُهي نو بيا هغه سود يوائے سود نه پاتے کيږي بلکه لازمًا بيا اَضْعَافًا مُّضَاعَفَةً جوړيږي۔ ځکه چه کوم رقم په سود سره حاصل شي او دَسود خور په مال کښے شامل شي نو اوس به دغه زياتے مال هم په سود چلولے شي نو سُود مضاعف به شي او چه دا سلسله دغسے مخه لاړه شي نو اَضْعَافًا مُّضَاعَفَةً به شي او دغسے هر يو سُود اَضْعَافًا مُّضَاعَفَةً جوړيږي۔

او دَسورت نسآء دوه آيتونه دَسود متعلق دادي:

فَبِظُلْمٍ مِّنَ الَّذِيْنَ هَادُوْا حَرَّمْنَا عَلَيْهِمْ طَيِّبٰتٍ اُحِلَّتْ لَهُمْ وَ بِصَدِّهِمْ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ كَثِيْرًا ۙ وَّ اَخْذِهِمُ الرِّبٰوا وَ قَدْ نُهُوْا عَنْهُ وَ اَكْلِهِمْ اَمْوَالَ النَّاسِ بِالْبَاطِلِ ؕ وَ اَعْتَدْنَا لِلْكٰفِرِيْنَ مِنْهُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا ۝

"يعنې دَ يهودو دَ دے لويو لويو جرمونو کولو په سبب، مونږ ډير پاکيزه څيزونه چه دَدوی دَ پاره حلال وُو په دوی حرام کړه او په سبب دَ دے چه دوی ډير خلق دَ لارے دَ خدائے نه منع کول او په سبب دَ دے چه دوی سود اخستو حالانکه دوی دَ دے نه منع کړی شوی وُو۔ او په سبب دَ دے چه دوی دَ خلقو مالونه په ناحقه طريقه سره خوړل او مونږ دَ دغے خلقو دَ پاره کوم چه په دوی کښے کافر دی دَ دردناکے سزا سامان مقرر کړے دے"

دَ دے دواړو آيتونو نه دا معلومه شوه چه دَ موسیٰ عليه السلام په شريعت کښے هم سُود حرام وُه۔ او يهودو چه کله دَ دے مخالفت اوکړهٔ۔ نو په دنيا کښے هم هغو ته دا مناسب سزا ورکړے شوه چه هغوی دَ دنيا دَ حرص په وجه حرام خوړل شروع کړهٔ۔ نو الله تعالیٰ په دوی باندے بعضې حلال څيزونه هم حرام کړه۔

او دَ سورت روم دَ څلورم رکوع يو کم څلويښتم آيت دا دے:۔

وَمَآ اٰتَيْتُمْ مِّنْ رِّبًا لِّيَرْبُوَا۟ فِيْٓ اَمْوَالِ النَّاسِ فَلَا يَرْبُوْا عِنْدَ اللّٰهِ ۚ وَ مَآ اٰتَيْتُمْ مِّنْ زَكٰوةٍ تُرِيْدُوْنَ وَجْهَ اللّٰهِ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُضْعِفُوْنَ ۝

"يعنې کوم شے چه تاسو دَ دے دَ پاره ورکوئے چه دا دَ خلقو مالونو ته او رسي زيات شي نو دا دَ الله تعالیٰ په نزد نه زياتيږي۔ او کوم چه زکوٰة ورکوئے چه دَ الله رضا مو ئے غواړئ نو دا سے خلق دَ الله په نزد زياتوونکی دی"

بعضے مُفَسِّرينو حضراتو په لفظ دَ رِباء او زياتی باندے نظر کړے دے نو دا آيت ئے هم

په سوُد باندے حمل کړے دے- یعنے مطلب ئے تر دے سود اَغستلے دے- او دا ئے
ورلوه تفسیر کړے دے چه په سود کښے اگرچه په ظاهره دَمال زیاتیدل ښکاری
خو په حقیقت کښے هغه زیاتے نه وی- لکه دَ یو سړی په بدن چه پړسوب راشی نو
په ظاهره خو دَ هغه په بدن کښے زیاتے ښکاری لیکن یو هوښیار سړے په دے
زیاتی خوشحاله نه وی بلکه دا زیاتے دَ هلاکت نښه وی- دَ دے په مقابله کښے په
زکوٰة او صدقو ورکولو سره اگرچه په ظاهره په مال کښے کمے راځی- خو په حقیقت کښے
هغه کمے نه وی بلکه دا کمے دَ زیاتوالی سبب وی- لکه یو سړے چه دَ گیډے نه
دَ خرابو لړے کولو دَ پاره مُسَهِل (دجلاب دَ دستو دوائی) خوری- یا رگ وهی وینه تو یے
اُوباسی نو په ظاهره خو دے په دے باندے کمزورے کیږی خو دا کمزوری دَ صحت او قوت
سبب گرځی-

او بعضے عالمانو دَ تفسیر دا ایت په سوُد نه دے حمل کړے بلکه دا مطلب ئے تر دے
اغستے دے چه کوم سړے چالره خپل مال په اخلاص او نیک نیتیٔ سره نه ورکوی
بلکه په دے نیّت سره ئے ورکړی چه زهٔ دا شے ورکړم نو هغه به ما لره دَ دے په بدله کښے
دَ دینه زیات راکړی- لکه په بعض خاندانونو کښے دَ نوته رسم دے چه دَ
والیٔ په طور نه بلکه دَ بدلے په غرض باندے ورکولے شی- دا ورکړه چونکه دَ الله تعالیٰ
دَ رضا کولو دَ پاره نه وی بلکه دَ خپل غرض دَ پاره وی نو په دے وجه ئے په ایت کښے
اوفرمایل چه په دے شان سره اگرچه په ظاهره مال زیاتیږی- لیکن دغه دَ الله
تعالیٰ په نزد نه زیاتیږی- البته کوم صدقات چه دَ الله تعالیٰ دَ راضی کولو دَ
پاره ورکړے شی په دے کښے اگرچه په ظاهره مال کمیږی مگر دَ الله تعالےٰ
په نزد هغه دو چنده او څلور چنده کیږی-

دَ دے تفسیر په بنا به دَ دے ایت مضمون هغه شی کوم چه په بل ایت کښے
رسولِ کریم صلے الله علیه وسلّم ته الله پاک فرمائی چه: وَلَا تَمۡنُن تَسۡتَكۡثِرُ: یعنے
ته په چا باندے احسان په دے نیّت سره مه کوه چه دَ دے په بدله کښے به زیات
مال تا ته حاصل شی-

او دَ سورتِ روم په دے ایت کښے په ظاهره دا دویم تفسیر زیات غوره معلومیږی
اوّل خو په دے وجه چه سورتِ روم مکی دے- او دَ دے دَ پاره دا ضروری نهٔ ده

له نوټ: دَ نم خادئ هغه رسم ته ویلے شی کوم چه په دا سے موقعو خپل خپلوان او دَ محلے خلق یو بل له ورکړه دَ بدل په طور سره کوی او دائے غرض وی چه بیا به مال راکوی (مترجم)

چه دَ دَهٔ هر آیت دے مکی وی خو بیا هم غالب گمان دا دے چه دا به ضرورمکی وی
ترځو چه دَ دے خلاف بل ثبوت ملاؤ نه شی۔ او چه آیت مکی شی نو بیا تر دے دَ
سُود حرام والے ځکه نهٔ ثابتیږی چه سُود په مدینه منوره کښے حرام شو یدے
یعنے دَ سود دَ حرمت آیاتونه په مدینه منوره کښے نازل شویدی۔ دَ دینه علاوه
دَ دے آیت نه چه محکښے کوم مضمون راغلے دے دَ هغے نه هم دَ دے دویم تفسیرغوره
والے معلومیږی۔ ځکه چه دَ دینه مخکښے فرمائی :۔

| | |
|---|---|
| فَاٰتِ ذَاالْقُرْبٰى حَقَّهٗ وَالْمِسْكِيْنَ وَابْنَ السَّبِيْلِ ذٰلِكَ خَيْرٌ لِّلَّذِيْنَ يُرِيْدُوْنَ وَجْهَ اللّٰهِ : | "خپلوانو ته دَ هغوی حق ورکوئ او مسکینانو او مسافرانو ته هم داؤ هغو خلقو دَ پاره ډیره غوره ده چه دَ الله دَ رضا طلب کوی :" |

په دے آیت کښے په خپلوانو، مسکینانو او مسافرانو دَ خرچ کولو دَ ثواب دَ پاره
دا شوط لږه ولے دے. چه نیت په کښے دَ الله تعالیٰ دَ رضا حاصلَولو وی۔ نو په
دا تلونکی ذکر شوی آیت کښے ئے دَ دے زیات وضاحت داسے اوکړه۔ چه که مال
چا ته په دے غرض ورکړے شی چه بدله به ئے دَ هغهٔ دَ طرفه زیاته ملاؤ شی
نو دا دَ الله تعالیٰ دَ رضا طلب کولو دَ پاره خرچ نه شو نو په دے وجه به ورته
ثواب نه ملاویږی۔
په هر حال دَ سُود دَ منع کید و په مسئله کښے که دا آیت پاتے هم شی نو دغه
نور چه ورانډے ذکر شویدی چه را یا تو نه راغلی دی چه سُود ئے حرام کړے دے
او چه دَ سورتِ آل عمرانٔ په یو آیت کښے خو ئے چند درچند سود حرام والے او په باقی
ټولو آیاتو نو کښے خو ئے دَ مطلق سود حرام والے بیان کړے دے۔ دَ دے تفصیل نه دا
خبره په ډاګه شوه چه سود خواه چند درچند وی او که سهل درسُود وی
یعنے څو غبرگے وی او که یو غبرگے خو بهرحال حرام دے۔ او حرام بیا هم دوموه
سخت چه دَ دے مخالفت کوُنکو ته ئے دَ الله او دَ هغهٔ دَ رسول دَ طرفه اعلانِ
جنګ آورَه ولے دے۔

(د یا الله مونږ ترے په امان کړے آمین)

---

# دَ سُود او رِباء دَ مسئلے

## څه زیات تشریح او تفصیل

نن صبا رِباء چونکه دَ تجارت دَ عام نظام یو لوئے رُکن او ستن جوړه شوے ده په دے وجه چه کله دَ قرآن او احادیثو آیاتونه او روایتونه دَ دے دَ حرام والی او ممانعت مخے ته راځی نو عام طبیعتونه دَ دے دَ حقیقت نه دَ ځان خبره ولو او پوهه کولو په وخت کښې دَ دے دَ حرام والی نه تړیږی او انے بهانے لټوی. ځما عرض دا دے چه دا بحث جُدا جُدا کړے شی او په هر یوه ځه ځئے ځان ځان له بحث په کار دے. او په خلط ملط کولو سره به ترے دَ ځانځے جو ړیږ ونه سوا بل څه حاصل نه شی. دلته دَ دے بحث درے حصے دی :-

اوَّل دا چه په قرآن او سنّت کښې دَ رِباء څه حقیقت دے؟ او دا په کومو کومو صورتونو کښې ده؟ -

دوَّیم دا چه دَ دے په حُرمت او ممانعت کښې کوم حکمت او مصلحت دے؟

دریَّم دا چه سود او رِباء خواه هرڅو مره چه ناکاره دی. خو نن صبا په دنیا کښې دَ ژوند دَ نظام او کاروبار دَ تجارت یو لوئے رکن (برخه) جوړ شوے دے. نو که دَ قرآن په احکامو عمل اوشی او دا پاتے کړے شی نو دَ بنکو نو او تجارتونو انتظام به څنګه او چلیږی؟ -

**دَ اصل رِباء په پیژندو کښې چرته وَهَم نه دے راغلے، دَ یو غلطۍ جواب :**

او س وا وُرئ چه لفظ دَ رِبو دَ عربۍ ژبے یو معلوم لفظ دے دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم دَ پیغمبر کیدو او دَ قرآن دَ نازلیدو نه اوّل دَ عربو په جاهلیّت کښې هم دا لفظ پیژندے شو. او نه صرف دا چه پیژندے شو بلکه دَ رباء لین دین عام جاری وُه. بلکه دَ سورت نساء دَ آیتونو نه دا هم معلومه شوه چه دَ ربوا لفظ او دَ دے معاملے په زمانه دَ توراتَّ کښې هم معلومے وے او په تورات کښې هم دے حرام کړے شوے وُه -

نو ښکاره خبره ده چه دا سے لفظ چه دَ پخوا زمانے نه په عربو او خواوُشا کښې معلوم دا روان وی او دَ لین دین رواج پرے چلیږی. او قرآن دَ دے دَ حرام والی او منع بیان

کولو سره دا هم خبره درکوی چه د موسیٰ علیه السلام په اُمت باندے هم سود او ربا حرام کړے شوی وُو۔ د دے لفظ حقیقت څهٔ دا سے پته نه شی کیدے چه د هغے په پوهیدو اویا معلومیدو کښے څه مشکلات وی۔

هم دغه وجه ده چه کله په سنه ۸ هجری کښے د سورتِ بقره آیا تونه د سُودُ د حراموالی په باره کښے نازل شو نو د اصحابو رضی الله عنهم نه په دے باره کښے چرته هم دا روایت نه دے راغلے چه د رِباء د لفظ په پوهیدو کښے د دوی نه څه اشتباه راغلے ده۔ او د نبی کریم صلے الله علیه وسلم نه ئے د نورو معاملو په شان د دے تحقیق کړے دے۔ بلکه لکه څنګه چه د شرابو د حرامیدو سره صحابه کرامو رضی الله عنهم په دے باندے عمل اوکړو۔ دغه شان د سود (رباء) د حُرمت د نازِلیدو سره فوراً ئے د رِباء ټولے معاملے پاتے کړے د تیرے زمانے په معاملو کښے چه د مسلمانانو کوم سُود د غیر مسلمو په ذِمّه واجب الادَاء وُه هغه هم مسلمانانو پریخودو۔ او کومه چه د غیر مُسلمو د مسلمانانو په ذمه واجب الاداء وه او مسلمانانو د مَنع د نازِلیدو نه پس د هغے ورکول نهٔ غوختل د دے جګړه د مکے د امیر په عدالت کښے وړاندے شوه هغوی د نبی کریم صلے الله علیه وسلم نه تپوس اوکړو نو د دے فیصله د سورتِ بقره په آیا تونو کښے د آسمان نه نازِله شوه چه د تیرے زمانے د پاتے سود لین دین هم اوس جائز نه دے۔

او په دے کښے چونکه غیر مُسلمو ته د شِکایت (ګِلے) دا موقع په لاس ورتله۔ چه د دوی اسلامی شرعی حکم په وجه زمونږ مال وَلے وهلے شی۔ نو د هغے د لرِے کولو د پاره نبی کریم صلے الله علیه وسلم د حجّة الوداع په خطبه کښے دا خبره په ډاګه کړه چه د دے شرعی حکم اثر صرف په غیر مسلمو نه دے بلکه په مسلمانانو باندے هم یو شان دے۔ او د ټولو نه اوّل چه د سُود کوم رقم پریخودے شه هغه د نبی کریم صلّے الله علیه وسلّم د تره محترم حضرت عباس رضی الله عنه هغه بے شماره رقم وُه۔

غرض دا دے چه د رباء د منع کیدو په وخت کښے د رِباء مطلب څهٔ پټ نه وُه په عام طور سره معلوم وُه۔ هغه رباء چه عرب به ورته رباء وے۔ او د دے لین دین ئے کولو قرآن حرامه کړه۔ او نبی کریم صلّے الله علیه وسلم نه دا صرف په اخلاقی طور د بلکه د مُلک د قانون په طور سره نافذه کړه۔ البته بعض نور داسے صورتونه هم دوی په رباء کښے شامل کړل چه په عام طور سره رباء نه شوه ګنړلے۔ د دے صورتونو

په مقروض کولو کښې حضرت فاروق اعظم رض ته اشتباه (شک) راوړاندې شو - او په دې کښې د مجتهدینو اماما نو په نظریو کښې اختلاف راغې - ورنه اصل د ربا کومې ته چه عربو ربا وې نه په هغې کښې چرته چا ته د شک موقع راغلې ده او نه په هغې کښې د چا اختلاف راغلې دے -

اوس دا وړې چه عربو کښې څه ربا رواج وه؟ د تفسیر امام ابن جریر رح د حضرت مجاهد رح نه نقل کړې دے - چه کومه ربا په جاهلیت کښې جاری وه او قرآن هغه منع کړه هغه داوه چه چا ته دیو مقروض یے پورے به ئے قرض ورکړو او په هغې به ئے د اصل راس المال نه مقروض کړے زیاتے اغستو - او که په مقرره نیټه به ئے هغه قرض ادا نه کړے شو نو نیټه به ئے ورته په دے شرط زیاتوله چه سود زیات کړی - هم دا مضمون حضرت قتاده رض او نورو حضراتو د تفسیر اماما نو نقل کړے دے۔ (تفسیر ابن جریر ص۶۲ ج ۳)

د اندلس د تفسیر مشهور امام ابو حیان غرناطی په تفسیر بحر محیط کښې هم د جاهلیت د ربا دغه صورت (شکل) لیکلے دے چه قرض به ئے ورکړو او په هغې به ئے نفع اغستله او څومره موده چه به ئے د قرض زیاتوله دومره به ئے پورے سود زیاتولو د دے نوم ربا وه - د دے جاهلیت د عربو خلقو به وے چه لکه څنګه په اغستلو او خرڅولو کښې فائده کول جائز دی دغه شان خپلے روپئ قرض ورکول او په هغې نفع اغستل هم جائز په کار دی - قرآن کریم دا حرام کړه او د بیعے او ربا حکمونه ئے جدا جدا واضح (ښکاره) کړل -

هم دا مضمون د تفسیر په ټولو مستندو کتابونو، تفسیر ابن کثیر، تفسیر کبیر او روح المعانی وغیره کښې په معتبرو روایتونو سره راغلے دے -

ابن عربی په احکام القرآن کښې فرمائی : الرِّبٰو فِي اللُّغَةِ الزِّيَادَةُ وَالْمُرَادُ بِهِ فِي الْآيَةِ كُلُّ زِيَادَةٍ لَا يُقَابِلُهَا عِوَضٌ (ص۱۰۱ ج ۲) یعنې د ربا معنی په اصل لغت کښې زیاتے دے او په آیت کښې د دینه مراد هغه زیاتے دے چه په مقابله کښې ئے څه مال نه وی بلکه محض قرض او د هغې میعاد وی - امام رازی رح په خپل تفسیر کښې فرمائی چه د ربا دوه قسمونه دی یو په معاملو اغستلو خرڅولو کښې د نغد ربا - دوئم د قرض ربا - او په جاهلیت د عربو کښې رواج د دے دوئم قسم ربا وه او دا په کښې مشهوره وه - چه دوی به خپل مال

چالو دَ مقررې نیټې پورې ورکاوه او هر میاشت به ئې د هغې نفع اخسته. او که په مقرره نیټه به ئې اداینګی او نه کړې شوه. نو میعاد (نیټه) به ئې نوره زیاتوله په دې شرط چه هغهٔ به د سود رقم نور زیات کړو. دا د جاهلیت رِبَآء وه. چه قرآن کریم حرامه کړه.

امام جصاصؒ په احکام القرآن کښې د رِبَآء معنیٰ دا بیان کړې ده:-

هُوَ الْقَرْضُ الْمَشْرُوْطُ فِيْهِ الْاَجَلُ وَزِيَادَةُ مَالٍ عَلَى الْمُسْتَقْرِضِ،

"یعنې هغه قرض وَه چه په هغې کښې به د ځٔۀ میعاد په پورې په دې شرط قرض ورکولې شو چه قرضدار ئې به د ځٔۀ ته د اصل مال نه زیات څۀ رقم اَدا کوی"

په حدیث کښې نبی کریم صلی الله علیه وسلم د رِبَآء تعریف داسې فرمایلې دے:-

كُلُّ قَرْضٍ جَرَّ نَفْعًا فَهُوَ رِبًا -

"یعنې کوم قرض چه نفع حاصلوی هغه رِبَآء ده"

دا حدیث په جامع صغیر کښې دے او عزیزی ورته اَحْسَنْ ویلې دے -

**لنډه** دا چه قرض ورکول او په هغې نفع اخستل رِبَآء ده - کومه چه د عربو د جاهلیت په زمانه کښې رواج او معلومه وه. چه د قرآن کریم په ذکر شوو آیاتو سره بنکاره په بنکاره حرامه شوه - او د دې آیاتو د نازلیدو سره اصحابوؓ پرې خوده - او نبی کریم صلی الله علیه وسلم په قانونی جګړو کښې دا نافذه کړه - نۀ په دے کښې څه ایهام (ریټ والی) وَه او نۀ اِجْمَال نۀ په دے کښې څه اشتباه وه او نۀ څۀ اِشکال -

البته نبی کریم صلی الله علیه وسلم د رِبَآء په مفهوم (په معنیٰ) کښې د اَخِستو او خرڅولو یو څو صورتونه هم داخل کړۀ کوم چه به عربو رِبَآء (سُود) نۀ ګڼړل - مثلاً د شپږ وخیزونو په اَخِستو خرڅولو کښې ئې دا حکم اوکړو چه که د دې یو لون کوئ نو برابر برابر په کار دے - که کمے زیاتے په کښې او شو یا په کښې قرض او شو نو هغه هم رِبَآء ده - دا شپږ خیزونه: سُرۀ، سپین، غنم، وُربشے، کجورے او انګور دی -

د دے اُصول لاندے چه د عربو په معاملو کښې کوم څو صورتونه د مزابنه[1]، او محاقله

[1] مزابنه: چه په وَنه پورے لګیدلے میوه د شوکولې میوے سره په اندازه بانده بدلوی او خرڅوی یے او محاقله: چه د ولاړ فصل غنم جو وغیره په او چ شوی ریبلې شوی او صاف شوی غلې غنو یا جنو وغیره سره په اندازه بدلولو سره خرڅوی - په اندازه کښې کمے زیاتے راځی په دے وجه دا منع شوی دی ۲ منه -

په نوم سره چليده - دَ رباٰ دَ ايت نازيليد و نه پس نبي كريم صلى الله عليه وسلم هغه په رباٰ (سُود) كښې شامل كړل او منع ئې كړل - (ابن كثير بحواله مستدرك حاكم ص۳۲۹ ج ۱)

په دے كښې داخبره دَ غور كولو وه چه دا څيز و نه خاص دى او كه نور څيزونه هم دَ دے نه علاوه په دے حكم كښې دى او كه داخل دى نو قاعده ئې څهٔ دهٔ؟ كوم كوم صورتونه به په رباٰ كښې داخل گنړلے شى؟ دا اشكال (شش وپنج) حضرت فاروق اعظم رضى الله عنه ته داوړا ندے شو نو په دے وجه هغهٔ اوفرمايل:

"اِنَّ اٰيَةَ الرِّبٰوا مِنْ اٰخِرِ مَا نَزَلَ مِنَ الْقُرْاٰنِ وَاِنَّ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم قُبِضَ قَبْلَ اَنْ يُّبَيِّنَهٗ لَنَا فَدَعُوا الرِّبٰوا وَالرِّيْبَةَ" (احكام القرآن، جصاص ص۵۵۱، وتفسير ابن كثير بحواله ابن ماجه ص۳۲۸ ج ۱)

يعنى ايت دَ ربٰو دَ قرآن دَ اٰخرى اياتونو نه دے - دَ دے دَ پوره تفصيل بيانولو نه اول نبى كريم صلى الله عليه وسلم وفات شو په دے وجه اوس احتياط په كار دے رباٰ خو دَ سره پاتے كول پكار دى او په كوم صورت كښې چه دَ رباٰ شك قدر وى نو هغه هم پريخودل په كار دى -

دَ فاروقِ اعظم رضى الله عنه مراد دَ اَغِستلو خرڅولو په معاملو كښې هغه صورتونه او دَ هغې تفصيلات دى چه دَ عرب دَ جاهليت په زمانه كښې سُود نه گنړلے كيدو او رسولِ كريم صلى الله عليه وسلم هغه په سُود كښې داخل كړهٔ او منع ئې كړهٔ، پاتے شو اصل سود نو دا خو په ټول عرب كښې معلوم او مشهور دهٔ - او صحابه كوا موڅ دغه پاتے كړو - او نبى كريم صلى الله عليه وسلم ئې قانون نافذ كړو - او دَ حجة الوداع (اٰخرى حج) په خطبه كښې ئې دَ دے اعلان اوكړهٔ - په دے كښې دَ فاروقِ اعظم رضى الله عنه دَ شك او شبهِ پيدا كيدو هيڅ امكان نيشته - او بيا چه كله فاروقِ اعظم رضى الله عنه ته دَ رباٰ په كومو خاصو صورتونو كښې شُبه راپيخه شوه نو هغې لره ئې دا سے حَل جوړ كړو چه په كومو صورتونو كښې دَ ربا شك قدر ے وى هغه دے پريخودے شى -

ليكن افسوس دے چه نن بعضِ هغه خلق چه دَ يورپ دَ ظاهرى دولت وال او دولتمندئ او په موجوده كاروبار دَ تجارت كښې دَ سُود په وَرَننو تو په رُعب كښې راغلى دى دوى دَ فاروقِ اعظم رضى الله عنه دَ دے بيان دا نتيجه راوُوِيستَه - چه دَ ربا معنى (مفهوم) غير واضحه يعنى مُجمَل پاتے شوے وه په دے وجه په دے كښې رائے وركول ځائے كيږى -

چه دَ دے دَ غلطید وادس پوره معلومات نۀ ته راغلی دی۔ په احکام القرآن کښے ابن عربی په دا سے خلقو سخت انکار کړے دے چا چه دَ دے فاروقؓ ارشاد په وجه دَ قرآن کریم دَ ربآء ایت ته مجمل (غیر واضح) ویلے دی :

ابن عربی په احکام القرآن کښے فرمائی :-

إِنَّ مَنْ زَعَمَ أَنَّ هٰذِهِ الْآيَةَ مُجْمَلَةٌ فَلَمْ يَفْهَمْ مَقَاطِعَ الشَّرِيْعَةِ فَإِنَّ اللّٰهَ تَعَالٰى أَرْسَلَ رَسُوْلَهٗ إِلٰى قَوْمٍ هُوَ مِنْهُمْ بِلُغَتِهِمْ وَأَنْزَلَ عَلَيْهِ كِتَابَهٗ تَيْسِيْرًا مِّنْهُ بِلِسَانِهٖ وَلِسَانِهِمْ وَالرِّبٰوا فِى اللُّغَةِ الزِّيَادَةُ وَالْمُرَادُ بِهٖ فِى الْآيَةِ كُلُّ زِيَادَةٍ لَا يُقَابِلُهَا عِوَضٌ،

"یعنے چا چه دا او وے چه دا ایت مجمل دے دَ شریعت په وضاحتونو نۀ دے پوهه ځکه چه الله تعالیٰ خپل رسولؐ دا سے قوم ته او لیږه چه دے په خپله دَ هغے قوم نه وُه دَ هغوی په ژبه ئے او لیږه په دوی ئے خپل کتاب دَ آسانئ دَ پاره دَ دوی په ژبه نازل کړو - او دَ لفظ دَ ربآء معنی دَ دوی په ژبه کښے دَ زیاتی وه - او مراد په ایت کښے هغه زیاتے دے چه دَ هغے په مقابله کښے مال نۀ وی بلکه نیته وی "

او امام رازیؒ په تفسیر کبیر کښے فرمائی چه دَ ربآء دوه قسمونه دی یو دَ قرض ربآء دویم دَ نقد بیع ربآء - او لنے قسم هغه دے چه دَ جاهلیت په زمانه کښے مشهور او معلوم وُه - او دَ جاهلیت خلقو په دے کښے لین دین کاوُه - او دویم قسم هغه دے چه حدیث ئے بیان کړے دے چه دَ فلانی فلانی شیونو په اغستلو خرڅولو کښے په کمی زیاتی سره ربآء (سود) راځی - او په سود کښے داخلیږی -

او په احکام القرآن جصاص کښے دی چه دَ ربآء دوه قسمونه دی - یو په اغستلو خرڅولو کښے دننه - دویم بغیر دَ اغستلو خرڅولو نه - او په زمانه دَ جاهلیت کښے ربآء دا دویم قسم وه - او دَ دے تعریف دا دے چه هر هغه قرض چه په مقرر نیته سره په کښے نفع واغستے شی - او دا مضمون ابن رشد په هدآیة المجتهد کښے لیکلے دے او په قرض باندے دَ نفع اغستلو ربآء حراموالے ئے په قرآن حدیث او اجماع امت سره ثابت کړے دے -

امام طحاویؒ په شرح معانی الآثار کښے په دے موضوع باندے په لوئے تفصیل

سره خیره کوی داخائ چه په قرآن شریف کښے کومه ربآء ذکوره کړے نه په غټ او ښکاره طور سره هغه ربآء مراد ده کومه چه په قرض نَسیا بانده اغستلے او ورکولے شی- او دیته برخے په زمانه دَ جاهلیت کښے ربآء وے - دَ دینه پس دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم په بیان او دَ دوی په سنتو سره دویم قسم ربآء معلومه شوه چه په خاص خاص اقسامو دَ اغستلو او خرڅولو کښے دَ کمی زیاتی یا قرض کولو نوم دے - او دَ دے ربآء په حراموالی بانده هم دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم احادیث متواتر راغلی دی- مګر دَ دے قسم ربآء دَ پوره وضاحت نه کولو په سبب په دے کښے بعض صحابه کرامو ته اشکال پیښ شوے دے او فقهاؤ په کښے اختلافات کړی دی (معانی الاثار ص۲۳۲ ج ۲)

او حضرت شاه ولی الله رحمة الله علیه په حجة الله البالغه کښے فرمایلی دی- چه ربآء یوه حقیقی ده او بله هغه ده چه په حکم دَ ربآء کښے ده حقیقی ربآء په قرض نَسیا دَ زیاتی اَغستو نوم دے او په حکم دَ ربآء کښے هغه دی چه بیان ئے په حدیث کښے راغلے دے چه دَ بعضے خاص څیزونو په بیعه کښے ئے زیاتی اَغستو ته ربآء ویلے ده- او په یو حدیث کښے چه کوم راغلی دی چه: لَا رِبا اِلّا فی النَّسِیة (رواه البخاری) یعنے ربا صرف په قرض کښے ده - دَ دے دا مطلب دے چه حقیقی او اصلی ربآء کومه چه عام طور سره ربآء ګڼلے شی او ربآء ورته ویلے شی هغه په قرض بانده دَ نفع اغستو نوم دے - دَ دے نه سوا څومره قسمونه چه ئے دَ دے سره پیوست کړی دی هغه ټول حکماً په ربو کښے داخل دی -

## دَ دے تفصیل نه څو خبرے پیدا که شوے

اوّل دا چه دَ قرآن دَ نازلیدو نه اول ربآء یو معلوم شے وه- په قرض نَسیا به ئے په حساب دَ لیتے زیاتی اَغستو ته ربآء ویله-

دویم دا چه په قرآن کښے دَ ربآء دَ حراموالی دَ نازلیدو سره ټولو صحابو دغه ربآء پاتے کړه - دَ دے په معنیٰ دَ ځان پوهه کولو دَ پاره هیڅ چا ته څه شك شبه نه ده پیښه شوے

دریم دا چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم دَ شپږو څیزونو په باره کښے دا ارشاد اوُ فرمایه چه دَ دوی دَ یو بل سره په اَغستلو خرڅولو کښے برابروالے شرط دے

کمے یا زیاتے په سود کښے داخل دے - او په دے کښے قرض کول هم په سود کښے داخل دی داشپږ څیزونه سره زر، سپین زر، غنم، وربشے، کجورے او انګوردی - او د دے قانون لاندے په عربو کښے رواجی قسمونه د بیعے مزابنه او محاقله وغیره حرام مقرر شوی دی - د نبی کریم صلے الله علیه په دے ارشاد کښے د شپږ څیزونو په اغستلو او خرڅولو کښے کمے زیاتے او قرض خو ښکاره په ربآء کښے داخل شوی او حرام شوی دی - لیکن په دوی کښے دا خبره د پوهے او اجتهاد ده - چه آیا دا حکم د دے شپږ څیزونو سره خاص دے او که نور شیونه په کښے هم دی - او ضابطه (طریقه) ئے څۀ ده؟ په دے ضابطه کښے فقهاؤ په خپل خپل غور او فکر او اجتهاد سره مختلف صورتونه جوړ کړل - او چونکه دا ضابطه په خپله نبی کریم صلے الله علیه وسلم نه وه بیان کړے نو په دے کښے د شکمن پاتے کیدو په وجه حضرت فاروق اعظمؓ په دے باندے افسوس ښکاره کړو چه کاش نبی کریم صلے الله علیه وسلم په خپله د دے څۀ ضابطه بیان کړے وے (یعنے څه طریقه ئے ورلره په خپله جوړه کړے او بیان کړے وے) نو د شک راتلو په وخت کښے به پرے تسلی کیده او بیا ئے دا ارشاد او فرمایه چه کوم ځائے د ربآء شبه قد رے وی نو د هغے نه ځان ساتل په کار دی -

خلاصه دا معلومه شوه چه اصلی او حقیقی ربو کومے ته چه فقهاؤ د قرآن ربو یا د قرض ربو نوم ورکړے دے دا هم هغه ده کومه چه په عربو کښے معلومه وه - یعنے په قرض باندے په حساب د نیټے سره نفع اغستل - دویم قسم ربآء کومه چه په احادیثو کښے خودلے شوے ده هغه هم تهوله د دے ربآء سره پیوست ده او د دے په حکم کښے ده - او څه خلاف او اختلاف چه په امت کښے شوے دے هغه تول په دے دویم قسم ربآء او معاملاتو کښے ئے شوے دے په اول قسم ربآء کومه چه قرآن کریم ورته ربآء وائی ټول امت د دے په حرامولی باندے متفق دے او په امت محمدی کښے تر اوسه پورے هیڅ هم په دے کښے اختلاف نه دے کړے -

دننه صبا چه کومه ربآء (سود) د انسانی معاشی معاملو بنیاد ګرځیدلے شی او د سود په مسئله کښے چه کوم پرے بحث روان دے دا هم هغه ربآء ده کومه د حراموالی په

باره کښې چه د قرآن اوګه ایاتونه او د خلو یختو نه زیات احادیث وارد دی او په اجماع د امت سره ثابت ده -

د ربا دویم قسم کوم چه د اغستلو خرڅولو د لاندې راځی نه د هغې رواج عام دے او نه په هغې کښې څۀ بحث کولو ته ضرورت شته -

تر دے ځائے پورے دا خبره په ډاګه شوه چه په قرآن او احادیثو کښې د ربا حقیقت (اصل) څۀ دے؟ کومه چه د سود د مسئلې اولنۍ خبره ده -

| | |
|---|---|
| د سود په حرامولی کښې حکمت او مصلحت | د دینه پس دویم بحث د دے دے چه د سود حرامولے او بندیز د کومے خیګړے او فائدے د لاندے دے- |

او په دے کښې د انسان د پاره کوم روحانی یا معاشی ضرورت دی چه د هغې په وجه اسلام دۀ لوه دومره لوئے ګناه مقرر کړه-

ولته کښې اول ځان په دے خبره پوهه کول ضروری دی چه د دُنیا تول مخلوق او د دوی معاملې چه دی په دوی کښې یو شے داسے نیشته- چه په هغې کښې څۀ نه څۀ خیګړه یا فائده نه وی مار، لړم، مچ، شرخ، او زهرو کښې هم د انسان د پاره په زرګونو فائدے دی- ـه

"د قدرت په کارخانه کښې یو شے ناکاره نیشته"

غلا، ډاکه، بدکاری، رشوت- په دوی کښې یو داسے شے داسے نیشته چه څۀ نه څۀ فائده په کښې نه وی- مګر هرهٔ هب او ملت او هر یو دارا ده دے ته ګوری چه په څۀ شی کښې نفع زیاته او نقصانونه کم وی هغه نفع منده او فائده منده بولی- او په کوموکښې چه فساد و ته زیات او نقصانونه سوا وی او نفع او فائدے ئے کې وی هغه مضر او بے کاره ګنړی- قرآن کریم هم د شرابو او جوارئ د حرامولو سره دا اعلان او کړه چه په دے کښې ګناه ډیر دے او د خلقو په کښې څۀ نفع هم دی- لیکن د ګناه وبال ئے د نفع په مقابله کښې زیات دے- په دے وجه دے خیزونو ته څۀ یا فائده منده نه شی ویلے- بلکه ډیر نقصانی او تباه کونکی ئے ګنړی ځان ساتل ئے ترے لازم کړل -

د ربا یعنې سود هم داحال دے- په دے کښې د سود خور د پاره څۀ وقتی نفع خامخا لیدے شی لیکن دنیوی او اخروی وبال ئے د دے نفع په مقابله کښې ډیر سخت دے-

په هر شي کښې د نفع نقصان د فساد او اصلاح موازنه کول لوکښې داخبره هم د هر عقلمند په نزد د کتو قابله وي چه که په یو شي کښې فائده صرف د یو وخت د پاره وي او نقصان ئې هميشه وي نو يو هوښيار هم دغه شي د فائدې په خيز ونو کښې نه شماري دغه شان که د يو شي نفع د يو تن د پاره وي او نقصان ئې پوره قوم ته رسي نو دې ته هم يو سړې د فائدې شے نه وائي - په غلا او ډاکه کښې خو د غل ډاکو ښکاره نفع ده - مګر ټول قوم ته ئې ضرر وي او امن او سکون ئې برباد وي - نو په دې وجه يو انسان هم غلا او ډاکے ته ښۀ نه وائي -

د دې بيان نه پس د سود په مسئله نظر واچوئ - نو د لږ شان غور کولو نه پس به معلومه شي چه په دې کښې د سود خور د وقتي فائدې په مقابله کښې د ۀ ته روحاني او اخلاقي دومره نقصان رسوي چه دے د سړيتوب نه اوباسي - او واچه د د ۀ کومه وقتي نفع ده هغه هم د د ۀ ذاتي نفع ده - او د دې په مقابله کښې ټول ملت ته يو لوئ نقصان او معاشي تباهي ده - ليکن د دنيا دا حال دے چه کله په دې کښې يو شے رواج شي نو د هغې خرابئ بيا د سترګو نه پناه شي او صرف فائدے ئې د نظر وړاندے وي اګر چه دغه فائدے سپکے ذليله او وقتي وي - خو د دغې شي دغه نقصانونه بيا د وي ته نه ښکاري - خواه هر څومره سخت او عام د ولے نه وي -

رسم او رواج د انسان د پاره يو نشه ده چه دے بالکل بے ځانه کوي - ډير کم خلق وي چه هغوي د رسم و رواج خرابو ته او نقصانونو ته ګوري او ځان پرے پوهه کوي چه د دے فائدے څومره دي او نقصانونه ئې څومره دي - بلکه که خوک ئې پوهه هم کړي او نقصان ئې ښکاره هم شي خو د رسم و رواج پابندي ئې ښځے لارے راوستو ته نه پريدي -

سود او ربا په دے زمانه کښې د وبائي مرض شکل اختيار کړے دے او د دے رواج ټوله دنيا په خپله ګيره کښې راينولے ده - او د انساني فطرت خوندئې بدل کړے دے چه ترخ ورته اوس خوږ ښکاري - او کوم شے د ټول انسانيت کاروبار د تباهئ او برباد وونکے دے هغه ئې د ترقئ د کاروبار د مسئلے حل ګڼړلے دے - نن که څوک يو د حق نکوونکے د دے خلاف آواز او چت کړي او خلق پوهه کوي - نو د ۀ ته به خلق پاګل او ليونے وائي -

دا هرڅۀ دغه ملګو هغه ډاکټر ډاکټر نۀ دے د انسانیت ډاکو دے چه په یو ملک کښے وُبا خوره شي او علاج ئے بیا نه وي - او دغه ډاکټر او وینی چه کَه دے وُبا علاج او کړان دے نو شروع شي او خلقو ته وائي چه کَه دے مرض نه او س یَره مه کوئے دا هیڅ مرض یا نقصان نه دے بلکه دا خو عین شفا او راحت دے - کَه یو څه ډاکټر په دغه وخت کښے هم دا کار دے چه خلق کَه دغے مرض کَه نقصان نه خبره وي او کَه علاج طریقے او ته بیا ونه ورته خائي -

انبیاء علیهم السلام چه دنیا ته راځي نو په دوی باندے کَه خلقو کَه اصلاح کولو ذمواری اچولی شوے وي - دوی چرته کَه دے خبرے پرواه نه کوي چه څوک به کَه دوی خبره واوړي او که نۀ - دوی که چرته کَه خلقو کَه منلو یا آورید و انتظار کولے - نو ټوله دنیا به په شرک او کفر سره اباده وه - کَه کلمے کَه لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه منونکے به هغه وخت کښے هیڅ څوک هم نه وُه کوم وخت چه خاتم الانبیاء صلّی الله علیه وسلّم ته کَه دے کَه تبلیغ او تعلیم حکم کَه الله جلّ شانهٗ کَه طرفه اوشو -

سود او رِبآء اګر چه نن صبا کَه ډرونډ په معاملو کښے کَه ملا کَه تیر حیثیت ګنړ لے شي لیکن حقیقت دغه دے کوم چه نن هم بعضے حاکا نو کَه یورپ منلے دے چه دا کَه ډرونډ په معاملو کښے کَه ملا کَه تیر هډوکے نه دے بلکه کَه ملا کَه تیر په هډوکی کښے چینجے دے چه لږ لږ ئے خوري -

لیکن افسوس دے چه کَه نن صبا کَه علم خاوندان هم چرته کَه رسم ورواج کَه دے تنګے دائرے نه ځان نه اُوباسي -او کَه سوؤنو کالو تجربے ئے هم دے طرف ته نۀ مخ کوي چه کَه سود او رِبآء لازمی نتیجه داده چه کَه خدائے ټول مخلوق او تمام امّت به لوږه تنده او کَه ډرونډ په جنجالونو کښے اخته شي - او دوی کَه غریب نه غریب ترکیدي او یو څو سرمایه دار دے کَه دوی کَه مالونو نه فائده اخلي، یا دا سے او وایه چه کَه قوم وینے سکی او خپل یه نو نه غټه وي او پالي - او حیراني خو داده چه کله کَه دے صاحبانو په مخکښے دا حقیقت بیانولے شي نو کَه دے کَه دروغجن کولو کَه پاره مو نږ کَه امریکے او انګلینډ بازارونو ته بیائي او هغه را ته خائي چه او ګوره دا خلق څنګه کَه سود او رِبآء په وجه سره پیټ او مارډ دي - لیکن کَه دے مثال خو دا سے دے لکه چه څوک تا سو ته کَه سرې خورئ کَه یو قوم او کَه دوی کَه دے کار

برکتونه ځائي او تاسو د سړي خوړو په محلے ته بوځي او تاسو ته او ځائي چه اوګورئ
دوي څومره غټ کټ تازه او طاقتور دي او په دے باندے دا ثابته کړي چه د دوي
دا کار څومره ښه کار دے۔

لیکن که په دوي باندے پوهه او هوښیار سړے ښځ شي نو هغهٔ به ورته
ووائي چه تاسو د سړي خوړو د عمل برکتونه د سړي خوړو په محله کښے نهٔ بلکه
هغه محلو او کلو ته لاړ شئ او ګورئ کوم ځائے چه په زرګونو خلق د دوي د دے
عمل په وجه مړهٔ پراته دي او وینه او غوښے ترے دوي خوړلی دی ځانو نه
ئے پرے څاربهٔ کړی دی - اسلام او اسلامی شریعت چه ته هم داسے کار ته تهیک
او فائده مند نه وائي چه نتیجه ئے د پوره امّت تباهي او بربادي وي او څو خلق
د دوي په مال ځانونه پالي او ځانونه پرے غټوي او پلنوي۔

## د ژوند په معاملو کښے د سُود او رِبا خرابي

په سود او رِبا کښے که بل عیب هم نه وے نو دومره خو ده چه ددے په نتیجه کښے
یو څو کسانو ته نفع او نور پوره انسانیت ته نقصان دے نو دا هم د دے د بندولو
او د دینه د نفرت کولو د پاره پوره وه - لیکن حال دا دے چه په دے کښے د دینه علاوه
نورے هم معاشی خرابۍ او روحانی تباهي بے شماره موندے شي۔

اوّل په دے ځان پوهه کړئ چه د سُود په ذریعه د قوم تباهي او د څو
افرادو نفع څنګه ده - د سود او ربا آسو دا ګوئ او پخوانی د زړے زمانے په ساهوکاري کښے
خو یو داسے بد تمیزی وه چه د عام قوم په ضرر او د یو خاص سړي په فائده خوهم د عقل
خاوند پوهیده - لیکن د نن صبا نوے رنړا چه ورته نوے تیارهٔ ویل زیات مناسب
دی - دے چه څنګه شراب په مشینونو کښے صفا کړهٔ د غلاګانو او ډاکونو نوے
طریقے ئے پیدا کړے - د بد کاري او بے حیائي نوی نوی طرزونه ئے راویستل او ټولو
لره ئے داسے رنګونه ورکړهٔ چه سرسری نظر کونکو ته د دے د ننه خرابي په نظر نهٔ راځي د غه
شان د رِبا او سود د پاره ئے په ځائے د شخصی (ریوانئے) دکانونو شریکے کمپنئ جوړے
کړے چه بینک ورته ویلے شي - او اوس د دُنیا په سترګو کښے د خاورو اچولو د پاره
دا خودلے شي چه د سُود د دے نوے طریقے نه ټول ملت ته (قوم ته) فائده د ده۔

ځکه چه عام خلق خو په خپلو روپو تجارت کولو نه پوهیږي او یا دا چه روپۍ ورسره کمې وي په دې وجه پرې تجارت نه شي کولې. نو دې تهولو روپۍ په بینکونو کښې جمع شي او دوی هر یو ته اکوکه لږه وي خو بیا هم څه نه څه نفع د سُود په نوم سره ملا ویږي - او لویو سوداګرو ته دا موقع په لاس ورشي چه هغوی د دې بینکونو نه په سُود قرض واخلي او غټې تجارت پرې اوکړي او فائده ئې اوشي - په دې وجه سُود داسې مبارک شے جوړشه چه د قوم ټولو خلقو ته ترې نفع رسي-

لیکن لږ د انصاف نه کار واخلئ - نو دا هغه مکر دے کوم چه شراب ئې د ګنده بټیو نه صفا سُتره هوټلونو ته او د بے حیائۍ او عصمت فروشۍ اډے ئې سینماګانو او کلبونو ته بدلے کړے زهر ئې تریاق او مُضر ئې مُفید خودلو د پاره په عمل کښې راوست او لکه څنګه چه د ستر ګو خاوند ته دا خبره ښکاره ده چه اخلاق سیز ونکو جرمونو ته د دوی غلاف اغوستلو نتیجه د دے نه سیوا نده چه دا جرمونه د مخکښې نه زیات شو - د غه شان د سود او ربا دے نوی شکل د سُود یوڅو اړخ په سلو کښې د خلقو په خولو کښې ورکړے - یو طرفته ئې هغوی د ځان سره په خپل ګناه کښې شریک کړه - او بل طرفته ئې د ځان د پاره د دے جُرم ګوَلو یو لوئے میدان تیار کړو.

څوک په دے نه پوهیږي چه دا یو څو اړخ په سلو کښې د سُود کوم چه د سیونګ بینکونو نه او ډاکخانو نه خلقو ته ملا ویږي - دا په هیڅ شان هم د دوی د روزګار د پاره پوره نه وي. نو په دے وجه دوی مجبور دي چه د خپلې خیټې ډکولو د پاره څه مزدوري یا نوکري اولټوي - تجارت ته خو اوّل د دوی خپل فکر هم نه ځي - او که د چا په کښې دے طرف ته مخ هم شي نو د ټول قوم سرمایه په بینکونو کښې جمع ده - د تجارت شکل ئې جوړ کړے دے - په دے کښې د لږے سرمائے والا د پاره داخلید ل خپل مرګ له دعوت ورکول دي - ځکه چه بینک ډیره سرمایه په قرض باندے صرف هغه چا ته ورکولے شي د چا چه په بازار کښې خپل اعتبار او خپل لوے کار د بار ئے وي - د لسو لاکو مالک ته یو کروړ قرض ملا ویدے شي د ے د خپلو ذاتي روپو په نسبت لس چنده زیات تجارت چلولے شي - او د لږے سرمائے والا نه څه اعتبار دي او نه بینک په ده اعتبار کولے شي - چه ده له لس چنده زیاته قرضه ورکړي - د یو زر مالک ته لس زره خو پریږده یو زر ملا ویدل هم ګران دي - او کله چه یو سړے

چه د یو لاک مالك وی نو لاکه د بینك سرمایه او لږه وی د لسو لاکو تجارت کولے شی، او فرض که که دے یو ه روپۍ په سلو کښې اوګټی نو ګویا دهٔ په خپلو یو لاک روپو لس فیصده نفع واغستله - او د دهٔ په مقابله کښې که یو سړے په خپلو ذاتی یو لاک روپو تجارت کوی نو دهٔ ته به صرف یو فیصد نفع وی چه دا به د دهٔ د ضروری خرچو د پاره هم پوره نه شی - اَخوَا په مارکیټ کښې لوئے سرمایه دار ته - کچه سامان چه په کوم نرخ او رعایت سره ملاویږی هغه لږے سرمائے والا ته نه ملاویږی - په دے وجه وړوکے سرمایه دار بے لاسو بے خپو او محتاجه پاتے شی - او که د بد قسمتئ نه دهٔ هم چرته داسے لوئے تجارت ته لاس واچو لو نو لوئے سرمایه دار دهٔ لره په خپله خدائے کښے شریك اوګڼړی - نو لږ خپلے غوټے له نقصان ورکړی بازار داسے کمزورے کړی او راوُئے غورزه وی چه لږے سرمائے والا د اَصل او نفع دواړه ونه لاس او ونیځی - نو د دے نتیجه دا ده چه تجارت صرف د یو څو تنو په لاسو نو کښے راغونډ پاتے دے کوم چه لوئے سرمایه داردی -

۱ : دا په قوم او ملت څو مره لوئے ظلم دے چه ټول قوم د اصلی تجارت نه محرومه شوی دی - صرف د سرمایه دارو لاس ته ناست دی - هغه چه دوی لره څو مره نفع ورکول غواړی د بخشش په طور ئے ورکوی -

۲ : او دویم د دے نه لوئے نقصان چه ټول ملک ئے په زړُ کښے راځی دا دے چه د څیزونو په نرخ باندے د دے سرمایه دارو قبضه وی - دوی ئے د ګران نه ګران خرڅوی خپله غوټه مضبوطوی او د ټول قوم غوټے ته نقصان رسوِی - او د قیمت زیاتول چه کله غواړی نو د مال خرڅول بند کړی - که د ټول قوم سرمایه په بینکو نو کښے نه جمع کیدے او د دے خود غرضو خلقو پالنه ئے نه کولے - او دوی مجبوره کیدے صرف په خپله ذاتی سرمایه ئے تجارت کولے - نو نه به وَړو سرمایه دارو ته دا مُصیبت پیخیده - او نه به دا خود غرضه شرمخان د ټول تجارت مالکان جوړیده - چه وړو سرمایه دارو ته په تجارت کښے نفع راتلے نو خلقو به ترے عبرت اَغستو او د تجارت کاروبار به عام کیده - او بیا به هر یو ځا نله جدا نوکران منشیان او ستهاف ساتهٔ چه د زرګونو نو حاجتمند انو د روزی به په کښے پیدا کیده او د تجارت نفع به هم عامه وه - او د شیو نو په ارزانئ به هم ښهٔ اثر پریوتو - ځکه چه د یو بل سره

(خوا خوږی) یو داسې شے دے چه د دے په وجه بنده ته جو پیدی چه خپله نفع کمه کړی - دے د ټګۍ کار په ټول قوم یو هلاکونکے بیماری لږه ولے ده - او بل ئے د دوی دماغ داسې خراب کړی دی چه دا مرض اوس دوی روغوالے ګڼړی -

۳ : د بینکونو د سود نه د قوم یو بل معاشی نقصان اووینئ - چه د چا سره لس زره سرمایه ده او د دے د بینک نه په سود قرضه واخلی د یو لاک کاروبار کوی - نو که چرته د دهٔ دا (بېړۍ) ډوبه شوه او په تجارت کښے ئے نقصان اوکړه او دیوالیه شو - نو فکر اوکړئ چه د دهٔ صرف لس فیصده نقصان اوشه باقی لس کم سل فیصده نقصان د قوم اوشه د چا سرمایه چه دهٔ د بینک نه اغستے وه او لږه ولے ئے وه - که بینک فی الحال دغه د دیوالیه نقصان پوره کړو نو دا خو ښکاره خبره ده چه بینک د قوم جیب دے د دهٔ دا نقصان آخر کار په قوم پریوځی - چه مطلب ئے دا شه چه کله دهٔ ګټه کوَله نو د ده یوائے وه د قوم په کښے هیڅ نه وو یا تش برائے نام وو - او کله چه نقصان راغے نو لس اتیا فیصده په قوم پریوت -

۴ : د سود یو معاشی نقصان دا هم دے چه سود خور کله په نقصان کښے راشی نو بیائے خپے نه لږی ځکه چه دومره سرمایه خو وی نه چه نقصان ئے دے برداشت کړی - نو د نقصان په وخت کښے په دهٔ غبرګ تاوان راشی یو ه خپله نفع او سرمایه لاړه شی او د پاسه پرے د بینک په قرضه کښے هم ډوب شی - چه د ادا کولو ئے بیا د دهٔ سره څهٔ ذریعه نه وی - او په بے سوده تجارت کښے که ټوله سرمایه هم څهٔ وخت لاړه شی نو فقیر به شی قرضدار ے خو به نه شی -

په سنه ۱۹۵۴ء کښے په پاکستان کښے د مالوچو په بیوپار د قرآنی ارشاد مطابق د محاق[۱] آفت راغے - نو حکومت په کروړونو روپۍ نقصان په ځان واغست او سوداګر ئے بچ کړل - لیکن هیچا په دے غور اونه کړو چه دا د سود بدبختی وه - ځکه چه د مالوچو دے سوداګرو په دے کاروبار کښے ډیره سرمایه د بینکونو لږه ولے وه خپله سرمایه ئے برائے نام وه - د الله تعالیٰ په قدرت سره د مالوچو بازار دومره راوغورزید چه کیو سل پنځویشتو نه لسو له راغے - سوداګر د دے قابل پاتے نه شو چه بینکونو ته قرضه واپس کړی نو مجبوره شو مارکیټ ئے بند کړو او حکومت ته ئے فریاد اوکړه حکومت د لسو په ځائے د لس[۹۰] اتیا قیمت اولګاؤ او په خپله ئے مالوچ واغستل او په کروړونو روپۍ ئے خپلے تاوان کړے دا

[۱] په ناګهانی آفت سره نقصان کیدل (کیمیل) ۱۲ سورة البقرة ۱۲

سوداګو ته دَ دیوالیه کیدو نه بچ کړل. دَ حکومت روپۍ دَ چا وې، هم دَ دغې غریب او
ناچاره قوم. غرض دا دے چه دَ بینکونو دَ کاروبار ښکاره نتیجه داده چه دَ ټول قوم
دَ سرمائے نه یو څو تنه فائده اَخلی او کوم ځائے چه نقصان اوشی نو په ټول ملت او
قوم پرے وُځي.

## دَ خپلې خیټې ډکولو او قوم وږلو یو بل چال

دَ سود او رِبا، د قوم دَ وږلو او دَ یو څو تنو دَ خیټې ډکولو یوه اجمالی نقشه
خو ستاسو په مخکښے راغله، او س دَ دے سره یوه بله چالاکی او هوښیاری او وینئ
چه سودخوړو کله په خپله تجربه سره دا شے محسوس کړو چه دَ قرآن ارشاد دے چه
:یَمۡحَقُ اللّٰهُ الرِّبٰوا: یعنے دَ سود په مال باندے دَ محاق آفتونه راتلل لازمی دی. چه
بیا دَ دے په نتیجه کښے دیوالیه کیدل وی. نو دَ دے آفتونو نه دَ بچ کیدو دَ پاره ئے
دوه مستقلے ادارے جوړے کړے، یوه بیمه (انشورنس) دویمه سټه بازار، ځکه چه په
تجارت کښے نقصان په دوه وجهو کید ے شی یو دَ څهٔ آسمانی آفت دَ طرفه چه جهاز ډوب
شی یا اوسوځی. یا بل داسے څهٔ آفت راشی. دویم دا چه دَ مال نرخ دَ قیمت خرید (اغستی قیمت) نه
کم شی. په دے دواړو صورتونو کښے لږه ولے سرمایه چونکه خپله نه وی دَ قوم مشترکه
سرمایه وی. په دے وجه دَ دهٔ نقصان کم او دَ قوم زیات دے، مګر دوی دا خپل لږ نقصان
هم دَ قوم په سَرْ وَرَاوُتپلو. او دَ دے دَ پاره ئے یو طرفته بیمه کمپنیانے جوړے کړے چه په
هغے کښے دَ بینکونو په شان دَ پوره قوم سرمایه جمع وی. او کله چه په څهٔ آسمانی آفت
سره په دے سودخورو څهٔ نقصان راشی نو دَ بیمے په ذریعه هغه نقصان دَ قوم په
شریکه سرمایه وراچوی.

خلق دا ګنړی چه بیمه کمپنۍ دَ خدائے رحمت دے ډوبید ونکے دَ ډوبیدو نه بچ
کوی، لیکن که دَ دے حقیقت ته اوګوری او ځان پرے پوهه کړی نو دلته هم هغه دُوکه
ده. دَ ناګهانی آفت په وخت کښے دَ امداد کولو لالچ ورکړی دَ قوم سرمایه جمع کړی
لیکن دَ دے وَرَنو رقمو نو فائده صرف او چتو سرمایه دارانو ته ملاویږی. چه اکثر
په خپله خپل خراب موټر او سیزوی یائے او جنګوی او دَ بیمه کمپنۍ نه رقم واخلی نوے موټر
پرے ځانله راولی. په سلو کښے به یو دوه چرته غریبانان هُم داسے وی چه دَ ناګهانی مرګ په

سبب به ئې خه پیسې وارثانو ته ملاؤ شي -

او دویم قسم یعنې د نوخ کمید و دېرې نه د ځان سا تلو د پاره ئې سټه بازار کوم کړی دے او د دے اثرئې په ټول قوم غورزه وَلے دے - چه که د قیمت د کمید و په وجه خه نقصان کیږی نو چه هغه هم په قوم او غورزه وَلے شي -

په دے لنډو شان بیان کښے به تاسو دومره پوهه شوی ئې - چه د بینکونو سود او د دے تجارت د ټول مخلوق د پاره د لوګے تند ے او معاشي تنګ ستیٔ سبب دے البته د ځینې مالدارو په مال کښے زیاتے هم راځي. چه لنډه ئې دا قوم تباه کیږی او یو څو کسان پرے خهٔ کیږی - او د ملک سرمایه راجمع کیږی د هغو لاسو نو ته ورځي - عام حکومتونه په دے لوئے فساد باندے پوهه هم شو - لیکن هغوی دے لوه دا علاج جوړ کړه چه په لویو سرمایه دارانو ئې د انکم ټیکس شرح زیاته کړه تردے چه آخری شرح ئې په یوه روپۍ کښے پنځلس نیمے آنې کړه - د دے د پاره چه سرمایه د دوی نه بیا واپس شي او قومي خزانې ته لاړه شي -

لیکن ټولو ته معلومه ده چه د دے قانون په نتیجه کښے عام طور سره د کارخانو حساب فرضي او جعلي جوړیدل شروع شو -

لنډه داده چه د دولت جمع کیدل او د قوم د یو څو تنو لاس کښے بند یدل او د ملک په اقتصادی او معاشي حالت باندے د دے هغه انتهائي ضررناک اثر غورزیدل ټولو ته ښکاره دی او په دے وجه د انکم ټیکس شرح دومره زیاته وَلے شي - لیکن په تجربه سره معلومه شو یده چه دا تد بیر د مرض علاج ثابت نه شه - د دے اصل وجه داده چه د مرض اصلي سبب اُونه پیژندے شو په دے وجه د علاج مثال ئې دا شو چه ـه

دروازه ئې بنده کړه او دشمن د ننه په کور کښے وه -

د دولت د لویو سرمایه دارانو په لاسو نو کښے د جمع کیدو اصل سبب صرف د سُود کاروبار او د قومي سرمائے نه د خاصو خاصو افرادو بے ځایه نفع اَخستل دی - ترڅو چه د اسلامي تعلیماتو په مطابق دا بند نه کړے شي - او دے خبرے له رواج ورنه کړے شي چه هرسړے دے صرف په خپله سرمایه تجارت کوی - تر هغې وخته پورے د دے مرض علاج نه شي کیدے -

## یوه شبه او دهغې جواب

دلته کښې یو سوال دا پیدا کیږي چه د بینکو نو په ذریعهٔ ټول قوم رقم جمعه شي نو څهٔ نه څهٔ فائده خو دوی ته هم رسي اګرکه ډیره فائده خو لویو سرمایه دارو ته رسي لیکن که په بینکو نو کښې د سرمائې داجمع کیده نه وي نو نتیجه به ئې هغه وي کومه چه په پخوا نئ زمانه کښې وه چه د خلقو سرمایه به په زمکه کښې ښخه پرته وه نهٔ به ترې دهٔ ته فائده وه او نه بل ته۔

نو د دې جواب دا دې چه اسلام څنګه چه سود حرام کړې دې دا دروازه ئې بنده کړې ده چه د ټول قوم دولت د سرمایه دارو لاسونو ته را ټول نهٔ شي نو دغه شان زکوٰة ئې د هر مالدار په سرمایه باندې لږه ولې دې او په دې وجه ئې هر یو مالدار په دې مجبوره کړې دې چه دې خپله سرمایه په بند حالت کښې اوٌنه ساتي بلکه په تجارت او کاروبار کښې ئې اولږه وي ځکه چه که دې دا روپۍ بندې او ساتي او کال په کال ترې څلویښتمه حصه د زکوٰة په شکل کښې ادا کوي نو په یو څو کاله کښې به دغه سرمایه ختم شي نو په دې وجه به هر یو هغه سړې په دې مجبور وي چه خپلې پیسې په کار کښې اولږوي په خپله ترې هم فائده اخلي او نورو ته ترې فائده رسوي۔ او د دغې نفع او فائدې نه ئې زکوٰة ادا کوي۔

## د زکوٰة فریضه په یو وجه سره د تجارت د ترقئ ضامنه ده

د دې نه دا هم معلومه شوه چه د فرض زکوٰة په ادا کولو کښې لکه څنګه چه دا لویه فائده ده چه د قوم د فقیرانو او مسکینانو امداد پرې کیږي نو دغه شان دا د مسلمانانو معاشي حالت د ښهٔ کولو د پاره تجارت طرفته د میلان پیدا کیدو یوه ښکلې ذریعه ده۔ ځکه چه هر سړې کله دې خبره ته اوګوري چه که سرمایه رم بنده کیخوده نو نتیجه به ئې دا وي چه نفع به هیڅ نه وي او د کال په ختمیدو به ترې څلویښتمه حصّه کمیږي۔ نو خامخا به د دهٔ دې طرفته فکر اوکړي چه دا مال په څهٔ تجارت کښې اولږه وي۔ او بل طرفته سود دې په هغې کښې روپۍ چلول حرام شو۔ نو د تجارت به دا صورت هم نه وي چه د لاکونو خلقو په سرمایه به صرف یو تن تجارت کوي۔ بلکه هر مالدار به په خپله په تجارت کښې د ورننوتو فکر کوي۔ او چه کله لوئې سرمایه دار هم صرف په خپله سرمایه تجارت کوي۔ نو وړو سرمایه دارو ته یه

په تجارت کښې دغه مشکلات هم نه راځي. کوم چه د بینکونو نه په سود کړوپواخستو او د لوئے تجارت چلولو په صورت کښې ورته پیښیږي. دغه شان به په ټول ملک کښې تجارت وی او فائدے به ئے عامے وی. او په نتیجه کښې به ئے د ملک غریبانو او فقیرانو ته فائدے رسي.

## د سود روحاني بیماري

د دے ځائے پورے د سود د معاشي او اقتصادي بربادو بیان وشو. او س دا اورئی چه د سود کاروبار د انسان په اخلاقو او روحانیت باندے څومره خراب اثر اچوی.

۱: په انسان خوبونو کښې د ټولو نه لوئے شے د ځان قربانول او سخاوت دے. چه په خپله په ځان سخته تیره وی خو بل ته د آرام او راحت رسولو جذبه پکښې وی. نو د سود د کاروبار لازمي اثر دا اوشي چه دا جذبه ختمه شي. سود خور خو به خپل ځان ته نفع رسول خولا پریږده بل په خپل کوشش او خپله سرمایه سره د ده برابر راتلو لیدو ته هم دے جوړ نه وی.

۲: په غم زپلی د رحم کولو په ځائے دے د هغه د مصیبت نه د ناجائز فائدے اخستو په فکر کښې وی.

۳: د سود خورئی په نتیجه کښې د مال حرص دومره زیات شي. چه د دے په مستئ کښې بیا دے خپل بنه او بد هم نه پیژني. او د خپل بد انجام نه بالکل غافل شي.

**آیا بغیر د سود نه څه تجارت نه چلیږي؟** د سود حقیقت او د دے د دُنیا او آخرت د خرابو بیان څه قدرے په تفصیل اوشه. اوس دریم بحث دا پاتے دے چه د سود معاشي او روحاني خرابئ او په قرآن او سنت کښې د دے سخت حراموالے او بند یز خو بشکاره شو لیکن په دے اوسنی دور کښې چه سود د تجارت یو لوئے رکن جوړ شو دے. د ټولے دُنیا کاروبار په دے چلیږي. د دے نه د ځان خلاصولو تدبیر څه؟ بینک سِسټم ختمول خو کویا په دے زمانه کښې تجارت بندول دی.

نو جواب ئے دا دے چه کوم یو مرض عام شي او د وَباء شکل اختیار کړي نو علاج ئے ګران خامخا وی. لیکن بے کاره نه وی. د حالاتو د سازګارولو کوشش کول آخر د کار کامیابي وی. البته د صبر او ثابت قدمئ او د همت نه کار اخستل ضروری وی. په قرآن شریف کښې دا هم د الله تعالی ارشاد دے:-

| | |
|---|---|
| مَا جَعَلَ اللّٰهُ عَلَيْكُمْ فِي الدِّيْنِ مِنْ حَرَجٍ ، | یعنې الله تعالیٰ د دین په معامله کښې په تاسو څه سختي نه ده اچولې۔ |

نو په دې وجه ضروري خبره ده چه د سُود نه د ځان ساتلو به څۀ دا سې لار نخا وی چه په هغې کښې به معاشي او اقتصادی نقصان هم نه وی، د ونګه او باهر د تجارت دروازې به هم بندې نه وی۔ او د سُود نه به پکښې نجات هم وی۔

په دې کښې اول خبره خو دا ده چه په سرسري نظر سره د بینکو نو دې موجوده اصولو ته اوکتې شي نو عام طور سره دا سې ګنړلې شي چه د بینکو نو دارمدار په سود باندې دې، د دې نه بغیر بینک چلیدې نه شي۔ لیکن دا خیال قطعاً صحیح نه دې د سُود نه بغیر هم د بینک سسټم هم دغه سې قائم پاتې کیدې شي۔ بلکه د دې نه غوره او فائده منه طریقه په کښې راتلې شي۔ خو البته د دې د پاره ضروری ده چه څۀ په شریعت پوهان خلق او څه د بینکو نو ماهران کینې او د یو بل په تعاون سره څۀ اصول د نوی سره جوړ کړی۔ نو بیا کامیابي لرې نه ده۔ او د کومې ورځې نه چه د بینکو نو کاروبار په شرعي اصولو باندې شه۔ نو انشآء الله دُنیا به اووینې چه په دې کښې د قوم او ملت څومره خیګړه ده۔ د دې اصولو او قاعدو د تشریح دا موقع نۀ ده۔ په کوم چه د بینکو نو کاروبار بغیر سُود نه چلولې شي۔

د سُود او ربا ء یو ضرورت خو څۀ د تجارتي غرضو نو د پاره وی۔ د دې انتظام خو به د بینک په موجوده اصولو کښې د ترمیم په ذریعه اوشي۔ او بل ضرورت ئې په سُود کښې د اخته کیدونکو فقیرانو او محتاجانو خلقو د ناڅاپي او وقتي ضرورتونه وی۔ نو د دې غوره علاج په اسلام کښې د ځکښې نه په صورت د زکوٰة او صدقو واجبه وُ موجود دې۔ لیکن د دین او علم دین نه د بې خبرۍ او بې پرواهۍ نتیجه ده چه تر اوسه پورې ئې د زکوٰة نظام هم معطل کړې دې۔ بې شماره داسې مسلمانان دی چه د مانځه پښتان زکوٰة ورکولو ته هم نزدې نه ورځي۔ او څوک چه ئې اوباسي نو هغه

له احقر د یو څو علماؤ په مشوره سره د بې سود ه بینکارۍ مسوده چه بروخت شوې دې چه تیاره کړې وه او د بینکو نو بعضې ماهرینو په موجوده وخت کښې د چلیدو قابله منلې وه۔ او بعضې حضراتو ئې د شروع کولو اراده هم کړې وه لیکن تر اوسه پورې ورته د عامو تجارت کوونکو توجه نه کولو او د حکومت د طرفه ورته د منظورۍ نۀ حاصلیدو په سبب هغه او نه چلیده۔ فالی الله المشتکی ۱۲ منه (کاتب و مترجم ابوحُسین سواتی ۸۸-۲-۱۱)

ئے پوره هم نهٔ او باسی. او کوم خلق چه ئے پوره هم ورکوی نو هغوی بس دَ زکوٰة و بیستل پیژنی چه دَ خپل جیب نه ئے او باسی - حال دا دے چه دَ الله تعالیٰ حکم دَ زکوٰة ایستلو نه دے بلکه دَ زکوٰة آدا کولو دے - او آدا کول هله صحیح کیدے شی کله چه ئے مستحقو ته او دَ رسوی او هغوی ئے مالکان کړی - اوس غور او کړئ چه دا سے مسلمانان شومره دی چه دَ مستحقینو دَ تلاش کولو فکر او کړی او بیا ئے هغو ته دَ رسَوَ لو انتظام او کړی - مسلمان قوم که هر څومره دَ کمے سرمائے خاوندان وی - لیکن که هر یو مسلمان چه په چا زکوٰة فرض دے هغه پوره زکوٰة آدا کړی او دَ آدا کولو صحیح طریقه اختیار کړی چه مستحقینو ته ئے او رسَوی اَو دَ ادا کولو بند وبست ئے او کړی - نو یقیناً هیڅ یو مسلمان ته به دا ضرورت پاتے نه شی چه هغه دَ قرض په ضرورت سره په سُود کښے اخته او گیر شی - او که دَ شرعی قاعدے مطابق اسلام عادل حکومت جوړ شی - او هغه شرعی بیت المال قائم کړی - او دَ ټولو مسلمانانو دَ ظاهری مالونو زکوٰة په کښے جمع کوی - نو په دغے بیت المال سره بیا دَ هر یو حاجتمند حاجت پوره کیدے شی - او که چرته چا ته دیر رقم ته ئے ضرورت راشی نو دَ قرضے په طور بے سوده ورله ترے هم ورکولے شی - او دغه شان بے کاره کوچنیانو کو لره دُکانونه یا ځنے روزگار ورته پیدا کولے شی - چا یو ړپی ماهر دا صحیح ویلی دی چه: دَ مسلمانانو دَ زکوٰة نظام دا سے شے دے - چه که مسلمانان دَ دے پابند شی - نو په مسلمان قوم کښے به څوک هم بے ماله او غم زپلے په نظر رانه شی: -

غرض دا دے چه په دے زمانه کښے چه دَ سُود معاملے په کښے دَ وُیا په شان خورے شو یدی - په دے خبره پاتے کیدل نه دی په کار چه په موجوده زمانه کښے دَ سُود کاروبار پریښودل دَ معاشی او اقتصادی حالت خودکشی ده" او په دے زمانه کښے بنی آدم په سودی کاروبار کولو باندے مجبوره دے -

البته دومره ضرورده چه تر څو ټول قوم یا دَ قوم دیانتداره خلق یا یو اسلامی حکومت په پوره توجه سره دَ دے کار بیړه په سَر اوچته نه کړی نو دَ یو تن دوه یا څو کسانو دَ پاره ضرور گرانه ده - لیکن معذوره بیا هم نه دی -

دا وخت زمونږ دَ دے بیان دوه مقصدونه دی اوّل دا چه دَ مسلمانانو ټولګی او حکومتونه کوم چه دا کار په صحیح طور سره کولے شی دے طرفته فکر دا او کړو څو ی

او مسلمانانو لره بلکه پوره دنیا لره د سود د دې ناکاره اثراتو نه خلاصه کړي.

دویم دا چه کم نه کم د ټولو علم په دې خبره صحیح کیدل په کار دي، چه مرض خو مرض او ګڼړي، د حرامو حلال ګڼړل چه د دې اول ګناه نه ډیر لوئي دې چه پر دې کښې خو نه اخته کیږي. په عملي ګناه (سود) کښې خو څه نه څه ظاهري فائده هم ده. لیکن دا دویم د علم او عقیدې ګناه چه دې چه سود لره حلال ثابتوي د اولنۍ ګناه نه ډیر لوئې دې. او عیث هم دې. ځکه چه سود حرام ګڼړل او په خپل ګناه چا ده کیدلو کښې خو څه مالي نقصان هم نیشته. څه تجارت پرې هم نه بندیګي. البته په ګناه د چا ده کیدلو نتیجه به دا ضرور روي، چه څه وخت خو به ئې د توبې توفیق اوشي او د دې نه د بچ کیدو سوچ به ورلره خوراشي.

دا وخت د دې مقصد د پاره په آخر کښې یو څو د حدیثو روایتو نه او د نبي کریم صلی الله علیه وسلم ارشادات هم وړاندې کوم. چه د قرآن کریم د دغې آیاتونو بیان دې په کومو کښې چه د سود سخت بندیزونه او په هغې سخت عذابونه بیان شوي دي د دې د پاره چه ګناه خو ګناه ګڼړلې شي، او د بچ کیدو په فکر کښې ترې وي. او کم نه کم دا سې خو نه کیږي چه حرامو ته حلال وائي او د یو ګناه نه دوه ګناهونه جوړه وي. او لوئې لوئې نیکان دیندار مسلمانان چه د شپې تهجد او د الله تعالی ذکر کوي. او سحر چه دکان یا کارخانې ته اورسي نو دائې هدو په خیال کښې هم نه راځي چه مونږ د سود او جوارئ په معاملاتو کښې اخته یو څه هم کوو.

## د سود په باره کښې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم ارشادات

(۱) نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي چه د اوه هلاکونکو څیزونو نه ځان ساتئ. صحابه کرامو تپوس اوکړو چه یا رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه څه دي؟ او ئې فرمایل (۱)، یو د الله تعالی سره (په عبادت کښې یا د ده په خاصو صفتونو کښې) څوک شریک جوړه ول (۲)، دویم جادو کول (۳) دریم ناحق قتل کول (۴)، څلورم سود خوړل (۵)، پنځم د یتیم مال خوړل (۶)، شپږم د جهاد په وخت کښې د میدان نه تختیدل (۷)، په پاک دامنه ښځه د زنا تهمت لګول (دا حدیث په صحیح بخاري او مسلم کښې دې)

(۲) نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي چه ما نن شپه دوه سړي اولیدل

چه مالهٔ وَاغَلَلْ او زهٔ ئے بیت المقدس ته بوتلم، بیا مونږ ورباندے لاړو نو دَ وینو یو نهرم اُولید چه یو سړے په کښے ولاړ دے۔ او بل سړے دَ نهر په غاړه ولاړ دے چه دَ نهر دا سړے کَ دے نهر نه باهر راوځی نو دَ غاړے دا سړے ئے په کانړی خُلٔ ولی چه، دَ دے کَنډ ارسره دے بیا واپس نهر ته لاړشی هغه ځائے ته کوم ځائے چه دے ولاړ وهٔ۔ بیا دے دَ راوتو اراده کوی او دغه دَ غاړے سړے ئے دغه شان ؤلی۔ نبی کریم صلے الله علیه وسلّم فرمائی چه ما دَ دغو خپلو دوه ملګرو نه تپوس اوکړو چه دا څه څهٔ دا قعه وینم۔ هغوا وے چه دا په نهر کښے قید شوے سړے سود خوردے او چه دَ خپل عمل سزا موی) (دا حدیث په صحیح بخاری کتاب البیوع کښے دے)۔

(۳) نبی کریم صلے الله علیه وسلم په سُود اغستونکی هم لعنت فرمایلے دے، او په سُود ورکونکی هم، او په څینے روایا تو کښے دَ سود په معامله کښے په ګواهئ ورکونکوا و په لیکونکو ئے هم لعنت فرمائیلے دے۔

او دَ صحیح مسلم په یو روایت کښے ئے فرمایلی دی چه دا ټول په ګناه کښے برابر دی او په بعضے روایا تو کښے په ګواه او لیکونکی لعنت په دے صورت کښے دے کله چه دوی ته علم وی چه دا دَ سود معامله ده۔

(۴) او دَ نبی کریم صلّے الله علیه وسلّم ارشاد دے چه څلور کسان داسے دی چه دَ دوی په باره کښے الله پاک په ځان لازمه کړے ده چه دوی په جنّت ته نهٔ دا خِله وی او دَ جنّت نعمتونه به او نه څکی۔ هغه څلور دا دی۔ دَ شرابو څکلو عادی، او دَ سُود خوړونکے، او دَ یتیم مال په نا حقه خوړونکے، او دَ خپل مور و پلار نا فرمانی کونکے، (دا روایت مستدرک حاکم کښے دے)

(۵) نبی کریم صلے الله علیه وسلّم فرمایلی دی۔ چه سړے دَ سُود یوه روپئ خوری دا دَ شپږ دیرش واره بد کاری کولو نه سخت ګناه دے۔ او په بعضے روایا تو کښے دی، چه کومه غوښه دَ حرام مال نه جوړه شوه دَ هغے دَ پاره اُور زیات لایق دے۔ دَ دے سره په بعضے روایا تو کښے دی چه دَ یو مسلمان بے عزتی کول دَ سُود نه هم زیات سخت ګناه دے۔ (دا روایت په مسند احمد، طبرانی وغیره کښے دے)

(۶) او په یو حدیث کښے دی چه نبی کریم صلے الله علیه وسلّم دَ دے خبرے نه منع کړے ده چه میوه دَ استعمال دَ قابل کیدو نه اوّل خرڅوی۔ او فرمائی کله چه

په یو کلي کښې بد کاري او د سود کاروبار خورېږي نو دوي الله تعالىٰ لوه په عذاب راوستو دعوت (بلنه) ورکړه - (دا روايت مستدرک حاکم کښې دے)

⑦ او نبي کريم صلى الله عليه وسلم فرمائي چه کله په يو قوم کښې د سود لين دين رواج شي نو الله تعالىٰ په دوي د ضروري څيزونو ګراني مسلّطه کړي ؛ او کله چه په يو قوم کښې رشوت عام شي نو د دشمنانو رُعب او غلبه پرے زيا ته شي (دا روايت مسند احمدؒ کښې دے)

⑧ او نبي کريم صلى الله عليه وسلم فرمائي چه د معراج په شپه مونږ کله اووم آسمان ته اورسيدو نو ما په ځان د بره نه رَعد او بَرق اوليدل، د دينه پس بيا مونږ په يو داسے قوم باندے تېرشو چه خيټے ئے لکه د اوسيدو د کورونو هومره پرسيدلے وے او د مارانو نه ډکے وے چه د با هرنه په نظر راتله - ما د جبرئيل امين نه تپوس اوکړه - چه دا کوم خلق دي؟ هغوئ را ته اوفرمايل چه دا سود خواره دي (دا روايت مسند احمد کښې دے)

⑨ او نبي کريم صلى الله عليه وسلم عوف بن مالکؓ ته اوفرمايل چه د هغه ګناهونو نه ځان ساته چه نه شي معاف کولے - چه په دے کښې يو د غنيمت د مال نه غلاده او دويم سود خوړل دي (طبراني)

⑩ او نبي کريم صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي چه کوم سړي له تا سو قرض ورکړے وي د هغهٔ دائي هم مهٔ قبلوئے (هسے نه چه هغهٔ دا دائي د قرض په عوض کښې درکړے وي او دا سود دے - په دے وجه د قرضداري د دائي په قبلولو کښې احتياط په کار دے) -

د سود او ربآء د پيژندو او د هغې د حقيقت او په دے کښې د دنيا وي تباهو متعلق د قرآن مجيد اوه ايا تونه او د نبي کريم صلى الله عليه وسلم د احاديثو لس ارشادات د لته کښې بيان شو - د سوچ او فکر کونکي مسلمان د پا ره دومره پوره ده - او د دے مسئلے په باقي پا تو اړخونو د بحث او مکمل تحقيق د پاره د احقر يو جُدا کتاب په نوم د (مسئلهٔ سود) شائع شوے دے -

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا تَدَايَنْتُمْ بِدَيْنٍ إِلَىٰ أَجَلٍ مُسَمًّى

اے مؤمنانو! کله چه تاسو په خپل منځ کښې معامله کوئ د قرض تر مقرر وخته پورې

فَاكْتُبُوهُ ۚ وَلْيَكْتُبْ بَيْنَكُمْ كَاتِبٌ بِالْعَدْلِ ۚ وَلَا يَأْبَ كَاتِبٌ

نو هغه لیکئ - او دپه کار ده چه اولیکي ستاسو په منځ کښې لیکونکے په انصاف سره او انکار دې نه کوي لیکونکے

أَنْ يَكْتُبَ كَمَا عَلَّمَهُ اللَّهُ ۚ فَلْيَكْتُبْ وَلْيُمْلِلِ الَّذِي عَلَيْهِ

د دینه چه اولیکي دا سے چه لکه خودلے ئې ورته الله پاک - پس او دې لیکي - او بنائي دے هغه څوک چه پر ده ئې یا دے

الْحَقُّ وَلْيَتَّقِ اللَّهَ رَبَّهُ وَلَا يَبْخَسْ مِنْهُ شَيْئًا ۚ فَإِنْ

قرض دے او ډیر یرېږي دې د الله نه چه د ده رب دے - او نه دې کموي تر دې څه شے پس که هغه

كَانَ الَّذِي عَلَيْهِ الْحَقُّ سَفِيهًا أَوْ ضَعِيفًا أَوْ لَا يَسْتَطِيعُ

سړے چه په چا قرض دے بے عقله یا ضعیف دے یا په خپله نه شي خو دے

أَنْ يُمِلَّ هُوَ فَلْيُمْلِلْ وَلِيُّهُ بِالْعَدْلِ ۚ وَاسْتَشْهِدُوا شَهِيدَيْنِ

نو او دے بنائي ولي د ده (کارکنده د ده) په انصاف سره او ګواه جوړه وئې دوه ګواهان

مِنْ رِجَالِكُمْ ۖ فَإِنْ لَمْ يَكُونَا رَجُلَيْنِ فَرَجُلٌ وَامْرَأَتَانِ

د خپلو سړو نه - پس که نه وي دوه سړي نو یو سړے او دوه ښځې

مِمَّنْ تَرْضَوْنَ مِنَ الشُّهَدَاءِ أَنْ تَضِلَّ إِحْدَاهُمَا

د هغه چا نه چه تاسو ئې خوښه وئ - د ګواهانو نه - د دے د پاره که هیر کړي یوه د دوي نه

فَتُذَكِّرَ إِحْدَاهُمَا الْأُخْرَىٰ ۚ وَلَا يَأْبَ الشُّهَدَاءُ إِذَا

نو یا دیه کړي ورته بله - او انکار دے نه کوي ګواهان کله چه

مَا دُعُوْا ؕ وَلَا تَسْـَٔمُوْٓا اَنْ تَكْتُبُوْهُ صَغِيْرًا اَوْ كَبِيْرًا اِلٰٓى اَجَلِهٖ ؕ

دوی را او بللے شی - او سستی مه کوئ د دینه چه او ئے لیکئ وړهٔ وی معامله او که لویه تر میعاده یورے

ذٰلِكُمْ اَقْسَطُ عِنْدَ اللّٰهِ وَاَقْوَمُ لِلشَّهَادَةِ وَاَدْنٰٓى اَلَّا تَرْتَابُوْٓا

په دے کښے پوره انصاف دے د الله په نزد او ډیره مضبوطه ده د گواهئ دپاره او نزدے ده دیته چه په شک کښے

اِلَّآ اَنْ تَكُوْنَ تِجَارَةً حَاضِرَةً تُدِيْرُوْنَهَا بَيْنَكُمْ فَلَيْسَ

او نه غورزیږئ - مگر دا چه سودا وی لاس په لاس چه اخلئ ورکوئ دا په مینځ خپل کښے پس نیشته

عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ اَلَّا تَكْتُبُوْهَا ؕ وَاَشْهِدُوْٓا اِذَا تَبَايَعْتُمْ ۪ وَلَا

په تاسو باندے څه گناه چه که دا او نه لیکئ - او گواهان نیسئ کله چه تاسو سودا کوئ - او نقصان

يُضَآرَّ كَاتِبٌ وَّلَا شَهِيْدٌ ۬ وَاِنْ تَفْعَلُوْا فَاِنَّهٗ فُسُوْقٌ ۢ بِكُمْ ؕ

دِے نه کوی د لیکونکی او نه د گواه - او که داسے او کړئ نو دا د گناه خبره ده په تاسو باندے

وَاتَّقُوا اللّٰهَ ؕ وَيُعَلِّمُكُمُ اللّٰهُ ؕ وَاللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ﴿۲۸۲﴾ وَاِنْ

او ویریږئ د الله نه - او خودنه کوی تاسو ته الله او الله په هر څهٔ باندے پوهه دے - او که تاسو

كُنْتُمْ عَلٰى سَفَرٍ وَّلَمْ تَجِدُوْا كَاتِبًا فَرِهٰنٌ مَّقْبُوْضَةٌ ؕ فَاِنْ

په سفر کښے یئ او نه مومئ لیکونکے نو گانړه په لاس کښے ورکول په کار دی - پس که

اَمِنَ بَعْضُكُمْ بَعْضًا فَلْيُؤَدِّ الَّذِى اؤْتُمِنَ اَمَانَتَهٗ وَلْيَتَّقِ اللّٰهَ

اعتبار او کړی یو په بل نو په کار دی چه پوره کړی هغه سړے چه اعتبار ئے پرے کړے دے امانت خپل او ویره دِ کوی د الله

رَبَّهٗ ؕ وَلَا تَكْتُمُوا الشَّهَادَةَ ؕ وَمَنْ يَّكْتُمْهَا فَاِنَّهٗٓ اٰثِمٌ قَلْبُهٗ ؕ وَاللّٰهُ

چه رب د دهٔ دے - او مه پټوئ گواهی - او کوم سړے چه ئے پټه کړی - نو بے شکه گناه گار دے زړهٔ د دهٔ - او الله

ع ۳۹ ۲ ۷

بِمَا تَعْمَلُوْنَ عَلِيْمٌ ﴿۲۸۳﴾

ستاسو په کارونو خهٔ پوهه دے

## لنډ تفسير

اے ایماندارو کله چه معامله کوئ د قرض (خواه پیسے قرض وی یا کوم شے چه اخلی هغه قرض وی. لکه په بیعه د سلم کښے) د یو میعاد (نیټے) مقرر دے پورے نو هغے (په طور د یادداشت یو خط) لره لیکئ او دا ضروری ده چه ستاسو په مینځ کښے (چه) کوم لیکونکے (وی هغه) په انصاف سره اولیکی (یعنے د چا د لحاظ د پاره دے د خط په مضمون کښے کمے زیاتے نه کوی) او لیکونکے د لیکلو نه انکار هم نه کوی څنګه چه خدائے پاک دهٔ ته (لیکل) خودلی دی دهٔ لره په کار دی چه او دے لیکی او (لیکونکی ته دے) هغه سړے (او بښائی او) دے پرے اولیکی د چا په ذمه چه حق واجب وی (ځکه چه د خط مطلب د حق اقرار وی نو د چا په ذمه چه حق دے د هغهٔ اقرار ضروری شه) او د د لیکلو په وخت کښے هم د الله نه چه د دهٔ پروردګار دے یریږی دے او په دے (حق) کښے دے یو ذره هم (په ښودو کښے) کمے نه کوی. بیا د چا په ذمه چه حق واجب وهٔ هغه که عقل ئې کم وهٔ (یعنے بے پوهے یا لیونے وهٔ) یا بدن ئې کمزورے وهٔ (یعنے نابالغ یا ډیر بوډها وهٔ) او یا (په بله څهٔ وجه سره) په خپله (ربیان کولو او) لیکلو طاقت ئې نه لارهٔ (مثلاً چاړا وهٔ او لیکونکے د دهٔ په اشاره نه پوهیدهٔ. یا د بل مُلک وهٔ ژبه ئې بله وه او لیکونکے د دهٔ په ژبه نهٔ پوهیدهٔ) نو (په داسے صورت کښے دے) د دهٔ کارګذار په ټهیک ټهیک طور سره اولیکی او دوه سړی په خپلو کښے ګواهان (هم) جوړه کړئ (او شرعًا اصل ثبوت د دعوے په دے ګواهانو سره دے اګر که خط نه وی. او یوائے لیکلے خط بغیر د ګواهانو نه نهٔ ثبوت دے او نهٔ معتبر دے. د خط لیکل صرف د یاداشتو پاتے کیدو د آسانئ د پاره دے چه د خط مضمون او وینی او یا واوری نو ټوله واقعه به ورته را یاده شی. لکه چه داسے ډیره نزدے په قرآن شریف کښے راروان ده) بیا که دغه دوه ګواهان سړی (موجود) نه وی نو یو سړے او دوه ښځے (دے ګواهان جوړه شی) د داسے ګواهانو نه کوم چه تاسو (د اعتبار په وجه سره) خوښوئ او

دَ یو سړي په ځائې دوه ښځې په دې وجه مقرر شوې) چه که په دې دواړو ښځو کښې دَ یوې نه هم (دَ شهادت څۀ حصّه دَ فکرنه یا دَ شهادت بیانه دَ لو په وخت کښې) هیرشي نو یوه به بلې ته یاده وي (دَ یادونه پس به دَ شهادت بیان پوره شي) او ګواهان دې هم انکار نه کوي کله (دَ ګواه جوړیدلو دَ پاره) چه راوبللې شي (چه په دې کښې مدد دې دَ خپل زور) او تاسو دَ دې (قرض) دَ (باربار) لیکلو نه ځان ستو مانه کوئ مَه خواه که دغه (معامله دَ قرض) لږه وي یا ډیره دا لیکل انصاف زیات قائم کول دي دَ الله تعالیٰ په نزد، او شهادت ډیر صحیح ساتي او زیات لایق دې دَ دې خبرې چه تاسو (دَ معاملے په باره کښې) په څۀ شُبه کښې پرې نۀ اوځئ (په دې وجه لیکل ئې ښۀ دي) مګر چه کومه سودا لاس په لاس وي چه یو بل لره ورکوئ او اخلئ نو دَ دې په نۀ لیکلو کښې په تاسو باندې څۀ الزام (او ضرر) نیشته او (دومره په دې کښې هم ضرور کوئ چه دَ دې) دَ اَخستلو خرڅولو په وخت کښې ګواه نیسئ (شاید چه صبا په کښې څۀ خبره راوځي مثلاً خرڅونکے اووائي چه ماته پیسے نه دي ملاؤ شوي، یا دا شے خو ما دَ سره خرڅ کړے نه دے، یا اخستونکے اووائي چه ما درسره دَ واپس کولو خیار ایخود ے وۀ. یا تر اوسه پورے لا خرڅ شوے شے ماته نه دے ملاؤ شوے) او (لکه څنګه چه موږه بره لیکونکے او ګواه منع کړل چه دَ لیکلو او ګواهۍ نه به انکار نه کوي. دغه شان موږ په تاسو باندے هم تاکید کوو چه تاسو هم) کاتب ته تکلیف مه ورکوئ او نه چا ګواه ته (مثلاً دَ خپل مصلحت دَ پاره دَ هغه په مصلحت کښې خلل اوغورزَه وئ) او که تاسو دا سے اوکړئ نو تاسو لوه به پکښې ګناه وي او دَ خدائے تعالیٰ نه یَریږئ (او دَ کومو کارونو نه چه هغۀ منع کړي ئې هغه مَه کوئ) او الله تعالیٰ (ستاسو احسان کوي چه) تاسو ته (دَ فائدے حکمونه) ښائي او الله تعالیٰ په هرڅۀ پوهه دے (نو هغه حکم منونکے او نا فرمانه هم پیژنۍ هر یو لره به مناسبه بدله ورکړي) او که تاسو (دَ قرض معامله کولو په وخت کښې) چرته په سفر باندے یئ او دَ خط لیکلو دَ پاره هلته) څوک لیکونکے نه مومئ پس (په دا سے حالت کښې دَ تسلّي دَ پاره) دَ ګانړه کولو څیز و نه (دي) چه (دَ قرض دارۍ دَ طرف نه دَ حق دَ مالک) په قبضه کښې ورکړے شي او که (په دا سے وخت کښې هم) په یو بل اعتبار کوئ (او په دے وجه دَ ګانړے ضرورت نه ګنړئ) نو په کوم سړي چه

اعتبار او کړے شي (یعنے قرضدار ے) دهٔ لره په کار دي چه دَ بل حق (پوره پوره) ادا کړي او دَ الله تعالیٰ نه چه دَ دهٔ پروردګار دے یَریږي را او دَ هغهٔ حق ا ونهٔ ومې او شهادت مه پټوئے او څوک چه شهادت پټوي دَ هغهٔ زړهٔ به ګناه ګار وي او الله تعالیٰ ستاسو کړي کارونه ښهٔ پیژني (پس که څوک شهادت پټ کړي نو هغه تر ے خبر دے پس هغهٔ به ور لره سزا ورکړي) ÷

# مَعلومات اومَسئلے

دَ قرض او نسیا دَ پاره اقرارنامه لیکلو هدایت او دَ دے متعلق احکام

په دے ذکر شو و آیاتونو کښے دَ معاملو قانون چه نن صبا ورته دَ معاهدو قانون وائي دَ دے ضروري اصول بیان شوي دي - او دَ دینه پس بیا دَ شهادت دَ قانون خاص اُصول ذکر دي-

نن صبا خو دَ لیکلو لوستلو زمانه ده - او لیک دَ انسان دَ ژبے په ځائے اُودریدلے دے - لیکن دَ نن نه څوارلس سوه کاله وړمبئ زمانے ته چه ځ واړه دَ لے شي آو اُوکتے شي نو دغه وخت دَ دنیا ټول کاروبار صرف زباني وُه - دَ لیکلو او اقرارنامے تیاره ولو اصول دَ سړئ نه وُو - دَ ټولونه اول قرآن دے طرفته دَ خلقو فکر را واړا وُه آو اُوئے فرمایل :-

اِذَا تَدَایَنۡتُمۡ بِدَیۡنٍ اِلٰۤی اَجَلٍ مُّسَمًّی فَاکۡتُبُوۡهُ : یعنے کله چه تاسو په خپل مینځ کښے دَ قرض معامله کوئ دَ مقرر ے نیټے پور ے نو هغه لیکئ -

په دے کښے یو اُصول دا او خود ے شو چه دَ قرض معاملو اقرارنامه لیکل په کار دي چه دَ هیر ید و یا انکار په وخت کښے په کار راشي -

دویمه مسئله دا بیان شوه چه کله دَ قرض معامله کولے شي نو نیټه دے په کښے خامخا مقرر کوي دَ غیر مقرر ے نیټے پور ے قرض ورکول اخستل جائز نه دي ځکهٔ چه په دے کښے دَ جګړے او فسا د دروازه پرانستے کیږي - په دے وجه فقهاؤ فرمایلي دي چه نیټه به هم داسے مقرره ولے شي چه په هغې کښے څه پټ والے نه وي میاشت او تاریخ به دواړه مقرر کوي څهٔ مُبهَمه نیټه به نه مقرر کوي لکه مثلاً دَ فصل دَ کټ کولو دَ وخته پور ے ځکه چه په دے کښے دَ موسم په وجه وړاند ے والے یا روستو والے راتلے شي - او چونکه لیکل په دغه زمانه کښے عام نه وُو - او نن هم که عام دي خو دَ دُنیا

چیره آبادی داسې ده چه په لیکو نه پوهیږی. نو داکید ې شوه چه لیکونکے څه
بل څۀ اولیکی چه دچا فائده اودچا نقصان اوشی په دے وجه ئے دَ دے نه پس
اوفرمایل :-

: وَلْيَكْتُبْ بَّيْنَكُمْ كَاتِبٌ بِالْعَدْلِ : یعنے دا ضروری ده چه ستاسو په مینځ کښے څوک
لیکونکے په انصاف سره اولیکی -

په دے کښے خو یوه داخبره اوخودے شوه چه لیکونکے دے دَ یو فریق خاص
سړے نه وی بلکه غیرجانبدار دے وی چه دَچا پرے شك اوشُبه نه راځی - دویم
لیکونکی ته هدایت اوشه چه په انصاف سره دے لیکی - دَبل دَفائی نقصے دَ پاره دے
خپل دَ هیڅه تاوان نه کوی - دَ دینه پس لیکونکی ته دا هدایت اُوشه چه الله تعٰ
دۀ ته دا هنر خودلے دے چه دے لیکل کولے شی - نو دَ دے شکرانه دا ده چه دے
دے دَ لیکلو نه انکار نه کوی -

دَ دے نه پس ئے دا اوخودل چه دَ اقرارنامے لیکل به دَچا دَ طرفه وی ؛ نو
اوئے فرمایل :

: وَلْيُمْلِلِ الَّذِي عَلَيْهِ الْحَقُّ : یعنے دَ اقرارنامے بیان دے دَ هغه سړی دَ خولے لیکلے
شی چه دَچا په ذمه حق دے - مثلاً سودائے واخسته او قیمت ئے نسیا کړو نو په
چا باندے چه قرضه ده هغۀ به دَ اقرارنامے بیان لیکی. ځکه چه دا به دَ دۀ دَ طرفه
یو قسم اقرار وی - او دَ اقرارنامے په بیان کښے هم دا شک کیدے شه چه څۀ کمے یا
زیاتے به کښے اوکړی په دے وجه ئے اوفرمایل :

: وَلْيَتَّقِ اللَّهَ رَبَّهُ وَلَا يَبْخَسْ مِنْهُ شَيْئًا : یعنے دَ الله تعالے نه چه دَ دۀ پروردګار
دے یره دے کوی او په حق لیکلو کښے دے یوه ذره قدرے هم کمے نه کوی - په معاملو
کښے کله داسے هم کیدے شی چه په چا حق راځی - هغه نا پوهه یا لیونے، بوډا یا نابالغ
بچے یا چاړا وی یا چرته دَ بلے ژبے وَیُونکے وی چه لیکونکے پرے نه پوهیږی په دے وجه
دَ اقرارنامے بیان دے نه شی ویلے - نو په دے وجه ئے دَ دینه پس اوفرمایل چه که چرے
داسے صورت رابیخ شی نو دَ دۀ دَ طرفه دے دَ دۀ وَلی اولیکی - دَ لیونی او نابالغ دَ طرف
نه خو دَ وَلی موجوداے ښکاره دے ځکه چه دَ دوی ټولے معاملے دَ وَلی په معرفت سره
کیږی - او دَچاړا یا دَ بلے ژبے وَیُونکی وَلی هم دا کار کولے شی - او که دوی څوک قائله

وکیل جوړ کړی نو هم کیدے شي - په قرآن کښے په دے ځائے کښے په لفظ دَ ولی کښے دواړه معنے دی -

دَ شهادت دَ ضابطے یوڅو اهم اصول

تر دے ځائے پورے په معاملو کښے دَ اقرارنامے دَ لیکلو اَهم اصولو بیان وُه - اوس وړاندے واخودے شي چه دَ اقرار نامے صرف لیکل کافی مه ګڼړئ - بلکه په دے باندے ګواهان هم جوړه وئے چه کچرے څۀ وخت په مینځ کښے جګړه راپیخه شي نو په عدالت کښے به دَ دے ګواهانو په ګواهئ سره فیصله اوشي - دا وجه ده چه فقهاؤ فرمايلي دی چه محض لیکلی شرعی دلیل نۀ دے، ترڅو پورے چه په دے شرعی شهادت موجود نه وی په خالی لیکلو باندے هیڅ فیصله نۀ شی کیدے - نن صبا دَ عامو عدالتونو هم دا دستور دے - چه په لیکلو باندے بغیر دَ زبانی تصدیق او شهادت نه څۀ فیصله نه کوی -

دَ ګواهئ دَ پاره دوه سړی یا یو سړے او دوه ښځے موجود کیدل ضروری دی

دَ دینه پس دَ شهادت دَ ضابطے (قانون او قاعدے) یوڅو اَهم اصول خودے شي -

مثلاً (۱) ګواهان دوه سړی یا یو سړے او دوه ښځے کیدل ضروری دی - یو یواځے سړے یا صرف دوه ښځے په عامو معاملو کښے دَ ګواهئ دَ پاره کافی نۀ دی -

دَ ګواهانو شرطونه

(۲) دویم دا چه ګواهان دے مسلمانان وی په لفظ دَ مِنۡ رِّجَالِكُمۡ کښے دا خودنه شوے ده - (۳) دریم دا چه ګواهان چه ثقه او عادلان وی چه په وَینائے یقین راتلے شي فاسقان او فاجران نه وی - په: مِمَّنۡ تَرۡضَوۡنَ مِنَ الشُّهَدَآءِ کښے دا حکم ذکر دے -

دَ ګواهئ ورکولو نه انکار کول بے دَ شرعی عذر نه ګناه دے

دَ دینه پس خلقو ته دا هدایت اوشه چه کله دوی په څۀ معامله کښے دَ ګواهئ دَ پاره راوُبللے شي نو دوی دے دَ راتلو نه انکار نه کوی - ځکه چه شهادت دَ حق ژوندی کولو ذریعه او دَ جګړے ختمه دَ لو طریقه ده - په دے وجه دا یو ضروری او اَهم قومی خدمت ګڼړل او تکلیف برداشت کول په کار دی - دَ دینه پس بیا دَ معاملے دَ اقرارنامے لیکلو تاکید کوی فرمائی چه معامله وړه وی او که لویه ټولے لیکل په کار دی - په دے کښے ځان مه ستومانه کوئے ځکه چه معاملات لیکل انصاف قائمول او صحیح شهادت ورکول او دَ شک او شبهٔ نه

دَ بچ کیدو دَ پاره غوره ذریعه ده - البته که معامله لاس په لاس وی نَسیَا نه وی نو داکه نه لیکی ، خیر دے - لیکن دومره دے په دے کښې هم کوَلے شی چه په معامله دے گواهان اونیوَلے شی شاید که څهٔ وخت په جانبینو کښې جگړه پیدا شی مثلاً خرڅوُنکے اووائی چه ما قیمت نه دے وصول کړے - یا اَخستونکے اووائی چه ما اخستے شوے شے پوره نه دے وصول کړے - نو په داسے جگړو کښې شهادت په کار راځی -

په اسلام کښې دَ عدل او انصاف قائمولو اهم اصول چه گواهانو ته دَ نقصان یا تکلیف نه شی رَسوَلے

دَ ایٓت په شروع کښې لیکونکو ته دا هدایت شوے دے چه دوی دے دَ لیکلو یا گواه جوړیدو نه انکار نه کوی - نو دلته دا احتمال وَه چه خلق دے دوی لره نه پریشانه کوی - کړ دے وجې نه ئے په اٰخر دَ ایٓت کښې اوفرمایل: وَلَایُضَآرَّ کَاتِبٌ وَّلَاشَهِیۡدٌ ، یعنے لیکونکی یا گواهی کوُنکی ته دے نقصان نه شی رَسوَلے - یعنے داسے دے نه کوی چه دَ خپل مصلحت او فائدے دَ پاره دَ هغوی مُصلحت او فائدے ته خَلَل اورَسولے شی - بیا فرمائی : وَاِنۡ تَفۡعَلُوۡا فَاِنَّهٗ فُسُوۡقٌۢ بِکُمۡ : یعنے که تاسو لیکونکی یا گواه ته نقصان اورَسوَلو نو په دے کښې به تاسو لره گناه وی -

دَ دے نه معلومه شوه چه لیکونکی یا گواه ته نقصان رَسوَل حرام دی - څکه فقهاؤ فرمایلی دی چه که لیکونکے دَ خپلو لیکلو مزدوری غواړی - یا گواه دَ خپلو تلو راتلو ضروری خرچ غواړی نو حق ئے دے - دا نهٔ اَداکول هم دوی ته په نقصان رَسوَلو کښې داخل دی - او دا جائز نه دی - اسلام په خپل عدالتی نظام کښې چه څنگه گواه لره په گواهئ ورکولو مجبوره کړے دے او گواهی پټولو ته ئے سخت گناه ویلے دے - دغه شان ئے دَ دے هم انتظام اوکړهٔ چه خلق دَ گواهئ نه په ځان بچ کوَلو مجبوره نه شی - کَ دے دواړه طرفه دَ احتیاط دا اَثروَه - چه په هره معامله کښې رِشتینی بے غرضه گواهان ملاؤ شو او فیصلے زَر او آسانے او دَ حق مطابق اوشی - نن دنیا دا قرآنی اوصول پاتے کړی دی نو ټول نظام دَ عدالت برباد دے - دَ واقعے اصلی او رشتونی گواهان ملاویدل تقریبًا چه وُرَک دی - هر سړے دَ گواهئ نه په ځان ساتلو مجبوره دے

وجه ئې دا ده چه د چا نوم په ګواهئ کښې راغے نو که معامله د پولیس او فوجدارئ وی نو روزانه وخت بې وخته به تا ئید ار صاحب د ے راغواړی او اکثر به ئې په کنټو کښې ناست وی - په دیوانی عدالتونو کښې هم د ګواه سره دا سې معامله کولے شی لکه د مجرم سره چه کوی - او روزانه به د مقدمے پیشیانے بدلیږی - تاریخونه به مقرر کیږی ګواه عاجز به خپل کاروبار او منزل دوری پاتے کولو او راتلو مجبوره وی. او که نه راځی نو د وارنټ په ذریعه به ګرفتاره ولے شی - په دے وجه یو شریف او کاروباری سړے ګواه جوړیدل په څۀ معامله کښې د ځان د پاره عذاب ګڼړی او د خپل وس مطابق د دے نه په ځان ساتلو مجبور شوے دے - صرف پیشه ور ګواهان ملاویږی چه په رشتیا او دروغو کښې د هغوی څه فرق نه وی - قرآن کریم د دے بنیادی ضرورتونو د اهمیت خو د لو سره د دے ټولو خرابو لاره بنده کړے - د ایت په اخر کښې فرمائی: وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَيُعَلِّمُكُمُ اللّٰهُ وَاللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ: یعنې د الله نه یریږئ او الله تعالی تاسو ته صحیح طریقې بنائی - دا د هغۀ احسان دے او الله تعالی په هر څۀ پوهید ونکے دے - چونکه په دے ایت کښې ډیر احکام راغلی دی - بعض فقهاؤ شل اهم فقیه مسئلے د دے ایت نه راویستلے دی - او د قرآن کریم عام عادت دے چه د قانون بیانو لو نه وړاندے وروستو د خدائے یره او د قیامت یره بیان کړی د خلقو ذهنونه د حکم منلو ته تیاره وی - د دے طریقے په مطابق د دے ایت خاتمه ئې هم د خدائے تعالی نه په یره سره اوکړه - او دا ئې اوخودله چه د الله تعالی نه څۀ شے پټ نیشتے - که تاسو به څۀ ناجائزه حیله باندے هم خلاف ورزی اوکړئ نو خدائے پاک له د وکه نه شئ ورکولے -

په دویم ایت کښې ئې دوه اهم مضمونونه بیان کړه - یو دا چه د قرض په معامله کښې که ثوک دا غواړی چه د اعتماد د پاره څۀ شے ګانړه کیدی نو د دے هم اجازت شته مګر په لفظ د "مَقْبُوضَةٌ" سره د ے ته اشاره ده چه د ګانړه شوی شی نه نفع اخستل د ده د پاره جائز نه دی ګانړه کونکی ته صرف دومره حق دے چه د خپل قرض د وصول کولو پورے دغه شے په خپل قبضه کښې ساتی - او فائدے به ئې ټولے د اصل مالک وی.

دویم مضمون ئے دا او فرمایه چه کوم سړی ته د یو جګړه ایزے معاملے په باره کښے صحیح علم وی هغه دے شهادت نه پټوی او که پټ ئے کړه نو د دهٔ زړهٔ ګناهګار دے زړهٔ ته ئے ځکه ګناهګار او وے چه څوک داخالی د ژبے ګناه او نهٔ ګنړی. ځکه چه اوّل اراده د زړهٔ نه کیږی نو په دے وجه اوّل ګناه د زړهٔ دے۔

---

لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ۭ وَاِنْ تُبْدُوْا مَا فِيْٓ اَنْفُسِكُمْ

خاص الله لره دی هغهٔ څهٔ چه په آسمانونو کښے دی او په زمکه کښے دی۔ او که ښکاره کوئے هغه چه په زړه ستاسو کښے دی

اَوْ تُخْفُوْهُ يُحَاسِبْكُمْ بِهِ اللّٰهُ ۭ فَيَغْفِرُ لِمَنْ يَّشَاۗءُ وَيُعَذِّبُ مَنْ

یا پټوئے هغه حساب به او کړی په هغے ستاسو سره الله - بیا به اوبخی چالره چه او غواړی او عذاب به کړی چالره چه

يَّشَاۗءُ ۭ وَاللّٰهُ عَلٰي كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۲۸۴﴾

او غواړی - او الله په هر څهٔ باندے قادر دے۔

## لنډ تفسیر

خاص د الله تعالیٰ په ملکیت کښے دی ټول (مخلوقات) څهٔ چه په آسمانونو کښے دی او څهٔ چه په زمکه کښے دی (دا سے خو زمکه آسمان په خپله د دهٔ په ملکیت کښے دی- او چه هرکله مالک هغه دے نو هغهٔ ته په خپل ملکیتی څیزونو کښے د هر قسم قانون جوړه ولو حق دے چالره په کښے مجال د خبرے کولو نه دے په کار- لکه چه یو قانون دا سے دے چه) کومے خبرے (د فاسد و عقیدو یا د بد و اخلاقو یا په ګناهونو باندے د پوخ قصد او اراد ے) چه ستاسو په نفسونو کښے دی دغه که تاسو (په ژبه او اندامونو) ښکاره کوئے (مثلا په ژبه سره د کفر کلمه او وائے یا د خپل تکبر حسد وغیره اظهار او کړئے یا د څه ګناه قصد دهٔ هغه او کړئے) یا که (په زړهٔ کښے) پټ سا تئے (په دواړو حالتو نو کښے به) الله تعالیٰ ستاسو سره (په شان د نورو ګناهونو د هغے) حساب او کړی بیا (د حساب نه پس بغیر د شرک او کفر نه

چا لره رچه بخل غواړي او بې مخي او چا لوه چه رسزاورکولى غواړي سزا به ورکړي او الله تعالیٰ په هرڅه باندې پوره قدرت لرونکې دے۔

# مَعلومَات او مَسئلے

په تېر ايت کښې دَ ګواهئ دَ پټولو حکم اود پټولو نه دَ منع ذکر وه۔ دا ايت هم دَ دغه مضمون دَ پوره کولو دَ پاره دے په دے کښې انسان ته دا اُخو دَلے شو چه دَ شهادت پټول حرام دى که تاسو ته معامله معلومه وه او پټه مو کړه نو الله پاک پوهه او خبردار به ستاسو سره حساب کوى۔ دَ حضرت ابن عباس رض، عکرمه رح شعبى رح او مجاهد رح نه ئے دا تفسير نقل دے۔ (قرطبى)

او دَ الفاظو دَ عموالى په وجه سره عام دے ټولو عقيدو عباداتو او معاملو لره شامل دے۔ دَ حضرت عبدالله ابن عباس رض مشهور قول دَ دے ايت په تفسير کښې دا دے او معنىٰ دَ ايت داده چه الله تعالىٰ به دَ خپل مخلوق دَ ټولو عملونو حساب کوى دَ هغو هم چه کوم دۀ کړى دى او دَ هغو هم چه کۀ دۀ په زړۀ کښې ئے پخه اراده راغلے وه او په زړۀ کښې ئے پټه ساتلے وه ليکن دَ کولو موقع ئے نه وه راغلے لکه په صحيح بخارى او مسلم کښې په روايت دَ حضرت ابن عمر رض نقل دى چه ما دَ نبى کريم صلے الله عليه وسلم نه آوريدلى دى چه مؤمن به دَ قيامت په ورځ خپل رب ته چه لوئے او غالب دے نزدے کړے شي تر دے چه الله تعالىٰ به دَ دۀ يو يو ګناه دۀ ته رايادکړى۔ او تپوس به ترے اوکړى چه تا ته معلومه وه چه تا دا ګناه کړے وه۔ بنده مؤمن به اقرار اوکړى الله تعالىٰ به او فرمائى چه ما په دنيا کښې پټا پردۀ اچولے وه او ستا ګناه م خلقو ته نه وه ښکاره کړے او نن زۀ هغه معاف کوم او دَ نيکو عملنامه به دۀ لره ورکړے شي۔ ليکن دَ کافرانو او منافقانو ګناهونه به په عامو خلقو کښې بيان کړے شى۔

او په يو حديث کښې دى چه الله تعالىٰ به دَ قيامت په ورځ او فرمائى چه دا هغه ورځ ده چه په دے کښې به دَ پټو څيزونو جا ئزه اغستے شي او دَ زړونو پټ رازونه به ښکاره کړے شي او دا چه زما عمل ليکونکو فرښتو خو ستاسو صرف هغه عملونه ليکلى دى چه ښکاره وُو۔ او ما ته هغه هم معلوم دى کوم چه فرښتے ترے خبر نه دى۔ اُو نه دوی هغه ستاسو په عملنامه کښې ليکلي دى۔ او اُوس هغه ټول تاسو ته خايم۔ او په دے دَرسره

حساب کوم بیا چه چاله وه غواړم معاف به ئې کړم او چا لره چه غواړم عذاب به ئې کړم بیا به مؤمنان معاف کړے شی او کافرانو لره به عذاب ورکړے شی (قرطبی)

ولته دا شبه پیدا کیږی چه په حدیث کښې د نبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے:

إِنَّ اللهَ تَجَاوَزَ عَنْ أُمَّتِيْ عَمَّا حَدَّثَتْ أَنْفُسُهَا مَا لَمْ يَتَكَلَّمُوْا أَوْ يَعْمَلُوْا بِهٖ (قرطبی)

"الله تعالیٰ زما د امت نه معاف کړیدی هغه کوم چه د دوی په زړهٔ کښې خیال راشی تر څو چه ئې هغه په ژبه نه وی ویلی یائې پرې عمل نه وی کړے"

د دینه خو معلومه شوه چه د زړهٔ په اراده څهٔ عذاب او زور نهٔ نیشتے۔ امام قرطبی فرمائی چه دا حدیث د دنیا د احکامو سره تعلق لری طلاق، ازاده ول، بیعه، هبه ریا ته څهٔ بخل) وغیره محض د زړهٔ په اراده کولو سره نه شی ثابت کید ے تر څو چه ئې په ژبه نه وی ویلی یائې پرے عمل نه وی کړے۔ او په ایت کښې چه کوم ذکر دی دغه د اخرت د حکمونو سره تعلق لری۔ نو د دواړو په مینځ کښې څهٔ ټکراؤ نیشتے۔ او نورو عالمانو صاحبانو د دے شبهِ جواب دا کړے دے۔ چه یکوم حدیث کښې چه د زړهٔ د پټو خیزونو معافی ذکر ده د دینه مراد هغه وَسْوَسے او د اختیار نه باهر هغه خیالونه دی چه د انسان په زړهٔ کښې بغیر د قصد او ارادے نه راځی بلکه د دے په خلاف په اراده کولو سره هم دا راځی۔ نو په دا سے غیر اختیاری خیالاتو او وسْوَسو د امُت الله تعالیٰ معاف کړے دے۔ او په ذکر شوی ایت کښې چه د کوم حساب کولو ذکر دے۔ د دینه مراد هغه ارادے او نیتونه دی چه انسان ئې په خپل قصد او اختیار سره په خپل زړهٔ کښې ځائے کړی۔ او د دے په عمل کښې د را وستو کوشش هم کوی۔ بیا اتفاقی طور سره څهٔ بندیزونه راځکیتے شی او عمل پرے او نه کړے شی۔ د قیامت په ورځ به د دے محاسبه وی۔ بیا الله تعالیٰ چالره چه غواړی او به ئې بخی او چا لره چه غواړی عذاب به ئې کړی۔ لکه چه په ذکر شوی حدیث د بخاری او مسلم کښې تیر شو۔ او چونکه د ذکر شوی ایت په ظاهری الفاظو کښې دواړه قسم خیالات داخل دی که اختیاری وی او که غیر اختیاری۔ په دے وَجْهَ چه کله دا ایت نازل شو نو اصحاب کرامؓ سخت فکرمند او غم جن شو۔ چه که په غیر اختیاری خیالونو او وسو سو باندے هم نیول شی نو بیا خو یو تن هم د خلا صیده ونه دے۔ صحابه کرامو خپل دا فکر نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته عرض کړو نو حضورﷺ ټولو ته دا تلقین او فرمایه چه د الله تعالیٰ د طرفه

څهٔ حکم نازل شوے دے د دے د منلو او تابعدارئ پخه اراده اوکړهٔ او ووائی: سَمِعْنَا وَاَطَعْنَا: "یعنے مونږ حکم واوریده او مونږ او منلو". صحابه کرامو هم دغه سے اوکړل. نو په دے د قرآن کریم دا جُمله نازله شوه: لَا یُکَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا: "یعنے الله تعالیٰ چا لره د هغه د طاقت نه زیات تکلیف نه ورکوی".

چه د دے مطلب دا دے چه په غیر اختیاری وسوسو او خیالونو باندے نیول نیشته۔ نو په دے سره د اصحابو تسلّی اوشوه۔ دا حدیث په صحیح مسلم کښے په روایت د ابن عباس رضی نقل شوے دے (قرطبی) او دا یوه ایت محکمه راروان دے۔

او په تفسیر مظهری کښے دی چه په انسان کوم عملونه د الله تعالیٰ د طرف نه فرض شوی دی یا حرام شوی دی۔ هغهٔ څهٔ ده ظاهرها اندامونو او بدن سره تعلّق لری لکه مونځ، روژه، حج، زکوٰة او ټول معاملات چه دی دا په دے قسم کښے داخل دی۔ او څهٔ عملونه او حکمونه هغه هم دی چه د انسان د زړهٔ او باطن سره تعلّق لری د ایمان او عقیدے ټولے مسئلے په دے کښے داخلے دی، او د کفر او شرک چه د ټولونه زیات حرام او نا جائز دی د دے تعلّق هم د انسان د زړهٔ سره دے، ښهٔ خویونه، تواضع، صبر، قناعت، سخاوت وغیره۔ دغه شان بد خویونه، کبر، حسد بُغض، د دُنیا محبّت، حرص وغیره چه دا ټول څیزونه په یوه درجه کښے قطعی حرام دی۔ د دے ټولو تعلّق هم د انسان د زړهٔ او باطن سره دے۔

په دے ایت کښے ئے دا خود نه کړے ده چه څنګه د ظاهرئ عملونو حساب به په قیامت کښے اغستے شی. دغه شان به د باطنی عملونو هم حساب وی، او به خطا باندے به نیول وی۔ دا ایت ئے د سورتِ بقرہ په اخر کښے راوړے په دے کښے لوئے حکمت دے څُکه چه سورتِ بقره د قرآن کریم دا سے لوئے او اهم سورت دے چه په دے کښے د الله تعالیٰ د حکمونو ډیره لویه حصه راغلے ده۔ په دے سورت کښے بنیادی او فرعی د دنیا د ژوند او د اخرت متعلق ډیر ضروری هدایتونه، مونځ، زکوٰة، روژه، قصاص، حج، جهاد، پاکی، طلاق، عدت، خُلع، رضاعت، د شرابو حرام والے، ربا، او قرض۔ د لین دین د جائزو او ناجائزو طریقو په تفصیل سره بیان راغلے دے۔ په دے وجه په حدیث کښے د دے سورت نوم "سنام القرآن" هم راغلے دے۔ یعنے د قرآن د ټولو نه لوړه حصه، او د دے ټولو احکامو په منلو او پوره کولو کښے د ټولو روح اخلاص دے۔

یعنې د یو کار کول یا ترې ځان ساتل دواړه خالص د الله تعالیٰ د رضا د پاره وي - په دې کښې د نوم نمائش یا څه نفساني غرض شامل نه وي. او دا ښکاره خبره ده چه د اخلاص تعلق د انسان د باطن او زړهٔ سره دے د تیولو تیک والے په دے باندې دے. په دے وجه ئې د سورت په آخر کښې د دے ایت په ذریعه انسان خبردار کړو چه د فرضو په ادا کولو یا د حرامونه د ځان ساتلو په معامله کښې خو به د مخلوق په مخکښې په حیله بهانه ځان خلاص کړے شي - مګر الله تعالیٰ چه پوهه او خبردار دے د هغهٔ نه هیڅ شے هم پټ نیشتے په دې وجه څهٔ چه کوئے نو دا ګنړئ چه ستونکے او حفاظت کونکے ځما ټول ظاهر او باطن حالات لیکي. او د ټولو حساب به د قیامت په ورځ ورکول وي. دا هغه روح دے چه قرآن کریم ئې په انسانانو کښې پیدا کوي چه د هر قانون په اول یا په آخر کښې د الله تعالیٰ یره او د آخرت د فکر داسے حفاظت کونکے د دوي په زړونو باندې کینوي چه بیا دے د ښپے په تیرو کښې او په تنهائۍ کښې هم د حکم نه په خلاف ورځۍ کولو یریږي -

اٰمَنَ الرَّسُوْلُ بِمَآ اُنْزِلَ اِلَيْهِ مِنْ رَّبِّهٖ وَالْمُؤْمِنُوْنَ ؕ كُلٌّ اٰمَنَ

منلی دی رسول څهٔ چه نازل شو په دهٔ د دهٔ د رب د طرفه او مسلمانانو هم - ټول مني

بِاللّٰهِ وَمَلٰٓئِكَتِهٖ وَكُتُبِهٖ وَرُسُلِهٖ ۣ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ اَحَدٍ مِّنْ

الله لره او د هغهٔ فرښتو لره او د هغهٔ کتابونو لره او د هغهٔ رسولانو لره - وائي چه مونږ نه جدا کوو یو لره د

رُّسُلِهٖ ۣ وَقَالُوْا سَمِعْنَا وَاَطَعْنَا ۤ غُفْرَانَكَ رَبَّنَا وَاِلَيْكَ

رسولانو نه - او وائي چه مونږ واوریده او قبول مو کړه - ستا نه بخنه غواړو اے زمونږ ربه - او ستا طرف ته

الْمَصِيْرُ ﴿۲۸۵﴾ لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا ؕ لَهَا مَا كَسَبَتْ

واپس کیدل دي - الله تکلیف نه ورکوي چا لره مګر خو مره چه د هغهٔ طاقت وي - دهٔ ته ملاویږي څهٔ چه دهٔ او ګټل

وَعَلَيْهَا مَا اكْتَسَبَتْ ؕ رَبَّنَا لَا تُؤَاخِذْنَآ اِنْ نَّسِيْنَآ اَوْ اَخْطَاْنَا ۚ

او په دهٔ غورځیږي څهٔ چه دهٔ او کړه - اے زمونږ ربه مه نیسه مونږ لره که مونږ نه هیر شي یا خطا شو -

رَبَّنَا وَلَا تَحۡمِلۡ عَلَيۡنَآ إِصۡرًا كَمَا حَمَلۡتَهُۥ عَلَى ٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِنَاۚ

اے زمونږ ربه مهٔ اچوه په مونږ بوج دروند لکه چه اچولے وه تا زمونږ نه په وړاندينو باندے.

رَبَّنَا وَلَا تُحَمِّلۡنَا مَا لَا طَاقَةَ لَنَا بِهِۦۖ وَٱعۡفُ عَنَّا وَٱغۡفِرۡ لَنَا

اے زمونږ ربه مه باروه په مونږه هغه چه زمونږ طاقت ورته نه دی. او معاف کړے مونږه او اوبخے مونږه.

وَٱرۡحَمۡنَآۚ أَنتَ مَوۡلَىٰنَا فَٱنصُرۡنَا عَلَى ٱلۡقَوۡمِ ٱلۡكَٰفِرِينَ ﴿٢٨٦﴾ ع ۴۰ ع ۳ ۸

او رحم اوکړے په مونږه. ته زمونږه ربّ مدد او کړے زمونږه په کافرانو باندے.

# لنډ تفسير

عقيده لرى رسول (صلى الله عليه وسلم) دَ هغے شى (په حق والى) چه دهٔ ته دَ دهٔ دَ رب دَ طرفه نازل کړے شوے دے (يعنى قرآن) او (نور) مؤمنان هم (دَ دے عقيده لرى ځکه چه په قرآن دَ عقيدے لرلو تفصيل وادے چه په کوم کوم شى به عقيده لرلو ته په قرآن عقيده لرل ويلے شى) ټول (رسول هم او نور مؤمنان هم) عقيده لرى په الله باندے (چه هغه موجود دے او يو دے او په ذات او صفاتو کښے کامل دے) او دَ دهٔ په فرښتو (چه دَ الله پاک نورى مخلوق دے دَ الله تعالىٰ دَ حکم نه خلاف نه کوى) او دَ هغهٔ په کتابونو (چه دغه ټول حق دى او په خپل خپل وخت پرے عمل کيدو او س دَ قرآن په نازليدو سره منسوخ دى) او دَ دهٔ په رسولانو (چه پيغمبران دى او رښتونى دى او په پيغمبرانو عقيده لرل په دے شان سره دى چه داوائى) چه مونږه په دے پيغمبرانو کښے په يو تن کښے (په عقيده لرلو کښے) جدا والے نه کوو (چه چا لره پيغمبر گنړو او چا لره نه گنړو) او دے ټولو داسے اووے چه مونږه (ستاسو ارشاد) واوريده او (دهٔ لره مو) په خوشحالئ سره اومانه ستا نه بخنه غواړو اے زمونږ پروردګاره او ستا طرفته (زمونږ دَ ټولو) واپسى ده (يعنے مونږ چه په اوّل ايت کښے ويلى دى چه دَ زړونو په پټو خبرو به هم محاسبه وى دَ دينه مراد غير اختيارى کارونه نه دى بلکه صرف اختيارى کارونه دى ځکه چه) الله تعالىٰ چا لره (په احکامو دَ شرعے کښے) نه مکلف کوى (يعنے دغه کارونه

واجب یا حرام وی نه) مګر هغه چه ګ دهٔ په طاقت (او اختیار) کښے وی دهٔ لره ثوا ب
هم ګ هغې دے چه په اراده سره ئے اوکړی او په دهٔ به عذاب هم ګ هغې وی چه په
اراده سره ئے اوکړی (او کوم چه ئے ګ طاقت نه باهر وی په هغې کښے ئے مکلف کړے
نه دے او ګ کوم سره چه قصد او اراده پیوست نه وی ګ هغې نه ثواب شته اونه
عذاب او وسوسے ګ طاقت نه باهر دی نو ګ هغې کول ئے حرام او نهٔ کول ئے واجب
نه کړل (او نه ئے پرے عذاب کیخوده) اے زمونږ ربه مونږ ه مه نیسه که زمونږ
نه هیر شی یا غلطی رانه اوشی اے زمونږ ربه (زمونږ دا هم درخواست دے چه)
په مونږ دا سے سخت حکم مه را لیږ ه لکه زمونږ نه په مخکښے خلقو چه تا لیږلے وه
اے زمونږ ربه او (زمونږ دا درخواست هم کوو چه) په مونږ څهٔ داسے بار (ګ دنیا
یا ګ آخرت ګ تکلیف نه) مه غورزه وے چه مونږ ئے طاقت نه لرو او معاف کړے مونږ
او بخښه او کړے مونږ ته او رحم او کړے په مونږ. تهٔ زمونږ کارساز ئے او کارساز
ګ لر کو نکے وی) پس مونږ لره په کافرانو باندے غالب کړے -

# معلومات او مسئلے

**ګ دے دوه آیتونو خاص فضیلتونه** دا ګ سورت بقره آخری دوه آیاتونه دی - په صحیح احادیثو کښے ګ دے دوه آیاتونو لوئے لوئے فضیلتونه بیان شویدی
نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمایلی دی چه کوم سړی ګ شپے دا دوه آیاتونه او
لوستل نو دا ګ هغهٔ ګ پاره پوره دی -
او ګ ابن عباسؓ په روایت کښے دی چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمایلی
دی چه الله تعالیٰ دوه آیاتونه ګ جنّت ګ خزانو نه نازل کړیدی او چه ګ ټول مخلوق
ګ پیدا کیدو نه ئے دوه زره کاله اول په خپله رحمٰنؔ په خپلو لاسو سره لیکلی وو-
کوم سړے چه دا ګ ماسختن ګ مانځه نه پس او لولی نو دا به ورلره ګ تهجّد په ځائے
او دریږی' او ګ مستدرک حاکم او بیهقی په روایت کښے دی چه نبی کریم صلے الله
علیه وسلّم فرمایلی دی چه الله تعالیٰ سورت بقره په دے دوه وو آیاتو سره
باندے ختم کړے دے کوم چه ما ته ګ خاص خزانے نه راکړی شوی دی کوم چه
ګ عرش لاندے دی په دے وجه تاسو خاص طور سره دا آیاتونه زده کړئے

او خپلو بندګو او بچو ته ئې یاده وېړه. په دې وجه حضرت فاروق اعظم رض او علي مرتضیٰ رضي الله تعالیٰ عنهما فرمایلي دي چه زمونږ دا خیال دے چه کوم سړے چه په چا کښې لږ هم عقل وي هغه به د سورتِ بقره د دے دوه آیاتونو د لوستلو نه بغیر نه اوده کیږي. د دے دوه آیاتونو معنوي خصوصیات خو ډیر دي - لیکن یو ښکاره خصوصیت ئې دا دے چه په سورتِ بقره کښې اکثر شرعي حکمونه مختصر او په تفصیل سره ذکر شوي دي عقیدے، عبادتونه، معاملے اخلاق، د ژوند طریقے وغیره او د آخري دوه آیاتونو نه وړاندے د فرمان بردارو مؤمنانو صفت شوے دے چا چه د الله جل شانه په احکامو لبیک اووے او د حکم منلو د پاره تیار شو او په بل آیت کښې ئې د یوے شُبه جواب ورکړو کومه شُبه چه د دے دوه آیاتونو نه مخکښې اصحابو رض ته پیدا شوے وه - او ورسره ئې د خپل بے حسابه رحمت او فضل ذکر اوکړه - هغه دا ده چه کله د قرآن کریم دا آیت نازل شو: وَاِنْ تُبْدُوْا مَا فِيْٓ اَنْفُسِكُمْ اَوْ تُخْفُوْهُ يُحَاسِبْكُمْ بِهِ اللّٰهُ: څه چه ستاسو په زړونو کښې دي که تاسو ئې ښکاره کوئے او که پټوئے په هر حال کښې به الله تعالیٰ ستاسو سره د دے حساب کوي - د آیت مطلب خو دا ده چه په خپل اختیار او اراده سره کوم عمل په خپل زړه کښې کوئے د دے حساب به وي غیر اختیاري وسوسه او هیر خطا په دے کښې داخل نه وُو - لیکن د قرآن الفاظ په ظاهر سره عام وُو د دے د عام والي نه دا ګنړلے کیده چه که د انسان په زړه کښې په غیر اختیاري طور سره څۀ خیال راشي نو د دے به هم حساب وي - صحابه کرامو رض چه دا واوریده نو اُویریدل او نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته ئې عرض اوکړه چه یا رسول الله (صلی الله علیه وسلم) تر اوسه پورے خو مونږه دا ګنړله چه کوم کار مونږه په خپله اراده او اختیار سره کوُو د هغے عملونو حساب به وي - د غیر اختیاري خیالاتو کوم چه په زړه کښې راځي د هغے حساب به نه وي - مګر د دے آیت نه معلومه شوه چه هر خیال کوم چه په زړه کښې راځي د هغے حساب به وي - په دے کښې خو د عذاب نه خلاصے مونده ډیر ګران دي - نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته خو اګر چه د آیت صحیح مطلب معلوم وُه لیکن د الفاظو د عام والي په وجه ئې د خپل طرف نه څۀ ویل خوښ نه کړه - بلکه د وحئ انتظار ئے اوکړه

او صحابه کرامو ته ئې دا او فرمایل چه د الله تعالیٰ د طرفه څه حکم راشي خواه آسان وي او که گران د مؤمن کار دا دے چه د حق په منلو یوه ذره پښ و پس نه کوي - تاسو لره یکاردي چه د الله تعالیٰ ټول حکمونه واورئ او دا وائی: سَمِعْنَا وَاَطَعْنَا غُفْرَانَكَ رَبَّنَا وَاِلَيْكَ الْمَصِيْرُ ه: یعنې اے زمونږ پروردګاره مونږ ستا حکم واورېدو او مونږ ه او منلو اے زمونږ پروردګاره که د حکم په منلو کښې زمونږ نه څه کمے یا قصور شوے وي نو معاف ئې کړے ځکه چه زمونږ د ټولو ستا طرفته واپسي ده - صحابه کرامو د نبي کریم صلے الله علیه وسلّم د حکم مطابق دا سے اوکړه اګرچه د دوي په ذهن کښې دا خیال ګرځېده چه بے اختیاره په زړه کښې د راتلونکو خیالونو او وَسْوَسُو نه خوبچ کېدل ډېر ګران دي- په دے باندے الله تعالیٰ د سورة بقره دا آخري دوه آیاتونه نازل کړه چه په اول کښې ئې د مسلمانانو صفت اوکړه او په دویم کښې ئې د آیت اصلي تفسیر او خودلو- په کوم چه اصحابو ته شبُهه راپیښه شوے وه - اوس د اول آیت الفاظ اوګورئ:

اٰمَنَ الرَّسُوْلُ بِمَآ اُنْزِلَ اِلَيْهِ مِنْ رَّبِّهٖ وَالْمُؤْمِنُوْنَ ۚ كُلٌّ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَمَلٰٓئِكَتِهٖ وَكُتُبِهٖ وَرُسُلِهٖ ۚ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ اَحَدٍ مِّنْ رُّسُلِهٖ ۚ وَقَالُوْا سَمِعْنَا وَاَطَعْنَا غُفْرَانَكَ رَبَّنَا وَاِلَيْكَ الْمَصِيْرُ ه

یعنې ایمان لري رسول په هغه شي باندے چه ده ته نازل شي د طرفه د رب د ده مه په دے کښې ئې د نبي کریم صلے الله علیه وسلّم صفت اوکړه او په دے کښې ئې په ځائے د دوي د نوم اغستو لفظ د رسول او وے د نبي کریم صلے الله علیه وسلم لوئي او شرافت ئې ښکاره کړو- او د دینه پس ئې او فرمایل: وَالْمُؤْمِنُوْنَ: یعنې لکه څنګه چه د نبي کریم صلے الله علیه و سلّم په خپله د وحئ باندے ایمان او عقیده ده دغه شان پرے د عامو مؤمنانو هم عقیده ده او په دے جمله کښې چه ئې د بیان کوم طرز اختیار کړے دے چه اول ئې پوره جمله د نبي کریم صلے الله علیه وسلم د ایمان په ذکر کښې بیان کړه د دینه پس ئې د مؤمنانو د ایمان جُدا ذکر اوکړو. په دے کښې اشاره ده چه که په نفس ایمان کښې نبي کریم صلے الله علیه وسلم او ټول مسلمانان شریك دي لیکن د ایمان د درجو په اعتبار سره په دواړو کښې لوئے فرق دے - د نبي کریم صلے الله علیه وسلّم علم د لیدو او اورېدو په بنا باندے دے او د نورو مسلمانانو علم ایمان بالغیب دے د نبي کریم صلے الله علیه وسلم د لیدو په وجه -

د دینه پس ئې د دغه ایمان مجمل تفصیل اوخودو چه په دے کښې نبي کریم صلے الله علیه وسلم او ټول مؤمنان شریك دي- چه دا ایمان وه د الله تعالیٰ په وجود او په یو والي باندے-

او په دے چه په ټولو کاملو صفتو نو سره صفت کړے شوے دے۔ او په فرښتو باندے او دَ الله تعالیٰ په کتابونو او په ټولو رسولانو باندے۔

او دَ دینه پس ئے داخبره بنکاره کړه چه دَ دے اُمت مؤمنان دَ تیرو امتونو په شان داسے نه کوی چه دَ الله په رسولانو کښے به جدا والے راولی چه بعض به منی او بعضے به نه منی لکه یهود و چه حضرت موسیٰ علیه السلام لره او نصارا وُ حضرت عیسیٰ علیه السلام لره نبی اُومانه لیکن خاتم الانبیاء صلی الله علیه وسلم لره ئے نبی اومانه۔ دَ دے اُمت ئے دا صفت اوکړه چه دوی دَ الله تعالیٰ دَ یو رسول نه انکار نه کوی۔ او بیا ئے دَ صحابه کرامو په دے جمله باندے تعریف اوکړه کومه چه دوی دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم دَ ارشاد موافق په ژبه سره ویلی وه، سَمِعْنَا وَاَطَعْنَا غُفْرَانَكَ رَبَّنَا وَاِلَيْكَ الْمَصِيْرُ ۔

دَ دینه پس په دویم ایت کښے ئے په یو خاص انداز سره هغه شُبَه لرے کړه چه دَ تیر ایت دَ بعضے جملو نه پیدا کیده۔ چه که دَ زړه په پټو خیالاتو باندے حساب اوشه نو دَ عذاب نه به خلاصے څوک وی، ارشاد فرمائی: لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا: یعنی الله تعالیٰ چالره دَ هغه دَ طاقت نه سوا دَ کار حکم نه ورکوی۔ په دے وجه په غیر اختیاری طور چه کوم خیالات او وسوسے په زړه کښے راشی او بیا په دے باندے څۀ عمل نه وی نو دغه ټول دَ الله تعالیٰ په نزد معاف دی۔ حساب او کرفتاری به صرف په هغې عمل سره وی چه په اختیار او اراده سره وی۔

تفصیل دَ دے دادے چه څۀ رنګ دَ انسان عملونه او کارونه چه دَ لاس، سترګو او ژبے وغیره سره تعلق لری چه دے ته ظاهری عملونه ویلے شی دَ دے دوه قسمونه دی یو اختیاری دی چه په اراده او اختیار سره کولے شی لکه په اراده سره خبرے کول او په اراده سره وهل۔ دویم غیر اختیاری چه بے ارادے نه واقع شی لکه په ژبه سره ئے ویل یو څه او دَ خولے نه بل څه او وتلو، یا ئے دَ رعشے په وجه بے اختیاره دَ لاسونه چاته تکلیف اورسیده۔ په دے کښے ټولو ته معلومه ده چه حساب کتاب او جزا او سزا په اختیاری کارونو پورے خاص ده۔ په غیر اختیاری کارونو انسان مکلّف نه دے۔ او نه پرے عذاب او ثواب شته۔

دغه شان هغه کارونه چه تعلق ئے دَ زړه سره دے۔ دَ هغې هم دوه قسمونه

دی۔ یو اختیاری لکه د کفر او شرک عقیده چه په قصدا و اختیار سره په زړه کښې ځائے کیږی یا سینه په اراده سره ځان لوئے ګنړل چه دے ته تکبر وئیلے شی یا پخه اراده کول چه شراب به سکم۔ او دویم غیر اختیاری دی، مثلاً بغیر د قصد او ارادے نه په زړه کښې بد خیال راتلل۔ په دے کښې هم حساب کتاب او نیول صرف په اختیاری کارونو باندے دی - په غیر اختیاری باندے نیشته۔

په دے تفسیر سره چه په خپله قرآن شریف بیان کړه۔ د صحابه کرامو تسلی اوشوه۔ چه په غیر اختیاری وسوسو او خیالاتو حساب کتاب او په دے به عذاب او ثواب نه وی۔ د دے مضمون په زیات واضحه کولو سره په آخر کښې فرمائی: لَهَا مَا كَسَبَتْ وَعَلَيْهَا مَا اكْتَسَبَتْ: یعنے انسان ته به ثواب هم په هغه کار ملاویږی چه په اراده سره ئے اوکړی او عذاب به ورته هم په هغے کار ملاویږی چه په اراده سره ئے اوکړی۔

او مراد دا دے چه په ابتداء کښې بے واسطے د هغے عمل ثواب یا عذاب به وی چه په قصد او اراده سره ئے اوکړی۔ د خُه دا سے عمل ثواب او عذاب په واسطه سره کیدل چه ده ئے اراده نه وی کړی د دے منافی نه دے۔ په دے سره د دے شُبهِ جواب اوشه چه بعضے وخت سړی ته بے د خُه قصد او ارادے نه هم عذاب یا ثواب ملاویږی۔ لکه چه د قرآن شریف د نورو آیاتونو او ډیرو احادیثو نه ثابته ده۔ چه کوم سړے داسے نیک کار اوکړی چه نورو خلقو ته هم په د غے سره د نیکئ توفیق اوشی نو تر څو پورے چه خلق دغه نیک کار کوی نو ثواب به ئے دغے اوّلنی ته هم ملاویږی۔ دغه شان که څوک څهٔ د ګناه طریقه جاری کړی نو چه څومره خلق دغه ګناه کوی ګناه به ئے دغه اولنی سړی ته رسی چا چه دغه طریقه جوړه کړے ده۔ دغه شان د حدیثو په روایتونو سره ثابت دی چه کوم سړے د خپل عمل ثواب بل سړی ته اُوبخی نو هغهٔ ته دغه ثواب رسی۔ په دے ټولو صورتونو کښې په غیر د قصد او ارادے نه انسان ته ثواب یا عذاب رسی۔

د دے شبهِ جواب دا دے چه دا بیشکاره خبره ده چه دا ثواب یا عذاب بے د واسطے نه ده ته نه رسی بلکه د بل په واسطه سره رسی۔ د دے نه علاوه کومه واسطه چه جوړه شوے ده په دے کښې هم د ده د اختیار او عمل دخل دے۔ ځکه چه کوم سړی

دَ چا ایجاد کړے شوې یا بده طریقه اختیار کړه په دے کښې دَ اولنی ایجاد کوونکی سړی اختیاری عمل هم داخل دے اګرچه دۀ دَ دے خاص اثر اراده نه وی کړے ۔ دغه شان کۀ څوک چا ته ثواب رسوی نو دا ځکه چه په دۀ لږ مخکښې احسان کړے وی په هغې لحاظ سره ورته دے رسوی ۔ او دا ثواب چه دۀ ته رسی نو دا هم په حقیقت کښې دَ دۀ دَ خپل عمل ثواب یا عذاب دے ۔

بالکل په آخیر کښې قرآن کریم مسلمانانو ته یو خاص دُعا او خوده چه په هیر او غلطئ او په بے واسطه خطاء څۀ فعل واقع کیدو بانده په کښې معافی غوختلے شوے ده فرمائی: رَبَّنَا لَا تُؤَاخِذْنَا اِنْ نَّسِيْنَآ اَوْ اَخْطَاْنَا : اے زمونږ پروردګاره په هیر او غلطئ او خطاء بانده مونږ مه نیسے ۔ بیا فرمائی : رَبَّنَا وَلَا تَحْمِلْ عَلَيْنَآ اِصْرًا كَمَا حَمَلْتَهٗ عَلَى الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِنَا رَبَّنَا وَلَا تُحَمِّلْنَا مَا لَا طَاقَةَ لَنَا بِهٖ ۚ یعنې اے زمونږ پروردګاره په مونږ دَ درنو او سختو عملونو بوج مه غورزه وے لکه چه زمونږ نه په مخکښې خلقو (بنی اسرائیلو) چه غورزیدلے دے او په مونږ داسے فرض مه راغورزه وے چه مونږ ئے طاقت دَ اداکولو نه لرو ۔

دَ دینه مراد هغه سخت عملونه دی چه په بنی اسرائیلو بانده مقرر شوی وُو چه کپړه به ئے په اوبو نه پاکیده بلکه پرېکوه له به ئے یا به ئے سیزه له ۔ او دَ قتل نه بغیر به تو به نه قبلیده ۔ یا مراد دا دے چه په دنیا کښې په مونږ عذاب مه نازل وے لکه چه په بنی اسرائیلو به دَ بد عمل په وجه نازلیده ۔ او دَ دے ټولو دُعاګانو دَ قبلو لو اظهار هم الله تعالیٰ دَ رسول الله صلے الله علیه وسلم په ذریعه کړے دے ۔ ؏

سورت بقره تمام شو الله تعالیٰ لره ثنا ده او دَ الله تعالیٰ شکر دے په اول په آخر په ظاهر په باطن او دَ هغۀ نه مدد غوښتے شی او خاص هغه مدد کوونکے دے ؏

بنده محمد شفیع عفا الله عنه
۲۵ ذیقعده سنه ۱۳۸۸ھ

# سُوْرَةُ اٰلِ عِمْرَان

سُوْرَةُ اٰلِ عِمْرَانَ مَدَنِيَّةٌ وَّهِيَ مِائَتَا اٰيَةٍ وَّعِشْرُوْنَ رُكُوْعًا

سورت اٰلِ عمران په مدینه کښې نازل شوې دې دوه سوه په کښې آیاتونه او شل رکوع دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ○

شروع د الله په نوم سره چه بې حده مهربان او نهایت رحم کوونکے دے

الٓمّٓ ۚ ﴿۱﴾ اَللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّوْمُ ؕ ﴿۲﴾ نَزَّلَ عَلَيْكَ الْكِتٰبَ

الله هغه دے چه نیشتے بل معبود سوا د هٔ نه ژوندے دے تول لره ټینګوونکے دے - نازل ئې کړو په تا کتاب

بِالْحَقِّ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ وَاَنْزَلَ التَّوْرٰىةَ وَ

رشتونے رشتونی کوی د مخکینو کتابونو او نازل ئې کړو تورات او

الْاِنْجِيْلَ ۙ ﴿۳﴾ مِنْ قَبْلُ هُدًى لِّلنَّاسِ وَاَنْزَلَ الْفُرْقَانَ ؕ

انجیل لره - د دے کتاب نه مخکښې د خلقو د هدایت د پاره او نازل ئې کړے فیصلے -

اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيْدٌ ؕ

بے شکه هغوی چه منکر شو د آیتونو د الله نه د دوی د پاره سخت عذاب دے -

وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ ذُو انْتِقَامٍ ﴿۴﴾ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَخْفٰى عَلَيْهِ شَيْءٌ فِي

او الله زبردست دے بدله اخستونکے - په الله تعالیٰ باندے پټ نه دے هیڅ څیز په

الْاَرْضِ وَلَا فِي السَّمَآءِ ؕ ﴿۵﴾ هُوَ الَّذِيْ يُصَوِّرُكُمْ

زمکه کښې او نه په آسمان کښې - هم هغه ستاسو نقشه جوړه وی

فِي الْأَرْحَامِ كَيْفَ يَشَاءُ ۚ لَآ إِلٰهَ إِلَّا هُوَ الْعَزِيزُ

دَ مور په کیډه کښې څنګه چه غواړی - دَ هیڅ بندګی نیشته سوا دَ هغهٔ نه زبردست دے

الْحَكِيمُ ﴿٦﴾

حکمت والا -

## دَ آیاتو نوم ترون

دا دَ قرآن کریم دَ دریم سورت (آل عمران) آوَلنۍ رکوع ده په اول سورت یعنې په الحمد کښې چه دَ پوره قرآن خلاصه دهٔ دَ دے په آخر کښې دَ صراطِ مستقیم (نیغې لارے) هدایت غوختلے شوے وهٔ. دَ دینه پس سورت بقره دَ الٓمّٓ ذٰلِكَ الْكِتٰبُ نه په شروع کولو کښې کویا دے طرف ته اشاره شوه چه په سورتِ فاتحه کښې دَ کومے نیغې لارے سوال شوے دے هغه الله تعالیٰ قبول کړه دا قرآن ئے را ولیږه چه دَ نیغې لارے خودَنه کوی. بیا په سورتِ بقره کښې اکثر شرعی احکام په اجمال او تفصیل سره بیان شو. او په هغې کښې ځائے په ځائے دَ کفارو مخالفت او دَ دوی سره دَ مقابلے ذکر راغلے دے په آخر کښې ئے دغه په : فَانْصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ : په دُعا غوختو نکے جمله باندے ختم کړو چه دَ کفارو په مقابله کښې دَ غلبے موندَ دعائے مطلب وه. نو په سورت آلِ عمران کښې عام طور سره دَ کفارو سره دَ معاملو او په لاس او ژبه سره دَ دوی په مقابله کښې دَ جهاد بیان دے - چه کویا دَ : وَانْصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ : تشریح او تفصیل دے -

# لنډ تفسیر

دَ سورت آلِ عمران په وړمبنو پنځه آیاتو کښې دَ هغه لوئے مقصد بیان دے دَ کوم په وجه چه دَ کفر او اسلام، کافر او مؤمن تقسیم او دَ یو بل سره مقابله شروع کیږی او هغه دَ الله جل شانهٔ یو مَنَلْ دی - دَ دے منولو ته مؤمنان او نهٔ منونکو ته کافر او غیر مُسلم وائی. دَ دے رکوع په اوّل آیت کښې دَ الله تعالیٰ دَ یو منلو عقلی دلیل بیان شوے دے او په دویم آیت کښې نقلی دلیل

بیان شو دَ دے نه پس په ایت کښې دَ کفارو دَ شکونو جواب دے۔
په اوّلنی ایت کښې ارشاد دے: اَلٓمّٓ ٥ اَللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّوْمُ : په دے کښې لفظ دَ الٓمّٓ خو دَ متشابها تو دَ قرآن نه دے چه معنیٰ ئے دَ الله تعالیٰ او دَ هغهٔ دَ رسول صلے الله علیه وسلّم په مینځ کښې یو راز دے۔ چه تفصیل ئے دَ دے رکوع په اخره ایا تونو کښې راځی دَ دینه پس په: اَللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ: کښې ئے دَ توحید مضمون دَ یو دعوے په صورت کښې پیش کړ و۔ معنیٰ ئے دا ده چه الله تعالیٰ داسے دے چه دَ هغهٔ نه سِوَا بل څوک دَ معبودجوړه ولو قابل نیشته۔
دَ دینه پس ئے په لفظ دَ: اَلْحَيُّ الْقَيُّوْمُ: سره دَ توحید عقلی دلیل بیان کړ و چه دَ دے تشریح دا ده چه عبادت دَ دے خبرے نوم دے چه خپل ځان دَ چا په مخکښې انتهائی ذلیل او عاجز جوړ کړے پیش کړی او دا بیا دَ دے خبرے غوښتنه کوی چه دَ چا عبادت کوَلے شی هغه دے دَ لویئے او برائی دَ ټولو نه دَ اوچت مقام مالک او په هر اعتبار سره کامل وی۔ او دا خو ښکاره خبره ده چه کوم شے خپل وجود قائم نه شی ساتلے په خپل وجود او خپله بَقاء کښې دَ بل محتاج وی دَ هغهٔ دَ عزت او لوئے څهٔ مقام کیدے شی؟ نو په دے وجه دا خبره ښکاره شوه چه په دنیا کښې څومره خیزونه چه نه په خپله دَ خپل وجود مالکان وی او نه خپل وجود قائم ساتلے شی هغه خواه که دَ کټې تراش شوے بُت وی یا اُوبه او وُنه وی یا فرښتے او پیغمبر وی په دوی کښې هیڅ څوک هم دَ عبادت لائق نیشته دَ عبادت لائق هغه ذات کیدے شی چه همیشه ژوندے او موجود دے او همیشه به ژوندے او قائم وی۔ او هغه صرف دَ الله جلّ شانهٗ ذات دے۔ دَ هغهٔ نه سِوَا هیڅ څوک دَ عبادت لائق نیشته۔
دَ دے نه پس ئے په دویم ایت کښې دَ توحید نقلی دلیل بیان کړو۔ فرمائی: نَزَّلَ عَلَيْكَ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ وَاَنْزَلَ التَّوْرٰىةَ وَالْاِنْجِيْلَ مِنْ قَبْلُ هُدًى لِّلنَّاسِ وَاَنْزَلَ الْفُرْقَانَ ٥:
دَ دے خلاصه دا ده چه دَ الله جلّ شانهٗ توحید چه کوم قرآن بیان کړے دے لوائهٔ دَ قرآن یا دَ پیغمبر اسلام صلے الله علیه وسلّم خصوصیت نه دے بلکه دَ دے نه وړاندے هم تورات انجیل وغیره کتابونو او انبیاءؑ چه الله تعالیٰ لیږلی دی۔ دَ دے ټولو دَ غه دعوه او دغه کلمه وه۔۔ قرآن شریف چه راغے دَ دے ټولو رښتونوالے ئے اوکړه. څهٔ نوے

دعوه ئې پېش نه کړه - چه کوندے خلقو ته په کښے په پوهېدلو یا منلو کښے څه ګرا ن
والے یا اُلجھن دے - په آخری دوه آیاتو کښے د توحید کامل کولو د پاره د الله تعالیٰ د
صفاتو د علم او قدرت بیان اوکړه او د الله تعالیٰ د یو والی دلیل ئې پورے مکمل کړو چه کوم
ذات د بے انتها ازلی علم مالک او د چا په قبضه د قدرت کښے چه هر شے دے هغه د دے
لائق دے چه د هغهٔ عبادت اوشي د ناقص علم او محدود قدرت لرونکی ته دا مقام
نه شي حاصلېدے -

اوس د دے آیاتو لنډ تفسیر واورئ :

الله تعالیٰ داسے دے چه د دهٔ نه سوا بل څوک د دے قابل نه دے چه معبود جوړ کړے شي
او هغه (همیشه) ژوندے دے تولو څیزونو له سنبالونکے دے الله تعالیٰ تا ته قرآ ن
رالیږلے دے په حقه سره په دے شان چه رښتینوالے کوی د هغے (آسمانی) کتابونو
چه د دهٔ نه وړاندے راغلی دی او (دغه شان) تورات او انجیل ئې رالیږلی وُو د دینه مخکښے
د خلقو د هدایت د پاره (او په دے سره دا هم لازم شو چه قرآن هم هدایت کونکے دے ځکه
چه د هدایت تصدیق (رښتینې) کونکے هم هدایت دے) او الله تعالیٰ (د پیغمبرانو د رښتونی
کولو د پاره) معجزے را اولیږلے بے شکه کوم خلق چه منکر دی د الله تعالیٰ د (دے) آیاتو
نه (کوم چه د الله تعالیٰ په یو والی دلالت کوی) د دوی د پاره سخته سزا ده او الله تعالیٰ غلبه
(او قدرت) والا دے (چه بدله اغستے شي او) بدله اغستونکے (هم) دے بے شکه د الله تعالیٰ
نه څهٔ شے پټ نیشته دے (نه څهٔ شے) په زمکه کښے او نه (څهٔ شے) په آسمان کښے (پس د دهٔ
علم هم کامل دے) هغه داسے (پاک) ذات دے چه ستاسو صورت (شکل) جوړوی څنګه
چه غواړی (د چا یو شان شکل او د چا بل شان شکل، پس د هغهٔ قدرت هم کامل دے
ژوند او قائموالے او علم او قدرت چه اصل صفات دی په دهٔ کښے په کامل طور سره بے د
شرکت د بل نه موجود دی نو د دے نه ثابته شوه چه) څوک د عبادت لائق نیشته بغیر
د هغه (پاک ذات) نه (او) هغه غالب دے (د توحید منکر نه بدله اغستے شي لیکن)
حکمت والا (هم) دے (چه د مصلحت په وجه په بدله اغستو کښے تلوار نه کوی) او هر څه
له ئې یو وخت مقرر کړے دے)

---

# معلومات او مسئلې

توحید طرفته بلنه د ټولو پیغمبرانو متفقه کار وه. په دویم آیت کښې چه د توحید کوم نقلي دلیل پیش شوے دے د هغې تشریح داده - چه په کومه خبره د ډیرو خلقو اتفاق وی او بیا خاص چه هغه د مختلفو ملکونو اوسیدونکی وی ، او په جدا جدا او ختونو کښې پیدا شوی وی او په منځ کښې ئې په سوونو په زرګونو کالو فاصله وی او د یو خبره بل ته د رسیدو څۀ ذریعه هم نه وی او سره د دے چه کوم یو رابورته کیږی هم هغه یوه خبره کوی کومه چه هغه وړمبنو ویلې ده - او ټول د دغې یوے خبرے او یو عقیدے پابند وی نو ضمیر د هغې خبرے په قبلولو مجبوره وی. مثلاً د الله تعالی د وجود او د هغهٔ د یو والی بیان په مخلوق کښې د ټولو نه اول حضرت آدم علیه السلام راوړے وه. او د دهٔ په اولاد کښې پرلپسے د دے خبرے چلیدل څوڅۀ لرے خبره نه وه - لیکن د ډیرے زمانے په تیریدو او د آدمؑ په اولاد کښې د هغو ټولو طریقو د بدلیدو نه پس بیا حضرت نوح علیه السلام راځی او د هغې شی دعوت ورکوی کوم چه حضرت آدم علیه السلام خلقو ته دعوت (بلنه) ورکړے وه - او بیا د ډیرے زمانے تیریدو نه پس حضرت ابراهیمؑ حضرت اسمٰعیلؑ حضرت اسحاقؑ او حضرت یعقوب علیهم السلام په عراق او شام کښې پیدا کیږی - او ټیک هم دغه بلنه (دعوت) ورکولو سره راپورته کیږی. بیا موسیٰ علیه السلام او هارون علیه السلام او د دغه سلسلے نور نبیان راځی او ټول هم دغه یوه کلمه د توحید وائی - او هم دغه بلنه ورکوی - او په دوی د ډیرے زمانے تیریدو نه پس حضرت عیسیٰ علیه السلام هم د دغې دعوت (بلنے) سره راپورته کیږی او په آخر کښې د نبیانو سردار حضرت محمد صلی الله علیه وسلم هم د دغې دعوت سره تشریف راوړی -

اوس که یو خالی ذهن والا انسان چه د اسلام او د توحید د دعوت سره ئې څۀ بعض او کینه نه وی په ساده طریقه سره لږ په دے سلسله نظر واچوی چه د آدم علیه السلام نه واخله تر خاتم الانبیاء صلی الله علیه وسلم د زمانے پورے یو لاک څلیرویشت زره پیغمبران علیهم السلام په مختلفو زمانو کښې په مختلفو ځایو کښې په مختلفو ملکونو کښې پیدا شو او ټول هم دغه یوه خبره وائی. اکثر د یو بل سره د ملاویدو موقع هم نه ده راغلې - او دغه زمانه د کتابونو جوړولو او لیکلو هم نه وه -

چه یو پیغمبر ته د بل پیغمبر څه کتاب یا لیکلی پاتې شوی وی - او هغې ته ئې کتلی وی او هغه
دعوت ئې خپل کړے وی. بلکه په دوی کښې هم یو د یو بل نه په قرنونو لرے پیدا شوے
وی او دوی ته د دنیاوی اسبابو په بنا د تیرو انبیاؤ هیڅ خبرونه وی رسیدلې. البته
دوی د الله تعالیٰ د طرفه وحی موصول او د وحی په ذریعه ورته ټول حالات خودلے
شی - او د الله تعالیٰ د طرفه دے د دے دعوت د پاره پورته کولے شی -

اوس که یو سړے په لږ شان انصاف سره غور او کړی چه که یو لاک څلیریشت
زره انسانان په مختلفو زمانو او مختلفو ملکونو کښې یوه خبره بیا بیا نوی نوی قطع نظر
د دینه چه بیانونکی ثقه او معتبر خلق دی او که نه دی، د دومره لوئے جماعت په
یوه خبره متفق کیدل د یو انسان د پاره د دے خبرے د تصدیق د پاره پوره
کیږی - او چه کله د پیغمبرانو علیهم السلام په ذاتی خصوصیاتو او د دوی په
صدق او عدل او چت معیار باندے نظر واچولے شی نو یو انسان د دے
یقین کولو نه بغیر نه شی پاتے کیدے چه د دوی خبره صحیح او د دوی دعوت
حق او د دنیا او آخرت د کامیابئ د پاره دے -

په اولنو دوه آیاتونو کښې چه د توحید کوم مضمون بیان کړے شوے دے
د دے متعلق په حدیث شریف کښې روایات دی: چه بعضے نصارا د نبی کریم صلے
الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شو او د دوی سره مذهبی خبرے
اترے روانے شوے - نبی کریم صلے الله علیه وسلم د الله جل شانهٔ د یو والی په
ثبوت کښې دا دوه آیاتونه د خدائے په حکم سره وړاندے کړه چه د نصاراؤ
سره ئې بیا جواب نه وه -

د دینه پس په دریم او څلورم آیتونو کښې هم د دے توحید د مضمون تکمیل
دے. په دریم آیت کښې د الله تعالیٰ د لوئے علم بیان دے - چه د هغهٔ نه په جهان کښې
یوه ذره هم پټه نه ده -

او په څلورم آیت کښې د هغهٔ د قدرت کامله او قادر مطلق کیدو بیان دے
چه هغهٔ انسان لوه د مور په ګیډه کښې په درے تیرو کښې په خپل حکمت بالغه سره جوړه
کړه او د دوی په شکلونو او رنګونو کښې ئې څومره کاریګری ښکاره کړے ده - چه په اربونو
انسانانو کښې هم د یو شکل د بل سره نه ملاویږی چه فرق په کښې نه شی کیدے - د دے

لوئے علم او کامل قدرت عقلی تقاضا داده چه عبادت دے صرف د ده او شی - د ده نه سوا نور تول په علم او قدرت کښے دا مقام نه لری په دے وجه هوی د عبادت لائق نه دی.

د غه شان د توحید د ثابتولو د پاره د الله تعالی څلور اهم صفتونه په دے څلورو ایاتونو کښے راغله په اولنی او دویم ایت کښے د ازلی او ابدی ژوند او قیومیت (قائم والی) صفتونه بیان شو، د دریم ایت نه تر شپږم ایت پورے په دوی کښے د لوئے علم او کامل قدرت اظهار او شه - کوم ذات چه د دے څلورو صفتونو جمع کونکے وی هم هغه د عبادت لائق دے.

---

هُوَ الَّذِیْٓ اَنْزَلَ عَلَیْكَ الْكِتٰبَ مِنْهُ اٰیٰتٌ مُّحْكَمٰتٌ هُنَّ اُمُّ

(الله) هغه دے چه نازل ئے کړو په تا باندے کتاب په دے کښے بعضے ایاتونه محکم دی یعنے معنی ئے ښکاره ده

الْكِتٰبِ وَاُخَرُ مُتَشٰبِهٰتٌ ؕ فَاَمَّا الَّذِیْنَ فِیْ قُلُوْبِهِمْ

دغه اصل دی د کتاب او نور متشابه دی یعنے معنی ئے معلومه یا مقرره نه ده پس د چا په زړو نو کښے چه

زَیْغٌ فَیَتَّبِعُوْنَ مَا تَشٰبَهَ مِنْهُ ابْتِغَآءَ الْفِتْنَةِ وَابْتِغَآءَ

کوږ والے دے هغه تا بعداری کوی د متشابهاتو د ګمراهئ خوره د لو په غرض سره او د مطلب معلومولو په

تَاْوِیْلِهٖ ۚ وَمَا یَعْلَمُ تَاْوِیْلَهٗۤ اِلَّا اللّٰهُ ؕ م وَالرّٰسِخُوْنَ

وجه سره او د دے مطلب هیڅوک نه پیژنی سوا د الله نه او مضبوط علم والا

فِی الْعِلْمِ یَقُوْلُوْنَ اٰمَنَّا بِهٖ ۙ كُلٌّ مِّنْ عِنْدِ رَبِّنَا ۚ وَ

والئ موږ په دے یقین راوړے دے تول د طرف د رب زموږ نه نازل شوی دی او

مَا یَذَّكَّرُ اِلَّاۤ اُولُوا الْاَلْبَابِ ﴿۷﴾

په پوهه کولو باندے هغه پوهیږی چه عقل ئے وی.

## دَ ایاتونوترمون

په تیروایاتو نوکښې دَ الله تعالیٰ دَ یو والی ثبوت وه۔ په دے ایت کښې دَ توحید خلاف دَ بعضے شبهو جواب دے۔

واقعه دَ دے داده چه یو وار دَ نجران څهٔ نصارا دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شو۔ او دَمنځ څه پاره کښې ئې خبرے شروع کړے حضورؐ دَ نصاراؤ دَ تثلیث (دَ درے خدایانو) دَ عقیدے رَد چیر په تفصیل سره اوکړه او دَ الله تعالیٰ یو والے ئې ثابت کړو حضور په خپله دعوے باندے دَ الله تعالیٰ صفتونه، همیشه ژوندئ کامل قدرت، احاطه کونکے علم او دَ پیداکولو قدرت بیان کړل دَ الله تعالیٰ په یو والی ئې په دلیل کښې راوړه۔ او دا قول نصاراؤ او منل۔ چه توحید ثابت شو نو په دے خو دَ تثلیث دَ عقیدے باطل والے هم ثابت نو دے خلقو دَ قرآن نه هغه الفاظو خپل څه شکونه پیش کړه چه پکو موکښې ئې عیسیٰ علیه السلام ته روح الله یا کلمة الله ویلے ی چه په دے الفاظو سره خو دَ عیسیٰ علیه السلام په خدائی کښې شریکوالے ثابتیږی۔

الله تعالیٰ په دے ایت کښې دغه شبهے ختمے کړے چه واکلمے متشابهات وی دَ دے ظاهری معنی مراد نه ده۔ بلکه دا دَ الله تعالیٰ او دَ هغهٔ دَ رسول په منځ کښې یو راز دے چه په حقیقت ئې عوام نه شی خبرید ے۔ عوامو له دَ دے الفاظو په تحقیق کښې پریوتل هم جائز نه دی۔ په دے هم دغه سے ایمان راوړل ضروری وی چه هر څهٔ دَ دے نه دَ الله تعالیٰ مراد وی هغه حق دے دَ زیات لټون او تلاش ضرورت نیشته۔

# لنډ تفسیر

هغه (الله تعالیٰ) دا سے دے چه نازل ئې کړو پتا باندے کتاب چه دَ هغې یو حصه هغه ایاتونه دی چه دَ بیت والی دَ مراد نه محفوظ دی (یعنے دَ هغې مطلب ښکاره دے) او دغه ایاتونه اصلی مدار دی د (دے) کتاب (یعنے دَ قرآن) (یعنے دَ کومو چه معنی ښکاره نه وی دَ هغې هم معنی ښکاره کولے شی) او نور ایاتونه داسے دی چه مراد ئې پټ دے (یعنے مطلب ئې ښکاره نه دے خواه دَ وجه دَ اجمال نه وی یا دَ بل نص سره ئې ټکراؤ وی چه دَ هغې نص مراد ښکاره وی) پس دَ کومو خلقو چه په زړونو کښې کوږوالے دے نو هغوی په دغې حصے پسے ورپسے شوی دی چه مراد ئې مشتبه دے (په دین کښې) دَ ګډ بډ جوړولو په غرض سره

او دے (پټ مرادې) د (غلط) مطلب لټولو په غرض سره (چه د خپلې غلطې عقيدې د دېنه مطلب حاصل کړي) حال دا دے چه د دے (صحيح) مطلب بغير د الله تعالىٰ نه بل هيڅوک نه پيژني (ياکه په خپله د قرآن يا حديث په ذريعه سره صراحةً يا اشارةً اوخودې شي لکه د لفظ د صلوٰة مراد چه صراحةً معلوم شه او د استواء على العرش وغيره تاويل د بعضو په رائے په قاعد و کُلّيه وُوسره معلوم شه نو بس دومره قدرے خبر نور و ته هم کيدے شي زيات نه شي معلوميدے لکه د قرآن د مقطعا تو الف لام ميم وغيره معنيٰ هيڅ ته معلومه نه شوه - او د بعضو په رائے باندے د استواء على العرش معنيٰ هم معلومه نه شوه) او (په دے واسطه) کوم خلق چه په علم (دين) کښے پاخه (او پوهه) دی هغوی (د دا سے آيا تونو متعلق) دا سے وائي چه مونږ په دے (اجمالاً) يقين لرو قول (دا آيا تونه که معنيٰ ئے ښکاره ده او که پټه) ټول زمونږ د رب د طرف نه دی (پس د دے چه هرڅه معنيٰ او مراد په واقع کښے وی هغه حق دے) او د نصيحت (خبره) هغه خلق قبلوی چه د عقل خاوندان وی (يعنے د عقل مقتضاء خواهش: هم دا دے چه په فائده منه او ضروری خبره کښے دے مشغول وی او په فضول قصو کښے دے نه لګيا کيږي)

# معلومات او مسئلے

په اول آيت کښے الله تعالیٰ د متشابهاتو او محکماتو آيا تونو ذکر او کړه يو عام اصول او ضابطے طرفته ئے اشاره او کړه - چه په دے د پوهه کيدو نه پس چيرے شبهے او جګړے ختميدے شی چه د دے تفصيل دا دے چه په قرآن مجيد کښے دوه قسمه آيا تونه موندے شي يو قسم ته محکمات وائي او بل قسم ته متشابهات -

محکمات هغه آيا تونو ته وائي چه مراد ئے دا سے سړی ته بالکل ښکاره او واضح وی چه د عربي قاعدو نه خهٔ خبر وی (يعنے چه په عربي قواعدو باندے ښهٔ پوهيږي) او د کوم آيا تونو چه تفسير او معانی په دا سے سړی باندے ښکاره نه وی هغے ته متشابهات وائي (مظهری ص۲)

اوّل قسم آيا تونو ته الله تعالیٰ اُمّ الکتاب او وے چه مطلب ئے دا دے چه د ټولو تعليما تو اصل اصول دغه آيا تونه دی چه معنیٰ او مطلبونه ئے د شبهو شکونو او ګنډو د

والی نه پاک وی-

او په دویم قسم آیا تو نو کښې چونکه د دغو نکی مراد یقیناً او غیر متعین وی په دے وجه په دے آیا تو نو کښې صحیح طریقه داده چه دا اول قسم ته راواوګرځولے شی او اوکتے شی، نو چه کومه معنیٰ د دینه خلاف راشی د هغې قطعًا نفی اوشی او د متکلم (خبرې کوونکی) مراد هغه اوګڼړلے شی کوم چه د آیا تو نو محکما تو نه خلاف نه وی- او څه داسے تاویل او توجیه (وجه د بیان) به ئے صحیح نه شی ګڼړلے کیدے چه د منلو شوو اصولو او محکما تو آیا تو نو نه خلاف وی- مثلًا قرآن کریم د مسیح علیه السلام په نسبت بنکاره ویلیدی چه: اِنْ هُوَ اِلَّا عَبْدٌ اَنْعَمْنَا عَلَيْهِ ؛ دغه شان بل ځائے ارشاد دے: اِنَّ مَثَلَ عِيسٰى عِنْدَ اللّٰهِ كَمَثَلِ اٰدَمَ خَلَقَهٗ مِنْ تُرَابٍ ؛

د دے آیا تو نو او د دوی په مثل د نورو ډیرو آیا تو نو نه صافه معلومیږی چه مسیح علیه السلام د الله تعالیٰ غوره کړے شوے بنده او د هغهٔ مخلوق دے- په دے وجه د نصاراؤ د دهٔ په باره کښې د خدائی او ځوئی والی دعوه کول صحیح نه ده-

او س که یو سړے د دے ټولو محکما تو نه سترګے بندے کړی صرف په "کلمة الله" او "روح منهٔ" چه دا متشابهات دی او په دے پسے ورپسے شی- او د دے هغه معنیٰ واخلی کومه چه د قرآن د محکما تو او پرلپسے بیا نو نو نه خلاف وی نو دا به د دهٔ کوږ والے او بے ایمانی وی-

ځکه چه د متشابها تو صحیح مراد صرف الله ته معلوم دے هغهٔ په خپل کرم او احسان سره چه په څومره قدر حصّه سره خَبَرَه وَلْ غواړی نو خبره وی- په دے وجه د داسے متشابها تو نه په خپله رائے سره معنیٰ راویستل صحیح نه دی-

؛فَاَمَّا الَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ زَيْغٌ": په دے ایت سره الله تعالیٰ بیان او فرمایه چه کوم خلق فِطرةً روغ دی هغوی د متشابها تو په باره کښې زیات تحقیق او تلاش نهٔ کوی، بلکه په داسے آیا تو نو اجمالًا ایمان راوړی چه دا هم د الله تعالیٰ حق کلام دے اګرچه د څهٔ مصلحت په وجه هغهٔ مونږ د دے په معنیٰ خبر نه کړو- په حقیقت کښې دا طریقه د سلامتیا او احتیاط ده- د دے په خلاف بعضے داسے خلق هم دی- چه په زړونو کښې ئے کوږ والے دے هغوی د محکما تو نه سترګے پنده وی د متشابها تو په لټون کښې لګیا وی- او د دے نه د خپل خواهش په مطابق معنے را او باسی خلقو له

په غلطو کښې اچوی - د داسې خلقو په باره کښې په قرآن او حدیث کښې د سختې سزا وعده راغلې ده یعنې د داسې خلقو لره به سخته سزا وی -

حضرت عائشه رضی الله تعالٰی عنها فرمائی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی چه کله تاسو داسې خلق اووینئ چه د متشابهاتو په لټون کښې لګیا وی نو تاسو د هغوی نه لرې تختئ - ځکه چه دا هغه خلق دی چه الله تعالٰی ئې په قرآن کښې ذکر کړې دے (بخاری ج ۲)

په یو بل حدیث کښې نبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد فرمائی چه ما په خپل امت د درې خبرو یره ده - اوّل دا چه مال به ورته ډیر ملاؤ شی او د هغې په وجه به د یو بل سره په حسد کښې اخته شی - او جنګونه قتلونه به کوی - دوئیم دا چه قرآن به ورته کهلاؤ شی (یعنې د ترجمې په ذریعه به هر عامی او جاهل هم د دے د پوهې دعوے دار شی) او په دے کښې چه کومې خبرے د پوهې نه دی یعنې متشابهات دی د هغې د معنے ازده کولو کوشش به شروع کړی حال دا دے چه د دے په مطلب صرف الله تعالٰی پوهیږی - دریم دا چه علم به ئې زیات شی نو ضائع به ئې کړی او د علم زیاتولو کوشش به پاتے کړی - (ابن کثیر بحواله طبرانی)

؛وَالرّٰسِخُوْنَ فِی الْعِلْمِ یَقُوْلُوْنَ اٰمَنَّا بِهٖ؛ د راسخون فی العلم نه کوم خلق مراد دی په دے کښې د علماؤ اقوال مختلف دی - خو راجح (یعنې منلے شوے) قول دا دے - چه د دینه مراد اهل سنة والجماعت دی - کوم چه د قرآن او سنتو هغه تعبیر او تشریح صحیح ګڼړی کومه چه د صحابه کرامو، سلف صالحینو او اجماع د امت نه نقل وی - او د قرآنی تعلیماتو مرکز او بنیاد محکمات مني او د متشابهاتو کومې معنے چه د دوی د پوهې او وس نه باهر وی نو به هغوی کښې د خپلې کم علمئ او ناپوهئ اقرار کوی او دغه خدائے ته سپاری - دوی په خپل علمی کمال او ایمانی قوّت نه مغرور ه کیږی - بلکه همیشه د الله تعالٰی نه د ثابت قدمئ او زیات فضل او مهربانئ طلب کونکی وی - د دوی طبیعتو نه فتنے او فسادونه نه خوښیږی - چه په متشابهاتو پسے ورپسے شی - دوی متشابهات او محکمات ټول حق ګڼړی - ځکه چه د دوی یقین وی چه دا دواړه قسم آیاتونه د یو سرچشمے نه راغلی دی - البته د یو قسم یعنے د محکماتو معنے معلومول زمونږ د پاره فائده مند او ضروری وو - نو الله تعالٰی

دغه پټه او نه ساتل - بلکه ښکاره ښکاره ئې بیان کړه - او دَ دویم قسم یعنې دَ متشابهاتو معنې ئې په خپل مصلحت سره بیان نه کړے نو په دے وجه سره مونږ ه لره هم دَ دے معلومول ضروری نه دی - په دا سے ایاتو نو باندے اجمالاً ایمان راوړل کافی دی - (مظهری ملخصًا)

---

رَبَّنَا لَا تُزِغْ قُلُوبَنَا بَعْدَ اِذْ هَدَيْتَنَا وَهَبْ لَنَا مِنْ

اے ربه زمونږه مه کږه وَ زړونه زمونږه پس دَ هغې نه چه تا مونږ ته هدایت اوکړو او ورا کړے مونږ ته دَ

لَّدُنْكَ رَحْمَةً ۚ اِنَّكَ اَنْتَ الْوَهَّابُ ⑧ رَبَّنَآ اِنَّكَ

خپل طرف نه رحمت خاص ته ئې هر څه ورکونکے اے ربه زمونږه ته ئې

جَامِعُ النَّاسِ لِيَوْمٍ لَّا رَيْبَ فِيْهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا

جمع کونکے دَ خلقو په یوه ورځ چه نیشته شک په هغې کښے بے شکه الله تعالیٰ نه کوی

يُخْلِفُ الْمِيْعَادَ ⑨ ع ۱ ۹

خلاف دَ وعدے خپلے نه -

**دَ ایاتو نوتړون** په تیر ایت کښے دَ حق پرستو دَ یو کمال ذکر وه چه دوی سره دَ علمی کمال لرلو نه په دے مغروره نه وُو بلکه الله تعالیٰ ته ئې دَ خپلے ثابت قدمۍ او استقامت سوال کاوُه په دے ایت کښے الله تعالیٰ دَ دوی دَ دویم کمال بیان فرمائی -

## لنډ تفسير

اے زمونږ پروردګاره زمونږ زړونه مه کږه وے پس دَ هغې نه چه تا مونږ ته

(د حق طرفته) هدایت کړے دے او په مونږ د خپل طرف نه (خاص) رحمت او فرمائے (هغه رحمت دا دے چه مونږ په برابرلاره باندے قائم پاتے شو) بے شکه ته ډیر بخښش کوونکے ئے اے زمونږ پروردګاره (مونږ دا دُعا چه د کوږ والی نه د بچ کید و او په حق د قائم پاتے کیدو ځځه د دُنیا د غرض د پاره نهٔ غواړو بلکه محض د آخرت د نجات د پاره ده ځکه زمونږ عقیده ده چه) ته بے شکه ټولو بنی آدمو لره (په میدان د حشر کښے) جمع کوونکے ئے په هغه ورځ په کومه (چه په راتلو کښے) چه یوه ذره شک نیشته (یعنے د قیامت په ورځ کښے، او د نهٔ شك وجه ئے دا ده چه د دے د راتلو الله تعالے وعده فرمائیلے ده او) بے شکه الله تعالے خلاف نه کوی د وعدے نه (په دے وجه د قیامت راتلل ضروری دی او په دے وجه ئے زمونږ سوه فکر دے) -

# معلومات او مسئلے

د اوّلنی آیات نه معلومیږی چه هدایت او ګمراهی د الله تعالے د طرفه نه دی. الله تعالے چه چاته هدایت کوی نو زړه ئے نیکئ طرف ته مائل کړی- او چا لره چه ګمراه کول غواړی د هغهٔ زړهٔ د نیغے لارے نه اوګرځوی -

دا رنګ په یو حدیث کښے نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائی چه " یو زړهٔ دا سے نیشته چه د الله تعالے د ګوتو نه د دوه ګوتو په مینځ کښے نه وی هغهٔ چه ترڅو پورے غواړی په حق ئے قائم ساتی او کله چه غواړی د حق نه ئے ګرځوی :

هغه قادر مطلق دے ځکه چه غواړی کوی - په دے وجه د کومو خلقو سره چه په دین د پاتے کیدو فکروی هغه همیشه د خپل الله پاک نه د استقامت دعا کوی نبی کریم صلے الله علیه وسلم به همیشه د استقامت دُعا غوختله چنانچه په یو حدیث شریف کښے دی ".: یَا مُقَلِّبَ الْقُلُوْبِ ثَبِّتْ قُلُوْبَنَا عَلٰی دِیْنِكَ : یعنے اے د زړونو ګرځوونکیه زمونږ زړونه په خپل دین باندے قائم اوساتے ". (مظهری ج ۲)

اِنَّ الَّذِیْنَ کَفَرُوْا لَنْ تُغْنِیَ عَنْهُمْ اَمْوَالُهُمْ وَلَآ اَوْلَادُهُمْ

بے شکه کوم خلق چه کافر دی هرګز به بیکار نه شی دوی لره د دوی مالونه او نهٔ د دوی اولاد

مِّنَ اللّٰهِ شَيْـًٔا ۗ وَاُولٰٓئِكَ هُمْ وَقُوْدُ النَّارِ ۙ ﴿۱۰﴾ كَدَاْبِ

دَ الله په مخ کښې هيڅ - او دوی خشاک دَ دوزخ دی - لکه چه دستور ؤ د

اٰلِ فِرْعَوْنَ ۙ وَالَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ۭ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا ۚ

دَ فرعونيانو او دَ هغو چه دَ دوی نه وړاندې وُو - دروغجن کړې دوی زمونږ اياتونه

فَاَخَذَهُمُ اللّٰهُ بِذُنُوْبِهِمْ ۭ وَاللّٰهُ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ﴿۱۱﴾

پس اونيول دوی لره الله په ګناهونو دَ دوی - او دَ الله عذاب سخت دے -

قُلْ لِّلَّذِيْنَ كَفَرُوْا سَتُغْلَبُوْنَ وَتُحْشَرُوْنَ اِلٰى

او وايه کافرانو ته چه اوس به تاسو مغلوب شئ او راغونډ به کړے شئ دَ دوزخ

جَهَنَّمَ ۭ وَبِئْسَ الْمِهَادُ ﴿۱۲﴾

طرفته او ډېره بده ځائے دَ اوسيد ودے

# لنډ تفسير

په يقين سره چه کوم خلق کفر کوی هرګز به دَ دوی په کار رانه شی دَ دوی مال (دولت) او نه دَ دوی اولاد دَ الله تعالیٰ په مقابله کښې دَ يو ذرے په قدر هم دا سے خلق به دَ دوزخ خشاک وی (دَ دے خلقو معامله دا سے ده) لکه چه معامله وه دَ فرعونيانو او دَ دوی نه دَ وړاندے (کافرانو) خلقو (دغه معامله داوه) چه دوی زمونږ اياتونو لره (يعنې خبرونو او احکامو لره) دروغجن کړی نو په دے باندے الله تعالیٰ دوی اونيول دَ دوی دَ ګناهونو په سبب او الله تعالیٰ (سخت نيول کوی ځکه چه دَ هغهٔ شان دا دے چه هغه) سخته سزا ورکونکے دے (دغه شان معامله به وی چه دوی زمونږ اياتونه دروغجن کړی پس دوی ته به هم دغسے سزا وی او) دے کفر کونکو خلقو ته (دا هم) او وايه چه (تاسو دا مه ګڼړئ چه دا نيول به صرف په اخرت کښې وی بلکه دلته

او هلته دوا په ځايه به وي - نو په دنيا کښې) به ډېر زر دا سو (د مسلمانانو په لاس سره) مغلوب کړے شئ - او (په آخرت کښې به) جهنّم طرف ته جمع کړې شوې بوتلے شئ او (جهنم) ډېر بد ځائے د تيکاؤ نړے دے -

# معلومات او مسئلے

قُلْ لِّلَّذِيْنَ كَفَرُوْا سَتُغْلَبُوْنَ: ممکنه ده چه څوک په دے ايت سره دا شك اوکړي چه د ايت نه معلوميږي چه کفار به مغلوب وي حالانکه ټول کفار د دنيا مغلوب نه دي ليکن دا شُبه نه ده - په دے وجه نه شي کيدے چه دلته د کفارو نه مراد د ټولے دُنيا کفار نه دي بلکه د هغه وخت مشرکين او يهود مراد دي - نو مشرکان ئے قتل او قيد او يهوديان ئے په قتل او قيد سره د جزئے او جلا وطنئ په ذريعه مغلوب کړي وُو -

قَدْ كَانَ لَكُمْ اٰيَةٌ فِيْ فِئَتَيْنِ الْتَقَتَا ؕ فِئَةٌ تُقَاتِلُ فِيْ

بے شکه تيره شوے ده ستاسو په وړاندے يو نمونه په دوه ډلو کښې چه مقابله ئے اوشوه يو فوج جنګ کاوه په

سَبِيْلِ اللّٰهِ وَاُخْرٰى كَافِرَةٌ يَّرَوْنَهُمْ مِّثْلَيْهِمْ رَاْيَ

لاره د خدائے کښې او دويم فوج د کافرانو وو دے وينې دوی هغوی لره د ځان نه دوچند په ښکاره ده

الْعَيْنِ ؕ وَاللّٰهُ يُؤَيِّدُ بِنَصْرِهٖ مَنْ يَّشَآءُ ؕ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ

ستر ګو سره - او الله طاقت ورکوي د خپل مدد چا لره چه غواړي - په دے کښې

لَعِبْرَةً لِّاُولِي الْاَبْصَارِ ﴿۱۳﴾

عبرت دے ليدو نکو لره -

**دَ اياتو نوترون**

په تير ايات کښې ئے د کفارو د مغلوب کيدو خبر ورکړے وُه او س په دے ايت کښې د هغے يو مثال په طور د دليد ښايئي -

# لنډ تفسير

بې شکه ستاسو (د دلیل) د پاره لویه نمونه ده د دوه ټولګو (په واقعه) کښې چه د یو بل سره (د بدر په جنګ کښې) مقابل شوی وو یو ټولے خو (یعنې مسلمانان) د الله په لاره کښې جنګیده او دویم ټولګے کافر خلق وو (او کافران دومره زیات وو چه) دے کافرانو په خپل (ټولي) ته کتل چه د مسلمانانو نه څو حصے (زیات) دی (او لیدل هم څه د وهم او خیال نه وو بلکه) په ښکاره سترګو سره لیدل (چه څه شك شبه په کښې نه وه لیکن د کفارو سره د دومره زیات شمار نه بیا هم الله تعالیٰ مسلمانانو له غالب کړه) او (غالب او مغلوب کول محض د خدائے په قبضه کښې دی) الله تعالیٰ په خپل مدد سره چالوه چه غواړی قوت ورکوی (بس) بې شکه په دے (واقعه) کښې لوئے عبرت دے (او نمونه ده) د کتونکو د پاره۔

# مَعلومات او مسئلے

په دے ایت کښې د جنګ بدر حال بیان شوے دے چه په دے کښې کفار تقریباً یو زر وو چه د دوی سره اوه سوه اوښان او یو سل اسونه وو بل طرف ته مسلمانان مجاهدین د درے سوو نه څه لږ زیات وو چه د دوی سره ټول اویا اوښان دوه اسونه شپږ زغرے او اته تورے وے۔ او تماشه داوه چه هر یو ډلے ته خپل مخالف ډلی نه دوچند په نظر راتله۔ چه د دے نتیجه داوه چه د کفارو په زړه کښې د مسلمانانو د زیات لیدو په وجه رُعب او هیبت او غورزیدو۔ او مسلمانان د ځان نه دوچند تعداد اُو وینی نو زیات حق تعالیٰ طرف ته متوجه شی او په کامل توکّل او استقلال سره د خدائے په وعده ": اِنْ يَّكُنْ مِّنْكُمْ مِّائَةٌ صَابِرَةٌ يَّغْلِبُوْا مِائَتَيْنِ " باندے اعتماد او کړی د فتح او کامیابئ اُمید ساتی۔ که د دوی پوره شمار چه د دوی نه درے چنده وو که دوی ته ښکاره شوے وے نو ممکنه وه چه یره پرے راغلے وے۔ او دا یو بل ته دوچند ښکاریدل د دواړو فریقینو په بعض وختونو کښې وو۔ ورنه بعضے حالات هغه وو چه هر یو ته په بل فریق د ځان نه کم ښکاریده۔ لکه چه په سورتِ انفال کښې به راشی۔

په هرحال یو چیرلښکر او بې سروسامانه ټولې د داسې مضبوط ټولګي په مقابله کښې د هغې پیشین ګویو په مطابق چه په مکه کښې ورته شوې وې داسې کامیاب کول د سترګو لرونکو د پاره ډیره عبرتناکه (او د وعظ نصیحت) واقعه ده رخو چه څوک ترې عبرت واخلي) - (فوائد علامه عثمانی رح)

---

زُيِّنَ لِلنَّاسِ حُبُّ الشَّهَوٰتِ مِنَ النِّسَآءِ وَالْبَنِيْنَ وَ

ښکلې کړې شوې ده خلقو لره دوستي د خوندونو (خوښونو) مینه له ښځو او ځامنو او

الْقَنَاطِيْرِ الْمُقَنْطَرَةِ مِنَ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ وَالْخَيْلِ

خزانې جمع کړې شوې د سرو زرو او د سپینو زرو او اسونو

الْمُسَوَّمَةِ وَالْاَنْعَامِ وَالْحَرْثِ ۗ ذٰلِكَ مَتَاعُ الْحَيٰوةِ

نښه لګو لو شوو او څارو او فصلو نو - دا فائده اخستل دي د دنیا په

الدُّنْيَا ۚ وَاللّٰهُ عِنْدَهٗ حُسْنُ الْمَاٰبِ ﴿۱۴﴾ قُلْ اَؤُنَبِّئُكُمْ

ژوند کښې - (او د الله سره دے ښه ځائے د ورتلو (د ورتګ ځائے)) - او وایه چه آیا خبر او خایم تاسو ته

بِخَيْرٍ مِّنْ ذٰلِكُمْ ۗ لِلَّذِيْنَ اتَّقَوْا عِنْدَ رَبِّهِمْ جَنّٰتٌ

د دے نه غوره - د پرهیزګارانو د پاره د خپل رب سره باغونه دي

تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا وَاَزْوَاجٌ مُّطَهَّرَةٌ

چه لاندې ترې نهرونه بهیږي - همیشه به وي په هغې کښې او ښځې دي پاکې

وَّرِضْوَانٌ مِّنَ اللّٰهِ ۗ وَاللّٰهُ بَصِيْرٌ ۢ بِالْعِبَادِ ﴿۱۵﴾ ۚ اَلَّذِيْنَ

او رضا مندي د الله ده - او د الله په نظر کښې دي بندګان - هغه (خلق) چه

يَقُولُونَ رَبَّنَا إِنَّنَا آمَنَّا فَاغْفِرْ لَنَا ذُنُوبَنَا وَقِنَا

وائي اے زمونږ ربه مونږ ايمان راوړے دے پس اُوبخښه مونږ ته ګناهونه او اُوساتے مونږ

عَذَابَ النَّارِ ﴿١٦﴾ اَلصّٰبِرِيْنَ وَالصّٰدِقِيْنَ وَالْقٰنِتِيْنَ

د عذاب د دوزخ نه - او صبر کونکي دي او رښتوني او حکم منونکي

وَالْمُنْفِقِيْنَ وَالْمُسْتَغْفِرِيْنَ بِالْاَسْحَارِ ﴿١٧﴾

او خرچ کونکي او بخښنه غوښتونکي د شپے په ورستي پار کښے

# لنډ تفسير

## د آياتونو تړون

په وړمبو آياتونو کښے د کفارو او مشرکانو د مخالفت او د دوی په مقابله کښے د جهاد ذکر وه - او په دے آياتونو کښے د ايمان او اسلام مخالفت او د ټولو بدو عملونو اصلي مَنْشاء بيان کړے شويده چه هغه د دنيا محبّت دے څوک د مرتبے او مال په حرص کښے د حق مخالفت اختيار وي او څوک د نفس د خواهشونو په وجه سره ، او څوک د خپل پلار نيکه د رسمونو د محبّت په سبب د حق مقابلے ته اودريږي - او د دے ټولو خيزونو بنيادي د دنيا محبّت دے - د دے آياتونو لنډ او د تفسير نچوړ دادے :

خائسته معلوميږي (اکثرو) خلقو ته محبّت د خوندناکو څيزونو (مثلاً) ښځے شوے او اولادشو لګيدلي چه يري شو د سرو او سپينو ښينے لګيدلي اسونه شو (يا نور) څاروي شو او فصلونه شو (ليکن) دا ټول د استعمال څيزونه دي د دُنيا د ژوند او د آخر انجام د کار د خيګړے (څيز) خو د الله سره دے (چه پس د مرګ نه به په کار راځي چه تفصيل ئے په راتلونکي آيت کښے راروان دے) تاسو (ر دے خلقو ته دا) او فرمائي چه اے زه تاسو ته وا ښيے او خايم چه (په خو چنده) غوره وي د دے (ذکر شوو) څيزونو نه (ميں واؤ رئي) د وا سے خلقو د پاره چه (د الله تعالى نه) يريږي د دوی د (حقيقي) مالک سره داسے باغونه دي (يعني جنت) چه

لاندې ترې نهرونه بهيږي په دې (جنتونو) کښې به هميشه هميشه اوسيږي او دوی دوی د پاره) داسې بيبيانې دي چه (په هرشان) صافې ستره شوې دي او (د دوی د پاره) خوشخبري ده د الله د طرف نه او الله تعالیٰ خه وينې (کوري) بنده گانو (حال) لره (نو په دې وجه به ېې ورکړي) (۱۵) داسې خلق دي چه وائي اې زمونږ پرورد گاره مونږ ايمان راوړې پس ته زمونږ گناهونه معاف کړې او مونږ د دوزخ د عذاب نه بچ کړې (او دغه خلق) صبر کوونکي دي او رشتيا ويونکي دي او (د الله تعالیٰ په مخ کښې عاجزي کوونکي دي او (په نيکو کارونو کښې) مال خرچ کوونکي دي او د شپې په آخر کښې (د پاڅي) د گناهونو معافي غوښتونکي دي -

# مَعلومَات او مَسئلې

**د دنيا محبت فطري دې خو په دې کښې ورکيدل هلاکت دې**

په حديث شريف کښې ارشاد دې: "حُبُّ الدُّنْيَا رَأْسُ كُلِّ خَطِيئَةٍ" يعنې د دنيا محبت د هرې بدۍ سر دې - په اول آيت کې د دنيا خوندونو ته کوم څيزونو نومونه اغستي شوي دي او دا خوندولې شوې ده چه د خلقو په نظر ونو کښې د دوی محبت ښائسته جوړ کړې شوې دې - په دې وجه ډير خلق ئې په دې ظاهري رونق بانديې او غوليږي او آخرت هير کړي - د کومو څيزونو نومونه چه په دې ځائې کښې اغستي شوي دي دا څيزونه عام طور سره د بني آدم د خواهش او مينې مرکزونه دي - چه د ټولو نه په کښې اول ښځه او بيا اولاد بيا ن کړې شوي دي - ځکه بني آدم چه په دنيا کښې د څومره څيزونو د حاصلولو په فکر کښې په وت وي د دې ټولو اصلي سبب د ښځې يا د اولا د محبت وي او د دوی ضرورت وي - د دينه پس د سرو سپينو شاروو او فصلونو ذکر دې، چه دا په دويم نمبر کښې د بني آدم د خواهش او مينې مرکز دې -

د لنډ مطلب د آيات دا دې چه الله تعالیٰ د دې څيزونو محبت طبعي طور سره د بني آدمو په زړه ونو کښې غورزه ولې دې - چه په دې کښې په ډيرو حکمتو نه دي په دوی کښې يو دا دې چه که انسان طبعي طور سره د دې څيزونو ته مائله او د دوی سره

مینه کوُنکے نه وے نو دَ دُنیا ټول نظام به درهم برهم شوے وَه - دَ چا به څه غرض وَه چه زمیندارہ به ئے کَوَله یا محنت مزدوری به ئے کَوَله، یا به ئے په تجارت کښے خپلے دوپئے پیسے او محنت خرچ کولو- دَ دُنیا آبادی او بَقاء په دے کښے ده چه دَ خلقو په طبیعتو نو کښے دَ دے څیزونو محبت پیدا کړے شی چه په دے وجه دوی په خپله دَ دے څیزونو په تیاره وَلو کښے او دَ باقی پاتے کولو په فکر کښے وی- سحر پاڅی مزدور به دے فکر کښے دَ کور نه اوځی چه څهٔ پیسے اوګټی- مالدار په دے فکر کښے دَ کوره اوځی چه پیسے خرچ کړی مزدور را وَلی او خپل کار پورے اوکړی- سوداګر غوره غوره ساما نونه تیاره وی دَ ګاهك په انتظار کښے ناست وی چه پیسے اوګټی ګاهك سَل کوششونه کوی پیسے خرچ کوی بازارته ځی چه دَ خپل ضرورت ساما ن واخلی- نو چه دے ټولو ته غور او فکر اوکړے شی نو دا ټول دَ دنیا دَ دغے خوند ناکو څیزونو په محبت کښے دَ خپلو خپلو کورونو نه اوځی - او دَ دنیا تمدّنی رَد یو ځا ئے او سیدو) نظام ئے د پر په مضبوطو او محکمو بنیادونو اوُدرَوَلے دے -

دویم حکمت په کښے دا هم دے چه که دَ دنیا دَ نعمتونو خواهش او مینه دَ انسان په زړهٔ کښے نهٔ وے نو دَ آخرت دَ نعمتو نو به ورته نه خوَند معلوم وَه او نه به ئے ورته خواهش کیدهٔ نو بیا به دَ دهٔ څهٔ ضرورت وَه چه نیک عمل اوکړی او جنّت اوګټی او دَ نا کاره کارونو نه ځان بچ کړی دَ دوزخ نه ځان اوساتی -

دریم حکمت چه هغه زیات قابلِ نظر دے دا دے چه دَ دے څیزونو مینه ئے طبعی طور دَ انسان په زړهٔ کښے ځکه پیدا کړه چه دے پرِ وَ ازمائي یعنے امتحان ترِے واخلی چه څوک دَ دے څیزونو په محبت کښے اخته کیږی آخرت هیره وی- او څوک دے چه دَ دے څیزونو په اصل حقیقت او دَ دے په فانی کیدو او تلو نکو را تلو نکو ځان پوهه کړی په قدر دَ ضرورت دَ دے په فکر کښے وی او دَ آخرت ټیک کولو په کارونو کښے ئے او نګسوی - قرآن شریف په یو بل مقام کښے په خپله دَ دنیا دَ دے زیب او زینت هم دغه حکمت خودَلے دے - ارشاد فرمائی :

اِنَّا جَعَلْنَا مَا عَلَى الْاَرْضِ زِيْنَةً لَّهَا لِنَبْلُوَهُمْ اَيُّهُمْ اَحْسَنُ عَمَلًا ۔

"یعنے مونږ چه په زمکه باندے کوم دا دَ زمکے ښائست جوړ کړے دے - دا دَ دے دَ پاره چه مونږ خلق دَ ازمایو چه څوک ښهٔ عمل کوی"۔

دَ دے اٰیات نه معلومه شوه چه دَ دنیا واخوندنا کخیزونه دَ انسان دَپاره خائسته کول هم دَ الله تعالیٰ یو فعل دے چه په ډیرو حکمتونو بانده بنا دے یعنے ډیر حکمتونه دی په کښے. او په بعضِ اٰیاتو نو کښے چه دَ دا قسم خائسته والی نِسبت شیطان ته شوے دے لکه: "زَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطٰنُ اَعْمَالَهُمْ"؛ په دے کښے دَ دا سے څیزونو خائسته کول مراد دی چه په شریعت او عقل سره ناکاره وی - یا دَ خائست هغه درجه مراد ده چه دَ حد نه دَ زیاتید و په وجه بَد وی - ورنه مُباح څیزونه خائسته کول مطلق ناکاره نه دی - بلکه په دے کښے ډیرے فائدے هم دی. په دے وجه سره ئے په بعضِ اٰیاتونو کښے ئے بنکاره په بنکاره دَ دے نسبت الله تعالیٰ ته کړے دے لکه چه اوس بیان کړے شو -

**خُلاصه** دَ خبرے چه دَ دنیا خوا بده او خوندَه وَرڅیزونه الله تعالیٰ په خپل فضل او کرم او حکمت سره دَ انسان په نظر کښے خائسته کړی دی او دَ دوی محبّت ئے دَ دهٔ په زړهٔ کښے اَچولے دے چه په دے کښے دَ ډیرو حکمتونو نه یو حکمت دا هم دے چه دَ انسان امتحان واخستے شی چه په دے سَرسَری او ظاهری خوندونا کو او دَ دے یو څو ورځو په خوند والی کښے دَ اخته کیدونه پس دے دَ خپل ځان او دَ دے څیزونو ربّ او خالق او مالک یاده وی، او دا څیزونه دَ هغه دَ پیژندو او محبت ذریعه جوړه وی او که دَ دوی په محبّت کښے نخلی اصلی مالک او خالق او په اٰخرت کښے دَ هغهٔ په مخ کښے پیښ کیدل او حساب کتاب هیره وی - او لنے سړے هغه دے چا چه دَ دُنیا نه هم فائده واخستله او په اٰخرت کښے هم کامیاب شه - دَ دنیا داخو نده ورڅیزونه دَ دهٔ خپوته کیتهٔ نه شوے بلکه دَ دهٔ دَپاره سنګ میل جوړ شو دَ اٰخرت دَ کامیابئ ذریعه ئے اوګرځیده - او دویم سړے هغه دے دَ چا دَپاره چه داڅیزونه دَ اٰخرت دَ ژوند دَ بربادئ او دَ همیشه عذاب سبب جوړ شو - او که په ژور نظر سَره اوکتے شی نو دا څیزونه په دنیا کښے هم دَ دهٔ دَپاره عذاب جوړیږی - په قرآن کریم کښے دَ دا سے خلقو په باره کښے ارشاد دے:

| | |
|---|---|
| فَلَا تُعْجِبْكَ اَمْوَالُهُمْ وَلَآ اَوْلَادُهُمْ اِنَّمَا يُرِيْدُ اللّٰهُ لِيُعَذِّبَهُمْ بِهَا فِى الْحَيٰوةِ | یعنے تا سو دَ دے کافرانو پیره دے مالونو او اولاد سره مه حیرانیګئ. ځکه چه دے نافرمانو ته مال او اولاد ورکول دَ دوی سره ښیګړه نه ده بلکه دا مال او اولاد به په اٰخرت |

الدُّنیا: کښې خوبه کړ دوی ډیاره عذاب وی خو په دنیا کښې

هم شپه او ورځ د دے په فکر او شغلو نو کښې په عذاب سره ګرفتار دی"

غرض دا دے چه د دنیا کوم څیزونه چه الله تعالیٰ د انسان د پاره خالُستلے او خوندٔ ورجوړ کړی دی۔ د شریعت په مطابق په اعتدال سره د دوی طلب کول او د ضرورت په مطابق ئے جمع کول د دنیا او د اخرت کامیابی ده۔ او په ناجائزو طریقو سره د دوی استعمال یا په جائزو طریقو کښې د ومره مبالغه کول او مصروف کیدل چه د دے په سبب د اخرت نه غافله شي د هلاکت سبب دے۔ مولانا رومیؒ د دے ښه ښکلے مثال فرمایلے دے ؎

آب اندر زیر کشتی پشتی است آب در کشتی ہلاک کشتی است

یعنے د دنیا سازو سامان د او بو په مثال دے او په دے کښې د انسان زړهٔ د یوے کشتۍ په شان دے۔ اُوبه چه کله د کشتۍ لاندے او کیږ چاپیره وی نو د کشتۍ د پاره فائده منے دی او مددګارے ئے دی او د کشتۍ د وجُود تشا تلو د پاره دی ۔ او دغه اُوبه که په کشتۍ کښې د ننه داخلے شي۔ نو دا بیا د کشتۍ د غرقیدو او هلاکید و اسباب جوړ شي۔ دغه شان د دنیا مال متاع چه د انسان په زړهٔ باندے غلبه او نه کړی نو د دهٔ د پاره په دین او دُنیا مددګار وی او ښهٔ وخت چه د دهٔ په زړه خوارهٔ شي نو د زړهٔ هلاکت دے۔ په دے وجه ئے په ذکر شوی اٰیت کښې د دنیا یو څو خوندور څیزونه ذکر کړه بیا ارشاد فرمائی :

"ذٰلِكَ مَتَاعُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَاللّٰهُ عِنْدَهٗ حُسْنُ الْمَاٰبِ": یعنے دا ټول څیزونه د دنیا په ژوند کښې صرف د کار چلولو د پاره دی، د زړهٔ لګـــولو د پاره نه دی او د الله پاک سره د هٔ غوره ټهکانړه" یعنے هغه ټکاونړه چه هلته همیشه اوسیدل دی او چه د هغې نعمتو نه او خوندونه نهٔ فنا کیدونکی دی، او نه کم یا کمزوری کیدونکی دی۔

په دویم اٰیت کښې ئے د دے مضمون د زیات وضاحت د پاره او فرمایل :

"قُلْ اَؤُنَبِّئُكُمْ بِخَيْرٍ مِّنْ ذٰلِكُمْ لِلَّذِيْنَ اتَّقَوْا عِنْدَ رَبِّهِمْ جَنّٰتٌ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا وَاَزْوَاجٌ مُّطَهَّرَةٌ وَّرِضْوَانٌ مِّنَ اللّٰهِ وَاللّٰهُ بَصِيْرٌ بِالْعِبَادِ": په دے کښې نبی کریم صلی الله علیه وسلّم ته خطاب کړی فرمائی چه تاسو د دے خلقوته چه د دُنیا په ناقصو او فانی نعمتو نو کښې مست شوی دی او فرمائی چه زهٔ تاسو ته د دینه د ډیر و غوره نعمتو نو پته درکوم چه د الله تعالیٰ سره دی او د هغه نه یرید ونکو او فرمانبردارو ته به ملا ویږی۔ هغه نعمتونه

شنه باغونه دي چه لاندې به ترې نهرونه بهيږي او د هر قسم ګندګئ نه پاکې صافې ښځې به وي او د الله تعالیٰ رضامندي او خوشنودي ده - په دې آيت کښې ئې د دُنيا د شپږ و لويو نعمتونو شمار کړې وه چه خلق د دوي په محبت کښې مست دي - يعنې ښځې اولاد د سرو سپينو ډيري او ښه اَسونه څاروي او فصلونه - د دې په مقابله کښې ئې د آخرت نعمتونه کښې ئې په ظاهر کې درې څيزونه بيان اوکړه، اول د جنت د ښو باغونو دويم د پاکو صافو ښځو دريم د خدائے د رضامندئے په باقي څيزونو کښې ئې د اولاد ذکر ځکه اونه کړو ځه چه په دُنيا کښې خو انسان د اولاد محبت په دې وجه کوي چه د اولاد نه دۀ ته په خپلو کارونو کښې مدد ملاويږي، او د دينه پس په دوي سره د دۀ نوم ژوندې پاتې کيږي - په آخرت کښې به نۀ دۀ ته د چا د مدد ضرورت وي، او نۀ به دې فنا کيږي چه د ځان نه پس د ولي يا وارث تلاش کوي - د دينه علاوه په دنيا کښې چه د چا اولاد دې هغه به تول دۀ ته په جنت کښې ملاويږي او د چا چه اولاد په دنيا کښې نه وي دۀ ته خو به اول په آخرت کښې د اولاد خواهش نۀ وي - او که د چا وي نو الله تعالیٰ به ورله هغه هم ورکړي - د جامع ترمذي په يو حديث کښې دي چه نبي کريم صلی الله علیه وسلم فرمائيلي دي چه که چا جنتي ته د اولاد خواهش وي نو د بچي حمل او بيائے پيدا کيدل بيا د دۀ لوئيدل دا تول به په لږ ساعت کښې اوشي او د دۀ مقصد به پوره کړې شي -

په دې وجه ئې په جنت کښې د سرو سپينو ذکر ځکه اونه کړو - چه په دُنيا کښې خلق سرۀ سپين ځکه غواړي چه د دنيا سامان پرې واخلي - او د خپل ضرورت څيزونه پرې حاصل کړې شي - په آخرت کښې به نۀ چا ته د داغستو څه څه لو ضرورت وي او نه د څۀ شي د بدلے ورکولو - بلکه جنتي چه څۀ شے غواړي هغه به ور ته فوراً تياره ولې شي - د دې نه علاوه په جنت کښې په خپله هم د سرو سپينو کمے به نه وي - ځکه چه په روايا تو سره ثابته ده چه د جنت بعضې محلونه به داسې وي چه د هغې به يوه بنخته د سرو وي او بله به د سپينو وي - به هر حال د آخرت په لحاظ سره به سره سپين څۀ قابل ذکر شے نه وي -

د غه شان د آسو نو کار خو په دنيا کښې دا دے چه په سفر کښې پرې سوارلي او کړي او منزل پرې اوکړي - او هلته به نه د سفر ضرورت وي او نۀ د سوارلئ

البته په صحیح احادیثو سره ثابت دی - چه جنتیانو ته به دَ جمعې په ورځ ښکلی اَسونه وسوارلی دَ پاره پېش کړے شی او په دے به سوریدی جنتیان به دَ خپلو دوستانو او خپلوانو دَ ملاقات دَ پاره ځی -

لندېره داده چه حلته به اَسونه څهٔ خاص اهمیت نهٔ لری چه ذکر ئے اُوشی دغه شان څاروی چه زمیندار ه پرے کول شی یا دَ پیئو، دا ټول څیزونه به الله تعالیٰ په جنت کښے بغیر دَ دے څاروی وغیره نه په خپله ورکوی -

دغه حال دَ فصل دے چه په دنیا کښے خو دَ زمیندارئ تکلیف خلق ځکه پورته کوی چه مختلف قسم غلے پیدا کړی - او په جنت کښے به دا ټول څیزونه خود به خود تیار وی حلته به چا ته دَ زمیندارئ څهٔ ضرورت نهٔ وی او که دَ چا خامخا دَ زمیندارئ کولو سره محبت وی او زمیندارئ کوی نو دَ هغهٔ دَ پاره به دا هم اوشی - لکه په بعض روایاتو دَ حدیث کښے په طبرانی کښے دی - چه دَ جنتیانو نه به یو سړی دَ زمیندارئ کولو خواهش اوکړی نو ټول دَ زمیندارئ سامان به ورته راجمع کړے شی بیا به دَ فصل کرَل، لَکَول، پخیدل او ریبل دا ټول به په څو منټه کښے اوشی، او تیار فصل به ئے مخے ته راشی - په دے وجه دَ جنت په نعمتونو کښے ئے صرف دَ جنت او دَ جنت دَ حورو ذکر کول کافی اوګنړل - ځکه چه دَ جنتیانو دَ پاره په قرآن شریف کښے دا وعده هم ده چه؛ وَلَهُمْ مَّا يَشْتَهُوْنَ: یعنے دوی ته به هر هغه شے ملاویږی دَ کوم چه دوی خواهش کوی - دَ دے جامع اعلان نه پس دَ څهٔ خاص نعمت دَ ذکر کولو ضرورت نهٔ دے پاتے - لیکن دَ دے نه دَ څهٔ خاصو نعمتونو ذکر ئے اوکړه چه هر جنتی ته به دَ دغو ختو نه ملاویږی یعنے دَ جنت شَنَه باغونه او ښا ئسته او ښکلے ښځے او دَ دے جامع نعمتونو نه پس ئے دَ دے ټولو نه دَ لوئے نعمت ذکر اوکړه چه عام طور سره ئے انسان تصور هم نهٔ شی کولے - او هغه دَ الله تعالیٰ همیشه رضامندی او خوشنودی ده - چه دَ دے نه پس به بیا دَ الله تعالیٰ دَ ناراضګیدو ویره نه وی - لکه چه په حدیث شریف کښے وی چه کله ټول جنتیان جنت ته اورسی خوشحاله شی او تسلی ئے اوشی او بله هیڅ څهٔ اَرزوئے داسے پاتے نه شی چه پوره شوے نه وی نو دغه وخت به الله تعالیٰ په خپله جنتیانو ته خطاب اوفرمائی چه؛ وس تاسو راضی او په تسلی شوئ دَ بل څهٔ شی ضرورت خو ورته نیشته؛ دوی به عرض اوکړی چه اے زمونږ ه

پروردګاره تا خو مونږ له دومره نعمتونه راکړي دي چه د دې نه پس مونږ ته د هیڅ شي ضرورت نیشته - الله تعالیٰ به ورته اوفرمائي چه اوس څه تاسو ته د دې ټولو نعمتونو نه اوچت یو بل نعمت درکوم. هغه دا چه تاسو ټولو ته خپل رضا او همیشه نزدیکت حاصل دے اوس د ناراضه کیدو هیڅ خطره نیشته - نو په دې وجه د جنت د نعمتونو د لوې کیدو یا کمیدو هم خطره نه وي

د دې دوه آیاتونو نچوړ دا دے کوم چه نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمائي:

اَلدُّنْیَا مَلْعُوْنَةٌ وَّمَلْعُوْنٌ مَا فِیْهَا اِلَّا مَا اُبْتُغِیَ بِهٖ وَجْهُ اللهِ وَفِیْ رِوَایَةٍ اِلَّا ذِكْرُ اللهِ وَمَا وَالَاهُ اَوْ عَالِمًا اَوْ مُتَعَلِّمًا "

"دنیا ملعونه ده او څه چه په دې کښې دي هغه هم ملعون دي بغیر د هغه څیزونو نه کوم چه د الله تعالیٰ د رضا لټولو ذریعه جوړه شي او په یو روایت کښې دا دي چه بغیر د الله د ذکر نه او د هغه شي نه چه د الله تعالیٰ خوښ وي او بغیر د عالم او طالب علم نه"

دا روایت ابن ماجه او طبراني په روایت د حضرت ابو هریره رضی الله تعالیٰ سره نقل کړے دے -

---

شَهِدَ اللهُ اَنَّهٗ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ وَالْمَلٰٓئِكَةُ وَاُولُوا الْعِلْمِ

ګواهي کوي الله چه هیڅ څوک د عبادت لائق نیشته سوا د هغه نه او فرشتے او علم والا هم ګواهي کوي

قَآئِمًا بِالْقِسْطِ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْعَزِیْزُ الْحَكِیْمُ ﴿۱۸﴾ اِنَّ

هغه حاکم دے په انصاف - هیڅوک د عبادت لائق نیشته سوا د هغه نه زبردست دے حکمت والا - بے شکه

الدِّیْنَ عِنْدَ اللهِ الْاِسْلَامُ قف وَمَا اخْتَلَفَ الَّذِیْنَ اُوْتُوا

دین چه دے د الله په نزد بس دغه مسلماني ده حکم وړل دے او مخالف نه شو اهل کتاب

الْكِتٰبَ اِلَّا مِنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَهُمُ الْعِلْمُ بَغْیًاۢ بَیْنَهُمْ ط

مګر کله چه دوی ته معلومه شوه د یو بل د ضد او د حسد نه -

وَمَنْ يَّكْفُرْ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ فَاِنَّ اللّٰهَ سَرِيْعُ الْحِسَابِ ﴿١٩﴾

او څوک چه انکار او کړی د الله د حکمونو نه نو بے شکه الله تعالیٰ زر حساب اَخستونکے دے۔

# لنډ تفسير

**د ایاتونو تړون**

په مخکښې ایت کښې د توحید (د الله د یو والی) بیان شوے دے په دے ذکر شوو ایاتونو کښې په اوّل ایت کښې هم د الله تعالیٰ د یو والی بیان په یو خاص انداز کښې شوے دے چه په دے باندے د دریو شهادتونو ذکر دے۔ یو په خپله د الله جلّ شانهٗ شهادت دے، دویم د هغهٔ د فرښتو دے، دریم د اهلِ علمو دے۔ د الله جل شانه شهادت خو په طور د مجاز دے۔ مراد دا دے چه د الله جلّ شانهٗ ذات او صفات او د دهٔ ټول نښے نښانے او کارنګیرے د الله تعالیٰ د یو والی ښکاره نښے دی۔

هرگیاهی که اززمین روید وحدهٗ لاشریک لهٗ گوید

(یعنے هره یوه گیاه چه د زمکے نه راپیدا کیږی د الله تعالیٰ یو والے بیانوی)۔

د دینه علاوه د هغهٔ د طرفه رالیږلی شوی پیغمبران او کتابونه هم د دے توحید گواهان دی۔ او دا ټول څیزونه د الله د طرف نه دی۔ نو گویا په خپله د دے شهادت په دے خبره دے چه د هغه نه سوا بل څوک د عبادت لائق نیشته۔

دویم شهادت د فرښتو ذکر شوے دے چه د الله تعالیٰ مقرب او د هغه د تکوینی (د پیدا کولو او وجود کښې راوړو) کارونو کارِندهٔ دی۔ دوی ټول چه پوهه او لیده لوسره شهادت ورکوی چه لائق د عبادت د الله تعالیٰ نه سوا بل څوک نیشته۔

دریم شهادت د خاوندانو د علم دے چه د علم د خاوندانو نه مراد انبیاء علیهم السلام او عام عالمان د اسلام دی۔ په دے وجه امام غزالیؒ او ابن کثیر فرمائی چه په دے کښې د عالمانو لوئے فضیلت دے۔ چه الله تعالیٰ د دوی شهادت د خپل او د فرښتو د شهادت سره ذکر کړو۔ او دا هم کیدے شی چه د اهلِ علمو نه مطلق هغه خلق مراد وی چه په علمی اصولو باندے صحیح نظر او کړی یا د دُنیا په کائناتو کښې غور او فکر او کړی د الله جلّ شانهٗ د یو والی علم حاصل کړی۔ اګرچه د ضابطے عالم نه وی۔

او په دويم آيت کښې ئې د الله تعالى په نزد صرف د دينِ اسلام مقبول کيدل او د دے نه سِوا د بل دين او مذهب نه قبليدل بيان کړه د توحيد مضمون ئې پرے مکمل کړو. او د دينه د اختلاف کونکو تباهي ئې بيان کړه - د دے دواړو آيتونو د تفسير نچوړ دا دے :

گواهي ورکړے ده الله (په خپله) تعالى (آسماني کتابونو کښې) د دے (مضمون) چه بغير د هغه ذات (پاک) نه څوک د عبادت لائق نيشته او فرښتو هم (په خپل ذکر او تسبيح کښې د دے گواهي ورکړے ده ځکه چه د دوی ذکرونه د توحيد نه ډک دی) او (نورو) د علم خاوندو هم (په خپلو تقريرونو او ليکلو کښې د دے گواهي ورکړے ده لکه چه ښکاره ده) او د عبادت لائق هم په دے شان سره دے چه (د هر شي) په اعتدال سره انتظام کونکے دے (او بيا ويلے شي چه) د هغهٔ نه سوا بل څوک د عبادت لائق نيشته هغه زبردست دے حکمت والا دے - بے شکه دين (حق او مقبول) په نزد د الله تعالى صرف اسلام دے او (د دے په حق والى کښې د مسلمانانو سره) اهلِ کتابو چه کوم اختلاف کړے دے (وائي چه اسلام نه ئې باطل ويلے دے) نو د دا سے حالت نه پس چه دوی ته (د اسلام د حق والى) دليل رسيدلے وهٔ محض د يو بل نه د ځان لوئے گڼړلو په وجه سره (يعنې د اسلام په حق والى کښې څه شک شبهٔ نه وه شوے بلکه په دوی کښې د نورونه د ځان لوئے گڼړلو ماده وه، او په اسلام راوړو کښې دا سرداری چه دوی ته په عوامو حاصله وه فوت کيده په دے وجه ئې اسلام قبول نه کړو بلکه اُلټه ئې دهٔ ته باطل او وئے) او کوم سړے چه د الله تعالى د حکمونو نه انکار او کړی (لکه چه دوی او کړه) نو بے شکه الله تعالى ډير زر د دوی حساب اخستونکے دے (او ښکاره خبره ده چه د دا سے سړی د حساب انجام په عذاب وی) -

## معلومات او مسئلے

**د آيات شَهِدَ اللّٰهُ الخ فضيلتونه** دا د شهادت آيات يو خاص شان لری د تفسير امام بغوئ نقل کړی دی چه د يهود دوه لوئے عالمان د شام نه مدينے طيبے ته راپيښ شو - د مدينے کلے چه ئې او ليده نو د يو بل سره ئې په خبرو کښې او وے چه دا کلے خو دا سے دے لکه چه په تورات کښې ئې پيشين گوئي راغلے ده چه په دے کښې به د آخرے زمانے نبی اوسی - د دينه پس دوی ته پتا اوشوه چه دلته يو بزرگ دے چه خلق ورته

بنی وائی - دوی د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شو- په دوی ئې د نظر لګید وسره هغه ټول صفتونه مخې ته راغله، کوم چه په تورات کښې د دوی په باره کښې خودلی شوی وو- چه حاضر شو نوعرض ئې اوکړو چه تاسو محمد یئ- نو حضور اوفرمايل چه هاں. بیائې عرض اوکړو چه تاسو احمد یئ نو حضور اوفرمايل چه هاں زهٔ احمد او محمد یم - بیائې عرض اوکړو چه مونږ ستاسو نه یو تپوس کوُو که تاسو د هغې صحیح جواب راکړو نو مونږ به ایمان راوړو- حضور ورته اوفرمايل چه تپوس اوکړئ دوی تپوس اوکړو چه د الله تعالیٰ په کتاب کښې د ټولو نه لوئې شهادت کوم یو دے؟ د دے سوال د جواب د پاره د شهادت دا ایت نازل شو نو حضور ورته واورولو ـ او دا دواړه هم په دغه وخت مسلمانان شو-

د مسند احمد په یو روایت کښې دی چه په عرفات کښې نبی کریم صلی الله علیه وسلم دا ایات اولوستو نو بیائې اوفرمايل:

وَأَنَا عَلٰى ذٰلِكَ مِنَ الشّٰهِدِيْنَ "یعنې اے پروردګاره زهٔ هم په دے باندے یَا رَبِّ ـ ګواه یم" (ابن کثیر)

او د امام اعمش د یو روایت نه معلومه شوه چه کوم سړے دا ایات تلاوت کړی او بیا دا اووائی: وَأَنَا عَلٰى ذٰلِكَ مِنَ الشّٰهِدِيْنَ؛ نو الله تعالیٰ به د قيامت په ورځ فرښتو ته اووائی "چه ځما دے بنده یوه وعده کړے ده او زهٔ وعده پوره کونکے یم د ټولو وعده پوره کوُنکو نه زیات نو په دے وجه ځما بنده ه جنت ته داخل کړے ئې -(ابن کثیر) او د حضرت ابوایوب انصاریؓ په حدیث کښې دی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمايلی دی چه څوک د هر فرض مانځه نه پس ایات کرسی او ایات شَهِدَ اللّٰهُ او قُلِ اللّٰهُمَّ مٰلِكَ تر بِغَيْرِ حِسَابٍ پورے لولی نو الله تعالیٰ به د دهٔ ټول ګناهونه معاف کړی او په جنت کښې به ځائے ورکړی او د دهٔ اویا حاجتونه به پوره کړی چه په هغوی کښې به د کمو نه کم حاجت د دهٔ مغفرت (بخښنه) وی (روح المعانی بحواله دیلمی) -

**د دین او د اسلام د الفاظو تشریح**

په عربئ ژبه کښې د دین د لفظ څو معنے دی چه یوه معنیٰ ئې طریقه او روِش دے - د قرآن په اصطلاح کښې لفظ د دین هغه اصولو او احکامو د پاره استعمالیږی کوم چه د حضرت آدم علیه السلام نه تر خاتم الانبیاء صلی الله علیه وسلم پورے په ټولو انبیاؤ کښې شریک دی - او لفظ د "شریعت" یا

"منهاج" یا په وُرستنو اصطلاحاتو کښې لفظ د "مذهب" د فروعی احکامو د پاره استعمالولے شي - چه په مختلفو زمانو او مختلفو اُمتونو کښې مختلف راغلي دي - د قرآن کریم ارشاد دے چه :

| | |
|---|---|
| "شَرَعَ لَكُمْ مِّنَ الدِّيْنِ مَا وَصّٰى بِهٖ نُوْحًا" | "یعنی الله تعالیٰ ستاسو د پاره هغه دین جاري کړے دے د کوم چه وصیت ستاسو نه |

اول نوح علیه السلام ته او نورو پیغمبرانو علیهم السلامو ته شوے وُه"

د دے نه معلومه شوه چه دین د ټولو انبیاؤ علیهم السلامو یو وُه - یعنی د الله تعالیٰ ذات چه د ټولو کمالاتو جمع کوُنکے دے د ټولو نقصانونو نه پاک دے د دهٔ نه سوا بل څوک لائق د عبادت نیشته په دے باندے په زړهٔ سره ایمان راوړهٔ او په ژبه سره ئے اقرار کول، په ورځ د قیامت او په دے کښې په حساب کتاب او جزاء او سزا او جنت او دوزخ باندے په زړهٔ سره ایمان راوړل او په ژبه سره ئے اقرار کول، د دهٔ په رالیږلي شوي هر نبي اور رسول او د دوی په راوړے شوو احکامو باندے هم د غسے ایمان راوړل -

او د لفظ د "اسلام" اصلي معنیٰ ده - ځان الله تعالیٰ ته سپارل او د هغهٔ د حکم تابع کیدل - د دے معنیٰ په اعتبار سره د هر نبي اور رسول په زمانه کښې چه کومو خلقو په دوی باندے ایمان راوړو او د دوی په راوړو احکامو کښې ئے د دوی فرمان برداري اوکړه هغه ټول مسلمانان دي او د مسلمان ورته ویلو مستحق دي - او د دوی دین دین اسلام وُه - د دے معنیٰ په لحاظ سره نوح علیه السلام اوفرمایل: وَاُمِرْتُ اَنْ اَكُوْنَ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ : (سورة یونسؑ) او په دے وجه حضرت ابراهیم علیه السلام خپل ځان ته او خپل امت ته امتِ مُسْلِمَة اوفرمایه : رَبَّنَا وَاجْعَلْنَا مُسْلِمَيْنِ لَكَ وَ مِنْ ذُرِّيَّتِنَا اُمَّةً مُّسْلِمَةً لَّكَ :

او د حضرت عیسیٰ علیه السلام حواریانو د دے معنیٰ په اعتبار سره ویلي وُو: وَ اشْهَدْ بِاَنَّا مُسْلِمُوْنَ : (آل عمران ۵۲)

او په بعض وختونو کښې دا لفظ په خصوصیت سره د دے دین او شریعت د پاره استعمالیږي کوم چه د ټولو نه په آخر کښې خاتم الانبیاء صلی الله علیه وسلم راوړے دے - او چا چه ورانده ینی ټول شریعتونه منسوخ کړل - او کوم چه تر قیامته پورے به باقي وي -

دَ دے معنیٰ په اعتبار سره دا لفظ صرف دِ دینِ محمّدی او اُمّتِ محمّدؐ سره خاص کیږی
دَ جبرئیل علیه السلام یو حدیث چه دَ حدیثو په ټولو کتابونو کښې مشهور دے
په دے کښې رسول الله صلے الله علیه وسلّم دَ اسلام هم دغه خاص تفسیر بیان کړے
دے - په ذکر شوی آیات کښې په لفظ دَ "اسلام" کښې هم دَ دواړو معنو احتمال
دے چه اوّله معنیٰ والے نو مطلب به ئې داشی چه "دَ الله تعالیٰ په نزد مقبول دین صرف
دینِ اسلام دے" یعنې خپل ځان دَ الله تعالیٰ دَ حکم تابع فرمان جوړول او په
هره زمانه کښې چه کوم رسول راغلے دے او هغه چه څهٔ احکام راوړی دی په هغې
ایمان راوړل او دَ هغې منل ، په دے کښې دَ دینِ محمدیؐ ګڼې چه تخصیص نیشتے
لیکن دَ عامے قاعدے لاندے دَ حضرت سیّدُ الانبیاء صلے الله علیه وسلم دَ تشریف
راوړو نه پس په دوئی او دَ دوی په راوړو شوو ټولو احکامو ایمان او عمل هم په
دے کښې داخلیږی - چه حاصل به ئې داشی چه دَ نوح علیه السلام په زمانه کښې
دین مقبول هغه وَه کوم چه نوح علیه السلام راوړے وَه او دَ حضرت ابراهیم علیه
السلام په زمانه کښې هغه چه ابراهیم علیه السلام راوړے وَه - دغه شان دَ حضرت
موسیٰ علیه السلام دَ زمانے اسلام هغه وَه چه دَ تختو دَ تورات او دَ موسوی تعلیماتو
په صورت کښې راغلے وَه - او دَ عیسیٰ علیه السلام دَ زمانے اسلام هغه وَه چه دَ
انجیل او عیسوی تعلیماتو په رنګ کښې نازل شوے وَه - او په اخر کښې به دَ خاتم
الانبیاء صلے الله علیه وسلم دَ زمانے اسلام هغه وی چه دَ قرآن او سنتو په
جوړه شوے نقشه باندے جوړ شوے وی -

**بلخوی** داشه چه دَ هر نبیؐ په زمانه کښې دَ هغهٔ راوړے دین دینِ اسلام
او په نزد دَ الله مقبول وَه چه درو ستو یو په بل پسے منسوخ کیده راروان وَه
په اخر کښې دَ خاتم الانبیاءؐ دین ته دینِ اسلام او ویلے شه - چه دَ قیامته پورے
به باقی وی - او که دَ اسلام بله معنیٰ واخستلے شی یعنې هغه شریعت چه حضرت
خاتم الانبیاء صلے الله علیه وسلم راوړے دے - نو دَ آیات مطلب به دا شی
چه په دے زمانه کښې صرف هغه اسلام مقبول دے چه دَ نبی کریم صلے
الله علیه وسلم دَ تعلیماتو مطابق وی - تیر و دینو نو ته هم اګر چه په هغے
وختو نو کښې اسلام ویئے کیدهٔ لیکن اوس هغه منسوخ شوی دی - او

په دواړو صورتونو کښې نتيجه دَ خبرې یوه ده - چه دَ هر پيغمبر په زمانه کښې دَ الله تعالیٰ په نزد مقبول دين هغه اسلام دے کوم چه دَ دغې پيغمبر دَ وحئ او تعليماتو مطابق وى - دَ دينه سوا بل يو دين مقبول نه دے - خواه که هغه نَخکنے منسوخ شوے شريعت وَلے نه وى - دَ راتلونکې زمانے دَ پاره هغه ته اسلام ويل لائق نه وى - دَ ابراهيم عليه السلام شريعت دَ هغهٔ په زمانه کښې اسلام وُه - دَ موسیٰ عليه السلام په زمانه چه دَ دغې شريعت کوم احکام منسوخ شو هغه اوس اسلام پاتے نه شو - دغه شان دَ عيسیٰ عليه السلام په زمانه کښې چه دَ موسیٰ عليه السلام دَ شريعت کوم حکم منسوخ شوے دے هغه اوس اسلام پاتے نه شو - ټهيک دغه شان دَ خاتم الانبياء صلے الله عليه وسلم په زمانه کښې چه دَ تيرو شريعتونو کوم احکام منسوخ شويدى هغه اوس اسلام نه دے پاتے شوے - په دے وجه چه کوم امت دَ قرآن مخاطب دے دَ دوى دَ پاره که دَ اسلام معنے عامه واخلے اوکه خاصه دَ دواړو حاصل (مطلب) دا دے چه دَ نبى کريم صلے الله عليه وسلم دَ راتلو نه پس صرف دَ دينِ اسلام ويلو لائق هغه دے چه دَ قرآن او دَ نبى کريم صلے الله عليه وسلم دَ تعليماتو مطابق وى او دغه دَ الله تعالیٰ په نزد مقبول دے - دَ دينه سوا بل هيڅ دين نه مقبول دے او نه دَ نجات (خلاصى) ذريعه ده - دا مضمون دَ قرآن مجيد په بے شماره آياتونو کښې په مختلفو عنوانونو سره راغلے دے - دَ يو آيات الفاظ دا رنګ دى:

«وَمَنْ يَّبْتَغِ غَيْرَ الْاِسْلَامِ دِيْنًا فَلَنْ يُّقْبَلَ مِنْهُ:» يعنے کوم سړے چه دَ اسلام نه سواځۀ بل دين اختيار کړى نو هغهٔ به دَ دهٔ نه قبول نه کړے شى، او کوم عمل چه دَ هغې مطابق اوکړے شى هغهٔ به ضائع کړے شى"

په دے زمانه کښې نجات په اسلام پورے تړلے دے، دَ غير مسلمانانو نيک عمل او نيک اخلاق هم قبول نه دى.

دے آياتونو په پوره وضاحت سره دَ دے کافرانه نظرئے خاتمه اوکړه په کومه کښې چه نے دَ اسلام دَ روادارئ په نوم سره دَ کفر او اسلام دَ يَو کولو کوشش شويدے - او دائے مقرر کړے ده چه دَ دنيا هر مذهب خواه که يهوديت او نصرانيت وى يا بُت پرستى وى هر يو دَ نجات ذريعه جوړيدے شى - په دے شرط چه دَ نيکو عملونو او خواخلاقو پابند وى - او دا په حقيقت کښې دَ اسلام بُنيادُونه

نوره ولړدي - چه مطلب ئې دا جوړېږي چه دَ اسلام څه حقیقت نیشته محض یو خیالي څیز دے چه دَ کفر په حرج جامه کښې تسمید ے شي - دَ قرآن شریف دے آیاتو نو او دغسې بې شماره نورو آیاتو نو په ښکاره چه ول سره اوخوده - چه څنګه ړنوا اوتیاره یو شے نه شي کیدے دغه شان دا خبره هم چیره نامنا سبه او ناممکنه ده چه الله تعالیٰ ته خپله نافرماني اوبغاوت هم را سے غوره اوخوخ دي لکه څنګه چه حکم منل او فرمانبرداري ده - کوم سړے چه دَ اسلام په اُصولو کښې دَ یو شي نه مُنکر دے هغه بې شکه دَ خدائے تعالیٰ باغي او دَ هغه دَ رسولانو دشمن دے خواه که په فروعي او رسمي اخلاقو کښې هغه څومره خهٔ په نظر راځي - دَ آخرت دَ نجات دارمدار دَ ټولو نه اول دَ الله تعالیٰ او دَ هغهٔ دَ رسول په فرمانبرداري باندے دے - څوک چه دَ دے نه محروم پاتے شه دَ هغهٔ هیڅ عمل معتبر نه دے - په قرآن مجید کښې دَ دا سے خلقو دَ عمل متعلق ارشاد دے فرمائي ؛

فَلَا نُقِيْمُ لَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَزْنًا ؕ | "یعنې دَ قیامت په ورځ به دَ دوی دَ یو عمل دَ پاره هم وزن قائم نه کړے شي"

په دے آیات کښې او دَ دینه په مخکښې آیات کښې چونکه دَ خبرے ذکر اهلِ کتابو طرفته دے په دے وجه په آخر کښې دَ دوی بې وقوفي او غلط کاري څهٔ په دے طول سره بیان شوے ده فرمائي چه :

"وَمَا اخْتَلَفَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ اِلَّا مِنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَهُمُ الْعِلْمُ بَغْيًاۢ بَيْنَهُمْ" یعنې دے خلقو چه کومه دَ خاتم الانبیاء صلی الله علیه وسلم په نبوّت او په اسلام کښې جګړه غوره دَ لے ده نو هغهٔ په دے وجه نهٔ ده چه دوی ته په دے معامله کښې څه اشتباه یا شک پاتے شوے دے بلکه دوی ته دَ خپل کتاب تورات او انجیل نه او دَ نورو ذریعو نه پوره په پوره دَ اسلام او دَ پیغمبر اسلام صلی الله علیه وسلم حق والے ثابت شوے دے لیکن دَ مسلمانانو سره دَ حسد په وجه او دَ خپلے مرتبے او مال سره دَ محبّت سبب دوی په اختلاف کښې اخته کړي دي -

په آخر کښې فرمائي؛ "وَمَنْ يَّكْفُرْ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ فَاِنَّ اللّٰهَ سَرِيْعُ الْحِسَابِ ؁ ؛"

یعنې کوم سړي چه د الله تعالی د آیاتو نه انکار کوي. نو الله تعالی چه یو ذرّه د دوۍ نه حساب اخستونکی دی. اوّل خو به د مرګ نه پس د دې عالم (دُنیا) امتحان به قبرته په داخلیدو په دې عالم کښې وي چه برزخ ورته وائي - او بیا به پوره په پوره حساب په قیامت کښې (کبریٰ) د دې حساب کتاب په وخت کښې به د ټولو جګړو حقیقت ښکاره شي - باطل پرستو ته به خپل حقیقت ښکاره شي او بیا به ورلره د دې سزا مخې له راشي -

---

فَإِنْ حَآجُّوكَ فَقُلْ أَسْلَمْتُ وَجْهِيَ لِلَّهِ وَمَنِ اتَّبَعَنِ ط

بیا هم که تا سره جګړه کوي نو او وایه چه ما تابع کړو خپل ځان د الله د حکم او هغوی هم چه ځما سره دي

وَقُل لِّلَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ وَالْأُمِّيِّينَ ءَأَسْلَمْتُمْ ط

او او وایه کتاب والو ته او اَنْ پړو ته چه آیا تاسو هم تابع شوئ؟

فَإِنْ أَسْلَمُوا فَقَدِ اهْتَدَوا ج وَإِن تَوَلَّوْا فَإِنَّمَا عَلَيْكَ

پس که دوی تابع شو نو دوی لار سَیغه بیا موندله او که مخ ئې اوګرځاوه نو ستا په ذمه صرف

الْبَلَاغُ ط وَاللَّهُ بَصِيرٌ بِالْعِبَادِ ع (۲۰)

د رسول دی - او د الله په نظر کښې دي بندګان -

# لنډ تفسير

**د آیاتو نوټرون**

د سورت په شروع کښې د توحید ثبوت او د تثلیث رد شوې وه - په دې آیاتو کښې د مشرکانو او د منکرینِ اهلِ کتابو د دلیلو نو جواب ورکړې شوې دې -

(د اسلام په حق والي باندې د دليل قائميدو نه پس) بيا هم که دا خلق
ستاسو سره (خامخا) دليل بازي کوي نو تاسو (په جواب کښې) او فرمايئې چه (تاسو
منئ او که نه منئ) ما خپل مخ خاص الله طرفته کړو او څوک چه زما سره دي هغوی
هم (خپل مخ خاص الله طرف ته کړو. دا کنايه ده د دې نه چه موږ تول اسلام
اختيار کړې دے چه په دې کښې په الله تعالى باندې د عقيدې لرلو په اعتبار
سره د زړه مخ خاص الله طرفته وي. ځکه چه په نورو مذهبونو کښې څۀ نه
څۀ شرک شوے وه) او (د دې جواب نه پس د دوی نه د پتوس کولو په طور
سره) او وايه اهل کتابو ته او (مشرکانو د) عربو ته چه آيا تاسو هم ايمان را
وړئ پس که دې خلقو اسلام راوړونو دا خلق به هم په لارې (برابر) راشي
او که دا خلق (د دې نه هم دغه شان) مخ اړه وي پس (تاسو د دې غم هم مه
کوئ ځکه چه) ستاسو په ذمه صرف (د خدائې د احکامو) د رسول دي او (مخکښې
الله تعالى په خپله وينې (او ګوري خپلو) بندګانو لره (ستا نه به د دوی په باره کښې څه
پتوس نه شي کيدے)۔

---

إِنَّ الَّذِينَ يَكْفُرُونَ بِآيَاتِ اللَّهِ وَيَقْتُلُونَ النَّبِيِّينَ بِغَيْرِ

کوم خلق چه انکار کوي د الله د حکمونو نه او قتل کوي پيغمبرانو لره په ناحقه

حَقٍّ وَيَقْتُلُونَ الَّذِينَ يَأْمُرُونَ بِالْقِسْطِ مِنَ النَّاسِ

سره او قتل کوي هغو لره چه حکم کوي د انصاف کولو د خلقو نه

فَبَشِّرْهُم بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ﴿٢١﴾ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ حَبِطَتْ

پس خوشخبري واوره هغوته د عذاب دردناک۔ دا هغه دي چه ضائع شو محنت

أَعْمَالُهُمْ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَمَا لَهُم مِّن نَّاصِرِينَ ﴿٢٢﴾

د دوی په دنيا کښې او په آخرت کښې او هيڅوک نيشته د دوی مددګار د۔

# لنډ تفسير

**دَاَیاتونو تړون** دَ سورت په شروع کښې دَ خبرې زيات ځ نصاراؤ طرف ته وه - بیا په بره اَیات کښې په: اَلَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ سره يهود اونصارا دواړه شامل وو- او س په دے اَیتونو کښې دَ يهودو دَ بعضې خاصو حالاتو بيان دے- په روح المعاني کښې په روايت دَابن ابي حاتمؒ دَ دے اَیات په تفسير کښې په ځپله دَ نبي کريم صلے الله عليه وسلم نه روايت دے چه بني اسرائيلو درے ځلو يخت نبيان په يو وخت قتل کړه - دَ دوی دَ نصيحت دَپاره يو سل او يا تنه بزرګان پورته شو په دغه ورځ ئے دَ هغو هم کار تمام کړ و - (بيان القرآن)

بے شکه کوم خلق چه کفر کوی دَ الله تعالے دَ اَیاتونو سره (لکه يهودو چه انجيل او قرآن نه مني) او قتلوی پيغمبرانو لره (اودغه قتلول په ځپله دَ دوی په خيال کښې هم) ناحق دوی) او (دارنګې) قتلوی داسے خلقو لره څوک چه (په افعالو او اخلاقو کښې) دَ اعتدال تعليم ورکوی پس داسے خلقو ته خبر واوره وه دَ يو دردناکے سزا (او) دا هغه خلق دی (چه دَ ذکر شوو کارونو په سبب سره) دَ دوی ټول عملونه (نيک) عبث شو په دنيا کښې (هم) او په اٰخرت کښې (هم) او (دَ سزا په وخت کښې په) دَ دوی هيڅ څوک حامی او مدد ګار نه وی۔

---

اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ اُوْتُوْا نَصِيْبًا مِّنَ الْكِتٰبِ يُدْعَوْنَ اِلٰى

اے او نه ليده تا هغه خلقو لره چه ورته ملاؤ شوه ځۀ يوحصه دَ کتاب دوی لره بللې شی دَ

كِتٰبِ اللّٰهِ لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ يَتَوَلّٰى فَرِيْقٌ مِّنْهُمْ وَ

الله کتاب طرفته دَ دے دَپاره چه دغه کتاب په دوی حکم اوکړی بيا ځۀ اړه وی بعضې دَ دوی نه او

هُمْ مُّعْرِضُوْنَ ﴿۲۳﴾ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَالُوْا لَنْ تَمَسَّنَا النَّارُ

دوی ګمان ناخبره کوی - دا په دے وجه چه وائی دوی مونږ ته به هرګز نه رسی اور دَ دوزخ

إِلَّآ أَيَّامًا مَّعْدُودَٰتٍ ۖ وَغَرَّهُمْ فِي دِينِهِم مَّا كَانُوا۟ يَفْتَرُونَ ﴿۲۴﴾

مګر څو ورځې د شمار. او دوکه شوي دي په خپل دین کښې په خپلو جوړو دشوو خبرو وبانډې

فَكَيْفَ إِذَا جَمَعْنَٰهُمْ لِيَوْمٍ لَّا رَيْبَ فِيهِ وَوُفِّيَتْ كُلُّ

پس څه حال به وي کله چه مونږ دوي لره جمع کړو یوه ورځ چه په راتلو کښې ئې هیڅ شک شبه نیشته- او پوره

نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴿۲۵﴾

به بیا مومي هر یو کس خپل کړي او د دوي حق به نه شي وهلے کیدے-

## لنډ تفسیر

(اے محمد صلی الله علیه وسلم) اے تا داسے خلق او نه لیدل چا ته چه کتاب (آسماني یعنے د تورات) یو حصه (پوره) ورکړے شوے ده (چه که دوي هدایت طلب کولے نو دغه ورلره پوره وه) او دغے د الله کتاب طرف ته په دے غرض سره دوي را بللے هم شي چه هغه د دوي په مینځ کښې (د مذهبي اختلاف) فیصله اوکړي بیا (هم) په دوي کښې بعضے خلق څ اړه وي بے مخې کوي (او) دا (بے مخې) په دے سبب سره ده چه دغه خلق داسے وائي (او دا عقیده ده د دوي) چه مونږ ته به صرف د شمار لږے ورځے د دوزخ اور اورسي (بیا به اوبخلے شو) او دوي لره په دوکه کښې غورځه ولي دي د دوي جوړو کړو خبرو (داسے دے بوږے کړے شوے عقیدے دوي لره دوکه ورکړه چه مونږ د پیغمبر انو اولا دیو او په دے خاندانی بزرګئ سره به مونږ خامخا خلاص شو- د دے په نتیجه کښې دوي د الله د کتاب نه بے پروا هي شروع کړه) پس (د دے حال او کار او و وینا د کفر په سبب) د دوي به څنګه (بد) حال وي کله چه مونږ دوي په هغه تاریخ کښې جمع کړو د کوم (په راتلو کښې) چه ذره شک نیشته او (په دے تاریخ کښې به) پوره پوره بدله ملاؤ وېږي- (چه بے د جرم نه یا زیاته د جرم نه سزا به نه وي)-

قُلِ اللّٰهُمَّ مٰلِكَ الْمُلْكِ تُؤْتِي الْمُلْكَ مَنْ تَشَآءُ وَتَنْزِعُ

ته ؤ اووایه اے الله مالک د حکومت ته ئې ته ؤ حکومت ورکوے چا ته چه او غواړے او واخلے

الْمُلْكَ مِمَّنْ تَشَآءُ ۫ وَتُعِزُّ مَنْ تَشَآءُ وَتُذِلُّ مَنْ تَشَآءُ ؕ

حکومت د چا نه چه او غواړے - او عزت ورکوے چا ته چه او غواړے او ذلیل کوے چا لره چه او غواړے

بِيَدِكَ الْخَيْرُ ؕ اِنَّكَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۲۶﴾ تُوْلِجُ الَّيْلَ

ستا په لاس کښے ټولے خیګړے دی - بے شک ته ؤ په هر څۀ قادر یې - ته ؤ داخلوے شپے لره

فِي النَّهَارِ وَتُوْلِجُ النَّهَارَ فِي الَّيْلِ ۫ وَتُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ

په ورځ کښے او داخلوے ورځ لره په شپه کښے او راوباسے ژوندے د

الْمَيِّتِ وَتُخْرِجُ الْمَيِّتَ مِنَ الْحَيِّ ۫ وَتَرْزُقُ مَنْ

مړي نه او راوباسے مړے د ژوندي نه - او ته ؤ رزق ورکوے چا لره

تَشَآءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿۲۷﴾

چه غواړے بے حسا به (بے شمار ه) -

## لنډ تفسير

په دے ایا تو نو کښے امّت محمدیؐ ته یو ه دعا او مناجات په دا سے انداز کښے خو دلی شوی دی چه د دے په ضمن کښے د امّت محمدیؐ په کفارو باندے غلبه موندو طرفته په کښے هم اشاره ده - لکه چه د شانِ نزول نه ئے ثابته ده چه نبي کريم صلے الله علیه وسلم د روم او فارس د فتح کیدو وعده او فرمایله نو منافقانو او یهودو خندا اوکړه نو په دے باندے دا ایات نازل شو - لکه چه په روح المعاني کښے د واحدی د ابن عباسؓ او انسؓ نه روایت دے -

لنډ تفسير د آيا تونو دا دے:

(اے محمد صلی الله علیه وسلم) تاسو (الله تعالیٰ ته) داسے وائی چه اے الله مالک د تمام ملک ئے ته (د ملک ډېر حصه چه غواړې) چاته چه ئے غواړې ورکوئے ئے او د چا (د قبضے) نه چه غواړې د ملک (څه حصه) اخلے او چا لره چه ته غواړے غالب کوئے او چا لره چه غواړے ذليل کوئے ستا په اختيار کښے دے ټول خير بے شکه ته په هر څيز باندے پوره قدرت لرونکے ئے ته (په بعضے موسمونو کښے) شپه (څه اجزائے) په ورځ کښے داخله وے (چه ورځ پرے لوئيږی) او (په بعض موسمونو کښے) ورځ (څه اجزائے) په شپه کښے داخله وے (چه شپه پرے لوئيږی) او ته د روح شے: يعنے ژوندے؛ د بے روحه: مړی) نه راوباسے (لکه د هګئ نه بچے) او بے روحه د جاندار نه راوباسے (لکه د مرغئ نه هګئ) او ته چا لره چه غواړے بے شماره رزق ورکوے -

## معلومات او مسئلے

**د دے آياتونو شانِ نزول او د خندق واقعه** په بدر او اُحد کښے د مکے د مشرکانو پرلپسے ماتے او د مسلمانانو خلاف په هر کوشش کښے ناکاميابه کيدل او د دے سره د مسلمانانو پرلپسے ترقی او ورځ په ورځ د اسلام خوريدل دے خبرو د مکے قريش او نور ټول غير مسلمانان په يو پريشانئ او حيرانئ کښے اخته کړی وو - چه په دے باندے دوی خپل هر څه قربانولو ته تيار وو - چه د دے نتيجه د يو عام سازش په صورت کښے داسے ښکاره شوه چه د عرب و مشرکانو او ټول يهود او نصارا مسلمانانو ته يوه ډله شو - او ټول يو ځائے شو په مدينه ئے په يو وار د حملے کولو او د يو فيصله کونکی جنګ قصد اوکړه - او د دوی د بے پناه لښکرا سلام او مسلمانانو لوه د دنيا نه د ورکولو په اراده په مدينه راوختلو - دے ته په قرآن کښے غزوهٔ احزاب او په تاريخ کښے غزوهٔ خندق وائی ځکه چه په دے کښے نبی کريم صلی الله علیه وسلم د اصحابو په مشوره سره د دشمن په لاره کښے د مدينے منوره نه باهر د يو خندق کنستلو اراده کړے وه چه خندق دے او کنستلے شی -

دَ بیهقی، ابو نعیم او ابن خزیمه په روایت کښې دی چه دَ خندق کنستلو کار
د اسلام مجاهد ینو صحابه کرامو ته او سپارلے شو نو څلویښت څلویښت لاسه اوګد
خندق دَ لسو لسو سړو په حصّه کښې راغے - دا خندق څو میله اوګد او
خاص ژور او پلن وَه چه دشمن پرے را پورے نه اوځی - او پوره کول ئے هم ډیر
زر په کار وَو په دے وجه جانثار صحابه کرام په ډیره محنت سره په دے کښې
مشغول وُو. داسے چه دَ قضائے حاجت او خوراک سکاک وغیره ضرورتونو دَ
پوره کولو دَ پاره ورته دَ دے ځائے نه په ځنلې کیدل مشکل وُو - بزلیسے په
لوږه لګیا وُو کار ئے کاوَه - او یقیناً چه کار هم داسے وَه چه دَ نن صبا په نوو آلاتو
باندے پوره پلټن به هم په دومره لږ وخت کښې نه وَه پوره کړے - مګر
د لته ایمانی طاقت کار کاوَه ځکه ئے په آسانئ سره پوره کړو -

دَ انبیاؤ سردار صلے الله علیه وسلم هم دَ یو کس په حیثیت سره دَ کنستلو
په دے کار کښې شریک وَه - ناڅاپه دَ خندق په یوه حصّه کښې یو ډیر غټ
کټ (تیګه) را ښکاره شوه - دَ کوم حضراتو په حصّه کښې چه دَ خندق دا
ټکړه وه هغوی پرے خپل ټول طاقتونه خرچ کړهٔ خو عاجز شو - نو حضرت
سلمان فارسیؓ ئے په حضور صلے الله علیه وسلم پسے او لیږهٔ - چه حضورؐ
څهٔ حکم کوی ؛ حضور صلے الله علیه وسلم په دغه وخت موقع کتلو له لاړو - او
دَ اوسپنې کُنډال ئے په خپلو مبارکو لاسو نو کښې واغستو یو ګذار ئے ورکړو
نو دَ تیګے نه یو ټکړه جدا شوه او دَ اور یو شغله تړے پورته شوه چه تر
لرے پورے ئے رڼا خوره شوه نبی کریم صلے الله علیه وسلم او فرمائل چه
ماته په دے رڼا کښې دَ فارس دَ ملک محلونه او آبادئ او خودَلے شوے - بیا ئے
دویم ګذار ورکړو او بیا ترے یو شغله او چته شوه او ئے فرمایل چه په دے
رڼا کښې ماته دَ رومیانو سره محلونه او آبادئ او خودے شوے - بیا ئے
دریم ګذار اوکړو او رڼا خوره شوه نو او ئے فرمایل چه په دے رڼا کښې ماته دَ
صنعاء یمن لوئے لوئے محلونه او خودلے شو - او او ئے فرمایل چه زهٔ تاسو ته خوشی
خبری درکوم چه ماته جبرائیل امین دا خبر راکړے دے چه ځما امت به په دے
ټولو ملکونو باندے غالب راشی -

د مدینې منافقانو چه داوارېده نو د خندق اکانو او مسخرو موقع ورله په لاس راغله په مسلمانانو پورې ئې مذاق شروع کړه چه دے خلقو ته اوګورئ چه د مقابل دشمن د ېرې نه په خندق کنستلو کښې داسې مشغول دی چه د خپلو ضرورتونو نه هم خبر نه دی - د خپل ځان حفاظت نه شي کولے او د فارس، روم او یمن د فتح کولو خواب وینی - نو الله تعالیٰ د دې بې خبره ظالمانو په جواب کښې دا ایت نازل کړو:

:قُلِ اللّٰهُمَّ مٰلِكَ الْمُلْكِ تُؤْتِي الْمُلْكَ مَنْ تَشَآءُ وَتَنْزِعُ الْمُلْكَ مِمَّنْ تَشَآءُ وَتُعِزُّ مَنْ تَشَآءُ وَتُذِلُّ مَنْ تَشَآءُ بِيَدِكَ الْخَيْرُ اِنَّكَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ: چه په دے کښې د مناجات او دعا په انداز کښې د قومونو د ترقۍ او زوال او د ملکونو په انقلاب کښې د الله جل شانهٗ د کامل قدرت بیان په یو دېر زړه ته پرېوتونکي انداز کښې شوے دے - او د فارس او روم د فتح کېدو په باره کښې د نبی کریم صلے الله علیه وسلم د پیشینګوئي طرفته په کښې اشاره شوې ده - په دے کښې د دنیا د انقلاباتو ربد لید ورابد لیدو) نه بې خبرو د قومونو د ترقۍ او زوال د تاریخ نه ناخبره ، د قوم د نوح او عاد او ثمود د وا قعاتو نه د غافل او جاهلو دشمنانو د اسلام ته خبردارے ورکړے شوے دے چه تاسو په ظاهري شان وشوکت سره غولېد ونکو ته دا نه ده معلومه چه د دُنیا ټول طاقتونه او حکومتونه په جمع سره د یو ذات پاک په لاس د قدرت کښې دی ، عزت او ذلت د هغهٔ په لاس کښې دے هغه بې شکه په دے قادر دے چه غریبانو او فقیرانو د تخت او تاج مالکان جوړ کړي او د لویو لویو بادشاهانو نه حکومت او دولت واخلی - د هغهٔ د پاره دا ګټه ګرانه نه ده چه د نن خندق کنونکو فقیرانو لوړه صبا د شام او عراق او یمن حکومت ورکړي

د دے کائنات هر یوذره د تقدیر په لاس کښې ګیر ده: اے جامي د ژوند د خواب تعبیر هم دغه دے:

| |
|---|
| کوم شے چه په عادت کښې بد ګڼلے شي د انجام په اعتبار سره هغه بد نه وی |

د ایات په اخر کښې او فرمایل: بِيَدِكَ الْخَيْرُ: یعنی ستا په لاس کښې ده هر خیګړه - د ایات په شروع کښې حکومت ورکولو او واپس اخستو دا رنګ د عزت او ذلت دواړو ذکر وه - نو په دے وجه دلته دا وئیل غوختل چه: بِيَدِكَ الْخَيْرُ وَالشَّرُّ: ویلے شوے وے - یعنی چه هر خیګړه او بدی ستا په لاس کښې ده)- لیکن دلته په ایات کښې ئې صرف لفظ د "خیر" راوړو د شر طرف ته ئې اشاره او کړه - چه کوم شي لوړ یو سړے یا یو قوم بد والے

یا مصیبت گنړلے شي او هغه دے خاص د پاره اګرکه مصیبت وي لیکن که په جوړ نظر سره اوکتے شي نو د ټول عالم په اعتبار سره هغه بدي نه وي - د قومونو ترقۍ او زوال او په دے کښے د مصیبتونو نه پس د فائدو په تاریخ چه نظر واچولے شي نو د عربۍ د مشهور شاعر متنبّي دا مصرع یو ژوندے حقیقت مخے ته راشي ـ چه

مَصَائِبُ قَوْمٍ عِنْدَ قَوْمٍ فَوَائِدُ

"یعنے د یو قوم مصیبتونه د بل قوم د پاره فائدے وي"

د ټول عالم په مصلحتونو او فائدو نظر کونکے په څۀ نۀ څۀ درجه کښے دے حقیقت ته رسي - چه په دے کښے څو مره څیز ونه خراب او بد ګنړلے شي - هغه په خپل ذات کښے اګرکه بد ګنړلے شي لیکن که ټول عالم یو جسم اوګنړلے شي نو دغه به د ده د مخ خال او ویښته وي - خالونه او ویښته که د بدن نه جدا کړے شي نو دے نه خراب شے بل نه وي لیکن دغه خالونه او ویښته چه د یو خائسته مخ سره یو ځائے شي نو د هغۀ خائست لور زیات کړي -

لنډه دا چه کوم څیزونو ته مونږ بد وایو او ناکاره ئے ګڼو و د هغوي بدوالي جز وي دے او د کائناتو د خالق او د ربّ العٰلمین په نسبت او د ټول عالم د مصلحت په اعتبار سره یو شے د شر یا خراب نه دے - چا څۀ خۀ ویلي دي ـ

نہیں ہے چیز نکمّی کوئی زمانے میں کوئی بُرا نہیں قدرت کے کارخانے میں

په دنیا کښے هیڅ څیز ناکاره نیشته : د قدرت په کارخانه کښے هیڅ څیز خراب نه دے :

په دے وجه ئے د آیت په ختمید وسره صرف په لفظ د "خیر" اکتفاء اوکړه او ئے فرمایل بِیَدِكَ الْخَیْرُ ، ځکه چه د کائناتو د خالق د حکمت او حکومت او د ټول عالم د مصلحت په لحاظ سره هر شے خیر او خیر دے - تر دے ځائے پورے د اوّلني آیات مضمون ختم شه په کوم کښے ئے د ټول کائنات د طاقتونو او د دنیا د ټولو حکومتونو حق د الله تعالٰی په قبضۀ قدرت کښے کیدل بیان شو -

په دویم آیات کښے په آسماني طاقتونو او آسمانونو باندے د الله جلّ شانه د قدرت کامل احاطه دا سے بیان فرمائي : تُوْلِجُ الَّیْلَ فِي النَّهَارِ وَتُوْلِجُ النَّهَارَ فِي الَّیْلِ : یعنے الله تعالٰی چه کله غواړي د شپے څه حصے په ورځ کښے داخل وي ورځ لویه وي او کله چه غواړي نو د ورځے څه حصے په شپه کښے داخل وي شپه لویه وي ـ

او دا خوښکاره خبره ده چه د ورځې شپې د لوئې ورې کیدلو دا رمدار د نمو په ختو او پریوتو باندې دې او د دې په حرکتونو باندې دې - نو حاصل ئې دا شو چه اسمان او د دې سره متعلق لوئې ستورې او د ټولو نه مشهور سیاره سپوږمۍ ټول د الله تعالیٰ په احاطه د قدرت کښې دي نو بیا په کائناتو او د دنیا په باقي طاقتونو کښې د شك او شُبهې څهٔ ګنجایش کیدې شي -

د دې نه پس ئې په روحاني دنیا د الله جلّ شانهٔ د قدرت احاطه په دا سې شان سره بیان کړه: "تُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَتُخْرِجُ الْمَيِّتَ مِنَ الْحَيِّ" یعنې ته ژوندے د مړی نه را اوباسې لکه د اګئ نه چچې یا د نُطفې نه بني ادم یا د دانې نه وُنه را او باسې - او مړے د ژوندی نه را اوباسې لکه د موغئ نه اګئ یا د انسان نه نُطفه یا د وُنې نه دانه او اُو چه میوه را اوباسې -

او که د ژوندی او مړی نه عام مطلب وا خلې نو عالم او جاهل او کامل او ناقص او مؤمن او کافر ټول لوړه شامليږی - چه د دې نه د الله جلّ شانه کامل قدرت او د هغه تصرفات په عالم ارواح اور وحانيا تو باندې واضح کیږی - چه هغه کله غواړی نو د کافر نه مؤمن یا د عالم نه جاهل پیدا کوی - د آزر په کور کښې خلیل الله پیدا شی او د نوح علیه السلام په کور کښې د هغه ځوئے کافر پاتے شی - د عالم او لا د جاهلان پاتے شی او د جاهل اولاد عالمان جوړ شی -

د دې تفصیل نه به تاسو ته معلومه شوې وی چه په څنګه بلیغ رنګ ته په دې د تونکی) انداز او ترتیب سره د الله تعالیٰ د کامل قدرت او په ټول کائناتو بانې ئې احاطه کول په ترتیب سره بیان شو - چه اول ئې د عالم عناصر یعنې دُنیا او د دې د حکومتونو او تو تونو ذکر او کړه ، بیا ئې د اسمانونو او د دې د قو تونو او د دې نه پس ئې د روح اور وحانیت ذکر را وړی چه په حقیقت کښې د ټول عالم په ټولو قوتونو کښې د ټولو نه اوُچت قوت دے - د ایات په اخر کښې ئې او فرمایل: "وَتَرْزُقُ مَنْ تَشَآءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ" یعنې ته چه چا ته غواړې بے حسابه رزق ورکوے ، چه د مخلوق ئې نه شي معلوموَلے ، اګرچه د خالق په علم کښې ذرّه ذرّه لیکلے شوې ده -

| د دې ایات خاص فضیلت | امام بغويؒ په خپل سند سره دلته یو حدیث نقل کوی چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمایلیدی - چه د الله تعالے فرمان دے

چه کوم سړے د هر مانځه نه پس سورت فاتحه او آیات الکرسی او د آل عمران دوه
آیاتونه یو آیات شَهِدَ اللهُ اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ: ترآخره پورے او دویم د: قُلِ اللّٰهُمَّ مٰلِكَ
الْمُلْكِ نه تر بِغَيْرِ حِسَابٍ پورے لولی نو زهٔ به دهٔ لره ټهکانړه په جنّت کښے جوړه
کړم۔ او دهٔ لره به په خپله خوا کښے ځائے ورکړم۔ او روزانه به دهٔ ته اویا پیرے
د رحمت په نظر گورم او د دهٔ اویا حاجتونه به پوره کړم، او د هر حاسد او د شمن
نه به ورلره پناه ورکړم۔ او دے به په خپلو دشمنانو باندے غالب سا تم۔

---

لَا يَتَّخِذِ الْمُؤْمِنُوْنَ الْكٰفِرِيْنَ اَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِ

نه دے جوړه وی مؤمنان کافران لره دوستان ماسوا د

الْمُؤْمِنِيْنَ ۚ وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ فَلَيْسَ مِنَ اللّٰهِ فِيْ شَيْءٍ

مؤمنانو نه۔ او څوک چه دا کار کوی نو نیشته دهٔ لره د الله سره څه تعلق

اِلَّآ اَنْ تَتَّقُوْا مِنْهُمْ تُقٰىةً ۗ وَيُحَذِّرُكُمُ اللّٰهُ نَفْسَهٗ ۗ

مگر په داسے حالت کښے چه تاسو ترے خپل بچاؤ کوئے۔ او الله تاسو لره یره وی د ځان نه

وَاِلَى اللّٰهِ الْمَصِيْرُ ﴿۲۸﴾ قُلْ اِنْ تُخْفُوْا مَا فِيْ صُدُوْرِكُمْ

او الله طرفته واپس تلل دی۔ ته او وایه که تاسو پټوئے د خپل زړه خبره

اَوْ تُبْدُوْهُ يَعْلَمْهُ اللّٰهُ ۗ وَيَعْلَمُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي

یا ئے ښکاره کوئے پیژنی الله پاک هغې لره۔ او هغهٔ ته معلوم دی هغه څه چه په آسمانونو کښے دی او څهٔ چه په

الْاَرْضِ ۗ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۲۹﴾ يَوْمَ تَجِدُ كُلُّ

زمکه کښے دی۔ او الله تعالیٰ په هر څهٔ باندے قادر دے۔ په کومه ورځ چه موجود بیا مومی هر یو

نَفْسٍ مَّا عَمِلَتْ مِنْ خَيْرٍ مُّحْضَرًا ۖۛ وَّمَا عَمِلَتْ مِنْ سُوْٓءٍ ۚۛ

سړے څهٔ چه ئے کړي وي د هٔ نيکي به حاضر وي - او څه چه کړے وي د هٔ بدي -

تَوَدُّ لَوْ اَنَّ بَيْنَهَا وَبَيْنَهٗٓ اَمَدًا ۢ بَعِيْدًا ۭ وَيُحَذِّرُكُمُ اللّٰهُ

آرزو به کوي چه کاش او د د هٔ کښي په منځ کښې فرق ډير لرے - او الله يره وي تاسو لره

نَفْسَهٗ ۭ وَاللّٰهُ رَءُوْفٌۢ بِالْعِبَادِ ﴿۳۰﴾ ع ۳/۱۰ ۱۱

د ځان نه - او الله ډير مهربان دے په بندګانو -

# لنډ تفسير

**د ايا تونو تړون** په سوکښې په ذکر شو وا يا تونو کښې مسلمانانو ته هدايت شوے دے چه کافرانو لره دے دوستان نه جوړه وي او د دے هدايت نه د مخالفت کونکو د پاره د سخت عذاب وعده ده - چه څوک دوی لره دوستان جوړ کړي د دهٔ به د الله تعالیٰ سره د محبت او د دوستۍ علاقه او شوکيږي - د کافرانو سره باطني او د زړهٔ دوستي خو مطلقاً حرامه ده او ظاهري دوستي د معاملو په درجه کښې اګرچه جائزه ده مګر بے ضرورته هغهٔ هم غوره نه ده -

لنډ تفسير د دے ا يا تونو دا دے :

مسلمانانو لره په کار دي چه (ظاهري يا باطني) کفارو لره دوستان نه جوړه وي د مسلمانانو (د دوستۍ) نه وړاندې (وخت) (دا ورآو ختل په دوه صورتونو سره وي يو دا چه د مسلمانانو سره بالکل دوستي نه ساتي دويم دا چه د مسلمانانو سره هم دوستي وي او د کفارو سره هم دوا ړه صورتونه په منع کښې داخل دي) او کوم سړے چه دا سے (کار) اوکړي پس دے د الله تعالیٰ سره د دوستۍ ساتلو په يو شمار کښې نه دے (ځکه د کوم دوه سړو چه د يو بل سره دشمني وي نو په دوی کښې چه د يو سره دوستي جوړه شي نو د هغه بل سره بيا د دوستۍ دعوه کول د اعتماد قابله نه شي پاتے کيدے)

مګو په داسې صورت کښې (د ظاهري دوستۍ اجازت شته) چه تاسو د دوی نه د قسم (قوي) ځکولو (هلته د دفع کولو ضرور ضرورت دے) او الله تعالیٰ تاسو لره د خپل ذات (عظیم الشان) نه یره وي (چه د هغه د ذات نه او بیریږئ د حکمونو مخالفت مه کوئ) او د خدائے طرف ته واپس تلل دي (د هغه وخت د سزا نه یره کول ضروري دي) ته (دوی ته) او وایه چه که تاسو (په زړه کښې) خپل د زړه رازونه پټ ساتئ یا دوی لره (په ژبه یا اندامونو سره) ظاهر وئ الله تعالیٰ دوی لره (په هر حال کښې) پیژني او (د دے څه تخصیص نیشته) هغه خو هر څه پیژني څه چه په آسمانونو کښې دي او څه چه په زمکه کښې دي (هیڅ شے د هغه نه پټ نه دے) او (د علم او پوهے سره) الله تعالیٰ په هر څه باندے قدرت هم کامل لري (پس که تاسو څه ناکاره کار او کړئ خواه که ظاهر وي او که په باطن سره هغه تاسو لره سزا ورکولے شي) په کومه ورځ (چه داسے وي) چه هر سړے خپل ښه کارونه مخامخ بیاموسي او خپلو بد وکاردونو لره (هم بیاموسي په دغه ورځ) د دے خبرے آرزو به کوي چه څه به ښه وے که د دے سړي او د دے ورځے په مینځ کښے یو اوګد مسافت (حائل) وے (چه دا خپل بد عمل ئے نه لیدے) او (تاسو ته بیا دوباره ویلے شي چه) خدائے تعالیٰ تاسو لره د خپل ذات (عظیم الشان) نه یره وي (او دا یره ورکول په دے وجه سره دي چه) الله تعالیٰ ډیر مهربانه دے په (خپلو) بندګانو (په حال) باندے (او په دے مهربانۍ سره داغواړي چه دوی د آخرت د سزا نه بچ شي او د بچ کیدو طریقه ئے ده د ښه کارونو پاتے کول او بد عملونه پاتے کول بغیر د یرے نه نه شي کیدے . په دے وجه ئے یره وی . نو پس دا یره ورکول عین شفقت او رحمت دے) -

## مَعلومَات اومَسئلے

په دے مضمون سره آیاتونه په قرآن شریف کښې ځائے په ځائے په ځان ځانله عنوانونو سره ډیر راغلي دي ، په سورت ممتحنه کښې ارشاد فرمائي :

| | |
|---|---|
| یَآاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوْا عَدُوِّیْ وَعَدُوَّكُمْ اَوْلِیَآءَ | " یعنې اے ایماندارو زما دشمن او خپل دشمن یعنې کافر لره دوست مه جوړه وئ چه تاسو |

تُلْقُوْنَ اِلَيْهِمْ بِالْمَوَدَّةِ ، | دوی ته د دوستۍ پیغام لیږئ "

بیا د دے په آخر کښے فرمائي :

وَمَنْ يَّفْعَلْهُ مِنْكُمْ فَقَدْ ضَلَّ سَوَآءَ السَّبِيْلِ ۔ | "کوم سړی چه د دوی سره دوستي اوکړي نو هغه د نیغے لارے نه ګمراه شو"

بل ځائے کښے ارشاد فرمائي :

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوا الْيَهُوْدَ وَالنَّصٰرٰٓى اَوْلِيَآءَ ۘ بَعْضُهُمْ اَوْلِيَآءُ بَعْضٍ ۚ وَمَنْ يَّتَوَلَّهُمْ مِّنْكُمْ فَاِنَّهٗ مِنْهُمْ ۔ | "یعنے اے ایماندارو ! یهود او نصارا د ځان لره دوستان مه جوړه وئ ځکه چه دوی په خپل مینځ کښے د یو بل سره دوستان دی (د مسلمانانو سره د دوی څه دوستي او همدردي نیشته) نو څوک چه د دوی سره دوستي کوی هغه به د دوی سره شمار وی "

او په سورت مجادله کښے دی :

"لَا تَجِدُ قَوْمًا يُّؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ يُوَآدُّوْنَ مَنْ حَآدَّ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ وَلَوْ كَانُوْٓا اٰبَآءَهُمْ اَوْ اَبْنَآءَهُمْ اَوْ اِخْوَانَهُمْ اَوْ عَشِيْرَتَهُمْ " | "یعنے ته به بیا نه مومي یو قوم لره چه یقین لری په الله او په ورځ د آخرت چه دوستي به کوی د داسے خلقو سره چه مخالف وی د الله او د هغهٔ د رسول نه خواه هغه د دوی خپل پلار ولے وی یا خپل اولاد یا خپل رور یا خپل خاندان والا ۔

**د کفارو سره د مسلمانانو تعلقات څنګه به کار دی؟**

دا مضمون په ډیرو آیاتونو د قرآن کښے په اجمال او په تفصیل سره راغلے دے ۔ چه په دے کښے ئے مسلمانان د غیر مسلمانانو د خپلو لے دوستۍ او محبت نه په سختۍ سره منع کړی دی ۔ چه دے وضاحتونو ته اوګوری نو د حقیقت د حال نه ناخبره غیر مسلمانانو ته دا شبه پیدا کیږی ۔ چه د مسلمانانو په مذهب کښے د غیر مسلمانانو سره د څهٔ قسم رواداری او تعلق بلکه د خواخلاقو هم څه ګنجائش نیشته ۔ او بل طرفته چه د دے په مقابله کښے هر کله چه د قرآن د ډیرو آیاتونو او د نبی کریم صلے الله علیه

وَسلم دَارشاداتو او عمل نه دَخلفائے راشدینؓ او نورو صحابه کرامؓ دَعمل نه دَغیر مسلمانانو سره دَعمل دخل نه دَاحسان، سلوک، همدردئ او غم خوارئ احکام اود اسے واقعات ثابت دی چه مثالونه ئے دَدنیا په نورو قومونو کښے موندل گران دی۔ نو یو سرسری نظر لرونکے مسلمان هم په دے حالاتو کښے دَ قرآن اوسنتو په احکامو اوارشاداتو کښے دَ یو بل سره مقابله او ټکراؤ محسوس کوی۔ لیکن دا دواړه خیالونه په قرآن باندے دَ سرسری نظر او ناقص تحقیق نتیجه دی۔ که دَ مختلفو ځایونو نه دَ قرآن شریف آیاتونه کوم چه دَ دے معاملے سره تعلق لری جمع کړے شی او غور پرے اوکړے شی نو نه به غیر مسلمو ته دَ شکایت وجه باقی پاتے شی او نه به په روایتونو او آیاتونو کښے دَ څهٔ قسم ټکراؤ باقی پاتے شی۔ په دے وجه دَ دے مقام پوره تشریح کولے شی۔ چه دَخپلولئ، احسان او سلوک یا په همدردئ او غم خوارئ کښے فرق او دَ هر یو حقیقت هم معلوم شی۔ او دا هم معلومه شی چه په دے کښے کومه درجه جائز ده او کومه نا جائزه، او کومه چه نا جائز ده دَ هغے وجه څهٔ دی"۔

خبره داده چه دَ دوه وو سړو یا دوه جماعتونو دَ یو بل سره دَ تعلقاتو مختلفے درجے وی۔ یوه درجه دَ تعلق دَ زړهٔ خپلولی یا دَ زړهٔ مینه او محبت دے۔ دا سے تعلق صرف دَ مؤمنانو سره خاص دے۔ دَغیر مؤمن سره دَ مؤمن دا تعلق په هیڅ حال کښے هم قطعاً جائز نه دے۔

دویمه درجه دَمواسات (غم خورئ) ده چه معنیٰ ئے ده همدردی او خیر خواهی او نفع رَسَوَل دا بغیر دَ حربی کافرانو نه چه دَ مسلمانانو سره ئے جنګ وی۔ دَ باقی ټولو غیر مسلمو سره جائز ده۔

دَ سورت ممتحنه په اتم آیات کښے دَ دے تفصیل بیان شوے دے په هغے کښے ارشاد فرمائی:

لَا يَنْهٰكُمُ اللّٰهُ عَنِ الَّذِيْنَ لَمْ يُقَاتِلُوْكُمْ فِي الدِّيْنِ وَلَمْ يُخْرِجُوْكُمْ مِّنْ دِيَارِكُمْ اَنْ تَبَرُّوْهُمْ وَتُقْسِطُوْٓا اِلَيْهِمْ

"یعنے الله تعالیٰ تاسو نهٔ منع کوی دَ هغوئ نه چه جنګ نه کوی ستاسو سره په دین کښے او نه ئے دی ویستلی تاسو لره ستاسو دَ کورونو نه چه دَ دوئ سره دَ احسان او انصاف سلوک کوئ"

دریمه درجه دَمُدارات (خاطر تواضع) ده - چه معنیٰ ئے ده ظاهري خوش خلقي او دوستانه سلوک - دا هم دَ ټولو غیر مسلمانانو سره جائز دے - هرکله چه په دے سره دوی ته دیني نفع دَ رسول مقصد وی، یائے میلمه وی، یا دَ شر او ضرر دَ هغوی نه ځان ساتل مقصد وی - دَ سورتِ آلِ عمران دَ دے ذکر شوی آیات: اِلَّآ اَنۡ تَتَّقُوۡا مِنۡهُمۡ تُقٰىةً: نه هم دا دَمدارات مراد ده - یعنې دَ کافرانو سره باهمي دوستي جائز نه ده مګر په دا سے حالت کښے چه خپل بچاؤ کول تر ے غواړی او چونکه دَموالات نه ئے مدارات ځکه جدا کړو چه په مدارات کښے هم دَموالات صورت راتلے شي - (بیان القرآن)

څلورمه درجه دَمعاملات ده چه دَ دوی سره دَ تجارت مزدورئ یا نوکرئ یا دَ صنعت حرفت معاملات کولے شي دا هم دَ ټولو غیر مسلمو سره جائز دی - بغیر دَ دا سے حالت نه چه عامو مسلمانانو ته په دے سره نقصان رسي - دَ نبي کریم صلی الله علیه وسلم او دَ خلفائے راشدینو او دَ نورو صحابو معاملات په دے باندے ګواه دی - فقهاؤ په دے بنا باندے چه اَهلِ حربو کافرانو ته دَ وسلو خرڅول منع فرمایلی دی او دَ نور تجارت وغیره اجازت ئے ورکړے دے - او دوی خپل نوکران کول یا په خپله دَ دوی په کارخانو یا ادارو کښے نوکری کول دا ټول جائز دی -

دَ دے تفصیل نه به تا سو ته معلومه شوی وی چه دَ زړهٔ دوستي او محبت دَ یو کافر سره په یو حال کښے هم جائز نه دی - او احسان همدردي او نفع رسول په غیر دَ اهلِ حربو دَ نورو ټولو کافرانو سره جائز دی - دغه شان ظاهري خوش خلقي او دوستانه سلوک هم دَ ټولو سره جائز دے - خو چه مقصد ئے دَ میلمه خاطرداري یا غیر مسلمو ته اسلامي معلومات او دیني نفع رسول یا خپل ځان دَ هغوی دَ ضرر یا نقصان نه بچ کول وی -

نبي کریم صلی الله علیه وسلم چه رحمة للعالمین دنیا ته تشریف راوړے دے دوئي چه دَ غیر مسلمو سره کوم احسان همدردئ او خوش خلقئ معاملے کړی دی دَ دے مثال په دنیا کښے موندل مشکل دی - په مکه باندے قحط راغے نو چه کوم دشمنانو دے دَ وطن نه ایستلے وُه په خپله ئے دَ هغوی مدد او فرمایه - بیا مکه مکرمه فتح شوه دا ټول دشمنان دَ دوئي په قابو کښے راغلل نو ټولو ته ئے دا او فرمایل آزاد ئے کړه چه: لَا تَثۡرِيۡبَ عَلَيۡكُمُ الۡيَوۡمَ: یعنې نن تا سو ته صرف

معافي نه شي درکولے بلکه نن مونږ تا سو ستاسو په تیروظلمو نو او تکلیفو نو باندے هم کوفت (رنیول) نه کوو- چه غیرمسلمانان جنګي قیدیان به په لاس راغله نو د دوی سره به ئے هغه سلوک کولو چه د خپل اولاد سره ئے هم څوک نه کوی- کفارو به دوئ ته قسم قسم تکلیفو نه رسول خو د دوی لاس چرته هم د بدلے اخستو د پاره نه دے اوچت شوے- په ژبه مبارکه ئے خیر ے هم نه دی کړی - بنو ثقیف چه لا مسلمانان شوی نه وو- د هغوی یو ه ډله د دوئ په خدمت کښے حاضره شوه- نو په مسجد نبوئ کښے ئے دوی پاتے کړل چه د مسلمانانو د پاره د تهولو نه زیات د عزت مقام وو-

فاروق اعظمؓ غیرمسلمو محتاجو ذمیانو ته د مسلمانانو په شان د بیت المال نه وظیفے ورکړے - د خلفائے راشدینوؓ او صحابه کرامؓو معاملے د دا قسم واقعو نه ډکے دی- دا ټول د مواسات یا مدارات یا معاملا تو صورتونه وو- د کوم موالات نه چه منع شوے ده هغه نه وه -

د دے تفصیل او تشریح نه یو طرفته خو دا معلومه شوه چه د غیرمسلمو د پاره په اسلام کښے څومره د رواداریٔ او ښهٔ سلوک سبق دے - دو یم طرفته کوم چه ظاهری ټکراؤ د ترکِ موالات د آیات (یعنے چه دوستی ورسره مه کوئ) نه محسوس کیده هغه ختم شوه -

او س یوه خبره باقی پاتے شوه چه قرآن د کفارو سره موالات (خپلولی) او د زړهٔ دوستی او محبت دومره په سختیٔ سره ولے منع کړے دے چه په هیڅ حال کښے ئے د هیڅ کافر سره نه ده روا کړے - په دے کښے څهٔ حکمت دے؟ - د دے یوه خاص وجه خو دا ده چه د اسلام په نظر کښے د دے دنیا د ننه د بنی آدم وجود د عامو ځناورو یا ځنګلی ونو او د خوکیاه کا نو په شان دے - چه پیدا شو او پا للے شو لوئے شو بیا مړه شو ختم شو- بلکه د انسان ژوند په دے دنیا کښے یو مقصدی ژوند دے - د دهٔ د ژوند ټول دوروته، د دهٔ خوړل، سکل، پاسیدل، کیناستل او ودهٔ کیدل ویخیدل ترد ے پورے چه د دهٔ مرګ او ژوند ټول د یو مقصد نه چاپیره چورلی- ترکومه پورے چه د هغې مقصد مطابق وی نو دا ټول کار صحیح او ټهیک دے - او که د دغے مقصد نه مخالف وی نو دا ټول غلط دی - مولانا روم صاحبؒ

څه خه فرمائي ؎

زندگي از بهر ذکر و بندگي است  بے عبادت زندگي شرمندگي است

یعنې ژوند د پاره د ذکر او عبادت دے - بے عبادته ژوند خو شرمندګي ده - مطلب دا دے چه کوم انسان چه د دے مقصد نه واوړي هغه د مولانا روم او د حقیقت پیژندونکو په نزد بانددے انسان نه دے ؎

آنچه مي بیني خلاف آدم اند  نیستند آدم غلاف آدم اند

یعنې د کوم بني آدم ژوند چه د آدمیت رسم یتوب › نه خلاف وي دغه بني آدم نه دے بلکه څرمن پرے د بني آدم ده -

قرآن حکیم د دے مقصد اقرار د بني آدم نه په دے الفاظو کښې اغستے دے:

| | |
|---|---|
| "قُلْ اِنَّ صَلَاتِیْ وَنُسُکِیْ وَمَحْیَایَ وَمَمَاتِیْ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ۝" | "ته او وایه چه زما مونځ او زما قرباني او زما ژوند او زما مرګ ټول د الله رب العلمین د پاره دي" |

او چه هر کله د انسان د ژوند مقصد د الله رب العلمین د حکم منلو او عبادت د پاره شو نو د دنیا ټول کاروبار ریاست 'سیاست' خاندانی او کورنۍ تعلقات ټول د دے تابع شو- نو چه کوم انسان د دے مقصد نه مخالف وي هغه د انسان د ټولو زیات دشمن- او په دے دشمنۍ کښې چونکه شیطان د ټولو نه وړاندے دے په دے وجه قرآن حکیم فرمائي:

| | |
|---|---|
| اِنَّ الشَّیْطٰنَ لَکُمْ عَدُوٌّ فَاتَّخِذُوْهُ عَدُوًّا ط | "یعنې شیطان ستاسو دشمن دے د ده دشمني همیشه یاده ساتئ" |

دغه شان چه کوم خلق د شیطانی وسوسو تابعداري کوي او د انبیاء علیهم السلام و په ذریعه د راغلو خدائي حکمونو مخالفت کوي د ده سره د زړه همدردي او د زړه دوستي د داسے سړي کیدے نه شي د چا ژوند چه یو مقصد ي ژوند وي- او دوستي او دشمني- موافقت او مخالفت ټول د دے مقصد تابع دي -

دا مضمون د صحیح بخاري او مسلم په یو حدیث شریف کښې داسے ارشاد فرمائیلے شوے دے:

مَنْ اَحَبَّ لِلّٰهِ وَاَبْغَضَ لِلّٰهِ فَقَدِ اسْتَكْمَلَ اِيْمَانَهٗ ، (بخاری ومسلم)

"یعنی کوم سړی چه خپله دوستی او دشمنی صرف دَ الله پاک دَ پاره وقف کړه دهٔ خپل ایمان مکمل کړو "

معلومه شوه چه ایمان هغه وخت مکمل کیږی چه انسان خپل محبت او دوستی او دشمنی اونفرت دَ الله تعالیٰ تابع جوړ کړی - په دے وجه دَمؤمن دَ زړهٔ خپلولی او دوستی صرف دَ الله تعالیٰ دَ پاره دَ هغه چاسره کیدے شی چه دَ دے مقصد ملګرے او دَ الله تعالیٰ جلّ شانهٔ دَ حکم تابع وی - په دے وجه دَقرآن کریم په دے ذکر شو وآیا تونو کښے دَ کافرانو سره دَ زړه مینه او محبت او دَ دوستی کولو په باره کښے او ویلے شو چه دوی به دَ هغوئ وی -

دَ آیات په آخر کښے ئے اوفرمایل چه الله تعالیٰ تاسو لره دَ خپل لوئے ذات نه یره وی - هسے نه چه دَ دنیا دَ دے څو ورځو دَ غرضونو او مقصدونو په خاطر دَ کفارو په دوستئ کښے اخته شئ الله جلّ شانهٔ لوه ناراضه کړئ - او چونکه دَموالات (خپلولئ) تعلق دَ زړهٔ سره دے - او دَ زړهٔ حال دَ الله تعالیٰ نه سوا بل چا ته نه دے معلوم - نو په دے وجه واکیدے شی چه یو سړے په واقع کښے دَ کفارو سره په موالات او محبت کښے اَخته وی مګر په ژبه پاندے انکار کوی - په دے وجه ئے په دویم آیات کښے اوفرمائل چه ستاسو په زړونو کښے چه څهٔ دی الله تعالیٰ په دے پاندے خهٔ پوهه او خبردار دے - دا انکار او حیلے دَ هغهٔ په مخ کښے نه چلیږی ے

کار با خلق آری جمله راست ... با خدا تزویر و حیله کی رواست

دَ خلقو سره تولے معاملے برابر ساتے - نو دَ خدائے سره مکر او حیله ګلَه روا ده -

قُلْ اِنْ كُنْتُمْ تُحِبُّوْنَ اللّٰهَ فَاتَّبِعُوْنِيْ يُحْبِبْكُمُ اللّٰهُ

ته او وایه که تاسو محبت ساتئ دَ الله سره نو څما په لاره ځئ چه محبت اوکړی ستاسو سره الله

وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوْبَكُمْ ۗ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿٣١﴾

او اوبخی ګناه ستاسو او الله بخونکے مهربان دے -

قُلْ اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَالرَّسُوْلَ ۚ فَاِنْ تَوَلَّوْا فَاِنَّ اللّٰهَ

ته اووایه حکم منئ د الله او د رسول ؐ پس که دوی ګرځي اوګرځي نو الله

لَا يُحِبُّ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۳۲﴾

محبت نه کوی د کافرانو سره -

# لنډ تفسير

**د آیاتو تړون** په تیرو آیاتو نو کښې د توحید (د الله د یو والی) ثبوت او د کفر بد والے بیان شه او س د رسالت د عقیدے او د پیغمبر د تابعدارئ واجب والے بیانوی - چه معلومه شي چه لکه څنګه د توحید نه انکار کفر دے د غه شان د رسالت نه انکار هم کفر دے -

ارشاد فرمائي چه :

ته (خلقوته) اووایه چه که تاسو (په خپل ګمان سره) د خدائے تعالیٰ سره محبت ساتئ (او کوم دے محبت په وجه دا هم غواړئ چه خدائے تعالیٰ ستاسو سره محبت اوکړی) نو تاسو خلق (د دے مقصد د حاصلولو په طریقو کښے) زما تابعداری کوئ (ځکه چه زهٔ خاص د دے تعلیم د پاره رالیږلے شوے یم هرکله چه دا سے اوکړئ) خدائے تعالیٰ به ستاسو سره محبت اوکړی او ستاسو ټول ګناهونه به معاف کړی (ځکه چه زهٔ د دے معافئ طریقه هم ښایم په دے باندے به عمل کولو سره به خامخا د وعدے مطابق ګناهونه معاف شي - مثلاً د ګناهونو نه توبه د الله تعالیٰ حقوق چه تیرے فوت شوی وی هغه پوره کول د بندګانو حقونه ادا کول یائے معاف کول) او الله تعالیٰ لوئے معاف کوونکے او لویه مهربانی کوونکے دے (او) ته دا (هم) اووایه چه تاسو فرمانبرداری کوئے د الله تعالیٰ (چه اصل مقصود دغه دے) او (فرمانبرداری کوئے) د رسول ؐ (یعنے زما فرمانبرداری په دے حیثیت سره ضروری ده چه زهٔ د الله رسول یم زما په معرفت ئے د خپلے فرمانبردارئ طریقے ښودلے دی) بیا (په دے هم) که دغه خلق (ستا د فرمانبردارئ نه

چه ادنیٰ دَ دے عقیده ه دَ رسالت ده) دَ دهٔ اوکړی پس ردغه خلق دے وا ؤ ر می چه
الله تعالیٰ دَ کافرانو سره محبت نه کوی را و په دے صورت کښے په داخلق کافر وی
پس د وی لره دَ الله تعالیٰ سره دَ محبت کولو دعوه کول یا هوس دَ دوستانے ساتل
محض بے حقیقته دی)

# معلومات او مسئلے

محبت یو پټ څیز دے. دَ چا سره دَ چا محبت شته او که نیشته، کم دے او که زیات
دے، دَ دے هیڅ پیمانه بغیر دَ دینه نیشته چه دَ حالاتو او معاملو نه انداز ه و اغستے
شی. او کومے نښے او علامے چه وی ا په هغے سره پیژندے شی. دا خلق کوم چه دَ
الله تعالیٰ سره دَ محبت دعوه کوُنکی او دَ مینے آرزومندونه الله تعالیٰ دوی ته په دے
آیاتو نو کښے دَ خپل محبت انداز ه اوخوده. یعنے که په دنیا کښے ننّ یو سړے
دَ خپل حقیقی مالك دَ محبت دعوه کوُنکے وی نو دَ دهٔ کړه کوته به دَ محمد صلے الله
علیه وسلّم په تابعداریٔ سره معلومیږی. کوم سړے چه څومره په خپل دعوه
کښے رشتونے وی دومره به دے دَ نبی اکرم صلے الله علیه وسلم په تابعدارئ کښے
زیات اهتمام کوُنکے وی. او دَ هغهٔ راوړے رڼا به دَ خپلے لارے ډیوه جوړه وی
او څومره چه په خپله دعوه کښے کمزورے وی دومره به دَ هغهٔ په تابعدارئ کښے
سُستی او کمزورے لیدے شی.

په یو حدیث کښے نبی کریم صلے الله علیه وسلّم ارشاد فرمائی: چا چه دَ محمد
(صلے الله علیه وسلّم) تابعداری اوکړه نو دهٔ په حقیقت کښے دَ الله تعالیٰ جلّ شانهٗ
تابعداری اوکړه. او چا چه دَ محمد (صلے الله علیه وسلّم) نافرمانی اوکړه نو
دهٔ دَ الله تعالیٰ جلّ شانهٗ نافرمانی اوکړه." (تفسیر مظهری ج ۲)

---

إِنَّ اللَّهَ اصْطَفَىٰ آدَمَ وَنُوحًا وَآلَ إِبْرَاهِيمَ وَآلَ

بے شکه الله غوره کړے دے آدم ع لره او نوح ع لره او آل دَ ابراهیم ع لره او آل

عِمْرٰنَ عَلَى الْعٰلَمِيْنَ ﴿۳۳﴾ ذُرِّيَّةً بَعْضُهَا مِنْ بَعْضٍ

دَ عمران لره په ټول جهان باندے - چه اولاد وُه دَ يو بل

وَاللّٰهُ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ﴿۳۴﴾

او الله اَوريدونکے پوهيدونکے دے -

دَ تيرو پيغمبرانو ذکر دَ پاره دَ تسلي دَ نبي کريم صلے الله عليه سلم | کوم خلقو چه دَ نبي کريم صلے الله عليه و سلم دَ فرمانبرداري نه يَيده ے وجه دَ دهٔ کوَله چه دَ دوی دَدهٔ په رسالت کښے او نبوّت کښے شك وُه - دَ دوی دَ هدايت دَ پاره په دے آيا تونو کښے مثالونه دَ تيرو پيغمبرانو بيان شو چه دا شکونه ير سے لرے شي - دَ دے تيرو پيغمبرانو په ذکر کښے دَ حضرت آدمؑ، نوحؑ، آلِ ابراهيمؑ او آل عمران ذکر په اجمال او اختصار (لنډه) سره او شه - دَ دينه پس په اصل کښے ذکر دَ حضرت عيسیٰ عليه السلام کول دي، دَ دينه مخکښے دَ هغهٔ دَ نيا او دَ مور هم په تفصيل سره ذکر او شه خو دَ حضرت عيسیٰ عليه السلا په ذکر کښے تفصيل ډير زيات شوے دے چه دَ دے بيان په په مسئله دَ ډوند دَ عيسیٰ عليه السلام کښے را شي - لنډه داده چه امّت محمّديه لره په آخر زمانه کښے دَ حضرت مسيح عليه السلام سره کار کول دي په دے وجه دَ هغهٔ دَ پيژندلو او نښو بيانولو اهتمام په قرآن کښے دَ نورو ټولو انبياؤ نه زيات شوے دے۔

## لنډ تفسير

بے شکه الله تعالیٰ (دَ نبوّت دَ پاره) غوره کړے دے (حضرت) آدم (عليه السلام) او (حضرت) نوح (عليه السلام) لره او دَ حضرت ابراهيم (عليه السلام) اولاد (کښے بعضو) لره (لکه حضرت اسمٰعيل عليه السلام حضرت اسحٰق عليه السلام او حضرت يعقوب عليه السلام او دَ بني اسرائيلو ټول نبيان دَ يعقوب عليه السلام په اولاد کښے دي او دَ ورمونږ نبي کريم صلے الله عليه وسلم دَ اسمٰعيل عليه السلام

په اولاد کښې دے) او د عمران اولاد (کښې بعضو لره (که دا عمران د حضرت موسیٰ علیه السلام پلار وی نو د اولاد نه ئے مراد حضرت موسیٰ علیه السلام او حضرت هارون علیه السلام دی. او که دا عمران د حضرت مریم علیها السلام پلار وی نو د اولاد نه ئے مراد حضرت عیسیٰ علیه السلام دے. غرض دا چه دے حضراتو لره د نبوت د پاره) د ټول جهان (په مخلوقات) باندے (غوره کړی دی) بعض په دوی کښې د بعضو اولاد دی. (لکه د آدم علیه السلام ټول اولاد دی. دغه شان د نوح علیه السلام ټول اولاد دی او د حضرت ابراهیم علیه السلام په اولاد کښې اولاد د عمران هم دے.) او الله تعالیٰ ښه اوریدونکے خه پوهیدونکے دے (چه د ټولو خبرے اوری د ټولو حالات پیژنی پس چه د چا خبرے او حالات ئے مناسب د شان د نبوت سره او لیدل هغه ئے نبی جوړ کړو).

---

اِذْ قَالَتِ امْرَاَتُ عِمْرٰنَ رَبِّ اِنِّیْ نَذَرْتُ لَكَ مَا فِیْ بَطْنِیْ

هر کله چه او وے ښځے د عمران چه اے ربه ما نذر کړه ستا دپاره هغه چه زما په کیده کښې دی

مُحَرَّرًا فَتَقَبَّلْ مِنِّیْ ۚ اِنَّكَ اَنْتَ السَّمِیْعُ الْعَلِیْمُ ﴿۳۵﴾ فَلَمَّا وَ

د ټولو نه آزاد ساتلے پس ته ئے زما نه قبول کړه بے شکه ته ئے اصل اوریدونکے پوهیدونکے - پس کله چه هغے

ضَعَتْهَا قَالَتْ رَبِّ اِنِّیْ وَضَعْتُهَاۤ اُنْثٰیؕ وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِمَا

او زیګوله او وئیل وے اے ربه ما خو جینۍ او زیګوله - او الله ته خه معلوم ده خه چه هغې او

وَضَعَتْؕ وَلَیْسَ الذَّكَرُ كَالْاُنْثٰیۚ وَاِنِّیْ سَمَّیْتُهَا مَرْیَمَ

زیګوله - او نه دے هلک په شان د لور - او ما کړے دے نوم کیخود مریم

وَاِنِّیْۤ اُعِیْذُهَا بِكَ وَذُرِّیَّتَهَا مِنَ الشَّیْطٰنِ الرَّجِیْمِ ﴿۳۶﴾

او زه ستا په پناه کښې ورکوم دا او د دے اولاد لره د شیطان رټلی شوی نه -

# لنډ تفسیر

راوغخه وخت هم د یاد ولو قابل دے) کله چه د عمران (د مریم پلار) ښځې (په حالت د حمل کښې الله تعالیٰ ته) عرض اوکړه چه اے زما پروردګاره ما نذر (یعنې منخته) منلے ده ستا (د عبادت) د پاره د دے بچی کوم چه زما په ګیډه کښې دے چه دے به (د خدائے د کور د خدمت د پاره) آزاد (فارغ) ساتلے شی (اوزهٔ به ئے په خپل کار کښې نه لګوم) پس ته (دے) زما نه قبول کړے بے شکه ته ښهٔ اورید ونکے ښهٔ پوهید ونکے ئے (چه زما عرض آورے او زما په نیّت باندے پوهه ئے) بیا چه کله (دے بی بی) جینئ او زیګاوله نو (دا خفه شوه چه دا خو د بیت المقدس د خدمت د پاره لائقه نه ده داکار خو د سړو دے. په دے وجه په افسوس سره) ئے اووے چه اے زما پروردګاره ما خو د حمل نه جینئ اوزیګاوله (الله تعالیٰ فرمائی چه دے په خپل خیال سره افسوس کاوه) حالانکه خدائے تعالیٰ ښهٔ پوهه دے (د دے جینئ په شان) چه څهٔ دے اوزیګاوله او د په څهٔ شان سره هم) هغه هلک (کوم چه دے غوختو) د دے جینئ برابر نه دے (نه شی کیدے بلکه دا جینئ غوره ده چه د دے کمالونه به عجیبه او نا اشنا وی. دا د الله تعالیٰ ارشاد په مینځ کښې په طور د جملے معترضے وه. اوس بیا د دے بی بی قول دے) او ما د دے بی بی نوم مریم کیښودهٔ اوزهٔ دے لره او د دے اولاد لره (که اولاد ئے چرته اوشی) ستا په پناه (او حفاظت) کښې د رکوم د شیطان رټلی شوی نه.

# معلومات او مسئلے

د تیرو پیغمبرانو په شریعت کښې یوه طریقه د عبادت دا هم وه چه په خپل اولاد کښې یو بچی لره د الله د پاره خاص کړی چه د دهٔ نه به د دنیا څهٔ خدمت نه اخلی د حضرت مریمؑ مور هم د دے قاعدے مطابق د خپل حمل متعلق دا منخته اوُ منله چه دا به خاص د بیت المقدس د خدمت د پاره ساتم د دُنیا په څهٔ کار کښې به ئے نه لګوم. لیکن کله چه د حمل نه جینئ پیدا شوه نو په دے خیال سره ئے افسوس اوکړهٔ چه جینئ خو دا کار نه شی کولے لیکن الله تعالیٰ د دے

دَ اخلاص دَ برکته هم هغه جینئ قبوله کړه او دالۓ دَ دنیا دَ ټولو ښځو نه یواوچت شان والا کړه -

دَ دینه دا خبره معلومه شوه چه مورته دَ بچی دَ تعلیم او تربیت یو قسم لَه ولایت (تصرف) حاصل دے - ځکه چه که مورته په بچی ولایت حاصل نه وے نو دَ حضرت مریم علیها السلام نذر به ئے نه منلو - دغه شان دا هم ثابته شوه چه مورته دا حق هم حاصل دے چه دَ خپل بچی نوم په خپله مقرر کړی (جصاص)

---

فَتَقَبَّلَهَا رَبُّهَا بِقَبُولٍ حَسَنٍ وَّ اَنْۢبَتَهَا نَبَاتًا حَسَنًا ۙ وَّ

بیا قبوله کړه دے لره دَ دے رب په غوره قبلولو سره او لویه ئے کړه دے لره په غوره لویه ولو سره او

كَفَّلَهَا زَكَرِيَّا ۚ كُلَّمَا دَخَلَ عَلَيْهَا زَكَرِيَّا الْمِحْرَابَ ۙ وَجَدَ

اوئے سپارله زکریا ع ته هر کله چه به راتلے دَ دے خوا ته زکریا ع محراب ته نو موندلۀ به ئے

عِنْدَهَا رِزْقًا ۚ قَالَ يٰمَرْيَمُ اَنّٰى لَكِ هٰذَا ۖ قَالَتْ هُوَ مِنْ

دَ دے سره څۀ خوراک اوئے وے اے مریم دَ کومے نه راغے ستا خواته دا - اوئے وے دا دَ الله

عِنْدِ اللّٰهِ ۖ اِنَّ اللّٰهَ يَرْزُقُ مَنْ يَّشَآءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿۳۷﴾

دَ خوا نه راځی - الله رزق ورکوی چا لره چه غواړی بے اندازے -

# لنډ تفسیر

(حاصل دا وے چه دَ حضرت مریم علیها السلام مور دا وغوښته بیت المقدس ته ورسیده او هلته مجاورینو او عبادت کونکی چه حضرت زکریا علیه السلام په کښے هم وه ناست وه دا وَرله وَراغله او ئے وے چه دا جینئ ما خاصه دَ خدائے دَ پاره

منلې ده - نو اوس ئې څۀ ګټان سره نۀ شم ساتلې تا سو لوړه م راوړه تا سو ئې واخلئ او ساتئ ئې -

حضرت عمران ګډې د جماعت امام وُه او چه مريم د مور په ګېډه کښې وه نو هغه وفات شوے وُه - ورنۀ د ټولو نه زيات مستحق د دې د اخستو د پاره هغه وُه د جينۍ پلار هم وُه او د مسجد بيت المقدس امام هم وُه - په دې وجه د بيت المقدس مجاورينو او عبادت کوونکو هم يو د دې د اخستو خواهش کاوه - خو حضرت زکريا عليه السلام د ځان د غوره والي دا وجه بيان کړه چه د ماشوم کور کښې د دې ترور (د مور خور) ده او هغه په ځائے د مور وي نو په دې وجه د مور نه پس ئې هغه د ساتلو مستحقه ده - ليکن نور خلق په دې راضي او متفق نۀ شو - اخر په حسنړۍ غورزه ولو ئے اتفاق راغے - او صورت د حسنړۍ هم عجيبه نا آشنا او د عادت نه خلاف مقرر شو - چه بيان ئې وړاندې راځي - په دې کښې هم حضرت زکريا عليه السلام کامياب شو -

نو حضرت مريم دۀ ته ملاؤ شوه او هغوي د بعضو روايا تو مطابق يوه دائي د دې د پيو ورکولو د پاره نوکره کړه - او په بعضې روايتو نو کښې دي چه پيو ته د دې هډو حاجت نه وُه راغلے دا به په خپله پا سيده کيناسته - او دائے د جمات سره پيوست په يو بنګلي مکان کښې او ساتله - چه دے به ترې چرته تلو نو جوړ نده به ئې ورته وهله او چه راتلو به نو بيرته کوله به ئې - د دې قصې مختصر ذکر وړاندې راروان دے - يعني) پس د (مريم عليها السلام) لره د دې رب په غوره طريقه سره قبوله کړه او په ښۀ طور سره ئې د دې پرورش اوکړه او (حضرت) زکريا (عليه السلام) ئې د دې سرپرست جوړ کړۀ کله چه به (حضرت) زکريا (عليه السلام) د دې خواله (دغه) بنګلي مکان ته (چه دائے به کښې ساتلې وه) تشريف راوړه نو د دې سره به ئې څۀ د خوراک سکاک څيز وننه موندۀ (او) دا سے به ئې فرمائيل چه اے مريمې ستا د پاره دا څيز ونه د کوم نه راغله (ځکه چه مکان خو جوړ نده دے د باهر نه د چا د راتلو څۀ امکان نيشتے) هغې به وے چه د الله د طرف نه (چه د غيبو کومه خزانه ده د هغې نه) راغله بے شکه الله تعالیٰ چا لره چه غواړي بے استحقاق (بے کاره بے روزګاره) رزق ورکوي -

(للکه چه په دې موقع ئې محض په خپل فضل سره بې مشقته رزق عطاء اؤ فرمایه)۔

هُنَالِكَ دَعَا زَكَرِيَّا رَبَّهُ ۚ قَالَ رَبِّ هَبْ لِي مِن لَّدُنكَ

هلته دعا اوکړه زکریا د خپل رب نه۔ اوئې وې اے ربه ځما راکړې ماله د خپل طرف نه

ذُرِّيَّةً طَيِّبَةً ۖ إِنَّكَ سَمِيعُ الدُّعَاءِ ﴿٣٨﴾

اولاد پاکیزه۔ بې شکه ته اؤریدونکې د دُعا ئې۔

# لنډ تفسیر

(حضرت زکریا علیه السلام د حضرت مریم علیها السلام په تربیت کښې غیرمعمولي نښې د قدرت اولیدې نو د خپل ځان د پاره ئې هم دعا اوکړه چه بیان ئې دا دے)۔
په دې موقع دُعا اوکړه (حضرت) زکریا (علیه السلام) خپل رب ته ئې عرض اوکړو چه اے ځما ربه راکړې ماله خاص د خپل طرفه څۀ ښۀ اولاد بې شکه ته چیر آوریدونکې د دعا ئې۔

# معلومات او مسئلې

هُنَالِكَ دَعَا زَكَرِيَّا: د حضرت زکریا علیه السلام د دې وخته پورې اولاد نۀ وو۔ او زمانه ئې د بوډا والي راغلې وه۔ چه عادتاً په دې کښې اولاد نۀ شي کیدې۔ اګرچه د الله تعالی په قدرت باندې د دوئ پوره عقیده وه چه هغه ذات په دې زور والي کښې هم اولاد راکولې شي لیکن د الله پاک د دا سې عادت دۀ په چاکښې نۀ دارۀ نۀ وه کړې چه هغه بې موقع او بې موسمه څیزونه ورکوي په دې وجه د دۀ د دُعاکولو د اولاد د پاره جرأت نۀ وۀ شوې (یعنې زړۀ ورپورې نه وۀ) لیکن په دې وخت کښې چه کله دۀ اولیدۀ چه الله تعالی حضرت مریمؑ لره بې موسمه میوې ورکوي۔ نو اوس دې هم په سوال کولو باندې

ذېره وَرْشو - چه کوم قادر مطلق بې موقعې میوه ورکولې شي هغه بې موقع اولاد هم ورکولې شي -

:قَالَ رَبِّ هَبْ لِيْ مِنْ لَّدُنْكَ ذُرِّيَّةً طَيِّبَةً : دَدې ایت نه معلومه شوه چه دَ اولاد دَپاره دُعا کول دَ پیغمبرانو اونیکانو سُنّت دی -

په یو بل ایات کښې دَ الله تعالیٰ ارشاد دې : وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا رُسُلًا مِّنْ قَبْلِكَ وَجَعَلْنَا لَهُمْ اَزْوَاجًا وَّ ذُرِّيَّةً : یعنې لکه ځنګه چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم لره بیبیانې او اولاد ورکړې شوې وُه دغه شان دا نعمت تیرو پیغمبرانو ته هم ورکړې شوې وُه - اوس که یو سړې په څهٔ ذریعه سره دَ اولاد دَ پیدا کیدو نه دَ بندیدو کوشش کوی نو دې یوائې دا نه چه دَ فطرت خلاف دَ بغاوت جنډه اوچتوی بلکه دَ پیغمبرانو علیهم السلام دَ یو شریکو او اتفاق سنتو نه به هم ځان محرومه کوی - نبی کریم صلی الله علیه وسلم خو دَ نکاح او اولاد مسئلې لره دومره اهمیّت ورکړې دې چه دوئې دا سې سړی ته په خپل جماعت (ډله) کښې دَ شاملید و اجازت هم نه ورکوی - کوم چه دَ وادهٔ کوژدې او اولاد نه سره دَطاقت نه دَرېره کوی - لکه چه فرمائی :

اَلنِّكَاحُ مِنْ سُنَّتِيْ فَمَنْ رَغِبَ عَنْ سُنَّتِيْ فَلَيْسَ مِنِّيْ وَتَزَوَّجُوْا فَاِنِّيْ مُكَاثِرٌ بِكُمُ الْاُمَمَ ۔

یعنې نکاح زما سنّت دی څوک چه زَ دې سنتو نه دَرېره کوی هغه بزما نه نه وی نو تاسو نکاح کوئې ځکه چه زهٔ به ستاسو دَ ډیروالی په وجه باندې په نورو امتونو فخر کوم -

په یو بل ایت کښې الله تعالیٰ دَ دا سې خلقو صفت کوی چه دَ اولاد او بښځې دَ حاصلولو او دَ دوی دَ نیک او صالحو کید و دَپاره دَ خپل الله تعالیٰ نه سوالونه کوی - لکه ارشاد باری تعالیٰ دې ؛

وَالَّذِيْنَ يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَا هَبْ لَنَا مِنْ اَزْوَاجِنَا وَ ذُرِّيّٰتِنَا قُرَّةَ اَعْيُنٍ ۔

"یعنې دَ الله فرمانبر داره خلق دا سې دی چه دا دُعا کوی چه موښږ لره زموښږ ښځې او بچي دا سې راکړې چه په لید وئې زموښږ سترګې یخې او زړهٔ خوشحاله وی"

حضرت حسن بصریؒ فرمائی چه دلته دَ سترګو دَ یخوالی نه مراد دا دې

چه خپله بنځه او یحیٰ الله تعالیٰ په عبادت کښې مشغول اوو ښي -
په یو حدیث کښې راځي چه نبي اکرم صلی الله علیه وسلم ته اُمّ سلیمؓ درخواست
اوکړو چه تا سو دَ خپل خادم انسؓ دَ پاره څه دُعا اوفرمائي نو دوئ دَ هغهٔ دَ پاره
دا دُعا اوغوختله :

| | |
|---|---|
| اَللّٰهُمَّ اَكْثِرْ مَالَهٗ وَ وَلَدَهٗ وَبَارِكْ لَهٗ فِيْمَا اَعْطَيْتَهٗ - | "یعنې اے الله دَ دے (انسؓ) مال او اولاد زیات کړے او په هغې کښې ورله برکت ورکړے کوم چه تا دهٔ له ورکړی دی" |

دَ دے دُعا اثر اُوشه چه دَ انس رضی الله تعالیٰ عنه دَ سلو پورے اولاد
اوشه او الله تعالیٰ دهٔ له دَ مال فراخي هم ډیره ورکړه -

---

فَنَادَتْهُ الْمَلٰٓئِكَةُ وَهُوَ قَآئِمٌ يُّصَلِّيْ فِي الْمِحْرَابِ ۙ

بیا دهٔ ته آواز اوکړو فرشتو کله چه دے ولاړ وهٔ په مانځه په حجره کښې

اَنَّ اللّٰهَ يُبَشِّرُكَ بِيَحْيٰى مُصَدِّقًاۢ بِكَلِمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ وَ

چه الله تا له خوشخبري درکوي دَ یحیٰي چه گواهي به ورکوي دَ الله دَ حکم او

سَيِّدًا وَّحَصُوْرًا وَّنَبِيًّا مِّنَ الصّٰلِحِيْنَ ۝۳۹

سردار به وي او بنځې ته به نه ورځي او نبي به وي دَ صالحانو نه -

# لنډ تفسیر

پس آواز اوکړهٔ دهٔ ته فرشتو کله چه دے ولاړ دهٔ مونځ ئې کاوه په محراب
کښې چه الله تعالیٰ تا ته زیرے درکوي دَ یحیٰی (نوم څوئي درکولو) چه حالات به ئې دا وي
چه دے به دَ کلمة الله (یعنې دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام دَ نبوت) تصدیق کوونکے وي

او (دریم) مقتدا (دَ دین) به وی او (دریم) خپل نفس لره به (دَ خوندونونه) ډیر منع کونکے وی او (څلورم) نبی به هم وی او (پنځم) دَ اعلیٰ درجے نیک به وی۔

# مَعلومات او مَسئلے

بِکَلِمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ: عیسیٰ علیه السلام ته کلمة الله په دے وجه سره وائی چه دے محض دَ الله تعالیٰ په حکم سره دَ عادت نه خلاف بے دَ واسطے دَ پلار نه پیدا شوے دے۔
حَصُوْرًا: دَ حضرت یحییٰ علیه السلام دا دریم صفت بیان شوے دے: چه دے به خپل نفس لره دَ خوندونونه ډیر بنده ونکے وی۔ او دَ خوندونونه په ځان ساتلو کښے دَ مباح خواهشونو نه ځان ساتل هم داخل دی۔ مثلاً ښه خوراک ښهٔ جامه او نکاح وغیره کول۔ دا وصف دَ صفت په موقع باندے دَ بیانېدَ لو نه په ظاهره دا سے معلومیږی چه غوره طریقه دا ده۔ حال دا دے چه په احادیثو کښے دَ نکاح غوره والے ثابت دے۔ نو دَ دے تحقیق دا دے چه دَ کوم سړی حالت دَ حضرت یحییٰ علیه السلام په شان وی، چه په دهٔ دَ اٰخرت فکر دومره غالب وی چه دَ دے غلبے په وجه نه دَ بنځے ضرورت محسوس کوی او نه ورته دَ بال بچ دَ حقونو اداکولو فرصت وی نو دَ دا سے سړی دَ پاره دا سے غوره ده۔ په دے وجه سره په کوم احادیثو کښے چه دَ نکاح غوره والے راغلے دے هلته ورسره دا قید هم ذکر دے چه: مَنِ اسْتَطَاعَ مِنْكُمُ الْبَاءَةَ: یعنے کوم سړے چه دَ نکاح کولو قدرت لری او دَ خاوند والی حقونه اداکولے شی نو دَ هغهٔ دَ پاره نکاح کول غوره دی او که دا سے نه وی نو بیانېدی غوره (بیان القرآن)

قَالَ رَبِّ اَنّٰى يَكُوْنُ لِيْ غُلٰمٌ وَّ قَدْ بَلَغَنِيَ الْكِبَرُ وَ

اوئے وے اے ربه دَ کومه به وی ما لره اولاد (ځوئے) او ورسیدلے دے ماته زوړ والے او

امْرَاَتِيْ عَاقِرٌ ؕ قَالَ كَذٰلِكَ اللّٰهُ يَفْعَلُ مَا يَشَآءُ ﴿۴۰﴾

ښځه ما شنډه ده۔ اوئے فرمایل دغه شان الله کوی چه څهٔ غواړی۔

قَالَ رَبِّ اجۡعَلۡ لِّیۡۤ اٰیَةً ؕ قَالَ اٰیَتُكَ اَلَّا تُكَلِّمَ النَّاسَ

او وئیل ده اے ربه مقرر کړه ځما دپاره څۀ نښه - او وئیل ده نښه ستا داده چه خبرے به نه شے کولے د

ثَلٰثَةَ اَیَّامٍ اِلَّا رَمۡزًا ؕ وَاذۡكُرۡ رَّبَّكَ كَثِیۡرًا وَّ سَبِّحۡ

خلقو سره درے ورځے مګر په اشاره سره - او یاده وه خپل رب ډیر او تسبیح وایه

ع ۴ ۱۱/۱۲ بِالۡعَشِیِّ وَالۡاِبۡكَارِ ﴿۴۱﴾

د ماښام او د سحر -

# لنډ تفسیر

(حضرت) زکریا (علیه السلام) د دربار د الله تعالیٰ کښے) عرض اوکړو چه اے ځما پروردګاره ځما به څه رنګ هلک اوشی حال دا دے چه ما لره زوړوالے راغلے دے او ځما بی بی هم (د زوړوالی د وجه نه) د بچی پیدا کولو قابله نه ده الله تعالیٰ ور ته (په جواب کښے) او فرمایل چه هم په دا سے حالت کښے به هلک اوشی ځکه چه الله تعالیٰ د څۀ اراده کوی نو کوی ئے دوئ عرض اوکړو چه اے پروردګاره (نو بیا خو) ځما دپاره څۀ نښه مقرر کړه (چه په هغے سره ما ته معلومه شی چه اوس حمل شو) نو الله تعالیٰ او فرمایل چه ستا نښه داده چه ته به د خلقو سره د درے ورځو پورے خبرے نه شے کولے بغیر د (لاس یا سر وغیره د) اشارے نه (چه کله دا نښه او وینے نو پوهه شه چه اوس به ځما په کور کښے حمل شوے وی) او (په دغه زمانه کښے چه کله دے د خلقو سره د خبرو کولو قدرت پاتے نه شی د الله تعالیٰ په ذکر به قادر ئے پس) خپل رب لره (په زړهٔ سره هم) ډیر یاده وه او (په ژبه سره هم) تسبیح (او پاکی) بیانه وه د ماښام هم او د سحر هم -

# معلومات او مسئلے

د حضرت زکریا علیه السلام دعا او د دے حکمت :اَنّٰی یَكُوۡنُ لِیۡ غُلٰمٌ: حضرت زکریا علیه السلام

سره کړے چه په قدرت د الله تعالیٰ ئے عقیده هم وه او نښے ئے پر لیسے په داکه لیدلے هم وے او هم په خپله ئے درخواست کړے وَه او دائے هم علم وَه چه قبلیږی به- بیا هم کړ دے دوموه خبرو سره کړے وَیِّنا څهٔ معنیٰ ده چه څه رنګ به هلك اوشی؟ خبره په حقیقت کښے داده چه کړده داسوال کول د الله تعالیٰ په قدرت کښے د شك کولو په وجه سره نه وَه- بلکه مقصد کړدهٔ په دے سوال کولو سره طریقه معلومول وُو- چه آیا زمونږ دواړه و بنځے خاوند چه کوم موجوده حالت دے چه دواړه څهٔ پوره بوډا کان یُو هم دا حالت به وی او که نهٔ په دے کښے به څهٔ بدلون راځی- الله تعالیٰ ورته په جواب کښے اوفرمایل چه نا، تاسو به دواړه هم دغسے بوډاکان یئ او په دے حالت کښے به ستاسو بچے اوشی- نو اوس په دے کښے څهٔ اشکال پاتے نه شو- (بیان القرآن)

قَالَ اٰیَتُكَ اَلَّا تُكَلِّمَ النَّاسَ ثَلٰثَةَ اَیَّامٍ اِلَّا رَمْزًا: د حضرت زکریا علیه السلام د نښے معلومولو نه دا مقصد وَه چه مونږ زر خوشحاله شو- او ځکه پیدا کیدو نه اول اول په شکر کښے مشغول شو- نو الله تعالیٰ ورلوه دا نښه مقرر کړه چه ته به تر درے ورځو پورے د خلقو سره بغیر د اشارے نه څهٔ هیڅ خبرے نه شے کولے-

په دے نښه کښے خو یو راز دے چه د نښے په درخواست کولو سره چه دده کوم یو مقصد وَه چه شکر ادا کړم نو نښه ئے ورلوه داسے مقرر کړه بغیر د ذکر نه بل کار ربینے شکر کولو نه به دے بل کار کولے هم نه شی د ښلو ښنو نه یوه نښه شوه او مقصو ترے هم څهٔ په اعلیٰ درجه سره حاصل شه (بیان القرآن)

اِلَّا رَمْزًا: د دے ایات نه معلومه شوه چه کله خبرے کول ګران شی نو اشاره به په ځائے د خبرو کولے شی- لکه چه په یو حدیث شریف کښے راځی چه بنی کریم صلی الله علیه وسلم د یوے وینځے نه تپوس اوکړو چه: اَیْنَ اللّٰهُ؟ الله کوم ځائے دے نو هغې آسمان طرف ته اشاره اوکړه- نو بنی کریم صلی الله علیه وسلم اُو فرمایل چه دا وینځه مسلمانه ده (قرطبی) -

وَاِذْ قَالَتِ الْمَلٰٓئِكَةُ یٰمَرْیَمُ اِنَّ اللّٰهَ اصْطَفٰىكِ وَطَهَّرَكِ

او کله چه اووے ملائکو اے مریمے الله تعالیٰ تا لوه غوره کړے ده او پاکه کړے ده

وَاصْطَفٰىكِ عَلٰى نِسَآءِ الْعٰلَمِیْنَ ﴿۴۲﴾ یٰمَرْیَمُ اقْنُتِیْ لِرَبِّكِ وَ

او غوره ئے کړه تا لره د ټولې دُنیا په ښځو باندې - اے مریم بندګی کوه د خپل رب او

اسْجُدِیْ وَارْكَعِیْ مَعَ الرّٰكِعِیْنَ ﴿۴۳﴾

سجده کوه او رکوع کوه د رکوع کوونکو سره -

# لنډ تفسیر

(او هغه وخت هم د یاد ولو قابل دے) هر کله چه فرښتو (حضرت مریم علیها السلام ته) او وے اے مریم بے شکه الله تعالیٰ ته منتخب (یعنے مقبوله) کړے ئے او د ټولونا خوښه کارونوا و خویونو) ئے پاکه کړے ئے او (دا مقبول جوړه ول ستا د ټولے نښځو دوه ؤو په نسبت سره نه دی بلکه د دے زمانے) د ټول جهان د بیبیانو په مقابله کښے ئے ستا انتخاب کړے دے (او فرښتو دا هم اووے چه) اے مریم بندګی کوه د خپل پروردګار او سجده (یعنے مونځ ادا) کوه او (په مانځه کښے) رکوع (هم) کوه د هغے خلقو سره چه رکوع کوونکی وی -

# مَعْلُوْمَاتْ اَوْمَسْئَلے

"وَاصْطَفٰىكِ عَلٰى نِسَآءِ الْعٰلَمِیْنَ" نه مراد په هغه زمانه کښے د ټول جهان ښځے دی نو په دے وجه په حدیث کښے د "سَیِّدَةُ نِسَآءِ اَهْلِ الْجَنَّةِ فَاطِمَةُ" ارشاد د دے سره څه منافات نه لری -

"وَارْكَعِیْ مَعَ الرّٰكِعِیْنَ" دلته ئے د "ارْكَعِیْ" سره قید د "مَعَ الرّٰكِعِیْنَ" ذکر کړو - لیکن د "وَاسْجُدِیْ" سره ئے د "مَعَ السّٰجِدِیْنَ" قید ذکر نه کړو - د دینه په ظاهره دے طرف ته اشاره شوه چه خلق عام طور سره په رکوع کولو کښے کوشش نه کوی بلکه لږ شان ښکته شی بیا زر پورته شی دا قسم رکوع ولاړے ته نزدے وی نو په دے وجه په ظاهره دا سے معلومیږی چه الله تعالیٰ د "رَاكِعِیْنَ" قید ځکه ذکر کړو چه خلقو ته او ښائی چه ستا سو رکوع دے د کامل رکوع کوونکو په شان وی -

ذٰلِكَ مِنْ اَنْۢبَآءِ الْغَيْبِ نُوْحِيْهِ اِلَيْكَ ؕ وَمَا كُنْتَ

دا خبرونه دَ غیبو دی چه مونږ ئې تا ته لیږو۔ او ته نه وې

لَدَيْهِمْ اِذْ يُلْقُوْنَ اَقْلَامَهُمْ اَيُّهُمْ يَكْفُلُ مَرْيَمَ

دَ دوی سره کله چه دوی غورزول خپل قلمونه چه څوک به پرورش کښې اخلی مریم لره

وَمَا كُنْتَ لَدَيْهِمْ اِذْ يَخْتَصِمُوْنَ ﴿۴۴﴾

او نه وې ته دَ دوی سره کله چه دوی جګړه کوله۔

# لنډ تفسیر

دا قصې دکومې چه بره ذکر شوې دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم په اعتبار سره په دې وجه چه دَ دوی سره څه ظاهری ذریعه دَ دې دَ معلومولو نه وه) دَ غیبو خبرونه دی چه په وحی سره ئې مونږ تا ته لیږو (دَ دې په ذریعه سره به ته دا خبرونه معلوم کړې نورو ته به ئې خائې) او (ښکاره ده چه کوم خلقو دَ حضرت مریم علیها السلام په ساتلو کښې اختلاف کاوه چه فیصله ئې په آخر کښې په حسنړی مقرر شوه) ته دَ دې خلقو سره نۀ په هغه وخت موجود وې کله چه هغو (دَ حسنړی په طور سره) خپلو خپلو قلمونو لره (په اوبو کښې) غورزول (او صورت دَ حسنړی ویستلو ئې دا مقرر کړې وُه چه دَ چا قلم په اوبو کښې دَ حکمت نه په پوره ته دَ اوبو خلاف روان شی هغه به مستحق گڼلې شی پس دَ حسنړی نه غرض دَ دې خبرې معلومول وو) چه په دې ټولو کښې به کوم سړې دَ حضرت مریم علیها السلام کفالت (پرورش) کوی (پس ته نۀ نه دغه وخت موجود وې) او نه ته دَ دوی سره هغه وخت موجود وې کله چه دغې خلقو (اول دَ حسنړی نه په دې مقدمه کښې) دَ یو بل سره اختلاف کاوه (چه دَ دغې اختلاف دفع کولو دَ پاره حسنړې مقرر شه۔ او دَ دې خبرونو دَ معلومولو دَ پاره دَ نورو وسیلو نیشتوالے هم په یقین سره معلوم دې۔ پس په داسې حالت کښې

داغیبي خبرونه ستا دَ نبوّت دلیل دے -

## مَعلومات اَو مَسئلے

مسئله: په شریعت محمدیٰ کښے دَ احنا فو په مذهب دَ حصې حکم دا دے چه دَ کوم حقونو اسباب په شریعت کښے معلوم او متعیّن وي په هغې کښے حصې کول نا جائز دے او په جوارئ کښے داخل دے مثلاً یو مشترک یعنے شریک شے وي چه دَ ټولو حقونه په کښے برابر وي او په هغې حصې کوي چه دَ چا حصې ته او خوت هغه به ئے واخلي او نور به ترے محرومه شي - یا دَ یو ځي په نسب کښے اختلاف وي نو چه دَ چا دَ نوم حصه راوخیژي هغه به ئے پلار ګڼړلے شي - او دَ کوم حقونو اسباب چه رائے ته سپارلی شوي وي په هغې کښے حصې جائز دے مثلاً شریك مکان دے زَید او عَمرو ئے تقسیموي نو حصې په دے او کړي چه کُه دَ چا حصه راوخوت هغه به مشرقي حصه اخلي او دَ چا چه پاتے شو دَ هغه به مغربي حصه شي - داځکه جائز دے چه بغیر حصې نه هم که دواړه شریکان متفق شي نو داسے کیدے شي - او یا دَ قاضي په فیصله هم داسے کیدے شي او جائز دي - (بیان القرآن)

یا داسے او وایه چه کوم ځائے دَ ټولو شریکانو حقونه برابر وي هلته یو طرف دَ یو سړي دَ پاره په حصې متعیّن کول جائز دي -

إِذْ قَالَتِ الْمَلٰٓئِكَةُ يٰمَرْيَمُ إِنَّ اللّٰهَ يُبَشِّرُكِ بِكَلِمَةٍ

هر کله چه اووے فرشتو اے مریم الله تا لره زیرے درکوي دَ یو خپل حکم

مِّنْهُ اسْمُهُ الْمَسِيحُ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ وَجِيهًا فِي الدُّنْيَا

چه نوم ئے مسیح دے عیسیٰ ځوئ دَ مریم مرتبے والا په دنیا کښے

وَالْاٰخِرَةِ وَمِنَ الْمُقَرَّبِينَ ﴿٤٥﴾ وَيُكَلِّمُ النَّاسَ فِي

او په آخرت کښے او دَ الله دَ نزدیکانو نه - او خبرے به کوي دَ خلقو سره

الْمَهْدِ وَكَهْلًا وَّمِنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿۴۶﴾

کله چه دَ مور په غیږ کښے وی او کله چه دَ پوره عمرې وی او دَ نیک بختو نه دے -

# لنډ تفسیر

(هغه وخت یاد کړه) کله چه فرشتو (حضرت مریم علیها السلام ته داهم) او وے چه اے مریم بے شکه الله تعالیٰ تا له زیرے درکوی دَ یو کلیمے چه دَ جانبه دَ الله نه به وی (یعنے دَ یو بچی دَ پیدا کیدو چه بے دَ واسطے دَ پلار نه دَ پیدا کید و په سبب به ورته کلمة الله وائی) دَ دهٔ نوم (او لقب) به مسیح عیسیٰ ځوئی دَ مریم وی (دَ دهٔ به دا حالت وی چه) باعزته به وی (دَ خدائے تعالیٰ په نزد) په دنیا کښے (به هم دهٔ ته نبوّت ورکړے شوے وی) او په آخرت کښے به (هم چه دَ خپل امت دَ مؤمنانو په باره کښے به ئے شفاعت قبول وی) او (لکه څنګه چه به په دهٔ کښے دَ نبوّت او شفاعت صفت وی، چه دَ دے تعلق دَ نورو سره هم دے. دغه شان دَ ذاتی کمال صفت به پکښے هم وی) مجمله دَ نزدیکانو نه (په نزد دَ الله) به وی او (صاحب دَ معجزو به هم وی) دَ بنی آدمو سره به (په دواړو حالتونو کښے یو شان) خبرے کوی په زانګو کښے (یعنے بالکل په ورکوتوالی کښے هم) او په لوئے عمر کښے (هم په دواړو خبرو کښے به ئے فرق نه وی) او (دَ اعلیٰ درجے) دَ نیک بختو خلقو نه به وی -

# معلومات او مسئلے

**دَ عیسیٰ علیه السلام دَ واکوزیدو یو دلیل، په لوئے عمر کښے هم دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام خبرې معجزه ده**

په دے ایات کښے دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام یو صفت دا هم خودَلے شوے دے چه دے به په وَړکوتوالی په زانګو کښے چه هرکله یو بچے دَ خبرو کولو صلاحیت (طاقت) نه لری، په دغے حالت کښے به هم دے خبرے کوی - لکه چه په یو بل ایات کښے دا سے راغلی دی چه کله خلقو دَ دهٔ دَ پیدا کیدو نه پس په حضرت مریمؑ باندے دَ تهمت لګسولو په وجه بَدِ بے دَ دِے ویل شروع کړهٔ نو دے نوی پیدا شوی بچی حضرت عیسیٰ علیه السلام او وے : اِنِّیْ عَبْدُ اللّٰهِ الخ - او دَ دے سره ئے دا هم

او فرمایل چه کله دے د زوړ والي په عمر کښې شي دغه وخت به هم د خلقو سره خبرے کوي - ولته دا خبره د غوږ کولو قابله ده چه د ورکوټوالي په حالت کښې خو خبرے کول یو معجزه اوښه وه - د دے ذکر خو ولته کښې کول مناسب دي لیکن د زوړ والي په وخت کښې خبرے کول خو یو داسے شے دے چه هر یو انسان مؤمن کافر عالِم جاهل ئے کولے شي - نو ولته د دے په طور د یو خاص صفت سره ذکر کول څه معنیٰ لري؟

د دے سوال یو جواب خو دغه دے کوم چه د بیان القرآن په لنډه تفسیر کښې تیر شو چه مقصد په اصل کښې د ورکوټوالي د خبرو بیان کول دي خو د دے سره د لوئے عمر د خبرو کولو ذکر په دے غرض سره اوشو چه د دۀ د ورکوټوالي خبرے به هم داسے نه وي لکه چه بچي ئے په اوّل کښې کوي بلکه د هوښیارانو او عالمانو فصیح او بلیغ کلام به وي - لکه چه د زوړ عمر خلق ئے کوي - او که د حضرت عیسیٰ علیه السلام په واقعه او د دۀ په پوره تاریخ باندے غور اوکړے شي - نو ولته کښې د زوړ والي د عمر د خبرو کولو ذکر د یو بے جُدا لوئے فائدے د پاره کیدے شي - او هغه دا چه د اسلامي او قرآني عقیدے په مطابق باندے حضرت عیسیٰ علیه السلام ژوندے آسمان ته اوچت کړے شوے دے -

د روایاتو نه ثابته ده چه د دۀ د پورته بوتلو په وخت کښې د حضرت عیسیٰ علیه السلام عمر تقریبًا د دیرشو ینځه دیرشو کالو په مینځ کښې وُه چه عین د ځوانۍ زمانه وه - زوړ عمر چه په عربۍ کښې ورته کهل وائي خو د هغۀ په دے دنیا کښې حاصل شوے نه دے - نو په دے وجه په زوړ عمر کښې د خلقو سره خبرے کول خو هله کیدے شي کله چه هغه دوباره دنیا ته تشریف راوړي - نو پس لکه چه څنګه د دۀ د ورکوټوالي خبرے کول معجزه وه دغه شان د دۀ د زوړ والي د عمر خبرے کول هم معجزه ده -

---

قَالَتْ رَبِّ اَنّٰى يَكُوْنُ لِىْ وَلَدٌ وَّلَمْ يَمْسَسْنِىْ بَشَرٌ ؕ

اوئے وے اے ربه د کومه نه به وي ما له ځوئے او ما ته خو لاس نه دے راوړے چا سړي -

قَالَ كَذٰلِكِ اللّٰهُ يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ ۭ اِذَا قَضٰٓى اَمْرًا فَاِنَّمَا

او ئې فرمايل همدغه سې الله تعالىٰ پيدا كوي څهٔ چه غواړي. هركله چه اراده او كړي د يو كار نو دا چه

يَقُوْلُ لَهٗ كُنْ فَيَكُوْنُ ﴿۴۷﴾

وائي هغهٔ ته چه اوشه نو پس هغه اوشي

## لنډ تفسير

حضرت مريم عليها السلام او وې اے ځما پروردګاره څهٔ رنګ به اوشي ځما بچے حال دا دے چه ما لره يو سړي (په طور د كوروالي) لاس نه دے راوړے او يو بچے په جائزه طريقه سره عادةً بغير د سړي نه نه شي پيدا كيدے. نو معلومه نه ده چه هم دغه سې د خدائے په قدرت سره به بچے اوشي يا به ما ته د نكاح حكم كولے شي) الله تعالىٰ ورته (په جواب كښې د فرښتې په واسطه سره) او فرمايل هم دغسې (بغير سړي نه به اوشي (ځكه چه) الله تعالىٰ څهٔ غواړي پيدا كوي (يعنې د څهٔ شي د پيدا كولو د پاره صرف د هغه غوښتنه پوره ده. د څهٔ خاص واسطې يا سبب هغهٔ ته حاجت نيشته او د هغهٔ د غوښتو طريقه دا ده چه) كله د څه شي پوره كول او غواړي نو هغهٔ ته وائي چه (موجود) شه بس هغه شے (موجود) شي او پس كوم شي ته چه بے د اسبابو او واسطو نه د موجود كيدو او وائي نو هغه هم دغه شان (بے د اسبابو او د واسطو نه) موجود شي.

---

وَيُعَلِّمُهُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ وَالتَّوْرٰىةَ وَالْاِنْجِيْلَ ﴿۴۸﴾

او او به خائي دهٔ ته كتاب او د پوهې خبرے او تورات او انجيل.

وَرَسُوْلًا اِلٰى بَنِىْٓ اِسْرَآءِيْلَ ۙ اَنِّىْ قَدْ جِئْتُكُمْ بِاٰيَةٍ مِّنْ

او كړي به دے رسول بني اسرائيلو ته - بے شكه زهٔ راغلے يم تاسو ته د نښنو سره

رَّبِّكُمْ ۙ أَنِّيٓ أَخْلُقُ لَكُم مِّنَ الطِّينِ كَهَيْـَٔةِ الطَّيْرِ

ستاسو د رب د طرف نه چه زه جوړه وم تاسو لوه د خټې نه د ما د غه تشكل

فَأَنفُخُ فِيهِ فَيَكُونُ طَيْرًا بِإِذْنِ اللَّهِ ۖ وَأُبْرِئُ الْأَكْمَهَ

بیا به پوکے کیښے پو کړم نو شي به هغه الوتونکے مارغه د الله په حکم سره او خه کوم مادرزاد ړو ند

وَالْأَبْرَصَ وَأُحْيِي الْمَوْتَىٰ بِإِذْنِ اللَّهِ ۖ وَأُنَبِّئُكُم بِمَا

او برګی لوه او ژوندی کوم مړی لوه د الله په حکم سره - او خبروم تاسو ته کوم

تَأْكُلُونَ وَمَا تَدَّخِرُونَ فِي بُيُوتِكُمْ ۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ

چه خورئ تاسو او کوم چه ساتئ تاسو په خپلو کورونو کښے - په دے کښے یو ره

لَآيَةً لَّكُمْ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ (٤٩) وَمُصَدِّقًا لِّمَا

نښے دی تاسو ته که تاسو یقین لرئ - او رښتو نے کوم د

بَيْنَ يَدَيَّ مِنَ التَّوْرَاةِ وَلِأُحِلَّ لَكُم بَعْضَ الَّذِي

ځان نه مخکښے کتاب لوه چه تورات دے - او د دے د پاره چه حلال کړم په تاسو بعضے هغه

حُرِّمَ عَلَيْكُمْ ۚ وَجِئْتُكُم بِآيَةٍ مِّن رَّبِّكُمْ فَاتَّقُوا

څیزونه چه حرام دی په تاسو او راغلے یم تاسو ته د نښو سره ستاسو د رب نه - پس د الله نه

اللَّهَ وَأَطِيعُونِ (٥٠) إِنَّ اللَّهَ رَبِّي وَرَبُّكُمْ فَاعْبُدُوهُ ۗ

او یریږئ او زما خبره او منئ - بے شکه الله دے رب زما او رب ستاسو پس د هغه بندګی کوئ

هَٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيمٌ (٥١)

دا لار د نیغه د

# لنډ تفسیر

داواے مریم (دې نیک بخت ښځې به دا فضیلتونه وی چه) الله تعالیٰ به دهٔ ته
(زده کړی (آسمانی) کتابونه او د پوهے خبرے او (خاص) تورات او انجیل او دهٔ لره
به (لیږلو) بنی اسرائیلو ته (پیغمبر جوړ کړی او د دے مضمون سره) او لیږدی چه (اِنِّیْ قَدْ جِئْتُكُمْ
۔۔ تر مُسْتَقِیْم پورے یعنی) ما تاسو خلقو ته (په خپل نبوت) پوره دلیلونه راوړی دی
هغه دا چه زهٔ ستاسو د (یقین کولو) پاره د خټے نه یو داسے شکل جوړه وم لکه د
مارغهٔ د شکل په شان بیا په دے (جوړ شوی شکل) کښے دننه پو کے کوُم
چه په هغے سره به ورته دا په رشتیا سره روح لرونکے مارغه جوړ شی د خدائے
په حکم سره (یوه معجزه خو دا شوه) او زهٔ بښه کوم هغه د مورنه پیدا شوی ړندلره
او د برګی بیمار لره او ژوندی کومه مړو لره د خدائے په حکم سره (دا دویمه دریمه
معجزه شوه) او زهٔ تاسو ته خبر ورکوم هغه چه تاسو یه کورونو کښے خوړلی دی او هغه چه
د په کورونو کښے تاسو) ایخودی دی (دا څلورمه معجزه شوه) بے شکه په دے (معجزو
ذکر شوو) کښے (زما د پیغمبرئ) پوره دلیل دے ستاسو د پاره که تاسو ایمان
راوړل غواړئ۔ او زهٔ په دے طور سره راغلے یم چه رښتونے کوم هغه کتاب چه زما
نه وړاندے رانازل شوے دے یعنی تورات او د دے د پاره راغلے یم چه پتاسو خلقو
بعضے داسے څیزونه حلال کړم چه (په شریعت د موسیٰ علیه السلام کښے) په تاسو حرام
شوی وُه (پس د دوی حرامولے په زما په شریعت کښے منسوخ وی) او (زما دا دعوه
د منسوخ کولو بے دلیله نه ده بلکه ما ثابته کړے ده چه) ما تاسو ته (د نبوت)
دلیل راوړے دے (او دا د نبوت قول زما په دعوه د نسخ کښے دلیل دے) حاصل دا
چه (کله زما نبی کیدل په دلیلونو سره ثابت شو نو زما د خودنے موافق) تاسو
خلق د الله تعالیٰ (د حکم د مخالفت) نه (ویریږئ او (د دین په باره کښے) زما خبره او منئ
راو نغوږه زما د دینی تعلیم دادے چه) بے شکه الله تعالیٰ زما رب دے او ستاسو هم رب دے
(دا خو نغوږدے د عقیدے د مکمل کیدو) پس تاسو خلق د هغه (رب) عبادت کوئ
(دا نغوږه شو د عمل د کامل کیدو) بس دا دهٔ لار برابره (د دین چه د عقیدے او د
عملونو دواړو تکمیل (مکمل والی) په کښے او شه په د سره نجات او الله ته رسیدل حاصلیږی۔

# معلومات او مسئلے

مسئله: دَ موږ ځ شکل جوړه ول تصویر وه چه په دغه شریعت کښې جائز وه۔ زموږ په شریعت کښې اوس دَ دے جائز والے منسوخ شوے دے یعنې اوس تصویر جوړه ول جائز نه دی۔

فَلَمَّآ اَحَسَّ عِيسٰى مِنْهُمُ الْكُفْرَ قَالَ مَنْ اَنْصَارِىٓ

پس کله چه معلوم کړو عیسیٰ دَ بنی اسرائیلو نه کفر او ئے وے څوک دے چه مدد گار دې ما لره

اِلَى اللّٰهِ ۭ قَالَ الْحَوَارِيُّوْنَ نَحْنُ اَنْصَارُ اللّٰهِ ۚ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ ۚ

دَ الله په لاره کښې او وے حواریانو چه موږ یو مدد گار دَ الله۔ موږ یقین راوړے دے په الله۔

وَاشْهَدْ بِاَنَّا مُسْلِمُوْنَ ﴿۵۲﴾ رَبَّنَآ اٰمَنَّا بِمَآ اَنْزَلْتَ وَ

او ته گواه شه چه موږ حکم قبول کړو۔ اے ربه موږ یقین اوکړو په هغه شی چه تا نازل کړو او

اتَّبَعْنَا الرَّسُوْلَ فَاكْتُبْنَا مَعَ الشّٰهِدِيْنَ ﴿۵۳﴾

موږ تابع شو دَ رسول پس ته او لیکه موږ ه په منو نکو کښې۔

# لنډ تفسیر

دغرض دا دے چه دَ دغې ذکر شوی زیری نه پس حضرت عیسیٰ علیه السلام په دغه شان سره پیدا شه۔ او دَ بنی اسرائیلو سره ئے هم په دغه طریقه خبرے اوشوے او معجزے ئے ښکاره کړے مگر بنی اسرائیل دَ دهٔ دَ نبوت نه منکر پاتے شو، پس هر کله چه حضرت عیسیٰ علیه السلام دَ دوی انکار او لید او دَ انکار کولو سره سره دهٔ ته په آزار رسولو هم دَرپسے شو،

او اتفاقاً څه خلق داسې وو چه ملا ئې وتړله حواریانو ته ئې ورته وې) نو دغه حواریانو ته) دوئ او فرمائیل څوک داسې سړي به هم وي چه (په حق دین کښې د مخالفت کونکو او انکار کونکو په مقابله کښې) زما مددګار شي د الله د پاره (چه په دې سره د دین په دعوت کښې ما ته ضرور اوږه ورکوي) حواریانو او وې چه مونږ یو مددګار د الله (د دین) مونږ په الله تعالیٰ باندې (ستا د دعوت مطابق) ایمان راوړو او ته په دې (خبره) ګواه شه چه مونږ (د الله تعالیٰ او ستا) فرمانبرداریو (بیا د زیات اهتمام او مضبوطیا د پاره ئې الله تعالیٰ ته مناجات اوکړو چه) اې زمونږ ربه مونږ ایمان راوړو په هغه څیزونو یعنې په هغه احکامو) چه تا نازل کړي دي او فرمانبرداري اختیار کړه مونږ د (دې) رسول پس (زمونږ ایمان قبول کړې) مونږ د هغه خلقو سره او لیکه چه (د دې ذکرشوو خبرو) تصدیق کوي (یعنې د کاملو مؤمنانو په ټولی کښې مونږ هم شمار کړه).

# معلومات او مسئلے

قَالَ الْحَوَارِيُّوْنَ: لفظ د حواری د حَوَر نه جوړ دې چه معنیٰ ئې په لغت کښې سپینوالے دے۔ په اصطلاح کښې د حضرت عیسیٰ علیه السلام مخلصو ملګرو ته د دوي د اخلاص او د صفائی د زړه په وجه سره یا د دوي د سپینو جامو په وجه سره د حواری لقب ورکړې شوې. لکه د نبي کریم صلی الله علیه و سلم ملګرو ته چه د صحابي لقب ورکړې شوے دے۔

بعض تفسیرو لیکونکو د حواریانو شمار دولس خودلے دے۔ او کله لفظ د حواری مطلق د مددګار په معنیٰ کښې هم استعمالیږي۔ په دې معنیٰ سره په یو حدیث کښې ارشاد فرمائي: چه د هر نبي حواری یعنې مخلص ملګری وي زما حواری زبیرؓ دے (تفسیر قرطبی)

**ضروري فائده** په دې ایات کښې فرمایلیدي چه عیسیٰ علیه السلام ته هر کله د خلقو کفر او مخالفت معلوم شه نو دغه وخت د مددګارانو په تلاش کښې شه او ئې فرمایل: مَنْ اَنْصَارِیْٓ په اول کښې د نبوّت

د کار او دعوت شروع کولو په وخت کښې يوا ځې په حکم د عمل کولو د پاره پورته شوے وُو - اول د خپل پارټۍ يا جماعت جوړولو په فکر کښې نه وُو پريوتے - خو کله چه ضرورت پيښ شه نو يو جماعت شان جوړ شه چه د دے ته فکر او شي نو هر يو کار هم د غسے قصد او همت غواړي -

---

ع ۱۳ وَمَكَرُوا وَمَكَرَ اللّٰهُ ۖ وَاللّٰهُ خَيْرُ الْمٰكِرِيْنَ ﴿۵۴﴾ اِذْ قَالَ

او مکر او کړو دے کافرانو او مکر او کړو الله - او د الله تدبير د ټولو نه غوره دے - هغه وخت چه او وے

اللّٰهُ يٰعِيْسٰٓى اِنِّىْ مُتَوَفِّيْكَ وَرَافِعُكَ اِلَىَّ وَمُطَهِّرُكَ

الله اے عيسیٰ زه اخلم تا لره او پورته کوم دے خپل طرف ته او پاکومه تا لره

مِنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَجَاعِلُ الَّذِيْنَ اتَّبَعُوْكَ فَوْقَ

د کافرانو نه - او ساتم هغو لره چه ستا تابع دي غالب په هغو

الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ ۚ ثُمَّ اِلَىَّ مَرْجِعُكُمْ

خلقو چه انکار کوی تر قيامت د ورځے پورے - بيا ما ته ستا سو د ټولو راتلل دي بيا به

فَاَحْكُمُ بَيْنَكُمْ فِيْمَا كُنْتُمْ فِيْهِ تَخْتَلِفُوْنَ ﴿۵۵﴾

فيصله اوکړم په تا سو کښے په کومه خبره کښے چه تا سو جګړه کوله -

## لنډ تفسير

او د غے خلقو د چه په بنی اسرائيلو کښے د دۀ د نبوت نه منکر وُو د دۀ لره د هلاک کولو او دۀ ته د ضرر رسولو د پاره) پټه تدبير وُنه او کړه (نو په مکر او حيله سره ئے د ے ګرفتار کړو او سولۍ کولو ته ئے تيار شو) او الله تعالیٰ (د دۀ لره د محفوظ

ساتلو دپاره ٥) پټه تدبير اوکړه (چه دا دے د حقيقت وغې خلقوته هم پته اونه لګيده ځکه چه دغه مخالفينو نه پوسرې لره د حضرت عيسىٰ عليه السلام په شکل جوړ کړے شهٔ او حضرت عيسىٰ عليه السلام ئے آسمان ته اوچت کړهٔ چه پدے سره دے محفوظ پاتے شه او هغه هم شکل ئے په سولی کړے شه. دے خلقوته د دے تدبيرهيڅ څهٔ پته اونه لګيده نو په دفع کولو بهٔ ئے څهٔ قدرت راغلے وهٔ) او الله تعالیٰ د ټولو تدبيرکوونکو نه ښهٔ دے (ځکه چه د نورو تدبيرونه کمزورې وي اوکله بے وخته او بے موقع هم وي او د الله تعالیٰ تدبيرونه قوی هم وي او هميشه د خير او حکمت موافق وي او دا تدبير الله تعالیٰ په هغه وخت کښے اوفرمايه) کله چه الله تعالیٰ (حضرت عيسىٰ عليه السلام ته چه د ګرفتارئ په وخت کښے پريشانه او په تو د ډکښے شه) اوفرمايل اے عيسىٰ (هيڅ غم مه کوه) بے شکه زهٔ تا لره په خپل مقرر وخت او طبعی مرګ سره) وفات کوونکے يم (پس چه ستا د پاره طبعی مرګ مقرر دے نو دا ښکاره خبره ده چه د دے دشمنانو په لاسونو په سولئ د روح ورکولونه به محفوظ اوسے) او (فی الحال) زهٔ تا لره خپل (اوچت عالم) طرف ته اوچتوم او تا لره د دے خلقو (د تهمت) نه پاکوونکے يم کوم چه (ستانه) منکر وي او کوم خلق چه ستا خبره منونکې دي دوی لره غالب ساتونکے يم په هغې خلقو چه (ستانه) منکر وي د قيامت د ورځے پورے (اوکه دا وخت د دے ملکو بينوغلبه او قدرت دے) بيا (کله چه قيامت راشي هغه وخت) به ما طرفته وي د ټولو واپسی (د دُنيا او د برزخ نه) پس زهٔ به (هغه وخت) ستاسو (ټولو) په مينځ کښے (عملی) فيصله اوکړم په هغه کارونو کښے په کوموکښے چه تاسو اختلاف کاوه (چه په دے ټولو کښے مقدمه د عيسىٰ عليه السلام هم ده)

## په آيات کښے د ضروري الفاظو تشريح

د دے آيات په الفاظو او په معنو کښے بعضے فرقو اُدلون بدلون (يعنی د ځان نه غلط تاويل) کړے دے. چه د قول امت خلاف د حضرت عيسیٰ عليه السلام د ژوندا او په آخره زمانه کښے د راکوزيدو نه منکر دي۔

وَاللّٰهُ خَيْرُ الْمٰكِرِيْنَ: لفظ دَمکر په عربۍ ژبه کښې باریك اوپټ تدبیرته ویلے شي نو که دَخه مقصد دَپاره وی نو خه دے او که دَ بد مقصد دَپاره وی نو بد دے. په دے وجه ئې د: ولا یحیق المکر السیّئ کښې دَ مکر سره دَ «سیّئ» قید لګولے دے. په اردو ژبه او محاوره کښې مکر صرف دَ سازش او ناکاره تدبیر او حیلے دَپاره استعمالیږی نو په عربي محاوره دِے دَ دے شبه نه شي کولے. په دے وجه ئې دلته خدائے پاك لره خیرالماکرین: ویلے دے. مطلب دا دے چه یهودو دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام خلاف قسم قسم سازشونه او پټ تدبیرونه شروع کړه. تر دے چه دَ بادشاه په غوږ کښې ئې دا خبره واچوله چه دا سړے (معاذالله) ملحد دے تورات بدلوی لی غواړی ټول خلق بَددینه کوی. نو هغه دَ مسیح علیه السلام دَ ګرفتار دَ ئې حکم ورکړ و. هلته دا کیدَه او دیخوا الله تعالیٰ باریک اوپټ تدبیر دَ دے دَ توڼه دَپاره (یعنے دَ دوی دَ دے تدبیر دَ ناکام کولو دَپاره) کولو. چه دَ دے ذکر په راتلونکی ایات کښې دے (تفسیرعثمانی)

اِنِّيْ مُتَوَفِّيْكَ: دَ لفظ دَمُتَوَفِّي مصدر: توفّی: او ماده ئې: وَفْيٌ: ده. دَ دے اصلی معنیٰ دَ عربي لغت په اعتبار سره: پوره پوره اَخستل بوی. وفاء، ایفاء، استیفاء دَ دے معنی دَپاره ویلے شي. دَ: توفّی: هم اصلی معنی دَ پوره پوره اَخستو ده. ټول دَ عربي ژبے دَ لغت کتابونه په دے ګواه دی. او چونکه دَ مرګ په وخت کښې انسان خپله مقرره نیټه پوره کوی. او دَ خدائے ورکړے روح پوره پوره اَخستے شي. په دے مناسبت سره دا لفظ په طور دَ کنایه دَ مرګ په معنیٰ کښې هم استعمالیږی. او دَ مرګ یوه سپکه شان نمونه روزانه دَ انسان خوب دے. دَ دے دَپاره هم په قرآن کریم کښې دَ دے لفظ استعمال شوے دے: اَللّٰهُ يَتَوَفَّى الْاَنْفُسَ حِيْنَ مَوْتِهَا وَالَّتِيْ لَمْ تَمُتْ فِيْ مَنَامِهَا: چه دَ دے ترجمه دا ده چه: الله اخلی روحونه دَ دوی دَ مرګ په وخت کښې او دَچا چه مرګ نه وی راغلے دَ دوی دَ خواب په وخت کښې:

حافظ ابن تیمیهؒ په الجواب الصحیح ص۸۳ ج۲ کښې فرمائی: اَلتَّوَفِّيْ فِيْ لُغَةِ الْعَرَبِ مَعْنَاهَا الْقَبْضُ وَالْاِسْتِيْفَاءُ وَذٰلِكَ ثَلٰثَةُ اَنْوَاعٍ اَحَدُهَا التَّوَفِّيْ فِي النَّوْمِ وَالثَّانِيْ تَوَفِّي الْمَوْتِ وَالثَّالِثُ تَوَفِّي الرُّوْحِ وَالْبَدَنِ جَمِيْعًا. (ترجمه: په عربي لغت کښې دَ توفی معنیٰ ده قبض کول

او پوره پوره اغستل او دا په درے قسمه دی یو وفات کول دخواب دی دویم د مرګ او دریم قبض کول دی د روح او جُوشے دوا په و) -

او په کلیات د ابوالبقاء کښے دی: "اَلتَّوَفِّیْ اَلْاِمَاتَةُ وَقَبْضُ الرُّوْحِ وَعَلَیْهِ اِسْتِعْمَالُ الْعَامَّةِ اَوِالْاِسْتِیْفَاءُ وَاَخْذُ الْحَقِّ وَعَلَیْهِ اِسْتِعْمَالُ الْبُلَغَاءِ" (ترجمه: عام خلق د توفی معنی مرګ او روح قبض کول وائی - او بلیغان او پوهان ئے معنی پوره اغستل او حق اغستل وائی)

په دے وجه په ذکر شوی ایات کښے د لفظ د متوفیک ترجمه اکثرو حضراتو په پوره اغستو سره کړے ده - لکه چه په ترجمه د شیخ الهندؒ کښے ذکر ده - د دے ترجمے په لحاظ سره مطلب ښکاره دے چه زهٔ تا لوه د یهودو په لاس کښے نه پاتے کوم - بلکه تا په خپل لاس کښے اخلم چه طریقه به ئے داوی چه تا لره به آسمان ته اوچت کړم -

او بعض حضراتو د دے ترجمه په مرګ ورکولو سره کړے ده لکه چه د بیان القرآن په لمنه تفسیر کښے بره ذکر ده او دا ترجمه د قرآن د تفسیر کونکی حضرت عبد الله ابن عباسؓ نه په صحیح سند ونو سره نقل شوے ده - لیکن د دے سره دا هم نقل شوی دی - چه معنیٰ د ایات دا ده چه الله تعالیٰ دغه وخت کله چه یهود د دهٔ په قتل کولو پسے ورپسے شوی وُو - د دهٔ د تسلیٰ د پاره ئے دوه لفظو نه ارشاد او فرمایل - یو دا چه ستا مرګ د دوی په لاسونو د قتل په صورت کښے نه دے بلکه د طبعی مرګ په صورت کښے به وی - دویم دا چه دغه وخت د دے خلقو د پنجے نه د خلاصولو د پاره به موږ دا طریقه اوکړو چه تا به خپل طرف ته اوچت کړو - دا تفسیر د حضرت ابن عباسؓ نه نقل شوے دے -

په تفسیر دُرّ منثور کښے د حضرت ابن عباسؓ دا روایت په دے شان سره نقل شوے دے:

اَخْرَجَ اِسْحٰقُ بْنُ بِشْرٍ وَّابْنُ عَسَاکِرَ مِنْ طَرِیْقِ جَوْهَرَ عَنِ الضَّحَّاکِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ فِیْ قَوْلِهٖ تَعَالٰی: اِنِّیْ مُتَوَفِّیْکَ وَرَافِعُکَ اِلَیَّ یعنی

اسحق بن بشر او ابن عساکر په روایت د جوهر د ضحاک نه د حضرت ابن عباسؓ نه د ایات: انی متوفیک ورافعک الیّ: په تفسیر کښے دا لفظ نقل کړی دے چه زهٔ

رَا فِعُكَ ثُمَّ مُتَوَ فِّيكَ فِيْ اٰخِرِ الزَّمَانِ"
(درّمنثور ص۳۶ ج ۲)

به تالوه خپل طرف ته او چت کړم بیا به وے په اخره زمانه کښے په طبعي مرګ سره وفات کړم"

دَ دے تفسیر نچوړ دا دے چه دَ توفّيٰ معنيٰ مرګ دے مګر په الفاظو کښے وړاندے والے اور وستو والے دے - دَ رَافِعُكَ وا قع کیدل به وړومبي وي اودَ مُتَوَفِّيكَ به وروستو وي - اودلته دَ مُتَوَفِّيكَ په مخکښے ذکر کولو کښے حکمت او مصلحت دے تولے معاملے طرف ته اشاره کول دي چه وړاندے کیدونکے ده - یعنے دا ئمان طرف ته را بلل دَ همیشه دَ پاره نه دي دَ څو ورځو دَ پاره دي او بیا به ته دے دُنیا ته راځے او په دشمنانو به فتح مومے - او بیا به په طبعي طورسره ستا مرګ وا قع شي - په دے شان سره دوباره دَ آسمان نه نازلیدل او په دنیا دَ فتح موندونه پس ورلره دَ مرګ رَا تلل یو معجزه هم وه او دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام عزت او اکرام پوره کول هم - او دا رنګ په دے کښے دَ عیسایانو دَ الوهیّت (خدائیي) دَ عقیدے باطل والے هم وَه - کهٔ دا سے نه وے نو دوی د آسمان ته په ژوندي تللو سره دَ دوي دا باطله عقیده پخیده - چه دے هم دَ الله تعالیٰ په شان حيّ قیّوم دے - په دے وجه ئے اول دَ مُتَوَفِّيكَ لفظ اوفرمایه دَ دوي تهول غلط خیالات ئے باطل کړهٔ - بیائے خپل طرفته دَ بللو ذکر اوفرمایه -

او حقیقت دا دے چه دَ کفارو او مشرکانو مخالفت او دشمنی دَ پیغمبرانو علیهم السلام سره همیشه راروانه ده - او عادت دَ الله تعالیٰ دا دے - چه کله دَ یو نبي قوم په خپلو فکرونو او ضدونو باندے کلك شي - دَ پیغمبرخبره نه مني او دَ دوي دَ معجزو لیدلو نه پس هم ایمان رانه وړي - نو په دوه ؤو صورتونو ؤ سره یو صورت شوے دے - یائے په دے قوم دَ آسمان نه عذاب را لیږلے دے تهول ئے فنا کړي دي - لکه عادیان، ثمودیان، او قوم دَ لوط علیه السلام او قوم دَ صالح علیه السلام سره شویدي - یا بیا دا صورت شوے دے چه په خپل پیغمبر ئے دَ وځے دارالکفر نه هجرت کړے دے بل طرفته ئے لیږلے دے او هلته ئے ده له دومره طاقت او شان ورکړے دے چه بیائے په دے خپل قوم باندے فتح موندلے ده -

حضرت ابراهیم علیه السلام د عراق نه هجرت اوکړه شام ته راغلو حلته ئې پناه واخسته - دغه شان حضرت موسیٰ علیه السلام د مصر نه هجرت اوکړه شام ته ئې تشریف راوړو - او په آخرکښې خاتم الانبیاء صلی الله علیه وسلم د مکې نه هجرت اوکړه مدینې طیبې ته ئې تشریف راوړو - بیائې د هغه ځائې نه حمله اوکړه مکه ئې فتح کړه - د یهودو د پنجې نه د بچ کولو د پاره دا آسمان ته پللم هم په حقیقت کښې یو قسم هجرت وه - چه د وینه پس به دے دوباره دنیا ته راشي په یهودو به مکمله فتح حاصله کړي -

باقي شوه دا معامله چه د دۀ دا هجرت د ټولو نه جُدا د آسمان طرف ته ولې دے؟ نو الله تعالیٰ د دے په باره کښې په خپله فرمایلي دي - چه د دۀ مثال د آدم علیه السلام په شان دے - ځنګه چه د آدم علیه السلام پیدائش د عام مخلوقات د پیدائش د طریقې نه مختلف بغیر د مورو پلار نه دے - دغه شان د دۀ پیدائش د عام انسانانو د پیدائش نه په مختلف صورت سره او شوه - او مرګ ئې هم په نااشنا او عجیبه طریقه سره په سوئو کلونو پس دنیا ته به راشي او عجیبه به وي - نو په دے کښې څۀ تعجب دے چه د دۀ هجرت دے هم په دا سې عجیبه طریقه سره وي -

هم دا عجیبه قدرتونه د ناپوهو نصاراؤ د پاره په دے عقیده کښې د اخته کید وسبب جوړ شو - چه دۀ ته ئې خدائې ویل شروع کړه - حال دا دے چه که د دے عجائبو ته په هر قدم او هر شي باندې غور اوکړے شي - نو په هر یو واقعه کښې د دۀ بنده والي او بندګي او د الله تعالیٰ د حکم تابعدار کیدل او د دۀ د بشریې خوبونو دلیلونه دي - او په دے وجه په هر دا سې موقعه باندې قرآن حکیم د دۀ د خدائې د عقیدې باطله ولو ته اشاره کړے ده - آسمان ته په اوچتولو سره داشبه ډیره قوي کیدې په دے وجه پسې مُتَوَفِّيكَ: اول بیان کړۀ د دے شبه زیلې ئې بریکړے - د دے نه معلومه شوه چه په دے آیات کښې د یهودو رد خو خاص مقصود دے - چه یهودو کوم چه د حضرت عیسیٰ علیه السلام د قتل کولو او د سولۍ کولو قصد کا وۀ الله تعالیٰ د دوی ارادے په خاورو کښې ملاؤ کړے - د دے وړاندې والي وروستو والي د الفاظو په

په ذریعه د دے سوره د نصاراؤ په عقیده هم رد او شه چه دے خدائے نه دے چه د مرګ نه خلاص دے. بلکه یو وخت به داسے راځی چه دے به په ځمکه کښے هم مری.

امام رازیؒ په تفسیر کبیر کښے فرمائی چه په قرآن کریم کښے دغه شان وړاندے وروستو والے د دغه شان مصلحتو نو د پاره ډیر راغلے دے چه کوم واقعه وروستو کیدونکے وه هغه ئے اول او اوله واقعه ئے وروستو فرمائیلے وه - (تفسیر کبیر ص۴۸۱ ج ۲)

؛ وَرَافِعُكَ إِلَيَّ : د دے مطلب بنکاره دے چه عیسیٰ علیه السلام ته خطاب شوے دے ورته ویلی شوی دی چه تا خپل طرفته پورته کوم - او هر څوک پوهیږی چه د عیسیٰ نوم صرف د روح نه دے بلکه د روح او جسم دواړو مجموع دے - نو د عیسیٰ د پورته کولو نه دا مطلب اخستل چه صرف روح ئے پورته شوے دے جسمانی نه دے پورته شوے بالکل غلط دے - پاتے شوه دا خبره چه رفع کله د مرتبے پورته کولو د پاره هم استعمالیږی لکه چه په قرآن کریم کښے دی: رَفَعَ بَعْضَهُمْ فَوْقَ بَعْضٍ دَرَجَٰتٍ ؛ او : يَرْفَعِ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا مِنكُمْ وَالَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ؛ وغیره آیاتو نو کښے ذکر دی -

نو دا بنکاره خبره ده چه لفظ د ؛ رفع ؛ د درجه په معنیٰ کښے استعمالول یو مجاز دے چه د قرینو په بناء سره په ذکر شوو آیاتو نو کښے شوے دے - او دلته حقیقی معنیٰ پاتے کول د مجازی معنیٰ اخستلو څه وجه نیشته - د دینه علاوه دلته ئے د لفظ ؛ رفع ؛ سره لفظ د ؛ إِلَيَّ ؛ استعمال کړو د دے مجازی معنیٰ احتمال ئے بالکل ختم کړے دے - په دے آیات کښے ئے رَافِعُكَ إِلَيَّ : او فرمائیل - او د سورة نساء په آیات کښے کوم ځائے چه د یهودو د عقیدے ذکر شوے دے هلته هم داسے فرمائی : وَمَا قَتَلُوهُ يَقِينًا بَل رَّفَعَهُ اللَّهُ إِلَيْهِ؛ یعنے یهودو یا نو یقیناً چه حضرت عیسیٰ علیه السلام نه دے قتل کړے بلکه هغهٔ لره الله تعالیٰ خپل طرف ته اوچت کړے دے. خپل طرف ته اوچتول د روح سره د جوثے نه ژوندے اوچتولو ته ویلے شی -

تر دے ځائے پورے د الفاظو د آیات تشریح اوشوه -

پہ ذکر شوی ایاتو کښې د حضرت عیسیٰ علیه السلام سره د الله پاک پنځه وعدے

په دے ایاتو کښې الله تعالیٰ د یهودو په مقابله کښې د حضرت عیسیٰ علیه السلام سره پنځه وعدے فرمایلے دی -

**اوله وعده:** د تعلو نه اوله وعده دا وه چه د ده مرګ به د یهودو د لاسونو د قتل په ذریعه نه وی - بلکه په طبعی طور سره به په خپله مقرره نیټه وی او دغه مقرر وخت به قیامت ته نږدے راشی - کله چه عیسیٰ علیه السلام د اسمان نه زمکے ته نازل شی - لکه چه په صحیح او متواترو احادیثو کښې د دے تفصیل موجود دے - او څه حصه به ئے وړاندے راشی -

**دویمه وعده:** فی الحال عالم بالا ته د پورته کولو وه - دا ئے په هغه وخت کښې پوره کړه - چه د دے د پوره کولو خبر د سورت نسآء په ایاتو کښې دا سے ورکړے شوے دے: وَمَا قَتَلُوهُ يَقِينًا بَلْ رَّفَعَهُ اللَّهُ إِلَيْهِ "یقیناً ده لره یهودو نه دے قتل کړے بلکه الله تعالیٰ خپل طرفته اوچت کړه"۔

**دریمه وعده:** د دے دشمنانو د تهمتونو نه د پاکولو وه: وَمُطَهِّرُكَ مِنَ الَّذِينَ كَفَرُوا: او دا دا سے پوره شوه چه خاتم الانبیاء صلے الله علیه وسلم تشریف راوړو او د یهودو ټول غلط الزامونه ئے صفا کړه - مثلاً یهودو د حضرت عیسیٰ علیه السلام بغیر د پلار نه د پیدا کید وپه وجه سره د ده په نسب باندے طعن کاوه - قرآن کریم دا الزام دا سے صاف کړو چه دا سے ئے او فرمایل چه دے محض د الله په قدرت او د هغه په حکم سره بے پلاره پیدا شه - او دا څه د تعجب خبره نه ده د حضرت آدم علیه السلام پیدائش د ده نه زیات د تعجب شے دے - چه د مور او پلار دواړو نه بغیر پیدا شه -

یهودیانو په حضرت عیسیٰ علیه السلام د خدائے د دعوے الزام لګاوه قرآن کریم په ډیرو ایاتونو کښې د حضرت عیسیٰ علیه السلام د دے په خلاف د خپلے بندګئ او بنده والی او بشروالی اقرار نقل کړے دے -

**څلورمه وعده:** په: وَجَاعِلُ الَّذِينَ اتَّبَعُوكَ: کښې د ده چه ستا تابعداران به ستا په منکرانو باندے تر قیامته پورے غالب ساتلے شی - دا وعده دا سے پوره شوه چه دلته د تابعدارانو نه مراد د حضرت عیسیٰ علیه السلام د نبوت عقیده لرل

او اقرار مراد دے - د دۀ په ټولو احکامو باندے ایمان او عقیده شرط نه وه - نو په دے شان سره نصارا او مسلمانان دواړه په دے کښې داخل شو - چه دوی د حضرت عیسیٰ علیه السلام د نبوت او رسالت عقیده لری - دا دویمه خبره ده چه صرف دومره عقیده د اٰخرت د نجات د پاره پوره نه ده - بلکه د اٰخرت نجات په دے باندے موقوف دے چه د عیسیٰ علیه السلام په ټولو احکامو باندے عقیده او ایمان اولری - او د حضرت عیسیٰ علیه السلام په قطعی او ضروری احکامو کښې یو دا هم وه چه د هغه نه پس په خاتم الانبیآء صلی الله علیه وسلم به هم ایمان راوړی - نصاراؤ خو پرے عقیده او ایمان اختیار نه کړه - په دے وجه د اٰخرت د نجات نه محرومه پاتے شو - مسلمانانو په دے باندے هم عمل اوکړو ځکه د اٰخرت د نجات لائق شو - لیکن په دنیا کښې په یهودو باندے د غالب پاتے کیدو وعده صرف د عیسیٰ علیه السلام په نبوت باندے موقوفه وه - دغه د دنیا غلبه نصاراؤ او مسلمانانو ته په مقابله د یهودو کښې همیشه حاصل شوے ده - او یقیناً د قیامته پورے به وی -

د کله نه چه الله تعالیٰ دا وعده فرمایلے وه د هغه وخت نه تر نننه پورے همیشه دا لیدلے شوے ده چه د یهودو په مقابله کښې همیشه نصارا او مسلمانان غالب راغلی دی - د دوی حکومتونه په دُنیا کښې قائم شوی او پاتے شوی دی -

**د اسرائیلو د موجوده حکومت حقیقت د دے نه په دے خۀ شُبه نشی کیدے**

ځکه چه اول خو د دے حکومت حقیقت د دے نه سِوا نۀ دے چه دا د روس او یورپ د نصاراؤ شریک چاؤنړۍ ده - چه دوی د مسلمانانو خلاف قائمه کړے ده - د یوے ورځے د پاره هم که د روس او امریکے حکومت او د نورو ملکونو یورپ حکومتونه خپل لاس د دوی د سرونه اوچت کړی نو د دنیا د نقشے نه به د دوی وجود وران شوے ټول دُنیا او وینی - په دے وجه د یهودو یا اسرائیلو دا حکومت د حقیقت پیژندُونکو خلقو په نظر کښې یو مجاز کیدے شی د دینه زیات ئے هیڅ حقیقت نیشتے - او که بالفرض دا د دوی خپل حکومت هم اومنلے شی نو هم د نصاراؤ او مسلمانانو د مجموعے په مقابله کښې د دوی د مغلوب او مقهور (ټهُوُږَلی) کیدو نه یو د عقل خاوند انکار نۀ شی کولے - او که دا هم نظر انداز کړے شی - نو قریبا

قیامت ته د یو څو ورځو د پاره خو د یهودو د غلبې خبر په خپله په اسلام کښې په متواترو روایتونو سره موجود دے. که د دے دنیا اوس زیات نور باقي پاتې کیدل نه وي او قیامت نزدے شوے وي نو د دے حکومت کیدل هم د اسلامي روایاتو نه خلاف نه دي. او دا سے د یو څو ورځو سټورشغا ب ته سلطنت یا حکومت نه شي وئیلیکیدے.

**پینځمه وعده:** د قیامت په ورځ د دے مذهبي اختلافونو د فیصلے کولو دغه وعده به هم په خپل وخت خامخا پوره شي لکه چه په آیات کښې ارشاد دے: ثُمَّ اِلَیَّ مَرْجِعُکُمْ فَاَحْکُمُ بَیْنَکُمْ؛

## مَسْئله دَ حَیَات (ژوند) او نزول (راکوزیدل) دَ عیسیٰ علیه السلام

په دنیا کښې صرف د یهودو دا وئیناده چه عیسی علیه السلام قتل شوے او په سولۍ شوے دفن شوے دے او بیا ژوندے شوے نه دے. او د دوي د دے خیال حقیقت قرآن کریم د سورت نساء په آیات کښې ښکاره کړے دے او په دے آیات کښې هم په: وَمَکَرُوْا وَمَکَرَ اللّٰهُ؛ کښې دے طرفته اشاره شوے ده چه الله تعالیٰ د حضرت عیسیٰ علیه السلام د دشمنانو مکر او تدبیر په خپله د دوي طرف ته واپس کړو. چه کوم یهودیان د حضرت عیسیٰ علیه السلام د قتل کولو د پاره مکان ته دننه تللي وو په هغوي کښې د یو سړي شکل او صورت بدل کړے شه بالکل د حضرت عیسی علیه السلام په صورت جوړ شه او حضرت عیسی علیه السلام ژوندے آسمان ته اوچت کړے شه. د آیات الفاظ دا دي:

وَمَا قَتَلُوْهُ وَمَا صَلَبُوْهُ وَ لٰکِنْ شُبِّهَ لَهُمْ، — نه دوي عیسیٰ علیه السلام قتل کړو او نه ئے په سولۍ کړو لیکن د الله تدبیر دوي په شبه کښې واچول چه د خپل سړي په قتلو لو خوشحاله شول

د دے زیات تفصیل به په سورت نساء کښې راشي.

د نصاراؤ وئینا دا وه چه عیسیٰ علیه السلام قتل او په سولۍ خو شه مګر بیا دوباره ژوندے کړے شه او آسمان ته پورته کړے شه. دے ذکر شوي آیات

د دوی دغه غلط خیال هم رد کړو - او دائې اوخودل چه لکه څنګه یهودیانو خپل سرے قتل کړو خوشحالي ئې کوله نو دغسے عیسایان په دے ډوکه شو چه دا قتل شوے عیسیٰ علیه السلام دے نو په دے وجه دَ شُبِّهَ لَهُمْ مصداق دَ یهودو په شان نصارا هم شو -

دَ دے دواړو ډلو په مقابله کښے دَ اسلام دغه عقیده ده کومه چه پدے ایات او په نورو ډیرو ایاتونو کښے په وضاحت سره بیان شوے ده چه الله تعالیٰ دهٔ لره دَ یهودو دَ لاسونه دَ خلاصولو دَ پاره ژوندے اسمان ته او چت کړو نه ئې دے قتل کړے شه او نه ئې په سولئ او خیژد وَلے شو - هغه ژوندے په اسمان کښے موجود دے - او قیامت ته نز دے به دَ اسمان نه راکوزیږی په یهودو به فتح بیا موی - او په اخر کښے به په طبعی مرګ سره وفات بیا موی -

په دے عقیده دَ ټول مسلمان امت اجماع او اتفاق دے - حافظ ابن حجرؒ په تلخیص الحبیر ص۳۱۹ کښے دا اجماع نقل کړے ده - دَ قرآن مجید دَ ډیرو ایاتونو اوْ دَ احادیثو په متواترو روایتونو او په اجماع دَ اُمت سره دَ ا عقیده ثابته ده - دلته دَ دے دَ پوره تفصیل موقع هم نیشته او ضرورت ئې هم نیشته ځکه چه دَ اُمت عالمانو دا مسئله په جُدا کتابونو او رسالو کښے پوره پوره واضحه کړے ده او دَ دے نه دَ انکارکونکو جوابونه ئې په تفصیل سره کړی دی - دَ هغې کتل پوره دی - مثلاً حضرت حجة الاسلام مولانا سیّد محمد انورشاه کشمیری کتاب په عربۍ ژبه "عقیدة الاسلام فی حیات عیسیٰ علیه السلام" دَ حضرت مولانا بدرِ عالم صاحب مهاجر مدنی کتاب په اردو ژبه "حیاتِ عیسیٰ علیه السلام" دَ مولانا سیّد محمد ادریس صاحب کتاب "حیات مسیح علیه السلام" او نورے هم په سوونو وړے لوئې رسالے په دے مسئله باندے چاپ شوی او مشهورے شوے دی - احقر هم په حکم دَ استاذ محترم حضرت مولانا سید محمد انورشاه صاحب کشمیریؒ دَ سلونه زیات احادیث چه دَ هغے نه دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام دَ ژوندی پورته کول او بیا قیامت ته نزدے راکوزیدل په تواتر سره ثابتیږی یو مستقل کتاب "التصریح بما تواتر فی نزول المسیح" کښے جمع کړی دی - چه اوس دَ حاشیے او شرح سره دَ شام یو بزرګ علامه عبدالفتاح ابوغُدّهٔ په بیروت کښے چاپ کړے دے -

او حافظ ابنِ کثیر دَ سورتِ احزاب دَ ایات ؛ وَاِنَّهٗ لَعِلْمٌ لِّلسَّاعَةِ ؛ په تفسیر کښے لیکلی دی :

وَ قَدْ تَوَاتَرَتِ الْاَحَادِیْث عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّم اَنَّهٗ اَخْبَرَ بِنُزُوْلِ عِیْسٰی عَلَیْهِ السَّلَام قَبْلَ یَوْمِ الْقِیٰمَةِ اِمَامًا عَادِلًا الخ

"یعنے دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم احادیث په دے باره کښے متواتر دی چه دوی دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام مخکښے دَ قیامت نه دَ نازلیدو خبر ورکړے دے"

دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام ژوندے آسمان ته دَ اوچتولو او ژوندی اوسیدو او بیا قیامت ته نژدے دَ نازلیدو عقیده دَ قرآن کریم په قطعی نصوصو او په متواتر احادیثو سره ثابته ده ۔ چه دَ امت علماؤ دَ مستقلو کتابونو او رسالو په صورت کښے شائع کړے ده چه دَ بعضونو مونه بره لیکلی شوی دی ۔ دَ مسئلے دَ مکمل تحقیق دَ پاره دَ دوی طرف ته رجوع کول پکار دی ۔

دلته صرف یوے خبرے طرفته ستاسو فکر راګرځوم چه که څوک دے ته اوګوری نو که لږ عقل او انصاف په چا کښے وی نو په دے مسئله کښے بِه ئے هیڅ شک شبه پاتے نه شی ۔ هغه داده چه دَ سورتِ اٰل عمران په یو لسمه رکوع کښے الله تعالیٰ دَ تیرو پیغمبرانو ذکر او فرمایه نو دَ حضرت آدمؑ، نوحؑ، اٰلِ ابراهیمؑ، اٰلِ عمران دَ ټولو ذکر ئے په یو ایت کښے اجمالًا (یعنے سرسری) اوفرمایه ۔ دَ دے نه پس ئے په دریمو رکوع ګانو یا درویشتو ایاتونو کښے دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام او دَ دهٔ دَ خاندان بیان داسے اوکړو او په تفصیل سره اوکړه چه په خپله دَ خاتم الانبیاء صلی الله علیه وسلم چه قرآن پرے نازل شه دَ هغهٔ ذکر هم په دومره تفصیل سره نه دے راغلے ۔ دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام دَ نِیا ذکر، دَ هغے دَ نذر بیان، دَ مور پیدائش، نوم ئے او دَ پرورش (پالنے) ذکر ئے په تفصیل سره، دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام دَ مور کیدو ته راتلل، بیا دَ پیدا کیدو په تفصیل سره حال دَ پیدا کیدو نه پس ئے مور څهٔ او خوړل څښل ئے او شکل دَ دے ذکر، خپل خاندان ته دَ بچی راوړل، دَ هغوی بد بد ردعے، دَ پیدا کیدو سره سم په طور دَ معجزے خبرے کول، بیا ځوانیدل او قوم ته دعوت ورکول، دَ هغوی مخالفت، دَ حواریانو امداد، دَ یهودیانو کیره ۔ دَ دهٔ ژوندے آسمان ته اوچتول وغیره، په متواتر و

احادیثو کښې دَ دهٔ زیات صفتونه، شکل، صورت دَ جامو وغیره پوره تفصیل. دا داسې حالات دي چه په ټول قرآن او حدیث کښې دَ یو نبي او رسول حالات په داسې تفصیل سره نهٔ دي بیان شوي. دا خبره هر انسان ته دَ فکر بلنه ورکوي چه داسې وَلې او په څهٔ حکمت سره شوي دي.

که لږ هم فکر اوشي نو دا خبره صفا کیږي چه حضرت خاتم الانبیاء صلی الله علیه وسلم چونکه آخري نبي او رسول دے، بل نبي دَ دهٔ نه پس راتلو نکے نیشته. په دے وجه دوئ په خپلو تعلیماتو کښې دَ دے خبرے ډیر انتظام اوفرمایه. چه دَ قیامته پورے کومے کومے مرحلے منزلونه اُمّت ته مخکښې راتلونکي دي دَ هغے په باره کښې خوُدَ نے اوکړي. نو په دے وجه دوئ یو طرف ته دا انتظام اوفرمایه چه دَ دوئ نه پس به دَ تابعدارئ قابل کوم خلق وي، دَ دوي ذکر ئې بنیادي طور سره دَ عامو صفتو نو سره هم بیان کړهٔ. دَ بعض حضراتو نومونه ئې هم اوخودل امّت ته ئې دَ هغوی دَ تابعدارئ تاکید اوفرمایه. او دَ دوی په مقابله کښې ئې دَ هغو ګمراهو خلقو هم پته اُوخوده چه دَ هغوی نه دَ اُمّت دین ته خطره وه.

په وروستو راتلونکو ګمراهانو کښې دَ ټولونه لوئې سړے مسیح دجال وهٔ چه دَ دهٔ فتنه ډیره ګمراه کوُنکي وه. دَ دهٔ ئې دومره حالات او صفات بیان کړهٔ. چه دَ دهٔ دَ راتلو په وخت کښې امّت ته دَ دهٔ په ګمراهئ کښې دَ څهٔ شک شُبهِ ځائې پاتې نه شي. دغه شان په وروستو راتلونکو اصلاح کوُنکو او دَ اقتدار په قابلو بزرګانو کښې دَ ټولونه زیات لوئې حضرت عیسیٰ علیه السلام وے. چه الله تعالیٰ په نبوّت او رسالت سره اُونمانځهٔ او په فتنه دَ دجال کښې ئې دَ مسلمانان امت دَ امداد دَ پاره ژوندے په آسمان کښې اُوساتهٔ. او قیامت ته نزدے به هغه دَ دجال دَ قتلَ وَلوُدَ پاره مامور کړے شي. په دے وجه ضرورت وهٔ چه دَ دهٔ حالات او صفات هم امت ته ډاګه اوخودے شي. چه دَ دے نه پس بیا دَ عیسیٰ علیه السلام دَ نزول په وخت کښې دَ دهٔ په پیژندو کښې څهٔ شک شُبهَ پاتې نهٔ شي.

په دے کښې ډیرے حکمتونه او مصلحتونه دي. اوّل دا چه که امّت ته دَ دهٔ په پیژندو کښې اشکال دَ ګران والي راپیښ شي. نو دَ دهٔ دَ راکوزیدو مقصد به پوره نهٔ شي. مسلمانان به دَ دهٔ سره ملګري نهٔ شي نو دے به دَ دوی مدد څنګه اوُ

کړے شی۔

دویم داچه حضرت عیسیٰ علیه السلام اګرچه دغه وخت د نبوت اورسالت په کاروتو سره مامور شوے دنیاته نه راځی۔ بلکه د امت محمدی د مشری او امامت د پاره به په طور د خلیفه د رسول ﷺ تشریف راوړی۔ مګر کومه ذاتی مرتبه د نبوت او رسالت چه دۀ ته حاصله ده د هغې نه به معزول شوے هم نه وی۔ بلکه دغه وخت به د دۀ مثال د هغه ګورنر په شان وی چه د خپلے صوبے ګورنر دے مګر په څۀ ضرورت سره بلے صوبے ته تلے دے۔ نو دے اګرچه په دغه صوبه کښے خود ګورنر په حیثیت سره نه دے، مګر د خپلے عهدے د ګورنرئ نه معزول هم نه دے۔ لهٰذا داچه حضرت عیسیٰ علیه السلام به دغه وخت هم د نبوت او رسالت د صفت نه جُدا نه وی۔ او لکه څنګه چه د هغه د نبوت نه انکار اول کفر وه دغه وخت به هم کفر وی۔ نو مسلمان امت چه د اول نه د هغهٔ په نبوت د قرآنی ارشاداتو مطابق ایمان راوړے دے۔ نو که د نزول په وخت کښے دے او نه پیژنی نو په انکار کښے به اخته شی۔ په دے وجه د هغهٔ نښو نښانو او صفتو نو لوه د ذیاتو ښکاره کولو ضرورت وۀ۔

دریم داچه د عیسیٰ علیه السلام د نزول واقعه به د دُنیا په اخری عمر کښے راپیښیږی۔ نو که نښے نښانے ئے شکلے وے نو ممکنه ده چه بل سړے دعوه اوکړی چه زۀ مسیح عیسیٰ ابن مریم یم۔ نو په دے نښو سره به د هغهٔ تردید کولے شی۔ لکه چه په هندوستان کښے مرزا قادیانی دعوه اوکړه چه زۀ مسیح موعود یم، او د امت عالمانو د دے نښو په وجه سره د هغهٔ دنیا رد کړه۔

**لهٰذا** داچه په دے ځائے کښے او په نورو ځایونو کښے د حضرت عیسیٰ علیه السلام حالات او صفات په دومره تفصیل سره بیان کیدل په خپله د هغهٔ قیامت ته نزدے په نازلیدو او دوباره دنیا ته د تشریف راوړو خبر ورکوی۔ احقر دا مضمون په پوره وضاحت سره په خپله رساله "د مسیح موعود پیژندل"[1] کښے بیان کړے دے که څوک غواړی نو هغه دے اوګوری۔

---

[1] "مسیح موعود کی پہچان"۔

فَاَمَّا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فَاُعَذِّبُهُمْ عَذَابًا شَدِيْدًا فِى

پس هغه خلق چه کافر شو دوی لره به عذاب ورکړم عذاب سخت په

الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ ز وَمَا لَهُمْ مِّنْ نّٰصِرِيْنَ ﴿۵۶﴾ وَاَمَّا الَّذِيْنَ

دنیا کښے او په اخرت کښے - او نشته به دوی د دوی مددګار - او هغه خلق چه

اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فَيُوَفِّيْهِمْ اُجُوْرَهُمْ ط وَ

ایمان ئے راوړو او نیک کارونه ئے اوکړل - پس دوی لره به پوره ورکړی د دوی حق - او

اللّٰهُ لَا يُحِبُّ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۵۷﴾ ذٰلِكَ نَتْلُوْهُ عَلَيْكَ مِنَ

الله نه خوښوی بے انصافو لره - دا لولو مونږ په تا باندے ایاتونه

الْاٰيٰتِ وَالذِّكْرِ الْحَكِيْمِ ﴿۵۸﴾

او بیان تحقیقی (یعنی د حقیقت)

**د ایاتو تړون** په بره ایات کښے ویلی شوی دی چه زۀ به د دے اختلاف کونکو په مینځ کښے د قیامت په ورځ عملی فیصله کوم - په دے ایات کښے د دغے فیصلے بیان دے -

# لنډ تفسیر

تفصیل (د فیصلے) دادے چه کوم خلق (په دے اختلاف کونکو کښے) کافر وُه پس دوی ته به (د دوی په کفر باندے) سخته سزا ورکوم (په جُمعه به دواړو جهانونو کښے) په دنیا کښے هم (چه هغه اوشوه) او په اخرت کښے هم (چه هغه پاتے دہ) او د دے خلقو به څوک مددګار (د خلاصونکے) نۀ وی - او کوم خلق چه مؤمنان وُو او هغوی نیک کارونه کړی وُو پس دوی لره به الله تعالیٰ د دوی

(دَایمان او نیکوکارونو) ثواب به ورکړی او (کفارو ته دَ سزا ملاویدو وجه دا ده چه) (الله تعالیٰ محبت نه ساتی دَ ر داسې) ظلم کونکو سره (کوم چه دَ خدائے تعوَ یا پیغمبرانو نه منکر وی - یعنې چونکه دا ظلم پرې لوئے دے دَ معافئ قابل نه دے په دے وجه به پرے سخت غضب او شی سزا به بیا موجی) دا (ذکو شوے قصه) موږ تاته (په وحئ سره) لولو او اورو او چه (رستا دلیل دَ نبوت) دے او دَ حکمت ډک مضامین دی -

# معلومات او مسئلے

دَ دُنیا مصیبتونه دَ کفارو دَ پاره نه کفاره کیږی او دَ مؤمن دَ پاره دَ کفاره او فائدہ کیږی

فَأُعَذِّبُهُمْ عَذَابًا شَدِيدًا فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ ، دَ دے ایت په مضمون باندے یو سپک شان اِشکال راځی - چه بیان دَ اخرت دَ فیصلے دے نو په دے کښے دَ دنیا دَ عذاب څۀ معنی ده ځکه چه په دغه وخت کښے خو به دَ دُنیا سزا بیا نه وی -

نو دَ دے جواب دا دے چه دَ دے ونیا داسے مثال دے لکه چه یو حاکم یو مجرم ته دا سے او وائی چه دا وخت خو زۀ تاله یو کال قید ورکوم خو که په جیل خانه کښے دے څۀ شرارت او کوۀ نو دوه کاله سزا به درکړم، فقط دَ دے مطلب به دا وی چه دا دوه کاله به دَ نن تاریخ نه وی - پس په دے بناء باندے دا یقینی ده چه دَ شرارت نه پس به دَ دوه کالو حکم صادر وی - نو حاصل دا شه چه دَ شرارت په وجه به ورسره دَ یو کال بل جمع کولو په وجه ټول مجموعه قید دوۀ کاله شی -

نو دغه شان دلته کښې په کار دی چه دَ دُنیا سزا خو شوے ده خو دَ اخرت سزا به ورسره پیوست کړی نو دَ قیامت په ورځ به دَ ټولے مجموعه سزا تکمیل او شی - یعنے دَ دوی دَ دنیا سزا به دَ اخرت دَ پاره کفاره نه وی (چه کوم دے دلته ئے سزا خوړلے ده حلته به او س سزا نه وی بلکه په دنیا کښے هم به عذاب کښے وُه او اوس په اخرت کښے به هم دَ دوی دَ پاره عذاب وی) په خلاف دَ مومنانو نه چه په دوی چه په دنیا کښے مصیبت وغیره راځی نو گناه ئے معاف کیږی او دَ اخرت عذاب ئے سپک او یا دفع کیږی - او په دے وجه ئے دَ دوی طرفته په لَا يُحِبُّ الظّٰلِمِيْنَ سره ارشاد اوشو ما یه-

یعنې ایماندار په سبب د ایمان سره د الله تعالیٰ محبوب دی او د محبوبو (خوږو) سره داسې معامله کیږی - او کافران په سبب د کفر سره د الله تعالیٰ په غضب کښې دی او د غضب شوو سره داسې معامله نه شی کیدے - (بیان القرآن)

---

إِنَّ مَثَلَ عِيسَىٰ عِندَ اللَّهِ كَمَثَلِ آدَمَ ۖ خَلَقَهُ مِن تُرَابٍ

بے شکه مثال د عیسیٰ د الله په نزد په شان د مثال د آدم دے - جوړ ئے کړه دهٔ لره د خټې نه

ثُمَّ قَالَ لَهُ كُن فَيَكُونُ ﴿٥٩﴾ الْحَقُّ مِن رَّبِّكَ فَلَا تَكُن مِّنَ

بیائے او وے وهٔ ته چه شهٔ نو شهٔ - حق دغه دے چه ستا رب له وائی پس ته مهٔ کیږه

الْمُمْتَرِينَ ﴿٦٠﴾ فَمَنْ حَاجَّكَ فِيهِ مِن بَعْدِ مَا جَاءَكَ

د شک کونکو نه - بیا چه څوک جګړه کوی ستا سره په دے قصه کښې پس د دے نه چه راغے تاته خبر

مِنَ الْعِلْمِ فَقُلْ تَعَالَوْا نَدْعُ أَبْنَاءَنَا وَأَبْنَاءَكُمْ وَنِسَاءَنَا

رشتونے پس ته او وایه راشئ را اوبه بلؤمو نږ خپل اولاد او ستاسو اولاد او خپلے ښځے

وَنِسَاءَكُمْ وَأَنفُسَنَا وَأَنفُسَكُمْ قف ثُمَّ نَبْتَهِلْ فَنَجْعَل

او ستاسو ښځے او خپل ځانونه او ستاسو ځانونه - بیا به اوزارو او کړو مونږ تپول او لعنت به

لَّعْنَتَ اللَّهِ عَلَى الْكَاذِبِينَ ﴿٦١﴾ إِنَّ هَٰذَا لَهُوَ الْقَصَصُ الْحَقُّ ۚ

او کړو د الله په هغو چه دروغژن وی　　بے شکه دا دے بیان　　رشتونے

وَمَا مِنْ إِلَٰهٍ إِلَّا اللَّهُ ۚ وَإِنَّ اللَّهَ لَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿٦٢﴾

او نیشته د بندګئ لایق سوا د الله نه او الله چه دے هغهٔ دے زبردست حکمت والا -

فَإِنْ تَوَلَّوْا فَإِنَّ اللّٰهَ عَلِيمٌ بِالْمُفْسِدِينَ ﴿٦٣﴾ ع

بیا که دوی قبول نه کړی نو الله تعالیٰ ته معلوم دی فساد کوونکی -

# لنډ تفسیر

بے شکه حالت عجیبه دَ (حضرت) عیسیٰ (علیه السلام) دَ الله تعالیٰ په نزد (یعنې دَ هغهٔ په تجویز ازلی کښې) مشابه دے دَ حالت عجیبه دَ (حضرت) آدم (علیه السلام) سره چه دهٔ (آدم علیه السلام) لره (یعنې دَ دهٔ قالب لره) ئے دَ خاورو نه جوړ کړو بیا ئے دے (قالب) ته حکم اوکړو چه (جاندار) شه پس هغه (جاندار) شه داوا قعی کار (چه بیره ذکر شه) ستا دَ پروردګار دَ طرف (خو دلے شوے) دے پس ته دَ شك کوونکو نه مه کیږه پس څوك چه ستا سره دَ عیسیٰ علیه السلام په باره کښې (اوس هم) دلیل بازی کوی تاته دَ (واقعی) علم راتلو نه پس نو ته (په جواب کښې داسے) اووایه چه (ځهٔ نو کړه دلیل نه منئ نو بیا) راشئ مونږ (اوتاسو) یو راجمع کړو خپل اولاد او ستاسو اولاد او خپلے ښځے او ستاسو ښځے او په خپله خپل ځا نونه او ستاسو ځانونه بیا به مونږ (په جمع سره) خهٔ په زړهٔ سره دُعا اوکړو داسے چه دَ الله تعالیٰ لعنت به او لیږو په هغو چه (په دے بحث کښې په ناحقه وی بے شکه دا (ځهٔ چه) ذکر شو دادی رښتونی خبرے او بل څوك دَ عبادت لائق نیشته بغیر دَ الله تعالیٰ نه (دا ذاتی یو والے شه) او بے شکه الله تعالیٰ دے غلبے والا حکمت والا (دا صفاتی یو والے شو) بیا دَ دے تهولو دلیلونو نه پس هم که دَ حق قبلولو نه مخ آړه وی نو (تاسو دَ دوی معامله خدائے ته اوسپاری ځکه چه) بے شکه الله تعالیٰ خهٔ پوهه دے په فساد کوونکو باندے -

# معلومات او مسئلے

**قیاس دلیل دے** : إِنَّ مَثَلَ عِيسَىٰ عِنْدَ اللّٰهِ كَمَثَلِ آدَمَ ؛ دَ دے آیات نه معلومیږی چه قیاس هم په شرعی دلیلو نو کښې دے ځکه چه الله تعالیٰ او فرمایل چه دَ عیسیٰ علیه السلام پیدا ایش داسے دے لکه

دَ آدم علیه السلام یعنې لکه څنګه چه آدم علیه السلام بغیر دَ پلار (او مور) نه پیدا شه دغه شان که حضرت عیسیٰ علیه السلام هم بغیر دَ پلار نه پیدا کړه نو دالله تعالیٰ دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام پیدائښتِ لره دَ حضرت آدم علیه السلام په پیدائښت باندے قیاس کولو طرفته اشاره او فرمائیله ـ (مظهری)

## دَ مباهلې پیژندل

فَقُلْ تَعَالَوْا نَدْعُ الخ: په دے آیاتو سره الله تعالیٰ نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته دَ مباهلې کولو حکم ورکړے دے چه دَ هغې تعریف (پیژندل) دا دے چه کچرې ته دَ یو کار په حق والی او باطل والي کښې دَ دواړو فریقینو جګړه جوړه شي او په دلیلو نو سره جګړه ختم نه شي ـ نو بیا دا طریقه اِخْتِیَار ه وَلے په کار دے ـ چه ټول یو ځائے شي او الله تعالیٰ ته سوال او کړي چه څوک په دے کار کښې په باطله باندے (یعنې په ناحقه باندے) وي په هغوئ دے د الله تعالیٰ دَ طرفه وبال او هلاکت او غورزیږي ـ ځکه چه دَ لعنت معنیٰ دَ خدائے دَ رحمت نه لرے کیدل دي ـ او دَ رحمت نه لرے کیدل قهر ته نزدے کیدل دي ـ

پس حاصل دَ معنیٰ دَ دے دا شه چه په دروغژن دے قهر نازل شي پس کوم سړے چه دروغژن وي هغه به دَ دے سزا ځکي ـ دغه وخت به پوره تعین دَ رشتوني او دروغژن منکرانو ته هم ښکاره شي ـ په دے طریقه دُعا کولو ته "مباهله" وائي او په دے کښې اصل په خپله دَ مباحثه کوونکو جمع کیدل او دُعا کول دي خپلو خپلوانو او عزیزانو لره جمع کولو ته ضرورت نیشته ـ لیکن که جمع کړے شي نو په دے سره به اهتمام نور هم زیات تیږي ـ

## دَ مباهلې واقعه او دَ روافضو رَدْ

دَ دے پس منظر (یعنې واقعه) داده چه نبي کریم صلی الله علیه وسلم دَ نجران نصاراؤ ته یو فرمان اولیږه ـ چه په هغې کښې درے خبرے په ترتیب سره ذکر شوے وے ـ (۱) اسلام قبول کړئ (۲) یا جزیه ادا کړئ (۳) یا جنګ ته تیار شئ ـ نصاراؤ دَ یو بل سره مشوره اوکړه ـ شرحبیل، عبد الله بن شرحبیل او جبار بن فیض ئې دَ نبي کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې اولیږل ـ دا خلق راغله او په مذهبي کارونو کښې ئې خبرے اترے شروع کړے ـ تر دے چه دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام دَ خدائے ثابتولو دَ پاره دے خلقو

دَ دېر زيات بحث او تکرار نه کار روا غست - نو په دے کښې دا آيات دَ مباهلې نازل شو نو حضورؐ نصارا ته دَ مباهلې دعوت ورکړو - او په خپله هم دَ حضرت فاطمهؓ او او حضرت علی کرم الله وجهه، امام حسن او حسين رضی الله عنهما سره د مباهلې ته تيار شو را او وتلو - شرحبيل چه دا او ليدل نو خپلو دواړو ملګرو ته ئې او وے چه تا سو ته معلومه ده چه دا دَ الله نبی دے او دَ نبی سره په مباهله کولو کښې زمونږ هلاکت او بربادی يقينی دی - نو په دے وجه دَ خلاصی څهٔ بَلَه لار او لټوئ - ملګرو ورته او وے چه ستا په نزد دَ خلاصی څهٔ صورت دے؟ هغهٔ او وے ځما په نزد غوره صورت دا دے - چه دَ نبی دَ رائے موافق دے صلح او شی - نو په دے باندے دَ ټولو اتفاق راغے - نو نبی کريم صلی الله عليه وسلم په دوی جزيه مقرر کړه صلح ئې او کړه - چه دے لره هغوی منظوره کړه - (تفسير ابن کثيرؒ)

په دے آيات کښې دَ اَبۡنَآءَنَا نه مراد صرف صلبی اولاد نه دے - بلکه عام اولاد ترے مراد دے - خواه اولاد وی او که دَ اولاد اولاد وی - ځکه چه په عرف کښې په ټولو دَ اولاد اطلاق کيږی - پس په اَبۡنَآءَنَا کښې دَ دوی نمسی حسنينؓ او زوم حضرت علی رضی الله عنه داخل دی - او بيا خاص طور حضرت علی رضی الله تعالی عنه لره په اَبۡنَآءَنَا کښې داخله ول په دے وجه هم صحيح دی چه دوی خو بالنه هم دَ حضورؐ په غيږه مبارکه کښې موندلے وه - حضورؐ دهٔ لره دَ خپلو بچو په شان پالـلے وه او دهٔ دَ پالنے او پرورش پوره پوره خيال ئے ساتلے وهٔ - په داسے بچی باندے په عرف کښې دَ ځوئ اطلاق کيدے شی -

دَ دے بيان نه دا خبره واضح شوه چه حضرت علی رضی الله عنه په اولاد کښې داخل دے - په دے وجه دَ روافضو دَ هٔ لره دَ اَبۡنَآءَنَا نه خارجول او په اَنۡفُسَنَا کښې ئے داخلول دَ دهٔ خلافت بلا فصل باندے دليل نيول صحيح نه دی - (چه کوندے دے دَ نور و خلفاؤ نه اول متصل دَ خلافت حقدار وه) -

قُلۡ يَٰٓأَهۡلَ ٱلۡكِتَٰبِ تَعَالَوۡاْ إِلَىٰ كَلِمَةٖ سَوَآءِۭ بَيۡنَنَا وَبَيۡنَكُمۡ

تهٔ او وايه چه اے اهل کتاب يو داشی يوے خبرے طرفته چه برابر ده په مينځ زمونږ او ستاسو کښې

اَلَّا نَعْبُدَ اِلَّا اللّٰهَ وَلَا نُشْرِكَ بِهٖ شَيْـًٔا وَّلَا يَتَّخِذَ بَعْضُنَا

چه بندګي به نه کوُو مګر د الله او شريک به نه جوړوُ د هغه هيڅوک او نه به جوړوُ ځوک

بَعْضًا اَرْبَابًا مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ ۭ فَاِنْ تَوَلَّوْا فَقُوْلُوا اشْهَدُوْا

چا لوه رب سوا د الله نه . بيا که د وی قبول نه کړی (دا خبره) نو او وايه چه ګواه شئ

بِاَنَّا مُسْلِمُوْنَ ﴿۶۴﴾

چه موږ د حکم تابعدار يوُ -

# لنډ تفسير

(اے محمد صلی الله عليه وسلم) ته اُووايه چه اے اهلِ کتابو راشئ يو داسے خبرے طرف ته چه زموږ او ستاسو په مينځ کښے (منلوته) برابره ده (هغه دا ده) چه بغير د الله تعالیٰ نه به موږ د بل هيچا عبادت نه کوُو او د الله تعالیٰ سره به هيڅوک نه شريکوُ - او په موږ کښے به ځوک بل لوه رب نه مقرر کوی چه خدائے تعالیٰ لره پاتے کوی بيا که د دے نه پس هم ) دغه خلق (د حق نه) ګرځه کوی نو تاسو (مسلمانان) خلق او وايئ چه تاسو (زموږ) په دے (اقرار) باندے ګواه شئ چه موږ خو د دے خبرے لره) منونکی يوُ (که تاسو نه منئ نو تاسو به هم مه شئ) -

# معلومات او مسئلے

**د تبليغ او دعوت خاص اُصُول**

تَعَالَوْا اِلٰى كَلِمَةٍ سَوَآءٍۭ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ : د دے ايات نه د تبليغ او دعوت يو خاص اصول معلوميدے شي هغه دا چه که يو سړے يو داسے جماعت (ټولګی) ته د دعوت ورکول خواهشمند وی چه په عقيده او نظريو کښے د دهٔ نه مختلف وی - نو د هغے طريقه دا ده چه دغه د عقيدے مخالف جماعت ته دے صرف په

دے خبرہ دَجمع کیں و دعوت ورکړی چه کومه چه دَدواړو واتفاق را تلے شی۔
لکه نبی کریم صلے اللہ علیه وسلم چه کله دَ روم بادشاه هرقل ته دَاسلام دعوت
ورکړهٔ نو دَ داسے مسئلے طرف ته ئے ورکړهٔ چه په هغے دَدواړو واتفاق وُه۔
یعنے دَ اللہ تعالیٰ دَوحدانیت (یو والی) طرف ته - هغه دعوت نامه دا ده لاندے
نقل کولے شی :

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، مِنْ مُحَمَّدٍ عَبْدِ اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ، اِلٰى
هِرَقْلَ عَظِيْمِ الرُّوْمِ سَلَامٌ عَلٰى مَنِ اتَّبَعَ الْهُدٰى، اَمَّا بَعْدُ فَاِنِّيْ
اَدْعُوْكَ بِدِعَايَةِ الْاِسْلَامِ اَسْلِمْ تَسْلَمْ يُؤْتِكَ اللّٰهُ اَجْرَكَ
مَرَّتَيْنِ فَاِنْ تَوَلَّيْتَ فَاِنَّ عَلَيْكَ اِثْمَ الْيَرِيْسِيِّيْنَ، يٰۤاَهْلَ الْكِتٰبِ
تَعَالَوْا اِلٰى كَلِمَةٍ سَوَآءٍ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ اَنْ لَّا نَعْبُدَ اِلَّا اللّٰهَ وَلَا
نُشْرِكَ بِهٖ شَيْئًا وَّلَا يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضًا اَرْبَابًا مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ

(بخاری)

"زهٔ شروع کوم دَ اللہ په نوم سره چه ډیر مهربان دے او نهایت رحم کونکے
دے دا خط دَ محمد دَ اللہ دَ بنده او دَ هغهٔ دَ رسول دَ طرف دے
دَ روم بادشاه هرقل طرف ته ، سلامتی دے وی په هغه سړی
باندے چه دَ هدایت دَ لارے تابعداری اوکړی - پس دَ دے نه
زهٔ تا ته دَ اسلام دَ بلنے دعوت درکوم ، اسلام را وړه ته به
سلامت پاتے شے او تا لره به دوه غبرګے اجر درکړی - او که تا ډډه
اوکړه نو په تا باندے به وی وبال دَ دغے ټولو کسانو نو کوم چه
ستا په رعیت کښے دی، اے اهل کتاب یو داسے خبرے طرف ته
راشئ چه جمع شو کومه چه زمونږ او ستاسو په مینځ کښے برابره ده
هغه دا چه مونږ به دَ اللہ تعالیٰ نه بغیر دَ بل چا عبادت نه کوُو
او نهٔ به دَ هغهٔ سره څوک شریک جوړه وُو او نه به مونږ
داکوُو چه اللہ به پاتے کوُو او په خپل مینځ کښے به یو بل لره
رب جوړ وُو"

:فَقُولُوا اشْهَدُوا بِأَنَّا مُسْلِمُونَ: په دے آيات کښې چه ئے داويلي دی چه تاسو
ګواه اوسئ په دے سوره کښې دا تعلیم ورکړے دے چه کله په ښکاره دلیلونو سره
هم څوک حق او نه مني نو د حجت پوره کولو د پاره خپل مَسْلَک (دین) ښکاره
کول او خبره ختمول په کار دي - زیات بحث نه او تکرار کول مناسب
نه دی - بس خبره غوڅول په کار دی -

يَا أَهْلَ الْكِتَابِ لِمَ تُحَاجُّونَ فِي إِبْرَاهِيمَ وَمَا أُنْزِلَتِ

اے اهلِ کتابو ولے جګړه کوئ د ابراهیمؑ په باره کښے او تورات او

التَّوْرَاةُ وَالْإِنْجِيلُ إِلَّا مِنْ بَعْدِهِ ۚ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴿٦٥﴾

انجیل خو نازل شویدی د دهٔ نه پس - ولے په تاسو کښې عقل نیشته -

هَا أَنْتُمْ هَٰؤُلَاءِ حَاجَجْتُمْ فِيمَا لَكُمْ بِهِ عِلْمٌ فَلِمَ

آورئ تاسو خلق په کومه خبره کښے چه درته څه پته وه جګړه مو او کړه او س ولے

تُحَاجُّونَ فِيمَا لَيْسَ لَكُمْ بِهِ عِلْمٌ ۚ وَاللَّهُ يَعْلَمُ وَأَنْتُمْ

جګړه کوئ په کومه خبره کښے چه درته هیڅ پته نیشته - او الله پوهیږی او تاسو نهٔ

لَا تَعْلَمُونَ ﴿٦٦﴾ مَا كَانَ إِبْرَاهِيمُ يَهُودِيًّا وَلَا نَصْرَانِيًّا

پوهیږئ - نه وُه ابراهیمؑ یهو دی او نه وُه نصر انی

وَلَٰكِنْ كَانَ حَنِيفًا مُسْلِمًا وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ ﴿٦٧﴾

او لیکن وُه حنیف یعنې د ټولو د روغو مذهبونو نه بیزاره او حکم منونکے - او نه وُه مشر ک

إِنَّ أَوْلَى النَّاسِ بِإِبْرَاهِيمَ لَلَّذِينَ اتَّبَعُوهُ وَهَٰذَا النَّبِيُّ

په خلقو کښے زیات مناسبت د ابراهیمؑ سره د هغو وُه - چه د دهٔ سره وُو او د دے نبیؐ لره

وَالَّذِينَ آمَنُوا ۗ وَاللَّهُ وَلِيُّ الْمُؤْمِنِينَ ﴿٦٨﴾

او هغوی چه ایمان راوړی په دے نبی. او الله مدد ګار دے د مسلمانانو.

# لنډ تفسير

اے اهل کتابو ولے دلیل بازی کوئ د (حضرت) ابراهیم (علیه السلام) په باره کښے (چه هغه په طریقه د نصرانیت وه یا د یهودیت وه) حال دا دے چه نه دی نازل کړی شوی تورات او انجیل مګر د هغهٔ (د زمانی) نه ډیر پس (او دا دواړه طریقے د دے دواړو کتابونو د نازلیدو نه پس ښکاره شوے. ځکه چه د دے وجود هم نه وه نو بیا حضرت ابراهیم علیه السلام په دے طریقو باندے څنګه کیدے شی) ولے اے (داسے د عقل نه خلاف خبرے د خولے نه اوباسئ او) بیا پوهیږئ نه. هان تاسو داسے یئ چه په داسے خبرو کښے مو دلیل بازی کړے ده چه تاسو ته پرے څهٔ ق (خبردارے) خو وه (اګرچه په دے کښے مو غلطه مقدمه جوړه کړه غلط نتیجه مو ترے ویستله. چه مراد د دینه خوارق (معجزے) د عیسی علیه السلام دی. چه دا خوک واقع سره مطابق دی خو د دے سره ئے دا غلطه مقدمه ملاؤ کړه چه د داسے معجزو خود والے اِلٰه یا ځوئ د اِلٰه به وی. نو اګرچه معجزے تاسو داسے د هغه نه او لیدے نو د غلطئ او ناپوهئ په وجه ترے تاسو غلط نتیجه اُوویستله نو په دے کښے تاسو غلطی ښکاره شوه) پس په داسے خبرو کښے (بیا) ولے دلیل بازی کوئ چه په هغے کښے تاسو ته بالکل څه علم او پوهه نیشته (ځکه چه د دے دعوے د پاره خو ستاسو سره څه د اشتباه سبب هم نیشته. ځکه چه د دوی او د ابراهیم علیه السلام د شریعت په فروعو کښے څه موافقت هم نه وه) او الله تعالیٰ (د ابراهیم علیه السلام طریقه څهٔ) پیژنی تاسو ئے نه پیژنئ (ځکه چه تاسو داسے بے سرو خپو دعوے کوئے چه د هغے نه علم هم په مثل د ښشتوالی د علم ګڼړلے شی نو اوس د الله تعالیٰ نه د هغهٔ طریقه واورئ) ابراهیم علیه السلام نه خو یهودی وه او نه نصرانی وه لیکن (البته) ښغ لارے والا (یعنے) صاحب د اسلام وه او د مشرکانو نه (هم) نه وه (پس یهودو او نصاراؤ لره خو د مذهبی طریقو په اعتبار سره د هغهٔ سره هیڅ مناسبت او نه شه

هان) بے شکه په ټولو خلقو کښے زیات خصوصیت لرونکی د (حضرت) ابراهیم (علیه السلام) سره البته هغه خلق وُه چا چه (د هغهٔ په وخت کښے) د هغهٔ تابعداری کړے وه او دا نبی (محمد صلے الله علیه وسلم) دے او دا ایمان والا دی (چه د نبی صلے الله علیه وسلم اُمتیان دی) او الله تعالیٰ ملګرے د ایماندارو دے (چه دوی ته به د ایمان ثواب ورکوی) -

وَدَّتْ طَّآئِفَةٌ مِّنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ لَوْ يُضِلُّوْنَكُمْ ؕ وَمَا

آرزو وړه د بعض اهل کتابو چه په څهٔ شان ګمراه کړی تاسو لره - او ګمراه

يُضِلُّوْنَ اِلَّآ اَنْفُسَهُمْ وَمَا يَشْعُرُوْنَ ﴿٦٩﴾ يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ

کوی نه مګر خپل ځانونه او نه پوهیږی - اے اهل کتابو

لِمَ تَكْفُرُوْنَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَاَنْتُمْ تَشْهَدُوْنَ ﴿٧٠﴾ يٰٓاَهْلَ

ولے انکار کوئ د الله د کلام او تاسو پرے قائل یئ - اے اهلِ

الْكِتٰبِ لِمَ تَلْبِسُوْنَ الْحَقَّ بِالْبَاطِلِ وَتَكْتُمُوْنَ الْحَقَّ

کتابو ولے یو ځائے کوئ په رشتیاؤ کښے دروغ - او پټوئ رشتیا خبره

۷ ع ۸ ۵ وَاَنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ﴿٧١﴾ ع

او تاسو پوهه یئ -

# لنډ تفسیر

په زړهٔ سره غواړی بعض خلق د اهلِ کتابو نه دا کار چه تاسو لره (د دین حق نه) ګمراه کړی نه ګمراه کوی مګر خپل ځانونه (د ګمراه کولو په وبال کښے ئے اخته کوی) او خبر ترے نه دی اے اهل کتابو ولے کفر کوئ د

(هغه) آیا تو نوسره (چه په تورات او انجیل کښې په نبوّت محمدیؐ باندې دلالت کوی حُکم چه دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم دَ نبوّت نه انکار کول دَ دغې آیاتو نه دروغژن کول دی چه کفر دے) حالانکه تاسو (په خپله ژبه سره) اقرار کوئ (چه دغه آیاتو نه حق دی داخوئ ملامته کول شو په گمراه کولو باندې وړاندې اوس دَ دوی په گمراهئ باندې دوی ملامته کوی فرمائی چه) اے اهل کتابو دَ لے خلط کوئ واقعی (مضمون یعنی نبوّت محمدیؐ په) لره دَ غیر واقعی (یعنی عبارت بدل کړی شوی یا تفسیر فاسد) سره او (دَ لے) پټوئ واقعی خبرے لره حالانکه تاسو پرے پوهه ئی (چه حق خبره پټوو)

## معلومات او مسئلے

دَ أَنْتُمْ تَشْهَدُونَ او أَنْتُمْ تَعْلَمُونَ دَ الفاظونه دے دا مطلب نه شی اخستے چه که دوی دَ حق اقرار او نه کړی یا دوی ته علم نه وی نو دَ دوی دَ پاره به کفر جائز وی وجه دا ده چه کفر دَ خپل ذات په اعتبار سره یو قبیح فعل دے - دے په هر حالت کښے ناجائز دے - البته دَ علم او اقرار نه پس به کفر اختیار ده دَ لوکښے ملامتیا نوره زیاتیږی - (یعنے گناه او سزا ئے نوره زیاته شی په وجه دَ اقرار او علم سره) -

وَقَالَتْ طَّآئِفَةٌ مِّنْ أَهْلِ الْكِتَٰبِ ءَامِنُوا بِالَّذِىٓ أُنزِلَ

او اُوئیل بعض اهل کتابو منئ څه چه نازل شوی دی

عَلَى الَّذِينَ ءَامَنُوا وَجْهَ النَّهَارِ وَاكْفُرُوٓا ءَاخِرَهُۥ لَعَلَّهُمْ

په مسلمانانو دَ ورځے په اول کښے او منکر شئ دَ ورځے په آخر کښے شاید دوی

يَرْجِعُونَ ﴿٧٢﴾ وَلَا تُؤْمِنُوٓا إِلَّا لِمَن تَبِعَ دِينَكُمْ قُلْ إِنَّ

واپس شی - او مه منئ مگر دَ هغه چا چه څوک ستاسو په دین باندې - او وایه چه بیشکه

الْهُدٰى هُدَى اللّٰهِ اَنْ يُّؤْتٰٓى اَحَدٌ مِّثْلَ مَآ اُوْتِيْتُمْ اَوْ

هدایت هغه دے چه الله هدایت اوکړي او دا هم خبره د دې د پاره دی چه بل چاته هم ولے ملاؤ شو لکه څنګه چه

يُحَآجُّوْكُمْ عِنْدَ رَبِّكُمْ قُلْ اِنَّ الْفَضْلَ بِيَدِ اللّٰهِ

تاسو ته ملاؤ شوی دی او یا دوی غالب ولے راغلل پتاسو باندے ستاسو د رب په مخ کښے - ته او وایه لوئی د الله په لاس کښے دے

يُؤْتِيْهِ مَنْ يَّشَآءُ وَاللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ (۷۳) يَّخْتَصُّ

ورکوی ئے چاته چه او غواړی او الله ډیر فراخئ والا دے خبردار - خاص کوی په خپله

بِرَحْمَتِهٖ مَنْ يَّشَآءُ وَاللّٰهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ (۷۴)

مهربانئ چالره چه او غواړی - او د الله فضل لوئے دے -

## لنډ تفسير

او بعضے خلقو دا هل کتاب ونه (په طور د مشوره د یو بل سره) او وے چه (د مسلمانانو د ګمراه کولو یو تدبیر دا دے چه په ظاهره) ایمان راوړئ په دے (کتاب) باندے چه نازل کړے شوے دی (په واسطه د رسول الله صلے الله علیه وسلم) په مسلمانانو باندے (مراد دا دے چه په قرآن باندے ایمان راوړئ) د ورځے په شروع کښے (یعنے د سحر په وخت کښے) او (بیا) انکار او کړئ په اخر د ورځے کښے (یعنے په مابنام کښے) څه عجیبه نه ده (چه په دے تدبیر سره د مسلمانانو هم د قرآن او اسلام په حق کښے شک پیدا شی او) هغوی (د خپل دین نه) واپس شی (او دا خیال او کړی چه دا خلق علم والا دی او بے تعصبه هم دی چه اسلام ئے قبول کړے دے نو چه په دے د پاسه دوی واپس شو نو خامخا به د اسلام ناحق والے د دوی ته په علمی دلیلو نو سره ثابت شوے وی او خامخا به دوی په اسلام کښے څه خرابی لیدلے وی ځکه خو ترے دوی واپس شو او اهل کتابو دا هم د یو بل سره او وے چه مسلمانانو ته د ځان خود د پاره صرف

ظاهري ايمان راوړئ) او (په صدق د زړۀ سره) د چا په مخامخ کښې (د دين) اقرار مه کوئ مګر د داسې سړي په مخ کښې چه ستاسو د دين منونکې وي (د هغۀ په مخ کښې تاسو لوه د خپل زړه د دين اقرار په خلوص سره کول په کار دي پاتې شو د غير مذهبو يعنې د مسلمانانو په مخ کښې د ذکر شوي مصلحت په بِنَا سره ژبانۍ د اسلام اقرار کوئ، الله تعالى د دوی د دې عبث تدبير اظهار فرمائي چه) اے محمد صلے الله عليه وسلم ته او وايه چه (په دے چالاکو باندے هيڅ نه کيږي ځکه چه) يقيناً هدايت (کوم چه بنده کانو ته کيږي هغه) هدايت د الله (د طرفه) دے (پس هرکله چه هدايت په قبضه د الله تعالى کښې دے نو هغه چه چا لره په هدايت باندے قائم ساتل غواړي نو بل څوک ئے په هيڅ تدبير سره نشي اړه ولے- وړاندے د دوی د دے مشورے او تدبير علت ځانئ چه اے اهلِ کتابو تاسو) داسے خبرے د دے د پاره کوئ چه چا بل چا ته هم داسے شے ملاؤ کيږي لکه چه تاسو ته ملاؤ شوے وه (يعني کتاب او آسماني دين) يا دغه نور خلق په تاسو غالب راشي (د دے حق دين په تعين کښې کوم چه) ستاسو د رب په نزد (دے- حاصل د علت دا شو چه ستاسو د مسلمانانو سره حسد دے چه دوی ته آسماني کتاب ولے ملاؤ شو، يا دا خلق په مونږ باندے په مذهبي مناظره کښې ولے غالب راځي، د دے حسد په وجه سره د اسلام او مسلمانانو د تنزل کوشش کوي- وړاندے د دے حسد رد دے چه) اے محمد صلے الله عليه وسلم ته او وايه چه بے شکه فضل د خدائے په قبضه کښې دے هغۀ چه د دے نه چا ته غواړي ورکوي او الله تعالى ډير فراخۍ والا دے (د هغۀ سره د فضل کمې نيشته او) خۀ پوهيدونکې دے (چه څۀ وخت چا ته ورکول مناسب دي په دے وجه) خاص کوي په خپل رحمت (او فضل) سره چا لره چه غواړي او الله تعالى لوئے فضل والا دے (پس په دے وخت کښې ئے په تقاضا د حکمت سره په مسلمانانو باندے فضل او رحمت او فرمايه- نو په دے کښې حسد کول فضول او جهل يعني ناپوهي ده) -

---

وَمِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ مَنْ اِنْ تَاْمَنْهُ بِقِنْطَارٍ يُّؤَدِّهٖٓ اِلَيْكَ

او بعضے د اهل کتابو نه هغه دی چه که ته د هغوی سره امانت کیدے ډیر مال نو دوی به ئے کړی تا ته

وَمِنْهُمْ مَّنْ اِنْ تَاْمَنْهُ بِدِيْنَارٍ لَّا يُؤَدِّهٖٓ اِلَيْكَ اِلَّا مَا

او بعضے د دوی نه هغه دی چه که ته د دوی سره امانت کیدے یوه اشرفئ نو ادا به ئے نه کړی تا ته مګر تر څو چه

دُمْتَ عَلَيْهِ قَآئِمًا ۭ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَالُوْا لَيْسَ عَلَيْنَا

د دوی په سر او درېږے ولاړ - دا په دے وجه چه دوی ویلی دی چه نیشته په مونږ باندے د دے

فِى الْاُمِّيّٖنَ سَبِيْلٌ ۚ وَيَقُوْلُوْنَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ

خلقو په حق اخستلو کښې څه ګناه - او دروغ وائی په الله باندے

وَهُمْ يَعْلَمُوْنَ ﴿۷۵﴾

او دوی پوهیږی -

**د ایاتونو تړون** پړ بره نو ایاتونو کښې د اهل کتابو د دین د خیانت ذکر وه یعنی د دوی عمله ایاتونو د الله سره کفر کول او خلط کول د حق او باطل، او د حق پټولو، او د مؤمنانو د ګمراه کولو تد بیر کول - په دے ایا ت کښې د دوی په مال کښې د خیانت ذکر دے - او په دوی کښې چو نکه بعضے امانتدار هم وو - نو په دے وجه ئے د دواړو قسمونو ذکر او کړه -

## لنډ تفسیر

او په اهل کتابو کښې بعض سړے داسے هم دے (اے مخاطبه) که ته د ده سره د مال انبار ونه هم امانت کیدے نو دے به ئے (د غو ختو سره) در کړی او په دوی کښې بعض هغه سړے دے چه که ته د ده سره یوه روپئ هم امانت کیدے نو هغه به هم تا ته درنه کړی (بلکه د امانت ایخودو اقرار به هم او نه کړی)

مګر تر څو پورې چه (امانت ايخوونه پس ئې) پسې (برابر) او در يږې (دغه وخت خو به انکار نه شي کولے - او که ترے جد اشوې نو بيائې د ادا کولو هيڅ ذکر هم نيشتے دسره به د امانتونه منکر وی) دا (د امانتونه ادا کول) په دے سبب سره دی چه دغه خلق وائي چه په مونږ د غير اهل کتابو (د مال) په باره کښے (که په غلا غولئ ئې واخلو د مذهب په لحاظ) هيڅ الزام نيشتے (يعنې د غير اهل کتابو مثلاً د قريشو مال پټول يا ترے په زور اغستل هر څه جائز دی - الله تعالیٰ ورانده د دوی دا دعوه دروغجنه کوی فرمائي) او دغه خلق په الله تعالیٰ دروغ وائي (چه دا کار حلال کړې) او په زړه کښے دوی هم پوهه دی (چه الله تعالیٰ دا نه دی حلال کړې محض د ځانه جوړه شوے دعوه ده) -

## معلومات او مسئلے

**د چا غير مسلمان د خو صفتونو تعريف کول جائز دی**

وَمِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ مَنْ اِنْ تَاْمَنْهُ بِقِنْطَارٍ يُّؤَدِّهٖٓ اِلَيْكَ ؛ په دے آيات کښے د بعض خلقو په امانتدارکيد و باندے صفت شوے دے - اګر چه د دے بعضو نه مراد هغه اهل کتاب دی چه ايمان ئې راوړے وه - نو د دوی په تعريف کولو کښے خو څه اشکال نيشتے - ليکن که خاص مؤمنان ترے مراد نه وی بلکه مطلق اهل کتاب مراد وی چه غير مسلمانان په کښے هم شامل دی - نو په دے صورت کښے دا سوال پيدا کيږی چه د کافر خو څه عمل مقبول نه وی نو بيا د دوی د مدح (صفت) کولو نه فائده څه ده؟ -

جواب ئې دا دے چه د څه شي مقبول کيدل جدا خبره ده او مدح کول ئې بله خبره ده - په مدح کولو سره دا نه لازميږی چه دغه کار د الله په نزد مقبول هم دے - د دينه دا خودل مقصود دی چه څه خبره اګر چه د کافر هم وی خو په څه درجه کښے ښه هم ده چه فائده ئې په دے دنيا کښے "نيک نامی" ده او په اخرت کښے د عذاب کمی -

د دے بيان نه دا خبره هم په ډاګه کيږی چه اسلام د تعصب او تنګ نظرۍ نه کار نه اخلی بلکه اسلام په آرته سينه سره د خپل مخالف د هنر هم د هغه ګ

مرتبې مطابق شا باشي ورکوي -

اِلَّا مَا دُمْتَ عَلَيْهِ قَآئِمًا: په دې آيات باندې امام ابو حنيفهؒ دا دليل نيولې دې چه قرض ورکوونکي ته دا حق حاصل دې چه دې د قرض داري نه د خپل حق د وصولو د پاره د حق د وصولۍ پورې په قرض دارئ پسې ور پسې وي (قرطبي ج ۴)

بَلٰى مَنْ اَوْفٰى بِعَهْدِهٖ وَاتَّقٰى فَاِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُتَّقِيْنَ (۷۶)

ولې نه ده څوک چه پوره کړي خپل اقرار او دې پرهيزګاري وي پس الله محبت کوي د پرهيزګارانو -

اِنَّ الَّذِيْنَ يَشْتَرُوْنَ بِعَهْدِ اللّٰهِ وَاَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا

کوم خلق چه اخلي په اقرار د الله باندې او په خپلو قسمونو باندې لږ شان

قَلِيْلًا اُولٰٓئِكَ لَا خَلَاقَ لَهُمْ فِى الْاٰخِرَةِ وَلَا يُكَلِّمُهُمُ

مال د دوي هيڅ حصه نيشته په اٰخرت کښې او نه به خبرې اوکړي د دوي سره

اللّٰهُ وَلَا يَنْظُرُ اِلَيْهِمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَلَا يُزَكِّيْهِمْ

الله او نه به اوګوري دوي ته د قيامت په ورځ او نه به پاک کړي دوي لره

وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ (۷۷)

او د دوي د پاره عذاب دردناک دې

**د ايا تو نوټرون**

بره د: وَيَقُوْلُوْنَ: نه د اهل کتابو د دعوې دروغجن والې ذکر وَه - وړاندې په دې اياتونو سره د دغې دروغجن کولو تاکيد او د وعدې پوره کولو فضيلت (شوره والې) او د وعدې د ماتولو د بد والي بيانه ولو وضاحت او تصريح ذکر کولې شي -

# لنډ تفسیر

(په خیانت کونکي به) الزام ولې نه وي (ځکه چه دا خو به وي ځکه چه دَ دې په باره کښې زمونږ دا دوه قانونه دي - یو دا چه) کوم سړے خپل عهد (خوا هغه عهد دَ الله تعالی سره شوے وي او یا په دې شرط چه جائزه وي او دَ بنده سره شوے وي) پوره کړي او دَ الله تعالی نه یرېږي نو بې شکه الله تعالی محبّت ساتي دَ (دا سې) متّقیانو سره (او دویم قانون دا دے چه) یقیناً کوم خلق چه بدله (یعنې دَ دنیا نفع) اخلي په مقابله دَ هغه عهد چه کوم (دوي) دَ الله تعالی سره کړے وي (مثلاً په پیغمبرانو ایمان راوړل) او (په مقابله) دَ خپلو قسمونو (مثلاً دَ بندګانو دَ حقونو او معاملو په باره کښې قسم خوړل) دے خلقو لره هیڅ حصّه په آخرت کښې (دَ هغه ځائے په نعمتونو کښې) به ملاؤ نه شي او نه به خدائے تعالی دَ دوی سره (په نرمۍ) خبرے او کړي او نه به دَ دوی طرف ته (په نظر دَ محبّت سره) او ګوري دَ قیامت په ورځ او نه به دوی لوه (دَ ګناهونو نه) پاک کړي او دَ دوی دَ پاره به دردناک عذاب (تجویز) شوے وي -

# معلومات او مسئلے

**دَعَهد پېژندل او دَ دې نه خلاف کونکو ته دَعذاب یو څو زُورَه نے**

عَهد دَ هغې خبرے نوم دے چه دَ دوه وُو فریقو په مینځ کښې دَ یو بل سره په خبرو اترو کښې مقرر شي چه په هغې باندې دواړو فریقو لره قائم او سیدل ضروري وي په خلاف دَ وعدې نه چه هغه صرف دَ یو طرف نه وي - یعنې عهد عام دے او وعده خاصه ده -

دَعهد پوره کولو په قرآن او حدیث کښې ډیر تاکید راغلے دے چنانچه په دې بره آیات نبے کښې هم دَعهد په خلاف ورزئ کولو سره پنځه زوَرَنے ذکر دي -

(۱) دوی ته به دَ جنّت دَ نعمتونو نه څهٔ حصه نه ملاویږي. په یو حدیث کښې

نبي کريم صلی الله عليه وسلم ارشاد فرمائي چه کوم سړي د دروغو قسم په ذريعه د يو مسلمان حق اخلي نو د هغه د پاره اور واجب کړه شو او جنت حرام کړه شو نو يو سړي عرض اوکړو چه که څه شے معمولي هم وي نو بيا به هم د دې د پاره اور واجب وي؟ دوئ په جواب کښې اوفرمايل اګر چه هغه د اونے شنه څانګه ولې نه وي (رواه مسلم بحواله مظهري)

(۲) الله تعالیٰ به ورسره په خوشحالئ خبرے اونه کړي -

(۳) او الله تعالیٰ به دغه ته د قيامت په ورځ د رحمت په نظر سره اونه ګوري -

(۴) او الله تعالیٰ به د دغه ګناهونه معاف نه کړي ځکه چه د عهد په خلاف کولو سره د بنده حق ضائع شوے دے او د بنده حق الله تعالیٰ نه معاف کوي - (۵) او د دوئ د پاره به دردناک عذاب وي -

وَإِنَّ مِنْهُمْ لَفَرِيقًا يَلْوُونَ أَلْسِنَتَهُم بِالْكِتَابِ لِتَحْسَبُوهُ

او په دوئ کښے يو فريق دے چه په مروړلے ژبه لولي کتاب د دے د پاره چه تاسو اوګڼئ

مِنَ الْكِتَابِ وَمَا هُوَ مِنَ الْكِتَابِ وَيَقُولُونَ هُوَ مِنْ عِندِ

چه دا د کتاب نه دے او نه هغه په کتاب کښے - او وائي دوئ چه د الله د طرفه دے

اللَّهِ وَمَا هُوَ مِنْ عِندِ اللَّهِ وَيَقُولُونَ عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ

او نه دے دغه د الله د طرفه او په الله باندے دروغ وائي سره

وَهُمْ يَعْلَمُونَ ﴿٧٨﴾ مَا كَانَ لِبَشَرٍ أَن يُؤْتِيَهُ اللَّهُ الْكِتَابَ

د پوهے - د يو بشر کار نه دے چه الله دغه له ورکړي کتاب

وَالْحُكْمَ وَالنُّبُوَّةَ ثُمَّ يَقُولَ لِلنَّاسِ كُونُوا عِبَادًا

او حکمت او پيغمبري کړي بيا هغه وائي خلقو ته چه تاسو بندګان شئ

لِّيْ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلٰكِنْ كُوْنُوْا رَبّٰنِيّٖنَ بِمَا كُنْتُمْ

ځما د الله نه سوا لیکن داسے وائي چه تاسو الله والا شئ لکه څنګه چه تاسو

تُعَلِّمُوْنَ الْكِتٰبَ وَبِمَا كُنْتُمْ تَدْرُسُوْنَ ﴿۷۹﴾ وَ

اِزده کاوه کتاب او لکه څنګه چه تاسو به هغه په خپله لوستلو - او

لَا يَاْمُرَكُمْ اَنْ تَتَّخِذُوا الْمَلٰٓئِكَةَ وَالنَّبِيّٖنَ اَرْبَابًا

نه دا اُوائي تاسو ته چه اونیسئ فرښتو لره او نبیانو لوه رب

اَيَاْمُرُكُمْ بِالْكُفْرِ بَعْدَ اِذْ اَنْتُمْ مُّسْلِمُوْنَ ﴿۸۰﴾ ع ۸ / ۹ / ۱۶

اے تاسو ته کفر اِزده کوی پس د هغے چه تاسو مسلمانان شوی يئ -

# لنډ تفسير

او بے شکه په دوی کښے بعضے داسے دی چه کږ وی خپلو ژبو لره په کتاب (لوستو) کښے (یعنے په دے کښے څهٔ لفظونه یا تفسیر غلط مِلاَ وَهِيْ او غلطو لوستو ته کوږ والے ورکوی) د دے د پاره چه تاسو خلق (چه دا واورئ نو) دغه (ملاوَ شوے شے) په (هم) د کتاب حصه اوګڼړئ - حال دا دے چه دغه د کتاب حصه نه ده او (صرف د دوی د رکولو د پاره په دے عملی طریقه بانددے صبر نه کوی بلکه په ژبه سره هم) وائی چه دا (لفظ یا تفسیر) د خدائے پاک د طرفه (چه کوم الفاظ یا قاعدے نازلے شوی دی په هغے سره ثابت) دے حالانکه دغه (په هیڅ شان) د خدائے تعالیٰ د طرفه نه دے (پس د دوی دروغ جړولے ثابت شو اوس وړاندے د تاکید د پاره د دے بیا زیات وضاحت دے) او په الله تعالیٰ دروغ وائی او (خپل دروغ جړوالے په زړهٔ کښے په خپله هم) دوی پیژنی یو بشر لره دا خبره نه ده لائقه چه الله تعالیٰ (خو) دهٔ ته کتاب او (د دین) پوهه او پیغمبری ورکړی (چه په دے دوی کښے د لحاظ یو دا غواړی چه کفر اوشوک

دے نه وی او) بیا دوی خلقو ته (دا سے) وائی چه ځما بندګان (یعنے عبادت کونکی) جوړ شئ د خدائے تعالیٰ (ریو والے) پاتے کړئ (یعنے پیغمبری او په شرک سره حکم کول نه شی جمع کیدے) او لیکن (هغه بنی خو به داسے) وائی به چه تاسو خلق الله والا جوړ شئ (یعنے صرف د الله تعالیٰ عبادت کوئ) په وجه د دے چه تاسو کتاب (د الله نورو ته هم) ازده کوئے او په وجه د دے چه (په خپله ئے هم) لولئ (او په دے کتاب کښے تعلیم د توحید دے) او نه (دغه بشر چه ذکر ئے اوشه یعنی دغه بنی) دا خبره خائی چه تاسو فرښتو لره او (یا نورو) بنیانو لره رب اونیسئ نو اے دے به تاسو ته د کفر خبره خائی پس د دے نه چه تاسو (په دے خاص عقیده کښے خواه په واقع سره یا په ګمان خپل سره) مسلمانان یئ۔

## معلومات او مسئلے

**د پیغمبرانو د پاکئ یو دلیل**

: مَا كَانَ لِبَشَرٍ ؛ د نجران د دغے ډلے په موجودګئ کښے بعضے یهودو نصاراؤ ویلی وو چه اے محمد ﷺ! اے ته داغواړے چه مونږ ستا دغه شان عبادت کول شروع کړو لکه څنګه چه نصارا د عیسیٰ ځوئی د مریم عبادت کوی؟ نو دوئی او فرمائیل پناه غواړم په خدائے سره د غیر الله د عبادت کولو نه چه یا زهٔ د غیر الله عبادت اوکړم او یا نورو ته را اوبلم الله تعالیٰ مونږ د دے کار د پاره نه یو را لیږلی۔ نو په دے باندے دا آیات نازل شو۔" یعنے کوم بنده لره چه الله تعالیٰ کتاب، حکمت، او قوت د فیصلے ورکړی او د پیغمبرئ لویه مرتبه ور لره ورکړی چه دے د الله تعالیٰ پیغام په ټهیک طریقه سره او د رسوی خلق د الله تعالیٰ بندګئ او وفادارئ طرف ته را اوګرځوی، د هغهٔ دا کار چرته نه شی کیدے چه خلقو لره د الله تعالیٰ د بندګئ نه اړه وی د خپل ځان یا د نورو مخلوق بندګان تړے جوړه وی۔ د دے خو به دا مطلب شی چه الله پاک چا لره د کوم منصب (مرتبے) لائق ګنړلے وه او را لیږلے ئے وهٔ هغه په واقع کښے د هغے لائق نه وه۔ د دُنیا یو حکومت هم که یو سړے په یو ذمواره عهده باندے مقرر کوی نو اوّل د دغه خبرو خیال ساتی:

(۱) چه دا سړے دَ حکومت په پالیسو باندے پوهه او دَ خپلو فرضو دَ پوره کولو لیاقت لری او که نه؟
(۲) دَحکومت دَ احکامو پوره کولو او رعیت لره دَحکومت په وفا داری باندے دَ قائم ساتلو دَدهٔ نه څومره اُمید کیدے شی - یو بادشاه یا یو پارلیمنټ به داسے سړے دَحکومت نائب یا سفیر چرته هم مقرر نه کړی - چه دَ هغهٔ په باره کښے دَحکومت په نسبت دَ بغاوت خوره وَلو یا دَحکومت دَ پالیسو او حکمونو دَخلاف کولو معمولی شان شك هم وی - بے شکه دا هم کیدے شی چه دَ یو سړی دَ قابلیت یا وفاداری اندازه حکومت په صحیح طور سره او نه کړے شی - لیکن دَ الله پاک په نزد خو دا هم ممکنه نه ده او نه دا احتمال کیدے شی - که دَ یو سړی په نسبت دَ هغهٔ علم وی چه دے تما دَ وفا دارئ او فرمانبرداری نه دَ ویخته هومره تجاوز به نه کوی - نو دا بیا نه شی کیدے چه وړاندے وخت کښے بیا دَ دے خلاف ثابت شی - که داسے نه وی نو دا خو به دعلم الٰهی غلط کیدل لازم شی (العیاذ بالله) دَ دے نه دَ انبیاء علیهم السلام پاکی امنی او دَ پاکدامنئ مسئله واضحه کیږی - نو چه بیا انبیاء علیهم السلام دَ لږ یعنے معمولی شان گناه نه هم پاک دی - نو بیا شوک کول او دَ خدائے پاک په مقابله کښے دَ بغاوت کولو خو هډو څه امکان پاتے نه شو -
په دے کښے دَ نصارا وُ دا دعوه هم رَدْ شوه چه دَمسیح علیه السلام دَ څوئی والی او خدائی عقیده مونږ ته په خپله مسیح علیه السلام خوډ لے وه - او هغے مسلمانانو ته پرے نصیحت او شو کوم چه نبی کریم صلی الله علیه وسلّم ته عرض کړے وه چه که مونږ دَسلام په ځائے تا ته سجده او کړو نو په دے کښے څهٔ حرج دے؟ او اهل کتابو ته په کښے هم په کنایه سره او ویلے شو کوم چه خپلو عالمانو او راهبانو (شیخانو) لره دَ خدائیے در جه ورکړے وه (العیاذ بالله) (فوائد عثمانی)

وَاِذْ اَخَذَ اللّٰهُ مِيْثَاقَ النَّبِيّٖنَ لَمَآ اٰتَيْتُكُمْ مِّنْ كِتٰبٍ

او کله چه واخستو الله پاک عهد دَ نبیانو نه چه څهٔ ما تاسو لره درکړهٔ کتاب

وَحِكْمَةٍ ثُمَّ جَآءَكُمْ رَسُوْلٌ مُّصَدِّقٌ لِّمَا مَعَكُمْ لَتُؤْمِنُنَّ

او علم بیا راشی تاسو ته څوک رسول چه رښتونے کوی ستاسو کتاب لره نو ایمان به راوړئ

بِهٖ وَلَتَنْصُرُنَّهٗ ؕ قَالَ ءَاَقْرَرْتُمْ وَاَخَذْتُمْ عَلٰى ذٰلِكُمْ

په دغه رسول او مدد به ئے کوئ۔ اوئے فرمایل چه اے تاسو اقرار اوکړو او په دے شرط باندے مو ځما

اِصْرِىْ ؕ قَالُوْٓا اَقْرَرْنَا ؕ قَالَ فَاشْهَدُوْا وَاَنَا مَعَكُمْ مِّنَ

عهد قبول کړو۔ اوئے وے چه مونږه اقرار اوکړو۔ اوئے فرمایل نو اوس ګواه شئ او زه هم ستاسو سره

الشّٰهِدِيْنَ ﴿۸۱﴾ فَمَنْ تَوَلّٰى بَعْدَ ذٰلِكَ فَاُولٰٓئِكَ

ګواه یم ۔ بیا چه څوک واپس شی د دینه پس نو هغه خلق دی

هُمُ الْفٰسِقُوْنَ ﴿۸۲﴾ اَفَغَيْرَ دِيْنِ اللّٰهِ يَبْغُوْنَ وَلَهٗٓ

نا فرمانه ۔ اوس څوک بل دین لټوی د الله د دین نه سوا او د هغهٔ په

اَسْلَمَ مَنْ فِى السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ طَوْعًا وَّكَرْهًا وَّ

حکم کښے دی څهٔ چه په اسمانونو او په زمکه کښے دی په خوشئ سره یا په لاچارئ سره او

اِلَيْهِ يُرْجَعُوْنَ ﴿۸۳﴾ قُلْ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَمَآ اُنْزِلَ عَلَيْنَا وَمَآ

هغهٔ ته به ټول واپس شی ۔ ته او وایه مونږ ایمان راوړے په الله او په هغه څه چه نازل شویدی په مونږ

اُنْزِلَ عَلٰٓى اِبْرٰهِيْمَ وَاِسْمٰعِيْلَ وَاِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ

او په هغهٔ څهٔ چه نازل شویدی په ابراهیم ؑ او په اسمٰعیل ؑ او په اسحاق ؑ او په یعقوب ؑ

وَالْاَسْبَاطِ وَمَآ اُوْتِىَ مُوْسٰى وَعِيْسٰى وَالنَّبِيُّوْنَ

او د دوی په اولاد او په هغه څهٔ چه ملاؤ شویدی موسیٰ ؑ ته او عیسیٰ ؑ ته او نورو نبیا نو ؑ ته

مِنۡ رَّبِّهِمۡ ۚ لَا نُفَرِّقُ بَيۡنَ اَحَدٍ مِّنۡهُمۡ ۫ وَ نَحۡنُ

دَ دوی دَ رب دَ طرف نه - مونږ نه جُدا کوو په دوی کښې هیچا لره       او مونږ خاص

لَهٗ مُسۡلِمُوۡنَ ﴿۸۴﴾

دَ هغهٔ حکم منونکی یوُ -

# لنډ تفسیر

(او هغه وخت هم دَ یادَ ولو قابل دے) کله چه الله تعالیٰ عهد واخِست د (حضرا تو) انبیاؤ (عَلَیهِم السلامو) نه چه څهٔ مونږ تاسو ته دَ کتاب او علم (شریعت) نه درکوم (او) بیا تاسو ته څوک (بل) پیغمبر راشي چه برابر (او موافق) وی دَ هغې (نښې علامې) سره چه ستاسو سره (په کتاب او شریعت کښې) دهٔ (یعنې دَ شریعت په معتبرو دلیلو نو سره دَ دهٔ رسالت ثابت وی) نو تاسو به خامخا دَ دغه رسول (په رسالت) باندے (په زړه سره) عقیده ګړاوړئ او (په لاسو خپو سره به) دَ دهٔ مدد هم کوئ (دَ دے عهد بیانولو نه پس ئے) اوفرمایل چه آیا تاسو اقرار او کړهٔ او وامو اخِستو په دے (مضمون) باندے ځما عهد (او حکم مو قبول کړهٔ) دوی اووے چه مونږ اقرار او کړهٔ او ئے فرمایل نو (په خپل دے اقرار باندے) ګواه هم اوسئ (ځکه چه دَ ګواهئ نه واپس کیدل هر سړے په هر حال کښې بد ګنړی، په خلاف دَ اقرار کولو نه دَ اقرار کونکی په وجه دَ صاحب غرض کیدو دَ دهٔ واپس کیدو زیات لرے نه دی، نو په دے شان سره تاسو صرف اقراریان نه بلکه دَ ګواه په شان په دے ولاړ اوسئ) او زهٔ (هم) په دے (مضمون) باندے ستاسو سره دَ ګواهانو نه (یعنې دَ واقعے دَ خبر او علم لرونکو نه) یم پس کوم سړے (دَ امتونو نه) چه اوګرځی (دَ دے عهد نه) پس دَ دے نه (چه دَ انبیاؤ پورے داعهد اَغستے شوے دے او امتونه په څهٔ شمار کښې دی) نو دا سے خلق (پوره) نافرمانی کونکی (یعنې کافر) دی ولے (دَ دین دَ اسلام نه چه دَ دے عهد توے اغستے شوے دے روګرداني کوی) بیا (دَ دے) خدائی دین

نه سوا بله څهٔ طریقه غواړی حال دا دے چه الله تعالیٰ (دا شان دے چه دَ) دَ (حکم دَ) وړاندے ټول سرخکته کوونکی دی څومره چه په اسمانونو کښې (دی) او (څومره چه په) زمکه کښې دی (بعضې) په خوښئ (او اختیار سره) او (بعضې) په مجبورئ سره او (او ل خو دَ دے لوئ دا تقاضا وه چه څوک دے کَدهٔ دَ عهد نه مخالفت نه کوی او خاص بیا چه دَ را تلونکے سزا یره هم ورسره وی چنانچه) ټول خاص دَ خدائے طرف ته (دَ قیامت په ورځ) به واپس (هم) کړے شی (او دغه وخت به مخالفت کوونکو له سزا وی) (اے محمد صلی الله علیه وسلم) ته (دَ اسلام دَ دین دَ بنکاره کولو دَ پاره په لنډه سره دا) او فرمایه چه مونږ ایمان لرو په الله باندے او په هغه (حکم) باندے چه مونږ ته را او لیږلے شو او په هغے (حکم) باندے چه (حضرت) ابراهیم او اسمٰعیل او یعقوب (علیهم السلام) او اولاد دَ یعقوب (کښې چه کوم نبیان تیر شوی دی دَ هغوی) طرفته او لیګلے شو او په هغے (حکم او معجزه) باندے هم کوم چه (حضرت) موسیٰ او عیسیٰ (علیهما السلام) او نورو نبیانو ته ورکړے شوی وُه دَ هغوی دَ رب دَ طرف نه (بس مونږ په دے ټولو ایمان لرو او ایمان هم) دا سے چه مونږ په دوی (حضراتو) کښے په یو کښے هم (دَ ایمان راوړو په معامله کښے) جدا والے نه کوو (چه په چا ایمان لرو او په چا نه لرو) او مونږ خاص دَ الله تا بعداری (هم خاص وهٔ مونږ ته دین او خوده مونږ هم اختیار کړو)۔

## معلومات او مسئلے

**دَ الله تعالےٰ درے عهد ونه**

الله تعالےٰ دَ خپلو بندګانو نه درے قسمه عهد و نه اَغستی دی،

دَ یو عهد ذکر په سورت اعراف کښے په: اَلَسۡتُ بِرَبِّکُمۡ سره ذکر دے۔ دَ دے عهد مقصد دا وُه چه ټول بنی نوعه مخلوق بنی آدم دَ خدائے په شته والی او عام رب والی باندے عقیده او ساتی ځکه چه دَ مذهب ټوله آبادی په دے بنیا د باندے ده۔ ترڅو پورے چه دا عقیده نه وی په مذهبی میدان کښے دَ عقل او فکر لار خودل هیڅ فائده نه شی رسولے۔ دَ دے زیات تفصیل به انشاء الله

په خپل مقام باندے راشی -

د دویم ذکر په وَاِذْ اَخَذَ اللّٰهُ مِیْثَاقَ الَّذِیْنَ اُوْتُوا الْکِتٰبَ لَتُبَیِّنُنَّهٗ لِلنَّاسِ وَلَا تَکْتُمُوْنَهٗ الخ: سره شوے دے - دا عهد صرف د اهل کتابو د عالمانو نه اغستے شوے وه - چه دوی به حق نه پټوی - بلکه صاف او واضح طور سره به ئے بیانوی -

د دریم عهد بیان په: وَاِذْ اَخَذَ اللّٰهُ مِیْثَاقَ النَّبِیّٖنَ لَمَآ اٰتَیْتُکُمْ مِّنْ کِتٰبٍ وَّ حِکْمَةٍ: سره شوے دے - د دے تفصیل به وړاندے راشی - (تفسیر احمدی)

د میثاق نه څۀ مراد دے | میثاق کوم ځائے اوشو؟ یا په عالم ارواح کښے اوشه اودا کوم ځائے اُو شو؟ | یا په دنیا کښے په ذریعه د وحئ اوشه - د دوا ړو احتمال شته - (بیان القرآن)

میثاق څۀ شے دے؟ د دے وضاحت خو قرآن شریف کړے دے - لیکن دا میثاق د څۀ شی په باره کښے اغستے شوے دے؟ په دے کښے اقوال مختلف دی حضرت علیؓ او حضرت ابن عباسؓ فرمائی چه د دے نه مراد نبی علیه السلام دے یعنے دا عهد الله تعالیٰ د ټولو انبیاؤ نه صرف د محمد صلی الله علیه وسلم په باره کښے اغستے وه - چه که دوی په خپله د دۀ زمانه بیاموی نو په دۀ به ایمان راؤړی او د دۀ تائید او مدد به کوی او خپلو خپلو اُمتونو ته به هم دا خو د نه او هدایت کوی -

حضرت طاؤس، حسن بصری او قتاده رحمهم الله فرمائی چه دا میثاق د انبیاؤ نه ځکه اغستے شوے وۀ چه دوی به په خپل منځ کښے د یو بل تائید او مدد کوی (تفسیر ابن کثیر)

د دے دویم قول تائید د الله تعالیٰ په دے قول: وَاِذْ اَخَذْنَا مِنَ النَّبِیّٖنَ مِیْثَاقَهُمْ وَمِنْكَ وَمِنْ نُّوْحٍ وَّ اِبْرٰهِیْمَ وَمُوْسٰی وَعِیْسَی ابْنِ مَرْیَمَ وَ اَخَذْنَا مِنْهُمْ مِّیْثَاقًا غَلِیْظًا" (احزاب) سره هم کیدے شی ځکه چه دا عهد ئے د دوی نه د یو بل د تائید او تصدیق د پاره اغستلے وۀ (تفسیر احمدی)

په حقیقت کښے په دے ذکر شوو دواړو تفسیرونو کښے څه تعارض (ټکراو) نیشته په دے وجه دواړه مراد کیدے شی (تفسیر ابن کثیر)

**دَ تېرو پيغمبرانو نه دَ ايمان دَ مطالبې فائده**

په ظاهره دلته دا شُبهَ کيدے شي چه الله تعالیٰ خو عليم او خبير دے هغهٔ ته خو په ښه شان سره معلومه ده چه محمد صلے الله عليه وسلم به د يو نبي په موجودګئ کښې هم تشريف را نه وړي نو بيا دَ انبياؤ دَ ايمان راوړو وفا ئده څهٔ ده ؟

که لږ شان غور او کړے شي نو فائده په بالکل معلومه او ښکاره شي - چه کله دوی دَ الله تعالیٰ په ارشاد دَ محمد صلے الله عليه وسلم په ذات والاصفات باندے دَ ايمان قَبُلَه وَلو پخه اراده او کړی نو دَ هغه وخت نه په ثو اب بيامومي. (صاوی بحواله جلالين)

**دَ حضور نبي اکرم صلے الله عليه وسلم دَ نبوّت عام والے.**

وَإِذْ أَخَذَ اللَّهُ مِيثَاقَ النَّبِيِّينَ الخ: په دے ايا تونو کښې دا خبره ښکاره بيان شوے ده چه الله تعالیٰ دَ تېرو انبياؤ نه پوخ عهد واغستو چه کله په تاسو کښے دَ يو نبي نه پس بل نبي راشي چه په يقين سره دَ ورا ندينو پيغمبرانو او دَ دوی دَ کتابونو تصديق کوونکے وی (يعنے هغوی ته رشتونی وائي) نو دَ اوّلني نبي دَ پاره دا ضروري ده چه دَ دے ورستي نبي په رشتونوالی او نبوّت باندے په خپله هم ايمان راوړی - او نورو ته هم دَ دے خودَنه اوکړی - دَ قرآن کريم دَ دے قاعدے کُليّے نه (يعنے عامے قاعدے نه) دَ دنيا ورځے په شان دا خبره په ډاګه کيږی چه الله تعالیٰ به دَ محمّد صلے الله عليه وسلّم په باره کښے هم دا سے عهد دَ انبياؤ نه اَغستلے وی لکه چه علامه سُبکیؒ په خپله رساله "التعظيم والمنة في لتؤمنن به ولتنصرنه" کښے فرمائي چه: په ايات کښے دَ رسول نه مراد محمد صلے الله عليه وسلم دے - بل يو نبي دا سے نه دے تېر شوے چه دَ هغهٔ نه الله تعالیٰ دَ دوئ دَ ذات والا صفات په باره کښے دَ تائيد او مدد او په دوئ باندے دَ ايمان راوړو وعده نه وی اغستلے - او بل يو دا سے نبي نه دے تېر شوے چه هغهٔ خپل امت ته په دوئ باندے دَ ايمان راوړو او دَ تائيد او مدد دکولو وصيّت نه دے کړے - او که دَ نبي اکرم صلے الله عليه وسلم بعثت (نبي مقرر کيدل) دَ انبياؤ په زمانه کښے وے - نو دَ دے ټولو به دوئ نبي وَه - او هغوئي به دَ دوئ په امّت کښے شمار وُو - دَ دے نه معلومه شوه چه دَ دوئ شان محض دَ امّت دَ نبي نه دے بلکه دَ نبيانو نبي هم دے -

چنانچه په یو حدیث کښې دوئ په خپله ارشاد فرمائي چه که نن موسیٰ علیه السلام هم ژوندے وے نو دَ هغهٔ به هم ځما دَ تابعدارئ نه علاوه بله چاره نه وه.

او په یو بل ځائے کښې ارشاد فرمائي چه کله عیسیٰ علیه السلام نازل شي نو هغهٔ به هم په قرآن حکیم او ستاسو دَ نبي په احکامو باندے عمل کوي (تفسیر ابن کثیر)

دَ دینه معلومه شوه چه دَ دوی نبوت "عام او ټولو له شامل" دے او دَ دوئ په شریعت کښې وړاندینې ټول شریعتونه مدغم (ړننه) دي. دَ دے بیان نه دَ دوئ دَ ارشاد "بُعِثْتُ اِلَى النَّاسِ كَآفَّةً" صحیح مفهوم ښکاره او واضح کیږي. او هغه دا چه دَ دے حدیث مطلب دا نه دے چه دَ دوئ نبوّت دَ دوئ دَ زمانے نه تر قیامته پورے دے صحیح نه دے. بلکه دَ دوئ دَ نبوّت زمانه دومره اوږده ده چه دَ آدم علیه السلام دَ نبوّت نه هم وړاندے شروع کیږي لکه چه په یو حدیث کښې دوئ فرمائي چه "کُنْتُ نَبِيًّا وَّ اٰدَمُ بَيْنَ الرُّوْحِ وَالْجَسَدِ" په قیامت کښې دَ لوئے شفاعت دَ پاره وړاندے کیدل او دَ ټولو بني آدمو دَ دوئ دَ جنډے لاندے جمع کیدل او دَ معراج په شپه په بیت المقدس کښې دَ ټولو انبیاؤ امامت کول دَ حضور نبي اکرم صلی الله علیه وسلم دَ دے عامے سردارئ او دَ لوئے امامت دَ نښو نه دي.

---

وَمَنْ يَّبْتَغِ غَيْرَ الْاِسْلَامِ دِيْنًا فَلَنْ يُّقْبَلَ مِنْهُ ۚ وَ

او څوک چه غواړي سوا دَ دین اسلام نه بل څهٔ دین پس دَ دهٔ نه به هرګز قبول نه شي. او

هُوَ فِي الْاٰخِرَةِ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ ﴿۸۵﴾

او دے به اخرت کښې خراب دے

**لنډ تفسیر**

او کوم سړے چه دَ اسلام نه سوا څه بل دین طلب کړي نو دغه (دین) به دَ (دے سړي) نه دَ خدائے تعالی

په نزد) مقبول او منظوم نه وی او (دغه سړے به) په اخرت کښې د تباه کونکو وشو نه وی (یعنې نجات به بیا نه مومی) -

# معلومات او مسئلے

| |
|---|
| دَاسلام پیژندل او په دے سره خلاصے مو نند ل |

د "اسلام" لفظی معنی دَحکم منَل او فرمانبرداری ده - او په اصطلاح کښے خاص دَ هغے دین دَحکم منلو نوم "اسلام" دے کوم چه الله تعالیٰ دَ خپلو پیغمبرانو په ذریعه دَ بنی آدمو دَ هدایت دَپاره رالیږلے دے - ځکه چه دَدین اُصول دَ ټولو انبیاؤ علیهم السلام په شریعتونو کښې یو دی -

بیا لفظ دَ"اسلام" کله دَدے عام مفهوم (مطلب) دَپاره استعمالیږی - او کله صرف دَدے اخری شریعت دَپاره ویلے شی کوم چه په خاتم الانبیاء صلے الله علیه وسلم باندے نازل شوے دے په قرآن کریم کښے ترے دادواړه مطلبونه یعنې معنے اغستلے شویدی او دَدے دواړو دَپاره استعمال شوے دے - دَتیرو پیغمبرانو خپل ځان ته مسلمان ویل او خپل اُمت ته مسلمان امت ویل هم دَ قرآن په ایاتونو سره ثابت دی - او دَدے نوم دَخاتم الانبیاءؐ دَ امت سره خاص والے هم ذکر دے -

"هُوَ سَمّٰكُمُ الْمُسْلِمِيْنَ مِنْ قَبْلُ وَفِيْ هٰذَا" لهٰذا داچه هر خدائی دین چه دَ کوم نبی او رسول په ذریعه دنیا ته راغلے دے هغے ته هم "اسلام" ویلے شی - او دَ امت محمدیه دَپاره دَ یو خاص لقب په طور سره هم استعمالیږی - او س سوال دادے چه په قرآن کریم کښے دلته دَ اسلام دَ لفظ نه کوم مفهوم مراد دے ؟

صحیح خبره داده چه په دواړو کښے هر یو مراد واغستے شی نو دَ نتیجے په اعتبار سره څۀ خاص فرق نه پریوځی - ځکه چه دَ تیرو پیغمبرانو دین ته چه کوم دَ اسلام نوم ورکړے شوے دے هغه دَ یو ټو خاص خلقو او یو خاص زمانے دَپاره وو - دَ دغه وخت اسلام هغه وو - دَدغے خاص خلقو او امت نه

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَمَاتُوا وَهُمْ كُفَّارٌ فَلَنْ

کوم خلق چه کافر شوا او مړهٔ شو په کفر کښې نو هرګز به

يُّقْبَلَ مِنْ أَحَدِهِم مِّلْءُ الْأَرْضِ ذَهَبًا وَّلَوِ

قبول نه شی د چا داسې نه زمکه ډکه د سرو زرو اګرچه په

افْتَدَىٰ بِهِ ۗ أُولَٰئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ وَّ

بدله کښې ورکوی دومره قدر سرو زرهٔ - دوی لره عذاب دردناک دے او

مَا لَهُم مِّن نَّاصِرِينَ ﴿۹۱﴾ ع ۹ ۱۱ ۱۷

هیڅوک نشته د دوی مدد ګار -

## لنډ تفسیر

(اول د دین نه د مرتد شوو هغو خلقو بیان دے چه په کفر باندے ولاړ وُو او دا کفر یې هدایت ګانړهٔ. چونکه د دوی عقیده یا دعوه دا وه چه الله تعالیٰ مونږ ته اوس هدایت فرمایلے دے نو په دے وجه د دوی په بد والی بیانولو کښې د دے هدایت نیشتوالے هم بیانوی فرمائی چه) الله تعالیٰ داسې خلقو ته څنګه هدایت کوی چه کافر شوی دی پس د ایمان راوړو نه (په زړهٔ سره) او پس د خیل دے اقرار نه (په ژبه سره) چه رسول (صلے الله علیه وسلم په دعوه د رسالت کښې) رشتونے دے او پس د دے نه چه دوی ته ښکاره دلیلونه (د اسلام د حقوالی) رسیدلی وُو او الله تعالیٰ داسې بے دینه خلقو ته هدایت نه کوی (د دے مطلب نه دے چه داسې خلقو ته چرې ته هم د اسلام توفیق نه ورکوی بلکه مقصود د دوی د دے پوره ذکر شوے دعوے نفی کول دی. چه دوی به وے چه مونږه چه اسلام پاتے کړے دے

اوداطریقه مو اختیار کړے ده دا مونږ ته خدائے پاک هدایت کړے دے۔ نو دَدے نفی ېچوړ داشو چه کوم سړے دَ کفر بے ړه یه لار اختیار کړی هغه دَ الله تعالیٰ په هدایت باندے نه دے۔ په دے وجه هغه دانه شی ویلے چه ماته خدائے هدایت کړے دے ځکه چه دَ هدایت دالار نه ده بلکه د اسے خلق یقینی گمراه دی۔ او) دَداسے خلقو سزا داده چه په دوی دَ الله تعالیٰ هم لعنت وی او دَ فرښتو هم او (دَ ډیرو) خلقو هم (غرض) دَ ټولو را و بیا هغه لعنت به هم په داسے طورسره وی چه) دے به همیشه همیشه دَ پاره په دے (لعنت) کښے اوسی ( او چونکه دَدے لعنت اثر جهنم دے نو مطلب داشو چه دے به په جهنم کښے همیشه همیشه وی او ) دَ دوئ نه به عذاب سپکولے هم نه شی او نه به ( دَ داخلید ونه اول) دوی ته (دَ څهٔ میعاده پورے) مُهلت ورکولے شی ( ودړاندے دَ هغو بیان دے چه بیا مسلمان شی دوی لره دَدے حکم نه جدا کوی یعنی) مگر هغه کوم خلق چه توبه او باسی دَدے (کفر) نه پس (یعنی مسلمان شی) او خپل ځان (زړه) لره (هم) برابر کړی (یعنی دَ منافقانو په شان صرف په ژبه باندے توبه کافی نه ده) پس بے شکه (دَداسے خلقو دَ پاره) خدائے تعالیٰ بخونکے دے رحمت کونکے دے۔ بے شکه کوم خلق چه کافرشو دَ خپل ایمان راوړو نه پس بیا زیات شو په کفر کښے (یعنی په کفر ئے همیشوالے او کړو ایمان ئے را نه وړو) دَ دوی توبه (کومه چه دَ نورو گناهونو نه کوی) هرگز به قبوله نه وی (ځکه چه توبه دَ گناهونو نه یو فرعی اطاعت دے او دَ فرعی عبادت دَ قبلید و شرط ایمان دے) او داسے خلق (دَدے توبے نه پس هم په دغه دستور سره) پاخه گمراهان دی۔

بے شکه کوم خلق چه کافر شو او دَ دوی مرګ هم په دغے حالت دَ کفر کښے راغے پس په دوی کښے دَ چانه (په طور دَ کفارے سره) ډکه زمکه دَ سرو زرو هم به نه شی اغستے اگرچه دے دغه په بدله کښے ورکول هم اوغواړی (او بے ورکړ دئے هم څوک پټوس کوی؟) دَداسے خلقو دَ پاره به دردناکه سزا وی او دَ دوی حامی (مددگار) به هم څوک نه وی۔

# مَعلومات اَو مَسئلې

## دَ یو شك لرې كوَل

كَيْفَ يَهْدِي اللهُ الخ: دَ دے ایات نه په ظاهره داشبه رشتكه پیدا كیږی چه یو سړی ته دَمرتد كیدو نه پس بیا هدایت نه شی نصیب كیدے او حال دادے چه داسے نه ده ځكه چه ډیر خلق دَمرتد كیدو نه پس ایمان قبول كړی او هدایت مونده ونکی جوړ شی۔

**جواب** ئے دادے چه دلته دَكوم هدایت نفی رنشتوالے) شوے دے۔ ددے مثال داسے دے چه لكه یو بدمعاش ته یو حاكم په خپل لاس سره سزا وركړی او دغه بد معاش بیا واۍ چه ما ته حاكم په خپل لاس سره خصوصیت راكړے دے یعنے زه ئے خاص كړے یم او په جواب كښے ورته او یلے شی چه داسے بدمعاش ته موږ خصوصیت وَلے وركړو یعنے دا كار دَ سره خصوصیت دے نه۔ او مطلب ئے دا دوی چه دا سړے په حیثِ شان سره دَخصوصیت قابل كیدے نه شی اګر چه دے نیك چلنه او سم سړے جوړ شی (بیان القرآن)۔

## درېمه پاره ختم شوه

ناشران

## تاج كُتب خانه محله جنګی پشاور

برېښنايي کوونکی : عزت الله سلطانزي

اړیکه واټس اپ : 0093706912720

د لوی الله تعالی په فضل سره د دی ټوک سکن کول ۱۳۹۷/۱۲/۱۰ نیټه پاي ته ورسید ،

نور ټوکونه به ان شاء الله

ډیر ژر برېښنايي او بیا به پر لیکه شي

مونږ په دعا کی یاد ساتی

